# تسهيل الهداية

پښتو شرح د هدايه

مع

المرآة الصافية لتخريج احاديث الهداية

الاقوال الراجحة مسائل الهداية

حل لغات الهداية

تالیف


مولانا پروفیسر شاه فیصل

فاضل امداد العلوم



فیصل کتب خانه

محله جنگی پیښور

نوی تصحیح شده او اضافه شده ایډیشن

# تسهیل الهدایه

## په قندهاریٔ او یوسفزیٔ پښتو کې شرح

# هدایه

جلد: ۲

تالیف :مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس وامداد العلوم

### خصوصیات او اضافات

① په هدایه کښې ذکرشوې حدیث باندې لاندې حاشیه کښې د هغې تخریج

② داحنافو په مینځ کښې په مختلف فیها مسئله کښې د راجح قول تعین

③ د قندهاریٔ او یوسفزیٔ پښتو ګډون او امتزاج

④ د هدایه د مشکلو لغاتو حل

⑤ دهدایه متن ته اعراب ورکول

⑥ د مضمون په لحاظ سره د هدایه متن تقسیمول

⑦ د هدایه د هرې جملې سره متصل دهغې ترجمه

⑧ د هدایه عبارتونو ته د موضوع په لحاظ سره عنوانات ورکول

⑨ شرحې ته په عربیٔ ژبه کښې مناسب عنوانات ورکول

⑩ د کتاب په اول کښې د فقه په ضروری مباحثو مشتمله جامع مقدمه

ناشر

فیصل کتب خانه محله جنګی پېښور موبائیل: ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

**دکتاب نوم** :تسهیل الهدایه شرح هدایه پښتو

**تالیف** :مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس وامدادالعلوم


**د قندهارئ او یوسفزئ پښتو**

هغه ټکی کوم چه د یو بل څخه مختلف دی موږ د قوسینو په مینځ کښې قندهاری ټکی ته یوسفزی ټکې لیکلې دې اودغه شان د دې پر عکس البته کوم ټکی چې کثیر الاستعمال دی نو په هغې کښې مو یا صرف په قندهارئ پښتو بسوالې او اکتفاء کړې ده یا په یوسفزئ پښتو مثلا مونږ او موږ، قسم او ډول وغیره دغه شان کوم ټکی چې مکرر راغلی دی نو په اول ځل مو په څو مقاماتو کښې د دواړو ژبو ټکی لیکلی دی او بیا مو صرف په یوه ژبه اکتفاء کړې ده په دې طریقه یو طالب علم په دې کتاب کښې د یوسفزئ او قندهارئ دواړو لغاتو پوهه حاصلولې شی کوم چې ده ته په نورو کتابونو کښې هم مدد ورکولې شی

**د مزید تفصیل دپاره په اول جلد کښې مقدمه ضرور اوګورئ**


**د ملاویدو پته:**

**فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵**

رشیدیه کتب خانه اکوړه خټک ۰۳۳۳۹۱۵۸۴۷۷

علمیه کتب خانه اکوړه خټک ۰۹۲۳۶۳۰۵۹۴

مکتبه رحمانیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۰۶۰۴۹

مکتبه عثمانیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۰۱۳۷۳۷۰۳۰

مکتبه عرفان کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۲۱۳۱۶

مکتبه یوسفیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۰۸۲۸۹۳۰

مکتبه طیبه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۸۰۲۲۶۹۵

مکتبه حرمین کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۸۰۰۱۹۳۱

مکتبه علوم اسلامیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۰۹۱۹۵

راشد کتب خانه چمن ۰۳۰۰۳۸۹۶۳۵۳

مکتبه حقانیه چمن ۰۳۳۳۷۷۵۲۲۱۹

**صداقت کتب خانه قندهار افغانستان ۰۷۸۷۷۴۲۳۶۱**

**قدرت کتب خانه کابل افغانستان ۰۷۹۹۶۱۹۶۰۳**

**عبدالمجید کتب خانه جلال اباد ۰۷۰۸۱۹۷۷۴۹**

اسلامی کتب خانه خوست افغانستان ۰۷۹۹۳۱۰۲۴۷

مکتبه فاروقیه پیښور ۰۳۰۰۹۰۰۷۵۵۰

مکتبه رشیدیه کوئټه ۰۸۱۲۶۶۲۲۶۳

مکتبه معروفیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۹۰۷۳۹۸




## باب العیدین

ژباړه:- (دا) باب د وړوکی اودلوې اختر (د احکامو) په بیان کې دې.

**تشریح:- الربط بما قبله**❁دجمعې اوداخترونوپه لمونځ کې مناسبت دادې.چونکه دواړه د ورځې مونځونه دی. نودواړه په کثیر جماعت سره ادا کولې شی.په دواړو کې دننه جهری قرات کولې شی. اوهم غه شان چې کوم شرطونه په جُمعه کې دی.هم هغه شرطونه داخترونو دې.سوا دخطبې نه.ځکه چې خطبه دجُمعې دلمونځ لپاره شرط ده.خود اخترونو لپاره شرط نه ده.او په چاچه جُمعه واجب وی .په هغه باندې د اخترونو لمونځ هم واجب دې.

**الوجهان لتسمية العيد**❁ ① داختر نوم عید په دې وجه کیخودې شو.چه په دې کې الله تعالی په خپلو بنده ګانو باندې د احسان اعاده فرمائی.② دویمه وجه داچه دعاد یعود معنٰی عود کول او واروسته کیدل دی. چونکه دا مقدسه ورځ هرکال عود کوی او راواروسته کیږی.په دې وجه ددې نوم ،،عید،، (اختر) کیخودې شو،

**وجه تقديم الجمعة على العيدين**❁ ① چونکه جُمعه د فرضیت په وجه سره قوی ده.او د اخترونو لمونځ د عدم فرضیت په وجه ددې په مقابله کې اضعف دې.په دې وجه دجُمعې احکام مخکې ذکرشول.اود اخترونو احکام روسته.② یا دا چې جُمعه کثیرالوقوع ده.په دې وجه جُمعه د اخترونو د باب نه مقدم کړې شوې ده.

**وجه اظهار يوم العيدين**❁ ① په هرقوم کې یوه نه یوه ورځ داسې ضرور وی.چه په هغې کې عام طورخوشحالی کولې شی.ښائسته کپړې اغوستې شی.او ښه خوراکونه خوړلی شی.لکه چې په حدیث کې دی ﴿لكل قوم عيد وهذا عيدنا﴾ د هرقوم یو اختر وی او دا زموږ اختر دې.② داهغه ورځ ده چې کله خلګ دخپلو روژو نه فارغ شی او یو ډول زکاة ادا کوی.نو په دغه ورځ دوی لپاره دوې [دوه] قسمه خوشحالئ جمع کیږی.طبعی او عقلی،طبعی خوشی خوځکه حاصلیږی.چه د روژې دسخت عبادت نه فارغ شی.اومحتاجو ته صدقه ملاویږی.اوعقلی خوشحالی داده.چه الله تعالی دفرض عبادت ادا کاوه دوی ته توفیق ورکړو.او ددوی اهل وعیال ته دې کاله پورې د پاته ساتلو په دوی باندې انعام اوکړو.په دې وجه ددې خوشحالیانو د اظهار حکم دې.

**اصل وجوبهما**❁ دوړوکی اخترلمونځ د ټولونه اول په اوله هجرئ کې شوې دې.(شرح نقایه) داخترونو دلمونځ په مشروعیت کې اصل د ابوداؤد روایت دې ﴿عن انس رضي الله عنه قال قدم رسول الله ﷺ المدينة ولهم يومان يلعبون فيهما فقال ما هذان اليومان قالوا كنا نلعب فيهما في الجاهلية فقال رسول الله ﷺ ان الله قد ابدلكم بهما خيرا منهما يوم الأضحى ويوم الفطر﴾ انس رضي الله عنه فرمائی چې دمدینې خلګو لپاره دوې [دوه] ورځې دلوبو وې. چې کله رسول الله ﷺ مدینې منورې ته تشریف راوړلو.نو وئې فرمائیل الله تعالی ستاسو لپاره ددې دواړو نه بهترې دوې [دوه] ورځې په بدل کې درکړې. یو لوې اختر او بل وړوکې اختر.

**حكمة مشروعية العيدين**❁ د عباداتو په وختونو مقررکولوکې دا هم حکمت دې چې په هغه وخت کې انبیاء علیهم السلام دالله تعالی کوم طاعت اوعبادت کړی وی.او الله تعالی هغه قبول کړی وی.د هغې وخت په راتلوسره د هغوی د قربانئ یاد تازه کاوه لپاره د هغې عبادت اړخ ته رغبت او شوق وی.نودا دلوې اختر ورځ هغه ورځ ده.چه حضرت ابراهیم علیه السلام خپل زوې حضرت اسماعیل علیه السلام د الله تعالی په حکم د الله تعالی په دربارکې د ذبح کاوه او د پیش کاوه اراده کړې وه.اوالله تعالی دحضرت اسماعیل علیه السلام د وجود په بدله کې یوه عظیمه ذبیحه ورکړله.په دې وجه په لوې اخترکې قربانی په دې مصلحت سره مقررکړې شنوه.چه په دې کې د ملت ابراهیمی د امامانو (حضرت ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام) حالات اوددوی جان ومال دخدائې تعالی په فرمانبردارئ کې خرچ کاوه او دهغوی د انتهائی درجې صبر کاوه یاد تازه کاوه خلګو ته

عبرت ورکړې شوې دې.اودغه ډول د حاجیانو سره تشبیه او ددوی عظمت پیدا شی.اوپه کوم کار کې چې هغه حاجیان بوخت وی.هغه اړخ ته نورو خلګو ته ترغیب ورکړې شی.(المصالح العقلیه)

## د اختر د لمونځ شرعی حیثیت

قَالَ (وَتَجِبُ صَلَاةُ الْعِيدِ عَلَى كُلِّ مَنْ تَجِبُ عَلَيْهِ صَلَاةُ الْجُمُعَةِ) اود اختر لمونځ واجبیږی.په هرهغه سړی باندې په چا چې دجمعې لمونځ واجب وی وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ عِيدَانِ اجْتَمَعَا فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ،او په جامع صغیر کې دی.که په یوه ورځ کې دوې [دوه] اخترونه جمع شو فَالْأَوَّلُ سُنَّةٌ وَالثَّانِي فَرِيضَةٌ،نو رومبې سنت دې .او دوهم فرض.وَلَا يُتْرَكُ وَاحِدٌ مِنْهُمَااو په دواړوکې دې یو هم نشی پرېښولې (پرېخودې) قَالَ وَهَذَا تَنْصِيصٌ عَلَى السُّنَّةِعلامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چې دا د اختر دلمونځ د سنتیت صریح بیان دې وَالْأَوَّلُ عَلَى الْوُجُوبِاو اول د وجوب صریح بیان دې وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ اوهم دا د حضرت ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دې

**حل اللغة**: ① وجب، وجب وجوباً(ض): واجب کیدل ② اجتماعاً، اجتمع اجتماعاً: یوځائ کیدل، جمع کیدل

**تشریح:- توضیح عبارة القدوری وجامع الصغیر**❁ ① د قدوری رحمه الله د بیان مطابق د اخترلمونځ واجب دې.ځکه چې قدوری فرمائی چې د اختر لمونځ په هغه سړی باندې واجب وی.په چا باندې چې جمعه واجب وی. ② دجامع صغیر د بیان مطابق د اخترلمونځ سنت دې.ځکه چې امام محمد رحمه الله په جامع صغیرکې وئیلی دی.که په یوه ورځ کې دوې [دوه] اخترونه جمع شی. یعنی دجمعې په ورځ وړوکې اختر یا لوې اختر راشی.نو لومړې یعنی د اختر لمونځ مسنون او دجمعې لمونځ به فرض وی.

**المذاهب الثلاثة في حکم العیدین**❁ ① شارح د نقایه ملا علی قاری لیکلی دی.چه د اصح قول مطابق زموږ په نیز د اختر لمونځ واجب دې.هم دا د ابوحنیفه رحمه الله نه مروی دې. ② د امام مالك امام شافعی او د بعضو احنافو رحمهم الله په نیز (هم)د اختر لمونځ سنت دې. ③ امام محمد رحمه الله د فرض کفایه قائل دې.

وَجْهُ الْأَوَّلِ مُوَاظَبَةُ النَّبِيِّ ﷺ عَلَيْهَا[1] د قول اول وجه داده.چې نبی ﷺ په دې باندې مواظبت فرمائیلې دی

**حل اللغة** * ① مواظبة: همیشه

**تشریح:- دلیل وجوبهما**❁ داخترونو په لمونځ باندې نبی ﷺ بغیر دپرېښولو نه مواظبت اوهمیشوالې کړې دې.ځکه چې د نبی کریم ﷺ همیشوالې د وجوب دلیل دې.

وَوَجْهُ الثَّانِي قَوْلُهُ ﷺ فِي حَدِيثِ الْأَعْرَابِيِّ عَقِيبَ سُؤَالِهِ قَالَ: {هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهُنَّ؟ او د دوهم قول وجه په حدیث د باندیچې کې ده.دده د سوال کاوه نه روسته چې آیا په ما باندې ددې نه علاوه هم څه لمونځ شته فَقَالَ: لَا إلَّا أَنْ تَطَوَّعَ [2] د نبی ﷺ دا قول دې .چې نه،خو دا چې دځپل اړخ نه څه نیك كار اوكړې وَالْأَوَّلُ أَصَحُّاوقول اول صحیح دې

**حل اللغة** * ① عقیب: روستو ② تطوع،تطوع تطوعاً: نفل کول

**تشریح:- دلیل سنیتهما**❁ د دوهم قول یعنی مسنونیت دلیل دادې.چه د اهل نجد نه یو صحرائې سړې پریشان حاله راغې.دده د سفر مقصد د اسلام اړه کې معلومات حاصلول وو.نبی ﷺ د اسلام د یو جزء په بیان کې فرمائی چې په شپه ورځ کې پنځه مونځونه دی.ددې په اوریدو سره هغه اووئیل ﴿هل علی غیرهن﴾ آیا په ما باندې ددې پنځو مونځونو نه علاوه څه لمونځ شته دې.نبی ﷺ په ځواب کې ارشاد اوفرمائیل. ﴿لا إلا أن

---

[1]) قال الزیلعی رحمه الله هذا معروف أی مواظبة النبی ﷺ علی صلاة العیدین ،،نصب الرأیة ۲/۲۱۶)

[2]) تقدم تخریجه فی أکثرمن موضع)_



تطوع﴾ نه، البته دا چې د نفلو په طور ئې کوې.دې حدیث نه معلومیږی.چه د پنځه مونځونو نه علاوه پاته واړه مونځونه غیر فرض دی.یعنی نفل دی.نود اخترونو دلمونځ عدم وجوب ثابت شو.

**الجواب من دلیل السنیة**❁ زمونږد اړخه ددې ځواب دادې.چه سوال کونکې د کلی اوسیدونکې وو.او په کلی والو باندې د اختر لمونځ واجب نه وی.ځکه نبی ﷺ دده دحال مطابق ځواب ارشاد اوفرمائیل. ② دوهم ځواب دا ورکړې شوې دې.چه ډیره ممکن ده.چه د نبی ﷺ دا ګفتګار د اختر د لمونځ د وجوب نه وړاندې وی.د اختر دلمونځ په واجب کیدو باندې د الله تعالی قول [وَلِتُكَبِّرُوا اللَّهَ عَلَى مَا هَدَاكُمْ] (الایه)هم دلالت کوی.ځکه چې د [وَلِتُكَبِّرُوا] تفسیر د اخترونو په لمونځ سره شوې دې.او دا د امر صیغه ده.چه ددې موجب وجوب دې.

وَتَسْمِيَتُهُ سُنَّةً لِوُجُوبِهِ بِالسُّنَّةِاو دې ته د سنت نوم ایخودل په دې وجه دی.چې ددې وجوب په سنت سره ثابت دې .

**تشریح:- تاویل قول محمد في الجامع الصغیر**❁ پاتې شود امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې د اختر لمونځ ته سنت وئیل،نو ددې مطلب دادې.چه د اختر دلمونځ وجوب په سنت سره ثابت دې.دا مطلب هرګز نه دې.چه د اختر لمونځ سنت دې.

## د اخترونو مسنون اعمال

وَيُسْتَحَبُّ فِي يَوْمِ الْفِطْرِ أَنْ يَطْعَمَ قَبْلَ أَنْ يَخْرُجَ إلَى الْمُصَلَّى مستحب دا دی.چې د وړوکې اختر په ورځ لمونځ ګذار عیدګاه ته دتلو نه مخکې څه اُوخری وَيَغْتَسِلَ او غسل اوکړی وَيَسْتَاكَ وَيَتَطَيَّبَ مسواك استعمال کړی،خوشبو اولګوی

**حل اللغة**: ① یستحب، استحب استحباباً: مستحب کیدل ② یطعم، طعم طعماً: خوراك خوړل ③ خروج: وتل ④ مصلی: عیدګاه ⑤ یغتسل، اغتسل اغتسالاً: غسل کول ⑥ استاک، استاک استیاکاً: مسواك کول

**تشریح:- مسنونیة الاکل قبل الصلاة في عید الفطر**❁ د اختر د ورځې په مستحباتوکې یو دادی.چه عیدګاه ته د تلو نه مخکې څه خوږ شی خوړلو.

لِمَا رُوِيَ ځکه چې مروی دی أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يَطْعَمُ فِي يَوْمِ الْفِطْرِ قَبْلَ أَنْ يَخْرُجَ إلَى الْمُصَلَّى چې رسول الله ﷺ به عیدګاه ته د تلو نه مخکې د وړوکې اختر په ورځ خوراك کولو وَكَانَ يَغْتَسِلُ فِي الْعِيدَيْنِ[1] اونبی ﷺ به د اخترونو په ورځ غسل کولو

**تشریح:- دلیله**❁ امام بخاری رحمه الله دحضرت انس رضی الله عنه نه روایت کړې دې. ﴿قال کان رسول الله ﷺ لا یغدو یوم الفطر حتی یأکل تمرات ویأکلهن وترا﴾ حضرت انس رضی الله عنه فرمائی.چه رسول الله ﷺ به د وړوکی اختر په ورځ (داختر مانځه) لپاره تشریف نه اوړلو.تر دې چې طاق شمیر چوارې به ئې نه وې خوړلې .او په ترمذی اوابن ماجه کې دی ﴿ان رسول الله ﷺ کان لایخرج یوم الفطر حتی یأکل وکان لا یأکل یوم النحر حتی یصلی﴾ یعنی د وړوکی اختر په ورځ به بغیر دځه خوراك نه نۀ وتلو.او د لوې اختر په ورځ به بغیردلمونځ کاوه نه څه نه خوړل.

---

[1]) قال الزیلعی رحمه الله هما حدیثان ،نصب الرأیة ۲/۲۱۷) وخرجت للأکل یوم العید فی ،،سنن الصلاة،، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَغْدُو يَوْمَ الْفِطْرِ حَتَّى يَأْكُلَ تَمَرَاتٍ وَقَالَ مُرَجَّأُ بْنُ رَجَاءٍ حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي أَنَسٌ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيَأْكُلُهُنَّ وِتْرًا] رواه البخاری فی العیدین باب الأکل یوم الفطر قبل الخروج رقم ۹۰۰) وللغسل یوم العید عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْتَسِلُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَيَوْمَ الْأَضْحَى أخرجه ابن ماجه فی الصلاة باب الإغتسال فی العیدین رقم ۱۳۰۵ رجاله ثقات إلا جبارة بن المغلس وحجاج بن تمیم فإنهما ضعیفان )_

**سنية ا لغسل يوم العيد** دوهم مستحب عمل غسل دې.لکه چې ابن ماجه د فاکهٔ ابن سعد حديث روايت کړې دې. «ان رسول الله ﷺ كان يغتسل يوم الفطر ويوم النحر ويوم العرفة» يعنی رسول الله ﷺ د وړوکی اختر په ورځ، د لوی اختر په ورځ او دعرفې په ورځ غسل کولو.

| **وَلِأَنَّهُ يَوْمُ اجْتِمَاعٍ فَيُسَنُّ فِيهِ** او ځکه چې اختر د راجمع کيدو ورځ ده **الْغُسْلُ وَالطِّيبُ كَمَا فِي الْجُمُعَةِ** په دې وجه دے کې هم غسل کول او خوشبو لګول مسنون دی.لکه څنګه چې په جُمعه کې دی |
|---|

**حل اللغة** ① اجتماع: جمع کيدل

**تشريح:-** عقلی دليل دادې.چه د اخترونو ورځ د خلګو د راجمع کيدو ورځ وی.په دې وجه دې کې غسل کول.او خوشبو لګول مسنون دی.لکه څنګه چې دجمعې په ورځ دا دواړه اعمال مسنون دی.

| **وَيَلْبَسُ أَحْسَنَ ثِيَابِهِ** او په خپلو جامو کې دے ښے جامے واغوندی **لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَتْ لَهُ جُبَّةُ فَنَكٍ أَوْ صُوفٍ** ځکه چې د نبی ﷺ سره د فنك يا د وړئ چُغه وه) **يَلْبَسُهَا فِي الْأَعْيَادِ** [1] نبی ﷺ به دا په اخترونو کې اغوستله. |
|---|

**تشريح:- سنية لبث الثياب الجديدة** دريم مستحب عمل دادې.چه په خپلو موجوده کپړوکې چې کومے ښے او نوې وی. هغه دے واغوندی.ځکه چې د نبی کريم ﷺ د فنك يا وړئ چوغه وه، اختر وغيره موقع باندې به نبی ﷺ دا اغوستله. فنك يو ځناور دې.چه دده د څرمنے پوست ډير ښه وی.په يو بل روايت کې دی. «عن جابر بن عبدالله ﷺ قال كان النبی ﷺ برد احمر يلبسه فی الجمعة والعيد» جابر بن عبدالله ﷺ فرمائی.چه دنبی ﷺ دکيرخو والا سور يمنی پټو (څادر) وو. چې دا به نبی ﷺ په جُمعه او اختر وغيره کې اغوستلو.

**د صدقه الفطر (سرسايه) ورکولو وخت**

| **وَيُؤَدِّي صَدَقَةَ الْفِطْرِ إِغْنَاءً لِلْفَقِيرِ** او د محتاجه د بے نيازه کاوه لپاره به صدقة الفطر اداکوی **لِيَتَفَرَّغَ قَلْبُهُ لِلصَّلَاةِ** چې د لمونځ لپاره دده زړه فارغ شی **وَيَتَوَجَّهُ إِلَى الْمُصَلَّى** او عيدګاه اړخ ته متوجه شی |
|---|

**حل اللغة** ① يودی، ادی تادية: اداکول ② اغناءً: غنی کيدل ③ ينفرغ، تفرغ تفرغًا: اوزګاريدل ④ يتوجه، توجه توجهًا: متوجه کيدل ⑤ مصلی: عيدګاه

**تشريح:- اداء الفطرقبل خروج الناس الى المصلی** داختر د لمونځ نه مخکې صدقۂ فطر اداکول واجب دی.

**دليله** دليل دادې.چه په دې کې نيکئ اړخ ته تندی ده.اود فقير زړه لمونځ لپاره فارغ کول دی. او نبی ﷺ فرمائيلی دی «أغنوهم عن المسالة» محتاجان د سوال کاوه نه بے نيازه کړئ.اودا به هغه وخت وی.چه کله خلګ صدقۂ فطر وغيره ادا کړی.اودالله تعالی فرمان دې. «,,قد افلح من تزکی,, أی أعطی زکوة الفطر ,,وذکر اسم الله ربه,, بتکبير العيد فی الطريق ,,فصلی,, صلوة العيد» يعنی هغه سړې کامياب شو چاچه صدقه فطر اداکړه.اوداختر تکبير ئې اووئيل د خپل رب ذکر ئې اوکړو.بيائې داختر لمونځ اوکړو.

**استحباب المشی الی المصلی** د صدقه فطر ادا کاوه نه روسته دے عيدګاه اړخ ته متوجه شی . ښکاره دے

---

[1] غربه الزيلعی رحمه الله وقال روی البيهقی فی سننه (أی فی السنن الکبری (٣/٣٩٧) رقم ٦١٣٧) من طريق الشافعی ..... أن النبی ﷺ کان يلبس برد حبرة فی کل عيد، وروی الطبرانی فی معجمه الوسيط ....(کما عزاه الهيثمی فی المجمع الزوائد (٢/١٩٨) إلی معجم الطبرانی )عن ابن عباس قال کان رسول الله ﷺ يلبس يو العيد بردة حمراء ، وأخرج البيهقی فی ,,المعرفة,, عن جابر بن عبدالله ﷺ قال کان للنبی ﷺ بردا حمراء يلبسه فی العيدين والجمعة (نصب الرأية ٢/٢١٨)_



وی.چه عيدګاه ته پيدل تلل مستحب دی.ځکه چې حضرت عمر ﷺ فرمائيلی دی. عيدګاه ته پيدل تلل سنت دی.اوکه څه خلګ دخپل ضعف د وجه عيدګاه ته د تلو نه معذوروی.نو د وخت امام دے څوك مقررکړی.چه په ښار کې دننه دوی ته په جومات کې لمونځ ورکړی.ځکه چې روايت کړې شوېدې.چه «ان علياً لما قدم الکوفة استخلف من يصلی بالضعيف صلوة العيدين فی الجامع وخرج إلی الجبانة مع خمسين شيخا يمشی ويمشون» يعنی حضرت علی ﷺ چې کله کوفے ته تشريف يوړلو.نويو داسې سړې ئې خيل خليفه مقرر کړو.چه کمزورو خلګو ته په جومات کې د اخترونو لمونځ ورکړی.او دوی په خپله ماشمانو او بوډاګانو سره صحرا اړخ ته اووتل.دوی په خپله هم پياده وو.او دغه پنځوس سړی ورسره هم پياده روان وو.

| **وَلَا يُكَبِّرُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ فِي طَرِيقِ الْمُصَلَّى** [1] اود ابوحنيفه رحمه الله په نيز به د عيدګاه په لاره کې تکبير نه وائی. |
|---|

**حل اللغة** ① طريق جمع طرق: لاره ② ورد،ورد ورودًا: وارد کيدل، راتګ

**تشريح:- المذهبان في الجهر بالتكبيرفي الطريق** په دې مسئله کې اختلاف دې.چه د وړوکی اختر په ورځ عيدګاه ته د تلو په وخت په لاره کې تکبير په اوچت آواز سره وائی او که په ورو آواز، ① حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی.چه په اوچت آواز سره دے نه وائی.

| **وَعِنْدَهُمَا يُكَبِّرُ اعْتِبَارًا بِالْأَضْحَى** اود صاحبينو رحمهما الله په نيز په لوی اختر باندې قياس کاوه په وجه تکبير وائی |
|---|

**تشريح:-** صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه په اوچت آواز دے وائی.

**دليلهما** د صاحبينو رحمهما الله دليل په لوی اختر باندې قياس دې.يعنی څنګه چې په لوی اخترکې تکبير په اوچت آوازسره مشروع دې.دغه ډول په وړوکی اخترکې هم په اوچت آواز سره مشروع دې.

| **وَلَهُ أَنَّ الْأَصْلَ فِي الثَّنَاءِ الْإِخْفَاءُ** دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې . چې په ثناء او ذکر کې اصل اخفاء ده |
|---|

**تشريح:- دليل ابی حنيفة** رحمه الله دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه په ذکر کې دننه خو اصل اخفاء ده.لکه چې د باری تعالی ارشاد دے [وَاذْكُرْ رَبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ] او دنبی ﷺ ارشاد دې. «خير الذکر الخفی وخير الرزق ما يکفی» ښه ذکر، پټ ذکر دے . او ښه رزق هغه دې چې دکفايت په اندازه وی.نه د اړتيا نه زيات او نه کم وی. يواُردو شاعر وائی.

| **وَالشَّرْعُ وَرَدَ بِهِ فِي الْأَضْحَى** او په جهرسره شريعت په لوی اختر کې وارد شوې دې **لِأَنَّهُ يَوْمُ تَكْبِيرٍ، وَلَا كَذَلِكَ يَوْمَ الْفِطْرِ** ځکه چې لوی اختر د تکبير ورځ ده.او وړوکی اختر داسې نه دې. |
|---|

**تشريح:- الجواب من قياس الصاحبين** رحمهما الله بهرحال په ذکر کې اصل اخفاء ده.خو دلوی اختر په ورځوکی په جهر سره تکبير باندې خلاف قياس نص وارد شوې دې.الله تعالی فرمائی [وَاذْكُرُوا اللَّهَ فِي أَيَّامٍ مَعْدُودَاتٍ] مفسرينو فرمائيلی دی .چه دلته د لوی اختر په ورځوکې تکبيرجهری مراد دې.او وړوکې اختر د لوی اختر په معنی کې هم نه دې.ځکه چې لوی اختر د حج په ارکانوکې يو رکن سره مخصوص دې. يعنی په دغه ورځ کې بعضې د حج ارکان اداکولې شی.او په وړوکی اختر کې دا خبره نشته.نوهرکله چې وړوکې اختر د لوی اختر په معنی کې نه دې.نو وړوکې اختر په لوی اختر باندې قياس کول هم مناسب نه دی.

---

[1] القول الراجح هوهذا قول أبی حنيفة رحمه الله کذا فی رد المحتار(١/٦١٤) والخانية (١/٨٨) والهندية (١/١٥٠) نقلاً عن القول الراجح (١/١٤٩)_

## په عيدګاه کښې دلمونځ نه مخکښې د نفلو کولو حکم

**وَلَا يَتَنَفَّلُ فِي الْمُصَلَّى قَبْلَ الْعِيدِ** او داخترد لمونځ نه مخکي به په عيدګاه کي نفل نه کوی.

**حل اللغة:** ① لايتنفل، تنفل، تنفلاً: نفل کول ② قبل: وړاندې

**تشريح:- كراهية الصلاة بعدالعيد مطلقاً** مسئله، داخترد لمونځ نه مخکي نفل کول مکروه دی په عيدګاه کي هم او د عيدګاه نه علاوه په نوروځايونوکي هم، دامام لپاره هم مکروه دی. اودمقتدی لپاره هم،

**لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَمْ يَفْعَلْ ذٰلِكَ (١) مَعَ حِرْصِهِ عَلَى الصَّلَاةِ** ځکه چې نبی کريم ﷺ داسې نه دی کړی. باوجود ددې چې نبی ﷺ د لمونځ کولو حريص وو

**حل اللغة:** ① لم يفعل، فعل فعلاً (ف): کول

**تشريح:- دليله** دابن عباس رضي الله عنهما قول دے «ان رسول الله ﷺ خرج فصلى بهم العيد لم يصل قبلها ولا بعدها» يعنی نبی ﷺ د کور نه رابهرشو. خلګو ته ئې د اختر لمونځ ورکړو. نه ئې د اختر نه مخکي لمونځ اوکړو. او نه د اختر نه پس، حالانکه نبی ﷺ لمونځ ته بيحده ليواله وو. که د اختر نه مخکي يا روستو د نفلو کاوه اجازت وې نو د الله رسول به ضرور کړی وو.

**ثم قيل الكراهة في المصلى خاصة** بيا وئيلی شوی دی. چې کراهت خاص طور په عيدګاه کي دې **وَقِيلَ فِيهِ وَفِي غَيْرِهِ عَامَّةٌ** او وئيلی شوی دی. چې په عيدګاه اوددې په سوې کي عام دې

**تشريح:- القولان في كراهة الصلاة مطلقاً** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی چه ① د بعضې مشائخو رحمهم الله په نيز په عيدګاه او کور دواړه ځايونو کي کراهت عام دې. ② اوبعضو فرمائيلی دی. چه داخترد لمونځ نه روسته په عيدګاه کي دننه يے شکه چې لمونځ کول مکروه دی. خو د راتلونه روسته په کورکي نفل کول بغير دکراهته جائزدی.

**لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَمْ يَفْعَلْهُ** ځکه چې نبی ﷺ دا نه دی کړی.

**تشريح:- دليل القول الثاني** دابوسعيد خدری رضي الله عنه حديث دې. «قال كان رسول الله ﷺ لا يصلى قبل العيد شيئاً فاذا رجع الى منزله صلى ركعتين» يعنی رسول الله ﷺ د اختر نه مخکي هيڅ لمونځ نه کول. خو کله به چې خپل کورته واروسته راغلو، نو دوې [دوه] رکعته نفل به ئې کول.

## داخترد لمونځ وخت

**وَإِذَا حَلَّتِ الصَّلَاةُ بِارْتِفَاعِ الشَّمْسِ** او کله چې په لمر اوچت راختلوسره لمونځ حلال شی **دَخَلَ وَقْتُهَا إِلَى الزَّوَالِ** نوداخترد لمونځ وخت داخل شو. دنمر د زوال پورې **فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ** اوکله چې د لمر زوال اوشی، **خَرَجَ وَقْتُهَا** نود اختردلمونځ وخت تير شو

**حل اللغة:** ① حلت، حل حلالاً (ض): حلاليدل، پيل کيدل ② ارتفاع: اوچتيدل ③ دخل، دخل، دخولاً (ن): داخليدل ④ خرج، خرج خروجاً (ن): وتل

**تشريح:-** په دې عبارت کي د اختر دلمونځ د وخت د اول اوآخربيان شوېدې. لکه چې امام ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی چه داخترد لمونځ وختاولنې شوېل د لمر يوه نيزه يا دوې [دوه] نيزې اوچتيدلو سره پيل کيږی. اود لمر د زوال پورې پاته پاتې کيږی.

[1] من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه البخارى فى العيدين باب ٢٦ رقم ٩٨٩، مسلم فى صلاة العيدين رقم ١٣، وأبوداود فى الصلاة باب ٢٥٠ رقم ١١٥٩ والترمذى فى العيدين باب ٣٥ وأحمد فى المسند (١/٢٨٠، ٣٤٠)_



**لِأَنَّهُ ﷺ كَانَ يُصَلِّي الْعِيدَ وَالشَّمْسُ عَلَى قَيْدِ رُمْحٍ أَوْ رُمْحَيْنِ (١)** ځکه چې نبی ﷺ به د اختر لمونځ هغه وخت کولو چې کله به لمر يوه نيزه يا دوې [دوه] نيزې اوچت شو

**حل اللغة:** ① يصلى، صلى صلاة: لمونځ کول

**تشريح:- دليله** ① په ابتداء د وخت باندې دليل دا حديث دې. چه نبی ﷺ به لمونځ هغه وخت کولو. چه کله به لمر يوه نيزې يا د دوې [دوه] نيزو په اندازه اوچت شو.

**وَلَمَّا شَهِدُوا بِالْهِلَالِ بَعْدَ الزَّوَالِ** اوچې کله به د زوال نه روسته د سپوږمۍ ليدو ګواهی ورکړې شوه **أَمَرَ بِالْخُرُوجِ إِلَى الْمُصَلَّى مِنَ الْغَدِ (٢)** نونبی ﷺ په راروانه ورځ عيدګاه اړخ ته د وتلو حکم ورکړو.

**حل اللغة:** ① شهدوا، شهد شهادة (س): حاضريدل، ګواهی ورکول ② امر، امر امراً (ن): حکم ورکول

**تشريح:-** دوهم دليل دادې. چه خاص د طلوع په وخت دلمونځ کاوه نه منع کړې شوېده. په دې وجه د نمر اوچت راختلو شرط لګولے شوېدې. د وخت په انتها باندې دليل دادې. چه يوځلے د رمضان سپوږمۍ په نظر رانه غله. او په راروانه ورځ د زوال نه روسته شهادت ورکونکو حضراتو دسپوږمۍ ليدلو ګواهی ورکړه. نو د الله پاک رسول ﷺ په راروانه ورځ يعنی په دوهم شوېل باندې د اختر دلمونځ کاوه حکم اوکړلو. که دزوال نه روسته هم د اختر لمونځ درست وې. نونبی ﷺ به راروانه ورځې پورې نه مؤخر کولې. روسته معلومه شوه. چه د اختر دلمونځ وخت زواله پورې دې.

## د اختر د لمونځ طريقه

**وَيُصَلِّي الْإِمَامُ بِالنَّاسِ رَكْعَتَيْنِ** او امام دے د خلګو سره دوې [دوه] رکعته اوکړی، **يُكَبِّرُ فِي الْأُولَى لِلِافْتِتَاحِ** په اولنی رکعت کي دے د افتتاح لپاره يو تکبير وائی **وَثَلَاثًا بَعْدَهَا** او ددې نه روسته دے درې تکبيرونه وائی **ثُمَّ يَقْرَأُ الْفَاتِحَةَ وَسُورَةً، وَيُكَبِّرُ تَكْبِيرَةً يَرْكَعُ بِهَا** بيا دې فاتحه اوسورت اووائی. او يو تکبير دے اووائی. دے سره دے رکوع اوکړی **ثُمَّ يَبْتَدِئُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ بِالْقِرَاءَةِ** بيا دې د دوهم رکعت پيل په قرات اوکړی **ثُمَّ يُكَبِّرُ ثَلَاثًا بَعْدَهَا** بيا ددې نه روسته دے درې تکبيرونه ووايي **وَيُكَبِّرُ رَابِعَةً يَرْكَعُ بِهَا** او په څلورم تکبيردے رکوع اوکړی

**حل اللغة:** ① يصلى، صل صلاة: لمونځ کول ② يقرا، قرا قراءة (ف): لوستل ③ يبتدئ، ابتدا ابتداءً: پيل کول ④ يركع، ركع، ركوعاً (ف): رکوع کول

**تشريح:- كيفية صلاة العيد** صاحب د قدوری رحمه الله داخترد لمونځ کيفيت داسې بيان کړې دې. چه دې امام خلګو ته دوې [دوه] رکعته داسې اوکړی. چه ړومبے تکبيرتحريمه اووائی. بيا دې ثنا اووائی. اود دريو نه زيات تکبيرونه اووائی. بيا دې قرات د فاتحے او ضم دسورت اوکړی. بياد رکوع تکبير اووائی. او رکوع دې اوکړی. اوسجده دې اوکړی. دغه ډول به لومړې رکعت پوره شی. په دوهم رکعت کي دې اول قرات فاتحه او ضم د سورت اوکړی. بيا دې زياتی تکبيرونه اووائی. اود رکوع تکبيردې اووائی. اورکوع دې اوکړی. ددې

[1] غربه الزيلعى رحمه الله نصب الراية ٢/٢٢٠)

[2] خرجته فى ،،سنن الصلاة،، عَنْ أَبِى عُمَيْرِ بْنِ أَنَسٍ عَنْ عُمُومَةٍ لَهُ أَنَّ قَوْمًا رَأَوُا الْهِلَالَ فَأَتَوُا النَّبِىَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَهُمْ أَنْ يُفْطِرُوا بَعْدَ مَا ارْتَفَعَ النَّهَارُ (أى الشمس) وَأَنْ يَخْرُجُوا إِلَى الْعِيدِ مِنَ الْغَدِ أخرجه النسائى فى العيدين باب الخروج إلى المصلى من الغد رقم ١٥٣٩ رجاله ثقات)_

تفصیل مطابق په دواړو رکعتونو کي نهه تکبیرونه شول.شپږ زوائد دوې [دوه] د رکوع تکبیرونه او یو تکبیر تحریمه،

وَهٰذَا قَوْلُ ابْنِ مَسْعُوْدٍ، وَهُوَ قَوْلُنَا دا قول دابن مسعود ؓ دی .اوهم دا زموږ قول دی وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: يُكَبِّرُ فِي الْأُولٰى لِلْافْتِتَاحِ او ابن عباس ؓ فرمائی.چې په ړومبي رکعت کي دی د افتتاح لپاره تکبیر ووایي وَخَمْسًا بَعْدَهَا او پنځه تکبیرونه دی ددی نه روسته وائی وَفِي الثَّانِيَةِ يُكَبِّرُ خَمْسًا ثُمَّ يَقْرَأُ او په دوهم رکعت کي دی پنځه تکبیرونه اووائی. بیا دی قرات ووایي وَفِي رِوَايَةٍ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا او په یو روایت کي دی.چې څلور تکبیرونه اووائی

تشریح:- دلیله۞ ①علامه مرغینانی ؒ فرمائی.چه دا د ابن مسعود ؓ قول دی.ګویا چې د ابن مسعود ؓ په نیز د اختر په دواړو رکعتونو کي واړه نهه تکبیرونه دی.هم دغه د احنافو عالمانو ؒ مذهب دی.د ابن مسعود ؓ قول څکه دی.چه روایت کړې شوېدی. «كان ابن مسعود ؓ جالساً وعنده حذيفة وابو موسى الأشعرى ؓ فسألهم سعيد بن العاص ؓ عن التكبير فى صلوة العيد فقال حذيفة ؓ سل الأشعرى ؓ فقال الأشعرى ؓ سل عبدالله ؓ فانه أقدمنا وأعلمنا فسأله فقال ابن مسعود ؓ يكبر أربعا ثم يقرأ ثم يكبر فيركع ثم يقوم فى الثانية فيقرأ ثم يكبر أربعا بعد القراءة» یعنی ابن مسعود ،حذیفه او ابوموسی اشعری ؓ تشریف فرما وُو.چه ددوی نه سعید ابن العاص ؓ د اخترد لمونځ د تکبیرونو په اړه کي پوښتنه اوکړو.حذیفه ؓ اووئیل.داشعری ؓ نه پوښتنه اوکړه.اشعری ؓ اووئیل.د عبدالله ؓ نه پوښتنه اوکړه.څکه چې عبدالله ؓ په مونږ کي قدیم العهد هم دی.او صاحب دعلم هم.نوهغه د ابن مسعود ؓ نه پوښتنه اوکړه.نو ابن مسعود ؓ اوفرمائیل.څلور تکبیرونه اووایه.په ړومبی رکعت کي چې دکومو څلورو تکبیرونو ذکر شوېدې.په دې کي یو تکبیر تحریمه اودرې زوائد دی،او په دوهم رکعت کي په څلورو تکبیرونو کي یو تکبیر د رکوع او درې زوائد دی.بهرحال د ابن مسعود ؓ ددې قول نه د نهو تکبیرونو ثبوت ملاویږی.

②**اختلاف رواية ابن مسعود وابن عباس في عدد التكبيرات**۞ دابن مسعود او ابن عباس ؓ دقول په مینځ کي دوې [دوه] ځایه اختلاف دی.یو د تکبیرات زوائدو په تعداد کي دوهم ددې په محل کي .دابن مسعود ؓ په نیز روایت مطابق لس زوائد تکبیرونه دی.درې په اولنی رکعت کي او درې په دوهم رکعت کي ، اودابن عباس ؓ په نیزدیو مطابق تکبیرات زوائد نهه دی.پنځه په اولنی رکعت کي او پنځه په دوهم رکعت کي .اود بل روایت مطابق تکبیرات زوائد شپږ دی.پنځه په اولنی رکعت کي اوڅلور په دوهم رکعت کي

③**اختلاف رواية ابن مسعود وابن عباس في محل التكبيرات**۞ د دویمے خبرے په اړه کي اختلاف دا دی.چه دابن مسعود ؓ په نیز په دوهم رکعت کي دزوائد تکبیرونو محل د قرات نه د فراغت نه روسته دی. اود ابن عباس ؓ په نیزد قرات نه مخکي دی.

وَظَهَرَ عَمَلُ الْعَامَّةِ الْيَوْمَ بِقَوْلِ ابْنِ عَبَّاسٍ ؓ او نن سهار د عامو خلګو عمل د ابن عباس ؓ په قول باندې ښکاره شوې دی لِأَمْرِ بَنِيْهِ الْخُلَفَاءِ څکه چې د ابن عباس ؓ اولاد چې کوم خلفاء دی.هغوی خلګو ته په دې باندې دعمل کولو حکم ورکړې وو

تشریح:- **وجه عمل الناس على رواية ابن عباس** ؓ ۞ علامه مرغینانی دخپلے زمانې حال بیانوی.لیکن چې نن سهار د عامو خلګو عمل دحضرت ابن عباس ؓ په قول دی.اووجه ئې دا ده.چه هغه دخلفاء بنوعباس د عروج زمانه وه.د بنوعباس خلفاء د اختر د تکبیرونو په سلسله کي دخپل بزرګوار نیکه حضرت ابن عباس ؓ د قول باندې دعمل کاوه امرکولو،

④**عمل ابى يوسف ومحمد على قول ابن عباس** ؓ ۞ هم دغه وجه ده.چه یوځل حضرت امام ابویوسف ؒ په بغداد کي خلګو ته د اختر لمونځ ورکړو .اود تکبیرونو په سلسله کي ئې د ابن عباس ؓ په قول باندې عمل اوکړو.څکه چې خلیفه هارون الرشید عباسی د دوی مقتدی وو . ده دوی ته ددې حکم ورکړې وو.دغه ډول



دامام محمد ؒ نه ابن عباس ؓ په قول باندې عمل کول مروی دی.خودا عمل مذهباً او اعتقاداً نه وو.بلکه د بنوعباس خلفاؤ دحکم په لحاظ سره وو . ګنی مذهب داولنی قول یعنی دعبدالله بن مسعود ؓ قول دی.

فَأَمَّا الْمَذْهَبُ فَالْقَوْلُ الْأَوَّلُ، پاتې شو مذهب نوهغه ړومبی قول دی لِأَنَّ التَّكْبِيْرَ وَرَفْعَ الْأَيْدِيْ خِلَافُ الْمَعْهُوْدِ څکه چې تکبیر او لاس اوچتول خلاف معهود دی. فَكَانَ الْأَخْذُ بِالْأَقَلِّ أَوْلٰى نوکم اخستل غوره دی

تشریح:- **دليل ان القول الاول هوالمذهب**۞ صاحب دهدایه ؒ د اولنی قول په مذهب کیدو عقلی دلیل دا پیش کړې دی.چه د تکبیر او لاسونو اوچتولو مجموعه من حیث المجموعه مونځونو کي دننه خلاف معهود دی.په دې وجه اقل اختیارول غوره او افضل دی.څکه چې د اقل او کمتر ثبوت بالیقین کیږی.

ثُمَّ التَّكْبِيْرَاتُ مِنْ أَعْلَامِ الدِّيْنِ بیا تکبیرات د دین نښے دی حَتّٰى يُجْهَرَ بِهِ څکه چې په دې کي جهر کولای شی فَكَانَ الْأَصْلُ فِيْهِ الْجَمْعَ نو اصل په دې تکبیرونو کي یوځائې والے دی وَفِي الرَّكْعَةِ الْأُوْلٰى يَجِبُ إِلْحَاقُهَا بِتَكْبِيْرَةِ الْافْتِتَاحِ او په ړومبی رکعت کي ددې تکبیرونو الحاق په تکبیر تحریمه سره واجب دی لِقُوَّتِهَا مِنْ حَيْثُ الْفَرِيْضَةِ وَالسَّبْقِ څکه چې په فرضیت او د سبقت په وجه تکبیر تحریمه قوی ده وَفِي الثَّانِيَةِ لَمْ يُوْجَدْ إِلَّا تَكْبِيْرَةُ الرُّكُوْعِ او په دوهم رکعت کي او نه موندلے شو.خود رکوع تکبیر ،فَوَجَبَ الضَّمُّ إِلَيْهَا نو هم ددې سره دا تکبیرات ملاوول واجب شول

حل اللغة • ① **يجب، وجب وجوبا** (ض): واجب کیدل ② **الحاق**: لاحق کیدل،ملاویدل

تشریح:- **حكمة محل التكبيرات الزوائد**۞ په دې عبارت کي د زوائد تکبیرونو په محل وقوع باندې په دلیل سره کلام شوېدې.لکه چې وې فرمائیل.چه تکبیرات د دین د اعلامو او علامتونو څنے دی.تردې چې په دې باندې جهر کولې شی.چه د دین بیرغ اوچته وی.اوپه دې زوائدو تکبیرونو کي اصل دا دې.چه اصل تکبیرونو سره یوځائې وی.نو اولنی رکعت کي زوائد تکبیرونه د تکبیر تحریمه سرے یوځائې کړې شو.او د رکوع تکبیر سره لاحق نه کړې شو.څکه چې تکبیر تحریمه د فرضیت د وجے قوی هم ده.او د رکوع د تکبیر نه مقدم هم،اوچونکه په دوهم رکعت کي د رکوع تکبیرنه سوې بل څه تکبیر نشته .په دې وجه په دوهم رکعت کي د رکوع تکبیرسره مولښتی کول واجب شو.

وَالشَّافِعِيُّ أَخَذَ بِقَوْلِ ابْنِ عَبَّاسٍ او امام شافعی ؒ دابن عباس ؓ قول اخستې دی

تشریح:- **مذهب الشافعي** ؒ ۞ صاحب دهدایه فرمائی.چه امام شافعی ؒ دحضرت عبدالله ابن عباس ؓ قول اختیار کړې دی.او د ابن عباس ؓ په قول کي چې د تکبیرنو کوم تعداد روایت کړې شوې دی.دا په زوائد باندې محمول کړې شوېدې.دغه ډول د امام شافعی ؒ په نیز تکبیرات واړه پنځلس دی یا شپاړس دی.

إِلَّا أَنَّهُ حَمَلَ الْمَرْوِيَّ كُلَّهُ عَلَى الزَّوَائِدِ خوچې کوم تعداد مروی دی .هغه واړه ئې په زائد باندې محمول کړی دی فَصَارَتِ التَّكْبِيْرَاتُ عِنْدَهُ خَمْسَ عَشْرَةَ أَوْ سِتَّ عَشْرَةَ نو د امام شافعی ؒ په نیز واړه تکبیرات پنځلس یا شپاړس شول.

تشریح:- **الاحتمالان في ،،المروى،،**۞ د علامه مرغینانی عبارت «الا انه حمل المروى كله على الزوائد» کي څه قدرې اشتباه ده.①هغه دا چې د"المروى"نه مراد یاخو هغه دې. چې په هدایه کي په دې الفاظو سره مروی دی. «وقال ابن عباس يكبر فى الاولى للافتتاح وخمساً بعدها وفى الثانية يكبر خمساً ثم يقرأ وفى روايته يكبر أربعا» ②او یا ددې نه علاوه مراد دې.

③**عدم مطابقة الدليل مع الدعوى**۞ که ثانی وی.نو په کلام کي به تعقید وی.څکه چې کوم شی په کتاب کي مذکور نه دې د هغې حواله ورکاوه سره خامخا قارئین پریشانه کیږی.اوکه اول وی . نو تکبیرات دې مقدار ته نه رسی. څکه چې د ذکر شوی روایت مطابق زوائد یا نهه دی یا لس دی.او په درې اصل تکبیرونو(تکبیر

تحريمه، د اولنی ركعت د ركوع تكبير او د دوهم ركعت د ركوع تكبير) سره ملاويدو سره به دولس يا ديارلس شي.

**الشبهة الواردة على عبارة الهداية**اوصاحب دهدايه رحمه الله فرمائی ﴿وظهر عمل العامة اليوم بقول ابن عباس﴾بيا فرمائی. ﴿والشافعي أخذ بقول ابن عباس رضي الله عنهما﴾ دا عبارت تقاضا كوی.چه دصاحب هدايه په زمانه كې د عامو خلګو عمل په پنځلسو يا په شپاړسو تكبيرونو باندې وو.حالانكه داسې نه ده.بلكه په دغه زمانه كې عمل په ديارلسو تكبيرونو باندې وو،

**الجواب**ددې شبه ځواب دا دې.چه د ابن عباس رضي الله عنهما نه دوې [دوه] روايتونه دی.يوخو دا چې په اخترونو كې دولس تكبيرونه دی. دوهم دا چې ديارلس تكبيرونه دی.امام مالك او امام احمد رحمهما الله فرمائی. چې دولس يا ديارلس د اصل تكبيرنو سره په جمع كيدو جوړيږی.يعنی تكبير تحريمه او په دواړو ركعتوكې د ركوع تكبير سره چې ملاؤ شی.نودولس يا ديارلس دی.په دې طريقه چې په اولنی او دوهم ركعت كې پنځه پنځه زوائد تكبيرونه او تكبير تحريمه شوه.او د دواړو ركعتونو د ركوع دوې [دوه] تكبيرونه، دغه دول واړه تكبيرونه ديارلس شول.اود دوهم روايت مطابق په اولنی ركعت كې پنځه زوائد اوپه دوهم ركعت كې څلور زوائد او درې اصلی تكبيرونه دی.نواوس واړه تكبيرونه دولس شول.د ابن عباس رضي الله عنهما هم په دې روايتونو باندې په دغه زمانه كې د عامو خلګو عمل وو.امام شافعی رحمه الله فرمائی چې دا دولس يا ديارلس واړه زوائد تكبيرونه دی.اوس ښكاره ده.چه هركله ددې سره درې اصلی تكبيرونه يعنی تكبيرتحريمه او د دواړو ركعتونو د ركوع دوې [دوه] تكبيرونه ملاؤشی. نود دولس تكبيرونو روايت په صورت كې به واړه تكبيرونه پنځلس شی.او د ديارلس تكبيرونو د روايت په صورت كې به واړه تكبيرونه شپاړس شی.نود مروی نه مراد هغه دې.چه كوم د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت شوې دې.

**خلاصة المذاهب الثلاثة**اوس حاصل دا شو.①چه د احنافو رحمهم الله په نيز د اختر په دواړو ركعتونو كې تكبيرات زوائد شپږ دی.② او د امام مالك او امام احمد رحمهما الله په نيز لس دی.③او د امام شافعی په نيز دولس يا ديارلس دی.(شرح نقايه)

**اساس المذاهب الثلاثة**① د احنافو رحمهم الله دمذهب بنا (بنياد) د ابن مسعود رضي الله عنه په قول دې.② اود امام مالك او امام احمد رحمهما الله دمذهب بنا (بنياد) د ابن عباس رضي الله عنهما د ديارلسو تكبيرونو په روايت دې.څكه چې لس تكبيرونه زوائد دی.او درې اصلی دی.③اود امام شافعی رحمه الله دمذهب بنا (بنياد) د ابن عباس رضي الله عنهما په دواړه روايتونو (دولس يا ديارلس) باندې دې.خو دوی دا واړه زوائد ګرځوی.اصلی درې ددې نه علاوه دی.والله اعلم

### د اخترونو په تكبيرونو كښې د رفع يدين حكم

(وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي تَكْبِيرَاتِ الْعِيدَيْنِ)قدوری فرمائی.چې د اخترونو په تكبيرونوكې به خپل دواړه لاسونه اوچتوی يُرِيدُ بِهِ مَاسِوَى تَكْبِيرَتَي الرُّكُوعِ دې نه مراد د ركوع د تكبير نه علاوه دی اوچتوی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ څكه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی {لَاتُرْفَعُ الْأَيْدِي إِلَّافِي سَبْعِ مَوَاطِنَ.}([1]) چې لاسونه دې اوچت نه كړې شی .مګرپه اووه ځايونوكې وَذَكَرَمِنْ جُمْلَتِهَا تَكْبِيرَاتِ الْأَعْيَادِ([2]) ددې ټولو نه ئی د اخترونو د تكبيرونو ذكركړی دی وَعَنْ أَبِي

[1]) قال الزيلعی رحمه الله تقدم فی ,,صفة الصلاة،، وليس فيه تكبيرات العيدين نصب الرأية.۲۷۶/۲)

[2]) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فی العناية علی هامش الفتح (۲\۴۵) والخانية (۱\۸۹) والهندية (۱\۱۵۰) والبحرالرائق (۲\۱۶۲) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۵۰)۔



يُوسُفَ أَنَّهُ لَايَرْفَعُ،اود ابويوسف رحمه الله نه مروی دی.چې لاسونه به نه وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَارَوَيْنَا او په امام ابويوسف رحمه الله باندې حجت هغه حديث دې . كوم چې موږ روايت كړې دې .

**تشريح:- رفع اليدين** زموږ په نيز د اخترونو په تكبيرونوكې د غوږونو پورې لاسونه اوچتولی شی.هم دا د امام شافعی او امام احمد رحمهما الله مذهب دې.

**دليله**دليل دنبی ﷺ قول ﴿لاترفع الأيدی إلا فی سبع مواطن﴾ دې.په دې اووه ځايونوكې د اخترونو زوائد تكبيرونه هم دی.

**عدم رفع الدين**دامام ابويوسف رحمه الله نه مروی دی.چه د اخترونو په تكبيرونوكې به لاسونه نه اوچتوی.

**دليله**دامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې.چه د لاسونو اوچتول د افتتاح سنت دی.چونكه په زوائد تكبيرونو كې دلمونځ افتتاح نشته،ددې وجه به رفع يدين هم نه كيږی.لكه چې د ركوع په تكبيركې رفع يدين نشته.

**الحجة على ابی يوسف رحمه الله** دامام ابويوسف رحمه الله خلاف.حديث ﴿لاترفع الأيدی﴾ حجت دې . پاتې شوه دا خبره چې په زوائدو تكبيرونو كې هيڅ مسنون نه دی.

**الوقفة بين كل تكبيرين**د امام ابوحنيفه رحمه الله نه مروی دی.چه په هر دوې [دوه] تكبيرونوكې به د درې تسبيحاتو په مقدار سكوت كوی.څكه چې د اختر لمونځ د جم غفير سره اداكولې شی.كه په تكبيرونوكې موالات اووصل اوكړې شی.نوكوم خلګ چې د امام نه لرې وی.په دوی به د امام حال مشتبه شی.چه امام كوم يو تكبير وائی.البته په دومره مقدار ودريدلوسره اشتباه لرےكيږی.د دې امله په تكبيرونوكې د درې تسبيحاتو په مقدار د خاموش پاتې كيدو حكم وركړې شوې دې

### د لمونځ نه روسته د خطبې حكم

قَالَ (ثُمَّ يَخْطُبُ بَعْدَ الصَّلَاةِ خُطْبَتَيْنِ) فرمائی چې د اختر د لمونځ نه روسته دې امام دوې [دوه] خطبې ووايي بِذَلِكَ وَرَدَ النَّقْلُ هم په دې باندې نقل شائع دې الْمُسْتَفِيضُ([1]) يُعَلِّمُ النَّاسَ فِيهَا صَدَقَةَ الْفِطْرِ وَأَحْكَامَهَا داختر په وارد شوې خطبه كې دې خلګو ته د صدقه فطر او ددې احكام ښائی لِأَنَّهَا شُرِعَتْ لِأَجْلِهِ څكه چې خطبه هم د دې وجه مشروع شوې ده.

**حل اللغة*** ①يخطب، خطب، خطبة (ن): تقريركول، خطبه وركول ②ورد،وردوروداً (ض) وارد كيدل، راتګ ③مستفيض: مشهور ④ يعلم، علم تعليماً: خودنه ⑤ اجل: واسطه، درجه

**تشريح:- الخطبة بعد صلاة العيدين** صاحب دكتاب فرمائی.چه د اختر د لمونځ نه چې فارغ شی.نو امام دې دوې [دوه] خطبې اووائی.هم په دې باندې نقل اوعمل شائع شوېدې.

دلائله ①په بخاری او مسلم كې دابن عمر رضي الله عنهما دحديث الفاظ دا دی.چه ﴿قال كان النبی ﷺ ثم ابوبكر وعمر يصلون العيدين قبل الخطبة﴾ ②اود ابن عباس رضي الله عنهما قول دې. ﴿شهدت العيدين مع رسول الله ﷺ وابىبكر وعمر وعثمان رضي الله عنهم كلهم كانوي يصلون العيدين قبل الخطبة﴾ (رواه الشيخان) ددواړو حديثونو حاصل دادې.چه رسول الله ﷺ اودرې واړه خليفګانود اخترونو لمونځ مخكې اوخطبه روسته كوله. البته داختر خطبه دجمعې دخطبې نه په دوو خبروكې مخالف ده.اوله دا چې جمعه بغير دخطبې نه جائز نه ده.او د اختر لمونځ دخطبې نه بغير هم

[1]) خرجت فی ,,سنن الصلاة،، للخطبة[عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ السَّائِبِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الْعِيدَ قَالَ مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَنْصَرِفَ فَلْيَنْصَرِفْ وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُقِيمَ لِلْخُطْبَةِ فَلْيُقِمْ رواه النسائی فی العيدين باب التخيير فی الخطبة للعيدين رقم ۱۵۵۳ رجاله ثقات)_

جائزدي.دويمه دا چې د جمعې خطبه د جمعې لمونځ باندې مقدم ده.او د اخترونو خطبه د لمونځ نه مؤخر ده.نوكه د اختر خطبه دلمونځ نه مقدم كړې شوه.نوهم جائز ده.داختر دلمونځ نه روسته د اعاده ارتيا نشته .واضح دې وى.چه د وړوكى اختر په خطبه كې صدقة الفطر اوددې داحكامو تعليم وركړې شى.ځكه چې دا خطبه هم ددې مقصد په لحاظ سره مشروع شوېده.

## د منفرد لپاره د اختر دمونځ قضاء راوړلوحكم

وَمَنْ فَاتَتْهُ صَلَاةُ الْعِيدِ مَعَ الْإِمَامِ او د چا نه د اخترلمونځ د امام سره فوت شو لَمْ يَقْضِهَا)نودې به ددې قضاء نه كوى.لِأَنَّ الصَّلَاةَ بِهَذِهِ الصِّفَةِ لَمْ تُعْرَفْ قُرْبَةً إِلَّا بِشَرَائِطَ لَا تَتِمُّ بِالْمُنْفَرِدِ ځكه چې د اختر د لمونځ په دې صفت سره عبادت كيدل معلوم نه دى.خو په هغه شرطونوسره چې په ځانله سړى نه پوره كيږى. فَإِنْ غُمَّ الْهِلَالُ بيا كه مياشت په اوريځه كې پټه شوه وَشَهِدُوا عِنْدَ الْإِمَامِ بِرُؤْيَةِ الْهِلَالِ بَعْدَ الزَّوَالِ او خلكو د زوال نه روسته امام ته د مياشت ليدو ګواهى وركه صَلَّى الْعِيدَ مِنَ الْغَدِ)نو امام دې په دويمه ورځ د اختر لمونځ اوكړى لِأَنَّ هَذَا تَأْخِيرٌ بِعُذْرٍ ځكه چې دا تاخير د عذر په وجه دې وَقَدْ وَرَدَ فِيهِ الْحَدِيثُ او په دې كې حديث وارد شوې دې (فَإِنْ حَدَثَ عُذْرٌ يَمْنَعُ مِنَ الصَّلَاةِ فِي الْيَوْمِ الثَّانِي اوكه داسې عذر پيدا شي .چې په دويمه ورځ هم د اختر د لمونځ نه پاتې شول لَمْ يُصَلِّهَا بَعْدَهُ)نوددې نه روسته به دا لمونځ نه كوى لِأَنَّ الْأَصْلَ فِيهَا أَنْ لَا تُقْضَى كَالْجُمُعَةِ ځكه چې د اختر په لمونځ كې اصل خو دا دې .چې د دې قضا او نه كړې شى إِلَّا أَنَّا تَرَكْنَاهُ بِالْحَدِيثِ خو موږ دا اصل دحديث د امله پريښولې (پريخودې) دې ،وَقَدْ وَرَدَ بِالتَّأْخِيرِ إِلَى الْيَوْمِ الثَّانِي عِنْدَ الْعُذْرِ او دعذر په وخت د دويمې ورځې پورې روستو كې حديث راغلې دې .

**حل اللغة**: ① **فائتة، فات فوتًا** (ن): فوت كيدل ② **لم يقضها، قضى قضاءً** (ض): قضاكول، اداكول ③ **لاتتم، تم تمامًا** (ض): پوره كيدل

**تشريح:- قضاء صلاة العيد**۞صورت دمسئلې دادې. كه امام د اختر لمونځ اداكړو.او يو سړې پاته پاتې شو.ده داخترلمونځ اداكړې نه دې.نوددې قضاء راوړلواجازت نشته.هم دا د امام مالك رحمه الله قول دې.امام شافعى رحمه الله فرمائى چې دا سړې ځانله د اختر لمونځ كولې شى.ځكه چې د امام شافعى رحمه الله په نيز د اخترونو دلمونځ دجواز لپاره نه جمع شرط ده.او نه د سلطان وجود ،په دې وجه د دوى په نيز د اختر د لمونځ قضائى كول مستحب دى.

**دليل الاحناف** رحمهم الله ۞زموږ دليل دادې.چه د اختر لمونځ قائمولو لپاره څه داسې شرطونه دى. چې په ځانله سړى سره نه پوره كيږى.مثلاً جماعت،د وخت سلطان. نو په منفرد كې دا شرطونه نشى موجودې دې.د دې امله ده لپاره د اختر لمونځ كول هم جائزنه دى.

## د رمضان د مياشتې په وريځه كښې پټيدل

فَإِنْ غُمَّ الْهِلَالُ بيا كه مياشت په اوريځه كې پټه شوه. وَشَهِدُوا عِنْدَ الْإِمَامِ بِرُؤْيَةِ الْهِلَالِ بَعْدَ الزَّوَالِ او خلكو د زوال نه روسته امام ته د مياشت ليدو ګواهى وركړه صَلَّى الْعِيدَ مِنَ الْغَدِ نو امام دې په دويمه ورځ د اختر لمونځ اوكړى. لِأَنَّ هَذَا تَأْخِيرٌ بِعُذْرٍ وَقَدْ وَرَدَ فِيهِ الْحَدِيثُ ځكه چې دا تاخير د عذر په وجه دې. او په دې كې حديث وارد شوې دې فَإِنْ حَدَثَ عُذْرٌ يَمْنَعُ مِنَ الصَّلَاةِ فِي الْيَوْمِ الثَّانِي اوكه داسې عذر پيدا شي.چه په دويمه ورځ هم د اختر د لمونځ نه پاتې شول لَمْ يُصَلِّهَا بَعْدَهُ نوددې نه روسته به دا لمونځ نه كوى. لِأَنَّ الْأَصْلَ فِيهَا أَنْ لَا تُقْضَى كَالْجُمُعَةِ خو موږ دا اصل دحديث د امله پريښولې (پريخودې) دې.ځكه چې د اختر په لمونځ كې اصل خو دا دې.چه د دې قضا او نكړې شى لكه د جمعې إِلَّا أَنَّا تَرَكْنَاهُ بِالْحَدِيثِ وَقَدْ وَرَدَ بِالتَّأْخِيرِ إِلَى الْيَوْمِ الثَّانِي عِنْدَ الْعُذْرِ. اودعذر په وخت د دويمې ورځې پورې روستو كې حديث راغلې دې.

**حل اللغة**: ① **غم، غم غمامًا** (ن): پټيدل ② **شهدوا، شهد شهادة** (س): ګواهى وركول، حاضريدل ③ **روية**: كتل ④ **غد**:



صبا ⑤ **يمنع، منع منعًا** (ف): بندول، منع كول ⑥ **تركناه، ترك تركًا** (ن) پريښول

**تشريح:- اداء صلاة العيد في اليوم الثاني**۞صورت دمسئلې دادې.چه ۲۹ رمضان باندې كه مياشت په اوريځه كې پټه شوه،اوپه ۳۰ رمضان دزوال نه روسته خلكو امام ته د سپوږمۍ ليدوګواهى وركړه. اوامام ددوى ګواهى هم قبوله كړه.نو روژه دې ماته كړى.او امام دې په دويمه ورځ خلګ وته لمونځ اوكړى.

**دليله**۞دليل دادې.چه دا تاخير د عذر په وجه دې.په دې وجه دې تاخيركې هيڅ باك نشته .اوددې تاخير په سلسله كې حديث هم موجود دې.د هدايه په تيره شوې صفحه باندې داحديث هم داسې ذكر شوې دې.
﴿ولما شهدوي بالهلال بعد الزوال امر بالخروج الى المصلى من الغد﴾اوكه په دوهم شوېل باندې هم څه داسې عذر پيښ شى.چه د اختر دلمونځ لپاره مانع وى.

**عدم تاخيرها الى اليوم الثالث**۞نواوس ددې نه روسته په دريم شوېل باندې د اختر دلمونځ كاوه اجازت نشته.ځكه چې د اختر په لمونځ كې اصل خو دا دې .چه ددې قضا راوړلې شى.لكه څنګه چې دجمعې فوت كيدو په صورت كې ددې قضا نشى راوړې.خو د عذر په وجه د دويمې ورځې پورې مؤخر كاوه كې د ذكر شوى حديث په وجه دا اصل پريښولې (پريخودې) شوېدې.نوچونكه په حديث كې صرف ددويمې ورځې پورې د روستو كاوه د صورت تصريح شوې ده.په دې وجه به د دوهم شوېل پورې داخترد لمونځ روستو كاوه اجازت وى.ددې نه روسته به اجازت نه وى.

## د لوئي اختر مستحبات

وَيُسْتَحَبُّ فِي يَوْمِ الْأَضْحَى أَنْ يَغْتَسِلَ وَيَتَطَيَّبَ) لِمَا ذَكَرْنَاهُ او د لوى اختر په ورځ غسل كول او خوشبو لګول مستحب دى.د هغه دليل په وجه چې موږ ذكركړې دې (وَيُؤَخِّرَ الْأَكْلَ حَتَّى يَفْرُغَ مِنَ الصَّلَاةِ) وخوراك دې روستوكړى.تردې چې د لمونځ نه فارغ شى لِمَا رُوِيَ {أَنَّهُ عليه السلام كَانَ لَا يَطْعَمُ فِي يَوْمِ النَّحْرِ حَتَّى يَرْجِعَ ځكه مروى دى چې نبى ﷺ به د لوئې اختر په ورځ خوراك نه كولو.تر دې پورې چې د لمونځ څخه به روسته شو فَيَأْكُلَ مِنْ أُضْحِيَّتِهِ[1] بيا به ئې دخپلې قربانۍ نه خوراك كولو.

**حل اللغة**: ① **يستحب، استحب، استحبابًا**: مستحب كيدل ② **ان يغتسل، اغتسل اغتسالاً**: غسل كول ③ **يتطيب، تطيب تطيبًا**: خوشبوئ لګول ④ **يوخر، اخر تاخيراً**: روستو كول ⑤ **يرجع، رجع رجوعًا** (ض): واروسته كيدل،واروسته كول

**تشريح:- سنية الغسل والطيب**۞صاحب دقدورى فرمائى.چه دلوې اختر په ورځ غسل كول او خوشبو لګول مستحب دى.دليل مخكې تيرشوې دې.

**تاخيرالاكل من الصلاة**۞او دا هم مسنون دى.چه خوراك دلمونځ نه روسته اوكړى.اود خپلې قربانۍ نه اوخرى.

**دليله**۞دليل دنبى ﷺ عمل دې.چه دوى به د لوې اختر په ورځ د اختر دلمونځ نه روسته خوراك كولو.اودخپلې قربانۍ څخه به ئې خوراك كولو.كه څوك قربانى نه كوى.بيا هم د اختر دلمونځ نه مخكې دې خوراك نه كوى.ځكه چې د اختر دلمونځ نه مخكې خوراك نه كول جلا سنت دى.او د خپلې قربانۍ نه خوړل جلا سنت دى.اودكلى والو لپاره جائز دى.ځكه چې هلته كې لمونځ واجب نه دې.

[1] خرجته فى ،،سنن الصلاة،، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَخْرُجُ يَوْمَ الْفِطْرِ حَتَّى يَطْعَمَ وَلَا يَطْعَمُ يَوْمَ الْأَضْحَى حَتَّى يُصَلِّيَ رواه الترمذى فى العيدين باب ما جآء فى الأكل يوم الفطر قبل الخروج رقم ۱۹۷غربه الترمذى)_

### په لاره کښې په جهر سره د تکبير وئيلو حکم

{وَيَتَوَجَّهُ إِلَى الْمُصَلَّى} (وَهُوَيُكَبِّرُ) او عيدگاه ته به ځی په دې سے حال کې چې تکبير به وائي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يُكَبِّرُ فِي الطَّرِيقِ[1] ځکه چې نبی ﷺ به په لاره کې تکبير وئيل (وَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ كَالْفِطْرِ) او امام دې د وړوکي اختر په شان خلګو ته دوې [دوه] رکعته لمونځ اوکړی كَذٰلِكَ نُقِلَ[2] هم داسې نقل شوی دی

**حل اللغة:** ① يتوجه، توجه توجهاً: متوجه کيدل ② طريق جمع طرق: لاره

**تشريح:- الجهربالتكبير في طريق المصلى:** مسئله دا ده. چه عيدګاه ته په تلوتلوکې به په لاره کې په اوچت آواز سره تکبيروائی.

**دليله:** ځکه چې نبی ﷺ به هم دا عمل کولو. او د اختر لمونځ د وړوکی اختر په شان دوې [دوه] رکعته دې. د امام صاحب نه هم دا منقول دی.

(وَيَخْطُبُ بَعْدَهَا خُطْبَتَيْنِ) او دلمونځ نه روسته دې دوې [دوه] خطبې ووايي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَذٰلِكَ فَعَلَ[1] ځکه چې نبی ﷺ هم داسې تعليم ورکړی دی {وَيُعَلِّمُ النَّاسَ فِيهِمَا الْأُضْحِيَةَ وَتَكْبِيرَ التَّشْرِيقِ} او په دواړو خطبوکې دې د قربانۍ او د تشريق د تکبيرونو تعليم ورکړی لِأَنَّهُ مَشْرُوعُ الْوَقْتِ وَالْخُطْبَةُ مَا شُرِعَتْ إِلَّا لِتَعْلِيمِهِ ځکه چې دغه وخت مشروع هم دا دی. اوخطبه نه ده مشروع خو هم په دې تعليم سره.

**حل اللغة:** ① يخطب، خطب خطبة (ن): د امام د خلګو په وړاندې خطبه ورکول، تقريرکول، وعظ کول ② يعلم علم تعليماً: خودنه

**تشريح:-** دلمونځ نه روسته دې په خطبه کې د قربانۍ او د تشريق د تکبيرونو احکام اوښائی. ځکه چې هم په دې ورځو کې هم دا شيان (څيزونه) مشروع دی. اوخطبه هم دې څيزونو دتعليم لپاره مشروع شوېده.

### د لوئي اختر لمونځ دويمې او دريمې ورځې ته روستو کول

{فَإِنْ كَانَ عُذْرٌ يَمْنَعُ مِنَ الصَّلَاةِ فِي يَوْمِ الْأَضْحَى} که څه عذر داسې وی. چه په لسمه د ذی الحجه د لمونځ کاوه نه مانع وی. {صَلَّاهَا مِنَ الْغَدِ وَبَعْدَ الْغَدِ} نو په دويمه يا په دريمه ورځ دې لمونځ اوکړی {وَلَا يُصَلِّيهَا بَعْدَ ذٰلِكَ} او دې نه روسته دې نه کوی لِأَنَّ الصَّلَاةَ مُؤَقَّتَةٌ بِوَقْتِ الْأُضْحِيَةِ. ځکه چې د لوئي اختر لمونځ د قربانۍ د ورځو سره مقيد دې. فَتَتَقَيَّدُ بِأَيَّامِهَا نو دې وخت به هم د قربانۍ د ورځوسره مقيد وی. لٰكِنَّهُ مُسِيءٌ فِي التَّأْخِيرِ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ خو بغيرد عذر نه په تاخير کې به دې ګناهګار وی. لِمُخَالَفَةِ الْمَنْقُولِ. ځکه چې د منقول نه مخالفت دې.

**حل اللغة:** ① يمنع، منع منعاً (ف): بنديدل، منع کيدل ② غد: سهار ③ لايصليها، صلى صلاة: لمونځ کول ④ مسئ: ګناهګار، تاخير: روستوکول

[1] خرجته فی ،،سنن الصلاة،، عن نافع عن بن عمر أنه كان يخرج فی العيدين من المسجد فيكبرحتی يأتی المصلی كذا فی المستدرک فی العيدين رقم ١١٠٦ (٤٣٨/١)_

[2] إن أراد نقل الركعتين فقد خرجته فی ،،سنن الصلاة،، زُبَيْدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى قَالَ قَالَ عُمَرُ صَلَاةُ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَانِ وَصَلَاةُ الْفِطْرِ رَكْعَتَانِ وَصَلَاةُ الْأَضْحَى رَكْعَتَانِ وَصَلَاةُ السَّفَرِ رَكْعَتَانِ تَمَامٌ غَيْرُ قَصْرٍ عَلَى لِسَانِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أخرجه الدارمی فی الصلاة باب صلاة العيدين بلا أذان ولا إقامة رقم ١٥٥٢ رجاله ثقات)_

[3] تقدم تخريجه عن قريب)_





**تشريح:- تاخيرصلاة عيدالاضحى الى اليوم الثالث:** مسئله داده. که د ذی الحجه په لسم تاريخ باندې دلمونځ مانع عذر پيښ شو. نو په يوولسم تاريخ دې لمونځ اوکړی. اوکه په يوولسم تاريخ باندې هم عذر موجود وو. نو په دولسم باندې دې د اختر لمونځ اوکړی. اوکه په دې کې هم عذر موجود وو. نو ددې نه روسته د تاخير اجازت نشته.

**دليله:** دليل دادې. چه د لوئي اختر لمونځ د اُضحيه (قربانۍ) سره تعلق ساتی. په دې وجه د لمونځ وخت هم د قربانۍ د ورځو سره ترلے وی. نود قربانۍ د دريمې ورځې پورې هره ورځ د لمر راختلو نه روسته زواله پورې داخترد لمونځ وخت دې. اوکه تاخير کول بغير دعذر وی. نوهم لمونځ جائز دې. خو بغير دعذرنه په تاخيرکولوبه ګناهګاروی. ځکه چې نبی ﷺ اودخلفائی راشدينو نه داسې تاخير منقول نه دې. دا خيال ساتل پکاردی چې دا لمونځ ددې باوجود چې په تاخير سره اوکړې شی. ادا دې قضاء نه دې. ځکه چې په خپل وخت کې واقع شوې دې.

### دحاجيانو سره د مشابهت حکم

{وَالتَّعْرِيفُ الَّذِي يَصْنَعُهُ النَّاسُ لَيْسَ بِشَيْءٍ} اوهغه تعريف چې خلګ ئې کوی. هيڅ شی نه دې وَهُوَ أَنْ يَجْتَمِعَ النَّاسُ يَوْمَ عَرَفَةَ فِي بَعْضِ الْمَوَاضِعِ تَشَبُّهًا بِالْوَاقِفِينَ بِعَرَفَةَ اوهغه دادې چې دعرفې په ورځ خلګ په يو ځکر کې راجمع شی. د هغه خلګو سره مشابهت کوی. څوک چې دعرفې په ورځ په عرفات کې اودريږی لِأَنَّ الْوُقُوفَ عُرِفَ عِبَادَةً مُخْتَصَّةً بِمَكَانٍ مَخْصُوصٍ ځکه چې وقوف عرفه ديو خاص ځائي سره مخصوص عبادت دې فَلَا يَكُونُ عِبَادَةً دُونَهُ كَسَائِرِ الْمَنَاسِكِ نوبغيردد غې خاص ځائي نه ودريدل عبادت نه دې. لکه د حج په پاته مناسکو کې.

**حل اللغة:** ① يصنع، صنع صنعاً (ف): کول، جوړول ② يجتمع، اجتمع اجتماعاً: راجمع کيدل ③ مواضع واحد موضع: ځائ مقام ④ وقوف: حصاريدل ⑤ سائر: واړه ⑥ مناسک: د حج ارکان

**تشريح:- عدم اعتبار التعريف:** تعريف د اهل عرفه سره مشابهت اختيارول دی. يعنی دعرفې په ورځ خلګ په يوميدان کې راجمع شی. د حاجيانو په شان دعا کوی. اوتضرع (عاجزی) کوی. صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی. چه دا څه داسې شی نه دې. چه په دې باندې ثواب مرتب شی.

**دليله:** ځکه چې وقوع د عرفې په يوخاص ځائي يعنی د عرفات سره مخصوص عبادت دې. په دې وجه بغيرد ميدان عرفات نه په بل څه ځائي کې ودريدل عبادت نشی کيدې. لکه څنګه چې دحج پاته مناسک په نورو ځايونوکې نشی ادا کيدې. صاحب دکفايه خو دې پورې وئيلی دی. که د بيت الله نه علاوه ئې د بل يو جومات چکر اوګلولو. نو په دې اره کې دکفر ويره ده.

**الاعتراض والجواب:** که دا اووئيلې شی. چه حضرت ابن عباس رضي الله عنه په بصره کې دننه په يو ځکر کې د عرفات په ورځ خلګ راجمع کړی وو. نوزمونږد ارخه ځواب دا دې. چه د ابن عباس رضي الله عنهما دا عمل د دُعا په غرض وو. نه دا چې د اهل عرفه سره د تشبيه په طور. والله اعلم.

### د تشريق د تکبيرونو بيان

فَصْلٌ فِي تَكْبِيرَاتِ التَّشْرِيقِ (دا) فصل د تکبيرات تشريق (په بيان کې) دی

**تشريح:- وجه استقلال التكبيرات في الفصل:** تشريق په خپله تکبيردې. نواوس به معنی داوی. چه د هغې تکبيرونو په بيان کې چې د هغې نوم تشريق دې. په عنايه کې دی. چه تکبير تشريق چونکه د قربانۍ د ورځوسره مخصوص دې. ځکه ئې په خانله فصل کې ذکر کړل.

**اضافة التكبيرات الى التشريق:** په کفايه کې دی. چه د تکبيرونو اضافت تشريق اړخ ته د صاحبينو رحمهما الله په قول درست دې. ځکه چې ددوی په نيز بعضې تکبيرونه دتشريق په ورځو يعنی يوولسم، دولسم، اوديارلسم تاريخ کې هم واقع کيږی. خود ابوحنيفه رحمه الله په نيزد نحر په ورځ يعنی په لسم د ذی الحجه د مازيګر د

لمانځه نه روسته تکبیرونه ختمیږي.حالانکه دتشریق دورځو پیل د یوولسمې ذي الحجه نه کیږي.لکه څنګه چې د لنډيز په حوالې سره صاحب د عنایه فرمائیلي دي.چه دنحر ورځې درې دي.اودتشریق ورځې هم درې دي.په دې شان چې د ذي الحجه لسم تاریخ خاص طورباندې دنحر ورځ ده.او دیارلسم تاریخ په خاص طور د تشریق ورځ ده.او یوولسمه او دولسمه ورځ دنحراوتشریق دواړو لپاره دي.

**الاعتراض**۞دابوحنیفه رحمه الله په نیز به د تکبیرات التشریق عنوان څنګه درست وي.

**الجوابان**۞ ① ددې یو ځواب خو دادې.چه لسم ذي الحجه اګرچه د نحر ورځ ده.دتشریق ورځ نه ده. خو دتشریق یعنی یوولسمې ذي الحجه سره نژدې ده.ددې قرب د امله د تشریق اړخ ته د تکبیرونواضافت شوې دې.په جامع صغیر کې دی. ﴿قال یعقوب صلیت بهم المغرب یوم عرفة﴾ یعقوب وئیلي دي.چه ما دوی ته دعرفې په ورځ دماښام لمونځ اوکړو.حالانکه د نمرپریوتلو سره د عرفې ورځ ختمه شوه.خوچونکه د ماښام وخت د عرفې ورځې سره نژدې دې.ځکه یوم عرفه اووئیلې شوه. ② دوهم ځواب دادې.چه دتشریق نه مراد دلوې اختر لمونځ دې.په حدیث کې دی. ﴿لا جمعة ولا تشریق الا فی مصر جامع﴾ او په دوهم حدیث کې دی. ﴿لا ذبح الا بعد التشریق﴾ په دواړو حدیثونوکې د تشریق نه مراد د اختر لمونځ دې. په دې صورت کې په اتفاق سره اضافت درست دې.

**المذهبان في حکم التکبیرات**۞ پاتې شوه دا خبره.چه تکبیر تشریق واجب دې یا سنت، ① نواکثر عالمان د وجوب قائل دی. ② اوبعضې دمسنونیت قائل دی.دوجوب دلیل د الله تعالی قول [وَاذْكُرُوا اللّٰهَ فِيْٓ اَيَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ] دې.او د سنیت قائلینو په دې باندې دنبي ﷺ مداومت اوهمیشوالې دلیل ګرځولې دې.

| |
|---|
| وَيَبْدَأُ بِتَكْبِيْرِ التَّشْرِيْقِ بَعْدَ صَلَاةِ الْفَجْرِ مِنْ يَوْمِ عَرَفَةَ اودعرفې په ورځ به دسهار دلمونځ نه روسته تکبیرتشریق پیل کوي |

**تشریح:- المذهبان في ابتداء التکبیرات**۞ دتکبیرات تشریق په ابتداء او انتهاء کې چونکه دصحابو رضی الله عنهم اختلاف دې.ځکه د امامانو په مینځ کې هم دا مسئله مختلف فیه ده. ① اکابرین صحابه حضرت عمر، علي، ابن مسعود رضی الله عنهم فرمائیلي دي.چه د تکبیرات تشریق ابتداء دعرفې په ورځ یعنی د ذي الحجه د نهم تاریخ نه کولې شي.دا قول احنافو عالمانو رحمهم الله په اتفاق سره اختیار کړې دې. ② اوصغار صحابه مثلاً عبدالله ابن عباس، عبدالله ابن عمر، زید بن ثابت رضی الله عنهم فرمائیلي دي.چه د نحر یعنی دلوې اختر په ورځ د ماپښین لمانځه به د تکبیرونو پیل کولې شي.

| |
|---|
| وَيَخْتِمُ عَقِيْبَ صَلَاةِ الْعَصْرِ مِنْ يَوْمِ النَّحْرِ اود قربانۍ په ورځ به ئې د مازیګر نه روسته ختموي عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ (داحکم د ابوحنیفه رحمه الله په نیزدې) وَقَالَا يَخْتِمُ عَقِيْبَ صَلَاةِ الْعَصْرِ مِنْ آخِرِ أَيَّامِ التَّشْرِيْقِ[1] وَالْمَسْأَلَةُ اوصاحبین رحمهما الله فرمائي.چې په آخرې ورځ د تشریق به ئې د مازیګردلمونځ نه روسته ختموي. مُخْتَلِفَةٌ بَيْنَ الصَّحَابَةِ اودا مسئله د صحابه رضی الله عنهم په ما بینځ کې مختلف فیه ده |

**تشریح:- المذهبان في انتهاء التکبیرات**۞ ① دانتها په سلسله کې دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه قول دې.دنحرد ورځو ړومبۍ ورځ یعنی د لسمې ذي الحجه د مازیګر لمونځ دې.مطلب دا چې د ذي الحجه په لسم تاریخ د مازیګر د لمانځه نه روسته دې تکبیرات ووایي اوختم دې کړي.نود عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په نیز واړه د اته مونځونو نه روسته یعنی د نهمې ذي الحجه د سهار دلمانځه نه روسته د لسمې د مازیګر پورې به تکبیر

---

[1]) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى الكفاية فى صدر فتح القدير(۲\۴۹) وردالمحتار(۱\۶۲۱) والفقه الاسلامی (۲\۳۸۳) والهندية (۱\۱۵۲) نقلاً عن القول الراجح(۱\۱۵۱)۔



تشریق وئیلي شي.هم دا د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دې. ② اوحضرت علي رضی الله عنه فرمائیلي دي.چه تکبیر تشریق به د تشریق د ورځو په آخره ورځ یعنی دیارلسم ذي الحجه د مازیګر په لمانځه ختمولې شي.د حضرت علي رضی الله عنه په نیز واړه د ۲۳ مونځونو نه دي.یعنی د نهمې ذي الحجه د سهار لمانځه نه روسته د دیارلسمې ذي الحجه د مازیګر پورې تکبیر وئیلي شي.هم دا قول حضرات صاحبینو رحمهما الله هم اختیار کړې دې.

| |
|---|
| فَأَخَذَا بِقَوْلِ عَلِيٍّ رضی الله عنه[1] أَخْذًا بِالْأَكْثَرِ نوصاحبینو رحمهما الله زیات اختیار کړی دی .اودحضرت علي رضی الله عنه قول ئې اخستې دې إِذْ هُوَ الْاِحْتِيَاطُ فِي الْعِبَادَاتِ اوپه عبادت کې هم دا احتیاط دې |

**تشریح:- اختیارالصاحبین** رحمهما الله ۞صاحبینو رحمهما الله اکثر اختیار کړې دې اودحضرت علي رضی الله عنه په قول باندې ئې اعتماد کړې دې.ځکه چې تکبیر هم عبادت دې.او په عباداتو کې دننه احتیاط هم په دې کې دې.چه اکثر واخستلې شي.

| |
|---|
| وَأَخَذَ بِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ[2] أَخْذًا بِالْأَقَلِّ اوابوحنیفه رحمه الله کم اختیار کړې دی.اود ابن مسعود رضی الله عنه قول ئې اخستې دې لِأَنَّ الْجَهْرَ بِالتَّكْبِيْرِ بِدْعَةٌ ځکه چې په جهرسره تکبیر وئیل بدعت دې |

**تشریح:- الدلیلان لابی حنیفة رحمه الله في قوله**۞ ① د امام ابوحنیفه رحمه الله کمتر او اقل اختیارول په دې وجه دی.چه په اوچت آواز سره تکبیر وئیل بدعت دی.ځکه چې الله تعالی فرمائیلي دی[وَاذْكُرْ رَّبَّكَ فِيْ نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَّخِيْفَةً وَّدُوْنَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ] اوپه حدیث کې دی ﴿رای النبی ﷺ أقواما یرفعون أصواتهم عند الدعاء فقال إنكم لن تدعوي أصم ولا غائبا﴾ یعنی رسول الله ﷺ یو قوم اولیدلو.چه د دعا په وخت کې به ئې خپل آوازونه اوچتول.نونبي ﷺ ورته اوفرمائیل.چه تاسو خلګ نه خوکوڼ ته آواز کوئ او نه غائب ته.ددوی (ﷺ) مراد دادې.چه الله چاته چې تاسو آواز کوئ.نه خو هغه کوڼ دې او نه غائب دې.بلکه سمیع ( ډیر اوریدونکې ) دې.او په هر ځائې کې موجود دې. ځکه په اوچت آواز ده ته د آواز کاوه بیخي اړتیا نشته.ددې آیت اوروایت نه معلومه شوه.چه په دعا او ذکر کې اصل اخفاء ده.اوجهرخلاف اصل او بدعت دې. ② دامام صاحب دوهم دلیل دا دې.چه د تکبیر ابتداء په دې سبب ورځ کې کیږي.چه په هغې کې د حج یو رکن یعنی وقوع عرفه ادا کیږي.روسته دا منقطع کول هم په دې نحر ورځ کې مناسب دی.چه په دې کې دحج دوهم رکن یعنی طواف زیارت اداکیږي.چه دتکبیرابتداء اوانتهاء دواړه برابرشي.دا یاد ساتئ. چې عمل اوفتوی د صاحبینو رحمهما الله په قول ده.

| |
|---|
| وَالتَّكْبِيْرُ أَنْ يَقُوْلَ مَرَّةً وَاحِدَةً: اَللّٰهُ أَكْبَرُ اَللّٰهُ أَكْبَرُ، لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ، اَللّٰهُ أَكْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ اوتکبیردا دې .چې یوځل اووائي. [الله اکبر، الله اکبر، لا اله الا الله ،والله اکبر الله اکبر ،ولله الحمد] هٰذَا هُوَ الْمَأْثُوْرُ عَنِ الْخَلِيْلِ صَلَوَاتُ اللّٰهِ عَلَيْهِ هم دا دحضرت ابراهیم ① نه منقول دی. |

**تشریح:- المذهبان في عدد التکبیرات**۞صاحب دهدایه رحمه الله فرمائي.چه د ذکر شوی تکبیرکلمات ﴿الله أکبر الله اکبر..الخ﴾یو ځل وئیل دی. ② امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه درې ځله یا پنځه ځله یا اووه ځله به ئې

---

[1]) قال الزيلعي رحمه الله أما قول علي رضی الله عنه فرواه ابن ابى شيبة فى مصنفه ورواه الحاكم فى المستدرك (۱/۲۹۹) ورواه محمد بن الحسن فى الآثار(ص،۳۶)_

[2]) حديث ابن مسعود رضی الله عنه رواه ابن أبى شيبة ورواه الطبرانى فى الكبير كما أشار إلى ذلك الهيثمى فى مجمع الزوائد(۲/۱۹۷)_

وائي

۵تاريخ ابتداء الكلمات۞داكلمات دسيدنا ابراهيم عليه السلام نه منقول دی.ددې كلماتو تاريخي روسته منظر دادې.چه كله د الله تعالى په حكم ابراهيم عليه السلام دخپل زړه ټكړې اسماعيل عليه السلام ذبح كاوه لپاره دده لاسونه او پښې اوتړ لې.اوپه مخكه ئې په تندي باندې سملولو.او چاړه ئې راښكله.نوخښ ئې پرې نكړو.بل خوجبرئيل عليه السلام ته حكم اوشو.چه د اسماعيل عليه السلام په ځائې هغه ګډ راولـه اوسملوه كوم چې هابيل نذرالله په غره باندې ايخودې وو.او هغه قبول شوې وو.چه تراوسه پورې په جنت كې څريدلو.جبرئيل عليه السلام چې كله اوكتل.چه ابراهيم عليه السلام دالله د اطاعت لپاره په ذبحه كې ډير عجلت كوی.نوئې فرمائيل. «الله أكبر الله أكبر» ابراهيم عليه السلام خښ اوچت كړو.او وې كتل. او د جبرئيل عليه السلام آواز ئې واورېدلو.نو بې اختياره ئې د ژبې نه دا اووتل. «لا إله إلاالله والله اكبر» ذبيح الله عليه السلام ته چې كله معلومه شوه. اودپلار بزرګواراود جبرئيل كلمات ئې واوريدل.نود الله تعالى دحمد لپاره دده ژبه ګويا شوه.او وې وئيل. «الله أكبر الله أكبر ولله الحمد» داكلمات د قيامته پورې ديو نيك فرزند اود الله تعالى په عشق كې د دليواله پلار ياد تازه كوی.قرآن حكيم په څومره بليغ انداز كې وائی چې [وَقَالَ إِنِّي ذَاهِبٌ إِلَىٰ رَبِّي سَيَهْدِينِ]

## د تشريق د تكبيرونو وئيلو وخت

| |
|---|
| وَقَالَ إِنِّي ذَاهِبٌ إِلَىٰ رَبِّي سَيَهْدِينِ وَهُوَعَقِيبَ الصَّلَوَاتِ الْمَفْرُوضَاتِ عَلَى الْمُقِيمِينَ فِي الْأَمْصَارِ فِي الْجَمَاعَاتِ الْمُسْتَحَبَّةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ دا تكبير د ابوحنيفه رحمه الله په نيز په مستحب جماعتونو كې په ښار كې دننه په مقيم خلګو باندې د فرض لمونځونو نه روسته دی وَلَيْسَ عَلَىٰ جَمَاعَاتِ النِّسَاءِ إِذَا لَمْ يَكُنْ مَعَهُنَّ رَجُلٌ اودښځو په جماعتونو باندې تكبير نشته س.چې دې ښځو سره څوك سړی نه وی وَلَا عَلَىٰ جَمَاعَةِ الْمُسَافِرِينَ إِذَا لَمْ يَكُنْ مَعَهُمْ مُقِيمٌ اود مسافرو په جماعت باندې تكبير نشته .كه ددوی سره څوك مقيم نه وی |

حل اللغة* ①عقيب: روستو ②امصار واحد مصر: ښار ③لم يكن، كان كونًا (ن): كيدل

تشريح:- شروط من تجب عليه التكبيرات عند ابى حنيفة رحمه الله ۞دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د هر فرض لمونځ نه روسته تكبير وئيل واجب دی.①په دې شرط چې دا خلګ مقيم وی،په ښار كې دننه وی،② او په مستحب طريقه باندې په جماعت سره لمونځ شوې وی.③حضرت امام صاحب د عقيب الفرض قيد ځكه اولګولو.كه د فرض لمونځ نه روسته بل عمل اوموندلے شی.مثلا دجومات نه اووتلو.يا په خبروكې بوخت شو.نودا سړې دې تكبير نه وائی.④ اود مفروضاتود قيد نه دجنازے مونځ، وتر،د اخترونو لمونځ او نفل اووتل.په دې معنی چې ددې نه روسته تكبير تشريق واجب نه دې.⑤ دمقيمين په قيد سره مسافر خارج شو.ځكه چې په مسافر باندې هم تكبير نشته.⑥د «فی الأمصار» په قيدسره په كلوكې دننه د تكبير تشريق عدم وجوب ثابت شو.⑦د جماعت په قيدسره منفرد خارج شو.⑧اودمستحب په قيد سره دځانله ښځو جماعت خارج شو.يعنی كه خالی ښځو جماعت اوكړو.نو په دوی باندې هم تكبيرنشته.اوكه دښځو امام سړې وی.اودمسافروامام مقيم وی.نو په دې ښځو اومسافرو باندې هم تكبير واجب دې.

| |
|---|
| وقالاهوعَلَىٰ كُلِّ مَنْ صَلَّى الْمَكْتُوبَةَ)(۱)او صاحبين فرمائی.چې تكبير په هريو داسې سړی باندې شته.چې فرض لمونځ كوی. وَلِأَنَّهُ تَبَعٌ لِلْمَكْتُوبَةِ ځكه چې تكبيرد فرض لمونځ تابع دې |

تشريح:- من تجب عليه التكبيرعندالصاحبين رحمهما الله ۞صاحبينو رحمهما الله فرمائيلی دی.چه په هر هغه سړی تكبير واجب

---

(۱) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى الدرالمختار(۶۲۰\۱) والبحرالرائق (۱۶۶\۲) والفقه الإسلامى وأدلته (۳۸۲...) نقلاً عن القول الراجح (۱۵۲\۱)-



دې.چه هغه فرض لمونځ اوكړی خواه كه دښار وی اوكه كلی وال،مسافر وی اوكه مقيم يا منفرد.كه سړې وی او كه ښځه.هم دغه قول د امام مالك او امام شافعی رحمهما الله دې.

ددې حضراتو دليل دادې.چه تكبير دفرض لمونځ تابع دې.نو چې څوك فرض اوكړی هغه به تكبير وائی.

| |
|---|
| وَلَهُ مَارَوَيْنَامِنْ قَبْلُ اودامام ابوحنيفه رحمه الله دليل هغه حديث دې .كوم چې موږ مخكې ذكركړې دې وَالتَّشْرِيقُ هُوَالتَّكْبِيرُاو د تشريق په تكبيربه جهر كوی كَذَانُقِلَ عَنِ الْخَلِيلِ بْنِ أَحْمَدَ هم داسې دخليل بن احمد رحمه الله نه منقول دی |

تشريح:- دلائل ابی حنيفة۞ ①د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل هغه حديث دې.كوم چې موږ مخكې ذكر كړې دې.يعنی «لا جمعة ولا تشريق ولا فطر ولا أضحى إلا فى مصر جامع» ددې حديث نه د تكبير تشريق لپاره دښار شرطيت معلوم شو.د لغت امام خليل ابن احمد رحمه الله نه منقول دی.چه تشريق دجهری تكبيرنوم دې.

| |
|---|
| وَلِأَنَّ الْجَهْرَ بِالتَّكْبِيرِ خِلَافُ السُّنَّةِ اوځكه چې په تكبيرباندې جهركول د سنتو خلاف دی وَالشَّرْعُ وَرَدَبِهِ عِنْدَ اسْتِجْمَاعِ هَٰذِهِ الشَّرَائِطِ، اوشريعت ددې شرطونو جمع كيدو په وخت وارد شوې دې إِلَّا أَنَّهُ يَجِبُ عَلَى النِّسَاءِ إِذَا اقْتَدَيْنَ بِالرِّجَالِ خو دا تكبير په ښځو باندې واجبيږی.چې كله دوی په سړی پسې اقتداء اوكړی «وَعَلَى الْمُسَافِرِينَ عِنْدَ اقْتِدَائِهِمْ بِالْمُقِيمِ بِطَرِيقِ التَّبَعِيَّةِ اوپه مسافرو باندې واجبيږی.چې د دوی په مقيم پسې اقتداء كول په طريقه د تبعيت وی |

تشريح:- دوهم دليل دا دې.چه تكبير په اوچت اواز وئيل خلاف سنت،يعنی بدعت دې.په استثناء د هغه ځائې كوم ځائې كې چې شريعت وارد شوی وی.اودجهری تكبير په سلسله كې د شريعت ورود په هغه صورت كې شوې دې.چه په هغې كې واړه شرطونه جمع وی.يعنی ښار،جماعت مستحبه،اقامت وغيره،اوكه ښځے د سړی پسې اقتداء اوكړی.يا مسافر د مقيم اقتداء اوكړی.نو په ښځو او مسافرو باندې به هم تكبير واجب وی.دا وجوب به د تبعيت په طريقه وی. يعنی امام كوم چې متبوع دې. چې په ده باندې تكبير واجب دې.نو دده په تابع باندې به هم واجب وی.لكه څنګه چې د مقيم په اقتدا كاوه باندې په مسافر باندې څلور ركعته لازميږی.

| |
|---|
| قَالَ يَعْقُوبُ: صَلَّيْتُ بِهِمُ الْمَغْرِبَ يَوْمَ عَرَفَةَ يعقوب رحمه الله بيان كړې دې .چې ما دعرفې په ورځ دوی ته د ماښام لمونځ اوكړو فَسَهَوْتُ أَنْ أُكَبِّرَ نو ما تكبيرتشريق وئيل هيركړل فَكَبَّرَ أَبُوحَنِيفَةَ نو ابوحنيفه رحمه الله تكبير ووئيل. دَلَّ أَنَّ الْإِمَامَ وَإِنْ تَرَكَ التَّكْبِيرَ لَا يَتْرُكُهُ الْمُقْتَدِي، دا قصه دلالت كوی.كه امام تكبير پريښولو .نومقتدی به دا نه پريږدی وَهَٰذَا، لِأَنَّهُ لَا يُؤَدِّي فِي حُرْمَةِ الصَّلَاةِ (ځكه چې دا تكبيرتحريمه دلمونځ په ما بينځ كې نه اداكيږی) فَلَمْ لَمْ يَكُنِ الْإِمَامُ فِيهِ حَتْمًا وَإِنَّمَا هُوَمُسْتَحَبٌّ نو د تكبير په وئيلوكې د امام وجود واجب نه دې . بلكه صرف مستحب دی |

تشريح:- يقولها الماموم عند نسيان الامام۞صاحب دهدايه رحمه الله د يوې واقعے په ذريعه تنبيه وركړې ده.كه امام تكبير وئيل هير كړو.نو مقتدی دې تكبير نه پريږدی.بلكه په اوچت آواز دې تكبير ووايي .او امام دې هم خبر كړی.ددې په خلاف كه امام سجده سهو پريخوږدی.نومقتدی دې هم پريږدی .وجه داده.چه سجده سهوه دلمونځ په مينځ كې ادا كولې شی.ځكه په سجده سهو كاوه يا نه كاوه كې د امام اتباع ضروری وی.اوتكبير دلمونځ په مينځ كې نه اداكيږی.بلكه دلمونځ نه فراغت نه روسته وئيلے شی.ځكه په تكبير وئيلوكې د امام وجود واجب نه دې.بلكه مستحب دې.نوكه امام تكبير اونه وائی. مقتدی دې ضرور وائی. واقعه داده.چه امام ابويوسف(يعقوب) بيان كړی دی.چه يوځل ما خلګ وته دعرفې په ورځ دماښام لمونځ وركولو.اتفاقاً مانه تكبير تشريق هيرشو.نو استاد مكرم حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله د شاته نه تكبير اووئيل.اوزه ئې خبر كړم،نو بيا ما هم تكبير اووئيل.ددې واقعے نه د امام ابويوسف رحمه الله د اوچت شان او مرتبے پته لږی.چه حضرت امام صاحب دې امام جوړ كړې وو.او په خپله ئې وريسې اقتداء كړې وه.والله اعلم

## باب صلوة الكسوف

ژباړه:- دا باب د لمر د تندر نيولو د لمونځ په بيان کي دې.

**تشريح:- الربط بما قبله**۞ داخترمونځ، دکسوف لمونځ او د استسقاء لمونځ په درې واړه مونځونو کې مناسبت ښکاره دې.په دې شان چې درې واړه مونځونه په ورځ کي بغيرد اذان او اقامت نه ادا کولی شی.په دې کې د اختر لمونځ چونکه واجب دې.او دکسوف لمونځ د جمهورو په نيز مسنون دې.او د استسقاء د لمونځ مسنونيت مختلف فيه دې.په دې وجه ددرې واړو بابونو مناسب ترتيب ښکاره شو.

**الاقوال في الكسوف والخسوف**۞ دکسوف معنی ده لمر توريدلو اړخ ته مائل کيدل.په دې کي يو لغت خسوف دې.امام منذری رحمه الله فرمائيلی دی.چه دکسوف لمونځ د۱۹ راويانو نه مروی دې.① بعضو په کاف سره کسوف اوبعضو په خاء سره خسوف ذکر کړې دې. معلومه شوه .چه دا دواړه لفظونه مترادف دی.② بعضو وئيلی دی.چه د نمرد تندر نيولو لپاره کسوف اود سپوږمۍ د تندر نيولو لپاره خسوف استعماليږی.
③ يا کسوف د لمر سره مخصوص دې.اوخسوف عام دې ، لمر اوسپوږمۍ دواړوته ګډ دې.

**اصطلاح الفقهاء**۞ د فقهاؤ هم دا اصطلاح ده هم ددې تائيد د الله تعالی قول [فَإِذَا بَرِقَ الْبَصَرُ وَخَسَفَ الْقَمَرُ] کوی.دکسوف دلمونځ سبب کسوف يعنی د لمر تندر نيول دی.اوددې شرطونه هم هغه دی.کوم چې د نورو مونځونو دی.دکسوف د لمونځ په مشروعيت باندې د پوره امت اجماع ده.چاهم ددې نه انکار نه دې کړې.

**د نمر د تندر نيولو دمونځ طريقه**

[قَالَ] [إِذَا انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ] کله چې لمر تندر اونيشی [صَلَّى الْإِمَامُ بِالنَّاسِ رَكْعَتَيْنِ] نو امام دې خلګو ته د نفل په شان دوې [دوه] رکعته لمونځ اوکړی [كَهَيْئَةِ النَّافِلَةِ] چې [فِي كُلِّ رَكْعَةٍ رُكُوعٌ وَاحِدٌ] په هر رکعت کي يوه رکوع ده

**حل اللغة:** ① **انكسفت، انكسف،انكسافا:** دَ لمر تندر نيول ② **صلى،صلى صلاة:** لمونځ کول ③ **هيئة:** حالت ④ قرب: نيزديوالي

**تشريح:- صلاة الكسوف مثل النفل**۞ مسئله دا ده.که لمر تندر اونيولو.نو دجُمعې امام دې په جامع مسجد يا عيدګاه کې خلګو ته دنفل په شان دوې [دوه] رکعته نفل لمونځ اوکړی.يعنی څنګه چې نفل د اذان اواقامت نه بغيرکيږی.نوهم دغه ډول د اذان او اقامت نه بغير دکسوف لمونځ ادا کيږی.

**عدد ركوع الكسوف**۞ ① په يورکعت کی يوه رکوع ده.دا زموږ د احنافو مذهب دې

[وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: رُكُوعَانِ] .امام شافعی رحمه الله وائی.چې دوې [دوه] رکوع ګانې دی [لَهُ مَا رَوَتْ عَائِشَةُ رضى الله عنها] (۱) او.دامام شافعی رحمه الله دليل هغه حديث دې .چې ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها روايت کړې دې

**تشريح:-** امام مالك امام شافعی او امام احمد رحمهم الله فرمائيلی دی.چه دکسوف په لمونځ کي په يو رکعت کي دوې [دوه] رکوع ګانې دی.

**دليل الائمة** رحمهم الله ۞ ددوی دليل دحضرت عائشے رضي الله عنها حديث دې.دحديث الفاظ دی. [قالت خسفت الشمس فی

---

(۱) أخرجه البخاری فی الكسوف رقم ۱۰٤٤و مسلم فی الكسوف رقم ۱،ابوداو فی صلاة الإستسقاء باب ٤ رقم ۱۱۸ والترمذی فی الجمعة باب ٤٤ والنسائی فی الكسوف باب ٦ وابن ماجه فی الإقامة باب ۱۵۲ رقم ۱۲٦۳ ومالک فی صلاة الكسوف باب ۱ رقم ۱ وأحمد فی المسند (٦/۵۳)_



حياة رسول الله ﷺ فخرج الی المسجد فقام وصف الناس وراءه فكبر فقرأ قراءة طويلة ثم كبر فركع ركوعاً طويلاً ثم رفع رأسه فقال سمع الله لمن حمده ربنا ولك الحمد ثم قام فقرأ قراءة طويلة هی ادنی من القراءة الأولی ثم كبر فركع ركوعاً طويلاً ثم رفع رأسه فقال سمع الله لمن حمده ربنا ولك الحمد ثم سجد وفعل فی الركعة الأخری مثل ذلك فاستكمل أربع ركعات بأربع سجدات وانجلت الشمس قبل أن ينصرف ثم قام فخطب الناس فأثنی علی الله بما هو أهله ثم قال إن الشمس والقمر آيتان من آيات الله تعالی لا ينخسفان لموت أحد ولا لحياته فإذا رأيتم ذالك فافزعوا إلی الصلاة] يعنی عائشه صديقه فرمائی.چه د رسول الله ﷺ په ژوند کي يو ځل لمر تندر اونيولو . نو نبی ﷺ جومات ته تشريف يوړلو. او ودريدلو.دخان شاته ئې د خلګو صفونه جوړ کړل.بيا ئې تکبير تحريمه اووئيله.او اوږد قراءت ئې اوکړلو.بيا ئې تکبيراووئيل.او اوږده رکوع ئې اوکړله.بيا ئې خپل سر د رکوع نه اوچت کړو.او [سمع الله لمن حمده ربنا ولك الحمد] ئې اووئيل.بيا نبی ﷺ ودريدلو.او اوږد قرات ئې اوکړلو.خو دا قرات د اولنی قرات نه کم وو.بيا ئې تکبير اووئيل.يوه اوږده رکوع ئې اوکړله.خو دا رکوع د لومړئی رکوع نه کمه وه.بيا دوی سر اوچت کړو.او [سمع الله لمن حمده ربنا ولك الحمد] ئې اووئيل.بيا ئې سجده اوکړه.او په دوهم رکعت کې ئې هم هغه عمل اوکړو.نو نبی ﷺ څلور رکعته (رکوع ګانې) او څلور سجدو پوره کړل.اود نبی ﷺ د فراغت نه مخکې لمر روښانه شو.بيا پاسيدو. خلګو ته ئې خطبه اووئيله.حمد او ثناء ئې د الله دشان مناسب بيان کړه.اووې فرمائيل.چه نمراو سپوږمۍ د الله تعالی د نښو نه دوې [دوه] نښے دی.دوی ته د چا په مرګ يا ژوند باندې تندر نه لګی.چه کله تاسو دا اووينئ.نولمونځ اړخ ته تندی کوئ.دې حديث نه معلومه شوه.چه نبی ﷺ د کسوف په لمونځ کي په يو رکعت کي دوې [دوه] رکوع ګانې کړې دی.

[وَلَنَا رِوَايَةُ ابْنِ عُمَرَ] (۱) او زموږ دليل د عبدالله بن عمرو بن العاص روايت دې

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ۞ زموږ دليل دعبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنه روايت دې. [قال انكسفت الشمس علی عهد رسول الله ﷺ فقام رسول الله ﷺ فلم يكد يركع ثم ركع فلم يكد يرفع ثم رفع فلم يكد يسجد ثم سجد فلم يكد يرفع ثم رفع فلم يكد يسجد ثم سجد فلم يكد يرفع ثم رفع وفعل فی الركعة الأخری مثل ذلك] يعنی په عهد رسالت کي لمر تندر اونيولو.نورسول الله ﷺ دومره اوږد قيام اوکړلو.چه لکه نبی ﷺ رکوع نه کوی.بيا نبی ﷺ دومره اوږده رکوع اوکړله.چه معلوميدله چې نبی ﷺ سرنه اوچتوی.بيا ئے اوچت کړلو.نو معلوميده چې نبی ﷺ سجده نه کوی.بيا ئې سجده اوکړه.نو د سجدې نه د سر اوچتولو امکان په نظر نه راتلو.بيا ئې سراوچت کړو.نود دويمے سجدې امکان په نظر نه راتلو.بيا هغوی ﷺ سجده اوکړه.نو داسې ښکاريده چې سر نه اوچتوی.خو نبی ﷺ سر اوچت کړو.هم دا عمل نبی ﷺ په دوهم رکعت کې اوکړلو.د دې حديث نه داخبره معلومه شوه.چه نبی ﷺ په يو رکعت کې يوه رکوع ګانے کړې دی.اګر چې رکوع اوسجده ډيره اوږده وه.

[وَالْحَالُ أَكْشَفُ عَلَى الرِّجَالِ لِقُرْبِهِمْ] او دلمونځ حال په سړو باندې زيات ښکاره وی . ځکه چې دوی قريب وی [فَكَانَ التَّرْجِيحُ لِرِوَايَتِهِ] نو ترجيح به د عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه روايت ته وی.

---

(۱) قال الزيلعی رحمه الله لم أجده من رواية ابن عمر وإنما وجدناه عن ابن عمروبن العاص رضي الله عنهما ولعله تصحف علی المصنف ثم ذكر رواية ابن عمر رضي الله عنهما عازياً إلی أبی داود والنسائی والترمذی فی الشمائل (وهو فی ابوداودفی صلاة الإستسقاء باب ۹ رقم ۱۱۹٤ وفی النسائی فی السنن الكبری (۱/۵۷٤) رقم ۱۸٦۷ وأحمد فی المسند (۲/۱۹۱)والمستدرک (۱/۳۲۹) وقال زين الدين قاسم بن قطلوبغا فی ،،فيما فات الزيلعی منية الألمعی،، قلت بل نسخ المعجم يوجد فيها ،،عمر،، بغيروا و يقول العبدالضعيف شاه فيصل لكن لم يصرح بالمعجم الذی ادعی وجوده فيه لمن هو مع أن المعاجم كثيرون)_

**تشريح:- ترجيح رواية ابن عمروعلى رواية عائشة** رضي الله عنها ﴿اوس دحديث عائشې رضي الله عنها او دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه حديثونه متعارض شو.نود ابن عمر رضي الله عنهما روايت ته به ترجيح وي.ځکه چې سړي چونکه د امام سره نژدې وي.نوځکه ده ته د امام حال زيات ښکاره وي.

## د اوږد او په پټه قرات كولو حكم

| |
|---|
| **وَيُطَوِّلُ الْقِرَاءَةَ فِيهِمَا** او په دواړو ركعتونوكي به قرات اوږدوی **وَيُخْفِي عِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ** (١) اود ابوحنيفه رحمه الله په نيز به پټ قرات كوی |

**حل اللغة*** ① **يطول، طول تطويلاً:** اوږدول ② **قراءة:** لوستل ③ **يخفی،اخفی اخفاء:** پواړه

**تشريح:- قدرتطويل القراءة**﴿مسئله داده.چه دکسوف دلمونځ په دواړو ركعتونو كي به اوږد قرات كوی.په بعضو احاديثو كي دی.چه اول ركعت به په اندازه دسورة بقره او دوهم ركعت كي په اندازه د آل عمران وی، په دې كي اختلاف دی.

| |
|---|
| **وَقَالَا يَجْهَرُ** او صاحبينو رحمهما الله فرمائيلی دی.چې جهر به كوی. **وَعَنْ مُحَمَّدٍ مِثْلُ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ** اوداما م محمد رحمه الله نه د ابوحنيفه رحمه الله د قول په شان نقل دی |

**حل اللغة*** ① **يجهر، جهر،جهراً (ف):** ښكاره كول

**تشريح:- المذهبان في الجهر والاخفاء**﴿ ① چه قرات جهری اوكړی يا سری، حضرت امام صاحب رحمه الله فرمائی.چه دكسوف په لمانځه كي به سری قرات كوی.ددې قائل امام مالك امام شافعی او جمهورفقهاء رحمهم الله هم دی. ② اوصاحبين فرمائی.چه جهربه كوی.دا قول د امام احمد هم دې. دا امام طحاوی هم اختيار كړې دې.

**الرواية الثانية في المذهبين**﴿صاحب دهدايه وائی.چه د امام محمد رحمه الله نه يو روايت د امام ابوحنيفه رحمه الله په شان دې.په دې صورت كي طرفين رحمهما الله د اخفاء او دسری قرات قائلين دی .او ابويوسف د جهری قرات قائل دې.

| |
|---|
| **فِي الْقِرَاءَةِ فَبَيَانُ الْأَفْضَلِ** بهرحال په قرات كي اوږد والي خود فضيلت بيان دې **وَيُخَفِّفُ إِنْ شَاءَ** اوكه غواړی نوپه قرات كي دې تخفيف اوكړی **لِأَنَّ الْمَسْنُونَ اسْتِيعَابُ الْوَقْتِ بِالصَّلَاةِ وَالدُّعَاءِ** ځكه چې مسنون، دكسوف وخت په لمونځ اودعا سره راګيرول دی ، **فَإِذَا خَفَّفَ أَحَدَهُمَا طَوَّلَ الْآخَرَ** چې كله ئې په دواړوكي يو مختصركړو نو بل دې اوږد كړی |

**حل اللغة*** ① **يخفف، خفف تخفيفاً:** سپكول ② **استيعاب:** راګيرول ⑥

**تشريح:- استحباب تطويل القراءة**﴿حاصل دا چې دلته كي دوې [دوه] خبرے دی.قرات اوږدول او په قرات كي جهر يا اخفاء كول.نو قرات اوږدول خو افضل دی.ځكه چې دا ثابت دی.چه په اولنی ركعت كي د رسول الله ﷺ قيام په اندازه د سورة بقره او په دوهم ركعت كي په اندازه د آل عمران وو.نو په قرات كي اوږدوالی كي د رسول الله ﷺ متابعت دې.اوكه زړه ئې اوغواړی.نو په قرات كي دې تخفيف اوكړی.يعنی قرات دې مختصر كړی.ځكه چې مسنون خو دا دی.چه د تندر نيولو وخت په لمونځ او دعا سره راګير كړې شی.نوكه په يو كي تخفيف اوكړی.نو په بل كي به اوږدوالے كوی. علامه ابن ايهام رحمه الله فرمائيلی دی ﴿والحق ان السنة التطويل والمندوب مجرد استيعاب الوقت﴾ يعنی حق دا دې. چې قرات اوږدول مسنون دی.اودكسوف د وخت استيعاب

---

(١) القول الراجح هو هذا قول أبی حنيفة رحمه الله كذا فی فتح القدير(٢\٥٦) والعناية (٢\٥٦) والبحر(٢\١٦٧) والهندية (١\١٥٣) والدری لمختار(١\٦٢٢) نقلاً عن القول الراجح (١\١٥٣) وبدائع الصنائع (١\٢٨١)-



كول مستحب دې. لكه چې په حديث مغيره بن شعبه رضي الله عنه كي دی ﴿فاذا رأيتموها فادعوالله وصلوي حتی تنجلی﴾ (صحيحين) بيا چې كله تاسو داسې شيان (څيزونه ) اوګورئ. (كسوف وغيره) نو دالله تعالی نه دعا غواړئ. او لمونځ كوئ . تردې چې دا روښانه شی.اوګورئ د لمر روښانه كيدو پورې دلمونځ اوږدولو حكم وركړې شوې دې.اودا به هغه وخت وی.چه كله قرات اوږد كړې شی. نو معلومه شوه .چه قرات ته طول وركول مسنون دې.

| |
|---|
| **وَأَمَّا الْإِخْفَاءُ وَالْجَهْرُ** باتې شوه اخفاء اوجهر **فَلَهُمَا رِوَايَةُ عَائِشَةَ {أَنَّهُ جَهَرَ فِيهَا}** (١)نود صاحبينو رحمهما الله دليل د عائشه رضي الله عنها روايت دې.چې نبی ﷺ په دې كي جهر كړې وو |

**تشريح:- دليل الصاحبين او ابی يوسف** رحمهما الله﴿په جهری قرات كاوه باندې صاحبين يا صرف د امام ابويوسف رحمه الله دليل د عائشه رضي الله عنها حديث دی. ﴿قالت جهر النبی ﷺ فی صلوة الخسوف بقرأته﴾ (صحيحين) عائشه رضي الله عنها فرمائی.چه رسول اكرم ﷺ دكسوف په لمانځه كي په جهر قرات كړې وو.

| |
|---|
| **وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رِوَايَةُ ابْنِ عَبَّاسٍ** رضي الله عنه **وَسَمُرَةَ** رضی الله عنهم (٢) اودابوحنيفه رحمه الله دليل دابن عباس اوسمره بن جندب روايت دې |

**تشريح:- دليل ابی حنيفة اوالطرفين** رحمهم الله﴿د امام ابوحنيفه يا دطرفينو رحمهما الله دليل د ابن عباس او سمره بن جندب حديث دې. ① د ابن عباس رضي الله عنهما دحديث الفاظ دادی. ﴿عن ابن عباس صليت مع النبی ﷺ الكسوف فلم اسمع منه حرفا من القراءة﴾ يعنی ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی.چه ما د نبی ﷺ سره دكسوف لمونځ كړې دې.خو د دوی د قرات نه مے يو حرف هم نه وو اوريدلې. ② هم ددې په شان د سمره بن جندب رضي الله عنه حديث دې. ﴿صلی بنا فی كسوف الشمس لانسمع له صوتا﴾ يعنی موږ ته د كسوف شمس په حالت كي لمونځ اوكړو .اوموږ ددوی آواز نه اوريدلو.

| |
|---|
| **وَالتَّرْجِيحُ قَدْ مَرَّ مِنْ قَبْلُ** اوترجيح مخكي تيره شوې ده |

**تشريح:- مرجوحية رواية عائشة** رضي الله عنها﴿صاحب دهدايه رحمه الله د قرات په جهری اوسری كولوكي تعارض دحديث داسې لرے كړې دې.چه د ابن عباس اوسمره بن جندب روايت ته ئې دعائشه رضي الله عنها په روايت باندې ترجيح وركړې ده.او وجه د ترجيح دا ده.چه په لمونځ كي سړې چونكه امام ته زيات نژدې وی.ځكه دښځو په نسبت د دوی حال زيات واضح وی.او د امام د لمونځ كيفيت او دقرات په جهر اواخفاء كاوه كي دسړو قول راجح وی.

| |
|---|
| **كَيْفَ** ځكه اخفاء متعين نه ده **وَإِنَّهَا صَلَاةُ النَّهَارِ** حالانكه د كسوف لمونځ د ورځې لمونځ دې **وَهِيَ عَجْمَاءُ** او د ورځې لمونځ عجماء بغيرد قرات مسموعه وی. |

**تشريح:- تائيد قول ابی حنيفة**﴿صاحب دهدايه دامام صاحب مذهب مضبوطولو لپاره زوردارو الفاظو كي فرمائی.چه دكسوف په لمونځ كي به اخفاء دقرات ولے نه وی.حالانكه دكسوف لمونځ د ورځې لمونځ دې.او د

---

(١) أخرجه البخاری فی الكسوف رقم ١٠٤٤ و مسلم فی الكسوف رقم ١،ابوداو فی صلاة الإستسقاء باب ٤ رقم ١١٨ والترمذی فی الجمعة باب ٤٤ والنسائی فی الكسوف باب ٦ وابن ماجه فی الإقامة باب ١٥٢ رقم ١٢٦٣ ومالک فی صلاة الكسوف باب ١ رقم ١ وأحمد فی المسند (٦/٥٣)_

(٢) أخرجه أبوداود فی الإستسقاء باب ٤ رقم ١١٨٤ والنسائی فی السنن السنن الكبری (١/٥٧٥)رقم ١٨٦٩) وأحمد فی المسند (٥/١٦، ١٧)والحاكم فی المستدرک (١/٣٣٠)_

ورځې د مونځونو په اړه کې رحمت دو عالم ﷺ فرمائیلی دی. ﴿صلوة النهار عجما﴾ یعنی د ورځې لمونځ گونګےوی.مراد دادې.چه د ورځې په مونځونوکې قرات په پټه کولې شی.په اوچت آواز نشی کولې.

**نوټ:** اګرچه زمونږ مذهب اخفاء بالقراءة ده.خو چونکه دا لمونځ اوږد وی.ددې امله متاخرینوعالمانوفرمائیلی دی.که دمقتدیانو د ستومانه کیدو ویره وی.نوپه صلاة الکسوف کې جهر هم کولې شی.(درس ترمذی ٣٥٤/٢)۔

## دمونځ نه روسته د دعا حکم

| وَيَدْعُو بَعْدَهَا حَتّٰى تَنْجَلِيَ الشَّمْسُ | اودلمونځ نه روسته دې دعا اوکړی.تر دې چې لمر روښانه شی |
|---|---|

**حل اللغة:** ① يدعو، دعا دعاءً (ن): رابلل، دعاکول ② تنجلى،انجليانجلاءً: کولې ویدل، روښانه کیدل

**تشریح:- كيفية الدعاء بعدالصلاة:** فرمائی چې دکسوف د لمونځ نه روسته د لمر د روښانه کیدو پورې دعااوکړې شی.دعا دې مخ په قبله کښینی او اوکړی.یادې په ولاړه اوکړی.اګرکه خلګو ته مخ کړی .اودعا اوکړی.او خلګ مخ په قبله وی.او د امام په دعا دې آمین وائی.

| لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {إِذَا رَأَيْتُمْ مِنْ هٰذِهِ الْأَفْزَاعِ شَيْئًا فَارْغَبُوا إِلَى اللّٰهِ بِالدُّعَاءِ}(١) ځکه چې رسول اکرم ﷺ فرمائیلی دی.چې کله تاسو په دې یرونکې خیزونو کې څه اووینئ.نو په دعا سره د الله اړخ ته رغبت کوئی وَالسُّنَّةُ فِي الْأَدْعِيَةِ تَأْخِيرُهَا عَنِ الصَّلَاةِ(٢) او په دعاګانو کې سنت دا دی.چې د لمانځه نه روسته وی. |
|---|

**حل اللغة:** ① رايتم، راى روية (ف): کتل ② فارغوا، رغب رغبة (س): رغبت ورکول ③ ادعيه، واحد دعاء: دعا ④ تاخير: روستوالې

**تشریح:- دليله:** دلیل د نبی ﷺ دا قول دې. ﴿إذا رأيتم من هذه الأفزاع شيئاً فارغبوا إلى الله بالدعاء﴾ صاحب دکتاب فرمائی.چه په دعاګانو کې مسنون دا دی.چه د لمانځه نه روسته وی.د ابوامامه نه مروی دی. ﴿قيل يا رسول الله أيُّ الدعاء أسمع قال جوف الليل الأخير ودبر الصلوة المكتوبة﴾ د نبی ﷺ نه پوښتنه اوکړې شو.چه کومه دعا زیاته مقبوله ده.وې فرمائیل.چه د آخرے شپے مینځمې برخه کې .اود فرض لمونځ نه پس،ددې حدیث نه صرف د فرض لمونځ نه روسته د دعا مسنونیت معلوم شو.دې نه علاوه مغیره بن شعبه ؓ فرمائی.چه نبی ﷺ به د هر لمانځه نه روسته دعا کوله.(بخاری فی التاریخ الاوسط)

(١) غربه الزيلعى رحمه الله بهذا اللفظ ثم خرج وفى الصحيحين من حديث مغيرة بن شعبة رضى الله عنه فإذا رأيتموها فادعوالله وصلوى وأخرجا أيضاً عن أبى موشى الأشعرى ؓ [فإذا رأيتم شيأ من ذلك فافزعوى إلى ذكر الله ودعائه وأخرجا أيضاً عن عائشة ؓ [وإذا رأيتموهما فكبروى وادعوى وصلوا] نصب الرأية (٢٤٢/٢) يقول العبد الضعيف أما حديث مغيرة ؓ ففى البخارى كتاب الجمعة باب الدعاء فى رقم ١٠٠٠ وأما حديث أبى موشى الأشعرى ؓ ففى البخارى فى كتاب الجمعة باب الذكر فى الكسوف رقم ٩٩٩ وأما حديث عائشة ؓ ففى البخارى فى كتاب الجمعة باب هل يقول كسف الشمس أو خسفت رقم ٩٨٩)۔

(٢) قال الزيلعى رحمه الله أخرج الترمذى فى جامعه فى كتاب الدعوات والنسائى فى كتاب اليوم والليلة عن عبدالرحمن بن سابط عن أبى أمامة قيل يا رسول الله ﷺ أى الدعاء أسمع؟قال جوف الليل الأخير ودبرالصلوات المكتوبات إنتهى نصب الرأية ٢٤٢/٢)۔



## دجُمعې امام به دصلوة الكسوف امامت كوى

| وَيُصَلِّي بِهِمُ الْإِمَامُ الَّذِي يُصَلِّي بِهِمُ الْجُمُعَةَ اودکسوف لمونځ دې خلګو ته هغه امام ورکړی.څوك چې دوی ته جُمعه ورکوی فَإِنْ لَمْ يَحْضُرْ اوکه امام حاضرنه وی صَلَّى النَّاسُ فُرَادَى) تَحَرُّزًا عَنِ الْفِتْنَةِ نو خلګ دې ځانله لمونځ اوکړی.چې د فتنے پیدا کیدو نه بچ شی |
|---|

**حل اللغة:** ① يصلى، صلى صلاة: لمونځ کول، دعاکول ② لم يحضر، حضر حضوراً (ن): حاضریدل ③ فرادى: ځان له ④ تحرز: بچ کیدل

**تشریح:- من يصلى صلاة الكسوف؟** مسئله دا ده.چه دکسوف په لمانځه کې هغه امام مقررشی . څوك چې خلګو ته دجُمعیاواخترونو مونځونه ورکوی.اوکه دجمعې امام موجود نه وی.نو خلګ دې ځانله ځانله لمونځ ادا کړی.ځکه چې په دې کې د فتنے امکان دې.اودجماعت په صورت کې د فتنے غالب امکان دې.په دې طریقه چې هرسړې به دامام جوړیدو کوښښ کوی.یا به دخپلے خوښے امام مخکې کوی.ددې شور شغپ نه بهتره هم داده چې ځانله ځانله دکسوف لمونځ اداکړی.

## د سپوږمۍ په تندر نیولو کښې دجماعت حکم

| وَلَيْسَ فِي خُسُوفِ الْقَمَرِ جَمَاعَةٌ او دسپوږمۍ په تندر نیولو کې جماعت نشته لِتَعَذُّرِ الِاجْتِمَاعِ فِي اللَّيْلِ یا خو په دې وجه چې په شپه کې د خلګو راجمع کیدل متعذر وی أولخوف الفتنة یا د دې امله چې د فتنے وبیره وی وَإِنَّمَا يُصَلِّي كُلُّ وَاحِدٍ بِنَفْسِهِ او هرسړې به په خپله خپل لمونځ کوی |
|---|

**حل اللغة:** ① خسوف: د سپوږمئ تندر نیول ② تعذر: سختی مشکل ③ اجتماع: راجمع کیدل ④ خوف: ویره

**تشریح:- صلاة الخسوف منفرداً:** مسئله: د سپوږمئ د تندر نیولو په صورت کې که لمونځ کوی.نو په دې کې جماعت نشته ،یا خو په دې وجه چې په شپه کې د خلګو یوځائې کیدل متعذر وی.او یا په دې وجه چې په شپه کې د فتنے ویره وی.نوهر سړې دې په خپله ځانله لمونځ کوی.

| لِقَوْلِهِ ﷺ {إِذَا رَأَيْتُمْ شَيْئًا مِنْ هٰذِهِ الْأَهْوَالِ ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی.چې کله تاسو په دې یرونکو خیزونو کې څه اووینئ فَافْزَعُوا إِلَى الصَّلَاةِ نو په یره سره لمونځ اړخ ته ځائې |
|---|

**تشریح:- دليله:** دلیل د نبی ﷺ قول ﴿إذا رأيتم شيئاً من هذه الأهوال فافزعوي الى الصلوة﴾ وجه د استدلال دا ده.چه په حدیث کې دجماعت تصریح نه ده شوې.او اصل عدم جماعت دې.ځکه وئیلی شوی دی.چه په خسوف قمرکې جماعت نشته.

**السوال:** دلته یوسوال دې.هغه دا چې ﴿فافزعوي الى الصلوة﴾ د امرصیغه ده.اوامردوجوب لپاره راځی. ځکه مناسب به وی چې دکسوف لمونځ واجب اوګرځولې شی.

**الجواب:** ځواب:چونکه دکسوف لمونځ د شعائر اسلام څخې نه دې.بلکه دعارض (دکسوف) د امله دې.ځکه دکسوف لمونځ واجب نه دې.خوچه نبی ﷺ کړې دې.ځکه مسنون دې.او په حدیث کې دننه د امر صیغه د ندب لپاره ده. د وجوب لپاره نه ده.

| وَلَيْسَ فِي الْكُسُوفِ خُطْبَةٌ او په کسوف کې خطبه نشته لِأَنَّهُ لَمْ يُنْقَلْ(١) ځکه چې خطبه وئیل منقول نه دی. |
|---|

**تشریح:- عدم الخطبة في الكسوفين:** ① امام ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه دکسوف او خسوف په

(١) غلط الزيلعى رحمه الله قول صاحب الهداية من عدم نقل الخطبة فى الكسوف ثم نقل حديث أسماء :ثم إنصرف بعدأن تجلت الشمس فقام فخطب الناس، الحديث،، نصب الرأية ٢٤٣/٢)۔

لمانځه کي خطبه نشته.

**دليله**۞دليل دا دې چې خطبه په دوو خبروکي د يو لپاره مشروع شوې ده.يا خوخطبه د جواز صلوة شرط ده.لکه چې د جمعې په لمانځه کي ده.ياد تعليم احکام لپاره ده.لکه څنګه چې د اخترونو په لمانځه کي ده.دکسوف په لمانځه کي په دې دواړو خبروکي يو هم نشته.ځکه د کسوف د لمونځ لپاره خطبه مشروع نه وی.

## باب الاستسقاء

(دا) باب داستسقاء(په احکاموکي ) دې.

**تشريح:- وجه عدم ذكرالصلاة في الباب**۞ علامه مرغيناني ﴿باب صلوة الإستسقاء﴾ نه دې وئيلې.لکه څنګه چې په تيرشوو بابونوکي د علامه مرغيناني رحمه الله عادت پاتې شوېدې.وجه دا ده.چه د امام صاحب رحمه الله په نيز په دې کي لمونځ مسنون نه دې. ځکه ئې په عنوان کي د ،،صلاة،، لفظ ذکر نکړلو.

**معنى الاستسقاء ووجه مشروعيته**۞استسقاء خړوبول غوښتلو ته وائی.ښکاره ده.چه استسقاء په دې سے مقام باندې وی.چه چرته کي نهر،تالاب،اوچينه نه وی.چه ددې نه خپله اوبه اوڅکی. او څاروو باندې اوبه اوڅکوی.يا دا شيان (څيزونه ) وی.خو ددوی اړتيا لپاره کافی نه وی.اوکه دا شيان (څيزونه ) کافی وی نو خلګ به د استسقاء لپاره نه اوځی.ځکه چې استسقاء دسخت اړتيا په وخت کي کيږی.بيا چې کله د استسقاء اراده وی.نومستحب دا دی.چه امام دوی ته د درې ورځو پورې د روژې نيولو او د توبے ويستلوحکم اوکړی.بيا په څلورمه ورځ د دوی سره اوځی.

### په استسقاء کښې دامام اعظيم رحمه الله په نيزعدم جماعت

| |
|---|
| قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ لَيْسَ فِي الِاسْتِسْقَاءِ صَلَاةٌ مَسْنُونَةٌ فِي جَمَاعَةٍ امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائيلی دی.چې په استسقاء کي د جماعت سره هيڅ مسنون لمونځ نشته فَإِنْ صَلَّى النَّاسُ وُحْدَانًا جَازَ نوخلقو ځانله ځانله لمونځ اوکړی.نوجائزدی وَإِنَّمَا الِاسْتِسْقَاءُ الدُّعَاءُ وَالِاسْتِغْفَارُ دعا اواستغفاردې |

**حل اللغة**۞ ①وحدانًا: ځان له ②جاز، جاز جوازًا (ن) : جائز کيدل ③استسقاء:اوبه غوښتل

**تشريح:- عدم الصلاة في الاستسقاء عند ابى حنيفة رحمه الله**۞ په دې اړه کي اختلاف دې.چه استسقاء څه شی دې.صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز استسقاء فقط د دعا او استغفار نوم دې.په استسقاء کي په جماعت سره هيڅ مسنون لمونځ نشته.که ځانله ځانله لمونځ اوکړې شی.نوجائزدې.

| |
|---|
| لِقَوْلِهِ تَعَالَى {فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا} الْآيَةَ ځکه چې الله تعالی فرمائيلی دی.ما وويل چې تاسو د خپل رب نه ښښنه اوغواړئ.هغه خو ښښونکے دې |

**تشريح:- دلائله**۞ ①دليل دالله تعالی [فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا ۝ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا ۝]دې.(نوما اووئيل چې دخپل رب نه معافی غواړئ.بيشکه هغه ډيربخونکې دې.په تاسو به راوليږی دآسمان نه بلا ناغه باران،وجه د استدلال داده.چه الله تعالی د باران نازليدل په استغفار باندې معلق کړی دی. په لمانځه پورې نه دی.نومعلومه شوه.چه په استسقاء (سيرابی غوښتلو)کي اصل دعاء او استغفار دې.

| |
|---|
| {وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَسْقَى وَلَمْ تُرْوَ عَنْهُ الصَّلَاةُ} او ځکه چې رسول الله ﷺ استسقاء کړې ده.خودنبی ﷺ نه لمونځ مروی نه دې . |

**تشريح:-** دوهم دليل دا دې.چه رسول الله ﷺ استسقاء کړې ده . خود نبی ﷺ نه لمونځ مروی نه دې.په بخاری اومسلم کي د انس ﷺ حديث دې ﴿ان رجلاً دخل المسجد فی يوم الجمعة ورسول الله ﷺ قائم يخطب فقال يا رسول الله ﷺ



هلکت الأموال وانقطعت السبيل فادع الله يغيثنا فقال فرفع رسول الله ﷺ يديه ثم قال اللهم اغثنا اللهم اغثنا﴾ (شرح نقايه)يعنی يوسړې دجُمعې په ورځ جومات ته داخل شو.او نبی ﷺ ولاړوو.خطبه ئې وئيله.هغه اووئيل. اے دالله رسوله ﷺ مال هلاك شو.اولارے بندې شوې تاسو دالله تعالی نه دعا اوغواړئ.چه په مونږ رحمت باران نازل کړی.حضرت انس ﷺفرمائی.چه نبی ﷺ خپل دواړه لاسونه اوچت کړل اووې فرمايل . ﴿اللهم أغثنا اللهم أغثنا﴾په دې روايت کي هم په استسقاء کي د دعا ثبوت ملاويږی.د لمونځ ثبوت نه ملاويږی.اوداهم ثابت دی.چه حضرت عمر ﷺ استسقاء کړې وه.خو لمونځ ئې نه ووکړې.

### دصاحبينو رحمهما الله نقطه نظر

| |
|---|
| وَقَالَا: يُصَلِّي الْإِمَامُ رَكْعَتَيْنِ[1] اوصاحبينو رحمهما الله وئيلی دی.چه امام دې دوې [دوه] رکعته اوکړی. |

**تشريح:- سنية صلاة الاستسقاءعند الصاحبين رحمهما الله**۞په استسقاء کي د صاحبينو رحمهما الله مذهب دادې.چه امام دې خلګو ته دوې [دوه] رکعته اوکړی.هم دا قول د امام مالك امام شافعی او امام احمد رحمهم الله دې.

| |
|---|
| لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى فِيهِ رَكْعَتَيْنِ كَصَلَاةِ الْعِيدِ ځکه چې مروی دی.چه نبی ﷺ په استسقاء کي داختر په شان دوې [دوه] رکعته کړی دی رَوَاهُ ابْنُ عَبَّاسٍ.[2] دا ابن عباس رضي الله عنهما روايت کړې دې |

**تشريح:- دليلهما**۞ ①دليل د ابن عباس رضي الله عنهما قول دې ﴿خرج رسول الله ﷺ متبذلاً متواضعًا متضرعًا حتى أتى المصلى فلم يخطب خطبتكم هذه ولكن لم يزل فى الدعا والتضرع والتكبير وصلى ركعتين كما يصلى فى العيدين﴾ (رواه اصحاب السنن)يعنی رسول الله ﷺ په ډيره عاجزئ او انکسارئ سره راووتلو.او عيدګاه اړخ ته ئې تشريف يوړلو.خوخطبه ئې اونه وئيله.او برابر په دعا او ژړا زارئ کي لګيا شو.او نبی ﷺ دوې [دوه] رکعته لمونځ اوکړو.څنګه چې په اخترونو کي کولې شی.

| |
|---|
| قُلْنَا: فَعَلَهُ مَرَّةً مور وايو.چه کله ئې کړې دې. وَتَرَكَهُ أُخْرَى. اوکله ئې پريښولې (پريخودې) دې فَلَمْ يَكُنْ سُنَّةً.نو لمونځ کول مسنون نشو. وَقَدْ ذُكِرَ فِي الْأَصْلِ قَوْلُ مُحَمَّدٍ وَحْدَهُ او په مبسوط کي فقط د امام محمد رحمه الله قول ذکر دې. |

**حل اللغة**۞ ①مرة: يوځل ②فلم يكن، كان كونًا (ن): کيدل

**تشريح:- الجواب من دلائل الصاحبين رحمهما الله**۞زمونږد اړخه ځواب دا دې.چه دوی په استسقاء کي کله لمونځ کړې دې اوکله ئې پريښولې (پريخودې) دې.نوځکه ددې نه د استسقاء لمونځ خو ثابتيږی.خو مسنونيت نه ثابتيږی.او ښکاره ده.چه د جواز نه مونږ هم انکار نه کوو.بلکه کلام د استسقاء دلمونځ په مسنونيت اوعدم مسنونيت کي دې.اوسنت هغه دې چې په هغې باندې نبی کريم ﷺ هميشوالے فرمائيلی وی.

**الاعتراض**۞دلته کي د علامه مرغينانی رحمه الله په عبارت باندې دا اشکال کيداې شی.چه علامه مرغينانی رحمه الله مخکي اووئيل. ﴿لم تروعنه الصلوة﴾ او بيا ئې فرمائی ﴿لما روی﴾ ښکاره ده چې په دې دواړو

---

[1] القول الراجح قال العلامة ابن العابدين رحمه الله ،،قوله بل هی،، أى الجماعة جائزة لا مكروهة وهذا موافق لما ذكره شيخ الاسلام من أن الخلاف فى السنية لا فى اصل المشروعية ثم قال المفتى غلام قادرمدظله العالى والعمل اليوم على قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى القول الراجح (١\١٣٤)-

[2] أخرجه رواه ابوداود فى الإستسقاء باب ١، والترمذى فى الجمعة باب ٤٤ ، والنسائى فى الإستسقاء باب ٣ وابن ماجه فى الإقامة باب ١٥٣ وأحمد فى السند (١/ ٢٣، ٢٦٩، ٣٥٥)_

عبارتونو كي تناقض دي.

الجواب: د نبی ﷺ نه په استسقاء كي دلمونځ روايت چونكه شاذ اونادر دي.ځكه به د ،،نادر كالمعدوم،، په قاعدے سره ددي مروی غير مروی ګرځولي شی.نواوس هيڅ تعارض نشته. علامه مرغينانی رحمه الله وائی.چه په استسقاء كي دلمونځ مسنونيت صرف د امام محمد رحمه الله قول دي.او امام ابويوسف رحمه الله د امام صاحب رحمه الله سره دي.دغه ډول په مبسوط كي ذكرشوی دی.

علامه مرغينانی د حضرت ابوحنيفه رحمه الله په دليل كي دا فرمائيلي دی چې په استقاء كي د نبی (ص) نه لمونځ نه دي ثابت علامه زيلعی رحمه الله فرمائی چې دا خبره غلطه ده بلكه د نبی (ص) نه په استقاء كي لمونځ ثابت دي احقر شاه فيصل په خپل تاليف ،،سنن الصلاة في فقه الاحناف،، كي د صلاة استسقاء په ثبوت كي دا حديث نقل كړي دي «عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا يَسْتَسْقِي فَصَلَّى بِنَا رَكْعَتَيْنِ بِلَا أَذَانٍ وَلَا إِقَامَةٍ أخرجه ابن ماجه في الصلاة باب صلاة الإستسقاء رقم ١٢٥٨ رجاله ثقات إلا نعمان فإنه ضعيف» ددي حديث نه ثابته شوه چې نبی (ص) په استسقاء كي لمونځ كړي دي نو بيا دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ځنګه په استسقاء كي لمونځ نشته د دي خبرې نسبت كه يو معمولی سړی ته شوي وي نو بيا هم خو د احنافو په اكثرو كتابونو كي ددي قول نسبت امام ابوحنيفه رحمه الله ته شوي دي چې د هغوی علميت خپل پردي واړه منی الحمد لله چې زموږ په ملك كي دعلم يو ستوری ددي قول صحيح مفهوم بيان كړي دي هغه ستوري علامه مفتی محمد تقی عثمانی مدظله العالی دي چې هر سهار او بيګاه د كراچۍ په ښار كي راخيژی او صرف كراچۍ نه بلكه په ټوله دنيا كي دجهلی تيارې ختموی دوی په درس ترمذی كي فرمائيلي دی چې د نبی (ص) د قول مطلب دا نه دي چې په استسقاء كي د نبی (ص) نه لمونځ نه دي ثابت دي بلكه مطلب دا دي چې استسقاء صرف په لمانځه كي نه ده منحصر بلكه بغير د لمانځه نه هم صرف په دعا باندي د استسقاء سنت ادا كيږی او د دي تائيد د دي نه هم كيږی چې يو ځل نبی (ص) د جمعې خطبه وئيله او يوباندېچی راغلو نبی (ص) ته ئې د خشك سالۍ فرياد اوكړو نو نبی (ص) په خطبه كي د باران لپاره دعا اوكړله او الله تعالی دستی وريخه راوستله او باران اوشو نو معلومه شوه چې استسقاء صرف په لمانځه كي منحصر نه ده بلكه په دعا باندې هم سنت ادا كيږی (فافهم وتدبر)

### په استسقاء كښې په قرات باندې د جهركولو حكم

وَيَجْهَرُ فِيهِمَا بِالْقِرَاءَةِ اعْتِبَارًا بِصَلَاةِ الْعِيدِ او صاحبينو رحمهما الله فرمائيلي دی.چې په دواړه ركعتوكي به په جهر سره قرات كوی.د اختر په لمونځ باندې قياس كولوسره ثُمَّ يَخْطُبُ بيا به خطبه وائی لِمَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ خَطَبَ}[1] ځكه چې روايت دي.چې د الله نبی ﷺ خطبه وئيلې ده ثُمَّ هِيَ كَخُطْبَةِ الْعِيدِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ بيا دا خطبه د اختر دخطبې په شان ده د امام محمد رحمه الله په نيز وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ خُطْبَةٌ وَاحِدَةٌ[2] اود ابويوسف رحمه الله په نيز يوه خطبه ده

حل اللغة: ① يجهر،جهر جهراً (ف): ښكاره كول ② يخطب، خطب، خطبة (ن):تقرير كول، وعظ كول،د امام خلګو ته خطبه وركول

تشريح:- الجهر بالقراءة في صلاة الاستسقاء: صاحبينو رحمهما الله فرمائی.چه د اختر د لمونځ په شان به د استسقاء په دواړه ركعتونو كي قرات بالجهر كوی.(لكه ځنګه چې د اختر دوې [دوه] ركعته دی.اود ورځې دی.او په

---

[1] أخرجه رواه ابوداود فی الإستسقاء باب ١. والترمذی فی الجمعة باب ٤٤ . والنسائی فی الإستسقاء باب ٣ وابن ماجه فی الإقامة باب ١٥٣ وأحمد فی السند (١/٢٣، ٢٦٩، ٣٥٥)_

[2] القول الراجح هو هذا قول أبی يوسف رحمه الله كذا فی فتح القدير(٢\٦٠) والكفاية (٢\٦٠) نقلاً عن القول الراجح (١\١٥٤)



هغې كي قرات په جهر سره وی.نودغه ډول به د استسقاء په لمانځه كي هم قرات په جهر سره وی.

### د استسقاء په مانځه كښې دخطبې حكم

وَلَا خُطْبَةَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ اود ابوحنيفه رحمه الله په نيز خطبه نشته لِأَنَّهَا تَبَعٌ لِلْجَمَاعَةِ وَلَا جَمَاعَةَ عِنْدَهُ ځكه چې خبه د جماعت تابع وی.او د امام صاحب په نيز جاعت نشته .

حل اللغة: ① تبع: تابع

تشريح:- المذاهب الثلاثة في خطبة الاستسقاء: بيا دې خطبه وائی.ځكه چې د نبی ﷺ نه خطبه وئيل ثابت ده.① خود امام محمد رحمه الله په نيز د اختر په شان دوې [دوه] خطبې دی.د دواړو په مينځ كي به كښينی اوفصل به كوی.② اود امام ابويوسف رحمه الله په نيزيوه خطبه ده.په مخكه به اودريږی .او خلګو اړخ ته به په توجه سره ئې وائی.(③ اود ابوحنيفه رحمه الله په نيز خطبه نشته.ځكه چې خطبه د جماعت تابع وی.او د امام صاحب په نيز جاعت نشته.

### په استسقاء كښې د دعا مستحب طريقه

وَيَسْتَقْبِلُ الْقِبْلَةَ بِالدُّعَاءِ اوپه دعا كي به قبلې اړخ ته متوجه وی لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ ځكه چې د رسول اكرم ﷺ نه مروی دی.چې نبی ﷺ قبلې ته مخ كړلو

تشريح:- استقبال القبلة: د استسقاء په دعا كي مستحب طريقه دا ده.چه د قبلې په اړخ مخ كړی.

دليله: ځكه چې دنبی ﷺ نه په دعا كي استقبال قبله او د پټو (څادر) اړول مروی دی.

وَحَوَّلَ رِدَاءَهُ[1] اوخپل پټو (څادر) ئی اُلټه كړو. وَيُقَلِّبُ رِدَاءَهُ لِمَا رَوَيْنَا او الټه دے كړی خپل پټو (څادر) ،دهغه حديث په وجه چې موږ روايت كړو قَالَ: وَهَذَا قَوْلُ مُحَمَّدٍ[2] علامه مرغينانی فرمائی.چې دا د امام محمد قول دي

حل اللغة: ① حول،حول تحويلاً: بدلول ② رداء: پټو (څادر)

تشريح:- سنية تحويل الرداء: صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه خپل پټو (څادر) دے اُلټه كړی.اوددې طريقه دا ده.كه پټو (څادر) څلور ګوټه وی.نو پورتنۍ برخه دے لاندې كړی.او لاندينۍ برخه دے پورته كړی .اوكه مدور (ګول)وی.لكه جُبه،نوښۍ برخه دے چپه اړخ ته كړی.او ګسه برخه دے ښی اړخ ته كړی.

دليله: د پټو (څادر) په اړولوباندې دليل مذكور الصدر روايت دي.صاحب دهدايه رحمه الله وائی.د قلب رداء حكم د امام محمد رحمه الله مذهب دي.هم ددې قائل امام مالك امام شافعي او امام احمد رحمهم الله دی.

أَمَّا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ فَلَا يُقَلِّبُ رِدَاءَهُ پاتې شو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز نودے به پټو (څادر) نه اړوی لِأَنَّهُ دُعَاءٌ ځكه چې دا دعا ده فَيُعْتَبَرُ بِسَائِرِ الْأَدْعِيَةِ نودا به په پاته دعاګانو باندې قياس كولای شی وَمَا رَوَاهُ كَانَ تَفَاؤُلًا اوكوم حديث چې ئې روايت كړي دي .دا د نيك فال په طور وو

سائر: واړه ② ادعيه: دعاګانې

تشريح:- عدم تحويل الرداء عند ابی حنيفة رحمه الله: پاتې شو د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب.نوددوی په نيز به

---

[1] من حديث عبدالله بن زيد رضی الله عنه أخرجه البخاری فی الإستسقاء باب ١، مسلم فی الإستسقاء رقم ١، أبوداود فی الإستسقاء باب ١ والترمذی فی الجمعة باب ٤٣ والنسائی فی الإستسقاء باب ٧ وابن ماجه فی إقامة الصلاة والسنة فيها باب ١٥٣ رقم ١٢٦٧ والدارمی فی الصلاة باب١٨٨ أحد فی المسند (٤/٣٩، ٤، ٤١)_

[2] القول الراجح هو هذا قول محمد رحمه الله كذا فی ردالمحتار(١\٦٢٤) والهندية (١\١٥٤) والبحرالرائق (٢\١٦٨) نقلاً عن القول الراجح (١\١٥٥)-

پټو (څادر) اړول نه کوی.هم دا د امام ابویوسف رحمه الله مذهب دي.

**دليله** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دي.چه دا دعا ده.نودا به په نورو دعاګانو باندې قياس کړ شي.او په نوروکې پټو (څادر) اړول نشته. ځکه به داستسقاء په دعا کي هم پټو (څادر) اړول نه کيږي. دهغې روايت ځواب چې په کي قلب رداء مروی ده.دادې.چه دا تفاولاً وو يا دا چې نبی ﷺ ته د وحی په ذريع د آسمان حال متغير کيدل د قلب رداء په وخت معلوم شوی وی.ځکه نبی ﷺ قلب رداء فرمايلے ده.صاحب قدوری فرمائی.چه خلګ دے خپل پټو (څادر) ونه نه اړوی.ځکه چې دا نه دی نقل شوې.چه نبی ﷺ دوی ته پټو (څادر) ونه اړولو حکم کړې دي.

**وَلَا يَقْلِبُ الْقَوْمُ أَرْدِيَتَهُمْ** اوقوم به خپل پټو (څادر) ونه نه اړووی **لِأَنَّهُ لَمْ يُنْقَلْ أَنَّهُ أَمَرَهُمْ بِذٰلِكَ** ځکه چې دا منقول نه دی.چې نبی ﷺ صحابه کرامو رضی الله عنهم ته ددې حکم کړې دي

**تشريح:- الاعتراض** که څوك دا اووائی.چه دا حديث راغلے دې.چه نبی ﷺ پټو (څادر) واړولو.نو خلګ و چې نبی ﷺ اوليدلو.خپل پټو (څادر) ونه ئے واړول.اونبی ﷺ په هغوی باندې انکاراونکړلو.نوددې نه ثابته شوه.چ د قوم لپاره هم پټو (څادر) ونه اړول سنت دی.

**الجواب** په دې موقع باندې د خلګ وڅادرونه اړول داسې وو.لکه څنګه چې نبی ﷺ د لمانځه په مهال کړ پڼړے اوويستلې.چه صحابوٌ اوليدلو.نوهغوی هم خپلے پڼړے اوويستلې.نوهلته د پڼړو ويستل حجت نه وو.نو دغه ډول به دلته هم دڅادرونو اړول حجت نه وی.او نبی ﷺ انکار ددې امله اونکړلو.چه د پټو (څادر) ونه اړول په اتفاق سره حرام نه دی.بلکه کلام ددې په مسنونيت کې دې.

**وَلَا يَحْضُرُ أَهْلُ الذِّمَّةِ الِاسْتِسْقَاءَ** او په استسقاء کې به ذمی خلګ نه حاضريږی **لِأَنَّهُ لِاسْتِنْزَالِ الرَّحْمَةِ** ځکه چې استسقاء خود نزول رحمت طلب کاوه دعاده **وَإِنَّمَا تَنْزِلُ عَلَيْهِمُ اللَّعْنَةُ** او په ذميانوباندې لعنت نازليږی.

**حل اللغة** ① **لايحضر، حضر حضوراً** (ن): حاضريدل ② **تنزل،نزل نزولاً** (ض): نازليدل،راکوزيدل

**تشريح:- حضوراهل الذمة صلاة الاستسقاء** صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه استسقاء کې دے ذميان خق نه حاضريږی.ځکه چې د مسلمانانو وتل د رحمت د نازليدو په غرض د دعا لپاره وی.اود کافرانو په اړه کې الله تعالی فرمائی. [وَمَا دُعَاءُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ] يعنی د کافرانو دعا ضائع او په تاوان کې ،

**صورة جواز خروج اهل الذمة** دامام مالك ،امام شافعی او امام محمد رحمهم الله فرمائی.چه ذميانو ته به استسقاء لپاره د وتلو حکم نشی کولې.اوکه دوی په خپله راوځی.نو منع کولې به هم نشی.خو دا خبره د ياده وی.چه ذميان دے يوه ورځ هم يواځے نه راوځی.بلکه کله چې هغوی راوځی.نوڅه مسلمانان دے ورسر ضرور وی.ځکه چې د استسقاء په ذريعه د رزق طلب مقصود وی.او الله تعالی مومن او کافر ټولو ته رزق ورکوی.نوکه کافر په يوه ورځ کې ځانله د الله تعالی په دربار کې دعا اوکړی.او په اتفاق سره په هغه ورځ باران اوشی.نو په دې به ډيره فتنه پيدا شی.

## باب صلاة الخوف

ژباړه:- دا باب د ويرې د لمونځ په بيان کې دې.

**تشريح:- الربط بما قبله** د استسقاء اود ويرې لمونځ په مينځ کې مناسبت دادې.چه د دواړود مشروعيت د ويرې عارض دې.خودومره توپير دې.چه په استسقاء کې عارض يعنی د باران منقطع کيدل،سماوی اوغير اختياری دې.او په صلاة الخوف کې عارض اختياری دې.يعنی جهاد،چه ددې سبب د کافر کفراو د ظالم ظلم دې.نو غير اختياری شی اقوی وی.ځکه صلاة استسقاء مقدم کړې شو.



## د صلاة الخوف کولو طريقه

**إِذَا اشْتَدَّ الْخَوْفُ** کله چې وبيره زياته شی **جَعَلَ الْإِمَامُ النَّاسَ طَائِفَتَيْنِ** :نوامام دے خلګ دوې [دوه] ډلے کړی **طَائِفَةً إِلَى وَجْهِ الْعَدُوِّ، وَطَائِفَةً خَلْفَهُ** يوه ډله دے د دښمن مخے ته پريږدی.اوبله ډله دے خپل شاته کړی **فَيُصَلِّي بِهٰذِهِ الطَّائِفَةِ رَكْعَةً وَسَجْدَتَيْنِ** ودے ډلے ته دې يورکعت او دوهسجددې لمونځ اوکړی **فَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السَّجْدَةِ الثَّانِيَةِ** کله چې دے دويمے سجددې نه خپل سراوچت کړی **مَضَتْ هٰذِهِ الطَّائِفَةُ إِلَى وَجْهِ الْعَدُوِّ** نو دا ډله دے د دښمن مقابلې ته لاړه شی **وَجَاءَتْ تِلْكَ الطَّائِفَةُ** او هغه ډله دے راشی **فَيُصَلِّي بِهِمُ الْإِمَامُ رَكْعَةً وَسَجْدَتَيْنِ** نو امام دے دوی ته يو رکعت او دوهسجددې اوکړی **وَتَشَهَّدَ وَسَلَّمَ** وتشهد دې اووائی.او سلام دے واړوی **وَلَمْ يُسَلِّمُوا، وَذَهَبُوا إِلَى وَجْهِ الْعَدُوِّ** اوددې ډلے خلګ دے سلام نه اړوی.(بلکه هم په دې حالت کې )دے د دښمن مخے ته لاړه شی **وَجَاءَتِ الطَّائِفَةُ الْأُولٰى** او اوله ډله دے راشی **فَصَلَّوْا رَكْعَةً وَسَجْدَتَيْنِ وُحْدَانًا بِغَيْرِ قِرَاءَةٍ** ددې ډلے خلګ دے يورکعت او دوهسجددې ځانله ځانله بغير قراته پوره کړی **لِأَنَّهُمْ لَاحِقُوْنَ** ځکه چې دا خلګ لاحقين دی **وَتَشَهَّدُوا وَسَلَّمُوا وَمَضَوْا إِلَى وَجْهِ الْعَدُوِّ** او تشهد دې اووائی.سلام دے واړوی.اودښمن مقابلې ته دې لاړشی **وَجَاءَتِ الطَّائِفَةُ الْأُخْرٰى** او بله ډله دے راشی **وَصَلَّوْا رَكْعَةً وَسَجْدَتَيْنِ بِقِرَاءَةٍ** اويورکعت او دوهسجددې دے قرات سره اوکړی **لِأَنَّهُمْ مَسْبُوقُوْنَ** ځکه چې دا خلګ مسبوقين دی **وَتَشَهَّدُوا وَسَلَّمُوا** او تشهد دې اوکړی.اوسلام دے واړوی.

**حل اللغة** ① **اشتد، اشتد اشتداداً**: سختيدل ② **جعل، جعل جعلاً** (ف):کول،جوړول ③ **وجه**: اړخ ④ **عدو جمع اعداء**: دښمن ⑤ **رفع،رفع رفعاً** (ف): اوچتول ⑥ **مضت،مضى مضياً** (ض): تيريدل ⑦ **وحداناً**: ځان له کيدو سره ⑧ **لاحقون**: ملاويدونکی ⑨ **مسبوقون**:وړاندې شوی

**تشريح:- القولان في علة رخصة صلاة الخوف** ① دقدوری عبارت ﴿اِذَا اشْتَدَّ الْخَوْفُ﴾ نه په ظاهره معلوميږی .چه د ويرې د لمونځ دجواز لپاره د ويرې سخت والے شرط دې.حالانکه د عامو مشائخو رحمهم الله په نيز د ويرې سختوالے شرط نه دې. بلکه د صلاة الخوف د جواز لپاره صرف د دښمن نيزديکت کافی دې.② په دې وجه په مبسوط کې وئيلی شوی دی.چه د بعضې خلګو په نيزد ويرې نه حقيقةً خوف مراد نه دې.بلکه د دښمن وجود مراد دې.نود دښمن وجود د خوف قائم مقام دی.لکه چې نفس سفرد مشقت قائم مقام دې.اود لمانځه د رخصت او د روژې د رخصت وغيره سبب دې.

**كيفية صلاة الخوف** د ويرې دلمونځ طريقه دا ده.چه وخت امام دے خلګ په دوو ډلو کې ويش کړی.يوه ډله دے د دښمن مخکی اُودروی.او بله ډلے ته دې يو رکعت اوکړی.نوکله چې امام د اول رکعت د دويمے سجددې نه سر راپورته کړی.دا ډله دے پيدل د دښمن مقابلې له لاړه شی .اوهغه ډله کومه چې دښمن ته مخکی وی.هغه دې د امام شاته اُودريږی.امام به دے خلګو ته يورکعت اوکړی.سلام به واړوی.خو خلګ به سلام نه اړوی.بلکه د دښمن مقابلې ته به لاړشی.اوس لومړئی ډله به ځانله خپل رکعت پوره کړی.دا رکعت بغير د قرات نه شو.ځکه چې دا خلګ د تحريمې نه د امام سره د شرکت په وجه لاحقين دی.او په لاحق قرات نشته.ددې ډلے لمونځ پوره شو.نودا ډله دے سلام واړوی.دښمن مقابلې ته دې لاړه شی.او دويمه ډله دے خپل رکعت پوره کړی سلام دے واړوی.د دوی يورکعت قرات سره دې.ځکه چې دا خلګ په اولنی رکعت کې د امام سره د عدم شرکت په وجه مسبوقين دی.اوپه مسبوق قرات واجب وی.ځکه به دا خلګ قرات کوی.

**وَالْأَصْلُ فِي رِوَايَةِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ** اواصل په دې کې د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روايت دې {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ

صَلّٰى صَلَاةَ الْخَوْفِ عَلَى الصِّفَةِ الَّتِي قُلْنَا} (١) چې نبی کریم ﷺ د ویرې لمونځ هم په دې طریقه اوکړو. کومه چې مونږ بیان کړه.

**تشریح:- دلیله** علامه مرغینانی رحمه الله وائی. چه په صلاة الخوف کې اصل د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روایت دې. الفاظ د حدیث دا دی. «عن ابن مسعود رضی الله عنه صلی رسول الله ﷺ صلوة الخوف فقاموا صفاً خلفه وصفا مستقبل العدو فصل بهم ﷺ رکعة ثم جاء الآخرون فقاموا فی مقامهم واستقبل هولاء العدو فصل بهم ﷺ رکعة ثم سلم فقام هولاء العدو فصلوا لأنفسهم رکعة وسلموا، ثم ذهبوا، فقاموا مقام اولئك مستقبل العدو، ورجع اولئك إلى مقامهم فصلوا لانفسهم رکعة ثم سلموا» دابن مسعود رضی الله عنه نه نقل دی. چه رسول الله ﷺ صلاة الخوف اوکړو. نو یوه ډله د نبی کریم ﷺ شاته ودریدله. اوبله د دښمن په مقابله کې، نبی کریم ﷺ دوی ته یو رکعت اوکړو. بیا دویمه ډله راغله. اود دوی په ځائې ودریدله. اودا د دښمن مقابلې ته لاړله. نبی کریم ﷺ دوی ته هم یو رکعت اوکړو. بیا نبی کریم ﷺ سلام واړولو. بیا دې خلګو په خپله یو رکعت اوکړو، اوسلام ئې واړولو. اولاړل. د هغوی په ځائې د دښمن په مقابله کې ودریدل. او هغوی ددوی ځائې ته راغلل. او ځانله ځانله ئې یو رکعت اوکړو. نو سلام ئې واړولو.

**صورة فضل الجماعتين** صاحب د عنایه رحمه الله لیکلی دی. چه د داسې صلوة الخوف اجازت په هغه وخت کې دې. چه کله یو امام وی. د ده نه سوې خلګ بل چا پسې لمونځ کاوه ته تیار نه وی. اوکه څو امامان وی. اوپه دوی کې د چا اختلاف هم نه وی. نوافضل دا دی. چه یو امام یوې ډلې ته پوره لمونځ اوکړی. اودا د دښمن مقابلې ته اولیږی. او بله ډله کومه چې د دښمن په مقابله کې وه. په هغې کې یوکس ته حکم ورکړی. چې دوی ته پوره لمونځ ورکړی.

وَأَبُويُوسُفَ وَإِنْ أَنْكَرَ شَرْعِيَّتَهَا فِي زَمَانِنَا او ابویوسف رحمه الله اګر چې زمونږ په زمانه کې د صلاة خوف د مشروعیت نه انکار کړې دې فَهُوَ مَحْجُوجٌ عَلَيْهِ بِمَا رَوَيْنَا خو په ابویوسف رحمه الله حجت د هغه روایاتو نه قائم دې. کوم چې مونږ نقل کړل

**تشریح:- عدم جواز صلاة الخوف عند ابی یوسف رحمه الله** دصاحب هدایه رحمه الله د قول مطابق حضرت امام ابویوسف رحمه الله د رسول الله ﷺ د وفات نه روسته د صلاة الخوف د مشروعیت نه انکار کړې دې. امام ابویوسف رحمه الله په ابتداء کې د طرفینو رحمهما الله په شان قائل وو. بیا ئې دخپل دے قول نه رجوع اوکړله. فرمائی چې د صلوة الخوف مشروعیت د نبی کریم ﷺ د ژوند سره خاص دې.

**دلیله** اودلیل دادې. چه د خوف د لمونځ په اړه کې الله تعالی فرمائی. [وَإِذَا كُنْتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلٰوةَ] الآية پ۶، ع۱۴) په دې آیت کې په خاص طور رسول الله ﷺ ته د صلاة الخوف قائمولو حکم شوې دې. چه کله ته امام ئې. نو هره ډله به په تا پسې د لمونځ کاوه فضیلت حاصلولو کوښښ کوی. ددوی د وفات نه روسته دا جګړه ختمه شوه. او هره ډله بل امام پسې په پوره لمونځ کاوه قادر ده. نود تلو راتلو په صفت سره به یویو رکعت ادا کول جائز نه وی.

**دلیل جواز صلاة الخوف** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روایت د امام ابویوسف رحمه الله خلاف حجت دې. ځکه چې د ابن مسعود رضی الله عنه روایت کوم چې پورته ذکر دې. په دې کې په تفصیل سره د رسول الله ﷺ د ویرې لمونځ کول ذکر شوی دی.

**عدم اثبات الحجة على ابی یوسف رحمه الله** ځوکه څوك دا اووائی چې امام ابویوسف رحمه الله د رسول الله ﷺ

(١) حدیث ابن مسعود رضی الله عنه أخرجه أبوداود فی صلاة السفرباب ۱۷ رقم ۱۲۴۴ والبیقهی فی السنن الکبری (۳۷/۳، ۳۷۱) رقم ۶۴۴)



په حیات کې د صلاة خوف مشروعیت انکارکله کړې دې. امام ابویوسف رحمه الله د رسول الله ﷺ په حیات کې د صلوة خوف د مشروعیت قائل دې. البته د وفات نه روسته قائل نه دې. نودا د ابویوسف رحمه الله خلاف څنګه حجت جوړیدے شی.

**الجوابان** ① ددې ځواب دا کیدای شی. چه د نبی کریم ﷺ د وفات نه روسته د صحابو رضی الله عنهم نه د صلوة خوف لمونځ کول ثابت دې. لکه چې سعد بن ابووقاص، ابی عبیده بن الجراح او ابوموسی اشعری رضی الله عنهم په اسفهان کې د صلاة خوف کړې دې. او سعد ابی وقاص رضی الله عنه په طبرستان کې د مجوسیانو سره جنګ اوکړو. اودوی سره حسن بن علی، حذیفه بن اسحاق او عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهم وو. نوسعید بن ابی العاص رضی الله عنه دے حضرات صحابو رضی الله عنهم ته صلاة خوف اوکړو. اوچا هم په دې انکار نه ووکړې. نودا عدم انکار په منزله د اجماع شو. د رسول الله ﷺ د وفات نه روسته د صلاة خوف په جواز د صحابو رضی الله عنهم د اجماع نه روسته د حضرت امام ابویوسف رحمه الله د صلوة خوف د مشروعیت نه انکار کول څه حیثیت نه لری.

② دوهم ځواب دادې. چې د ابن مسعود رضی الله عنه روایت من حیث العبارة که د ابویوسف رحمه الله په خلاف حجت نه دې. خومن حیث الدلالة حجت دې. په دې طریقه چې د صلاة خوف سبب ویره ده. او ویره چې څنګه د نبی کریم ﷺ په ژوند کې متحقق وه. د نبی کریم ﷺ د وفات نه روسته هم متحقق کیدای شی. نوڅنګه چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې د ویرې په وجه د صلاة خوف مشروع وو. هم ددې سبب په وجه به د نبی کریم ﷺ نه روسته هم مشروع وی.

**په صلاة الخوف کښې د مقیم امام امامت**

قَالَ (وَإِنْ كَانَ الْإِمَامُ مُقِيمًا) که امام مقیم وی (صَلّٰى بِالطَّائِفَةِ الْأُولَى رَكْعَتَيْنِ وَبِالثَّانِيَةِ رَكْعَتَيْنِ) نودوې [دوه] رکعته لمونځ دې لومړئی ډلې سره، او دوې [دوه] رکعته دې دویمې ډلې سره اوکړی لِمَا رُوِيَ لکه چې نقل دی {أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ صَلَّى الظُّهْرَ بِالطَّائِفَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ} (١) چې نبی کریم ﷺ د ماپښین لمونځ دواړو ډلو سره دوې [دوه] دوې [دوه] رکعته کړی وو (وَيُصَلِّي بِالطَّائِفَةِ الْأُولَى مِنَ الْمَغْرِبِ رَكْعَتَيْنِ، وَبِالثَّانِيَةِ رَكْعَةً وَاحِدَةً) اوداولې ډلې سره ئې د ماښام دوې [دوه] رکعته او دویمې ډلې سره یو رکعت کړې وو لِأَنَّ تَنْصِيفَ الرَّكْعَةِ الْوَاحِدَةِ غَيْرُ مُمْكِنٍ ځکه چې یو یو رکعت نیمول ممکن نه دی فَجَعَلَهَا فِي الْأُولَى أَوْلَى بِحُكْمِ السَّبْقِ اود لومړئی ډلې د سبقیت په وجه دا یو رکعت د دوی په برخه کې کول غوره دی.

**حل اللغة:** ① **مقیما:** اقامت کونکې ② **رکعتین:** دوې [دوه] رکعته ③ **صلی، صلی صلاة:** لمونځ کول ④ **تنصیف:** نیم کول

**تشریح:- کیفیة امامة المقیم للمسافرین** ① مسئله دا ده. که امام مقیم وی. نودواړو ډلو ته دې دوې [دوه] دوې [دوه] رکعته اوکړی. ځکه چې نبی کریم ﷺ د اقامت په حالت کې د ماپښین لمونځ هم په دغه طریقه کړې وو. اود ماښام لمونځ دے داسې پوره کړی. چه لومړئی ډلې ته دوې [دوه] رکعته اوکړی. او دویمے ډلې ته یو رکعت اوکړی. ځکه چې په صلاة خوف کې حکم دا دې. چه امام دے هرې ډلې ته نیم لمونځ اوکړی. اود ماښام لمونځ نیمه یو پوره رکعت او نیم رکعت دې. اودا خبره منلے شوې ده. چه یو رکعت نشی نیمیدلې. نومونږ وایو. چه اولې ډلې ته دې د تقدم په وجه دوې [دوه] رکعته اوکړی. اودویمے ډلې ته دې یو رکعت اوکړی.

**په حالت د لمونځ کښې د جنګ حکم**

وَلَا يُقَاتِلُونَ فِي حَالِ الصَّلَاةِ او هیڅ یوه ډله دے دلمونځ په حالت کې جنګ نه کوی فَإِنْ فَعَلُوا که دوی جنګ

(١) من حدیث جابر أخرجه مسلم فی صلاة المسافرین وقصرها رقم (۳۱۱)_

اوکړو **بَطَلَتْ صَلَاتُهُمْ** نو لمونځ به باطل شی **لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ شُغِلَ عَنْ أَرْبَعِ صَلَوَاتٍ يَوْمَ الْخَنْدَقِ**[1] ځكه چې نبی کریم ﷺ د خندق په ورځ د څلورو لمونځ ونو نه مشغوله شو **وَلَوْجَازَ الْأَدَاءُ مَعَ الْقِتَالِ** كه قتال كاوه سره ادا كول جائز وی **لَمَا تَرَكَهَا** نو نبی کریم ﷺ به دا لمونځ ونه نه پریخودل.

**حل اللغة** ① **لايقاتلون،قاتل مقاتلة:** خپل مينځ كي قتل كول ② **فعلوا، فعل فعلاً** (ف): كول ③ **بطلت، بطل بطلاً** (ن): باطل كيدل ④ **شغل، شغل شغلاً** (ن): بوخت كيدل ⑤ **جاز، جاز جوازاً** (ن): جائز كيدل

**تشريح:- فساد الصلاة بالقتال في الصلاة** ۞ مسئله دا ده.چه زمونږ په نيزد لمونځ په حالت كي به هيڅ يوه ډله قتال نه كوی.كه قتال ئې اوكړو.نو لمونځ به باطل شی.د سر نه پيل كول به لازم شی.

**دليله** ۞ دليل دادې.دغزوه احزاب په موقع د رسول الله ﷺ څلور ركعته فوت شوی وو.نبی کریم ﷺ ئې روستو قضاء راوړله.كه د لمونځ په حالت كي قتال جائز وې.نو نبی کریم ﷺ به دا مونځونه ددې په خپلو وختونو كي ادا كول نه پريخودل.معلومه شوه.چه د لمونځ په حالت كي قتال كول جائز نه دی.

**په سپرلئ د لمونځ كولو حكم**

**فَإِنِ اشْتَدَّ الْخَوْفُ** بيا كه په وبيره كي شدت وی **صَلَّوْا رُكْبَانًا فُرَادَى** نو د سوريدو په حالت كي دے ځانله ځانله لمونځ اوكړی. **يُومِئُونَ بِالرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ إِلَى أَيِّ جِهَةٍ شَاءُوا** ركوع اوسجده دے په اشاره اوكړی.څنگه چې ممكن وی **إِذَا لَمْ يَقْدِرُوا عَلَى التَّوَجُّهِ إِلَى الْقِبْلَةِ** كه قبلې اړخ ته په متوجه كيدو قادر نه وی

**حل اللغة** ① **اشتد،اشتد اشتداداً:** زياتيدل، ډيره ويره ② **فرادى:** ځان كيدو سره ③ **يومون،امى ايماءً:** اشاره كول ④ **جهة:** اړخ ⑤ **لم يقدر، قدر قدرة** (ض): قادركيدل

**تشريح:- الصلاة على الدابة عند شدة الخوف** ۞ ① مسئله داده.كه د دښمن ويره دومره سخته وی.چه دوی مسلمانانو ته د سوارلئ نه راكښته د لمونځ كاوه موقع نه وركوی.نو په دې صورت كي مسلمانانو لپاره هم په سوارلئ په ناسته ځانله ځانله لمونځ ادا كول جائز دی.د ركوع اوسجدې به اشاره كوی. او د استقبال قبله په سلسله كي حكم دادې.چه كه قبلې اړخ ته مخ كول ممكن نه وی.نو كوم اړخ ته چې غواړی مخ دې كړی.

**لِقَوْلِهِ تَعَالَى** ځكه چې الله تعالى فرمائيلی دی {**فَإِنْ خِفْتُمْ** كه تاسو ته وبيره وی **فَرِجَالًا أَوْ رُكْبَانًا**} نو پياده لمونځ كوئ.يا په سپرلئ باندې **وَسَقَطَ التَّوَجُّهُ لِلضَّرُورَةِ** او د قبلې په اړخ متوجه كيدل د اړتيا په وجه ساقط شوی دی

**تشريح:- دليله** ۞ دليل د الله تعالى قول ﴿فان خفتم فرجالاً او ركباناً﴾ دې.او استقبال د قبلې د اړتيا په وجه ساقط شوې دې.

**وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُمْ يُصَلُّونَ بِجَمَاعَةٍ** او د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.چې جماعت سره دې لمونځ اوكړی **وَلَيْسَ بِصَحِيحٍ** او دا روايت صحيح نه دی **لِانْعِدَامِ الِاتِّحَادِ فِي الْمَكَانِ** ځكه چې اتحاد مكانی معدوم دې .

**تشريح:- تضعيف رواية جواز الجماعة ركباناً** ۞ دامام محمد رحمه الله نه يو روايت دا دې.چه په سوارلئ په جماعت سره لمونځ كول مستحسن دی.ددې قائل امام شافعی رحمه الله دې.خودا حكم صحيح نه دې .ځكه چې د اقتداء د صحت لپاره د مكان اتحاد شرط دې.اودا په دې حالت كي معدوم دې . او كه يو سړې امام سره دده په سوارلئ وی.نو دده اقتداء كول صحيح دی.

[1]) من حديث إبن مسعود رضي الله عنه رواه الترمذی فی المواقيت باب ١٨ والنسائی فی المجتبی (١/١٠٧) و رواه أحمد)



# باب الجنائز

ژباړه:- دا باب د جنازو د احكامو په بيان كي دې.

**الربط بما قبله** ۞ مرګ چونكه آخری عارض دې.په دې وجه د جنازې لمونځ د ټولو په آخر كي بيان شوېدې.خوكه څوك دا اووائی.چه ﴿الصلوة فی الكعبة﴾ ددې نه مخكي ذكركول پكار وو.حالانكه ددې نه روسته ذكر شوې دې.نو ددې ځواب دادې.چه ﴿صلوة فی الكعبة﴾ دكتاب الصلاة په آخر كي په دې وجه ذكر شوې دې.چه د كتاب الصلوة خاتمه په دې سې شی اوشی.چه په هغې حالاً او مكاناً تبرك حاصليدې شی.

**الحركات في الجنازة** ۞ جنائز،د جنازه جمع ده.جنازه د جيم په فتح سره د مړی لپاره مستعمل دې.او په كسره سره هغه تختې لپاره مستعمل دې.چه په هغې مړې ايخودې شی.

**وجه فرضية الصلاة على الميت كفاية** ۞ بعضې فرائض داسې ډول مقررشوی دی.چه دا ديو مقام بعضې نفر اداكړی.نود ټولواړخه ادا كيږی.وجه ئې دا ده.كه واړه دا په جمع باندې اوكړی . نو معاشی انتظام به تباه اوبرباد شی.ددوی د نفع واړه تدبيرونه به معطل شی.نود داسې كارونو لپاره يويو سړې كافی دې.د بيمارانو بيمار پُرسی اود جنازے لمونځ هم په دې طريقه مشروع شوی دی.چه د بيمارانو اومړو ضائع كيدل هم نه وی.او بعضې خلگ كه دا پوره كړی.نو مقصد به هم حاصل شی.(احكام اسلام عقل كی نظر مين)

**الحكمة في مشروعية صلاة الجنازة** ۞ دعقل تقاضا ده.چه كله يوانسان د ډيرو خلگو ډله د يولوې حاكم مخے له بوځی.اودده لپاره سفارش اوكړی.اودده دمعافئ درخواست اوكړی.اودده لپاره په زارئ او منت درخواست اوكړی.نو آخر دده قصورمعاف كيږی.هم دا د جنازے د لمونځ راز دې.يعنی د جنازے لمونځ په دې وجه مقرر شوې دې.چه د مومنانو يوه ډله د مړی سفارش كي شركت اوكړی.نودا د الله تعالى د رحمت نازليدو لپاره ډير لوې اثر لری.نبی كريم ﷺ فرمائی. ﴿ما من مسلم يموت فيقوم على جنازته أربعون رجلاً لايشركون بالله شيئاً إلا شفعهم الله فيه﴾ يعنی هيڅ يوسړې داسې نه مری.چه دده په جنازه څلويښت سړی راجمع وی.چه دوی د الله تعالى سره څوك نه شريكوی.نوددې مړی په حق كي ددوی سفارش قبلوی.ددې وضاحت دا دې.چه كله دسړی روح د بدن نه اوځی.نودده حس مشتركه وغيره سره حس او ادراك پاته پاتې وی.اوكوم خيالات او علوم چې دده سره وو.د مرګ نه روسته دده سره پاتې شی.اوبيا د عالم بالا نه نور علمونه په ده ښكاره كيږی.چه په دې وجه ډيرو ته عذاب يا ثواب ملاويږی.نود الله تعالى د نيكو بنده ګانو همتونه چې كله عالم قدس ته اورسيږی.او ددې مړی لپاره دوی په زارئ اومنت دعا كوی.يا د مړی لپاره ډير څه صدقه وركوی.نو د الله تعالى په حكم د مړی په حق كي دا ګټور جوړيږی.

**د قريب المرګ د خملولو كيفيت**

**إِذَا احْتُضِرَ الرَّجُلُ** كله چې سړې مرګ ته نزدې شی **وُجِّهَ إِلَى الْقِبْلَةِ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ اعْتِبَارًا بِحَالِ الْوَضْعِ فِي الْقَبْرِ** نو په ښی اړخ ئې د قبلې اړخ ته مخكی كړئ.په قبر كي د ايخودو په حالت قياس كاوه سره **لِأَنَّهُ أَشْرَفَ عَلَيْهِ** ځكه چې دا سړې دے ته قريب شوې دې

**حل اللغة** ① **احتضر، احتضر احتضاراً:** حاضريدل، مرګ ته نژدې كيدل ② **شق:** اړخ ③ **ايمن:** راسته ④ **وضع:** ساتل

**تشريح:- وجه تسمية المختضر** ۞ قدوری مرګ ته دنزديكت نه تعبير كاوه لپاره د ﴿احتضر الرجل﴾ لفظ استعمال كړې دې.يعنی مړكيدونكی كس ته ئې "محتضر"وئيلی دی.يا ځكه چې مرګ ده سره حاضردې.يا د مرګ فرشتې حاضرې دی.

**علاماته** ۞ علامات د مرګ دا دی.① چه د قريب المرګ دواړه قدمونه سستيږی. ② اودريدې نه شی. ③ پزه كږيږی. ④ اود اګو(خصية) خرمن ئې اوږده شی.

۩کیفیة وضع المحتضر۩ بهرحال د قریب المرگ عمل دادې.چه د ے په ښی اړخ قبلې اړخ ته څملولې شی.خکه
چې د مړی په قبر کې د ایخودو هم دا کیفیت مسنون دې.نو په دې قیاس کاوه سره به قریب المرگ هم په دې
کیفیت څملولې شی.خکه چې دا کس قبر ته نیزدے رسیدلې دې.

وَالْمُخْتَارُ فِي بِلَادِنَا الِاسْتِلْقَاءُ او زمونږ په کلو کې نیغ څملول اختیار شوی دی لِأَنَّهُ أَيْسَرُ لِخُرُوجِ الرُّوحِ خکه چې دا د روح په
وتلوکې ډیر آسان صورت دې وَالْأَوَّلُ هُوَ السُّنَّةُ (۱) او سنت اولنے صورت دې

① ایسر: آسان

**تشریح:-** صاحب دهدایه رحمه الله وائی.چه زمونږ په علاقو ماوراء النهر وغیره کې په ستونی سستغ څملول غوره
گڼرلے شی.خکه چې دا کیفیت د روح وتلو لپاره ډیر آسان دې.په دې صورت کې دمړی د سر لاندې تکیه
وغیره څه اوچت شی ایخودل پکار دی.چه دده مخ قبلې اړخ ته وی. آسمان اړخ ته نه وی.خو په دې کیفیت
کې هیڅ نص نشته.صرف اټکلی خبره ده.نوخکه د ے ته هیڅ اعتبار نشته .په دې وجه علامه مرغینانی
رحمه الله وائی.چه اول سنت دې.یعنی په اړخ څملول مسنون دی.

وَلُقِّنَ الشَّهَادَتَيْنِ اوده ته د شهادتینو تلقین اوکړې شی

**حل اللغة** ① لقن،لقن تلقینا: وریادول ②

**تشریح:- تلقین الشهادتین۩** دوهم عمل دادې.چه قریب الموت ته د شهادتینو تلقین اوکړی.یعنی ده سره
کینی.اوپه اوچت آواز ۩أشهد أن لا إله إلا الله و أشهد أن محمد رسول الله۩ اووائی.قریب الموت ته ددې کلمے ویلو
حکم نه کوی.خکه چې په ده ډیرد سختئ وخت وی.نعوذ بالله که ده انکار اوکړو .نو خاتمه به ئې په کفر شی.

لِقَوْلِهِ: {لَقِّنُوا مَوْتَاكُمْ شَهَادَةَ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ} (۲) خکه چې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی.چې تاسې خپلو مړو ته د
شهادت (لااله الاالله) تلقین کوئ. وَالْمُرَادُ الَّذِي قَرُبَ مِنَ الْمَوْتِ او په حدیث کې د مړو نه مراد هغه څوک دی چې
مرگ ته نیزدے وی

**تشریح:- دلیله۩** دلیل د نبی کریم ﷺ قول ۩لقنوا موتاکم شهادة أن لا إله إلا الله۩ دې.اود موتی نه مراد هغه څوک
دے چې مرگ ته نیزدے وی.بالکل مړے مراد نه دې.خکه چې تلقین دده په حق کې گټور نه ثابتیږی.

فَإِذَا مَاتَ بیاچې کله موړ شی شُدَّ لَحْيَاهُ وَغُمِّضَ عَيْنَاهُ نودده ځامه اوتړه اودده سترگے بندے کړه بِذَلِكَ جَرَى التَّوَارُثُ (۳) هم
په دې یک توارث جاری دې ثُمَّ فِيهِ تَحْسِينُهُ اوپه دې یک کې دمړی صورت ښکلې ښکاری فَيُسْتَحْسَنُ. نو دا کول بهتر دې.

(۱) قال الزیلعی رحمه الله لم أجد له شاهداً وخرجت له فی ،،سنن الصلاة،، بعد التتبع [عن یحیی بن عبد الله بن أبی قتادة عن
أبیه أن النبی صلی الله علیه وسلم حین قدم المدینة سال عن البراء بن معرور فقالوی توفی وأوصی بثلثه لک یا رسول الله
وأوصی أن یوجه إلی القبلة لما احتضر فقال ۩أصاب الفطرة أخرجه البیهقی فی الصلاة باب ما یستحب من توجیه المحتضر نحو
القبلة رقم ۶۳۹۶ (۳/۳۸۴)_

(۲) خرجته فی ،،سنن الصلاة،، عن یَحْیَى بْنُ عِمَارَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
لَقِّنُوا مَوْتَاكُمْ قَوْلَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ أخرجه ابوداود فی الجنائز باب فی التلقین رقم ۲۷۱۰رجاله ثقات)_

(۳) خرجت لتغمیض العینین فی ،،سنن الصلاة،، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَبِي سَلَمَةَ وَقَدْ شَقَّ
بَصَرُهُ فَأَغْمَضَهُ ثُمَّ قَالَ إِنَّ الرُّوحَ إِذَا قُبِضَ تَبِعَهُ الْبَصَرُ أخرجه ابن ماجه فی الجنائز باب ماجاء فی تغمیض العینین رقم
۱۴۴۴رجاله ثقات)_



**تشریح:- شد اللحیین وتغمیض العینین۩** دریم عمل دادې.چه د مړی ځامې په کالی وغیره اوتړلے شی.اودده دواړه
سترگے به بندے کړې شی.هم دا طریقه متوارث ده.اوپه دې سره کاوه کې د مړی ښائست او تزئین هم دې.نو
خکه دا عمل مستحسن او مندوب دې.

## فصل في الغسل

**ژباړه:-** دا فصل مړی ته د غسل ور کاوه او د احکامو په بیان کې دې.

**تشریح:- وجه تقدیم الغسل۩** علامه مرغینانی د هدایه رحمه الله د مړی حالات په یوڅو فصلونوکې ذکرکړی دی.د
ټولو نه مخکې ئې غسل بیان کړې دې.خکه چې د مرگ نه روسته د ټولونه اول هم ددې اړتیا پیښیږی.

**۩القول الاول في سبب وجوب غسل الميت۩** د مړی دغسل سبب د مړی د مرگ په وجه نجس او پلیت کیدل
دی.لکه چې نور حیوانات د مرگ په وجه نجس کیږی.

**۩دلیله۩** دلیل دادې.که چا مړ انسان په خپل بدن کې اونیولو.اولمونځ ئې اوکړو.نودده لمونځ جائز نه
دې.اوکه څه محدث (بے اودسه) ئې په اوگه پورته کړو.اولمونځ ئې اوکړو.نوجائز دې.نومعلومه شوه.چه
مړ انسان پلیت دې.اود پلیتئ زوال په غسل سره کیږی.خکه د مړی غسل لازم اوگرځولې شو.دا خیال ساتل
پکار دی.که مړ څناور ته غسل ورکړې شو.نو دا به نه پاکیږی.خکه چې د مړ انسان د غسل په وجه
پاکیدل،صرف دده د تکریم او تعظیم په وجه دی.

**۩القول الثاني في سبب وجوب غسل الميت۩** د مړی د غسل په سبب کې اختلاف دې. بعضې وائی. چې د مړی
دغسل سبب هغه حدیث دې.کوم چې د استرخاء مفاصل په وجه په مړی کې دننه حلول کوی.خکه چې د مرگ
په وجه انسان پلیت شی.

**۩الاعتراض والجواب۩** پاتې شوه دا چې کله د مړی د غسل سبب حدث دې.نو د اودس د اندامونو په وینځلو
اکتفاء
ولې اونکړې شوه.په دې سے حال کې چې د حدث په صورت کې د اودس په اندامونو وینځلو اکتفاء کولې
شی؟

**۩الجواب۩** په ژوند کې د حدث په وجه د اودس په اندامونو اکتفاء کول د حرج دفع کاوه لپاره وه .خکه چې
حدث هره ورځ پیښیږی.بلکه په یوه ورځ کې څوځله پیښیږی.نوکه په ژوند کې د اودس په اندامونو وینځلو
اکتفاء اونکړې شی.بلکه د واړه بدن پریمنځل ضروری شی.نو خلگ به په تکلیف او حرج کې اخته شی.په
دې وجه په ژوند کې دحدث په وجه د اودس په اندامونو وینځلو د اکتفاء حکم شوې دې.او پاتې شوهغه
حدث چې د مرگ په وجه لاحق شی.نودا مکرر نه وی. بلکه یوځل پیښیږی.نوچونکه د مرگ په وجه حدث
یوځل پیښیدو په وجه د حرج او تکلیف احتمال نشته.نوخکه په دې صورت کې د واړه بدن وینځلو حکم
شوې دې.

**۩حکم غسل الميت على الناس۩** د مړی غسل په ژوندو خلگو په اتفاق سره فرض کفایه دې.نوکه یو مړ انسان په
اوبوکې اوموندې شو.نوده ته به هم غسل ورکولې شی.اوکه اوپړسیدو.اواوچودو.نوپه ده به اوبه تیرولې
شی.والله اعلم.

### مړی ته د غسل ورکولو طریقه

وَإِذَا أَرَادُوا غُسْلَهُ اوچې کله مړی ته د غسل ور کاوه اراده اوکړی وَضَعُوهُ عَلَى سَرِيرٍ لِيَنْصَبَّ الْمَاءُ عَنْهُ نودے به په یوه
تخته واچوی.چې دده نه اوبه بهیږی

**حل اللغة** ① ارادوا،اراد: اراده کول ② وضعوه، وضع وضعاً (ف) : ساتل

تشریح:- **وضع الميت على السرير للغسل**۞په دې پوره عبارت کې د مړي د غسل د کیفیت بیان دې. فرمائی چې کله مړی ته د غسل ور کاوه اراده وی.نودې به په یوه تخته څملولې شی.او په تخته به څکه څملولې شی چې اوبه په مړی اوبهیږی.څکه که مړے په مځکه څملولې شی.نومړے به په خاوره او ځته کې خراب شی.صاحب دکتاب خونه د تختے د ایخودو دکیفیت ذکر کړې دې.او نه ئې په دې د مړی ایخودو د کیفیت بیان کړے دې.

**وَجَعَلُوْا عَلٰى عَوْرَتِهٖ خِرْقَةً** (اِقَامَةً لِوَاجِبِ السَّتْرِ) اوده په شرمګاه به کالی واچوی.چې د پردے اچولو واجب پوره شی

حل اللغة * ① جعلوا، جعل جعلاً (ف): کول، جوړول

تشریح:- **سترعورة الميت**۞دمړی په تخته څملولو نه روسته به دده عورت (د عورت په پټولو)کپړه اچولې شی.څکه چې ستر د عورت فرض دې.نو ددې فرض ادا کاوه لپاره به دده په عورت کپړه واچوی .وجه ددې داده.چه سړې څنګه په ژوند کې محترم وی.دغه ډول د مرګ نه روسته هم محترم وی.نو دده د محترمیت تقاضا ده.چه دده د عورت پټ کړې شی.

**وَيَكْتَفِىْ بِسَتْرِ الْعَوْرَةِ الْغَلِيْظَةِ** اوصرف د عورت غلیظ یعنی د شرمګاه په پټولو به اکتفاء کولای شی **هُوَ الصَّحِيْحُ تَيْسِيْرًا** اوهم دا قول صحیح دې .د آسانتیا لپاره

حل اللغة * ① یکتفی، کتفی اکتفاءً: کفایت کول

تشریح:- **الروايتان في حد سترالعورة**۞ ①علامه مرغینانی رحمه الله وائی.چه د آسانتیا لپاره عورت غلیظه یعنی د قُبل او دُبر ستر کافی دې.د نوم نه د کونډو پورې ستر ضروری نه دې.هم دا ظاهرالروایة دې. ② د نوادر روایت دې.چه د نوم نه د کونډو پورې ستر ضروری دې

**وَنَزَعُوْا ثِيَابَهٗ لِيُمْكِنَهُمُ التَّنْظِيْفُ** اود مړی جامے به اوویستلے شی .چې دوی ته د مړی په پاکولوقدرت حاصل شی

حل اللغة * ① نزعوا، نزع نزعاً (ف): راکوزول، ویستل

تشریح:- .صاحب د قدوری وائی چې دمړی ټولې جامے دے اوویستلے شی.چه خلګ په آسانتیاسره د مړی په تنظیف او پا کاوه قادر وی.وجه داده.چه دغسل نه مقصود د مړی پاکول دی.اوکله چې کپړو سره مړی ته غسل ورکړې شی.نودا مقصود نه حاصلیږی.څکه چې د غسل په مستعملو اوبو سره چې کله کپړه ناپاکه شی.نو په دې به دوباره د مړی بدن ناپاکه شی.نو غسل به مفید د طهارت نه وی.اوکله چې په جامو کې غسل ورکول مفید د طهارت نه دی.نود مړی د کپړو ویسکل واجب دی.

**وَوَضَّؤُهٗ مِنْ غَيْرِ مَضْمَضَةٍ وَّلَا اسْتِنْشَاقٍ** او مړی له به اودس اوکړې شی .بغیردخولے وینځلو نه،اوپه پزه کې د اوبو اچولو نه **لِاَنَّ الْوُضُوْءَ سُنَّةُ الْاِغْتِسَالِ، غَيْرَ اَنَّ اِخْرَاجَ الْمَاءِ مِنْهُ مُتَعَذِّرٌ** څکه چې اودس دغسل سنت دې .خودا چې دده نه اوبه اوبنکل متعذر دی **فَيُتْرَكَانِ** په دې وجه په خوله کې اوبه اچول،او په پزه کې اوبه اچول پریښودې شی **ثُمَّ يُفِيْضُوْنَ الْمَاءَ عَلَيْهِ اعْتِبَارًا بِحَالِ الْحَيَاةِ** بیا به په مړی اوبه اُوبیوی.د ژوند په حالت به قیاس کولای شی

حل اللغة * ① یفیضون، افاض افاضة: بهیول

تشریح:- **عدم تمضمض الميت واستنشاقه**۞قدوری فرمائی. ①چه بغیردخولې وینځلونه اوپه پزه کې اوبه اچولونه، مړی‌له اودس کول پکاردی.اودس خوځکه کول پکار دی.چه اودس دغسل سنت دې.اوخوله پریمنځل اوپه پزه کې اوبه اچول څکه ترک کړې شوی دی.چه د مړی په خوله اوپزه کې اوبه اچول اوبیا ئې ترے راویستل متعذر دی.

**وَتُجَمَّرُ سَرِيْرُهٗ وِتْرًا** وتختے له به طاق خل خوشبوئی ور کولای شی **لِمَا فِيْهِ مِنْ تَعْظِيْمِ الْمَيِّتِ** څکه چې په دې کې



د مړی تعظیم دې **وَاِنَّمَا يُوْتَرُ لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ** او طاق ځل څکه چې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی {**اِنَّ اللّٰهَ وِتْرٌ يُحِبُّ الْوِتْرَ**} ([1]) الله تعالی وتر دې .او وتر خوښوی

تشریح:- **تغسيل الميت وتطييبه**۞ .قدوری فرمائی.چه داودس کاوه نه روسته به په مړی اوبه بیولے شی.دلیل د ژوند په حالت قیاس دې. اودمړی تختے له به طاق ځل خوشبوئی ورکولې شی.خوشبوئی په دې وجه ورکولې شی.چه په دې کې دمړی تعظیم دې.او طاق ځل څکه چې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی . ﴿ان الله وتر يحب الوتر﴾

**وَيُغْلَى الْمَاءُ بِالسِّدْرِ اَوْ بِالْحُرُضِ** اواوبه به دبیرے په پاڼړو یاد اشنان په ګیا جوش ور کولای شی **مُبَالَغَةً فِى التَّنْظِيْفِ** څکه چې په دې کې په پاکولوکې مبالغه ده

تشریح:- قدوری رحمه الله فرمائی.چه په کومو اوبو مړی ته غسل ورکولې شی.چه په هغې کې د بیرے پاڼړے یا د اشنان ګیا واچولې شی.اوجوش دے ورکړې شی.څکه چې په پا کاوه او تطهیر کې دا ډیر ګټور (فائده مند) دی.

**فَاِنْ لَّمْ يَكُنْ** بیاکه داسې څه شی نه وی **فَالْمَاءُ الْقَرَاحُ لِحُصُوْلِ اَصْلِ الْمَقْصُوْدِ** نوخالصے اوبه.چې اصل مقصود حاصل شی **وَيُغَسَّلُ رَأْسُهٗ وَلِحْيَتُهٗ بِالْخِطْمِىِّ** و دده ږیره او سر به په ګل خطمی سره اووینځلے شی **لِيَكُوْنَ اَنْظَفَ لَهٗ** چې مړے ښه پاک شی

تشریح:- **استعمال الماء القراح**۞اوکه جوش ورکړې شوې اوبه نه ملاویږی.نو بیا خالصے اوبه هم استعمالولے شی.د اوبو دا ترتیب د شمس الائمه سرخسی رحمه الله په نیز دې.شیخ الاسلام او صاحب د محیط رحمه الله فرمائی .چه اول دے په خالصو اوبو غسل ورکړې شی.او بیا دې هغه اوبه استعمال کړې شی.په کومو کې چې د بیرے پاڼړے اچولې شوې وی.اوجوش ورکړې شوې وی.اوبه دریم ځل دے د کافورو ملاؤ شوې اوبه استعمال کړې شی.هم دغه ډول دابن معسود ﷺ نه مروی دی. ﴿قال يبدأ اولاً بالماء القراح ثم بالماء والسدر ثم بالماء وشيء من الكافور وانما يبدأ اولاً بالماء القراح حتى يبتل ماعليه من الدرن و النجاسة ثم بماء السدر حتى يزول مابه من الدرن والنجاسة لأن السدر أبلغ فى التنظيف ثم بماء الكافور تطييباً لبدن الميت كذا فعلت الملائكة عليهم السلام بآدم حين غسلوه﴾ عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی چې مړی ته د غسل ور کاوه په وخت په خالصو اوبو سره ابتداء اوکړې شی.بیا د بیرے په پاڼړو سره جوش ورکړې اوبهٔ بیا د کافور ملاوشوې اوبه استعمال کړې شی.اول دے خالصے اوبه څکه استعمال کړی.چه د بدن خیرے اونجاست اوخیرے لوند شی.بیا جوش ورکړې شوې اوبه په دې وجه استعمالول پکار دی.چه خیرے وغیره لرے شی.څکه چې د بیرے پاڼړے ﴿ابلغ فى التنظيف﴾ دی.بیا د کافورو اوبه د مړی بدن معطر او خوشبودار کاوه لپاره استعمال کړې شی.هم دا عمل فرښتو آدم علیه السلام ته د غسل ور کاوه په وخت کړې وو.

**ثُمَّ يُضْجَعُ عَلٰى شِقِّهِ الْاَيْسَرِ** بیا به دامړے په چپه اړخ څملولې شی **فَيُغَسَّلُ بِالْمَاءِ وَالسِّدْرِ حَتّٰى يُرٰى اَنَّ الْمَاءَ قَدْ وَصَلَ اِلٰى مَا يَلِى التَّخْتَ مِنْهُ** په اوبو او په بیرو به سره به غسل ورکړې شی . تر دې چې اوګوری.چې اوبه هغه ځائې ته اورسیدلې .کومه برخه چې تختے سره لګیدلې ده **ثُمَّ يُضْجَعُ عَلٰى شِقِّهِ الْاَيْمَنِ** بیا دې دا (مړے) په ښی اړخ څملولې شی **فَيُغَسَّلُ حَتّٰى يُرٰى اَنَّ الْمَاءَ قَدْ وَصَلَ اِلٰى مَا يَلِى التَّخْتَ مِنْهُ** و غسل دے ور کولای شی .تر دې چې اوګوری.چې اوبه د مړې د بدن هغه حصے ته اورسیدے کومه چې تختے سره لګیدلې ده **لِاَنَّ السُّنَّةَ هُوَ الْبُدَاءَةُ بِالْمَيَامِنِ** ([1]) څکه چې سنت هم دادی.چې پیل د ښی اړخ نه وی

[1])من حدیث أبی هریرة ﷺ أخرجه البخاری فی الدعوات باب ٦٩ رقم ٦٤١٠ ومسلم فی الذکر والدعاء والإستغفار رقم ٦٠٥)

تشريح:- وضع الميت على الشمال واليمين۞قدوري رحمه الله فرمائي.چه د مړي سراو دده ږيره په خطمی سره وينځل پکاردي.ځکه چې خطمی د صابن په شان بدن پاکونکے دي.ددې ټولو کارونو نه د فراغت نه روسته به مړے په چپه اړخ څملوي،اوپه جوش ورکړې اوبو سره به اووينځلے شي.اوچه دومره قدرې اوبه واچولې شي.چه لاندينۍ برخه کومه چې تختې سره لګيدلې وي. هغې پورې اوبه اورسيږي.دا ترتيب ځکه مقرر شوي دي.چه د غسل ښي اړخ نه پيل کول موجود شي.ځکه چې په ښي طرف پيل کول سنت ده.

ثُمَّ يُجْلِسُهُ وَيُسْنِدُهُ إِلَيْهِ بيا به غسل ورکونکے مړے کينوي.اوخپل ځان ته دې اډانه کړي وَيَمْسَحُ بَطْنَهُ مَسْحًا رَفِيقًا تَحَرُّزًا عَنْ تَلْوِيثِ الْكَفَنِ مړی نس دے رُو رُو اُومګي.دکفن خرابيدو نه دبچکيدو په غرض.

تشريح:- مسح البطن رفيقا۞بيا دې غسل ورکونکے خپل ځان مړي ته اډانه کړي.اوکينوي دې.اوپه نرمۍ دے د مړي نس اومګي.دا مګل په دې وجه دی.که د مړي په نس کي څه شي وي.هغه اوځي.چه روسته کفن خراب نه کړي.په دې سلسله کي اصل دا روايت دي. ﴿إن علياً لما غسل رسول الله ﷺ مسح بطنه بيده رفيقاً طلب منه ما يطلب من الميت فلم ير شيئاً فقال طبت حياً وميتاً﴾ يعنی حضرت علی چه کله رسول الله ﷺ ته غسل ورکولو.نوپه خپل لاس ئې رو رو ددوی نس اومګله .اومقصود هغه شی طلب کول وو.چه د مړي نه طلب کولې شي.يعنی د حضرت علی منشاء دا وه.چه کيداې دنبی کريم ﷺ دخيټې نه څه څيزاوځي.خوڅه هم اونه وتل.نوحضرت علی ووئيل .تاسو په ژوند او مرګ دواړوکي پاک ئې.

فَإِنْ خَرَجَ مِنْهُ شَيْءٌ بيا که د مړي د خيټې نه څه اووتل غَسَلَهُ نوهغه دې اووينځي وَلَا يُعِيدُ غُسْلَهُ وَلَا وُضُوءَهُ او د ده غسل اواودس دې دوباره نه کوي. لِأَنَّ الْغُسْلَ عَرَفْنَاهُ بِالنَّصِّ ځکه چې غسل ورکول خو موږ د نص نه پيژندلې دی وَقَدْ حَصَلَ مَرَّةً او هغه يو ځل حاصل شو.بيا دې د مړي بدن په کپړه اوچ ثُمَّ يُنَشِّفُهُ بِثَوْبٍ كَيْ لَا تَبْتَلَّ أَكْفَانُهُ کړي.چې دده کفن لوند نشي.

تشريح:- عدم اعادة الغسل بعد خروج شئ۞دخيټې مګولو نه روسته که دمړي د ګيډے نه څه شی راؤوتلو.نو دا دې اووينځي.او د غسل ور کاوه د اعاده اړتيا نشته.اوداودس کاوه څه اړتيا نشته.ځکه چې د مړي غسل موږ په نص پيژندلې دي.نبی کريم ﷺ فرمائيلي دی.چه د مسلمان په مسلمان شپږ حقونه دی.په دې کي يود مړي غسل دي.بهرحال د مړي غسل چې واجب دي.په يوځل دغسل ورکولوسره حاصل شوي دي.اوس دوباره دغسل ور کاوه اړتيا نه دې پاتې.دغسل نه د فراغت نه روسته د مړي بدن په پاکې کپړې سره اوچول پکار دی.چه کفن لوند نه شي.

### د مړي د زينت مسنون اعمال

وَيَجْعَلُهُ أَيِ الْمَيِّتَ فِي أَكْفَانِهِ اومړے دې د ده دکفن په کپړو کي کيخودې شی وَيَجْعَلُ الْحَنُوطَ عَلَى رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ او د مړي په سر او ږيره کي دې حنوط اولګولې شی وَالْكَافُورَ عَلَى مَسَاجِدِهِ اودده دسجدې په اندامونودې کافوراولګولې شی لِأَنَّ التَّطَيُّبَ سُنَّةٌ[2] ځکه چې خوشبولګول سنت دی وَالْمَسَاجِدُ أَوْلَى بِزِيَادَةِ الْكَرَامَةِ اودسجدي

---

[1] من حديث عائشة رضي الله عنها روه البخاری فی الصلاة باب ٤٧ ومسلم فی الطهارة رقم ٦٦ وأبوداود فی اللباب باب ٤١ والترمذی فی الجمعة باب ٧٥والنسائی فی الطهارة باب ٨٩ والغسل باب ٧١ وابن ماجه فی الطهارة باب ٤٢ وأحمد فی المسند (٩٣/٦)

[2] خرجت فی ،،سنن الصلاة،، لتطييب الميت [عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ الْأَنْصَارِيَّةِ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ تُوُفِّيَتْ ابْنَتُهُ فَقَالَ اغْسِلْنَهَا ثَلَاثًا أَوْ خَمْسًا أَوْ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ إِنْ رَأَيْتُنَّ ذَلِكَ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ وَاجْعَلْنَ فِي الْآخِرَةِ كَافُورًا أَوْ شَيْئًا مِنْ



اندامونه دعزت د زيات والی ډير مستحق دی

حل اللغة: ① يجعله، جعل جعلاً (ف): کول، جوړول

تشريح:- جعل الكافور في اكفانه۞مړي ته د غسل ورکولونه روسته دې ده ته کفن واغوستلے شي.اود مړي په سر او ږيره کي دې حنوط اولګولې شي.حنوط د يوڅوخوشبوداره څيزونونه د مرکب عطرونوم دې.اوکوم اندامونه چې په سجده کي په مځکه لګي.(تندې ، پوزه،دواړه لاسونه،دواړه ګونډۍ ، دواړه قدمونه)په دې باندې دې کافور اولګولې شي.

دليله۞دليل دا دې.چه د مړي بدن خوشبوداره کول سنت دی.اوچونکه په ذکر شوی اندامونو سجده کولې شی.په دې وجه د سجدې اندامونه د عزت زيات لائق دی.اود سنتيت دليل دا دې. دأم عطيه رضي الله عنها حديث دې.چه نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی ﴿واجعلن فی الأخرة كافوراً أو شيئاً من كافور﴾ يعنی په آخر کي د مړي په بدن کافور يا څه خوشبوئ اولګوئ.

وَلَا يُسَرَّحُ شَعْرُ الْمَيِّتِ وَلَا لِحْيَتُهُ اود مړي ويخته او ږيره دې نشی ګومنځ کولې وَلَا يُقَصُّ ظُفْرُهُ او نه دې دده نوکونه کټ کولای شی وَلَا شَعْرُهُ او نه دې ويخته کټ کولای شی لِقَوْلِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: عَلَامَ تَنْصُونَ مَيِّتَكُمْ[1] ځکه چې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائيلی دی.چې په وجه تاسو دخپل مړي تندې نيسئ او ويخته ئې راکاږئ، وَلِأَنَّ هَذِهِ الْأَشْيَاءَ لِلزِّينَةِ اوځکه چې دا شيان (څيزونه ) د زينت لپاره دی وَقَدِ اسْتَغْنَى الْمَيِّتُ عَنْهَا اومړے د زينت نه بے پرواه وی

تشريح:- عدم التسريح وتقليم الاظفار۞امام قدوری رحمه الله فرمائي.چه دمړي به نه په وينښتوکي ګومنځ وهلے شي.او نه په ږيره کي ،اونه به د ده نوکونه کټ کولی شي.اونه وينښته،

دليله۞دليل دادې.چه دحضرت عائشے رضي الله عنها نه د مړي د وينښتو ګومنځولو په باره کي پوښتنه اوشو. نو حضرت عائشے رضي الله عنها اوفرمائيل. ﴿علام تنصون ميتكم﴾ لفظ د ،،علام،، په اصل کي د "علی ما" دې. يعنی،، ما ،، استفهاميه،،علی،،حرف جر داخل شوې دې.بيا ددې الف ساقط شو ، لکه د الله تعالی قول په ﴿لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِيَةِ﴾ کي (نصا ينصوې نصواً) معنی ده.تندې نيول او راښکل بهرحال حضرت عائشه رضي الله عنها په ځواب کي اوفرمائيل.تاسودخپل مړي تندې ولې نيسئ اوراکاږئ.ګويا حضرت عائشه رضي الله عنها د مړي په ويختو ګومنځولود ناراضګۍ اوناخوښئ اظهار اوکړلو.او ګومنځولو نه ئې دتندی نيولو اوراښکلو سره تعبيرکړې دې.

وَفِي الْحَيِّ كَانَ تَنْظِيفًا اوپه ژوندی کي نظافت وی لِاجْتِمَاعِ الْوَسَخِ تَحْتَهُ ځکه چې د ده لاندې خيرے ميرے جمع کيدو وَصَارَ كَالْخِتَانِ او دا د ختنه کاوه پشان شو.

تشريح:- وجه استحباب التسريح وتقليم الظفارفي الحي۞او پاتې شو د ژوندی خلګو په دې څيزونو عمل کول، نو ددې وجه داده.چه د نوکونو او وينښتو وغيره لاندې د خيرے جمع کيدو په وجه د پاکۍ لپاره دوی ته ددې اجازت شوې دې.اودا د ختنے په شان شو.لکه چې د ژوندی سړو ختنه مسنون ده.اومړے که بے ختنے وی.نوزمونږاود امام شافعی رحمه الله په نيز په اتفاق ختنه نشی کولې.والله اعلم.

---

كَافُورٍ فَإِذَا فَرَغْتُنَّ فَآذِنَّنِي قَالَتْ فَلَمَّا فَرَغْنَا آذَنَّاهُ فَأَعْطَانَا حِقْوَهُ فَقَالَ أَشْعِرْنَهَا إِيَّاهُ تَعْنِي بِحِقْوِهِ إِزَارَهَا كذا فی الموطا للمالک فی الجنائز باب غسل الميت رقم ٤٦٥ رجاله ثقات)_

[1] خرجته فی ،،سنن الصلاة،، عن إبراهيم أن عائشة أم المؤمنين(ها) رأت ميتاً يسرح رأسه فقالت علام تنصتون ميتكم. كذا فی كتاب الآثار فی الصلاة باب الجنائز وغسل الميت رقم ٣٨٢(٧٨)_

# فصل في التكفين

ژباړه:- (دا) فصل د كفن ور كاوه په بيان كي دې.

**تشريح:**- په مسلمانانو كفن وركول فرض كفايه دې. ځكه په فرضو مقدم وى. نوكه مړے مالداروى. نو هم دده د مال نه واجب دې. ګنى په چا چې د ده نفقه وى. د امام ابويوسف رحمه الله په نيز د ښځے كفن په خاوند دې. اګرچه ښځه مالداره وى. اوهم په دې فتوىٰ ده. اوپه مالداره ښځه دغريب خاوند كفن نشته.

## د سړى لپاره مسنون كفن

**السُّنَّةُ أَنْ يُكَفَّنَ الرَّجُلُ فِي ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ إِزَارٍ وَقَمِيصٍ وَلِفَافَةٍ** سنت دا دى. چې سړى ته په درې جامو، لنګ قميص او او پټو (څادر) كي كفن وركړې شى

**حل اللغة*** ① **يكفن، كفن تكفينا:** كفن وركول ② **اثواب واحد ثوب:** كپړه

**الكفن المسنون﴿﴾** په دې عبارت كي د كفن مسنون بيان دې. كفن مسنون د سړو په حق كي درې كپړې دى. ① ازار، يعنى لنګ خود سرنه پښنو پورې مراد دې. ② كرته د څټ نه قدم پورې بغيرد لستوڼو او د كالر نه ③ پټو (څادر) د سر نه پښنو پورې چې د لوړې څخه (پورته نه) تړلے شى.

**لِمَا رُوِيَ {أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كُفِّنَ فِي ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ بِيضٍ سَحُولِيَّةٍ}**(١) روايت سوى دى. چې نبى كريم ﷺ ته د سحوليه درې سپينو جامو كي كفن سوى وو

**حل اللغة*** ① **بيض:** سپين

**تشريح:**- **الاقسام الثلاثة للكفن﴿﴾** كفن په درې قسمه دې. ① كفن مسنون ② كفن كفايه ③ كفن اړتيا (ضرورت)

**تشريح:**- د دريو جامو په مسنونيت دليل دادې. چه نبى كريم ﷺ ته په سحوليه سپينو جامو كي كفن وركړې شوې وو. ،،سحول،، د سين په فتحه يا ضمه سره د يمن د يوكلى نوم دې. په ابوداؤد كي د حضرت عائشه رضي الله عنها حديث دې. چه نبى كريم ﷺ په دريو جامو كي كفن شوې وو. يوه هغه كُرته په كومه كي چې نبى كريم ﷺ وفات شوې وو. او يوه نجرانى جوړه. او جوړه په دريو جامو مشتمله وى

**وَلِأَنَّهُ أَكْثَرُ مَا يَلْبَسُهُ عَادَةً فِي حَيَاتِهِ** اوبه دې وجه چې د عادت په طور دا مقدار دده په ژوند كي د اغوستلو په اعتبار سره زيات وو **فَكَذَا بَعْدَ مَمَاتِهِ** نود مرګ نه روسته به هم داسې وى.

**حل اللغة*** ① **يلبسه، لبس لبسا (س):** اغوستل

**تشريح:**- دوهم دليل دادې چې انسان په ژوند كي په عامه توګه درې جامے اغوندى. نود مرګ نه روسته به هم ده ته درې جامے اغوستلى شى.

## په دوي [دوه] جامو د اكتفاء كولو حكم

**فَإِنِ اقْتَصَرُوا عَلَى ثَوْبَيْنِ جَازَ** اوكه دوى په دوو جامو اكتفا وكړه. نوجائزده **وَالثَّوْبَانِ إِزَارٌ وَلِفَافَةٌ** اودا دوې [دوه] جامے به لنګ او پټو (څادر) وى **وَهَذَا كَفَنُ الْكِفَايَةِ** اودا كفن كفايه دې

**حل اللغة*** ① **اقتصر، اقتصر اقتصارا:** كفايت كول ② **جاز، جاز جوازا (ن):** جائز كيدل .

**لِقَوْلِ أَبِي بَكْرٍ** رضي الله عنه ځكه چې صديق اكبر رضي الله عنه فرمائيلى دى **اغْسِلُوا ثَوْبَيَّ هَذَيْنِ وَكَفِّنُونِي فِيهِمَا** (١) زما دا دوې

(١) خرجته فى ،،سنن الصلاة،، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُفِّنَ فِى ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ لَيْسَ فِيهَا قَمِيصٌ وَلَا عِمَامَةٌ أخرجه البخارى فى الجنازة باب الكفن بغير قميص رقم ١١٩٣)_



[دوه] جامے اووينځئ اوما هم په دې كي كفن كړئ.

**تشريح:**- دكفن كفايه لپاره دصديق اكبر رضي الله عنه په قول استدلال شوې دې. په مصنف عبدالرزاق كي دى. ﴿عن عائشة رضي الله عنها قالت قال أبوبكر لثوبيه الذين كان يمرض فيهما اغسلوهما و كفنوني فيهما فقالت عائشة ألا نشترى لك جديدا فقال لا ، الحى أحوج إلى الجديد من الميت﴾ حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى. چه زما پلار محترم ابوبكر رضي الله عنه اوفرمائيل. د هغه جامو په اړه كي په كومو كي چې دوې رضي الله عنه بيمار شوى وو. دا دواړه اووينځئ. او ما هم په دې دواړو جامو كي كفن كړئ. عائشه رضي الله عنها عرض اوكړلو. آيا مونږستا لپاره نوې جامے وانخلو؟. نو هغوى ووېل نه. ژوندے سړې د نوې جامو زيات مستحق دې. په نسبت د مړي. (فتح القدير)

**وَلِأَنَّهُ أَدْنَى لِبَاسِ الْأَحْيَاءِ** اودا د ژوندو ادنىٰ لباس دې

**حل اللغة*** ① **احياء واحد حى:** ژوندې

**تشريح:**- **كفن الكفاية﴿﴾** په دې عبارت كي د سړى د كفن كفايه بيان دې. د سړى په حق كي دوې [دوه] جامے دى. يولنګ دوهم پټو (څادر)

**تشريح:**- عقلى دليل دادې. چه د ژوندى ادنىٰ لباس دوې [دوه] جامے دى. نود مرګ نه روسته هم په دوې [دوه] جامو اكتفاء كول جائزدى.

**وَالْإِزَارُ مِنَ الْقَرْنِ إِلَى الْقَدَمِ** او لنګ د څټ نه د قدم پورې وى **وَاللِّفَافَةُ كَذَلِكَ** اوڅادر هم داسې وى **وَالْقَمِيصُ مِنْ أَصْلِ الْعُنُقِ إِلَى الْقَدَمِ** اوكُرته د څټ نه د قدمه پورې وى.

**تشريح:**- **كيفية الاثواب الثلاثة﴿﴾** علامه مرغينانى رحمه الله ددې درې واړو تفصيل بيان كړې دې. چه لنګ د سر نه د قدم پورې وى. اوڅادر هم ددې په اندازه وى. اوكُرته د څټ نه د قدم پورې وى. خونه په دې كي جيب وى نه كالر او نه لستوڼې.

## په كفن كښې د انغښتلو طريقه

**فَإِذَا أَرَادُوا لَفَّ الْكَفَنِ** اوكله چې ورته كفن اچول اوغواړئ **ابْتَدَءُوا بِجَانِبِهِ الْأَيْسَرِ** نود دې د چپه طرفه دې پيل كړى **فَلَفُّوهُ عَلَيْهِ ثُمَّ بِالْأَيْمَنِ** نو چپه به په مړى راواړه كړى. بيا به ښے اړخ راواړه كړى. ځنګه چې د **كَمَا فِي حَالِ الْحَيَاةِ** ژوند په حالت كي كولاى شى **وَبَسْطُهُ أَنْ تُبْسَطَ اللِّفَافَةُ أَوَّلًا** اود كفن خورولو صورت دادې. چې اول پټو (څادر) خوركړې شى **ثُمَّ يُبْسَطَ عَلَيْهَا الْإِزَارُ** بيا په دې لنګ خور كړې شى **ثُمَّ يُقَمَّصَ الْمَيِّتُ** بيا مړى ته قميص واغوندلے شى **وَيُوضَعَ عَلَى الْإِزَارِ** اوپه لنګ كيخودلے شى **ثُمَّ يُعْطَفَ الْإِزَارُ مِنْ قِبَلِ الْيَسَارِ** بيا د چپه اړخ نه لنګ راواړه كړې شى **ثُمَّ مِنْ قِبَلِ الْيَمِينِ** بيا د ښى اړخ نه **ثُمَّ اللِّفَافَةُ كَذَلِكَ** بيا هم په دې طريقه پټو (څادر) اوكړې شى **وَإِنْ خَافُوا أَنْ يَنْتَشِرَ الْكَفَنُ عَنْهُ عَقَدُوهُ** [دوه] **بِخِرْقَةٍ صِيَانَةً عَنِ الْكَشْفِ** اوكه د مړى نه دكفن خوريدو نه ويريږى. نودا دې په پټئ اوتړى. چې د خوريدو نه محفوظ شى

**حل اللغة*** ① **ارادوا، اراد ارادة:** غوښتل، اراده كول ② **لف:** راغونډول ③ **جانب:** اړخ ④ **ايسر:** چپه ⑤ **حيوة:** ژوند ⑥ **بسط:** خورول ⑦ **يوضع، وضع وضعا (ف):** ساتل ⑧ **قبل:** وړاندې ⑨ **خافوا، خاف خوفا (س):** ويريدل ⑩ **ان ينتشر، انتشر انتشارا:** خوريدل، پرانستل

**تشريح:**- **كيفية تكفين الميت﴿﴾** مړى ته د كفن اچولو كيفيت دا دې. چه اول پټو (څادر) خوركړى. ددې سربيره لنګ

(١) من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه أحمد فى المسند فى ،،كتاب الزهد،، (ص،١٣٦)وعبدالرزاق فى مصنفه (٣/٤٢٣، ٤٢٤، رقم ٦١٧٨)_

خور کړی.او مړی ته قمیص واغوندی.اوپه لنګ ئې خور کړی.بیا د لنګ چپه اړخ راواړه کړی .بیا ښے اړخ ،چه ښیٔ برخه اوچته شی.هم په دغه طریقه پټو (څادر) را واړه شی.

**استحباب الثوب البیض** دکفن لپاره د سوت سپینه‌کالی افضله ده.ځکه چې د رسول پاک ﷺ ارشاد دې «البسوي من البیاض فانه من خیر ثیابکم وکفنوي فیها موتاکم» (رواه ابوداوٗد)یعنی رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.چه سپینے جامے اغوندیٔ.ځکه چې دا بهترینے جامے دی.اوهم په دې کي خپلو مړو ته کفن ورکویٔ.

## د ښځې مسنون كفن

وَتُكَفَّنُ الْمَرْأَةُ فِي خَمْسَةِ أَثْوَابٍ وښځه به په پنځو جامو کي کفن کولای شی دِرْعٍ وَإِزَارٍ وَخِمَارٍ وَلِفَافَةٍ وَخِرْقَةٍ تُرْبَطُ فَوْقَ ثَدْيَيْهَا قمیص،لنګ،لوپټه،څادر لوپټه او یوه پټۍ،چې د دې سینے پرې اوتړ لی شی

**حل اللغة**: ① درع: قمیص ② خمار: لوپټه ③ خرقة: رینبه،پټۍ ④ ثدی: سینه

**تشریح:- سنیة الاثواب الخمسة في کفن العورة** په دې عبارت کښ د ښځې د سنت کفن بیان دې.فرمائی‌چه دښځے مسنون جامے پنځه دی.① کُرته ② لنګ ③ پټو (څادر) ④ لوپټه ⑤ دجامے‌هغه پټۍ چې په هغې ددې سینے تړ لی شی. یعنی سینه بند ،

لِحَدِيثِ أُمِّ عَطِيَّةَ دلیل دام عطیه رضي الله عنها حدیث دې {أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ أَعْطَ اللَّوَاتِي غَسَّلْنَ ابْنَتَهُ خَمْسَةَ أَثْوَابٍ [1] چې کومو ښځود نبی کریم ﷺ لوُرته غسل ورکولو هغوی‌ته نبی کریم ﷺ د کفن لپاره پنځه جامے ورکړی وی

**تشریح:-** دلیل دام عطیه رضي الله عنها حدیث دې.چه کله د نبی کریم ﷺ لوُر زینب رضي الله عنها وفات شوه . نوکومو ښځوچه دوی ته غسل ورکولو.نبی کریم ﷺ هغوی ته دکفن لپاره هم دا پنځه جامے ورکړې وې

وَلِأَنَّهَا تَخْرُجُ فِيهَا حَالَةَ الْحَيَاةِ اوځکه چې ښځه په ژوند کي په دې پنځو جامو کي اوسیږی فَكَذَا بَعْدَ الْمَمَاتِ نوهم‌په‌دغه‌طریقه‌دمرګک‌نه‌روسته‌هم‌ده ثُمَّ هَذَا بَيَانُ كَفَنِ السُّنَّةِ بیا دا دسنت کفن بیان دې

**تشریح:-** عقلی دلیل دادې.چه په ژوند کي په عامه توګه‌ښځه په پنځو جامو کي اوځی.هم په دې قیاس کولوسره د مرګک نه روسته هم دې ته پنځه جامے ورکړې شوی دی. وإن إقتصروا علی ثلاثة أثواب کي ښځے د کفن کفایه بیان ذکرشوېدې.

وَإِنْ اقْتَصَرُوا عَلَى ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ جَازَ اوکه اکتفاء ئی وکړه په درې جامو نودا هم جائزده وَهِيَ ثَوْبَانِ وَخِمَارٌ اوهغه‌دریک جامے لنګ،څادر اولوپټه ده وَهُوَ كَفَنُ الْكِفَايَةِ اودا کفن کفایه دی وَيُكْرَهُ أَقَلُّ مِنْ ذَلِكَ اود دې نه کم مکروه دی

**تشریح:- کفن الضرورة للمراة** د ښځې دکفن کفایه درې جامے دی.① لنګ ② دوهم پټو (څادر) ③ څادر ،د دریونه په کمو جاموکي د ښځے کفن کول.که بغیر ضرورته وی.نومکروه دی.ګنی‌جائزدی.اودې ته به کفن اړتیا ونیلی شی.

---

[1] غربه الزیلعی من حدیث أم عطیة وخرجت فی ،،سنن الصلاة،، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي عُرْوَةَ بْنِ مَسْعُودٍ يُقَالُ لَهُ دَاوُدُ قَدْ وَلَّدَتْهُ أُمُّ حَبِيبَةَ بِنْتُ أَبِي سُفْيَانَ زَوْجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ لَيْلَى بِنْتَ قَانِفٍ الثَّقَفِيَّةَ قَالَتْ كُنْتُ فِيمَنْ غَسَّلَ أُمَّ كُلْثُومٍ بِنْتَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ وَفَاتِهَا فَكَانَ أَوَّلُ مَا أَعْطَانَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحِقَاءَ ثُمَّ الدِّرْعَ ثُمَّ الْخِمَارَ ثُمَّ الْمِلْحَفَةَ ثُمَّ أُدْرِجَتْ بَعْدُ فِي الثَّوْبِ الْآخَرِ قَالَتْ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ عِنْدَ الْبَابِ مَعَهُ كَفَنُهَا يُنَاوِلُنَاهَا ثَوْبًا ثَوْبًا أخرجه ابوداود فی الجنائز باب فی کفن المرأة رقم ٢٧٤٥ رجاله ثقات)۔



وَفِي الرَّجُلِ يُكْرَهُ الِاقْتِصَارُ عَلَى ثَوْبٍ وَاحِدٍ إِلَّا فِي حَالَةِ الضَّرُورَةِ اود سړی په حق کي په یوه‌کالی اکتفاء کول مکروه دی.خود اړتیا په وخت کي

**تشریح:- کفن الکفایة للرجل** هم په دغه طریقه د سړی په کفن کي په یوې جامے‌اکتفاء کول مکروه دی .خوکه د اړتیا په وجه وی.نوجائزدی.اود سړی یوه‌کالی کفن اړتیا دې.

لِأَنَّ مُصْعَبَ بْنَ عُمَيْرٍ رضي الله عنه حِينَ اسْتُشْهِدَ ځکه چې مصعب بن عمیر رضي الله عنه چې کله شهید سو كُفِّنَ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ [1] نوهم په یوه‌کالی کي کفن کړی سوی وو وَهَذَا كَفَنُ الضَّرُورَةِ او دا کفن د اړتیا (ضرورت) دی .

**تشریح:-** دلیل دخباب ابن ارت رضي الله عنه حدیث دې. «قال هاجرنا مع النبی ﷺ لوجه الله تعالی فوقع اجرنا علی الله فمنا من یمضی ولم یأخذ من اجره شیئاً منهم مصعب بن عمیر رضي الله عنه قتل یوم احد وترک نمرة فکنا إذا غطینا بها رأسه بدت رجلاه وإذا غطینا بها رجلیه بدأ رأسه فأمرنا رسول الله ﷺ أن نغطی رأسه وأن نجعل علی رجلیه شیئاً من الاذخر» خباب بن ارت رضي الله عنه فرمائی.چه مونږ د رسول الله ﷺ سره صرف د الله تعالی د رضا لپاره هجرت اوکړو.نو زموږ اجر په الله تعالی دې.په مونږ کي چې کوم خلګ تیرشول.اوهغوی په دنیا کي هیڅ برخه اونه موندله.په هغوی کي مصعب بن عمیر رضي الله عنه هم وو.چه د اُحد په جنګ کي شهید شو .دوی یوه ګرښے دار پټو (څادر) پریښولې (پریخودې) وو.کله چې به پرې د ده سر پټولو.نو پښے‌به ئې ښکاره شوې .اوچه پښے به مو پټولې.نوسریه ئې ښکاره شو.مونږ‌ته رسول الله ﷺ حکم اوکړو.چه د مصعب رضي الله عنه سر پټ کړو.او په پښو ئې د واښه واچوو.

## مړی ته د كفن اغوستلو طريقه

وَتَلْبَسُ الْمَرْأَةُ الدِّرْعَ أَوَّلًا وښځے‌ته به اول کُرته اچولےشی ثُمَّ يُجْعَلُ شَعْرُهَا ضَفِيرَتَيْنِ عَلَى صَدْرِهَا فَوْقَ الدِّرْعِ، ثُمَّ الْخِمَارُ فَوْقَ ذَلِكَ بیا به ددې ویښته دوې [دوه] کوڅیو کړې شی .چې دکُرتے د پاسه په سینه کیخودے شی تَحْتَ الْإِزَارِ ثُمَّ الْإِزَارُ تَحْتَ اللِّفَافَةِ بیا په دې پټو (څادر) بیا د پټو (څادر) لاندې لنګ وراغوستلے شی

**حل اللغة**: ① لبس، لبس لبساً(س): اغوستل ② درع: قمیص ③ یجعل، جعل جعلاً (ف):کول، جوړول ④ شعر: ویښته ⑤ ضفیر: کومسې ⑥ صدر: سینه

**تشریح:-** عبارت واضح دې.

## كفن ته د خوشبوئی لوګې كولو حكم

قال فرمائی قَالَ: وَتُجَمَّرُ الْأَكْفَانُ خوشبوئی به لوګے کړې شی .کفن ته قَبْلَ أَنْ يُدْرَجَ فِيهَا وِتْرًا مخکي ددې نه چې مړے په کي اونغښتے شی

**حل اللغة**: ① تجمر، جمر تجمیراً: لوګې ورکول ② یدرج، ادرج، ادرې جاً: داخلول

**تشریح:- سنیة تجمیر الکفن** په دې عبارت کي دکفن ته د خوشبوئی لوګے کولوحکم ذکر شوې دې.اجمار خوشبولوګے کول دی.اوخوشبو لوګے کول طاق ځل سنت دی.

لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَمَرَ بِإِجْمَارِ أَكْفَانِ ابْنَتِهِ وِتْرًا [1] ځکه چې رسول الله ﷺ د خپلے لوُر کفن ته طاق ځل د خوشبو

---

[1] خرجته فی ،،سنن الصلاة،، عَنْ خَبَّابٍ قَالَ إِنَّ مُصْعَبَ بْنَ عُمَيْرٍ قُتِلَ يَوْمَ أُحُدٍ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ إِلَّا نَمِرَةٌ كُنَّا إِذَا غَطَّيْنَا بِهَا رَأْسَهُ خَرَجَ رِجْلَاهُ وَإِذَا غَطَّيْنَا رِجْلَيْهِ خَرَجَ رَأْسُهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَطُّوا بِهَا رَأْسَهُ وَاجْعَلُوا عَلَى رِجْلَيْهِ شَيْئًا مِنَ الْإِذْخِرِ أخرجه ابوداود فی الجنائز باب کراهیة المغالات فی الکفن رقم ١١٨٦ رجاله ثقات إلا محمد بن کثیر فإنه قد أختلف فیه)۔

لوګے کولوحکم کړي وو وَالْإِجْمَارُهُوَالتَّطْيِيبُ او اجمار، خوشبودار لوګے کول دی فَإِذَافَرَغُوامِنْهُ صَلَّوْاعَلَيْهِ کله چې د دې نه فارغ شي .نوپه مړی دے لمونځ اوکړی لِأَنَّهَافَرِيضَةٌ ځکه چې لمونځ د جنازے فرض دی

**حل اللغة** * ① تطیب: خوشبوئ لګول ② فرغو، فرغ فراغة (س): اوزګاریدل

**تشریح:- دلیله**۞ لکه څنګه چې په دې حدیث شاهد دې.کوم چې په متن کي ذکر دې. د کفن نه د فراغت نه روسته به په ده د جنازے لمونځ کولې شي.ځکه چې د جنازے لمونځ فرض کفایه دې.

## فصل في الصلوة على الميت

ژباړه:- (دا) فصل په مړی د لمونځ کاوه په بیان کي دې.

**تشریح:- ①دلائل فرضية صلاة الجنازة**۞ دجنازے دلمونځ په مشروعیت دالله تعالی قول [وَصَلِّ عَلَيْهِمْ ۖ إِنَّ صَلَوٰتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ] دلیل دې.او د نبی کریمﷺ قول «صلوا علی کل بر وفاجر» دلیل دې.او اجماع د اُمت ده.(کفایه)

②**كون الجنازة فرض كفاية**۞ دجنازے لمونځ فرض کفایه دې.فرض ځکه دے چه "صل" اود رسول اللهﷺ په قول کي "صلوا" د امر صیغه ده.اوامرد وجوب (فرض) موجب دې.او کفایه په دې وجه دې.چه په ټولو خلګو واجب کول یاخو محال دې.اویا په دې کي حرج دې.ځکه ئې په بعضو اکتفاء کړې ده.لکه څنګه چې په جهاد کي دی.

③**سبب وجوب الجنازة**۞ دجنازے دلمونځ د وجوب سبب مړے دې.

**شروط وجوب صلاة الجنازة**۞ ① اوددې دجواز شرط د مړی مسلمان کیدل دی.ځکه چې په کافر لمونځ کول جائز نه دې.دالله تعالی ارشاد دے [وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ ۖ إِنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَمَاتُوا وَهُمْ فَاسِقُونَ] ② او دوهم شرط د مړی طهارت دې.که دغسل ور کاوه نه اول په مړی لمونځ د جنازے اوشی.نو دغسل نه روسته به دجنازے اعاده کولې شي. ③ دریم شرط دا دې.چه جنازه د مصلی مخے ته وی.نو په غائب دجنازے لمونځ کول جائز نه دی. ④ دغه ډول که جنازه د مونځګذارشاته وی.نوجائزنه دے

### په مړي د جنازې د لمونځ حقدار

وَأَوْلَى النَّاسِ بِالصَّلَاةِ عَلَى الْمَيِّتِ السُّلْطَانُ إِنْ حَضَرَ او په مړی دجنازے دلمونځ لپاره د ټولونه غوره بادشاه دې .که جنازے ته حاضر شو لِأَنَّ فِي التَّقَدُّمِ عَلَيْهِ ازْدِرَاءً بِهِ ځکه چې د بادشاه نه په مخکي کیدو کي د بادشاه په حق کي سپکوالے دې

**حل اللغة** * ① حضر، حضر حضوراً (ن): حاضریدل ② تقدم: وړاندې کیدل ③ تقدیم: وړاندې کول

**تشریح:- استحقاق السلطان ثم القاضی وجوبا**۞ دجنازے دلمونځ دامامت په استحقاق کي ترتیب دا دې.که بادشاه حاضرشو.نودجنازے د امامت د ټولونه زیات مستحق هغه دې.ځکه چې د بادشاه په موجودګئ کي بل څوک امام جوړیدو کي د بادشاه توهین دې.حالانکه بادشاه "ظل الله" دې.نو څوک چې دده عزت کوی.الله تعالی به د هغه عزت کوی.اوڅوک چې دده اهانت کوی. نوالله تعالی به د هغه اهانت کوی.اوکه بادشاه رانغلو.نوبیا به قاضی مستحق د امامت وی.ځکه چې قاضی ته په ټولو ولایت عامه حاصل وی.اګرچه دبادشاه په مقرر کولو سره وی.د دې دواړو تقدیم واجب دې.

[1] غربه الزيلعي رحمه الله من حديث أم إبنته ثم خرج من حديث جابر رضي الله عنه أن النبي ﷺ قال [إذا أجمرتم الميت فأجمروه ثلاثا] رواه ابن حبان في النوع السابع والثمانين من القسم الأول و الحاكم في المستدرک (۳۵۵/۱) والبيهقي في السنن الكبرى (۵۶۸/۳) رقم ۶۷۰۲_



فَإِنْ لَمْ يَحْضُرْ نوکه بادشاه رانغلو فَالْقَاضِي نوقاضی غوره دې لِأَنَّهُ صَاحِبُ وِلَايَةٍ ځکه چې دے صاحب د ولایت دی فَإِنْ لَمْ يَحْضُرْ اوکه قاضی هم رانغلو فَيُسْتَحَبُّ تَقْدِيمُ إِمَامِ الْحَيِّ نودمحلے امام غوره دې لِأَنَّهُ رَضِيَهُ فِي حَالِ حَيَاتِهِ ځکه چې مړے په ژوند کي دده په امامت راضی وو

**حل اللغة** * ① رضیه، رضی رضوانا (س): راضی کیدل ② حال: حالت

**تشریح:- استحباب تقديم امام الحی ثم الولی**۞ اوکه قاضی هم حاضرنشو.نودمحلے امام مخکي کول مستحب دی.ځکه چې مړے په خپل ژوند کي دده په امامت راضی وو.نودمرګ نه روسته به هم د هغه دخوښے امام بهتروی.چه د شریعت مخالفت رانشی.بیا ولی د امامت مستحق دې.اودمړی ولیان به د امامت په حق کي هم په هغه ترتیب وی.کوم ترتیب چې په نکاح کي مذکوردې.

قَالَ ثُمَّ الْوَلِيُّ فرمائی چې بیا د مړی ولی بهتردې وَالْأَوْلِيَاءُ عَلَى التَّرْتِيبِ الْمَذْكُورِ فِي النِّكَاحِ اود مړی ولیان به هم په هغه ترتیب وی.چې په نکاح کي ذکر دی.

**تشریح:- الفرق بين ولاية النكاح والجنازة**۞ خوپه نکاح کي دښځے خوني د ښځے په پلار مقدم دې.اودلته کي پلار په امامت کي غوره دې.اوکه د مړی دوې [دوه] ولیان برابروی.مثلاً د ده دوې [دوه] سکه رونړه وی. نو په دوی کي چې د چا عمر زیات وی.هغه به مقدم وی.خو ده ته دې اختیار نشته.چه په خپل ځائې څوک پردے کس مخکي کړی.البته دا چې دوهم هم راضی وی.

### د غیر ولی د جنازې لمونځ کولو صورت

فَإِنْ صَلَّى غَيْرُ الْوَلِيِّ أَوْ السُّلْطَانِ که د ولی یا بادشاه نه سوې بل چا لمونځ اوکړو أَعَادَ الْوَلِيُّ يَعْنِي إِنْ شَاءَ لِمَا ذَكَرْنَا نو ولی اعاده کولای شی .که زړه ئې غواړی.په هغه دلیل چې موږ ذکرکړې دې أَنَّ الْحَقَّ لِلْأَوْلِيَاءِ چې حق خود مړی د ولیانودې وَإِنْ صَلَّى الْوَلِيُّ اوکه ولی په مړی لمونځ اوکړو لَمْ يَجُزْ لِأَحَدٍ أَنْ يُصَلِّيَ بَعْدَهُ نو د دې نه روسته هیڅ چاته په مړی لمونځ کول جائز نه دی

**حل اللغة** * ① صلی، صلی صلاة: لمونځ کول ② اعاد، عاد اعادة: واروسته کول ③ شاء، شاء شیئاً (ف): غوښتل ④ لم یجز، جاز جوازاً (ن): جائزکیدل

**تشریح:- حكم اعادة الجنازة للسلطان والولی**۞ مسئله دا ده.که په مړی د ولی او بادشاه نه سوې بل چا لمونځ اوکړو.نوولی ته د جنازے د لمونځ راګرځولو حق حاصل دې.اوکه بادشاه لمونځ اوکړو.یا هغه سړی لمونځ اوکړو.څوک چې د جنازے د لمونځ د امامت په ترتیب کي په ولی مقدم دې.نوولی ته د اعادے حق نشته.

①**عدم اعادة غيرالولی**۞ ① اوکه ولی د جنازے لمونځ اوکړو.نوددې نه روسته هیڅ چاته په مړی دلمونځ کاوه اجازت نشته.دلیل دادې.چه د ولی په لمونځ کاوه سره فرض ادا شو.اونفل د جنازے په لمونځ کي مشروع نه دی.ځکه د ولی دلمونځ نه روسته هیڅ چاته د لمونځ کاوه حق نشته.دا زموږ مذهب دې.

لِأَنَّ الْفَرْضَ يَتَأَدَّى بِالْأَوَّلِ ځکه چې فرض خو په اول ځل سره ادا شو وَالتَّنَفُّلُ بِهَا غَيْرُ مَشْرُوعٍ او د جنازے په لمونځ کي نفل مشروع نه دی وَلِهَذَا رَأَيْنَا النَّاسَ تَرَكُوا عَنْ آخِرِهِمُ الصَّلَاةَ عَلَى قَبْرِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ هم دا وجه ده.چې خلګو د اول نه واخله ترآخره پورې د نبی کریمﷺ په قبر لمونځ کول پریخی دی وَالسَّلَامُ وَهُوَ الْيَوْمَ كَمَا وُضِعَ. حالانکه نبی کریمﷺ نن هم هغه شان دې .لکه څنګه چې په قبر کي کیخودے شوې وو.

**حل اللغة** * ① تنفل: نفل لمونځ کول ② ترکوا، ترک ترکاً (ف): پریښول ③ وضع، وضع وضعاً (ف): ساتل

**تشریح:- دلیله**۞ دلیل تیر شوې دې.چه ولی یا بادشاه کي چې چا مخکي لمونځ کړې وی.د هغه په کاوه فرض ادا شوې دی.او د جنازے په لمونځ کي نفل مشروع نه دی.هم دغه وجه ده.چه د نبی کریم ﷺ په قبر مبارک ټولو خلګو لمونځ کول ترک کړی دی.اوکه د جنازے په لمونځ کي نفل مشروع وے، نو په اجتماعی طور به دا

نه شو ترك كولې.په دې سره حال كې چې رسول اكرم سيدالامم ﷺ نن هم په خپل قبر كې هم هغه شان آرام فرما دې.څنګه چې نبي كريم ﷺ دفن كړې شوې وو.ځكه چې د نبيانو عليهم السلام غوښه په مځكه حرام ده.د نبيانو عليهم السلام جسم مځكه نشي متغير كولې.

## د جنازې د لمونځ نه كېدو په صورت كښې په قبر د لمونځ حكم

| |
|---|
| وَإِنْ دُفِنَ الْمَيِّتُ وَلَمْ يُصَلَّ عَلَيْهِ او كه مړے په دې سره حال كې دفن شي .چې په ده لمونځ نه وى شوې صُلِّيَ عَلَى قَبْرِهِ نو دده په قبر دے لمونځ اوكړې شي لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ صَلَّى عَلَى قَبْرِ امْرَأَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ(١) ځكه چې نبي كريم ﷺ د يوې انصارى ښځې په قبر لمونځ كړې وو |

حل اللغة* ① دفن، دفن دفناً (ض): خښول ② ولم يصل صلى صلاة: لمونځ كول

تشريح:- الصلاة على ا لقبر۞مسئله داده.كه مړے بغير د لمونځ نه دفن كړې شو.نو دده په قبر دے لمونځ اوكړې شي.دليل دادې.چه يوه انصارى ښځه په دې سره حال كي دفن كړې شوې وه.چه نبي كريم ﷺ په هغې لمونځ نه وو كړې.نبي كريم ﷺ ته چې كله ددې علم اوشو.نو ددې په قبر ئې لمونځ اوكړو.

| |
|---|
| وَيُصَلِّي عَلَيْهِ قَبْلَ أَنْ يَتَفَسَّخَ او په قبر دے لمونځ اوكړې شي .د مړى پړسيدو چودو نه مخكې وَالْمُعْتَبَرُ فِي مَعْرِفَةِ ذَلِكَ أَكْبَرُ الرَّأْيِ هُوَ الصَّحِيحُ او ددې په پيژندو كې معتبره غالبه رائې ده.هم دا صحيح ده |

تشريح:- حكم الصلاة على القبر قبل التفسخ۞صاحب د قدورى رحمه الله فرمائى چې په قبر دلمونځ كاوه اجازت دمړى خرابيدو او د اندامونو د جداكيدو نه مخكې مخكې دې.د پړسيدو او چودلو نه روسته اجازت نشته. علامه مرغينانى رحمه الله وئيلى دى.چه د پړسيدو او چودلو په شناخت كې غالبه رائې معتبر ده .يعنى دكومې پورې چې غالب ګمان دا وى.چه لاش پړسيدلے يا چودلے نه دې.نو په قبر به د جنازې لمونځ كولې شى.او كله چې د پړسيدو او چودلو غالب ګمان اوشو.نو اوس به دا اجازت نه وى.هم دا صحيح قول دې. ② امام ابويوسف رحمه الله وئيلى دى.چه د تدفين نه روسته درې ورځو پورې په قبر لمونځ كول جائز دى.دے نه روسته جائز نه دى.

| |
|---|
| لِاخْتِلَافِ الْحَالِ وَالزَّمَانِ وَالْمَكَانِ ځكه چې حال، زمانه او مكان مختلف وى |

تشريح:- دليل القول الاصح۞د قول صحيح دليل دادې.چه د لاش خرابيدل د مړى د حال په اختلاف سره مختلف وى.غټ په نسبت د نرى اُوچ زر خرابيږى اوميده كيږى.دغه ډول د موسم او مكان په اختلاف سره هم مختلف كيږى.د ګرمئ او د باران په موسم كې په نسبت د يخنئ د موسم زر خرابيږى.او په شړلنه لنده مځكه كې په نسبت د اوچے زمكے زر خرابيږى.كله چې غالب ګمان معتبر دې.نوكه غالب ګمان دا وى.چه د دريو ورځو نه مخكې لاش رژيږى او خرابيږى.نو په دې به لمونځ نشى كولې.اوكه غالب ګمان دا وى.چه د دريو ورځو نه روسته هم نه خرابيږى.نو په دې دريو ورځو نه روسته هم د لمونځ كاوه اجازت شته.

الجوابان من الصلاة على شهداء الاحد۞پاتې شوه دا چې نبي كريم ﷺ اته كاله روسته د اُحد په شهيدانو لمونځ كړې وو. ① نو ددې ځواب دا دې.چه نبي كريم ﷺ د اُحد د شهيدانو لپاره دعا كړې وه.د هغې نه په لفظ د «صل» سره تعبير شوې دې. ② دوهم ځواب دادې.چه د شهيدانو جسمونه چونكه هم نه خرابيږى او نه

---

(١) من حديث خارجة بن زيد بن ثابت عن عمه يزيد بن ثابت موارد الظمان إلى زوائد ابن حبان (ص١٩٣٠) رقم ٧٥٩) ورواه أيضاً الحاكم فى المستدرك (٥٩١/٣) وأحمد فى المسند (٣٨٨/٤) والطحاوى فى شرح الآثار (٢٩٥/١) والبيهقى فى السنن الكبرى (٧٩/٤) رقم ٧٠١٨) وفى ،معرفة السنن والآثار رقم ٢١٦٣)_



## د لمونځ كولو طريقه

| |
|---|
| وَالصَّلَاةُ أَنْ يُكَبِّرَ تَكْبِيرَةً اودجنازې د لمونځ طريقه دا ده.چې تكبير ووايي يَحْمَدُ اللهَ عَقِيبَهَا ددې تكبير نه روسته د الله تعالى ثناء ووايي ثُمَّ يُكَبِّرَ تَكْبِيرَةً بيا به تكبير ووايي په تكبير وئيلو سره |

حل اللغة* ① يحمد،حمد حمداً (س): تعريف كول ② عقيب: روستو

تشريح:- الثناء بعدالتكبير الاول۞ په دې عبارت كې د جنازې د لمونځ كيفيت بيان شوې دې. رمائى.چه د جنازې لمونځ د څلورو تكبيرونو نوم دې.تفصيل دادې.چه د نيت نه روسته به تكبير د افتتاح اووائى. ودواړه لاسونه به غوږونو پورې اوچت كړى.دے نه روسته به د الله ثناء اووائى.يعنى الحمدلله او ددې په شان كلمات به اووائى.اوبعضو وئيلى دى.چه «سبحانك اللهم و بحمدك ...الخ» دے اووائى.لكه څنګه چې په نورو مونځونو كې دى.

المذهبان في قراءة الفاتحة۞ ① زمونږ په نيز د اولنى تكبير نه روسته د سورة فاتحه لوستل مشروع نه دى. ② حضرت امام شافعى رحمه الله د قرات فاتحه قائل دې.

دليل الشافعى رحمه الله ۞امام شافعى رحمه الله د جنازې لمونځ په نورو مونځونو قياس كړې دې.نو څنګه چې په نورو مونځونو كې د قرآن قرات ضرورى دې.هم دغه ډول د جنازې په لمونځ كي هم د قران قرات ضرورى دې.

دليل الاحناف ۞زمونږ دليل دادې. چې دحضرت نافع رحمه الله نه نقل دى. «أن إبن عمر رضي الله عنهما كان لا يقرأ فى الصلوة على الجنازة» يعنى نافع رحمه الله فرمائى.چه عبدالله بن عمر به د جنازې په لمانځه كي قرات نه كولو. ② عقلى دليل دادې.چه د جنازې لمونځ صرف د يو ركن (قيام) نوم دې.او په مفرد ركن كي د قران قرات مشروع نه دې.لكه چې په سجده تلاوت كي د ركن مفرد په وجه قرات مشروع نه دې.

| |
|---|
| وَيُصَلِّي فِيهَا عَلَى النَّبِيِّ ﷺ بيا تكبير اووائى.او په رسول الله ﷺ درود ووايي |

تشريح:- الصلاة على النبى بعد التكبير الثاني۞بيا د دوهم تكبير وئيلو نه روسته به په نبى ﷺ درود اووائى.ځكه چې د الله تعالى د ثناء نه روسته د «صلوة على النبى» درجه ده.لكه څنګه چې په تشهد كي هم دغه ترتيب دې.اوهم په دې ترتيب خطبت مقرر شوى دى.

| |
|---|
| ثُمَّ يُكَبِّرُ تَكْبِيرَةً يَدْعُو فِيهَا لِنَفْسِهِ وَلِلْمَيِّتِ وَلِلْمُسْلِمِينَ(١) بيا تكبير اووائى.په دې كي دعا اوكړى.د خپل ځان دپاره.د مړى دپاره.اود ټولو مسلمانانو لپاره |

حل اللغة* ① يدعو، دعا دعاءً (ن): رابلل،راغوښتل دعا كول ② لنفسه: دخپل ځان د پاره

تشريح:- الدعاء بعدالتكبيرالثالث۞بيا د دريم تكبير وئيلو نه روسته به خپل ځان دپاره، مړى لپاره اود ټولو مسلمانانو لپاره دعا اوكړى.كه ياده ئې وى نو دا دعا دے اوكړى. «اللهم اغفر لحينا وميتنا ...الخ» اوكه دا دعا ورته ياده نه وى.نو كومه دعا چې ياده وى.اودے كړى.

دليله۞د الله تعالى د حمد وثنا او د صلوة على النبى نه روسته دعا په دې وجه مقرر شوې ده.چه نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى. «إذا اراد احدكم ان يدعو فليحمد الله وليصل على النبى ثم يدعوا» يعنى كله چې په تاسو كي

---

(١) خرجت للدعاء فى ،،سنن الصلاة،، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى جَنَازَةٍ فَقَالَ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا وَصَغِيرِنَا وَكَبِيرِنَا وَذَكَرِنَا وَأُنْثَانَا وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا اللَّهُمَّ مَنْ أَحْيَيْتَهُ مِنَّا فَأَحْيِهِ عَلَى الْإِيمَانِ وَمَنْ تَوَفَّيْتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الْإِسْلَامِ اللَّهُمَّ لَا تَحْرِمْنَا أَجْرَهُ وَلَا تُضِلَّنَا بَعْدَهُ أخرجه ابوداود فى الجنائز باب الدعاء للميت رقم ٢٧٨٦ رجاله ثقات إلا يحى بن كثير فإنه ثقة لكن يدلس)_

ځوك ددعا اراده اوكړي.نو د الله حمد دې اووائي.او په نبي كريم ﷺ دے درود ووايي بيا دې دعا اوكړي.

**ثُمَّ يُكَبِّرُ الرَّابِعَةَ وَيُسَلِّمُ** بيا څلورم تكبير اووائي.اوسلام واړوی **لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَبَّرَ أَرْبَعًا فِي آخِرِ صَلَاةٍ صَلَّاهَا** (١) ځكه چې نبي كريم ﷺ د ټولو په آخركي د جنازے لمونځ كړې وو نو په هغې كي ئې هم څلور تكبيرونه وئيلي وو **فَنَسَخَتْ مَا قَبْلَهَا** نو دے سره مخكني منسوخ شول.

**تشريح:- السلام بعدالتكبير الرابع**﴿بيا څلورم تكبير وئيلو نه روسته دے سلام واړوی.د څلورم تكبير نه روسته سلام اړول په دې وجه دی.چه نبي كريم ﷺ د د جنازے د ټولو نه په آخري لمونځ كي څلور تكبيرونه وئيلي وو.ددې نه مخكي عمل كه ددې مخالف هم وی.هغه منسوخ شول.

**الاقوال في الادعية قبل السلام**﴿صاحب د عنايه رحمه الله ليكلي دی.چه د څلورم تكبير نه روسته اود سلام نه مخكي د ظاهر روايت مطابق هيڅ دعا نشته. ② اوبعضو مشائخ رحمهم الله وئيلي دی.چه د سلام نه مخكي دے دا دعا وائی. رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ او بعضې فرمائي.چه دا دے اووائی. رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِنْ لَدُنْكَ رَحْمَةً إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ

**وَلَوْ كَبَّرَ الْإِمَامُ خَمْسًا** او كه امام پنځه تكبيرونه ووبل **لَمْ يُتَابِعْهُ الْمُؤْتَمُّ** نو مقتدی به (د څلورونه د زياتو) پيروی نه كوی **خِلَافًا لِزُفَرَ** رحمه الله د امام زفر رحمه الله اختلاف دی **لِأَنَّهُ مَنْسُوخٌ لِمَا رَوَيْنَا** ځكه چې د [ماروينا] په وجه د څلورو نه زياتي منسوخ دی.

**حل اللغة**: ① **موتم**: مقتدی

**تشريح:- المذهبان في حكم متابعة الامام في التكبير الخامس**﴿ ① امام ابوالحسن قدوری رحمه الله وئيلي دی.كه امام پنځم تكبير اووائی.نو مقتدی به په دې پنځم تكبيركي د امام تابعداری نه كوی.ځكه چې د څلورو نه زياتي تكبيرونه د تيرشوی روايت په وجه منسوخ شوی دی. ② امام زفر رحمه الله فرمائيلي دی.كه امام پنځم تكبير اووئيل.نو مقتدی به دده تابعداری كوی.

**دليل زفر رحمه الله**﴿د امام زفر رحمه الله دليل دادې.چه په څلورو تكبيرونود زيادت كاوه مسئله مختلف فيه ده.نقل دی.چه حضرت علی ﷺ د جنازے په لمونځ كي د څلورو نه روسته پنځم تكبير اووئيل.نو مقتديانو د حضرت علی ﷺ پيروی كړې وه.

**الجواب من مستدل زفر رحمه الله**﴿زموږ د اړخ نه ځواب دادې.چه صحابوﷺ په دې اړه كي مشوره اوكړه.او دنبي كريمﷺ د آخری لمونځ اړخ ته ئې رجوع اوكړه.نودحضرت علی ﷺ پنځم تكبيروئيل منسوخ شو.اود منسوخ تابعداری كول غلط او خطا ده.

**وَيَنْتَظِرُ تَسْلِيمَةَ الْإِمَامِ فِي رِوَايَةٍ وَهُوَ الْمُخْتَارُ** او په يو روايت كي به د امام د سلام اړولو انتظار كوی.هم دا مختار دی

**حل اللغة**: ① **ينتظر،انتظر انتظارا**: انتظاركول

**تشريح:- الروايتان فيما يفعله الماموم عندعدم المتابعة**﴿ ① پاتې شوه دا خبره چې مقتدی كله پنځم تكبير كي د امام تابعداری نه كوی نو څه به كوی.په دې كي د امام ابوحنيفه رحمه الله دوې [دوه] روايتونه دی.يو خو داچه مقتدی دستي سلام واړوی.چه په پنځم تكبير كي د امام مخالفت ثابت شی. ② او دوهم روايت داچه مقتدی د امام د سلام اړولو انتظار اوكړی.چه په سلام كي متابعت اوشی. علامه مرغينانی

(١) خرجه فی ،،سنن الصلاة،، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَى النَّجَاشِيَّ فِي الْيَوْمِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ خَرَجَ إِلَى الْمُصَلَّى فَصَفَّ بِهِمْ وَكَبَّرَ أَرْبَعًا خرجه البخاری فی الحنائز باب فی الرجل ينعی إلی أهل الميت بنفسه رقم ۱۱۶۸)_



فرمائي.چه مختار هم دا دوهم روايت دی.

**وَالْإِتْيَانُ بِالدَّعَوَاتِ اسْتِغْفَارٌ لِلْمَيِّتِ** او دعاګانے كول د مړی لپاره مغفرت غوښتل دی. **وَالْبُدَاءَةُ بِالثَّنَاءِ ثُمَّ بِالصَّلَاةِ سُنَّةُ الدُّعَاءِ** (١) او په ثناء پيل كول، بيا درود سره دعا كول سنت دی

**تشريح:- حكمة الدعاء**﴿صاحب د كتاب وئيلي دی.چه دعاګانے كول په حقيقت كي د مړی لپاره ښښنه غوښتل دی.او په ثناء او صلوة علی النبی سره پيل كول د دعا سنت دی.

**وَلَا يَسْتَغْفِرُ لِلصَّبِيِّ** اود ماشوم لپاره به استغفار نه غواړی **وَلَكِنْ يَقُولُ: اللَّهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا فَرَطًا، وَاجْعَلْهُ لَنَا أَجْرًا وَذُخْرًا، وَاجْعَلْهُ لَنَا شَافِعًا مُشَفَّعًا** بلكه دا به وائی.(اے الله دا ماشوم زموږ لپاره مخكي سفارشی كړې .او دا زموږ لپاره ثواب او دنيكئ ذخيره كړې .او دا زموږ لپاره داسې سفارش كونكے كړې .چې دده شفاعت قبول شوې وی

**حل اللغة**: ① **لايستغفر، استغفر استغفارا**: ښښنه غوښتل ⑧ **اجعله، جعل جعلا (ف)**: كول، جوړول ⑨ **ذخرا**: ذخيره

**تشريح:-** د نابالغ ماشوم لپاره به په دعا كي استغفار نه غواړی.ځكه چې د عدم تكليف په وجه دده نه ګناه نه ده صادر شوې.البته دا دعا دے اوكړی. ﴿اللهم اجعله لنا فرطاً واجعله لنا ذخراً واجعله لنا شافعاً و مشفعا﴾

**وَلَوْ كَبَّرَ الْإِمَامُ تَكْبِيرَةً أَوْ تَكْبِيرَتَيْنِ** او كه امام يو يا دوې [دوه] تكبيره ووايي **لَا يُكَبِّرُ الْآتِي حَتَّى يُكَبِّرَ أُخْرَى بَعْدَ حُضُورِهِ** نو راتلونكے دے تكبير نه وائی.تر دې چې امام دده د راتلو نه روسته تكبير ووايي **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ** رحمهما الله دا د امام ابوحنيفه او د امام محمد رحمهما الله په نيز دی

**حل اللغة**: ① **يحضر، حضر حضوراً (ن)**: حاضريدل

**تشريح:- وقت تكبير المسبوق**﴿كه يو كس د جنازے په لمانځه كي هغه وخت شريك شی.چه امام يويا دوې [دوه] تكبيرونه وئيلي وی.نو راتلونكے كس دے تكبير نه وائی.بلكه دده د شريكيدو نه روسته كله چې امام تكبير اووائی.نو هغه سره دے تكبير اووائی.او د فوت شوو تكبيرونو قضا به د امام د سلام اړولونه روسته راوړی.دا قول د طرفينو رحمهما الله دی.

**وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: يُكَبِّرُ حِينَ يَحْضُرُ** (٢) او ابويوسف رحمه الله فرمائي.چې حاضريدو سره دے پاتې شوی تكبير ووايي **لِأَنَّ الْأُولَى لِلِافْتِتَاحِ** ځكه چې اولنے تكبير د افتتاح لپاره دې **وَالْمَسْبُوقُ يَأْتِي بِهِ** او مسبوق دا ضرور وائی

**تشريح:-** امام ابويوسف رحمه الله فرمائي.چه د شريكيدو روسته دے فوت شوی تكبيرونه اووائی.

**دليله**﴿دامام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه د اولنی تكبير يعنی د افتتاح تكبير نه روسته راتلونكے د مسبوق په شان دې.او مسبوق د افتتاح تكبير د شريكيدو نه روسته ضرور وائی.نو دا به هم وائی.

**وَلَهُمَا أَنَّ كُلَّ تَكْبِيرَةٍ قَائِمَةٌ مَقَامَ رَكْعَةٍ** د طرفين رحمهما الله دليل دا دې .چې هر تكبير د يو ركعت قائم مقام دې، **وَالْمَسْبُوقُ لَا يَبْتَدِئُ بِمَا فَاتَهُ** او مسبوق هغه لمونځ نه پيل كوی.كوم چې دده نه پاتې شوې دې **إِذْ هُوَ مَنْسُوخٌ** (٣) ځكه چې دا منسوخ شوې دې

(١) من حديث فضالة بن عبيد﷜ أخرجه أبوداودفی الوتر باب ۲۳، والترمذی فی الدعوات باب ۶۴ رقم ۳۴۷۶ والنسائی فی السهو باب ۴۸ وأحمد فی المسند (۱۸/۶) والبيهقی فی السنن الكبری (۲۱۱/۲ رقم ۲۸۵۴ والحاكم فی المستدرک (۲۳۰/۱، ۲۶۸)_

(٢) القول الراجح هو هذا قول أبی يوسف رحمه الله كذا فی مجمع الأنهر(۱\۱۸۴) ومراقی الفلاح (ص،۳۲۵) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۵۷)-

(٣) من حديث معاذ ﷜ أخرجه أبوداود فی الصلاة باب ۲۸ رقم ۵۰۶ وأحمد فی المسند (۲۴۶/۱) والبيهقی فی السنن الكبری (۵۷۶/۱)رقم ۱۸۳۸ )_

تشریح:- **دلیل الطرفین** ﷫ ﴿د طرفینو ﷫ دلیل دادې چه دا سړې بیشکه د مسبوق په شان دې.خود جنازې د لمونځ هر تکبیر د یو رکعت په شان دې.په دې وجه د جنازې د لمونځ په اړه کي وئیلی شوی دی. «أربع كأربع الظهر»او دا خبره تاسو ته معلومه ده.چه مسبوق د فوت شوی رکعتونو قضاء د امام د سلام اړولو نه روستو راوړی.اول ئې نه راوړی.ځکه چې د سلام نه مخکې د قضاء کاوه حکم منسوخ شوې دې.

**وَلَوْكَانَ حَاضِرًا فَلَمْ يُكَبِّرْ مَعَ الْإِمَامِ** اوکه یو کس د پیل نه حاضر وو.خود امام سره ئې تکبیر اونه وئیل **لَا يَنْتَظِرُ الثَّانِيَةَ بِالْاِتِّفَاقِ** نو په اتفاق سره به دے د دوهم تکبیر انتظار نه کوی **لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْمُدْرِكِ** ځکه چې دے په منزله د مدرك دې.

تشریح:- **حکم من فاتته التکبیرة الاولی مع حضوره اول الصلاة** ﴿او که یو کس د پیل نه حاضر وو.خو د امام سره ئې تکبیر اونه وئیلې.نو دے به د امام د دوهم تکبیر انتظار په اتفاق سره نه کوی.ځکه چې دے د مدرك په مرتبه کې دې.

## دامام به د مړی د سینې برابر اودریږی

قَالَ **وَيَقُومُ الَّذِي يُصَلِّي عَلَى الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ بِحِذَاءِ الصَّدْرِ**(۱)اوکوم کس چې د سړی او ښځې د جنازے لمونځ کوی.هغه به سینې ته مخکې اودریږی **لِأَنَّهُ مَوْضِعُ الْقَلْبِ** ځکه چې سینه د زړه محل دې **وَفِيهِ نُورُ الْإِيمَانِ** او په زړه کې د ایمان نور وی **فَيَكُونُ الْقِيَامُ عِنْدَهُ إِشَارَةً إِلَى الشَّفَاعَةِ لِإِيمَانِهِ** نو دے سره ودریدل اشاره ده.چې شفاعت دده د ایمان په وجه دې

**حل اللغة**° ①**يقوم،قام قياماً**(ن): ودریدل ②**حذاء**: مخکې ③**موضع**: ځائ مقام ④ **قلب جمع قلوب**: زړه

تشریح:- **الروایتان في قیام الامام من المیت** ﴿ ① مسئله داده.چه جنازه د سړی وی اوکه د ښځې،د لمونځ په وخت به امام د مړی د سینې مخکې اودریږی.دلیل دادې.چه سینه د زړه محل دې.او په زړه کې نورد ایمان وی.نود سینې سره ودریدل به دے اړخ ته اشاره وی.چه شفاعت دده د ایمان په وجه کیږی.

**وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ** د ابوحنیفه رحمه الله نه نقل دی **أَنَّهُ يَقُومُ مِنَ الرَّجُلِ بِحِذَاءِ رَأْسِهِ** چې د سړی د جنازے د سر سره به مخکې اودریږی **وَمِنَ الْمَرْأَةِ بِحِذَاءِ وَسَطِهَا** اود ښځې د ما بینځ سره به اودریږی

تشریح:- د امام ابوحنیفه رحمه الله نه دا هم نقل دی.چه جنازه که د سړی وی.نو امام به دده سر ته مخکې اودریږی.اوکه د ښځې وی.نو دده په مینځ کې به اودریږی.

**لِأَنَّ أَنَسًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَعَلَ كَذٰلِكَ**(۲) ځکه چې حضرت انس ﷛ هم دغه طریقه کړې وه **وَقَالَ: هُوَ السُّنَّةُ** او فرمائیلی ئې وو.چې هم دا سنت دی

تشریح:- **دلیله** ﴿دلیل د انس ﷛ حدیث دې. «روی عن نافع ابی غالب قال كنت فی سكة المربد فمرت جنازة معها ناس كثير قالوا جنازة عبدالله بن عمير فتبعتها فاذا انا برجل عليه كساء رقيق، على رأسه خرقة تقيه من الشمس فقلت من هذا الدهقان قالوا انس بن مالك ﷛ قال فلما وضعت الجنازة قام انس فصلى عليها وأنا خلفه لا يحول بيني و بينه شئ فقام عند رأسه وكبر أربع تكبيرات لم يطل ولم يسرع ثم ذهب يقعد فقالوا يا أبا حمزة المرأة الأنصارية فقربوها وعليها نعش اخضر فقام عند عجيزتها

---

(۱) القول الراجح هو هذا ظاهر الرواية التى ذكرها المتون كذا فی البحر الرائق (۲\۱۸۶) والدری لمختار (۱\۶۴۶) والفقه الإسلامی وأدلته (۲\۴۹۶) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۵۸)۔

(۲) أخرجه أبوداودفی الجنائز باب ۵۳ رقم ۳۱۹۴والترمذی فی الجنائز باب ۴۵ رقم ۱۰۳۴وابن ماجه فی الجنائز باب ۲۱رقم ۱۴۹۴)۔



فصلى عليها نحو صلاته على الرجل ثم لجس فقال العلاء بن زياد يا ابا حمزة هكذا كان رسول الله ﷺ يصلي على الجنازة كصلوتك يكبر عليها أربعا ويقوم عند رأس الرجل وعجيزة المرأة قال نعم» یعنی د نافع رحمه الله نه نقل دی.نافع فرمائی.د کوڅې نه یوه جنازه چې دے سره ډیر خلګ وو.تیره شوه. خلګو اووئیل.چه دا د عبدالله بن عمیر جنازه ده.(نافع فرمائی) زه هم جنازے سره روان شوم.ما اوکتل چې یوکس چې دده په بدن یونرے پټو (څادر) وو.اود وار نه د بچکیدو لپاره ئې په سر یوه کالی ایخودے وه .ما اووئیل.چه دا زمیندار څوك دے؟ خلګو اووئیل.دا انس بن مالك ﷛ دې.نافع فرمائی.چه کله جنازه په مخکه کیخودے شوه.نوانس ﷛ پاسیدلو او لمونځ ئې اوکړو.اوزه دده شاته ووم.چه زما او دده په مینځ کې هیڅ شی حائل نه وو.(نوما اوکتل چه) دوی د جنازے سر سره ودریدل.او څلور تکبیرونه ئې اووئیل.په دې طریقه چې نه اوږده کړل.او نه ئې زر اوکړل.بیا دوی کیناستل.نو خلګو اووئیل.اے ابو حمزه (انس بن مالك) د یو انصاری ښځې جنازه هم ده.نو خلګو دا انس ﷛ ته نیزدے کړه.او په دې یو شین رنګ ډولئ (چه د مړی په کټ صندخ (صندوق) شان جوړ شوی وی) وو.دوی د هغې چوکاټونو یعنی مینځ سره ودریدلو.او لمونځ ئې اوکړو.لکه څنګه چې ئې د سړی کړې وو.بیا دوی کیناستل.نو علاء بن زیاد رحمه الله اووئیل.چه اے ابوحمزه،آیا رسول الله ﷺ به په جنازو هم په دې طریقه لمونځ کولو.نوانس ﷛ ووئیل آو.صاحب دهدایه فرمائی.چه حضرت انس ﷛ هم دا طریقه مسنون ګرځولې ده.

**قُلْنَا تَأْوِيلُهُ أَنَّ جِنَازَتَهَا لَمْ تَكُنْ مَنْعُوشَةً** موږ وایو دحضرت انس ﷛ د کلام تاویل دا دې .چې د ښځې جنازه به د نبی کریم ﷺ په زمانه کې ډولئ داره نه وه **فَحَالَ بَيْنَهَا وَبَيْنَهُمْ** نو نبی کریم ﷺ به د ښځې د جنازے او د خلګو په مابینځ کې حائل کیدلو.

تشریح:- **تضعیف تاویل المصنف** رحمه الله ﴿علامه مرغینانی ددې حدیث په تاویل کاوه کې فرمائی.چه د انصاری ښځې په جنازه ډولئ نه وه.یعنی هغه د صندخ (صندوق) په شان تابوت نه وو.په کوم چې د ښځې پرده راځی.نوددې ښځې او د خلګو په مینځ کې د حائل کیدو په وجه په مینځ کې ودریدل.خود صاحب هدایه رحمه الله دا تاویل ځکه معتبر نه دې.چه په حدیث کې په صراحت سره «وعليها نعش اخضر» لفظ موجود دې.

## په سوارلئ د جنازې د لمونځ کولو حکم

**فَإِنْ صَلَّوْا عَلَى جِنَازَةٍ رُكْبَانًا** که خلګو په جنازه د سوریدو په حالت کې لمونځ اوکړو **أَجْزَأَهُمْ فِي الْقِيَاسِ** نود قیاس مطابق د دوی د جنازے لمونځ جائزدې **لِأَنَّهَا دُعَاءٌ** **وَفِي الْاِسْتِحْسَانِ: لَا تُجْزِئُهُمْ** ځکه چې دا دعا ده.او استحساناً جائز نه دې

**حل اللغة**° ①**صلوا، صلى صلاة**: لمونځ کول،دعاکول ②**رکباناً**: سورشوې ③**فلایجوز،جاز جوازاً**(ن): جائز کیدل ④ **ترک**: پریښول

تشریح:- **جوازصلاة الجنازة راکباً** ﴿په سپرلئ سوریدو د جنازے لمونځ د قیاس په اعتبارجائز دے. خو استحساناً جائز نه دې.د قیاس وجه داده.چه دجنازے لمونځ په حقیقت کې د دعا نوم دې.هم دا وجه ده.چه دجنازے په لمونځ کې نه قرات شته نه رکوع او سجده،نو څنګه چې د نورو دعاګانو وئیل په سپرلئ جائز دی.هم په دغه طریقه د جنازے لمونځ هم جائزدې.

**لِأَنَّهَا صَلَاةٌ مِنْ وَجْهٍ لِوُجُودِ التَّحْرِيمَةِ** ځکه چې دا د تحریمه موندو په وجه من وجه لمونځ دې **فَلَا يَجُوزُ تَرْكُهُ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ اِحْتِيَاطًا** نو احتیاطاً بغیرد عذر نه ددې پریښول جائز نه دی.

تشریح:- **وجه الاستحسان** ﴿وجه د استحسان داده.چه د جنازے لمونځ من وجه لمونځ دې.ځکه چې د جنازے د لمونځ تحریمه موجود ده.او د وخت نه سوې واړه هغه شرطونه ضروری دی.کوم چې د نورو مونځونو لپاره

ضروري دی.نو بغیرد عذر نه احتیاط هم په دې کي دې.چه قیام ترك نکړې شی.او په سپرلئ د لمونځ کاوو په صورت کي چونکه قیام ترك کول راځی.ځکه په سوارلئ د جنازے لمونځ کول جائز نه دی.

**د جنازې د لمونځ لپاره د ولی نه د اجازت اخستلو حکم**

وَلَا بَأْسَ بِالْإِذْنِ فِي صَلَاةِ الْجِنَازَةِ او د جنازے په لمونځ کي د اجازت څه باك نشته لِأَنَّ التَّقَدُّمَ حَقُّ الْوَلِيِّ ځکه چې امامت د ولی حق دې فَيَمْلِكُ إِبْطَالَهُ بِتَقْدِيمِ غَيْرِهِ نو دے د بل کس په امخکي کاوه خپل حق باطلولے شی

**حل اللغة:** ① لاباس: هیڅ باك نشته ② تقدم: وړاندې کیدل ③ ابطال: باطل کیدل ④ تقدیم: وړاندې کول

**تشریح:-** **النسخة الاولى ومفهومها** دمتن دوې [دوه] نسخے دی.یوه ﴿لا بأس بالاذن فی صلوة الجنازة﴾ دوهم ﴿لا بأس بالآذان﴾. ① د لومړئی نسخے په بنا (بنیاد) د عبارت دوې [دوه] مطلبه دی.یودا چې ولی که بل چاته د جنازے د لمونځ کاوه اجازت ورکړی.نو په دې کي هیڅ باك نشته .ځکه چې د امامت حق ولی ته حاصل دې.نو د مړی ولی که بل څوك امام جوړ کړی.اوخپل حق ختمول اوغواړی نو ختمولے ئې شی. ② دوهم مطلب دادې.چه د جنازے د لمونځ د فراغت نه روسته که ولی خلګو ته کورته د واروسته تللو اجازت ورکړی.نو په دې کي هیڅ باك نشته .ځکه چې د دفن نه مخکي بغیر دده د اجازت نه د خلګو کور ته واروسته تلل ټیك نه دی.

وَفِي بَعْضِ النُّسَخِ: لَا بَأْسَ بِالْأَذَانِ: أَيِ الْإِعْلَامِ او په بعضو نسخو کي دی.چې د جنازے په لمونځ کي د اذن یعنی د اعلام څه باك نشته وَهُوَ أَنْ يُعْلِمَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا لِيَقْضُوا حَقَّهُ او اعلام دادې .چې بعضې خلګ نور خبر کړی.چې د مړی حق ادا کړی.

**تشریح:** **النسخة الثانية ومفهومها** او د دویمے نسخے په بنا (بنیاد) به د عبارت حاصل دا وی.چه د جنازے د لمونځ اطلاع ور کاوه او د خلګو په خبرولو کي څه باك نشته . ﴿قال ﷺ اذا مات احدکم فأذنونی بالصلوة﴾ رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.چه کله په تاسو کي څوك مړ شی.نو ماته د لمونځ خبر راکوئ.بعضو متاخرینو ددې سے کس د جنازے د لمونځ لپاره په بازارونوکي اعلان کول مستحسن ګرځولی دی.چه دده د لمونځ ته خلګ راغب شی لکه زاهدان او عالمان.

**په جومات کښې د جنازې د لمونځ کولو حکم**

وَلَا يُصَلَّى عَلَى مَيِّتٍ فِي مَسْجِدِ جَمَاعَةٍ او په هیڅ مړی به په جامع جمات کښے جنازه نه شی کولی

**تشریح:-** **صلاة الجنازة في المسجد** ① صاحب د عنایه رحمه الله ددې عبارت په حل کاوه کي فرمائیلی دی.که صرف جنازه په جومات کي وی.او امام او څه خلګ د جومات نه بهر وی.او پاته په جومات کي وی.نودا په اتفاق سره مکروه نه ده. ② اوکه جنازه او واړه خلګ په جماعت کي وی نو دا مکروه ده او هم دا صورت په متن کي ذکر دې

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه چې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی {مَنْ صَلَّى عَلَى جِنَازَةٍ فِي الْمَسْجِدِ چې چا په جومات کي په جنازه لمونځ اوکړو فَلَا أَجْرَ لَهُ}(¹) نو دده ثواب نشته

**تشریح:-** **دلیله** دلیل د ابوهریره رضی الله عنه حدیث دې. ﴿ان رسول الله ﷺ قال من صلی علی جنازة فی المسجد فلا اجر له﴾ یعنی

¹) خرجه فی ،،سنن الصلاة،، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى عَلَى جِنَازَةٍ فِي الْمَسْجِدِ فَلَيْسَ لَهُ شَيْءٌ أخرجه ابن ماجه فی الجنائز باب ماجاء فی الصلاة علی الجنائز فی المسجد رقم ١٥٠٦ رجاله ثقات إلا صالح فانه قداختلف فیه)۔



نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چا چې په جومات کي دننه په جنازه لمونځ اوکړو. ده لپاره هیڅ ثواب نشته .

وَلِأَنَّهُ بُنِيَ لِأَدَاءِ الْمَكْتُوبَاتِ او ځکه چې جومات خو د فرضو ادا کاوه لپاره جوړ شوې دې

**تشریح:-** دوهم دلیل دادې.چه جومات د فرضو د ادا کاوه لپاره جوړشوې دې.نو د پنځه وخته مونځونو نه سوې به هیڅ لمونځ په جومات کي نه اداکیږی.

وَلِأَنَّهُ يُحْتَمَلُ تَلْوِيثُ الْمَسْجِدِ او ځکه چې په دې کي د جومات خرابیدو احتمال دې

**حل اللغة:** ① تلویث: ککړ کیدل

**تشریح:-** دریم دلیل دادې.که جنازه په جومات کي وی.نو په دې صورت کي د جومات خرابیدو احتمال دې.نوځکه بغیر د عذر نه په جومات کي د مړی راوستل مکروه دی.

وَفِيمَا إِذَا كَانَ الْمَيِّتُ خَارِجَ الْمَسْجِدِ اخْتِلَافُ الْمَشَايِخِ رَحِمَهُمُ اللَّهُ او په هغه صورت کي چې کله مړے د جومات نه بهر وی.مشائخو اختلاف کړې دې .

**تشریح:-** او که صرف جنازه د جومات نه بهر وی.او امام او واړه خلګ په جومات کي وی.نو مشائخو اختلاف کړې دې.بعض د کراهت قائل دی.او بعض د عدم کراهت قائل دی.

**د ژوندی ماشوم پیدا کیدو احکام**

وَمَنِ اسْتَهَلَّ بَعْدَ الْوِلَادَةِ او کوم ماشوم چې د پیدا کیدو نه روسته د ژړا آواز اوکړی سُمِّيَ وَغُسِّلَ وَصُلِّيَ عَلَيْهِ دده ته به نوم ایخودے شی .ده ته به غسل ور کولای شی .او په ده به جنازه کولای شی

**حل اللغة:** ① استهل، استهل استهلالاً: د زیږیدل په وخت کي چغه وهل او هم داسې په هریواوچت آوازسره وینا کاوه ته استهلال وائی ② سمی، سمی تسمیة: نوم کیخودل

**تشریح:-** **حکم من وجد فیه اثار الحیات** ﴿استهلال صبی﴾ د زیږیدل په وخت د ماشوم آواز کول دی.دلته مراد دا دی.چه داسې شی بیا مومی.چه د ماشوم په ژوند دلالت اوکړی.مثلاً د ماشوم د یو اندام حرکت کول یا دده د ژړا آواز کول وغیره.بهرحال که ماشوم د پیدا سره مړشی.یعنی که د زیږیدل په وخت د ژوند څه دلیل موجود شی.اومړ شی.نو دے ماشوم ته به نوم کیخودے شی.ده ته به غسل هم ورکولې شی.او په ده به د جنازے لمونځ هم کولې شی.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ إِذَا اسْتَهَلَّ الْمَوْلُودُ ځکه چې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی.چې کله ماشوم د ژړا آواز اوکړی صُلِّيَ عَلَيْهِ نو په ده دے لمونځ اوکړې شی وَإِنْ لَمْ يَسْتَهِلَّ او که د ژړا آواز اونکړی لَمْ يُصَلَّ عَلَيْهِ (¹) نو په ده دے لمونځ نشی کولې وَلِأَنَّ الْاِسْتِهْلَالَ دَلَالَةُ الْحَيَاةِ او ځکه چې ژړل د ژوند دلیل دې فَتَحَقَّقَ فِي حَقِّهِ سُنَّةُ الْمَوْتَى نو دده په حق کي به د مړو طریقه متحقق وی

**حل اللغة:** ① دلالة: نښه، علامت ② حیوة: ژوند

**تشریح:-** **دلیله** ① دلیل د نبی کریم ﷺ قول ﴿اذا إستهل المولود صلی علیه وان لم یستهل لم یصل علیه﴾ او عقلی دلیل دادې.چه استهلال یعنی دماشوم آواز کول د ژوند نښانه ده.نود ده په حق کي د مړو طریقه متحقق ده.

وَإِنْ لَمْ يَسْتَهِلَّ او کوم ماشوم چې ژړا اونکړی أُدْرِجَ فِي خِرْقَةٍ په یوه کالی کي دے اونغښتے شی. كَرَامَةً لِبَنِي آدَمَ د آدم علیه السلام د اولاد د تکریم په خیال وَلَمْ يُصَلَّ عَلَيْهِ لِمَا رَوَيْنَا او په ده دے لمونځ نشی کولې .د هغه حدیث په وجه

¹) خرجه فی ،،سنن الصلاة،، عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الطِّفْلُ لَا يُصَلَّى عَلَيْهِ وَلَا يَرِثُ وَلَا يُورَثُ حَتَّى يَسْتَهِلَّ أخرجه الترمذی فی الجنائز باب ترك الصلاة علی الجنین حتی یستهل رقم ٩٥٣ إضطربه الترمذی)۔

کوم چې مور روايت کړي دي

**حل اللغة:** ① ادرج،ادرج ادرجاً: داخلول ② خرقة: ريبنه ③ کرامة: شرافت

**تشريح:- حکم من لم يوجد فيه اثار الحياة ۞** ① اوکوم ماشوم چې د زيږيدل په وخت د ژړا آواز اونکړي.او د ژوند څه بله نښانه هم اونه موندې شي. نودې به د کفن په شان يوه کالي کي راونغاړي.او په کنده کي به ښخ کړی.دا عمل به صرف د آدم ﷺ د اولاد د تکريم په خيال سره وي.او په ده به د جنازې لمونځ نشی کولې دليل تيرشوي روايت دي.

> وَيُغَسَّلُ فِي غَيْرِ الظَّاهِرِ مِنَ الرِّوَايَةِ او د غيرظاهر روايت مطابق ده ته غسل هم ور کولای شی لِأَنَّهُ نَفْسٌ مِنْ وَجْهٍ وَهُوَ الْمُخْتَارُ خکه چې دا من وجه نفس دي .اوهم دا مختار حکم دي .

**تشريح:-** البته د غير ظاهروايت مطابق به ده ته غسل ورکولې شي. دليل دادې.چه دا من وجه د بدن يوه برخه ده. او من وجه نفس دې.نو د دواړو اعتبار اوکړې شو.چونکه د بدن يوه برخه او اندام دې.خکه به په ده د جنازې لمونځ کولې شي.او چونکه من وجه نفس دې. خکه به ده ته غسل ورکولې شي.هم دا د ابويوسف رحمه الله نه نقل دی.او هم دا مختار قول دې.

## دقيدي ماشوم د جنازې حکم

> وَإِذَا سُبِيَ صَبِيٌّ مَعَ أَحَدِ أَبَوَيْهِ وَمَاتَ اوکه ماشوم په خپل مور پلار کي د چاسره قيد شو.او مړ شو لَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِ نو په ده به د جنازې لمونځ نشی کولې لِأَنَّهُ تَبَعٌ لَهُمَا خکه چې دے د خپل مورپلار تابع دي

**حل اللغة** ① سبی، سبی سبياً (ض): دښمن قيدکول ② تبع: تابع

**تشريح:- صورة عدم الصلاة على الصبی الاسير ۞** صورت د مسئلے دادې.که يو ماشوم په مورپلار (کافرانو سره په جهاد)کي د يو کس سره قيد شی.اومړشی.نو په ده به د جنازې لمونځ نشی کولې . خکه چې ماشوم د مور پلار تابع کيدو په وجه کافر دې.

**دليله ۞** نبی کريم ﷺ فرمائيلي دی. «الولد يتبع خير الأبوين ديناً» ددې حديث نه معلومه شوه.چه ماشوم په دين کي د خپل مور پلار تابع وي.او چونکه دلته کي مور پلارکافردی.نوماشوم به هم کافروی.او په کافر د جنازې لمونځ نه کيږي.خکه به په دې ماشوم د جنازې لمونځ نه کيږي.

> إِلَّا أَنْ يُقِرَّ بِالْإِسْلَامِ وَهُوَ يَعْقِلُ .خودا چې دے د اسلام اقرار اوکړي.په دې سے حال کي چې دے هوښيار وي لِأَنَّهُ صَحَّ إِسْلَامُهُ اسْتِحْسَانًا خکه چې استحساناً دده اسلام صحيح کيږي أَوْ يُسْلِمَ أَحَدُ أَبَوَيْهِ يا دده په مور پلار کي يو کس اسلام قبول کړي لِأَنَّهُ يَتْبَعُ خَيْرَ الْأَبَوَيْنِ دِينًا خکه چې دے د دين په اعتبار سره د خيرالابوين تابع دي

**حل اللغة** ① ان يقر اقر اقراراً: اقرارکول

**تشريح:- صور الصلاة على الصبی الاسير ۞** ① اوکه دا ماشوم هوښيار وي.اود اسلام اقرار اوکړي. ② يا دده په مورپلار کي يوکس مسلمان شی. د اسلام اقرار کاوه په صورت کي به ددې ماشوم د جنازې لمونځ کولې شی.

**دليله ۞** خکه چې استحساناً دده مسلمانيدل صحيح دی.اود احدالابوين تابع دې.اوددين په اعتبار خيرالابوين هغه دې.څوک چې مسلمان وی.نوماشوم به هم دده تابع وی او مسلمان به وی.او د مسلمان په جنازه چونکه د جنازې لمونځ کولې شي.خکه به ددې ماشوم په جنازه هم لمونځ کولې شي.

> وَإِنْ لَمْ يُسْبَ مَعَهُ أَحَدُ أَبَوَيْهِ او که دے ماشوم سره دده په مور پلار کي يو هم قيد نه وی صُلِّيَ عَلَيْهِ نو په ده دے لمونځ اوکړې شی لِأَنَّهُ ظَهَرَتْ تَبَعِيَّةُ الدَّارِ خکه چې د داراسلام تابع کيدل دده په حق کي ښکاره دی فَحُكِمَ بِالْإِسْلَامِ نو ده د اسلام حکم به کولای شی .لکه چې په لقيط کي کيږي كَمَا فِي اللَّقِيطِ



**تشريح:- حکم الصلاة على الصبی الاسير مفقود الابوين ۞** اوکه ماشوم قيد شو،خودده سره دده په مورپلار کي څوک هم قيد نه وو.او دا ماشوم مړ شو.نوپه ده به د جنازے لمونځ کولې شي.

**دليله ۞** خکه چې په حق کي د دار اسلام تابع کيدل ښکاره شو.نودده د اسلام حکم به کولې شی.لکه چې په لقيط کي کيږي.يعني يو کس چې په ځنګل وغيره کي يو هلک پروت اوموندلے شی .اودده څوک والی وارث نه معلوميږي.نوکه په دې دارالاسلام کي ملاوشی.دے به ددې دار تابع کيږي.اومسلمان به ګڼلې شی.

## د کافر مړي دغسل ،کفن او تدفين حکم

> وَإِذَا مَاتَ الْكَافِرُ اوکه يو کافر مړ شی وَلَهُ وَلِيٌّ مُسْلِمٌ او ددې کافر څوک مسلمان وارث وی فَإِنَّهُ يُغَسِّلُهُ وَيُكَفِّنُهُ وَيَدْفِنُهُ نو مسلمان به دے کافر مړی ته غسل ورکړي.کفن دے ورکړي.او غسل دے ورکړي

**حل اللغة** ① مات، مات موتاً (ن): مره کيدل ② يغسل،غسل تغسيلاً: غسل ورکول ③ يكفنه،كفن تكفيناً: کفن ورکول

**تشريح:- مايفعله المسلم بوليه الكافر ؟ ۞** مسئله دا ده.که يو کافرمړشي.او دده په کافرانو وليانو کي دلته څوک نه وي.البته مسلمان ولی وي. يعنی ددې مړي څوک قريبی رشته دار مسلمان شته وي. نودا مسلمان به دے پليتے جامے په شان اووينځي.په يوه کالي کي به ئې راونغاړي.او په کنده کي به ئې اوغورځوي.

**المراد من الولاية ۞** د متن په عبارت «وله ولی مسلم» کي د ولی نه مراد قريبی رشته دار دې. خکه چې د مسلمان او کافر په مينځ کي حقيقی ولايت موجود نه دې.الله تعالى فرمائيلی دی [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ] يعنی مسلمانانو تاسو يهود او نصاری خپل وليان مه جوړوئ.

> بِذَلِكَ أُمِرَ عَلِيٌّ فِي حَقِّ أَبِيهِ أَبِي طَالِبٍ [1] حضرت علی ؓ ته ددوی د پلار ابوطالب په حق کي هم دغه ډول حکم شوې وو

**حل اللغة** ① امر، امر امراً (ن): حکم ورکول

**تشريح:- دليله ۞** دليل دادې.چه د ابوطالب د وفات، چې کله حضرت علی ؓ نبی کريم ﷺ ته خبر ورکړو. نو نبی ﷺ اوفرمائيل. «اغسله وكفنه وواره ولا تحدث به حدثاً حتی تلقانی» يعنی دے اووينځه ،کفن ورکړه.او په مځکه کي ئې پټ کړه.بيا هيڅ خبره مه کوه. تر دې چې زما خوې ته راشي.مراد دا دې.چه ده باندې لمونځ مه کوه.

> لَكِنْ يُغَسَّلُ غُسْلَ الثَّوْبِ النَّجِسِ خو داسې غسل به ور کولای شی .لکه څنګه چې پليت کالي (جامه) وينځلے شی وَيُلَفُّ فِي خِرْقَةٍ او په يوه کالي کي به راتاوولې شی وَتُحْفَرُ حُفَيْرَةٌ مِنْ غَيْرِ مُرَاعَاةِ سُنَّةِ التَّكْفِينِ وَاللَّحْدِ او يوه کنده به اوکنی.د سنت تکفين او د سنت لحد رعايت ساتلو نه بغير وَلَا يُوضَعُ فِيهَا بَلْ يُلْقَى او په دې کي به نشی ايخودلې .بلکه غورځولې به شی .

**حل اللغة** ① يلف، لف لفافة (ن): راغونډول ② حفيرة: کنده ③ لايوضع، وضع وضعاً (ف): ساتل ④ يلقی، القی القاءً: اچول

**تشريح:-** د نبی کريم ﷺ مراد دادې.چه په مسنون طريقه دفن کول او کفن ورکول مه کوه.هم دا علامه مرغينانی رحمه الله فرمائيلی دی.چه کافر مړے د پليتے جامے په شان اووينځلے شی.او هم په دغه طريقه به په يوه کالي کي راواړه کړې شی.او کنده به اوکنستې شی.په دې کي اوغورځولې شی.اوکه د کافرمړي کافر وليان موجود وی.نو مسلمان له پکار دی.چه دوی دکافر مړی او د کافرد وليان خپلے خوښے ته پريږدی.چه هغوی ورسره څه کول غواړي.اودے کړي.

---

[1] أخرجه أبوداود فی الجنائز باب ٦٦ رقم ٣٢١٤ والنسائی فی الجنائز باب ٨٤ والبيهقی فی السنن الكبرى (٥٨٨/٣) رقم ٦٦٦٦ وأحمد فی المسند (٩٧/١) وابن ابی شيبة (١٤٢،٩٥/٣)_

## د جنازې د کټ اوړلو طريقه

فَصْلٌ فِي حَمْلِ الْجِنَازَةِ (دا) فصل د جنازے اوړلو په بيان کي دی وَإِذَا حَمَلُوا الْمَيِّتَ عَلَى سَرِيرِهِ کله چې خلګ مړے د هغه په کټ باندې اوچت کړی أَخَذُوا بِقَوَائِمِهِ الْأَرْبَعِ نسود کټ څلور پښے به اونيسي

حل اللغة* ① حملوا،حمل حملاً (ض): اوچتول ② سرير: کټ ③ اخذوا، اخذ اخذاً (ن): اخستل، نيول ④ قوائم: پښې

تشريح:- سنية التربيع في حمل الجنازة۞په دې فصل کي د جنازے اوړلو د کيفيت بيان دې. فرمائی.چه مړے به په تخته يا په کټ باندې اوچت کړی.او دکټ څلور واړه پښےدے اونيسی.يعنی څلور نفر دے موجود وی.او هر يو کس دے يوه پښه نيولې وی.مسنون طريقه هم دا ده.

بِذَلِكَ وَرَدَتِ السُّنَّةُ[1] هم په دې طريقه باندې سنت وارد شوې دې

تشريح:- د عبدالله بن مسعود ﷺ نه مروی دی. «من السنة أن تحمل الجنازة من جوانبها لاأرعة» عنی مسنون دا ده.چه جنازه د هغې د څلورو واړو طرفونو نه اوچته کړې.شی.د نبی ﷺ قول دے. «من حمل الجنازة من جوانبها الأربع غفرله له مغرفة موجبة» يعنی چا چې جنازه دهغې د څلورو طرفونونه اوچته کړه.نو دهغه مغفرت به اوشی.

وَفِيهِ تَكْثِيرُ الْجَمَاعَةِ وَزِيَادَةُ الْإِكْرَامِ وَالصِّيَانَةِ او په دې کښې تکثير د جماعت دې .او د مړی په عزت کي زيادت دې .اود غورزيدو نه ساتنه دی

حل اللغة* ① صيانة: بچ کول، ساتنه کول

تشريح:- دويمه خبره دا ده.چه په دې کي تکثير دجماعت دې.ځکه که جنازے سره څوك نه وی.نو بياهم دجنازے اوړلو لپاره خو به څلور نفر خامخا وی.اوبشکاره ده.چه د څلورو کسانو يوه ډله وی.او د څلورو په اوچتولو کښے د جنازے عزت دې.په دې طريقه چې يوه ډله ئے په خپلو څټونو باندې پورته کړی.او څوك چې په څټونو باندې پورته کړې شی.دهغه تعظيم او عزت کي څه شك شته؟③دغه ډول د څلورو کسانو د پورته کاوه په صورت کښ به مړے په مځکه د راغورزيدو نه هم محفوظ وی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: السُّنَّةُ أَنْ يَحْمِلَهَا رَجُلَانِ: يَضَعُهَا السَّابِقُ عَلَى أَصْلِ عُنُقِهِ او امام شافعی رحمه الله فرمائی.چې سنت دا دی.چې جنازه دوې [دوه] تنان اوچته کړی.په دې طريقه چې مخکنے کس به جنازه د خپل څټ په ويخ باندې اوچتوی وَالثَّانِي عَلَى أَعْلَى صَدْرِهِ اوبل کس به ئې په خپل سينه باندې اړدی

حل اللغة* ① يضمها، وضع وضعاً (ف): ساتل

تشريح:- مذهب الشافعي في حمل الجنازة۞حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه مسنون دا دی.چه دوې [دوه] نفر جنازه اوچته کی.مخکنی سړی به جنازه د خپل څټ په ويخ باندې کيخودے وی.او روستنے سړې به دا په خپله سينه اوچته کړې وی.

لِأَنَّ جِنَازَةَ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هَكَذَا حُمِلَتْ[2] ځکه چې د سعد بن معاذ ﷺ جنازه هم داسې اوچته شوې وه قُلْنَا: كَانَ ذَلِكَ لِازْدِحَامِ الْمَلَائِكَةِ موږ خواب ورکوو.چې هغه د فرښتو د ګڼړوالی د وې وه

حل اللغة* ① ازدحام: ګڼړه

تشريح:- دليله۞دليل دا دې.چه د سعد بن معاذ ﷺ جنازه هم داسې اوچته کړې شوې وه.

---

[1] خرجته فی ،،سنن الصلاة،، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ مَنِ اتَّبَعَ جِنَازَةً فَلْيَحْمِلْ بِجَوَانِبِ السَّرِيرِ كُلِّهَا فَإِنَّهُ مِنَ السُّنَّةِ ثُمَّ إِنْ شَاءَ فَلْيَتَطَوَّعْ وَإِنْ شَاءَ فَلْيَدَعْ أخرجه ابن ماجه فی الجنائز باب ماجاء فی شهودالجنائز رقم ١٤٦٧ (رجاله ثقات)_

[2] من حديث شيخ من شيوخ بنی الأشهل أخرجه ابن سعد فی الطبقات الكبرى (٢/١٠/٣)_



الجواب۞زموږ دا ړخه ځواب دا دې.چه دغه جنازه د فرښتو د ګڼړوالی د امله وه.ځکه چې نقل دی.د سعد بن معاذ ﷺ په شهادت باندې اويا زره فرښتے دآسمان نه راکوزے شوې وې.ددې نه وړاندې چرته په دومره لوئې تعداد کي زمکے ته نه وې راکوزے شوې.حاصل دا چې د سعد ﷺ جنازه چې دوو کسانو اوچته کړې وه.نوهغه د لارے د تنګوالی امله وه.هم دا وجه وه.چه نبی ﷺ په خپلو پنجو باندې تللو.

وَيَمْشُونَ بِهِ مُسْرِعِينَ دُونَ الْخَبَبِ او جنازه به په تيزئ سره اوړی.په منډو به نه ځی

حل اللغة* ① يمشون، مشی مشياً (ض): تلل ② مسرعين: تندی کونکی ③ خبب: منډې وهل

تشريح:- سنية السرعة في المشی وکراهة الخبب۞ماتن رحمه الله فرمائی.چه جنازه به په تيزئ سره اوړی.په منډو سره نه ،

لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ حِينَ سُئِلَ عَنْهُ ځکه چې په کوم وخت کي د رسول الله ﷺ نه ددې په اړه کښ پوښتنه اوشو قَالَ: مَا دُونَ الْخَبَبِ[1] نو نبی ﷺ اوفرمائيل. [مادون الخبب]

تشريح:- دليله۞ځکه چې رسول الله ﷺ نه چې کله د جنازے سره د تګ په اړه کي پوښتنه اوشو.نونبی ﷺ اوفرمائيل. «مادون الخبب» د خبب معنی منډې وهل دی.يعنی نبی کريم ﷺ په تګ کښے د تيزئ حکم ورکړې دې.خو د منډو نه ئې منع فرمائيلے ده.او د سرعت حکم ئې ددې امله ورکړې دې.چه که جنازه د نيك مړی وی.نو هغه د الله تعالی دربار ته زر اورسوئ.اوکه د بدعمله سړی وی.نودا مصيبت زر د څټونو نه کښته کوئ.او د منډې نه ئې په دې وجه منع کړې ده.چه په دې کي دمړی سپکوالے دې .

## د جنازې د کټ کيخودلو نه وړاندې دکيناستو کراهت

وَإِذَا بَلَغُوا إِلَى قَبْرِهِ او کله چې دده قبر پورې اورسيږی يُكْرَهُ أَنْ يَجْلِسُوا قَبْلَ أَنْ يُوضَعَ عَنْ أَعْنَاقِ الرِّجَالِ نو دجنازې کيخودلو نه مخکي کښينستل مکروه دی

حل اللغة* ① بلغوا، بلغ بلوغاً (ن): رسيدل ② ان يجلسوا،جلس جلوساً (ض): کښينستل ③ اعناق، واحد عنق: سټ

تشريح:- کراهية القعود قبل وضع ا لجنازة علی الارض۞مسئله:کله چې مړې واخلی اود هغه قبره پورې اورسی.نوترڅو پورې چې جنازه په مځکه کيخودلے شوې نه وی.نو د خلګو کښينستل مکروه دی.

لِأَنَّهُ قَدْ تَقَعُ الْحَاجَةُ إِلَى التَّعَاوُنِ وَالْقِيَامُ أَمْكَنُ مِنْهُ ځکه چې کله په نازه کي د کومك اړتيا پيښيږی. په ولاړه کښې په کومك کولوکښې زيات قدرت وی

حل اللغة* ① تقع، وقع وقوعاً (ف): واقع کيدل ⑤ حاجة: ضروری، امداد، تعاون

تشريح:- دليله۞ ①ځکه چې کله کله په جنازه کښے د جنازې اوړونکو سره د کومك اړتيا پيښيږی. او د هغوی سره په وخت باندې کومك کول په هغه وخت کي ممکن وی.چه دوی ولاړ وی.ځکه وئيلی شوی دی.چه دجنازې په مځکه باندې دکيخودلونه وړاندې د خلګو کښينستل مکروه دی. اوکله چې جنازه په مځکه باندې کيخودلے شی.نواوس ولاړ پاتې کيدل مکروه دی.②ديم دليل دا دے .چه جنازې ته د حاضرويدو په وخت کي د مړی عزت کول مستحب دې.اود جنازې کيخودلو نه وړاندې د خلګو کښينستل د مړی لپاره تحقير دې.نو ځکه دے دجنازېکيخودلو نه وړاندې نه کيني.

قَالَ: وَكَيْفِيَّةُ الْحَمْلِ او دجنازې پورته کاوه کيفيت دا دې أَنْ تَضَعَ مُقَدَّمَ الْجِنَازَةِ عَلَى يَمِينِكَ چې د جنازې مخکنے

---

[1] من حديث إبن مسعود ﷺ أخرجه أبوداود فی الجنائز باب ٤٦٥ رقم ٣١٨٤ والترمذی فی الجنائز باب ٢٧ رقم ١٠١١ وأحمد فی المسند (١/٣٩٤)_

ارخ په خپل ښي ارخ باندې کيږده ثُمَّ مُؤَخِّرَهَا عَلٰى يَمِيْنِكَ بيا د هغې روستنۍ برخه په خپل ښي ارخ باندې كيږده ثُمَّ مُقَدَّمَهَا عَلٰى يَسَارِكَ بيا د هغې مخکنۍ ګسه برخه په خپل چپه ارخ باندې کيږده ثُمَّ مُؤَخِّرَهَا عَلٰى يَسَارِكَ بيا د هغې روستنۍ برخه په ګس طرف ستا

**تشريح:- كيفية حمل الجنازة** ﴿صاحب دهدايه رحمه الله د جنازې پورته کاوه کيفيت بيان کړې دې.چه اول دے د جنازې وړاندينۍ برخه کښے د مړي ښي ارخ په خپل ښي اوږه باندې کيږدي.بيا دغه ډول د مړي د پښو ارخ دے په خپله ښۍ اوږه باندې کيږدي. بيا دې د جنازې مخکنۍ برخه کي د مړي چپه ارخ دے په خپله ګسه اوږه باندې کيږدي.اوبيا دغه ډول د مړي د چپه ارخ شاتنۍ برخه په خپله ګسۍ اوږه باندې کيږدي.

إِيْثَارًا لِلتَّيَامُنِ بيا د هغې روستنۍ ګسه برخه په خپل چپه ارخ باندې کيږده.ښي ارخ ته به ترجيح ورکوی وَهٰذَا فِيْ حَالَةِ التَّنَاوُبِ اودا به د نوبت نوبت په صورت کي وي.

**تشريح:- دليله** ﴿دليل دا دې.چه په دې صورت کښ ﴿ابتداء باليمين﴾ متحقق کيږي.د جنازې مخکنۍ برخه د اوړونکی په ښۍ اوږه باندې راغله.نودا د مړي هم ښے ارخ شو.او د جنازې اوړونکی هم ښے ارخ شو.فرمائي.چه دا صورت په هغه وخت کي ممکن دې.چه د اوړونکو نوبت وي.اوکه اوړونکی صرف څلور نفر وي.نو په يو حالت کي قبر ته اوړل دي.

## د مړي قبر ته د سپارلو آداب

فَصْلٌ فِي الدَّفْنِ (دا) فصل د مړي د دفن کاوه په بيان کي دی وَيُحْفَرُ الْقَبْرُ وَيُلْحَدُ او قبر به کنستلے شي .او لحد به جوړولے شي لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ ځکه چې نبی کريم ﷺ فرمائيلي دی وَاللَّحْدُ لَنَا وَالشَّقُّ لِغَيْرِنَا (١) زموږ لپاره لحد دې .او د نورو لپاره شق دې

**تشريح:- كيفية القبر** ﴿ لحد دادې.چه قبر د ننه ارخ ته ګول کړي شي.يعنی تيخرګ جوړ کړې شي.دے ته بغلی قبر وئيلې شي.او شق دادې.چه پلن قبرکنولو نه روسته په دې کي د ننه يوه نرۍ ناليۍ جوړه کړې او په دې کي مړے دفن کړې شي.(عنايه) او که مځکه داسې نرمه وي.چه لحد جوړول په کښې ممکن نه وي.نو شق جائز دې.

**دليله** ﴿ دليل د نبی ﷺ ارشاد دې. ﴿اللحد لنا والشق لغيرنا﴾

وَيُدْخَلُ الْمَيِّتُ مِمَّا يَلِي الْقِبْلَةَ ومړے به د هغه ارخ نه داخلولے شي .کوم چې قبلې ته متصل وي.

**حل اللغة*** ① يدخل،دخل دخولاً (ن): داخليدل

**تشريح:- كيفية ادخال الميت في القبر** ﴿ دوهم اختلاف دا دې.چه زموږ په نيز قبر ته د کوزولو مسنون طريقه دا ده.چه مړے د هغه ارخ نه داخل کړې شي.کوم چې قبلې سره جخت وي .يعنی جنازه به د قبر قبلې ارخ ته کيخودلې شي.بيا به د هغه ځائي نه مړے اوچت کړې شي.او په قبر کي به کيخودے شي.

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رحمه الله ، فَإِنَّ عِنْدَهٗ يُسَلُّ سَلًّا ځکه چې د هغوی په نيز به مړے د پښو دارخه داخلولې شي لِمَا رُوِيَ {أَنَّهٗ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ سُلَّ سَلًّا} (١) ځکه چې مروی دی.چې رسول الله ﷺ هم دغه ډول د پښے دارخه داخل کړې شوې وو

(١) من حديث ابن عباس ﷺ أخرجه أبوداود في الجنائز باب ٦٤ رقم ٣٢٠٨ والترمذي في الجنائز باب ٥٣ والنسائي في الجنائز باب ٨٥ اب ماجه في الجنائز باب ٣٩ رقم ١٥٥٤)_



**تشريح:-** امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه مسنون دا دې.چه مړے قبرے ته رابنکلې شي.ددې طريقه دا ده.چه جنازه به د قبر پښو ارخ ته په دې سے طريقه کيخودے شي.چه د مړي سر په قبر کي د هغه د قدمونو ځائي ته برابر شي.بيا به قبر ته داخلونکے کس د مړي سره اونيسي.اودا به رابنکي.او بعضو وئيلي دي.چه ددې صورت دا دې.چه جنازه د قبر سره ته داسې کيخودلې شي.چه د مړي دواړه پښے په قبر کي د هغه د سر سره برابرشي.بيا به د مړي دواړه پښے اونيوې شي.اول به هغه په قبر کي ورداخلې کړې شي.او په رابنکلو سره به واړه مړے قبر ته ورداخل کړې.

**﴿دليل الشافعي رحمه الله﴾** دامام شافعي رحمه الله دليل دا دې.چه نبی کريم ﷺ هم په دې طريقه قبرته راوزلي شوې وو.او کوزکړې شوې وو.

وَلَنَا أَنَّ جَانِبَ الْقِبْلَةِ مُعَظَّمٌ او زموږ دليل دا دې .چې قبلې ارخ ته غوره دې فَيُسْتَحَبُّ الْإِدْخَالُ مِنْهُ ځکه چې د دې ارخ نه داخلولو مستحب دی

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ﴿زموږ دليل دا دې.چه د قبلې ارخ قابل احترام او معظم دې.نوهم د دې ارخ نه داخلول مستحب دی.

وَاضْطَرَبَتِ الرِّوَايَاتُ فِيْ إِدْخَالِ النَّبِيِّ اود رسول الله ﷺ په دې خلولو کي روايات مضطرب دی.

**تشريح:- الجواب من مستدل الشافعي** رحمه الله ﴿اوباتي شوه د نبی ﷺ قبر ته د داخليدو مسئله نو په هغې اړه کي روايات مضطرب دی.په څه کي څه دی.او په څه کي څه دی.ځکه دا روايت قابل استدلال نه دې.

## قبر ته د سپارلو په وخت کښې مسنون دعا

فَإِذَا وُضِعَ فِيْ لَحْدِهٖ كله چې مړے د هغه په لحد کښ کيخودے شي يَقُوْلُ وَاضِعُهٗ :نو وائي به، بِسْمِ اللّٰهِ وَعَلٰى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ پيل کوم په نوم د الله او په دين د رسول الله

**حل اللغة*** ① وضع، وضع وضعًا (ف): ساتل ② لحد: قبر ③واضع ،کيخودونکي

**تشريح:- الدعاء عندوضع الميت في القبر** ﴿ علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه مړے لحد ته کښنته کو.نودا دعا دے وائي . ﴿بسم الله وعلى ملة رسول الله﴾ او په يو روايت کي د ﴿بسم الله وعلى سنة رسول الله﴾ الفاظ مروی دی

كَذَا قَالَهٗ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ حِيْنَ وَضَعَ أَبَادُجَانَةَ فِي الْقَبْرِ (٢) هم دغه ډول د ابودجانه ﷺ په قبر کي د کيخودلو په وخت کي نبی ﷺ وئيلي وو

**تشريح:- دليله وتغليطه** ﴿دليل دا دې.چه کله رسول الله ﷺ د ابودجانه ﷺ نعش قبرته کوزولو.نوپه هغه وخت کي رسول الله ﷺ ﴿بسم الله وعلى ملة رسول الله﴾ الفاظ وئيلي وو.په مبسوط او بدائع کښې هم دا مذکور دی.صاب د هدايه هم دا د دې حضراتو تقليد کړې دې.حالانکه دا غلطه ده.ځکه چې د ابودجانه انصاری ﷺ وفات د

(١) من حديث إبن عباس ﷺ أخرجه الشافعي في مسنده ورواه البيهقي في السنن الكبرى (٩٠/٤) وفي ،،معرفة السنن والآثار(١٨٥/٣) والشافعي في الأم (٢٤٢/١)_

(٢) قال الزيلعي رحمه الله هكذا وقع في الهداية والمبسوط وهو وهم فإن أبادجانة الأنصاري توفي بعد النبي ﷺ في وقعة اليمامة وكانت في شهر ربيع الأول سنة إثنتي عشرة في خلافة أبي بكرالصديق ﷺ كذا.ذكره ابن ابي خيثمة في تاريخه (نصب الراية ٣٠٧/٢) وأما نفس دعاء الوضع في القبر فخرجته في ،،سنن الصلاة،، عَنْ أَبِي الصِّدِّيقِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا وَضَعَ الْمَيِّتَ فِي الْقَبْرِ قَالَ بِسْمِ اللّٰهِ وَعَلٰى سُنَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أخرجه ابوداود في الجنائز باب الدعاء للميت إذا وضع في قبره رقم ٢٧٩٨ رجاله ثقات إلا محمد بن كثيرفإنه قد أختلف فيه)_

رسول لله ﷺ د وفات نه روسته د صديق اكبر ﷺ په دور خلافت كې د جنګ يمامه په موقع باندې شوي وو.صحيح دا ده.چه رسول الله ﷺ چې كله ذوالبجادين (عبدالله) قبر ته كوزلو.نودا دا ئې وئيلي وه.

**ثبوت الدعاء برواية ابن عمر** رضي الله عنهما ﴿دعاء﴾ددې نه علاوه ددې دعا ثبوت دابن عمر رضي الله عنهما د حديث نه هم كيږي.حدث دا دې. ﴿عن ابن عمر رضي الله عنهما كا النبي ﷺ إذا داخل الميت القبر قال بسم الله وعلى ملة رسول الله﴾ د ابن عمر رضي الله عنهما نه مروى دى.چه رسول الله ﷺ به كله مړے قبر ته كوزولو.نو ﴿بسم الله وعلى ملة رسول الله﴾ به ئې وئيله.اود حاكم په روايت كې دا الفاظ مروى دى. ﴿إذا وضعتم موتاكم في قبوركم فقولوي بإسم الله وعلى ملة رسول الله﴾ كله چې تاسوخپل مړى قبرونو كښې اږدئ.نو ﴿بسم الله وعلى ملة رسول الله﴾ وائې.(فتح القدير)

| |
|---|
| **وَيُوَجَّهُ إِلَى الْقِبْلَةِ** او مړے به قبلې اړخ ته مخكى كړى |

**حل اللغة** ① يوجه، وجه توجيها: متوجه كيدل، متوجه كول

**تشريح:- توجيه الميت الى القبلة في القبر**﴿﴾ په لحد كښے چې مړى ږدى.نو قبلې اړخ ته دې ولـه مخ كولې شى.يعني په ښى اړخ دے سملولې شى.او قبلې ته دې ورله مخ كولې شى.

| |
|---|
| **بِذَلِكَ أَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ**([1]) هم ددې رسول الله ﷺ حكم كړے دې |

**حل اللغة** ① امر، امرامراً (ن): حكم كول

**تشريح:- دليله**﴿﴾دليل دا دې.چه رسول الله ﷺ خلګو ته ددې حكم كړې دې.په عنايه كې دا حديث موجود دې. ﴿عن علي ﷺ أنه قال مات رجل من بني عبد المطلب فقال ﷺ يا علي إستقبل به القبلة إستقبالاً﴾ حضرت علي ﷺ فرمائى.چه په بنى عبدالمطلب كې يو سړې مړشو.نو نبي ﷺ اوفرمائيل. اے علي ﷺ دے قبلې اړخ ته متوجه كړه.

| |
|---|
| **وَيُحَلُّ الْعُقْدَةُ** او د كفن غوټې به پراستے شى **لِوُقُوعِ الْأَمْنِ مِنَ الْإِنْتِشَارِ** ځكه چې د كفن د خوريدو د ويرې نه امن راغلو |

**تشريح:- تحليل عقد الكفن**﴿﴾ فرمائى.چه مړے په لحد كې كيږدى.نود كفن غوټې به ورله پرانيزى.ځكه چې اوس د كفن د خويدو ويره پاتې نشوه.

| |
|---|
| **وَيُسَوَّى اللَّبِنُ عَلَى اللَّحْدِ** او په لحد به كچې خښتے برابر كړې شى **لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ جُعِلَ عَلَى قَبْرِهِ اللَّبِنُ**([2]) ځكه چې د رسول الله ﷺ په قبر كچې خښتے لګولې شوې وى |

**حل اللغة** ① لبن: كچه خښتې

**تشريح:- وضع اللبن على اللحد**﴿﴾ددې نه روسته به په لحد باندې كچه خښتے اولګول.ځكه چې د نبي ﷺ په قبرباندې كچه خښتے لګيدلې شوې وې.دحضرت جابر ﷺ نه نقل دى. ﴿كان قبر النبي ﷺ اللحد ونصبنا عليه اللبن نصباً ورفع قبره من الأرض شبرا﴾ يعني نبى ﷺ په لحد كې كيخودے شوې وو.او موږ په لحد باندې كچه خښتے لګولې وې.او د نبى ﷺ قبرمبارك د يو لويشت په اندازه د زمكے نه اوچت ساتلې شوې وو.

---

[1]) قال الزيلعي رحمه الله قلت غريب وقد يستأنس له بحديث نصب الراية ٣٠٨/٢) وخرجت ذلك الحديث في ،،سنن الصلاة،، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ سِنَانٍ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ حَدَّثَهُ وَكَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ أَنَّ رَجُلًا سَأَلَهُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا الْكَبَائِرُ فَقَالَ هُنَّ تِسْعٌ ..... فَذَكَرَ مَعْنَاهُ زَادَ وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ الْمُسْلِمَيْنِ وَاسْتِحْلَالُ الْبَيْتِ الْحَرَامِ قِبْلَتِكُمْ أَحْيَاءً وَأَمْوَاتًا أخرجه ابوداود في الوصايا باب ماجاء في التشديد في أكل مال اليتيم رقم ٢٤٩٠ رجاله ثقات إلا يحى بن كثير فانه يتهم بالتدليس)_

[2]) خرجته في ،،سنن الصلاة،، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ أَنَّ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ فِي مَرَضِهِ الَّذِي هَلَكَ فِيهِ الْحَدُوا لِي لَحْدًا وَانْصِبُوا عَلَيَّ اللَّبِنَ نَصْبًا كَمَا صُنِعَ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أخرجه مسلم في الجنائز باب في اللحد ونصب اللبن رقم ١٦٠٦)



| |
|---|
| **وَيُسَجَّى قَبْرُ الْمَرْأَةِ بِثَوْبٍ حَتَّى يُجْعَلَ اللَّبِنُ عَلَى اللَّحْدِ** اود ښځې قبر به په كپړه باندې پټولې شى .تر دې چې كچې خښتے په لحد باندې اولګولې شى **وَلَا يُسَجَّى قَبْرُ الرَّجُلِ** او د سړى په قبر به پرده نشى كولې **لِأَنَّ مَبْنَى حَالِهِنَّ عَلَى السِّتْرِ** ځكه د ښځو حال په پرده باندې مبنى دې **وَمَبْنَى حَالِ الرِّجَالِ عَلَى الْإِنْكِشَافِ** او د سړى حال په ښكاره كاوه باندې . |

**تشريح:- تسجية قبر المراة**﴿﴾ اود ښځې لحد ته د كوزولو په وخت كې به په قبر باندې پرده كولاى شى . تر دې چې لحد په كچه خښتو بند كړې شى. او د سړى په قبر به پرده نشى كولې

**دليله**﴿﴾دليل دا دې.چه د ښځو حال په پرده باندې مبنى دې.اود سړو حال په ښكاره كاوه باندے مبنى دې.دغه ډول د حضرت فاطمے رضي الله عنها قبر ته د كوزوول په وخت كښ د هغې په قبر پرده كړې شوې وه.

### په قبر كښې د لګيدونكو څيزونو احكام

| |
|---|
| **وَيُكْرَهُ الْآجُرُّ وَالْخَشَبُ** او پخې خښتے او لرګى لګول مكروه دې |

**حل اللغة** ① اجر: پخې خښتې ② خشب: لرګى

**تشريح:- كراهية الاجر في القبر**﴿﴾ په قبركې پخې خښتے او لرګى لګول مكروه دى.

| |
|---|
| **لِأَنَّهُمَا لِإِحْكَامِ الْبِنَاءِ** ځكه چې دا دواړه شيان (څيزونه ) د آبادئ د پوخوالى لپاره دى **وَالْقَبْرُ مَوْضِعُ الْبِلَى** اوقبرد روستيدو ځائې دې **ثُمَّ بِالْآجُرِّ يَكُونُ أَثَرُ النَّارِ** بيا دا چې په پخو خښتو كې د اور اثر وى **فَيُكْرَهُ تَفَاؤُلًا** اود بدفالئ د امله هم مكروه دې |

**حل اللغة** ① بناء: مضبوطيا ② موضع، ځائ مقام

**تشريح:- الدليلان**﴿﴾ ①دليل دا دې.چه دا دواړه شيان (څيزونه ) د آبادئ د مضبوطتيا لپاره دى.او قبر د اندامونو بوسه كيدو او بربادېدو ځائې دې.نو په دې سے ځائې دا سے شى لګول چې عبث وى.اسراف او مكروه دې.② د پخوخښتو په لګولو كې وجه دكراهت دا هم ده.چه په پخه خښته باندې د اور اثر وى.نوتفاولاً مكروه دې.لكه چې دده د آخرت كور د اور په كومك سره تيار شوې دې.

| |
|---|
| **وَلَا بَأْسَ بِالْقَصَبِ** او د بانړس په استعمال كې څه باك نشته **وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ، وَيُسْتَحَبُّ اللَّبِنُ وَالْقَصَبُ** او په جامع صغير كې دى.چې د كچې خښتے اوبانړس استعمال مستحب دې **لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ جُعِلَ عَلَى قَبْرِهِ طُنٌّ مِنْ قَصَبٍ**([1]) ځكه چې دنبى ﷺ په قبر باندې د بانړس يو لرګے لګولې سوى وو **ثُمَّ يُهَالُ التُّرَابُ** بيا به خاوره اچولې شى |

**حل اللغة** ① لاباس: هيڅ باك نشته ② قصب، بانړس ③ يهال، هال هيلاً (ض): خاوره اچول

**تشريح:- الروايتان في استعمال القصب**﴿﴾ ①د نل او بانړس په استعمال كې څه باك نشته.په جامع صغير كې دى.چه كه خښته او بانړس لګول مستحب دى.②د قدورى عبارت په استحباب باندې دلالت نه كوى.او د جامع صغير عبارت ددې څيزونو په استحباب باندې دلالت كوى.

**دليل الاستحباب**﴿﴾دليل دا دې.چه د رسول الله ﷺ په قبر باندې د بانړس لرګى لګيدلى وو.بيا به په قبر خاورے واچولې شى.

| |
|---|
| **وَيُسَنَّمُ الْقَبْرُ** او قبر د اوښ د بوق (قب) نما جوړوى **وَلَا يُسَطَّحُ أَيْ لَا يُرَبَّعُ** او اوچت دے نه چتى يعنى چوكور دے نه جوړوى **لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنْ تَرْبِيعِ الْقُبُورِ**([2]) ځكه چې نبى ﷺ د قبرونو څلوركوتيز كاوه نه منع كړى ده **وَمَنْ** |

---

[1]) من حديث شعى رواه ابن أبى شـ في مصنفه (١٣٣/٣) وابن سعد في الطبقات (٧٣/٦)_

[2]) من حديث أبي حنيفه أخرجه محمد في كتاب الآثار (ص،٤٢)_

شَاهَدَ قَبْرَهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَخْبَرَ أَنَّهُ مُسَنَّمٌ [1] اوچا چې د نبی ﷺ قبر ليدلے دې .هغه خبر ورکړی دې .چې د نبی ﷺ قبر بوق (قب) نما وو.

حل اللغة * ① يربع،ربع، تربيعاً: څلور ګوټه جوړول

تشريح:- تسنيم القبروتربيعه ﷺ ①او قبر به بوق نما جوړولے شی.يعنی د مځکې څخه به يو لويشت يا څه زيات اوچت وی. قبربه مسطح يعنی څلورګوټيز نشی جوړولې.

تشريح:- دليله ﷺ دليل دا دې.چه نبی ﷺ د قبرونو څلورګوټيز جوړولو نه منع فرمائيلې ده. ابراهيم نخعی رحمه الله فرمائی.چا چې د نبی ﷺ قبر ليدلې وو.اود حضرات شيخينو رضي الله عنهما قبرونه ئې ليدلی وو.هغه ماته خودلی دی.چه ددې حضراتو قبرونه مسنم يعنی بوق نما وو.

## باب الشهيد

(دا) باب د شهيد په بيان کې دې.

المقتول ميت باجله ﷺ د مقتول په اړه کې د اهل سنت والجماعت عقيده دا ده.چه دے «ميت بأجله» دې.يعنی دده مرګ په خپل وخت باندې راغلې دې.خپل وخت نه وړاندې نه دے واقع شوې.

الاعتراض ﷺ پاتې شوه دا خبره چې کله «ميت بأجله» دې.نو بيا په قاتل باندې قصاص يا ديت ولې واجبيږی.

الجواب ﷺ ددې ځواب دا دې.چه قاتل چونکه د قتل سبب اختياروول د امله په نظام کې خرابی پيدا کړړه.نو چونکه ددې نظام د پاته ساتلو لپاره د قاتل لپاره سزا مقرر کړې شوه.

وجه استقلال احكام الشهيد ﷺ دشهيد احکام په جلا باب کې ذکرکړې شول.چه د شهيد مرګ د نورو مړګونو نه په زرهاؤ درجې افضل دې.تر دې چې شهيد في سبيل الله ته مړے وئيل هم منع دی.الله تعالی فرمائی [وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتٌ بَلْ أَحْيَاءٌ وَلَٰكِنْ لَا تَشْعُرُونَ] د جنائز نه روسته د شهد ذکر کول د «ذکر الخاص بعد العام» د قبيلې څخه دې.لکه په قرآن پاک کې د فرښتو د ذکر نه روسته د حضرت جبرئيل او ميکائيل ذکر دې.مثلاً دالله عالی فرمان دې. [مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِلَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَرُسُلِهِ وَجِبْرِيلَ وَمِيكَالَ فَإِنَّ اللَّهَ عَدُوٌّ لِلْكَافِرِينَ]

وجوه تسمية الشهيد ﷺ د شهيد نوم ځکه شهيد کيخودلې شوېدې. چې مقتول في سبيل الله ونکه ژوندے وی.او د الله تعالی سره موجود وی.نوځکه ورته شهيد وئيلې شی.ځکه چې د شهيد معنی هم موجود د اوحاضرده.②دويمه وجه دا هم ده.چه مقتول في سبيل الله «مشهود له بالجنة» دې.يعنی دده د جنتی کيدو وعده شوې ده.ځکه ورته شهيد وئيلی شی.③دريم وجه دا ده. چې فرښتے د تکريم او تعظيم لپاره د مرګ په وخت کښے حاضريږی.نو دا به د مشهود په معنی کښ شی.لکه فعيل چې په معنی د مفعول راځی.

الشهيد في الاصطلاح ﷺ د فقهاؤ په اصطلاح کې شهيد هغه دې.①څوک چې مشرکانو په ميدن کې کې قتل کړې وی.②يا په ډګر جنګ کې اوموندلې شی.او دده په بدن باندې د قتل اثر وی.③يا مسلمانانو په ظلم سره قتل کړې وی.او دده د قتل په وجه ديت واجب شوېنه وی.

**د شرعی شهيد قسمونه**

الشَّهِيدُ مَنْ قَتَلَهُ الْمُشْرِكُونَ شهيد هغه دې .څوک چې مشرکانو قتل کړی وی أَوْ وُجِدَ فِي الْمَعْرَكَةِ وَبِهِ أَثَرٌ يا په ډګر

[1] خرجته فی ,,سنن الصلاة،، عن سفيان التمار أنه حدثه أنه رأى قبر النبی صلى الله عليه وسلم مسنما أخرجه البخاری فی الجنائز باب ماجاء فی قبر النبی ﷺ وأبی بكر رضي الله عنه وعمر رضي الله عنه رقم ١٣٠٢)_



جنګ کې ملاؤ شی .او په ده باندې اثر وی أَوْ قَتَلَهُ الْمُسْلِمُونَ ظُلْمًا يا دے مسلمانو قتل کړی وی په ظلم سره وَلَمْ يَجِبْ بِقَتْلِهِ دِيَةٌ او دده په قتل سره ديت واجب سوی نه وی

حل اللغة * ①قتله، قتل، قتلاً (ن): قتل کول ②وجد، وجد وجداناً (ض): موندل ③اثر: نښانه

تشريح:- اقسام الشهادة ﷺ صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه د شهيد څو صورتونه دی.①يو مسلمان مشرکانو قتل کړلو.که په څه آله سره وی اوکه په لرګی وغيره سره وی.②يو مسلمان په ډګر جنګ کې په دې سے حالت کښ بيا موندلے شو.چه دده په بدن باندې د زخم وغيره اثر وی.③يو مسلمان مسلمانانو په ظلم سره قتل کړې وی.اوددغه قتل په وجه ديت نه واجبيږی.

فَيُكَفَّنُ وَيُصَلَّى عَلَيْهِ وَلَا يُغَسَّلُ نو دے به کفن کولای شی .اوپه ده به لمونځ کولای شی .اوده ته به غسل نشی ورکولی لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى شُهَدَاءِ أُحُدٍ ځکه چې داسې مقتول د شهداء احد په معنی کې دې

تشريح:- حکم غسل الشهيد والصلاة عليه وتكفينه ﷺ نو په دې درې واړه صورتونو کې دا حکم دې.چه په اتفاق سره به کفن ورکولې شی.خو په لمونځ کې اختلاف دې.زموږ د عالمانو رحمهم الله په نيز د شهيدوانو د جنازې لمونځ به کولې شی.او د امام شافعی رحمه الله په نيز به نشی کولې.شهيد ته خوکفن د دې امله ورکولے شی.چه کفن کول د بنيادم د سړو لپاره سنت دې.نو که د شهيد په بدن باندې جامے وی.نو هغه به نشی لرے کول.ددې نور تفصيل به په راروانو صفحو کې راشی.

وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِيهِمْ {زَمِّلُوهُمْ بِكُلُومِهِمْ وَدِمَائِهِمْ وَلَا تُغَسِّلُوهُمْ} [1] او نبی ﷺ د احد دشهداء په اړه کښے فرمائيلی وو.ه دوی اونغاړئ.د خپلو زخمونو او وينو سره ،او دوی ته غسل مه ورکوئ

حل اللغة * ① زملوهم، زمل تزميلاً: پټول (څادر) اغوستل

تشريح:- دليل عدم نزع الثياب وعدم الغسل ﷺ ځکه چې نبی ﷺ د احد د شهيدانو په اړه کې فرمائيلی دی. «زملوهم بكلومهم ودمائهم» او په يو روايت کې دې. «بثيابهم» يعنی دوی په کفن کړئ.د خپلو زخمونو او وينو سره،ود جامو سره،

فَكُلُّ مَنْ قُتِلَ بِالْحَدِيدَةِ ظُلْمًا نو کوم کس چې قتل کړی ی.په تيغداره اوسپنه باندې په ظلم سره وَهُوَ طَاهِرٌ بَالِغٌ او دے پاك او بالغ وی. وَلَمْ يَجِبْ بِهِ عِوَضٌ مَالِيٌّ او دده د قتل په وجه عوض مالی هم واجب سوی نه وی فَهُوَ فِي مَعْنَاهُمْ نو هغه هم د شهداء احد په معنی کښ دې فَيَلْحَقُ بِهِمْ نو د هغوی سره به لاحق کولای شی وَالْمُرَادُ بِالْأَثَرِ الْجِرَاحَةُ او د اثر نه مراد زخم دې لِأَنَّهَا دَلَالَةُ الْقَتْلِ ځکه چې زخم دليل د قتل دې ،وَكَذَا خُرُوجُ الدَّمِ مِنْ مَوْضِعٍ غَيْرِ مُعْتَادٍ كَالْعَيْنِ وَنَحْوِهَا او دغه ډول دعادت خلاف چې د کوم ځائی نه وينه اوځی.لکه سترګے و ددې پشان

حل اللغة * ① لم يجب،وجب وجوباً(ض): واجب کيدل ② فيلحق، لحق لحوقاً (س): لاحق کيدل،ملاويدل ③ جراحة: زخم

تشريح:- حکم المقتول ظلماً ﷺ صاحب هدايه فرمائی.چه کوم کس په تيزه آله باندې په ظلم سره قتل کړې شی.او هغه پاك او بالغ وی.او دده د قتل په وجه عوض مالی نه واجبيږی.نوداکس هم د شهداء احد په حکم کې دې.نو دے به هم د شهداء احد سره ملحق کولے شی.

[1] غربه الزيلعی رحمه الله بهذا اللفظ وخرجت فی ,, سنن الصلاة،، عَنْ جَابِر بْن عَبْد اللَّه رَضِيَ اللَّه عَنْهمَا قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْمَع بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ من قَتْلَى أُحد فی ثَوْب وَاحد ثُمَّ يَقُولُ أَيُّهمْ أَكْثَر أَخْذًا لِلْقُرْآنِ فَإِذَا أُشِيرَ لَهُ إِلَى أَحَدهمَا قَدَّمَهُ فی اللَّحْد وَقَالَ أَنَا شَهِيدٌ عَلَى هَؤُلَاءِ يَوْمَ الْقِيَامَة وَأَمَرَ بِدَفْنِهِمْ فِي دِمَائِهِمْ وَلَمْ يغسلوى أخرجه البخاری فی الجنائز باب الصلاة على الشهيد رقم ١٢٥٧)_

وَالشَّافِعِي يُخَالِفُنَا فِي الصَّلَاةِ او امام شافعي رحمه الله په لمانځه كښے زمونږ مخالف دې وَيَقُولُ السَّيْفُ مَحَّاءٌ لِلذُّنُوبِ او امام شافعي رحمه الله فرمائي.چې توره د ګناهونو محو كونكے دې فَأَغْنَىٰ عَنِ الشَّفَاعَةِ نو دے د شفاعت نه مستغنى كړي سو

تشريح:- زمونږ د اړخه ځواب دا دې چې چې په مړي باندې د جنازې لمونځ صرف د دعا لپاره نه دې بلكه د دعا نه علاوه د مړي عزت او تعظيم ښكاره كول هم دى او شيهد د تكريم او عزت زيات مستحق دې نو ددې امله به د نورو مړو پشان په شيهد باندې هم د جنازې لمونځ كولاى شي

وَنَحْنُ نَقُولُ: الصَّلَاةُ عَلَى الْمَيِّتِ لِإِظْهَارِ كَرَامَتِهِ او مونږ وايو.چې په مړي باندې د جنازې لمونځ كول د هغه كراهت ښكاره كاوه لپاره وى وَالشَّهِيدُ أَوْلَى بِهَا(١) او شهيد ددې زيات مستحق دې وَالطَّاهِرُ عَنِ الذُّنُوبِ لَا يَسْتَغْنِي عَنِ الدُّعَاءِ كَالنَّبِيِّ وَالصَّبِيِّ او ځوك چې د ګناهونو نه پاك وى.هغه د دعا نه مستغنى نه دې .لكه پيغمبر ﷺ او ماسوم،

تشريح:- د شهيد د لمانځه په اړه كي زمونږ او د امام شافعي رحمه الله په مينځ كي اختلاف دې زمونږ په نيز د شهيد د جنازې لمونځ هم فرض كفايه دې او امام شافعي رحمه الله د شهيد د جنازې قائل نه دې د امام شافعي رحمه الله دليل دا دې چې د جنازې لمونځ په حقيقت كي د مړي لپاره سفارش او دعا ده او كومه توره چې په شهيد باندې چلولې شوې ده نو هغې د ده ګناهونه ختم كړي دى نو هر كله چې تورې د شهيد ګناهونه ختم كړل نو د هغه لپاره د سفارش اود دعا اړتيا پاتې نشو ددې امله به په شهيد باندې د جنازې لمونځ نشي كولې

تشريح:- د امام شافعي رحمه الله دا وئيل چې كوم كس د ګناهونو نه پاك وى هغه د دعا نه مستغى دې دا خبره غلطه ده ځكه چې رسول الله (ص) څخه به زيات پاك ځوك وى ؟ او دغه ډول ناآبالغه ماشوم د ګناهونو نه پاك وى ددې باوجود په دې دواړو باندې د جنازې لمونځ كول فرض دى نوهر كله چې په نبى او ماشوم باندې د جنازې لمونځ كول فرض دې نو په شهيد باندې به د جنازې لمونځ كول هم فرض وى.

### دحربيانو،باغيانواو ډاكوانودلاسه دقتل شوي حكم

وَمَنْ قَتَلَهُ أَهْلُ الْحَرْبِ او كوم كس چې حربيانوقتل كړو أَوْ أَهْلُ الْبَغْيِ أَوْ قُطَّاعُ الطَّرِيقِ فَبِأَيِّ شَيْءٍ قَتَلُوهُ يا باغيانو يا ډاكوانو په څه څيزقتل كړو لَمْ يُغَسَّلْ ده ته به غسل نشى وركولې

حل اللغة* ① قتله، قتل قتلاً (ن): قتل كول ② اهل البغى: باغى ③ قطاع الطريق: ډاكو

تشريح:- من هو في معنى الشهيد ۞ مسئله، كه يومسلمان ددې رالحرب كافرانوقتل كړو.يا د داراسلام باغيانويا ډاكوانو قتل كړو.چه په كوم شى ئې هم قتل كړې وى.مقتول ته به شهيد وئيلې شى.اوده له به غسل نشى وركولې.

لِأَنَّ شُهَدَاءَ أُحُدٍ مَا كَانَ كُلُّهُمْ قَتِيلَ السَّيْفِ وَالسِّلَاحِ ځكه چې د اُحد شهيدان واړه په توره او وسله نه وو قتل شوى.

حل اللغة* ① سيف جمع سيوف: توره ② سلاح جمع اسلحه : وسله

تشريح:- دليله ۞ دليل دادې.چه دأحد شهيدان واړه په توره او وسله نه وو قتل شوى.بلكه بعضې ئې په سرونو

(١) خرجت له في ,,سنن الصلاة,, عن حصين عن أبي مالك قال أتى رسول الله صلى الله عليه وسلم يوم أحد بحمزة بن عبد المطلب فوضع وجيء بتسعة فصلى عليهم رسول الله صلى الله عليه وسلم كذا في مراسيل أبي داود باب الصلاة على الشهيد رقم ٤٧٧ (٣٠٦/١)_



په كاڼړو ويشتي او هلاك كړي وو.او بعضې په ډنډه هلاك كړى شوى وو.نودامعلومه شوه . چې دشهادت لپاره د اوسپنے په آله قتل شرط نه دى.

الاعتراض ۞ البته دا اعتراض په خپل ځائې دې.چه د دارالاسلام د ډاكوانو يا باغيانو مقتول د اُحد د شهيدانو په معنى كي نه دې.نود دوى دلاسه قتل شوې مسلمان ته شهيد نه دى وئيل پكار؟

الجواب: مونږته چې څنګه حربيانوسره دقتال امرشوې دې.دغه ډول دباغيانوسره.د قتال حكم هم دې.د الله تعالى ارشاد دې. [فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّىٰ تَفِيءَ إِلَىٰ أَمْرِ اللَّهِ] يعنى چه كومه ډله بغاوت اوكړى . هغې سره قتال اوكړئ.تر دې چې دالله امرته رجوع اوكړى.نوكوم كس چې دباغى دلاسه قتل شى.ده هم دالله د رضا لپاره خپل ځان وركړو.نود كافرانوسره په جنګ كي مرګ او د باغيانو دلاسه قتل دواړه برابرشو.دغه ډول د ډاكوانو دلاسه قتليدل هم دالله د رضا لپاره ځان وركول دى.ځكه چې د ډاكوانو په اړه كي دالله تعالى فرمان دے [إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ] الله تعالى ډاكوانو ته دالله اورسول ﷺ سره جنګ كونكى فرمائيلى دى.اوس چې ځوك د ډاكوانو سره جنګ كوى.اوددوى دلاسه قتل شي.نوګويا ده د الله اود رسول ﷺ د اړخه جنګ اوكړو. اومړشو.اوكوم كس چې دالله اودرسول ﷺ داړخه د الله تعالى د راضى كاوه لپاره جنګ كوى.اوقتل شي. نودې هم د كافرانو سره په جنګ كي د قتل شوى په شان دې.اوكوم مسلمان چې دكافرانو سره په جنګ كي قتل شى.دے بيشكه شهيد دې. او د باغيانو او ډاكوانو دلاس مقتول به هم دده په شان شهيد وى.

### جُنب شهيد ته دغسل وركولوحكم.

وَإِذَا اُسْتُشْهِدَ الْجُنُبُ اوكه په حالت دجنابت كي شهيد شو غُسِّلَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ (١)نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزبه ده ته غسل ور كولاى شي

حل اللغة* ① استشهد،استشهداستشهاداً: شهادت غوښتل ② جنب: په حالت دَ جنابت،جنبى

تشريح:- غسل الجنب الشهيد ۞ ① جنب مسلمان كه شهيد شو.نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزبه ده ته غسل وركولې شى.هم دا د امام احمد رحمه الله قول دې.

وَقَالَا: لَا يُغَسَّلُ اوصاحبين رحمهما الله فرمائى.چې ده ته به غسل نشى وركولې لِأَنَّ مَا وَجَبَ بِالْجَنَابَةِ سَقَطَ بِالْمَوْتِ ځكه چې كوم غسل دجنابت په وجه واجب شوې دې .هغه په مرګ سره ساقط شو وَالثَّانِي لَمْ يَجِبْ لِلشَّهَادَةِ اوبل غسل دشهادت په وجه واجب نه دې

حل اللغة* ① وجب،وجب وجوباً (ض): واجب كيدل

تشريح:- اودصاحبينو رحمهما الله په نيز به غسل نشى وركولې.ددې قائل امام شافعي رحمه الله هم دې.

دليل الصاحبين رحمهما الله ۞ دصاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه كوم غسل د جنابت په وجه واجب وو.هغه په مرګ سره ساقط شو.ځكه چې دمرګ په وجه دې دجنابت غسل ساقط.او دوهم غسل يعنى دمرګ غسل دشهادت په وجه واجب نه دې.ځكه چې شهادت دغسل دوجوب نه مانع دې.ځكه چې دشهيدانو په اړه كي حضور ﷺ فرمائيلى دى. «زملوهم بكلومهم ولا تغسلوهم» په حديث كي ددې هيڅ تفصيل نشته چې شهيد جنب وى يا غيرجنب وى.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّ الشَّهَادَةَ عُرِفَتْ مَانِعَةً غَيْرَ رَافِعَةٍ اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې .چې شهادت داسې پيژندے شوې دې

(١) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في مجمع الأنهر(١٨٩\١) والكفاية (١٠٧\٢) وفتح القدير(١٠٧\٢) والعناية (١٠٧\٢) ورد المحتار(٦٦٩\١) والبحر الرائق (١٩٨\٢) نقلاً عن القول الراجح (١٥٩\١)-

**وَلِأَنَّ الشَّهَادَةَ مَانِعَةٌ** ... چې دا دمړی دغسل واجبيدونه مانع دي .نه دا چې د واجب غسل رفع كونكے دي **فَلَا تَرْفَعُ الْجَنَابَةَ** نودا جنابت نه لرےكوی

**حل اللغة** ① **مانعة**: منع كونكې ښځه

**تشريح:- دليل ابی حنيفة**۞د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه شهادت،دمړی دغسل واجبيدونه مانع دې. خوكه د اول نه غسل واجب وی.نودا رفع كونكے نه دې.لكه چې دشهيد په جاموكه نجاست لګيدلې وی.نود دې پريمنځل ضروری دی.ليكن دده د بدن وينه پريمنځل ضروری نه دی.نوشهادت چونكه رافع نه دې.ځكه به شهادت جنابت هم نه لرےكوی.اوكله چې جنابت نه لرےكوی.نوجُنب شهيد ته به دجنابت غسل وركول لازمی وی.

**وَقَدْ صَحَّ أَنَّ حَنْظَلَةَ لَمَّا اُسْتُشْهِدَ جُنُبًا** اودا صحيح ده.چې حنظله ﷺ كله دجنابت په حالت كې شهيد شو **غَسَّلَتْهُ الْمَلَائِكَةُ** نودوی ته فرښتو غسل وركړې وو

**تشريح:- تائيده**۞ددې تائيد ددې واقعے نه هم كيږی.چه حضرت حنظله ﷺ كله شهيد شو.نوفرښتو ده ته غسل وركړې وو.حضورﷺ دده بی بی نه پوښتنه اوكړو.چه حنظلهﷺ په كوم حال كې وو.ددوی ښځے اووئيل.چه ماسره ئې جماع كړې وه.كله ئې چې دجنګ اعلان واوريدو.نودغسل كولونه بغير په جنګ كې شريك شو.اوشهيد شو.نبی كريمﷺ اوفرمائيل.چه هم داسبب دې.

**الاعتراض**۞كه دا اعتراض اوشی.چه د بندګانو غسل وركول واجب دی.دفرښتو نه دې.نوكه جُنب شهيد ته غسل وركول واجب وے،نونبی كريم ﷺ به حنظلهﷺ ته د دوباره غسل وركولوحكم كړې وو.

**الجواب**۞واجب خو صرف غسل وركول دی.غسل وركونكے چې څوك هم وی.تاسو خيال اوكړئ.چه كله فرښتو آدم عليه السلام ته غسل وركړو.نو واجب اداشو.د آدم عليه السلام اولاد دغسل اعاده اونكړه.كه د فرښتو وركړې شوې غسل ناكافی وې.نود آدم عليه السلام اولاد به د آدم عليه السلام دغسل اعاده كړې وه.او رسول اكرم ﷺ به دحضرت حنظله ﷺ دغسل اعاده كړې وه.

**وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ الْحَائِضُ وَالنُّفَسَاءُ إِذَا طَهُرَتَا** اوهم په دې اختلاف حائضه اونفاسه ښځه ده.كله چې دا پاكه شی

**تشريح:- هذا الاختلاف في الحائض والنفساء**۞هم دا اختلاف دحائضه او نفاسه ښځه كې دې.يعنی دحيض يا نفاس وينه چې منقطع شوه.نوپاكه شوه.اولا غسل ئې نه ووكړې.چه هم په دې حالت كې شهيده شوه.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به غسل وركولې شی.ځكه چې د امام صاحب رحمه الله په نيزشهادت دغسل دوجوب مانع دې.رافع دغسل نه دې.اودصاحبينو رحمهما الله په نيزبه غسل نشی وركولې.ځكه چې اول غسل خود مرګ په وجه ساقط شو.او دوهم د شهادت په وجه واجب نه دې.

**وَكَذَا قَبْلَ الْإِنْقِطَاعِ فِي الصَّحِيحِ مِنَ الرِّوَايَةِ** اوهم دغه ډول د انقطاع نه مخكې ده.د صحيح روايت مطابق **وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ الصَّبِيُّ** اوهم په دې اختلاف ماشوم دې

**حل اللغة** ① **انقطاع**: منقطع كيدل

**تشريح:- الروايتان في صورة انقطاع الغسل**۞ ①اود يوروايت مطابق كه دوينے بنديدو نه مخكې شهيده شوه.نود امام صاحب په نيز به دے له غسل نشی وركولې.ځكه چې دوينے منقطع كيدونه مخكې په دې غسل واجب نشو.②اود دوهم روايت مطابق به غسل وركولې شی.هم دا صحيح روايت دې.ځكه چې د مرګ په وجه انقطاع د وينے حاصله شوه.او بهيدونكے وينه د انقطاع په وخت غسل واجبوی.اوماشوم كه شهيد شی.نود امام صاحب رحمه الله په نيز به ده ته غسل وركولې شی.اودصاحبينو رحمهما الله په نيز به غسل نشی وركولې.

**لَهُمَا أَنَّ الصَّبِيَّ أَحَقُّ بِهَذِهِ الْكَرَامَةِ** دصاحبينو رحمهما الله دليل دادې .چې ماشوم ددې كرامت زيات مستحق دې

**حل اللغة** ① **كرامة**:بزرګی،شرافت



**تشريح:- دليل الصاحبين** رحمهما الله ۞دصاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه دشهيد نه غسل ځكه ساقطيږی.چه دده دمظلوميت اثر پاته دې.نوشهيد ته غسل نه وركول دده د اكرام په وجه دې.اود ماشوم مظلوميت زيات دې.نوماشوم ددې كرامت زيات مستحق دې.

**وَلَهُ أَنَّ السَّيْفَ كَفَى عَنِ الْغُسْلِ فِي حَقِّ شُهَدَاءِ أُحُدٍ بِوَصْفِ كَوْنِهِ طُهْرَةً** اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې .چې د اُحد دشهيدانو په حق كې دغسل نه توره كافی شوې وه.په دې وصف سره چې توره ګناهونو نه پاكونكے ده

**تشريح:- دليل ابی حنيفة**۞د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه داُحد دشهيدانو په حق كې توره دغسل نه كافی شوه.ځكه چې توره ګناهونه پاكوی.يعنی داُحد شهيدانو ته غسل ځكه ورنكړې شو.چه تورے دوی دګناهونو نه پاك كړی دی.

**وَلَا ذَنْبَ عَلَى الصَّبِيِّ** او په ماشوم هيڅ ګناه نشته **فَلَمْ يَكُنْ فِي مَعْنَاهُمْ** نو ماشوم د اُحد د شهيدانو په معنی كې نشو.

**تشريح:-** اوپه ماشوم هيڅ ګناه نشته.ځكه به ماشوم داُحد دشهيدانو په معنی كې نه وی.اوچه داُحد دشهيدانو په معنی كې نشو.نوداُحد دشهيدانو په شان دماشوم څخه به غسل هم نه ساقطيږی.بلكه ماشوم ته به غسل وركولےشی.

## د شهيد د وينې جامو.اوزياتې څيزونود وينځلو حكم

**وَلَا يُغَسَّلُ عَنِ الشَّهِيدِ دَمُهُ** ودشهيد څخه به دده وينه نشی وينځلې **وَلَا يُنْزَعُ عَنْهُ ثِيَابُهُ لِمَا رَوَيْنَا** اونه به دده نه جامے اوښكلې شی .د هغه حديث په وجه كوم چې موږ روايت كړې دې **وَيُنْزَعُ عَنْهُ الْفَرْوُ وَالْحَشْوُ وَالْقَلَنْسُوَةُ وَالسِّلَاحُ وَالْخُفُّ** اود شهيد څخه به جدا كولای شی .پوستين دمالوچووغيره نه ډك شی ،وسله او موزې **لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنْ جِنْسِ الْكَفَنِ** ځكه چې دا شيان (څيزونه ) دكفن دجنس څنې نه دی

**حل اللغة** ① **لايغسل، غسل غسلاً** (ض): پريمنځل ② **دم جمع دماء**: وينه ③ **لاينزع،نزع نزعًا** (ف): ويستل، كوزول ④ **فرو**: مالوچ ⑤ **حف**: موزه

**تشريح:- نزع الثياب الفاضلة عن الشهيد**۞ ①دشهيد په بدن كه دڅمړے جامے،پوستين وغيره وی.يا د مالوچووغيره نه ډك شوې شی وی.يا وسله اوموزې وی.نودا دے ترے اوويستې شی.دا د احنافو عالمانو مذهب دې.

**وَيَزِيدُونَ وَيَنْقُصُونَ مَا شَاءُوا إِتْمَامًا لِلْكَفَنِ** اودكفن سنت پوره كاوه لپاره چې څه غواړی كمے او زياتے كولای شی .

**حل اللغة** ① **يزيدون،زاد زيادة** (ض): زياتول ② **ينقصون، نقص، نقصًا** (ن): كمول ③ **اتمامًا** : پوره كول

**تشريح:- دليله**۞ دليل دابن عباس رضی الله عنهما حديث دې. ﴿قال أمر رسول الله ﷺ بقتلی أحد أن ينزع عنهم الحديد والجلود وأن يدفنوا بدمائهم وثيابهم﴾ يعنی رسول الله ﷺ د اُحد د شهداؤ په اړه كې حكم وركړې وو.چه د دوی نه اوسپنه او پوستين جلا كړئ.اودوی د وينے سره په جاموكې دفن كړئ.ښكاره دا ده.چه ذكرشوی دواړه حديثونه متعارض دی.ځكه مونږ دواړه پريږدو. اوقياس اړخ ته رجوع كوو.او قياس دا دې .چه پوستين وغيره اوښكلې شی.ځكه چې داشيان (څيزونه ) دكفن دجنس څنې نه دی.

**تشريح:- توافق الثياب المسنون في كفن الشهيد**۞دشهيد په بدن كه دمسنون عدد نه كمے جامے وی.نو په هغې كې به اضافه كولې شی.چه مسنون عدد ته اورسی.اوكه دمسنون عدد نه زياتےجامے وی.نوكمولې به شی.چه مسنون عدد پاته پاتې شی.

## د ارتثاث تعريف

قَالَ وَمَنْ أُرْتُثَّ غُسِّلَ اوکوم کس چې ارتثاث بیامومي.ده ته به غسل ورکولے شي وَهُوَمَنْ صَارَخَلَقًا فِي حُكْمِ الشَّهَادَةِ لِنَيْلِ مَرَافِقِ الْحَيَاةِ اوداهغه دي .چې د شهادت په حکم کي زوړ شی .د ژوند منافع حاصلولو په وجه لِأَنَّ بِذٰلِكَ يَخِفُّ أَثَرُالظُّلْمِ ځکه چې ددې په وجه د ظلم اثرسپکیږي فَلَمْ يَكُنْ فِي مَعْنَى شُهَدَاءِأُحُدٍ نودې د أحد د شهیدانوپه معنی کي نه پاتې کیږي

**حل اللغة**° ① **نيل**: موندل ② **مرافق**: منافع

**تشريح:- الاثثات واحكامه**۞دارتثاث معنی ده،زړیدل. ﴿ثوب رث﴾ زړے جامے ته وائي.صورت دمسئلے دا دې. که مقتول في سبيل الله د زخمي کيدو نه روسته او د مرګ نه مخکي د ژوند څه منافع حاصلے کړې. نوونیلے به شي.چه دا شهید پخوې نے شو.اوچونکه د ژوند منافع حاصلولو په وجه د ظلم اثر هم سپك کیږي. ځکه دے د احد دشهیدانو په معنی کي نشو.اوچه د أحد د شهیدانو په معنی کي نشو.نوده ته به غسل ورکولې شي.ځکه چې د غسل سقوط د هغه شهید په حق کي دې.چه د أحد د شهیدانو په معنی کي وی.

وَالْإِرْتِثَاثُ أَنْ يَأْكُلَ أَوْيَشْرَبَ أَوْيَنَامَ أَوْيُدَاوٰى أَوْيُنْقَلَ مِنَ الْمَعْرَكَةِ حَيًّا اوارتثاث دا دې .چې خوراك څكاك اوكړي.يا اوده شي .يا دده علاج اوشي .يا دجنګ ډګر نه منتقل کړې شي لِأَنَّهُ نَالَ بَعْضَ مَرَافِقِ الْحَيَاةِ ځکه چې ده د ژوندڅه فائدے حاصلے کړې وَشُهَدَاءُأُحُدٍ مَاتُوا عِطَاشًا اود أحد شهیدان خو تږی مړه شوی وو وَالْكَأْسُ تُدَارُ عَلَيْهِمْ حالانکه د اوبو پیالئ په دوی ګرځولې شوه فَلَمْ يَقْبَلُوا خَوْفًا مِنْ نُقْصَانِ الشَّهَادَةِ خو دوی د شهادت د نقصان په وبیره دا قبوله نکړه

**حل اللغة** ° ① **ياكل،اكل اكلاً** (ن): خوراك ② **ينام،نام نوماً** (س): اوده کیدل ③ **معركة**: جنګ

**تشريح:- تعريف الارتثاث**۞صاحب د قدوری رَحِمَهُ اللهُ وائي.چه ارتثاث دا دې.چه مقتول في سبيل الله دمرګ نه مخکي څه اوخوری یا اوڅکي یا علاج معالجه اوکړي.دجنګ نه د راحت په غرض منتقل کړې شي.ځکه چې ده د ژوند څه منافع حاصل کړل.حالانکه د أحد د شهیدانو حال دا وو.چه اوبه دوی ته پیش کولې شوې.خودوی دشهادت د نقصان په ویره قبول نکړې.اوهم دغه ډول ئې ترقیدو ترقیدوکښے ساه ورکړه.

إِلَّا إِذَا حُمِلَ مِنْ مَصْرَعِهِ كَيْ لَا تَطَأَهُ الْخُيُولُ خود مقتل نه ځکه راوړلے شول.چې اسونه ئی د پښو لاندې پائمال نکړی لِأَنَّهُ مَانَالَ شَيْئًا مِنَ الرَّاحَةِ ځکه چې ده د راحت نه هیڅ حاصل نکړل

**حل اللغة** ° ① **خيول واحد خيل**: اس

**تشريح:- من هم المرتثون؟**۞اوکه یوشهید د ډګر جنګ منتقل کړې شي.دے لپاره په ډګر جنګ کي ئې اسونه د پښو لاندې نکړي.نودا به ارتثاث نه وی.ځکه چې ده هیڅ راحت نه دے حاصل کړې.

وَلَوْ آوَاهُ فُسْطَاطٌ أَوْخَيْمَةٌ اوکه ده ته په لویه یاوړه خیمه کي ځائې ملاوشی كَانَ مُرْتَثًّا لِمَا بَيَّنَّا نوده ارتثاث بیا موندو.د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړو

**تشريح:-** اوکه ده ته ئې په لویه یا وړه خیمه کي پناه ورکړه. نودې به ارتثاث موندونکے شمارلے شي.

وَلَوْ بَقِيَ حَيًّا حَتّٰى مَضٰى وَقْتُ صَلَاةٍ وَهُوَ يَعْقِلُ اوکه دے دلمونځ د وخته پورې ژوندے پاتې شو.حالانکه پوهیدو فَهُوَ مُرْتَثٌّ نودې هم د ارتثاث حاصلونکے دې لِأَنَّ تِلْكَ الصَّلَاةَ صَارَتْ دَيْنًا فِي ذِمَّتِهِ ځکه چې دا لمونځ دده په ذمه پور شو وَهُوَمِنْ أَحْكَامِ الْأَحْيَاءِ اودا د ژوندو داحکامو څنې دی **قال** علامه مرغینانی رَحِمَهُ اللهُ وائی قَالُوا وَهٰذَا مَرْوِيٌّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ چې دا د امام ابویوسف رَحِمَهُ اللهُ نه نقل دی

**تشريح:-** اوکه شهید د یولمونځ وخت تیریدو پورې ژوندے پاتې شو.اوبه دې سےحال کي ژوندے پاتې شو.چه د په هوش کي وو. نودې هم ارتثاث موندونکے شو.ځکه چې دا لمونځ دده په ذمه پور شو.او لمونځ د چا په ذمه



پور کیدل د دنیا د احکامو څنې دی.

وَلَوْ أَوْصٰى بِشَيْءٍ مِنْ أُمُورِ الْآخِرَةِ اوکه د آخرت په أمورو کي ئې د څه شی وصیت اوکړو كَانَ ارْتِثَاثًا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نود ابویوسف په نیز دا هم ارتثاث دې لِأَنَّهُ ارْتِفَاقٌ ځکه چې دا هم راحت دې وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ لَا يَكُونُ[1] اود امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په نیزدا ارتثاث نه دې لِأَنَّهُ مِنْ أَحْكَامِ الْأَمْوَاتِ ځکه چې دا د مړو داحکامو څنې دي .

**تشريح:- المذهب في ارتثاث الموصى**۞صاحب دهدایه رَحِمَهُ اللهُ وائي.چه دا دامام ابویوسف رَحِمَهُ اللهُ روایت دے .اوکه مقتول في سبيل الله د آخرت په امرکي دڅه څیزوصیت اوکړي.نود امام ابویوسف رَحِمَهُ اللهُ په نیزدا هم ارتثاث دې.ځکه چې دا دحصول ثواب راحت دې.اود امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په نیزدا ارتثاث نه دې.ځکه چې دا دمړو داحکامو څنے دې.

## په ښارکښې دموندلې شوی مقتول دغسل حکم

وَمَنْ وُجِدَ قَتِيلًا فِي الْمِصْرِ غُسِّلَ اوکوم کس چې په ښارکي دننه مقتول بیاموندې شو.ده ته به غسل ور کولای شي لِأَنَّ الْوَاجِبَ فِيهِ الْقَسَامَةُ وَالدِّيَةُ ځکه چې په دې قتل کي واجب قسامت اودیت دې فَخَفَّ أَثَرُ الظُّلْمِ نوځکه دظلم اثرسپك شو.

**حل اللغة**° ① **وجد، وجد وجداناً** (ض): موندل ② **مصر جمع امصار**: ښار ③ **فخف، خف خفيفاً** (ض): سپکیدل

**تشريح:- وجوب غسل المقتول في المصر**۞مسئله:که یومقتول په ښارکي دننه بیاموندې شي.اودده قاتل معلوم نه وی. نو ده ته به غسل ورکولې شي.ځکه چې په دې صورت کي به په محله والو دیت واجب وی.اوددې دیت نفع به مړی ته رسی.که مقتول مدیون وی.نو په دې به دده پور اداکولې شي.بهرحال چې د دیت نفع مقتول ته حاصل شوه.نو په ده به د ظلم اثرسپك شي.اوچه دا مقتول کامل مظلوم پاتې نشو.نود أحد دشیهدانو په معنی کي هم نشو.اوداُحد د شهیدانو په شان به دده نه غسل نه ساقطیږي.

إِلَّا إِذَا عُلِمَ أَنَّهُ قُتِلَ بِحَدِيدَةٍ ظُلْمًا خوچې دا معلومه شي .چې دے په تیره آله په ظلم قتل شوې دي لِأَنَّ الْوَاجِبَ فِيهِ الْقِصَاصُ وَهُوَعُقُوبَةٌ ځکه چې په هغې کي قصاص واجب دې .او هغه عقوبت دې وَالْقَاتِلُ لَا يَتَخَلَّصُ عَنْهَا ظَاهِرًا اوقاتل به په ښکاره ددې نه خلاصے نشی موندې إِمَّا فِي الدُّنْيَا أَوِ الْعُقْبٰى یاخو په دنیا کي یا په آخرت کي

**حل اللغة** ° ① **حديدة**: مخ والا آله ② **عقوبة**: سزا ③ **عقبى**: آخرت

**تشريح:- عدم وجوب غسل المقتول**۞اوکه دا معلومه شوه.چه په تیره آله قتل شوې دے .او د ده قاتل هم معلوم وی.نوده ته به غسل نشی ورکولې.ځکه چې په دې صورت کي قصاص واجب دې.اوقصاص عقوبت دےعوض نه دې.نوچه قصاص عقوبت دې.عوض نه دې.نوظلم اثر به هم سپك نه وی.بلکه مقتول به کامل مظلوم وی.نو چې کامل مظلوم دې.نود احد دشهیدانو په معنی کي دکیدو په وجه به ده ته غسل هم نشي ورکولې.او پاتې شوقاتل، نودې به نشي بچ کیدې.ځکه چې که په قاتل قابو اوموندې شي. نوهم په دنیاکي به ددې سزا بیامومي.اوکه قابوملاؤنشو.نوپه آخرت کي به ملاویږي.

**الخلاصة**۞حاصل دا که د قتل په وجه قاتل یا دقاتل ولیان یا دده په عاقله باندې دیت واجب شو. نو مقتول به په دنیا کي شهید نه وی.د عامو مړو په شان به ده ته هم غسل ورکولې شي.اوکه د قتل په وجه قصاص واجب شو.نو مقتول به شهید وی.او ده ته به غسل نشي ورکولې.

**الاعتراض**۞دلته کي یوسوال کیدای شي.هغه داچه د چا د قتل په وجه قصاص واجب شوېدې.هغه کس د احد د شهیدانو په معنی کي نه دې.ځکه چې د احد دشهیدانود قتل په وجه هیڅ څیزنه وو واجب

---

[1] القول الراجح هو هذا قول محمد رحمه الله كذا في الكفاية في صدر فتح القدير ۱۰۹\۹۲) والدرى لمختار(۶۷۲\۱) وردالمحتار(۶۷۳\۱) نقلاً عن القول الراجح (۱۵۹\۱)_

شوې.اوكوم كس چې د احد دشهيدانو په معنى كي نه وى.هغه ته به غسل وركولې شى.نو ده ته هم غسل وركول پكاردى.دچا دقتل په وجه چې قصاص واجبيږى.

**الجواب**﴿د قصاص فائده دمقتول وليانو او ټولوانسانانو ته رسى.مقتول ته هيڅ فائده نه رسى.نوڅنګه چه د احد شهيدانوته څه فائده حاصل نشوه.دغه ډول ده ته هم هيڅ فائده حاصله نشوه.په خلاف د ديت،ځكه چې د ديت نفع مقتول ته رسى.تر دې چې د ديت مال نه دده پور اداكولې شى. اوكه وصيت ئې كړې وى.نوهغه به نافذ كولې شى.

وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ: مَا لَا يَلْبَثُ بِمَنْزِلَةِ السَّيْفِ اودامام ابويوسف اوامام محمد رحمهما الله په نيز چې كوم شى وخت نه تيروى هغه توره ده وَيُعْرَفُ فِي الْجِنَايَاتِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى اودا مسئله به په باب الجنايات كي انشاءالله معلومه شى

**تشريح:- المذهبان في قصاص القاتل عند قتل المقتول بالة غيرحديدة**﴿صاحبينو رحمهما الله وئيلى دى.چه كوم شى په قتلولو كي وخت نه تيروى.هغه هم د تورے په شان دى. يعنى كه په ښاركي څوك مقتول بيامونديې شو.اودده قاتل هم معلوم وى.اوداهم معلومه وى.چه د تيرے سوكے آله نه سوې په بل څه دروند كانړى يا همسا مړشوې وى.نودصاحبينو رحمهما الله په نيز به په قاتل قصاص هم واجب وى.اوچونكه ظلماً قتل شو. ځكه به د شهيد كيدو په وجه غسل هم نشى وركولې.اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د تيرے سوكے آله نه سوې په څه دروند څيزسره د قتل په صورت كي به په قاتل قصاص واجب نه وى.حاصل دا چې د قصاص د وجوب لپاره د امام صاحب رحمه الله په نيز تيره آله سره قتلول شرط دې.اودصاحبينو رحمهما الله په نيزشرط نه دې.د تفصيل لپاره كتاب الجنايات اوګورئ.

**په حد اوقصاص كښې د مقتول دغسل او جنازې حكم**

وَمَنْ قُتِلَ فِي حَدٍّ أَوْ قِصَاصٍ اوكوم كس چې په حد يا قصاص كي قتل شى غُسِّلَ وَصُلِّيَ عَلَيْهِ نوده له به غسل وركولےشى .او په ده به لمونځ كولاى شى لِأَنَّهُ بَاذِلٌ نَفْسَهُ لِإِيفَاءِ حَقٍّ مُسْتَحَقٍّ عَلَيْهِ ځكه چې ده داسې حق ادا كاوه لپاره خپل ځان حواله كړې دې .كوم حق چې په ده واجب وو. وَشُهَدَاءُ أُحُدٍ بَذَلُوا أَنْفُسَهُمْ لِابْتِغَاءِ مَرْضَاةِ اللّٰهِ تَعَالَى اود أحد شهيدانوخپل ځانونه دالله درضا لپاره قربانى كړې وو فَلَا يَلْحَقُ بِهِمْ نو په حد اوقصاص كي مقتول دأحد شهيدانو سره نشى لاحق كيداې

**حل اللغة**°①باذل: خرج كونكې ②مرضاة:رضا، خوشحالى

**تشريح:- يغسل ويصلى على من قتل حداً اوقصاصاً**﴿كوم كس چې په حد يا قصاص كي قتل شى . نو ده له به غسل هم وركولې شى.اوپه ده به د جنازې لمونځ هم كولې شى.ځكه چې ده د واجب حق ادا كاوه لپاره ځان وركړې دې.اود أحد شهيدانوصرف دالله درضا حاصلولو لپاره ځانونه قربانى كړى وو.ځكه په حد يا قصاص كي قتل شوې دأحد شهيدانو پورې نشى لاحق كيدې.اونقل دى .چه حضرت ماعر﷜ سنګسار شو.نودده اكا (تره) په دربار رسالت كي حاضرشو. داسې ئې اووئيل. ﴿قتل ماعزاً كما يقتل الكلاب فماذا تامرني أن أصنع به﴾ دالله رسوله ﷺ ماعز﷜ د سپو په شان قتل شو.اوفرمايئ چې اوس زه دده سره څه اوكړم. رسول اكرم ﷺ اوفرمائيل. ﴿لا تقل هذا، فقد تاب توبة لو قسمت توبته على أهل الأرض لو سعتهم إذهب غسله وصل عليه﴾ داسې مه وايه ،ده داسې توبه اويستله. كه دا د ټولے زمكے په خلګو ويش شى.نو دټولو لپاره به كافى شى.لاړشه.ده له غسل وركړه.په ده لمونځ اوكړه.(كفايه)

وَمَنْ قُتِلَ مِنَ الْبُغَاةِ أَوْ قُطَّاعِ الطَّرِيقِ اوپه باغيانو ياډاكوانو كي كه څوك قتل شى لَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِ نوپه ده به لمونځ نشى كولې



**تشريح:- الصلاة على الباغى**﴿①اوكه څوك باغى يا ډاكو قتل كړې شو.نوزموږ په نيز به په ده لمونځ نشى كولې.

لِأَنَّ عَلِيًّا لَمْ يُصَلِّ عَلَى الْبُغَاةِ ځكه چې حضرت على ﷜ په باغيانو لمونځ نه دے كړې .

**تشريح:- دليله**﴿ دليل دادې.چه حضرت على ﷜ خوارجو ته نه غسل وركړې وو.نه ئې په دوى لمونځ كړې وو. حالانكه چې خوارج باغيان وو.حضرت ﷜ ته اووئيلى شو. ﴿أهم كفار؟﴾آيا خوارج كافر دى ؟ حضرت على ﷜ اوفرمائيل. ﴿لا ولكنهم إخواننا بغوي علينا﴾ نا،ليكن زموږ ورونړه دى.په موږ ئې بغاوت كړې دې.دے نه معلومه شوه.چه باغيانواوډاكوانو ته به غسل نشى وركولې.اولمونځ به پرې نشى كولې.دوى ته د سزا وركاوه لپاره اود نورود تنبيه دپاره.لكه چې ډاكوبه د دريو ورځو پورې په سولئ پريښولې (پريخودې) شى ښكاره ده.چه په سولئ پريښول دده لپاره سزا اود نورو لپاره تنبيه ده. والله اعلم.

## باب الصلوة فى الكعبة

ژباړه:- دا باب په كعبه كي دننه دلمونځ كاوه په بيان كي دې.

**تشريح:-** ﴿صلاة فى الكعبة﴾ د ﴿كتاب الصلاة﴾ په آخركي ځكه ذكرشو.چه د"كتاب الصلاة" اختتام په يومتبرك شى اوشى.د بيت الله نوم كعبه ځكه كيخودے شوېدې.چه دا مكعب يعنى څلوركوټے ده.

**په كعبه دننه د لمونځ كولوطريقه**

الصَّلَاةُ فِي الْكَعْبَةِ جَائِزَةٌ فَرْضُهَا وَنَفْلُهَا په كعبه كي لمونځ كول جائزدې.كه فرض وى اوكه نفل خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ فِيهِمَا دامام شافعى رحمه الله په دې دواړوكي اختلاف دې وَلِمَالِكٍ فِي الْفَرْضِ اوپه فرض لمونځ كي د امام مالك رحمه الله اختلاف دې

**تشريح:- المذاهب الثلاثة في الصلاة في الكعبة**﴿ ① زموږ په نيز په كعبه كي دننه فرض اونفل لمونځ دواړه جائزدى.②اود امام شافعى رحمه الله په نيزدواړه ناجائزدى.③اود امام مالك رحمه الله په نيز نفل جائز دې. البته فرض لمونځ جائز نه دې.

**الاعتراض**﴿صاحب دنهايه ليكلى دى.چه په كعبه كي دننه دفرضو اونفلو دعدم جواز نسبت امام شافعى رحمه الله اړخ ته كول دكاتب سهوده.ځكه چې د شافعى رحمه الله اصحابو په خپل كتاب كي د امام شافعى رحمه الله مذهب جواز ليكلےدې.عدم جواز ئې نه دےليكلى.

**الجواب**﴿د دې ځواب دا دې.كه دكعبې دروازه پرانستې وى.او مخے ته ستره نه وى.نو په كعبه كي دننه فرض اونفل كول د امام شافعى رحمه الله په نيزناجائز دى.اوكه دكعبې دروازه بنده وى.يا مخےته ستره وى.نوجائز دى.

**دليل مالك رحمه الله**﴿ امام مالك رحمه الله دليل بيان كړې دې.چه كوم كس په كعبه كي دننه لمونځ كوى.هغه د قبلې ديوے حصے استقبال كوى.اوديوے حصے استدباركوى.نودلمونځ په حالت كي داستقبال قبله تقاضا خو دا ده.چه لمونځ صحيح وى.اود استدبارتقاضا داده.چه لمونځ فاسدوى.نود فساد اړخ ته احتياطاً ترجيح وركړې شوېده. دقياس تقاضا په نفلوكي هم داوه.چه نفل هم په كعبه كي دننه ناجائز وى.ليكن دنفلو په اړه كي چونكه اثروارد دې. ځكه په نفلوكي قياس ترك كړې شو.اود نفلو بنا (بنياد) په آسانتيا دې.لكه چې د قدرت على القيام باوجود په ناسته نفل كول جائز دى.اوفرض چونكه د نفلو په معنى كي نه دى.ځكه ئې فرض دنفلوسره لاحق كړو.اوپه كعبه كي دننه د فرض كاوه اجازت ورنكړې شو.

لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ صَلَّى فِي جَوْفِ الْكَعْبَةِ يَوْمَ الْفَتْحِ (١) ځکه چې نبی کریم ﷺ د فتح مکه په ورځ په کعبه کې دننه لمونځ کړې دې

**حل اللغة** ① **حل اللغة** ① **جوف:** نس

**تشریح:-** زمونږ دلیل دادې چه د فتح مکه په ورځ نبی کریم ﷺ په کعبه کې دننه دوې [دوه] رکعته نفل لمونځ اداکړې دې. روایت دادې. «عن ابن عمر أن النبی ﷺ دخل الکعبة هو وأسامة وبلال و عثمان بن طلحة و اغلقها علیه ثم مکث فیها قال ابن عمر فسألت بلالاً حین خرج ما صنع رسول الله ﷺ قال جعل عمودین عن یساره وعموداً عن یمینه وثلاثة أعمدة وراءه ثم صلی وکان البیت یومئذ علی ستة أعمدة وکان هذا یوم الفتح» ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی. چه رسول اکرم ﷺ، اسامه، بلال او عثمان بن طلحه کعبه کې داخل شول.او دا ئې بنده کړه.بیا په دې کې دوی حصار شول.ابن عمر رضی الله عنه وائی.چه ما د بلال رضی الله عنه نه پوښتنه اوکړو.کوم وخت چې بلال رضی الله عنه بهر راوتلو.چه رسول الله ﷺ څه کول؟ بلال رضی الله عنه اوفرمائیل.چه دوې [دوه] ستنې خودوی چپه اړخ ته کړې.یوښی اړخ ته او درې ئې شاه اړخ ته کړې.بیا دوی لمونځ اوکړو.په دغه زمانه کې د بیت الله شپږ ستنې وې.اودا د فتح مکه ورځ وه.که په کعبه کې دننه لمونځ کول ناجائزوې.نو رسول الله ﷺ به هیڅ کله په کعبه کې دننه لمونځ نه ووکړې.اوکه تاسو اووائې.چه هغه نفل لمونځ وو.نومونږ به ځواب ورکړو.چه د جواز کوم شرطونه د نفل دی.هم هغه د فرض دی.په دې وجه به فرض هم د نفلو په معنی کې وی.اوچه فرض لمونځ دنفلو په معنی کې دې.نود نفلو په شان فرض کول به هم په کعبه کې دننه جائزوی.

وَلِأَنَّهَا صَلَاةٌ اُسْتُجْمِعَتْ شَرَائِطُهَا لِوُجُودِ اسْتِقْبَالِ الْقِبْلَةِ اوځکه چې دا داسې لمونځ دې .چې ددې واړه شرطونه جمع شو په دې وجه چې استقبال د قبلې اوموندې شو لِأَنَّ اسْتِيعَابَهَا لَيْسَ بِشَرْطٍ ځکه چې د ټولې قبلې استقبال شرط نه دې.

**تشریح:-** دوهم دلیل دادې.چه کوم لمونځ په کعبه کې دننه ادا شوېدې.په دې کې د لمونځ واړه شرطونه جمع دی.تر دې چې استقبال د قبلې هم اوموندې شو.ځکه چې د ټولې کعبې استیعاب شرط نه دې.اودا ممکن هم نه دی.

## په کعبه کې جماعت سره دمونځ کولوحکم

فَإِنْ صَلَّى الْإِمَامُ بِجَمَاعَةٍ فِيهَا که امام په کعبه کې دننه جماعت سره لمونځ اوکړو فَجَعَلَ بَعْضُهُمْ ظَهْرَهُ ظَهْرَ الْإِمَامِ او په مقتدیانوکې بعضوخپله شا د امام شا اړخ ته کړه. جَازَ نوجائزدی لِأَنَّهُ مُتَوَجِّهٌ إِلَى الْقِبْلَةِ ځکه چې دا مقتدی دقبلې په اړخ متوجه دې، وَلَا يَعْتَقِدُ إِمَامَهُ عَلَى الْخَطَإِ اودوی خپل امام هم په خطاء نه ګڼړي.

**حل اللغة** ① **صلی صلاة:** لمونځ کول، دعا کول ② **فجعل، جعل جعلاً (ف):** کول، جوړول ③ **ظهر:** شا، ملا ④ **وجه:** مخ، اړخ

**تشریح:-** په کعبه کې دننه د باجماعت لمونځ څلور صورتونه دی. ① دمقتدی مخ دامام شا اړخ ته وی. ② د مقتدی مخ د امام مخ ته وی. ③ دمقتدی شا د امام شا ته وی. ④ د مقتدی شا د امام مخ ته وی.اول اودریم صورت بغیر د کراهته جائزدې.اوڅلورم قطعاً جائزنه دې.

**وجوه احکام الصور الاربعة** د اولنی صورت جواز ښکاره دې.او دوهم صورت ځکه جائزدې.چه د امام متابعت موجود شو.اومنع یعنی د امام نه مخکې کیدل منتفی شو.او په دې صورت کې کراهت ځکه دې.چه

---

(١) من حدیث ابن عمر رضی الله عنه أخرجه البخاری فی الصلاة باب ٩٦ ومسلم فی الحج رقم ٣٨٨ وأبوداود فی المناسک باب ٩٢ والنسائی فی القبلة باب ٦ ومالک فی الحج رقم ١٩٣ وأحمد فی المسند (١١٣،١٣٨/٢)



کله د مقتدی مخ دامام مخ ته وی.نود هغه چا سره به مشابه شی.څوك چې دعکس عبادت کونکے وی.نو په دې صورت کې به دمقتدی او امام په مینځ کې ستره ایخودل مناسب وی.چه ددې مشابهت نه بچ شی.ددریم صورت د جواز وجه صاحب دهدایه رحمه الله ر بیان کړې ده.چه مقتدی د قبلې په اړخ هم متوجه دې.اوخپل امام په غلطئ هم نه ګڼړی.اودخپل امام نه مخکې هم نه دې.

بِخِلَافِ مَسْأَلَةِ التَّحَرِّي په خلاف د تحری دمسئلې وَمَنْ جَعَلَ مِنْهُمْ ظَهْرَهُ إِلَى وَجْهِ الْإِمَامِ او په مقتدیانوکې چاچې خپله شا د امام مخ اړخ ته کړه لَمْ تَجُزْ صَلَاتُهُ نودده لمونځ جائز نه دې لِتَقَدُّمِهِ عَلَى إِمَامِهِ ځکه چې دے دخپل امام نه مخکې شوې دی

**حل اللغة** ① **لم تجز، جاز جوازاً (ن):** جائز کیدل ② **تقدم:** وړاندې کیدل

**تشریح:-** ددې په خلاف د تحری مسئله ده.یعنی کله چې په چاغه شپه کې جماعت سره لمونځ اوکړی. او مقتدی د امام شا ته خپله شا کړی.اومقتدی د امام د حالت نه هم واقف وی.نود مقتدی لمونځ جائزنه دې.ځکه چې دده اعتقاد دادې.چه د ده امام په غلطئ دې.دڅلورم صورت دعدم جواز وجه ښکاره ده.ځکه چې په دې صورت کې به مقتدی دخپل امام نه مخکې وی.اوښکاره ده چې دا قطعاً ناجائزده.

فائده: کوم مقتدی چې د امام نه ښی یا چپه اړخ ته وی.دده لمونځ هم جائز دې.

## په مسجد حرام کې د جماعت طریقه

وَإِذَا صَلَّى الْإِمَامُ فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ او کله چې امام په مسجد حرام کې لمونځ اوکړو فَتَحَلَّقَ النَّاسُ حَوْلَ فَمَنْ كَانَ مِنْهُمْ أَقْرَبَ إِلَى الْكَعْبَةِ مِنَ الْإِمَامِ جَازَتْ صَلَاتُهُ إِذَا لَمْ يَكُنْ فِي جَانِبِ الْإِمَامِ نو کوم کس چې د امام په نسبت کعبې ته زیات نیزدې وی.دده لمونځ هم جائزدې .خوچې د امام په اړخ کې نه وی لِأَنَّ التَّقَدُّمَ وَالتَّأَخُّرَ إِنَّمَا يَظْهَرُ عِنْدَ اتِّحَادِ الْجَانِبِ ځکه چې مخکې کیدل او شاته کیدل به د طرفونو د اتحاد په وخت ښکاره کیږی.

**حل اللغة** ① **فتحلق، تحلق تحلقاً:** الغه (حلقه) جوړول، دائره جوړول ② **حول:** چاپیره ③ **جازت، جاز جوازاً (ن):** جائز کیدل ④ **تقدم:** وړاندې کیدل ⑤ **تاخر:** روستو کیدل

**تشریح:- کیفیة الجماعة حول الکعبة** مسئله داده.چه امام په مسجد حرام کې لمونځ اوکړو. خلګ ود کعبه نه الغه (حلقه) جوړه کړه.یعنی د کعبې نه ئې شاو خوا صفونه جوړ کړل.اود امام په اقتداء کې ئې لمونځ اوکړو.نو کوم اړخ ته چې امام نه وی.که په دغه اړخ کې مقتدی دامام په نسبت سره کعبې ته زیات نزدې وی.نو دده لمونځ جائزدې.خوچه کوم اړخ ته امام وی.که مقتدی په دغه اړخ کې دامام په نسبت کعبېته زیات نیزدے وی.نوددې مقتدی لمونځ ټیك نه دې.ځکه چې وړاندې والے او روستوالے په هغه وخت کې ښکاره کیږی.چه اړخ یو وی. نود امام په اړخ کې چې کوم مقتدی دامام په نسبت دکعبې دیوال ته زیات نیزدے وی.نودا د امام نه مخکې دې.اوکوم مقتدی چې دخپل امام نه مخکې وی.دده لمونځ جائز نه دې.او په کوم طرف چې امام نه وی.دغه اړخ ته تقدم اوتاخر نه متحقق کیږی.نو په دغه اړخ کې به د خلګ ولمونځ ټیك وی.

## د خانه کعبې د چت سربیره د مانځه حکم

وَمَنْ صَلَّى عَلَى ظَهْرِ الْكَعْبَةِ اوچاچې دکعبې په چت لمونځ اوکړو جَازَتْ صَلَاتُهُ نودده لمونځ جائزدې

**حل اللغة** ① **ظهر:** شا، چت ② **جازت، جاز جوازاً (ن):** جائز کیدل

**تشریح:- الصلاة علی الکعبة** ① زمونږ په نیز دکعبې په چت لمونځ کول جائزدی.اګرچه دده مخے ته ستره نه وی.

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ د امام شافعی رحمه الله اختلاف دې

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله وائی.چه دکعبې په چت لمونځ کول جائز نه دی.اوکه دده مخے ته ستره وی.نوجائزدی.

**بناء الاختلاف**۞د اختلاف بنا (بنياد) دې دي.① چه د امام شافعي رحمه الله په نيز په لمانځه كي د كعبې د عمارت اړخ ته متوجه كيدل ضروري دي.

**لِأَنَّ الْكَعْبَةَ هِيَ الْعَرْصَةُ وَالْهَوَاءُ إِلَى عَنَانِ السَّمَاءِ عِنْدَنَا دُونَ الْبِنَاءِ** ځكه چې كعبه زموږ په نيز د ځمكې او د آسمانه پورې د فضاء نوم دي .دعمارت نوم نه دي **لِأَنَّهُ يُنْقَلُ** ځكه چې دا منتقل كيداي شي **أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ صَلَّى عَلَى جَبَلِ أَبِي قُبَيْسٍ** ولې ګورئ نه.كه چا په ابوقبيس غرلمونځ اوكړو **جَازَ وَلَا بِنَاءَ بَيْنَ يَدَيْهِ** نوجائزدي .حالانكه عمارت دده مخ ته نه دي.

**تشريح:-** زموږ په نيز قبله نوم دې.دكعبې،او كعبه دعمارت نوم نه دي.بلكه هغه ډګر كوم ځائې كي چې دكعبې عمارت دي.د هغه ځائي نه واخله د آسمانه

**إِلَّا أَنَّهُ يُكْرَهُ** خومكروه دي **لِمَا فِيهِ مِنْ تَرْكِ التَّعْظِيمِ** ځكه چې په دې كي ترك تعظيم دي

**حل اللغة*** ① **ترك:** پريښول ② **تعظيم:** بزرګ ګڼړل

**تشريح:- كراهة الصلاة على ظهرالبيت**۞ليكن دومره خبره ضرورده.چه دكعبې په چت لمونځ كول مكروه دي.دكراهت وجه داده.چه دكعبې په چت ختوكي دكعبېتعظيم ختميږي.ځكه دا مكروه ګرځولې شوې دي.

**وَقَدْ وَرَدَ النَّهْيُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ** ﷺ[1] اوددې نه د نبي ﷺ اړخه نهي وارد شوې ده.

**تشريح:- دليله**۞اودكعبې په چت دلمونځ ادا كاوه نه حضور ﷺ هم منع فرمائيلے ده. ﴿عن ابي هريرة رضي الله عنه انه قال نهى النبي ﷺ عن الصلوة فى سبع مواطن المجزرة والمزبلة والمقبرة والحمام و قوارع الطريق ومعاطن الابل وفوق ظهر بيت الله تعالى﴾ حضور ﷺ په اوه ځايونوكي دلمونځ كاوه نه منع فرمائيلے ده.① مذبح ② ډيران ③ اديره ④ نۍ خانه ⑤ د لارے منځ ⑥ د اوښانوتړلو ځائي ⑦ د بيت الله چت، دے حديث نه معلومه شوه. چې د بيت الله په چت لمونځ كول ممنوع دي.والله اعلم بالصواب.

# كتاب الزكاة

ژباړه:- (دا) كتاب(په بيان داحكامو)د زكاة (كي )دې.

**تشريح:- الاقسام الثلاثة للعبادة**۞عبادات په درې قسمه دي.① بدني لكه مونځ، روژه ② مالي: لكه زكاة ③ ددې دواړو نه مركب لكه حج.

**وجوه ذكرالزكاة بعدالصلاة**۞ د قياس تقاضا خودا وه.چه د كتاب الصلاة نه روسته كتاب الصوم ذكرشوې وې.چه د بدني دواړو عبادتونو ذكر بلا ناغه يوځائې شوې وې.خوداسې اونكړې شو ① د كتاب الصلاه نه روسته كتاب الزكاة ځكه ذكركړې شو.چه په دې ترتيب كي د الله تعالى د كلام اود رسول الله ﷺ د كلام د دواړو اقتداء كيږي.د الله تعالى د كلام اقتداء خو په دې وجه ده.چه الله تعالى زكاة د لمونځ نه روسته متصل ذكركړيدې.لكه چې ارشاد دې. [وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَآتُوا الزَّكَوٰةَ] اود رسول الله ﷺ دكلام اقتداء داسې ده.چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي. ﴿بني الاسلام على خمس شهادة أن لا إله إلا الله وأن محمدًا رسول الله وإقام الصلاة وإيتاء الزكاة..الحديث﴾ ② دويمه وجه داده.چه زكاة او روژه دواړه كال ۲هـ كي فرض شوي دي.خوصاحب د شرح

[1] خرجته فى ،،سنن الصلاة،، عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى أَنْ يُصَلَّى فِى سَبْعَةِ مَوَاطِنَ فِى الْمَزْبَلَةِ وَالْمَجْزَرَةِ وَالْمَقْبَرَةِ وَقَارِعَةِ الطَّرِيقِ وَفِى الْحَمَّامِ وَفِى مَعَاطِنِ الْإِبِلِ وَفَوْقَ ظَهْرِ بَيْتِ اللَّهِ أخرجه الترمذى فى الصلاة باب ماجاء [كر]اهية ما يصلى إليه وفيه رقم ۳۱۶ رجاله ثقات إلا زيد بن جبير فإنه ضعيف)_



نقايه ملاعلي قاري رحمه الله د بيان مطابق زكاة ړومبې فرض شوې دې.او روژه روسته.په دې وجه د زكاة بيان وړاندې اوكړې شو.اود روژې ددې نه پس.اود بعضو حضراتو خيال دې.چه زكاة په اجمال سره د هجرت نه مخكې فرض شوې دې.خو په تفصيل سره د هجرت نه روسته فرض شوې دې.بهرحال د فرضيت ترتيب هم ددې تقاضا كوي. چې زكاة د روژې نه مقدم ذكركړې شي.

**معاني الزكاة لغة**۞ ① د زكاة لغوي معنىٰ د طهارت ده.لكه[قَدْ أَفْلَحَ مَنْ تَزَكَّىٰ] بې شك كامياب شو هغه كس څوك چې پاك شو② دزكاة معنى صدقه هم ده.ځكه چې صدقه وركول د صدقه وركونكي د ايمان تصديق كوي.اودده د قلبي حالت يعني صدق اوپاكوالي نښانه ده. ، ③ دويمه معنىٰ د نماء(زياتيدلو)ده.ددې معنىٰ په اعتبارسره وجه تسميه داده.چه زكاة چونكه د مال د زياتوالي سبب دې.په دې وجه ددې نوم زكاة كيخودلې شو.او زكاة سبب د نماء ځكه دې.چه زكاة وركونكي ته الله تعالى په دنياكي ددې عوض وركوي.اوپه آخرت كي ثواب وركوي.

**معنى الزكاة شرعاً**۞د شريعت په اصطلاح كي زكاة وائي د نصاب حولي يو جزء فقير او دده په شان د بل په ملك كي وركولوته.اوبعض وائي.چه زكاة د مال د هغه مقدار نوم دې.كوم چې د فقير لپاره اوښكلې شوې وي.اود زكاة مال ورته په دې وجه وئيلې شوې دې.چه الله تعالى فرمائي[وَآتُوا الزَّكَوٰةَ] او ،ايتاء، بغير د وركولونه محال ده.نومعلومه شوه. چې زكاة د مال نوم دې.

**فرضية الزكاة بالقران**۞ د زكاة فرضيت د كتاب الله سنت اجماع درې واړو سره ثابت دې لكه څنګه چې به په راروان متن كي درته معلوم شي.

**سبب وجوب الزكاة**۞ د زكاة د وجوب سبب د نصاب نامي مالك كيدل دي.اوددې شرطونه د صاحب نصاب ازادكيدل، بالغ كيدل،عاقل كيدل،مسلمان كيدل،د پور نه فارغ كيدل،اوپه مال نصاب باندې كال تيريدل دي.د زكاة حكم پوره كونكې په دنياكي د مكلف كيدلوذمه دارئ نه فارغ كيږي.او په آخرت كي عذاب نه خلاصې موندل،او ثواب حاصلول دي.

**حكم فرضية الزكاة**۞ ① په ښار كي يقيناً هرقسمه خلګ كمزوري او حاجت مند وغيره وي.اودا حادثات نن په يوكس اوصباله په بل باندې راتلونكې دي.نوكه د فقر اوحاجت لرې كاوه طريقه په دوى كي موجود نه وي.نودا خلګ به يقيناً هلاك شي.اود اولړې خلګ به مړه شي② په دې كي د اوچت درجه همدردي خودلې شي.دغه ډول په خپل مينځ كي ګرم يخ يعني د امير غريب ملاويدلوسره مسلمان سره يوشي.په مالدارو باندې فرض دي.چه دوی اداكړي.كه فرض نه وي.نوهم د انساني همدردئ تقاضا ده.چه د غريبانانو امداد اوكړې شي.په انسان كي همدردي اوچت صفت دې.نوپه زكاة وركونكي كي ددې د اثرښې ښكاره كيږي.اوپه هرصحيح تبعيت كي داخبره پرته ده.چه په دې كاركولوسره د عامو انسانانوسره همدردي ده.دا يو داسې صفت دې.چه په دې باندې ډيراخلاق موقوف دي.چه ددې انجام(او نتيجه)د خلګو سره ښه معامله ده.او په كوم كس كي چې د عامو انسانانوسره د همدردئ جذبه نه وي.په هغه كي ډير زيات نقصان وي.چه ددې اصلاح په هغه باندې واجب ده.اودا اصلاح عامو غريبانانو انسانانوته په مال ور كاوه سره كيږي.③ زكاة صدقات ګناهونه لرې كوي.اود بركاتو زياتولو ډيرې غټې ذريعې دي.④ هركله چې انسان د الله تعالى لپاره دا خپل خوږ مال په خپل لاس وركوي.په كومې چې دده د ژوند داروم دار اود معيشت انحصار دې.اوكوم ئې چې په محنت،تكليف او په مشقت سره ګټلې دې.بيا د بخل مرداري دده نه اوځي.اوپه دې سره په ايمان كي قوت او پوخوالې پيداكيږي.ځكه چې په محنت سره ګټلې شوې خپل مال خاص د الله د رضا حاصلولو لپاره وركول،دا د خيركار دې.چه په دې سره د بدن هغه ناپاكي چې كومه د تولو پليتو نه زياته ګنده ده.يعني بخل لرې كيږي.ځكه چې دا حالت يعني د بخل د پاكوالي لپاره خپل مال

د الله تعالى په لاره كي خرچ كول،او په خپل محنت سره حاصل شوي مال خاص د الله تعالى د رضا لپاره نورو خلگو ته وركول د ترقئ يو حالت دي.يعني اوچت حالت دي.سخاوت دي.مال سره محبت كمول دي.او په دي كي صريحي او په ښكاره طور باندي د بخل د پليتئ نه صفائي او پاكي حاصليږي.او د الله تعالى رحيم او كريم ذات سره تعلق زياتيږي.ځكه چي خپل عزيز مال د الله تعالى لپاره پريخودل، په نفس گران وي.په دي وجه ددي تكليف په برداشت كولوسره د الله تعالى سره تعلق هم زياتيږي.او ايماني قوت او توان هم زياتيږي. والله اعلم

## د زكاة د وجوب شرطونه

**الزَّكَاةُ وَاجِبَةٌ عَلَى الْحُرِّ الْعَاقِلِ الْبَالِغِ الْمُسْلِمِ إِذَا مَلَكَ نِصَابًا مِلْكًا تَامًّا** زكاة واجب دي.په آزاد، عاقل، بالغ مسلمان باندي.كله چي دي مالك شي د نصاب په ملك تام سره **وَحَالَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ** او تيرشي په دي باندي كال.

**حل اللغة:** ① حال، يحول حولاً (ن): تيريدل

**تشريح:- شروط وجوب الزكاة:** شيخ ابوالحسن قدوري رحمه الله د زكاة د وجوب خوشرطونه ذكركړي دي.
① ازاد كيدل ② عاقل كيدل ③ بالغ كيدل ④ مسلمان كيدل ⑤ د مقدار نصاب مالك كيدل ⑥ ملك تام كيدل ⑦ د نصاب په مال باندي حولان حول(تيريدل د كال)

**أَمَّا الْوُجُوبُ فَلِقَوْلِهِ تَعَالَى: [وَآتُوا الزَّكَاةَ]** هغه چي وجوب دي نوپه وجه د قول د الله تعالى دي. چي [وَآتُوا الزَّكَاةَ] **وَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: {أَدُّوا زَكَاةَ أَمْوَالِكُمْ}** (1) اوپه وجه د قول د نبي ﷺ چه((أدوا زكاة أموالكم)) **وَعَلَيْهِ إِجْمَاعُ الْأُمَّةِ** او په دي باندي اجماع د امت ده

**تشريح:- فرضية الزكاة بالادلة الثلاثة:** علامه مرغيناني رحمه الله د زكاة په وجوب باندي دري دليلونه ذكركړي دي.
① كتاب الله يعني [وَآتُوا الزَّكَاةَ] ② حديث مشهور [أدوا زكاة اموالكم] او [بني الاسلام على خمس ....الخ] ③ اجماع امت يعني د رسول الله ﷺ د زماني نه ترننه ورځي پوري چاهم د زكاة د وجوب انكار نه دي كړي.

**وَالْمُرَادُ بِالْوَاجِبِ الْفَرْضُ** او مراد د واجب نه فرض دي **لِأَنَّهُ لَا شُبْهَةَ فِيهِ** ځكه چي هيڅ شبه نشته په دي كي

**تشريح:- المراد من الواجب في المتن:** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه په متن كي د واجب نه مراد فرض دي.ځكه چي د زكاة ثبوت په دليل قطعي سره شوي دي.اوددي په ثبوت كي د ذره برابر شبه نشته.اودكوم شي ثبوت چي په دليل قطعي سره وي.او په هغي كي څه شبه نه وي.نوهغه فرض وي.واجب نه وي.پاتي شو دا اعتراض چي په متن كي د فرض لفظ نه واجب اړخ ته عدول ولي شوي دي؟

**الجواب:** نوددي يو ځواب دادي.چه د زكاة بعض مقادير اوحالتونه په اخبار حديثونوسره ثابت دي. دوهم ځواب دا دي.چه په فرض او واجب كي هريو بل په ځاي مجازاً استعمالولي شي.نودلته كي هم د فرض په ځاي د واجب لفظ مجازاً استعمال شوي دي.

**وَاشْتِرَاطُ الْحُرِّيَّةِ لِأَنَّ كَمَالَ الْمِلْكِ بِهَا** او شرط د آزاديدلو ځكه دي. چي كمال د ملكيت په دي دي

**تشريح:- شرطية الحرية:** د ازاديدو د شرط دا فائده ده.چه غلام،مدبر،ام ولد اومكاتب باندي زكاة فرض نه وي.

**دليله:** اودا شرط ني لګولي دي.چه كامل ملكيت په پوره آزادئ سره متحقق كيږي.ځكه چي غلام خو يوڅيز د سره مالك كيداي نشي.

(1) من حديث أبي أمامة رضي الله عنه أخرجه الترمذي في الجمعة باب ٨٠ رقم ٦١٦ وأحمد في المسند (٥/٢٥١) والحاكم في المستدرك (١/٩)_



**عدم وجوب الزكاة على المكاتب:** او مكاتب ته په خپل مملوكه څيزباندي ملك يد (تصرف) خو حاصل وي.ليكن ملك رقبه(سټ، ذات د څيز)نشي حاصليدي.د مكاتب په مال باندي ملك رقبه مولى ته حاصل كيداي شي.بهرحال د مكاتب ملك ناقص وي.اود وجوب زكاة لپاره كامل ملك كيدل ضروري دي. اوكامل ملك حاصليدي شي په آزادئ سره ځكه دوجوب زكاة لپاره حريت شرط ګرځولي شوي دي.

**وَالْعَقْلُ وَالْبُلُوغُ لِمَا نَذْكُرُهُ** او(شرط د)عقل او بلوغ دهغي (دليل)په وجه دي .چي موږ به ني بيان كړو

**تشريح:- العقل والبلوغ:** دوهم شرط عقل دي.اودريم شرط بلوغ دي.د دوهم شرط فائده داده.چه ديوانه او مجنون كس باندي به زكاة فرض نه وي.اود دريم شرط فائده داده.چه په نابالغه ماشوم باندي به زكاة فرض نه وي. دعقل اوبلوغ شرط باندي دليل په راروانوصفحوكي ذكركوو.

**وَالْإِسْلَامُ لِأَنَّ الزَّكَاةَ عِبَادَةٌ وَلَا تَتَحَقَّقُ مِنَ الْكَافِرِ** او(شرط د) اسلام ځكه دي .چي زكاة عبادت دي .اونه متحقق كيږي عبادت د اړخه د كافرنه

**تشريح:- دليل شرطية الاسلام:** [لما نذكره] نه علامه مرغيناني رحمه الله دي اړخ ته اشاره كړيده.چه مسلمانيدل دي لپاره شرط دي.چه زكاة يو عبادت دي.اوكافرنه هيڅ عبادت نه متحقق كيږي.وجه داده.چه عبادت امرځكه شوي دي.چه عبادت كونكي ثواب حاصل كړي.اوكافر د ثواب حاصلولواهل نه دي.په دي وجه په كافر زكاة نه دي فرض شوي.

**وَلَا بُدَّ مِنْ مِلْكِ مِقْدَارِ النِّصَابِ** اوضروري دي ملكيت په مقدار د نصاب **لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَدَّرَ السَّبَبَ بِهِ** (1) چي رسول الله ﷺ مقدركړي دي سبب(د زكاة) په دي (نصاب) سره

**تشريح:- دليل شرطية النصاب:** اود نصاب د مقدار مالك كيدل ځكه شرط دي.چه مال د مالك مستغني كيدو سبب دي.نبي كريم ﷺ حضرت معاذ رضي الله عنه ته اوفرمائيل. [ثم اعلمهم ان الله تعالى فرض عليهم صدقة توخذ من اغنيائهم وترد فى فقرائهم] يعني خلگ خبركړه.چه الله تعالى په دوى صدقه فرض كړيده.چه ددوى د مالدارانو څخه به اخستلي شي.اوهم ددوى غريبانانوته وركولي شي.

**النصاب فى الزكاة:** بهرحال په حديث كي مالداره ته غني وئيلي شوي دي.اوغنى په كثرت مال سره متحقق كيږي.اود كثرت هيڅ معلوم حد نشته.بلكه په دي كي د خلگ وحالات متفاوت دي.نو د كثرت مال يعني د غنى كيدو هيڅ مقررحد نه وو.په دي وجه صاحب شريعت ﷺ سبب د زكاة يعني غنى ئي د زكاة په مقدار سره مقدركړي دي.

**دليل قدري لنصاب:** د ابوسعيد خدري رضي الله عنه حديث دي. [قال قال رسول الله ﷺ ليس فيما دون خمس أواق صدقة وليس فيما دون خمس ذود صدقة وليس فيما دون خمسة اوسق صدقة] حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه فرمائي.رسول الله ﷺ فرمائيلي دي.چه د پنځواوقيونه په كموكي زكاة نشته.اود پنځو راس(نصاب) نه په كموكي زكاة نشته.اود پنځواوسقونه په كموكي زكاة نشته.نورسول خدا ﷺ د زكاة سبب په مقدار سره مقرركړي دي.په دي وجه فقهاء كرامو د زكاة واجبولو لپاره د نصاب د مقدارمالك كيدل شرط ګرځولي دي.

**وَلَا بُدَّ مِنَ الْحَوْلِ** ځكه.اوضروري دي تيريدل د كال **لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ مُدَّةٍ يَتَحَقَّقُ فِيهَا النَّمَاءُ** ځكه چي ضروري ده دومره

(1) من شواهد ذلك حديث أبي سعيد الخدري رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ليس فيما دون خمس أواق من الورق صدقة الحديث أخرجه البخاري في الزكاة باب ٣٢ ومسلم في الزكاة رقم ٣ وأبوداود في الزكاة باب ٢ والترمذي في الزكاة باب ٧ والنسائي في الزكاة باب ٥ وابن ماجة في الزكاة باب ٦ والدارمي في الزكاة باب ١١ ومالك في الزكاة رقم ١ وأحمد في المسند (٣/٦)_

موده.چې متحقق شي په هغې كې نمو(زياتيدل د مال)، **وَقَدَّرَهَا الشَّرْعُ بِالْحَوْلِ** اومقدر كړه دا(موده) شريعت په حول(يعنى په تيريدلو د يوكال)سره **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {لَا زَكَاةَ فِي مَالٍ حَتَّى يَحُولَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ}** [1] ځكه چې ارشاد دى د رسول الله ﷺ چې نشته زكاة په مال كې تردې چې تير شي په دې باندې كال

**حل اللغة:** ① قدر، يقدر تقديراً: مقرر كول، اندازه لګول ② لاتتحقق، تحقق، يتحقق، تحققاً: ثابت كيدل ③ النماء (ن): زياتوالې

**تشريح:- شرطية حولان الحول**۞د وجوب زكاة يوشرط حولان حول دې.يعنى د نصاب په مال باندې كال تيريدل ضرورى دى.

**دليله**۞دليل دا دې.چه زكاة په مال نامى كې واجب وى.په غيرنامى كې نه واجبيږى.اود نمو او زياتوالى معلومولو لپاره د دومره مودې اړتيا وى.چه په دې كې نمو اود مال زياتيدل متحقق شى.او شريعت دامو ده يوكال مقرركړيده.حديث دې «لازكاة فىمال حتى يحول عليه الحول»نو د نمو لپاره شريعت يوكال موده مقرركړيده.په دې وجه فقهاء فرمائى.چه د زكاة د وجوب لپاره په مال نصاب باندې ديوكال تيريدل ضرورى دى.

**وَلِأَنَّهُ الْمُتَمَكِّنُ بِهِ مِنَ الْاِسْتِنْمَاءِ** اوځكه چې دا(كال تيريدل)قدرت وركونكې دې (مال)ته په زياتوالى كې **لِاشْتِمَالِهِ عَلَى الْفُصُولِ الْمُخْتَلِفَةِ** ځكه چې مشتمل وى.داكال په فصلونو مختلفو باندې، **وَالْغَالِبُ تَفَاوُتُ الْأَسْعَارِ فِيهَا** او په عامه توګه زياتيږى(اوكميږى) نرخونه په دې (فصلونو)كې **فَأُدِيرَ الْحُكْمُ عَلَيْهِ** نو دائرشو(يعنى اولګولى شو)حكم په دې (كال)باندې

**حل اللغة:** ① الاستنماء: د زياتى حصول ② الفصول جمع فصل: موسم ③ الاسعار جمع سعر: قيمت ريټ ④ أدير، ادار، ادارة: ګرځول راګرځول

**تشريح:- الحكمة فيحولان الحول**۞علامه مرغينانى رحمه الله د حولان حول شرط كيدو شرعى حكمت ذكركړې دې. فرمائى.چه د يوكال موده د نمو اود مال په زياتيدو قدرت وركونكې دې.يعنى په يوكال كې د ننه سرې د تجارت وغيره په ذريعه مال زياتولې شى.ځكه چې كال په مختلف موسمونو(يخنى، ګرمى، بهار اوخزان) باندې مشتمل وى.اوغالب هم دادى.چه په دې فصلونوكې د نرخونوتفاوت (كمې زياتې) كيږى.مثلاً يوڅيز په يو موسم كې ارزان اوپه دوهم موسم كې ګران وى.نو دغه ډول سړې په تجارت كې نفع حاصلولې شى.اوخپل مال زياتولې شى.دوجوب زكاة مدار اګرچه په نمو او زياتوالى دې.او داپه يوكال كې كيداې شى.په دې وجه د زكاة مدار ديوكال موده ګرځولې شويده.كه په دې كې حقيقتاً نمو اوموندې شى.اوكه اونه موندې شى.

**الاعتراض**۞اوس كه څوك دا اعتراض اوكړى.كه چاخپل مال په مځكه كې ښخ كړو.په ده هم زكاة شته.حالانكه دلته كې هيڅ نمو او زياتوالې نشته.

**الجواب**۞نو ددې ځواب دادې.چه په دې صورت كې حقيقةً اګرچه نمو نشته.ليكن تقديراً نمو شته دې.ځكه چې دا د مالك كم عقل توب دې.چه ده خپل مال د زمكې حواله كړو.حالانكه ده ته په خپل مال باندې دتجارت وغيره قدرت حاصل دې.نو دده قدرت به معتبروى.او بې وقوفى به معتبرنه وى.

**ثُمَّ قِيلَ هِيَ وَاجِبَةٌ عَلَى الْفَوْرِ** بيا وويلى شو.چې دا واجب دې فوراً **لِأَنَّهُ مُقْتَضَى مُطْلَقِ الْأَمْرِ** ځكه چې دا تقاضاكوى د مطلق امر

[1] من حديث علي رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى الزكاة باب ٥ رقم ١٥٧٣ وأحمد فى المسند (١٤٨/١ موقوفاً)_



**تشريح:- وجوب الزكاة علىالفورعند الكرخى**۞ پاتې شوه داخبره چې دكال تيريدونه روسته چې كله زكاة واجب الادا شو.نو على الفور واجب دې اوكه علىالتراخى.يعنى فىالفور اداكول واجب دى.او كه تراخى هم جائزده؟ په دې اړه كې د امام كرخى رحمه الله قول دادې.چه دكال پوره كيدونه روسته فىالفور اداكول واجب دى.د قدرت باوجود د تاخير په صورت كې به ګناهګاروى.

**دليله**۞دليل دادې.چه په [وَآتُوا الزَّكَوٰةَ] اوحديث «ادوا زكاة اموالكم»كې امرمطلق دې.او د مطلق امر مقتضى مامور به فىالفور راوړل دى.په دې وجه دكال تيريدونه روسته به فوراً زكاة اداكول واجب وى.كه د قدرت ممكنه باوجود په زكاة اداكولوكې تاخير اوكړى.نو ګناهګاربه وى.

**تضعيف دليل الفوريه**۞دصاحب هدايه بيان شوى په دې دليل كې هيڅ ساه نشته.ځكه چې مطلق امرنه د علىالفور تقاضا كوى.اونه د علىالتراخى.بلكه صرف ددې تقاضاكوى.چه ماموربه ادا كړې شى.كه على الفور وى.اوكه علىالتراخى وى.نو د مكلف لپاره امتثال امركې تراخى او فوراً دواړه جائزوى.

**رواية الفورعن محمد** رحمه الله ۞حضرت امام محمد رحمه الله هم د علىالفور زكاة واجبيدوقائل دې.د دوى نه مروى دى.چه چابغير د عذره زكاة مؤخركړو.دده شهادت قبول نه دې.

**الفرق بين الزكاة والحج**۞د تاخير زكاة او د تاخيرحج په مينځ كې د توپير كاوه لپاره فرمائى.چه د وجوب نه روسته به په تاخيرحج ګناهګارنه وى.او په تاخير زكاة سره به ګناهګاروى.ځكه چې زكاة د فقراو حق دې.زر ترزره وركول پكاردى.ځكه به ددې د حق (يعنى د زكاة)په مؤخر كاوه كې ګناهګار وى.او حج خالصةً دالله تعالىحق دې.اودالله تعالى ذات بې نيازه دې.نو ددې په مؤخر كاوه كې هيڅ باك نشته.نو د مرګ نه مخكې چې كله زړه اوغواړى.حج دې اوكړى.خوكه بغيرد حج كولونه مړشو.حالانكه په ده حج فرض وو.نوبه يقين سره به ګناهګاروى.

**رواية عن ابى يوسف** رحمه الله **فيتاخيرالزكاة والحج**۞د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دى.چه په تاخير زكاة به ګناهګار نه وى.البته په تاخيرحج به ګناهګار وى.ځكه چې زكاة غيرمؤقت دې.او حج د زكاة په شان مؤقت دې.نو زكاة خوكله ادا كيداې شى.خوكه حج يې اونكړو.نواوس به ده له د يوكال انتظاركول ضرورى وى. اود يوكال موده دومره اوږده ده.چه پته نه لګى.څوك به مرى.او څوك به ژوندى وى. «كون جيتاهے تيرى زلف كے سر هونے تك»ځكه به بغير د عذره د حج د تاخير په وجه ګناهګاروى.

**وَقِيلَ عَلَى التَّرَاخِي** او وئيلى شوى دى.چه(واجب دې ) په تراخى(يعنى روسته هم) **لِأَنَّ جَمِيعَ الْعُمُرِ وَقْتُ الْأَدَاءِ** ځكه چې واړه عمر وخت دې د اداكولو

**تشريح:- وجوب الزكاة على التراخى عند ابيكرجصاص**۞د امام ابوبكرجصاص رازى رحمه الله قول دې.چه د كال تيريدونه روسته د زكاة مؤخر كول جائزدى.ځكه چې واړه عمر ددې د ادا كاوه وخت دې.يعنى كه فىالفور يې زكاة ادانكړو.نو بيايې چې كله هم په ژوند كې اداكوى.ادابه وى قضاء به نه وى.نومعلوم شو.چه د زكاة اداكولووخت د مرګه پورې دې.اوچه د اداكولووخت د مرګه پورې دې.نو د تاخيرپه وجه به ګناهګارنه وى.

**وَلِهَذَا لَا يُضَمَّنُ بِهَلَاكِ النِّصَابِ بَعْدَ التَّفْرِيطِ** اوپه دې وجه ضامن نه وى.په هلاكيدلو دنصاب سره روسته د بې غورى كولونه (په وركاوه د زكاة كې)

**تشريح:- دليله**۞ هم دغه وجه ده.چه كله يې په واجب الادا زكاة وركولوكې بې غورى اوكړه.او ټال مټول يې كول.بيا واړه مال هلاك شو.نو دې د زكاة د مقدارضامن نشو.كه زكاة فىالفور واجب وو.نوبه دې صورت كې به ضامن وى.نوثابته شوه.چه دكال تيريدونه روسته زكاة فىالفور نه واجبيږى.بلكه ددې مؤخر كول هم جائزدى.

## په ماشوم او ليونى د زكاة د وجوب حكم

وَلَيْسَ عَلَى الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُوْنِ زَكَاةٌ (او واجب) نه دي په نابالغه او مجنون باندې زكاة

**تشريح:- عدم وجوب الزكاة على الصبي والمجنون ﴿﴾** زمونږ په نيز د نابالغه او مجنون په مال كې زكاة واجب نه دي.

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ د امام شافعي رحمه الله اختلاف دي

**تشريح:-** امام شافعي، امام مالك، او امام احمد رحمه الله فرمائي. چه ددې دواړو په مال كې زكاة واجب دي. د دوى ولي به د دوى په مال كې د زكاة اداكولو مجاز وي. نو ددې دواړو په مال كې به د دوى د ښځې نفقه واجب وي. او كه د دوى سره مځكه وي. نو په دې كښې به خراج او عشر واجب وي.

فَإِنَّهُ يَقُوْلُ: هِيَ غَرَامَةٌ مَالِيَّةٌ خكه (امام شافعي دې فرمائي چې دا (زكاة) خو (په مال باندې) لازمي حق دي فَتُعْتَبَرُ بِسَائِرِ الْمُؤَنِ كَنَفَقَةِ الزَّوْجَاتِ نو معتبره ګڼرلې شي. دا په واړه مؤونت (حق ماليه) باندې. لكه د بيبيانو د نفقه وَصَارَ كَالْعُشْرِ وَالْخَرَاجِ او دا شو په شان د عشر، او خراج

**حل اللغة:** ① غرامة: لازم حق ② المؤن: د ماليه حقوق ③ العشر: د مسلمانانو په مځكه كې چې كوم زكوة وي ښځې ته عشر وائي ④ خراج: د كفارو د زمكې څخه به وصوليږي

**تشريح:- دلائل الشافعي ﴿﴾** ① د امام شافعي رحمه الله دليل دادې. چه زكاة غرامت ماليه دي. د غرامت حقيقت دادې. چه انسان په خپل ځان هغه څيز لازم كړي چه په ده لازم نه وي. ګويا غرامت حق لازم او د واجب نوم دې. لكه داسې اووئيلې شي. چه زكاة په صاحب د مال يو مالي حق دې. او مالي حق واجب وي. خكه چې كوم كس د مال د نصاب په قدر مالك وي. په ده به داحق مالي يعني زكاة واجب وي. دغه سړې كه بالغ وي. او كه نابالغه، عاقل وي. او كه ديوانه وي.

امام شافعي رحمه الله زكاة، په نابالغه او د مجنون د ښځې په نفقه او دده د زمكې په عشر او خراج قياس كړې دې. يعني څنګه چې نابالغه او د مجنون په مال كې دده د ښځې نفقه واجب وي. او د دوى په مځكه كې عشر او خراج واجب وي. دغه ډول د دوى په مال كې به زكاة هم واجب وي. او ددې قياس علت مشتركه غرامت دې. يعني حق مالي دې. نو د ښځې د نفقې او د عشر او خراج په شان زكاة هم د نابالغه او مجنون په مال كې واجب وي.

وَلَنَا أَنَّهَا عِبَادَةٌ او زمونږ دليل دادې. چې دا (زكاة) يو عبادت دې فَلَا تَتَأَدَّى إِلَّا بِالْاِخْتِيَارِ تَحْقِيْقًا لِمَعْنَى الْاِبْتِلَاءِ نو دا به نه اداكيږي. بغير د اختياره. چې متحقق شي معنى د ابتلاء وَلَا اخْتِيَارَ لَهُمَا لِعَدَمِ الْعَقْلِ او د دوى دواړو اختيار نشته د وجې د نشتوالي د عقل نه

**تشريح:- الدليل العقلي للاحناف ﴿﴾** زمونږ د احنافو رحمه الله ارخه عقلي دليل دادې. چه زكاة يو عبادت دې. خكه حضور ﷺ فرمائيلي دي. د ﴿بني الاسلام على خمس... الخ﴾ او د زكاة نه علاوه پاته خلورشيان (څيزونه) يعني شهادتين، مونځ، روزه، او حج، په اتفاق سره عبادتونه دي. نو دغه ډول زكاة هم عبادت دې. او كوم څيز چه عبادت وي. هغه بغير د اختياره نه اداكيږي. خكه چې عبادت نوم دې. د ابتلاء او د آزمائش، او د آزمائش معنى بغير د اختياره نه متحقق كيږي. نو د ابتلاء او آزمائش معنى ثابتولو لپاره اختيار ضروري دې. او ددې دواړو ته عقل او پوهه نشته. خكه د دوى لپاره اختيار هم نشته. او عبادات بغير د اختياره نه اداكيږي. خكه ددې دواړو ارخه زكاة هم نه اداكيږي. او كله چې د دوى د ارخه زكاة نه اداكيږي. نو معلوم شو. چه په دوى زكاة واجب نه دي.

بِخِلَافِ الْخَرَاجِ او هيڅ اختيار نشته دې دواړو لپاره د عقل معدوم كيدو په وجه. په خلاف د خراج لِأَنَّهُ مُؤْنَةُ الْأَرْضِ خكه چې دا د زمكې مؤونت دې وَكَذَا الْغَالِبُ فِي الْعُشْرِ مَعْنَى الْمُؤْنَةِ وَمَعْنَى الْعِبَادَةِ تَابِعٌ او دغه ډول غالبه ده په عشر كې هم معنى د مؤونت. او د عبادت معنى تابع ده



**حل اللغة:** ① المؤنة: د زمكې حق

**تشريح:- الجواب من قياس الشافعي رحمه الله ﴿﴾** ﴿بخلاف الخراج﴾ نه د امام شافعي رحمه الله د قياس ځواب دې. د ځواب حاصل دادې. چه زكاة په خراج وغيره باندې قياس كول، ټيك نه دى. خكه چې زكاة صرف يو عبادت دې. او خراج او عشر د زمكې مؤونت دې. په خراج كې خو د مؤونت معنى موندې شي. او په عشر كې د مؤونت معنى غالبه او د عبادت معنى تابع ده. او دا خبره منلې شوې ده. چه د غالب اعتبار كولې شي. د تابع اعتبار نه كيږي. نو ثابت شو. چه عشر هم د خراج په شان مؤنت دې. نو كله چې مقيس (زكاة) او مقيس عليه (خراج او عشر) كې دومره قدري توپير دې. چه مقيس د عبادت د قبيلې خنې دې. او مقيس عليه د مؤونت د قبيلې خنې دې. نو ددې توپير په موجودګۍ كې دا قياس څنګه ټيك كيداې شي؟

**﴿توضيح المؤونة﴾** پاتې شوه دا خبره چې مؤونت څه ته وائي. او خراج او عشر د زمكې مؤونت څنګه دې. نو تاسو د كفايه د بيان مطابق او ګورئ. فرمائي. چه مؤونت د هغه څيز نوم دې. كوم چې د څه شي د بقاء سبب وي. يعني د شي د بقاء نوم مؤونت دې. لكه د ښځې نفقه، د ژوند د بقاء او د نكاح د بقاء سبب دې. نو د ښځې نفقې ته مؤونت وئيلې شي. او ګورئ. چه خراج او عشر د دواړو مالكانو په قبضه كې د زمكې د بقاء سبب دې. خكه چې د عشر مصرف فقيران دى. او د خراج مصرف مقاتله، (په كسره د تاء) يعني جنګ كونكي ډله ده. نو مقاتله (جنګ كونكي ډله) د خراج د مال نه جنګي تيارې او كړي. او حمله كونكي كافران د اهل اسلام نه دفع كړي. او فقيران د عشر مال او خوري. د كافرانو په مقابله كې د مسلمانانو د فتح او نصرت دعا كوي. د رسول كريم ﷺ ارشاد دې. ﴿انما تنصرون بضعفائهم﴾ يعني مسلمانانو ستاسو مدد كولې شي. ستاسو د كمزورو خلګو په ذريعه. او دا خبره ښكاره ده. چه د كمزورو خلګ ويه ذريعه كومك د دعا په وجه كيداې شي. علامه ابن الهمام رحمه الله په فتح القدير كې دا روايت په دې الفاظو ذكر كړې دې. ﴿انما تنصر هذه الأمة بضعيفها بدعوتهم﴾ (الحديث)

﴿بهرحال كله چې مقاتله يعني د اسلامي لښكر (مجاهدينو) كافران د مسلمانانو د مُلك نه دفع كړل. او فقيرانو د دعا ګانو په ذريعه د دوى مدد وكړو. نو ګويا اسلامي فوج او فقيران سبب دى. د مسلمانانو د مُلك او د دوى د زمكې د بقاء او ددې دواړو، يعني د اسلامي فوج او فقيرانو د بقاء سبب خراج او عُشر دې. او د شي سبب سلب كيدل، ددې څيز سبب وي. خكه خراج او عشر دواړه د زمكې د مالك په قبضه كې د زمكې د بقاء سبب دې. او كوم څيز چه د شي د بقاء سبب وي. هغه ته مؤونت وئيلې شي. خكه خراج او عشر دواړو ته د زمكې مؤونت وائي.

وَلَوْ أَفَاقَ فِي بَعْضِ السَّنَةِ او كه ده ته افاقه اوشوه دكال په بعضي برخه كې فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ إِفَاقَتِهِ فِي بَعْضِ الشَّهْرِ فِي الصَّوْمِ نو دا د هغه كس په مرتبه كې دې. چې افاقه اوشي. ده ته د رمضان د مياشتې په څه برخه كې په حالت د روژه كې

**تشريح:- المذهبان في وجوب الزكاة عند الافاقة في الحول ﴿﴾** ① علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه د نصاب د مالك كيدو نه روسته چې كله مجنون ته دكال په يوه برخه كې افاقه اوشي. كه دكال په اول كې وي او كه په آخر كې. افاقه كه لږ وخت وي. او كه زيات وخت، نو په ده به زكاة واجب وي. او دا داسې ده. لكه مجنون ته د رمضان المبارك په يو جزء كې. شپه كې يا په ورځ كې افاقه شوې وي. نو د پوره رمضان روژې به په ده فرض شي. حاصل دا چه د زكاة لپاره يو كال داسې دې. لكه د روژې لپاره پوره مياشت، چه د رمضان د مياشتې په يو جزء كې افاقه د پوره مياشت روژو فرض كيدو كې داسې ده. لكه چې ټوله مياشت افاقه شوې وي. نو دغه ډول د كال په يو جزء كې افاقه وجوب زكاة لپاره داسې ده. لكه چې واړه كال افاقه شوې وي. او د پوره كال جنون نه د افاقه په صورت كې زكاة فرض كيږي. نو د كال په يو جزء كې دافاقه كيدو په صورت كې به هم زكاة فرض وي.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّهُ يُعْتَبَرُ أَكْثَرُ الْحَوْلِ او د ابويوسف رحمه الله نه روايت دې .چې دوی اعتبار کړې دې د کال په اکثر وخت

تشريح:- د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې.چه دوی دکال داکثروخت اعتبار کړې دې.نوکه دکال په اکثره برخه کي مجنون پاتې شو.نوبه پوره کال کي به مجنون شمارلې شي.اوکه اکثروخت د افاقه په حالت کي پاتې شو.نوپوره کال به هوش اوپه افاقه کي شمارلې شي.

وَلَافَرْقَ بَيْنَ الْأَصْلِيِّ وَالْعَارِضِ او هيڅ توپير نشته په جنون اصلي اوعارضي کي

تشريح:- **وجوب الزكاة فى الجنون العارضى**۞ ①علامه مرغيناني رحمه الله فرمائی.چه په تيرشوی حکم کي جنون اصلي او د عارضي په مينځ کي څه توپير نشته.يعنی‌که دکال په يوجزء کي مجنون په افاقه کي شو.نوبه ده به زکاة واجب وی.که په جنون اصلي کي وی،اوکه په عارضي کي وی.جنون اصلي خو دادې.چه دې دجنون په حالت کي بالغ شوې دې.اوجنون عارضي دادې.چه بالغ شوې خودې په حالت دعقل کي .خو د بالغ کيدونه روسته په ده جنون واقع شو.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ إِذَا بَلَغَ مَجْنُونًا او د ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دی.چې دا (مجنون)کله مجنون بالغ شو يُعْتَبَرُ الْحَوْلُ مِنْ وَقْتِ الْإِفَاقَةِ(¹) بِمَنْزِلَةِ الصَّبِيِّ إِذَا بَلَغَ نو معتبربه وی کال (شروع کيدل)د افاقه د وخت نه.په منزله د نابالغه، کله چې دې بالغ شي.

تشريح:- د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دادې.چه د جنون اصلي په صورت کي ده ته کوم وخت افاقه اوشوه .دغه وخت څخه به دکال پيل معتبروی.يعنی د افاقه نه روسته دکال په تيريدو زکاة فرض وی.لکه چې نابالغه ماشوم مالداروی.بيادې بالغ شی.نو د بالغيدونه روسته چې کله کال پوره شی.نو زکاة به واجب وی.

**ادليله**۞دليل دادې.چه کله دجنون په حالت کي بالغ شی.نو دې دعدم عقل په وجه د شريعت داحکامومکلف هم نه وی.کله چې افاقه اوشی.نواوس دې مکلف شو.اوهم ددې وخت څخه به په ده دشريعت احکام اولګی.نو ددې وخت نه چې کله کال پوره شی.په ده به زکاة فرض شی.

## په مكاتب باندې د زكاة عدم وجوب

وَلَيْسَ عَلَى الْمُكَاتَبِ زَكَاةٌ او نشته په مکاتب باندی زکاة لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالِكٍ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ څکه چې دی مالك نه دی من کل وجهٍ لِوُجُودِ الْمُنَافِي وَهُوَ الرِّقُّ څکه چې موجوددی منافي(د ملك) يعنی رقيت ،وَلِهٰذَا لَمْ يَكُنْ مِنْ أَهْلِ أَنْ يُعْتِقَ عَبْدَهُ هم دغه وجه ده.چې دی اهل نه دی .ددی چې آزادکړی خپل غلام.

تشريح:- **عدم الزكاة على المكاتب**۞په مکاتب زکاة فرض نه دې.اګرچه ده سره د نصاب په اندازه مال موجودوی.

**ادليله**۞دليل دادې.چه مکاتب د خپل مال من کل وجهِ مالك نه وی.يعنی ده ته ملك تام نه حاصليږی. او ملك تام په دې وجه نه حاصليږی.چه رقيت کوم چې د مالك کيدومنافی‌دې.په مکاتب کي موجود دې.د ازادولی.څکه چې دغلام آزادولو والا لپاره ضروری دی.چه دې په ملك تام سره ددې غلام مالك وی.نوکله چې مکاتب ته په خپل مال کي ملك تام حاصل نه وی.نوپه ده به زکاة هم فرض نه وی.څکه چې د زکاة د فرضيت لپاره ملك تام سره د نصاب مالك کيدل ضروری دی.(او ملك تام معدوم دې ).

**اتوضيح ملک الناقص والتام**۞ پاتې شوه داخبره چې داڅنګه معلوم شو.چه مکاتب ته ملك تام حاصل نه دې.نو

(¹) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا فى الخانية (۱۲۳\۱) والهندية (۱۷۲\۱) ومراقى الفلاح (ص،۳۸۹) نقلاً عن القول الراجح (۱۶۱\۱)-



ددې خواب دادې.چه د ملك دوې [دوه] صورته دی.① ملك رقبه يعنی دعين شی اود ذات دشی مالك کيدل.② ملك يد ، يعنی د تصرف مالك کيدل.نومکاتب ته خوپه خپل مال کي ملك يد حاصل دې.يعنی د تصرفاتوده ته اختياردې.خوملك رقبه حاصل نه دې.بکله ملك رقبه دده آقا ته حاصل دې.دا مکاتب که دبدل کتابت نه عاجزشو.نو دده واړه مال به دده د آقاوی.حاصل داچه مکاتب ته د ملك يوصورت يعنی ملك يد حاصل دې.او دوهم صورت يعنی‌ملك رقبه حاصل نه دې.اوداخبره ښکاره ده.چه يوصورت ملك ناقص دې.ملك تام نه دې.ملك تام خو د دواړو مجموعه ده.

## په مقروض د زكاة دوجوب تفصيل

وَمَنْ كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ يُحِيطُ بِمَالِهِ اوپه کوم کس چې (دومره) پور وی.چې راګيرونکےوی.واړه مال دده فَلَا زَكَاةَ عَلَيْهِ نو نشته دی په ده باندی زکاة

تشريح:- **حكم احاطة الدين النصاب**۞مسئله داده.چه که په يوکس دومره قرضه وی.چه دده واړه مال راګيروی.مثلاً د دوې [دوه] زره روپومالیت مالك دې.اودومره په ده پور هم دی.اوددې پور څوك مطالبه کونکې وی.که مطالبه دالله تعالى لپاره کوی.لکه زکاة،يا د بندګانو لپاره کوی.لکه قرض،ثمن مبيع،دتلف شوی څيزونوضمان،د زخمونو تاوان،د ښځې مهر،دا پور که د نغدو دقبيلې څخےوی.اوکه ددې نه علاوه د مکيل يا وزنی څيزونو د قبيلې څخےوی.قرضه که حالي وی اوکه مؤجل وی.په مديون به زکاة واجب نه وی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله تَجِبُ او امام شافعي رحمه الله فرمائی.(په ده هم زکاة)واجب دی لِتَحَقُّقِ السَّبَبِ څکه چې موجود شوسبب وَهُوَ مِلْكُ نِصَابٍ تَامٍّ اودا مالك کيدل دی‌دنصاب نامی

تشريح:- او امام شافعي رحمه الله فرمائی.چه په ده به هم زکاة واجب وی.د امام شافعي رحمه الله دليل دادې.چه د وجوب زکاة سبب د مال نامی مالك کيدل دی.اودا موجوددې.څکه چې د پور او دين تعلق په ذمه سره کيږی.په مال سره نه کيږی.هم داوجه ده.چه د مديون تصرف به دده په مال کي نافذ کولې شی.که ده داسې تصرف کړې وی.چه پکي عوض حاصليږی.او ياپکي عوض نه حاصليږی.د اول مثال لکه بيع،او د دوهم مثال لکه هبه.

وَلَنَا أَنَّهُ بوخت بِحَاجَتِهِ الْأَصْلِيَّةِ او زمونږ دليل دادی .چې (مال) دده بوخت دی .دده په اصلي حاجت کي فَاعْتُبِرَ مَعْدُومًا نو داسې حساب شو چې هډو وی نه

تشريح:- .زمونږدليل دادې.چه د مديون مال دده په اصلي حاجت کي بوخت دې.اودا د پور اداکول دی.څکه چې پور په دنيا او آخرت دواړوکي هلاکونکې دې.په دنياکي خوڅکه مهلك دې.چه پور خواه به د پور داری ژوند تنګ کړی.اودې قيدکولې هم شی.اوقرضه دآخرت تباهی څکه ده.چه قرضه،د پور داری او د جنت په مينځ کي حائل کيږی.بهرحال قرضه ډيرلوےاصلي حاجت دې.او د مقروض واړه مال په دې حاجت کي بوخت دې.نو دا مال دقرضداری سره معدوم شمارلې شی.لکه چې ده سره دا مال موجودنه دې.اوکله چې دده سره مال موجودنه دې.نوپه ده زکاة دکوم ځائې نه واجب شو.

كَالْمَاءِ الْمُسْتَحَقِّ بِالْعَطَشِ نو شماريږی به (دامال)معدوم.په شان د هغه اوبو.چې متحقق شی دتندی ماتولو لپاره وَثِيَابِ الْبِذْلَةِ وَالْمِهْنَةِ اوپه شان د هغه کپړو چې د روزانه استعمال اوخدمت لپاره وی

تشريح:- ددې مثال داسې دې.لکه چې د يوکس سره لږےشان اوبه موجودوی.او دلرې لرې پورې اوبه نشته دې.په دې سې حالت کي ده ته د اودس کولو اړتيا راپيښ شو.نوکه داکس دا اوبه په اودس کي استعمال کړی.نوتګےبه پاتې شی. آوکه دسکلو لپاره ئې کيږدی.نواودس به ئې پاتې شی.نو په دې صورت کي داحکم دې.چه تيمم اوکړی او لمونځ اوکړی.څکه چې کله دا اوبه د تندې ماتولو لپاره متحقق شوې.نو د اودس په حق کي لکه چې معدوم شوې .اوپه کوم صورت کي چې اوبه معدوم شی.په هغه صورت کي د تيمم حکم

دسې.د الله تعالی ارشاددي. ﴿ فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا ﴾ (الايه) اولکه د روزانه ضروری کپړې ،او د محنت مزدورۍ کپړې ،چه ددې موجودیدل د زکاة په حق کې معدوم دی.

## د پور نه په زیاتی مال کې وجوب زکاة

**وَإِنْ كَانَ مَالُهُ أَكْثَرَ مِنْ دَيْنِهِ** اوکه دده مال زیات وی دده د پور نه **زَكَّى الْفَاضِلَ إِذَا بَلَغَ نِصَابًا** **لِفَرَاغِهِ عَنِ الْحَاجَةِ الْأَصْلِيَّةِ** نو ادادی کړی زکاة د زیاتی.(په شرط ددی ).چې نصاب ته اورشی (دا زیاتی مال)اوفارغ وی د حاجت نه

**تشریح:- الزکاة فی الفاضل بعد اداء الدین**﴿مسئله داده.که د مدیون سره مال دده د پور نه زیات وی.نوپه دې زیاتی مال کې به زکاة واجب وی.په دې شرط،چه دا زیاتی مال د نصاب په مقدار وی.او دده د اصلی حاجت نه فارغ هم وی.

**وَالْمُرَادُ بِهِ دَيْنٌ لَهُ مُطَالِبٌ مِنْ جِهَةِ الْعِبَادِ** او مراد ددی نه (داشی )قرضه ده.چې وی‌ددی مطالبه کونکي د بندګانو دارخه **حَتّٰى لَا يَمْنَعَ دَيْنُ النَّذْرِ وَالْكَفَّارَةِ** تردی چې مانع نه وی.د نذرقرضه ،اودکفاره (قرضه)، (دوجوب زکاة نه).

**تشریح:- الدین المانع ماله مطالب من جهة العباد**﴿علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه د دین نه مراد داسې پور دې.چه ددې څوك مطالبه کونکې دبندګانو دارخه وی.اګرچه دالله تعالی لپاره مطالبه کوی.نو داسې قرضه د زکاة وجوب منع کوی.اوکه د بندګانو د ارخه مطالبه نه وی.نو داسې پور د زکاة لپاره مانع نه دې. لکه نذر دین،او د کفاره دین، صورت ددې دادې.چه د یوکس سره دوې [دوه] سوه درهمه دی.او دده څه قدرې درهم د خیرات کاوه نذرکړل، یاپه ده د قسم د کفاره نذرلازم دې.او ده نذر یاکفاره ادانکړه.تردې چې کال تیرشو.نوپه ده به د دوې [دوه] سوه درهمو زکاة واجب وی.ځکه چې نذر یاکفاره دې پخپله اداکوی.امام المسلمین یاقاضی ددې مطالبه نه کوی.

**وَدَيْنُ الزَّكَاةِ مَانِعٌ حَالَ بَقَاءِ النِّصَابِ**[1] او( پاتی شو)دین زکاة، نو دا مانع دی د نصاب دبقاء په وخت (د زکاة نه). **لِأَنَّهُ يَنْتَقِصُ بِهِ النِّصَابُ** ځکه چې کم به شی په دی (دین زکاة سره )نصاب

**تشریح:- دین الزکاة مانعها**﴿علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه د زکاة نصاب د پاته پاتې کیدو په صورت کې دین زکاة،د زکاة وجوب منع کوی.ځکه چې دین زکاة اداکولوسره د زکاة نصاب کمیږی.صورت دا دې. چې یوکس د دوې [دوه] سوه درهمومالك شو.اوپه دوی یوکال تیرشو.لیکن ده زکاة ادانکړو.تردې چې دوهم کال هم تیرشو.نو د دوهم کال زکاة به واجب نه وی.ځکه چې د اولنی‌کال د زکاة وجوب په دوهم کال کې د زکاة د وجوب نه مانع وی.ځکه چې د اولنی‌کال زکاة یعنی چې پنځه درهمه اوباسی.نونصاب کمیږی.او دا ښکاره ده.چه د نصاب نه په کم کې زکاة واجب نه وی.

**وَكَذَا بَعْدَ الْاِسْتِهْلَاكِ** اوهم دا(حکم )د تباه کولونه روسته دی

**تشریح:- اتلاف المال مانعها**﴿اوهم داحکم د پوره مال تلف کولونه روسته دې.یعنی یوکس د دوې [دوه] سوه درهمومالك شو.اوپه دې کال تیرشو.بیا د زکاة اداکولونه مخکې ده واړه نصاب سره د زکاة هلاك کړو.بیا ده ته دوې [دوه] سوه درهمه ملاؤ شو.اوپه دې کال تیرشو.نوپه ده ددې ملاؤشوی دوې [دوه] سوه درهمو زکاة واجب نه دې. ځکه چې د اولنی نصاب د زکاة وجوب دده په ذمه دین دې.او دین زکاة هم د زکاة واجبیدونه مانع وی.دا تفصیل دطرفینو رحمهما الله په نیزدې.

[1] القول الراجح هو هذا القول الأول يعني دين الزكاة مانع حال بقاء النصاب إلخ كذا في الخانية (۱\۱۲۳) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۶۲)_



**خِلَافًا لِزُفَرَ فِيْهِمَا** د امام زفر رحمه الله اختلاف دی (په دی دواړو صورتونو کې ).

**تشریح:- خلاف زفر رحمه الله فی المسئلتین المذکورتین**﴿امام زفر رحمه الله په دواړوصورتونوکې مخالف دې.یعنی په هغه نصاب کې هم په کوم کې چې زکاة واجب شو.خو ادائې نکړو.تردې چې دوهم کال تیرشو.اوپه هغه نصاب کې هم چې په هغې کې زکاة واجب شو.خوواړه نصاب ئې هلاك کړو.بیا د نصاب مالك شو. او په دې کال تیرشو.حاصل داچه د امام زفر رحمه الله په نیزپه دواړه صورتونو کې دین زکاة، د زکاة وجوب نه منع کوی.

**دلیل زفر رحمه الله**﴿د امام زفر رحمه الله دلیل دادې.چه د زکاة دین داسې قرضه ده.چه ددې مطالبه کونکې د بندګانو د ارخه هیڅ څوك نشته.نو دا هم د دین نذر،اودکفاره د دین په شان شو.او د کوم دین مطالبه کونکې چې د بندګانو دارخه نه وی.هغه دین د وجوب زکاة مانع نشی‌کیدې.نو دین زکاة او دین استهلاك دواړه به د وجوب زکاة مانع نه وی.

**وَلِأَبِيْ يُوْسُفَ فِي الثَّانِيْ عَلٰى مَا رُوِيَ عَنْهُ** او د امام ابویوسف رحمه الله اختلاف دی .په دوهم (صورت) کې .د هغه روایت په بناء چې دده (دابویوسف رحمه الله)نه مروی دی **لِأَنَّ لَهُ مُطَالِبًا** **لِأَنَّهَا** ځکه چې ددی (ددین زکاة)(مطالبه کاوه والا(بنده)موجوددی **وَهُوَ الْإِمَامُ فِي السَّوَائِمِ وَنَائِبُهُ فِيْ أَمْوَالِ التِّجَارَةِ** او هغه (بنده) امام المسلمین دی .په څرن کونکو څاروو کې .اودده نائب دی .دتجارت په (نورومالونو)کې

**تشریح:- خلاف ابیوسف رحمه الله فی مسئلة الاستهلاک**﴿امام ابویوسف رحمه الله په دوهم صورت کې زموږ مخالف دې.یعنی د اولنی‌کال د زکاة دین په دوهم کال کې د زکاة د وجوب نه مانع دې.خوکه دکال تیریدونه روسته واړه نصاب هلاك کړی.نو ددې د زکاة مطالبه کونکې د بندګانو دارخه هیڅ څوك نشته.ددې په خلاف که نصاب موجوددې.اود حولان حول نه روسته ئې هم زکاة ادانکړو.نو عاشر او زکاة وصول کونکې ددې د زکاة مطالبه کولې شی.نوپه دې صورت کې د بندګانو دارخه مطالبه کونکې موجوددې.ځکه دا دین زکاة د راروان کال د زکاة واجبیدونه مانع وی.او د دین مستهلك هیڅ څوك مطالبه کونکې دبندګانو دارخه نشته.ځکه به دا مانع نه وی.

**دلیل الطرفین**﴿دطرفینو رحمهما الله دلیل دادې.چه ددین زکاة مطالبه کونکې بنده موجود دې. او هغه بنده د څریدونکو څناورو په زکاة کې امام المسلمین دې.او دتجارت په نورومالونوکې دده نائب دې.

**فَإِنَّ الْمُلَّاكَ نُوَّابُهُ** نو(د مال) مالکان (په خپله) د امام نائبان دی.

**تشریح:- الاعتراض**﴿خوکه دا اووئیلې شی.چه د امام خوهیڅ څوك نائب نه راځی.نه د څریدونکو څاروو زکاة غوښتلو دپاره،او نه دتجارت د مالونو زکاة غوښتو دپاره.

**الجواب**﴿امام المسلمین په خپله مالکانوته اجازت ورکړو.نو د مال مالك په خپله د امام نائب دې.په دې طریقه چې د مال مالك خوپه زکاة اوښکلوکې صاحب زکاة دې.اودا زکاة فقیرانوته په ورکولوکې د امام نائب دې.

**الدلیلان علی کون المالک نائب الخلیفة**﴿ اوددې اصل دالله تعالی قول دا ایت دی﴿ خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً ﴾دې آیت نه د امام لپاره د هرمال نه د زکاة اخستوحق ثابتیږی.هم داوجه ده.چه رسول اکرم ﷺ او ددوی نه روسته صدیق اکبر رضی الله عنه اوفاروق اعظم رضی الله عنه په څاروو ، نغدو،او دتجارت په مالونوکې دټولو زکاة اخستلو.اوپه حق مصارفوکې به ئې خرج کولو.خوکله چې د حضرت عثمان رضی الله عنه زمانه خلافت پیل شو.نو دوی رضی الله عنه اوکتل.چه په مسلمانانوکې زکاة مشهورشو.اودا خطره هم پیدا شوه.چه بادشاهان به د خلګ وپه مالونو زور زیاتې کوی.ځکه ئې مالکان د مال نائب اوګرځول.چه دوی د خپلومالونو زکاة په خپله اداکړی.نوثابت شو.چه د مال مالك زکاة فقیرانوته په ورکولوکې د امام المسلمین نائب دې.

**په حوائج اصليه کې د زكاة عدم وجوب**

وَلَيْسَ فِي دُورِ السُّكْنَى وَثِيَابِ الْبَدَنِ وَأَثَاثِ الْمَنَازِلِ وَدَوَابِّ الرُّكُوبِ وَعَبِيدِ الْخِدْمَةِ وَسِلَاحِ الِاسْتِعْمَالِ زَكَاةٌ او واجب نه دى .د اوسيدويه كورونوكي ،د بدن په كپړوكي ،د كورنوپه سامانونوكي ، د سوارلئ په ځاروكي ،د خدمت په غلامانوكي ،د استعمال په اسلحوكي ،زكاة

**حل اللغة:** ①دور جمع دار: كور ②اثاث جمع اثاثه: سامان ③منازل، منزل: كور ④ دواب جمع دابة: د سورلئى ځناور ⑤ ركوب: سورلى ⑥عبيد جمع عبد: غلام ⑦سلاح: وسله

**تشريح:- عدم وجوب الزكاة فى المشغول بالحاجة الاصلية وغيرالنامية**⊛مسئله داده.چه په متن كي په ذكرشوي ځيزونوكي زكاة واجب نه دي.ځكه چي داشيان (ځيزونه ) په اصلى حاجت كي بوخت دى. اصلى حاجت دي ته وائي چه په دي انسانئ هلاكت اوتكليف لرې كيږى.كه حقيقتاً وى.اوكه تقديراً .اودا شيان (ځيزونه ) نامى هم نه دى.حاصل داچه په حاجت اصلى سره مشغوليدل،او نامى نه كيدل، په دي كي هريو د وجوب زكاة مانع دى.اوكله چي دلته كي دواړه خبرې دى.نوپه درجه اولى به زكاة واجب نه وى.

لِأَنَّهَا مَشْغُولَةٌ بِالْحَاجَةِ الْأَصْلِيَّةِ ځكه چي دا (شيان (ځيزونه )) بوخت دى په اصلى حاجت كي وَلَيْسَتْ بِنَامِيَةٍ أَيْضًا او نه دى (دا شيان (ځيزونه )) نامى هم دغه شان

**تشريح:- عدم الحاجة الاصلية والنماء فيالاشياء المذكورة**⊛ ددي ځيزونو اصلي حاجت سره مشغوليدل، خو ښكاره دى.اونامى نه كيدل،ځكه دى.چه نمو ياخو مورزاده (پيدائشى) وى.كله په سرو، اوسپينوكي ،ياپه تجارت سره وى.لكه دتجارت په مال كي .او دلته كي دواړه خبرې نشته.ځكه موږ اوونيل چه ذكرشوي شيان (ځيزونه ) نامى نه دى.

وَعَلَى هَذَا كُتُبُ الْعِلْمِ لِأَهْلِهَا او هم په دى (حكم) باندى دى. د علم كتابونه.دعلم والو لپاره

**تشريح:- عدم الزكاة فى كتب العلم**⊛دغه دول كه د عالمانو لپاره د علم كتابونه وى.نوپه دي كي زكاة واجب نه دي.په عبارت كي دعلم والو قيد اتفاقي دي.ځكه چي كه د جاهل سره كتابونه وى.اود تجارت لپاره نه وى.نو په دي كي هم زكاة واجب نه دي.

وَآلَاتُ الْمُحْتَرِفِينَ لِمَا قُلْنَا او (هم په دى حكم دى)د كاروبارى خلګو آلات.د هغه (روايت) په وجه كوم چي موږ بيان كړو.

**تشريح:- الروايتان فى وجوب الزكاة فى الات الحرفة**⊛ هم داحكم د كاروبارى خلګو د آلاتو دي.لكه د حلوائى ديګونه،د بتئ والا،اود ګهړى سازآلات وغيره، په دي كي زكاة نشته.بعضوحضراتو ونيلى دى.چه د كاروبار په آلاتوكي هغه شيان (ځيزونه )،چه د هغي اثرپه جوړشوي ځيزونو پاتـه نـه پاتي كيږى.لكه صابن،اشنان دهوبى واخستل، اونانبائى د روټو لپاره مالګه او لرګى واخستل،نوپه دي ځيزونوكي زكاة واجب نه دي. اوكه په جوړشوځيزونوكي اثرپاته پاتي كيږى.لكه د رنګساز سم(يوقسم ګل دي چي رس ترې وبستلي شي.اوسرې جامې پرې رنګ كولې شى)زعفران،او رنګ واخستلو،چه په اجرت خلګ ولـه كپړې رنګ كړى.اوپه دي كال تيرشو.نوپه دي ځيزونوكي به زكاة واجب وى.په دي شرط چي داشيان (ځيزونه ) د نصاب مقدارته رسيدلي وى.

**په مال ضمار كي عدم زكاة**

وَمَنْ لَهُ عَلَى آخَرَ دَيْنٌ او د كوم كس چي په بل باندى قرضه ده فَجَحَدَهُ سِنِينَ او ده انكاراوكړو(د پور نه)څوكاله ثُمَّ قَامَتْ لَهُ بَيِّنَةٌ بيا قائم شو په ده بينه لَمْ يُزَكِّهِ لِمَا مَضَى نو زكاة به نه وركوى د تيروشوو ورخو مَعْنَاهُ: صَارَتْ لَهُ



بَيِّنَةٌ بِأَنْ أَقَرَّ عِنْدَ النَّاسِ ددى (خبرى )مطلب دادى .چي ددى ګواهان شو په دى (طريقه)چي (مديون)اقرار اوكړود خلګو امخكي (دقرض)

**حل اللغة:** ①جحده، جحد، يجحد، جحوداً:انكاركول

**تشريح:- الربط بماقبلها**⊛د اوسه پورې د هغه خلګو ذكر وو.چه په هغوى زكاة واجبيږى.اوپه كومو چي زكاة نه واجبيږى.اوس ددې ځائي نه د هغه مالونو بيان دې.چه په هغې كي زكاة نه واجبيږى.د هغه مال نوم چي په هغې كي زكاة نه واجبيږى.مال ضمار دې.

**الضمار لغة واصطلاحاً**⊛ دضمار اصل اضمار دې.او د اضمارلغوى معنى غائبول او مخفى كول دى. ونيلې شى چه أضمرفي قلبه ده په خپل زړه كي پټ كړل.او د فقهاؤ په اصطلاح كي مال ضمارهغه مال وى.چه غائب وى.او ددې د ملاويدو اميد نه وى.اوكه ددې ملاويدو اميدوى.نو هغه ته مال ضمارنشى ونيلې. بعضو ونيلى دى.چه مال ضمارهغه مال وى.چه ذاتاً موجود وى.خومالك ددې نه په نفع اخستلو قادرنه وى.ځكه چي مال ضمار رقبةً خو د مالك مملوك وى.خو يداً مملوك نه وى.

**صورمال الضمار**⊛ علامه مرغينانى ﷫ مال ضمار متعدد صورتونه ذكركړى دى.① د يوكس په بل قرضه ده.قرضدارى د څوكالو پورې ددې پور انكاركوو.او پور غوښتونكى په دې موده كي د ګواهانو نه محروم وو.دڅوكالـه تيريدونـه روستـه ګـواه پيدا شو.په دې طريقه چي قرضدارى د خلګ وپـه مخكي دقرضي اقراراوكړو.نودا خلګ د پور غوښتونكى اقرارى ګواهان شو.يعنى دا خلګ په دې ګواه شو.چه قرضدارى زموږ په مخكي د پور اقراركړې دې.نو ددې ګواهانو د قائميدونه مخكي دا پور مال ضماروو.او د ګواهانو دقائمولونه روستـه مال ضمارنشو.ځكه تركومه چي ګواهان موجود نه وو.نو ددې قرضې د وصوليدو هيڅ اميد نه وو.خوچه كله ګواهان پيدا شو.نو د عدالت دقاضى په ذريعه ددې پور وصوليدل ممكن او يقينى شو.

وَهِيَ مَسْأَلَةُ مَالِ الضِّمَارِ او دامسئله ده د مال ضمار وَفِيهِ خِلَافُ زُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ ﷫ اوپه دى (مال ضماركي)اختلاف دى .د امام زفر او امام شافعي ﷫

**تشريح:- المذهبان فى وجوب الزكاة فى مال الضمارصورة المس**⊛اوس سوال دادې.چه مال ضمارد څوكالوپورې د مالك نه غائب وو.اوپه دې موده كي ددې د ملاويدو اميد هم نه وو.بيا څوكالـه روستـه دا مال ملاؤشو.نو ددې تيرو شوو څوكالو زكاة به واجب وى اوكه نه ؟ ①نوپه دې اړه كي داحنافومذهب دادې.چه د تيرو شوو كالونو زكاة واجب نه دى.② او د امام زفر او امام شافعي ﷫ مذهب دادې.چه زكاة به واجب وى.

وَمِنْ جُمْلَتِهِ: الْمَالُ الْمَفْقُودُ او (منجمله)ددى (مال ضمارنه) هغه مال دى . چي مفقود شو وَالْآبِقُ اوهغـه (غلام) چي اوتبنتيدو ،وَالضَّالُّ ، وَالْمَغْصُوبُ إِذَا لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ بَيِّنَةٌ اوهغه (ځاروى وغلام)چي ورك شو.اوهغه (مال)چي چاغصب كړو.په دى شرط چي نه وى.په ده(غاصب)ګواهان وَالْمَالُ السَّاقِطُ فِي الْبَحْرِ اوهغه مال چي پريوتلو په سمندركي وَالْمَدْفُونُ فِي الْمَفَازَةِ إِذَا نَسِيَ مَكَانَهُ اوهغه مال چي دفن ئې كړو په ځنګل كي .چي هيركړى ځائى د هغې وَالَّذِي أَخَذَهُ السُّلْطَانُ مُصَادَرَةً اوهغه (مال) چي اخستى وى دا سلطان د مالك نه مصادرة

**تشريح:-** د مال ضمار د صورتونو نـه دا دى ①اورك شوي مال ② تبنتيدلي غلام ③ هغه حيوان (ځاروي اوغلام چي ورك شو.④ هغـه مال چي چاغصب كړو.خو د مالك سره د غاصب په خلاف ګواه نه وى.⑤ هغه مال چي په سمندركي غورزيدلي وى ⑥هغه مال چي په ځنګل كي دفن شى،او د هغې ځائې هيرشى ⑦ هغه مال چي بادشاه د مالك نه جداكړې وى.

وَوُجُوبُ صَدَقَةِ الْفِطْرِ بِسَبَبِ الْآبِقِ وَالضَّالِّ وَالْمَغْصُوبِ او تښتيدلی غلام، او صدقة الفطر واجبيدل د اړخه د تښتيدلی او وُرك شوی غلام، اوغصب شوی غلام عَلَى هَذَا الْخِلَافِ په دی اختلاف مبنی دی

تشريح:- **الخلاف المذكورفی العبد الابق والمغصوب**۞ هم دا اختلاف د تښتيدلی غلام، ورك شوی غلام، او د غصب شوی غلام، داړخه دصدقة الفطر په وجوب كي دي.زموږ په نيز به په مولی باندې ددوی د اړخه صدقة الفطر واجب نه وی.او د امام زفر او امام شافعی رحمهما الله په نيزصدقة الفطرددوی داړخه واجب دي

لَهُمَا أَنَّ السَّبَبَ قَدْ تَحَقَّقَ ددی دواړو(امام زفراو امام شافعی رحمهما الله)دليل دادی .چې سبب(د صدقة الفطر)خو متحقق دی وَفَوَاتُ الْيَدِ غَيْرُ مُخِلٍّ بِالْوُجُوبِ كَمَالِ ابْنِ السَّبِيلِ او (ړاتی شو) فوت كيدل د قبضه(ملك)،نو دا مخل نه دی د وجوب دپاره.لكه د مسافرمال

تشريح:- **دليلهما**۞د امام زفر او امام شافعی رحمهما الله دليل دادي.چه په مال ضماركي د زكاة دوجوب سبب، يعنی د نصاب نامی مالك كيدل موجوددی.اوكله چې دوجوب زكاة سبب موجوددې.نوپه مال ضماركي به زكاة هم واجب وی.زيات نه زيات دا وئيلې شی.چه په مال ضمارباندې د مالك قبضه فوت ده.نو ددې څواب دادې.چه دقبضه فوت كيدل د وجوب زكاة لپاره مخل نه دي.

**نظيره**۞ لكه د مسافرمال،چه د سفرپه حالت كي دده په قبضه كي نه دې.حالانكه په اتفاق په ده صدقة الفطرهم واجب ده.اوزكاة هم واجب دې.

وَلَنَا قَوْلُ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اوزموږ دليل د حضرت علی رضی الله عنه قول دی لَا زَكَاةَ فِي الْمَالِ الضِّمَارِ[1] چې زكاة نشته په مال ضماركي

تشريح:- **دليل الاحناف**۞ زموږ دليل د حضرت علی رضی الله عنه قول «لازكاة فیمال الضمار» دې.هم دا مضمون د حسن بصری رحمه الله نه منقول دې. «اذاحضر الوقت الذي يؤدي فيه الرجل زكاته ادي عن كل مال وعن كل دين الا ماكان ضمارلايرجوه» يعنی كله چې هغه وخت راشی.چه په هغې كي سړې خپل زكاة ادا كوی.نو دهرمال اود هر دين دې زكاة اداكړی.خود هغې مال(زكاة دې نه اداكوی)كوم چې ضمار وی.او د هغې اميد نه وی.ددې دواړو قولونه ثابت شو.چه په مال ضماركي زكاة واجب نه دي.

وَلِأَنَّ السَّبَبَ هُوَ الْمَالُ النَّامِي اوځكه چې (د زكاة سبب)خوهغه مال دی .چې هغه نامی وی وَلَا نَمَاءَ إلَّا بِالْقُدْرَةِ عَلَى التَّصَرُّفِ او نمونشته .خوچې قدرت وی د تصرف وَلَا قُدْرَةَ عَلَيْهِ اونشته قدرت (دتصرف) په دی (مال ضمار)باندی

تشريح:- **الجواب عن دليل الشافعی رحمه الله**۞ دوهم دليل دادې.چه د امام زفراو امام شافعی رحمهما الله داوئيل،چه د وجوب زكاة سبب موجودشو.موږنه منو.ځكه چې د زكاة د وجوب سبب مطلقاً د مال مالك كيدل نه دی. بلكه د مال نامی مالك كيدل دوجوب زكاة سبب دې.اوپه مال ضماركي دا سبب متحقق نه دې. ځكه چې نماء هغه وخت موجوديږی.چه دتصرف قدرت وی.اوپه مال ضمار د تصرف قدرت نشته.اوچه د تصرف قدرت نشته.نو په دې كي به نماء هم نه متحقق كيږی.اوكله چې نماء موجود نشوه.نومال ضماربه مال نامی هم نه وی.اوكله چې مال ضمارمال نامی نه دې.نوپه دې كي به زكاة هم واجب نه وی

وَابْنُ السَّبِيلِ يَقْدِرُ بِنَائِبِهِ او مسافرته قدرت حاصل دی (دتصرف) په ذريعه د خپل نائب

تشريح:- **الجواب عن قياس الشافعی رحمه الله**۞ «وابن السبيل يقدر بنائبه» نه امام زفر او امام شافعی رحمهما الله دقياس

[1]) غربه الزيلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم أخرج عنه رضی الله عنه ما هو بمعناه وعزاه إلى كتاب الأموال لأبی عبدالقاسم بن سلام نصب الراية (۳۴۲/۲)



څواب دې.حاصل دځواب دادې.چه مال ضمار د مسافر په مال باندې قياس فاسد دې.ځكه چې په مال ضمار د تصرف قدرت نه خوپه خپله شته.اونه دنائب په ذريعه،او مسافرته په خپل مال باندې كوم چې دده په وطن كي دې.د تصرف قدرت اګرچه په خپله نشته.خو دنائب په ذريعه دتصرف قدرت حاصل دې.كه مسافرد خپل مال نه څه خرڅ كړل.نوجائزدی.ځكه چې مسافر د خپل نائب په ذريعه د مبيع په سپارلو قادردې.نومعلوم شو.چه د مسافرمال،مال نامی‌دې.او مال ضمارنامی نه دې.په دې سې صورت كي دې امام زفر او امام شافعی رحمهما الله غور اوكړی.چه سره د دومره لوے فرق به قياس څنګه ټيك وی.

وَالْمَدْفُونُ فِي الْبَيْتِ نِصَابٌ اوكوم (مال)چې دفن وی.په كوركي .هغه (د زكاة)نصاب دی لِتَيَسُّرِ الْوُصُولِ إلَيْهِ ځكه چې آسان دی رسيدل دی ته

تشريح:- **الزكاة فی المال المدفون فيالبيت**۞صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.كوم مال چې په حجره كي مدفون وی.نوهغه نصاب زكاة دې.يعنی په دې مال كي به زكاة واجب وی.ځكه چې داحجره سره دټولو اجزاؤ دده په قبضه كي دې.ځكه دې مال ته رسيدل آسان دی.اوچه كله دې مال ته رسيدل آسان دی.اوددې حاصلول ممكن دی.نو دا مال به په مال ضماركي داخل نه وی.اوچه په مال ضمار كي داخل نشو.نوپه دې كي به زكاة هم واجب نه وی.

وَفِي الْمَدْفُونِ فِي أَرْضٍ أَوْ كَرْمٍ اخْتِلَافُ الْمَشَايِخِ اوكوم (مال)چې دفن وی په مځكه ياباغ كي .(په دی كي )د مشائخواختلاف دی

تشريح:- **الزكاة فی المال المدفون فی البستان والصحراء**۞اوكه مال په مملوكه مځكه يا باغ كي مدفون شی.او ددې ځائې هيرشی.نوپه دې كي د مشائخو اختلاف دې.بعض فرمائی.چه دې مال كي زكاة واجب دې. ځكه چې ټوله مځكه كنستل،او د مال راويستل ممكن دی.ځكه په دې دتصرف قدرت هم حاصل دې.او چې د تصرف قدرت حاصل دې.نو دا به مال ضمارنه وی.اوبعضې مشائخ فرمائی.چه ددې مال زكاة واجب نه دې.ځكه چې ټوله مځكه كنستل،اګرچه متعذرنه دی.ليكن ګران كار ضروردی.اوپه شريعت كي حرج لرې شوې دې.ځكه به په دې مال كي زكاة واجب نه وی.

وَلَوْ كَانَ الدَّيْنُ عَلَى مُقِرٍّ مَلِيءٍ أَوْ مُعْسِرٍ تَجِبُ الزَّكَاةُ اوكه وی قرضه په (يو پور داری)مقرباندی .كه (دی )مالداره وی،اوكه تنګدست وی.واجب به وی زكاة لِإِمْكَانِ الْوُصُولِ إلَيْهِ ابْتِدَاءً أَوْ بِوَاسِطَةِ التَّحْصِيلِ ځكه چې ممكن دی ددی پور وصولول.ياخو په پيل كي ،ياپه واسطه دتحصيل

تشريح:- **الزكاة فی الدين علی المقر**۞صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.كه قرضه په يوداسې كس وی.چه هغه ددې قرضے اقراركوی.كه دا قرضدار مالداروی.اوكه تنګدست(غريب) وی.نو ددې مال دين زكاة واجب دې. ځكه چې ددې قرضې وصولول ممكن دی.كه پور دار توانګر وی.نو ابتداء وصولولې شی.اوكه تنګدست وی.نو د تحصيل په ذريعه وصولولې شی.يعنی‌دده د ګټې نه د قاضی په حكم يا په خپل مينځ كي په رضا مندئ سره حاصلولې شی.په دې سې قرضه مالك ته اګرچه حقيقتاً قدرت نه وی.خوحكماً قدرت حاصل وی. اوچه مالك ته قدرت حاصل دې.اګرچه حكماً ولې نه وی.نو دې ته مال ضمار نشی وئيلې.

وَكَذَا لَوْ كَانَ عَلَى جَاحِدٍ اوهم دغه ډول كه (قرضه) په يومنكر وی وَعَلَيْهِ بَيِّنَةٌ أَوْ عَلِمَ بِهِ الْقَاضِي لِمَا قُلْنَا اوپه دی ګواهان (موجود) وی.ياعلم وی ددی (قرضے)قاضی ته.د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړو

تشريح:- **الزكاة فی الدين علی المنكر**۞ اوكه پور په يومنكر وی.خود پور غوښتونكی سره دده په خلاف ګواهان موجوددی.ياقاضی ته ددې قرضې په ذاتی طورعلم شته دې.نوهم زكاة واجب دې.ځكه چې ددې قرضې وصولول ممكن دی.ځكه چې دګواهانو په ګواهۍ به د مالكِ مال په حق كي قاضی فيصله كوی.يا به قاضی د خپل علم موافق دده په حق كي حكم كوی.

وَلَوْكَانَ عَلٰى مُقِرٍّمُفْلِسٍ اوكه (قرضه په يو مديون) مقر مفلس باندې وي فَهُوَنِصَابٌ عِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) نو دا هم نصاب دی (زكاة) دابوحنيفه رحمه الله په نيز لِأَنَّ تَفْلِيسَ الْقَاضِي لَايَصِحُّ عِنْدَهُ ځكه چې (د ده) مفلس كول د قاضي (په حكم)، صحيح نه دی. دده (ابوحنيفه رحمه الله) په نيز

**تشريح:- الزكاة فى الدّين على المقرّ المفلس بحكم القاضى والمذهبان فيه**﴿۞﴾ اوكه قرضدار، د پور اقرار كوى. خو قاضي دده د مفلس كيدوحكم وركړو. اواعلان ئې اوكړو.

نو دا د پور مال هم د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د زكاة نصاب دې. يعنى په دې كي به هم زكاة واجب وى. ځكه چې دقاضي دده مفلس كول، يعنى دده د مفلس كيدوحكم وركول، اواعلان كول صحيح نه دی. نوكله چې دقاضي دده مفلس كول صحيح نه دی. نومفلس كول اونه كول دواړه برابردی. او دنه تفليس كولوپه صورت كي بالاتفاق زكاة واجبيږي. ځكه چې ددې نه ګټه اخستل، او د پور وصولول ممكن دی. نو دغه ډول د تفليس نه روسته به هم زكاة واجب وی

وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ لَايَجِبُ اود امام محمد رحمه الله په نيز (د دی شی قرضی زكاة) نه واجبيږي. لِتَحَقُّقِ الْإِفْلَاسِ عِنْدَهُ بِالتَّفْلِيسِ ځكه چې دده (د امام محمد رحمه الله) په نيز (د قاضي په) مفلس كاوه سره افلاس متحقق كيږي

**تشريح:-** د امام محمد رحمه الله په نيز په مديون، دقاضي د مفلس كولونه روسته په ده باندې زكاة واجب نه دې. ځكه چې د امام محمد رحمه الله په نيزدقاضي د مفلس كولونه روسته افلاس متحقق كيږي. اوكله چې دقاضي مفلس كول، د امام محمد رحمه الله په نيزصحيح دی. نو دا قرضه، د پور غوښتونكي په حق كي دهلاك شوی مال په منزله كي وی. اود هغه قرضه په شان به وی. چه د هغې انكار شوې وی. اود هلاك شوی مال، اود انكاركړې شوی مال نه زكاة واجب نه وی. د قاضي د تفليس نه روسته د مديون په ذمه چې كوم دين دې. په هغې كي به زكاة واجب نه وی.

وَأَبُويُوسُفَ مَعَ مُحَمَّدٍ فِي تَحَقُّقِ الْإِفْلَاسِ او امام ابويوسف رحمه الله د امام محمد رحمه الله سره دی. په افلاس متحقق كولوكي، وَمَعَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي حُكْمِ الزَّكَاةِ رِعَايَةً لِجَانِبِ الْفُقَرَاءِ اود ابوحنيفه رحمه الله سره دی د زكاة (د وجوب) په حكم كي. د رعايت ساتلو د فقيرانو.

**تشريح:- موقف ابى يوسف فى تفليس القاضى و وجوب الزكاة**﴿۞﴾ پاتې شو امام ابويوسف رحمه الله نو دې د قاضي په تفليس سره په افلاس متحقق كيدوكي د امام محمد رحمه الله سره دې. د پور داری د مالداره كيدو پورې د پور غوښتونكي مطالبه ساقطيږي. ده ته به د مطالبه كاوه حق نه وی. سوې ددې چې پور دار توانګر شي. او په زكاة واجبيدوكي د امام ابوحنيفه رحمه الله سره دې. پور غوښتونكي ته چې كله دا پور وصول شي. نو د شيخينو رحمهما الله په نيز د تيرو شووكالونو زكاة په پور غوښتونكي واجب وی. د امام ابويوسف رحمه الله په نيز زكاة واجبيدوكي دفقيرانو د رعايت لحاظ دې.

### په وينځه كې دتجارت نيت پريخودو سره د زكاة حكم

وَمَنِ اشْتَرٰى جَارِيَةً لِلتِّجَارَةِ اوچاچې واخستله يوه وينځه دتجارت لپاره وَنَوَاهَا لِلْخِدْمَةِ اونيت ئې اوكړو. ددې لپاره د خدمت بَطَلَتْ عَنْهَا الزَّكَاةُ نوباطل سو. ددې وينځې نه زكاة لِاتِّصَالِ النِّيَّةِ بِالْعَمَلِ ځكه چې متصل سو نيت دعمل سره وَهُوَتَرْكُ التِّجَارَةِ اوهغه ترك دتجارت دی

(١) القول الراجح هو هذا قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى الخانية (١٢٤\١) وردالمحتار(١٠\٢) وردالمحتار (٦٨\٢) وقال المفتى غلام قادر مدظله قول الامام مبنى على الاحتياط وقول محمد رحمه الله أرفق للناس فينبغى أن يكون الراجح قول محمد فى هذا الزمان نقلاً عن القول الراجح (١٦٣\١)-



**تشريح:- عدم الزكاة فى الجارية المتروكة فيها نية التجارة**﴿۞﴾ مسئله داده. كه يوكس دتجارت په اراده يوه وينځه واخسته. بيائې دا اراده اوكړه. چه ددې څخه به خدمت اخلم. او دتجارت نه ئې ددې د خارجيدونيت اوكړو. نو ددې وينځې نه زكاة باطل شو. يعنى ددې وينځې په ماليت كي به زكاة واجب نه وی.

**دليله**﴿۞﴾ دليل دادې. كوم څيزچه دجوارح د اعمالوځنې دی. هغه صرف په نيت سره نه متحقق كيږي. بلكه دنيت په عمل سره متصل كيدل ضروری دی. اوكوم څيزچه دترك دقبيلې ځنې وی. په هغې كي نيت كول كافى دی. نو دې كس دتجارت په نيت وينځه واخسته. او بيائې ددې نه د خدمت اخستونيت اوكړو. يعنى د تجارت د ترك نيت ئې اوكړو. نوصرف په نيت سره دا وينځه د تجارت نه خارج شوه. اوچه دتجارت نه خارج شوه. نو ددې نه زكاة هم باطل شو.

وَإِنْ نَوَاهَا لِلتِّجَارَةِ بَعْدَ ذٰلِكَ اوكه نيت ئې اوكړو. دتجارت، ددې نه روسته لَمْ تَكُنْ لِلتِّجَارَةِ حَتّٰى يَبِيعَهَا نونه به وی. دا (وينځه) دتجارت دپاره. تردې چې وپلوري (خرڅه كړي) دا (وينځه). فَيَكُونَ فِي ثَمَنِهَا زَكَاةٌ نووی به په ثمن ددې (وينځې) كې زكاة لِأَنَّ النِّيَّةَ لَمْ تَتَّصِلْ بِالْعَمَلِ ځكه چې نيت متصل نسود (هيڅ) عمل سره إِذْهُوَلَمْ يَتَّجِرْ ځكه چې ده (د) تجارت (هيڅ فعل) اونكړو فَلَمْ تُعْتَبَرْ نو معتبر نسو (نيت).

**تشريح:- ترك النية لايكون الا بالتباشرمع العمل**﴿۞﴾ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چه نيت دعمل سره متصل شو. او هغه عمل ترك دتجارت دې. حالانكه ترك دتجارت عمل نه دې. بلكه ترك عمل دې. اوكه دتجارت په نيت ئې وينځه واخسته. بيائې ددې نه د خدمت اخستونيت اوكړو. بيائې ددې نه روسته د تجارت نيت اوكړو. نودا وينځه به د تجارت لپاره نه وی. تردې چې داوينځه وپلوری (خرڅه كړي). نوكه دائې خرڅه كړه. ددې وينځې په ثمن كي به زكاة واجب وی. ځكه چې تركومه ده وينځه خرڅه نكړه. نونيت د تجارت په عمل سره متصل نشو. اوكوم نيت چې دعمل سره متصل نه وی. هغه معتبرنه وی. ځكه صرف په نيت كولوسره به دا وينځه د تجارت لپاره نه وی.

وَلِهٰذَا يَصِيرُ الْمُسَافِرُ مُقِيمًا بِمُجَرَّدِ النِّيَّةِ، هم داوجه ده. چې مسافرمقيم كيږي صرف په نيت سره وَلَا يَصِيرُ الْمُقِيمُ مُسَافِرًا إِلَّا بِالسَّفَرِ او نه مسافركيږي مقيم صرف په نيت سره. خوپه سفرسره.

**تشريح:- نظيره**﴿۞﴾ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چه مسافرصرف داقامت په نيت سره مقيم كيږي. ځكه چې اقامت نوم دې، د ترك سفر. اوپه ترك كي صرف نيت كافی وی. خومقيم به صرف دسفرپه نيت سره نه مسافر كيږي. اوكه ده سره د نيته سفر پيل كړو. نومسافربه شي. ځكه چې سفرد جوارح عمل دې. اوكوم عمل چې دجوارح وی. هغه صرف په نيت سره نه متحقق كيږي. بلكه په نيت سره دعمل موجوديدل هم ضروری دی. ځكه چې تركومه سفرشروع نكړي. صرف په نيت سره به نه مسافركيږي.

### په مال تجارت، ميراث. اوهبه كې د زكاة حكم

وَإِنِ اشْتَرٰى شَيْئًا اوكه وائی خستو څه شی وَنَوَاهُ لِلتِّجَارَةِ اوددی نيت ئې اوكړو. د تجارت لپاره كَانَ لِلتِّجَارَةِ نو دا د تجارت لپاره لِاتِّصَالِ النِّيَّةِ بِالْعَمَلِ ځكه چې متصل سونيت دعمل سره

**حل اللغة**﴿①﴾ اتصال، اتصل، يتصل اتصالاً: ملاوول

**تشريح:- حكم اتصال نية التجارة فى المبيع**﴿۞﴾ مسئله داده. كه چا د تجارت په نيت څه شی واخستو. نو دا د تجارت شو. ځكه چې په دې صورت كي نيت د اشتراء عمل سره متصل شوې دې. اوښكاره ده. چه اشتراء هم د تجارت لپاره ده. نوګويا نيت د تجارت سره متصل شو. اوكوم نيت چې دكوم څيزتجارت سره متصل شي. نوهغه څيزهم د تجارت لپاره شمارلې شي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا وَرِثَ وَنَوَى التِّجَارَةَ په خلاف ددی، چې ملاوشی (څه څيز) په ميراث كي. اود تجارت لپاره ئی نيت اوكړو.

**لِأَنَّهُ لَا عَمَلَ مِنْهُ** ځكه چي (هيڅ) عمل اونسو دده دا ړخه

**حل اللغة** * ① **نواه، نوى ينوينواء**: نيت كول

**تشريح:- اتصال نية التجارة فيالميراث**۞ددې په خلاف كه يوڅيزپه ميراث كي ملاوشى.او د تجارت نيت اوكړى.نودا څيزبه د تجارت لپاره نه وى.ځكه چې ميراث دده په ملك كي بغيرد څه عمل نه داخل شوې دې.نو دعمل نيت د تجارت سره متصل نه دې.ځكه به د ميراث شى د تجارت نيت كاوه باوجود د تجارت لپاره نه وى.

**وَلَوْ مَلَكَهُ بِالْهِبَةِ أَوْ بِالْوَصِيَّةِ أَوِ النِّكَاحِ أَوِ الْخُلْعِ أَوِ الصُّلْحِ عَنِ الْقَوَدِ** اوكه دى مالك سو(د يوڅيز) په هبه سره .ياپه وصيت سره (مالك سو).يادنكاح (په ذريعه مالك سو).يا د خلع (په ذريعه مالك سو).يائى صلح وكړه دقصاص په عوض **وَنَوَاهُ لِلتِّجَارَةِ** اونيت ئى اوكړوپه دى (څيز)كي د تجارت **كَانَ لِلتِّجَارَةِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** نوشى به دا د تجارت لپاره د ابويوسف رحمه الله په نيز **لِاقْتِرَانِهَا بِالْعَمَلِ** ځكه چي متصل دى دا نيت د عمل سره

**حل اللغة** * ① **القود**: قصاص ته وائى

**تشريح:- اتصال النية فى الاشياء الخمسة**۞①اوكه يوكس په هبه د څه څيزمالك شو.يعنى چاده ته يوڅيز هبه كړو.اوقبضه ئې كړو.② يا په وصيت سره مالك شو.په دې طريقه چې چا دده لپاره د څه شى وصيت كړې وى.③ يا د نكاح په ذريعه مالك شو.په دې طريقه چې ده د خپلې وينځې چاسره نكاح اوكړه.اود هغې په مهر ئې قبضه اوكړه،او مالك شو.④ يا د خلع په ذريعه مالك شو.په دې طريقه چې ده د خپلې ښځې د څه په عوض كي خلع اوكړه.⑤ يا د قصاص په عوض كي ئې صلح اوكړه،او مالك شو.په دې طريقه چې داكس د مقتول ولى دې.نوبه قاتل ئې د څه څيزعوض مقرركړو،اوصلح ئې اوكړه.

**المذهبان فى كونها للتجارة**۞بهرحال په دې ټولوصورتونوكي كه دې كس د تجارت نيت اوكړو.① نو د امام ابويوسف رحمه الله په نيزبه داڅيز د تجارت لپاره شى.ځكه چې دلته په ټولو صورتونوكي نيت دعمل سره متصل شو.اوعمل دادې.چه دده دا ړخه ددې څيزونو قبلول موجود شو.اوقبلول دده دا ړخه يوعمل دې.

**وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ لَا يَصِيرُ لِلتِّجَارَةِ**[1] اود امام محمد رحمه الله په نيز به نه وى.د تجارت لپاره **لِأَنَّهَا لَمْ تُقَارِنْ عَمَلَ التِّجَارَةِ** ځكه چي (دعمل نيت) متصل نه وى د تجارت عمل سره

**تشريح:-** د امام محمد رحمه الله په نيزبه داڅيز د تجارت لپاره نه وى.ځكه چې نيت د عمل تجارت سره متصل نشو.ځكه چې دا عقود يعنى هبه، وصيت وغيره تجارتونه نه دى.

**وَقِيلَ الِاخْتِلَافُ عَلَى عَكْسِهِ** وويلى شى .چې اختلاف ددى په عكس دى

**تشريح:- الرواية عكس الاولى**۞بعض حضرات فرمائى.چه اختلاف په عكس دې.يعنى په ذكرشوى صورتونوكي د امام ابويوسف رحمه الله په نيز د تجارت دنيت باوجود به داڅيز د تجارت لپاره نه وى.اود امام محمد رحمه الله په نيزبه د تجارت لپاره شى.

**خلاصة البحث**۞صاحب د عنايه د حاصل په طورذكركړى دى.چه كوم څيزدسړى په ملك كي داخليږى. دهغې دوى [دوه] قسمه دى.① يودا چې بغيردده دعمل نه داخل شى.لكه د ميراث څيز.② دوهم داچه دده په عمل سره داخل شى.بيادې هم دوې [دوه] قسمونه دى.① يودا چې په بدل مالى سره داخل شى.لكه شراء

[1] القول الراجح هو هذا قول محمد رحمه الله كذا فى العناية (١٢٥\٢)وردالمحتار(١٥\٢) والهندية (١٧٤\١) والبحرالرائق (٢٠٩\٢)نقلاً عن القول الراجح (١٦٤\١)-





او اجاره. يا په بدل غيرمالى سره داخل شى.لكه ﴿مهر.بدل خلع.بدل صلح عن دم العمد﴾ ② دوهم دا چي بغير دبدل نه داخل وى.لكه هبه ،صدقه،اووصيت،نوكوم څيزچه بغيردده دعمل نه دده په ملك كي داخل شى.په دې كي په اتفاق صرف د تجارت نيت معتبرنه دې.اوكوم څيزچه په بدل مال سره داخليږى.په هغې كي بالاتفاق د تجارت نيت معتبردې.اوكوم څيزچه په بدل غيرمال يا بغير د بدل نه په ملك كي داخل شوې دې.په دې كي اختلاف دې.لكه چې په كتاب كي ذكردى.

## په زكاة كې د نيت شرطيت

**وَلَا يَجُوزُ أَدَاءُ الزَّكَاةِ إِلَّا بِنِيَّةٍ مُقَارِنَةٍ لِلْأَدَاءِ** اوجائزنه دى زكاة اداكول.خوپه دې شى نيت سره چې متصل وى ادا سره **أَوْ مُقَارِنَةٍ لِعَزْلِ مِقْدَارِ الْوَاجِبِ** يا متصل وى.د مقدار واجب جلا كولوسره **لِأَنَّ الزَّكَاةَ عِبَادَةٌ** ځكه چې زكاة عبادت دى **فَكَانَ مِنْ شَرْطِهَا النِّيَّةُ** نو وى به ددى په شرائطوكي نيت

**حل اللغة** * ①**مقارنة، قارن، يقارن، مقارنة**: ملاوول ②**العزل**: جلا كول، لرې كول

**تشريح:- شرطية النية للزكاة**۞مسئله داده.چه د زكاة ادا كاوه لپاره نيت شرط دې.ځكه چې د زكاة فعل عبادت دې.اود عبادت لپاره نيت شرط دې.په دې وجه د زكاة ادا كاوه لپاره نيت كول شرط شو.

**دليله**۞اود عبادت لپاره نيت ځكه شرط دې.چه هيڅ عبادت بغير د اخلاص نه نه اداكيږى.ځكه چې د الله تعالى ارشاد دې ((وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللّٰهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ)) يعنى دوى ته داحكم اوشو.چه بندګى اوكړى.اوخالص دالله لپاره كړى بندګى،او اخلاص بغير د نيته نه موجوديږى.نو ثابت شو.چه د عبادت لپاره نيت كول ضرورى دى.او زكاة اداكول هم عبادت دې.ځكه د زكاة ادا كاوه لپاره هم نيت كول ضرورى دى.

**وَالْأَصْلُ فِيهَا الِاقْتِرَانُ** او اصل په دى (نيت)كي اتصال دى .

**تشريح:- وقت نية الزكاة**۞پاتې شوه داخبره،چه د زكاة ادا كاوه لپاره دنيت وخت څه دې.نوامام قدورى رحمه الله فرمائى.چه نيت خويا د زكاة ادا كاوه په وخت اوشى.يا واجب مقدار د مال نه د جداكيدو په وخت اوشى. يعنى كله چې دپوره مال حساب اوكړى.او د زكاة كوم مقدارجوړيږى.د پوره مال نه ددې د جدا كاوه اراده اوكړى.نونيت اوشو.

**دليه**۞دليل دادې.چه په نيت كي اصل عبادت سره متصل كيدل دى.لكه په لمانځه كي د لمونځ نيت، لمونځ سره متصل كولې شى.

**إِلَّا أَنَّ الدَّفْعَ يَتَفَرَّقُ** خو( فقيرانو ته) وركول متفرق واقع كيږى **فَاكْتُفِيَ بِوُجُودِهَا حَالَةَ الْعَزْلِ تَيْسِيرًا** نو اكتفاء اوكړى سوه .په موجوديدو د دى (نيت) باندى د واجب مقدار (د نصاب نه)جداكولوپه وخت.د آسانتيا په لحاظ

**حل اللغة** * ① **اكتفى، يكتفى اكتفاء**: كفايت كول، كافى كيدل ② **تيسيراً**: آسانى پيداكول

**تشريح:- الاعتراض**۞ددې دليل تقاضاخو داده.چه د زكاة اداكولوپه وخت نيت،خومعتبردې.ځكه چې د زكاة اداكول عبادت دې.اود نيت عبادت سره متصل كيدل ضرورى دى.ليكن د زكاة مقدار جدا كاوه په وخت به نيت معتبرنه وى.ځكه چې د زكاة مقدار د مال نه جداكول،اوپه خپل كور كي ايخودل، دا هيڅ عبادت نه دې.

**الجواب**۞ددې ځواب دادې.چه واجب مقدارد مال نه جداكولوپه وخت دنيت اعتبارضرورةً د حرج لرې كاوه لپاره شوې دې.په دې طريقه چې ډيركرته انسان په متفرقو وختونوكي متفرقو خلګو له زكاة وركوى.نوكه هر وارې د وركولوپه وخت نيت كول ضرورى اوګرځولې شى.نو دا كس به په حرج اوضرركي اخته شى.نو د آسانتيا په لحاظ د مال نه د جدا كاوه په وخت نيت باندې اكتفاء اوشوه.

كَتَقَدُّمِ النِّيَّةِ فِي الصَّوْمِ لكه چې تقديم دنيت (كافي دی ) په روژه كې .

تشريح:- **نظيره**۞لکه په روژه کې په تقديم د نيت باندې اکتفاء شويده.ځکه چې اصل خو دادی.چه د روژې نيت د سهار صادق اول جزء سره متصل وی.خوانسان ددې نه عاجزهم دې.او ددې په پوره رعايت ساتلو کې به ده ته حرج هم لاحق شی.په دې وجه اوونيلې شو.چه که نيت په دې مقدم شو.نوهم څه باك نشته.ددې اعتبار به کولې شی.

## د ټول مال دصدقې په صورت کې د زکاة حکم

وَمَنْ تَصَدَّقَ بِجَمِيعِ مَالِهِ لَا يَنْوِي الزَّكَاةَ او چاچې صدقه کړوخپل واړه مال.حالانکه نيت ئې نه دی کړی د زکاة سَقَطَ فَرْضُهَا عَنْهُ اسْتِحْسَانًا نوساقط شوفرض (د زکاة) د ده نه استحساناً

تشريح:- **المذهبان فيسقوط الزكاة بتصدق الجميع**۞①مسئله داده.که چا بغير د زکاة د نيت نه پوره مال صدقه کړو.نواستحساناً دده نه فرض زکاة ساقط شو.② اوقياس دادې.چه فرض زکاة دده نه ساقط نشی.هم دا د امام زفر رحمه الله قول دې.

**وجه القياس**۞د قياس وجه داده.چه نفل اوفرض دواړه مشروع دی.نو د توپير کاوه لپاره يومتعين کول ضروری دی.لکه چې په لمانځه کې دی.چه په مطلق نيت سره فرض لمونځ نه اداکيږی.بلکه دا متعين کول ضروری وی.دغه ډول فرض زکاة بغير د زکاة دنيت نه نه اداکيږی.اګرچه مطلق نيت موجود شو.

لِأَنَّ الْوَاجِبَ جُزْءٌ مِنْهُ ځکه چې واجب خو يوجزء ددی نه فَكَانَ مُتَعَيِّنًا فِيهِ نووی به هغه متعين په دی (نصاب) کې فَلَا حَاجَةَ إِلَى التَّعْيِينِ ځکه هيڅ حاجت نشته د متعين کولو.

تشريح:- **وجه الاستحسان**۞وجه د استحسان داده.چه واجب خو دپوره مال يوجزء يعنی څلويښتمه برخه ده.او دپوره مال په ضمن کې دا هم متعين دې.او متعين،د تعين محتاج نه وی.ځکه په خاص طور ددې د يوجزء يعنی د زکاة د مقدارمتعين کولوهيڅ اړتيا نشته.

**الاعتراض**۞دا اعتراض په خپل ځانې هم دغه ډول پاته دې.چه د زکاة ادا کاوه لپاره نيت شرط دې.او نيت موجود نشو.

**الجواب**۞نو ددې ځواب دادې.چه د اصل عبادت نيت شرط دې.چه د عبادت او عادت په مينځ کې توپير اوشی.اود اصل عبادت نيت موجود شوې دې.ځکه چې زمونږ کلام په دې صورت کې دې.چه پوره مال ئې په فقيرصدقه کړې وی.اوپه دې ئې د الله رضا حاصلولو اراده کړې وی.اودا خبره ښکاره ده.چه په فقيرباندې د الله رضاحاصلولو لپاره صدقه کول عبادت دی.نو د اصل عبادت نيت موجود شو.

**عدم الضرورة الى تعيين الفرض**۞او پاتې شو دفرض زکاة اداکولونيت کول.نو ددې هيڅ اړتيا نشته.ځکه چې د فرض زکاة نيت تعين حاصلولو لپاره شرط دې.او د تعين اړتيا به د عدم تعين په وخت راپيښيږی.حالانکه د زکاة په نصاب کې واجب زکاة متعين دې.په دې وجه ددې د متعين کولوهيڅ اړتيا نشته.

**نظيره**۞لکه چې چاپه رمضان المبارك کې مطلقاً د روژې نيت اوکړو.نو د رمضان فرض روژه ادا کيږی.حالانکه ده په خاص طور د رمضان د روژو نيت نه دې کړې.اوپه دې مياشت کې فرض روژه متعين ده.ځکه ددې د متعين کولو اړتيا نشته دې.

## د مال ځينصدقه کولوکې د زکاة حکم

وَلَوْ أَدَّى بَعْضَ النِّصَابِ او که ده اداکړه بعض برخه د نصاب سَقَطَ زَكَاةُ الْمُؤَدَّى عِنْدَ مُحَمَّدٍ رحمه الله نوساقطيږی د ورکړی سوی مال زکاة د امام محمد رحمه الله په نيز لِأَنَّ الْوَاجِبَ شَائِعٌ فِي الْكُلِّ ځکه چې واجب مقدارخودی ، په پوره (نصاب) کې



حل اللغة* ①شائع: خورول

تشريح:- **المذهبان فى اداء الزكاة عند صدقة بعض المال** ۞اوکه ده د نصاب بعضې برخه صدقه کړه.① نو د امام محمد رحمه الله په نيزمؤدی يعنی د نصاب هغه مقدار کوم چې فقيرانوته ورکړې شوې دې.د هغې زکاة ساقط شو.اوکوم مال چې پاته پاتې شو.نو د هغې زکاة واجب دې.

**دليل محمد رحمه الله**۞د امام محمد رحمه الله دليل دادې.چه د زکاة څومره مقدار واجب وو.هغه په واړه نصاب کې خور وو.نوکه دې کس پوره مال صدقه کړې وو.نو پوره زکاة به ساقط شوې وو.خوکله چې ده بعضې مال صدقه کړو.نو ددې بعض زکاة به ساقط شی.حاصل دا چې امام محمد رحمه الله بعض په کل باندې قياس کړې دې.مثلاً په دوې [دوه] سوه درهموکې پنځه درهمه وو.او دکال تيريدونه روسته ده څلويښت درهمه صدقه کړل.نوپه دې کې يو درهم زکاة اووتو.اوس په ده باندې د يوسل شپيتو درهمو زکاة څلور درهمه واجب دی.

وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ لَا تَسْقُطُ (¹)اوپه نيز د ابويوسف رحمه الله (ددی حصی زکاة)نه ساقطيږی

تشريح:- د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به د مؤدی زکاة هم ساقط نه وی.اوکوم مال چې پاته پاتې شو.په دې کې به هم د پوره نصاب زکاة واجب وی.يعنی د هغې هم کوم ئې چې فقيرانو ته ورکړې دې.او د هغې هم کوم چې باقی دې.

لِأَنَّ الْبَعْضَ غَيْرُ مُتَعَيِّنٍ ځکه چې (زکاة لپاره د نصاب دا) بعض (حصه) متعين نه وه لِكَوْنِ الْبَاقِي مَحَلًّا لِلْوَاجِبِ بِخِلَافِ الْأَوَّلِ والله أعلم بالصواب ځکه چې (څومره قدری )پاته پاتی سو.هغه هم محل دی د واجب زکاة.په خلاف د اولی مسئلی .والله تعالی اعلم

تشريح:- **دليل ابى يوسف رحمه الله** ۞د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه د زکاة لپاره د نصاب هغه بعض متعين نه دې.کوم چې ورکړې شو.ځکه چې څومره قدرې مال پاته دې.هغه هم د زکاة واجبه محل دې.يعنی د زکاة واړه مقدار هم ددې نه ادا کيدای شی.په خلاف د اولې مسئلې، يعنی کله ئې چې واړه مال صدقه کړو.نوپوره زکاة صاقط شو.ځکه چې د زکاة واجب مقدارخو لا محاله په دې کې داخل دې.

# باب صدقة السوائم

ژباړه:- دا باب د سوائمو د زکاة په بيان کښې دې.

تشريح:- **الوجهان لتقديم ذكرالابل فى صدقة السوائم**۞① علامه مرغينانی د زکاة د مالونو د تفصيل آغاز د سوائم نه کړې دې.اوپه سوائم کې هم د اُوښانو د زکاة نه ئې پيل کړيده.ځکه چې د عربوپه نيز د ټولونه زيات قيمتی مال اوښان شمارلې کيدو.په دې وجه د اُوښانو د زکاة ذکرمخکې اوشو..② دويمه وجه داده. چې رسول اکرم ﷺ حضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه ته د زکاة په سلسله کې کوم خط ليکلې دې.په هغې کې د ټولونه مخکې د اوښانو د زکاة بيان دې.نوپه دې ترتيب سره د علامه مرغينانی په نظرکې درسول الله ﷺ د خط پيروی کول دی.

**وجه ذكرلفظ الصدقة مكان الزكاة**۞فاضل علامه مرغينانی رحمه الله د عنوان لاندې دصدقه لفظ ذکرکړې دې.او زکاة مراددې.چه د الله تعالی دقول [إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ] اتباع اوکړې شی.

**تعريف السوائم**۞سوائم،د سائمه جمع ده.د سامة الماشيه نه ماخوذ دې.معنی ئې ده څرول،سائمه هغه حيوان

¹) القول الراجح هو هذا قول أبى يوسف رحمه الله كذا فى الخانية (١٢٧\١) ومنحة الخالق (٢١١\٢) نقلاً عن القول الراجح (١٦٥\١)-

ښاروي) دي.چه په مباح ځنګلونوكي پوولي (څرولي) شي.نو د داسي ښاروو په نر،او ماده اويه ګډو وډو ټولو كي زكاة واجب دي.

**المراد من السوائم** په دي شرط چي ددي نه مقصود شيدي او د نسل زياتوالي وي.اوكه ددي نه سوارلي يا غوښه مقصود وي.نوپه دي كي به زكاة واجب نه وي.اوكه ددي ښاروونه تجارت مقصودوي.نوپه دي كي زكاة السوائم واجب نه وي.بلكه زكاة التجارة به واجب وي.يعني په دي صورت كي د سوائم نصاب نه زكاة واجب نه وي.بلكه د مال تجارت د نصاب اوحساب څخه به زكاة واجب وي.

**افادة قيد المباح فى الصحراء** موږ د مباح ځنګلونو قيد ځكه اولګولو.چه كه ددي ځنګلونو معاوضه وركول مقررشو.لكه چي زموږ په زمانه كي دى.نوپه دغه ښاروكي به زكاة واجب نه وي.كه دكال په اكثره برخه كي په مباح ځنګلونوكي څرن كوى.اوپه پاته ورځوكي تړلي وي.اوخوراك وركړي كيږي.نوهم به سائمه شمارلي شي.اوكه نيم كال تړلي وي.او ونډه وركړي كيږي.نوسائمه به نه شمارلي كيږي.

**تنبيه:** په دي فصل كي چي كوم اصطلاحات ذكر شوى دى د هغي هريو تعريف به د خپل خپل متن سره كولي شي

## د اوښانو د زكاة حكم

**فَصْلٌ فِي الْإِبِلِ** دا فصل د اُوښ د زكاة په بيان كي دى **قَالَ لَيْسَ فِي أَقَلَّ مِنْ خَمْسٍ ذَوْدٍ صَدَقَةٌ** علامه مرغيناني رحمة الله عليه فرمائي.چي نشته په كمو د پنځو اوښانوكي زكاة **فَإِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا سَائِمَةً** نو كله چي اورسيږي.د پنځو مقدارته.چي دا سائمه وي. **وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ** او تيرشو په دى كال **فَفِيهَا شَاةٌ إِلَى تِسْعٍ** نوپه دى كي يوه وزه ده.ترنهو پورى **فَإِذَا كَانَتْ عَشْرًا** بيا چي كله لس شى **فَفِيهَا شَاتَانِ إِلَى أَرْبَعَ عَشْرَةَ** نوپه دى كي دوي [دوه] وزه دى.ترڅوارلسو پورى **فَإِذَا كَانَتْ خَمْسَ عَشْرَةَ** بياچي كله پنځلس شى **فَفِيهَا ثَلَاثُ شِيَاهٍ إِلَى تِسْعَ عَشْرَةَ** نوپه دى كي درى وزه دى.تر نورلسو پورى **فَإِذَا كَانَتْ عِشْرِينَ** بياچي كله شل شى **فَفِيهَا أَرْبَعُ شِيَاهٍ** **إِلَى أَرْبَعٍ وَعِشْرِينَ** نوپه دى كي څلور وزه دى. تر څليريشتو پورى **فَإِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا وَعِشْرِينَ** بياچي كله اورشى پنځه ويشتوته **فَفِيهَا بِنْتُ مَخَاضٍ** نو وى به په دى كي يو بنت مخاض **وَهِيَ الَّتِي طَعَنَتْ فِي الثَّانِيَةِ إِلَى خَمْسٍ وَثَلَاثِينَ** اودا (بنت مخاض د اوښى ) هغه (ماده بچي ) دى .چي پيل وى په دوهم كال كي .ترپنځه ديرشو پورى **فَإِذَا كَانَتْ سِتًّا وَثَلَاثِينَ** بياچي كله شپږديرش شى **فَفِيهَا بِنْتُ لَبُونٍ وَهِيَ الَّتِي طَعَنَتْ** **فِي الثَّالِثَةِ إِلَى خَمْسٍ وَأَرْبَعِينَ** نو وى به په دى كي بنت لبون.اودا (بنت لبون د اوښى ) هغه (ماده بچي )دى .چي پيل وى په دريم كال كي ،تر پنځه څلويښتو پورى **فَإِذَا كَانَتْ سِتًّا وَأَرْبَعِينَ** بياچي كله شپږڅلويښت شى **فَفِيهَا حِقَّةٌ** نو وى به په دى كي يوه حقه **وَهِيَ الَّتِي طَعَنَتْ فِي الرَّابِعَةِ إِلَى سِتِّينَ** اودا (حقه د اوښى ) هغه (ماده بچي )دى .چي پيل وى په څلورم كال كي .تر شپيتو پورى ، **فَإِذَا كَانَتْ إِحْدَى وَسِتِّينَ** بياچي كله يوشپيته شى **فَفِيهَا جَذَعَةٌ** نو وى به په دى كي جذعه **وَهِيَ الَّتِي طَعَنَتْ فِي الْخَامِسَةِ إِلَى خَمْسٍ وَسَبْعِينَ** اودا (جذعه) هغه (ماده بچي )دى .چي پيل وى په پنځم كال كي .ترد پنځه اويا پورى **فَإِذَا كَانَتْ سِتًّا وَسَبْعِينَ** بياچي كله شپږاويا شى **فَفِيهَا بِنْتَا لَبُونٍ إِلَى تِسْعِينَ** نوپه دى كي دوي [دوه] بنت لبون دى.تر نوى پورى ، **فَإِذَا كَانَتْ إِحْدَى وَتِسْعِينَ** بياچي كله شى يو نوى **فَفِيهَا حِقَّتَانِ إِلَى مِائَةٍ** **وَعِشْرِينَ** .نوپه دى كي دوي [دوه] حقه دى.تر شپږشلو پورى

**حل اللغة:** ① **صدقه:** دلته مراد زكوة دي ② **شاة:** چيلئى ③ **طعنت:** دَ عمر يوې برخې نه بلې ته تلل يعنیدَ يوكال نه دَ دوئم كال كيدل ④ **بنت مخاض:** هغه ښځه بچي چي يوكال پوره كولوسره دَدوئم كال شى ⑤ **هغه ښځه** پچې دَ كوم چي دوي [دوه] كاله پوره شوي وىاو په دريم كال كي وى ⑥ **حقه:** هغه ښځه بچي چي دَ هغه دَ عمرڅلورم كاله پيل شوي وى ⑦ **جذعه:** هغه ښځه بچي دَ كوم چي پنځم كال پيل شوي وى



**تشريح:- نصاب الابل** علامه مرغيناني رحمة الله عليه د اوښ نصاب او ددي زكاة واجبه ذكركولوكي فرمائي.چه ① د اوښ نصاب پنځه اوښان دى.ددي نه په كموكي زكاة واجب نه دي.او د زكاة د وجوب شرط دادي.چه دا سائمه وى.اوپه دي كال تيرشوي وى.نوكه په دي شرطونو سره پنځه اوښان وى.نوپه دي كي به يوه وزه واجب وى.د پنځونه روسته تر نهو پوري عفوه دى.هم دغه يوه وزه به وى.كومه چيلئ چي د زكاة په حساب كي اخستي شى.ماده به وى.او د پوره يوكال به وى.چه دوهم كال ئي پيل وى. ② اوكه په ذكرشوى شرطونوسره دچا په ملك كي لس اوښان وى.نوپه دي كي دوي [دوه] وزه دى.او د لسو اوښانونه روسته تر څوارلسو پوري عفوه ده.په څوارلسوكي هم دغه دوي [دوه] وزه واجب دى. ③ اوكه اوښان پنځلس وى.نوپه دي كي به دري وزه واجب وى.اود پنځلسونه نورلسو پوري عفوه دى. ④ كله چي شل اوښان شى.نوپه دي كي څلوروزه دى.اود شلونه روسته څليريشتوپوري عفوه دى. ⑤ بياچه كله اوښان پنځويشت شى.نوپه دي كي يو بنت مخاض واجب دي.د پنځه ويشتو نه روسته ترد پنځه ديرشو پوري عفوه دى. ⑥ اوكله چي شپږديرش شى.نوپه دي كي يو بنت لبون واجب دي.اود شپږديرشو نه روسته د پنځه څلويښتو پوري عفوه دى. ⑦ خوچه كله شپږڅلويښت پوره شى.نوپه دي كي يوحقه واجب ده.اود شپږڅلويښتونه تر شپيتو پوري عفوه دى.

⑧ اوكله چي يوشپيته شى.نوپه دي كي يوجذعه واجب ده.او يوشپيتونه روسته د پنځه اويا پوري عفوه دى.

⑨ اوكله چي شپږاويا شى.نوپه دي كي دوي [دوه] بنت لبون دى.د شپږاويا نه تر نوى پوري عفوه دى.

⑩ اوكله چي يونوى شى.نوپه دي كي دوي [دوه] حقه دى.د يونوى نه روسته د شپږشلو پوري عفوه دى.

**بِهَذَا اشْتَهَرَتْ كُتُبُ الصَّدَقَاتِ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ ﷺ**[1] هم په دى مشهور شوى دى .خطونه د زكاة (په حق كي ) د رسول الله ﷺ نه.

**تشريح:- دليله** علامه مرغيناني رحمة الله عليه په دليل كي فرمائي.چه د رسول اكرم ﷺ نه د زكاة فرمان هم په دي تفصيل سره مشهور دي.من جمله د هغي نه يو فرمان هغه دي.كوم چي حضرت صديق رضي الله عنه د حضرت انس رضي الله عنه په نوم ليكلي دي.چه امام بخاري رحمة الله عليه روايت كړي دي.د تبرك په طور د فرمان رسول ﷺ الفاظ ذكر كولي شى.اوګورئ. «إن أنسا حدثه أن أبابكر الصديق رضي الله عنه كتب له هذا الكتاب لما وجهه إلى البحرين، بسم الله الرحمن الرحيم. هذه فريضة الصدقة التى فرض رسول الله ﷺ على المسلمين والتى أمر الله بها رسله فمن سئلها من المسلمين فليعطها على وجهها ومن سئل فوقه فلا يعطه فى أربع وعشرين من الإبل فما دونها من الغنم فى خمس ذوشاة. فإذا بلغت خمسا وعشرين إلى خمس وثلاثين ففيها بنت مخاض انثى. فإذا بلغت ستا وثلاثين إلى خمس وأربعين ففيها بنت لبون انثى. فإذا بلغت ستا وأربعين إلى ستين ففيها حقه طروقة الجمل، فإذا بلغت إحدى وستين إلى خمس وسبعين ففيها جذعة فإذا بلغت ستا وسبعين إلى تسعين ففيها بنتا لبون فإذا بلغت إحدى وتسعين إلى عشرين ومائة ففيها حقتان طروقة الجمل. فإذا زادت على عشرين ومائة ففى كلى أربعين إبنة لبون وفى كل خمسين حقة ثم ساق بقية الحديث فى الغنم. (فتح القدير، شرح نقايه)

**نصاب السوائم امر توقيفية** فوائد :د ځناورو نصاب زكاة او مقدار زكاة امر توقيفى دي.په دي كي د عقل او قياس هيڅ د خل نشته.

**الاعتراض** اوكه دا سوال اوكړي شى.چه په هرقسمه ښاروكي هم د هغي نه زكاة اخستي شى.نو د اوښانوپه زكاة كي وزه ولي واجبيږي.

---

[1]) منه كتاب أبى بكر رضي الله عنه لأنس بن مالك رضي الله عنه أخرجه البخارى فى الزكاة باب ۳۷ رقم الحديث ۱٤٥۳ وكذا كتاب عمر رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى الزكاة باب ۵ رقم ۱۵٦۸ والترمذى فى الزكاة باب ٤ رقم ٦۲۱ وابن ماجه فى الزكاة باب ۹ رقم ۱۷۹۸ وكذا كتاب عمربن حزم رضي الله عنه وزياد بن لبيد )_

**الجوابان**۞ ① ددې يوځواب خو دادې چه داخبره خلاف قياس په نص سره ثابت ده.په دې وجه دې اړه كې د كلام كاوه هيڅ ګنجائش نشته. ② دوهم ځواب دادې چه د اوښ نصاب پنځه اوښان دى.اوس كه يو اوښ د زكاة لپاره مقررشى.نودا د نصاب خُمس يعنى پنځمه برخه ده.حالانكه زكاة د نصاب د مال څلويښتمه برخه وى.اوكه يواوښ برخې كړې شى.اوددې اتمه برخه وركړې شى.ځكه چې د يو اوښ اتمه برخه د پنځو اوښانوڅلويښتمه جوړيږى.نوپه دې صورت كې په دې اوښ كې د شركت عيب پيدا كيږى.اودا هم مناسب نه دې.نوپه پنځه اوښانوكې يوه وزه واجب شويده.ځكه چې په عهد رسالت كې په په عامه توګه د يوې وزه قيمت پنځه درهمه وو.او د ټولونه د كم عمر د اوښ دبچى يعنى د بنت مخاض قيمت عام طورڅلويښت درهمه وو.دغه ډول د پنځو اوښانوقيمت دوې [دوه] سوه درهمه شو.نو د يوې وزه په پنځواوښانوكې واجبول داسې دى.لكه په دوې [دوه] سوه درهموكې د پنځو درهمو واجبول ،او په دوې [دوه] سوه درهموكې پنځه درهمه د دوې [دوه] سوه درهموڅلويښتمه برخه ده.ځكه يوه وزه هم د پنځو اوښانو څلويښتمه برخه ګرځولې شويده.(عنايه)

## د اوښانو په زكاةكې استيناف اول او ثانى

| |
|---|
| **ثُمَّ إِذَا زَادَتْ عَلَى مِائَةٍ وَعِشْرِينَ** بياچې كله زيات شى .په شپږشلو باندى **تُسْتَأْنَفُ الْفَرِيضَةُ** نو واروسته به راګرځى فريضه **فَيَكُونُ فِي الْخَمْسِ شَاةٌ مَعَ الْحِقَّتَيْنِ** نو(واجب) به وى.په (زياتوالى د) پنځو يوه وزه او دوې [دوه] حقه **وَفِي الْعَشْرِ شَاتَانِ، وَفِي خَمْسَ عَشْرَةَ ثَلَاثُ شِيَاهٍ، وَفِي الْعِشْرِينَ أَرْبَعُ شِيَاهٍ، وَفِي خَمْسٍ وَعِشْرِينَ بِنْتُ مَخَاضٍ، إِلَى مِائَةٍ وَخَمْسِينَ** اوپه لسو كې دوې [دوه] چيلئ،اوپه پنځلسوكې درى چيلئ،اوپه شلوكې څلور چيلئ،اوپه پنځه ويشتوكې يو بنت مخاض،تر يونيم سلو پورى **فَيَكُونُ فِيهَا ثَلَاثُ حِقَاقٍ** نوشى به په دى كې درى حقه |

**حل اللغة**° ① تستانف،استانف،يستانف استينافًا: دَ نوى سر نه پيل كول ② الفريضه: دَزكوة نصاب

**تشريح:- النصاب بعد الماة والعشرين**۞ په تيروكرخوكې د شپږشلو اوښانو پورې د زكاة بيان وو.فرمائيلې شوى وو.چه په شپږشلو اوښانوكې دوې [دوه] حقےواجب دى.خوچه كله په شپږشلو باندې اضافه اوشوه. او اضافه هم د پنځو اوشوه.نوپه تيرو شوو دوې [دوه] حقو سره به د يوې وزه اضافه بله كيږى.ددې عبارت نه معلوم شو.چه په شپږشلو باندې كه د يو اوښ،يا دوې [دوه] يا درې يا د څلورو اوښانو اضافه اوشوه.نوپه دې زياتوالى كې هيڅ زكاة نه واجبيږى. ① كه د پنځو اوښانو اضافه اوشوه.نوپه دې اضافه كې ،د تيرشوى زكاة سره يوه وزه اضافه كيږى. ② اوكه د لسواوښانو اضافه اوشوه.يعنى يوسل او ديرش اوښان شو.نو دوې [دوه] حقےاو درې وزه به واجب وى. ③ اوكه د شلواضافه اوشوه.نوڅلورحقه اوڅلور وزه به واجب وى. ④ اوچه د پنځه ويشتو اضافه اوشوه.يعنى يوسل پنځه څلويښت اوښان شو.نوپه دې كې دوې [دوه] حقه او يو بنت مخاض واجبيږى. ⑤ بياچه كله په دې باندې يعنى په يوسل پنځه څلويښتوباندې د پنځواضافه اوشوه. اوواړه اوښان يونيم سل شو.نوپه دې كې به درې حقه او يوه وزه واجب وى.

| |
|---|
| **ثُمَّ تُسْتَأْنَفُ الْفَرِيضَةُ** بيابه د سره پيل كيږى فريضه **فَيَكُونُ فِي الْخَمْسِ شَاةٌ** نووى به په پنځوكې يوه وزه **وَفِي الْعَشْرِ شَاتَانِ** اوپه لسوكې دوې [دوه] وزه، **وَفِي خَمْسَ عَشْرَةَ ثَلَاثُ شِيَاهٍ** اوپه پنځه ويشتوكې درى وزه **وَفِي الْعِشْرِينَ أَرْبَعُ شِيَاهٍ** اوپه شلوكې څلوروزه **وَفِي خَمْسٍ وَعِشْرِينَ بِنْتُ مَخَاضٍ** اوپه پنځه ويشتوكې يو بنت مخاض **وَفِي سِتٍّ وَثَلَاثِينَ بِنْتُ لَبُونٍ** او په شپږديرشو كې يو بنت لبون **فَإِذَا بَلَغَتْ مِائَةً وَسِتًّا وَتِسْعِينَ** نو بياچې كله اورشى د يوسل او شپږنوى پورى **فَفِيهَا أَرْبَعُ حِقَاقٍ إِلَى مِائَتَيْنِ** نو وى به په دى كې څلورحقه.تر دوې [دوه] سوه پورى |

**تشريح:- الاستيناف الثانى**۞ اود لسو اوښانو د اضافه په صورت كې د درې حقو نه علاوه دوې [دوه] وزه واجب دى.اود پنځلسو د اضافه په صورت كې به درې حقه او درې وزه واجب وى.اود شلو د اضافه په صورت كې



درې حقه اوڅلوروزه واجبيږى.اود پنځه ويشتو د اضافه په صورت كې يعنى په يوسل پنځه اويا كې به درې حقه اويو بنت مخاض واجب وى.اوپه يونيم سل باندې د شپږديرشو داضافه په صورت كې يعنى په يوسل شپږاتيا كې به درې حقه او يو بنت لبون واجب وى.بياچه كله يوسل شپږ نوى اوښان شى.نوپه دې كې څلورحقه واجب دى.تر دوې [دوه] سوه پورې هم دغه څلورحقه واجب دى.

| |
|---|
| **ثُمَّ تُسْتَأْنَفُ الْفَرِيضَةُ أَبَدًا كَمَا تُسْتَأْنَفُ فِي الْخَمْسِينَ الَّتِي بَعْدَ الْمِائَةِ وَالْخَمْسِينَ** بيابه واروسته كيږى فريضه (هم دغه شان)هميشه.لكه څنګه چې واروسته كولى شى .په (هغه) پنځوسو كې .كوم چې د يونيم سلونه روسته دى |

**تشريح:- ألاستيناف الثالث**۞ بياكه په دوې [دوه] سوه اوښانوباندې اضافه اوشوه.نو بيا د زكاة فريضه به هم هغه شان دوباره كولې شى.لكه څنګه چې د يونيم سلونه روسته په پنځوسوكې شوې دې.يعنى دوې [دوه] سوه نه روسته د هرپنځوسوحساب به كيږى.په دې طريقه چې د هر پنځو لپاره يوه وزه څليريشتو پورې.بياپه پنځوسو باندې يو بنت مخاض،اوپه ۳۶باندې بنت لبون،او په شپږڅلويښتو باندې حقه تر پنځوسو پورې ،نو په دوې [دوه] نيم سوه باندې به پنځه وزه وى.بيا د راروان پنځوسو لپاره هم دغه ډول په هر پنځواوښانو باندې يوه چيلئ،تردې پورې چې په پنځه ويشتوباندې بنت مخاض اوپه ۳۶باندې بنت لبون اوپه شپږڅلويښتوباندې تر د پنځوسو پورې حقه ده.نوپه درې سوه اوښانو باندې شپږحقې دى.غرض داچه د هر پنځوسوحساب به هم دغه ډول كيږى.

| |
|---|
| **وَهٰذَا عِنْدَنَا**.اودا زموږ په نيزدى |

**تشريح:- المذهبان فى الاستيناف الاول والثانى**۞ ① علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه د شپږشلونه روسته استيناف، اود يو نيم سلونه پس،او دوې [دوه] سوونه روسته چې كوم استيناف ذكرشوې دې.دا زموږمذهب دې.اود حضرت على اود ابن مسعود رضي الله عنهما مذهب دې

| |
|---|
| **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: إِذَا زَادَتْ عَلَى مِائَةٍ وَعِشْرِينَ وَاحِدَةً** او امام شافعى رحمه الله فرمائى.كله چې زيات شى په شپږشلو باندى يوه **فَفِيهَا ثَلَاثُ بَنَاتِ لَبُونٍ** نو(واجب دى) په دى كې درى بنت لبون ،**فَإِذَا صَارَتْ مِائَةً وَثَلَاثِينَ** بياچې كله اورسيږى.تر يوسل او ديرشو پورى **فَفِيهَا حِقَّةٌ وَبِنْتَا لَبُونٍ** نوپه دى كې يوه حقه او دوې [دوه] بنت لبون دى **ثُمَّ يُدَارُ الْحِسَابُ عَلَى الْأَرْبَعِينَاتِ وَالْخَمْسِينَاتِ** بيابه واروسته كيږى حساب په هر څلويښتو او پنځوسو باندى **فَتَجِبُ فِي كُلِّ أَرْبَعِينَ بِنْتُ لَبُونٍ** نو واجب به وى.په هر څلويښتوكې يو بنت لبون **وَفِي كُلِّ خَمْسِينَ حِقَّةٌ** اوپه هر پنځوسو كې يوه حقه |

**حل اللغة**° ① اربعينات: هر څلويښتم ② خمسينات: هر پنځوسم

**تشريح:-** امام شافعى رحمه الله فرمائى.چه كه په شپږشلو باندې يو اوښ زيات شو.نوپه دې كې به درې بنت لبون واجب وى.اوكه يو سل ديرش اوښان شو.نوپه دې كې يوه حقه او دوې [دوه] بنت لبون دى.بيابه په هر څلويښتو او پنځوسوحساب راتاويږى.نوپه هرڅلويښتوباندې يو بنت لبون،اوپه هر پنځوسو باندې به يوه حقه واجب وى.ددې اصولو لاندې امام شافعى رحمه الله فرمائى.چه په شپږ شلو باندې كه د يو اوښ اضافه اوشوه.نوپه دې كې به درې بنت لبون وى.ځكه چې دا د څلويښتو درې چند دې.اوكه اوښان يو سل او ديرش وى.نوپه دې كې به يوحقه او دوې [دوه] بنت لبون وى.ځكه چې يوسل ديرش،دوې [دوه] څلويښت،او پنځوس دى.(۱۳۰=۴۰+۴۰+۵۰)اوكه يوسل څلويښت وى.نوپه دې كې دوې [دوه] حقه او يو بنت لبون دې.ځكه چې يو سل څلويښت،دوې [دوه] پنځوس،او څلويښت دى.(۱۴۰=۵۰+۵۰+۴۰) وعلى هذا القياس

لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَتَبَ { إِذَا زَادَتِ الْإِبِلُ عَلَى مِائَةٍ وَعِشْرِينَ ځكه روايت دى .چې نبى كريم ﷺ ليكلى دى. كله چې زيات شى اوښان په شپږشلو باندى فَفِي كُلِّ خَمْسِينَ حِقَّةٌ نوپه هرپنځوسوكي يوه حقه ده وَفِي كُلِّ أَرْبَعِينَ بِنْتُ لَبُونٍ } (١) مِنْ غَيْرِ شَرْطِ عَوْدِ مَا دُونَهَا اوپه هر څلويښتوكي يو بنت لبون دى .بغير د څه شرط نه.عودبه كيږى ددى نه په كم كي

تشريح:- د امام شافعي رحمه الله دليل دادې.چه حضور ﷺ په فرمان كي ليكلى دى.چه كله اوښان د شپږشلونه زيات شى.نوپه هر پنځوسوكي يو حقه اوپه هرڅلويښتوكي يو بنت لبون دې.اوپه حديث كي د څلويښتونه كم په صورت كي ابتدائى فريضه واروسته كول شرط نه دى فرمائيلي.چه په هر پنځو اوښانوكي يوه وزه اوپه هر پنځه ويشتوكي بنت مخاض هم وى.دې نه معلومه شوه.چه د څلويښتونه كم واړه عفوه دى.

وَلَنَا أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَتَبَ فِي آخِرِ ذَلِكَ فِي كِتَابِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ او زموږ دليل (دا)دى .چې نبى كريم ﷺ ليكلى دى.په آخر ددى كي ،په كتاب د عمروبن حزم كي { فَمَا كَانَ أَقَلَّ مِنْ ذَلِكَ نوكوم چې كم وى ددى نه فَفِي كُلِّ خَمْسٍ ذَوْدٍ شَاةٌ (٢) نوپه هر پنځواوښانوكي يوه وزه ده فَنَعْمَلُ بِالزِّيَادَةِ نوعمل به كولى شى په دى زيادت باندى .

تشريح:- دليل الاحناف رحمهم الله ❁زموږدليل دادې.چه رسول الله ﷺ عمروبن حزم رضي الله عنه ته كوم فرمان وركړې دې.د هغې په آخركي ئې دا ليكلى دى ❁(فماكان اقل من خمس و عشرين ففيها الغنم في كل خمس ذود شاة)❁ يعنى چې كله اوښان د شپږشلونه زيات شي.نوفريضه به د سره اعاده كولې شي.اوكه د پنځه ويشتونه كم وى.نوپه دې كي يوه وزه ده.په هرپنځه اوښانوكي يوه وزه ده.حاصل دادې.چه موږپه دې هم عمل كوو.كوم چې امام شافعي رحمه الله حديث نقل كړې دې.زموږپه نيزهم په هرڅلويښت اوښانوكي يو بنت لبون اوپه هرپنځوسوو كي يوه حقه ده.اوهم ددې فرمان په آخركي چې كوم زياتوالې دې.په هغې هم عمل كوو.چه په پنځه ويشتوكي يو بنت مخاض،او ددې نه په كم كي په هرپنځه اوښانو باندې يوه وزه ده.

## په مطلق اوښانوكې د زكاة حكم

وَالْبُخْتُ وَالْعِرَابُ سَوَاءٌ فِي وُجُوبِ الزَّكَاةِ اوبختى او عربى دواړه برابردى لِأَنَّ مُطْلَقَ الِاسْمِ يَتَنَاوَلُهُمَا والله أعلم الصواب ځكه چې (د ابل)مطلق نوم دواړوته ګډ دى .

تشريح:- معنى البخت والعراب❁ بخت،د بختي جمع ده.بختي هغه دې.چه د عربى اوعجمى مخلوط نطفې نه پيدا شوې وى.بخت،د بخت نصر اړخ ته منسوب دې.او عراب فرس د عربى جمع ده.لكه چې عرب
❁وجوب الزكاة فى كليهما❁ د مسئلې حاصل دادې.چه اوښ دكوم ډول هم وى.كله چې دا د نصاب شميرته اورسى.نوپه دې كي به زكاة واجب وى.ځكه چې په حديث كي د ابل لفظ راغلې دې.اودا دواړو ته ګډ دې.والله اعلم بالصواب.

## د غواګانو د زكاة حكم

فَصْلٌ فِي الْبَقَرِ دا فصل د غواګانو(د زكاة په بيان كي )دى لَيْسَ فِي أَقَلَّ مِنْ ثَلَاثِينَ مِنْ الْبَقَرِ السَّائِمَةِ صَدَقَةٌ

---

(١) تقدم تخريجه فى كتاب أبى بكر رضي الله عنه إلى أنس رضي الله عنه)

(٢) من حديث عمربن حزم رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى مراسيله وإسحاق بن راهويه فى مسنده والطحاوى فى مشكله كذا فى نصب الراية ٣٥٠/٢)_



نشته په كمو د ديرشوغواګانوكي زكاة فَإِذَا كَانَتْ ثَلَاثِينَ سَائِمَةً نوكله چې شى ديرش غواګانې،څريدونكې وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ او تير شى په دى باندى كال فَفِيهَا تَبِيعٌ أَوْ تَبِيعَةٌ نو(واجب دى) په دى كي يو تبيع يا تبيعه وَهِيَ الَّتِي طَعَنَتْ فِي الثَّانِيَةِ اودا (تبيع يا تبيعه)هغه بچےدى .چې دوهم كال ئې پيل وى وَفِي أَرْبَعِينَ مُسِنٌّ أَوْ مُسِنَّةٌ او په څلويښتو(غواګانو)كي يومسن يا مسنه (واجب)ده وَهِيَ الَّتِي طَعَنَتْ فِي الثَّالِثَةِ اودا (مسن يامسنه) هغه بچےدى .چې په دريم كال كي پيل وى

حل اللغة:① البقر،د بقرنه مشتق دې.ددې معنى ده شلول،او د جنس بقر نوم بقرځكه كيخودې شو.چه دا مځكه شلوى.په البقره كي " ة "دوحدت لپاره ده.د تانيث لپاره نه ده.نو البقريه په نر او ماده دواړو باندې واقع كيږى.② تبيع د غوې يوكلن نربچے،اوتبيعه يوكلن ماده بچے،دې ته تبيع يا تبيعه ځكه وائى.چه دا دخپل مور تابع وى.هم دې پسےشاته ګرځى.او مسن نر دوې [دوه] كلن بچے،اومسنه ماده دوې [دوه] كلن بچے،د بقر په زكاة كي په مذكراو مؤنث كي اختيار وركړې شوې دې.ځكه چې په بقركي مؤنث غوره نه شمارلې كيږى.

تشريح:- الربط بماقبله❁ علامه مرغينانى رحمه الله دغواګانو زكاة دچيلو په زكاة ځكه مقدم كړې دې.چه غواګانې دخپل
غټ والى او قيمت اعتبارسره د اوښ مناسب دى.نو د اوښ د زكاة حكم بيانولونه روسته د غواګانو د زكاة حكم ذكركړې شو.

❁نصاب البقر❁ بهرحال د غواګانو نصاب زكاة ديرش دې.يعنى په ديرشو غواګانوكي يو تبيع يا تبيعه واجب ده.او په څلويښتوكي يو مسن يا يو مسنه واجبيږى.

بِهَذَا أَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ مُعَاذًا رضي الله عنه (١) هم په دى حكم كړى وو ، رسول الله ﷺ حضرت معاذ رضي الله عنه ته.

تشريح:- دليله❁ دليل دحضرت مسروق رضي الله عنه حديث دې. ❁(عن معاذ بن جبل ان النبى ﷺ لما وجهه الى اليمن أمره أن يأخذه من كل ثلثين بقراً تبيعاً.او تبيعة ومن كل أربعين مسناً اومسنة)❁ مسروق رضي الله عنه وائى.چه نبى كريم ﷺ كله حضرت معاذبن جبل رضي الله عنه د يمن حاكم جوړكړو.او اوئې ليګلو.نودوى ته ئې حكم وركړو.چه د ديرشو غواګانو نه يو تبيع يا تبيعه اخله.او د هرڅلويښت غواګانونه يومسن يا مسنه اخله.(شرح نقايه)

❁التنبيهات❁ ① داخيال ساتل پكاردى.چه د بقرلفظ څنګه غوا،غوائى ته وئيلې كيږى.دغه ډول ميخےاو سنډا ته هم وئيلې شى.② داهم خيال ساتل پكاردى.چه د بقر په اقساموكي د زكاة د وجوب لپاره شرط دا دې.چه دا د پيو او د نسل زياتوالى لپاره وى.ګنى كه دا ايوې وغيره چلولو ياپه ريړه وغيره بار او بوجه لپاره وى.نوپه دې كي زكاة نشته.③ اوكه د تجارت لپاره وى.نو په دې كي به ،زكاة التجارة، واجب وى.،زكاة السوائم، به واجب نه وى.

## په غواګانوكې د څلويښتونه تر شپيتو پورې عفو

فَإِذَا زَادَتْ عَلَى أَرْبَعِينَ بياچې كله زيات شى په څلويښتو(غواګانو)باندى وَجَبَ فِي الزِّيَادَةِ بِقَدْرِ ذَلِكَ إِلَى سِتِّينَ نوواجب به وى په زياتى كي په اندازه ددى (زياتوالى) ترشپيتوپورى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله په نيزد امام ابوحنيفه

---

(١) حديث معاذ رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى الزكاة باب ٥ رقم ١٥٧٧ والترمذى فى الزكاة باب ٥ رقم ٦٢٣ والنسائى فى الزكاة باب ٨ رقم ٢٢٩٨ وابن ماجة فى الزكاب باب ١٢ رقم ١٨٠٣ والدارمى فى الزكاة باب ٥ ومالك فى الزكاة باب ٣٤ وأحمد فى المسند (٢٣٠/٥) وابن حبان فى صحيحه مسنداً فى النوع الحادى والعشرين من القسم الأول والحاكم فى المستدرك (٣٩٨/١)_

وَفِي الْوَاحِدَةِ الزَّائِدَةِ رُبُعُ عُشْرِ مُسِنَّةٍ نوبه یوزیاتی کې څلویښتمه د مسنه ده وَفِي الِاثْنَيْنِ نِصْفُ عُشْرِ مُسِنَّةٍ اوپه دوې [دوه] زیاتی کې شلمه دمسنه ده، وَفِي الثَّلَاثَةِ ثَلَاثَةُ أَرْبَاعِ عُشْرِ مُسِنَّةٍ اوپه دریو(زیاتی) کې دری څلویښتمې حصه ده د مسنه وَهَذِهِ رِوَايَةُ الْأَصْلِ اودا د اصل (مبسوط) روایت دی

**تشریح: الروایات الثلاثة عن ابی حنیفه رحمه الله فی زکاة الزائد علی الاربعین** ۞ په تیره شوې مسئله کې وئیلی شوی دی.چه په دیرشوغواګانوکې به یوتبیعه واجب وی.اوپه څلویښتوکې یوه مسنه واجب وی.خوکه په څلویښتوغواګانو باندې زیات شی.نوپه دې کې دامام ابوحنیفه رحمه الله نه درې روایتونه دی.

**الروایة الاولی** ۞ رومبې روایت چې د ،مبسوط،نه نقل دې.دا دې.چه د څلویښتونه زیات ترشپیتو پورې دحساب په اندازه زکاة واجب وی.نوکه په څلویښتوباندې یوه غوازیاتی‌شوه.نوپه دې کې به یوه مسنه واجب وی.اوپه یوزیاتی کې به دمسنه څلویښتمه برخه واجب وی.اوچه دوې [دوه] زیاتی شی.نود یومسن یا مسنه شلمه برخه به واجب وی.اوچه په څلویښتودرې زیاتی شی.نود یومسن اومسنه درې څلویښتمې برخې واجب وی.علی هذا القیاس

لِأَنَّ الْعَفْوَ ثَبَتَ نَصًّا بِخِلَافِ الْقِيَاسِ وَلَا نَصَّ هُنَا ځکه چې عفو ثابت ده په نص سره خلاف قیاس.او دلته هیڅ نص نشته

**تشریح: دلیله** ۞ دلیل ددې روایت دادې.چه د دیرش اوڅلویښتوپه مینځ کې عفوکې زکاة نه واجبېدل، خلاف قیاس دنص نه ثابت دی.اودلته یعنی دڅلویښتونه زیات په عفوکې هیڅ نص نشته.نود دیرشونه په زیاتی اندازې سره نصاب مقررول جائزنه دی.دغه ډول په رائې اوقیاس سره نه ثابتیږی.ځکه چې مال د وجوب زکاة سبب دې.اوپه کولونه روسته جائزنه دی.نوکله چې دڅلویښتونه زیاتی غواګانې وی.نوپه دې زیاتی کې صرف په خپلې رائې سره عفوثابتول،یعنی زکاة نه واجبول جائزنه دی.

وَرَوَى الْحَسَنُ عَنْهُ أَنَّهُ لَا يَجِبُ فِي الزِّيَادَةِ شَيْءٌ حَتَّى تَبْلُغَ خَمْسِينَ او روایت کړی دی حسن بن زیاد دده (ابوحنیفه رحمه الله) نه.چې نه دی واجب په زیاتی کې هیڅ شی .تردی چې اورشی پنځوسو ته، ثُمَّ فِيهَا مُسِنَّةٌ وَرُبُعُ مُسِنَّةٍ أَوْ ثُلُثُ تَبِيعٍ بیاپه دی کې یومسنه ده.اود مسنه څلورمه برخه یا دریمه برخه د تبیع

**تشریح: الروایة الثانیه** ۞ دوهم روایت حسن بن زیادعن ابی حنیفه رحمه الله دې.ددې روایت حاصل دا دې.چه د څلویښتونه په زیاتی کې هیڅ څیزواجب نه دې.البته زیاتی که پنځوسوته اورسی.یعنی که په څلویښتو غواګانوباندې د لسو اضافه اوشی.نوپنځوس شوې.نوپه دې کې یومسنه اود یو مسنه څلورمه برخه واجب ده.یا یوه مسنه اود یو تبیعه دریمه واجب ده. لنډیز داچه.دڅلویښتو او پنځوسوپه مینځ کې عفو ده.خوپه څلویښتوکې زکاة عفودې.

لِأَنَّ مَبْنَى هَذَا النِّصَابِ عَلَى أَنْ يَكُونَ بَيْنَ كُلِّ عَقْدَيْنِ وَقْصٌ، وَفِي كُلِّ عَقْدٍ وَاجِبٌ ځکه چې بنا (بنیاد) ددی نصاب په دی دی .چې وی په ما بینځ د هر دوې [دوه] عقدونوکې عفوه.اوپه هرعقد کې واجب وی

**تشریح: دلیله** ۞ ددې روایت دلیل دا دې.چه د غواګانو د نصاب بنا (بنیاد) په دې دې.چه په هردوه، لسوکې عفوه ده.اوپه هرلسوباندې واجب دې.نواوقاص(عفوه)غواګانې یعنی د دوه،لسوپه مینځ کې په نهو غواګانو کې عفوه ده.په دې کې به هیڅ زکاة واجب نه وی.لکه څنګه چې د څلویښتونه مخکې اود شپیتونه روسته یعنی په دیرشوغواګانوکې یوه تبیعه ده.خود دیرشونه روسته تر۳۹پورې هیڅ زکاة نشته.اوپه شپیتوکې دوې [دوه] تبیعه دی.خو د شپیتونه روسته تریوکم اویا پورې هیڅ زکاة نشته.نودغه ډول دڅلویښتواو پنځوسوپه مینځ کې په نهوغواګانوکې به هیڅ زکاة نه وی.اوچه کله پنځوس شی.نوپه دې زیاتی لسوکې به زکاة واجب وی.یعنی د مسنه څلورمه یا د تبیعه دریمه به واجب وی.



وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: لَا شَيْءَ فِي الزِّيَادَةِ حَتَّى تَبْلُغَ سِتِّينَ (¹)او وائی.امام ابویوسف اومحمد رحمهما الله چې هیڅ څیزنه وی (واجب)په زیاتی کې .تردی چې اورشی شپیتو ته، وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله

**تشریح: الروایة الثالثة وهومذهب الائمه رحمهم الله** ۞ دریم روایت دا دې.چه د څلویښتونه په زیاتی کې ترشپیتو پورې هیڅ زکاة واجب نه دې.هم ددې قائل صاحبین رحمهما الله دی.اوهم داقول دامام مالك، امام شافعی،اود امام احمد رحمهم الله دې.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِمُعَاذٍ رضی الله عنه اوهم دا روایت دې د ابوحنیفه رحمه الله نه.په وجه دقول دنبی ﷺ نه.(چې فرمائیلی دی )معاذ رضی الله عنه ته {لَا تَأْخُذْ مِنْ أَوْقَاصِ الْبَقَرِ شَيْئًا}(²) چې مه اخله د اوقاص غواګانو نه هیڅ شی وَفَسَّرُوهُ بِمَا بَيْنَ أَرْبَعِينَ إِلَى سِتِّينَ اودوی(عالمانو)تفسیرکړی دی .ددی (اوقاص) په دی چې وی په ما بینځ د څلویښتو او شپیتو کې

**تشریح: دلیله** ۞ ددې دریم روایت دلیل دادې.چه نبی کریم ﷺ حضرت معاذ رضی الله عنه ته ارشاد فرمائیلې دې. «لا تأخذ من أوقاص البقر شيئا» اوعالمانو د ،اوقاص،تفسیر د څلویښتو اوشپیتوپه مینځ کښې کړې دې. یعنی د څلویښتو اوشپیتوپه مینځ کې د غواګانو زکاة مه اخلئ.ځکه چې دا عفوه دې.اوقاص د وقص جمع ده.د دوې [دوه] فرضو مینځ ته وائی.

قُلْنَا: قَدْ قِيلَ إِنَّ الْمُرَادَ مِنْهَا الصِّغَارُ مونږ وایو.چې داهم وئیلی شوی دی.چې مراد ددی (اوقاص) نه دلته کې صغار (واړه بچې )دی

**تشریح:- الجواب عن ابی حنیفة رحمه الله** ۞ زمونږ د اړخه ددې استدلال داځواب ورکړې شوې دې.چه بعضو حضراتو د اوقاص نه مراد ډیر واړه بچی اخستی‌دی.یعنی کوم بچی چې دپوره کال نه وی.د هغې زکاة مه اخلئ. ددې تاویل نه روسته دا روایت د صاحبینو رحمهما الله مستدل نه جوړیږی.

**تضعیف الجواب** ۞ خوپه دې تاویل باندې اشکال شوې دې. هغه دا چې په دوهم روایت کې د اوقاص لفظ د دوې [دوه] لسو مینځ لپاره استعمال شوې دې.د ډیر وړوکی بچی لپاره نه دې استعمال شوې.ارشاد دې.

«عن ابن عباس رضی الله عنه قال بعث رسول الله ﷺ معاذاً إلى اليمن فأمر أن يأخذ من كل ثلثين من البقر تبيعاً أو تبيعة ومن كل أربعين مسنة. قالوا فالأوقاص، قال ما أمرني رسول الله ﷺ فيها بشيء وسأسأله اذا قدمت. فلما قدم على رسول الله ﷺ سأله فقال ليس فيها شيء» ابن عباس رضی الله عنه فرمائی.چه رسول اکرم ﷺ حضرت معاذ رضی الله عنه یمن ته اولیږلو.اوحکم ئې ورکړو.چه د هر دیرشو غواګانونه یوتبیع یا یوه تبیعه اخله.اود هرڅلویښتونه یوه مسنه اخله.د یمن خلګو اووئیل.او اوقاص، یعنی په اوقاص کې ولې نه اخلې.نو معاذ رضی الله عنه اووئیل.چه ماته رسول اکرم ﷺ په دې کې څه حکم نه دې راکړې.اوزه به ډیر زرپوښتنه اوکړم.کله چې هلته کې حاضر شم،نود رسول اکرم ﷺ په دربارکې چې حاضرشو.پوښتنه ئې اوکړو.نونبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه په اوقاص کې هیڅ نشته. اوګورئ. چې د یمن خلګو د اوقاص نـه د دوې [دوه] لسوپه مینځ کې یعنی د دیرشو اوڅلویښتومینځمې برخه مراد اخستې ده.اوپخپله نبی کریم ﷺ هم په ځواب کې هم دا معنی مراد اخستې ده.او مسعودی فرمائی. «والأوقاص ما بين الثلثين والأربعين الى الستين» یعنی اوقاص د دیرشو اوڅلویښتو په مینځ ،او دڅلویښتواو شپیتوپه مینځ کې دې.نود ابن عباس رضی الله عنهما روایت اود مسعودی رحمه الله دقول نه روسته اوقاص د ډیر وړوکی بچی په معنی محمول کول څنګه درست دی.

---

¹) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى رد المحتار(۲۰۱۲) والبحرالرائق (۲۱۵۱۲) والتاتار خانية (۲۲۲۰۱۲) ومجمع الأنهر(۱۹۹۱۱) نقلاً عن القول الراجح (۱۶۶۱۱)-

²) من رواية ابن عباس رضی الله عنهما أخرجه الدارقطنى فى سننه (۹۹/۲) والبيهقى فى السنن الكبرى (۱۶۶/٤) رقم ۷۲۹۳)_

ثُمَّ فِى السِّتِّينَ تَبِيعَانِ أَوْتَبِيعَتَانِ بيا په شپيتو كي دوې [دوه] تبيع يا دوې [دوه] تبيعه دى، وَفِى سَبْعِينَ مُسِنَّةٌ وَتَبِيعٌ او په اوياكي يومسنه او يوتبيع ده وَفِى ثَمَانِينَ مُسِنَّتَانِ او په اتياؤ كي دوې [دوه] مسنه دى وَفِى تِسْعِينَ ثَلَاثَةُ أَتْبِعَةٍ او په لس كم سلو كي درى تبيعه دى وَفِى الْمِائَةِ تَبِيعَانِ وَمُسِنَّةٌ او په سلو كي دوې [دوه] تبيعه اويو مسنه دى وَعَلَى هٰذَا يَتَغَيَّرُ الْفَرْضُ فِى كُلِّ عَشْرٍ مِنْ تَبِيعٍ إِلَى مُسِنَّةٍ وَمِنْ مُسِنَّةٍ إِلَى تَبِيعٍ اوهم په دى به (حساب) قياس كولى شي .نو متغير كيږى به فرض زكاة په لسوكي .د تبيع نه مسنه په طرف.اود مسنه نه تبيع لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ په طرف.په وجه دقول د نبى ﷺ {فِى كُلِّ ثَلَاثِينَ مِنَ الْبَقَرِ تَبِيعٌ أَوْتَبِيعَةٌ چې په هر ديرشو غواګانوكي تبيع يا تبيعه دى وَفِى كُلِّ أَرْبَعِينَ مُسِنٌّ أَوْمُسِنَّةٌ}[1] اوپه هرڅلويښتو كي مسن يا مسنه دى.

**تشريح° النصاب بعد الستين** ۞ماتن رحمه الله وائى.چه په شپيتوغواګانوكي دوې [دوه] تبيعه دى.اوپه اويا غواګانو كي يومسنه او يوه تبيعه ده.يعنى دڅلويښتومسنه،اود ديرشوتبيعه،اوهم ددې نه دوې [دوه] مسنه دى.يعنى په حساب په هرڅلويښتوكي يوه مسنه،اوپه نوى(لس كم سلو)كي درې تبيعه دى.اوپه سلوكي دوې [دوه] تبيعه اويوه مسنه دى.په دې قياس به حساب كولې شي.نوفرض زكاة به متغيركيږى.د هرلسو تبيعه نه د مسنه په طرف،اود مسنه نه د تبيعه په طرف،مثلاً په سلوكي دوې [دوه] تبيعه،او يوه مسنه دى.اوپه يوسل لسوكي دوې [دوه] مسنه اويوه تبيعه دى.په شپږشلوكي درې مسنه دى.اوپه يوسل ديرشوكي درې تبيعه او يوه مسنه دى. على هذا القياس

**دليله**۞دليل د رسول اكرم ﷺ فرمان ﴿فىكل ثلثين من البقر تبيع اوتبيعة وفىكل أربعين مسن أومسنة﴾

وَالْجَوَامِيسُ وَالْبَقَرُسَوَاءٌ اوميخى اوغواګانى برابردى لِأَنَّ اسْمَ الْبَقَرِ يَتَنَاوَلُهُمَا ځكه چې لفظ د بقر ګډ دى دواړوته إِذْ هُوَنَوْعٌ مِنْهُ ځكه چې دا (ميخه)هم يوقسم دى د دى (غوا)نه.

**تشريح° اتحاد حكم البقر والجاموس**۞ماتن رحمه الله فرمانى.چه د ميخې او غواحكم په زكاة كښې برابردې.تردې چې په ديرشو ميخوكي يوكلن بچې واجب دې.اوپه څلويښتوميخوكي دوې [دوه] كلن بچې واجب دې.دليل دا دې.چه د بقر لفظ غوې او ګامېښه (ميخه) دواړو ته ګډ دې.او غوئې اوسندا هم په دې جنس كي داخل دى. علامه مرغينانى رحمه الله وائى.چه د بقرلفظ دې دواړو ته ځكه ګډ دې.چه ګامېښه (ميخه) هم يوقسم غوې ده.

إِلَّاأَنَّ أَوْهَامَ النَّاسِ لَاتَسْبِقُ إِلَيْهِ فِى دِيَارِنَا لِقِلَّتِهِ خو خيالات د خلګو نه رشى دى (ميخو طرف)ته.زموږ په كلوكي په وجه دكموالى ددى (ميخو). فَلِذٰلِكَ لَايَحْنَثُ بِهِ فِى يَمِينِهِ لَايَأْكُلُ لَحْمَ بَقَرٍ، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ نوهم په دى وجه نه حانث كيږى.په(خوراك د غوښى )ددى (ميخى )سره په خپل قسم كي ،چې نه به خورى غوښه د غوا، والله علم.

**تشريح°** خوزموږ په كلو(مرغينان)وغيره كي ميخې ډيرې كمې وى.ځكه د بقرلفظ وئيلوسره ميخې اړخ ته خيال نه كيږى.هم داوجه ده.كه چا قسم اوخوړلو.چه زه به د غوې غوښه نه خورم.اود ميخې غوښه ئې اوخوړه.نوحانث به نه وى.والله اعلم.

## د چيلوزكاة

فَصْلٌ فِى الْغَنَمِ دا فصل د ګډو د زكاة په بيان كي لَيْسَ فِى أَقَلَّ مِنْ أَرْبَعِينَ مِنَ الْغَنَمِ السَّائِمَةِ صَدَقَةٌ نشته په كم د څلويښتو څريدونكو چيلوكي زكاة، فَإِذَاكَانَتْ أَرْبَعِينَ سَائِمَةً بياچې كله څلويښت څريدونكي (چيلئ) شى

[1]) من حديث عبدالله ﷺ أخرجه الترمذى فى الزكاة باب ۵ رقم ۶۲۲ وابن ماجة فى الزكاة باب ۱۲ رقم ۱۸۰٤ )_



وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ او تيرشى په دى باندى كال فَفِيهَا شَاةٌ إِلَى مِائَةٍ وَعِشْرِينَ نوپه دى كي يوه وزه ده.ترشپږشلو پورى فَإِذَازَادَتْ وَاحِدَةٌ بياچې كله ( په شپږ شلو) زياتى شي يوه (چيلئ). فَفِيهَا شَاتَانِ إِلَى مِائَتَيْنِ نو وى به په دى كي دوې [دوه] چيلئ.تردوې [دوه] سوه پورى فَإِذَازَادَتْ وَاحِدَةٌ بياچې كله زياتى شي يوه فَفِيهَا ثَلَاثُ شِيَاهٍ نوپه دى كي درى وزه دى فَإِذَابَلَغَتْ أَرْبَعَمِائَةٍ نوكله چې اورشى څلورسوه ته فَفِيهَا أَرْبَعُ شِيَاهٍ نوپه دى كي څلوروزه دى ثُمَّ فِى كُلِّ مِائَةٍ شَاةٍ شَاةٌ بيا په هرسلوچيلوكي يوه وزه ده

**تشريح:- الربط بما قبلها**۞د چيلو زكاة ئې د اسونو په زكاة مقدم بيان كړې دې.ياخوځكه چې ددوى دكثرت په وجه ددې دبيان اړتيا زيات دې.اوياخوځكه چې د ګډو چيلو زكاة متفق عليه دې.اود اسونو زكاة مختلف فيه دې.اومناسب هم داوى.چه متفق عليه څيزمخكې بيان كړې شي.

**نصاب الغنم**۞فرمائى.چه د چيلونصاب څلويښت وزه دى.د څلويښتونه په كموكي هيڅ زكاة نشته.البته څلويښتوچيلوكي يوه وزه واجب ده.په دې شرط چې دا سائمه وى.اوپه دې كال هم تير شو. نو د شپږ شلو پورې به هم دغه يوه وزه واجب وى.خوچه كله په شپږشلو باندې يوه هم زياتى شوه.يعنى يوسل يويشت وزه شى.نوپه دې كي به دوې [دوه] وزه واجب وى.تردوې [دوه] سوه پورې به هم دغه دوې [دوه] وزه واجب وى.بياچه كله په دوې [دوه] سوه باندې يوه وزه زياتى شوه.يعنى يو سربيره دوې [دوه] سوه شى.نوپه دې كي به درې وزه واجب وى.بياچه كله څلورسوه شى.نوپه دې كي به څلوروزه واجب وى.بياپه هرسلو باندې يوه وزه زياتيږى.تردې چې په پنځه سوه باندې پنځه اوپه شپږسوه باندې شپږ وزه واجب دى.على هذا القياس.

هٰكَذَاوَرَدَالْبَيَانُ فِى كِتَابِ رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ هم دغه ډول بيان وارد شوى دى .په ارشاداتو د رسول الله ﷺ كي

**تشريح:- دليله**۞ ①دليل دا دې.چه دوزه د زكاة په سلسله كي كوم تفصيل ذكرشوې دې.هم دا تفصيل د رسول اكرم ﷺ فرمان زكاة كي وارد شوې دې.اوهم دغه ډول دحضرت ابوبكراو حضرت عمر ﷺ په ارشاداتوكي هم بيان كړې شوى دى.

وَفِى كِتَابِ أَبِى بَكْرٍ ﷺ[1] او په كتاب (ارشاداتو) د ابوبكر ﷺ كي

**حل اللغة°** ① **كتاب:** خط

**تشريح:-** د خليفه اول حضرت ابوبكر ﷺ كوم فرمان چې دحضرت انس ﷺ په نوم تلږوو.د هغې الفاظ ليكلې شى.

﴿وفىصدقة الغنم فى سائمتها إذاكانت أربعين إلى عشرين ومأة شاة، فإذا زادت على عشرين ومأة إلى مأتين شاتان، فما زادت على مأتين إلى ثلاث مأة ففيها ثلاث شياه ، فإذا زادت على ثلاث مأة ففى كل مأة شاة، فإذا كانت سائمة الرجل ناقصة، من أربعين شاة واحدة، فليس فيها صدقة إلا أن يشاء ربها﴾ (ژباړه واضح ده).

وَعَلَيْهِ انْعَقَدَ الْإِجْمَاعُ او هم په دى منعقد شويده اجماع.

**حل اللغة°** ① **انعقد:** منعقد شو

**تشريح:-** دوهم دليل دا دې.چه د وزه د زكاة كوم تفصيل بيان كړې شوې دې.هم په دې اجماع منعقد شويده.اوهم دا د سلف اوخلف فقهاؤ او دآئمه اربعه مذهب دې.

## د ګډو اوچيلو د حكم يووالې

وَالضَّأْنُ وَالْمَعْزُسَوَاءٌ اوګډى اووزه برابردى لِأَنَّ لَفْظَةَ الْغَنَمِ شَامِلَةٌ لِلْكُلِّ ځكه چې لفظ د غنم ګډ دى هريو(ددى دواړو)ته وَالنَّصُّ وَرَدَبِهِ اونص وارد شوى دى په دى باندى وَيُؤْخَذُ الثَّنِى فِى زَكَاتِهَا او اخستى به شي ثنى په

[1]) تقدم تخريجه)_

زكاة ددى كي **وَلَا يُؤْخَذُ الْجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ إِلَّا فِي رِوَايَةِ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله او اخستى به نشى جذع د ګډونه.خو په روايت د حسن(بن زياد رحمه الله چې نقل دى )د ابوحنيفه رحمه الله نه **وَالثَّنِيُّ مِنْهَا مَا تَمَّتْ لَهُ سَنَةٌ** او ثنى په دى كي هغه (بچې)دى .چې پوره د يوكال وى **وَالْجَذَعُ مَا أَتَى عَلَيْهِ أَكْثَرُهَا** او جذع هغه ده.چې تيرشوى وى.په دى زيات ددى (يوكال) نه

**حل اللغة*** ①**ضان**: ګډه، ګډ، چيلې(نر، خيرلې)چيلۍ.②**ثنى**: هغه بچې چې د يوكال وى.اوپه دوهم كال پيل وى.صاحب دعنايه رحمه الله ليكلى دى.چه ثنى هغه دې.چه ددې دمخې غاښونه غورځيدلى وى. اود غواګانو او ګډو ثنى هغه دې.چه دوې [دوه] كاله ئې پوره كړې وى.په دريم كي پيل وى. او دفرس اوحمار ثنى هغه دې.چه ددې درې كاله پوره شوې وى.اوڅلورم كال ئې پيل وى.دا تفسير د اهل لغت په نيزدې.د فقهاؤ په نيز هم هغه تفسيرمعتبر دې.كوم چې صاحب دهدايه رحمه الله ذكركړې دې.③**جذع** هغه دې.چه اكثر كال ئې تيرشوى وى. ابوعلى دقاق نه نقل دى.چه جذع هغه دې.چه په نهمه مياشت كي داخل وى. او ابوعبدالله حصرالى وائى.چه په اتمه مياشت كي پيل وى.نوهغه جذع ده. شرح اقطع كي دى.فقهاؤ وئيلې دى.چه دګډوجذع هغه ده.چه شپږ مياشتې ئې پوره شوې وى. اود ازهرى نه نقل دى.چه"جذع من المعز"شپږ مياشتےوى.او"جذع من الضان" د اتومياشتووى.(عنايه)

**تشريح:- وجوب الزكاة فى جميع انواع الشياه**۞ ګډه، ګډ،وزه نر ماده د زكاة د نصاب پوره كيدوكي واړه برابر دى.يعنى ګډه،ګډ،اووزه كه مخلوط دى.اود نصاب مقدار ته رسيدلى وى.نوپه دې كي زكاة واجب دې.ځكه چې لفظ دغنم ګډه،ګډ،اووزه ټولوته ګډ دې.لكه اسم جنس چې خپلو انواعو ته ګډ دې.اونص په لفظ د غنم وارد شوې دې.ځكه د زكاة په نصاب كي به د ټولواعتباركيږى.او د نص نه مراد درسول الله ﷺ فرمان ﴿فى أربعين من الغنم شاة﴾ دې.

**جواز اخذ الشئ فى الضان والمعز**۞صاحب دهدايه رحمه الله وائى.چه دغنم زكاة ثنى اخستې شى.ثنى كه ضان وى اوكه معز وى.

**وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله او روايت دى د ابوحنيفه رحمه الله نه **وَهُوَ قَوْلُهُمَا أَنَّهُ يُؤْخَذُ عَنِ الْجَذَعِ**([1]) اوهم دا قول دى.د صاحبينو رحمهما الله چې اخستلى به شى جذع

**تشريح:- الروايتان فى اخذ الجزع**۞ ①اود ضان به جذع نشى اخستې.ظاهرالراوية هم دا دې.② اود ابوحنيفه رحمه الله نه دحسن بن زياد روايت دا دې.چه دضان جذعه به هم اخستلې شى.اوهم دا صحيح قول دې.

**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {إِنَّمَا حَقُّنَا الْجَذَعُ وَالثَّنِيُّ}**([2]) .په وجه د قول د نبى ﷺ چې زموږ حق جذع اوثنى دى **وَلِأَنَّهُ يَتَأَدَّى بِهِ الْأُضْحِيَةُ** اوځكه چې اداكيږى په دى (جذع) قربانى **فَكَذَا الزَّكَاةُ** نو دغه ډول زكاة هم جائزدى

**تشريح:- دلائل الصاحبين** ۞ دصاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه حضور ﷺ فرمائيلى دى.چه زموږ حق خوجذعه او ثنى دې.دا روايت اګرچه غيرمعروف دې.خو يو بل روايت ددې مؤيد دې.هغه دادې چه(أخرج أبوداؤد والنسائى وأحمد فمسنده عن مسعر قال جاء فى رجلان مرتدفان فقالا انا رسولا رسول الله ﷺ بعثنا إليك لتؤتينا صدقة غنمك قلت وماهى قلا شاة قال فعمدت إلى شاة ممتلئة مخاضاً وشحماً فقالا هذه شافع وقد نهانا رسول الله ﷺ أن نأخذ شافعاً والشافع التى فى بطنها ولدها.قلت فأي شئ تأخذان قالا عناقاً جذعة اوثنية فاخرجت إليها عناقاً فتناولاها).

[1] القول الراجح هو هذا القول الثانى يعنى ما رواه الصاحبان رحمهما الله عن أبى حنيفة رحمه الله كذا فى فتح القدير(۲\۱۳۶) والدر المختار(۲\۲۱) والبحرالرائق (۲\۲۱۶) وفتح القدير(۲\۱۳۶) والدرى لمختار(۲\۲۱) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۶۷)-

[2] غربه الزيلعى رحمه الله ثم أخرج ما هو بمعناه عن عاصم بن كليب عن أبيه رواه أبوداود فى الضحايا باب ٤ رقم ۲۷۹۹ وابن ماجه فى الأضاحى باب ۷ رقم ۳۱٤۰)_



(فتح القدير)ددې روايت نه ثابت شو.چه دغنم په زكاة كي د جذعه اخستلو اجازت دې.② دوهم دليل دا دې.چه دجذعه قربانى جائزده.نوداپه زكاة كي وركول هم جائزدى.

**وَجْهُ الظَّاهِرِ حَدِيثُ عَلِيٍّ مَوْقُوفًا وَمَرْفُوعًا** او وجه د ظاهر روايت حديث دى دحضرت على رضي الله عنه،موقوفاً هم،او مرفوعاً هم **لَا يُؤْخَذُ فِي الزَّكَاةِ إِلَّا الثَّنِيُّ فَصَاعِدًا**([1]) چې اخستلى به نشى .په زكاة كي .مګر ثنى يا ددى نه زيات(په عمركي

**تشريح:- دلائل ظاهرالرواية**۞ دظاهرالرواية په وجه دحضرت على رضي الله عنه حديث دې.چه موقوفا اومرفوعا دواړه قسمه روايت شوې دې.د حديث الفاظ دادى چې ﴿لايؤخذ فى الزكاة إلا الثنى فصاعدا﴾ يعنى په زكاة كي به ثنيه اخستې شى.يادې نه زيات يعنى دثنى نه دزيات عمر،او مخكي تيرشو.چه جذعه د ثنى نه دكم عمر والا وى.ځكه به دانشى اخستې.

**وَلِأَنَّ الْوَاجِبَ هُوَ الْوَسَطُ** اوځكه چې واجب خواوسط (درجه) دى **وَهَذَا مِنَ الصِّغَارِ** اودا(جذع) دصغار(وړو)څخه ده **وَلِهَذَا لَا يَجُوزُ فِيهَا الْجَذَعُ مِنَ الْمَعْزِ** اوهم په دى وجه نه دى جائز.په دى (زكاة)كي جذع دچيلونه.

**تشريح:-** دوهم دليل دا دې.چه واجب خو اوسط درجه دې.اوجذعه د وړوكوالى په وجه په ادنى درجه كي ده.ځكه جذعه جائزنه ده.هم دا وجه ده.چه دوزه جذعه په زكاة كي اخستل په اتفاق سره جائزنه ده.

**وَجَوَازُ التَّضْحِيَةِ بِهِ عُرِفَ نَصًّا** اوهرجواز دقربانۍ دى .دا معلوم شوى په نص سره

**تشريح:- الجواب عن قياس الصاحبين** ۞ رحمهما الله او پاتې شوضان،(ګډه،اوګډ)جذعه په قربانۍ كي جائزكيدل، نودا په نص سره پيژندلې شى.ارشاد دې. ﴿نعمت الأضحية الجذع من الضأن﴾ (عنايه) يعنى د ضان جذعه غوره قربانى ده.نوجذع د قربانۍ نه زكاة په اړخ نه متعدى كيږى.اوزكاة د قربانۍ په معنى كي هم نه دې.چه زكاة په قربانۍ قياس كولې شى.

**وَالْمُرَادُ بِمَا رُوِيَ الْجَذَعَةُ مِنَ الْإِبِلِ** او مراد دهغه نه چې روايت شوى دى .جذع د اوښ ده.

**تشريح:- الجواب عن مستدل الصاحبين** رحمهما الله **من الحديث**۞او پاتې شو د صاحبينو رحمهما الله داړخه پيش كړې شوې حديث ﴿انما حقنا الجذعة والثنى﴾نوددې ځواب دا دې.چه په دې حديث كي د جذعه نه د اوښ جذعه مراد ده.ضان مراد نه دې.

### په ګډو اوچيلوكې د نر اوښځې برابرى

**وَيُؤْخَذُ فِي زَكَاةِ الْغَنَمِ الذُّكُورُ وَالْإِنَاثُ** او اخستى به شى .په زكاة دګډو(اوچيلو)كي نر او ماده **لِأَنَّ اسْمَ الشَّاةِ يَنْتَظِمُهُمَا** ځكه چې لفظ د ،شاة،شامل دى دواړو ته **وَقَدْ قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي أَرْبَعِينَ شَاةً شَاةٌ**([2]) والله أعلم اوفرمائيلى دى.نبى ﷺ چې په څلويښتوچيلوكي يوه وزه ده.والله اعلم

**تشريح:- جواز اخذ الذكر والانثى فى زكاة الشياه**۞چيلۍ،ګډه،اوګډ په زكاة كي د نر اخستل هم جائز دى .اود ماده اخستل هم جائزدى.

**دليله**۞دليل دادې.چه د نبى كريم ﷺ په قول ﴿فى أربعين شاة شاة﴾ كي د شاة لفظ راغلې دې.اولفظ د شاة نر اوماده دواړوته ګډ دې.ځكه چې په زكاة كي كه نر وركړى.اوكه ماده دواړه ټيك دى.والله أعلم بالصواب.

[1] غربه الزيلعى رحمه الله عن على رضي الله عنه ثم أخرج رواية ابن عمر رضي الله عنهما رواه ابراهيم الحربى فى كتابه غريب الحديث باب ،ثاء ، كذا فى نصب الراية (۲/۳۶۲)_

[2] تقدم فى حديث عمربن حزم رضي الله عنه)_

## په اسونوکې د زکاة فرضیت

| |
|---|
| **فَصْلٌ فِي الْخَيْلِ** دا فصل د اسونو (د زكاة په بيان كي) دى **إِذَا كَانَتِ الْخَيْلُ سَائِمَةً ذُكُورًا وَإِنَاثًا** كله چې وى اوښان ځريدونكي .نر اوماده **فَصَاحِبُهَا بِالْخِيَارِ** نو مالك د دى ته اختياردى **إِنْ شَاءَ أَعْطَى عَنْ كُلِّ فَرَسٍ دِينَارًا** كه غواړى.نو وردى كړى.د هر اس نه يو دينار **وَإِنْ شَاءَ قَوَّمَهَا** اوكه غواړى.نوقيمت دى اولګوى د دى **وَأَعْطَى عَنْ كُلِّ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ خَمْسَةَ دَرَاهِمَ** او وردى كړى د هردوې [دوه] سوه درهمونه پنځه درهمه **وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ، وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ** رحمه الله اودا (حكم) دابوحنيفه رحمه الله په نيزدى .اوهم داقول د امام زفر رحمه الله دى |
| **حل اللغة**: (١) **ذكوراً**: نر (٢) **اناثا**: ښځه (٣) **خيل**: اس |

**تشريح:**- ويش **الفرس الى حالتين** شيخ الادب په شرح نقايه (ټوك اول صف ۱۵۰ حاشيه۵) باندې ليكى.چه اس د دوې [دوه] حالونه خالى نه دې. (١) علوفه (چه په كوركي تړلې وى.اوخوراك وركولې شى) به وى (٢) او يابه سائمه وى.

**ويش العلوفة الى حالتين** كه علوفه وى.نودا هم د دوې [دوه] حالونه خالى نه ده. (١) يا خوبه دې ته د سوارلئ يا بار اوړلو، يا د جهاد فى سبيل الله لپاره ونده وركولې شى. (٢) يا به دتجارت لپاره ونده وركولې شى.كه اول دې.نوبه دې كي په اتفاق سره زكاة نشته.ځكه چې د زكاة مال هغه دې.چه نامى وى.اود حاجت نه زيات وى.اوكه ثانى دې.نوبه دې كي په اتفاق زكاة واجب دې.ځكه چې په دې صورت كي دا مال نامى دې.اود حاجت نه زيات دې.ځكه چې دا د تجارت لپاره مقرركول د نماء اوحاجت نه د زياتى كيدو دليل دې.

**ويش السائمة الى حالتين** اوكه سائمه وى.نودا هم ددوې [دوه] حالونه خالى نه دې. (١) ياخوبه دا د سوارلئ يا بار لپاره يا د جهاد او غزوه لپاره په مباح ځنګلونوكي پوولې (څرولې) شى. (٢) او يابه د تجارت لپاره پوولې (څرولې) شى.په اول صورت كي به په اتفاق زكاة واجب نه وى.او په دوهم صورت كي په اتفاق زكاة واجب دې.

**ويش ما يتولد الى حالتين** اوكه دا د پيو اود نسل زياتوالى لپاره پوولې (څرولې) شى.نو ددې هم دوې [دوه] صورته دى. (١) ياخوبه نر او ماده دواړو ګډ وې وى. (٢) يا به ګډ وې نه وى.

**حكم الصورة الاولى** كه اولنې صورت دې.نوبه دې كي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز زكاة واجب دې. اومالك ته به اختيار وى.چه د هر اس نه يو دينار وركړى.يا ددې قيمت اولګوى.او د هر دوې [دوه] سوه درهمو نه پنځه درهمه وركړى.

**حكم الصورة الثانية** اوكه ثانى صورت دې.نوددې هم دوې [دوه] صورته دى. (١) ياخوبه صرف مادهٔ وى. (٢) يابه نر وى.په دې دواړو صورتونوكي د امام ابوحنيفه رحمه الله دوې [دوه] دوې [دوه] روايتونه نقل دى.يو د وجوب او دوهم د عدم وجوب،په خالص ماده كي راجح روايت دوجوب دې.ځكه چې دبل نه نر اس غوښتلو سره تناسل او افزائش نسل ممكن دې.اوپه خالص نركي د عدم وجوب روايت راجح دې.ځكه چې د ابوحنيفه رحمه الله په نيز ددې غوښه نشى خوړلې.اونه ددې نه تناسل ممكن دې.په دې وجه راجح د زكاة عدم وجوب دې.

| |
|---|
| **وَقَالَا: لَا زَكَاةَ فِي الْخَيْلِ** (١) اوصاحبين رحمهما الله فرمائى.هيڅ زكاة نشته .په اسونوكي . |

**تشريح:**- **عدم وجوب الزكاة فى الخيل مطلقاً عند الصاحبين** صاحبين رحمهما الله فرمائى.چه په اسونوكي زكاة واجب نه دې.كه دا دهرقسم وى.كه علوفه وى اوكه سائمه وى.مخلوط وى.اوكه غيرمخلوط وى.كه دجهاد لپاره وى.اوكه د تجارت لپاره وى.د افزائش نسل لپاره وى.اوكه د سوارلئ يا د بار وغيره لپاره وى.هم دا قول د

---

(١) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى الخانية (=١١٩\١) والخلاصة (٢٣٦\١) والهندية (١٧٨\١) والفقه الاسلامى وأدلته (٨٤٧\٢) نقلاً عن القول الراجح (١٦٨\١)۔



امام شافعى امام مالك اود امام احمد رحمهم الله دې.

**شرط وجوب الزكاة فى الخيل عند ابى حنيفة وزفر** رحمهما الله دصاحب هدايه رحمه الله د بيان مطابق حاصل د مسئله دا دې.چه د امام ابوحنيفه اودامام زفر رحمهما الله په نيزپه اسونوكي زكاة واجب دې.په دې شرط چه (١) سائمه وى. (٢) اونر ماده ګډوې وى.خالص نر يا خالص ماده نه وى.البته د مال مالك ته په زكاة ادا كاوه كي اختياردى.چه د هراس نه يو دينار وركړى.يا ددې قيمت اولګوى.اوپه هردوې [دوه] سوه درهمو كي پنځه درهمه وركړى.

**الاقوال فى نصاب الخيل** پاتې شوه داخبره،چه د امام صاحب په نيز د اسونونصاب څه دې. (١) نوصحيح خبره داده.چه په اسونوكي هيڅ نصاب معتبرنه دې.كه يواس هم وى.نوپه دې كي زكاة واجب دې. (٢) بعضو وئيلې دى.چه درې اسونه د زكاة نصاب دې. (٣) بعضوپنځوته نصاب وئيلې دى. (٤) اوبعض وائى.چه د نصاب لپاره دوې [دوه] نران كيدل،اود دوې [دوه] ماده كيدل ضرورى دى.

| |
|---|
| **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** په وجه د قول د نبى ﷺ {**لَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِ فِي عَبْدِهِ وَلَا فِي فَرَسِهِ صَدَقَةٌ**} (١) چې نشته په مسلمان باندى په غلام دده كي ،اوپه اس دده كي زكاة |

**تشريح:**- **عدم وجوب الزكاة فى الخيل عند الصاحبين** رحمهما الله **وائمة الثلاثة** رحمهم الله صاحبين رحمهما الله او ائمه ثلاثه وائى.چه په اسونو كي بيخى زكاة واجب نه دې.

**دلائلهما** دصاحبينو رحمهما الله دليل د ابوهريره رضي الله عنه حديث دې. «قال قال رسول الله ﷺ ليس على المسلم فى عبده ولا فى فرسه صدقة» (شرح نقايه بحواله كتب سته) ابوهريره رضي الله عنه وائى.چه رسول اكرم ﷺ فرمائيلې دى.چه په مسلمان دده په غلام اواس كي زكاة نشته.

| |
|---|
| **وَلَهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** اودده (د ابوحنيفه رحمه الله) دليل دنبى ﷺ قول دى {**فِي كُلِّ فَرَسٍ سَائِمَةٍ دِينَارٌ أَوْ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ**} (٢) چې په ځريدونكي اس كي يو دينار يا لس درهمه دى |

**تشريح:**- **دليل** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل (١) د دارقطنى داروايت دې. «فى كل سائمة دينار اوعشرة دراهم» يعنى په هرسائمه اس كي يو ديناردې.يا لس درهمه دى.

| |
|---|
| **وَتَأْوِيلُ مَا رَوَيَاهُ** او تاويل دهغه حديث چې روايت كړى دى .دوى (صاحبينو رحمهما الله).دا دى) **فَرَسُ الْغَازِي** چې اس د غازى (مراد) دى **وَهُوَ الْمَنْقُولُ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ** اوهم دا منقول دى.د زيد ابن ثابت رضي الله عنه نه |

**تشريح:**- **الجواب عن دليل الصاحبين** صاحب دهدايه رحمه الله دصاحبينو رحمهما الله دارخه د پيش كړې شوى روايت «ليس على المسلم فى عبده ولا فى فرسه صدقة» ځواب وركوى.دځواب حاصل دادې.چه په دې روايت كي فرس غازى مراددې.يعنى په غازى مسلمان باندې دده په اس كي زكاة نشته.دا تاويل د زيد ابن ثابت رضي الله عنه نه نقل دې.دصاحب عنايه د بيان مطابق د مروان په زمانه كي واقعه راپيښه شوه.چه په اس كي زكاة واجب دې.اوكه نه.دصحابو رضي الله عنهم نه په دې اړه كي مشوره اوشوه.حضرت ابوهريره رضي الله عنه «ليس على الرجل فى عبده ولا فى فرسه صدقة» روايت بيان كړو.نو مروان زيد بن ثابت رضي الله عنه ته مخاطب شو.اواوئې وئيل. «ما تقول يا اباسعيد» اے

---

(١) من حديث أبى هريرة رضي الله عنه أخرجه البخارى فى الزكاة باب ٤٥ ومسلم فى الزكاة رقم ٩ وأبوداود فى الزكاة باب ١١ رقم ١٥٩٥ والترمذى فى الزكاة باب ٨ والنسائى فى الزكاة باب ١٦ رقم ٢٣١٢ وابن ماجه فى الزكاة باب ١٥ رقم ١٨١٢ والدارمى فى الزكاة باب ١٠ ومالك فى الزكاة رقم ٣٧ وأحمد فى المسند (٢٤٢/٢)_

(٢) من حديث جابر رضي الله عنه أخرجه الدارقطنى فى السنن (١٢٥/٢) والبيهقى فى السنن الكبرى (٢٠١/٤) وفى معرفة السنن والآثار رقم ٢٣٠٢)

ابوسعيد ته څه وائي. ابوهريره ﷺ اوونيل. چه حيرانتيا ده په مروان، چه زه د رسول كريم ﷺ حديث بيانوم. اودې وائي. «ماتقول يا اباسعيد» زيد ابن ثابت ﷺ (چه دا واورېدل نو) وې وئيل. چه رسول الله ﷺ رښتيا فرمائيلي دي. خوددې نه مراد فرس غازي دې. اوكوم اس چې د نسل لپاره پوولې شي. په دې كي زكاة شته. ابوهريره ﷺ اوونيل. څومره، وے فرمائيل «في كل فرس دينار اوعشر دري هم»

**وَالتَّخْيِيرُ بَيْنَ الدِّينَارِ وَالتَّقْوِيمِ مَأْثُورٌ عَنْ عُمَرَ** ﷺ[1] او تاخير په دينار او قيمت كي نقل دی دحضرت عمر ﷺ نه.

**تشريح:- دليل وجوب الدينار اوعشرة دري هم في فرس** ﴿صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چه دينار او په قيمت لګولو د هر دوې [دوه] سوه درهمونه په پنځو درهموور كولوكي اختيار وركول، دحضرت عمر ﷺ نه منقول دی. نقل دی. چه «فان كتب الى ابي عبيدة في صدقة الخيل خير أربابها أن أدوا من كل فرس دينارًا وإلا فقوموها وخذ من كل مأتي درهم خمسة دري هم» يعنی حضرت عمر ﷺ ابوعبيده بن الجراح ﷺ ته د اسونو د زكاة په اړه كي اوليكل. اوداسونومالكانو ته ئې اختيار وركړو. چه دوی د هر اس نه يو دينار اداكړي. ګنی حاصلونكي دې ددې قيمت اولګوی. اود هردوې [دوه] سوه درهمونه دې پنځه درهم واخلی.

## په څانله اسونو يا اسپوكي د زكاة حكم

**وَلَيْسَ فِي ذُكُورِهَا مُنْفَرِدَةً زَكَاةٌ** اونشته په نرانوددی (اسونو) كي چې څانله وی. زكاة **لِأَنَّهَا لَا تَتَنَاسَلُ** څكه چې دا (څانله اسونه) تناسل (پيداكول) نه كوی

**تشريح:- عدم وجوب الزكاة في الخيل المنفردة** ﴿مسئله داده. چه په څانله نراسونوكي زكاة واجب نه دې.

**دليله** ﴿دليل دا دې. چه په سوائموكي زكاة واجب وی. د نسل دزياتوالی په وجه. اونسل صرف د اسونونه ممكن نه دې. اوپه دې وجه صرف په اسونوكي زكاة واجب نه دې. چه تركومه پورې دې سره اسپې هم نه وی.

**الاعتراض** ﴿دلته كي يواعتراض كيږی. هغه داچه په څانله نر اوښان، نر غوايان، اوپه نرانوګډو كي هم تناسل ممكن نه دې. خوددې باوجودهم په دې كي زكاة واجب دې؟

**الجواب** ﴿ځواب دا دې. چه د زكاة دوجوب لپاره نماء شرط ده. اوپه اسونوكي نمو په نسل سره كيږی. اوپه څانله نراسونوكي تناسل نه كيږی. چه تركومه دې سره اسپې نه وی. نوپه څانله نراسونوكي نمانشته. اوچه نمانشته. نوپه دې كي زكاة هم واجب نه دی.

اوپه اوښانو، غواګانو، اوګډوكي چې څنګه په تناسل سره نماء كيږی. دغه ډول ددې په غوښه اوددې په ايختوكي هم نماكيږی. نوداوښانو، غواګانو، اوډګو په نرانوكي اګرچه په تناسل سره نماء ممكن نه ده. خوپه غوښه او ايختوسره نماء ممكن ده. څكه ددې په څانله نرانوكي هم زكاة واجب دې.

**وَكَذَا فِي الْإِنَاثِ الْمُنْفَرِدَاتِ فِي رِوَايَةٍ** اوهم دغه ډول په اسپوكي هم چې څانله وی. په يوروايت كي. **وَعَنْهُ الْوُجُوبُ فِيهَا** اووده (ابوحنيفه رحمه الله)نه (يو روايت) دوجوب(زكاة) دی. په دی (څانله اسپو)كي **لِأَنَّهَا تَتَنَاسَلُ بِالْفَحْلِ الْمُسْتَعَارِ بِخِلَافِ الذُّكُورِ** څكه چې دا اسپے پيداكولی شی (بچې) په هغه نرسره چې (مستعار)اوغوښتلے شی دبل چانه. په خلاف د نرانو(اسونو).

**حل اللغة**① **الفحل**: نر ② **المستعار**: پور اخستې شوې

**تشريح:- الروايتان عن ابي حنيفة رحمه الله في وجوب الزكاة في الاناث المنفردة** ﴿دغه ډول په ماده اسپوكي هم داامام ابوحنيفه رحمه الله نه دوې [دوه] روايته دی. يودوجوب او دوهم د عدم وجوب دې.

---

[1]) غربه الزيلعي رحمه الله ثم ذكرأثرعمر ﷺ أنه أخذ في الفرس في رواية عشرة دری هم و في الأخرى ذكرأخذالدينار في فرس وليس فيهما ذكرالخياربين الدرهم والدينار) نصب الرأية (۲/۳۶۶)_



**دليلها** ﴿د ړومبی روايت دليل دا دې. چه په څانله اسپوكي هم د توالد او تناسل په ذريعه نماء نه كيږی. څكه په دې كي به زكاة هم واجب نه وی. اود دوهم روايت دليل دا دې. چه كه دچا په ملك كي كه صرف اسپے وی. نوددې نه توالد اونسل ممكن دې. په دې طريقه چې د جفتی (دمالكولو) كاوه لپاره دچا اس مستعار(په كرايه)واخستلې شی. اوچه تناسل ممكن دې. نوپه دې كي نماء هم موجود شوه. اوكله چې صرف په اسونوكي نماموجودشوه. نوپه دې كي به زكاة هم واجب وی. په څانله اسونوكي د وجوب زكاة روايت راجح دې.

**وَعَنْهُ أَنَّهَا تَجِبُ فِي الذُّكُورِ الْمُنْفَرِدَةِ أَيْضًا** او دده (ابوحنيفه رحمه الله)نه (يوروايت) دی چې واجب دی (زكاة) په هغه نرانو(اسونو)كي چې څانله وی هم دغه شان

**تشريح:- رواية الوجوب في الزكور منفرداعن ابی حنيفة** ﴿دحضرت ابوحنيفه رحمه الله نه يوروايت دا دې. چه په څانله نرو اسونوكي هم زكاة واجب دې.

**دليله** ﴿ددې روايت دليل دا دې. چه سانمه اس دسوائمودتولوقسمونونظير دې. نوڅنګه چې دنورو سوائمو په نرانوكي د سوم (په ځنګل كي دڅريدو)په وجه زكاة واجب وی. دغه ډول په نر اسونوكي هم د څريدوپه وجه زكاة واجب وی.

**حاصل الكلام في الذكورالمنفردة** ﴿حاصل دا دې. چه داامام ابوحنيفه رحمه الله نه په نراسونوپه زكاة كي دوې [دوه] روايته دی. يودوجوب او دوهم دعدم وجوب دې. خودعدم وجوب روايت راجح دې.

**وَلَا شَيْءَ فِي الْبِغَالِ وَالْحَمِيرِ** **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** اوهيڅ (زكاة واجب) نشته. په قچرو، اوخروكي. په وجه دقول دنبی ﷺ **لَمْ يَنْزِلْ عَلَيَّ فِيهِمَا شَيْءٌ**[1] چې نه دی نازل شوی په مابانذی په زكاة ددی دواړوكي هيڅ (زكاة). **وَالْمَقَادِيرُ تُثْبَتُ سَمَاعًا** او مقادير ثابتيږی سماعاً،

**حل اللغة** ① **البغال**: قچر ② **الحمير**، د حمار جمع: خر

**تشريح:- عدم وجوب الزكاة في الحمروالبغال ودليله** ﴿په خرو او قچروكي زكاة نشته. دليل د رسول ﷺ فرمان «لم ينزل عيل فيهاشيء» دې. په ماپه خرو او قچروكي د زكاة په اړه كي هيڅ څيزنازل شوې نه دې او مقادير د زكاة سماعی دی. قياسی او عقلی نه دې. نوكله چې نبی كريم ﷺ نه په دې اړه كي هيڅ سماع اونشوه. نوپه دې كي به زكاة واجب نه وی.

**إِلَّا أَنْ تَكُونَ لِلتِّجَارَةِ** خوپه هغه وخت چې وی دا (قچری اوخره) د تجارت لپاره **لِأَنَّ الزَّكَاةَ حِينَئِذٍ تَتَعَلَّقُ بِالْمَالِيَّةِ كَسَائِرِ أَمْوَالِ التِّجَارَةِ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ** څكه چې زكاة په دغه وخت كي متعلق كيږی د مال سره. په شان دنورو مالونو دتجارت.

**تشريح:-** خوكه خرهٔ اوقچرې د تجارت لپاره وی. نوپه دې كي به تجارتی زكاة واجب وی. څكه چې په دې صورت كي به زكاة د ماليت سره متعلق وی. لكه د نورو مالونو په تجارت كي چې زكاة د ماليت سره معتلق وی.

## د مختلفو څاروو په بچوكي د زكاة حكم

**فَصْلٌ وَلَيْسَ فِي الْفُصْلَانِ وَالْحُمْلَانِ وَالْعَجَاجِيلِ صَدَقَةٌ** اونشته د اوښانو په بچوكي، د غواګانو (اوميخو) په بچوكي، اوپه بچو د چيلوكي زكاة، **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ إِلَّا أَنْ يَكُونَ مَعَهَا كِبَارٌ** په نيز د امام ابوحنيفه رحمه الله. خودا

---

[1]) قال الزيلعي رحمه الله الحديث في الصحيحين وليس فيه البغال ثم ذكره برواية ابی هريرة ﷺ أخرجه البخاری في بدء الخلق باب باب قبل فضائل الصحابة ﷺ ومسلم في الزكاة (نصب الرأية ۲/۳۶۷)_

چې وی ددی (بچو) سره لوی (څاروی). **وَهٰذَا آخِرُ أَقْوَالِهٖ وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ** رحمه الله اودا د امام (په اقوالوکې) آخری قول دی .اوهم دا دامام محمد رحمه الله قول دی

**حل اللغة*** په تیروشوو فصلونوکې د کبار(غټو)سوائمو د زکاة حکم بیان شوې دې.په دې فصل کې د صغارو(د زکاة)حکم دې.فصلان د فصيل جمع ده.فصيل د اوښې هغه بچې چې تر اوسه ابن مخاض نه وی. یعنی د اوښې بچې چې تر اوسه په اول کال کې دې.دې ته فصيل وائی. عجاجيل په قول دعلامه ابن الهمام رحمه الله د عجول جمع ده.اوملاعلی قاری رحمه الله په شرح نقايه کې ليکلی دی.چه د عجل جمع ده.بهرحال عجول ياعجل دغوې يامیخې هغه بچې چه تبيعه نه وی.یعنی چې په اول کې وی.حملان(دحاء په ضمه ياکسره) دحمل جمع ده.حمل دوزه هغه بچې چه په اول کال کې وی.يايوکال دده نه وی پوره شوې.

**تشريح:- الرواية الجديدة عن ابی حنيفة فی وجوب الزكاة**۞صاحب دکتاب وائی.چه امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزد اوښانو،غواګانو،اودچيلودیوکال نه په کمو بچوکې زکاة واجب نه دې.مراد دادې.که صرف بچې وی.نوپه دې کې زکاة نشته.خوکه ددې بچوسره لوې هم وی.یعنی د يوکال يا د زيات،نوپه دې کې به زکاة واجب وی.اودا د امام ابوحنيفه رحمه الله آخری قول دی.اوهم دا قول د امام محمد رحمه الله دی.

**وَكَانَ يَقُوْلُ أَوَّلًا يَجِبُ فِيْهَا مَا يَجِبُ فِي الْمَسَانِّ** وويل به (امام ابوحنيفه رحمه الله) ده مخکې .چې واجبيږی په دی (بچو او لويو)دواړوکې .هغه چې واجب وی په مسنه (څارو) کې **وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ وَمَالِكٍ** رحمهما الله اوهم دا قول د امام زفر او امام مالك رحمهما الله دی **ثُمَّ رَجَعَ وَقَالَ فِيْهَا وَاحِدَةٌ مِنْهَا** بيا رجوع وکړه (امام ابوحنيفه رحمه الله).اووی ونيل.چې په دی (بچو)کې يو واجب دی هم ددی نه **وَهُوَ قَوْلُ أَبِیْ يُوْسُفَ وَالشَّافِعِیِّ رَحِمَهُمَا اللهُ** اوهم دا قول دی د امام ابويوسف او امام شافعی رحمهما الله.

**تشريح:- الرواية القديمة عن ابی حنيفة فی وجوبها**۞او امام ابوحنيفه رحمه الله به اول دا ونيلې.چه په دې بچوکې به هغه واجب وی.کوم چې په مسنه څناوروکې واجبيږی.یعنی د اوښانوپه بچوکې به د اوښ زکاة واجب وی.اود ميخوپه بچوکې به د غواګانوميخو زکاة واجب وی.اود چيلوپه بچوکې به د چيلو زکاة واجب وی.هم دا قول د امام زفر اود امام مالك رحمهما الله دې.بيا امام ابوحنيفه رحمه الله ددې نه رجوع اوکړه.اووې فرمائيل.چه په دې بچوکې به هم ددوی نه يو واجب وی.مثلاً د چيلوپه څلويښتو(۴۰)بچوکې يو بچې د زکاة په طوروراجب وی.هم دا قول د امام ابويوسف او اماشافعی رحمهما الله دې.

**حكاية الروايات الثلاثة عن ابی حنيفة** رحمه الله۞صاحب د عنايه رحمه الله ليکلی دی.چه امام طحاوی رحمه الله ذکرکړې دی.چه د ابوحنيفه رحمه الله درې واړه اقوال په يوحکايت کې ذکردی.حکايت دا دې.امام ابويوسف رحمه الله وائی.چه زه د ابوحنيفه رحمه الله په خدمت اقدس کې حاضرشوم.پوښتنه مې اوکړو.چه د يوکس سره دوزه ديوکال نه کم څلويښت(۴۰)بچې وی.نوپه ده به څه واجب وی؟امام صاحب وويل .چه مسنه وزه به واجب وی.ابويوسف رحمه الله وائی.چه د مسنه وزه قيمت ډيرکرته د چيلو د څلويښتو بچو نه زيات وی.اوکه زيات نه وی.نوروسته زياتيدې شی.نوددې مطلب داشو.چه په زکاة کې به پوره مال اخستې شی.حالانکه په زکاة کې څلويښتمه برخه اخستې شی.پوره مال نشی اخستې.حضرت امام اعظم رحمه الله چې دا واوريدل،نولږ ساعت ئې غور اوکړو.اووې فرمائيل.چه دانه،بلکه هم په دې کې به يو بچې واجب وی.ابويوسف رحمه الله فرمائی.ما اووئيل.چه په زکاة کې د يوکال نه کم بچې هم اخستې شی.د ابويوسف رحمه الله مراد داوو.چه په زکاة کې دپوره يوکال نه کم بچې نشی اخستې.بيادا ناسوولې فرمائې.حضرت امام اعظم رحمه الله چې دا واوريدل،نولږشان سوچ ئې اوکړو.اووې فرمائيل.چه داهم نه،بلکه په بچوکې به د زکاة په طورهيڅ واجب نه وی.په دې اقوال ثلاثه کې قول اول امام زفر رحمه الله اختيار کړې دی.اوقول ثانی باندې ابويوسف رحمه الله عمل کړې دی.اوقول ثالث امام محمد رحمه الله اختيارکړو.(عنايه) داخبره دامام صاحب رحمه الله په مناقبوکې ده.چه په يومجلس کې ئې درې خبرې اوکړې.اوپه دې کې يوهم متروك نه دې.



**السوال**۞دلته کې يوسوال دې.هغه داچه داخبره منلې شويده.چه زکاة په مال نصاب باندې دکال تيريدونه روسته واجبيږی.نوکله چې فصلان،عجاجيل،اوپه حملانو باندې کال تيرشو.نودا بچې،چرته کې پاتې شو.دا خولوې شو.څکه چې د فصلان،عجاجيل،اوحملان اطلاق اګرچه دکال نه په کم بچې باندې کيږی .خوچه کله په دې کال تيرشو.نو اوس دا دکال نه کم بچې پاتې نشو.بلکه دکال نه د زيات بچې شو.او دکال نه د زيات څناوروکې په اتفاق سره زکاة واجب وی.نوپه دې کې به هم په اتفاق سره زکاة واجب وی.

**الجواب فی ضوء الصورة الاولی**۞ددې صورت دا دې.چه يوکس په قدر د نصاب يعنی پنځه ويشت فصلان،يا ديرش عجلان،ياڅلويښت حملان واخستل.اوکوم وخت چې دا واخستې شو.دغه وخت ددې عمراته مياشتې دې.نو دکومو حضراتوپه نيز چې په فصلان وغيره کې زکاة واجبيږی.ددوی په نيزمالك کيدو سره به دحولان حول اعتبارشروع شی.نوداخستونه روسته چې کله يوکال تيرشو.او فصلان وغيره د شلومياشتو شو.نوپه دې کې به زکاة واجب وی.او دکومو په نيزچه په فصلان وغيره کې زکاة نه واجبيږی.ددوی په نيز د مال کيدوپه کيفيت سره د حولان حول اعتبارنه وی.بلکه کله چې دا بچې لوې شی.او دپوره کال شی.او ددوی د عمر دوهم کال پيل شی.نود اوس څخه به حولان حول پيل شی.يعنی ددې حضراتوپه نيز د اتومياشتوپه بچې باندې چې کله څلور مياشتې نورې تيرې شی.نودا لوئې شوې دی. او د فصلان وغيره حساب نه وتلې دی.اوس ددې نه روسته کله چې يوکال تيرشی.نوزکاة به واجب وی.ګوياچه ددې حضراتوپه نيز د اخستلونه روسته چې شپاړس مياشتې تيرې شی.نوزکاة به واجب وی.اوددوی په نيزچه دولس مياشتې تيرې شی.زکاة به واجب وی.

**الجواب فی ضوء الصورة الثانية**۞ دوهم صورت دا دې.چه چاسره د سائمه څارو نصاب دې.په دې لس مياشتې تيرې شوې.او ټولوبچې راوړل.نوصرف بچې هم د نصاب برابردی.بيا اُصول مړه شی.او ددې بچې پاته پاتې شی.نوپه دې صورت کې د طرفينو رحمهما الله په نيزبه حول اصول (د اصولو کال)پاته نه وی پاتې.يعنی دوې [دوه] مياشتې روسته به په دې بچوکې زکاة واجب نه وی.اود پاته حضراتوپه نيزحول اصول به پاته وی.يعنی دوې [دوه] مياشتې روسته ددې په بچوکې زکاة واجب وی.

**وَجْهُ قَوْلِهِ الْأَوَّلِ أَنَّ الْاِسْمَ الْمَذْكُوْرَ فِي الْخِطَابِ يَنْتَظِمُ الصِّغَارَ وَالْكِبَارَ** وجه د قول اول دده داده.چې هغه لفظ چې ذکرشوی په خطاب(دنص)کې .شامل دی صغاراوکبار(وړو او لويو دواړو)ته

**شريح:- دليل القول الاول لابی حنيفة** رحمه الله۞دامام ابوحنيفه رحمه الله د قول اول (کوم چې امام زفر او امام مالك رحمهما الله اختيارکړې دې )دليل دا دې.چه په حديث کې کوم ځائې د نصاب مقدار بيان شوې دې.هلته کې لفظ د ابل،لفظ د بقر،او لفظ د غنم ذکردې.اودا الفاظ صغار اوکبار ټولوته ګډ دې.تردې که چا قسم اوخوړو.چه «والله لا آكل لحم الإبل» نوڅنګه چې د لوئې اوښ په غوښه خوړو حانث کيږی.دغه ډول د فصيل يعنی داوښ دپوره يوکال بچی غوښه خوړلوسره به هم حانث کيږی.نوکله چې لفظ ابل ،او لفظ بقر، اولفظ غنم صغار اوکبار ټولوته ګډ دی.نوپه صغارکې به هم هغه زکاة واجب وی.کوم چې په کبارکې واجبيږی.

**وَوَجْهُ الثَّانِيْ تَحْقِيْقُ النَّظَرِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ كَمَا يَجِبُ فِي الْمَهَازِيْلِ وَاحِدٌ مِنْهَا** اووجه د (قول)ثانی،د دواړو طرفونو پوره لحاظ دی .لکه چې واجبيږی.په کمزوروڅارووکې يوددی نه

**تشريح:- دليل القول الثانی لابی حنيفة** رحمه الله۞دامام ابوحنيفه رحمه الله د قول ثانی کوم چې امام ابويوسف اوامام شافعی رحمهما الله اختيار کړې دې.دليل دا دې.چه هم ددې بچونه به د يوکال بچې ورکولوکې صاحب مال او فقيرانودواړوته رعايت دې.په دې طريقه چې که موږ په صغار(وړو)کې هم هغه حيوان (څاروې) واجب کړو.کوم چې په کبار(د لوې عمرڅارو)کې واجبيږی.حالانکه په دې بچوکې داسې هيڅ يوڅاروې نشته.نوپه دې صورت کې به صاحب مال ته ضررملاؤشی.چه دې د زکاة ادا کاوه لپاره د لوئې عمرڅاروې لټون کوی

.او د لوي عمر حيوان (ښاروي) ډير کرته د ټولو بچو د ماليت برابروي.نو گويا چه په زکاة کي واړه مال واخستي شو.په دې صورت کي به صاحب مال ته ضرر اورسي.

Ⓑاو که په صغار (وړو) کي بالکل زکاة واجب نکړو.نو په دې کي د فقيرانو نقصان دې.د دواړو د رعايت په نظر سره هم په دې کي به يو بچے واجب وي.لکه که د څلورو واړه ښاروي ډير زيات کمزوري، او خوار وي.نو په زکاة کي به هم ددې نه يو اخستې شي.د صاحب مال رعايت خو داسې اوشو.چه ده ته د لوئې عمر ښاروي لټون کول رانغلل.او د فقيرانو رعايت په دې طريقه اوشو.چه دې محروم نکړې شو. بلکه څه نه څه ضرور ملاؤشوي دي.

---

**وَوَجْهُ الْأَخِيرِ أَنَّ الْمَقَادِيرَ لَا يَدْخُلُهَا الْقِيَاسُ** او وجه د (قول آخير) داده.چې (د نصاب) په مقاديرو کي هيڅ دخل نه وي د قياس **فَإِذَا امْتَنَعَ إِيجَابُ مَا وَرَدَ بِهِ الشَّرْعُ** نو کله چې ممتنع شو وجوب د هغه څيزچې وارد شوی دی په دی شريعت **امْتَنَعَ أَصْلًا**،نو ممتنع شو اصلاً (بيخي).

---

**تشريح:- دليل القول الاخرلابى حنيفة** رحمه الله ❁ او د امام ابوحنيفه رحمه الله آخيري قول (چه د امام محمد رحمه الله قول هم دې) دليل دا دې.چه په مقادير د نصاب او مقادير د زکاة کي قياس او د عقل هيڅ دخل نشته.نو شريعت چې کوم څيزواجب کړې دې.ددې وجوب که ممتنع شي.نو وجوب به بالکل ممتنع وي.او هيڅ څيز به واجب نه وي.اوس تاسو او گورئ.اسلامي شريعت د پنځه ويشتو اوښانو په زکاة کي يو بنت مخاض واجب کړې دې.يعنی د اوښ د پوره کال ماده بچې، او په ديرشو غواګانو کي يو تبيع يا تبيعه واجب کړې دې.يعنی د غوې يو کلن نر يا ماده بچے، او په څلويښتو چيلو کي د پوره کال يوه چيلۍ (چې ورته ثنی وئيلې شي) واجب کړې ده. نو که د څلورو د اوښ يا غوې يا دوزه صرف د کال نه کم بچې وي.او د لوے عمر هيڅ نه وي.نو دا کس به يا خو هم ددې نه يو بچې د زکاة په طور اداکوي.يا هغه چې نص پرې وارد شوې دې.هغه به اخلی. او زکاة کي به ني ورکوي.په اولنی صورت کي د نص نه خلاف اداشو.ځکه چې نص کم ازکم د يو کال بچې دې. او دا د يو کال نه کم ورکړې دې.او په دوهم صورت کي پوره مال يا ښه مال ورکړې شو. حالانکه په زکاة کي نه خو پوره مال ورکړې کيږي.او نه ښه مال،بلکه اوسط درجې والامال ورکړې کيږي.نو کله چه،ماورد به الشرع، واجبول ممتنع شو.نو هيڅ څيز به واجب نه وي.نه به د لوې عمر ښاروې واجب وي.او نه به ددې بچوکي څه واجب وي.

---

**وَإِذَا كَانَ فِيهَا وَاحِدٌ مِنَ الْمَسَانِّ** او کله چې وی په دی (بچو) کي يو مسنه **جُعِلَ الْكُلُّ تَبَعًا لَهُ فِي انْعِقَادِهَا نِصَابًا دُونَ تَأْدِيَةِ الزَّكَاةِ** [1] نو گرځی به ټول (بچې) تابع ددی (مسنه)، په منعقد کاوه ددی نصاب (زکاة) کي .نه په ادا کاوه د زکاة کي

---

**تشريح:- وجوب الزكاة عند وجود الكبيرالواحد**❁صاحب د هدايه رحمه الله فرمائی.که په دې بچوکي يو هم مسنه، يعنی د يو کال نه زياتی وی.نو دا واړه بچی به ددې مسنه تابع وی.خو په نصاب منعقد کيدوکي به تابع وی.په زکاة اداکولوکي به تابع نه وی.مثلاً د څلورو يو کم څلويښت حملان (د وزه د پوره کال نه کم بچی) وی.او يو مسنه وی.يعنی د يو کال نه د زيات عمر وزه ده.نو په دې صورت کي د امام ابوحنيفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نيزهم د زکاة نصاب منعقد شی.او د نصاب په دې منعقد کيدوکي به واړه صغار ددې يو مسنه تابع شمارلې شی.البته په زکاة ورکوولوکي به صغار د کبار تابع نشی شمارلې.يعنی په زکاة کي به صرف مسنه (د يو کال چيلۍ) ورکولې شی.د جمل يعنی د يو کال نه د کم بچی ورکولو سره به زکاة نه اداکيږي.

---

[1] القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار (۲۲/۲) والخانية (۱۱۹/۱) والهندية (۱۷۸/۱) وخلاصة الفتاوى (۲۳۶/۱) نقلاً عن القول الراجح (۱۶۹/۱)-



---

**ثُمَّ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ لَا يَجِبُ فِيمَا دُونَ الْأَرْبَعِينَ مِنَ الْحُمْلَانِ وَفِيمَا دُونَ الثَّلَاثِينَ مِنَ الْعَجَاجِيلِ** بيا په نيز د امام ابويوسف رحمه الله نه دی واجب (زکاة)، په کمو د څلويښتو د ګډو بچوکي .او په کمو د ديرشو غواګانو بچوکي **وَيَجِبُ فِي خَمْسٍ وَعِشْرِينَ مِنَ الْفُصْلَانِ وَاحِدٌ** او واجبيږی (زکاة)، په پنځه ويشتو د اوښانو بچوکي يو (بچے). **ثُمَّ لَا يَجِبُ شَيْءٌ حَتَّى تَبْلُغَ مَبْلَغًا لَوْ كَانَتْ مَسَانَّ يُثَنَّى الْوَاجِبُ** بيا هيڅ نه واجبيږی (په زياتی کي ) تردی چې اورشی هغه تعداد ته.چې که مسنه وی.نو دوې [دوه] به واجب وی **ثُمَّ لَا يَجِبُ شَيْءٌ حَتَّى تَبْلُغَ مَبْلَغًا لَوْ كَانَتْ مَسَانَّ يُثَلَّثُ الْوَاجِبُ** بيا به هيڅ شی واجب نه وی.تردی چې اورشی هغه تعداد ته.چې که مسنه وی.نو درې به واجب وی

---

**تشريح:- تشريح قول ابى يوسف** رحمه الله ❁ **ثم عند ابي يوسف** رحمه الله سره د امام ابويوسف رحمه الله د قول تشريح ده.امام ابويوسف رحمه الله په نيزحملان، عجاجيل،او فصلان کي زکاة واجبيږی.او هم ددې نه واجبيږی.ځکه امام ابويوسف رحمه الله او فرمائيل.چه په بچوکي به زکاة هغه وخت واجب وی.چه کله د نصاب مقدارته اورسی.د څلويښتونه په کم حملان کي او د ديرشونه په کم کي زکاة واجب نه دې.لکه چې څنګه دوی لوئې شی.نو هغه وخت نو د نصاب نه په کم کي زکاة واجب نه وی.او د اوښ فصيل يعنی په بچوکي چې کله پنځه ويشت وی.نو يو بچې واجب دې.په پنځه ويشتو بچوکي د يو بچی وجوب خوټيک دې.يعنی په لوئې اوښانوکي په شپږ ديرشوکي يو بنت لبون، او په شپږ څلويښتو يوه حقه وه.نو د بچو په صورت کي شپږ ديرشو او شپږ څلويښتو څه واجب وی.ددې په ځواب کي صاحب د هدايه رحمه الله او فرمائيل.چه د پنځه ويشتو بچونه په زياتی کي هيڅ واجب نه دی.تر دې چې د بچو تعداد هغه مقدار ته اورسی.چه دا لوئې اوښان شی.نو په دې کي به واجب شئ دوې [دوه] وو.مثلاً په شپږ اويا اوښانوکي دوې [دوه] بنت لبون واجب وی. نو په شپږ اويا بچوکي به دوې [دوه] بچی واجب وی.بيا به د شپږ اويا نه په زياتی کي هيڅ واجب نه وی.تردې چې د بچو تعداد هغه مقدارته اورسی.چه که دا لوئې اوښان وو.نو په دې کي به درې واجب وے.مثلاً په يو سل پنځه څلويښت اوښانوکي درې حقې واجبيږی.نو په يو سل پنځه څلويښت بچوکي به درې بچی واجب وی.دغه ډول په يو سل شپږنوی اوښانوکي څلور حقې واجب دی.نو په يو سل شپږنوی بچوکي به څلور بچی واجب وی.علی هذا القياس.

---

**وَلَا يَجِبُ فِيمَا دُونَ خَمْسٍ وَعِشْرِينَ فِي رِوَايَةٍ** او نه واجبيږی په کمو د پنځه ويشتو (بچو) کي .په يو روايت (د امام ابويوسف رحمه الله) کي **وَعَنْهُ أَنَّهُ يَجِبُ فِي الْخَمْسِ خُمُسُ فَصِيلٍ** او دده (بل روايت دی د امام ابويوسف رحمه الله) نه.چې واجبيږی په پنځو (بچو) کي پنځمه برخه د فصيل **وَفِي الْعَشْرِ خُمُسَا فَصِيلٍ** او په لسوکي د فصيل دوې [دوه] پنځمی حصی **عَلَى هَذَا الِاعْتِبَارِ** هم په دی حساب سره

---

**تشريح:-** ① او د اوښانو د پنځه ويشتو بچونه په کموکي د امام ابويوسف رحمه الله د يو روايت مطابق هيڅ نه واجبيږی. ② او دوهم روايت دا دې.چه په پنځه بچوکي پنځمه برخه واجب وی.په لسو کي دوې [دوه] پنځمې حصې،او په پنځلسوکي درې پنځمې حصې،او په شلوکي څلور پنځمې حصې،او په پنځه ويشتوکي به پوره يو بچې واجب وی.

---

**وَعَنْهُ أَنَّهُ يَنْظُرُ إِلَى قِيمَةِ خُمُسِ فَصِيلٍ وَسَطٍ** او دده (دريم روايت د امام ابويوسف رحمه الله) نه.چې کتلی به شی . قيمت د پنځو بچو پنځمه حصی (د فصيل) ته **وَإِلَى قِيمَةِ شَاةٍ فِي الْخَمْسِ** او قيمت دوزه ته چې اوسط (درجه والا) وی **فَيَجِبُ أَقَلُّهُمَا** نو واجب به وی کم ددی دواړو **وَفِي الْعَشْرِ إِلَى قِيمَةِ شَاتَيْنِ وَإِلَى قِيمَةِ خُمُسَيْ فَصِيلٍ عَلَى هَذَا الِاعْتِبَارِ** او په لسو (بچو) کي قيمت ددوې [دوه] چيلو او قيمت د دوې [دوه] پنځمی برخو د فصيل ته.هم په دی حساب سره .

---

**تشريح:-** د امام ابويوسف رحمه الله نه دريم روايت دا دې.چه پنځه فصلان (د اوښانو د بچو) په صورت کي يو فصيل (د اوښ بچی) قيمت پنځمه حصه،او يو اوسط درجه والا وزه قيمت ته اوګورئ.نو چه کوم په دواړوکي

كم وي هغه به واجب وي. يعنى كه د فصيل قيمت پنځمه برخه كه كمه وي. اود وزه قيمت زيات دي. نو د فصيل قيمت پنځمه برخه به واجب وي. اوكه په عكس وي. نووزه به واجب وي. اود اوبښ دلس بچوپه صورت كي د اوسط درجې دوې [دوه] چيلوقيمت اود فصيل قيمت د دوې [دوه] پنځمې حصومقدارته اوګورئ. كوم چې كم وي. هغه بـه واجب وي. هـم پـه دې پـنځلس اود شلو فصلانوصورتونه قياس كـړئ. مثلاً په پنځلسوفصلانوكي د اوسـط درجې درې چيلوقيمـت اود فـصـيل د قيمـت درې پـنځمې حصومقدارته اوګورئ. كوم چې كم وي. هغه به واجب وي. والله اعلم

## د واجب شوي نوع د عدم وجود په وخت د زكاة حكم

| قَالَ علامه مرغيناني رحمه الله وائي وَمَنْ وَجَبَ عَلَيْهِ سِنٌّ او په چاچې واجب شو مُسن وَلَمْ تُوجَدْ نو بيائي اونه موندو (ذات دمسن). أَخَذَ الْمُصَدِّقُ أَعْلَى مِنْهَا وَرَدَّ الْفَضْلَ خلى به زكاة اخستونكي اعلى ددى نه. واروسته كوي به زياتي أَوْ أَخَذَ دُونَهَا وَأَخَذَ الْفَضْلَ او يادى واخلى كم او وادخلى (قيمت د) زياتي |
|---|

تشريح:- مسئله داده. چه په زكاة كي د اوسط درجه څاروے واجب وي. چه نه ډير كم اونه ډير زيات. نوكه په چا باندې ،بنت لبون، واجب وي. نوعامل او مصدق (زكاة وصولونكے) به نه داعلى درجه والا بنت لبون اخلى. اونه د ادنى درجه والا. بلكه د دواړو ميانه حال به وصول كوي. ځكه چې رسول كريم ﷺ حضرت معاذ رضي الله عنه كله ديمن ګورنرجوړكړو. اووې ليګلو. نو فرمائيلي نې وو. «اياك وكرائم اموالهم» يعنى په زكاة كي د غوره مال اخستونه ځان ساته. (شرح نقايه) اوځكه چې د اوسط درجه په اخستوكي د مال مالك اود فقيرانو دواړو رعايت دي. ځكه چې د اعلى درجه په اخستلوكي د مالك مال ضرر او نقصان دې. او په معمولى اخستلوكي د فقيرانو نقصان دې.

**عند فقدالواجب فى السوائم وصورها** اوس سوال دادې چه په رب المال باندې كوم حيوان (څاروې) واجب شوې دې. كه هغه موجودنه وي. نوڅه اوكړي؟ ① مثلاً بنت لبون واجب وي. اوبنت لبون دده سره نشته. بلكه حقه ده. ② يا حقه واجب وي. خوموجودنه وي بلكه بنت لبون موجودوي ③ يا دوصف په اعتبارسره اوسط درجه والا حيوان (څاروې) موجودنه دې بلكه داعلى درجه والاڅاروې موجود دې. ④ ياد ادنى درجه والاموجوددې نوپه دې صورتونوكي به كوم حيوان (څاروې) واجب وي.

**اعطاء القيمة سوى الواجب واقلها** صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي چه عامل (زكاة وصول كونكې) دې اعلى څاروې واخلى اوزياتي قيمت دې واروسته كړي ① مثلاً داوسط درجه بنت لبون قيمت زر روپئ دى. اود اعلى درجه بنت لبون چې د رب المال سره موجود دې د هغې قيمت پنځلس سوه روپئ دى. نو عامل دې د اعلى درجه بنت لبون واخلى اوپنځه روپئ دې رب المال ته واروسته كړي ② يامثلاً په چاباندې بنت لبون واجب دې ليكن دده سره بنت لبون خوموجودنه دې البته حقه موجود ده. نوعامل لـه پكاردى. چه دې حقه واخلى. اودبنت لبون نه زياتي قيمت واروسته كړي ③ يامثلاً دبنت لبون قيمت زر روپئ دې. اودحقه قيمت پنځلس سوه روپئ دې نوعامل دې حقه واخلى اوپنځه سوه روپئ دې رب المال ته واروسته كړي. ④ يا دې عامل دادنى درجه څاروے واخلى او زياتي (قيمت) دې واخلى مثلاً داوسط درجه بنت لبون چې كوم په رب المال باندې واجب دې د هغې قيمت زر روپئ دې اود ادنى بنت لبون قيمت اته سوه روپئ دې نوعامل دې ادنى درجه والا بنت لبون واخلى اود زياتي دې دوې [دوه] سوه روپئ واخلى ⑤ يامثلاًپه چاحقه واجب ده ليكن دده سره حقه خونشته البته بنت لبون موجودده اودبنت لبون قيمت زر روپئ دې اود حقه قيمت پنځلس سوه روپئ دې. نوعامل دې بنت لبون واخلى اود زياتي دې پنځه روپئ واخلى



| وَهٰذَا يُبْتَنٰى عَلٰى أَنَّ أَخْذَ الْقِيمَةِ فِي بَابِ الزَّكَاةِ جَائِزٌ عِنْدَنَا عَلٰى مَا نَذْكُرُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى او مبنى دى په دى ،چې اخستل د قيمت په حساب د زكاة جائزدى. زمونږ په نيز. په هغه (رواياتو)چې مونږ به ئې ذكركړو انشاء الله |
|---|

تشريح:- **جواز اخذ القيمة فى الزكاة** علامه مرغيناني رحمه الله وائي. چه د متن دامسئله په دې بناء ده. چه زمونږ په نيزد زكاة په باب كي قيمت اخستل جائزدى. اګرچه د امام شافعي رحمه الله په نيز جائزنه دې. مونږبه دا انشاءالله وړاندې ذكركړو.

**الروايتان فى من له خيار** ① د قدوري ذكرشوى عبارت نه ښكاره كيږي. چه په دې باب كي مصدق اوعامل ته اختياردې. چه دې داعلى واخلى. اوزياتي واروسته كړي. يا ادنى واخلى. اود زياتي ترې (قيمت)واخلى. ② خوصحيح داده. چه اختيارهغه چاته دې. په چاچه زكاة واجب دې. ځكه چې اختيار د هغه كس د سهولت لپاره مشروع شوې دى. په چاچه زكاة واجب شوې دې.

| إِلَّا أَنَّ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ لَهُ أَنْ لَا يَأْخُذَ خوپه اول صورت كي ده (زكاة اخستونكي) ته اختيار دى. چې دى (اعلى)وانخلى وَيُطَالِبَ بِعَيْنِ الْوَاجِبِ أَوْ بِقِيمَتِهِ اومطالبه اوكړى د مالك نه. د عين واجب. يا د قيمت ددى لِأَنَّهُ شِرَاءٌ ځكه چې داخو اخستل دى |
|---|

تشريح:- **خيارالمصدق فى صورة وجود الاعلى** دصاحب دهدايه رحمه الله تقريرددې دواړو اقوالونه مختلف دې. ځكه چې موصوف مرحوم فرمائي. چه په اولنى صورت كي چې اعلى څاروي يواخلى. د زياتي واروسته كول دى. نومصدق ته اختياردې. چه دى اعلى وانخلى. بلكه دمالك نه عين واجب يعنى داوسط درجه څاروى مطالبه اوكړى. يامالك داوسط درجه څاروى قيمت وركړى.

**دليله** ددې دليل دادې. چه كه مصدق داعلى درجه حيوان (څاروې) واخلى. او زياتي واروسته كړى. نو ګويا چې مصدق ددې څاروى يوه برخه اخستي ده. اود اخستو لپاره په چا باندې جبرنشي كيدلې. ځكه به په دې صورت كي مصدق ته اختياروى. چه دي اعلى څاروے واخلى. اوزياتي واروسته كړى. ياد مالك نه د اوسط درجه څاروى مطالبه اوكړى. نومالك دې د اوسط درجه حيوان (څاروې) وركړى. يا دې د هغې قيمت وركړى.

| وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي يُجْبَرُ او په دوهم صورت كي به مجبوروللى شي .زكاة وركونكي لِأَنَّهُ لَا بَيْعَ فِيهِ بَلْ هُوَ إِعْطَاءٌ بِالْقِيمَةِ ځكه چې په دى كي خرڅول نشته .بلكه دا خو وركول دى(د زكاة) په (ذريعه د) قيمت. |
|---|

تشريح:- **خيارالمصدق فى صورة وجود الاعلى** اوپه دوهم صورت كي (چه كله مصدق ادنى اخلى اود زياتي قيمت اخلى)مالك ته اختياردې. چه دې ادنى درجه حيوان (څاروې) وركړي. اود زياتي قيمت وركړي. اوپه مقدق به جبركولې شي. چه دې د ادنى درجه حيوان (څاروې) واخلى. اود زياتي قيمت واخلى.

**دليله** ددې دليل دادې. چه د مصدق ادنى اخستل. اودزياتي قيت اخستل، دا دمصدق دا ړخه هيڅ بيع نه ده. بلكه دمال مالك د قيمت په ذريعه زكاة اداكړې دې. اود قيمت اداكولوپه صورت كي مصدق د دې په اخستلومجبوركولې شى. (عنايه)

## د يو جنس په زكاة كي د قيمت وركولوحكم

| وَيَجُوزُ دَفْعُ الْقِيَمِ فِي الزَّكَاةِ عِنْدَنَا اوزمونږ په نزد زكاة كي قيمت وركول دى وَكَذَا فِي الْكَفَّارَاتِ وَصَدَقَةِ الْفِطْرِ وَالْعُشْرِ وَالنَّذْرِ اودغه ډول په كفارو اوصدقه الفطر اوعشر او نذر كي |
|---|

تشريح:- **مسئلة اخذ القيمة فى زكاة الاجناس** په تيروشوو صفحوكي دحيواناتو د زكاة تفصيل ذكرشوي دې. چه په بعضوصورتونوكي وزه واجبيږي. په بعضوكي بنت مخاض، اوپه بعضوكي تبيعه واجبيږي . اوس سوال دادې چه په زكاة كي كوم حيوان (څاروې) واجب شوېدې. مالك كه ددې قيمت وركړى او زكاة ادا كړى. نو آيا دا جائزدې؟

**جواز الاخذ عندالاحناف وامثاله** ددې خبرې په ځواب کې صاحب دقدوري رحمه الله فرمائی. چه زمونږ په نیز په زکاة کې قیمت ورکول جائزدی. دغه ډول په مالی کفاراتو کې قیمت ورکول جائزدی. ① مثلاً دیمین په کفاره کې که څوک (په ځائې ددې چې لسو مسکینانوته خوراك ورکړی، یاکپړې واغوستوی) نغد قیمت ورکړی. نوجائزدې. ② اوهم دغه ډول په صدقة الفطرکې غنم یااوربشې وغیره په ځائې ددې قیمت ورکړی. نوجائزدې. ③ اوهم دغه ډول په عشراونذرکې قیمت ورکول جائزدی. یعنی دده د زمکې په پیداوارکې لسمه برخه واجب شوه. ده ټوله خرڅه کړه. اولسمه برخه قیمت ئې ورکړو. نوجائزدې. ④ دغه ډول که د اشرفو صدقه کولونذر ئې اوکړو. بیائې ددې په برابردرهم صدقه کړل. نوجائزدی.

**المعتبرقیمة البلد ویوم الاداء** دادې په ذهن کې وی. چه قیمت د اداکولود ورځې معتبردې. اود هغه ښار معتبردې. کوم ځائې کې چې مال دې. اوکه په ځنګل کې وی. نوهغه قیمت دې ورکړی. کوم قیمت چې هلته کې نژدې آبادئ کې د داسې څاروو وی.

وَقَالَ الشَّافِعِي: لَا يَجُوزُ اتِّبَاعًا لِلْمَنْصُوصِ كَمَا فِي الْهَدَايَا وَالضَّحَايَا امام شافعی رحمه الله فرمائی. چې جائزدی نه دی دمنصوص پیروی کول، لکه دهدی اود قربانئ په څاروو کې

**تشریح:- عدم جواز دفع القیمة عندالشافعی** امام شافعی رحمه الله فرمائی. چه په زکاة وغیره کې د ،ماوجب علیه، (کوم څاروې چې په ده واجب دې) قیمت اداکول جائزنه دی. بلکه هم هغه حیوان (څاروې) دې اداکړی کوم چې په حدیث کې ذکردې.

**دلیل الشافعی** رحمه الله دامام شافعی رحمه الله دلیل دادې. چه په دې کې دمنصوص اتباع ده. یعنی منصوص خو بنت مخاض، وزه تبیعه وغیره ده. نوهم ددې پیروی واجب ده. اوقیمت ورکول جائزنه دې.

**قیاس الشافعی** رحمه الله لکه په هدې، اوقربانوکې په اتفاق سره دقربانئ نه بغیرقیمت ورکول جائزنه دې. نوهم دغه ډول په زکاة کې هم قیمت ورکول جائزنه دی.

وَلَنَا أَنَّ الْأَمْرَ بِالْأَدَاءِ إِلَى الْفَقِيرِ إِيصَالًا لِلرِّزْقِ الْمَوْعُودِ إِلَيْهِ زمونږ دلیل دادی چې فقیر له درسولو حکم ده ته رزق موعود رسول دی فَيَكُونُ إِبْطَالًا لِقَيْدِ الشَّاةِ نوداد وزه دقید ابطال دی وَصَارَ كَالْجِزْيَةِ نودا دجزیه په مثل شو

**تشریح:- دلیل الاحناف** رحمهم الله زمونږ دلیل دادې. چه دالله تعالی ﴿وَآتُوا الزَّكٰوةَ﴾ په ذریعه سره فقیرانو ته د زکاة ورکولوامر دوی سره هغه وعده پوره کول دی. کومه وعده چې الله تعالی پوره مخلوق ته درزق رسولو ړې ده. لکه چې ارشاددې. ﴿وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللّٰهِ رِزْقُهَا وَيَعْلَمُ مُسْتَقَرَّهَا وَمُسْتَوْدَعَهَا﴾ (الایه) یعنی هیڅ څوك نشته د تللو والا په مځکه باندې مګرپه الله ده دده روزی. مطلب دادې. چه په مځکه تللو والا هرساه لرونکےچه ورته درزق حاجت لاحق وی. هغه ته رزق رسول الله تعالی په خپل فضل سره په خپل ځان لازم کړې دې. څومره قدرې روزی چې دده لپاره مقرردہ. هغه به خامخا رسیږی.

**الاستدلال من الایة** نوبعضوته ئې روزی په دې طریقه اورسوله. چه ددوی لپاره ئې درزق اسباب پیدا کړل. مثلاً ذمینداری، اهنګری (لوهاری)، ملازمت وغیره. اوبعض داسې دی. چه ددوی لپاره ئې درزق اسباب پیدانه کړل. لکه فقیران مسکینان. نودوی ته ئې رزق په دې طریقه اورسولو. چه مالداروته ئې حکم ورکړو چه دوی دالله تعالی په ورکړې شوی مال کې څلوېښتمه برخه دې فقیرانو اومسکینانوته ورکړی. په حدیث کې دی. «خذوا من أغنیاءهم وتردوا إلی فقراءهم» او دالله تعالی ارشاددې. ﴿إِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسٰكِيْنِ﴾ (الایه) او دالله تعالی قول ﴿وَآتُوا الزَّكٰوةَ﴾ دې. نوثابت شو. چه د زکاة مقصد فقیرانوته د دوی موعود (وعده کړې شوې) رزق رسول دی. او رزق په چیلو، غواګانو، او اوښانووغیره څاروو کې منحصر نه دې. بلکه دانسان ډېرحاجتونه اوضرورتونه دی. چه داپه دې څاروونه پوره کیږی. ځکه دوزه قید لګول باطل دی. یعنی په خاص طوردوزه



وغیره ورکولوقید نشته. بلکه که ددې قیمت ورکړې شو. نوهم جائزدې. لکه چې په جزیه کې دقیمت اداکول جائزدی.

بِخِلَافِ الْهَدَايَا لِأَنَّ الْقُرْبَةَ فِيهَا إِرَاقَةُ الدَّمِ وَهُوَ لَا يُعْقَلُ په خلاف د هدی نه چې په دی کې قربت وینه تویول دی کومه چې غیر معقول ده وَوَجْهُ الْقُرْبَةِ فِي الْمُتَنَازَعِ فِيهِ سَدُّ خُلَّةِ الْمُحْتَاجِ اوپه متنازع فیه مسئله کې وجه دقربت دمحتاج حاجت رفع کول دی وَهُوَ مَعْقُولٌ اودا معقول ده.

**حل اللغة** ① **لاتعقل**: د قیاس خلاف ② **المتنازع**: هغه شی په کوم کې چې جګړه وی ③ **سد**: بندول، منع کول

**تشریح:- الجواب من قیاس الشافعی** رحمه الله «بخلاف الهدایا» سره دامام شافعی رحمه الله دقیاس ځواب دې. دځواب حاصل دادې. چه زکاة په هدې اودقربانئ په څاروی باندې قیاس کول درست نه دی. ځکه چې دهدی او قربانئ حیوان (څاروې) قربانی کول اوذبح کول قربت اوعبادت دې. تردې که دذبح کولونه روسته اوددې دصدقه کولونه مخکې که حیوان (څاروې) ضائع شو. نوبه ده هیڅ لازم نه دی. ځکه چې په ذبح کولوسره عبادت ادا شوې دې. اوداذبح کول یعنی وینه تویول غیرمعقول اودقیاس نه خلاف دی. غیرمعقول کیدل یو اردو شاعرهم بیان کړی دی.

## په کومو څاروو کې زکاة نشته؟

وَلَيْسَ فِي الْعَوَامِلِ وَالْحَوَامِلِ وَالْعَلُوفَةِ صَدَقَةٌ اونشته زکاة په کارکونکو او باروړونکو اوپه کور کښې واښه خوړونکو کې

**حل اللغة** ① **اعلف**: پوول (څرول)

**تشریح:- تعریف العوامل والحوامل** عوامل، دعامله جمع ده. هغه څاروې چې دکار لپاره وی. حوامل، د حامله جمع ده. چه دسامان وغیره بار کاوه لپاره وی. علوفه، هغه څاروې چې واړه کال یا دکال زیات برخه کې، اوپه قول دصاحب دهدایه رحمه الله یا نیم کال تړلےوی. اوخوراك ورکړې شوې وی.

**عدم وجوب الزکاة فیها** ① په دې څاروو کې زمونږ او دشوافعو رحمهم الله په نیززکاة نشته.

خِلَافًا لِمَالِكٍ رحمه الله. په خلاف د امام مال صاحب لَهُ ظَوَاهِرُ النُّصُوصِ دده دلیل ظاهری نصوص دی

**تشریح:-** په زیر بحث مسئله کې دامام مالك رحمه الله په نیز زکاة شته.

**دلائل مالک** رحمه الله دامام مالك رحمه الله دلیل ظاهری نصوص دی. ① لکه دالله تعالی قول دې. ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً﴾ په آیت کې د اموال لفظ عامو مالونو ته ګډ دې

**الجواب** د آیت ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً﴾ اطلاق بالاجماع په خپل ظاهرباندې نه دې. تاسو اوګورئ. دا آیت د حولان حول دقید نه هم مطلق دې. حالانکه زکاة دحولان حول نه روسته هم واجب وی. نومعلومه شوه. چه دا آیت د اخذ وجوب بیانولو لپاره دې. یعنی په آیت کې فقط د ،زکاة، وصولولو وجوب بیان شوې دې د دې نه علاوه په ټولوشیزونوکې مجمل دې. اودمجمل تفسیر په حدیث سره کیږی. نوحدیث «لیس فی الحوامل الحدیث» د آیت. ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً﴾ لپاره ناسخ اومبطل نه دې. بلکه دتفسیربیان واقع شوې دې.

② اود نبی کریم ﷺ ارشاد دې. «خمس ذود من الإبل شاة وفی كل ثلاثین من البقر تبیع اوتبیعة وفی أربعین شاة شاة» ③ اوبه یوحدیث کې دی. «خذ من الإبل إبلا» داواړه نصوص مطلق دی. اوددې داطلاق تقاضا داده. چه هرقسمه اوښ، غوا، او وزه کې زکاة فرض دې. که دا عوامل وی، اوکه غیرعوامل، که حوامل وی، اوکه غیرحوامل. علوفه وی، اوکه سائمه وی.

**الجواب**: دا وینا، چه مونږ په اخبارو او حدیثونوکې مطلق په مقید محمول کړې دې. داسې نه ده. چه مونږ مطلق حدیث په مقید باندې محمول کړې دې. بلکه مونږ مقیدمؤخر منلےدے اومطلق مو مقدم. او مؤخرد مقدم لپاره

ناسخ وي. نو مطلق احاديث د مقيد احاديثو ﴿ليس فىالحوامل﴾ په وجه سره منسوخ شوي دي.

وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ اوزموږ دليل دنبی كريم ﷺ {لَيْسَ فِي الْحَوَامِلِ وَالْعَوَامِلِ وَلَا فِي الْبَقَرِ الْمُثِيرَةِ صَدَقَةٌ} (١) چې
په بار وړونكو اوكاركونكو او يوی كونكو كي زكاة نشته

**تشريح:- دلائل الاحناف** ﷺ زمونږ دليل دادې ① چه حضرت علي ﷺ اوفرمائيل. چه د نبی كريم ﷺ ارشاد دې ﴿ليس فىالإبل الحوامل صدقة﴾ يعنى په بار اوړنكواوښانوكي زكاة نشته. ② اوحديث ابن عباس عن النبی ﷺ دې. ﴿ليس فىالبقر المثيرة صدقة﴾ يعنى په سراج كونكی غوايانوكي زكاة نشته. ③ اود جابر ﷺ حديث دې. ﴿عن النبی ﷺ ليس فی البقر المثيرة صدقة﴾ يعنی په سراج كونكی غوايانوكي زكاة نشته.
صاحب دهدايه رحمه الله دا درې واړه په يوحديث كي جمع كړی دی. بهرحال ددې حديثونو نه ثابته شوه. چه په عواملواوحواملوكي زكاة فرض نه وی.

وَلِأَنَّ السَّبَبَ هُوَ الْمَالُ النَّامِي اوځكه چې دزكاة سبب زياتيدونكي مال دی وَدَلِيلُهُ الْإِسَامَةُ أَوْ الْإِعْدَادُ لِلتِّجَارَةِ او د
زياتيدو دليل ئی څريدو ته پرينبودو ياد تجارت لپاره ساتل دی وَلَمْ يُوجَدْ اوغه خبره نشته دی

**تشريح:-** دوهم دليل دادې. چه د زكاة دوجوب سبب دمال نامی كيدل دی. اودامالونه نامی نه دی. ځكه چې دنماء دليل حيوان (څاروی) په مباحوځنګلونوكي پوول (څرول) دی. يادا دتجارت لپاره ساتل دی. اوپه عوامل اوحوامل كي اوپه علوفه كي چونكه په دواړه خبروكي يوه هم موجودنه ده. په دې وجه د زكاة دوجوب سبب منتفی شو. اوهركله چې سبب منتفی شو. نوزكاة به هم منتفی شی.

وَلِأَنَّ فِي الْعَلُوفَةِ تَتَرَاكَمُ الْمُؤْنَةُ اوځكه چې علوفه كي پرله پسی دخرچې بار پريوځی فَيَنْعَدِمُ النَّمَاءُ مَعْنًى نونمی
معدوم ده معنی

**تشريح:-** دريم دليل دادې. چه په علوفه (كوموڅارووته چې په ترلوخوراك وركولې شی) كي دخوراكې دخرچې بوجه وی. يعنی دوی ته ونډه وركولې شی. نومعنی په علوفه كي نمومعدوم شوه. اوهركله چې نمومعدوم شوه. نود زكاة دوجوب سبب موجودنشو. اوهركله چې سبب د زكاة موجودنشو. نوزكاة به هم واجب نه وی.

**السوال** ۞ دلته كي يوسوال دې. هغه داچه امام مالك رحمه الله په خپل دليل كي دكتاب اطلاق ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً﴾ پيش كړې دې. ليكن دوی په خبرواحد ﴿ليس فی الحوامل صدقة﴾ سره ددې اطلاق باطل كړې دې. حالانكه ددوی په نيزپه خبرواحدسره دكتاب اطلاق باطلول اومنسوخ كول جائزنه دی. اوبل داچه دوی مطلق په مقيد باندې محمول كړې دې. په دې طريقه چې دامام مالك رحمه الله داړخه پيش كړې شوې حديث ﴿في خمس ذود من الإبل شاة وفی كل ثلاثين من البقر تبيع اوتبيعة﴾ مطلق دې. په دې كي دعوامل يا غير عوامل هيڅ قيدنشته. په دې سره مطلقاً د اوښانو اوغواګانووغيره د زكاة وجوب ثابتيږی. ليكن دوی دا په ﴿ليس فی الحوامل والعوامل... الحديث﴾ باندې محمول كړې دې. حالانكه ددوی په نيزمطلق په مقيد باندې محمول كول جائزنه دی.

ثُمَّ السَّائِمَةُ هِيَ الَّتِي تَكْتَفِي بِالرَّعْيِ فِي أَكْثَرِ الْحَوْلِ حَتَّى لَوْ عَلَفَهَا نِصْفَ الْحَوْلِ أَوْ أَكْثَرَ كَانَتْ عَلُوفَةً بيا سائمه هغه ده چې

(١) غربه الزيلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم أخرج رواية عن إبن عباس رضي الله عنهما وعزاه إلى معجم الطبرانی وسنن دارقطنی والكامل لإبن عدی (٣٤/٤) ثم أخرج فی المثيرة حديث جابر رضي الله عنه أن النبی ﷺ قال ليس فی المثيرة صدقة وعزاه إلى سنن دارقطنی. نصب الراية ٣٦٨/٢)_



دكال اكثره برخه په بهرڅريدو باندې اكتفاء كوی تردې چې كه نيم كال يا زيات ئی په كور كي خوراك كاوه
نودغه علوفه ده لِأَنَّ الْقَلِيلَ تَابِعٌ لِلْأَكْثَرِ ځكه چې قليل تابع د كثير وی

**تشريح:- تعريف السائمة** ۞ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی. چه سائمه هغه څاروی ته وائی. چه دكال په اكثره برخه باندې پائی. نوكه نيم كال يا اكثركال په ترلوخوراك وركړې شو. نودې ته به علوفه وئيلې شی. داكثركال په صورت كي خوبه علوفه ځكه وی. چه قليل دكثيرتابع وی. نوهركله چې دكال په اكثره برخه كي دې ته په ترلوخوراك وركړې شوې دې. نودكال هغه قليله موده چې په هغې كي ئې په څرن اكتفاء كړې ده. هغه به هم ددې كثيرتابع وی. نوګوياچه پوره كال دې ته په ترلوګيا وركړې شوې ده. اودنيم كال په صورت كي د زكاة دوجوب د سبب په ثبوت كي شك شو. په دې طريقه چې كه په دې نيم كال باندې نظر اوكړې شی. چه په دې كي ده په څرن اكتفاء كړې ده. نوزكاة واجب كيدل پكاردی. اوكه په هغه نيم كال باندې نظراوكړې شی. چه په هغې كي دې ته په كوركي په ترلوګياوركړې شوې ده. نوزكاة واجب كيدل نه دی پكار. نوددې شك په وجه عدم وجوب ته ترجيح وركړې شوه. او اووئيلې شو. چه نيم كال په ترلو دخوراك وركولوپه صورت كي به هم داڅاروې علوفه وی. اوپه دې كي به زكاة واجب نه وی.

## مصدق به منځنی څاروې اخلی

وَلَا يَأْخُذُ الْمُصَدِّقُ خِيَارَ الْمَالِ وَلَا رُذَالَتَهُ وَيَأْخُذُ الْوَسَطَ اونه به اخلی مصدق عمده مال اونه بې كاره بلكه داوسط
درجې به اخلی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځكه چې دنبی كريم ﷺ ارشاد دې {لَا تَأْخُذُوا مِنْ حَزَرَاتِ أَمْوَالِ النَّاسِ} أَيْ كَرَائِمِهَا {وَخُذُوا مِنْ حَوَاشِي أَمْوَالِهِمْ} أَيْ أَوْسَاطِهَا (١) چې د خلګو دمالونو نه حزرات يعنی عمده مال مه اخلئ
اوددوی دمالونونه حواشی يعنی اوسط مال اخلئ

**تشريح:- اخذ الوسط فی صدقة السوائم** ۞ مسئله داده. چه مصدق يعنی زكاة وصول كونكې به نه په اعلی درجه مال اخستلوباندې اصراركوی. اونه به بالكل ردی اومعمولی مال اخلی. بلكه منځنی درجه والا مال به اخلی. يعنی چې داعلی مال نه ادنیٰ وی. اود ادنیٰ مال نه اعلیٰ وی.

**دليله** ۞ ① دليل د نبی ﷺ قول ﴿لاتأخذ من حزرات﴾ دې. حزرات، حزرة جمع ده. معنیٰ ئې ده اعلی او بهترين مال، حواشی، دحاشيه جمع ده. علامه مرغينانی رحمه الله دحاشيه تفسير په وسط سره كړې دې. اوس به مطلب دا وی. چه رسول الله ﷺ داعلی درجه مال اخستلو نه منع فرمائيلې ده. اود منځنی درجه مال اخستلوحكم ئې فرمائيلې دې

وَلِأَنَّ فِيهِ نَظَرًا مِنَ الْجَانِبَيْنِ اوځكه چې پدې كي د جانبينو لحاظ دی

**تشريح:-** عقلی دليل دادې. چه داوسط درجه مال اخستلوكي د زكاة وركونكی اود فقير دواړو رعايت دې. اوپه بنه
مال اخستلوكي صرف دفقيرانو رعايت دې. اوپه بې كاره مال اخستلو كي صرف د زكاة وركونكی رعايت دې. نود دواړو درعايت په نظرسره اوسط درجه مال اخستلو امر شوې دې.

## دكال په مينځ كي د مستفاد مال، زكاة

قَالَ وَمَنْ كَانَ لَهُ نِصَابٌ فَاسْتَفَادَ فِي أَثْنَاءِ الْحَوْلِ مِنْ جِنْسِهِ دچاسره يونصاب وواودكال په درميان كښ

(١) غربه الزيلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل عن عروة عن أبيه أن النبی ﷺ قال لمصدقه ((لاتأخذ من حزرات أنفس الناس شيأ خذ الشارف والبكر وذوات العيب وعزاه إلى سنن الكبری للبيهقی (١٧١/٤ رقم ٧٣١٠)_

ددغې پشان نور مال ورسره حاصل کړي **ضَمَّهُ إِلَيْهِ وَزَكَّاهُ بِهِ** نودغه به د هغې سره يوځائې کړي زکاة به ئې ورکړي

**تشريح:- نوعان مال المستفاد في السوائم**۞صورت دمسئلې دادې چه ديوکس سره ديومال يونصاب وي.مثلاً داوښانو نصاب دې.بيادکال په مينځ کې څه مال نورهم حاصل شو.نوددې مستفاد(حاصل شوي) مال دوې [دوه] قسمونه دي.① ياخوبه دا داصلي يعنې داوښانوجنس وي.② اويابه دغيرجنس څخه وي.مثلاً دده سره د اوښانونصاب دې.اودکال په مينځ کې غواګانې ياوزه حاصلې شوې.

**حكم الصورة الثانية**۞ نوپه دې دوهم صورت کې په اتفاق سره مال مستفاد اصل سره نشي ملاويدلې.بلکه په مال مستفاد به خانله د سرنه دحولان حول اعتباروي.

**تقسيم الصورة الاولى الى صورتين**۞ اوکه اولنې صورت دې.يعنې مال مستفاد د اصل مال د جنس څخه دې.نوددې هم دوې [دوه] صورتونه دي.① څکه چې مال مستفاد به ياهم اصل حاصل شوې وي.مثلاً بچي اومنافع ②او يابه دسبب مقصود نه حاصل شوې وي.

**حكم الصورة الاولى**۞نوپه اول صورت کې بالاجماع مال مستفاد داصل سره ملاوولې شي.اود اصل نصاب حول به دمال مستفاد حول شمارلې شي.دمال مستفاد لپاره دوباره دسرنه دحولان حول اړتيا نشته.

**حكم الصورة الثانية**۞ ①اوکه دوهم صورت دې.مثلاًدچا سره داوښانونصاب دې.اودکال په مينځ کې څه نور اوښان مستفاد شو.ليکن ددې دحاصلولوسبب اخستل دي،ياهبه ده،يامیراث دې.يعنې ده په مينځ کې نوراوښان واخستل،ياچا ده ته هبه کړل،ياپه ميراث کې ملاوشو.نوپه دې صورت کې زموږ په نيزمال مستفاد داصل نصاب سره ملاوولې شي.اوپه اصل نصاب چې کال تيرشي.نود(اصل نصاب اومال مستفاد)پوره مال زکاة به واجب وي.په مال مستفاد باندې دسرنه حولان حول شرط نه دې.بلکه په اصل مال باندې دکال تيريدل کافي دي.

**وَقَالَ الشَّافِعِي: لَا يَضُمُّ** اوشافعي رحمه الله وائي نه به ئې يوځائې کوي **لِأَنَّهُ أَصْلٌ فِي حَقِّ الْمِلْكِ** څکه چې دامستفاد مالي په حق دملك کې اصل دی **فَكَذَا فِي وَظِيفَتِهِ** نو پخپل حکم کې به هم اصل وي

**تشريح:- مذهب الشافعي في حكم الصورة الثانية**۞امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه په مال مستفاد کې دزکاة د وجوب لپاره په مال مستفاد باندې دسرنه.کال تيريدل شرط دی.اوددې ابتداء دمالك کيدلو د وخت نه کيږي.نوکله چې په مال مستفاد باندې پوره يوکال تيرشي.نوپه دې کې به زکاة واجب وي.مال مستفاد که دنصاب په اندازه وي اوکه نه وي.

**دليل الشافعي** رحمه الله۞دامام شافعي رحمه الله دليل دادې.چه دامال مستفاد په مملوك کيدلوکې اصل دې.څکه چې دمال مستفاد مالك په دې سې سبب سره شوې دې.چه هغه غيردې.دهغه سبب نه په کوم سبب سره چې داصل نصاب مالك شوې وو.يعنې داصل نصاب مالك کيدلو سبب بل دې.او دمال مستفاد مالك کيدلوسبب جلا دې.بهرحال مال مستفاد په مملوك کيدلوکې اصل دې.اوکوم مال چې په مملوك کيدلو کې اصل وي.هغه په حکم کې هم اصل وي.نونتيجه داشوه.چه مال مستفاد د زکاة په حکم کې هم اصل دې.دچاتابع نه دې.اوهرکله چې مال مستفاد د زکاة په حکم کې اصل دې.دچاتابع نه دې.نود وجوب زکاة شرط يعنې په حولان حول کې هم دچاتابع نه وي.بلکه په دې به مستقلاً کال تيريدل شرط وي.

**بِخِلَافِ الْأَوْلَادِ وَالْأَرْبَاحِ** په خلاف داولاد او نفع نه **لِأَنَّهَا تَابِعَةٌ فِي الْمِلْكِ حَتَّى مُلِكَتْ بِمِلْكِ الْأَصْلِ** څکه چې دغه په ملك کښې داصل تابع دي.تردې چې دا داصل ملك نه مملوك شوي دي

**تشريح:- تبيعة اولاد السائمة**۞په خلاف د سائمه څاروو د بچو،او ددوی د ذات نه د حاصل شوو منافع، څکه چې دا په مملوك کيدلوکې د اصل تابع دي.تردې چې د اصل مال مالك کيدلوسره ددې هم مالك کيږي.



يعنې په کوم سبب سره چې د اصل مال مالك وي.هم په هغه سبب سره به ددې هم مالك وي. نو چونکه اولاد،او منافع په مملوك کيدلوکې د اصل تابع دي.په دې وجه په حولان حول کې به هم د اصل تابع وي.يعنې هرکله چې په اصل نصاب باندې کال تيرشي.نوپه دې به هم تيرشوې شمارلې شي.په دې د سرنه د کال تيريدلو اړتيا نشته.

**وَلَنَا أَنَّ الْمُجَانَسَةَ هِيَ الْعِلَّةُ فِي الْأَوْلَادِ وَالْأَرْبَاحِ** ددی په کيدو سره امتياز کول مشکل وی **فَيَعْسُرُ اعْتِبَارُ الْحَوْلِ لِكُلِّ مُسْتَفَادٍ**،دهره مستفاد مالی لپاره دکال جلا جلا اعتبار کول مشکل دی **لِأَنَّ عِنْدَهُمَا يَتَعَسَّرُ الْمَيْزُ** حال دادی چې دکال تيريدو شرط داسې نئ ور کاوه لپاره دی .

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله۞زموږ دليل دادې.چه په اولاد اومنافع کې د اصل سره د ملاويدلو علت هم دا جنسيت دې.يعنې اولاد هم چونکه ددې دجنس څخه دې.په مال مستفاد کې توپير کول مشکل دی. څکه چې د مال مستفاد وجود د کثرت اسباب په وجه سره ډيرزيات دې.په دې وجه د هرمستفاد لپاره د څانله کال تيرولو اعتبار کول ډيرمشکل دی.مثلاً ديوکس سره دچيلو نصاب دې.دڅوورځوتيريدلونه روسته څه چيلو بچي راوړل.بياڅو ورځې روسته ئې نورې وزه واخستلې.بيا يوڅو ورځې روسته څه نوروچيلو بچي راوړل.اوس ددې نه روسته دچيلوپه اصل نصاب باندې کال تيرشو.خوپه مينځ کې په مختلفووختونوکې چې کومې وزه مستفادشوې.په دې به باندې حولان حول په يووخت کې نه وي.بلکه پرله پسې به په مختلفووختونوکې کال پوره کيږي.اوس دهرهر مستفاد لپاره څانله څانله دکال تيريدلو اعتبارکول،او توپير کول چې په کومو باندې کله تيرشو.ډيرګران کاردې.خاص طورباندې کله چې دچاسره د درې همو نصاب وي.او دې دکاندار وي.اوهره ورځ ده ته يودرهم حاصليږي.نواوس دهرې ورځې حاصل شوې درې همو باندې څانله څانله دکال پوره کيدلواعتبارکول ډيرمشکل کاردې.اودحولان حول شرط آسانتيا پيدا کاوه لپاره دې.نوکه دهرهرکال مستفاد لپاره دنوی حول شرط اولګولې شي.نودا آسانتيابه په سختۍ کې بدل شي.په دې وجه موږ اووئيلې.چه مال مستفاد که داصل جنس څخه وي.نومال مستفاد به داصل تابع وي.اوپه اصل نصاب باندې دکال تيريدل به په مال مستفاد باندې هم کال تيريدل شمارلې شي.نوپه اصل نصاب باندې دکال تيريدلو نه روسته به په پوره مال زکاة واجب وي.که دا اصل نصاب وي.اوکه مال مستفاد وي.

### په عفو کې د زکاة حکم

**قَالَ وَالزَّكَاةُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ فِي النِّصَابِ دُونَ الْعَفْوِ** وزکاة دشيخينو رحمهما الله په نزد په نصاب کې دی نه که په عفو کې

**تشريح:- الفرق بين النصاب والاصل**۞ دمسئلې دوضاحت نه مخکې داپه ذهن کې کينوئ.چه دمال يو نصاب وي.اويو عفو وي.مثلاً په پنځه اوښانوکې يوه وزه واجبيږي.اوتر نهو پورې هم يوه وزه واجب وي.کله چې پوره نهه اوښان شي.نوپه دې کې به دوې [دوه] وزه واجب وي.نوپنځه اوښان اولس اوښان نصاب دې.ليکن په مينځ کې دشپږونه ترنهوپورې عفوده.دغه ډول مثلاً په پنځه ويشتو اوښانوکې بنت مخاض او په شپږديرشوکې بنت لبون دې.اوددې دواړو په مينځ کې عفوده.

**المذهبان في وجوب الزكاة في العفو**۞اوس په دې اړه اختلاف دې.چه د زکاة تعلق دعفوسره وي او که نه.

①نوامام ابوحنيفه اوامام ابويوسف رحمهما الله فرمائي.چه د زکاة تعلق دنصاب سره وي.دعفوسره نه وي.هم داقول د امام مالك،امام محمد ،اواما شافعي رحمهم الله دې.خودا د امام شافعي رحمه الله قول جديددې.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ فِيهِمَا** امام محمد اوزفر رحمهما الله فرمائي چې په دواړوکې دی

**تشريح:-** امام محمد اوامام زفر رحمهما الله فرمائي.چه زکاة په نصاب اوعفودواړو کې شته.مثلاً دچاسره که نهه اوښان وي.نوپه دې کې يوه وزه واجب ده.خودشيخينو رحمهما الله په نيزدا يوه وزه دپنځواوښانودا څه زکاة

دي.او پاته څلور اوښان عفو دی.ددې سره د زکاة هډوڅه تعلق نشته.او د امام محمد او امام زفر رحمهما الله په نيز داوزه دنهه اوښانو زکاة دي.

> حَتّٰى لَوْهَلَكَ الْعَفْوُوَبَقِيَ النِّصَابُ تردی چې که عفو هلاکه شوه .اونصاب پاته پاتی شی بَقِيَ كُلُّ الْوَاجِبِ عِنْدَأَبِي حَنِيفَةَوَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله (١) نو دشيخينو رحمهما الله په نزد به پوره واجب پاته پاتی کيږی ،وَعِنْدَ مُحَمَّدٍوَزُفَرَيَسْقُطُ بِقَدْرِهِ او دامام محمد او زفر رحمهما الله په نزد ددغی په اندازه ساقطی ږی

تشریح:- **ثمرة الاختلاف فی ضوء المثالین**۞ داختلاف ثمره به په دې مثال کې ښکاره کيږی.① چه ديوکس په ملك کي نهه اوښان دی.اوپه دې يوکال تيرشو.بيا ددې نه څلور اوښان هلاك شو.نو دشيخينو رحمهما الله په نيز پاته پنځوکي به په ده هم يوه وزه واجب وی.او د امام محمداو امام زفر رحمهما الله په نيزبه دوزه دقيمت نهه برخي شی.اوپنځه برخې به په ده واجب وی.اوڅلورحصې به ساقط شی.② يا مثلاً ديوکس په ملك کې اتيا وزه دی.دکال تيريدلو نه روسته په دې کې يوه وزه واجبيږی.ليکن دحولان حول نه روسته څلويښت وزه هلاکې شوې.نود شيخينو رحمهما الله په نيزپاته څلويښت وزه پوره نصاب دې.په دې کې چې کومه يوه وزه وه.هم هغه به واجب وی.او د امام محمداو امام زفر رحمهما الله په نيزچونکه د زکاة تعلق دنصاب اوعفو دواړو سره وی.نوګويا ددوی په نيزيوه وزه په اتيا چيلوکې واجب شوه.او دحولان حول نه روسته نيمې وزه هلاکې شوې.نوددې دمقدار مطابق به نيم واجب هم ساقط شی.يعنی په ده به دوزه نيم قيمت واجب وی.اونيم به ساقط شی.

> لِمُحَمَّدٍوَزُفَرَأَنَّ الزَّكَاةَ وَجَبَتْ شُكْرًالِنِعْمَةِ الْمَالِ وَالْكُلُّ نِعْمَةٌ د امام محمد او امام زفر رحمهما الله دليل دادی چې زکاة دمال د نعمت په شکريه کې واجب دی .او واړه مال نعمت دی

تشریح:- **دليل محمد و زفر** رحمهما الله۞ دامام محمد او امام زفر رحمهما الله دليل دادې.چه زکاة دمال دنعمت شکر ادا کاوه لپاره واجب شوې دې.اومال واړه په ټوله که عفووی اوکه نصاب،نعمت دې.لهذا د زکاة تعلق به پوره مال سره وی.او د زکاة چې کوم مقدار واجب شوې دې.دا دواړه مال شکرانه ده.

**تائيد مذهب محمد** رحمه الله۞ ددې تائيد دصديق اکبر رضی الله عنه د زکاة ارشاداتو نه هم کيږی.ځکه چې دصديق اکبر رضی الله عنه په فرمان کې دی. ﴿فإذا بلغت خمس وعشرين إلى خمس وثلاثين ففيها بنت مخاض﴾ يعنی اوښان چې کله پنځه ويشتو ته اورسی.نود پنځه ديرشوپورې يوبنت مخاض دې. دې معلومه شوه.چه بنت مخاض دپنځه ديرشو اوښانو دارخه زکاة دې.حالانکه په دې کې پنځه ويشت اوښانوته نصاب وائی.اوپاته لسو اوښانوته عفو وائی.دغه ډول نې اوفرمائيل.چه په چيلوکې د څلويښتونه ترشپږشلو پورې کې يوه وزه ده.اوکله چې په شپږشلو باندې زياتی شی.نوتر دوې [دوه] سوه پورې دوې [دوه] وزه دی.بياچه کله په دوې [دوه] سوه باندې زياتی شی.نوتر درې سوه پورې کې درې وزه دی.ددې نه هم ثابتيږی.چه زکاة په نصاب اوعفو دواړو کې وی.صرف په نصاب کې نه وی.

> وَلَهُمَاقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُوَالسَّلَامُ شيخينو رحمهما الله دليل دادی ارشاد دنبی کريم ﷺ دی {فِي خَمْسٍ مِنَ الْإِبِلِ السَّائِمَةِ شَاةٌ(١) چې په هرو پنځو سائمو او اوښانوکې يوه وزه ده وَلَيْسَ فِي الزِّيَادَةِشَيْءٌحَتّٰى تَبْلُغَ عَشْرًا} اوپه پاته کې هيڅ نشته دی .تردی چې لس شی وَهٰكَذَاقَالَ فِي كُلِّ نِصَابٍ او ددوی په هرنصاب کې دا فرمائيلی دی

(١) [...]ل الراجح هو هذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فى التاتارخانية (٢/٢٩٣) والهندية (١/١٨٠) والفقه الإسلامى وأدلته (٢/٨٥٩) [...]ول الراجح (١/١٧٠)۔



تشریح:- **دلائل الشیخین** رحمهما الله۞ ① دشيخينو رحمهما الله دليل دادې.چه رسول اکرم ﷺ فرمائيلی دی.چه ﴿في خمس من الإبل السائمة شاة وليس فى الزيادة شئ حتى بلغ عشرا﴾ يعنی په ځنګل کې څريدونکو پنځو اوښانو کې يوه وزه واجب ده.اوپه زياتی کې هيڅ نشته.تردې چې لس شی.ددې حديث نه صفا ښکاره ده.چه د پنځواوښانو او دلسواوښانوچه کوم نصاب دې.په دې کې زکاة واجب دې.اودپنځه اود لسويه مينځ کې څلور اوښان کوم ته چې عفووائی.په دې کې زکاة واجب نه دې.دغه ډول په هرنصاب کې د عفونه دوجوب نفی فرمائيلې شوې ده.دې نه معلومه شوه.چه د زکاة تعلق دنصاب سره وی.دعفوسره نه وی.

> وَنَفَى الْوُجُوبَ عَنِ الْعَفْوِ دعفوی نه ئی وجوب دنفی اوکړو ،وَلِأَنَّ الْعَفْوَتَبَعٌ لِلنِّصَابِ اوځکه چې عفوه تابع دنصاب ده، فَيُصْرَفُ الْهَلَاكُ أَوَّلًا إِلَى التَّبَعِ نو راګرزولی به شی هلاکت مخکې تابع اړخ ته

تشریح:- عقلی دليل دادې.چه عفو،چونکه دنصاب دوجود نه روسته ثابتيږی.ځکه به عفودنصاب تابع وی. او کوم ځائې چې مال،په اصل او تابع باندې مشتمل وی.اوبيا دهغې نه څه هلاك شی.نوهلاك شوې مال تابع اړخ ته ګرځولې شی.داصل اړخ ته نشی ګرځولې.يعنی دابه وئيلې شی.چه هلاك شوې هغه مال دې. کوم چې تابع دې.هغه مال نه دې هلاك،کوم چې اصل دې.

> كَالرِّبْحِ فِي مَالِ الْمُضَارَبَةِ لکه په مال دمضاربت کې ؛

تشریح:- **نظیره**۞ لکه څنګه چې په مال مضاربت کې نفع،يعنی يوکس چاته شرکت مضاربت باندې د تجارت مال ورکړو.اوپه دې کې نفع اوشوه.مضارب برابرتجارت کولو.چه اچانك څه مال هلاك شو.نودا نقصان په اتفاق سره په رومبئ نفع باندې اچولې شی.په رؤس مال باندې نشی اچولې.يعنی وئيلې شی.چه نفع هلاك شوې ده.رؤس مال نه دې هلاك شوې.

> وَلِهٰذَاقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ: يُصْرَفُ الْهَلَاكُ بَعْدَالْعَفْوِإِلَى النِّصَابِ الْأَخِيرِ يدی وجه امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائيلی دی چې تلف شوی به دعفو نه بعد دنصاب اخير اړخ ته راګرزولی شی ثُمَّ إِلَى الَّذِي يَلِيهِ إِلَى أَنْ يَنْتَهِيَ بيا هغی ته کوم چې ورسره متصل دی تردی چې کمی پوره شی لِأَنَّ الْأَصْلَ هُوَالنِّصَابُ الْأَوَّلُ ځکه چې اصل خو اولنی نصاب دی وَمَازَادَعَلَيْهِ تَابِعٌ اوکوم چې په دی زيات دی هغه تابع دی وَعِنْدَأَبِي يُوسُفَ يُصْرَفُ إِلَى الْعَفْوِأَوَّلًا اوپه نزد دامام يوسف رحمه الله اول به عفو ته راګرزولی شی ثُمَّ إِلَى النِّصَابِ شَائِعًا بيا به نصاب اړخ ته شائع لرلی شی .

تشریح:- په دې وجه امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی.چه څومره قدرې هلاك شو.هغه دعفو نه روسته داخری نصاب اړخ ته ګرځولې شی.يعنی هلاك شوې مال که دعفو په مقدار سره پوره نشی.نودا به په آخری نصاب باندې اچولې شی.که په دې هم پوره نشی.نوکوم نصاب چې ددې سره متصل وی.په هغې به اچولې شی.ځکه چې اصل يعنی نصاب اول خودعفو اړخ ته ګرځولې شی.په دې که پوره نشی.نودپوره نصاب اړخ ته،علی سبيل الشيوع،ګرځولې شی.

**مثاله**۞ ددې مثال دادې.چه ديوکس سره څلويښت اوښان دی.دکال تيريدلو نه روسته ددې نه شل اوښان هلاك شو.نودحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزپه پاته شلواوښانوکې به څلور وزه واجب وی.اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز د يو بنت لبون په شپږديرشوحصوکې به شل برخې واجب وی.اود امام محمد رحمه الله په

(١) غربه الزيلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم ذكرقول ابن الجوزی رحمه الله فی ،التحقيق، أنه قال روی هذا الحديث قاضی أبويعلی وابواسحاق الشيرازی فی كتابيهما أن النبی ﷺ قال ((فی خمس من الإبل شاة ولا شئ من الزيادة حتى تبلغ عشراً) نصب الرأية (٢/٣٧١)۔

نیزدنیم بنت لبون قیمت به واجب وی. دامام محمد رحمة الله علیه دقول وجه داده.چه د زکاة تعلق نصاب اوعفو دواړوسره وی.نوکله چې نیم مال یعني دڅلویښتونه شل اوښان هلاك شو.نونیم زکاة به ساقط شي.اود امام ابویوسف رحمة الله علیه دقول وجه داده.چه دشپږ دیرشو نه روسته څلورخو عفو دي.یعني په هلاك شوی شلو اوښانو کې به څلوراوښان خوپه عفوکې اچولې شي.یعني ونیلې به شي.چه څلوراوښان دعفوهلاك شو.چه دهغې سره د زکاة هیڅ څه تعلق نه وو.لهذا ددې څلورو دهلاکیدلو په وجه به د زکاة هیڅ برخه نه ساقطیږي.او پاته شپاړس به په پوره نصاب باندې اچولې شي.یعني دابه ونیلې شي.چه په شپږدیرشو اوښانو کې یوبنت لبون واجب وی.لیکن هرکله چې شپاړس اوښان هلاك شو.نودبنت لبون په شپږ دیر شو برخو کې شپاړس برخې ساقط شوې.اوشل برخې پاته پاتې شوې.مثلاً دبنت لبون قیمت شپږ دیرش سوه (دري زره اوشپږسوه) روپۍ دې.نو شپاړس سوه روپۍ به ساقط شي.اودوې [دوه] زره روپۍ به پاته پاتې شي.اود امام ابوحنیفه رحمة الله علیه نیز هلاك شوی شلواوښانوکې به څلورخو په عفوکې اچولې شي.یعني ونیلې به شي. چې د عفو څلور اوښان د ۳۷ نه تر ۴۰ پورې هلاك شوی دی.بیا به هلاك شوی د نصاب آخر اړخ ته ګرځولې شي.یعني ونیلې به شي.چه د پنځه ویشتو نه روسته د شپږدیرشو پورې یوولس اوښان هلاك شوی دی.خوچونکه هلاك شوی اوښان اوس هم پوره شوی نه دی.نود نصاب آخرسره چې کوم متصل نصاب دې.هغه اړخ ته به ګرځولې شي.یعني ونیلې به شي.چه د شلو نه روسته د پنځه ویشتو پورنې هلاك شوې دی.اوس هلاك شوی اوښان پوره شوې دی.اوس شل اوښان پاته پاتې شو.نوپه دې کې به څلور وزه واجب وی.ځکه چې په شلو اوښانوکې څلور وزه واجب وی.

## په زور د خوارجو د زکاة اوخراج اخستل

﴿وَإِذَا أَخَذَ الْخَوَارِجُ الْخَرَاجَ وَصَدَقَةَ السَّوَائِمِ﴾ اوکه خارجیانو خراج او دسوائمو زکاة وصول کړو ﴿لَا يُثَنَّى عَلَيْهِمْ﴾ نوددوی څخه به دوباره نشي اخستلی

**تشریح:- تعریف الخوراج**⊛ ① خوارج، دمسلمانانوهغه ډله چې دعادل امام د اطاعت نه اوځي.او دده قتل اودده مال حلال ګنړي.دخوارجوعقیده ده.چه چاوړه یا لویه ګناه اوکړه. نودې کافرشو.او دده قتلول حلال شو.مګرداچه دې توبه اوباسی.اوپه دې استدلال دې آیت سره کوی. ﴿وَمَن يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَإِنَّ لَهُ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا﴾ (الآیه)

**ابتداء الخوارج**⊛ ددې فرقې ابتداء په دې طریقه اوشوه.چه څلورم خلیفه حضرت علی او حضرت امیرمعاویه رضي الله عنهما په مینځ کې اختلاف لرې کاوه لپاره دصحابو رضي الله عنهم یوجماعت حکم اوفیصل مقرر کړې شو.کوم صحابه کرام (هم چې حکم مقررکړې شوی وو.په هغوی کې ابوموسیٰ اشعری رضي الله عنه د حضرت علی رضي الله عنه داړخه حکم وو.اوعمروبن العاص رضي الله عنه د امیرمعاویه رضي الله عنه داړخه حکم مقررو.په دې انتخاب باندې د حضرت علی رضي الله عنه دلښکرنه یوه ډله ددوی دجماعت او اطاعت نه اووتل.اوپه حروراء مقام کې جمع شول. اودا اعلان ئې اوکړو.چه علی رضي الله عنه برحق امام نه دې.ګنی دحکم مقررکول څه اړتیا وو.حضرت علی رضي الله عنه د دوی د پوهولو لپاره حضرت ابن عباس رضي الله عنه اولیګلو.ابن عباس رضي الله عنه دسنت په دلیل سره دوی پوهه کړل.چه د دې په نتیجه کې ډیر نفر پښیمانه په طاعت کې راغلل.اوباقی اعلانیه باغی شول.اوپه نهروان مقام کې جمع شول.اوپه خپلې رائې سره ئې داسې عقیدے اومسئلے راوښکل پیل کړل.چه په دې سره په حضرت علی رضي الله عنه باندې طوفان جوړکړې.حضرت علی رضي الله عنه حضرت امیرمعاویه رضي الله عنه پریښولو .اوپه دې خارجی ډله نهروان باندې ئې پخپله لښکر بیولو (بوتللو).ځکه چې دا خلګ په اسلامی عقائدو او په سنت کې فتنه اچونکې دشمن وو.اودوی ئې په قتلولو سره منتشر(خواره)کړل.خوداکم بخت لرې لرې ملکونو ته لاړل.د هغه وخت نه ددوی په ذات باندې برابر د خارجیانو داړخه ویره کیدلې شوه.آخرکار ابن بلجم په دهوکه سره دوی رضي الله عنه په لمانځه کې شهید کړل.



**صورة المسئلة**⊛ اوس به صورت دمسئله داوی.چه خوارج دعدل والو په ښارونوکې پټ شول.خوارجو په زوره دهغه ځائې دکافرانونه خراج وصول کړلو.اود مسلمانانو نه ئې ددوی دسائمه څاروو زکاة وصول کړلو.بیا عادل امام سره دلښکره ور اورسیدلو.اوپه دوی غالب راغلو.

**عدم اخذ الخراج والزکاة ثانیاً**⊛ نو ددغې خلګو څخه به دوباره خراج اوزکاة اخستلې شی اوکه دوباره به نشي اخستلې.ددې ځواب دادې.چه دوباره به نشي اخستلې.

﴿لِأَنَّ الْإِمَامَ لَمْ يَحْمِهِمْ﴾ ځکه چې امام ددوی ساتنه اونکړو ﴿وَالْجِبَايَةُ بِالْحِمَايَةِ﴾ اومحصول په حمایت باندې وی

**حل اللغة**⊛ ① الجبابة: محصول، تیکس ② الحمایة: ساتنه

**تشریح:- دلیله**⊛ دلیل دادې.چه امام عادل ددی هیڅ ساتنه نه دې کړې.اومحصول واجبیږي د ساتنه په وجه.نوهرکله چې امام عادل دخارجیانو ساتنه اونکړې شو.نوپه دوی به محصول هم واجب نه وی.یعنی چې کافرانوهرکله په اطاعت سره اوسیدل منظورکړل.نودوی زموږ په عهد اوذمه کې دی.ددوی دجان ومال ساتنه کول دخپل ځان اومال په شان فرض دې.بیاخراج دوی نه ځکه اخستلې شي.چه ددې خراج نه دفوج خرچ ورکولې شي.چه ددوی جان ومال دنورو نه محفوظ ساتې.نوهرکله چې امام عادل دوی د خوارجو د زور زیاتۍ نه بچ نکړل.نواوس به دې د خراج مستحق څنګه وی.

**تائیده**⊛ دحضرت عمر رضي الله عنه فرمان هم ددې تائیدکوی.فرمان دادې.چه یوځلې حضرت عمر رضي الله عنه خپل یو عامل ته لیکلی وو. «ان کنت لاتحمهم فلاتجیهم» یعنی که ته ددوی ساتنه نه شې کولې.نوددوی نه محصول هم مه اخله.

﴿وَأَفْتَوا بِأَنْ يُعِيدُوهَا دُونَ الْخَرَاجِ﴾ ﴿فِيمَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ اللَّهِ تَعَالَى﴾ او دوی ته به فتوی ورکولی شي .چې زکاة دی دوباره اداکړی نه خراج.دخپل ځان نه اود الله ﷻ په ما بینځ کې

**تشریح:- اعطاء الزکاة ثانیاً دیانةً**⊛ خوهلته کې به دهغه ځائې خلګ وته فتویٰ داورکولې شي.چه دوی دیانةً «فیما بینهم وبین الله» زکاة دوباره په خپله محتاجوته ورکړی.اوخراج دې دوباره نه ورکوی.

﴿لِأَنَّهُمْ مَصَارِفُ الْخَرَاجِ﴾ ځکه چې خوارج مصرف دخراج دی ﴿لِكَوْنِهِمْ مُقَاتِلَةً﴾ ځکه چې دغه هم جنګیدونکي ټولګی دی

**حل اللغة**⊛ ① مقاتلة: جنګ ② التبعات: تابع

**تشریح:- وجه عدم اعطاء الخراج ثانیاً**⊛ وجه دفرق داده.چه خوارج دخراج مصرف دې.په دې طریقه چې خوارج بالکل کافرنه دی.بلکه مسلمانان دی.البته باغیان دی.اوس که کافران په دې دارالاسلام باندې چور (حمله) اوکړی. نوخوارج هم د اهل عدل مسلمانانوسره شاپه شا دکافرانو د دارالاسلام نه دفع کاوه لپاره قتال کوی. نو هرکله چې خوارج هم دکافرانوپه مقابله کې قتال کوی.نودوی هم دخراج مصرف شو.ځکه چې دخراج مصرف هغه خلګ ه وی.چه دوی ملك دکافرانودحملےنه محفوظ ساتی.اودحمله کونکوسره جنګ کوی. نو هرکله چې دخوارجو دخراج مصرف کیدل ثابت شو.نود خراج دوباره ورکولوفتویٰ به نشي ورکولې.

﴿وَالزَّكَاةُ مَصْرِفُهَا الْفُقَرَاءُ﴾ اود زکاة مصرف فقیران دی ﴿فَلَا يَصْرِفُونَهَا إِلَيْهِمْ﴾ اوخوارج په دوی نه صرف کوی

**تشریح:- وجه اعطاء الزکاة ثانیاً دیانةً**⊛ او پاتې شوه د زکاة مسئله،نود زکاة مصرف فقیران مسلمانان دی.او خوارج دا په فقیرانوباندې نه خرچ کوی.ځکه چې دخوارجو په نیزد اهل عدل قتلول مباح دی.نوکله چې ددوی په نیزد اهل عدل مسلمانانوقتلول مباح دی.نوداسې خلګ په فقیرانو مسلمانانوباندې د زکاة مال څنګه خرچ کوی.حاصل داچه د اهل عدل مسلمانانوزکاة په صحیح مصرف کې خرچ نشو.اوهرکله چې په صحیح مصرف کې خرچ نشو.نو دیانةً به د دوباره اداکولوفتوی ورکولې شي.

﴿وَقِيلَ إِذَا نَوَى بِالدَّفْعِ التَّصَدُّقَ عَلَيْهِمْ﴾ او ویلی شوی دی چې که دور کاوه په وخت کې ئې په دوی دخیرات نیت اوکړو ﴿سَقَطَ﴾

**عَنْهُ** نو دمال څخه به زکاة ساقط شي **وَكَذَا الدُّهُمُ إِلَى كُلِّ جَائِزٍ** داشان هر هغه مال چې چا ظالم له ورکول وي

**تشريح:- قول اعطاء الزكاة**۞فقيه ابوجعفر وائي.چه که مالك خوارجوته د ور كاوه په وخت د زكاة ادا كاوه نيت كړې وي.نودده څخه به زكاة ساقط شي.دغه ډول يوظالم طاقتور ته دوركولو په وخت كه دانيت اوكړي.چه دي فقيرته زكاة وركوم.نودده دذمې څخه به زكاة ساقط شي.د دوباره زكاة اداكولوهيڅ اړتيا نشته.

**لِأَنَّهُمْ بِمَا عَلَيْهِمْ مِنَ التَّبِعَاتِ فُقَرَاءُ** ځكه چې ددوى په ذمه چې كوم حقونه دمسلمانانو دتاوان دى د دغو په وجه سره دغه فقيران دى

**تشريح:- دليله**۞ددې قول دليل دادې.چه په ظالمانوباندې ددوى دظلمونو په وجه د خلګ ودومره حقونه واجب دى. چې كه داظالم خلګ خپل جمع شوې دولت سره خلګ وته اداكول پيل كړي.نوددوى په ملك كې به هيڅ هم پاته پاتې نشي.اودا خلګ به هسې فقيران پاتې شي.نوظالمانوته زكاة وركولوسره به زكاة اداشي.په دې شرط چې دوركولو په وخت ئې د زكاة نيت كړې وي.

**وَالْأَوَّلُ أَحْوَطُ** او اول قول احوط دى .

**تشريح:- الاحتياط فى الاعطاء**۞صاحب دهدايه رحمة الله فرمائي.چه احتياط په اولنى قول كې دې.ځكه چې دوباره پخپله فقيرانوته زكاة وركولوسره به زكاة په يقين سره اداشي.خوآساني په دوهم قول كې ده.والله اعلم

## د بنوتغلب په ماشومانوښځو او سړو د زكاة حكم

**وَلَيْسَ عَلَى الصَّبِيِّ مِنْ بَنِي تَغْلِبَ فِي سَائِمَتِهِ شَيْءٌ** دبنى تغلبو دبچو په سائمه څاروو كښې هيڅ نشته **وَعَلَى الْمَرْأَةِ مِنْهُمْ مَا عَلَى الرَّجُلِ** او په ښځې هغه دى كوم چې ددوى په سړي دى **لِأَنَّ الصُّلْحَ قَدْ جَرَى عَلَى ضِعْفِ مَا يُؤْخَذُ مِنَ الْمُسْلِمِينَ** ځكه چې صلح دهغې په دوچند جارى شوه كومه چې دمسلمانانو نه اخستلى شوه **وَيُؤْخَذُ مِنْ نِسَاءِ الْمُسْلِمِينَ دُونَ صِبْيَانِهِمْ** اودمسلمانانو ښځو نه اخستلى شي نه كه ددوى دماشومانونه.

**تشريح:- من هم بنو تغلب** ۞بنوتغلب دعربونصارو يوقوم دې.چه روم ته نژدې اوسيدل.حضرت عمر رضي الله عنه چې كله په دوى دجزيه مقرر كولواراده اوكړه.نودوى انكار اوكړو.اواوئې وئيل.چه مونږهم عرب يو.مونږله په جزيه اداكولوكې شرم راځي.كه تاسوپه مونږه جزيه مقرر كوئ.نوموږ په اوتختو.اوستاسود دښمنانو خواله به روم ته لاړشو.كه تاسوموږ نه هغه اخلئ.كوم چې دمسلمانانو نه اخستلې شي.يعنى زكاة.او تاسو دغه په موږ دوچند كړئ.نو بياهم موږ راضى يو.حضرت عمر رضي الله عنه دصحابه كرامو رضي الله عنهم سره مشوره اوكړه.په دې ئې صلح اوكړه .اواوئې فرمائيل. ﴿هذه جزية وسموها ماشئتم﴾ يعنى جزيه هم داده.تاسوددې چې څه غواړئ.نوم كيږدئ.نوپه دې صلح اوشوه.چه ددوى څخه به دمسلمانانو د زكاة دوچند اخستلې شي.يعنى دمسلمانانونه لس فيصد اخستلې شي.نوددوى څخه به پنځه فيصد اخستلې شي.دحضرت عمر رضي الله عنه نه روسته بياحضرت عثمان رضي الله عنه هم دې صلح نه څه تعارض اونكړو.په دې وجه دا صلح پوره امت لپاره لازم شوه.

**عدم الاخذ من صبيان بنى تغلب**۞اوس مسئله داشوه.چه د بنوتغلب د نابالغه ماشومانو په سائمه څاروو كې زكاة واجب نه دې.البته ددوى په ښځوهم هغه واجب دې.كوم چې ددوى په سړو واجب دې.ځكه چې بنوتغلب سره په دې خبره صلح شوې ده.چه دمسلمانانوڅه اخستلې شي.د بنوتغلب څخه به ددې دوچند اخستلې شي.نو چونكه د مسلمانانو ماشومانونه هيڅ نشى اخستلې.په دې وجه به ددوى د ماشومانو نـه هم نشى اخستلې.

**الروايتان فى الاخذ عن نساءهم**۞ ① اوچونكه دمسلمانانوښځونه اخستلې شي.نوددوى دښځو څخه به هم اخستلې شي.خو ددوى د ښځونه به هغه اخستلې شي.كوم چې ددوى د سړو نـه اخستلې شي.يعنى په مسلمان چې څه واجب دې د هغې دوچند به اخستلې شي.② اوحسن بن زياد رحمة الله دحضرت امام ابوحنيفه



رحمة الله نه روايت نقل كړې دې.چه د بنوتغلب د ښځونه به هم نشى اخستلې.هم دا د امام شافعى او امام زفر رحمهما الله قول هم دې.ځكه چې دا حقيقتاً جزيه ده.او په ښځوجزيه نه وى.

## د زكاة د وجوب نه روسته د مال هلاكت

**وَإِنْ هَلَكَ الْمَالُ بَعْدَ وُجُوبِ الزَّكَاةِ** كه هلاك شو مال بعد دوجوب د زكاة نه **سَقَطَتِ الزَّكَاةُ** نوزكاة به صاقط شى

**تشريح:- صورة المسئلة**۞صورت د مسئلې دادې.چه د زكاة د وجوب نه روسته مال بغيرد تعدې نه هلاك شى.

**المذهبان فى سقوط الزكاة**۞ ① نو زموږ په نيز زكاة هم ساقط شو.هم دا قول د امام محمد رحمة الله دې.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَضْمَنُ إِذَا هَلَكَ بَعْدَ التَّمَكُّنِ مِنَ الْأَدَاءِ** امام شافعى رحمة الله وائې چې ضامن به وى كه په ادا كاوه دقابو موندو نه بعد مال تلف شوى وو **لِأَنَّ الْوَاجِبَ فِي الذِّمَّةِ فَصَارَ كَصَدَقَةِ الْفِطْرِ** ځكه چې زكاة واجب فى الذمه وى دصدقى دفطر پشان شو

**تشريح:-** امام شافعى رحمة الله فرمائى.چه كه په زكاة اداكولوباندې دقدرت درلودى نه روسته مال هلاك رحمة الله شو .نوزكاة به نه ساقطيږى.بلكه د زكاة په اندازه به په ده باندې ضمان واجب وى.او په زكاة اداكولوباندې قدرت دادې.چه صاحب دمال دحولان حول نه روسته د زكاة مستحق موندونكى باندې كامياب شوې وى. كه دطلب نه روسته كامياب شوې وى.اوكه د طلب نه بغير.

**دلائل الشافعى رحمة الله** ۞ ① دامام شافعى رحمة الله دليل دادې.چه زكاة په ذمه واجب وى.اودچا په ذمه چې څه څيز واجب وى.هغه دعجز عن الاداء په وجه دهغې نه نشى خلاصيدلې.لكه صدقة الفطر،حج، اود بندګانو ديون(قرضونه).يعنى كه په چاباندې صدقة الفطرواجب وى.ياحج واجب وى.يادا كس مديون وو.بيادده واړه مال هلاك شو.نودده دذمې نه صدقة الفطر،حج، اود بندګانو ديون نه ساقطيږى.دغه ډول د زكاة واجبيدلو نه روسته كه پوره مال هلاك شو.نودده دذمې څخه به زكاة نه ساقطيږى.

**وَلِأَنَّهُ مَنَعَهُ بَعْدَ الطَّلَبِ** اوځكه چې ده دطلب نه روسته ساتلى دى **فَصَارَ كَالِاسْتِهْلَاكِ** نوپخپله د هلاكونكو پشان شو

**تشريح:-** دوهم دليل دادې.چه زكاة دالله تعالى حق دې.اوبه ادا باندې دقدرت موندلو نه روسته دخطاب په ذريعه الله تعالىٰ دا طلب كړې هم دې. (دالله تعالى دخطاب نـه تقديرى خطاب مراددې ) خوده ادا نكړو.نوددې مال هلاكيدل به داسې وى.لكه چې دصاحب حق دطلب كاوه نه روسته ددې منع كول.اود صاحب حق دغوښتلونه روسته منع كول، ضمان واجبوى.لكه څنګه چې په تعدى سره هلاكول ضمان واجبوى.

**وَلَنَا أَنَّ الْوَاجِبَ جُزْءٌ مِنَ النِّصَابِ تَحْقِيقًا لِلتَّيْسِيرِ** زموږ دليل دادى چې واجب خود نصاب يوجزء دى دآسانئ د ور كاوه لپاره **فَيَسْقُطُ بِهَلَاكِ مَحَلِّهِ** نودا جز دخپل محل په هلاكيدو سره ساقط شو

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ۞زموږ دليل دادې.چه زكاة په ذمه واجب نه وى.بلكه په عين مال كې واجب وى.يعنى زكاة دنصاب يوجزء دې.ځكه چې رسول الله ﷺ فرمائيلى دى.چه ﴿فىكل أربعين شاة شاة﴾ په دې قول كې د ،فى، كلمه ده.اوكلمه د ،فى، په جزئيت باندې دلالت كوى.يعنى په څلويښتو چيلوكې يوه وزه ده.ددې دامطلب هرګز نه دې.چه دڅلويښتو چيلوزكاة دادې.چه يوه وزه ددې نه علاوه وركړې.بلكه مطلب دادې.چه هم ددې څلويښتونه يوه چيلۍ چې هم ددې څلويښتوچيلو جزء دې.هم دا وركړه.اود نصاب يوجزء زكاة مقرركول د آسانۍ لپاره دى.ځكه چې د نصاب يوجزء اوښكل، د انسان په قدرت كې وى.بهرحال داخبره ثابته شوه.چه زكاة د مال نصاب يوجزء دې.اوداجزء په خپله مال كې موجود دې.نودا جزء دخپل ځائې په هلاكيدلو سره ساقط شو.ځكه چې هركله واړه مال هلاك شو.نودا كس ددې جزء په اوښكلو باندې قادر پاتې نشو.اوهركله چې قادر پاتې نشو.نوپه ده به واجب هم نه وى. بلكه ساقط به وى.

**كَدَفْعِ الْعَبْدِ بِالْجِنَايَةِ يَسْقُطُ بِهَلَاكِهِ** لکه دمجرم غلام ورکول چې دده په هلاکیدو سره ساقطیږي

**تشريح:- نظيره**۞او دا بالکل داسې ده.لکه چې دیوکس غلام څوك په خطا سره قتل کړي.نوداحکم دې.چه قاتل غلام دې د مقتول ولی ته ورکړې شي.یا دې ددې فدیه ورکړې شي.اومالك دا منظورهم کړي.بیاد سپارلو نه مخکې هغه قاتل غلام مړشو.نو اوس داورکول ساقط شو.یعنې په مالك به هیڅ شی واجب نه وي. نو هرکله چې داثابت شو.چه زکاة په ذمه واجب نه وي.بلکه په عین مال کې واجب وي.اوصدقة الفطر وغیره په ذمه واجب وي.نو زکاة په صدقة الفطر وغیره باندې قیاس کول ټیك نه دی.

**وَالْمُسْتَحِقُّ فَقِيرٌ يُعَيِّنُهُ الْمَالِكُ** او مستحق هغه فقیردی کوم لره چې مالك معیبت کړي **وَلَمْ يَتَحَقَّقْ مِنْهُ الطَّلَبُ** اود دده اړخه طلب نه دی موندی شوی

**تشريح:- الجواب عن الدليل الثاني للشافعي** رحمه الله ۞«والمستحق فقير بعينه المالك» سره د امام شافعي رحمه الله د دوهم دلیل ځواب دې.دځواب حاصل دادې.چه د زکاة مسحق هرفقیرنه وي.بلکه هغه فقیروي.چه مالك ئې متعین کړي. اومالك تراوسه پورې څوك متعین کړې نه دې.نودده داړخه طلب کول هم متحقق نشو. او هرکله چې طلب اونه موندې شو.نو دطلب نه روسته منع کول هم اونه موندې شو.اوهرکله چې منع کول اونه موندې شو.نود مال کیدلو په صورت کې به ضمان هم واجب نه وي.

**وَبَعْدَ طَلَبِ السَّاعِي** اود طلب دساعی نه بعد **قِيلَ يَضْمَنُ** وئیلی شوی دی چې ضامن به وي **وَقِيلَ لَا يَضْمَنُ** وویلی شوی دی چې ضامن به نه وي **لِانْعِدَامِ التَّفْوِيتِ** د وجې د نشتوالی د فوت کولو نه

**تشريح:- المذهبان في الضمان في صورة طلب الزكاة**۞پاتې شوه داخبره چې که ساعی، یعنی زکاة وصول کونکی زکاة اوغوښتلو.او مالك ورنکړو.تردې چې پوره مال هلاك شو.① نو شیخ ابوالحسن کرخي رحمه الله فرمائی.چه داکس به د زکاة ضامن وي.تردې چې هرکله ده ته مال په لاس راشی.نودا تاوان به اداکوی.② اومشائخ رحمهم الله د ماوراء النهر فرمائی.چه ضامن به نه وي.

**دليل المذهب الاول**۞دشیخ ابوالحسن کرخي رحمه الله دلیل دادې.چه ساعی چونکه د زکاة وصول کاوه لپاره متعین دې.دده دغوښتلو باوجود ده منع کړو.نودده دامنع کول به فوت کول او هلاکول وي.د فوت کولو او هلاکاوه په صورت کې چونکه د زکاة ضمان راځي.په دې وجه په دې صورت کې به په ده د زکاة تاوان واجب وي.

**دليل المذهب الثاني**۞د ماوراء النهرد مشائخو رحمهم الله دلیل دادې.چه زکاة دور کاوه نه منع کول تفویت (فوت کول) نه دې.ځکه ممکن ده.چه دده منع کول په بل څه ځائې کې دورکولوپه اراده وي.نو هرکله چې زکاة دور کاوه نه منع کول تفویت نه دې.نودې به ضامن هم نه وي.

**وَفِي الِاسْتِهْلَاكِ وُجِدَ التَّعَدِّي** ځکه چې پخپله هلاکول نه وي اود استهلاك په صورت کې تعدی اوموندی شوه

**تشريح:- الجواب عن قياس الشافعي** رحمه الله ۞«وفي الإستهلاك......إلخ» سره د امام شافعي رحمه الله دقیاس ځواب دې. د ځواب حاصل دادې.چه داستهلاك په صورت کې چونکه د مالك داړخه تعدی اوموندې شوه.په دې وجه به جبراً په ده ضمان واجب کولې شي.

**وَفِي هَلَاكِ الْبَعْضِ يَسْقُطُ بِقَدْرِهِ اعْتِبَارًا لَهُ بِالْكُلِّ** اود بعضو په هلاکیدوکې ددی قدر به ساقط شی په کل باندی قیاس کول.

**تشريح:- سقوط الزكاة في صورة هلاك البعض**۞صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه که بعض مال هلاك شو.اوڅه پاته



دې.نود هلاك شوی به زکاة ساقط شی.اوپه پاته کې به زکاة واجب وي.ځکه چې بعض به په کل قیاس کولې شي.نوهرکله چې دکل مال هلاکیدلو په صورت کې پوره زکاة ساقطیږي.نود بعض مال هلاکیدلو په صورت کې به هم ددې په اندازه زکاة ساقطیږي.

## دوړاندې نه د زکاة ورکولو حکم

**وَإِنْ قَدَّمَ الزَّكَاةَ عَلَى الْحَوْلِ وَهُوَ مَالِكٌ لِلنِّصَابِ جَازَ** که دکال نه مخکې ئې زکاة ورکړو داشی حال کې چې دی مالك دنصاب وو نوداهم جائز دی **لِأَنَّهُ أَدَّى بَعْدَ سَبَبِ الْوُجُوبِ فَيَجُوزُ كَمَا إِذَا كَفَّرَ بَعْدَ الْجُرْحِ** ځکه چې ده دسبب دوجوب نه بعد اداکړو نوجائز به وي لکه چې کفاره ورکړي د زخمی کولونه بعد **وَفِيهِ خِلَافُ مَالِكٍ** رحمه الله اوپدی کې خلاف دمالك دی **وَيَجُوزُ التَّعْجِيلُ لِأَكْثَرَ مِنْ سَنَةٍ لِوُجُودِ السَّبَبِ** اودیو کال نه دزیات لپاره تقدیم دزکاة هم جائز د دجود دسبب په وجه **وَيَجُوزُ لِنُصُبٍ إِذَا كَانَ فِي مِلْكِهِ نِصَابٌ وَاحِدٌ خِلَافًا لِزُفَرَ** رحمه الله او د ډیرونصابونو لپاره جائز دی کله چې دده په ملك کې یونصاب وي.په خلاف دامام زفر رحمه الله **لِأَنَّ النِّصَابَ الْأَوَّلَ هُوَ الْأَصْلُ فِي السَّبَبِيَّةِ** ځکه چې ړومنی نصاب اصل دی په سبب کیدوکې **وَالزَّائِدُ عَلَيْهِ تَابِعٌ لَهُ، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ** او څه چې پدی زیات وی دغه داول نصاب تابع وی والله اعلم

**تشريح:- المذهبان في تقديم الزكاة**۞ ①مسئله داده.چه زمونږ په نیزدنصاب مالك له دحولان حول نه وړاندې زکاة ادکول جائزدی.هم دا دامام شافعي او امام محمد رحمه الله قول دې.② اود امام مالك رحمه الله په نیز جائز نه دې.

**۩دليل مالك** رحمه الله ۞د امام مالك رحمه الله دلیل دادې.چه حولان حول شرط دې.لکه څنګه چې نصاب شرط دې.اود مشروط په شرط باندې مقدم کول جائزنه دی.په دې وجه دحولان حول نه وړاندې د زکاة مقدم کول جائزنه دی.

**۩دليل الاحناف** رحمهم الله ۞زمونږ دلیل دادې.چه یوکس سبب دوجوب(نصاب) نه روسته زکاة اداکړې دې. اود وجوب دسبب نه روسته اداکول جائزدی.لکه چې یوکس یومسلمان په خطاء سره په ګولۍ اولی.او داسې ئې ذخمی کړي.چه د ژوند امید ئې پاتې نشی.نوبه قتل خطاء کې یوغلام آزادول پکار دی.خوکه دائې د مجروح دمرګ نه وړاندې آذاد کړو نوجائزدی.ځکه چې دقتل سبب موندلےشوې دې.دغه ډول که چاپه اول وخت کې لمونځ اداکړو.نوجائزدي.ځکه چې لمونځ دسبب یعنی د وخت نه روسته اوشو.

**۩الجواب عن دليل مالك** رحمه الله ۞د امام مالك رحمه الله د دلیل ځواب دادې.چه حولان حول د وجوب ادا شرط دې.د جواز ادا شرط نه دې.یعنی دحولان حول نه روسته زکاة اداکول واجبیږي.اوددې نه مخکې نه واجبیږي.دامطلب نه دې.چه دحولان حول نه روسته زکاة اداکول جائزکیږي.اوددې نه وړاندې جائزنه وي.

**۩جواز تقديم زكاة الاكثرمن عام واحد**۞صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه دیوکال نه په زیات باندې هم زکاة مقدم کول جائزدی.یعنی که څوك سړے دڅوکالو زکاة وړاندې ورکړي.نوپه دې کې هیڅ باك نشته.ځکه چې سبب یعنی نصاب کامل موجوددې.

**۩دليله**۞حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائیلیدی.چه نبی کریم ﷺ دحضرت عباس رضي الله عنه نه د دوې [دوه] کالو زکاة وړاندې قبول کړې وو.ددې حدیث نه هم ښکاره کیږي.چه دڅوکالوزکاة وړاندې ورکاوه کې هیڅ باك نشته دې.

**۩المذهبان في تقديم زكاة الانصاب المختلفة قبل تكميل نصابها**۞ ①اوکه دچاپه ملك کې هم یونصاب وي. خو ده دڅونصابونو زکاة وړاندې ورکړو.نوجائزدې.② په دې کې دامام زفر رحمه الله اختلاف دې.مثلاً د یوکس سره پنځه اوښان وي.خوده دحولان حول نه وړاندې څلور وزه په زکاة کې ورکړې.بیاکال پوره کیدو پوره کیدوکي

دده په ملك كي شل اوښان شو.نوزموږ په نيز دا څلورويشت دګل يعنى دشلو اوښانو دارخه اداشوې.اود امام زفر رحمه الله په نيز صرف دپنځواوښانو زكاة اداشو.د پاته پنځلسو(اوښانو) زكاة دوباره اداكول ضروري دى.

**دليل زفر رحمه الله**۞د امام زفر رحمه الله دليل دادې.چه هر نصاب د زكاة په حق كي اصل بذاته دې.نوپه نصاب ثاني باندې زكاة مقدم كول داسې دى.لكه چې نصاب په اول باندې مقدم كول.اود زكاة ادا كاوه په وخت چونكه نصاب ثاني موجود نه دې.په دې وجه په دې باندې زكاة مقدم كول په حقيقت كي حكم په سبب باندې مقدم كول دى.اودا جائزنه دى.په دې وجه موږ وايو.چه كوم نصاب موجوددې.د هغې زكاة مقدم كول خو جائزدى.خوچه كوم موجود نه دې.دهغې زكاة مقدم كول جائزنه دى.

**دليل جمهورالاحناف رحمهم الله**۞زموږ دليل دادې.چه په سبب كيدلوكي نصاب اول اصل دې.اوكوم چې په دې زياتى دې.هغه ددې تابع دې.اود اصل په موجوديدلوسره ددې تابع هم موجود شمارلې شى. نو وئيلې به شى.چه د زكاة اداكولوپه وخت هركله نصاب اول موجوددې.نو دوهم نصاب كوم چې ددې تابع دې.هغه هم موجوددې.اوهركله چې دوهم نصاب د زكاة اداكولوپه وخت موجوددې.نو﴿تقديم حكم على السبب﴾هم نه لازميږي.

**نظيره**۞اودا داسې ده.لكه چې يوكس سره په پيل كي يونصاب دې.بيادكال په آخركي نور نصابونه حاصل شو.بيا په اولنى نصاب باندې كال پوره شو.اوپه پاته نصابونو باندې پوره نشو.نوهم دابه وئيلې شى.چه ګويا په ټولونصابونوباندې كال پوره شو.اود مجموعه نه زكاة اداكول واجب شو.نوهم دغه ډول نصاب ثاني ته دتقديم زكاة په حق كي دكال په اول كي موجود شمارلےشى.والله تعالى اعلم.

## باب زكاة المال

ژباړه:- (دا) باب د مال د زكاة ( په بيان كي ) دې.

**تشريح:- الربط بما قبله**۞ دعربو په نيزسانمه څاروى چونكه قيمتى مال شمارلےشى.په دې وجه دامقدم كړې شو.اوس ددې د بيان نه د فارغيدو نه روسته د نورو مالونو د زكاة ذكردې.

**تعريف المال**۞امام محمد رحمه الله فرمائى.چه مال هرهغه څيزدې.چه دهغې خلګ مالك جوړيدلې شى.مثلاً درې هم، دنانير، غنم،اوربشے،څاروى، كپړےوغيره.خودلته كي دمال نه مراد دسوائمونه علاوه دى.

**وجه تقديم الفضة على الذهب**۞د سپينو زرو زكاة وړاندې بيان شوې دې.اود سروزرو روسته.ځكه چې د رسول الله ﷺ په فرمان كي د سپينو زرود زكاة ذكر وړاندې دې.او دسرو زرو د زكاة روسته.دويمه وجه دا ده.چه سپين زرچونكه هرچا سره ملاويږي.په دې وجه ئې دا مقدم كړو.

### دسپينو زرو د زكاة بيان

فَصْلٌ فِي الْفِضَّةِ:فصل دى دسپينو دزكاة په بيان كښى لَيْسَ فِيمَا دُونَ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ صَدَقَةٌ ددوې [دوه] سوه درهمو نه په كموكي زكاة نشته دى لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځكه چې دنبى كريم ﷺ ارشاد دى لَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسِ أَوَاقٍ صَدَقَةٌ( [1] ) چې دپنځو اوقيو نه په كموكي زكاة نشته وَالْأُوقِيَّةُ أَرْبَعُونَ دِرْهَمًا( [2] ) اويوه اوقيه څلويښت درهمه ده فَإِذَا كَانَتْ مِائَتَيْنِ وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ نوهركله چې دوې [دوه] سوه درهمه وى اويوكال پرى تير شى فَفِيهَا خَمْسَةُ دَرَاهِمَ نوپه دغه كي پنځه درهمه دى

[1] من حديث أبى سعيدالخدرى رضي الله عنه أخرجه البخارى فى الزكاة باب ٤٢ رقم ١٤٥٩ ومسلم فى الزكاة رقم ١-٥ وأبوداود فى الزكاة باب ٢ رقم ١٥٥٨)

[2] قال الزيلعى رحمه الله يحتمل أن يكون هذا من تمام الحديث ويحتمل أن يكون من كلام المنصف رحمه الله (نصب الراية ٣٧٣/٢)_



**حل اللغة معنى الاوقية**۞اوقيه، د وقايه نه ماخوذ دې.دده معنى ده ساتنه كول.اوقيه چونكه دخپل مالك دفقيرئ او محتاجئ نه ساتنه كوى.په دې وجه دې ته اوقيه وئيلې شى.ددې جمع اواق راځى.يو اوقيه د څلويښت درهمو وى.

**تشريح:- نصاب الفضة**۞ علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه د سپينو زرو نصاب دوې [دوه] سوه درهمه دى.د دوې [دوه] سوه درهمو نه په كم كي زكاة واجب نه دې.خوكه سپين زر دوې [دوه] سوه درهمه وى.اوپه دې كال هم تيرشوې وى.نوپه دې كي به د پنځو درهمو برابرسپين زر واجب وى.

لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَتَبَ إِلَى مُعَاذٍ رضي الله عنه ځكه چې نبى كريم ﷺ ليكلى وو معاذ رضي الله عنه ته أَنْ خُذْ مِنْ كُلِّ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ خَمْسَةَ دَرَاهِمَ،چې ته اخله دهرو دوو سوؤ درهمو نه پنځه درهمه وَمِنْ كُلِّ عِشْرِينَ مِثْقَالًا مِنْ ذَهَبٍ نِصْفَ مِثْقَالٍ( [1] ) اودهرر شلو مثقالو نه د سروزرو نيم مثقال (اخله).

**تشريح:- دليله**۞دليل دادې.چه رسول الله ﷺ حضرت معاويه رضي الله عنه ته ليكلى وو.چه دهردوې [دوه] سوه درهمو نه پنځه درهمه اخله.اود شلومثقالو نه نيم مثقال اخله.

### د دوو سوو روپونه په زياتوكي زكاة

قَالَ وَلَا شَيْءَ فِي الزِّيَادَةِ حَتَّى تَبْلُغَ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا اوپه زياتى كي هيڅ نشته دى تردى چې څلويښتوته اورسى فَيَكُونُ فِيهَا دِرْهَمٌ نو په څلويښتو كي به يو درهم وى ثُمَّ فِي كُلِّ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا دِرْهَمٌ وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله( [2] ) بيا په هرو څلويښتو كښى به يودرهم وى.دا امام ابوحنيفه رحمه الله په نزدده

**تشريح:- المذهبان فى زكاة الزائد على النصاب**۞ ①صاحب دقدورى رحمه الله فرمائى.چه كه په دوې [دوه] سوه درهمو باندې زياتوالے اوشى.نوپه زياتوالى كي به زكاة واجب نه وى.خوكه دزياتوالى مقدار څلويښتو درهموته اورسى.(نوبيا به پكي زكاة واجب وى)نوكه دوې [دوه] سوه څلويښت درهمه شى.نوپه دې كي به شپږ درهمه واجب وى.بيابه په هرڅلويښتوباندې يو درهم واجب وى.دا دحضرت امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله مذهب دې.

وَقَالَا: مَا زَادَ عَلَى الْمِائَتَيْنِ صاحبين رحمهما الله فرمائى چې كوم په دوې [دوه] سوه زيات شى فَزَكَاتُهُ بِحِسَابِهِ نوپه دغه حساب ئې زكاة دى وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رحمه الله اودا قول د امام شافعى رحمه الله دى

**تشريح:-** صاحبين فرمائى.چه مطلقا په زياتوالى كي زكاة واجب دې.كه دا زياتوالےكم وى اوكه ډير.نوكه په دوې [دوه] سوه درهموباندې يو درهم زياتى شو.نود پنځو درهمو نه علاوه به ديو درهم په څلويښتوحصوكي يوه برخه بله هم واجب وى.هم دا دامام شافعى رحمه الله قول دې.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي حَدِيثِ عَلِيٍّ ځكه چې دنبى كريم ﷺ ارشاد دى دحضرت على رضي الله عنه حديث كښى { وَمَا زَادَ عَلَى الْمِائَتَيْنِ فَبِحِسَابِهِ( [3] ) چې كوم په دوؤ سوؤ زيات نو پدغى حساب سره ئى وى وَلِأَنَّ الزَّكَاةَ وَجَبَتْ شُكْرًا لِنِعْمَةِ الْمَالِ او دا ځكه چې زكاة دمال دنعمت په شكرانه كښ واجب دى

[1] أخرجه الدارقطنى فى سننه (٩٥/٢)_

[2] القول الراجح هو هذا قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى فتح القدير(١٦٠\٢) والدرى لمختار(٣٤\٢) والهندية (١٧٩\١) والفقه الإسلامى وأدلته (٧٦٦\٢) نقلاً عن القول الراجح (١٧١\١)_

[3] قال الزيلعى رحمه الله أخرجه أبوداود (نصب الرأية ٣٧٥/٢)_

**تشريح:- دلائل الصاحبين** ﷺ ① دصاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه دعلي ﷺ دحديث په آخركي دي.چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل.چه په دوې [دوه] سوه درهمه څه هم زياتي وي.دهغې زكاة به دهغې په حساب سره اداكولې شي. ② دوهم دليل دادې.چه زكاة د نعمتِ مال دشكر ادا كاوه لپاره واجبيږي.اوپه دوې [دوه] سوه درهمو باندې چې څومره هم زياتي وي.هغه واړه مال دې.كه دڅلويښتودرهمونه زياتي وي،اوكه ددې نه كم وي. كه زياتي وي.نوپه دې زياتوالي كي به هم دحساب مطابق شكرانه واجب وي.

> **وَاشْتِرَاطُ النِّصَابِ فِي الِابْتِدَاءِ لِتَحَقُّقِ الْغِنَى** اوپه ابتداء كښې دنصاب شرط كيدل دتوانګرئ دمتحقق كيدو لپاره دي **وَبَعْدَ النِّصَابِ فِي السَّوَائِمِ تَحَرُّزًا عَنْ التَّشْقِيصِ** اودنصاب نه بعد په سائمه څاروو كښې دټكړې كولونه دبچاؤ لپاره دي

**تشريح:- الجواب من الاعتراض على الدليل العقلي للصاحبين** ﷺ دا عبارت د صاحبينو رحمهما الله دارخه د بيان شوى دليل عقلي ﴿ولأن الزكاة.....إلخ﴾ باندې د واقع كيدونكى اعتراض ځواب دې.د اعتراض حاصل دادې.چه كه زكاة دنعمت مال شكرانه ادا كاوه لپاره واجب شوې دې.نوپه پيل كي دنصاب شرط ولې لګولې شوې دې؟ خكه چې څنګه دنصاب په اندازه مال وي.دغه ډول دنصاب نه كم هم مال وي.نوكه د وجوب زكاة مقصد، د نعمتِ مال شكر اداكول دى.نوپه مطلق مال كي زكاة واجب كيدل پكاردى.كه مال دنصاب په اندازه وي.اوكه ددې نه كم وي.

**الجواب** ﷺ ځواب دادې.چه زكاة په مالدارو باندې واجب وي.په فقيرانوواجب نه وي.درسول برحق ﷺ ارشاد دې. ﴿خذوا من أغنياءهم وتردوا إلى فقرائهم﴾ نود غني او فقير په مينځ كي د توپير كاوه لپاره د نصاب اندازه يوفاصل مقررشوې دې.يعنى په اندازې د نصاب سره به مالك لپاره غنى (مالدارى) حاصل شي.اوددې نه په كم سره به غنى نه حاصليږي.حاصل داشو.چه دغنى ثابتولو لپاره په ابتداء كي نصاب شرط ګرځولې شوې دې.اوپه ﴿مازاد على المأتين﴾ كي دزياتوالى نه دغنى زياتوالے مراددې.اوپه غنى كي زياتوالے قليل اوكثير دواړه حاصليږي.په دې وجه موږ اووئيل.چه دنصاب په مقدارچه څومره هم زياتي وي.په هغې كي به د هغې په حساب سره زكاة واجب وي.

**الاعتراض على عدم وجوب الزكاة فى الزائد فى زكاة السوائم** ﷺ ليكن اوس به سوال داوى.چه په سوائمو كي دنصاب نه روسته په مطلقاً زياتوالى كي زكاة ولې واجب نكړې شو؟مثلاً په پنځه اوښانو كي يوه وزه ده.اوس كه په دې دڅلورو اوښانو اضافه اوشوه.نوپه دې اضافه كي هيڅ زكاة واجب نه دې.ترهغه وخته پورې چې دا اضافه دنصاب مقدار ته اونه رسيږي.اوچه اوښان لس شي.نوپه دې كي به دوې [دوه] وزه واجب وي.

**الجواب** ﷺ ځواب، په سوائمو كي دنصاب نه روسته په مطلقاً زياتوالى كي د زكاة عدم وجوب،د ټكړې كاوه نه د بچ كاوه لپاره دى.يعنى كه په پنځو اوښانو باندې مثلاً څلوراوښان زياتي شو.نوددې څلورو اوښانو زكاة به د يوې وزه په پنځوحصوكي څلورحصې وي.اوپه دې صورت كي اګرچه دقيمت په اعتبار سره وي.د وزه ټكړې كول لازميږي.نوددې مشكل نه د بچ كاوه لپاره په سوائموكي د نصاب نه روسته هم په مطلقاً زياتوالي كي زكاة واجب نكړې شو.بلكه زياتوالے هم كه په اندازه دنصاب وي.نوپه دې كي به هم زكاة واجب وي.مثلاً په پنځه اوښانو باندې دپنځو اضافه نوره اوشي.نودوې [دوه] وزه به واجب وي.

> **وَلِأَبِي حَنِيفَةَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي حَدِيثِ مُعَاذٍ** ﷺ او دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادى چې ارشاد دى په حديث دمعاذ ﷺ كي **لَا تَأْخُذْ مِنْ الْكُسُورِ شَيْئًا**[1] چې په كسرونو كښې څه مه اخله

[1] أخرجه الدارقطني في سننه (۹۳/۲)_



**تشريح:- دليل ابى حنيفة** رحمه الله ﷺ د ابوحنيفه رحمه الله ① دليل دادې.چه رسول الله ﷺ حضرت معاذ ﷺ كله ديمن ګورنر جوړ كړو.اوليګلے ئې وو.نوفرمائيلى ئې وو. ﴿لاتأخذ من الكسور شيئا﴾ يعنى په كسرونوكي څه مه اخله. بلكه په څلويښتوباندې يو درهم پوره اخله.او دڅلويښتونه كم چونكه كسر وي.په دې وجه د څلويښتو نه په كم كي نيمه، دريمه وغيره هيڅ مه اخله.

> **وَقَوْلُهُ فِي حَدِيثِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ** اوپه حديث دعمروبن حزم كښې ددوى ارشاد دى **وَلَيْسَ فِيمَا دُونَ الْأَرْبَعِينَ صَدَقَةٌ**[1] چې دڅلويښتو نه په كموكي زكاة نشته

**تشريح:-** دوهم دليل دعمرو بن حزم ﷺ حديث دې.چه ﴿ليس فيما دون الأربعين صدقة﴾ يعني دڅلويښتونه په كم كي زكاة نشته.بلكه په څلويښتودرهموكي يو درهم دې. دا خيال ساتل پكاردى.چه داحكم د دوې [دوه] سوه درهمو نه روسته دې.يعنى د دوې [دوه] سوه درهمونه روسته د څلويښتو درهمونه په كم كي زكاة نشته.البته په څلويښتودرهمو كي زكاة شته دې.څكه د دوې [دوه] سوه درهمونه وړاندې نه په څلويښتودرهمو كي زكاة شته.اونه دڅلويښتونه په كموكي زكاة شته دې.

**التعارض بين الحديثين** ﷺ پاتې شودا سوال،چه دعمروبن حزم ﷺ حديث، دعلي ﷺ دحديث ﴿فإذا زاد على المأتين﴾ معارض شو.څكه چې دعلي ﷺ په حديث كي دى.چه په مطلقاً زياتوالى كي زكاة واجب دې.اود عمروبن حزم ﷺ په حديث كي دى.چه كه په دوې [دوه] سوه درهموڅلويښت درهمه زياتي شو.نوپه زياتوالى كي زكاة واجب دې.ګنى نه دې.

**الجواب** ﷺ ددې ځواب دادې.چه په دې دواړو حديثونوكي تعارض نشته.څكه چې دعلي ﷺ په حديث كي كه دا احتمال دې.چه مطلقاً زياتوالے مراددې.نودا احتمال هم شته.چه په دوې [دوه] سوه باندې دزياتوالى نه مراد دڅلويښتودرهمو زياتوالے دې.نود دوهم احتمال اخستلو په صورت كي په دواړه روايتونوكي هيڅ تعارض نه پاتې كيږي.

> **وَلِأَنَّ الْحَرَجَ مَدْفُوعٌ، وَفِي إيجَابِ الْكُسُورِ ذَلِكَ** او څكه چې حرج مدفوع دى اوپه كسوروواجب كولوكښې حراج موجود دى **لِتَعَذُّرِ الْوُقُوفِ** څكه چې واقف كيدل معتذر دى

**تشريح:- الدليل العقلي لابى حنيفة** رحمه الله ﷺ عقلي دليل دادې.چه حرج خوشرعا لرې شوې دې.حالانكه په كسوروكي د زكاة په وجوب كي دا حرج موجوددې.څكه چې دكسورو په حساب باندې پوهيدل متعذر دى. مثلاً ديوكس په ملك كي دوې [دوه] سوه او اوه درهمه دى.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز په ده باندې د دوې [دوه] سوه درهموپنځه درهمه،اود اوه درهمو زكاة، د يودرهم په څلويښتوټكړو كي اوه ټكړې واجب دى. نوچه زكاة اوباسى.دده سره به د يودرهم ۳۳ ټكړې ،او يو سربيره دوې [دوه] سوه درهمه پاته پاتې شى.كه په دې دوهم كال تيرشو.نوپه دوې [دوه] سوه درهموكي به پنځه درهمه واجب وي.اوپه يو درهم كي به ددې څلويښتمه برخه واجب وي.اوپه ۳۳ ټكړوكي به ددې څلويښتمه برخه واجب وي.اوس تاسو غور اوكړئ.چه د ۳۳ ټكړو حساب لګول،او ددې څلويښتمه برخه اوښكل څومره ګران دى.بلكه زموږ په شان خلګو لپاره ناممكن دى.نود هغه ان پړو(جتهو) خلګو به څه حال وي.چه دسلونه بره شميرهم نه ورځى. حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله هم ددې حرج او مشكلات لرې كاوه لپاره فرمائيلې دى.چه په كسوروكي به زكاة واجب نه وي.بلكه په دوې [دوه] سوه باندې كه څلويښت درهمه زياتي شو.نوپه دې كي به زكاة واجب وي.

> **وَالْمُعْتَبَرُ فِي الدَّرَاهِمِ وَزْنُ سَبْعَةٍ** او معتبردى درهمونو كي وزن سبعه **وَهُوَ أَنْ تَكُونَ الْعَشَرَةُ مِنْهَا وَزْنَ سَبْعَةِ مَثَاقِيلَ، بِذَلِكَ جَرَى التَّقْدِيرُ فِي دِيوَانِ عُمَرَ** او هغه دادى چې وى وزن دهرولسو درهمو اووه مثقاله پدى اندازه د

[1] عزاه الزيلعي إلى ،أحكام عبدالحق، ثم ذكرعدم عزو عبدالحق هذا الحديث إلى أحد( نصب الراية ۳۷۷/۲)_

حضرت عمرؓ په دفتر کي تقدیر جاري شو **وَاسْتَقَرَّ الْأَمْرُ عَلَيْهِ**(١) اوپدی دا امر مستقر شو.

**تشریح:- اقسام الدري هم الثلاثة**۞صاحب دهدایه ؒ فرمائی.چه د زکاة نصاب،د مهر،صدقة الفطر،اود سرقه‌(د غلاکونکي د نصاب په اړه کي په درې همو کي وزن سبعه معتبر دې.وزن سبعه دادې.چه لس درهمه،د اووه مثقالو دوزن برابروی.ددې تحقیق دادې.چه په پیل کي درې قسمه درهمه وو.① وزن عشره ② وزن سته ③ وزن خمسه.وزن عشره خو دادې.چه لس درهمه د لسو مثقالو برابر وی.وزن سته دادې.چه لس درهمه د شپږو مثقالو برابروی.او وزن خمسه دادې.چه لس درهمه د پنځو مثقالو برابروی.

**اعتبار الدرهم المساوی بسبعة مثاقیل**۞په دې درې واړه وزنونو کي وزن عشره د ټولو نه ښه دې.او وزن خمسه د ټولونه کم دې.د خلګ ویه درې واړه باندې عمل وو.په درې واړه وزنونو به ئې معامله کوله. کله چي حضرت عمرؓ خلیفه مقرر شو.نو دوی ؓ اوغوښتل.چه زکاة اوخراج په ښه وزن عشر سره وصول شی.او خلګ ویه دې کي کمے اوغوښتلو.نو خلیفة المسلمین سیدنا عمر فاروق دخپلے زمانې حساب کونکې ماهرین راجمع کړل.چه دوی دا درې واړه وزنونه مخے ته کیږدی.او منځنی وزن متعین کړی.چه پ‌کي د دواړو د رعایت خیال اوساتلې شی.نو دوی د درې واړه وزنونو مثاقیل راجمع کړل.نو دا یویشت شو.او وزنونه چونکه درې دی.په دې وجه یویشت مثاقیله چې کله په دریو باندې ویش کړې شو.نو په یوه برخه کي درې مثقاله راغلل.یعنی منځنی وزن دا راؤ وتلو.چه لس درهمه د اووه مثقالو برابر وی.هم دې ته وزن سبعه وئیلې شی.هم په دې دصحابوؓ اجماع ده.اوهم په دې باندې دحضرت عمرؓ په دفتر کي عمل کیدلو.اوهم په دې وزن باندې دا امر قائم پاتې شو.

### دسرو او سپینو زرو نه دمرکب شوي سکو حکم

**وَإِذَا كَانَ الْغَالِبُ عَلَى الْوَرِقِ الْفِضَّةَ** که دسپینو نه سکه زر غالب وو **فَهُوَ فِي حُكْمِ الْفِضَّةِ** نو حکم به ئې دسپینو زرو وی **وَإِذَا كَانَ الْغَالِبُ عَلَيْهَا الْغِشَّ** اوکه کوټوالی پکښې غالب وو **فَهُوَ فِي حُكْمِ الْعُرُوضِ** نو دغه به دسامان په حکم کښې وی **يُعْتَبَرُ أَنْ تَبْلُغَ قِيمَتُهُ نِصَابًا** نو بیا به پکښې ددې اعتبار وی چې قیمت ئې نصاب ته اورشی

**حل اللغة*معنی الورق والغش**۞ورق،د واؤ فتحه او د راء کسره په سوانچه کي جوړه شوې سکه. غش، د غین کسره او دشین شد،معنی ئې ده،خړوالے،خیرے،اوهغه سرزر چې بل دهات ورسره ګډ شوې وی.دلته کي دغش نه مراد دسپینو زرو او دسرو زرونه علاوه دهاتونه دی.چه په سپینو زرو کي ملاوولې شی.او سکې ترې جوړولې شی.

**تشریح:- قسمیٔ الدرهم وحکمها**۞اودا خبره منلے‌شوې ده.چه د سپینو یا سرو زروسکه بغیرد کهوټ(هغه سرزر چې بل دهات ورسره ګډ شوې وی)د ګډوالی نه نشی جوړیدلې.اوس صورت دمسئلے دادې.چه په جوړه شوې سکه کي ①که سپین زر غالب وو.د بل خیزسره ګډشوې سرزر هغه سرزر چې بل دهات ورسره ګډ شوې وی.یعنی نور دهاتونه مغلوب وو.نودغه سکه به د سپینو زرو په حکم کي وی.اوپه دې کي به دسپینوزرو زکاة واجب وی. ② اوکه کهوټه غالب اوسپین زر مغلوب وو.نودا به دسامان په حکم کي وی.د دې دقیمت اندازه به لګولې شی.اوکتلے به شی.چه ددې قیمت د زکاة مقدار ته رسیږی.اوکه نه.که دنصاب مقدار ته رسیدلو.نوپه دې کي به زکاة واجب وی.ګنی واجب به نه وی.

**لِأَنَّ الدَّرَاهِمَ لَا تَخْلُوعَنْ قَلِيلِ غِشٍّ** ځکه چې درهم دلږ کوټ نه نه خالی کیږی **لِأَنَّهَا لَا تَنْطَبِعُ إِلَّا بِهِ** ځکه چې دغه بغیر د خیری نه سکه کیږی نه **وَتَخْلُوعَنِ الْكَثِيرِ** اود زیات خیری (کوټه) نه خالی کیږی، **فَجَعَلْنَا الْغَلَبَةَ فَاصِلَةً** نوموږ

(١) قال الزيلعي ؒ ذكره ابن سعد ؒ فی طبقاته فی ترجمة عبدالملك بن مروان (نصب الرأية ٣٧٨/٢)_



غلبه حد فاصل مقرر کړو **وَهُوَ أَنْ يَزِيدَ عَلَى النِّصْفِ اعْتِبَارًا لِلْحَقِيقَةِ** اوهغه دا چې زیات شی په نیمه په حقیقت داعتبار کولو **وَسَنَذْكُرُهُ فِي الصَّرْفِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى** اوموږ به داپه کتاب الصرف کښې ذکرکړو انشاءالله

**تشریح:- دلیله**۞ صاحب دهدایه ؒ دمسئلے مدلل کاوه لپاره فرمائی.چه درې هم وغیره جوړو شوو سکو کي د لړشان کهوټ کیدل ضروری دی.ځکه چې ددې نه بغیردسکوجوړول ممکن نه دی.البته دکهوټ زیات مقدار ضروری نه دې.نوموږ د قلیل اوکثیر په مینځ کي غالب (زیاتوالې)حد فاصل مقررکړې دې. او غلبه دا ده.چه دنیمے نه زیات وی.اوهم دا دغلبه حقیقت هم دې.نوکه سپین زر دنیمو نه زیات وی.اوکهوټ د نیمې نه کم وی.نودغه سکه به ټوله پوره سپین زر شمارلے‌شی.اوپه دې کي به دسپینوزرو زکاة واجب وی.اوکه ددې په عکس وی.یعنی کهوټه د نیمے نه زیات وی.اوسپین زر دنیمےنه کم وی.نو دغه سکه به دهات شمارلې شی.او ددې حکم به د نورسامان په شان وی.

**إِلَّا أَنَّ فِي غَالِبِ الْغِشِّ لَا بُدَّ مِنْ نِيَّةِ التِّجَارَةِ كَمَا فِي سَائِرِ الْعُرُوضِ** مګر داچې په غالب کوټ والا کي دتجارت دنیت اړتیا دی لکه په نورو ټولو سامانونوکي چې دی **إِلَّا إِذَا كَانَ تَخْلُصُ مِنْهَا فِضَّةٌ تَبْلُغُ نِصَابًا** مګر دا که ددی نه دومره سپین جلا کیدی شو چې نصاب ته رسیدل **لِأَنَّهُ لَا يُعْتَبَرُ فِي عَيْنِ الْفِضَّةِ الْقِيمَةُ** ځکه چې په عین سپینو زرو کښې نه قیمت معتبر دی **وَلَا نِيَّةُ التِّجَارَةِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ** اونه نیت دتجارت ته اړتیا دی والله اعلم.

**تشریح:- شرطیة نیة التجارة فی صورة غلبة الغش**۞صاحب دهدایه ؒ فرمائی.چه دکهوټه غالب کیدلو په صورت کي د زکاة دوجوب لپاره دتجارت نیت ضروری‌دې.ځکه چې په دې صورت کي دا دسامان په حکم کي دې.اوداخبره فیصله شوې ده.چه د سپینو اوسروزرو نه علاوه نورو څیزونوکي د زکاة دوجوب لپاره دتجارت نیت ضروری دې.که په سکوکي سپین زرمغلوب دی.خوکه جداکړې شی.نودا دنصاب مقدار یعنی ددوې [دوه] سوه درهمومقدار ته رسیږی.نو په دې سپین زروکي به دسپینو زرو زکاة واجب وی.نه به په دې کي د قیمت اعتباروی.اونه به دتجارت نیت معتبر وی.ځکه چې په عین سپینو زروکي ددې دواړو اعتبارنه کیږی.والله اعلم

### دسرو زرو نصاب اومقدار

**فَصْلٌ فِي الذَّهَبِ** فصل دی دسرو د زکاة په بیان کي **لَيْسَ فِيمَا دُونَ عِشْرِينَ مِثْقَالًا مِنَ الذَّهَبِ صَدَقَةٌ** د شل مثقاله سرونه په کمو کښې زکاة نشته **فَإِذَا كَانَتْ عِشْرِينَ مِثْقَالًا** هرکله چې شل مثقاله شی **فَفِيهَا نِصْفُ مِثْقَالٍ** نوپدی کي نیم مثقال دی **لِمَا رَوَيْنَا**(١)، دهغی حدیث په بناکوم چه موږ بیان کړی دی

**تشریح:- وجوب المثقال فی العشرین**۞په دې فصل کي دسرو زرو د زکاة بیان دې.دسروزر نصاب شل مثقاله دی.اوددې څخه به په کموکي زکاة واجب نه وی.اوپه شلو مثقالوکي به نیم مثقال واجب وی.

**دلیله**۞دلیل هغه روایت دې.کوم چې د ﴿فصل الفضه﴾ په اول کي تیرشوې دې.یعنی ﴿ومن کل عشرین مثقالاً من الذهب نصف مثقال﴾ په ابن ماجه کي دا روایت د ابن عمرؓ اودحضرت عائشه ؓ نه په دې الفاظوسره نقل دې. ﴿أن النبی ﷺ کان یأخذ من کل عشرین دینارا نصف دینار ومن الأربعین دینارا﴾ (شرح نقایه)

**وَالْمِثْقَالُ مَا يَكُونُ كُلُّ سَبْعَةٍ مِنْهَا وَزْنَ عَشَرَةِ دَرَاهِمَ** او مثقال هغه دی چې ددی نه هر اووه په وزن دلسودرهموو ی **وَهُوَ الْمَعْرُوفُ** اودغه معروف دی.

(١) قال الزيلعي ؒ يشيرإلى حديث معاذؓ المتقدم فی زكاة الفضة وقدذكر من جهة الدارقطنی ؒ وفيه ((من كل أربعين دينارا دينار)) نصب الرأية (٣٧٩/٢)_

**تشریح:- المراد من المثقال**۞ دمثقال نه مرادهغه مثقال دي.چه دهغې سره دمثقال وزن د لسودرهمو برابر وي.په خلګ وکي هم دا وزن مشهوردي.

## په شلوباندې د زياتي مثقالو د زكاة حكم

**ثُمَّ فِي كُلِّ أَرْبَعَةِ مَثَاقِيلَ قِيرَاطَانِ** بيا په هرو څلورينتو مثقالوكي دوې [دوه] قيراطه دي **لِأَنَّ الْوَاجِبَ رُبُعُ الْعُشْرِ وَذَٰلِكَ فِيمَا قُلْنَا** ځكه چې واجب څلويښتمه برخه ده.اوداپه هغې كي دي كوم چې موږ وويل **إِذْ كُلُّ مِثْقَالٍ عِشْرُونَ قِيرَاطًا** ځكه چې هرمثقال شل قيراطه دي .

**تشریح:- وجوب القيراطان فى اربعة مثاقيل بعدالعشرين**۞ صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي.چه په شلو مثقالو باندې كه څلور مثقاله زياتي شي.نودنيم مثقال سره به دوې [دوه] قيراطه نورهم واجب وي.

**دليله**۞ځكه چې دڅلورو مثقالوڅلويښتمه دوې [دوه] قيراطه وي.ځكه چه يومثقال دشلوقيراطووي.نوڅلور مثقالـه د اتياؤ قيراطوشـو.اود اتياؤڅليويښتمـه دوې [دوه] وي.ځكـه بـه دڅلـورو مثقالوزكـاة دوې [دوه] قيراطه واجب وي.

**الفائدة**۞يو قيراط د اوربشو د پنځو دانو برابر وي.نو يومثقال بـه د سلو اوربشـو د وزن برابر وي.قيراط په اصل كي ،د راء په شد سره دې.ځكه چې ددې جمع قراريط راځي.بيا يوه راء په ياسره بدلـه شوه. نو قيراط شو.(عنايه)

## دڅلورو مثقالونه په كم كي د زكاة حكم

**وَلَيْسَ فِيمَا دُونَ أَرْبَعَةِ مَثَاقِيلَ صَدَقَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله [1] په كمودڅلويښتو مثقالو كي صدقه.په نزدد امام ابوحنيفه رحمه الله .

**تشریح:- المذهبان فى الزائد دون اربعة مثاقيل صدقة**۞ مسئله داده.چه كه په شلومثقالوباندې د څلورو مثقالونه دكمو اضافه اوشوه.(۱) نود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دې زياتوالى كي به هيڅ زكاة واجب نه وي.

**وَعِنْدَهُمَا تَجِبُ بِحِسَابِ ذَٰلِكَ** اونشته اوپه نزد دصاحبينو رحمهما الله به پدى حساب سره واجب وي. **وَهِيَ مَسْأَلَةُ الْكُسُورِ** اوداهغه دكسرونو مسئله ده

**تشریح:-** دصاحبينو رحمهما الله په نيزبه په قدر دحساب زكاة واجب وي.مثلاً كه په شلومثقالو يو مثقال زيات شو.نو په زكاة كي به نيم مثقال او نيم قيراط واجب وي.ځكه چې د شلو مثقالوڅلويښتمه برخه نيم مثقال راځي.اود يومثقال څلويښتمه برخه نيم قيراط جوړيږي.

**بناء الاختلاف على اختلاف مسئلة الكسور**۞صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه دا هم هغـه د كسورمسئله ده.چه په تير شوى فصل ﴿فصل فى الفضة﴾كي راغلې وه.يعنى دصاحبينو رحمهما الله په نيز په كسوركي زكاة واجب وي.اود امام صاحب رحمه الله په نيز نه واجبيږي.دفريقينو دلائل بيان شوى دى.

**وَكُلُّ دِينَارٍ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ فِي الشَّرْعِ** اوهرديناز لس درهمه دى په پيل كنبى **فَيَكُونُ أَرْبَعَةُ مَثَاقِيلَ فِي هَٰذَا أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا** نوپدى كي څلورمثقاله دڅلويښتو درهمو په مثل شو.

**تشریح:- القاعدة**۞فاضل علامـه مرغينانى رحمه الله فرمائي.چه په شريعت كي يـو دينار دلسـو درهموبرابر وي.اومثقال او دينار دواړه يوڅيزدې.نوڅلورمثقاله به دڅلويښتودرهمو برابروى.نولكه څنګه چې په درې

[1]) القول الراجح هو هذا قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى الخانية (۱۲۰|۱) والتاترخانية (۲۳۱|۲) والهندية (۱۷۹|۱) ومجمع الأنهر(۲۰۵|۱) نقلاً عن القول الراجح (۱۷۲|۱)۔



هموكي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د څلويښتودرهمو نه دكمو په زياتوالى كي زكاة نشته دې.دغه ډول په نصاب باندې دڅلورو مثقالونه د كمو په زياتوالى كي به هم زكاة واجب نه وي.

**السوال**۞دلته كي يوسوال كيدلې شى.هغه داچه په تيرشوى فصل كي د وزن سبعه تحقيق بيانولو كي ونيلې شوى وو.چه اووه مثقالـه دلسودرهمو د وزن برابروى.اومثقال اودينار يوڅيزدې.اودلتـه كي اوونيلې شو.چه يودينار دلسودرهمو برابروى؟

**الجواب**۞ځواب دادې.چه په تيرشوى فصل كي د وزن بيان وو.يعنى دلسو درهمووزن اووه مثقاله يا د اووه دينارو برابروى.اودلتـه كي دقيمت بيان دې.يعنى يو دينار،چه دايومثقال سره زر دى.شريعت ددې قيمت لس درهمه سپين زر مقرركړې دې.مثلاً په قتل خطاء كي كه د ديتَ اداكول په دينارسره اوغواړى.نو زر ديناره دېـوركړى.اوكه په درهم سره كول غواړى.نولس زره درهمه دېوركړى.

**ملاحظة**۞خوداخيـال كـول پكـاردى.چـه داحسـاب دهغـه زمـانې نـرخ مطـابق وو.اونـرخ چونكـه كميږى اوزياتيږى.په دې وجه په هره زمانه كي به د هغه زمانې د نرخ مطابق قيمت مقرركولې شى.

## د سرو اوسپينو زرو مخلوطوڅيزونو زكاة

**قَالَ وَفِي تِبْرِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَحُلِيِّهِمَا وَأَوَانِيهِمَا الزَّكَاةُ** دسرو سپينو په ټكړو اوددى په زيوراتواو ددى په لوخوكښې هم زكاة دى

**حل اللغة*** (۱) تبر: سست، ډيله (۲)حليهما: كالى (۳)اوانيهما: لوښى

**تشریح:- المذهبان فى وجوب الزكاة فى الذهب غيرالمنقوشة**۞(تبر،(غير مضروب چاندى...هغه سپين زر چې قالب شوې نـه وى.د سپينوزرو ټوټـه ،د سپينو او سرو زروكالى چې ښځې ئې د ښائست او زينت لپاره استعمالوى.(۱) زموږ په نيز د ګډ شوى نه بغير په سرو او سپينوزروكي ددوى په كالواو لوخوكي زكاة واجب دي.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ لَا تَجِبُ فِي حُلِيِّ النِّسَاءِ وَخَاتَمِ الْفِضَّةِ لِلرِّجَالِ** اوامام شافعى رحمه الله فرمائي چې دښځو په كالوكي دسرو دسپينوپه ګوته كښى واجب نه دى **لِأَنَّهُ مُبْتَذَلٌ فِي مُبَاحٍ** ځكه چې دا په مباح كي مستعمل دى **فَشَابَهَ ثِيَابَ الْبِذْلَةِ** نودا استعمال دجامو په مشابه شو

**حل اللغة*** (۱) مبتذل: دَ استعمال شيان (څيزونه ) (۲) البذله: دَ استعمال او كار كپړې

**تشریح:-** حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه دښځوكالى اودسرو دسپينو زروګتمه كي زكاة واجب نه دې.امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دى.

**دليل الشافعي** رحمه الله ۞د امام شافعي رحمه الله دليل دادې.چه د سپينواو سرو زروكالو استعمال د ښځو لپاره مباح دې.اود سپينوزرو دګتمےاستعمال سړو لپاره جائزدې.اود كوم څيزاستعمال چې مباح وى.اوچه په عامه توګه استعمالولې هم شى.نوپه هغې كي زكاة نه واجبيږى.لكه د روزانه استعمال كپړے،او د محنت مزدورئ كپړےدى.چه په دې كي هيڅ زكاة واجب نه دې.

**وَلَنَا أَنَّ السَّبَبَ مَالٌ نَامٍ** اوزموږ دليل دادى چې سبب زكاة مال نامى دى **وَدَلِيلُ النَّمَاءِ مَوْجُودٌ** اود دنماء دليل دلته موجود دى **وَهُوَ الْإِعْدَادُ لِلتِّجَارَةِ خِلْقَةً** اودغه مورزاده (پيدائشى) طور دتجارت لپاره مهيا كيدل دى ،**وَالدَّلِيلُ هُوَ الْمُعْتَبَرُ** او دليل معتبر دى

**تشریح:- الدليل العقلى للاحناف** رحمهم الله ۞زموږ دليل دادې.چه د وجوب زكاة سبب مالى نامى او نمو وى. او نمو په دوې [دوه] قسمه ده.(۱) يو خلګ ى،لكه په سرو او سپينوزروكي چې ده.(۲) دويمه فعلى، يعنى دتجارت په ذريعه.دلتـه كي دنمو دليـل موجـودې.يعنى مورزاده (پيدائشى) او خلګ ى طور باندې دا دتجارت دپاه

حاصلیدل.او هم دلیل معتبر دې. نو هر کله چې دنمو دلیل موجود دې.نو دچا په باطلولو سره دا خلګ ی نماء نه باطلیږی.

**بِخِلَافِ الثِّيَابِ**.په خلاف دجامونه.

**تشریح:- الجواب من قیاس الشافعي** رحمه الله ◉ ددې په خلاف ثیاب بذله دی.چه په دې کي نه خلګ ة نماء ده.اونه فعلاً نماء شته. خلګ ة خوځکه نشته.چه کپړے مورزاده (پیدائشی) طورباندې دتجارت لپاره نه دی پیدا شوي.اوفعلاً ځکه نشته.چه ثیاب بذله(دروزانه استعمال کپړو)کي د بنده داړخه دتجارت نیت نه وی.نوهر کله چې په هیڅ شان نمو موجود نه ده.نو په ثیاب بذله کي به زکاة هم واجب نه وی.س

## په سامان تجارت کې د زکاة حکم

**فَصْلٌ فِي الْعُرُوضِ** فصل دی دتجارت داسبابپه زکاة کي **الزَّكَاةُ وَاجِبَةٌ فِي عُرُوضِ التِّجَارَةِ كَائِنَةً مَا كَانَتْ إِذَا بَلَغَتْ قِيمَتُهَا نِصَابًا مِنَ الْوَرِقِ أَوِ الذَّهَبِ** په اسباب دتجارت کي زکاة واجب دی .هرڅه چې وی هر کله چې نی قیمت نصاب ته اورشی د سپینو زرو یا د سرو زرو

**تشریح:- وجوب الزكاة فی عروض التجارة**◉عروض دعرض جمع ده.معنی ئې ده.دسپینو او سرو زرونه علاوه د دنیا سامان.مسئله داده.چه دتجارت که هرقسم وی.په دې کي زکاة واجب دې.په دې شرط چې د دې قیمت د سپینو یا سرو زرو نصاب ته رسیږی.

**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** دا ځکه چې دحضور ﷺ ارشاد دی **فِيهَا يُقَوِّمُهَا** چې ددی قیمت به لګوی **فَيُؤَدِّي مِنْ كُلِّ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ خَمْسَةَ دَرَاهِمَ** [1] نوهرو دوو سوو درهموکي به پنځه درهمه ورکوی

**تشریح:- دلیله**◉① دلیل دادې.چه نبی کریم ﷺ فرمائیلي دی.چه دسامان تجارت قیمت به اولګوے.اوبه هر دوو [دوه] سوه درهمه کي به پنځه درهمه زکاة اداکړې.اود سمره بن جندب نه نقل دی. «أن رسول الله ﷺ كان يأمرنا أن نخرج الصدقة من الذي يعد للبيع» یعنی رسول اکرم ﷺ به حکم فرمائیلو.چه موږ د هغه څیزونو زکاة اوباسو.کوم چې د خرڅ لپاره تیاریږی.

**وَلِأَنَّهَا مُعَدَّةٌ لِلِاسْتِنْمَاءِ بِإِعْدَادِ الْعَبْدِ** اوځکه چې دغه هم دنماء حاصلولو لپاره مهیا دی دبنده په مهیا کاوه سره **فَأَشْبَهَ الْمُعَدَّ بِإِعْدَادِ الشَّرْعِ** نودا ددی مشابه شوکوم چې دشرع په مهیا کولو سره نامی دی

**تشریح:-** دوهم دلیل دادې.چه په سامان کي دبنده دتجارت نیت کولو سره دا سامان هم مال نامی جوړیږی.اوچونکه په مال نامی کي زکاة واجب وی.په دې وجه په سامان تجارت کي به هم زکاة واجب وی.لکه ځنګه چې په سپینو او سرو زروکی زکاة واجب وی.ځکه چې دا د شریعت د اړخه مال نامی دی.

**وَتُشْتَرَطُ نِيَّةُ التِّجَارَةِ لِيَثْبُتَ الْإِعْدَادُ** اودتجارت نیت شرط دی چې د نماء لپاره تیارول ثابت شی .

**تشریح:- شروط اقتران النية وقت الشراء**◉صاحب دهدایه رحمه الله فرمانی.چه دنمو ثابتولو لپاره د سامان اخستلو په وخت دتجارت نیت شرط دې.که د اخستلو په وخت دتجارت نیت اونکړې شو.بلکه دمالك کیدلونه روسته ئې نیت کړې دې.نو د نیت سره دتجارت فعل مولبنتی کول ضروری دی.ځکه چې صرف نیت کافی نه وی.بلکه نیت سره دفعل متصل کول هم ضروری دی.

[1] قال الزيلعي رحمه الله يشير إلى حديث معاذ رضي الله عنه المتقدم في زكاة الفضة وقد ذكر من جهة الدارقطني رحمه الله وفيه ((من كل أربعين دينارا دينار)) نصب الراية (۲/۳۷۹)_



## د فقراو لپاره د انفع اعتبار

**ثُمَّ قَالَ يُقَوِّمُهَا بِمَا هُوَ أَنْفَعُ لِلْمَسَاكِينِ احْتِيَاطًا لِحَقِّ الْفُقَرَاءِ** بیائی وویل چې دعروض قیمت به هغی سره لګوی کوم چې د مساکینو لپاره نفع وی.دفقیرانو دحق داحتیاط پیش نظر **قَالَ: وَهَذَا رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله [1] صاحب هدایه وائی چې دامام ابوحنیفه رحمه الله نه داهم روایت دی

**تشریح:- وجوب الزكاة بما هو انفع للفقراء**◉ په تیره شوې مسئله کي وئیلي شوی وو.چه په سامان تجارت کي د وجوب زکاة لپاره ضروری دی.چه ددې قیمت د سپینو یا دسرو زرونصاب ته رسیږی.خواوس سوال دادې.چه دقیمت اندازه به دسپینوزرو یعنی درې همو سره کوی.اوکه د سروزرو یعنی دنانیرو سره به کوی.نو په دې اړه کي څلور اقواله دی.رومبے قول کوم چې په امالی کي دامام ابوحنیفه رحمه الله نه یو روایت هم دې.دادې.چه دسامان دقیمت اندازه په دې دواړو کي هغه سره کیږی.په کوموکي چې فقیرانواومسکینانو ته فائده وی.مثلاً دتجارت یوقسم سامان دې.چه دا دوې [دوه] سوه درهمودې.خود شلو مثقالو نه دې.نودا به د درې همو سره اندازه کولې شی.اوکه سپین زر ګران وی.او سره زر ارزان وی.اودا سامان شل مثقاله سروزرو مالیت ته رسیږی.خودوې [دوه] سوه درهمه سپینوزرومالیت ته نه رسیږی.نوددې دقیمت اندازه به مثقالوسره کولې شی.درې همو سره به نشی کولې.دا قول د فقیرانو اومسکینانو دحق په وجه په احتیاط مبنی دې.یعنی احتیاطاً به د فقیرانو د رعایت په لحاظ داسې کولې شی.

**وَفِي الْأَصْلِ خَيَّرَهُ** اوپه اصل یعنی مبسوط کي ئی مالك ته اختیار ورکړی دی **لِأَنَّ الثَّمَنَيْنِ فِي تَقْدِيرِ قِيَمِ الْأَشْيَاءِ بِهِمَا سَوَاءٌ** ځکه چې دڅیزونو دقیمت په اندازه کولوکي دواړه نقدونه برابردی **وَتَفْسِيرُ الْأَنْفَعِ أَنْ يُقَوِّمَهَا بِمَا تَبْلُغُ نِصَابًا** اود نفع تفسیر دادی چې په هغه نقد سره ئی قیمت اولګوی کوم چې نصاب ته اورشی

**تشریح:- وجوب الزكاة وفق رضا المالك**◉ دوهم قول کوم چې په مبسوط کي ذکردې.دادې.چه مالك ته اختیاردې.که غواړی درهمو سره دے اندازه اوکړی.اوکه غواړی دینارسره دے اوکړی.

**دلیله**◉ددې قول دلیل دادې.چه قیمت په دې وجه لګولې شی.چه دمالیت مقدار معلوم شی.اوپه دې مقصد کي درې هم او دنانیر دواړه برابردی.نو په یوبل باندې به ترجیح نشی ورکولې.

**وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يُقَوِّمُهَا بِمَا اشْتَرَى إِنْ كَانَ الثَّمَنُ مِنَ النُّقُودِ** اوامام ابویوسف رحمه الله نه روایت دی چې په هغی نقد سره به قیمت لګوی په کوم چې نی اخستلی وی **لِأَنَّهُ أَبْلَغُ فِي مَعْرِفَةِ الْمَالِيَّةِ** ځکه دام دنقد نه وی ځکه چې په دی سره د مالیت په پیژندلوکي رسائی زیاته ده **وَإِنِ اشْتَرَاهَا بِغَيْرِ النُّقُودِ** اوکه دغیر نقود په عوض کي اخستلی وو **قَوَّمَهَا بِالنَّقْدِ الْغَالِبِ** نوپه زیات رائج نقد سره به نی قیمت اولګوی

**تشریح:- وجوب الزكاة وفق وسيلة العروض**◉دریم قول د امام ابویوسف رحمه الله دې.اوهم ددې قائل امام شافعی دې.دوی دا فرمائی.چه دا سامان په دواړه نغدینو(سپین او سره زر)کي چې دکوم په عوض کي اخستلې شوې دې.هم دهغه سره به ددې دقیمت اندازه لګولې شی.که د درې همو په عوض کي اخستلې شوې وی.نود درې همو سره به ئې اندازه لګولې شی.اوکه د دنانیرو په عوض کي اخستلې شوې وی.نود دنانیرو سره به ئې اندازه لګولې شی.اوکه د درې همواو دنانیرونه علاوه دبل څه په عوض کي اخستلې شوې وی.نوبیا چې په درې همو او دنانیروکي دکوم رواج اوچلن زیات وی.دهغه سره به اندازه لګولې شی.

**دلیله**◉ددې قول دلیل دادې.چه په دواړه نغدونوکي چې دکوم په عوض کي داسامان اخستلې شوې

[1] القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(۱۶۷/۲) والعناية (۱۶۷/۲) والوقاية (۲۲۹/۱)و رد المحتار(۳۷/۲) ثم قال وقال العلامة ابن الهمام رحمه الله في الجمع بين الروايتين بأن المذكور في الاصل في التخيير هو ما إذا كان التقويم بكل منهما لا يتفاوت انتهى كلامه ) نقلاً عن القول الراجح (۱۷۳/۱)-

دي.دهغې سره به د ماليت پېژندګلو زياته وی.ځکه چې يوځلې په دغه نغديت سره ددې قيمت ښکاره شوې دي.په دې وجه په دوهم ځلې اندازه لګولوکې به هيڅ مشکل نه وی.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ يُقَوِّمُهَا بِالنَّقْدِ الْغَالِبِ عَلٰى كُلِّ حَالٍ كَمَا فِي الْمَغْصُوبِ وَالْمُسْتَهْلَكِ اوداامام محمد رحمه الله نه روايت دی چې په هر حال کښې به په غالب نقد سره قيمت لګوی.لکه په مغضوب اومستهلك کې چې وی.

تشريح:- **وجوب الزكاة وفق نقد البلد**۞خلورم قول د امام محمد رحمه الله دې.دوی فرمائی.چه په هرحال کې به د بلد دغالب نغديت سره اندازه لګولې شی.يعنی په نغدينوکې چې دکوم چلن زيات وی.هم دهغه سره به دقيمت اندازه لګولې شی.

**دليله**۞ددې دليل دادې.چه د الله تعالی په حق کې دقيمت اندازه کول به د بنده په حق کې د قيمت په اندازه باندې قياس کولې شی.اود بنده ګانو په حق کې د بلد غالب نغديت سره اندازه کولی شی.مثلاً که چايوڅيزغصب کړو.اوهغه دغاصب نه ضائع شو.اوهغه څيزد ذات القيم څنې وی.نو په غاصب به دهغې قيمت واجب وی.اودقيمت اندازه به په نغدينوکې هغه يوسره کيږی.دکوم چې چلن زيات وی.دغه که چا دبل کس څه سامان هلاك کړو.اودا د ذات القيم څنې وی.نوپه هلاکونکی به دقيمت ضمان واجب وی. او د قيمت اندازه به دهغه نغديت سره کيږی.دکوم چې چلن زيات وی.نوځنګه چې په حقوق العباد کې د قيمتونو اندازه په غالب نغديت سره کيږی.دغه ډول دحقوق الله يعنی د زکاة وغيره ادا کاوه لپاره به هم د قيمتونو اندازه په غالب نغديت سره کولې شی.

### په دواړو اړخونو دکال کې د نصاب د تکميل اعتبار

وَإِذَا كَانَ النِّصَابُ كَامِلًا فِي طَرَفَيِ الْحَوْلِ اوهرکله چې نصاب پوره وو دکال په دواړوطرفونوکې فَنُقْصَانُهُ فِيمَا بَيْنَ ذٰلِكَ لَا يُسْقِطُ الزَّكَاةَ نوددی کميدل دکال په ما بينځ کې زکاة نه ساقط کوی

تشريح:- **وجوب النصاب فى جميع السنة**۞ ①شيخ ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه د وجوب زکاة لپاره دکال په اول او آخر کې کامل نصاب کيدل شرط دی.دکال په مينځ کې دنصاب کميدل زکاة نه ساقطوی.يعنی دکال په اول کې هم پوره نصاب موجوددې.او په آخرکې هم پوره شو.خوپه مينځ کې څه کم شوې وو.نوپه دې صورت کې به زکاة واجب وی.ساقط به نه وی.

لِأَنَّهُ يَشُقُّ اعْتِبَارُ الْكَمَالِ فِي أَثْنَائِهِ ځکه چې دکال په ما بينځ کې دکمال نصاب اعتبار ګران دی أَمَّا لَا بُدَّ مِنْهُ فِي ابْتِدَائِهِ لِلِانْعِقَادِ وَتَحَقُّقِ الْغِنٰى هنه په ابتداء کې دانعقاد دکال او تحقق دغناء لپاره وَفِي انْتِهَائِهِ لِلْوُجُوبِ اوپه انتهاء کې دوجوب لپاره پوره کيدل ضروری دی وَلَا كَذٰلِكَ فِيمَا بَيْنَ ذٰلِكَ اوددی په ما بينځ کې داشی نه دی لِأَنَّهُ حَالَةُ الْبَقَاءِ ځکه چې دغه خو حالت دبقاء دی

تشريح:- **دليله**۞دليل دادې.چه د کال په مينځ کې د نصاب د پوره کيدو اعتبار کاوه کې مشقت دې. نوځکه په کال په مينځ کې د نصاب دپوره کيدو شرط اونشولګولې.پاتې شو په اول اوآخر کې د نصاب خبره نوپه دې کې د نصاب کمال شرط دې.په اول کې خو ددې وجې چې د زکاة سبب منعقد شی.اوغنا متحققه شی.اوپه انتها کې ددې وجې چې د زکاة وجوب متحقق شی.اودکال په مينځ کې چونکه دواړه خبرې نشته.ددې امله دکامل په مينځ کې د نصاب د پوره والی شرط اونه لګيدلو.

بِخِلَافِ مَا لَوْ هَلَكَ الْكُلُّ حَيْثُ يَبْطُلُ حُكْمُ الْحَوْلِ په خلاف د هغې چې کله تلف شو پدی سره دکال حکم باطل شی وَلَا تَجِبُ الزَّكَاةُ اوزکاة به واجب نه وی لِانْعِدَامِ النِّصَابِ فِي الْجُمْلَةِ ځکه چې نصاب بالکليه معدوم شو فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولٰى اوپه مخکې مسئله کې داشی نده وَلَا كَذٰلِكَ لِأَنَّ بَعْضَ النِّصَابِ بَاقٍ فَيَبْقَى الِانْعِقَادُ ځکه چې بعضی نصاب پاته دی نوانعقاد پاته شو.



تشريح:- **صورة هلاک الکل**۞ په ﴿بخلاف مالوهلك الكل﴾ په دې سره د متن د عبارت ﴿فنقصانه﴾ فائده ذکر کولې شی.يعنی دکال په مينځ کې د نصاب کموالې زکاة نه ساقطوی.البته دا چې واړه نصاب هلاك شی.نوزکاة نه واجبيږی.ځکه چې دکال يوه برخه بيخی بې نصابه پاتې وه.نود حوالان حول شرط موجود نشو.حالانکه د زکاة د انعقاد شرط موجود شی.نوددې نه روسته حوالان حول شرط دې.اوپه لومړنی مسئله کې داسې نه ده.يعنی کله د کال په مينځ کې نورنصاب هلاك شی.خوڅه برخه پاته وی.نوځکه د انعقاد سبب هم پاته دې.اوهرکله چې د انعقاد سبب پاته دې.نود زکاة وجوب به هم پاته وی.

### دسرو او سپينو زرو سره دسامان تجارت ګډون

قَالَ وَتُضَمُّ قِيمَةُ الْعُرُوضِ إِلَى الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ او مولښتی کوی به قيمت داسباب دسرو سپينو سره حَتّٰى يَتِمَّ النِّصَابُ تردې چې نصاب پوره شی

تشريح:- **ضم العروض الى الذهب والفضة لتكميل النصاب ومثاليه**۞مسئله داده.چه که ديوکس په ملك کې دتجارت سامان دنصاب په اندازه نه وی.خودده سره دنصاپ پوره کاوه لپاره دتجارت د سامان قيمت به دسرو اوسپينوزرو سره ملاوولې شی.① مثلاً ديوکس سره پنځوس درهمه دی.اود يونيم سلو درهمو ماليت برابر سامان تجارت دې.نوپه ده به د دوې [دوه] سوه درهمو سپينو زرو زکاة واجب وی.② يا مثلاً د يوکس سره اته مثقاله سره زر دی.اود دولسومثقالود ماليت سامان تجارت دې.نوپه ده به دشلو مثقالو دسرو زرو زکاة واجب وی.دا حکم بالاجماع دې.

لِأَنَّ الْوُجُوبَ فِي الْكُلِّ بِاعْتِبَارِ التِّجَارَةِ ځکه چې وجوب پدې ټولو کښې دتجارت په اعتبار سره دې وَإِنِ افْتَرَقَتْ جِهَةُ الْإِعْدَادِ . اګر چې جهت د تياری جلا دې.

تشريح:- **دليله**۞دليل دادې.چه په هرڅيزکې د زکاة دوجوب سبب دنصاب نامی مالك کيدل دی.او نماء په سامان تجارت کې هم موجودده.اوپه سرو اوسپينو زروکې هم، اګرچه د نماء حيثيت مختلف دې.يعنی په سامان تجارت کې د بنده ګانو د اړخه نماء متحقق کيږی.ځکه چې بنده ګان دا د تجارت لپاره حاصلوی.اوپه سرو اوسپينو زروکې نماء من جانب الله موجودده.ځکه چې الله تعالی دادواړه دتجارت لپاره پيداکړی دی.نو هرکله چې اصل يعنی نماء دواړه ځايونوکې موجود ده.نود سامان تجارت قيمت به دسرو اوسپينو زرو سره ملاوولې شی.او زکاة به واجبولې شی.

### دسامان تجارت دګډون اعتبار په اجزاؤ اوکه په قيمت

وَيُضَمُّ الذَّهَبُ إِلَى الْفِضَّةِ لِلْمُجَانَسَةِ مِنْ حَيْثُ الثَّمَنِيَّةُ اومولښتی کوی به سره سپينو سره په قيمت کښی دهمجنس کيدو په وجی سره وَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ صَارَ سَبَبًا او پدی جهت سره دغه سبب دزکاة شوی دی ثُمَّ يُضَمُّ بِالْقِيمَةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله بيا به مولښتی کوی قيمت په دوسره په نزد دامام صاحب وَعِنْدَهُمَا بِالْأَجْزَاءِ اودصاحبينو رحمهما الله په نزد په حساب د اجزاؤ وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْهُ او دا يو روايت دی .دامام صاحب نه

تشريح:- **المذهبان فى الضم باعتبار الاجزاء او القيمة**۞ ملاوول به دقيمت په اعتبارسره کيږی.اوکه اجزاؤ په اعتبار سره.نوپه دې اړه کې اختلاف دې.① د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزبه دقيمت په اعتبارسره کيږی.هم دا يوروايت دامام محمد رحمه الله دې.② اود صاحبينو رحمهما الله په نيزبه د اجزاؤ په اعتبارسره کيږی.هم دايو روايت د امام ابوحنيفه رحمه الله دې.او هم ددې قائل امام مالك رحمه الله دې.اوهم دا يوروايت د امام احمد رحمه الله دې.

**حَتّٰى إِنْ مَنْ كَانَ لَهُ مِائَةُ دِرْهَمٍ وَخَمْسَةُ مَثَاقِيلَ ذَهَبٍ تَبْلُغُ قِيمَتُهَا مِائَةَ دِرْهَمٍ** تردی چې که دچا سره سل درهمه وی اوپنځه مثقاله سره زر وی چې قیمت ئې رشی سلو درهمو ته **فَعَلَيْهِ الزَّكَاةُ عِنْدَهُ**([1])نوبه ده زکاة واجب دی دامام صاحب په نزد.

**تشریح:- ثمرة الاختلاف**۞ د اختلاف ثمره به په دې صورت کې ښکاره کیږی.چه دیوکس سره سل درهمه سپین زروی.اوپنځه مثقاله سره زردی.اود پنځومثقالو سروزرو قیمت سلو درهم ته رسیږی.نوبه دې صورت کې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیززکاة واجب وی.ځکه چې دقیمت په اعتبارسره نصاب پوره شوې دې.اود اجزاؤ په اعتبارسره چونکه نصاب پوره نه دې.په دې وجه دصاحبینو رحمهما الله په نیزبه زکاة هم واجب نه وی.اوکه دیوکس سره لس مثقاله سره زروی.اوسل درهمه سپین زروی.یا په دې دواړوکې د یو دریمه برخه وی.اود بل دویمه برخه وی.یا د یوڅلورمه برخه وی.اود بل دریمه برخه وی.نوبه دې صورت کې به په اتفاق سره (دواړه)ضم کولې شی.او زکاة به واجب کولې شی.

**خِلَافًا لَهُمَا، هُمَا يَقُولَانِ الْمُعْتَبَرُ فِيهِمَا الْقَدْرُ دُونَ الْقِيمَةِ** په خلاف د صاحبینو رحمهما الله هغوی فرمائی چې په سرو سپینو کې معتبر وزن دے نه که قیمت **حَتّٰى لَا تَجِبَ الزَّكَاةُ فِي مَصُوغٍ وَزْنُهُ أَقَلُّ مِنْ مِائَتَيْنِ وَقِيمَتُهُ فَوْقَهَا** تر دی چې نه واجبیږی زکاة په دې شی جوړشوی کې چې وزن ئې کم وی ددوؤسوؤ درهمونه او قیمت ئې ترې اوچت وی

**تشریح:- دلیل الصاحبین** رحمهما الله۞د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه په سرو او سپینو زروکې وزن معتبردې.قیمت معتبرنه دې.تردې که د یوکس سره د سپینوزرو څه لوخې یا کالی وی.اوددې وزن دوې [دوه] سوه درهمو نه کم وی.خوددې قیمت د دوې [دوه] سوه درهمونه هم زیات جوړیږی.نوبه دې کې په اتفاق سره زکاة نه واجب نه دې.ددې نه معلومه شوه.چه اعتبار د وزن دې.د قیمت نه دې.نوکه دوزن په اعتبارسره نصاب پوره شو.نو زکاة به واجب وی.ګنې واجب به نه وی.

**هُوَ يَقُولُ: إِنَّ الضَّمَّ لِلْمُجَانَسَةِ** امام فرمائی چې مولښتی کول دمجانست په وجه دی **وَهِيَ تَتَحَقَّقُ بِاعْتِبَارِ الْقِيمَةِ دُونَ الصُّورَةِ** اود هغې تحقیق به دقیمت په اعتبار سره وی نه دصورت **فَيُضَمُّ بِهَا وَاللهُ أَعْلَمُ** نوبه قیمت سره به ملاوولی شی .والله اعلم.

**تشریح:- دلیل ابی حنیفة**۞امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی.چه ضم کول دهم جنس کیدلوپه وجه دی.اوهم جنس کیدل دقیمت په اعتبارسره متحقق کیږی.دصورت په اعتبارسره نه متحقق کیږی.نود قیمت په اعتبارسره ضم کولې شی.دصورت په اعتبارسره به نه کیږی.اود اجزاؤ اعتبار،چونکه دصورت اعتبار دې.په دې وجه د صورت په اعتبارسره ضم نه کیدل،ګویا د اجزاؤ په اعتبارسره ضم نه کیدل دی.نوثابت شو.چه دضم لپاره د اجزاؤ اعتبار نه کیږی.بلکه د قیمت اعتبارکیږی.والله اعلم.

## باب فيمن يمر على العاشر

ژباړه:- (دا) باب دهغه چا (په بیان کې دې) چې تیریږی په عاشر باندې.

**تشریح:- وجه ایراد هذا الباب فی الکتاب**۞دا باب په کتاب الزکاة کې د ،مبسوط،اود شروح ،جامع صغیر، په اتباع کې ذکرشوې دې.اوددې باب دکتاب الزکاة سره یوقسم مناسبت هم شته دې.هغه داچه د عاشر په خواکې تیریدونکې مسلمان نه چې کوم عشراخستلې شوې دې.هغه بعینه زکاة دې.خوعاشر چې څنګه دمسلمان نه اخلی.دغه ډول ئې د ذمی اومستامن نه هم اخلی.اوددې دواړونه چې کوم مال اخستلې شی.هغه

[1]) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا فى رد المحتار(۳۷\۲) والبحر الرائق (۲۳۰\۲) وتبيين الحقائق (۲۸۱\۱) نقلاً عن القول الراجح (۱۷٤\۱)-



نه زکاة نشی ونیلې.زکاة په دې باب اوپه راروانو بابو په دې وجه مقدم کړې شوې دې.چه زکاة عبادت محضه دې.په دې کې دغیر ګډون نشته.

### د مالک د قول تصدیق به کولې شی

**إِذَا مَرَّ عَلَى الْعَاشِرِ بِمَالٍ** هرکله چې راغلوتاجر په عاشر باندی دمال سره **فَقَالَ أَصَبْتُهُ مُنْذُ أَشْهُرٍ أَوْ عَلَيَّ دَيْنٌ** و وې وئیل چې دڅومیاشتو نه په لاس راغلی دی یا په ما قرضه ده **وَحَلَفَ** وقسم ئې اوکړو **صُدِّقَ** نوتصدیق به کولې شی

**تشریح:- قبول قول مالک المال**۞ ①مسئله داده.چه یوسوداګرمال واخستلو.دعاشر،سره تیرشو.اوده اووئیل چه زه د یوڅومیاشتو داسې ددې مال مالك یم.یعنی تر اوسه پورې حولان حول نه دې شوې.اوددې نه علاوه ماسره داسې مال هم نشته.چه په هغې حولان حول شوې وی. ② یادے سوداګر اووئیل.چه زما په ذمه قرضه ده.اوپه دې خبره ئې قسم اوخوړلو.نودده تصدیق به کولې شی.اوعاشر به دده نه زکاة نه وصول کوی.

**وَالْعَاشِرُ مَنْ نَصَبَهُ الْإِمَامُ عَلَى الطَّرِيقِ لِيَأْخُذَ الصَّدَقَاتِ مِنَ التُّجَّارِ** اوعاشر هغه دی چې امام مقرر کړی وی په لاره.چې وصول کړی د صدقی دتاجرانو نه

**تشریح:- تعریف العاشر**۞ عاشرهغه کس دې.چه امام وقت دصدقاتو وصولولو لپاره په لاره مقررکړې وی.

**السوال**۞خوپه دې تعریف دا اعتراض کیدلې شی.چه عاشر،د کافر اوذمی نه هم محصول وصول کوی. خو هغه صدقه نه وی.په دې وجه دعاشر دا تعریف جامع نشو.

**الجواب**۞خواب دادې.چه عاشرپه مقررکولوکې اصل خوصدقات وصول کوی.ځکه چې په دې کې د عبادت په اداکولوکې د مسلمان اعانت کول دی.اوددې نه علاوه واړه تابع دی.په دې وجه ددې په صراحت سره د ذکر کولوهیڅ اړتیا نشته.

**فَمَنْ أَنْكَرَ مِنْهُمْ تَمَامَ الْحَوْلِ أَوِ الْفَرَاغَ مِنَ الدَّيْنِ** نو څوك چې منکر شی ددوی نه دپوره کیدو دکال یا دقرضی نه د فراغت کیدونه **كَانَ مُنْكِرًا لِلْوُجُوبِ** نو دی منکر شو د وجوب نه **وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُنْكِرِ مَعَ الْيَمِينِ** اوقول دمنکر قبول وی سره دقسم نه.

**تشریح:- دلیله**۞ځکه چې سوداګر دحولان حول انکارکړې دې.یائې دمال د پور نه د فارغ کیدلونه ئې انکار کړې دې.نودې دزکاة د وجوب نه منکردې.اود منکرقول مع الیمن معتبروی.په دې وجه ددې تاجرقول به مع الیمین معتبروی.

### بل عاشر ته د زکاة ورکولو دعویٰ

**وَكَذَا إِذَا قَالَ: أَدَّيْتُهَا إِلَى عَاشِرٍ آخَرَ** دغه ډول که ده ووئیل چې ما اداکړی دی بل عاشر ته **وَمُرَادُهُ إِذَا كَانَ فِي تِلْكَ السَّنَةِ عَاشِرٌ آخَرُ** مراد دادی چې هرکله پدے کال کښے بل عاشر پاتی شوی وی

**تشریح:- قبول قول التاجر فی اعطاء الزکاة الی عاشراخر**۞که تاجرعاشرته اووئیل.چه مابل عاشرته عشر اداکړې دې.اوپه دې کال کې بل عاشر پاتې شوې هم وی.نودده د قول تصدیق به کولې شی.

**لِأَنَّهُ ادَّعَى وَضْعَ الْأَمَانَةِ مَوْضِعَهَا** ځکه چې ده امانت لره په خپل ځائی باندی دایښودلو دعوی کړی ده

**تشریح:- دلیله**۞ ځکه چې ده د امانت په خپل ځائې کې دورکولودعوی کړې ده.او امانت دارچه هرکله د امانت مال ددې په خپل ځائې د صرف کولومدعی وی.نوپه قسم سره به دده قول قبلولې شی.

**بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَكُنْ عَاشِرٌ آخَرُ فِي تِلْكَ السَّنَةِ** په خلاف دهغې چې هر کله په دی کال بل عاشر نه وی پاتی شوی **لِأَنَّهُ ظَهَرَ كَذِبُهُ بِيَقِينٍ** ځکه چې دده دروغ په یقین ظاهر شو.

**تشریح:- عدم قبول قول التاجر**۞خوکه په دې کال کې بل څوك عاشرنه وی پاتې شوې.نودده قول به معتبرنه

وی.ځکه چې په دې صورت کې به دده دروغ په یقین سره ښکاره شي.

## فقیرانو ته د زکاة ورکولو دعویٰ

**وَكَذَا إِذَا قَالَ: أَدَّيْتُهَا أَنَا يَعْنِي إِلَى الْفُقَرَاءِ فِي الْمِصْرِ** دغه ډول که ده وویل چې ما صدقه پخپله ورکه یعنی فقیرانو ته په ښار کښي

تشریح:- **اعتبار قول التاجرفی اداء الزکاة الی الفقراء**۞شیخ ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائي.که مالك نصاب دا اووائی.چه په ښارکي ما پخپله فقیرانوته زکاة ورکړو.نوهم به په یمین سره دده قول معتبر وی. ﴿فىالمصر﴾ قیدئې په دې وجه لګولې دې.چه که دښارنه اووتلو.اود سفر په حالت کې ئې زکاة اداکړو.نود عاشر داخستلوحق به نه ساقطیږي.

**لِأَنَّ الْأَدَاءَ كَانَ مُفَوَّضًا إِلَيْهِ فِيهِ** ځکه چې ادائیګي ده ته سپارلی شوی وه **وَوِلَايَةُ الْأَخْذِ بِالْمُرُورِ لِدُخُولِهِ تَحْتَ الْحِمَايَةِ** اوپه عاشر دتیریدو ولایت دعاشر په حمایت کې درې تلو په وجی سره دی

تشریح:- ځکه چې دنصاب مالك ته په اموال باطنه (درې هم او دنانیر وغیره)کي پخپله دزکاة ادا کاوه ولایت په ښارکي حاصل دې.خود ښار نه د وتلونه روسته دده ولایت د امام وقت اړخ ته منتقل کیږي.

**وجه الفرق بین الصورتین**۞وجه دُفرق داده.چه دا کس ترکومه پورې د مال سره په ښار کې وو .نو دې امانت دارو.د امام حمایت او ساتنه ده ته حاصل نه وو.اوهرکله چې د امام حمایت ده ته حاصل نه وو.نود زکاة اداکولوحق به هم ده ته وی.خوچه کله ئې مال واخستلو.اود ښار نه بهر اووتلو.نو اوس به دې د امام په حمایت کې داخل نه وی.اوهرکله چې دامام په حمایت او ساتنه کې داخل شو.نود زکاة اخستلوحق به هم امام ته حاصل وی.او مالك ته به داحق حاصل نه وی.چه دے په خپله فقیرانو ته زکاة ورکړی.

**وَكَذَا الْجَوَابُ فِي صَدَقَةِ السَّوَائِمِ فِي ثَلَاثَةِ فُصُولٍ** اودغه ډول ځواب دی دسوائمو دصدقی په بابت په دری واړو صورتونوکي

تشریح:- **حکم السوائم فی الصور الثلاثة**۞ ﴿وکذا الجواب....إلخ﴾ سره صاحب دهدایه رحمه الله فرمائي.چه په اولنو درې صورتونوکي چې کوم حکم د اموال باطنه د زکاة دې.هم هغه د اموال ظاهره یعنی د سوائمو د زکاة هم دې.درې صورتونه دادی.① دنصاب مالك سوداګر عاشر ته اووئیل.چه اوس زما په مال باندې کال نه دې تیرشوې.بلکه د یوځومیاشتو داسې زه ددې مالك شوې یم.② یا ده اووئیل.چه زما په ذمه پور دې.③ یا ده اووئیل.چه ما بل عاشرته زکاة اداکړې دې.اوبل عاشرپه دې کال کې پاتې شوې هم دې.

په دې درې واړه صورتونوکي چې څنګه په اموال باطنه کې په قسم سره د مالك قول معتبروی.دغه ډول په دې درې واړه صورتونوکي په اموال ظاهره یعنی په سوائموکي هم د مالك قول مع الیمین قبلولې شي.

**وَفِي الْفَصْلِ الرَّابِعِ وَهُوَ مَا إِذَا قَالَ: أَدَّيْتُ بِنَفْسِي إِلَى الْفُقَرَاءِ فِي الْمِصْرِ لَا يُصَدَّقُ وَإِنْ حَلَفَ** اوپه څلورم صورت کې یعنی کله چې هغه دا ووایي چې ماپه ښار کښي فقیرانو له پخپله ورکړو تصدیق نه کولی .اګر چې قسم اوخوری

تشریح:- **المذهبان فی قبول قول المالك فی الصورة الرابعة**۞ ①په څلورم صورت کې به په اموال ظاهره کې د مالك د قول تصدیق نشي کیدلې.اګرچه دے قسم اوخوری.څلورم صورت دادې.چه مالك اووائی.ما د سوائمو زکاة په ښارکي دننه فقیرانو ته اداکړې دې.نوزموږ په نیز به ددې تصدیق نشي کولې.اګرچه قسم اوخوری.بلکه دده څخه به دوباره زکاة اخستلې شي.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُصَدَّقُ** امام شافعی رحمه الله وائی چې تصدیق به کولی شی **لِأَنَّهُ أَوْصَلَ الْحَقَّ إِلَى الْمُسْتَحِقِّ**.ځکه چې ده حق مسحق ته اورسولو



تشریح:- امام شافعی رحمه الله فرمائي.چه دده تصدیق به کولې شي.یعنی که مالك اووئیلې.چه ما دسوائمو زکاة په ښار کي فقیرانو ته ورکړې دې.نود امام شافعی رحمه الله په نیز به ددې تصدیق کولې شي.اودده څخه به دوباره زکاة نشي اخستلې.

**دلیل الشافعی** رحمه الله ۞د امام شافعی رحمه الله دلیل دادې.چه زکاة دفقیرانو حق دې.لکه چې د الله تعالی ارشاددې ﴿إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ﴾ د صدقات اضافت فقیرانو اړخ ته د،لام، په ملك سره شوې دې.یعنی صدقات د فقیرانو ملك وی.نوهرکله چې صدقات دفقیرانو ملك اوددوی حق دې.اومالك ددوی داحق دوی ته رسولې دې.نود مالك ذمه لنډیز شوه.

**نظیره**۞لکه چې یوکس د بائع د وکیل نه څه سامان واخلي.اومشتری ثمن مؤکل ته ورکړو.نو د مشتری ذمه خلاصیږي.دغه ډول فقیرته زکاة ورکولوسره د مالك ذمه خلاصیږي.اوهرکله چې د مالك ذمه لنډیز شوه.نودده څخه به دوباره زکاة نشي وصولولې.

**وَلَنَا أَنَّ حَقَّ الْأَخْذِ لِلسُّلْطَانِ** زموږ دلیل دادی چې د سوائمو دزکاة اخستلو حق دسلطان دی **فَلَا يَمْلِكُ إِبْطَالَهُ** نوهغه ددی حق باطلول مالك نه دی

تشریح:- **دلائل الاحناف** رحمهم الله ۞①زموږ دلیل دادې.چه د سوائمو د زکاة اخستلوحق صرف سلطان او امام وقت ته حاصل دې.لکه چې د الله رب العزت ارشاد دې.② ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً﴾ اوخداود رسول اکرم ﷺ ارشاد دې. ﴿خذ من الإبل الإبل﴾ نو هرکله چې دسوائمو د زکاة اخستلو حق سلطان او امام وقت ته دې.نود نصاب مالك ددې حق د باطلولومجاز نشي جوړیدلې.

**نظیره**۞لکه چې یوکس چې په ده جزیه واجب وی.په خپله ئې په قتال کونکی ډله باندې خرج کړی.نودا به دجزیه ادا کول نشي ګڼړلے کیدلې.بلکه دده څخه به دوباره جزیه اخستلې شي.ځکه چې دجزیه اخستلوحق صرف امام وقت ته دې.په دې وجه داکس ددې حق د باطلولومالك نشي کیدلې.

**بِخِلَافِ الْأَمْوَالِ الْبَاطِنَةِ** په خلاف دباطنی مالونو نه

تشریح:- **الفرق بین الاموال الظارة والباطنة**۞په خلاف د اموال باطنه،ځکه په اموال باطنه کې مالك د امام د اړخه د زکاة تقسیمولونائب وی.نودې په زکاة اداکولوکي امین شو.اود امین قول معی الیمین معتبروی.په دې وجه اموال باطنه کې به د مالك د قول تصدیق کوسلےشي.

**ثُمَّ قِيلَ الزَّكَاةُ هُوَ الْأَوَّلُ وَالثَّانِي سِيَاسَةٌ** بیا وئیلی شوی دی چې زکاة اولنی دی اوثانی په طور د سیاست دی **وَقِيلَ هُوَ الثَّانِي وَالْأَوَّلُ يَنْقَلِبُ نَفْلًا** او ویلی شوی دی چې دا دوهم دی او اولنی به نفل شی **وَهُوَ الصَّحِيحُ** اودا صحیح ده

تشریح:- **صورة الاخذ مرتین**۞پاتې شوه داخبره چې هرکله مالك د سوائموزکاة په خپله فقیرانو ته ورکړو.او امام وقت دده نه دوباره زکاة وصول کړو.لکه څنګه چې زموږ مذهب دې.نوپه دې صورت کې به اولنی ته زکاة وئیلې شي.اوکه دوهم څلی ته.یعنی مالك پخپله فقیرانو ته ورکړې دې.هغه زکاة دې.یا امام چې کوم دوباره وصول کړلو.هغه زکاة دې.په دې کې دوې [دوه] قوله دی.

**القولان فی مسمی الزکاة**۞ ①ړومبےقول دادې.چه مالك اول کوم فقیرانو ته ورکړې دې.هغه زکاة دې.اوکوم ئې چې امام وقت ته په روسته په دوهم څلی ورکړې دې.هغه دسیاست او دملك انتظام په لحاظ سره دې.یعنی امام وقت دوباره زکاة په دې وجه وصول کړې دې.چه بیاڅوك ددې سےکار اقدام اونه کی (اونکړي).کوم چې دده په اختیارکي نه دې.② دوهم قول دادې.چه دوباره کوم ورکړې شوې دې.هغه زکاة دې.او ړومبې ئې چې کوم ورکړې دې.هغه نفل شو.هم داقول صحیح دې.

**حاصل القولين** ددې دواړو اقوالوحاصل دادې.چه مالك نصاب چې داوئيلې دى.چه دسوائمو زكاة ما فقيرانوته اداكړې دې.كه دا رشتياوى.نوددې دوې [دوه] صورتونه دى.ياخو به داكس «فيمابيني وبين الله» خلاص شى.اويا به خلاص نشى.نوچاچه اول اختياركړې دې.نودهغوى په نيز ړومبے زكاة دې.اودا داسې ده.لكه چې په زكاة وصول كونكى كس باندې دچا مال پټ پاتې شى.بياصاحب مال د هغې زكاة وركړو.نودابه هم زكاة وى.او دوهم يعنى كوم چې امام وقت د زكاة په نوم باندې دوباره وصول كړې دې.سياستِ ماليه دې. يعنى د دوباره زكاة اخستل ددې لپاره دى.چه نور خلگ په خپل اختيارسره د بهرپه كارونو باندې اقدام اونكړى.اوكوم كس چې دوهم صورت اختيار كړې دې.يعنى فقير ته په وركولوسره د نه برى كيدلو.نو دده په نيز دوهم خوزكاة دې.اوړومبې يعنى كوم ئې چې فقيرانو ته وركړې دې.هغه به نفل شى.

**نظيره** لكه چې څوك دجُمعې په ورځ په خپل كوركې د ماپښين لمونځ اداكړى.بيا «سعى إلى الجمعة» اوكړى .اودجمعې لمونځ اداكړى.يعنى ړومبے يعنى د ماپښين څلور ركعته به نفل شى.او دوهم به د جُمعې فرض لمونځ شى. (عنايه)

| ثُمَّ فِيمَا يُصَدَّقُ فِي السَّوَائِمِ وَأَمْوَالِ التِّجَارَةِ بيا په دى صورتونوكې په كومو كې چې په سوائمو اوپه مالونو د تجارت كې تصديق كولى شى لَمْ يَشْتَرِطْ إِخْرَاجَ الْبَرَاءَةِ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ په جامع صغير كې برات نامه خودل شرط نه دى وَشَرَطَهُ فِي الْأَصْلِ اوپه اصل يعنى مبسوط كې شرط دى وَهُوَ رِوَايَةُ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله اودامام ابوحنيفه رحمه الله نه دحسن روايت دى |
|---|

**تشريح:- الروايتان فى شرط امضاء العاشر** «ثم فيمايصدق فى السوائم وأموال التجارة....إلخ» ددې عبارت حاصل دادې.چه كه صاحب مال عاشرته اووئيل.چه ما دوهم عاشرته كوم چې په دې كال كې موجود وو.د زكاة مال ادكړې دې.نودده د تصديق لپاره به صرف قسم كافى وى.اوكه د دوهم عاشرليكلې شوې تصديق خودل به ضرورى وى؟ ① حضرت امام صاحب رحمه الله په جامع صغيركې فرمائى.چه په صاحب مال باندې دخپل تصديق لپاره ددې سے هيڅ قسمه ليكل پيش كول شرط نه دى. ② اوپه مبسوط كې ئې داشرط ګرځولې دې.هم دايو روايت دامام ابوحنيفه رحمه الله نه دحسن بن زياد رحمه الله دې.صاحب دهدايه هم دا ليكلې شوې تصديق په ،إخراج البراة،لفظ سره تعبيركړې دې.اوهم دے ته ،خطِ إبراء، وائى.

**الاعتراض وتوضيحه** د هدايه د علامه مرغينانى رحمه الله په عبارت «ثم فيمايصدق فى السوائم التجارة» كې اشكال دې.اشكال دادې.چه وړاندې تيرشو.چه په سوائم او اموال تجارت كې د صاحب مال د قول څلورصورتونه دى. ① يوداچه ده عاشر ته اووئيل.چه زما په ملك كې كوم مال دې.په دې حولان حول نه دې شوې. ② دوهم داچه ده اووئيل.چه زما په ذمه پور دې. ③ دريم داچه ده اووئيل.چه ما بل عاشرته كو چې په دې كال كې وو.زكاة اداكړې دې. ④ اوڅلورم داچه ما پخپله فقيرانوته زكاة اداكړې دې.

وړاندې داخبره هم تيره شوې ده.چه په اموال تجارت كې په څلورو واړو صورتونوكې دصاحب مال تصديق كولې شى.اوپه سوائموكې په اولنودرې صورتونوكې تصديق كيدلې شى.

ددې تفصيل نه روسته دهدايه علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه په اموال تجارت اوپه سوائموكې په كومو صورتونوكې چې دصاحب مال تصديق كيدلې شى.په دغه ټولوصورتونوكې د جامع صغير مطابق د براءت اخراج(ليكلې شوې ثبوت)شرط نه دې.اود مبسوط مطابق شرط دې.ددې عبارت مطلب داشو.چه دمبسوط دبيان په رو سره په ټولوصورتونوكې د براءت اخراج يعنى ليكلې شوې ثبوت پيش كول ضرورى دى.حالانكه ديوصورت نه علاوه د براءت اخراج ممكن هم نه دې.څكه چې كله مالك اووئيل. چې اوس حولان حول نه دې شوې.يا زما په ذمه پور دې.ياما فقيرانوته وركړې دې.نوپه دې درې واړه صورتونوكې به



څه تحرير پيش كړې شى؟ څوكه ده داسې اووئيل.چه مابل عاشرته زكاة وركړې دې.نوپه دې صورت كې د دوهم عاشر وركړې شوې تحرير پيش كول ممكن دى.

**الجواب** ددې څواب دادې.چه په عبارت كې مجازاً عام وئيلې شوې دى.خومراد ددې نه خاص دې.يعنى وئيلې شوې خوداسې لفظ دې.چه ټولو صورتونو ته ګډ دې.خومراد ترےنه ذكر شوې يو صورت دې.

| لِأَنَّهُ ادَّعَى چې څكه چې ده دعوى كړى ده وَلِصِدْقِ دَعْوَاهُ عَلَامَةٌ اوودده دصدق دعوى يوه نخښه ده فَيَجِبُ إِبْرَازُهَا نو ظاهرول ئې ضرورى ده |
|---|

**تشريح:-** د مبسوط روايت دليل دادې.چه صاحب دمال يوه دعوى كړې ده.دعوى داده.چه مابل عاشرته زكاة ادا كړې دې.اوددې دعوې په صداقت باندې علامت هم موجود دې.يعنى دبل عاشرليكل، نوپه ده به ليكل پيش كول واجب وى.

| وَجْهُ الْأَوَّلِ أَنَّ الْخَطَّ يُشْبِهُ الْخَطَّ فَلَا يُعْتَبَرُ عَلَامَةً داول وجه خط مشابه دخط كيدل دى روسته دعلامت كيدل به معتبر نه وى |
|---|

**تشريح:-** دجامع صغير روايت دليل دادې.چه يو تحرير(ليكل)د بل تحريرمشابه وى.په دې وجه به تحرير علامت معتبرنه وى.يعنى كوم تحرير چې صاحب مال بل عاشر اړخ ته منسوب كړې دې.پته نه لګى.چه دا هم دهغه تحرير دې.يا دبل چادې.په دې وجه تحريربه د علامت په طور پيش كول مفيد اوكارآمد نه وى.

## مسلمان او ذمى په تصديق كې برابرى

| قَالَ وَمَا صُدِّقَ فِيهِ الْمُسْلِمُ صُدِّقَ فِيهِ الذِّمِّيُّ اوپه كوم كې چې دمسلمان تصديق كولى شى د ذمى به هم تصديق كولى شى |
|---|

**تشريح:- تسوية الذمى مع المسلم فى التصديق** مسئله داده.كه د مسلمان په څائې ذمى د عاشر سره تيرشو. ① اوده دحولان حول انكار اوكړو. ② يا د قرضې نه ئې د فارغ كيدلو انكار اوكړو. ③ يائې دوهم عاشرته د اداكولودعوىٰ اوكړه. ④ يائې په خپله ښاركې دننه فقيرانوته د اداكاوه دعوىٰ اوكړه.نوپه كومو كومو صورتونوكې چې دمسلمان د قول تصديق كولې شى.هم په هغه صورتونوكې به دذمى د قول تصديق هم كولې شى.اووړاندې بيان كړې شوىدى.چه صرف په يوصورت كې دمسلمان د قول تصديق نشى كيداې .هغه داچه دےاووائى.ما د سوائمو زكاة په ښاركې دننه فقيرانو ته اداكړې دې.ددې نه علاوه به په پاتې ټولوصورتونوكې تصديق كولې شى.هم دغه ډول ددې يوصورت نه علاوه به دذمى دقول تصديق كيدلې شى.اوپه دې صورت كې به نشى كيدلې.

| لِأَنَّ مَا يُؤْخَذُ مِنْهُ ضِعْفُ مَا يُؤْخَذُ مِنَ الْمُسْلِمِ څكه چې دده نه كوم څه اخستلى شى هغه دوچند دى دهغې نه چې دمسلمان نه اخستلى شى فَتُرَاعَى تِلْكَ الشَّرَائِطُ تَحْقِيقًا لِلتَّضْعِيفِ نوددغو شرطونو لحاظ به كولى شى .د تضعيف دمعنى متحقق كيدلو لپاره |
|---|

**تشريح:- دليله** دليل دادې.چه د ذمى نه ددې دوچند اخستلې شى.كوم چې دمسلمان نه اخستلې شى.او مضعف (كوم چې دوچند كړې شو)كې هغه واړه شرطونه ملحوظ وى.كوم چې په مضعف عليه(په چاچه دوچند كړې شو)كې ملحوظ وى.نولكه څنګه چې په مضعف عليه(كوم چې دمسلمان نه اخستلې شى) باندې كال تيريدل،د دين نه فارغ كيدل، اود تجارت نيت كول شرط دى.دغه ډول په مضعف(كوم چې د ذمى نه اخستلې شوې دے)كې هم ددې شرطونولحاظ ساتل ضرورى دى.

## دحربي د تصديق اوتكذيب صورتونه

**وَلَا يُصَدَّقُ الْحَرْبِيُّ إِلَّا فِي الْجَوَارِي يَقُولُ: هُنَّ أُمَّهَاتُ أَوْلَادِي** او د حربي د تصديق به نه شي كولى مګر په وينځلو كي كوموته چي هغه وائي دا زما د اولاد مياندى دى **أَوْغِلْمَانٍ مَعَهُ يَقُولُ: هُمْ أَوْلَادِي** اوپه غلامانو كي كوموته چي هغه وائي چي دا زما اولاد دى

**تشريح:- عدم تصديق الحربى فى الصور الاربعة المذكورة**⊛صورت دمسئلې دادې.چه كه حربي سوداګر امان اوغواړي.اود تجارت په غرض سره زمونږ ملك يعنى داراسلام ته داخل شي.بيادې مال واخلي.او عاشر سره تيرشي.اوده په ذكر شووخبروكي كومه خبره اوكړه.مثلاً اوئي وئيل.چه زما په دې مال باندې د اوسه پورې كال نه دې تيرشوې.يائې اووئيل.چه زماپه ذمه پور دې.يائې اووئيل.چه مابل عاشرته عشر اداكړې دې.يائې اووئيل.چه ما پخپله د عشرمقدارفقيرانو ته وركړې دې.نوپه هيڅ يو صورت كي به هم دده تصديق نشى كيدلې.بلكه عاشر به دده نه عشر وصولوى.

**⊛تصديق الحربى فى الجوارى والغلمان**⊛خوكه دده سره وينځې وې.اوده اووئيل.چه دا زما د اولاد مندې (ميانديې) دى.يعنى زما أم ولد دى.يا ده سره هلكان وى.اودې وائى.چه دا زما اولاددې.نوپه دې دواړه صورتونوكي به دده دقول تصديق كولې شي.اوپه دې وينځواو هلكانوكي به عشرنشي اخستلې.

**لِأَنَّ الْأَخْذَ مِنْهُ بِطَرِيقِ الْحِمَايَةِ** ځكه چي دحربي نه عشر اخستل په طور دحمايت دى **وَمَا فِي يَدِهِ مِنَ الْمَالِ يَحْتَاجُ إِلَى الْحِمَايَةِ** اوكوم مال چي په لاس كي دى ددغه محتاج دحمايت دى

**تشريح:- دليل اخذالعشر من الحربى فى الصورتين**⊛دحربي تاجرد مال نه دعشر اخستلودليل دادې.چه دحربي نه عشرپه دې وجه اخستلې شي.چه د داراسلام امير اوسلطان دده دمال حمايت او ساتنه كوى.اوكوم مال چي دده په قبضه كي دې.ددې د ساتنه ده ته حاجت هم دې.نوهركله چي اهل اسلام دده مال محفوظ اوساتلو.نود ساتنه حق يعنى عشربه هم ضرور اخستلې شي.

**⊛دلائل عدم تصديق الحربى فى الصور الاربعة**⊛اوپه ذكرشوى څلورووارو صورتونوكي به دده تصديق په دې وجه نشى كيدلې.چه دده په تصديق كولوكي هيڅ فائده نشته.① ځكه كه دے اووائى.زما په مال د اوسه پورې كال نه دې تيرشوې.نوونيلې به شي.چه دحربي په مال كي د عشر دوجوب لپاره حولان حول شرط نه دې.ځكه چي په حربي عشرواجبيږي.دده اودده دمال ساتنه كاوه په وجه،اود حربي لپاره صرف په امان سره حمايت او ساتنه حاصل شو.په دې وجه به د امان نه روسته په ده باندې عشر واجب وى.كه كال تيرشى اوكه نه.② اوكه دےاووائى.چه په ماقرضه ده.نوددې به هم تصديق نه كيږي.ځكه كومه قرضه چي په ده په دې رالحرب كي واجب شوې ده.دهغې مطالبه په دې راسلام كي نشى كولې.③ اوكه حربي اووائى.چه ماعشربل عاشرته وركړې دې.نودده خبرې ته به توجه نشى كولې.ځكه چي كوم څه دده نه وصول كولې شى.هغه دحمايت او ساتنه مزدورى ده.او ساتنه په نفس امان سره موجود شوې دې.④ اوكه دےاووائى.ماپخپله فقيرانوته اداكړې دې.نوددې به هم تصديق نشى كيدلې.ځكه چي دده اعتقاد دده تكذيب كوى.

**غَيْرَ أَنَّ إِقْرَارَهُ بِنَسَبِ مَنْ فِي يَدِهِ مِنْهُ صَحِيحٌ** صرف دومره خبرده چي څه دده په قبضه كي دى ددغى دنسب اقرار دده نه صحيح دى **فَكَذَا بِأُمُومِيَّةِ الْوَلَدِ** نو دغه ډول دأم ولد كيدو اقرار هم صحيح دى **لِأَنَّهَا تَبْتَنِي عَلَيْهِ** ځكه چي ام ولد كيدو په ولد مبنى دى **فَانْعَدَمَتْ صِفَةُ الْمَالِيَّةِ فِيهِنَّ** نوصفت دماليت پكي معدوم شو **وَالْأَخْذُ لَا يَجِبُ إِلَّا مِنَ الْمَالِ** اوعشر اخستل واجب نه دى مګر دمال نه.

**تشريح:- دليل تصديق الحربى فى اثبات النسب**⊛صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه كوم سړےدحربي په قبضه كي دې.دهغه د نسب اقرار دده داړخه صحيح دې.يعنى دا وئيل.چه دازما خوئےدې.يا لورده.يادا زما د اولاد



مياندےدى.نومونږ به دا اقرار منو.ځكه چي دده حربي كيدل،د استيلاد(بچو راوړلو) او نسب منافي نه دى.ځكه چي استيلاد او نسب څنګه په دې راسلام كي ثابتيږي.دغه ډول په دې رحرب كي هم ثابتيږي. نو هر كله چي دوينځو په اړه كي د ام ولدكيدلو اقرار، او دهلكانوپه اړه كي د اولادكيدلو اقرار صحيح دې.نوپه دې كي به عشر وغيره هم واجب نه وى.ځكه چي په ام ولد،او اولاد كي د مال كيدلو صفت معدوم (غير موجود ) دې.اوعشر د مال نه اخستلې شى.د غيرمال نه نشى اخستلې.په دې وجه به په دې كي عشرنه نشى اخستلې.

## د مسلمان ذمي اوحربي د عشر مقدار

**قَالَ وَيُؤْخَذُ مِنَ الْمُسْلِمِ رُبْعُ الْعُشْرِ وَمِنَ الذِّمِّيِّ نِصْفُ الْعُشْرِ وَمِنَ الْحَرْبِيِّ الْعُشْرُ** او اخستلى به شي دمسلمان نه څلورمه دعشر اود ذمي نه نيمه د عشر اودحربي نه لسمه

**تشريح:- نصاب اخذ العشر من المسلم والذمى والحربى**⊛شيخ ابوالحسن قدورى رحمه الله فرمائي.چه د مسلمان تاجرنه به دده د مال څلويښتمه برخه اخستلې شى.اود ذمي سوداګرنه به دده دمال شلمه حصه،اود حربي سوداګر څخه به لسمه برخه اخستلې شى.

**هَكَذَا أَمَرَ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سُعَاتَهُ** [1] داشان حكم كړى وو عمر رضى الله عنه خپلوعاملانو ته

**تشريح:- الدليل النقلى**⊛ ①دليل دادې.چه حضرت عمر رضى الله عنه د زكاة وصول كونكوعاملانو او عاشرانوته هم ددې حكم فرمائيلې وو.دحضرت عمر رضى الله عنه ارشاددې. «خذوا من المسلم ربع العشر ومن الذمى نصف العشر ومن الحربى العشر» د حضرت عمر رضى الله عنه دا فيصله چونكه دصحابو رضى الله عنهم په موجودګئ كي وه.او په صحابو رضى الله عنهم كي چا هم څه قسمه اختلاف اونكړو.په دې وجه دا اجماع شوه.

**وَإِنْ مَرَّ حَرْبِيٌّ بِخَمْسِينَ دِرْهَمًا** كه يوحربي دپنځوستو درهمو سره تير شو **لَمْ يُؤْخَذْ مِنْهُ شَيْءٌ إِلَّا أَنْ يَكُونُوا يَأْخُذُونَ مِنَّا مِنْ مِثْلِهَا** نودده څخه به څه نشى اخستلى مګر داكه په دومره كم مال كښي هغوى زمونږ نه اخلى **لِأَنَّ الْأَخْذَ مِنْهُمْ بِطَرِيقِ الْمُجَازَاةِ** ځكه چي ددوى نه اخستل دبدلى په طور دى

**حل اللغة*** ① المجازاة:د بدلې په توګه وصولول

**تشريح:- عدم الاخذ من الحربى فى الاقل الاعند اخذهم من المسلم**⊛صاحب دقدورى رحمه الله فرمائي.كه څوك حربي د پنځوسو درهموسره د عاشرسره تيرشو.نودده څخه به هيڅ نشى اخستلې.خوكه دوى دومره قليل مقدار زمونږ د خلګو نه اخلى.نوبيابه مونږهم اخلو.ځكه چي دحربيانو نه اخستل په طريقه د مجازات( بدلے ) دى. كومه معامله چي دوى زمونږ سره كوى.هغه به مونږ هم دهغوى سره كوو.

**⊛دليله**⊛دحضرت على رضى الله عنه فرمان هم دےطرفےته اشاره كوى.ځكه چي فاروق اعظم رضى الله عنه چي كله عاشران مقرركړل.نود دوى نه پوښتنه اوشو.چه «كم نأخذ مما مربه الحربى» يعنى مونږ دحربي د مال نه څومره وصول كړو.نودوى رضى الله عنه ترې نه پوښتنه اوكړو. «كم يأخذون منا؟» دوى زمونږ نه څومره اخلى. خلګو اووئيل.عشر اخلى.دوى رضى الله عنه ورته اوفرمائيل. «خذوا منهم العشر» تاسوهم ددوى نه عشر اخلئ.

**⊛الاعتراض والجواب**⊛ دلته كي يو اعتراض كيداې شى.هغه داچه د علامه مرغينانى په عبارت كي منافات دې.ځكه چي مخكي وئيلى شوى دى.چه د ذميانو او حربيانو نه عشر اخستل دحمايت په طريقه دى.او دلته كي وئيلى شوى دى.چه حربيانو نه اخستل په طريقه د مجازات دى؟

[1] أثرانس بن سيرين رحمه الله أخرجه عبدالرزاق فى مصنفه ومحمد بن حسن الشيبانى فى كتاب الآثار (ص،٤٨) كذا فى نصب الراية ٣٩٠/٢)_

الجواب۞ دحربیانونه مطلقا اخستل خو دحمایت په وجه دی.او معین مقدار یعنی لسمه برخه اخستل د مجازات اوبدلے په وجه دی.اوس به په دې صورت کې د منافات اعتراض نه واقع کیږی.

بِخِلَافِ الْمُسْلِمِ وَالذِّمِّيِّ په خلاف دمسلمان او ذمی لِأَنَّ الْمَأْخُوذَ زَكَاةٌ أَوْ ضِعْفُهَا چې څه اخستلی شی .دغه زکاة یا دوچند دی فَلَا بُدَّ مِنَ النِّصَابِ نودنصاب کیدل ضروری دی

تشریح:- مایؤخذمن الذمی والمسلم زکاة۞ددې په خلاف مسلمان او ذمی، چې ددوی نه څه اخستلې شی.هغه زکاة دې.یا د زکاة دوچند دې.یعنی دمسلمان نه زکاة اخستلې شی.او د ذمی نه د مسلمان د زکاة دوچند اخستلې شی.په دې وجه د نصاب کیدل ضروری دی.چه ددې نصاب نه زکاة یا د زکاة دوچند واخستلې شی.

وَهٰذَا فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ وَفِي كِتَابِ الزَّكَاةِ اوددا په جامع صغیر کښې دی اوپه کتاب الزکاة کې دی لَا نَأْخُذُ مِنَ الْقَلِيلِ وَإِنْ كَانُوا يَأْخُذُونَ مِنَّا مِنْهُ چې موږ به دلږ مال نه څه اخلو اګر چې هغوی زموږ نه اخلی

تشریح:- الروایتان فی العشرمن المال القلیل①۞صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه دمال قلیل نه د بدلے په طور باندې اخستل جائزدی.دا په جامع صغیرکې دی.② اود مبسوط په کتاب الزکاة کې دی.چه دحربی قلیل مال څخه به عاشرهیڅ نه اخلی.اګرچه حربی خلګ زموږ ددې سےمال نه اخلی.

لِأَنَّ الْقَلِيلَ لَمْ يَزَلْ عَفْوًا ځکه چې قلیل همیشه عفو دی وَلِأَنَّهُ لَا يَحْتَاجُ إِلَى الْحِمَايَةِ او ځکه چې هغه محتاج د حمایت نه دی .

تشریح:- دلائل عدم الاخذ فی القلیل۞ ①ځکه چې قلیل مال همیشه عفو وی.اوس که په دې کې عشر واخستلې شی.نودا به ظلم وی.② دوهم دلیل دادې.چه قلیل مال د ساتنه محتاج هم نه دې.حالانکه عاشر د ساتنه په وجه د اخستلومستحق دې.

## د حربی نه د عشراخستلوصورت

قَالَ وَإِنْ مَرَّ حَرْبِيٌّ بِمِائَتَيْ دِرْهَمٍ اوکه حربی د دوې [دوه] سوه درهمو سره تیر شو وَلَا يُعْلَمُ كَمْ يَأْخُذُونَ مِنَّا اومعلومه نه وه چې هغوی زموږ نه څومره نَأْخُذُ مِنْهُ الْعُشْرَ نولسمه به تری اخستلی شی

تشریح:- اخذ العشرمن الحربی فی المائتین۞ مسئله داده.که حربی سوداګر دوې [دوه] سوه درهمه یاددې نه په زیاتوسره د عاشر په خواکې تیرشو.اومسلمان عاشرته ددې علم نشته.چه دوی زموږ د سوداګرو نه څه اخلی.نودده څخه به عشر اخستلې شی.

لِقَوْلِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په دلیل دقول دعمر فَإِنْ أَعْيَاكُمْ فَالْعُشْرُ (١) چې که هغه تاسو ستړی کړی نولسمه ده

حل اللغة* ①اعیاکم:ستړې کول

تشریح:- دلیله۞دلیل دحضرت عمر رضی الله عنه قول دې.چه﴿فإن أعیاکم فالعشر﴾یعنی که تاسوددې معلومات نه عاجزه شئ.چه حربی ستاسونه څه اخلی.نو بیا تاسو لسمه برخه اخلئ.

وَإِنْ عُلِمَ أَنَّهُمْ يَأْخُذُونَ مِنَّا رُبُعَ الْعُشْرِ أَوْ نِصْفَ الْعُشْرِ اوکه دامعلوم وی چې هغوی زموږ نه څلویښتمه یاشلمه اخلی نَأْخُذُ بِقَدْرِهِ نوپدی قدرت به تری اخستلی شی

تشریح:- یؤخذ من الحربی مایاخذون منا۞اوکه دا معلومه وی.چه حربی خلګ موږ نه څلویښتمه یا شلمه برخه

(١) أثرانس بن سیرین رحمه الله أخرجه عبدالرزاق فی مصنفه ومحمد بن حسن الشیبانی فی کتاب الآثار (ص،٤٨) کذا فی نصب الرأیة ٣٩٠/٢)_



اخلی.نو زموږ عاشر به هم ددوی نه دومره قدرې اخلی.

فَإِنْ كَانُوا يَأْخُذُونَ الْكُلَّ اوکه هغو واړه مال اخستلو لَا نَأْخُذُ الْكُلَّ نوعاشر به ترے واړه مال نه اخلی لِأَنَّهُ غَدْرٌ ځکه چې دا بدعهدی ده

تشریح:- الروایات الثلاثة فی اخذهم جمیع المال منا۞ ①اوکه دا معلومه وی.چه حربی خلګ زموږ د سوداګرو نه پوره مال اخلی.نو زموږ عاشر به د حربی سوداګر نه پوره مال نه اخلی.ځکه چې داخو بد عهدی ده.چه د امن ورکاوه نه روسته دے پوره مال واخستلو.او غدر(دهوکه)کول حرام دی.اګرچه حربی کافران داسې کوی.که حربی خلګ د امن ورکولونه روسته زموږ سوداګر مړه کړی.نوموږ به ئې نه قتل کوو.② اوبعضو مشائخو رحمهم الله فرمائیلی‌دی.چه په دې صورت کې به زموږ عاشر هم پوره مال اخلی.سوې د دومره قدرې مال نه، چې دے پرې خپل وطن ته اورسی . ځکه چې موږ دده په وطن رسولوباندې مامور یو.د الله تعالی ارشاد دې.((ثُمَّ أَبْلِغْهُ مَأْمَنَهُ)) بیا دې خپل ځائې یعنی وطن ته اورسوه.③ او بعضې مشائخ رحمهم الله فرمائی.چه دحربی سوداګرنه به پوره مال اخستلې شی.ده سره دومره هم پاتې نشی.چه دےخپل وطن ته اورسی.ځکه چې دحربیانو نه په طریقے دمجازات (بدلے) اخستلې شی.نوځنګه سلوک چې دوی زموږ سره کوی.چه زموږ د سوداګرونه پوره مال اخلی.هم دغه ډول به موږ هم ددوی سره کوو.چه دوی ته تنبیه(خبردارے) اوشی.

وَإِنْ كَانُوا لَا يَأْخُذُونَ أَصْلًا اوکه هغوی بالکل نه اخستلی لَا نَأْخُذُ لِيَتْرُكُوا الْأَخْذَ مِنْ تُجَّارِنَا نوعاشر په تری هم څه نه اخلی چې هغوی زموږ دتاجرانو نه اخستل پریږدی

تشریح:- اوکه حربی زموږ نه هیڅ هم نه اخلی.نو زموږ عاشر به هم څه نه اخلی.چه دوی زموږ د سوداګرو نه اخستل پریږدی.

وَلِأَنَّا أَحَقُّ بِمَكَارِمِ الْأَخْلَاقِ اوځکه چې موږ دمکارم اخلاق زیات لائق یو.

حل اللغة* ① مکارم:ښکلې اخلاق

تشریح:- الدلیل لعدم الاخذ بالکلیة۞ دوهم دلیل دادې.چه دوی زموږ نه څه وانه خستل.زموږ سره ئې د اخلاق کریمه(ښه اخلاقو) معامله کړې ده.نوموږ د اخلاق کریمه زیات لائق یو.(چه ددوی نه هیڅ وانخلو.

## دحربی څخه به دوباره عشرنشې اخستې

قَالَ وَإِنْ مَرَّ حَرْبِيٌّ عَلَى عَاشِرٍ که یو حربی په عاشر تیرشو فَعَشَرَهُ نوده ترے عشر واخستلو ثُمَّ مَرَّ مَرَّةً أُخْرَى بیا هغه دوباره پده راغلو لَمْ يُعَشِّرْهُ حَتَّى يَحُولَ الْحَوْلُ نوعشر به ترے نا خلی تردی چې کال تیرشی

حل اللغة* ①یعشر:عشر وصولول

تشریح:- عدم اخذ العشرمن الحربی فی العام الواحد مرتین۞ مسئله داده.چه که د حربی سوداګر تیریدل په عاشر باندې اوشو.اوعاشر دده نه عشر وصول کړو.بیاځو ورځې روسته دارالحرب ته د واروسته تللونه مخکې دوباره دده تیریدل دعاشر په خواکې اوشو.نوددې دوې [دوه] صورتونه دی.ددې حربی تیریدل به یو کال روسته شوې وی.یا به هم دےکال کې دننه شوې وی.که یوکال روسته شوې دې.نوعاشربه دده نه دوباره عشر وصول کوی.اوکه په دې کال کې دننه شوې دې.نوعاشر به دوباره نه وصول کوی.

لِأَنَّ الْأَخْذَ فِي كُلِّ مَرَّةٍ اسْتِئْصَالُ الْمَالِ ځکه چې هرځل اخستلوسره مال دزیلو نه ختمیږی وَحَقُّ الْأَخْذِ لِحِفْظِهِ حال دادی چې حق داخستلو د ساتنه دمال لپاره وو

تشریح:- دلیله۞ ①ددې یو دلیل دادې.چه په یوکال کې دننه باربار دعاشر په خواکې تیریدلو په صورت کې که باربارعشر واخستلې شی.نوددې غریب واړه مال به دعشرنذر شی.اودده سره به هیڅ پاته پاتې نشی.حالانکه د حربی نه دعشر اخستلوحق د مال د ساتنه په وجه وو.

**وَلِأَنَّ حُكْمَ الْأَمَانِ الْأَوَّلِ بَاقٍ**.او ځکه چې د اولنی آمان ور کاوه حکم پاته دی

**تشريح:-** دوهم دليل دادې.چه په كال كي دننه دننه د اول امان حکم پاته دې.اوده دهغې په وجه عشر اداکړې دې.په دې وجه به عاشر په يوكال كي دوباره عشر نه اخلی.

**تائيده بواقعة عمر**ﷺ دحضرت عمر دفرمان نه هم ددې تائيد كيږی.دصاحب عنايه رحمه الله د بيان مطابق واقعه داده.چه يونصرانی خپل اسونه روان كړل.اود فاروق اعظم د يوعاشر په خواكې تير شو. عاشر ددې حربی نصرانی نه عشر واخستلو.دا نصرانی دارالحرب اړخ ته د واروسته كيدلونه مخكې هم دغه كال كي ددې عاشرپه خواكې دوباره تيرشو.عاشرده نه دوباره دعشر اخستلو اراده اوكړه.نو نصرانی ورته اووئيل.چه كه ته هروارے عشراخلے.نو زما واړه اسونه په ختم شی.يعنی واړه اسونه به په عشركي لاړشی.نو زماسره به څه پاتې شی؟ نو نصرانی خپل اسونه دعاشر سره پريخودل.اود خليفة المسلمين عمرفاروق په خدمت كي حاضر شو.نوكله چې دےمدينے ته داخل شو.نو سيدها مسجد نبوی ته لاړلو.د دروازے په چوكاټ ئې دواړه لاسونه كيخودل.او داسې ئې اووئيل.اےاميرالمؤمنين ! زه يو نصرانی شيخ يم.اميرالمؤمنين اوفرمائيل.چه زه حنيفی شيخ يم.يعنی د ملت ابراهيم پيروكار يم.نصرانی پوره واقعه بيان كړله.نوحضرت عمر اوفرمائيل.چه ستا فرياد به پوره كولې شی.نو ده خپل سركښته كړلو.او واروسته لاړلو.نصرانی دا اوګڼړل.چه حضرت عمر دده ظلم سپك اوګڼړلو.او زما شكايت ته ئې هيڅ څه توجه ورنكړه.نو نامراده واروسته شولو.خوچه كله دے دخپلو اسونو خواله اورسيدلو.نودې عاشرته د فاروق اعظم خط دده نه مخكې رسيدلې وو.چه په هغې كي ليكلی شوی وو. «انك إن أخذت العشر مرة فلا تأخذه مرة اخرى» يعنی چې كله تا يوځلې عشر اخستې دې.نوددې نصرانی نه دوباره عشر مه اخله. دې بوډها نصرانی چې دحضرت عمر دا معامله اوكتله.نو او ئې وئيل.چه په دې دين يعنی په مذهب اسلام كي كه دومره زيات عدل وی.نو يقيناً چې دا دين برحق دين دې.دائې اووئيل.اومسلمان شو.ددې واقعې نه معلومه شوه.چه حربی كه دارحرب ته واروسته نه وی تلے.اوبيا نه وی راغلې.نودده څخه به په يوكال كي دوباره عشر نشی اخستلې.

**وَبَعْدَ الْحَوْلِ يَتَجَدَّدُ الْأَمَانُ** اودكال په تيريدو به آمان نوی شی **لِأَنَّهُ لَا يُمَكَّنُ مِنَ الْإِقَامَةِ إِلَّا حَوْلًا** او ځكه چې حرب ته دپاتی كيدلو قابو نشته مګر ديو كال **وَالْأَخْذُ بَعْدَهُ لَا يَسْتَأْصِلُ الْمَالَ** اوددی نه روسته اخستل مال ختموی.

**تشريح:- الاخذ مرة اخرى فى العام الجديد**ﷺ خوكه حربی د يوكال نه روسته هم په دې ر اسلام كي پاتې شو.نود دوهم كال پيل كيدلونه روسته به دوباره عشر اخستلې شی.ځكه چې د يوكال نه روسته د امن تجديد كيږی.يعنی ديو كال نه روسته ګويا ده ته دوباره امان وركړې شوې دې.اوهركله چې دوباره امان وركړې شوې دې.نودوباره به عشر واجب وی.اود يوكال نه روسته په عشر اخستلوسره چونكه د مال استيصال او استهلاك هم نه كيږی.په دې وجه به هم د پوره كال نه روسته دوباره عشر اخستلې شی.اود يوكال نه روسته د امان تجديد ځكه ضروری دې.چه دحربی لپاره د يوكال نه زيات په دې راسلام كي قيام كول ممكن نه دی.اونه ده ته د يوكال نه زيات ايساريدلو قدرت وركولې شی.

**عدم اجازة القيام للحربى الزائد من العام الواحد**ﷺصاحب د فتح القدير وئيلې دی.چه په «لايمكن من القيام إلا حولا» كي لفظ د ،إلا، زائد دې.او سهو د كاتب ده.نو اوس حاصل داشو.چه دحربی لپاره په دې راسلام كي دننه ديو كال قيام كول ممكن نه دی.هم داصحيح ده.ځكه چې حربی ته پوره د يوكال قيام اجازت نه وی.بلكه د يوكال نه دكم اجازت وی.نوحربی چې كله په دې راسلام كي داخليږی.نو امام به ده ته دا وائی.چه كه تا پوره كال قيام اوكړو.نوپه دې به جزيه وی.اوس كه ده پوره يو كال قيام اوكړو.او امام په ده باندې جزيه مقرر كړه.نواوس به دده لپاره دارالحرب ته واروسته كيدل ممكن نه وی.بلكه دے به ذمی جوړشی.اوپه دې راسلام كي به د خپل ژوند ورځې پوره كوی.



**التناقض فى العبارة**ﷺدصاحب د فتح القدير رحمه الله ددې تصيح عبارت نه روسته دصاحب هدايه په عبارت كي تناقض لازميږی.په دې طريقه چې دمسئلے په پيل كي وئيلی شوی دی.چه كه حربی د عاشر په خوې كي دوباره تيرشی.نودده څخه به دوباره عشر نشی اخستلې.خوكه په ده كال تيرشی.يعنی كه يوكال پوره شی. او دوهم كال پيل شی.نودوباره به عشر اخستلې شی.ددې عبارت نه معلوميږی.چه حربی د يوكال نه زيات په دې راسلام كي قيام كولې شی.اوورانديې ئې «لايمكن من القيام إلا حولا» اووئيلې.او لفظ د ،إلا، غلط دې.لكه څنګه چې بيان شو. نو مطلب داشو.چه حربی له ديوكال ايساريدلو باندې قدرت نه دې وركړې شوې

**الجواب**ﷺ ددې ځواب دادې.چه حربی د يوكال پورې په دې راسلام كي پاتې شو.او امام ته دده د حال علم اونشو.نوپه دې سې صورت كي به دده نه دوباره عشر اخستلې شی.

## په نوي امان سره د داخليدو صورت

**فَإِنْ عَشَرَهُ** اوكه عشرترى اخستلى شو **فَرَجَعَ إِلَى دَارِ الْحَرْبِ** نوبيا دى واروسته شودارالحرب ته **ثُمَّ خَرَجَ مِنْ يَوْمِهِ** **ذٰلِكَ عَشَرَهُ أَيْضًا** نوبيا په دغه ورځ واروسته راغلو بيا به ترى هم عشر اخستلى شي

**تشريح:- وجوب العشربالدخول بامان جديد**ﷺ ①مسئله داده.كه عاشر د حربی تاجر نه عشر واخستلو.بيا هغه حربی سوداګرلاړلو.اوهم دغه ورځ واروسته راغے.نودده څخه به دوباره عشر اخستلې شی.

**لِأَنَّهُ رَجَعَ بِأَمَانٍ جَدِيدٍ** ځكه چې دی په نوی آمان سره واروسته شو **وَكَذَا الْأَخْذُ بَعْدَهُ لَا يُفْضِي إِلَى الِاسْتِئْصَالِ** او دغشی ددی نه روسته اخستل مال دويخ نه ختمول نه دی.

**تشريح:- دليله**ﷺځكه چې داحربی هركله دارحرب ته لاړلو.او واروسته راغے.نوپه نوی امان سره راغلې دې.نوددې نوی امان په وجه به دده نه دوباره عشروصول كولې شی.او دارحرب ته د تللو، او د واروسته راتلونه روسته عشر اخستل د مال د استهلاك سبب هم نه دې.په دې وجه هم په دوباره عشر اخستلوكي څه باك نشته.

## د ذمي نه د شرابو اوخنزير د عشر اخستل

**وَإِنْ مَرَّ ذِمِّيٌّ بِخَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ** اوكه ذمی د شرابو يا خزير سره راتيرشو **عَشَرَ الْخَمْرَ دُونَ الْخِنْزِيرِ**()نو دشرابو عشر به اخلی نه دخنزير **وَقَوْلُهُ عَشَرَ الْخَمْرَ: أَيْ مِنْ قِيمَتِهَا** اودعشر دشرابو مطلب دادی چې د قيمت څخه به ئی عشر اخلی

**تشريح:- مذهب الطرفين فى عشرالخمروالخنزير**ﷺ مسئله داده.كه ذمی د تجارت په نيت سره شراب يا خنزير دواړه واخلی.اود عاشر په خواكې تيريږی.اوددې قيمت د دوې [دوه] سوه درهمو مقدار ته رسيږی. نو په دې كي څلور اقواله دی. دطرفينو رحمهما الله په نيزد شرابو په قيمت كي به ددې لسمه برخه اخستلې شی.خود سور(خنزير) عشر به نشی اخستلې.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ لَا يَعْشُرُهُمَا** اوشافعی رحمه الله فرمائی چې د دواړو عشربه نه اخلی **لِأَنَّهُ لَا قِيمَةَ لَهُمَا** ځكه چې ددې دواړو هې څ قيمت نشته دی

**تشريح:-** د امام شافعی رحمه الله په نيز به د دواړوعشر نشی اخستلې.

**دليله**ﷺد امام شافعی رحمه الله دليل دادې.چه دشرابواو خنزير نه څه ماليت شته.اونه ئې څه قيمت شته.هم دا وجه ده.كه مسلمان د ذمی شراب ياسور هلاك كړو.نوددوی په نيز به په ده ضمان نه راځی.نوهركله چې دا دواړه دشوافعو رحمهم الله په نيزمال نه دې.نوپه دې كي به عشر هم واجب نه وی.ځكه چې عشر په مال كي واجبيږی.په غيرمال كي نه واجبيږی.

[1]) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فى الهندية (۱۸٤\۱) والدرى لمختار(٤٦\۲) نقلاً عن القول الراجح (۱۷٥\۱)-

**وَقَالَ زُفَرُ: يَعْشُرُهُمَا لِاسْتِوَائِهِمَا فِي الْمَالِيَّةِ عِنْدَهُمْ** امام زفر رحمه الله فرمائي چې د دواړو به اخلي په ماليت کې ددواړو ديوشان کيدو په وجه ددوی په نزدی

**تشريح:-** د امام زفر رحمه الله په نيز به عاشر د شرابو اوخنزير دواړوعشر وصول کوی.

**دليله** ۞ د امام زفر رحمه الله دليل دادی.چه شراب اوسور دکافرانو په نيزدواړه مال دی.اګرچه زموږ په نيز مال نه دی.په دې وجه که مسلمان د ذمی سورهلاك کړو.نوپه ده به ضمان واجب وی.لکه څنګه چې دده په شرابو هلاکولوسره ضمان راځی.نوهرکله چې د امام زفر رحمه الله په نيز په مال کې دواړه برابردی.اګرچه صرف دکافرانو په نيزمال دی.د اهل اسلام په نيز مال نه دی.نوپه دې کې به عشر هم واجب وی.ځکه چې د تجارت په هرمال کی عشرواجب وی.په دې شرط چې د نصاب په اندازه وی.

**وَقَالَ أَبُويُوسُفَ: يَعْشُرُهُمَا إِذَا مَرَّ بِهِمَا جُمْلَةً.** امام يوسف رحمه الله فرمائي ددواړو عشربه اخلي که دواړو ئی يوځائی راوړل

**تشريح:-** د امام ابويوسف رحمه الله په نيز حکم دادی.چه ذمی سوداګرکه دواړه يوځائی دځان سره واخستل.نوعاشر به د دواړوعشر اخلي.اوکه ځانله ځانله (بيل،بيل) ئې واخستل،او په خواکې ئې تيرشی.نود شرابوعشر به اخلي.او دسور عشر به نه اخلي.

**كَأَنَّهُ جَعَلَ الْخِنْزِيرَ تَبَعًا لِلْخَمْرِ** ګويا دوی خنزير تابع دشرابو ګرځولی دی **فَإِنْ مَرَّ بِكُلِّ وَاحِدٍ عَلَى الِانْفِرَادِ** نو که هريو يوازی يوازی راوړ راتير شو **عَشَرَ الْخَمْرَ دُونَ الْخِنْزِيرِ** نودشرابو عشر به اخلي نه که د خنزير

**تشريح:- دليله** ۞ حضرت امام ابويوسف رحمه الله دتبعيت اعتبار کړې دې.ځکه دوی خنزير د شرابوتابع کړو.اووې وئيل.چه که دواړه په يوځائې واخلي او تيرشی.نو د دواړو عشريه اخستلې شی. اوکه بيل بيل واخلي او تير شی . نو عاشر به دشرابو عشر اخلي.د سور به نه اخلي.

**وجه تبعية الخنزير للخمر** ۞پاتې شوه داخبره چې خنزير ئې دشرابو ولې تابع کړې دې؟ ددې په عکس ئې ولې نه دی کړی؟ نوددې ځواب دادې.چه شراب د ماليت سره ډير نږدې دی.ځکه چې دکوم شی نه شراب تياريږی.هغه دشرابو جوړولو نه مخکې هم مال وو.او دشرابو جوړولو نه روسته هم مال دې.په دې طريقه چې ددې نه سرکه جوړه شی.اوپه خنزير کې داسې نه دی.هم دا وجه ده.چه که د مکاتب سره خمراوخنزير وی.اودې دبدل کتابت ادا کاوه نه عاجزشی.نو شراب به د مولیٰ ملك شی.خو شراب به دمولیٰ ملك نه وی.اوډيروارے شئ تبعاً ثابتيږی.ليکن قصداً نه ثابتيږی.په دې وجه به دخمرتابع جوړيږی. اودخنزير عشر به اخستلې شی.خوچه مقصود جوړکړې شی.اومستقلاً د خنزير عشر واخستلې شی.نو داسې به نه کيږی.

**وَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى الظَّاهِرِ أَنَّ الْقِيمَةَ فِي ذَوَاتِ الْقِيَمِ لَهَا حُكْمُ الْعَيْنِ** او وجه دفرق په ظاهره کې داده چې په ذوات القليم کې دقيمت حکم دعين شی دی **وَالْخِنْزِيرُ مِنْهَا** اوخنزير د ذوات العليم نه **وَفِي ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ لَيْسَ لَهَا هَذَا الْحُكْمُ** اوپه ذوات الامثال کې دقيمت دا حکم نه دی **وَالْخَمْرُ مِنْهَا** اوشراب دذوات الامثال نه دی

**تشريح:- دليل الطرفين** رحمهما الله ۞ ① دطرفينو رحمهما الله دليل او وجه د توپير داده.چه په ذوات القيم کې دننه د قيمت حکم عين د شئ حکم وی.اوخنزير د ذوات القيم څخه دې.نود خنزير د قيمت اخستل عين دخنزير قيمت اخستل دی.او دمسلمان لپاره د خنزير اخستل، او مالك کيدل جائز نه دی.په دې وجه اووئيلې شو.چه د خنزير عشر به نشی اخستلې.او په ذوات المثال کې دننه د قيمت حکم دعين شئ حکم نه وی.او خمر د ذوات الامثال څخه دی.نود خمر د قيمت نه عشر اخستل عين دخمر اخستل نشو.اوهرکله چې داخبره ده.نود خمر دقيمت نه عشر اخستل هم جائزدی.

**وَلِأَنَّ حَقَّ الْأَخْذِ لِلْحِمَايَةِ** اوځکه چې د اخستلو حق دحمايت په وجه سره دی **وَالْمُسْلِمُ يَحْمِي خَمْرَ نَفْسِهِ لِلتَّخْلِيلِ** اومسلمان ساتنه کوی دځپلو ذاتی شرابو دسرکه کاوه لپاره **فَكَذَا يَحْمِيهَا عَلَى غَيْرِهِ** نو دغير لپاره به ئی هم



ساتنه کوی **وَلَا يَحْمِي خِنْزِيرَ نَفْسِهِ بَلْ يَجِبُ تَسْيِيبُهُ بِالْإِسْلَامِ** اودځپل ذاتی خنزير ساتنه نه کوی بلکه داسلام لپاره ددی پريښودل واجب دی **فَكَذَا لَا يَحْمِيهِ عَلَى غَيْرِهِ** نو دی به ددی دغير لپاره هم ساتنه نه کوی.

**تشريح:-** دوهم دليل دادې.چه دعشر اخستلوحق د حمايت او ساتنه په وجه دې.او مسلمان دځپلوذاتی شرابو ساتنه کوی.خود سکلو لپاره نه.بلکه دسرکه جوړولو دپاره.نولکه څنګه چې دځپلوشرابو ساتنه کوی.دغه ډول د نورو دشرابوهم ساتنه کوی.اوهرکله چې ساتنه اومونډلې شو.نود ساتنه حق يعنی عشر دې هم واخلی.او چونکه مسلمان دځپل ذاتی خنزير ساتنه نه کوی.بلکه په مسلمانيدلوسره ددې پريخول واجب دی.نودې به دنورو د خنزيرانو ساتنه هم نه کوی.نوهرکله چې دخنزيرانو ساتنه اونه مونډې شو.نوددې عشر به هم نه اخلي.

## د بنی تغلب د ماشوم اوښځې نه دعشر اخستلوحکم

**وَلَوْ مَرَّ صَبِيٌّ أَوِ امْرَأَةٌ مِنْ بَنِي تَغْلِبَ بِمَالٍ** که دبنوتغلب يو ماشوم يا ښځه په مال سره تيرشو **فَلَيْسَ عَلَى الصَّبِيِّ شَيْءٌ** نوپه بچې هيڅ نشته **وَعَلَى الْمَرْأَةِ مَا عَلَى الرَّجُلِ لِمَا ذَكَرْنَا فِي السَّوَائِمِ** اوپه ښځه باندی هغه دی کوم چې په سړی دی لکه چې موږ په سوائمو کې ذکرکړی دی.

**تشريح:- وجوب العشرعن المراة دون الصبی** ۞مسئله،د بنوتغلب يو نابالغه ماشوم يا ښځې دځان سره مال واخستلو.اود عاشرپه خواکې تيرشو.نوپه ماشوم به عشروغيره هيڅ هم واجب نه وی.البته په ښځې به دومره قدرې واجب وی.څومره چې په تغلبی سړی باندې واجب وی.يعنی دمسلمان نه دوچند.دلائل په ،باب السوائم، کې بيان شوی دی.هلته ئې اوګورئ.

## د سلو روپو مالك په عاشر تيريدل

**وَمَنْ مَرَّ عَلَى عَاشِرٍ بِمِائَةِ دِرْهَمٍ** کوم سړی چې تير شوپه عاشر دسلو درهمو سره **وَأَخْبَرَهُ أَنَّ لَهُ فِي مَنْزِلِهِ مِائَةً أُخْرَى** اوده ته اوخودلی شو.چې ځما په کورکې نورسل درهمه دی **قَدْ حَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ** اوکال پری تيرشوی دی **لَمْ يُزَكِّ الَّتِي مَرَّ بِهَا** نوعاشر به ددغو نه اخلي دکومو سره چې تيرشو

**تشريح:- عدم العشرفی مائة درهم حالاً عند المالك** ۞ مسئله داده.چه يوکس په سلو درهموسره دعاشر په خواکې تيرشو.اوده عاشر ته اووئيل.چه سل درهمه ماسره په کورکې دی.اوپه دواړو باندې کال تيرشوې دې.نوعاشر به نه دهغه سلو درهمو زکاة اخلي.کوم ئې چې دځان سره اخستی دی.او تيرشوې دې. اونه دهغه کوم چې په کورکې دی.

**لِقِلَّتِهَا** ځکه چې داکمی دی **وَمَا فِي بَيْتِهِ لَمْ يَدْخُلْ تَحْتَ حِمَايَتِهِ** اوکومی چې کور دی.هغه دعاشر په حمايت کې نه دی.

**تشريح:- دليله** ۞ځکه چې کوم درې هم دده سره دی.هغه دنصاب نه کم دی.اوکوم چې دده په کورکې دی.هغه دعاشر په حمايت او ساتنه کې نه دی راغلې.اوچونکه د نصاب نه په کم کې زکاة او عشر نه واجبيږی.په دې وجه په دې سلو درې هموکې به زکاة واجب نه وی.کوم چې ده اخستې دی.اود عاشر په خواکې تيرشوې دې.اوکوم چې دعاشر په حمايت کې داخل نه وی.په هغې کې د زکاة اخستلو حق عاشر ته نشته.په دې وجه به دهغې زکاة هم عاشر نه اخلي.

## په مال بضاعت کې د عشرحکم

**وَلَوْ مَرَّ بِمِائَتَيْ دِرْهَمٍ بِضَاعَةً لَمْ يَعْشُرْهَا** که دوې [دوه] سوه درهمودبضاعت سره تيرشونوعشربه ترې نه اخلي **لِأَنَّهُ غَيْرُ مَأْذُونٍ بِأَدَاءِ زَكَاتِهِ** ځکه چې ده ته د زکاة د ور کاوه اجازت نه دی شوی.

**تشريح:- تعريف البضاعة لغة واصطلاحا**۞ په لغت كي بضاعت وئيلې شي.د مال يوې ټكړې ، اويوې برخې ته.او په اصطلاح كي بضاعت دادې.چه مالك يوانسان ته روپۍ وركړي.اوهغه په دې تجارت اوكړي.او نفع واړه په ټوله مالك له وركړي.د كار كونكى په دې كي هيڅ نفع نه وي.

**عدم العشرعلى مال البضاعة**۞مسئله داده.چه يوكس دبضاعت په طورباندې دوې [دوه] سوه درهمه واخلي.او دعاشر په خواكي تيرشي.نوعاشر به ددې عشر نه اخلي.ځكه چې دې كس ته د مالك د اړخه صرف د تجارت اجازت حاصل دې.د زكاة ادا كاوه اجازت نشته.نوكه عاشر دده نه څه اخلي هم ،نودا به د زكاة نه علاوه وي.حالانكه عاشرته د زكاة نه د علاوه اخستلو اختيار نشته دې.

## په مال مضاربت كې دعشر حكم

قَالَ وَكَذَا الْمُضَارَبَةُ اوداشي مضاربت دى يَعْنِي إِذَا مَرَّ الْمُضَارِبُ بِهِ عَلَى الْعَاشِرِ يعنى هركله چې مضاربت دمال سره په عاشر تيرشو وَكَانَ أَبُو حَنِيفَةَ يَقُولُ أَوَّلًا يَعْشُرُهَا لِقُوَّةِ حَقِّ الْمُضَارِبِ امام ابوحنيفه رحمه الله به اول وئيل چې دده څخه به عشراخلي دقوت دحق د مضاربت سره حَتَّى لَا يَمْلِكَ رَبُّ الْمَالِ نَهْيَهُ عَنِ التَّصَرُّفِ فِيهِ تردى چې په مالك مضارب لره پدى كښى د تصرف نه نه شي منع كولى بَعْدَ مَا صَارَ عُرُوضًا نوددى چې روپۍ اسباب دتجارت شى فَنَزَلَ مَنْزِلَةَ الْمَالِكِ نو مضارب په شان د مالك شو ثُمَّ رَجَعَ إِلَى مَا ذَكَرْنَا فِي الْكِتَابِ بيا دوى رجوع وكړه هغه ته چې په كتاب كي دى وَهُوَ قَوْلُهُمَا اودا قول دصاحبينو رحمهما الله دى

**تشريح:- تعريف المضاربة**۞ مضاربت دادې.چه يوكس بل ته دوې [دوه] سوه روپۍ وركړې.چه په دې تجارت كوه اوكومه نفع چې اوشي.هغه به زموږ د دواړو په نيمه وي.

**الروايتان فى عشرمال المضاربة**۞ ① اوس صورت دمسئلې دادې.چه مضارب د نصاب په اندازه مال مضاربت واخلي.اود عاشر په خواكي تيرشي.نو عاشربه دده نه زكاة نه اخلي.دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله قول اول دادې.چه عاشر به دده نه زكاة اخلي.ځكه چې دمضارب حق قوى دې.تردې كه مضارب په روپو سامان واخستلو.نومالك ته اختيار نشته.چه دے د تجارتي تصرف نه منع كړي.بيا ګويا مضارب د مالك په مرتبه كي دې.نوځنګه چې د مالك نه عشر اخلي.دغه ډول به د مضارب نه هم وصول كوي. ② امام ابوحنيفه رحمه الله بياد خپل ړومبنى قول نه هغه قول اړخ ته رجوع اوكړه.كوم چې په كتاب كي مذكور دې. اوهم دا دصاحبينو رحمهما الله قول دې.

لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالِكٍ ځكه چې مضارب نه مالك دى وَلَا نَائِبٍ عَنْهُ فِي أَدَاءِ الزَّكَاةِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ فِي الْمَالِ رِبْحٌ يَبْلُغُ نَصِيبُهُ نِصَابًا اونه نائب دى دهغه د اړخه په ادادزكاة كي مګر داچې مال كي دومره ګټه شوى وى چې دمضارب برخه نصاب ته رشى فَيُؤْخَذُ مِنْهُ نوددى څخه به اخستلى شي لِأَنَّهُ مَالِكٌ لَهُ ځكه چې مضارب ددى مالك دى .

**تشريح:- دليل القول المفتى به**۞ او دليل ددې دادې.چه مضارب خونه د مال مالك دې.اونه د زكاة په ادا كاوه كي د هغه نائب دې.بلكه صرف په تجارت كولوكي نائب دې.نوهركله چې مضارب نه مالك دې.اونه په ادا كاوه د زكاة كي دهغه نائب دې.نود مضارب څخه به زكاة څنګه اخستلې شي.خوكه په مال كي دومره نفع اوشوه.چه د مضارب برخه دنصاب په اندازه شوه.نوددې څخه به زكاة اخستلې شي.ځكه چې مضارب دخپلې برخې مالك دې.

## د عبد ماذون په دوو سوو روپو كې دعشر حكم

وَلَوْ مَرَّ عَبْدٌ مَأْذُونٌ لَهُ بِمِائَتَيْ دِرْهَمٍ وَلَيْسَ عَلَيْهِ دَيْنٌ كه ماذون فى التجارت غلام د دوې [دوه] سوه درهمو سره راتير شي اوپه ده قرضه نه وه عَشَرَهُ نوعشر به ترى اخلي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: لَا أَدْرِي أَنَّ أَبَا حَنِيفَةَ رَجَعَ عَنْ هَذَا أَمْ لَا ابويوسف رحمه الله فرمائى چې ماته نه ده معلوم چې امام ابى حنيفه رحمه الله ددى نه رجوع كړې ده اوكه نه



**تشريح:- تعريف العبدالماذون**۞،عبد ماذون له فى التجارت.هغه غلام دې.چه ده ته دده د آقا د اړخه د تجارت اجازت وركړې شوې وي.

**الروايتان فى العشرعلى العبد الماذون فى ماتئ درهم**۞ ① صاحب دقدورى رحمه الله فرمائى.چه.عبد ماذون له فى التجارت.كه دوې [دوه] سوه روپۍ واخلي.اود عاشر سره تيرشي.اوپه ده باندې دچاقرضه هم نه وي.نو عاشربه دده نه عشر اخلي. ② امام ابويوسف رحمه الله فرمائى.زما په علم كي داخبره شته.چه حضرت الاستاد عليه الرحمة د خپل دې قول يعنى د وجوب عشرنه د عشر عدم وجوب اړخ ته رجوع كړې ده. اوكه نه.لكه څنګه چې دمضارب په مسئله كي رجوع كول ثابت دى.خود مضارب په مسئله كي چې څنګه د امام صاحب دوهم قول دادې.چه دمضارب څخه به عشرنه اخلي.دغه ډول په عبد ماذون له باندې هم عشر واجب كيدل پكار نه دى.

وَقِيَاسُ قَوْلِهِ الثَّانِي فِي الْمُضَارَبَةِ اودده د دوهم قول قياس په مضاربت كي وَهُوَ قَوْلُهُمَا أَنَّهُ لَا يَعْشُرُهُ اودغه دصاحبينو رحمهما الله قول دى .چې دده څخه به عشرنه شى اخستلى لِأَنَّ الْمِلْكَ فِيمَا فِي يَدِهِ لِلْمَوْلَى ځكه چې د ماذون سره چې څه دى دغه دمولى ملك دى وَلَهُ التَّصَرُّفُ اوده ته صرف دتجارت اختيار دى فَصَارَ كَالْمُضَارِبِ نودغه پشان دمضارب شو

**تشريح:- دليل عدم الوجوب**۞اودليل ددې قياس دادې.چه څنګه مضارب نه دمال مالك وى.اونه په زكاة ادا كولوكي د مالك د اړخه نائب وى.دغه ډول دعبد ماذون له په قبضه كي چې كوم مال دې.هغه واړه د مولى ملك دې.عبدماذون نه ددې مالك دې.اونه دې په زكاة اداكولوكي د مولى د اړخه مجاز دې.بلكه ده ته صرف د تجارتي تصرف اختيار وركړې شوې دې.

وَقِيلَ فِي الْفَرْقِ بَيْنَهُمَا أَنَّ الْعَبْدَ يَتَصَرَّفُ لِنَفْسِهِ حَتَّى لَا يَرْجِعَ بِالْعُهْدَةِ عَلَى الْمَوْلَى اوددى دواړو په توپير كي وئيلى شوى دى چې غلام دخان لپاره تصرف كوى تردى چې دعهدى رجوع په مولى باندى نه كيږى فَكَانَ هُوَ الْمُحْتَاجَ إِلَى الْحِمَايَةِ نودغه دحمايت محتاج دى وَالْمُضَارِبُ يَتَصَرَّفُ بِحُكْمِ النِّيَابَةِ حَتَّى يَرْجِعَ بِالْعُهْدَةِ عَلَى رَبِّ الْمَالِ اومضارب په حكم دنيابت تصرف كوى تردى چې دعهدى رجوع په رب المال باندى كيږى وَالْمُضَارِبُ يَتَصَرَّفُ بِحُكْمِ النِّيَابَةِ حَتَّى يَرْجِعَ بِالْعُهْدَةِ عَلَى رَبِّ الْمَالِ نورب المال محتاج دحمايت شو فَلَا يَكُونُ الرُّجُوعُ فِي الْمُضَارِبِ رُجُوعًا مِنْهُ فِي الْعَبْدِ نودامام صاحب رجوع په مضارب كښې په رجوع په ماذون كي نه وى

**تشريح:- دليل الوجوب فى ضمن الفرق بين المسئلتين**۞ليكن كوم حضرات چې په عبد ماذون له باندې د وجوب عشر،او په مضارب باندې د عشر دعدم وجوب قائل دى.دوى په دې دواړو مسئلوكي دا توپير كوى.چه عبد ماذون له دخپل ځان لپاره تصرف كوى.هم دغه وجه ده.چه دعبد ماذون له په تصرف كي په مولا باندې ذمه دارى نه عائد كيږى.كه د تجارت په مهال په عبد ماذون له باندې څه قرضه لازم شوه.نوعبد ماذون له به دا په خپله ګټه او په خپل توان اداكوى.په مولا باندې ددې هيڅ ذمه وارى نه وى.نوهركله چې عبد ماذون له دخپل ځان لپاره تصرف كوى.نود حمايت او ساتنه محتاج به هم دے وى.اوځوك چې دحمايت محتاجه وى.هم په هغه عشرواجب وى.په دې وجه په عبدماذون له باندې عشرواجب وى.او پاتې شومضارب، نودې د رب المال نائب دې.اوتصرف كوى.او دمضارب په تصرف كي ذمه دارى په رب المال باندې عائد كيږى.هم دغه وجه ده.كه مضارب څه سامان واخستلو.تردې چې داسامان هلاك شو.نو د دې ثمن ذمه دارى به په رب المال باندې عائد كيږى.نوهركله چې مضارب دخپل ځان لپاره تصرف نشى كولې.بلكه د رب المال نائب وى.اود هغه لپاره تصرف كوى.نودحمايت او حمايت او ساتنه محتاج به هم رب المال وى.مضارب به نه وى.اوهركله چې مضارب دحمايت او ساتنه محتاج نشو.نوپه ده به عشرهم واجب نه وى.په دې دواړومسئلوكي چې هركله دومره توپير دې.نود مضاربت په مسئله كي د امام صاحب رحمه الله دخپل ړومبنى قول نه رجوع كولونه دا

نه لازميږي.چه دوی د ،عبد ماذون له، په مسئله کي هم د خپل قول(د وجوب عشر)نه رجوع کړي وی.

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَ مَوْلَاهُ مَعَهُ اوکه دده مالك دده سره وو يُؤْخَذُ مِنْهُ نو د آقانه به اخستلی شی لِأَنَّ الْمِلْكَ لَهُ إِلَّا إِذَا كَانَ عَلَى الْعَبْدِ دَيْنٌ يُحِيطُ بِمَالِهِ لِانْعِدَامِ الْمِلْكِ أَوْ لِلشُّغْلِ خکه چې ملك دده دی .خو که په غلام دومره قرضه وه چې په مال نې محيطه وه دملك معدوم کيدو يا دمال مشغوليدو په وجه شو. |

تشريح:- **اخذ العشرعند وجودالمالك مع العبدالماذون**۞ اوکه د ،عبد ماذون له، مولا هم دده سره وی.نود مولا څخه به نې عشر اخستلې شی.خکه چې د ،عبدماذون له، په قبضه کي چې کوم مال دې.دا واړه دمولا ملك دې.

**عدم الاخذ من المالک عندالدين عليه**۞ اوکه په غلام دومره قرضه وی.چه دا قرضه دده د واړه مال احاطه کوی.يعنی مال اوقرضه تقريباً برابر ده.نوپه دې صورت کي به دغلام ،ماذن له ،نه هيڅ هم نشی اخستلې.که مولا دده سره وی.او که نه وی.

**دلائله**①خکه چې کوم مال دغلام سره دې.د پور غوښتونکو حق متعلق کيدلو په وجه ددې نه دمولا ملك معدوم(ختم) شوې دې.لکه څنګه چې امام صاحب رحمه الله فرمائی.② يا داچه دا مال په دين سره بوخت شوې دې.لکه څنګه چې صاحبين رحمهما الله وائی.اود ملك معدوم کيدل يا دمال دين سره بوخت کيدل، دواړه د وجوب زکاة دپار مانع دی.په دې وجه د غلام په ذمه د پور په صورت کي عشر وغيره هيڅ نه واجبيږی.

**المراد من العشرفی اللباب**۞ فوائد* په ذکرشوو مسئلوکي چې کوم ځائې کي لفظ دعشر وئيلې شوې دې.ددې نه په عامه توګه لسمه برخه مراد نه وی.بلکه د عشرلفظ لسمې برخې نه علاوه شلمې برخې او زکاة، يعنی څلويښتمې برخې ته هم وئيلې شی.ددې تعين په قرائنو سره کيږی.مال تجارت اخستونکې چې د عاشر په خواکي تيريږی.که مسلمان وی.نودده څخه به څلويښتمه برخه اخستلې شی.اوکه ذمی وی.نوشلمه حصه،او که حربی وی.نولسمه برخه به اخستلې شی.اوپه دې ټولو باندې د عشراطلاق کيږی.

### د خارجيانو دعشر اخستلوصورت

| |
|---|
| قَالَ وَمَنْ مَرَّ عَلَى عَاشِرِ الْخَوَارِجِ فِي أَرْضٍ قَدْ غَلَبُوا عَلَيْهَا څوك چې دخارجيانو په عاشر پداشی ځائې کي تيرشو په کوم چې دوی غالب وو فَعَشَرَهُ اوهغه تری عشرواخستلو يُثَنَّى عَلَيْهِ الصَّدَقَةُ نوپده به صدقه مکرر کولی شی مَعْنَاهُ: إِذَا مَرَّ عَلَى عَاشِرِ أَهْلِ الْعَدْلِ ددی مطلب دادی چې کله دغه اهل عدل په عاشر راشی لِأَنَّ التَّقْصِيرَ جَاءَ مِنْ قِبَلِهِ حَيْثُ أَنَّهُ مَرَّ عَلَيْهِ خکه چې تقصير دده د اړخ نه راغلی دی چې پدی دخارجيانو په عاشر باندی تيرشو |

حل اللغة* ①غلبوا: غالب کيدل②يثنى: په دوهم ځل وصول کول ③تقصير: کمې بې غوری

تشريح:- **الصورتان فی اخذ العشرثانياً اذا اخذه العاشرالخارجی**۞ ①مسئله*که څوك مسلمان چې دده تعلق د ،اهل سنت والجماعت، سره وی.د خارجيانو د عاشرسره نژدې په دې سې ځائې کي تير شو.چه هلته کي خارجيان غالب اومسلط وی.اود خارجيانو عاشر دده نه عشرهم اخستې دې.بيادا کس د اهل عدل عاشرسره تيرشو.دده څخه به دوباره زکاة اخستلې شی.خکه چې غلطۍ دده د اړخه شوې دې.چه دې د باغی اوخارجی عاشر سره نژدې تيرشوې دې.② خوکه باغی او خارجی د اهل عدل په ښار باندې غالب شول.اود اهل عدل مسلمانانو نه نې ددوی د ښاروو زکاة وصول کړلو.نو اوس به امام عادل ته دوباره د وصولولو حق نه وی.خکه چې په دې صورت کي بې غوری دده د اړخه نه ده.بلکه د امام وقت اود بادشاه د اړخه راغلې ده.والله اعلم.

## باب في المعادن والركاز

ژباړه:- (دا) باب (په بيان) د معادن او رکاز کښې دې .



تشريح:- **تعريف المعدن**۞ معادن،د معدن جمع ده.د عدن نه ماخوذ دې.ددې معنی د اقامت ده.هم ددې نه جنت عدن راځی.د هرڅيز مرکز د هغې(څيز)معدن وی.

**اقسام المعدن**۞ د زمکې نه چې کوم شی را ويستلې شی.دهغې درې قسمه دی.کنز، معدن، او رکاز.① کنز هغه مال دې.کوم چې انسان په مځکه کي دفن کړې وی.② او معدن هغه مال دې.کوم چې الله تعالی د زمکې د زيږيدل په ورځ مځکه کي پيدا کړې دې.③ اود ،رکاز، لفظ کنز،او معدن دواړو ته ګډ دې. خکه چې د رکاز نه مراد مرکوز دې.يعنی کوم چې په مځکه کي ښخ کړې شو.ښخونکې که خالق وی، اوکه مخلوق وی.،أرض خراجی، په کومه مځکه چې خراج واجب وی.او ،أرض عشری، په کومه مځکه چې عشر واجب وی.

### په معدن کې د زکاة يا عشرحکم

| |
|---|
| قَالَ مَعْدِنُ ذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ أَوْ حَدِيدٍ أَوْ رَصَاصٍ أَوْ صُفْرٍ وُجِدَ فِي أَرْضِ خَرَاجٍ أَوْ عُشْرٍ معدن دسرو زرو يا دسپينو زرو يا داوسپنې يا دقلعۍ ياد پيتلو که بيامونده شو نو مځکه خراجی يا عشری کي فَفِيهِ الْخُمُسُ عِنْدَنَا نوپدی کي پنځمه برخه ده زموږ په نزد |

تشريح:- **الاقسام الثلاثة**۞ دمعدن درې قسمه دی.①جامد، چې ويلی کيداې شی.اوسوانچه کيداې شی.لکه سره زر،سپين زر،قلعی(سيسه) او پيتل.② دوهم هغه جامد چې ويلی کيداې نشی.لکه چونه، رانجه، هړتال (يوقسم دهات)ياقوت، مالګه.③ دريم غيرجامد،لکه اوبه قير،قيرتور رنګ يوڅيزدې چې په کشتو باندې موګلې شی.چه اوبه دننه لاړې نشی(لکه تارکول. ،نفط يوقسم معدنی تيل دی.چه ډير زر اور اخلی. اوددې نه د اور بلولو کار اخستلې شی.او په دې علاج هم کولې شی.لکه سپيرټ

**اشتمال مسائل الباب على خمس عشرة مسئلة**۞ په عقلی طور د باب مسائل په پنځلسو قسمونو باندې مشتمل دی.① څکه چې سره او سپين زر چې کوم په لاس راغلی دی.هغه به يا معدن وی.او يابه کنز وی.② بيا په دې کي دهر يو دوې [دوه] دوې [دوه] قسمه دی.څکه چې داخو به يا د داراسلام د زمکې نه حاصل شوې وی.او يا د دارحرب زمکې نه.③ ددې نه بيا د هريو درې درې قمسه دی.څکه چې يا خو به دا ددې سې ځنګل کي موجود وی.چه دهغې هيڅ څوك مالك نه وی.يا به په مملوکه مځکه کي موندلې شی.يا به په کور کي وی.دا دولس قسمه شو.

**الاقسام الثلاثة للكنز**۞ يا خاص طور باندې دکنز درې قسمه دی.څکه کوم چې په کورکي موندلې شی.په دې به داهل اسلام دسکې نشان وی.يا به پرې د جاهليت د زمانې دسکو نښانه وی.يا به ددې حال مشتبه وی.

**المذهبان في حكم الاوّل**۞ په دې پنځلسو قسمونوکي د ړومبی ډول حکم يعنی کوم چې ايلی کيږی.او بيا واروسته ټنګيږی(سوانچه کيږی).لکه سپين اوسره زر،اوسپنه، سيسه(قلعی)او پيتل.① زموږ په نيز ددې حکم دا دې.چه که دا شيان (څيزونه ) په عشری مځکه کي اوموندې شی.يا په خراجی مځکه کي.په دې کي به خمس يعنې پنځمه برخه واجب وی.

| |
|---|
| وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا شَيْءَ عَلَيْهِ فِيهِ امام شافعی رحمه الله فرمائی چې پدی کي په موندون کي هيڅ نشته |

تشريح:- امام شافعی رحمه الله او امام احمد رحمه الله فرمائی.چه د سرو او سپينو زرو نه علاوه په معدن کي هيڅ شی واجب نه دې.خوکه سپين يا سره زر ملاوشی.نو په دې کي به زکاة يعنی څلويښتمه برخه واجب وی.

| |
|---|
| لِأَنَّهُ مُبَاحٌ سَبَقَتْ يَدُهُ إِلَيْهِ كَالصَّيْدِ خکه چې دايو مباح څيزدی دچالاس چې ورته مخکې اورشی.لکه ښکار إِلَّا إِذَا كَانَ الْمُسْتَخْرَجُ ذَهَبًا أَوْ فِضَّةً مګر که دکان سره ياسپين زر اوموندی شو فَيَجِبُ فِيهِ نوپه دغه کي زکاة واجب دی |

تشريح:- **دليل الشافعی** رحمه الله ۞ ①دليل دادې.چه معدن مباح وی.ددې هيڅ څوك مالك نه وی.نود چا لاس ته

مځکي ملاوشي.هم د هغه شو.اوکوم څيز چې داسې وي.يعني مباح غير مملوك وي.نو دې هيڅ واجب نه وي.لکه ښکار چې چا مځکي اونيولو.هم دهغه دې.په دې کي هيڅ واجب نه وي.دغه ډول په معدن کي به هم څه شي يعني خمس وغيره واجب نه وي

| وَلَا يُشْتَرَطُ الْحَوْلُ فِي قَوْلٍ اوکال تيريدل پکي شرط نه دى په يوقول کښى لِأَنَّهُ نَمَاءٌ كُلُّهُ وَالْحَوْلُ لِلتَّنْمِيَةِ ځکه چې دا بالکل نماء ده اوکال تيريدل دنماء لپاره وو |
|---|

**تشريح:- عدم اشتراط الحول فى معدن الذهب والفضة عندالشافعى** ۞ علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه د امام شافعى رحمه الله په نيز که دمعدنونو نه سره يا سپين زرملاؤ شى.نو په دې کي به زکاة واجب وى.خو د وجوب زکاة لپاره حولان حول شرط نه دې.ځکه چې دحولان حول شرط د نمو لپاره لګولې شى.او معدنونه خوچونکه ده ته مفت ملاؤ شوى دى.په دې وجه دا واړه په ټوله نمو ده.نود حولان حول هيڅ اړتيا نشته.

| وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ اومونږ دليل دنبى كريم ﷺ ارشاد دى وَفِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ (¹) چې په رکاز کي خمس دى وَهُوَ مِنَ الرِّكْزِ اوركاز د ركز نه مشتق دى فَأُطْلِقَ عَلَى الْمَعْدِنِ نوپه معدون ئى اطلاق اوشو |
|---|

**تشريح:- دلائل الاحناف** رحمهم الله ۞ ①زمونږ دليل د الله تعالى قول ((وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ)) (الايه) دې.يعنى څه چې تاسو ته د غنيمت په طورحاصل شوى دى.د هغې پنځمه برخه د الله تعالى ده.اودا کوم چې د زمکې نه حاصل شوې دې.دا مال غنيمت دې.ځکه چې دا مځکه اوڅه چې په دې کي الله تعالى پيداکړې دى.دا واړه د کافرانو په قبضه کي وو.خوچه کله مسلمان په دې غالب راغلل.نودا مځکه او په دې کي دننه ټولې خزانې د مسلمانانو لپاره مال غنيمت شو.اوپه مال غنيمت کي څلور خمسه د غنيمت،او يو خمس د الله تعالى وى.لکه څنګه چې په پورتنى آيت کي په صراحت سره ذکر دى. په دې وجه مونږ وايو.چه په معدنونوکي به يوخمس د الله تعالى واجب وى.

| وَلِأَنَّهَا كَانَتْ فِي أَيْدِي الْكَفَرَةِ ځکه چې داکانونه د کافرانو په قبضه کي وو فَحَوَتْهَا أَيْدِينَا غَلَبَةً او زمونږ لاسونه پرى په طور دغلبى حاوى شو فَكَانَتْ غَنِيمَةً نودا غنيمت شو وَفِي الْغَنَائِمِ الْخُمُسُ اوپه غنيمتونو کښې خمس دى |
|---|

**تشريح:-** علامه مرغينانى رحمه الله عقلى دليل بيان فرمائى.چه دمعدن ټولې زمکې د کافرانو په قبضه کي وې.مسلمانانو په دې غلبه بيامونده.اودا ئې غنيمت جوړ کړو.او دغنيمت په مالونوکي پنځمه برخه د الله تعالى وى.په دې وجه په معدن کي به هم پنځمه برخه د الله تعالى لپاره واجب وى.

| بِخِلَافِ الصَّيْدِ.په اخلاف د ښکار نه لِأَنَّهُ لَمْ يَكُنْ فِي يَدِ أَحَدٍ ځکه چې ښکار دچا په قبضه کي نه وو |
|---|

**تشريح:- الجواب من القياس على الصيد**۞په خلاف ددې ښکاردې.چه دا دښکار کاوه نه مځکې د هيڅ چا په قبضه کي نه وو.نود يومسلمان په نيولو سره دا مال غنيمت نه جوړيږي.اوهر کله چې مال غنيمت نشو.نو په ښکار کي به خمس هم واجب نه وى.

| إِلَّا أَنَّ لِلْغَانِمِينَ يَدًا حُكْمِيَّةً لِثُبُوتِهَا عَلَى الظَّاهِرِ.مګر دغازيانو قبضه حکمى وه.دوجې د ثبوت دظاهرنه وَأَمَّا الْحَقِيقِيَّةُ پاتى شوه قبضه فَلِلْوَاجِدِ نودغه دموندونکي شوه فَاعْتَبَرْنَا الْحُكْمِيَّةَ فِي حَقِّ الْخُمُسِ نومونږ دحکمى قبضى اعتبار دخمس په حق کښې اوکړو وَالْحَقِيقِيَّةَ فِي حَقِّ الْأَرْبَعَةِ الْأَخْمَاسِ حَتَّى كَانَتْ لِلْوَاجِدِ اود حقيقى قبضى اعتبار دڅلورو اخماسو په حق کي تردى چې دغه د موندونکي شو. |
|---|

¹) من حديث أبى هريرة رضى الله عنه أخرجه البخارى فى الزكاة باب ٦٦ ومسلم فى الحدود رقم ٤٥ وأبوداود فى الديات باب ٢٧ والترمذى فى الزكاة باب ١٧ والنسائى فى الزكاة باب ٢٨ وابن ماجه فى الديات باب ٢٧ ومالک فى العقول رقم ١٢ والدارمى فى الديات باب ١٩ وأحمد فى المسند (٢٢٨/٢)_



**تشريح:- الاعتراض**۞ ﴿ألا إن للغانمين......إلخ﴾ سره د يوسوال ځواب دې.سوال دادې.چه معدن کوم چې الله تعالى په مځکه کي پيدا کړې دي.که دامال غنيمت وى.لکه څنګه چې وئيلې شوې دى.نوڅلور خمسه د غانمينو اومجاهدينو پکاردى.د موندونکى نه دى پکار.ځکه چې د مال غنيمت حکم دادې.چه ددې يوخمس د الله تعالى اود رسول ﷺ وى.او څلور خمسه د غانمينو وى.

**الجواب**۞ددې ځواب دادې.چه څلورخمسه غانمينوله هغه وخت وى.چه کله په مغنوم شى او په مال غنيمت باندې ددوى قبضه حقيقةً او حکماً دواړه شان ثابت وى.اوهر کله چې د غانمينو قبضه حکماً ثابت شوه.اوپه حقيقت کي د بل قبضه ثابت وى.نوددوى لپاره څلور خمسه نه وى.بلکه د چاقبضه چې حقيقةً وى.څلورخمسه به دهغه لپاره وى.

**خلاصة الكلام**۞حاصل داچه کوم معدن د زمکې نه حاصل شوې دې.په دې باندې د غانمينو قبضه صرف حکماً ده.او حقيقى قبضه د موندونکى ده.نومونږ د حکمى قبضې په اعتبار يوخمس د الله لپاره واجب کړې دې.چه ددې حقداريتيمان اومسکينان دى.اودحقيقى قبضې په اعتبار به څلورخمسه موندونکى ته ورکولې شى.موندوکي که مسلمان وى اوکه ذمى،آزاد وى اوکه غلام، ماشوم وى اوکه بالغ، سړې وې اوکه ښځه، دحضرت امام شافعى رحمه الله دا ړخه پيش شوې د بلال بن الحارث د روايت ځواب دادې.چه حديث منقطع دې.اوحديث منقطع استدلال نشى جوړيدلې.

## دکور په معدن کي دخمس حکم

| وَلَوْ وَجَدَ فِي دَارِهِ مَعْدِنًا که پخپل کور کي ئى معدن بيامونده فَلَيْسَ فِيهِ شَيْءٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نو پدى کي هيڅ نشته دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد |
|---|

**حل اللغة**° ① معدن:هغه خزانې ته وائى چې په مځکه کي موجودوى

**تشريح:- المذهبان فى وجوب الخمس فى معدن البيت**۞مسئله داده.چه که يوانسان ته په خپل کورکي دننه کان په لاس ورشى.نوپه دې کان کي ①د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزهيڅ خمس واجب نه دې.

| وَقَالَا فِيهِ الْخُمُسُ لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا او صاحبين فرمائى چې پدى کي خمس دى دحديث داطلاق په وجه کوم چې بيان کړو مونږ |
|---|

**تشريح:-** صاحبين رحمهما الله فرمائى.چه په دې کي هم خمس واجب دې.

**دليل الصاحبين** رحمهما الله ۞د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه حديث ﴿وفى الركاز الخمس﴾ مطلق دې.په دې کي د زمکې اوکورهيڅ تفصيل نشته.په دې وجه به مطلقاً معدن کي خمس واجب وى.که په کور کي دننه ملاو شى يا په مځکه کي ملاؤشى.

| وله أنه من أجزاء الأرض مركب فيها فى سائر الأجزاء دامام صاحب دليل دادى چې معدن دا جزاؤ دزمکي نه دى په مځکه کي مرکب دى په ټولو اجزاء کي. فكذا فى هذا لأن الجزء لا يخالف الجملة نو دغه شان دا هم ځکه چې جزء د کل نه مخالفت نه کوى بخلاف الكنز غير مركب فيها په خلاف د خزانې چې نه وى جوړه شوې په دې کښې |
|---|

**تشريح:- دليل ابى حنيفة** رحمه الله ۞د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه معدن خلګ ة دکور د زمکې يو جزء دې.اودکور په اجزاؤ کي په هيڅ جزء کي خراج ياعشر وغيره د امام وقت لپاره هيڅ مؤنت اوخرچه وغيره واجب نه وى.نوپه دې معدنى جزء کي به هم څه واجب نه وى.ځکه چې جزء د خپل کل مخالف نه وى.نوپه دې معدنى جزء کي به هم څه واجب نه وى.ځکه چې جزء دخپل کل مخالف نه وى.ددې په خلاف دفينه ده.چه دا په مځکه کي مرکب(مخلوط) نه وى.يعنى د زمکې جزء نه وى.بلکه دا خوپه مځکه کي دننه امانت ايخودلې شوې وى.په دې وجه که په کورکي دننه دفينه ملاؤ شى.نوپه دې کي به خمس واجب وى.

**الاعتراض**۞دلته کي يو سوال دې.هغه داچه که معدن د زمکې د اجزاؤ څخه دې.نوپه دې تيمم کول جائزکيدل

پكاردى. حالانكه بالاجماع په معدن يعنى په سرو يا سپينو زرو وغيره باندې تيمم كول جائز نه دې؟

**الجواب**۞ د تيمم اجازت په هغه شى سره دې. كوم چې د زمكې د جنس څنې وى. د زمكې خلگ ى او مورزاده (پيدائشى) اجزاؤ څنې نه وى. اومعدن د زمكې دجنس څنې نه دې. بلكه د زمكې د اجزاؤ څنې دې. په دې طريقه چې د زمكې په خرځولو اخستلوكې د سرو او سپينو زروكان هم داخل وى.

## په خپله مځكه كې معدن موندل

وَإِنْ وَجَدَهُ فِي أَرْضِهِ او كه په خپله مځكه كې ئى معدن بيامونده فَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ فِيهِ رِوَايَتَانِ نو ددى په بابت د امام ابوحنيفه رحمه الله دوې [دوه] روايتونه دى وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى إِحْدَاهُمَا او په وجه دفرق پدوى كښې په يوباندى رِوَايَةُ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ اودغه ډول دجامع صغير روايت دى أَنَّ الدَّارَ مُلِكَتْ خَالِيَةً عَنِ الْمُؤَنِ دُونَ الْأَرْضِ وَهُوَ دادى چې كورمملوك شوى دى خالى دبار دخرچې نه، نه كه مځكه وَلِهَذَا وَجَبَ الْعُشْرُ وَالْخَرَاجُ فِي الْأَرْضِ دُونَ الدَّارِ يدى عشراوخراج په مځكه كښى واجب دى. نه كه په كوركښى فَكَذَا هَذِهِ الْمُؤْنَةُ. نو دغه ډول دا خرچې هم ده.

**تشريح:- المذهبان وجوب الخمس فى معدن ارضه**۞ كه چاپه خپله مملوكه مځكه كې كان بيامونده لو. نو په دې اړه كې دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دوې [دوه] روايته دى. ① د مبسوط روايت خودادې. چه په دې كې خمس وغيره هيڅ واجب نه دى. لكه څنگه چې په كوركې د موندلې شوى كان كې هيڅ واجب نه وى. ② اود جامع صغير روايت دادې. چه په دې كښې به خمس واجب وى. دصاحبينو رحمهما الله هم يو روايت دې. چه په دې كې به خمس واجب وى.

**دليل الصاحبين** رحمهما الله۞ اود صاحبينو رحمهما الله مستدل دحديث «وفى الركاز الخمس» مطلق كيدل دي.

**دليل ابى حنيفة** رحمه الله۞ اود مبسوط روايت مطابق د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. چه د مملوكه زمكې په هيڅ ځيزكې خمس واجب نه وى. نو په دې معدنى مځكه كې به هم خمس واجب نه وى. او دجامع صغير روايت مطابق په مملوكه مځكه اود كور په مينځ كې وجه د توپير داده. چه مځكه دمؤنت او مشقت نه خالى نه وى. اوكور ددې ځيزونو نه خالى وى. هم دغه وجه ده. چه په مځكه كې عشر او خراج واجب وى. خوپه كوركې دننه دا شيان (ځيزونه) واجب نه وى. نوهم دغه ډول د خمس مؤنت به د زمكې نه په راوتونكى كان كې واجب وى. اود كورنه بهر راوتونكى كان كې به واجب نه وى.

## په ركاز كې دخمس حكم

وَإِنْ وَجَدَ رِكَازًا أي كَنْزًا او كه ركاز ئى بيامونده يعنى خزانه وَجَبَ فِيهِ الْخُمُسُ عِنْدَهُمْ لِمَا رَوَيْنَا[1] نوپدې كې خمس واجب دى دټولو په نزد. دهغى حديث په بنا كوم چې موږ روايت كړو وَاسْمُ الرِّكَازِ يَنْطَلِقُ عَلَى الْكَنْزِ لِمَعْنَى الرِّكْزِ وَهُوَ الْإِثْبَاتُ اونوم د ركاز د دې اطلاق په خزانه كيږى د ركاز د معنى په وجه اودغه ثابتول دى

**تشريح:- معنى الركاز والفرق بينه وبين المعدن**۞ «وإن وجد ركازا أى كنزا» صاحب د قدورى رحمه الله د ركاز تفسير كنز يعنى په دفينه سره كړې دې. څكه چې د ركاز لفظ، معدن او كنز په دواړوكې مشترك دې. اود معدن بيان وړاندې تيرشوې دې. نو اوس به هم كنز مرادوى. پاتې شوه داخبره چې د ركاز اطلاق په معدن او كنزدواړوكې ولې كيږى؟ نوددې ځواب دادې. چه ركاز د ركز نه مشتق دې. اود كنز معنى ده ثابتول، او معدن او كنز دواړه په مځكه كې ثابت وى. صرف دومره توپير دې. چه معدن د خالق د اړخه ثابت وى. او كنز د مخلوق د اړخه ثابت وى.

ثُمَّ إِنْ كَانَ عَلَى ضَرْبِ أَهْلِ الْإِسْلَامِ كَالْمَكْتُوبِ عَلَيْهِ كَلِمَةُ الشَّهَادَةِ بيا كه دغه اهل اسلام مهرشوى وو لكه چې

[1] يشيرالى الحديث المذكور وفى الركاز الخمس)



كلمه شهادت پرى ليكلى شوى وى فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ اللُّقَطَةِ وَقَدْ عُرِفَ حُكْمُهَا فِي مَوْضِعِهِ نو دغه په شان د لقطه ده چې حكم ئى پخپل ځائى معلوم دى

**حل اللغة** ① لقطه: ورك شوې شى

**تشريح:- ما عليه علامة عهد الاسلام**۞ صورت دمسئلې دادې. كه په مځكه كې څه دفينه ملاؤ شوه. نوپه اتفاق د احنافو رحمهم الله به په دې كې خمس (پنځمه حصه) واجب وى. بيا ددې دفينې درې صورتونه دى. ① يا خوبه په دې باندې د نبنو د اسلام نه څه نښانه وى. مثلاً كلمه شهادت «لا إله إلا الله» به ليكلې شوې وى.

**وجوب الخمس فيه**۞ نوپه دې صورت دې. يعنى په دې دفينه باندې علامت د اسلام موجود دې. نودا د لقطه په مرتبه كې دې. څكه چې د علاماتو د اسلام په وجه دا خبره واضح شويده. چه دا دكوم مسلمان مال دې. اود مسلمان مال غنيمت نشى جوړيدلې. نوپه دې كې به خمس وغيره هيڅ واجب نه وى. بلكه دا به لقطه گڼړلې شى. اود لقطه حكم دادې. چه د يوې مودې پورې به ددې اعلان كولې شى. كه په دې موده كې ددې څوك مالك پيدا شى. نودا مال به وركولې شى. گنى كه داكس پخپله فقيروى. نو په خپل ځان به ئې صدقه كړى. اوكه پخپله مالداره وى. نوبل څوك فقيرته دې وركړى. اوده ته دا اختيارشته. چه دا مال هميشه د ځان سره كيږدى. نه ئې په خپله خرچ كړى. اونه ئې فقير ته وركړى. اوس پاتې شوه داخبره چې څومره موده به اعلان كوى. نوددې حكم د مال د كموالى او زياتوالى په وجه مختلف كيږى. لكه چې صاحب د كفايه رحمه الله فرمائى. چه په لسودرهمو او ددې نه په زياتوكې دې د يوكاله پورې اعلان اوكړى. اود لسو روپو نه په كموكې درې مياشتو پورې اود درې درهمونه په كموكې تر يو درهم پورې دې يوه ورځ اعلان اوكړى. او په يوه پيسه كې دې ښى او چپه اړخ ته اوگورى. اوكوم يو فقير ته دې وركړى.

وَإِنْ كَانَ عَلَى ضَرْبِ أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ كَالْمَنْقُوشِ عَلَيْهِ الصَّنَمُ او كه دجاهليت مهر پرې وى لكه چې دبت عكس وى پرى فَفِيهِ الْخُمُسُ عَلَى كُلِّ حَالٍ لِمَا بَيَّنَّا نوپه دى كې خمس دى په هرحال باندى

**حل اللغة** ① المنقوش: ليكلې شوې شى ③ صنم: بت

**تشريح:- حكم ما عليه علامة عهد الجاهلية**۞ اوكه د جاهلت د زمانې څه علامت موجودوى. مثلاً په دې به د څه بت عكس وى. نوپه دې كې به په هرحال كې خمس واجب وى. موندونكې كس كه بالغ وى. اوكه نابالغه، آزاد وى اوكه غلام، مسلمان وى اوكه ذمى وى. اوكومه دفينه چې موندې شويده. هغه سره زر وى اوكه سپين زر، پيتل وى اوكه قلعى، يا ددې نه علاوه وى. دا دفينه ئې په خپله مملوكه مځكه كې موندې وى. اوكه د بل چا په مځكه كې. اويا ئې په دې سې مځكه كې موندلې وى. چه دهغې هيڅ څوك مالك نه وى. نقلى او عقلى دليل د باب په پيل كې تيرشوې دې.

**دلائله**۞ دليل نقلى «وفى الركاز الخمس» دې. ② او عقلى دليل دادې. چه مځكه اوپه مځكه كې دننه ټولې د فينې د كافرانو په قبضه كې وې. خوچه كله مسلمان غالب شو. اوپه دې ئې قبضه اوكړه. نودا دفينه مال غنيمت شو. اوپه مال غنيمت كې خمس واجب وى. نوپه دى كې به هم خمس واجب وى.

ثُمَّ إِنْ وَجَدَهُ فِي أَرْضٍ مُبَاحَةٍ بيا كه ئى دا په مباح مځكه كې بيا موندل فَأَرْبَعَةُ أَخْمَاسِهِ لِلْوَاجِدِ نو څلور خمسونه به د موندونكي وى لِأَنَّهُ تَمَّ الْإِحْرَازُ مِنْهُ بِهِ څكه چې داحراز دده داړخه پوره شوى دى إِذْ لَا عِلْمَ بِهِ لِلْغَانِمِينَ څكه چې غازيانو ته خوددى علم نه وو فَيَخْتَصُّ هُوَ بِهِ نو دغه سړى ورسره مختص شو

**حل اللغة** ① الاحراز: په خپل ساتنه كې راوستل

**تشريح:- وجود القسم الثانى فى الارض المباحة**۞ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى. كه دا دفينه په كومه چې د كفر علامات موجوددى. په دې سې مځكه كې اوموندې شى. چه دهغې څوك مالك نه وى. نوبيو خمس به اوباسې. او پاته څلور خمسه به د موندونكې شى.

**دليله**۞ ځکه چې ددې دفينې مکمل ساتنه اوپه خپله قبضه کي جمع کول، ددې موندونکی د اړخه شوي دی.اوغازیانو ته ددې دفینې علم هم نه وو.په دې وجه دې دفینې سره به داکس خاص وی. داکس خاص دې.نوځلورخمسه به هم دده وی.ددې دلیل حاصل هم هغه دې.کوم چې تیرشو.چه په دې دفینه باندې دغازیانو حکماً قبضه وه.اود موندونکی حقیقةً قبضه ده.نود حکمی قبضه د رعایت په لحاظ به یوخمس د یتیمانو اومسکینانو لپاره اخستلې شي.اود حقیقی قبضه د رعایت په لحاظ به ځلورخمسه واجد (موندونکی) ته ورکولې شی.

وَإِنْ وَجَدَهُ فِي أَرْضٍ مَمْلُوكَةٍ اوکه په مملوکه مځکه کښې ئې بیا موندل فَكَذَا الْحُكْمُ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله بیا هم حکم دغه ډول دی دابویوسف رحمه الله په نزد لِأَنَّ الْاِسْتِحْقَاقَ بِتَمَامِ الْحِيَازَةِ ځکه چې استحقاق په پوره طور په حزر کښې په راوړلوسره دی وَهِيَ مِنْهُ اودا دهغه نه اوموندی شو

**حل اللغة*** ① **الحيازة:** پوره توګه باندې ساتنه کي راوستل

**تشریح:- حکم وجود القسم الثانی فی الارض المملوکة**۞اوکه دا جاهلی دفینه په مملوکه مځکه کي اوموندې شوه. نود حضرت امام ابویوسف رحمه الله په نیزهم هغه حکم دې.چه یوخمس به فقیرانو ته ورکولې شی.اوپاته پنځه خمسه به د موندونکی وی.موندونکې که مالك وی.اوکه مالك نه وی.ځکه چې حقدار جوړیدل په پوره طور ساتنه راتلوسره کیږی.اوپه پوره طور ساتنه کي راوستل،هم ددې موندونکی د اړخه موجودشو.نود ځلورخمسه مستحق به هم دې وی.

وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ هُوَ لِلْمُخْتَطِّ لَهُ(۱) اود طرفینو رحمهما الله په نزد دغه به مخط له لره وی وَهُوَ الَّذِي مَلَّكَهُ الْإِمَامُ هَذِهِ الْبُقْعَةَ أَوَّلَ الْفَتْحِ اودغه هغه دی چې کوم لپاره مالك کړی وی امام ابتداء دفتح کي ددی زمکي لِأَنَّهُ سَبَقَتْ يَدُهُ إِلَيْهِ ځکه چې دهغه لاس دی ته مخکښې اورسیدو وَهِيَ يَدُ الْخُصُوصِ اودا خصوصی قبضه ده فَيَمْلِكُ بِهَا مَا فِي الْبَاطِنِ وَإِنْ كَانَتْ عَلَى الظَّاهِرِ نوددی په وجه به هغه مالك وی دکوم چې په باطن کښې وی.اګر چې قبضه په ظاهر باندی ده

**حل اللغة*** ① **مختط له:** د چاد پاره کي ورکړې شوې وی ② **البقعه** : ټکړه

**تشریح:-** طرفین رحمهما الله فرمائی.چه یوخمس به اوښکلې شی.اوځلور خمسه به د مختط له وی.مختط هغه کس دې.کوم چې امام وقت د فتح په ابتداءکي د زمکې ددې برخې مالك کړی.اوددې په حدونو باندې خط راښکلی وی .او ددې طول وعرض(اوګد والې پلن والې) ئې متعین کړې وی.نود ځلورخمسه حقدار به هم دا مختط له وی.اوکه دې نه وی.نودده وارث به ددې حقدار وی.اګرچه څو پشته کښته ولې نه وی؟ ځکه چې د فتح نه روسته د ټولو نه ړومبئ قبضه ددې مختط له ده.

**الاشكال على دليل الطرفين** رحمهما الله۞ د طرفینو رحمهما الله په دلیل یو اشکال کیږی.هغه داچه په دفینه د مختط له قبضه اګرچه مخکنئ ده.خودا قبضه حکماً ده.ځکه چې حقیقةً قبضه د واجد(موندونکی) ده.او په حکمی قبضه سره څوك د د فینه نه مالك کیږی.لکه څنګه چې دغازیانو په اړه کي تیرشوې دی.چه ددوی ددې مالکان نه وی.په دې وجه د غازیانوقبضه هم حکماً ده؟

**الجواب**۞ ددې ځواب دادې.چه په حکمی قبضه سره بې شکه چې ملك نه ثابتیږی.خودا هغه وخت دی.چه حکمی قبضه ،على سبيل العموم، وی.لکه چې د غازیانوقبضه ،على سبيل العموم،وی.چه په عمومی طورباندې واړه غازیان ددې مالکان دی.خوکه حکمی قبضه په خصوصی طوروی.یعنی په متعین طور سره

(۱) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(۱۸۳\۲) والبحر الرائق (۲۳۵\۲) والتاتر خانية (۳۴۰\۲) نقلاً عن القول الراجح ......(۱۷۷\۱)-



یو کس ددې مالك وی.نوددې حکمی قبضې په وجه سره به ددې زمکې د دننه څیزونو مالك هم وی.اګرچه دده حقیقی قبضه په ښکاره مځکه ده.مثلاً یوکس د میانو(کبانو)ښکار اوکړو.اوددې(کب) په نس کي موتی (هیره) راوځ وتله.نوددې هیرې مالك به هم داکس وی.څوك چې ددې کب مالك وی.

فِي بَطْنِهَا دُرَّةً مَلَكَ الدُّرَّةَ لکه چې څوك مهی (کب) ښکار کړی اودهغه په نس کي ملغلری وی ثُمَّ بِالْبَيْعِ لَمْ تَخْرُجْ عَنْ مِلْكِهِ بیا په خرڅولوسره دغه د ملك نه نه اوزی لِأَنَّهُ مُودَعٌ فِيهَا بِخِلَافِ الْمَعْدِنِ ځکه چې دغه خو په دی کښې په طور د امانت ده.په خلاف د معدن نه لِأَنَّهُ مِنْ أَجْزَائِهَا ځکه چې دغه مځکه د اجزاؤ نه دی فَيَنْتَقِلُ إِلَى الْمُشْتَرِي نودغه مشتری اړخ ته منتقل کیږی

**تشریح:- عدم خروج الركاز عن ملك الواجد بالبيع**۞﴿ثم بالبيع......إلخ﴾ سره دا فرمائی.چه که مختط له مځکه خرڅه کړه.بیاددې زمکې نه څه دفینه راوځ وتله.نوبیا به هم ځلور خمسه د مختط له وی.ځکه چې دفینه په مځکه کي دننه امانت ایخودلې شوې وه.په دې وجه مځکه خرڅولو سره دا دفینه دده دملك نه نه خارجیږی.

**نظيره**۞ لکه یوکس دښکار کاوه نه روسته کب خرڅ کړی.اود کب د خیټې نه هیره راوځ وتله.نودا هیره (د کب) په خرڅولوسره دده دملك نه نه خارجیږی.

**الفرق بين الركاز والمعدن**۞په خلاف دمعدن چې دا دزمکې په خرڅولوسره د اخستونکی اړخ ته منتقل کیږی.ځکه چې معدن(کان)د زمکې د اجزاؤ څنې دې.نوهرکله چې مځکه د اخستونکی اړخ ته منتقل شوه.نوددې واړه اجزاء به هم د اخستونکی اړخ ته منتقل کیږی.

وَإِنْ لَمْ يُعْرَفِ الْمُخْتَطُّ لَهُ اوکه مختط له معلوم نه شو يُصْرَفُ إِلَى أَقْصَى مَالِكٍ يُعْرَفُ فِي الْإِسْلَامِ عَلَى مَا قَالُوا نوپاته دفینه به په هغه آخری مالك صرف کولی شی چې په اسلام کي معلوم وی بنا په هغې چې عالمانو وئیلی دی

**تشریح:- حكم صورة جهالة المختط له**۞اوکه دا معلومه نه وی.چه مختط له څوك دې.نودا دفینه به هغه کس له ورکولې شی.څوك چې په اسلام کي د ټولونه ړومبې ددې زمکې مالك شوې وی.خودا معلومه نه ده.چه دا مختط له دې.یاده د مختط له نه د زمکې دا برخه اخستې ده.بهرحال د فتح په پیل کي د اسلام نه روسته کوم کس چې د ټولو نه مخکې مالك وی.ده ته به ملاویږی.اوکه دې نه وی.نودده وارثانوته.اوکه وارث ئې نه وی.نود وارثانو وارث ته به ملاویږی.اوکه په وارثانو کي هم څوك نه وی.نوبه بیت المال کي به جمع کولې شی.

وَلَوِ اشْتَبَهَ الضَّرْبُ اوکه مهرمشتبه شو يُجْعَلُ جَاهِلِيًّا فِي ظَاهِرِ الْمَذْهَبِ نو جاهلی به ګرزولی شی په ظاهر مذهب کي لأنه الأصل ځکه چې دا اصل دی لِأَنَّهُ الْأَصْلُ وَقِيلَ يُجْعَلُ إِسْلَامِيًّا فِي زَمَانِنَا لِتَقَادُمِ الْعَهْدِ ووېلی شوی دی چې زموږ په زمانه کي به اسلامی مقررکولی شی د زمانې پخوانئ کیدو په وجه سره

**تشریح:- الركاز المشتبه**۞اوکه دفینه مشتبه وی.چه نه په دې د اسلام علامات وی.اونه علامات دکفر.نو ښکاره مذهب دې.چه دابه جاهلی او کفری شمارلې شی.ځکه چې ددې کفری کیدل اصل دی.او وئیلې شوې دی.چه زموږ په زمانه کي به دا اسلامی ګڼړلې شی.ځکه چې اسلامی عهد(زمانهٔ اسلام) ډیر پخوانې شوې دې.په دې وجه ښکاره هم داده.چه دا دکافرانو دلاس دفن کړې شوې نه ده.بلکه د اسلام خلګو دفن کړیده.

## په دې ر الحرب کي د رکاز موندلو حکم

وَمَنْ دَخَلَ دَارَ الْحَرْبِ بِأَمَانٍ الْغَدْرِ څوك چې دارالحرب ته په آمان اخستلو سره داخل شو فَوَجَدَ فِي دَارِ بَعْضِهِمْ رِكَازًا اوهتله ئې دچاحربی په مکان کښې رکاز بیاموندو رَدَّهُ عَلَيْهِمْ تَحَرُّزًا عَنِ الْغَدْرِ نومالکانوته به ئې واروسته کړی.د بدعهدئ نه دبچکیدو دپاره

**تشریح:- وجوب الركاز على المالك فى دارالحرب**۞که څوك امام اوغواړی.او په دې رحرب کي داخل شی.بیاده هلته کي د یوحربی په کورکي رکاز بیاموندلو.رکاز که معدن وی.اوکه دفینه وی.نودا رکاز به دکور مالك

ته واروسته کوی.چه غدر(دهوکه)او وعده خلافي لازم رانشي.نبي کریمﷺ فرمائيلي دی. «الوفاء في العهود وفاء لاغدر» یعنی په عهد و پیمان کي وفائي پکار ده.غدر او بدعهدي مکوئ.

| لِأَنَّ مَافِي الدَّارِفِي يَدِصَاحِبِهَاخُصُوصًا ځکه چي په کورکي شي دغه دمالك مکان په خصوصي قبضه کي دی |
|---|

**تشریح:- دلیله**۞ دلیل دادې.چه څوك په کورکي دې.هغه خاص طور د کور دمالك په قبضه کي دې.یعنی په دې د کور دمالك قبضه ده.اګرچه حکمي قبضه ده.نوددې رکاز اخستل وعده خلافي (او بې وفائي) ده.

| وَإِنْ وَجَدَهُ فِي الصَّحْرَاءِ اوکه هلته ئې په ځنګل کي اوموندو فَهُوَلَهُ نودده دی |
|---|

**تشریح:- حکم وجدان الرکاز الصحراء**۞اوکه دا ئې د دارحرب په مځکه کي داسې ځنګل کي اوموندلو.چه د هغې څوك مالك نشته.نودا رکاز هم ددې موندونکي دې.

| لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي يَدِأَحَدٍعَلَى الْخُصُوصِ ځکه چي دغه د چا په خصوصي قبضه کي نه دی فَلَايُعَدُّغَدْرًا نودا غدر نه شماریږی وَلَاشَيْءَفِيهِ اوپدی کي څه واجب نه دی لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ مُتَلَصِّصٍ غَيْرِمُجَاهِرٍ ځکه چي دغه دپټ غل پشان راویستونکي دی . |
|---|

**تشریح:- دلیله**۞ځکه چي رکاز دچا په خصوصي قبضه کي نه دې.په دې وجه ددې اخستل په شریعت کي غدر(او بې وفائي) نه ده.اوپه دې رکاز کي خمس هم واجب نه دې.ځکه چي خمس په هغه مال کي واجب وی.چه د غنیمت په معنی کي وی.اومال غنیمت هغه ته وائی.چه د اهل حرب په قبضه کي وی. بیا مسلمان چور (حمله) اوکړی.اوپه هغې غالب راشي.خودا داسې نه دې.بلکه داکس په پټه د مال غلاکونکی په شان دې.نوهرکله چي دا دمال غنیمت په معنی کي نشو.نوپه دې کي به خمس هم واجب نه وی.

## په غرونوکي د موندلې فیروزو حکم

| وَلَيْسَ فِي الْفَيْرُوزَجِ يُوجَدُفِي الْجِبَالِ خُمُسٌ فیروزه کوم چي په غرونوکښې موندی شي په دغوکي خمس نشته دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُوَالسَّلَامُ {لَاخُمُسَ فِي الْحَجَرِ}(١) ځکه چي نبی کریمﷺ ارشاد د چي په ګټوکښې خمس نشته دی |
|---|

**حل اللغة**° ① **فیروزه:** یوقسم قیمتي کاڼړې

**تشریح:- عدم وجوب الخمس فی الفیروزج**۞ فیروز، یوقسم قیمتي کاڼړې دې.زیبق ، پاره.الکحل، د رانجو کاڼړې . مسئله داده.چه فیروز، د رانجوکاڼړې، یاقوت،وغیره کوم چي په غرونوکي ملاویږی.په دې کي خمس واجب نه دې. دلیل د نبی کریمﷺ فرمان۞«لاخمس فی الحجر»۞دې.

| (وَفِي الزِّئْبَقِ الْخُمُسُ فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ آخِرًا اوپه پاره کي خمس دی .د امام ابوحنیفه رحمه الله په آخری قول کي وَهُوَقَوْلُ مُحَمَّدٍ رحمه الله (١) اودا دامام محمد رحمه الله قول دی خِلَافًالِأَبِي يُوسُفَ رحمه الله په خلاف د امام ابویوسف رحمه الله |
|---|

**حل اللغة** ° ① **زیبق:** پاره

**تشریح:- المذهبان فی وجوب الخمس فی الزیبق**۞ ①اوپه پاره کي د امام ابوحنیفه رحمه الله اخرې قول دخمس د وجوب دې.اوهم دا قول د امام محمد رحمه الله دې.② اود امام ابویوسف رحمه الله په نیز په پاره کي خمس وغیره واجب نه دې.

(١) قال الزيلعي رحمه الله قلت غريب وأخرج ابن عدى فى الكامل...عن عمروبن شعيب عن أبيه عن جده إلخ (نصب الراية ٢/٣٩٦)_

(٢) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فى البحرالرائق (٢\٢٣٥) والتاترخانية (٢\٣٤٢٠) والهندية (١\١٨٥) نقلاً عن [الق]الراجح (١\١٧٨)_



③ **التوافق بین المذهبین**۞صاحب د عنایه رحمه الله یوه خوندورحکایت لیکلې ده.دوی فرمائی.چه د امام ابویوسف رحمه الله حکایت دې.چه حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله به اول فرمائیل.چه په پاره کي خمس وغیره هیڅ شي واجب نه دې.اوزه د خمس د وجوب قائل ووم.مابه هروخت غور او فکرکولو.نو معلومه شوه. چي حضرت امام صاحب رحمه الله په پاره کي د خمس د وجوب قائل شوې دې.اوما اوکتل چي په دې کي هیڅ واجب نه دې.اوس حاصل داشو.چه په پاره کي د امام صاحب رحمه الله اخرې قول اود امام ابویوسف رحمه الله رومبې قول.او هم دا د امام محمد رحمه الله قول دې.دادې چي په دې کي خمس واجب دې.اود ابویوسف رحمه الله اخرې قول.اود امام صاحب رحمه الله رومبې قول دادې.چه په دې کي هیڅ واجب نه دی.

## په غمو او عنبروکي د خمس حکم

| وَلَاخُمُسَ فِي اللُّؤْلُؤِوَالْعَنْبَرِ عِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ (١) رحمهما الله اوپه ملغلرواو عنبروکښې .خمس نیشته دي د امام ابوحنیفه اوامام محمد په نیز |
|---|

**حل اللغة**° ① **لولو**(غمې)د بهارموسم په باران کي یو ساسکې د باران چي په صدف (سیپۍ) کي پریوځی.نو لولو(موتی)جوړشي اوبعض حضرات وائی.چه صدف یوځناوردې.چه پکي الله تعالی لؤلؤ پیداکوی.② **عنبر** دسمندر زګ وی.ځکه چي د چپو په خپل مینځ کي د ټکراویدو په وجه چي کوم زګ پیداکیږی.هغې ته عنبر وائی. بیاسمندر دا په غاړه غورزوی.(کافی) او په مبسوط کي وئیلي شوې دی.چه عنبر یوه ګیا ده.چه په سمندر کي راخیجی. اوبعض حضرات وائی. چي عنبرد یوسمندری ځناور پاخانه(غټ بول) ده. اوبعض حضرات وائی.چه عنبر یوه ګیاده.چه په سمندر کي دننه پیدا کیږی.ډیر کرتې مایان (کبان) دا تیروی.بیا چي کله دا د کب په نس کي ځائې اونیسی. نوکب د دې دتریخ والی په وجه دا قئ کوی.اوبهر ئې غورزوی.اوکه کب دا بغیر د تیرولو اوغورزوی. نودا ښه عنبر شمارلې شی.(الکفایه)

**تشریح:- المذهبان فی وجوب الخمس فیهما**۞ ①بهرحال د طرفین رحمهما الله په نیز غمی او عنبرکي خمس واجب نه دي.

| وَقَالَ أَبُويُوسُفَ: فِيهِمَا اوامام ابویوسف رحمه الله وائي چي شته دي په دې دواړو کي وَفِي كُلِّ حِلْيَةٍ تُخْرَجُ مِنَ الْبَحْرِ خُمُسٌ اوپه هرهغه کالوکي چي دسمندر نه راوزی خمس دی |
|---|

**تشریح:-** او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه په دې دواړوکي اود سمندر نه راوتونکې هر زیور(چه د ښائست لپاره استعمالیږی)کي خمس واجب دې.

| لِأَنَّ عُمَرَأَخَذَالْخُمُسَ مِنَ الْعَنْبَرِ (٢) ځکه چي عمر رضي الله عنه دعنبرونه خمس اخستلی وو |
|---|

**تشریح:- دلیل ابی یوسف** رحمه الله ۞د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې.چه حضرت عمر رضي الله عنه د عنبر خمس اخستې دې.اوپه عنایه کي دا روایت په دې الفاظوسره ذکردې.(أن يعلى بن أميه كتب إلى عمربن الخطاب رضي الله عنه يسأله عن عنبرة وجدت على الساحل فكتب إليه فى جوابه أنه مال الله يؤتيه من يشاء وفيه الخمس)یعنی یعلی بن امیه رضي الله عنه حضرت عمر رضي الله عنه ته اولیکل.دهغه عنبر په اړه کي ئې تري پوښتنه اوکړو.چه دسمندر په غاړه اوموندلې شی.نودوی رضي الله عنه په ځواب کي اولیکل.چه دا د الله تعالی مال دې.چاته ئې چي خوښه وی. ورکوی ئې.اوپه دې کي خمس واجب دې.په دې واقعه کي په عنبر کي د خمس وجوب په صراحت سره ثابت دې.او په لؤلؤ (غمی) کي د خمس

(١) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(٢\١٨٥) وردالمحتار(٢\٥١) والتارخانية (٢\٣٤٢) والهندية (١\١٨٥) نقلاً عن القول الراجح (١\١٧٩)_

(٢) غربه الزيلعي رحمه الله عن عمربن الخطاب رضي الله عنه ثم ذكرعمل عمربن عبدالعزيز رحمه الله وعزاه إلى مصنف عبدالرزاق (٤/٦٥) (نصب الراية ٢/٣٩٧)_

وجوب په دلالت سره ثابتيږي.ځکه چې عنبر د سمندر نه راوځي.اوپه دې کي خمس واجب دې.نودغه د ول به په هرهغه څيزکي خمس واجب وی.کوم چې د سمندر نه راوځي.که لؤلؤ وی.اوکه نور زيورات(دښائست شيان ځيزونه)).علامه ابن الهمام رحمه الله په فتح القدير کي اوملا علی قاری رحمه الله په شرح نقايه کي ليکلی دی.چه په عنبر کي د خمس د وجوب حکم د حضرت عمر رضي الله عنه نه دې.بلکه دا واقعه دعمربن عبدالعزيز ده.چه دوی په عنبرکي خمس اخستې دې. او حضرت حسن بصری او امام زهری رحمه الله فرمائی.چه په عنبر او لؤلؤکي خمس واجب دې.

**وَلَهُمَا أَنَّ قَعْرَ الْبَحْرِ لَمْ يَرِدْ عَلَيْهِ الْقَهْرُ** دطرفينو رحمهما الله دليل دادی چې دسمندر په ويخ باندی غلبه نه شی واقع کيدلی **فَلَا يَكُونُ الْمَأْخُوذُ مِنْهُ غَنِيمَةً وَإِنْ كَانَ ذَهَبًا أَوْ فِضَّةً** نودده نه اخستلی شوی مال به غنيمت نه وی.اګر چې سره يا سپين زروی

**تشريح:- دليل الطرفين رحمهما الله** ۞ د طرفين رحمهما الله دليل دادې.چه خمس په هغه مال کي واجب وی.چه هغه مخکي دکافرانو په قبضه کي وی.اوبيا مسلمانان چور اوکړی.اوپه هغې غلبه بيامومی.اوعنبر داسې نه دې.ځکه چې دا دهيڅ چاپه قبضه کي نه وی.په دې وجه وئيلې شوې دی.چه سره او سپين زر کوم چې په سمندرکي دی.په دې کي هيڅ شی واجب نه دی.

**وَالْمَرْوِيُّ عَنْ عُمَرَ نَقُولُ فِيمَا دَسَرَهُ الْبَحْرُ** او دحضرت عمر نه مروی روايت محمول دی په هغې کښې چې سمندرغاړې ته راغورزولی وی **وَبِهِ نَقُولُ** اوددې موږ هم قائل

**تشريح:- الجواب عن دليل ابي يوسف رحمه الله** ۞ علامه مرغينانی رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله د پيش کړې شوی دليل په ځواب کي فرمائی.چه حضرت عمر رضي الله عنه يا عمربن عبدالعزيز رحمه الله چې په کوم عنبرکي خمس واجب کړې دې.داهغه عنبردې.چه په دې رحرب کي موجود سمندرر په غاړه راختلې وی.او اسلامی لښکر دا اوچت کړې وی.نوپه دې کي خمس واجب دې.ځکه چې داغنيمت دې.اوپه غنيمت کي خمس واجب وی.ددې موږ هم قائل يو.

**مَتَاعٌ وُجِدَ رِكَازًا** څه سامان په طور د رکاز اوموندی شو **فَهُوَ لِلَّذِي وَجَدَهُ وَفِيهِ الْخُمُسُ** نو دغه دموندون کي دی اوخمس پکي دی **مَعْنَاهُ: إِذَا وُجِدَ فِي أَرْضٍ لَا مَالِكَ لَهَا** ددی معنی داده چې هرکله په دې شی مخکه کي اوموندی شو چې مالك نی نه **لِأَنَّهُ غَنِيمَةٌ بِمَنْزِلَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ والله أعلم** نودغه په شان دسروسپينو مال دغنيمت دی .والله اعلم.

**۞ دليل عدم وجوب الخمس** ۞ صاحب دکفايه رحمه الله دخمس د عدم وجوب دليل بيانوی.فرمائی.د لؤلؤ اصل اوبه دی.اوپه اوبوکي هيڅ شی واجب نه وی.نوپه موتيانوکي به هم خمس واجب نه وی.اود عنبر اصل هم اوبه دی.يا ګيا ده.يا دځناور فضله(پاخانه) ده.اوپه دې کي هيڅ شی واجب نه وی.نوپه عنبر کي به هم څه څيزواجب نه وی.

**۞ وجوب الخمس فی غير الذهب والفضة من الركاز** ۞ صاحب دقدوروری رحمه الله فرمائی.چه دسرو اوسپينو زرو نه علاوه په کور کي دکار راتلو والا سامان(مثلاً کپړې،اسلحه، آلات وغيره)دفينه راؤ وتله.نوپه دې کي هم خمس واجب دې.مراد دادې.چه په دې سې مځکه کي راؤ وتله.چه دهغې څوك مالك نشته. ځکه چې داهم دسرو او سپينوزرو په شان مال غنيمت دې.اوپه مال غنيمت کي خمس واجب وی.په دې وجه په دې سامان کي به هم خمس واجب وی.

## باب زكاة الزروع والثمار

ژباړه:- (دا) باب د فصلونواود ميو په عشرکي دې.

**[illegible]:- وجوب العشرفی الزروع والثمار** ۞ د زمکې په پيداوار او ميووکي د عشر(لسمه حصه) واجبيږی.او دلته



کي هم د زکاة نه مراد عشردې.لکه څنګه چې په تيرشوې باب کي مصدق(زکاة راټولونکې)ته مجازا عاشر وئيلې شوې دی.دغه د ول دلته کښې هم عشر مجازاً په لفظ د زکاة سره تعبير شوې دې.زکاة چونکه خالص عبادت دې.اوعشر د زمکې مؤونت دې.البته په دې کي د عبادت معنی شته.په دې وجه زکاة مخکې او دعشر احکام روسته ذکرشوې دې.

### د زمکې په پيداوارکې د عشرنصاب

**قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ فِي قَلِيلِ مَا أَخْرَجَتْهُ الْأَرْضُ وَكَثِيرِهِ الْعُشْرُ** امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی چې کوم شی دزمکې نه پيداکيږی کم وی اوکه زيات **سَوَاءٌ سُقِيَ سَيْحًا أَوْ سَقَتْهُ السَّمَاءُ، إِلَّا الْحَطَبَ وَالْقَصَبَ وَالْحَشِيشَ** [1] پدی کي عشر دی .اګرچې په جاری ابو اوبه کيږی اوکه په باران سره .سوې دبانړسونو خاشی(خشاك) او وابښو نه

**تشريح:- المذهبان فی نصاب العشر** ۞ د عشر د وجوب په سلسله کي د امام ابوحنيفه رحمه الله او دصاحبينو رحمهما الله په مينځ کي اختلاف دې.① حضرت امام اعظم رحمه الله فرمائی.چه مطلقاً د زمکې په پيداوار کي عشر واجب دې.پيداوار کم وی.اوکه زيات وی.بغيرد تدبير اختيارولونه د يوکاله پورې پاته پاتې کيدونکې وی.مځکه په نهری وغيره جاری اوبوسره اوبه کړې وی.يا د باران په اوبوسره اوبه شوې وی.په هرصورت کي به عشر واجب وی.سوې د نلو،د سوزلو لرګو اود ګيا نه.چه په دې څيزونوکي د حضرت امام صاحب رحمه الله په نيزعشر واجب نه دې.

**لَا يَجِبُ الْعُشْرُ إِلَّا فِيمَا لَهُ ثَمَرَةٌ بَاقِيَةٌ إِذَا بَلَغَ خَمْسَةَ أَوْسُقٍ** صاحبين رحمهما الله فرمائی چې عشرواجب دی .مګر په هغه کي چې ميوه ئې پاته پاتې کيږی کله چې اورشي پنځه وسق ته **وَالْوَسْقُ سِتُّونَ صَاعًا بِصَاعِ رَسُولِ اللَّهِ** اووسق شپيته وړی دی دنبی کريم ﷺ په وړی سره **وَلَيْسَ فِي الْخَضْرَاوَاتِ عِنْدَهُمَا عُشْرٌ** اونشته په سبزوکي عشر ددوی په نزد

**تشريح:-** صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه د زمکې په پيداوار کي په دوې [دوه] شرطونوسره عشر واجب وی.يوداچه هغه څيزکوم چې د زمکې نه پيداکيږی.بغير دځه علاجه د يوکال پورې پاته پاتې کيدای شی.لکه غنم،اوربشې اوريجې وغيره.که د يو کال پورې پاته نه پاتې کيږی.نوپه دې کي به عشر واجب نه وی.لکه انګور ،خربوزه ، تربوزه، سيب وغيره. دوهم شرط داچه پيداوار د پنځه وسقو په مقدار وی.ددې نه په کم کي به عشر واجب نه وی.او يو وسق د نبی کريم ﷺ په صاع سره شپيته صاعه جوړيږی.نو پنځه وسق د درې سوه صاع برابر وی.او يوصاع څلور منه وی.نوګويا پنځه وسق دولس سوه منه وی.د صاحبينو رحمهما الله په نيز سبزيانو کي عشر واجب نه دې.ځکه چې ددې د يوکال پورې پاته پاتې کيدل بغير د علاجه ممکن نه دی.

**فَالْخِلَافُ فِي مَوْضِعَيْنِ فِي اشْتِرَاطِ النِّصَابِ، وَفِي اشْتِرَاطِ الْبَقَاءِ** نو اختلاف په دوې [دوه] ځايه کي په نصاب شرط کاوه اوبقاء کولوکښی

**تشريح:- الاختلاف فی شيئين** ۞ حاصل داچه د امام صاحب رحمه الله او د صاحبينو رحمهما الله اختلاف دوې [دوه] ځايه دې.

① يوداچې حضرت امام صاحب رحمه الله په نيز د عشر وجوب لپاره د نصاب مقدارنصاب کيدل شرط نه دې.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز شرط دې.② دوهم دا چې د امام صاحب رحمه الله په نيز د يو کال پورې پاته پاتې کيدل شرط نه دې.او دصاحبينو رحمهما الله په نيز شرط دې.

**لَهُمَا فِي الْأَوَّلِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** دصاحبينو رحمهما الله دليل دادی چې په اول شرط کي دنبی ﷺ ارشاد دی { **لَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ صَدَقَةٌ** } [1] چې پنځه وسق نه په کم کي صدقه نشته دی **وَلِأَنَّهُ صَدَقَةٌ** اوځکه چې داهم

[1] القول الراجح هو هذا قول أبی حنيفة رحمه الله كذا فی الخانية (۱\۱۳۲) وردالمحتار(۲\۵٤) والهندية (۱\۱۸۹) والخلاصة (۱\۲٤۹) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۸۰)_

صدقه ده فَيُشْتَرَطُ فِيهِ النِّصَابُ لِيَتَحَقَّقَ الْغِنى نويدی كي به هم نصاب شرط وی.دتحقق دغناء لپاره

تشریح:- **دلائل الصاحبين** رحمهما الله **في شرطية النصاب**⊛ د عشر دوجوب لپاره د نصاب شرط لګولو کي د صاحبينو رحمهما الله وړمبي دليل د نبی کريم ﷺ قول ﴿ليس فيما دون خمسة أوسق صدقة﴾ دي.په حديث کي د صدقة نه مراد عشر دي.ځکه چې زکاة خو پنځه وسق نه په کم کي هم واجب وی.په شرط ددي چې د دي قيمت دوي [دوه] سوه درهمه ته رسی.اوس د حديث ژباړه داشوه.چه د پنځه وسق نه په کموکي عشر نشته.نومعلومه شوه.چه د عشر دوجوب لپاره پنځه وسق ضروری دی.② دوهم دليل دادي.چه عشرهم د صدقه (زكاة) په شان دي.ځکه چې دعشر تعلق هم د زمکې د نماء سره دي.لکه څنګه چې د وجوب زکاة لپاره نماء شرط ده.③ او د زکاة په شان عشرهم په کافر نه واجب کيږی.او د عشر مصرف هم هغه دي. کوم چې دصدقاتو مصرف دي.نوثابته شوه.چه عشر د زکاة په شان دي.او د وجوب زکاة لپاره د نصاب کيدل شرط دی.چه غناء متحقق شی.نودغه ډول د وجوب عشر لپاره به هم نصاب کيدل شرط وی.چه مالداری اوغناء متحقق شی.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ اوددامام صاحب رحمه الله دليل د نبی ﷺ ارشاد دي {مَا أَخْرَجَتِ الْأَرْضُ فَفِيهِ الْعُشْرُ} (٢) مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ چې څه هم د زمکي نه راوځی پدی کي عشر دی .بغيردڅه تفصيل نه

تشریح:- **دليل ابی حنيفة** رحمه الله **في عدم شرطية النصاب**⊛او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل د الله تعالى د قول ﴿أَنفِقُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ الْأَرْضِ﴾ (الايه) عموم دي.په دي طريقه چې د زمکې مطلقاً پيداوار کي د انفاق حکم ورکړې شوې دې.د قليل او کثير هيڅ تفصيل نشته.

وَتَأْوِيلُ مَا رَوَيَاهُ زَكَاةُ التِّجَارَةِ اوتاويل د روايت دصاحبينو رحمهما الله دادی چې دغه زکاة دتجارت لِأَنَّهُمْ كَانُوا يَتَبَايَعُونَ بِالْأَوْسَاقِ وَقِيمَةُ الْوَسْقِ أَرْبَعُونَ دِرْهَمًا ځکه چې هغوبه دوسق په حساب اخستل خرڅول کول او قيمت د وسق څلويښت درهمه وو

تشریح:- **الجواب من حديث الصاحبين** رحمهما الله ⊛اود صاحبينو رحمهما الله پيش شوی حديث نه ﴿فيما دون خمسة أوسق صدقة﴾ تاويل دادي.چه په دي کي د تجارت زکاة مراددي.يعنی په مال تجارت کي د زکاة د وجوب لپاره پنځه وسق ضروری دی.او وجه ددې داده.چه دصحابو رضی الله عنهم په زمانه کي به خلګو د وسق په حساب سره اخستل خرڅول کول.اود يو وسق کجورو قيمت څلويښت درهمه وو.نود پنځه وسق قيمت به دوي [دوه] سوه درهمه وو.او دوي [دوه] سوه درهمه د زکاة نصاب دي.

وَلَا مُعْتَبَرَ بِالْمَالِكِ فِيهِ اوپدی کښی دمالك اعتبار نشته فَكَيْفَ بِصِفَتِهِ وَهُوَ الْغِنَى نو دده دصفت يعنی غناء اعتبار به دکومه وی وَلِهَذَا لَا يُشْتَرَطُ الْحَوْلُ پدی وجه تيريدل شرط نه دی لِأَنَّهُ لِلِاسْتِنْمَاءِ ځکه کال تيريدل دغو حاصلولو لپاره دی وَهُوَ كُلُّهُ نَمَاءٌ اودا واړه نماء ده

تشریح:- **الجواب من الدليل العقلى للصاحبين** رحمهما الله ⊛ ﴿ولا معتبر بالملك....إلخ﴾ سره د صاحبينو رحمهما الله د عقلی دليل ځواب دي.دځواب حاصل دادي.چه په عشر کي ملك معتبر نه وی.هم دغه وجه ده.چه عشر په مکاتب ماشوم او مجنون په مځکه کي هم واجبيږی.اوپه موقوفه زمکوکي هم عشر واجب وی.حالانکه په موقوفه زمکوهيڅ څوك مالك نه وی.نوهرکله چې په په باب دعشر کي مالك اعتبار نشی کيدلې.نو د دي دصفت يعنی مالداری او غناء اعتبار به هم نه کيږی.اوهرکله چې د غناء اعتبارنشی کيدلې.نوپه مطلق پيداوارکي

(١) تقدم تخريجه )_

(٢) غربه الزيلعی رحمه الله بهذا اللفظ وذكرما هو بمعناه من حديث ابن عمر رضی الله عنهما أخرجه البخاری فی الزكاة باب ۵۵ والترمذی فی الزكاة باب ١٤)_



به عشرواجب وی.پيداوار که قليل وی.اوکه کثيروی.اوپه عشرکي مالداری معتبرنه ده.په دي وجه حولان حول هم شرط نه دي.ځکه چې دحولان حول شرط د نماء حاصلولو لپاره وی.او پيداوار واړه په ټوله نماء ده.

وَلَهُمَا فِي الثَّانِي قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ اودصاحبينو رحمهما الله دليل په شرط ثانی کي دحضور ﷺ ارشاد دی { لَيْسَ فِي الْخَضْرَاوَاتِ صَدَقَةٌ } (١) چې په سبزيانوکي صدقه نشته وَالزَّكَاةُ غَيْرُ مَنْفِيَّةٍ فَتَعَيَّنَ الْعُشْرُ اوزکاة منفی نه دی نوعشر متعين شو

تشریح:- **دليل صاحبين** رحمهما الله **في شرطية البقاء**⊛په دوهم شرط کي د صاحبينو رحمهما الله دليل د نبی کريم ﷺ قول ﴿ليس في الخضروات صدقة﴾ دي.اودا روايت په،دارقطنی،کي داسې دي. ﴿أن رسول الله ﷺ نهى أن يؤخذ من الخضروات صدقة﴾په حديث کي د صدقه نه مرادعشر دي.ځکه چې سبزيانې که دتجارت لپاره وی.نوپه دي کي بالاتفاق زکاة واجبيږی.نومعلومه شوه.چه په حديث کي د زکاة نفی نه ده شوې. اوهرکله چې زکاة غيرمنفی دي.نوعشربه متعين وی.اود حديث مطلب به داوی.چه نبی کريم ﷺ فرمائيلې دی. چې په سبزيانوکي عشر واجب نه دي.اوپه سبزيانوکي د عشرد عدم وجوب علت ددې پاته نه پاتې کيدل دی.نوکوم شيان (څيزونه) چې پوره کال بغيرد څه علاجه پاته نه پاتې کيږی.په دې کي به عشر واجب نه وی.

وَلَهُ مَا رَوَيْنَا دامام صاحب دليل هغه دی چې موږ روايت کړو

تشریح:- **دليل ابی حنيفة** رحمه الله ⊛دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل ذکرشوې حديث ﴿ما أخرجت الأرض ففيه العشر﴾ دي.ځکه چې دا حديث مطلق دې.د پاته پاتې کيدلو او دنه پاتې کيدلوهيڅ قيدنشته.نو مطلقاً به د زمکې په پيداوارکي عشرواجب وی.که پوره کال پاته پاتې کيداې شو.اوکه نشو پاتې کيدلې.

وَمَرْوِيُّهُمَا مَحْمُولٌ عَلَى صَدَقَةٍ يَأْخُذُهَا الْعَاشِرُ اودصاحبينو رحمهما الله روايت شوی حديث په هغه صدقه محمول دی کومه چې عاشر وصولوی وَبِهِ أَخَذَ أَبُو حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ فِيهِ اوپدی کي دی لره امام صاحب هم اخلی

تشریح:- **الجواب من مستدل الصاحبين** رحمهما الله ⊛اود ﴿ليس في الخضروات صدقة﴾مطلب دادي.چه که څوك سرې ترکاريانې او سبزيانې دځان سره واخلی.اود عاشر په خواکي تيرشی.اومالك د قيمت ورکولونه انکار اوکړی.نوعاشرين به د ترکاريانو عشر نه وصول کوی.ځکه چې عاشر بالعموم د ښار نه لرې اوسيږی. اوهلته کي فقيران موجود نه وی.نوپه دې سې صورت کي که په سبزيانوکي عشروصول کړی. نو د دي دخرابيدو امکان دي.په دې وجه او وئيلې شو.چه عاشر به د سبزيانو عشر نه اخلی.بلکه مالك په خپله فقيرانو ته ورکړی.اوهرکله چې ئې مالك پخپله فقيرانو ته ورکړی.نودوی به دا اوخوری.اوس به ددې د خرابيدو هيڅ امکان پاتې نشی.حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله هم ددې حديث هم په دې محمل باندې عمل کوی.دامطلب نه دي.چه په سبزيانو کي بالکل عشرواجب نه دي.لکه څنګه صاحبين رحمهما الله فرمائی.

لِأَنَّ الْأَرْضَ قَدْ تُسْتَنْمَى بِمَا لَا يَبْقَى اوځکه چې کله دزمکي نه داشی پيداوار اخستلی شی کوم چې پاته پاتی کيږی وَالسَّبَبُ هِيَ الْأَرْضُ النَّامِيَةُ اوسبب دغه مځکه ناميه ده وَلِهَذَا يَجِبُ فِيهَا الْخَرَاجُ ځکه پدی کښی خراج واجبيږی

تشریح:- **الدليل العقلى لابی حنيفة** رحمه الله **فی عدم شرطية البقاء**⊛د امام صاحب رحمه الله په مذهب باندې عقلی دليل دا دي. چې د عشر دوجوب سبب د زمکې نامی کيدل دی.اوکله دزمکې نه په دې سې شی سره هم نماء حاصليږی .چه هغه پاته پاتې کيدونکې نه وی.نوکه د زمکې نه ترکاريانې او سبزيانې پيداکړې شوې.اوعشر واجب نکړې شی.نود سبب به بغير دحکم نه موجود کيدل لازم شی.اودا ټيك نه ده.په دې وجه ترکاريانو او سبزيانوکي هم عشرواجب کړې شو.

(١) من حديث معاذ رضی الله عنه أخرجه الترمذی فی الزكاة باب ١٣ رقم ٦٣٨)_

**نظیره** هم دغه وجه ده.چه په خراجی مځکه کې که ترکاریانې او سبزیانې اولګولې شوې.نو په دې کې به خراج واجب وی.نوځنګه چې په پاته نه پاتې کیدونکوڅیزونوکي خراج واجبیږی.دغه ډول عشر به هم واجب وی.

**مَا الْحَطَبُ وَالْقَصَبُ وَالْحَشِيشُ** پاتی شو خاشی(خشاك) اونلونه او واښه اوچه **فَلَاتُسْتَنْبَتُ فِي الْجِنَانِ عَادَةً** نودا عادتا یاد واښو پیدا کاوه لپاره مقررکړو **بَلْ تُنَقّٰى عَنْهَا حَتّٰى لَوِاتَّخَذَهَا مُقَصَّبَةً أَوْمُشَجَّرَةً أَوْمَنْبَتًا لِلْحَشِيشِ يَجِبُ فِيهَا الْعُشْرُ** نوواجب دی پ کي عشر

**تشریح:- الصورتان فی وجوب العشر فی القصب** ① د حضرت امام صاحب رحمه الله مذهب ذکر کاوه کي چې د خشاکو د لرګو،نلونو اود ګیا استثناء شوې وه.یعنی په دې څیزونوکي عشرواجب نه دې.ځکه چې عادة دا شیان (څیزونه ) په باغونوکي نه راخیجی.بلکه ددې څیزونو نه باغونه صفا کولې شی.② خوکه د پټی مالك مځکه د نرکل کښت (پټې) یا د خشاکو د ونو باغ یا د ګیا لګولو ځائې جوړ کړی.اوددې څیزونوحاصلول مقصود کړی.نو په دې کي به عشر واجب وی.

**وَالْمُرَادُ بِالْمَذْكُورِ الْقَصَبُ الْفَارِسِيُّ** او ذکرشوی جاری قصب نه مراد نلونه دی **أَمَّا قَصَبُ السُّكَّرِ وَقَصَبُ الذَّرِيرَةِ** اوهر چې دے ګنے او قصب د زیره نه بعد پدے کي عشر دی **فَفِيهِمَا الْعُشْرُ لِأَنَّهُ يُقْصَدُ بِهِمَا اسْتِغْلَالُ الْأَرْضِ** ځکه چې ددی نه دزم کي غله مقصود وی **بِخِلَافِ السَّعَفِ وَالتِّبْنِ** په خلاف د خرما د ښاخونو اوبوشو نه **لِأَنَّ الْمَقْصُودَ الْحَبُّ وَالثَّمَرُ دُونَهُمَا** چې مقصود ددی نه دانه ده.نکه دخرما ښاخونه اوبوسه.

**تشریح:- وجوب العشر فی قصب السکروقصب الزریرة** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه په متن کي د قصب نه مراد فارسی نرکل دې.چه قلمونه ترې جوړیږی.او پاتې شوګنی، اود ذریره نل (داپه هندوستان کښي یو مشهور نل دې.چه خوشبودار دې.په مرلوني خوشبوئی خوریږی.كذا في غاية السعاية نوپه دې کي عشرواجب دې.ځکه چې ددې دواړو نه د زمکې حاصلات مقصود وی.یعنی ګنی اود ذیریره نل قصداً راخیجولې شی.اوددې نه نفع اخستل مقصد وی.اوکوم څیز چې راخیجولې شی.په هغې کي عشر واجب وی.په دې وجه به په دې کي عشر واجب وی.ددې په خلاف د کجورو ښاخونه او بوسه،چه په دې کي عشر واجب نه وی.ځکه چې دا دواړه شیان (څیزونه ) مقصود نه وی.بلکه د کجورو میوه او دانه یعنی میوې مقصود وی.

## د نیم عشر وجوب

**وَمَا سُقِيَ بِغَرْبٍ أَوْدَالِيَةٍ أَوْسَانِيَةٍ** اوکوم چې اوبه کولی شی په غټه بوکه یا آرټ یا په اوښ **فَفِيهِ نِصْفُ الْعُشْرِ عَلَى الْقَوْلَيْنِ** نویدی کي نیم عشر دی .په دواړو قولو باندی

**حل اللغة: غرب:** لوې ډول.دالیه:آرټ، چې ډیرې ډولچې پرې تړلې شوې وی.بیا دا په غوائی وغیره تاوولې شی. دالیه ،سرخ، ته هم وائی.سرخ دادې.چه د لرګی یوه تنه چې ددې په سر باندې د څرمنې یو ډول شان تړلې شوې وی.بیا دا په اوبوکي ورکښته کوی.اوکښت (پټې) پرې اوبه کوی② **سانية**:هغه اوښه چې د هغې په ذریعه کښت (پټې) اوبه کولې شی.

**تشریح:- وجوب نصف العشرفی الخارج باالسقی** صورت دمسئلې دادې.چه که کښت (پټې) په لوې ډول یا آرټ یاد اوښې په ذریعه خړوب کړې شوې وی.نود امام صاحب رحمه الله او صاحبین رحمهما الله دواړو په نیز دې کي نصف عشرواجب دې.خوددې اختلاف سره د امام صاحب رحمه الله په نیزنه نصاب شرط دې.اونه د بقاء اود صاحبینو رحمهما الله په نیز به د دواړو شرطونو لحاظ ساتلې شی.

**لِأَنَّ الْمُؤْنَةَ تَكْثُرُ فِيهِ** ځکه چې په دې شی اوبه کول ډیر خرچ رازی **وَتَقِلُّ فِيمَا يُسْقٰى بِالسَّمَاءِ أَوْسَيْحًا** اوکم خرچ راځی په هغه چې اوبه کولې شی په بارانی یا د دریاب په اوبو



**تشریح:- دلیله** دلیل دادې چې په دې صورتونوکي زیات مشقت اوچتولې شی.په نسبت د باران یا د دریاب نه د اوبه کولو،چونکه په باران یا دریاب سره اوبه کولوکي مشقت کم وی.په دې وجه به په دې کي عشرواجب وی.اوپه آرټ وغیره سره خړوبولوکي مشقت زیات وی.په دې وجه په دې صورتونوکي به دعشر نیمه یعنی شلمه برخه واجب وی.

**وَإِنْ سُقِيَ سَيْحًا وَبِدَالِيَةٍ فَالْمُعْتَبَرُ أَكْثَرُ السَّنَةِ كَمَا مَرَّ فِي السَّائِمَةِ** اوپه دریابی اوبو او آرټ دواړو باندی اوبه کولی شی دکال اکثره برخه معتبره ده لکه په سائمه څاروو کي چې دی

**تشریح:- اعتبار اکثرالحول فی الخارج بالسقی والمطر** اوکه کښت د دریاب په اوبوسره هم سیراب کړې شوې وی.اوپه ډول سره هم اوبه راوښکلې شوې وی.اوسیراب کړې شوې وی.نود کال د اکثر اعتبار به کولې شی.یعنی که اکثرکال په دریاب سره سیراب کړې شو.اوځه ورځې په ډول سره سیراب کړې شو.نو عشر به واجب وی.اوکه ددې په عکس دې نونصف به واجب وی.

**نظیره** لکه ځنګه چې په سائمه څاروکي د کال د اکثرې برخې اعتبارکولې شی.یعنی که دکال په اکثره برخه کي حیوان (څاروې) پوولې شوې وی.اوځه ورځې په کورکي په تړلې شوې خوراك ورکړې شوې وی.نودا به سائمه حیوان (څاروې) شمارلې شی.اوپه دې کي به زکاة واجب وی.اوکه ددې په عکس وی.نودې ته به علوفه ونیلې شی.اوپه دې کي به زکاة واجب نه وی.

**الاعتراض علی الصاحبین** دصاحبینو رحمهما الله په مذهب باندې یو اشکال کیږی.هغه داچه د صاحبینو رحمهما الله په نیزد زمکې په پیداوارکي د عشر د وجوب لپاره ددې پنځه وسق مقدار کیدل ضروری دې.ددې نه په کم کي به عشر واجب نه وی.خوپه کومو څیزونوکي چې په وسق سره د کاروبارمعمول نه وی.اوددې اخستل خرڅول په وسق سره نه کیږی.لکه زعفران او مالوچ شو.نوآیا په دې کي به عشرواجب نه وی؟

**وَقَالَ أَبُويُوسُفَ: فِيمَا لَا يُوسَقُ كَالزَّعْفَرَانِ، وَالْقُطْنِ** امام ابویوسف رحمه الله فرمائي چې کوم شیان (څیزونه ) په وسق سره نه شی خرڅولی لکه زعفران اومالوچ **يَجِبُ فِيهِ الْعُشْرُ إِذَا بَلَغَتْ قِيمَتُهُ قِيمَةَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ مِنْ أَدْنٰى مَا يُوسَقُ) كَالذُّرَةِ فِي زَمَانِنَا** نوپدے کي عشر واجب دی .کله چې قیمت ئې د ادنی درجی دوسق شی د ده پنځه وسقو ته اورشی لکه زمور په زمانه کي چې جوار دی

**تشریح:- مسلک ابی یوسف** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه د داسې څیزونو اړه کي د حضرت امام ابویوسف رحمه الله قول دادې.چه زعفران وغیره غیر وسقی څیزونو قیمت که د ادنی درجه وسقی څیزونو سره پنځه وسق پوره کیدای شی.نوپه دې کي به عشرواجب وی.مثلاً دوې [دوه] سوه ګرامه زعفرانو قیمت د پنځه وسق جوارو قیمت ته رسنی.نوپه دوې [دوه] سوه ګرامه زعفرانوکي به عشرواجب وی.اګرچه د زعفرانو اخستل خرڅول په وسق سره نه کیږی.

**لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ التَّقْدِيرُ الشَّرْعِيُّ فِيهِ** ځکه چې پدی کي دعشر نصاب اندازه ناممکن ده **فَاعْتُبِرَتْ قِيمَتُهُ كَمَا فِي عُرُوضِ التِّجَارَةِ** نود قیمت اعتبار ئې اوکړی شو لکه چې په اسباب دتجارت کښی چې کولی شی

**تشریح:- دلیل ابی یوسف** دلیل دادې.چه په غیر وسقی څیزونوکي شرعی نصاب یعنی د پنځه وسقو اندازه کول ممکن نه دی.په دې وجه به ددې د قیمت اعتبارکولې شی.لکه ځنګه چې د تجارت په سامان کي شرعی نصاب یعنی دوې [دوه] سوه درهمو اندازه کول ناممکن دی.نوددې د قیمت اعتبار شوې دی.یعنی سامان تجارت که دوې [دوه] سوه درهمومقدار ته اورسیږی.نوپه دې کي به زکاة واجب وی.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يَجِبُ الْعُشْرُ إِذَا بَلَغَ الْخَارِجُ خَمْسَةَ أَعْدَادٍ مِنْ أَعْلٰى مَا يُقَدَّرُ بِهِ نَوْعُهُ** امام محمد رحمه الله فرمائی چې عشرواجب دی کله چې اورشی پیداوار پنځه عدده دهغه مقدار ته په کوم سره چې اندازه کولی شی . د دغی شان دڅیزونو

فَاعْتُبِرَ فِي الْقُطْنِ خَمْسَةُ أَحْمَالٍ كُلُّ حِمْلٍ ثَلاثُمِائَةِ مَنٍّ نو په مالوچو كښې دپنځه بوجونو اعتبار دی چې هر يو بوج دری سوه منه شوی وی وَفِي الزَّعْفَرَانِ خَمْسَةُ أَمْنَاءٍ اوپه زعفرانو كښې پنځه منه

**تشریح:- مسلک محمد** ﷺ اود امام محمد رحمه الله قول دادې.چه په غير وسقي څيزونوكې د اعلى معيار معتبردې.يعنى په كوم معيار سره چې اندازه كولې شى.كوم چې د ټولونه اعلى درجه پنځوتعداد ته اورسى.نوپه دې كې به عشرواجب وى.ګنى واجب به نه وى.لكه چې په مالوچوكې د اعلىٰ او لويه اندازه كاوه والا آله اومعيار حِمل(بكسرالحاء)دې.حِمل د يوې اوښې بوجهـ ،نوكه مالوچ پنځه چور وى.نود امام محمد رحمه الله په نيز به په دې كې عشر واجب وى.يوحِمل تقريباً درې سوه منه وى.اوپه زعفرانو كې د ټولونه اعلىٰ معيار ،مَن، وى.نو كه زعفران پنځه منه مقدار ته اورسى. نو په دې كې به عشرواجب وى.

لِأَنَّ التَّقْدِيرَ بِالْوَسْقِ كَانَ بِاعْتِبَارِ أَنَّهُ أَعْلَى مَا يُقَدَّرُ بِهِ نَوْعُهُ څكه چې د دوسق اندازه پدى اعتبار سره وه چې دغه دټولو نه اعلى ده.په كوم سره چې اندازه كولى شى.

**تشریح:- دلیل محمد** ﷺ دليل دادې.چه په كيلى(ناپ)څيزونوكې د ټولونه اعلى درجه معيار او اندازه كاوه والا آله وسق وى.نوملومه شوه.چه د وسق اعتبار په دې وجه شوې دې.چه دا د ټولونه اعلىٰ او لوې معيار دې.حاصل داشو.چه كوم شى په كوم معيارسره اندازه كولې شى.په هغه معياركې چې كوم د ټولو نه لوې معيار وى.دهغه اعتباربه كولې شى.نوكه دغه څيزپه اعلى معيار سره پنځه شى.نوپه هغې كې به عشرواجب وى.

## د عشرى زمكې په شهدوكې زكاة

وَفِي الْعَسَلِ الْعُشْرُ إِذَا أُخِذَ مِنْ أَرْضِ الْعُشْرِ اوپه ګبين كې عشر دى كله چې د عشرزمكې نه واخستلى شى

**تشریح:- المذهبان فى وجوب العشر** ﷺ ①مسئله داده.كه شهد د عشرى زمكې نه حاصل كړې شو.نو په دې كې به عشرواجب وى.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ لَا يَجِبُ اوامام شافعى رحمه الله فرمائى چې واجب نه دى لِأَنَّهُ مُتَوَلِّدٌ مِنَ الْحَيَوَانِ څكه چې داخو دحيوان نه پيداكيږى فَأَشْبَهَ الْإِبْرَيْسَمَ نود ريښمو مشابه شو

**حل اللغة**:①ابريسم: ريښم ته وائى

**تشریح:-** امام شافعى رحمه الله فرمائى.چه په شهدوكې عشرواجب نه دې.هم دا قول د امام مالك رحمه الله دې.

**دلیل الشافعی** رحمه الله ﷺ د امام شافعى رحمه الله دليل دادې.چه شهد د ځناورو يعنى د مچو نه پيداكيږى. نو دا د ريښمو په شان شو.څكه چې ريښم هم د ځناور يعنى د چينجو نه پيداكيږى.اوپه ريښموكې په اتفاق سره عشرنشته.نوپه شهدوكې به هم عشرنه وى.

وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ اوزمونږ دليل دنبى ﷺ ارشاد دى {فِي الْعَسَلِ الْعُشْرُ} [1] چې ګبين كښې عشردى

**تشریح:- دلیل الاحناف** رحمهم الله ﷺ ①زمونږ دليل د رسول الله ﷺ حديث ﴿عن أبىهريرة ﷺ أن رسول الله ﷺ كتب إلى أهل اليمن أن فى العسل العشر﴾ دې.يعنى نبى كريم ﷺ يمن والوته اوليكل.چه په شهدو كې عشر واجب دې.

وَلِأَنَّ النَّحْلَ يَتَنَاوَلُ مِنَ الْأَنْوَارِ وَالثِّمَارِ اوڅكه چې دګبين موچئ د غونچو او ميوو نه خوراك كوى وَفِيهِمَا الْعُشْرُ او په دى دواړوكې عشر دى فَكَذَا فِيمَا يَتَوَلَّدُ مِنْهُمَا نودغه ډول به په دى كې هم وى چې ترى پيدا وى

**حل اللغة** ① يتناول: رول ② انوار: پرق پروق ③ الثمار: ميوې

[1]) من حديث أبى هريرة ﷺ أخرجه العقيلى فى كتاب الضعفاء (نصب الراية ۴۰۵/۲)_



**تشریح:-** دوهم دليل دادې.چه دشهدو مچئ ګلونه او ميوې خورى.لكه چې د الله تعالى ارشاد دې او په ګلونو او ميووكې عشرواجب دې.نوكوم څيز چې ددې نه پيدا كيږى. يعنى شهد،په دې كې به هم عشرواجب وى.

بِخِلَافِ دُودِ الْقَزِّ لِأَنَّهُ يَتَنَاوَلُ مِنَ الْأَوْرَاقِ .په خلاف د ريخمو د چينجى نه چې ئې پاڼړى خورى وَلَا عُشْرَ فِيهَا اوپه پاڼړو كښې عشر نشته

**تشریح:-** په خلاف د ريښمو د چينجو،چه د شهتوتانو پاڼړې خورى.او په پاڼړوكې عشر واجب نه وى.نوكوم څيز چې ددې نه پيدا كيږى.يعنى ريښم، په دې كې به هم عشر واجب نه وى.

ثُمَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ يَجِبُ فِيهِ الْعُشْرُ قَلَّ أَوْ كَثُرَ [1] بيا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد په ګبين كښې عشرواجب دى .كم وى اوكه زيات لِأَنَّهُ لَا يُعْتَبَرُ النِّصَابُ څكه چې دوى د نصاب اعتبار نه كوى

**تشریح:- المذهبان فى نصاب عشر العسل** ﷺ ①صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى.چه په شهدو كې به عشر واجب وى.كه شهد كم وى اوكه زيات.څكه چې حضرت امام اعظم رحمه الله په وجوب عشر كې د نصاب اعتبار نه كوى.② د امام ابويوسف رحمه الله نه په دې اړه كې درې روايته دى.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يُعْتَبَرُ فِيهِ قِيمَةُ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ كَمَا هُوَ أَصْلُهُ اود ابويوسف رحمه الله نه روايت دى چې په ګبين كې دپنځه وسقوقيمت معتبر دى .لكه چې دده اصول دى

**تشریح:- الرواية الاولى عن ابى يوسف** رحمه الله **فى نصاب عشر العسل** ﷺ ①يودا كه شهد د پنځو وسق قيمت برابروى.نو په دې كې به عشرواجب وى.هم دا د ابويوسف رحمه الله اصل (مذهب)دې.

وَعَنْهُ أَنَّهُ لَا شَيْءَ فِيهِ حَتَّى يَبْلُغَ عَشْرَ قِرَبٍ لِحَدِيثِ {بَنِي شَبَابَةَ} اودده نه روايت هم دى چې په ګبين كې هيڅ نشته تردى چې لس مشكيزو ته اورشى دحديث دبنى شبابه په وجه أَنَّهُمْ كَانُوا يُؤَدُّونَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ كَذَلِكَ [2] چې دوى به نبى كريم ﷺ ته عشر دغه ډول اداكولو

**تشریح:-** دوهم داكه دشهدو مقدار د لسومشكونو په اندازه وى.نوپه دې كې به عشرواجب وى.

**ادلیلها** ﷺ دليل د بنى شبابه حديث دې.په عنايه كې دا حديث داسې دې.چه د بنىجرهم يو قوم بنو شبابه سره د غسلو غالبوزه (دشهدو مچئ) وې.دې خلګ وبه په هرلسو مشكونوكې يو مشك رسول الله ﷺ له وركولو.او رسول الله ﷺ به ددوى د علاقې ساتنه كولو.بياهركله چې دحضرت اميرالمؤمنين عمربن الخطاب ﷺ د خلافت زمانه راغله.اودوى سفيان بن عبدالله ثقفى ﷺ عامل مقرر كړو.نودې خلګو د عشر ور كاوه نه انكار اوكړو .سفيان بن عبدالله ثقفى ﷺ حضرت عمر ﷺ ته اوليكل.نوحضرت عمر ﷺ په ځواب كې اوليكل.چه د شهدومچئ خو د باران مچئ دى.الله تعالى چې كوم ځائې اوغواړى هلته كې ئې بوځى.كه دغه خلګ تاله عشر دركړى .كوم ئې چې رسول الله ﷺ له وركولو.نوتاسو ددوى د علاقې ساتنه كوئ.ګنى د دوى دعلاقه او د خلګ په مينځ كې لارخالى كړئ.ددې ځواب نه روسته دغه خلګ عشر وركول پيل كړل. د حضرت عمر ﷺ د ځواب حاصل داوو.چه كه دغه خلګ عشروركړى.نوددوى د علاقې ددوى لپاره ساتنه كوه.ګنى چې څوك غواړى شهد دې اوباسى.او اوړى دې.بهرحال ددې حديث نه معلومه شوه.چه د بنوشبابه خلګو په لسومشكونوكې يومشك عشر وركولو.يومشك لس رطله وى.

وَعَنْهُ خَمْسَةُ أَمْنَاءٍ او دامام ابويوسف رحمه الله نه دپنځه منو روايت هم دى

[1]) القول الراجح هو هذا قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى فتح القدير(۱۹۱/۲) والخانية (۱۳۲/۱) وردالمحتار(۵۳/۲) والهندية (۱۸۶/۱) نقلاً عن القول الراجح (۱۸۱/۱)-

[2]) من حديث عمربن شعيب عن أبيه عن جده ﷺ أخرجه الطبرانى فى معجمه(نصب الراية ۴۰۷/۲)

تشريح:- دريم روايت دا دی.که شهد پنځه منه وی.نوپه دې کې به عشر واجب وی.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ خَمْسَةُ أَفْرَاقٍ كُلُّ فَرَقٍ سِتَّةٌ وَثَلَاثُونَ رِطْلًا اود امام محمد رحمه الله نه د پنځه فرقو اوهر توپير شپږدیرش رطله مروی دی لِأَنَّهُ أَقْصَى مَا يُقَدَّرُ بِهِ ځکه چې توپير انتهائی پیمانه ده چې اندازه پرې کولی شی

تشريح:- مذهب محمد رحمه الله فی نصاب العسل﴿ د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.چه پنځه توپير نصاب دې.پنځه توپير شهدوکې عشر واجب دې.او يو توپير شپږ ديرش رطله وی.ځکه په کومو پیمانوسره چې د شهدو اندازه کيږی.په دې کې د ټولو نه اعلی پیمانه توپير دې.

وَكَذَا فِي قَصَبِ السُّكَّرِ اودغه ډول په ګنی کې ده

تشريح:- اختلاف الصاحبين رحمهما الله فی نصاب قصب السكر﴿ اوپه ګنوکې هم د امام ابويوسف او امام محمد رحمهما الله مینځ کې اختلاف دې.چه د امام ابويوسف رحمه الله په نيز د ګنو قيمت که پنځه وسق ته اورسی.نوعشر به واجب وی.اود امام محمد رحمه الله په نيزکه پنځه منو ته اورسی.نو په دې کې به عشر واجب وی.

وَمَا يُوجَدُ فِي الْجِبَالِ مِنَ الْعَسَلِ وَالثِّمَارِ فَفِيهِ الْعُشْرُ اوپه غرونوکې چې کوم ګبين اوميوه موندی شی پدی کې عشر دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ لَا يَجِبُ لِانْعِدَامِ السَّبَبِ اودابويوسف رحمه الله نه روايت دی چې واجب نه دی دسبب نه کيدوپه وجه سره وَهُوَ الْأَرْضُ النَّامِيَةُ، وَجْهُ الظَّاهِرِ اوهغه ارض ناميه ده دظاهر مقصود په وجه أَنَّ الْمَقْصُودَ حَاصِلٌ وَهُوَ الْخَارِجُ وجه داده چې دمقصود حاصل دی او هغه پيداوار دی .

تشريح:- الروايتان فی وجوب العشر في العسل الجبلی﴿ ① اوپه غرونوکې چې کومې ميوې اوشهد دې.په هغې کې هم عشر واجب دې. ② اود ابويوسف رحمه الله نه يو روايت دادې.چه په دې کې عشر واجب نه دې.ځکه چې د وجوب عشر سبب اونه موندلې شو.اوهغه د زمکې نامی کيدل دی.زيات ښه به وو.که داسې ئې وئيلې وې.چه د وجوب عشر سبب مملوکه مځکه ده.او ظاهرالروايـة يعنی د وجوب عشر دليل دادې.چه کوم مقصود دې.هغه حاصل دې.يعنی پيداوار حاصل دې.نوهرکله چې پيداوار موجود دې.نوپه دې کې به عشر هم واجب وی.

### دعشر نه د غوپانو او مذدورانو د اجرت ويستل

قَالَ وَكُلُّ شَيْءٍ أَخْرَجَتْهُ الْأَرْضُ مِمَّا فِيهِ الْعُشْرُ هرهغه شی چې دزمکې نه راوځی دهغه ځيزونو نه په کوموکې چې عشر دی لَا يُحْتَسَبُ فِيهِ أَجْرُ الْعُمَّالِ وَنَفَقَةُ الْبَقَرِ نوحساب به پکې نه وی.اجرت دکارکونکو اود غوايانو خرچه

تشريح:- عدم اخراج اجرة العمال ونفقة البقر﴿مسئله داده.چه د کومو زمکو په پيداوار کې عشر يا نصف عشراخستلې شی.ددې په پيداوار کې د کارکونکو مزدوری اود غويانو د خوراك وندې خرچه به نشی حسابولې.مثلاً پيداوار سل منه غنم دی.اولس منه د کار کونکو مزدوری او دڅاروو په خوراك وندې کې لاړل.نودا لس منه به نه حسابيږی.چه عشربه نې نشی ورکولې.بکله په پوره پيداوار يعنی په سلو منوکې به عشر واجب وی.

لِأَنَّ النَّبِيَّ حَكَمَ بِتَفَاوُتِ الْوَاجِبِ لِتَفَاوُتِ الْمُؤْنَةِ(1) ځکه چې نبی کريم ﷺ دتفاوت دصرفی نه د تفاوت د واجب حکم کړی دی فَلَا مَعْنَى لِرَفْعِهَا نودی په پورته کولوکې هی څ معنی نشته دی .

تشريح:- دليله﴿ځکه چې رسول الله ﷺ د مختلفومؤونتونو اوخرڅو په وجه دمختلفو واجباتوحکم ورکړې دې.نود خرچه وغيره حسابول هيڅ معنیٰ نه لری.

(1) قال الزيلعی رحمه الله يشير إلى حديث ابن عمر رضی الله عنه أخرجه البخاری ومسلم وأبوداود (نصب الراية ۲/ ۴۰۹)_



### د تغلبي په عشری مځکه کې عشر

قَالَ تَغْلِبِيٌّ لَهُ أَرْضُ عُشْرٍ د يو تغلبی مځکه عشری ده عَلَيْهِ الْعُشْرُ مُضَاعَفًا(1) نوپده به دوچند عشرواجب وی

تشريح:- ضعف العشر فی ارض التغليبی﴿ مسئله داده.چه د تغليبی په عشری مځکه کې عشر به دوچند واجب وی.هغه مځکه که د پيل نه د تغليبی سره وی.اوکه تغليبی دا د مسلمان نه اخستې وی.

عُرِفَ ذَلِكَ بِإِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ دا د اصحابو په اجماع سره ثابته ده

تشريح:- دليله﴿دليل د صحابه کرامو رضی الله عنهم اجماع ده.ځکه چې دحضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کې په دې اجماع شويده.چه دمسلمانانو نه څه اخستلې شی.د بنوتغلب څخه به د هغې دوچند اخستې شی.نو چونکه په عشری مځکه کې د مسلمان نه يوعشر اخستې شی.نود تغليبی څخه به ددې دوچند اخستې شی.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ: أَنَّ فِيمَا اشْتَرَاهُ التَّغْلِبِيُّ مِنَ الْمُسْلِمِ عُشْرًا وَاحِدًا دا امام محمد رحمه الله نه روايت دی چې په هغه مځکه کې کومه چې تغلبی دمسلمان نه واخستله يوعشردی ، لِأَنَّ الْوَظِيفَةَ عِنْدَهُ لَا تَتَغَيَّرُ بِتَغَيُّرِ الْمَالِكِ ځکه چې دده په نزد وظيفه نه بدليږی.دمالك په بدليدو سره

تشريح:- اخذ العشر فقط عند محمد رحمه الله﴿د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.که تغليبی عشری مځکه دکوم مسلمان نه اخستې وی.نوپه دې کې به يوعشر واجب وی.ځکه چې د امام محمد رحمه الله په نيز د مالك په بدلولوسره حکم نه بدليږی.نوهرکله چې دا مځکه د مسلمان په ملك کې وه.نويو عشر واجب وو.او اوس چونکه د تغليبی په ملك کې راغله.نو اوس به هم يوعشر واجب وی.

### د تغليبی نه ذمی ته ملکيت منتقل کيدلوکې عشر

فَإِنِ اشْتَرَاهَا مِنْهُ ذِمِّيٌّ بياکه واخستله دا(مځکه )دده(تغليبی)نه ذمی فَهِيَ عَلَى حَالِهَا عِنْدَهُمْ نو وی به دا په خپل حال باندی په نيز ددوی (ټولو امامانو رحمهم الله) لِجَوَازِ التَّضْعِيفِ عَلَيْهِ فِي الْجُمْلَةِ كَمَا إِذَا مَرَّ عَلَى الْعَاشِرِ وجه د وجوب د دوچند کيدلونه په ده (ذمی)باندی .لکه څنګه چې تيرشی په عاشر باندی .

ژباړه:- بياکه واخستله دا(مځکه )دده(تغليبی)نه ذمی،نو وی به دا په خپل حال باندې په نيز ددوی (ټولو امامانو رحمهم الله)د وجه د وجوب د دوچند کيدلونه په ده (ذمی)باندې.لکه څنګه چې تيرشی په عاشر باندې.

تشريح:- اخذ ضعف العشر من الذمی﴿مسئله داده.که عشری مځکه يوغير تغليبی د ذمی نه واخستله.نو په اتفاق په دې غيرتغليبی ذمی باندې به هم د عشردوچند واجب وی.لکه څنګه چې په تغليبی باندې واجب وو.ځکه چې په غيرتغليبی ذمی باندې فی الجمله دوچند واجبيږی.مثلاً څوك ذمی د تجارت مال واخلی.اود عاشر په خواکې تيرشی.نوددې ذمی څخه به د هغې دوچند اخستلې شی.کوم چې د مسلمان نه اخستلې شی.

### د تغليبی نه مسلمان ته ملکيت منتقل کيدل

وَكَذَا إِذَا اشْتَرَاهَا مِنْهُ مُسْلِمٌ أَوْ أَسْلَمَ التَّغْلِبِيُّ اوداشی هغه وخت ده کله چې دتغلبی نه دی لره مسلمان واخستله يا تغلبی مسلمان شی عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ سَوَاءٌ كَانَ التَّضْعِيفُ أَصْلِيًّا أَوْ حَادِثًا(2) دامام ابوحينفه رحمه الله په نزد دوچند وظيفه اصلی وی اوکه حادثه وی

(1) القول الراجح هو هذا قول الشخين رحمهما الله كذا فی رد المحتار(۲/ ۵۶) ومجمع الأنهر(۱/ ۲۱۷) والبحرالرائق (۲/ ۲۳۸) والهندية (۱/ ۱۸۶) نقلاً عن القول الراجح (۱/ ۱۸۲)_

(2) القول الراجح هو هذا قول أبی حنيفة رحمه الله كذا فی الدری لمختار (۲/ ۵۶) والبحرالرائق (۲/ ۲۳۸) والهندية (۱/ ۱۸۶) نقلاً عن القول الراجح (۱/ ۱۸۳)-

**تشريح:- اخذ ضعف العشر فی صورة انتقال الملكية الی مسلم**۞ مسئله داده.كه دا مځكه ددې تغليبي نه كوم مسلمان واخستله.يا تغليبي مسلمان شو.نوهم به د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دوچند عشر واجب وي.دا دوچند كيدل كه اصلي وي.په دې شان چې تغليبي ته دخپل پلار نه په ميراث كې ملاؤشي.اوپه دې دوچند عشر وو.اوكه دوچند كيدل حادث وي.په دې شان چې تغليبي دا مځكه دكوم مسلمان نه واخستله.او په ده دوچند شوه.حالانكه په مسلمان يوعشر واجب وو.نودا دوچند كيدل حادث شو.

لِأَنَّ التَّضْعِيفَ صَارَ وَظِيفَةً لَهَا ځكه چې دا دوچند عشرددې وظيفه شوې ده فَتَنْتَقِلُ إِلَى الْمُسْلِمِ بِمَا فِيهَا كَالْخَرَاجِ نو دا مځكه سره دخپل بار دمحصول مسلمان ته منتقل كيږي.لكه خراج

**تشريح:- دليله**۞دليل دادې.چه د عشردوچند كيدل ددې زمكې وظيفه شوه.نودا مځكه چې كله ديو مسلمان اړخ ته منتقل كيږي.نوخپل واړه وظائف يعنې بار،بوجه سره منتقل كيږي.لكه ځنګه چې خراج هم منتقل كيږي.يعنې كه مسلمان د كوم يو ذمي نه خراجي مځكه واخستله.نودا مځكه د خراج سره مسلمان اړخ ته منتقل كيږي.تردې چې ځنګه د ذمي نه خراج اخستلې شو.هغه شان به د مسلمان نه هم اخستلې شي.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ يَعُودُ إِلَى عُشْرٍ وَاحِدٍ لِزَوَالِ الدَّاعِي إِلَى التَّضْعِيفِ امام ابويوسف رحمه الله فرمائي چې عشربه واحد اړخ ته واروسته شي د زائله كيدو دامر داعي په وجه دوچند

**تشريح:- اخذ العشر فقط عند ابی يوسف** رحمه الله ۞او امام ابويوسف رحمه الله فرمائي.چه ددې تغليبي په مځكه كې چې كوم دوچند عشروو.هغه منسوخ شو.او يو عشر اړخ ته به واروسته كولې شي.

**دليله**۞ځكه چې عشر د دوچند كيدلو باعث اوسبب د تغليبي كفروو.خوكله چې دتغليبي نه كوم مسلمان دا مځكه واخستله.يا په خپله مسلمان شو.نودا واړه زائل شو.اوهركله چې د دوچند سبب پاتې نشو.نو دوچند به هم واجب نه وي.بلكه هم يو عشر به واجب وي.

قَالَ فِي الْكِتَابِ په كتاب كې وئيلې شوې دي وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ فِيمَا صَحَّ عَنْهُ چې دا دامام محمد رحمه الله قول دی دده نه صحيح روايت كې

**تشريح:- اختلاف الشيخين** رحمهما الله **فی مذهب محمد** رحمه الله ۞ علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د مبسوط په كتاب الزكاة كې د امام محمد رحمه الله صحيح قول هم دا ذكرشوې دې.چه د تغليبيعشرى مځكه كه سلمان واخستله .ياتغليبي په خپله مسلمان شو.نوپه دې كې به يوعشر واجب وي.د عشر دوچند به واجب نه وي.

قَالَ علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي اخْتَلَفَتِ النُّسَخُ فِي بَيَانِ قَوْلِهِ چې د قول دمحمد رحمه الله په بيان كې نسخې مختلف دي وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ فِي بَقَاءِ التَّضْعِيفِ او اصح داده چې دی دامام ابوحنيفه رحمه الله سره دی په پاته پاتی كيدو د دوچند كي .

**تشريح:-** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د امام محمد رحمه الله قول بيانولوكې د مبسوط نسخې مختلف دي.چې د امام محمد رحمه الله قول دامام ابوحنيفه رحمه الله سره دې.ياد امام ابويوسف رحمه الله سره دې.خو اصح قول دا دې.چه په مسلمان باندې دوچند عشرپاته ساتلوكې د امام محمد رحمه الله قول د امام ابوحنيفه رحمه الله سره دې.

إِلَّا أَنَّ قَوْلَهُ لَا يَتَأَتَّى إِلَّا فِي الْأَصْلِي مګر ددوی قول نه واقع كيږي مګر په تضعيف اصلي كې لِأَنَّ التَّضْعِيفَ الْحَادِثَ لَا يَتَحَقَّقُ عِنْدَهُ لِعَدَمِ تَغَيُّرِ الْوَظِيفَةِ ځكه چې نضعيف حادث ددوی په نزد متحقق كيږي دوظيفي نه بدليدو په وجې سره .

**تشريح:-** خو دومره خبره ده.چه د امام محمد رحمه الله قول د امام ابوحنيفه رحمه الله سره په تضعيف اصلي (دوچندئ)كې دې.په تضعيف حادث كې نه دې.ځكه چې تضعيف حادث د امام محمد رحمه الله په نيز نه متحقق كيږي.ځكه چې د امام محمد رحمه الله په نيز وظيفه (فريضه) نه بدليږي.د تضعيف اصلي او حادث وضاحت په تيرو كرخوكې شوې دې.



## دمسلمان نه ذمي ته مملكيت منتقل كيدوكې عشر

وَلَوْ كَانَتِ الْأَرْضُ لِمُسْلِمٍ بَاعَهَا مِنْ نَصْرَانِيٍّ اوكه مځكه دمسلمان وه كومه چې ده په نصراني خرڅه كړه يُرِيدُ بِهِ ذِمِّيًّا غَيْرَ تَغْلِبِيٍّ دنصراني نه مراد غيرتغلبي ذمي دی وَقَبَضَهَا او هغه قبضه كړه فَعَلَيْهِ الْخَرَاجُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نو خراج پرې لازم دی .د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد لِأَنَّهُ أَلْيَقُ بِحَالِ الْكَافِرِ ځكه چې دحال دكافر سره دا لائقه ده

**تشريح:- وجوب العشر فی الارض المشتراة من مسلم**۞ ① مسئله داده.كه مسلمان خپله عشرى مځكه د يوغيرتغليبي ذمي په لاس خرڅه كړه.اوذمي په دې قبضه هم اوكړه.نو د حضرت امام اعظم رحمه الله په نيز په دې اخستونكي ذمي باندې به خراج واجب وي.

**دليله**۞د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه دكافر د مال زيات مناسب خراج دې.ځكه چې په خراج كې د عقوبت معنى ده.اوكافر د عقوبت زيات اهل دې.په دې وجه په دې مشتري ذمي باندې به خراج واجب وي.

وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ الْعُشْرُ مُضَاعَفًا) وَيُصْرَفُ مَصَارِفَ الْخَرَاجِ اوپه نيزد امام ابويوسف رحمه الله په ده عشر واجب دی دوچند كوم چې به په مصارفو دخراج كنبې صرف كيږي اعْتِبَارًا بِالتَّغْلِبِيِّ وَهَذَا أَهْوَنُ مِنَ التَّبْدِيلِ په قياس د تغلبي اود تبديلۍ آسانه ده

**تشريح:-** د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به په ده باندې دوچند عشر لازم وي.

**دليله**۞او امام ابويوسف رحمه الله غيرتغليبي ذمي په تغليبي ذمي باندې قياس كړې دې. يعنې ځنګه چې د بنوتغلب په خلګو باندې دوچند عشر واجب وي.دغه ډول په غيرتغليبي ذميانوبه هم دوچند عشرواجب وي.خوددې مصرف به هم هغه وي.كوم چې دخراج مصرف دې.امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. چې عشر دوچند كول په نسبت د بدلولو آسان دې.يعنې عشر دوچند كول په وصف كې تغير كول دی. او په ځائې دعشر خراج واجب كول بدلول دی.اوتغير في الوصف آسان دې.په نسبت د بدلولو،په دې وجه به د عشر دوچند لازمولې شي.

وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ هِيَ عُشْرِيَّةٌ عَلَى حَالِهَا اود امام محمد رحمه الله په نزد دغه پخپل حال عشرى ده صَارَ مُؤْنَةً لَهَا ځكه چې دغه ددې لپاره مقرر شو فَلَا يَتَبَدَّلُ كَالْخَرَاجِ نو اوس نه شي تبديل كيدلې لكه خراج

**تشريح:-** د امام محمد رحمه الله په نيز به په ده باندې يو عشر واجب وي.

**دليله**۞اود امام محمد رحمه الله دليل دادې.چه عشرددې زمكې مقرر شوې بوجه دې.يعنې په دې مځكه كې دمځكې نه عشر مقرردې.نو اوس به هم عشر پاتې وي.ځكه چې د امام محمد رحمه الله په نيز د مالك په بدلولو سره مقرر فرض نه بدليږي.نوكله چې دا مځكه د مسلمان سره وه.نوپه ده عشر واجب وو.اوكله چې كافر ته راغله.نوهم به په ده عشر واجب وي.په دې كې به هيڅ تبديلې نه راځي.لكه ځنګه چې دكافر په مځكه كې خراج واجب وي.اوس كه دا مځكه مسلمان له راغله.نوهم به په دې خراج واجب وي.

ثُمَّ فِي رِوَايَةٍ: يُصْرَفُ مَصَارِفَ الصَّدَقَاتِ بيا په يو روايت كې به داعشر په مصارفو دزكاة كې صرف كولې شي ،وَفِي رِوَايَةٍ: يُصْرَفُ مَصَارِفَ الْخَرَاجِ اوپه يو روايت كې په مصارفو دخراج كې.

**تشريح:- الروايتان عن محمد** رحمه الله **فی مصرفها**۞ بيا ددې دمصرف په اړه كې د امام محمد رحمه الله نه دوې [دوه] روايته دي.يودا چې ددې مصرف،مصارف دزكاة دي. دوهم داچه ددې مصارف هغه دي.كوم چې دخراج دي

## د مسلمان نه ذمي ته ملكيت نقل كيدل او بيا واروسته كيدلو كې د عشر حكم

فَإِنْ أَخَذَهَا مِنْهُ مُسْلِمٌ بِالشُّفْعَةِ بيا كه دی لره د ذمي نه مسلمان په شفع واخستله أَوْ رُدَّتْ عَلَى الْبَائِعِ لِفَسَادِ الْبَيْعِ يا د فساد د بيع په وجه سره دغه بائع ته واروسته شوه فَهِيَ عُشْرِيَّةٌ كَمَا كَانَتْ نودغه په عشرى وي.لكه چې وو

تشریح:- **وجوب العشر فی الصورتین** ۞ مسئله داده.چه مسلمان د شفعه دعوی اوکړه.اوهم دا مځکه ئې ددې ذمی نه واخستله.یا ذمی په بیع فاسد په وجه دا مسلمان بائع ارخ ته واروسته کړله.نو په دې دواړه صورتونو کې به دا مځکه هم عشری پاتې وی.لکه څنګه چې مخکې عشری وه.

| |
|---|
| **أَمَّا الْأَوَّلُ**.په اول صورت کې **فَلِتَحَوُّلِ الصَّفْقَةِ إِلَى الشَّفِيعِ كَأَنَّهُ اشْتَرَاهَا مِنَ الْمُسْلِمِ** خود صفقی شفیع ارخ ته منتقل کیدو په وجه ګویا ده دمسلمان نه واخستله |

تشریح:- **دلیله** ۞ په ړومبنی صورت کې خوپه دې وجه چې د عقد بیع دا معامله د ذمی نه مسلمان شفیع ارخ ته منتقل کیږی.ګویا د مسلمان بائع نه مسلمان اخستې ده.او په مینځ کې د ذمی واسطه نه ده راغلې.اودا ښکاره ده.چه د مسلمان نه مسلمان دا عشری مځکه واخستله.نودا مځکه به هم عشری پاتې وی.

| |
|---|
| **وَأَمَّا الثَّانِي فَلِأَنَّهُ بِالرَّدِّ وَالْفَسْخِ بِحُكْمِ الْفَسَادِ جُعِلَ الْبَيْعُ كَأَنْ لَمْ يَكُنْ** اوپه دوهم صورت کې ځکه چې په دحکم دفساد واپسئ او فسخ په وجه بیع لره کالعدم کړی شو ،**وَلِأَنَّ حَقَّ الْمُسْلِمِ لَمْ يَنْقَطِعْ بِهَذَا الشِّرَاءِ** اوځکه چې دمسلمان حق دی اخستلو په وجه منقطع نشو**لِكَوْنِهِ مُسْتَحِقَّ الرَّدِّ** ځکه چې دغه خو واروسته کیدو لائق دی |

تشریح:- وپه دوهم صورت کې به دا مځکه په دې وجه عشری پاتې وی.چه د بیع فاسد کیدلو په وجه دا بیع واجب الرد او واجب الفسخ ده.نوچونکه واجب الرد ده.په دې وجه به وئیلې شی.چه ګویا دا بیع د ذمی په مینځ کې هڅو شوې نه وه.اوهرکله چې بیع هڅوشوې نه ده.نود مسلمان دامځکه عشری به پاتې وی.دویمه وجه دا چې د شراء فاسد په وجه د مسلمان حق نه دې منقطع شوې.ځکه چې دا واجب الرد ده.نوهرکله چې د مسلمان حق منقطع نشو.نودده دا مځکه به عشری پاتې وی.

## د مختط له مسلمان په باغ کې عشر

| |
|---|
| **وَإِذَا كَانَتْ لِمُسْلِمٍ دَارٌ خِطَّةٍ** که دچا مسلمان د خطی کور وی **فَجَعَلَهَا بُسْتَانًا** او هغه تری باغ جوړ کړی **فَعَلَيْهِ الْعُشْرُ** نویدی کې عشر دی **مَعْنَاهُ إِذَا سَقَاهُ بِمَاءِ الْعُشْرِ، وَأَمَّا إِذَا كَانَتْ تُسْقَى بِمَاءِ الْخَرَاجِ** ددی معنی داده چې هرکله دی لره په عشری اوبو اوبه خور کوی اوکه په خراجی کې ئې اوبه کولو **فَفِيهَا الْخَرَاجُ** نویدی کې خراج دی |

تشریح:- **وجوب العشر فی بستان المختط له** ۞ مسئله داده.که امام وقت دارحرب فتح کړی.اود یو کور څوک مسلمان مالك جوړ کړی شو.بیا مسلمان دهغه نه باغ جوړ کړلو.نوپه ده به عشر واجب وی.حالانکه که دائې هم کورساتلې وو.اوباغ ئې ترې نه ووجوړ کړی.نوپه ده به هیڅ واجب نه وو.خوچه کله ئې ددې نه باغ جوړ کړو.نوپه ده به عشرواجب وی.مراد دادې.چه که دا باغ په عشری اوبوسره اوبه (خړوب)شوې وی.نوعشر به واجب وی.اوکه دا په خراجی اوبوسره اوبه شوې وی.نوپه دې کې به خراج واجب وی.

| |
|---|
| **لِأَنَّ الْمُؤْنَةَ فِي مِثْلِ هَذَا تَدُورُ مَعَ الْمَاءِ** ځکه چې ددی په مثل کښی بار دخرچې په اوبو پوری دائر دی |

تشریح:- **دلیله** ۞ ځکه چې په دې سې صورت کې خرچه په اوبو سره لګولې شی.یعنی چې څنګه اوبه وی.هم هغه شان خرچه به واجب وی.

فائده*عشری اوبه هغه دی.چه د عشری زمکې څاه یا ددې قدرتی چینه وی.اود باران اود لویو دریابونو اوبه عشری دی.اود عجمو بادشاهانو کنستلې شوی نهرونه اود خراجی زمکې کوهیان او د چینې اوبه ټولې خراجی اوبه دی.

## د مجوسی په باغ کې د عشرحکم

| |
|---|
| **وَلَيْسَ عَلَى الْمَجُوسِيِّ فِي دَارِهِ شَيْءٌ** اوپه مجوسی باندی دده په کور کښې هیڅ نشته |

تشریح:- **عدم وجوب العشر فی بیت المجوسی** ۞ مسئله داده.چه په مجوسی اوپه آتش پرست باندې دده په کورکي هیڅ لګان نشته.لکه هنود ،یهودیان، نصاری اود مسلمان په کورکي هیڅ څه لګان وغیره نشته.



| |
|---|
| **لِأَنَّ عُمَرَ جَعَلَ الْمَسَاكِنَ عَفْوًا**[1] ځکه چې حضرت عمر رضی الله عنه کورونو لره عفو کړی وو |

تشریح:- **دلیله** ۞ دلیل دادې.چه امیرالمؤمنین حضرت عمرعمربن الخطاب رضی الله عنه د مجوسیانو د اوسیدلو ځایونه او کورونه عفو کړل.لکه چې صاحب دعنایه رحمه الله لیکلی دی.چه عبدالرحمان بن عوف اوفرمائیل.چه ما د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه اوریدلې دی.چه اونې فرمائیل. «سنو بالمجوس سنة أهل الكتاب...الحديث» یعنی د مجوسیانو سره د اهل کتاب وسلوك کوه.سواء ددوی د ښځوسره دنکاح اوددوی د ذبیحه خوړلونه.هرکله چې حضرت عمر رضی الله عنه دا واوریدل،نوپه دې ئې عمل اوکړو.اوخپلو عمالو ته ئې حکم اوکړو.چه ددوی د زمکو ناپ اوکړئ.په هره مځکه باندې ددې د برداشت مناسب جزیه مقررکړئ.او ددوی په کورونو او کومې ونې چې ددوی په کورونوکې وی.واړه ئې عفو کړل.یعنی دائې بغیر د لګان(جزیه) نه پریخودل.نو مجوسی چې د اسلام نه لرې دی.ددوی په کورونوکې عفو ثابت ده.نود یهودو او نصاری پ حق کې به په درجه اولی عفو ثابت وی.

| |
|---|
| **وَإِنْ جَعَلَهَا بُسْتَانًا** اوکه مجوسی دخپل کور نه باغ جوړ کړو **فَعَلَيْهِ الْخَرَاجُ** **وَإِنْ سَقَاهَا بِمَاءِ الْعُشْرِ لِتَعَذُّرِ إِيجَابِ الْعُشْرِ** نوپه ده خراج دی اګرچې په عشری اوبو باندی ئې اوبه کوی.د وجوب دعشردمتعذر کیدو په وجه **إِذْ فِيهِ مَعْنَى الْقُرْبَةِ** ځکه چې په عشر کې معنی دقربت ده **فَيَتَعَيَّنُ الْخَرَاجُ وَهُوَ عُقُوبَةٌ تَلِيقُ بِحَالِهِ** روسته خراج متعین شو.کوم چې یوعذاب دی اودا کافردا حال لائق دی |

تشریح:- **وجوب الخراج فی بستان المجوسی فی البیت** ۞ اوکه مجوسی په خپل باغ کې کورجوړ کړو.نو په دې به خراج واجب وی.اګرچه دا ده په عشری مځکه سره اوبه کړې وی.ځکه چې په مجوسی باندې د عشر وجوب متعذر دې.اوپه مجوسی باندې عشر په دې وجه متعذردې.چه په عشرکې د طاعت اوعبادت معنی موجود ده.اود کافر دارخه طاعت اوعبادت ممکن نه دې.په دې وجه به هم خراج متعین وی.اوپه خراج کې د عقوبت اوسزا معنی موجودده.کوم چې د کافر دحال زیاته مناسب ده.په دې وجه وئیلې شوی دی. چې اګرچه په عشری اوبوسره خړوب شوې وی.خو واجب به خراج وی عشر به واجب نه وی.

**الاعتراض** ۞ دلته کې یو اشکال کیدلې شی.هغه داچه په عشر یا د خراج په وجوب کې د اوبو اعتبار دې.یا د دې کس دحال اعتبار دې.په چاچه لګان(عشر یا خراج) واجب دې.که تاسو د اولنی اعتبار کوئ. نوپه دې مجوسی عشر واجب کیدل پکاردې.ځکه چې ده خپل باغ په عشری اوبو خړوب کړې دې. اوکه د دوهم اعتبار کوئ.نودا د صاحب دهدایه رحمه الله دقول «لأن المؤنة فی مثل هذا تدور مع الماء» مناقض دې.ځکه چې تاسو اعتبار کړې دې.دهغه کس دحال په چاچه لګان واجب شوې دې.اوصاحب دهدایه فرمائی.چه مؤونت یعنی عشر یا خراج د اوبوسره ګرځولې شی.یعنی څنګه چې اوبه وی.هم هغه شان مؤونت به واجب وی.نود عشری اوبو په صورت کې به عشر اود خراجی اوبوپه صورت کې به خراج واجب وی.

**الجواب** ۞ ددې ځواب دادې.چه اعتبار خوهم د اوبودې.لکه څنګه چې د علامه مرغینانی فرمائیلی دی.خو دمحل قبلول دحکم د وجوب شرط دې.اوکافر د وجوب عشر محمل نشی کیدلې.ځکه چې عشر عبادت دې.اوکافر د عبادت محل نشی کیدې.حاصل داچه د عشری اوبو په وجه خوعشر واجب کیدل پکار وو. خود وجوب شرط د نه موجود کیدلوپه وجه عشرواجب نکړې شو.بلکه هم خراج واجب کړې شو.

**الاعتراض فی الثانی** ۞ خوبیا اعتراض کیږی.چه په مسلمان خراج څنګه واجب کړې شو.حالانکه په خراج کې ذلت دې.اومسلمان د ذلت محل نشی کیدلې.

**الجواب** ۞ ځواب دادې.چه په خراج کې هیڅ ذلت نشته.ذلته خوپه ځانله خلګو باندې جزیه اوخراج واجب کیدلوکې دې.

---

[1] غربه الزيلعى ثم قال وفى ،كتاب الأموال، لأبى عبيد أن عمربن الخطاب رضی الله عنه جعل الخراج على الأرضين التى تغل من ذوات الحب والثمار والتى تصلح للغلة من العامر والغامر وعطل من ذلك المساكى نصب الرأية (۲/۴۱۰)_

قِيَاسِ قَوْلِهِمَا يَجِبُ الْعُشْرُ فِي الْمَاءِ الْعُشْرِيِ اوبه قياس د قول دصاحبينو رحمهما الله په عشری اوبوکې به عشر واجب وی إِلَّا أَنَّ عِنْدَ مُحَمَّدٍ عُشْرًا وَاحِدًا صرف دمره ده چې د امام محمد رحمه الله په نزد صرف عشر دی وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ عُشْرَانِ اود امام ابویوسف رحمه الله په نزدبه دوې [دوه] عشره وی ،وَقَدْ مَرَّ الْوَجْهُ فِيهِ او وجه ددی تیره شوی ده

تشریح:- **المذهبان فی قدر العشر فی بستان المجوسی**❁په دې مسئله کې د صاحبینو رحمهما الله دقول تقاضا داده.چه مجوسی کله دا باغ په عشری اوبوسره خړوب کړو.نوددوی په نیز به عشر واجب وی.① خود امام محمد رحمه الله په نیز به عشرواحد واجب وی.② اود امام ابویوسف رحمه الله په نیزبه دوچند عشر واجب وی.د دواړو دلیلونه په تیرو صفحاتوکې تیرشوې دی.هلته کې ئې اوګورئ.

ثُمَّ الْمَاءُ الْعُشْرِيُّ مَاءُ السَّمَاءِ وَالْآبَارِ وَالْعُيُونِ وَالْبِحَارِ الَّتِي لَا تَدْخُلُ تَحْتَ وِلَايَةِ أَحَدٍ بیا عشری اوبه دباران اوکوهیانو چینو اوهغو سمندرونو اوبه دی چې کومې دچا دلایت لاندې رازی اوخراجی اوبه

تشریح:- **تعریف الماء العشری**❁پاتې شوه داخبره چې عشری او خراجی اوبه څه ته وائی؟ نو علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه باران،کوهیان، چینې ،اود هغه سمندرونو اوبه چې د یو بادشاه یا عام کس په ولایت کې داخل نه وی.دې ټولو ته عشری اوبه وائی.

وَالْمَاءُ الْخَرَاجِيُّ مَاءُ الْأَنْهَارِ الَّتِي شَقَّهَا الْأَعَاجِمُ هغه نهرونه دی کوم چې عجمیانو کنستلی دی وَمَاءُ جَيْحُونَ وَسَيْحُونَ وَدِجْلَةَ وَالْفُرَاتِ عُشْرِيٌّ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رحمه الله او د جیحون سیحون او دجلی اوفرات اوبه عشری دې په نزد دمحمد رحمه الله لِأَنَّهُ لَا يَحْمِيهَا أَحَدٌ كَالْبِحَارِ ځکه چې دسمندرونوپشان ددی څوك محافظ نشته وَخَرَاجِيٌّ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله(1) خراجی دی دامام ابویوسف رحمه الله په نزد لِأَنَّهُ يَتَّخِذُ عَلَيْهَا الْقَنَاطِرُ مِنَ السُّفُنِ وَهَذَا يَدٌ عَلَيْهَا ځکه چې په دغو دکشتو پُل جوړولی شی کومه چې په دغو یوقسم قبضه ده

تشریح:- اود هغه نهرونو اوبه چې عجمی بادشاهانو کنستلې وی. یعنی د اسلام د ښکاره کیدلو نه مخکې د جاهلیت بادشاهانوکنستلی اوتیارکړې وی.لکه نهرد یزدجرد،او ویاله (نهر) د مرور روذ.

**الانهار الاربعة والمذهبان فی حکمه**❁جیحون په ترمذ کې د یو نهرنوم دې.او سیحونه په ترکوکې د یو نهرنوم دې.او دجله ویاله (نهر) په بغداد کې دې.او فرات د کوفه د نهرنوم دې.ددې څلورو واړو نهرونو اوبه ①د امام محمد رحمه الله په نیزعشری دی.ځکه چې د لویو لویو نهرونو په شان ددې هم هیڅ څوك محافظ اومتولی نشته.اوکومې اوبه چې د چا په ولایت کې داخل نه وی.هغه ته عشری وائی.نوددې څلورو واړو نهرونواوبو ته به هم عشری وائی.② اود امام ابویوسف رحمه الله په نیزددې نهرونو اوبه خراجی دی.ځکه چې په دې نهرونو باندې د کشتو پلونه جوړشوې دی.اودا کارونه په دې نهرونو باندې یوقسم قبضه ده.اوپه کومونهرونوچه د چا قابو او قبضه وی.د هغې اوبوته خراجی وائی.په دې وجه به ددې اوبوته خراجی وئیلې شی.

**د بنو تغلب د ښځې او ماشوم په مځکه کې عشر**

وَفِي أَرْضِ الصَّبِيِّ وَالْمَرْأَةِ التَّغْلِبِيَّيْنِ مَا فِي أَرْضِ الرَّجُلِ التَّغْلِبِيِّ دتغلبی ماشوم اوښځی په مځکه هغه دی کوم چې په مځکه دسړی کې دی يَعْنِي الْعُشْرَ الْمُضَاعَفَ فِي الْعُشْرِيَّةِ یعنی په عشری مځکه کښې عشردوچند دی وَالْخَرَاجَ الْوَاحِدَ فِي الْخَرَاجِيَّةِ اوپه خراجی کې یو خراج دی

تشریح:- **وجوب العشر فی ارض صبی بنی تغلب وامراتهم**❁مسئله داده.چه د بنوتغلب د ماشوم اوښځې په مځکه کې به هغه واجب وی.کوم چې د بنوتغلب سړی په مځکه کې واجب وی.یعنی په عشری مځکه کې به د عشر

(1) القول الراجح هو هذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في الخانية (۱۲۹\۱) والتاتر خانية (۳۳۶\۲) والهندية (۱۸۷\۱) نقلاً عن القول الراجح (۱۸۳\۱)۔



دوچند واجب وی.اوپه خراجی مځکه کې به یوخراج واجب وی.

لِأَنَّ الصُّلْحَ قَدْ جَرَى عَلَى تَضْعِيفِ الصَّدَقَةِ دُونَ الْمُؤْنَةِ الْمَحْضَةِ(1) ځکه صلح واقع شوی ده دصدقی په دوچند والی باندی دمومنه محضه نه بغیر ثُمَّ عَلَى الصَّبِيِّ وَالْمَرْأَةِ إِذَا كَانَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ الْعُشْرُ بیا په بچې اوښځی باندی کله چې مسلمانان وی عشر دی فَيُضَعَّفُ ذَلِكَ إِذَا كَانَا مِنْهُمْ نودا به دوچند کولی شی کله چې دوی د تغلبیانو وی.

تشریح:- **دلیله**❁دلیل دادې.چه امیرالمؤمنین عمربن الخطاب رضي الله عنه اود بنوتغلب په مینځ کې چې کومه صلح شوې وه. هغه د داسې شی په دوچند کاوه باندې شوې وه.چه په هغې کې د عبادت معنی وی.لکه زکاة عشر وغیره.اومؤونت محضه، چې پ کې قطعاً دعبادت معنی نشته.لکه خراج،ددې په دوچند کیدلو صلح نه وه شوې.نودې ماشوم یاښځې که د مسلمانې کورنۍ سره تعلق ساتلې.نوبه ده به عشر واجب وو.خوچه هر کله دوی تغلبیان دی.نوبه دوی به دعشر دوچند واجب وی.لکه څنګه چې په صلح سره داخبره فیصله شویده.

**د قیر او نفط په عشری مځکه کې دعشر حکم**

وَلَيْسَ فِي عَيْنِ الْقِيرِ وَالنِّفْطِ فِي أَرْضِ الْعُشْرِ شَيْءٌ په چینه دقیر او نفط کې هیڅ شی نشته چې په عشری مځکه کښی وی

تشریح:- **تعریف القیر والنفط**❁قیر:بدبوداره تیل په تور رنګ کې یو څیز چې په کښتۍ باندې موګلې شی. چې اوبه دننه لاړنشی.لکه تارکول، نفط: یوقسم تیل چې په اوبوباندې خپاره وی.لکه د خاورو تیل، یو ډول معدنی تیل چې ډیر زر اور اخلی.چه ددې نه د اورکار اخستلې شی.اوپه دې سره علاج هم کولې شی.نن سهار د ،نفط، اطلاق د خاورو په تیلو باندې کیږی.

**عدم العشر فی القیر والنفط فی الارض الخراجیة**❁مسئله داده.چه دقیر او نفط چینه که په عشری مځکه کې وی.نوپه دې دواړوکې به هیڅ شی عشر وغیره واجب نه وی.

لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَنْزَالِ الْأَرْضِ ځکه چې دا دزمکې د پیداوار نه نه دی وَإِنَّمَا هُوَ عَيْنٌ فَوَّارَةٌ كَعَيْنِ الْمَاءِ بلکه دا خود اوبو د چینی پشان راخوټکیدونکې چینه ده

تشریح:- **دلیله**❁ ځکه چې قیر او نفط دواړه د زمکې پیداوار نه دې.بلکه داخو د اوبوپه شان جوش وهونکې چینه وی.اوپه اوبوکې هیڅ عشر نه وی.نوپه دې کې به هم عشر نه وی.

وَعَلَيْهِ فِي أَرْضِ الْخَرَاجِ خَرَاجٌ اوپه خراجی مځکه کې په دی خراج لازم دی وَهَذَا إِذَا كَانَ حَرِيمُهُ صَالِحًا لِلزِّرَاعَةِ اودا هغه وخت ده کله چې ددی دواړو خواوشا مځکه دکر قابله وی

تشریح:- **وجوب الخراج فی القیراط والنفط فی الارض الخراجیة**❁اوکه د قیر اونفط چینه په خراجی مځکه کې وی.نوپه دې کې خراج دې.په شرط ددې چې ددې چینې شاو خوا برخه دکروندې او پیداوار قابله وی.

**المعانیان للعبارة**❁صاحب دعنایه رحمه الله د «وعلیه فی أرض الخراج خراج» دوې [دوه] مطلبه بیان کړې دې.

①یوداچه د قیر او نفط چینه اوددې نه شاو خوا پوره مځکه به ناپ کولې شی.نوخراج به اخستلې شی.په شرط ددې چې شاو خوا مځکه د کروندې قابله وی.په دې صورت کې به د چینې مځکه تابع وی.او چونکه په مځکه کې خراج دې.په دې وجه د چینې په مځکه کې به هم خراج واجب وی.بعض مشائخو رحمهم الله هم دا اختیارکړې دې.② دوهم مطلب دادې.چه د چینې ځائې به ناپ کولې شی.او پریخودلې به شی . اوددې نه چاپیره چې کومه مځکه ده.په هغې کې به خراج واجب وی.دا قول ابوبکر رازی اختیارکړې دې.اوکه د قیر او

(1) نقل داود بن كردوس صلح عمر رضي الله عنه مع بني تغلب أخرجه البيهقي في السنن الكبرى (۳۶۲/۹)۔

نفط اثر داسې خورشو.چه مځکه هم د کروندې قابله پاتې نشوه.نوخراج به هم واجب نه وي.لکه څنګه چې
په ترخه مځکه کې خراج واجب نه وي.

لِأَنَّ الْخَرَاجَ يَتَعَلَّقُ بِالتَّمَكُّنِ مِنَ الزِّرَاعَةِ ځکه چې دا دخراج په کر باندې دقابو کېدو سره دی .

تشريح:- دليله۞ځکه چې د خراج تعلق د پيداوار سره نه وي.بلکه په کروندې باندې د قابومونډلوسره وي.يعنى که څوك د خراجي زمکې مالك وي.اودغه مځکه د کروندې قابله هم وي.نوپه ده به خراج واجب وي. اګرچه ده کرونده نه وي کړې.ځکه چې کرونده کاوه باندې قدرت موجود وو.اوکرونده نه کول،دده خپل قصور دې.داراسلام به ددې ذمه وارنه وي.

تشريح:- وجوب الخراج فى القيراط والنفط فى الارض الخراجية۞اوکه د قير اونفط چينه په خراجي مځکه کې وي.نوپه دې کې خراج دې.په شرط ددې چې ددې چينې شاو خوا برخه دکروندې او پيداوار قابله وي.

المعانيان للعبارة۞صاحب دعنايه رحمه الله د ﴿وعليه فى أرض الخراج خراج﴾دوې [دوه] مطلبه بيان کړې دي.
①يوداچه د قير او نفط چينه اوددې نه شاو خوا پوره مځکه به ناپ کولې شي.نوخراج به اختسلې شي.په شرط ددې چې شاو خوا مځکه د کروندې قابله وي.په دې صورت کې به د چينې مځکه تابع وي.او چونکه په مځکه کې خراج دې.په دې وجه د چينې په مځکه کې به هم خراج واجب وي.بعض مشائخو رحمهم الله هم دا اختيار کړې دې.② دوهم مطلب دادې.چه د چينې ځائې به ناپ کولې شي.او پريخودلې به شي . اوددې نه چاپيره چې کومه مځکه ده.په هغې کې به خراج واجب وي.دا قول ابوبکر رازی اختيارکړې دې.اوکه د قير او نفط اثر داسې خورشو.چه مځکه هم د کروندې قابله پاتې نشوه.نوخراج به هم واجب نه وي.لکه څنګه چې په ترخه مځکه کې خراج واجب نه وي.

## باب من يجوز دفع الصدقة إليه ومن لا يجوز

(دا) باب(په بيان) د هغه کس (کې دې)چه جائزوی ورکول د زکاة ده ته اوچاته چې نه وي جائز.

تشريح:- الربط بما قبله۞زکاة اوددې د متعلقاتونه فارغ شو.نو اوس په دې باب کې د زکاة اوصدقاتو مصارف بيانه وي.

### د زکاة د مصارفو بنا (بنياد) او اصل

الْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ تَعَالَى صاحب دکتاب فرمائی چې اصل په دې کې قول دالله ﷻ دې {إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ} الْآيَةَ بيشکه زکاة چې دې روسته دغه حق د فقيرانودې (الايه).

تشريح:- الاصل فى مصارف الزكاة۞ ①علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه د زکاة په سلسله کې اصل د الله تعالى قول دې. [إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ وَالْعَامِلِينَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغَارِمِينَ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ وَابْنِ السَّبِيلِ ۖ فَرِيضَةً مِّنَ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۞] يعنى زکاة چې دې.داحق دې.د غريبانانو او محتاجو، اود زکاة په کاربانډې د تلونکو،اود چاچه په زړه سره غوښتل منظور وي.اود څټونو په آزادولوکې اوقرضدارو ته.اود الله تعالى په لاره کې ، اود لارې مسافر،مقررشوې دې د الله، او الله تعالى په هرڅه پوهيږي، حکمت والادې.(تهانوی)

مصارف الزكاة۞په حديث کې رسول اکرم ﷺ فرمائی.چه الله تعالى زکاة او صدقات ويش په نبي يا غيرنبي په هيڅ چا په مرضئ باندې نه دې پريښولې (پريخودې).بلکه په خپله ئې ددې مصارف متعين کړې دی.چه اته دی.① فقيران(چې دوی سره هيڅ نه وي)① مسکينان(چه دحاجت په اندازه ورسره وي.③ عاملين(چه د اسلامی حکومت د اړخه د صدقاتو په حاصلولو وغيره کارونو باندې مقرر وي.④ مؤلفة القلوب(چه ددوی د اسلام راوړلو اميدوی يا په اسلام کې کمزورې وي)⑤ رقاب(يعنى د غلامانوبدل کتابت اداکول چې آزادی ته ملاؤ شي.ياواخستلې شي او آزاد کړې شي، ياد قيديانوفديه ورکړې شي او آزاد کړې شي)⑥



غارمين(چه په دوې څه حادثه پريوتلې وي.اوقرضداری شوی وي يا په څه ضمانت وغيره کې اينختې وي) ⑦ فى سبيل الله(په جهاد وغيره کې د تلونکو کومك اوکړې شي) ⑧ ابن السبيل(مسافرچه د سفرپه حالت کې مالك دنصاب نه وي.اګرچه په کورکې دولت منډوی)(مرشد تهانوی رحمه الله)

فَهَذِهِ ثَمَانِيَةُ أَصْنَافٍ نو دا اته قسمه خلګ دی،وَقَدْ سَقَطَ مِنْهَا الْمُؤَلَّفَةُ قُلُوبُهُمْ دکومو نه چې مولفه القلوب ساقط شو. لِأَنَّ اللَّهَ تَعَالَى أَعَزَّ الْإِسْلَامَ وَأَغْنَى عَنْهُمْ ځکه چې اسلام الله ﷻ غالب کړې دې او ددوی نه بې حاجته کړې دې وَعَلَى ذَلِكَ انْعَقَدَ الْإِجْمَاعُ(١) اوپه دې باندې اجماع منعقد شوې ده.

الاقسام الثلاثة للمؤلفة قلوبهم۞صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چه په دې اتو قسمونوکې يوقسم مؤلفة القلوب ساقط شو.يعنى د نبي کريم ﷺ د وفات نه روسته داقسم پاتې نشو.په عنايه کې دی.چه د مؤلفة القلوب درې قسمه وو.① هغه کافران چې دوی ته به نبي کريم ﷺ په دې وجه ورکول.چه ددوی زړونه ددې بې قدره ذليله دنيا نه اسلام اړخ ته راشي.② هغه کافران چې دوی له به ئې په دې وجه ورکولو.چه ددوی د شر او فساد نه مسلمان بچ شي.③ هغه خلګ چې اسلام ئې راوړلو.خوددوی اعتقاد کمزورې وو.نودوی له به ئې په دې وجه ورکولو.چه ثابت قدم پاتې شي.

اسماء المؤلفة قلوبهم۞په مؤلفة القلوب کې ښکاره خلګ دادې.عيينه بن حصن، اقرع بن حابس، عباس بن مرداس،دا درې واړه د قريش د سردارانو څخې دی.ددوی نه علاوه ابوسفيان، صحربن حرب اموی، حارث بن هشام مخزومی، عبدالرحمن بن يربوع مخزومی، سهيل بن عمرو العامری،حويطب بن عبدالرحمن عامری، عبدالعزی اسدی،حکيم بن حزام اسدی وغيره دی.

انقطاع حصة مؤلفة القلوب۞مؤلفة القلوب په عهد رسالت کې وو.خود صديق اکبر رضی الله عنه په زمانه کې ختم شو.نقل دی.چه عيينه بن حصن فزاری او اقرع بن حابس تميمی دواړه حضرت ابوبکر رضی الله عنه خواله د خپلې زمکې د معافئ غوښتلو لپاره راغلل.نوصديق اکبر رضی الله عنه فرمان اوليکلو.بيا دواړوحضرت عمر رضی الله عنه ته ګواهی راوړله.نوحضرت عمر رضی الله عنه دغه ګواهی اوشلوله.او وې فرمائيل.چه داخوبه نبي کريم ﷺ تاسو ته په دې وجه درکول.چه اسلام اړخ ته ستاسو د زړونو تاليف اوشی.او اوس الله تعالى اسلام غالب کړې اوستاسو نه ئې بې پرواه کړې دې.نوکه تاسو په اسلام باندې ثابت قدم اوسئ،نو غوره خبره ده.ګنی زمونږ اوستاسو په مينځ کې توره فيصله ده.دوی دواړه واروسته شول.او حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته لاړل.او وې فرمائيل.چه تاسوخليفه ئې اوکه عمر رضی الله عنه ؟ دوی اوفرمائيل.انشاءالله دوی خليفه دی.دهغه وخت نه دمؤلفة القلوب حق ختم شو.اوچونکه په صحابو رضی الله عنهم کې هيڅ چادې انکار اونکړو.بلکه ټولو په دې سکوت اختيار کړو. نو ګويا دمؤلفة القلوب په ساقطيدلو باندې د صحابو رضی الله عنهم سکوتی اجماع هم منعقد شويده.(فتح القدير)

### د فقير او مسکين تعريف

وَالْفَقِيرُ مَنْ لَهُ أَدْنَى شَيْءٍ او فقير هغه دی.چه کوم سره چې لږ مال وي وَالْمِسْكِينُ مَنْ لَا شَيْءَ لَهُ(٢)اومسکين هغه دې چې هيڅ ورسره نه وي وَهَذَا مَرْوِيٌّ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله اودا دامام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې.

تشريح:- تعريف الفقير والمسكين۞د فقير اومسکين په تعريف کې د آئمه اختلاف دې.① د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دی.چه فقير هغه کس دې.چه دهغه سره څه وي.خود نصاب نه کم وي. يا د نصاب په اندازه وي.خونصاب غيرنامی وي.اودې په خپلوضروریاتو کې اينختې وي.اومسکين هغه کس دې.چه دهغه

---

(١) كما يعلم من رواية شعبى رحمه الله أخرجه ابن ابى شيبة فى مصنفه(٦٦/٣)_

(٢) القول الراجح هو هذا قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى فتح القدير(٢٠٤\٢) والكفاية (٢٠٣\٢) والعناية (٢٠٣\٢) والبحر الرائق (٢٤٠\٢) نقلاً عن القول الراجح (١٨٥\١)_

سره قطعاً هيڅ څيزهم نه وي.نه دده سره نان شبينه(د شپې خوراك)وي.اونه د بدن پټولو لپاره څه كپړه وي.ګويا د امام صاحب رحمه الله په نيزمسكين زيات د غربت په حال كي وي.په نسبت د فقير.

**وَقَدْ قِيلَ عَلَى الْعَكْسِ** او وئيلې شوي دي چې ددې برعكس دي.

تشريح:- د امام شافعي رحمه الله مذهب ددې په عكس دې.يعني ددوى په نيز د مسكين په مقابله كي د فقير حالت زيات خراب او بې كاره وي.

**وَلِكُلٍّ وَجْهٌ** اودهرقول وجه موجوده ده

تشريح:- **دليل الشافعي** رحمه الله ۞ د امام شافعي رحمه الله دليل د الله تعالى قول[أَمَّا السَّفِينَةُ فَكَانَتْ لِمَسَاكِينَ] (الايه) دې.يعني حضرت خضر عليه السلام چې كومه كښتۍ عيب داره كړې وه.هغه د مسكين وه.اوګورئ په دې آيت كي د كښتۍ مالك ته مسكين وئيلې شوې دې.دې نه معلومه شوه.چه دمسكين سره څه ناڅه وي.اود فقير سره هيڅ نه وي.نود مسكين په نسبت فقير زيات خراب حاله وي.

**دلائل ابى حنيفة** رحمه الله ۞ ① چې الله تعالى فرمائيلى دى[لِلْفُقَرَاءِ الَّذِينَ أُحْصِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ لَا يَسْتَطِيعُونَ ضَرْبًا فِي الْأَرْضِ يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ أَغْنِيَاءَ مِنَ التَّعَفُّفِ تَعْرِفُهُمْ بِسِيمَاهُمْ لَا يَسْأَلُونَ النَّاسَ إِلْحَافًا] (الايه)،خيرات د هغه خلګو لپاره دې.كوم چې بند كړې شوي دي.د الله په لاره كي .ګرځيدې نشي په ملك كي ،خيال كوي په دوى ناخبره مالداره په سوال نه كولوسره،ته به پيژنې دوى د مخونونه چې سوال نه كوى د خلګ ونه په اينختيدلو سره، په دې آيت كي دوى ته ته داسې فقير وئيليې شوي دي.چه په سوال نه كاوه سره ناخبره خلګ دوى باندې د مالداره خيال كوي.اوداخبره به هغه وخت ممكن وي.چه ددوى ښكاره حال ښه وي.اوهركله چې ښكاره حال ئې ښه وي.نومعلومه شوه.چه د فقير سره څه ناڅه ضرور وي.ددې نه هم د حضرت امام صاحب رحمه الله دقول تائيد كيږي. ② دوهم دليل دادې. دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه الله تعالى فرمائيلى دى[أَوْ مِسْكِينًا ذَا مَتْرَبَةٍ] يعنى مسكين چې خاك آلود(په خاورو لت پت)دې.مطلب دادې.چه مسكين سره نه د ساه بچ كولوخوراك وي.اونه د بدن پټولو لپاره كپړه وي.نوثابت شو.چه دمسكين حالت، دفقير په مقابله كي زيات خراب وي.

**الاجوبة من مستدل الشافعي** رحمه الله ۞د امام شافعي رحمه الله د پيش شوى آيت[أَمَّا السَّفِينَةُ فَكَانَتْ لِمَسَاكِينَ] (الايه) ځواب دادې.چه الله تعالى د كښتۍ په مالكانو د رحم اوشفقت په لحاظ سره مسكين وئيلې دى.لكه څنګه چې يوځلې رسول اكرم ﷺ اوفرمائيل. «أحيني مسكيناً وأمتني مسكيناً واحشرني في زمرة المساكين»اى الله مامسكين ژوندې اوساتې،اومرګ راكړې دمسكينۍ په حالت كي ، او زماحشر هم د مسكينانوسره اوكړې.دحديث نه معلوميږي.چه نبى كريم ﷺ د مسكين كيدلودعا فرمائيلې ده.حالانكه دوى د فقر اوتنګدستۍ نه پنا غوښتې ده.دا دواړه خبرې داسې جمع كيداې شي.چه نبى كريم ﷺ دكوم فقر نه پناه غوښتې ده.هغه د نفس او زړه فقر دې.اود مسكين كيدلو دعاء د ترحم دپار ده.يعنى خدايه ما داسې مسكين جوړكړې.چه د رحم اوشفقت مستحق وي.② دوهم ځواب دادې. چې دا كښتۍ ددوى سره په (رعاية)كرايه وه.دا خلګ ددې مالكان وو.بهرحال دا آيت په دې دلالت نه كوى.چه مسكين سره څه نه څه وي.③ دريم ځواب دادې. چې دا كښتۍ د مسكينانو ملك نه وو.بلكه دې خلګو په دې كي مزدورى كوله.اوس به مطلب داشي.چه دخضر عليه السلام په نظركي د كښتۍ عيب داره كول په دې وجه وو.چه ددې مسكينانو روزګارختم نشي.څكه كه كښتۍ صحيح سالم پريښولې (پريخودې) شوې وه.اوبادشاه د خپل عادت مطابق دا غصب كړې وه.نودا غريب مسكينان به بې روزګاره پاتې شوې وو.

**ثُمَّ هُمَا صِنْفَانِ أَوْ صِنْفٌ وَاحِدٌ سَنَذْكُرُهُ فِي كِتَابِ الْوَصَايَا إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى** بيا فقير اومسكين دوې [دوه] صنفه دى اوكه دا به موږ انشاءالله په ،كتاب الوصايه، كي ذكركړو.



تشريح:- **المذهبان فى كون الفقير والمسكين صنفان ام صنف واحد**۞ پاتې شوه داخبره چې فقير او مسكين دواړه يو ډول دى.اوكه دوې [دوه] قسمه دى.نوددې تفصيل خوبه په كتاب الوصايا كي راځى.خودلته كي دومره عرض دې.① چه دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزفقير او مسكين دوې [دوه] قسمه دى.②اود امام ابويوسف رحمه الله په نيزدواړه يوځائې يوقسم دې.

**ثمرة الاختلاف**۞ثمره د اختلاف به په دې مثال كي ښكاره شى.چه يوكس د خپل ثلث مال وصيت زيد، فقيرانو اومسكينانو لپاره اوكړو.نود امام ابويوسف رحمه الله په نيز به د ثلث مال نيمه زيد ته وركولې شى.اونيمه به فقيرانو اومسكينانوته وركولې شى.څكه چې ددوى په نيزفقيران اومسكينان دواړه يوځائې يوقسم دې.اود امام صاحب رحمه الله په نيز به دا ثلث مال په درې حصوكي تقسيمولې شى.يوه برخه به زيد ته وركولې شى.اويوه فقيرانوته اويوه به مسكينانو ته وركولې شى.څكه چې د امام صاحب رحمه الله په نيز فقيران او مسكينان دواړه جلا جلا قسمونه دى.

**وَالْعَامِلُ يَدْفَعُ إِلَيْهِ الْإِمَامُ إِنْ عَمِلَ بِقَدْرِ عَمَلِهِ** و ،عامل، له به وركوى امام كه ده عمل كړې وى دده دكار په قدر **فَيُعْطِيهِ مَا يَسَعُهُ وَأَعْوَانَهُ غَيْرَ مُقَدَّرٍ بِالثُّمُنِ** نووربه كړى ده ته دومره كوم چې دده اودده دمددګاروكافى كيږى.په دې سې حال كي چې اندازئې نشته داتمې برخې سره

تشريح:- **تعريف العامل** ۞ په قرآن پاك كي د زكاة دريم ډول عاملين ذكرشوې دې.عاملين د عامل جمع ده.عامل هغه كس دې.چه امام المسلمين د صدقات وغيره وصول كاوه لپاره مقرركړې وى.د عامل دوهم نو ساعى هم دې.

**نوعية مايعطى العامل**۞داهم په ذهن كي ساتل پكاردى.چه عامل ته څه هم وركولې شى.داد اجارې په طور نشى وركولې.څكه چې د اجارې لپاره د عمل معلوميدل ضرورى دى.د مودې او اجرت معلوميدل ضرورى دى.اودلته كي څه هم معلوم نه دى.په دې وجه به عامل ته د اجرت په طورباندې نشى وركولې.بلكه څومره وخت چې دده په تلو راتلواود صدقاتو په وصولولو كي صرف شوې دې.د هغه وخت پوره خرچه به وركولې شى.په دې وجه چې ده ددې كار لپاره خپل ځان محبوس(بند)كړې دې. اوكوم كس چې خپل ځان د امورمسلمين د كارونو لپاره فارغ كړى.نو دده نان نفقه هم په دوى واجب وى.لكه د قاضيانو اود جهاد كونكو نفقه چې په عامة المسلمين باندې واجب وى.اود ښځې نفقه په ښاوند باندې واجب وى.

**كم يعطى العامل**۞امام المسلمين به د زكاة د مال نه عامل او دده سره كاركونكوته ددوى د عمل په اندازه وركوى.خودا خيال به ساتى.چه د عامل اودده مددګارانو لپاره كافى شى.خوكه د عامل اودده د مددګارانو ضروريات ددوى د وصول كړې شوې د زكاة پوره مال راګيروى.نود نصف څخه به زيات نشى وركولې.اوكه خلګو د زكاة مال پخپله راوړلو.او امام ته ئې وركړلو.نوعامل به مستحق نه وى.څكه چې عامل ته دده دعمل په وجه وركولې شى.اوعمل اونه موندې شو.په دې وجه به دې مستحق هم نه وى.

**القدر المدفوع الى العامل**۞ ①هركله چې داخبره ثابت شوه.چه عامل ته د اجرت په طور نشى وركولې.نو په اندازه د كفايت چې څه دوى ته وركولې شى.نوهغه به د اتمې برخې وغيره دڅه مخصوص مقدار سره به هم متعين نه وى.يعنى دابه نه وى.چه عامل كوم زكاة وصول كړې دې.د هغې اتمه برخه به وركولې شى.

**خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ** رحمه الله خلاف دې امام شافعي رحمه الله لره،

تشريح:- په زيربحث مسئله كي امام شافعي رحمه الله فرمائى چې هم د هغه څخه به ورته زكاة وركوى كوم چې ئې راجمع كړې وى

**دليل الشافعي** رحمه الله ۞امام شافعي رحمه الله فرمائى.چه الله تعالى د زكاة اته مصارف ذكركړې دى.نوګويا د هريو اتمه برخه ده.نود عامل هم اته برخه متعين ده.يعنى د عامل په ټوله وصولۍ كي به اتمه برخه ده ته وركولې

شی. او چونکه د مؤلفة القلوب برخه بالاجماع ساقط ده. په دې وجه اوس په اووه حصوکې هره یوه برخه اوومه ده.

**اِلَّا أَنَّ اسْتِحْقَاقَهُ بِطَرِيقِ الْكِفَايَةِ** ځکه چې دعامل استحقاق په طريقه دکفايت دې **وَلِهٰذَا يَأْخُذُ وَإِنْ كَانَ غَنِيًّا** نو پدې وجه عامل به ئې اخلی اګرچه دغه غنی وی

**دليل الاحناف** ﷺ دليل دادې. چه دعامل استحقاق په طريقې دکفايت وی. د زکاة په طريقه نه وی. که صاحب مال په خپله زکاة امام له راوړو. او ورته کړو. نوعامل به قطعاً مستحق نه وی. او عامل که توانګر وی. اوده کار هم کړې وی. نودې به د زکاة د مال نه د کفايت په اندازه خپل حق اخلی. که عامل ته د زکاة په طريقه ورکولې شوې. نود مالدارکيدو په صورت کې به دې مستحق نه وو. نود عامل د مالدارکيدلو باوجود اخستل، ددې خبرې دليل دې. چه دده استحقاق د کفايت په طريقه دې. د زکاة په طريقه نه دې.

**اِلَّا أَنَّ فِيهِ شُبْهَةَ الصَّدَقَةِ فَلَا يَأْخُذُهَا الْعَامِلُ الْهَاشِمِيُّ** مګر په دې مال کې دصدقې شبهه ده نودې لره به هاشمی عامل نه اخلی **تَنْزِيهًا لِقَرَابَةِ الرَّسُولِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَنْ شُبْهَةِ الْوَسَخِ** د املة دقربت د نبی ﷺ دخان ساتلو د شبهې د کوټ (خيرې) نه.

**حل اللغة*** ① **تنزيها**: پاك ساتل ② **الوسخ**: کوټ (خيرې) ③ **يوازيه**: برابر

**تشريح:- الاعتراض** ۞ داعبارت د یو اعتراض ځواب دی. اعتراض دادې. چه تاسو فرمائې. د عامل استحقاق د کفايت په طريقه دې. د زکاة په طريقه نه دې. نوعامل که د هاشمی کورنۍ وی. نودده لپاره به هم د عمل په اندازه د زکاة دمال نه اخستل جائزکيدل پکار دی. حالانکه د هاشمی لپاره بالکل جائز نه دې.

**الجواب** ۞ ددې ځواب دادې. چه د زکاة اداکونکی د ذمې نه زکاة ساقط شوې دې. په دې وجه په دې مال کې هم د صدقه شبه موجود شوه. اوچه د صدقه شبه موجود شوه. نوخاندان رسالت د زکاة او صدقه د کوټ (خيرې) نه د پاك صفا ساتلو لپاره هاشمی عامل ته به ددې نه هيڅ نشی ورکولې.

**وَالْغَنِيُّ لَا يُوَازِيهِ فِي اسْتِحْقَاقِ الْكَرَامَةِ** اوغنی په استحقاق دکرامت کې هاشمی مقابل کيداې نشی **فَلَمْ تُعْتَبَرِ الشُّبْهَةُ فِي حَقِّهِ** پدې وجه دغنی په حق کې د شهبې دصدقې اعتبار اونکړې شو.

**تشريح:- الاعتراض الثانی** ۞ خوپه دې به بيا اعتراض کيږی. چه څنګه د هاشمی لپاره د زکاة مال اخستل جائزنه دی. دغه ډول توانګر لپاره هم جائز نه دې. نوځنګه چې هاشمی عامل نه اخلی. دغه ډول توانګر عامل ته هم اخستل نه دی پکار؟

**الجواب** ۞ غير هاشمی مالدارد کرامت مستحق کيدلو کې د هاشمی برابر نشی کيدلې. په دې وجه د صدقه شبه د هاشمی په حق کې معتبرشويده. اوغير هاشمی توانګر په حق کې نه ده معتبر کړې شوې.

## د مرئی آزادول

**قَالَ وَفِي الرِّقَابِ يُعَانُ الْمُكَاتَبُونَ مِنْهَا فِي فَكِّ رِقَابِهِمْ وَهُوَ الْمَنْقُولُ** د ،فی الرقاب، مطلب دادې. چه کومك اوشی دمکاتبو غلامانو ددوی په آزادولو کې دامنقول دی.

**تشريح:- الصورتان لعتق الرقاب** ۞ د مصارف زکاة اتم ډول ،وفی الرقاب، دې. ددې په تفسير کې درې صورتونه بيان

کړې شوې دی. ① يو داچه د زکاة په مال غلام واخستلې شی. او آزاد کړې شی. ② دوهم دا چې د مکاتب په بدل کتابت اداکولو کې کومك اوکړې شی.

**تعين الصورة الاولی** ۞ صاحب د قدوری رحمه الله هم دا دوهم صورت اختيار کړې دې. اوپه طبرانی کې حسن بصری، امام زهری اوعبدالرحمن بن يزيد بن اسلم نه هم د ،وفی الرقاب، هم دا تفسيردې. دې حضراتو فرمائيلې دی. «وفی الرقاب هم المكاتبون» يعنی د ،وفی الرقاب، نه مراد دادې. چه د زکاة رقم مکاتب ته



ورکړې شی. چه دې خپل مولا ته بدل کتابت اداکړې. خپل ځان ازاد کړی.

**عدم جواز الصورة الثانية** ۞ ددې نه معلومه شوه. چه که د زکاة په رقم سره غلام واخستلې شی. او آزاد کړې شی. نوزکاة به نه اداکيږی. ځکه چې د زکاة اداکاوه لپاره مالك کول شرط دی. اوپه دې صورت کې د مالك کيدلومعنی نشته. ځکه چې په خالص غلام کې د مالك جوړيدلو صلاحيت نه وی.

## د پور داري د مصرفيت بيان

**وَالْغَارِمُ مَنْ لَزِمَهُ دَيْنٌ وَلَا يَمْلِكُ نِصَابًا فَاضِلًا عَنْ دَيْنِهِ** او غارم هغه دې دکوم په ذمه چې قرضه وی اودخپلې قرضې نه زياتی نصاب مالك نه وی.

**تشريح:- تعريف الغارم** ۞ د صاحب قدوری رحمه الله د بيان مطابق د مصارف زکاة پنځم ډول غارم دې. ① غارم هغه کس دې. چه دده په ذمه د خلګو پور وی. اود پور نه د زياتی مقدار نصاب مالك نه وی. مثلاً د يوکس سره زر درهمه وی. اودې د نهه سوه درهمو قرضدار وی. نوده ته زکاة ورکول جائز دی. ځکه چې په نهه سوه درهمو سره د پور غوښتونکوحق متعلق کيدلو په وجه معدوم شو. يعنی دا نهه سوه درهم ګويا دده ملك پاتې نشو. اوپاتی شو سل درهم، نودا په قدر د نصاب نه دې. په دې وجه دده لپاره د زکاة مال اخستل جائز دی.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ مَنْ تَحَمَّلَ غَرَامَةً فِي إِصْلَاحِ ذَاتِ الْبَيْنِ** امام شافعی رحمه الله فرمائی. چه مالی خساره برداشت کړی دباهمی اصلاح په اختلاف کې **وَإِطْفَاءِ الثَّائِرَةِ بَيْنَ الْقَبِيلَتَيْنِ** اود دوې [دوه] قبيلو د دښمنۍ اور په مړکولو کې.

**تشريح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی. چه غارم هغه کس دې. چه ده دوې [دوه] متحارب (جنګ کونکی) مسلمانانو ډلو په مينځ کې د صلح کاوه اود دښمنۍ اورمړ کاوه په خاطر څه مالی تاوان برداشت کړو. نودا کس اګرچه توانګر وی. خوددې مقصد لپاره زکاة اخستلې شی. او زموږ په نيز داکس زکاة نشی اخستلې. خوکه اصلاح بين الناس باندې د خرچ کاوه نه روسته د مقدار نصاب مالك پاتې نشو. نو اخستلې شی. خودا اخستل د غارم په وجه نه دی. بلکه فقير يعنی د مقدارنصاب دنه مالك کيدلوپه وجه دی

## د فی سبيل الله د مصرفيت بيان

**وَفِي سَبِيلِ اللهِ مُنْقَطِعُ الْغُزَاةِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ** رحمه الله (1) اود فی سبيل الله نه مراد دادې چې دغازيانو نه پاتې شی دامام ابويوسف رحمه الله په نزد **لِأَنَّهُ هُوَ الْمُتَفَاهَمُ عِنْدَ الْإِطْلَاقِ** ځکه چې د اطلاق په وخت کې دامعنی پوهه ته راځی.

**تشريح:- تعريف من هو، فی سبيل الله،** ۞ د مصارف زکاة شپږم ډول ،فی سبيل الله، دې. د ،فی سبيل الله، په مراد کې اختلاف دې. ① امام ابويوسف رحمه الله فرمائی. چه د ،فی سبيل الله، نه مراد داسې غازی دې. چه دده په کورکې خومال موجود دې. خوپه دې وخت دجهاد په سفرکې دده سره مال نشته. ځکه لفظ د ،فی سبيل الله، چه کله مطلق او وئيلې شی. نوددې نه هم دا مراد اخستلې شی.

**وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ الْحَاجُّ** اوپه نزد د محمد رحمه الله هغه دې چې دحاجيانو نه منقطع شی **لِمَا رُوِيَ {أَنَّ رَجُلًا جَعَلَ بَعِيرًا لَهُ فِي سَبِيلِ اللهِ** ځکه چې روايت دې چې يوسړی خپل اوښ دالله ﷺ په لارکې کړو **فَأَمَرَهُ رَسُولُ اللهِ أَنْ يَحْمِلَ عَلَيْهِ الْحَاجَّ}** (2) نونبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل چې پدې حاجيان سواره کوه.

**تشريح:-** امام محمد رحمه الله فرمائی. چه د ،فی سبيل الله، نه مراد هغه حاجی دې. چه دده په کورکې خو مال

---

(1) القول الراجح هو هذا قول أبی يوسف رحمه الله كذا فی ردالمحتار(٦٧\٢) والهندية (١٨٨\١) ومجمع الأنهر(٢٢١\١) والبحرالرائق (٢٤٢\٢) والفقه الإسلامی وأدلته (٨٧٤\٢) نقلاً عن القول الراجح (١٨٥\١)۔

(2) قال الزيلعی رحمه الله إستشهد له شيخنا علاء الدين بحديث أخرجه عن أم معقل قال كان لنا جمل فجعله أبومعقل فی سبيل الله الی أن قال فهل أخرجت عليه فإن الحج من سبيل الله مختصر (نصب الراية ٤١٢/٢)۔

موجود دي.خود حج په سفركي دده سره مال پاتې نشو.

**دليل محمد** رحمه الله ﴿اودليل دادې.چه يوكس خپل اوښ ،فی سبيل الله،كړې وو.نو رسول اكرم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو .چه په دې حاجيان سواره كړئ.ددې نه معلومه شوه.چه د ،فی سبيل الله، اطلاق د حج په سفر باندې تللو والا باندې كيږي.

| وَلَا يُصْرَفُ إِلَى أَغْنِيَاءِ الْغُزَاةِ عِنْدَنَا اوزموږ په نزد په مالدارو غازيانو زكاة نشی صرف كولې. لِأَنَّ الْمَصْرِفَ هُوَ الْفُقَرَاءُ ځكه چې دزكاة مصرف فقيران دی. |
|---|

**تشريح:- المذهبان فی مصرفية المجاهد الغنی** ﴿ صاحب د هدايه رحمه الله فرمائی.① چه د احنافو رحمهم الله په نيز به په مالداره غازيانو باندې د زكاة مال نشی خرچ كولې.② او امام شافعی رحمه الله فرمائی.كه غازی مالداره وی.نوبيا هم دده لپاره د زكاة مال اخستل حلال دي.

**دليل الشافعی** رحمه الله ﴿د امام شافعی رحمه الله دليل دادې.چه نبی كريم ﷺ فرمائيلې دی. ﴿لاتحل الصدقة لغنی إلا لخمسة الغازی والعوامل عليها والغارم و رجل تصدق بها على المسكين فأهداها المسكين إليه﴾ (عنايه) يعنی دهيڅ توانګر لپاره صدقه حلال نه ده.سوې د پنځو نه.يوغازی فی سبيل الله، دوهم څوك چې په صدقاتو باندې عامل وی.دريم غارم،څلورم هغه كس ته چې چې دصدقه مال ئې په خپل مال سره واخستلو .پنځم هغه كس چې مسكين ته كومه صدقه ملاؤشويده.هغه كوم توانګر ته صدقه وركړه.ددې حديث نه معلوميږی.چه غازی توانګر ته زكاة وركول جائزدې.

**الجواب عن مستدل الشافعی** رحمه الله ﴿زموږ د اړخه ددې ځواب دادې.چه د توانګر نه مراد نصاب والا نه دې.بلكه د توانګر نه هغه كس دې.چه په ګټې باندې قدرت لری.اوس به مطلب داوی.چه كوم كس د خپل بدن د توان په وجه په ګټې باندې قدرت لری.اګرچه د نصاب مالك نه وی.ده له زكاة او صدقه غوښتل حلال نه دی.سوې دغازی نه.چه دې اګرچه په ګټې قادردې.خود جهاد په كارونوكي د مشغوليدو په وجه دده لپاره صدقه او زكاة حلال دې.

**دليل الاحناف** رحمهم الله ﴿زموږ دليل دادې.چه د زكاة مصارف چونكه فقيران دی.لكه چې حديث ﴿خذ من أغنياءهم وردها فی فقرائهم﴾ په دې شاهد دې.په دې وجه موږ وايو.چه په مالداره غازيانو باندې به د زكاة مال نشی خرچ كولې.

### د مسافر مصرفيت

| وَابْنُ السَّبِيلِ مَنْ كَانَ لَهُ مَالٌ فِي وَطَنِهِ او ابن السبيل هغه دې چې دده مال په وطن كي وی وَهُوَ فِي مَكَانٍ لَا شَيْءَ لَهُ فِيهِ اوپخپله بل ځائې وی هلته دده سره هيڅ شی نه وی. |
|---|

**تشريح:- مصرفية ابن السبيل** ﴿اووم قسم،ابن السبيل،دې.د ابن سبيل نه مراد هغه مسافر دې.چه دده په وطن كي دده ډير مال موجود دې.خوپه دې وخت كي دده سره هيڅ نشته.نوګويا داكس په دې وخت كي فقيردې.اود فقير لپاره زكاة اخستل جائزدی.خودده لپاره د اړتيا نه زيات اخستل جائزنه دې. عالمانو ليكلی دی.چه غوره داده.چه داكس پور واخلی.اوچه كورته لاړشی نوادا ئې كړی.

### اته قسمه مصارف دي مستحق نه دي

| قَالَ وَاحِدٌ فَهَذِهِ جِهَاتُ الزَّكَاةِ صاحب دكتاب فرمائی چې دادزكاة مصارف دی فَلِلْمَالِكِ أَنْ يَدْفَعَ إِلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ نومالك ته اختياردې كه غواړی پدوی كي دې هر يو ته وركړی ،وَلَهُ أَنْ يَقْتَصِرَ عَلَى صِنْفٍ اوكه غواړی نوپدوی كي دې په يو صنف (قسم) اقتصار اوكړی |
|---|



**تشريح:- المذهبان فی كون المصارف هم المصارف فقط ام المستحقين** ﴿ ① ذكرشوی اووه قسمه خلګ زموږ په نيز د زكاة مصارف دی.خود زكاة مستحق نه دی.كه مالك د مال په دې اقساموكي هرچاته وركړی . نوهم جائزدې.اوكه پوره زكاة يو ډول خلګو ته وركړی.يائې يوكس ته وركړی.نوهم جائزدی.

| وَقَالَ الشَّافِعِيُّ لَا يَجُوزُ إِلَّا أَنْ يَصْرِفَ إِلَى ثَلَاثَةٍ مِنْ كُلِّ صِنْفٍ امام شافعی رحمه الله فرمائی چه جائز نه دی مګر دا چې هرقسم په درې افرادو دې صرف كړی |
|---|

**تشريح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه دا اووه واړه قسمه خلګ د زكاة مستحق دی.نوپه اووه واړه قسمه كي چې د هرقسم درې درې كسانوته زكاة وركول ضروری دی.ګويا امام شافعی رحمه الله په نيزكه د هرقسم درې كسانو ته زكاة وركړې شو.چه ددوی واړه مجموعی تعداد يويشت جوړيږی.نو زكاة به ادا وی. ګنی ادا به نه وی.

| لِأَنَّ الْإِضَافَةَ بِحَرْفِ اللَّامِ لِلِاسْتِحْقَاقِ ځكه چې اضافت بحرف اللام لپاره داسحقاق وی. |
|---|

**تشريح:- دليل الشافعی** رحمه الله ﴿د امام شافعی رحمه الله دليل دادې.چه الله تعالی د زكاة مصارف بيان كړې دی. فرمائی.چه ﴿﴿إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ﴾﴾ (الايه)يعنی صدقات د فقيرانو اړخ ته په لام سره مضاف شوې دې. اوپاته شپږ قسمه په واؤ سره په دې باندې معطوف دی.اولام راځی د استحقاق دپاره.او واؤ په جمعيت باندې دلالت كوی.نو ا﴿﴿إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ﴾﴾ وس مطلب داشو.چه دا اووه واړه قسمه د زكاة حقدار دی. اوهركله چې اووه واړه قسمه حقدارجوړ شو.نو اووه واړو ته وركول ضروری شو.نود امام شافعی رحمه الله په نيز د مال مالك كه په اووه واړه قسمونوكي د هرقسم درې درې كسانو ته زكاة وركړی.نو زكاة به ادا شی.ګنی نه به اداكيږی.

| وَلَنَا أَنَّ الْإِضَافَةَ لِبَيَانِ أَنَّهُمْ مَصَارِفُ لَا لِإِثْبَاتِ الِاسْتِحْقَاقِ زموږ دليل دادې چې اضافت ددې امر دبيان لپاره دې چې مصارف دزكاة دادی داثبات داستحقاق لپاره نه دې.وَهَذَا لِمَا عُرِفَ أَنَّ الزَّكَاةَ حَقُّ اللَّهِ تَعَالَى اودا ځكه چې معلومه شوه چې زكاة دالله ﷻ حق دې. وَبِعِلَّةِ الْفَقْرِ صَارُوا مَصَارِفَ اودعلت دفقر په امله سره دا خلګ مصارف شو فَلَا يُبَالِي بِاخْتِلَافِ جِهَاتِهِ نودجهاد دفقر داختلاف پرواه نه شی كولې |
|---|

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ﴿زموږ دليل دادې.چه د ،للفقراء،لام د اختصاص لپاره دې.د استحقاق لپاره نه دې.يعنی د صدقاتو مصرف صرف دا اووه اقسام دی.ددې نه علاوه نه دی.په دې كي چې چاته هم صدقه وركړې شی.په خپل مصرف كي به خرچ شی.دا مطلب نه دې.چه دا اووه واړه اقسام د صدقاتو حقدار دی.چه تركومه پورې ټولو ته ورنكړې شی.نو صدقه به نه اداكيږی.اووجه ددې داده.چه زكاة په اصل كي د الله تعالی حق دې.اود فقيرئ او محتاجئ دعلت په وجه دا خلګ مصارف شو.ځكه چې الله ﷻ غنی دې.ده ته دهيڅ څه حاجت نشته.نوهركله چې دزكاة مصرف كيدلوعلت فقيری او محتاجی ده.نود محتاجئ مختلف وجوهاتو اړخ ته به التفات(توجه)نشی كيدې.يعنی محتاجی كه په وجه د فقر وی.يا په وجه د مسكينئ،يا په وجه د غرامت، يا په وجه د مسافرئ وی.ددې لحاظ به نشی كيدلې.بلكه كوم ځائې كي چې هم محتاجی بياموندې شی.هم هغه به د زكاة مصرف وی.

| وَالَّذِي ذَهَبْنَا إِلَيْهِ مَرْوِيٌّ عَنْ عُمَرَ وَابْنِ عَبَّاسٍ اوكوم اړخ ته چې موږ تلی يوهغه دا روايت دې دعمر رضی الله عنه اوابن عباس رضی الله عنه نه. |
|---|

**تشريح:-** هم دا مذهب دحضرت عمر اود حضرت ابن عباس رضی الله عنه دې.په طبرانی كي ددې ايت تفسير نقل دې. ﴿عن ابن عباس رضی الله عنه فی قوله تعالى ﴿لِلْفُقَرَاءِ الصَّدَقَاتُ إِنَّمَا﴾ (الايه) قال فی أی صنف وضعته أجزأك﴾ يعنی ابن عباس رضی الله عنهما ﴿﴿إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ﴾﴾ په تفسير كي فرمائيلې دی.چه كوم ډول ته هم ته وركوې.زكاة به

اداکيږي.اود حضرت عمرﷺ نه نقل دی. «قال أيما صنف أعطيته من هذا أجزأ عنك» حضرت عمرﷺ فرمائی چه کوم ډول ته هم ته زکاة ورکړې.نو کافی به وی.

## ذمي ته د زکاة ورکولو حکم

**وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَدْفَعَ الزَّكَاةَ إِلَى ذِمِّيٍّ** اوجائز نه دی چې ورکړی ذمی ته {لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِمُعَاذٍ خُذْهَا مِنْ أَغْنِيَائِهِمْ وَرُدَّهَا فِي فُقَرَائِهِمْ} (١) ځکه چې نبی کریمﷺ معاذ ته اوفرمائيل چې زکاة ددوی د مالدارونه اخله اوددوی فقيرانو ته ئې ورکوه.

**تشریح:- عدم جواز اداء الزكاة الى الذمى ودليله**۞ذمی ته زکاة ورکول جائز نه دي.دليل د ابن عباس رضي الله عنهما حديث دي. «أن رسول اللهﷺ بعث معاذا إلى اليمن فقال إنك تأتي قوما أهل الكتاب فادعهم إلى الشهادة.أن لا إله إلا الله، وأني رسول اللهﷺ فإن هم أطاعوك لذالك فأعلمهم أن الله فرض عليهم خمس صلوات في كل يوم وليلة فإن هم أطاعوك لذالك فإياك وكرائم أموالهم واتق دعوة المظلوم فإنه ليس بينها وبين الله حجاب» (شرح نقايه بحواله کتب سته) يعنی د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دی.چه رسول اللهﷺ حضرت معاذﷺ ديمن قاضی جوړ کړو.اووې ليګلو.نووې فرمائيل.چه ته د اهل کتاب يوقوم ته ورځې.دوی ته د کلمه شهادت «لا إله إلا الله، وأني رسول الله» دعوت ورکړه.که دوی په دې اره کې ستا فرمان برداری اوکړه.نو دوی ته اووايه.چه الله تعالی په دوی په شپه ورځ کې پنځه مونځونه فرض کړي دی.اوکه په دوی په دې اره کې هم ستا اطاعت اوکړی.نودوی خبر کړه.چه الله تعالی په دوی زکاة فرض کړي دي.چه ددوی د مالدارو څخه به اخستلې شی.اوددوی فقيرانو ته به ورکولې شی.اوکه ستا په دې کې هم تابعداری اوکړی.نو ددوی د ښه مال نه بچ اوسه.اود مظوم بد دعاء نه اويريږه.ځکه چې د مظلوم بد دعاء اود الله تعالی په مينځ کې پرده نه وی.حاصل داچه د مسلمانانو څخه به اخستلې شی.اوپه فقيرانوکې به تقسيمولې شی.نود «فتؤخذ من أغنيائهم فترد على فقرائهم» لفظ دلالت کوی.چه غيرمسلم ته زکاة ورکول جائز نه دی.

**قَالَ (وَيَدْفَعُ مَا سِوَى ذَلِكَ مِنَ الصَّدَقَةِ)** وور کولای شی ذمی ته دزکاة نه سوې هره صدقه **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ** رحمه الله: **لَا يَدْفَعُ** او امام شافعی رحمه الله فرمائی چې نشی ورکولې **وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ** اودايو روايت دې دامام ابويوسف رحمه الله نه **اعْتِبَارًا بِالزَّكَاةِ** قياس په زکاة باندې

**تشریح:- اعطاء الصدقات الى الذمى**۞ ① اود زکاة نه علاوه ذمی ته هره صدقه ورکول جائزدی.که داصدقه واجب وی.اوکه مستحب وی. ② او امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه ذمی ته هيڅ قسمه صدقه ورکول جائز نه دی.هم دا قول د امام مالك رحمه الله دې.اوهم دا يو روايت د امام ابويوسف رحمه الله دې.

**دليل الشافعی** رحمه الله ۞ ددې حضراتو دليل په زکاة باندې قياس دې.يعنی ځنګه چې زکاة ذمی ته ورکول جائزنه دي.دغه ډول نور صدقات هم جائزنه دی.

**وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {تَصَدَّقُوا عَلَى أَهْلِ الْأَدْيَانِ كُلِّهَا}** (٢) اوزموږ دليل دنبی کریمﷺ ارشاد دې خيرات کوئی په هر دين والا باندې

**تشریح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ۞زموږ دليل دادې.چه نبی کريمﷺ فرمائيلې دی. «تصدقوا على أهل الأديان

(١) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه البخاری فی الزكاة باب ٩ ومسلم فی الإيمان رقم ٢٩ وأبوداود فی الزكاة باب ٥ والترمذی فی الزكاة باب ٦ والنسائی فی الزكاة باب ٤٦ وابن ماجه فی الزكاة باب ١ وأحمد فی المسند (١/٢٣٣)۔

(٢) حديث سعيد بن جبيرﷺ أخرجه ابن ابی شيبة فی مصنفه (٣/٣٩)۔



كلها» يعنی د ټولومذهبونو خلګو ته صدقه ورکوئ.داحديث په دوې [دوه] خبرو دلالت کوی.يودا چې حربی او مستامن ته هم صدقه ورکول جائزدی.ځکه چې د ټولو دينونو په خلګ وکې دې هم ګډ دي. دوهم داچه زکاة ورکول هم جائز دی.ځکه چې د تصدقوئ لفظ زکاة ته هم ګډ دې.

**وَلَوْلَا حَدِيثُ مُعَاذٍ لَقُلْنَا بِالْجَوَازِ فِي الزَّكَاةِ** اوکه حديث مدعاذ نه وی نوزموږ به دزکاة دجواز قائل وو.

**تشریح:- الجواب من القول الثانی**۞د دويمې خبرې ځواب خو دادې.چه داحديث بې شکه چې په ددې تقاضاکوی.چه ذمی ته زکاة ورکول هم جائزدی.خود معاذﷺ دحديث په وجه موږ ددې دجواز قائل نه يو.حاصل داچه د نبی کریمﷺ قول «تصدقوا على أهل الأديان كلها» تقاضاکوی.چه ذمی او غيرذمی ټولو ته زکاة ورکول جائزدی.اود معاذﷺ حديث د ذمی لپاره دعدم جواز تقاضاکوی.نوموږ د زکاة په سلسله کې خو د معاذﷺ په حديث باندې عمل اوکړو.چه موږ اووئيل.زکاة صرف مسلمان ته ورکولې شی. ذمی وغېره ته نشی ورکولې.اود نوروصدقاتوپه اړه کې مونږپه حديث «تصدقوا على أهل الأديان كلها» باندې عمل اوکړو.چه موږ اووئيل.ذمی ته د زکاة نه علاوه نور صدقات مثلاً صدقة الفطر، کفارات وغيره ورکولې شی.

**الجواب من القول الاول**۞اود ړومبئ خبرې ځواب دادې.چه په دې حديث سره اګرچه د ټولو دينونو خلګو ته صدقات ورکول جائز معلوميږی.تردې چې حربی اومستامن ته هم،خودا حديث د حربی اومستامن په حق کې خاص دې.اوخاص کونکې د الله تعالی قول ((إِنَّمَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ قَاتَلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَأَخْرَجُوكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ وَظَاهَرُوا عَلَى إِخْرَاجِكُمْ أَنْ تَوَلَّوْهُمْ وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ)) (الايه)دې.يعنی الله خومنع کوی تاسو ددې نه چې څوك جنګ کوی تاسوسره په دين باندې،او ويخکلئ تاسو د کورونونه اوشريك شو ستاسو په اوخکلوکې چې اوکړئ ددوی سره دوستی، او څوك چې ددوی سره دوستی اوکړی.نوهم دغه خلګ دی ګناهګار.حاصل داچه کوم خلګ د ستاسو سره مخالف اوسيږی. ددوی سره دوستی مه کوئ.اوښکاره ده.چه دا خلګ حربيان دی.نودوی له په صدقه وغيره ورکولوددوی سره دوستانه مه کوئ.ددې آيت نه معلومه شوه.چه حربی اومستامن(چه په حقيقت کې حربی دې)ته هيڅ قسمه صدقه ورکول جائزنه دی.

**وَلَا يُبْنَى بِهَا مَسْجِدٌ** ونه به جوړوی په زکاة مسجد **وَلَا يُكَفَّنُ بِهَا مَيِّتٌ** ونه به پرې کفن کوی مړی لره.

**تشریح:- عدم جواز بناء المسجد وتدفين الميت بالزكاة**۞مسئله داده.چه د زکاة په مال نه جومات جوړول جائزدی.اونه مړی ته کفن ورکول جائزدی.

**لِانْعِدَامِ التَّمْلِيكِ** دتمليك نه کيدو په امله سره **وَهُوَ الرُّكْنُ** حال دادې چې دارکن دې

**تشریح:- دليله**۞ ځکه چې د زکاة رکن مالك جوړول دی.په دې وجه چې الله تعالی زکاة په صدقاتو سره تعبير کړې دې.اود صدقه معنی ده.فقير د مال مالك جوړل.نومعلومه شوه.چه د زکاة ادا کاوه لپاره تمليك يعنی مالك جوړول شرط دی.اوپه جومات جوړولوکې د تمليك معنی نشته.په دې وجه د زکاة په رقم سره د جومات جوړول جائزنه دی.اوچونکه په مړی کې هم د مالك جوړيدلو صلاحيت نشته.په دې وجه د زکاة په رقم سره به ده ته کفن ورکول هم جائزنه وی.

**وَلَا يُقْضَى بِهَا دَيْنُ مَيِّتٍ** ونه به خلاصوی پدې سره دمړی قرضه. **لِأَنَّ قَضَاءَ دَيْنِ الْغَيْرِ لَا يَقْتَضِي التَّمْلِيكَ مِنْهُ لَا سِيَّمَا مِنَ الْمَيِّتِ** ځکه چې دغير قرضه خلاصول دده په ملك کې دور کاوه مقتضی نه وو خاص کر بيا دمړی په صورت کې.

**تشریح:- عدم جواز اداء دين الميت بالزكاة**۞ اود زکاة په مال سره د مړی پور ادکول هم جائزنه دی.ځکه چې غيريعنی د مړی پور اداکول،ددې تقاضانه کوی.چه دا مال د اول نه دمړی په ملك کې ورکړې وو.بيا دده د

اړخه پور غوښتونکی ته ورکړې شوې دې.څكه چې په مړي کي داصلاحيت نشته.چه په خپل ملك كي ئې واخلي.نوچه په دې صورت کې هم د تمليك معنى نشته.نو زكاة به نه اداكيږي.

**صورة جواز اداء الزكاة فى الدين عن الميت**۞خوكه ژوندى كس چاته حکم اوکړو.چه زما داړخه زما قرضه اداکړه.ده د زكاة په مال سره قرضه اداکړه.نوزكاة اداکيږي.څكه چې په دې صورت کې ګويا زكاة مديون ته ورکړې شو.بيا پور غوښتونکی د هغه د اړخه وکيل جوړشو.او قبضه ئې اوكړه.نو مديون كي دمالك جوړيدلو معنى اوموندلې شوه.اوچه د مالك جوړيدلو معنى اوموندلې شوه.نودده زكاة به هم اداشي.

| |
|---|
| **وَلَاتُشْتَرٰى بِهَارَقَبَةٌ تُعْتَقُ** ونشى اخستلې په مال دزكاة غلام چې آزاد کړې شي. **خِلَافًا لِمَالِكٍ ذَهَبَ** په خلاف د امام مالك رحمه الله چې هغه تلې دې، دې ته **اِلَيْهِ فِى تَاْوِيْلِ قَوْلِهٖ تَعَالٰى {وَفِى الرِّقَابِ}** په تاويل ددې قول دبارى تعالى كي **{وَفِى الرِّقَابِ}** |

**تشريح:- المذهبان فى تحرير الرقبة بالزكاة**۞ ① مسئله داده.كه د زكاة په مال غلام يا وينځه واخلى.او آزادكړى.نو زكاة به ادا نه وى. ② د حضرت امام مالك رحمه الله په نيز زكاة اداكيږى.

**دليل مالك رحمه الله** ۞ حضرت امام مالك رحمه الله د **{وَفِى الرِّقَابِ}** نه هم دا مراد اخستې دې.يعنى د **{وَفِى الرِّقَابِ}** نه مراد د زكاة په رقم سره غلام اخستل،اوبيا آزادول دى.

| |
|---|
| **وَلَنَا أَنَّ الْإِعْتَاقَ إِسْقَاطُ الْمِلْكِ وَلَيْسَ بِتَمْلِيْكٍ** او زمونږ دليل دادې چې آزادول ملك لره ساقطول دى تمليك نه دې. |

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ۞او زمونږ په نيز د مكاتبانو كومك مراد دې.زمونږ دليل دادې.چه اعتاق د ملك ساقط كاوه نوم دې.يعنى د مملوك د ښت نه خپل ملك لرې كول.اعتاق د تمليك(مالك كولو)نوم دې.حالانكه د زكاة ركن تمليك دې.نوچه په اعتاق كي د مالك كيدلو معنى موجود نه ده.بلكه د ملك ساقطولو معنى موجود ده.نو زكاة به هم نه اداكيږى.

| |
|---|
| **وَلَاتُدْفَعُ اِلٰى غَنِىٍّ) لِقَوْلِهٖ ﷺ {لَاتَحِلُّ الصَّدَقَةُ لِغَنِىٍّ}** ([1]) اونه به شي وركولې زكاة غنى ته دنبى كريم ﷺ ارشاد په وجه چې صدقه نه ده چا غنى لره. **وَهُوَبِاِطْلَاقِهٖ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِىِّ فِى غَنِىِّ الْغُزَاةِ** اودا حديث دخپل اطلاق سره حجت دې په امام شافعى رحمه الله د مالدارو د غازيانو په اړه کي **وَكَذَا حَدِيْثُ مُعَاذٍ عَلٰى مَارَوَيْنَا** ([2]) او دغه ډول حديث دمعاذ رضي الله عنه لكه چې مونږ روايت كړې دې. |

**تشريح:- المذهبان فى اعطاء الزكاة الى المجاهد الغنى**۞ ① يعنى كوم كس چې د نصاب مالك وى.هغه ته زكاة وركول جائز نه دى. دليل د رسول الله ﷺ حديث ﴿لاتحل الصدقة لغنى﴾ دې. ② امام شافعى رحمه الله مالداره غازيانو لپاره د زكاة ور كاوه اجازت وركړې دې.چه تفصيل ئې مخكي تيرشو.خودا حديث اوحديث د معاذ رضي الله عنه ﴿فترد فى فقرائهم﴾ د دوى خلاف دې.

## چاته زكاة وركول جائز نه دى

| |
|---|
| **قَالَ (وَلَايَدْفَعُ الْمُزَكِّىْ زَكَاتَهٗ اِلٰى أَبِيْهِ وَجَدِّهٖ وَاِنْ عَلَا** اونه به وركوى زكاة وركونكې دخپل مال زكاة خپل پلار ته اونه خپل نيكه ته.اګرچه پورته وى. **وَلَا اِلٰى وَلَدِهٖ وَوَلَدِ وَلَدِهٖ وَاِنْ سَفَلَ** اونه خپل ځوئى ته او نه دځوئى ځوئى ته اګر چې دلاندې درجې وى |

**تشريح:- عدم جواز اعطاء الزكاة الى الاصول والفروع**۞ مسئله داده.چه زكاة وركونكې د خپل مال زكاة نه خپل

[1]) من حديث عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما أخرجه بوداود فى الزكاة باب ٢٤ رقم ١٦٣٤ والترمذى فى الزكاة باب ٢٣ رقم ٦٥٢ وأحمد فى المسند(١٦٤/٢)

[2]) [illegible]دم تخريجه من قريب)_



پلارته وركولې شى.اونه نيكه ته.اونه دا خپل اوچت اصولو ته يعنى د نيكه پلار، اود هغه نيكه وغيره ته، دغه ډول نه مورته وركولې شى.اونه نياګانوته،(يعنى د پلار مور اود مور مورته)اونه به اولاد ته وركولې شى.اونه به د اولاد اولاد ته(يعنى نمسو ته)حاصل دا چې نه به اصولوته زكاة وركوى دچا نه چې دې پيدا شوې دې.اونه به فروع ته وركولې شى.كوم چې دده نه پيدا شوى دى.غرض داچه دچاسره ئې د ولادت رشته ده.هغوى ته د خپل مال زكاة وركول جائز نه دې.

| |
|---|
| **لِأَنَّ مَنَافِعَ الْأَمْلَاكِ بَيْنَهُمْ مُتَّصِلَةٌ فَلَا يَتَحَقَّقُ التَّمْلِيْكُ عَلَى الْكَمَالِ** څكه چې دااملاك منافع د دوى په مينځ كښې متصل دى.نوتمليك په پوره طور سره متحقق كيږى. |

**تشريح:- دليله**۞دليل دادې.چه د املاك منافع ددې خلګو په مينځ كي متصل وى.اومشترك وى.نو دوى ته به د زكاة ور كاوه په صورت كي تمليك پوره طورمتحقق نه كيږى.حالانكه تمليك د زكاة ركن دې.

| |
|---|
| **وَلَا اِلٰى امْرَأَتِهٖ) لِلْاِشْتِرَاكِ فِى الْمَنَافِعِ عَادَةً** اونه به وركوى خپلې ښځې ته په وجه دمشترك كيدو دنفعو عادتًا |

**تشريح:- عدم جواز اعطاء الزكاة الى الزوجة**۞اود خاوند خپلې ښځې ته زكاة وركول جائز نه دى.څكه چې په عامه توګه د ښځې خاوند په مينځ كي هم منافع مشترك وى.يعنى دښځې مال د خاوند مال، اود خاوند مال د ښځې مال شمارلې شى.اوهر يو د بل د مال نه نفع اوچتوى.

**دليله**۞رسول الله ﷺ فرمائى. ((**وَوَجَدَكَ عَائِلًا فَأَغْنٰى**)) (الايه)او وې موندلې ته مفلس،بيائې بې پرواه كړې. ددې په تفسير كښې وئيلې شوې دى.چه نبى كريم ﷺ د دوى د بى‌بى په مال غنى او مالداره شو .معلومه شوه.چه د ښځې په مالداره كيدو سره خاوند توانګر شمارلې شى.اوددې په عكس هم،نوهركله چې داسې ده.نود خاوند خپلې ښځې ته زكاة وركول ګويا چې د يوجيب نه اوښكل اوبل جيب ته اچول دى.اوښكاره ده چې په دې سره زكاة څنګه اداكدې شى.

| |
|---|
| **وَلَا تَدْفَعُ الْمَرْأَةُ اِلٰى زَوْجِهَا) عِنْدَ أَبِىْ حَنِيْفَةَ** رحمه الله ([1]) اونه به وركوى ښځه خپل خاوند ته.په نزد د امام صاحب رحمه الله **لِمَا ذَكَرْنَا** لكه څنګه چې مونږ ذكركړى. **وَقَالَا: تَدْفَعُ اِلَيْهِ** اوصاحبين رحمهما الله فرمائى چې وركوى به ورته |

**المذهبان فى اعطاء الزكاة الى الزوج**۞ ① اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د ښځې خپل خاوند ته هم زكاة وركول جائز نه دې. ② اوصاحبين رحمهما الله فرمائى.چه دښځې خپل خاوند ته زكاة وركول جائزدى.د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل خودادې.كوم چې وړاندې تيرشو.چه منافع په ښځه خاود كي مشترك وى.

| |
|---|
| **لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْهِ {لَكِ أَجْرَانِ: أَجْرُ الصَّدَقَةِ، وَأَجْرُ الصِّلَةِ}** ([2]) څكه چې دنبى كريم ﷺ ارشاد دې ستا لپاره دوې [دوه] اجرونه دى يواجر دصدقې او بل اجر دصلې. **قَالَهٗ لِامْرَأَةِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ** دا دوى دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه بى‌بى ته فرمائيلى وو. **وَقَدْ سَأَلَتْهُ عَنِ التَّصَدُّقِ** پداسې حال كي چې هغې ده ته د صدقې ور كاوه په اړه كي پوښتنه كړې وو. |

**تشريح:- دليل الصاحبين** رحمهما الله ۞اود صاحبينو رحمهما الله دليل هغه حديث دې.كوم چې صحيحين او امام نسائى رحمه الله روايت كړې دې. په فتح القدير كي دا روايت داسې ذكردې. د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه بى‌بى زينب رضي الله عنها

[1]) القول الراجح هو هذا قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى الدرى لمختار(٦٩\٢) والبحرالرائق (٢\٢٤٤) والهندية (١\١٨٩) نقلاً عن القول الراجح (١\١٨٦)_

[2]) من حديث زينب إمرأة ابن مسعود رضي الله عنهما أخرجه البخارى فى الزكاة باب ٤٨ رقم ٧٧٨ ومسلم فى الزكاة رقم ٤٥ والترمذى فى الزكاة باب ١٢ رقم ٦٣٥ والنسائى فى الزكاة باب ٨٢ رقم ٢٤٢١ وابن ماجه فى الزكاة باب ٢٤ رقم ١٨٣٤ والدارمى فى الزكاة باب ٢٣ وأحمد فى المسند(٢٦٣/٦)_

اووئیل.چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل.چه اې د ښځو ټولګیه، تاسو صدقه ورکوئ.اګرچه ستاسو د ګاڼو څخه وي.زینب وائي.چه زه بیا واروسته شوم.دعبدالله مسعود رضی الله عنهما ته راغلم.اوما اووئیل.چه د سپك ملك مالك ئې.او رسول الله ﷺ موږ ته د صدقه ور کاوه ارشاد ووئیل .نوته لاړ شه.اود رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوکړه.که ماله دا کافي وي.چه دا زه تاته درکړم.ګنې چې زه ستاسو نه سوي بل چاته ورکړم.زینب وائي.چه عبدالله بن مسعود رضی الله عنهما ماته اووئیل.چه هم ته لاړه شه. اود رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوکړه.زینب وائي.زه روانه شوم.چه راغلم.نوما د رسول الله ﷺ په دروازه باندې یوه انصاري ښځه اولیدله.کوم چې زما حاجت وو.هم هغه د رسول الله ﷺ حاجت وو.(یعني کوم مقصد چې زما د حاضرئ وو.هم ددې د حاضرئ وو) زینب رضی الله عنها وائي.چه په نبي کریم ﷺ باندې دبدبه او رعب اچولې شوې وو (یعني ددوی ﷺ په ذات اقدس باندې رعب وو. خلګو به چې ددوی سره خبره کوله نوویریدل به) زینب وائي.چه بلال بهر راغې.نوما اووئیل.چه ته رسول الله ﷺ ته لاړ شه.او خبر ورکړه.چه په دروازه کې دوې [دوه] ښځې دی.ستاسو نه پوښتنه کول غواړي.چه آیا ددوی دواړو د اړخه ددوی صدقه ورکول،خپلو خاوندانو ته او خپلو یتیمانو بچوته کافي دی.اودا مه وایه.چه موږ دواړه څوك یو.زینب وائي.چه بلال ﷺ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضرشو.اوپوښتنه ئې اوکړو.رسول الله ﷺ بلال ته اوفرمائیل.چه دا دواړه ښځې څوك دی.بلال ورته اووئیل.چه یوه خوانصاري ښځه ده.اویوه زینب ده. رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل.کومه زینب.وې وئیل.چه د عبدالله بن مسعود رضی الله عنهما بیګم ده. نبي کریم ﷺ اوفرمائیل.چه دې دواړو لپاره دوې [دوه] دوې [دوه] اجره دی.یود قرابت اجر،اوبل د صدقه اجر.ددې تفصیلي حدیث نه معلومه شوه.چه دښځې لپاره خپل خاوند ته زکاة ورکول جائزدی.

قُلْنَا:هُوَمَحْمُولٌ عَلَى النَّافِلَةِ.موږ وایو چې دا په نفلي صدقه محمول ده.

تشریح:- **الجواب من مستدل الصاحبین** رحمهما الله ۞زموږ د اړخه ددې ځواب دادې.چه دا روایت په نفلي صدقاتو باندې محمول دې.یعني ښځه که نفلي صدقه خپل خاوند ته ورکوي.نودې ته به دوچند اجرملاویږي.یود صله رحمئ او دوهم د صدقه.د صاحبینو رحمهما الله دا اړخه چې کوم حدیث پیش شوې دې.د هغې نه هم دا ښکاره کیږي.ځکه چې زینب د خپل خاوند اود خپل تیرشوي خاوند د یتیمانو بچو په اړه کې پوښتنه کړې وو. اونبي کریم ﷺ دواړو ته د ور کاوه اجازت ورکړې دې.حالانکه اولاد ته زکاة ورکول بالاتفاق جائزنه دې. نومعلومه شوه.چه په دې حدیث کې نفلي صدقات مراد دی.زکاة نه دې مراد.

### خپل هرقسمه غلام ته د زکاةورکولو عدم جواز

قَالَ (وَلَا يَدْفَعُ إِلَى مُكَاتَبِهِ وَمُدَبَّرِهِ وَأُمِّ وَلَدِهِ) ونه به وروکوي خپل مدبر اومکاتب اوام ولد ته

تشریح:- **عدم جواز اعطاء الزکاة الی غلامه**۞مسئله داده.چه خپل مدبر ته هم زکاة ورکول جائزدې.مدبرکه مطلق وي،اوکه مقید وي.مدبر مطلق هغه دې.چه ده ته آزادي مالك په خپل مرګ سره معلق کړې وي. مثلاً وې وئیل.چه ته زما د مرګ نه روسته آزاد ئې.او مدبر مقید هغه دې.چه ده ته مولا آزادي په خپل یوخاص ډول مرګ باندې معلق کړې وي.مثلاً ونیلې ئې وي.چه که په فلانکئ بیمارئ کې مړشوم.نوته آزاد یې.او خپل مکاتب او خپل ام ولد ته هم زکاة ورکول ناجائزدی.

لِفُقْدَانِ التَّمْلِيكِ إِذْ كَسْبُ الْمَمْلُوكِ لِسَيِّدِهِ د تملیك د فقدان په وجه.ځکه چې دمملوك ګټه دده دمالك وي وَلَهُ حَقٌّ فِي كَسْبِ مُكَاتَبِهِ فَلَمْ يَتِمَّ التَّمْلِيكُ اود مالك دخپل مکاتب په ګټه کې حق دې نوتملیك تمام نه دې.

دلیله۞ دلیل دادې.چه په دې درې واړو کې تملیك اونه موندې شو.ځکه چې مدبر او ام ولد ،من کل وجه،مملوك وي.اود مملوك ګټه د مولا لپاره وي.اود مکاتب په ګټه کې د مولا حق وي.نودوی ته زکاة ورکول داسې دی لکه چې خپل خان ته ورکول.اود خپل مال زکاة په خپله خپل ځان ته ورکولوسره نه



ادا کیږي.ځکه چې د زکاة ادا کاوه لپاره د غیرمالك کول شرط دی.اودا معنی دلته موجود نشوه.په دې وجه دوی ته زکاة ورکول ټیك نه دی.

### د څینې‌آزاد شوي غلام ته زکاةورکول

وَلَا إِلَى عَبْدٍ قَدْ أُعْتِقَ بَعْضُهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (1) اونه داسې غلام ته چې دکوم څه حصه چې آزاده شوې وي.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد.

تشریح:- **المذهبان فی اعطاء الزکاة لاعتاق البعض**۞ د مسئله صورت دادې.چه یوغلام د دوې [دوه] کسانو په مینځ کې مشترك دې.په دوی کې یوخپله برخه آزاده کړه.اودا آزادونکې تنګدست (غریب)دې.نو دوهم شریك خپله برخه ازاده کړي.یاپه غلام باندې مزدوري اوکړي اود خپلې برخې قیمت وصول کړي. که دوهم شریك دخپلې برخې قیمت اخستل اختیارکړل.① نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دا غلام د دې بل شریك په حق کې د مکاتب په منزله کې دې.② اود صاحبینو رحمهما الله په نیز آزاد دې.خو دده قرضدار دې.

ثمرة الاختلاف۞ نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزچونکه دا غلام د بل شریك په حق کې په منزله د مکاتب دې.اوخپل مکاتب ته زکاة ورکول جائزنه دې.په دې وجه ددې بل شریك لپاره خپل دې غلام ته زکاة ورکول جائزنه دې.اود صاحبینو رحمهما الله په نیزچونکه دا غلام پوره په پوره واړه آزاد شوې دې.خوددې دوهم شریك قرضداردې.په دې وجه دا دوهم شریك که ده ته زکاة ورکول اوغواړي.نو شرعاً جائزدې.

لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْمُكَاتَبِ عِنْدَهُ ځکه چې دهغه دده په نزد پشان د مکاتب دې. وَقَالَا: يَدْفَعُ إِلَيْهِ اوصاحبین رحمهما الله فرمائي.چه ورکوی به ورته لِأَنَّهُ حُرٌّ مَدْيُونٌ عِنْدَهُمَا ځکه چې دغه آزاد مقروض دې ددوی په نزد.

نظیره۞ ځکه چې دا داسې شو.لکه چې څوك خپل قرضدارته د خپل مال زکاة ورکړي.بیا هم ددې مال نه خپل پور وصول کړي.نوبه دې کې هیڅ باك نشته.دغه ډول د شریك آخر لپاره جائزدی.چه دې د خپل مال زکاة دې ،معتق البعض،غلام ته ورکړي.

### د توانګر غلام او ځوی ته زکاةورکول

وَلَا يَدْفَعُ إِلَى مَمْلُوكِ غَنِيٍّ اونه به ورکوی دمالداره غلام ته. لِأَنَّ الْمِلْكَ وَاقِعٌ لِمَوْلَاهُ ځکه چې ملك دده دا مالك لپاره واقع کیږي.

تشریح:- **عدم اعطاء الزکاة الی غلام الغني**۞مسئله داده.چه د مالداره مملوك ته زکاة ورکول جائزنه دې.مملوك که غلام محض وي.اوکه مدبر،اوکه ام ولد وي.دلیل دادې.چه د مملوك هرمال د مولا ملك وي.نوکه د مالداره مملوك ته زکاة ورکړې شو.نودا د زکاة مال به د مالداره په ملك کې داخل شي

تشریح:- .اود غني لپاره زکاة جائز نه دې.په دې وجه به دده د مملوك لپاره هم جائز نه وي.د مالداره مکاتب ته زکاة ورکول جائزدی.او وجه د جواز نص قرآني {وَفِي الرِّقَابِ} دې.

وَلَا إِلَى وَلَدِ غَنِيٍّ إِذَا كَانَ صَغِيرًا ونه به ورکوی دمالداربچی ته کله چې هغه نابالغ وي. لِأَنَّهُ يُعَدُّ غَنِيًّا بِيَسَارِ أَبِيهِ ځکه چې دغه دخپل پلار په مال کې غني شمارلې شي.

تشریح:- **عدم جواز اعطاءالی ولد الغني**۞دویمه مسئله داده.چه د مالداره نابالغ بچی ته هم زکاة ورکول جائز نه دي.ځکه چې نابالغه اولاد د خپل پلار د مال په وجه مالداره شمارلې شي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ كَبِيرًا فَقِيرًا په خلاف د د هغې چې کله بالغ فقیر وي لِأَنَّهُ لَا يُعَدُّ غَنِيًّا بِيَسَارِ أَبِيهِ وَإِنْ كَانَتْ نَفَقَتُهُ عَلَيْهِ

---

(1) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الدرى لمختار(۲/۷۰) وخلاصة الفتاوى (۱/۲۴۲) والهندية (۱/۱۹۱) نقلاً عن القول الراجح (۱/۱۸۷)..

ځکه چې دې غنی نشي شمارلې دپلار په مالدارۍ سره. اګر چې دده نفقه په پلار وی

**تشریح:** - اوکه د مالداره اولاد بالغ وی او فقیران وی.نو زکاة ورکول جائز دی.ځکه چې بالغ اولاد د خپل پلار د مالداره کیدلو په وجه مالداره نه شمارلې کیږی.اګرچه ددوی نفقه ددوی په پلار باندې واجب ده.خو چونکه دې په حقیقت کې پخپله فقیر دې.په دې وجه دوی ته زکاة ورکول جائز دی.

وَبِخِلَافِ امْرَأَةِ الْغَنِيِّ لِأَنَّهَا إِنْ كَانَتْ فَقِيرَةً لَا تُعَدُّ غَنِيَّةً بِيَسَارِ زَوْجِهَا اوپه خلاف د دغنی دښځې نه ځکه چې که ښځه فقیره وه نودخپل خاوند په مالدارۍ سره مالداره نشی شمارلې. وَبِقَدْرِ النَّفَقَةِ لَا تَصِيرُ مُوسِرَةً او د نفقې په مقدار دغه غنی کیدلې نشی.

**تشریح:** - اودغه ډول د مالداره ښځه که فقیره وی.نودې ته هم زکاة ورکول جائز دی.ځکه چې ښځه،د خپل خاوند په مالداره کیدلو سره مالداره نه شمارلې کیږی.اوپاتې شود نفقه مقدار،نودا هغه نشی مالداره کولې.یعنی د نفقه په مقدارسره ښځه نه مالداره کیږی.په دې وجه زکاة ورکول دې ته هم ټیک دې.

### بنوهاشم ته د زکاة ورکولو حکم

وَلَا يُدْفَعُ إِلَى بَنِي هَاشِمٍ اوزکاة به نه ورکوی بنوهاشم ته لِقَوْلِهِ ﷺ {يَا بَنِي هَاشِمٍ إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى حَرَّمَ عَلَيْكُمْ غُسَالَةَ النَّاسِ وَأَوْسَاخَهُمْ} ځکه چې د نبی کریم ﷺ ارشاد د چې ای بنو هاشم الله ﷻ حرام کړی دی په تاسو وینځلې شوې اوبه د خلګو او خیری ددوی. وَعَوَّضَكُمْ مِنْهَا بِخُمُسِ الْخُمُسِ[1] او ددې په بدله ئې تاسو لره پنځمه دخمس درکړه

**حل اللغة*** ① غساله: دهون ② اوساخ: کوټ (خیرې) ③ عوضکم: په بدله کې ورکول

**تشریح:** - **عدم جواز اعطاء الزكاة الى بنى هاشم**۞ بنوهاشم ته هم زکاة ورکول جائز نه دی.دلیل د رسول الله ﷺ ارشاد دې.علامه ابن الهمام رحمه الله دا حدیث په دې الفاظوسره ذکرکړې دې. «يابنى هاشم إن الله كره لكم غسالة أيدى الناس وأوساخهم وعوضكم منها بخمس الخمس» یعنی ای بنوهاشم الله تعالی ستاسو لپاره د خلګ ود لاسونو وینځلې شوې (اوبه) اود هغې کوټ (خیرې) ناخوښه کړې دې.اود هغې په عوض کې ئې ستاسو لپاره د خمس، خمس درکړې دې.یعنی دمال غنیمت د پنځوحصو نه څلورحصې خو په غازیانوکې تقسیمیږی .اوپاتې شوه یوه حصه، نوددې به بیا پنځه برخې کولې شی.یه دې کې یوه برخه خود بنوهاشم ده.او پاته څلور برخې به په نورو مصارفو کې خرچ کولې شی.

بِخِلَافِ التَّطَوُّعِ بِالْمَاءِ لِأَنَّ الْمَالَ هَاهُنَا كَالْمَاءِ يَتَدَنَّسُ بِإِسْقَاطِ الْفَرْضِ پخلاف دنفلی صدقو نه.ځکه چې مال دلته پشان اوبو دې چې خیرنې شی په اسقاط دفرضو. أَمَّا التَّطَوُّعُ فَبِمَنْزِلَةِ التَّبَرُّدِ پاتې شوه نفلی صدقه نودغه پشان د هغو اوبو دې چې یخوالۍ پرې حاصل شی.

**حل اللغة*** ① يتدنس: خیرن کیدل

**تشریح:** - **جوازاعطاء الصدقة التطوع الى بنى هاشم**۞ په خلاف د نفلی صدقاتوچه دا بنوهاشم ته ورکولې شی.دلیل دا دې.چه مال دلته کې د اوبو په شان دې.نوکه اوبه د فرض ساقطولو لپاره یعنی د حدث لرې کاوه لپاره استعمال کړې شی.نو اوبه ګنده شمارلې شی.دغه ډول کوم مال چې د فریضه ساقطولو لپاره استعمال کړې شی.هغه به هم دخیرونه ډك اوګنده شمارلې شی.اوکه څوك غیرمحدث وی.اودې بیا د یخوالی حاصلولو لپاره اوبه استعمال کړی.نودا اوبه پاکې او مطهرې دی.تردې چې په دې اودس کول هم جائز

[1] غربه الزيلعى رحمه الله بهذا اللفظ ثم ذكرحديث عبدالمطلب بن ربيعه مرفوعاً إن هذه الصدقات إنما هى أوساخ الناس وأنها لا تحل لمحمد وى لآل محمد الحديث (نصب الرأية (۴۲۰/۲))_



دې.دغه ډول د نفلی صدقاتومال هم پاك دې.د بنوهاشم لپاره ددې اخستل جائزدې.

### د بنوهاشم مصداق

قَالَ وَهُمْ آلُ عَلِيٍّ وَآلُ عَبَّاسٍ وَآلُ جَعْفَرٍ وَآلُ عَقِيلٍ وَآلُ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ اوبنو هاشم، آل علی،آل عباس او آل جعفراو آل دعقیل او آل دحارث بن عبدالمطلب وَمَوَالِيهِمْ او ددوی موالی دی.

**تشریح:** - من هم بنو هاشم۞ په دې عبارت کې خودلې شوې دی.چه بنوهاشم کوم خلګ دی.نو فرمائی.چه دحضرت علی رضی الله عنه اولاد که د فاطمه رضی الله عنها د بطن نه وی.اوکه د نورو بیبیانو د بطن نه وی.اوپه خپله حضرت علی رضی الله عنه هم په بنوهاشم کې داخل دې.اود حضرت عباس رضی الله عنه اولاد سره د عباس رضی الله عنه نه.اوجعفر رضی الله عنه اود جعفر رضی الله عنه اولاد،او عقیل رضی الله عنه اود عقیل رضی الله عنه اولاد ،اوحارث بن عبدالمطلب رضی الله عنه او ددوی اولاد ،اوددوی آزاد شوی غلامان واړه بنوهاشم کې داخل دی.

أَمَّا هَؤُلَاءِ فَلِأَنَّهُمْ يَنْتَسِبُونَ إِلَى هَاشِمِ بْنِ عَبْدِ مَنَافٍ هرچه دی دا خلګ دا ځکه چې ددوی نسبت کیږی بنوهاشم بن عبدمناف ته وَنِسْبَةُ الْقَبِيلَةِ إِلَيْهِ اودقبیلې نسبت په اړخ دهاشم دې

**تشریح:** - **دلیله**۞ ذکرشوی حضرات او ددوی اولاد بنوهاشم په دې وجه دی.چه دا واړه حضرات د نبی کریم ﷺ جد اعلی هاشم بن عبدمناف اړخ ته منسوب دی.اوقبیله بنوهاشم، د هاشم بن عبد مناف اړخ ته د منسوب کیدلو په وجه ورته هاشمی وئیلې شی.

وَأَمَّا مَوَالِيهِمْ فَلِمَا رُوِيَ {أَنَّ مَوْلَى لِرَسُولِ اللَّهِ سَأَلَهُ أَتَحِلُّ لِي الصَّدَقَةُ؟ پاتې شو ددوی موالی.نوځه چې روایت دې دحضور نه یوغلام پوښتنه اوکړه ددوی نه چې ماله صدقه حلاله ده، فَقَالَ: لَا أَنْتَ مَوْلَانَا}[1] دوی اوفرمائیل چې نا.ته زموږ موالی یې

**تشریح:** - او ددوی موالی یعنی آزاد شوی غلامانو ته هاشمی په دې وجه وئیلې شی.چه په ابوداؤد کې تفصیلی روایت موجود دې. «عن أبى رافع مولا رسول الله ﷺ أن النبى ﷺ بعث رجلاً من بنى مخزوم على الصدقة فقال لأبى رافع أصحبنى فإنك تصيب منها قال حتى آتى ألنبى ﷺ فأسله فأتاه فسأله. فقال مولا القوم من أنفسهم وأنا لاتحل لنا الصدقة» د نبی کریم ﷺ آزاد شوې غلام ابورافع نه روایت دې.چه رسول الله ﷺ د بنومخزوم یوکس د صدقاتو په وصولولو باندې عامل مقرر کړو.ده ابورافع ته اووئیل.چه ماسره لاړ شه.چه د صدقاتو نه تاته هم ملاؤشی.ابورافع اووئیل چه نه،تردې چې زه نبی کریم ﷺ ته لاړ شم،اوپوښتنه اونکړم.بیا ابورافع په دربار رسالت کې حاضرشو.پوښتنه ئې اوکړو.(چه ماله صدقه حلاله ده ؟)نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه د یوقوم مولا (غلام) هم د هغه قوم کس وی.اوموږ خلګو ته صدقه حلاله نه ده.یعنی دبنوهاشم موالی هم چونکه په بنوهاشم کې ګڼه دی.په دې وجه د بنوهاشم په شان ددوی لپاره هم صدقه حلال نه ده.

**جواز اخذ الصدقة لاولاد ابى لهب**۞ ددې خبرې لحاظ به ساتلې شی.چه ابولهب چې د نبی کریم ﷺ اکا دې .اود هاشم بن عبد مناف په اولاد کې دې.که دده په اولادکې څوك مسلمان وی.نودده لپاره صدقه حلاله ده.ځکه چې د بنوهاشم لپاره صدقه ددوی د اکرام په لحاظ سره حرام شویده.اودا اکرام خو ړومبې د آباء (نیکونو) لپاره ثابت دې.بیاددوی په وجه ددوی د اولاد لپاره ثابت دې.اود بنوهاشم اکرام په دې وجه ضروری شوې دې.چه دوی د جاهلیت اود اسلام په زمانه کې د رسول اکرم ﷺ نصرت اومدد کړې دې. اوبدبخت ابولهب معصوم نبی ﷺ ته اذیت ناك تکلیفونه رسولی دی.په دې وجه نه دې د اکرام مستحق دې. اونه دده اولاد د اکرام مستحق دې.اګرچه دده اولاد مسلمان وی.په دې وجه دده د مسلمان اولاد لپاره هم صدقه حلاله ده.

[1] من حديث أبى رافع مولى رسول الله ﷺ أخرجه أبوداود فى الزكاة باب ۲۹ رقم ۱۶۵۰ والترمذى فى الزكاة باب ۲۵ رقم ۶۵۷ والنسائى فى الزكاة باب ۹۷ رقم)_

بِخِلَافِ مَا إِذَا أَعْتَقَ الْقُرَشِيُّ عَبْدًا نَصْرَانِيًّا پخلاف د هغې چې قريشي خپل نصراني غلام آزاد كړو. حَيْثُ تُؤْخَذُ مِنْهُ الْجِزْيَةُ چې ددې آزاد شوى نه جزيه اخستلې شى وَيُعْتَبَرُ حَالُ الْمُعْتَقِ لِأَنَّهُ الْقِيَاسُ وَالْإِلْحَاقُ بِالْمَوْلَى بِالنَّصِّ وَقَدْ خَصَّ الصَّدَقَةَ او آزاد شوى حال به معتبر وى ځكه چې دا قياس دې. اود موالى سره ملحق كول په وجه د نص دى اونص صدقې لره خاص كړې ده.

**تشريح:- الاعتراض** ۞ دا عبارت د سوال ځواب دې. سوال دادې. چه په حديث كې وئيلې شوې دى. چه د قوم مولا(آزاد شوې غلام) هم په هغه قوم كې شمارلې شى. نوددې قاعدې مطابق كه كوم قريشى غيرمسلم آزاد كړلو. نوپه دې غلام جزيه واجبول نه دى پكار. ځكه چې په قريشى جزيه نه واجبيږى. حالانكه د قريشى آزاد شوې نصرانى غلام باندې جزيه واجب كړې شويده.

**الجواب** ۞ د معتق (بفتح التاء) يعنى د آزاد شوې غلام د حال اعتباردې. ځكه چې قياس هم دادې. چه آزاد شوې غلام د آزادونكى سره په هيڅ حالت كې هم شمارنه كړې شى. ځكه چې دواړه بنفسه(دخپل نفس په اعتبار)سره اصل دى. ځكه چې دواړه بالغ دى. عاقل دى. او آزاد دى. اود شريعت مكلف دى. اوپاتې شو داچه په حرمت د صدقه كې آزادشوې غلام د مولا يعنى آزادونكى سره ولې لاحق(شمار)كړې شوې دې. نوددې ځواب دادې. چه دا الحاق خلاف قياس په نص «مولى القوم أنفسهم» سره ثابت دې. په دې وجه به دا په خپل مورد باندې منحصروى. ددې ځخه به نه متجاوز كيږى.

## مستحق ګڼل او زكاة وركول

قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللهُ: امام ابوحنيفه اوامام محمد رحمهما الله فرمائى إِذَا دَفَعَ الزَّكَاةَ إِلَى رَجُلٍ يَظُنُّهُ فَقِيرًا ثُمَّ بَانَ أَنَّهُ غَنِيٌّ أَوْ هَاشِمِيٌّ أَوْ كَافِرٌ أَوْ دَفَعَ فِي ظُلْمَةٍ فَبَانَ أَنَّهُ أَبُوهُ أَوْ ابْنُهُ فَلَا إِعَادَةَ عَلَيْهِ ([1]) هركله چې زكاة وركړو يوسړى ته چې ګمان ئې پرې د فقير وو. بيا ښكاره شوه چې هغه غنى وو يا هاشمى وو ياكافر وو يا ئې په چاغه كې وركړو نو ظاهره شوه چې هغه دده پلار يا ئې ځوئې وو. پده اعاده نشته دې.

**تشريح:- الصور الثلاث فى اعطاء الزكاة الى غير المستحق** ۞ مسئله داده. چه يوكس څوك د زكاة مصرف اوګڼلو او زكاة ئې وركړو. نو اوس ددې درې صورتونه دى. ① دا چې روسته معلوم شو. چه چاته ئې زكاة وركړې دې. هغه د زكاة مصرف دې. ② داچه مزكى(زكاة وركونكى) ته دده حال قطعاً معلوم نشو. چه چاته زكاة وركړې شوې دې. دا د زكاة مصرف دې اوكه نه. ③ داچه مزكى ته معلوم شو. چه چاته زكاة وركړې شوې دې. دا د زكاة مصرف نه دې. مثلاً چاته چې د زكاة د مصرف په خيال زكاة وركړې شوې دې. هغه مالداره دې. يا هاشمى كورنۍ سره تعلق ساتى. ياكافر دې. يا د مزكى پلاردې يا دده زوې دې. په ړومبو دوې (دوه) صورتونوكې به په اتفاق سره زكاة ادا وى.

**الصورة الثالثة** ۞ اوپه دريم صورت كې د طرفينو رحمهما الله په نيز خوجائزدې. ① د طرفينو رحمهما الله په نيز به په دې صورت كې دوباره زكاة وركول لازمى نه وى. بلكه كوم چې وركړې شوې دى. هم هغه كافى دې.

وَقَالَ أَبُويُوسُفَ عَلَيْهِ الْإِعَادَةُ) او امام ابويوسف رحمه الله فرمائى چې پده اعاده لازمه ده. لِظُهُورِ خَطَئِهِ بِيَقِينٍ وَإِمْكَانِ الْوُقُوفِ عَلَى هَذِهِ الْأَشْيَاءِ س ځكه چې دده خطاء په يقين ظاهره شوه. اود خبريدو د ممكن كيدو په امله سره پدې څيزونو

**تشريح:-** او امام ابويوسف رحمه الله فرمائى. چه په دې صورت كې به زكاة ادا نه وى. بلكه په مزكى به دوباره زكاة وركول لازم وى. او مزكى چې كوم مال د زكاة په طور وركړې دې. هغه به د هغه نه واروسته نه اخلى.

[1]) القول الراجح هو هذا قول أبى حنيفة ومحمد رحمهما الله كذا فى العناية (۲\۲۱٤) وردالمحتار(۲\٧٤) والبحرالرائق (۲\۲٤۸) والهندية (۱\۱۹۰) والفقه الإسلامى وأدلته (۲\۸۸۲) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۸۸)_



**دليل ابى يوسف رحمه الله** ۞ د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې. چه مزكى ته په يقين سره معلوم شوې دى. چه ما په زكاة ادا كاوه كې غلطى كړيده. او زكاة مې په غير مصرف كې وركړې دې. اود مزكى لپاره په دې څيزونو خان خبرول، چه چاته مې زكاة وركړې دې. هغه مالداره دې اوكه نه دې. هاشمى دې اوكه غيرهاشمى دې. كافر دې اوكه مسلمان دې. دده پلار يا زوې دې اوكه نه دې، ممكن هم وو. نو هركله چې په دې څيزونو باندې خبريدل ممكن وو. او مزكى ته په يقين سره د خپلې غلطۍ علم هم اوشو. نو وئيلې به شى. چه د زكاة مصرف د نه موجوديدلو په وجه دده زكاة ادا نشو. اوچه زكاة ادا نشو. نوددې اعاده به واجب وى.

وَصَارَ كَالْأَوَانِي وَالثِّيَابِ اودا د لوښو اوجامو پشان شو.

**تشريح:- نظيريه** ۞ اودا بالكل داسې دې. ① لكه چې لوښې د ناپاكه لوښو سره ملاؤشى. چا تحرى اوكړه. اود يو لوښى په اوبو سره ئې اودس اوكړو. بيا ښكاره شوه. چه ددې لوښې اوبه ناپاكه وې. نوپه دې سې صورت كې د اودس اعاده لازم ده. ② دغه ډول كه پاكې كپړې د ناپاكه كپړوسره ملاؤ شوې. اوڅه داسې علامت هم نشته. چه په هغې سره ددې پاك يا ناپاك كيدل معلوم شى. نوپه دې كس د لمونځ اعاده واجب ده. امام ابويوسف رحمه الله فرمائى. چه څنګه په دې دواړه صورتونوكې د اودس اود لمونځ اعاده لازمى ده. دغه ډول د زكاة په مسئله كې به د زكاة اعاده هم لازمى وى. اوپه غيرمصرف كې وركړې شوې مال به واروسته په دې وجه نه اخلى. چه د زكاة د فاسد كيدلوجهت(وجه) ادا نشى ماتولې. نو ړومبۍ ادا به په خپل حال پاته پاتې وى. خود ادا كاوه د طريقې فاسدكيدلو په وجه به په ده دوباره زكاة وركول لازمى وى.

وَلَهُمَا حَدِيثُ مَعْنِ بْنِ يَزِيدَ فَإِنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَالَ فِيهِ {يَا يَزِيدُ لَكَ مَا نَوَيْتَ، وَيَا مَعْنُ لَكَ مَا أَخَذْتَ} ([1]) دطرفينو رحمهما الله دليل حديث د معن بن يزيد رضى الله عنه دے چې نبى كريم ﷺ ورته پدې اړه كې اوفرمائيل. اې يزيده تالره دى هغه چې تا نيت كړې دې اواې معنه تالره هغه چې تا اخستل وَقَدْ دَفَعَ إِلَيْهِ وَكِيلُ أَبِيهِ صَدَقَتَهُ اوور كړل ده ته وكيل دپلاردده صدقه دهغه. وَلِأَنَّ الْوُقُوفَ عَلَى هَذِهِ الْأَشْيَاءِ بِالِاجْتِهَادِ دُونَ الْقَطْعِ اوځكه چې پدې څيزونو خبردارې په ذريعه د اجتهاد ده نه كه په قطعى طور. فَيُبْتَنَى الْأَمْرُ فِيهَا عَلَى مَا يَقَعُ عِنْدَهُ نو بناء دكار به پدې څيزونو كې پدې اجتهاد وى كوم چې دده په نزد واقع وى

**تشريح:- دليل الطرفين** رحمهما الله ۞ د طرفينو رحمهما الله دليل د امام بخارى رحمه الله دبيان مطابق د معن بن يزيد حديث دې. علامه ابن الهمام رحمه الله په فتح القديركې او ملاعلى قارى رحمه الله په شرح نقايه كې دا حديث په دې الفاظوسره ذكركړې دې. «عن معن بن يزيد قال بايعت رسول الله ﷺ أنا وأبى وجدى وخطب على فأنكحنى وخاصمت إليه وكان أبى يزيد أخرج دنانير يتصدق بها فوضعها عند رجل فى المسجد فجئت فأخذتها فأتيته بها فقال والله ما إياك أردت فخاصمته إلى رسول الله ﷺ فقال لك ما نويت يا يزيد ولك ما أخذت يا معن(بخارى)» معن بن يزيد وائى. چه ما او زمامور او پلار او زما نيكه رسول الله ﷺ سره بيعت اوكړو. اوهم دوى زما د نكاح پيغام وركړه. اوهم دوى زما نكاح اوكړه. اوما په يوه مسئله كې دوى سره مخاصمه (جګړه) اوكړه. (معن بن يزيد دخپل تعارف نه روسته اوفرمائيل)چه زماپلار يزيد د اشرفو يوه تهيلۍ راويستله. چه داصدقه كړى. نودا ئې په جومات كې يوكس سره كيخودله. بياما دغه اشرفۍ راواخستلې. او راغلم. (زما پلار يزيد)اووئيل. چه والله ما ستا نيت نه ووكړې. نوما دا معامله په دربار رسالت كې پيش كړله. نونبى كريم ﷺ اوفرمائيل. اې يزيده! ستا لپاره هغه ثواب دې. كوم چې تا نيت كړې دې. او اې معن ستا لپاره دا اشرفۍ دى. كومې چې تا راخستې دى.

**الاستدلال** ۞ په دې حديث كې يزيد ته د دوباره كاوه او معن ته د واروسته كولوحكم نه دې وركړې. حالانكه معن ته دده د پلار(يزيد)وكيل د پلار صدقه وركړې وه. ددې حديث نه معلومه شوه. چه كه روسته په غيرمصرف كې د زكاة وركاوه علم اوشو. نوپه مزكى به د زكاة اعاده واجب نه وى. بلكه ړومبې زكاة به ادا

[1]) من حديث معن رضى الله عنه أخرجه البخارى فى الزكاة باب ۱۵)_

شمارلې شي.كه څوك دا اووائي.چه ممكن ده.يزيد نفلي د صدقه اشرفۍ وركړې وي.اونفلي صدقه د خوئ لپاره جائزده.نودا حديث د طرفينو رحمهما الله مستدل څنګه كيداې شي.نوددې ځواب دادې.چه بې شكه چې دا احتمال شته.خود رسول اكرم ﷺ په قول «لك مانويت» كې د ماموصوله په وجه عموم دې. يعنى د هرنيت صدقه كي جواز دې.يعنى د هرنيت په صدقه كې جواز دې.يعنى كه د نفلي صدقه نيت اوكړي.نوددې ثواب به ملاويږي.اوكه د زكاة(مفروضه صدقه)نيت اوكړي.نوددې ثواب به ملاويږي.

| |
|---|
| كَمَا إِذَا اشْتَبَهَتْ عَلَيْهِ الْقِبْلَةُ لكه هغه وخت چې په لمونځ كونكى قبله مشبه شي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ فِي غَيْرِ الْغَنِيِّ أَنَّهُ لَا يُجْزِيهِ اوداما صاحب رحمه الله نه دغنى نه په علاوه كې روايت دې چې نه ده جائز. او ظاهر روايت وَالظَّاهِرُ هُوَ الْأَوَّلُ اولنى دې. |

**تشريح:- الدليل الثاني لطرفين** ۞ د طرفينو رحمهما الله د دوهم دليل اود امام ابويوسف رحمه الله د دليل ځواب دا دې.چه په ذكرشوې څيزونو باندې معلومات حاصلول ممكن دى.داخبره منو.خوددې څيزونو علم به د ظن غالب په طوروى.د يقين په طوربه نه وي.ځكه چې داخبره ډيره مشكله ده.چه په قطعي طور دچا محتاجي معلومه كړې شي.نوبه دې څيزونوكې د حكم بنا (بنياد) به هم په هغه اجتهاد اوظن غالب باندې وي.كوم چې دده په نيز واقع شي.تردې كه دده په نيز دا اعتقاد واقع شو.چه داكس فقيردې.نوده ته به د زكاة په وركاوه سره د الله تعالى دحكم اطاعت اوشي.او زكاة به ادا شي.

| |
|---|
| وَهَذَا إِذَا تَحَرَّى فَدَفَعَ اودا هغه وخت چې ده تحرى اوكړه او ورېئ كړه وَفِي أَكْبَرِ رَأْيِهِ أَنَّهُ مَصْرِفٌ، أَمَّا إِذَا شَكَّ وَلَمْ يَتَحَرَّ أَوْ تَحَرَّى فَدَفَعَ، وَفِي أَكْبَرِ رَأْيِهِ أَنَّهُ لَيْسَ بِمَصْرِفٍ لَا يُجْزِيهِ پخپل غالب رائې چې دا مصرف دې.اوكه ده شك اوكړو اوتحرى ئې اونكړه يا ئې تحرى اوكړه نو ورئې كړه او غالب ګمان ئې دا وو چې دا مصرف نه د.نوجائز نه ده. إِلَّا إِذَا عَلِمَ أَنَّهُ فَقِيرٌ هُوَ الصَّحِيحُ مګر كله چې دا ظاهر شو چې هغه فقير دې.دا صحيح ده. |

**تشريح:- نظيره** ۞ اودا داسې ده.لكه چې په لمونځ كونكى باندې د قبله اړخ مشتبه شي.بيا ده تحرى اوكړه.او لمونځ ئې اوكړو.نودده لمونځ اداشو.اګرچه روسته معلوم شي.چه ده صحيح اړخ ته مخ كولوسره لمونځ نه دې كړې.ځكه چې ددې بنا (بنياد) په اجتهاد دې.په يقين باندې نه دې.نوڅنګه چې تحرى واقع شى.هغه اړخ ته به لمونځ اداوى.دغه ډول زكاة اداشو.اګرچه روسته معلومه شى.چه چاته زكاة وركړې شوې دې.هغه د زكاة مصرف نه وو.

**الروايتان عن ابى حنيفة فى اعطاء الزكاة الى الغنى** ① ۞ د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دا دې.چه د زكاة وركاوه نه روسته دا ښكاره شي.چه چاته زكاة وركړې شوې دې.هغه مالداره دې.نو زكاة ادا شو.دوباره د وركاوه اړتيا نشته.اوكه ښكاره شي.چه چاته زكاة وركړې شوې دې.هغه هاشمي دې.يا كافردې.يادده پلاردې.يادده زوې دې.نو زكاة ادا نشو.بلكه ددې اعاده ضروري ده.ددې رائې دليل دا دې.چه غنى فى الجمله د زكاة مصرف دې.لكه عامل او ساعى اګرچه مالداره وي.دوى ته زكاة وركول جائزدى.خو هاشمي كافر،د مزكى پلار اودده ځوئې قطعاً د زكاة مصرف نه دې.په دې وجه كه مالداره فقيراوګڼړي.او زكاة وركړي.نوزكاة به اداوى.ځكه چې توانګر فى الجمله د زكاة مصرف دې.اوپه پاته صورتونوكې به زكاة ادا نه وي.ځكه چې هاشمي او كافر وغيره په هيڅ حال كې هم د زكاة مصرف نه دې.صاحب د هدايه رحمه الله فرمائى.چه ظاهرالرواية ړومبې قول دې.يعنى په ټولو صورتونوكې زكاة ادا شو.چه كله ده مصرف ګڼړلې وي.او زكاة ئې وركړې وي.

**جواز اداء الزكاة بعد التحرى** ۞ صاحب د هدايه رحمه الله فرمائى.چه په غيرمصرف كې زكاة وركولوسره د زكاة اداكيدل هغه وخت دى.چه كله زكاة وركونكى تحرى كړې وي.او زكاة ئې وركړې وي.اودده غالب ګمان داوو.چه داكس د زكاة مصرف دې.اوكه مزكى ته شك وي.چه د زكاة مصرف دې.اوكه نه دې.خوددې باوجود ئې تحرى اونكړه.بلكه بغير د تحرى نه ئې هغه ته زكاة وركړو.يا تحرى ئې اوكړه.او زكاة ئې وركړو.خوغالب



ګمان ئې داوو.چه داد زكاة مصرف نه دې.نوپه دې دواړوصورتونوكې به زكاة ادا نه وي.خوكه روسته ښكاره شي.چه چاته ئې زكاة وركړې دې.هغه فقير دې.نو زكاة به اداشي.اوهم دا صحيح قول دې.

## خپل مكاتب يا غلام ته زكاة وركول

| |
|---|
| وَلَوْ دَفَعَ إِلَى شَخْصٍ ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ عَبْدُهُ أَوْ مُكَاتَبُهُ لَا يُجْزِيهِ كه چاته ئې زكاة وركړو بيا معلومه شوه چې دا دده غلام دې.يا ئې مكاتب دې.نونه دې ادا شوې |

**تشريح:- عدم جواز الزكاة الى المكاتب والغلام** ۞ مسئله داده.چه يوكس بغيرد شناخت نه يوكس ته زكاة وركړو.بيا معلومه شوه.چه چاته ئې زكاة وركړې دې.هغه دده غلام دې.يادده مكاتب دې.نودده دا زكاة به ادا نه وي.

| |
|---|
| لِانْعِدَامِ التَّمْلِيكِ لِعَدَمِ أَهْلِيَّةِ الْمِلْكِ وَهُوَ الرُّكْنُ عَلَى مَا مَرَّ. ځكه چې اهليت دملك نشته.د امله دعدم اهليت د تمليك،حال دادې چې تمليك ركن دې لكه چې تير شو. |

**تشريح:- دليله** ۞ ځكه چې په غلام كې د ملك اهليت نشته.په دې وجه تمليك بالكل موجود نه دې.حالانكه د زكاة ادا كاوه ركن تمليك(مالك كيدل)دې.اومكاتب چونكه رقبةً مملوك دې.اګرچه يداً آزاد دې.نوپه يو اعتبارسره مكاتب،او دده د مال مالك هم مولا دې.په دې وجه خپل مكاتب ته زكاة وركولوكې تمليك موجود شو.خو ناقص تمليك اوموندې شو.حالانكه د زكاة ادا كاوه ركن كامل تمليك دې.ناقص تمليك نه دې.

## صاحب نصاب ته زكاة وركول

| |
|---|
| وَلَا يَجُوزُ دَفْعُ الزَّكَاةِ إِلَى مَنْ يَمْلِكُ نِصَابًا وجائز نه دى وركول دزكاة هغه چاته چې مالك دنصاب وي. مِنْ أَيِّ مَالٍ كَانَ اګر چې د هرچا مال نه چې وي. |

**تشريح:- عدم جواز اداء الزكاة الى مالك النصاب** ۞ مسئله داده.كه څوك د نصاب په مقدار مالك شو.كه داد سرو اوسپينو زرو نصاب وي.اوكه د څاروو صاب وي.اوكه د نوروسامانونو نصاب وي.اوكه د مال، كه نامي وي.او كه غيرنامي.

| |
|---|
| لِأَنَّ الْغِنَى الشَّرْعِيَّ مُقَدَّرٌ بِهِ ځكه چې شرعى غناء پدې سره مقدر ده. وَالشَّرْطُ أَنْ يَكُونَ فَاضِلًا عَنِ الْحَاجَةِ الْأَصْلِيَّةِ اوشرط دادې چې دحاجت اصلى نه فاضل وي. |

**تشريح:- توضيح الحاجة الاصلية** ۞ په دې شرط چې د حاجت اصليه نه زياتى وي.نوده ته زكاة وركول جائزنه دي.حاجت اصليه لكه چې دده په ذمه پور وي.ياده ته ددې د استعمال اړتيا وي.مثلاً د يو عالم سره دومره قدرې كتابونه وي.چه ددې قيمت د نصاب اندازه ته رسى.خودې ددې كتابونو محتاج دې.اوپه درس تدريس كې پكار راځى.نه دې عالم له زكاة اخستل جائزدى.ځكه جه دې اګرچه د نصاب مال دې. خودا نصاب د حاجت اصليه نه زياتى نه دې.په دې وجه ده له د زكاة اخستل تيك نه دى.

| |
|---|
| وَإِنَّمَا شَرْطُ الْوُجُوبِ اونامى كيدل خوشرط دوجوب دې. |

**تشريح:- السوال والجواب** ۞ اوپاتې شوه داچه صاحب نصاب ته د زكاة وركولوعدم جواز لپاره د نصاب كيدلوهيڅ شرط اونه لګولې شو.نوددې ځواب دادې.چه د مال نامى كيدل د زكاة دوجوب شرط دې.د زكاة اخستلو لپاره دعدم جواز شرط نه دې.نوكه څوك د نصاب غيرنامى مالك وي.نوپه ده به زكاة خو واجب نه وي.خوچونكه دې د شريعت په نظركې مالداره دې.په دې وجه دده لپاره زكاة اخستل جائزنه دى.

## د نصاب نه كم مالك ته زكاة وركول

| |
|---|
| وَيَجُوزُ دَفْعُهَا إِلَى مَنْ يَمْلِكُ أَقَلَّ مِنْ ذَلِكَ اوهغه ته زكاة وركول جائز دى كوم چې ددې نه دكم (مال) مالك وى وَإِنْ |

كَانَ صَحِيحًا مُكْتَسِبًا اګر چې وی تندرست اوګټه کونکې.

تشریح: - **دفع الزكاة الى مالک اقل النصاب** ① مسئله داده. چه زمونږ په نیزڅوك د نصاب نه دکم مال مالك وی اګرچه تندرست اوګټونکې وی. ده ته زکاة ورکول جائزدی.

لِأَنَّهُ فَقِيرٌ خکه چې دغه فقیر دې. وَالْفُقَرَاءُ هُمُ الْمَصَارِفُ او فقیران مصارف د زکاة دی.

تشریح: - **دليله الاول** ① زمونږ دلیل دادې چه کوم کس د نصاب مالك نه وی. د شریعت په نظرکې دې فقیرشمارلې شی. غنی نشی شمارلې. اود زکاة مصرف فقیران وی. نوهرکله چې داکس شرعاً فقیر دې. نوده ته به زکاة ورکول هم جائز وی.

وَلِأَنَّ حَقِيقَةَ الْحَاجَةِ لَا يُوقَفُ عَلَيْهَا اوخکه چې حقیقت په احتیاج وقوف کیداې نشی. فَأُدِيرَ الْحُكْمُ عَلَى دَلِيلِهَا وَهُوَ فَقْدُ النِّصَابِ نو حکم ئې ددې په دلیل دائرکړو. اودغه د نشت والې د نصاب دې.

تشریح: - **دليل الثاني** دوهم دلیل دادې چه د فقر اومحتاجئ په حقیقت باندې خبریدل خو ډیرزیات ګران دی خکه چې فقر او محتاجی یو پټ امردې. اوقاعده ده. چه کوم امرخفی (پټ) وی نوددې دلیل به ددې قائم مقام ګرځولې شی. په دې دلیل به ددې حکم لګولې شی. لکه چې انزال موجب دغسل دې. خوکه چا دخپلې ښځې سره جماع اوکړه. تردې چې دخول هم موجود شو. خو انزال اونشو. نوپه دې صورت کې هم التقاء د ختانینو د انزال قائم مقام ګرځولې شی. اوپه دې به د غسل د وجوب حکم لګولې شی. اودغه ډول که چا خپلې ښځې ته اووئیلې. «إن كنت تحبيني فأنت طالق» دې خواب ورکړو. «أحبك» یعنی که ته ماسره محبت کوې نو تانه طلاق دې. هغې اووئیل زه ستاسره محبت کوم. نوطلاق به واقع شی. خکه چې محب یومخفی څیز دې نوددې قول ،احبك، قائم مقام ګرځولې شی. او په دې به حکم لګولې شی. دغه ډول فقر امر خفی دې خوددې دلیل یعنی دنصاب کیدل یوښکاره امر دې په دې وجه به دا د فقر قائم مقام ګنړلې شی. او وئیلې به شی چه کوم کس د نصاب مالك نه وی. هغه فقیر دې اوفقیر ته زکاة ورکول جائزدی. نوده ته به هم زکاة ورکول جائز وی.

## د نصاب په برابر زکاة ورکول

وَيُكْرَهُ أَنْ يَدْفَعَ إِلَى وَاحِدٍ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ فَصَاعِدًا ومکروه دی ورکول یوتن ته دوې اودوه سوه درهمه یا ددې نه زیات وَإِنْ دَفَعَ جَازَ وکه ورئې کړل جائز دی.

تشریح: - **المذهبان في اداء الزكاة بقدر النصاب الى شخص واحد** ① مسئله داده چه یوکس ته دوې (اودوه) سوه درهمه یاددې نه زیات د زکاة په طور ورکول مکروه دی په شرط ددې چه نه دده عیال (بال بچ) وی اونه په ده دچا قرضه وی که دې صاحب عیال وی نوده ته دومره مال ورکول، چه که دا (مال) دده په عیال باندې ویش کړې شی نود هریو په برخه کې دوې اودوه سوه درهمونه کم راشی بغیر د کراهته جائز دی. بهرحال چاته دوې اودوه سوه درهمه د زکاة په طور ورکول مکروه دی خوکه ورئې کړو نوسره د کراهته جائزدی.

وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا يَجُوزُ امام زفر رحمه الله فرمائی چه جائز نه دی. لِأَنَّ الْغِنَى قَارَنَ الْأَدَاءَ فَحَصَلَ الْأَدَاءُ إِلَى الْغَنِيِّ خکه چې غنی کیدل د اداء سره متصل شو نواداٸیګی غنی ته شوه.

تشریح: - او امام زفر رحمه الله فرمائیلې دی چه دوې (اودوه) سوه درهمه مال زکاة یوکس ته ورکول جائزنه دی.

**ادليل زفر رحمه الله** د امام زفر رحمه الله دلیل دادې چه هرکله یوفقیر ته دوې (اودوه) سوه درهمه مال زکاة ورکړې شی. نودې به غنی شی نوګویاچه غنی او مالداری د زکاة ادا کاوه مقارن (یوځائې) شو خکه چې اداٸې زکاة علت دې غنی د فقیرئ اوعلت د معلول سره مقارن وی نوچونکه غنی د زکاة اداکولو مقارن دې په دې وجه دا داسې شو ګویاچه اداٸې زکاة د توانګر د اړخه اوشو اومالدار ته زکاة ورکول جائز نه دی په دې وجه دوې



اودوه سوه درهمه مقدار هم چاته په زکاة کې ورکول جائز نه دی.

وَلَنَا أَنَّ الْغِنَى حُكْمُ الْأَدَاءِ فَيَتَعَقَّبُهُ زمونږ دلیل دادې چې غناء حکم د اداء دې. نودا به په هغې پسې وی. لَكِنَّهُ يُكْرَهُ لِقُرْبِ الْغِنَى مِنْهُ خو مکروه دی په وجه د قریب کیدو دغناء د اداء سره. كَمَنْ صَلَّى وَبِقُرْبِهِ نَجَاسَةٌ لکه چا چې لمونځ اوکړو په دې سې حالت کې چې نږدې ورته نجاست وو.

تشریح: - **دليل الاحناف** زمونږ دلیل دادې. چه غنی او مالداری د ادا حکم دې. اوحکم د شئ د شئ نه روسته وی. په دې وجه به غنی او مالداری د ادا نه روسته وی. کله چې غنی کیدل روسته اوشو. اود زکاة اداکول وړمبې اوشول. نود زکاة اداکول د فقیر داړخه اوشو. د توانګر د اړخه نه دی شوی. او هرکله چې د زکاة اداکول د فقیر داړخه اوشو. نو زکاة ادا شو. خوچونکه مالداره کیدل. ادا ته نږدې دی. په دې وجه مکروه دی. لکه چې یوکس نجاست ته نږدې ودریدلو. اولمونځ ئې اوکړو. نولمونځ اداشو. خونجاست ته د نږدې والی په وجه مکروه دې.

## د سوال کولونه مستغنی کولو استحباب

قَالَ: وَأَنْ تُغْنِيَ بِهَا إِنْسَانًا أَحَبُّ إِلَيَّ اوپه صدقې سره یو انسان مستغنی کول زما زیات خوښ دی. مَعْنَاهُ الْإِغْنَاءُ عَنِ السُّؤَالِ يَوْمَهُ ذَلِكَ ددې معنی دسوال نه مستغنی کول دی لِأَنَّ الْإِغْنَاءَ مُطْلَقًا مَكْرُوهٌ خکه چې مطلق غنی کول مکروه دی.

تشریح: - صاحب د هدایه رحمه الله فرمائی. چه د غنا نه هم دا مراد دی. چه په دې ورځ د سوال کولونه بې نیازه شی. خکه چې مطلقاً غنی یعنی د نصاب مالك کول خومکروه دی. لکه چې په تیره شوې مسئله کې دی.

## د یوښار نه بل ته زکاة منتقل کول

قَالَ: (وَيُكْرَهُ نَقْلُ الزَّكَاةِ مِنْ بَلَدٍ إِلَى بَلَدٍ) ومکروه دی د زکاة مال د یوکلی نه بل کلی ته اوړل. وَإِنَّمَا تُفَرَّقُ صَدَقَةُ كُلِّ فَرِيقٍ فِيهِمْ بلکه دهرقوم زکاة به په دوی کې تقسیمولې شی.

تشریح: - **كراهة نقل الزكاة من بلد الى بلد** مسئله داده. چه د زکاة مال د یوښار نه بل ښار ته منتقل کول مکروه دی. بلکه د کوم قوم نه چې زکاة اخستلې شوې دې. هم په هغه قوم کې دا ویش کړې شی.

لِمَا رَوَيْنَا مِنْ حَدِيثِ مُعَاذٍ رضي الله عنه[1] په وجه ددې چې مونږ روایت کړې دې حدیث دمعاذ رضي الله عنه وَفِيهِ رِعَايَةُ حَقِّ الْجِوَارِ او پدې کې دحق د ګاونډیانو رعایت دې.

تشریح: - **دلائله** ① دلیل خود معاذ رضي الله عنه حدیث «خذ من أغنيائهم وترد إلى فقرائهم» دې. یعنی د کوم ځائې د مالدارونه چې زکاة اخستلې شوې دې. هم د هغه ځائې په فقیرانو باندې ویش کړې شی. ② دوهم دلیل دا دې چه د زکاة په نه منتقل کولوکې د ګاونډی توب د حق رعایت دې. اوپه منتقل کولوکې ددې ترک کول لازمیږی.

إِلَّا أَنْ يَنْقُلَهَا الْإِنْسَانُ إِلَى قَرَابَتِهِ مګر داچه یوسی بنده دخپلوانو لپاره أَوْ إِلَى قَوْمٍ هُمْ أَحْوَجُ مِنْ أَهْلِ بَلَدِهِ اویا د یو داسې قوم لپاره چې ددې ښار د خلګ ونه زیات محتاج وی.

تشریح: - **عدم الكراهة** خوکه په دوهم ښار کې څوك رشته دار اوسیږی. یا دبل ښار خلګ دده دښار د خلګو نه زیات محتاجه وی. نومنتقل بغیر دکراهته جائزدی.

لِمَا فِيهِ مِنَ الصِّلَةِ أَوْ زِيَادَةِ دَفْعِ الْحَاجَةِ خکه چې په دې کې صله رحمی ده یا په حاجت روایئ کې زیادتی ده.

---

[1] تقدم تخریجه

تشریح:- دليله ۞ په دې صورت کې عدم کراهت په دې وجه دې چه که په دوهم ښار کې دده رشته دار وی.
ته په زکاة ور کاوه کې د زکاة ثواب نه علاوه صله رحمی هم ده. اوکه دبل ښار خلګ زیات محتاج وی. نو دوی
دې وجه (مکروه نه دې) چه د زکاة مقصود د محتاج حاجت لرې کول دی. اوکوم کس چې زیات محتاج وی. نو په
وی. هغه زیات مستحق وی.

**ولو نقل إلى غيرهم أجزأه وإن كان مكروها** اوکه ددې نه علاوه نې نورو ته نقل کړه نو جائز ده اګر چې مکروه
ده. **لأن المصرف مطلق الفقراء بالنص** ځکه چې مصرف خو مطلق فقراء دی په نص قرآنی سره والله اعلم.

تشریح:- **نفس جواز النقل مع الكراهة** ۞ خوکه د رشته دارانو اود زیات محتاج خلګو نه علاوه د نورو خلګو لپاره
بل ښارته زکاة منتقل کړی. نو هم جائز دې. اګرچه داسې کول مکروه دی. ځکه چې په قرآن پاک ﴿ إِنَّمَا ٱلصَّدَقَٰتُ لِلْفُقَرَآءِ ﴾ (الایه) کې د زکاة مصرف مطلقاً فقیران خودلې شوی دی. د ګاونډ فقیرانو یاد
یوځای دفقیرانو څه تخصیص نه دې بیان شوې. او الله ښه پوهیږی.

## باب صدقة الفطر

(دا) باب د صدقة الفطر (په بیان کې) دې.

تشریح:- **الربط بما قبله** ۞ په صدقة الفطر او زکاة کې مناسبت ښکاره دې. چه دواړه مالی عبادتونه دی. خوصدقة
الفطرواجب دې. او زکاة فرض دې. په دې وجه صدقة الفطر په نسبت د زکاة یوه درجه کمتر دې. په دې وجه د
صدقة الفطر احکام د زکاة د احکامو نه روسته ذکرکړې شو.

**وجه تسمية الصدقة** ۞ د صدقه معنی، عطیه، ده. خومراد هغه عطیه ده. کومه چې د تقرب الهی په امید سره
ورکړې شی. اود صدقه نوم ایخودلو وجه داده. چه په دې سره په ثواب حاصلولوکې د شوق صداقت ښکاره
کیږی. لکه ځنګه چې په صداق (مهر) سره د ښځې په سلسله کې د سړی د شوق صداقت ښکاره کیږی. (عنایه)

**معنى الفطر** ۞ او فطر، د فطرت نه ماخوذ دې. په معنی د نفس او خلګ ت. ځکه چې دا صدقه د هرنفس د
اړخه ورکولې شی. تردې چې د اختر په روښانه شپه کې د صباصادق نه وړاندې چې کوم ماشوم پیداشی.
هغه د اړخه هم ورکولې شی.

**الفطر في الشريعة** ۞ اوپه شریعت کې صدقة الفطرهغه صدقه ده. کومه چې د عبادت، اود صله په طور
دمهربانئ په خیال ورکولې شی.

**سببه** ۞ د صدقة الفطر مشروع کیدلو سبب په سنن ابی داؤد او ابن ماجه کې دادې ﴿عن ابن عباس رضي الله عنه فرض
رسول الله ﷺ زكاة الفطر طهر للصائم من اللغو والرفث وطعمة للمساكين من أداها قبل الصلاة فهي زكاة مقبولة ومن أداها بعد
الصلاة فهو صدقة من الصدقات﴾ د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه نقل دی. چه نبی کریم ﷺ صدقة الفطر فرض
اوفرمائیل. چې د روژه نیولو لپاره لغو اود بې هوده نه پاکونکې دې. اود مسکینانو لپاره طعام دې. نوچاچه
دا دلمونځ نه وړاندې اداکړله. نو دا مقبول زکاة دې. اوچاچه د لمونځ نه روسته اداکړله. نود نورو صدقاتو په
شان یوه صدقه ده.

**تاریخ وجوب صدقة الفطر** ۞ دا په ذهن کې ساتل پکاردی. چه د صدقة الفطر وجوب د زکاة د حکم نه مقدم
دې. لکه ځنګه چې حافظ ابن حجر د نسائی او ابن ماجه په حواله سره دحضرت قیس بن سعد بن عباده رضي الله عنه
روایت نقل کړې دې. چه ﴿أمرنا رسول الله ﷺ بصدقة الفطر قبل أن تنزل الزكاة ..... الحديث﴾ یعنی رسول اکرم ﷺ موږ
ته د نزول زکاة نه وړاندې دصدقة الفطرحکم راکړې وو.

**د صدقهٔ فطر شرعی حکم**

**قال: صدقة الفطر واجبة على الحر المسلم** صدقه فطرواجب ده په آزاد مسلمان **إذا كان مالكا لمقدار النصاب فاضلا**



**عن مسكنه وثيابه وأثاثه وفرسه وسلاحه وعبيده** هرکله چې مالک وی دمقدار دنصاب کوم چې فاضل وی دده
رهائش جامو اسباب اواس دده او وسله دده او خدمتی غلامانودده نه.

تشریح:- **حكم صدقة الفطر** ۞ زموږ په نیز صدقة الفطرواجب ده. یعنی په دې سې دلیل سره ثابت ده. چه په هغې
کې شبه ده.

**شروط وجوب صدقة الفطر** ۞ په چاچه صدقة الفطر واجب وی. دهغه لپاره یوڅوشرطونه دی ① آزاد وی ②
مسلمان وی ③ د نصاب په مقدار مالک وی.

دانصاب که نامی وی. اوکه نامی نه وی. خوچه دضروریات اصلیه نه زیاتی وی. مثلاً د اوسیدو کور، د
اغوستلو کپړې، دکور د استعمال سامان، د سوارلئ اسونه، (نن سهار دخان داستعمال لپاره سائیکل، موټر
سائیکل، موټر وغیره د استعمال اسلحه، اود خدمت دغلامانونه زیاتی وی. نوکه دچاسره دوې (ادوه) کورونه
وی. چه په یوکې اوسیږی. او په بل کې نه اوسیږی. که هغه ئې په کرایه باندې ورکړې وی. یائې په کرایه باندې
نه وی ورکړې. په غنی (مالداری) کې به ددې قیمت معتبروی. تردې چې که ددې قیمت دوې (ادوه) سوه درهمه
برابروو. نویه ده به صدقة الفطر واجب وی.

**أما وجوبها فلقوله عليه الصلاة والسلام في خطبته {أدوا عن كل حر وعبد صغير أو كبير نصف صاع من بر أو صاعا من تمر أو صاعا
من شعير}** په هرحال ددې واجب والی په وجه دارشاد دنبی کریم ﷺ دې کوم چې دوی په خطبه کې اوفرمائیلو
چې ادا کړئ دهر آزاد غلام داړخه وړوکې وی که لوئې نیم صاع غنم دغمو یا یوصاع د اوربشو **رواه ثعلبة بن صعير
العدوي أو صعير العذري** (۱) دې لره حضرت ثعلبه بن صعير عدوی روایت کړې دې. **وبمثله يثبت الوجوب لعدم القطع**
اوپداسې دلیل سره وجوب ثابتیږی په وجه دعدم قطعیت.

تشریح:- **دليله** ۞ دلیل دادې. چه نبی کریم ﷺ په خپله خطبه کې اوفرمائیل. ﴿أدوا عن كل حر وعبد صغير أو كبير نصف
صاع من بر أو صاعاً من شعير﴾ په حدیث کې صغیر اوکبیر دعبد صفتونه دی. نه د حر اود عبد دواړو. ځکه چې
غلام به یاصغیر وی. یابه کبیروی. د دواړو د اړخه به په مولا باندې صدقة الفطر واجب وی. لیکن آزاد اولاد
که کبیر وی. نوددوی داړخه به په پلار باندې صدقة الفطرواجب نه وی. صرف د صغیر اولاد د اړخه به واجب
وی. بهرحال داحدیث کوم چې ثعلبه بن صغیرعدوی روایت کړې دې. خبر واحد دې. اوخبر واحد دلیل ظنی
وی. دلیل قطعی نه وی. اوپه دلیل ظنی سره وجوب ثابتیږی. خو فرضیت نه ثابتیږی. په دې وجه موږ وایو. چه
صدقة الفطر واجب ده. فرض نه ده. اود ابن عمر رضي الله عنه حدیث کې لفظ دفرض نه اصطلاحی فرض مراد نه دې. چه
ددې منکر کافروی. بلکه د فرض نه مراد معنئ د امر ده. اوپه امرسره وجوب ثابتیږی. فرضیت نه ثابتیږی.

**وشرط الحرية ليتحقق التمليك** اوشرط ئې کړو حریت لره د تملیك متحقق کیدو لپاره

تشریح:- **وجه شرطية الحرية** ۞ د صدقه د وجوب لپاره آزادکیدل په دې وجه شرط دی. چه دزکاة په شان د صدقة
الفطر اداکاوه لپاره هم تملیك یعنی د دوهم کس مالک کول رکن دې. اوغلام په خپله د خپل ځان مالک نه
وی. نود مال مالک به څنګه شی. اوکله چې په خپله د مال مالك نه دې. نوبل به څنګه مالک کولې شی. په دې
وجه صدقة الفطر په خپله په غلام باندې نه واجبیږی. بلکه د غلام داړخه دده په مالک باندې واجبیږی.

**والإسلام ليقع قربة** او اسلام دقربت واقع کیدو لپاره

تشریح:- **وجه شرطية الاسلام** ۞ اومسلمان کیدل په دې وجه شرط دی. چه صدقة الفطر یوعبادت اوقربت دې.
اوهیڅ یوعبادت دکافر داړخه نه متحقق کیږی. په دې وجه د صدقه ادا کاوه لپاره مسلمان کیدل ضروری
دی.

(۱) أخرجه أبوداود في الزكاة باب ۲۱ رقم (۱۶۲۰)_

وَالْيَسَارُ لِقَوْلِهِ ﷺ {لَاصَدَقَةَ إِلَّا عَنْ ظَهْرِ غِنًى}(١) او مالداري لره نبي ﷺ د ارشاد په وجه سره چې نشته صدقه مګر د تونګر نه وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رحمه الله اودا حجت دې په امام شافعي رحمه الله فِي قَوْلِهِ: تَجِبُ عَلَى مَنْ يَمْلِكُ زِيَادَةً عَنْ قُوتِ يَوْمِهِ لِنَفْسِهِ وَعِيَالِهِ د هغوی په دې قول کې چې صدقه په هغه واجب ده چې د خپل ځان او عيال د يوې ورځې د خوراك نه د زيات مالك وی.

تشريح:- **شرطية النصاب**۞ دريم شرط د نصاب مالك كيدل دی.① خود صدقه د وجوب لپاره د نصاب د مقدار مالك كيدل زموږ په نيز شرط دی.

**دليله** ① دليل دادې.چه نبی كريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو. «لاصدقة إلاعن ظهر غنى»په حديث كې د ،ظهر،لفظ زائد دې.اوس به ژباړه داشی.چه صدقة الفطر واجب نه دې.خوپه مالداره باندې.اوپه شريعت كې مالداره هم هغه كس ته وئيلې شی.چه د نصاب د مقدار مالك وی.ددې نه معلومه شوه.چه د صدقة الفطر د وجوب لپاره توانګر كيدل شرط دی.

وَقَدْرُ الْيَسَارِ بِالنِّصَابِ لِتَقْدِيرِ الْغِنَى فِي الشَّرْعِ بِهِ او اندازه کړې شوه تونګری په نصاب سره ځکه چې په شرع کې د تونګرئ اندازه په دې سره. فَاضِلًا عَمَّا ذُكِرَ مِنَ الْأَشْيَاءِ نو داسې حال کښې چې دغه فاضل وی د مذكور څيزونو نه لِأَنَّهَا مُسْتَحَقَّةٌ بِالْحَاجَةِ الْأَصْلِيَّةِ ځکه چې داشيان (څيزونه ) مستحق په حاجت اصليه دی. وَالْمُسْتَحَقُّ بِالْحَاجَةِ الْأَصْلِيَّةِ كَالْمَعْدُومِ او دا پشان د معدوم دی

تشريح:- **الغنى مقدر بالنصاب**۞صاحب د هدايه رحمه الله فرمائي.چه مالداره كيدل د نصاب سره مقدر دی.يعنی مالداربه هغه كس ته وئيلې شی.چه د نصاب مالك وی.ځکه چې په شريعت كې غنی اومالدار هم ده ته وائی.خودا ضروری ده.*چه دا نصاب د ذكرشوې څيزونو يعنی د حاجات اصليه نه زياتی وی.ځکه چې نصاب كه په حاجات اصليه كې بوخت وی.نودا به معدوم (نشت) شمارلې شی.لكه چې د سفر په حالت كې د يوكس سره د څښلو اوبه وی .اوددې نه سوې نورې اوبه موجود نه وی.نودا اوبه به د متيمم (تيمم كونكې) په حق كې معدوم شمارلې شی .اودده لپاره به تيمم كول جائزوی.دغه ډول كه په حاجت اصليه كې بوخت مال د نصاب په اندازه وی.نود مالداره كيدلوپه حق كې به دا مال معدوم شمارلې شی.

وَلَا يُشْتَرَطُ فِيهِ النُّمُوُّ او په دې كې نمو نه شرط ده

تشريح:- **عدم اشتراط النمو فی صدقة الفطر**۞ صاحب د هدايه رحمه الله فرمائي.چه د صدقه د وجوب په نصاب كې نموشرط نه ده.كه څوك په قدر د نصاب د مال غيرنامی مالك وی.نوپه ده به هم صدقة الفطر واجب وی.وجه دا ده. چې د صدقة الفطر د وجوب لپاره قدرت ممكنه شرط دې.قدرت مُيسره شرط نه دې.اود نمو نه يسر متحقق كيږی .نود كوم وجوب چې په قدرت ميسره سره دې.لكه زكاة ،نوددې لپاره د نموشرط اولګولې شو.اود كوم وجوب چې په قدرت ممكنه سره دې.لكه صدقة الفطر،نوددې لپاره د نموشرط اونه لګولې شو.د تفصيل لپاره د اصول فقه كتابونه اوګورئ.

وَيَتَعَلَّقُ بِهَذَا النِّصَابِ حِرْمَانُ الصَّدَقَةِ وَوُجُوبُ الْأُضْحِيَةِ وَالْفِطْرَةِ او ددې سې نصاب سره وابسته ده د محرومئ د صدقې اود قربانئ او صدقې فطر وجوب.

تشريح:- **الاقسام الثلاثة للنصاب**۞د نصاب درې قسمه دی.يوهغه نصاب چې په هغې كې نموشرط دې.ددې نصاب سره د زكاة اود مال واړه احكام متعلق كيږی. دوهم هغه نصاب چې دهغې سره څلور احكام متعلق كيږی.① د صدقه اخستلوحرمت ② د قربانئ وجوب ③ د صدقة الفطر وجوب ④اود اقرب نفقه، په دې نصاب كې نه نموشرط ده، نه تجارت اونه حولان حول،دريم نصاب هغه دې.چه په هغې سره د سوال

(١) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه أحمد فی المسند (٢٣٠/٢) ومسلم فی الزكاة باب رقم ٩٥)_



كولوحرمت ثابتيږی.هغه دادې.چه د يوكس سره د يوې ورځې روزی وی.او بعض وائی.چه د پنځوس درهمو مالك وی.نو دده لپاره سوال كول حرام دی.

## دخپل ځان لپاره صدقهٔ فطر وركول

قَالَ (يُخْرِجُ ذَلِكَ عَنْ نَفْسِهِ) فرمائی اوباسی به دا خپل اړخ نه

تشريح:- **اخراج صدقة الفطر عن نفسه**۞مسئله*په صاحب نصاب واجب دی.چه دې دخپل ځان صدقه ادا كړی.

لِحَدِيثِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه په وجه دحديث د ابن عمر رضي الله عنه قَالَ {فَرَضَ رَسُولُ اللَّهِ زَكَاةَ الْفِطْرِ عَلَى الذَّكَرِ وَالْأُنْثَى الْحَدِيثَ (١) چې نبی كريم ﷺ فرض كړې دې زكاة دفطر په نازينه او په ښځه باندې (الحديث)

تشريح:- **دليله**۞دليل د ابن عمر رضي الله عنهما حديث دې.پوره حديث دادې. «فرض رسول الله ﷺ زكاة الفطر على الذكر والانثى والحر والمملوك صاعاً من تمر اوصاعاً من شعير»يعنی په حقه نبی ﷺ صدقهٔ فطر فرض كړه. په سړی باندې،اوپه ښځه باندې،په آزاد باندې،اوپه مملوك(مرئي) باندې،دكجورو يوصاع، يا د اوربشو يوصاع.

## د نابالغه اولاد صدقة الفطر

وَيُخْرِجُ عَنْ أَوْلَادِهِ الصِّغَارِ او اوباسی به دخپل وړوكی اولاد داړخه

تشريح:- **اخراج صدقة الفطر عن الاولاد الصغار**۞مسئله*د مقدار نصاب مالك به د خپل نابالغه اولاد د اړخه هم صدقة الفطر اداكوی.

لِأَنَّ السَّبَبَ رَأْسٌ يَمُونُهُ وَيَلِي عَلَيْهِ ځکه چې هغه دده سره دی.كوم لره چې روزينه وركوی او په ده متولی وی. لِأَنَّهَا تُضَافُ إِلَيْهِ يُقَالُ زَكَاةُ الرَّأْسِ ځکه چې صدقه سر اړخ ته مضاف كولې شی.وئيلې شی زكاة دسر وَهِيَ أَمَارَةُ السَّبَبِيَّةِ او اضافت دسبب كيدو علامت دې.

تشريح:- **دليله**۞دليل دادې.چه د صدقة الفطر د وجوب سبب داسې نصاب اوداسې ذات دې.چه په هغې سړې خرچ كوی.اوپه دې متولی وی.هم دغه وجه ده.چه صدقة الفطر د راس(نصاب) اړخ ته مضاف كولې شی. او زكاة الراس(د نصاب زكاة) وئيلې شی.اود شئ اړخ ته اضافت ددې د سبب كيدلو علامت دې. نو معلومه شوه.چه د صدقة الفطرد وجوب سبب راس او ذات دې.

وَالْإِضَافَةُ إِلَى الْفِطْرِ بِاعْتِبَارِ أَنَّهُ وَقْتُهُ او فطر ته اضافت ددې دوخت كيدوپه اعتبار سره دې وَلِهَذَا تَتَعَدَّدُ بِتَعَدُّدِ الرَّأْسِ مَعَ اتِّحَادِ الْيَوْمِ پدې وجه صدقه متعده ده كيږی دسر په متعدد كيدو سره داتحاد ديوم باوجود. وَالْأَصْلُ فِي الْوُجُوبِ رَأْسُهُ عَلَيْهِمْ هُوَ يَمُونُهُ وَيَلِي عَلَيْهِ او اصل په وجوب پخپله دده سر دې.دكوم چې بار دمونت پوره كوی.اومتولی دې فَيَلْحَقُ بِهِ مَا هُوَ فِي مَعْنَاهُ كَأَوْلَادِهِ الصِّغَارِ لِأَنَّهُ يَمُونُهُمْ وَيَلِي پرې روسته مولښتی كولې به شی پورې كوم چې دده معنی كې وی لكه دده وړوكې اولاد چې بار دمونت پورته كوی او ولايت پرې لری.

تشريح:- **السوال**۞خو دلته كه څوك اعتراض اوكړی.چه اضافت خو فطر(وړوكی اختر) اړخ ته هم كيږی. لكه چې صدقة الفطر وئيلې كيږی.نوددې مطلب داشو.چه فطرهم د صدقه واجب كولوسبب دې. حالانكه د ستاسو په نيز داسې نه ده؟

**الجواب**۞ددې ځواب دادې.چه فطر اړخ ته اضافت په دې وجه نه دې.چه فطر ددې سبب دې.بلكه په دې وجه دې.چه فطر ددې وخت دې.هم دغه وجه ده.چه د راس او ذات په متعدد كيدلوسره صدقات متعدد

(١) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه البخاری فی الزكاة باب ١٧ رقم ٨٠٤ ومسمل فی الزكاة رقم ١٢، ١٦) والترمذی فی الزكاة باب ٣٥ رقم ٦٧٥)_

كيږی.حالانكه د فطر ورځ صرف هم يوه ده.نومعلومه شوه.چه هم راس سبب دې.اود سبب په متعدد كيدلوسره مسبب متعدد كيږی.

**السوال الثانی**۞خوكه څوك دا سوال اوكړی.چه كه راس او ذات د صدقه د وجوب سبب دې.نوبه يوكس باندې په واړه عمركي هم يوه صدقه واجب كيدل پكار دی.ځكه چې په واړه عمركي راس صرف هم يو وی.هركال واجب كيدل پكار نه دی.حالانكه تاسو هركال صدقه واجب كوئ؟

**الجواب** ۞ راس مطلقاً د وجوب صدقه سبب نه دې.بلكه په وصف د مؤونت سره موصوف كيدلوسره سبب دې.اومؤونت د زمانې په تيريدلوسره مكرر كيږی.نود مؤونت د وصف په مكرر كيدلوسره راس حكماً د متكرر په شان شو.نوكله چې راس(سبب)مكررشو.نوصدقة الفطر به هم مكرر شی.فلا اشكال.

**السوال الثالث**۞اوكه څوك دا سوال اوكړی.چه دوجوب صدقه سبب كه راس دې.نوبه صاحب نصاب په خپله خپله صدقه واجب كول پكاردی.د اولاد صغار،اومماليك واجب كول نه دی پكار؟

**الجواب**۞ددې ځواب دادې.چه دصدقة الفطر په وجوب كي اصل خود مالك نصاب راس دې.ځكه چې دې په هغه باندې خرچ كوی.اودهغې متولی دې.نوثابته شوه.چه دوجوب صدقه سبب راس يعنی د ذات خرچ برداشت كول دی.اوپه دې متولی كيدل دی.اوس چې په كوم ځائې كي مؤونت د ولايت اوموندې شی.هم هغه به د مالداره سره لاحق كولې شی.مثلاً اولاد صغار،چه هم پلار ددوی مؤونت برداشت كوی. اوهم پلار په دوې متولی وی.په دې وجه د اولاد صغار صدقة الفطربه هم په پلار واجب وی.په دې شرط چې پلار مالك نصاب وی.

## د غلامانو صدقه فطر

**وَمَمَالِيكِهِ** او دخپلو غلامانو دارخه **لِقِيَامِ الْوِلَايَةِ وَالْمُؤْنَةِ** دمونت او ولايت قائميدو په امله سره

**تشريح:- وجوب صدقة الفطر عن مماليكه للخدمة**۞مسئله* مماليك يعنی غلام،مدبر،ام ولد صدقه ددوی په مولا باندې واجب وی.او دليل دادې.چه ددوی خرچ هم مولابرداشت كوی.اوپه دوی ولايت هم مولا ته حاصل وی.صاحب د هدايه رحمه الله فرمائی.چه دمماليك صدقه په مولا باندې هغه وخت واجب وی.كله چې دا دخدمت لپاره وی.كه دا دتجارت لپاره وی.نوزكاة واجب وی.صدقة الفطر به نه وی.

**دليلهما**۞د شيخينو رحمهما الله دليل دادې.چه صدقة الفطر شرعاً د مؤونت قائم مقام دې.هم دغه وجه ده.چه په سړی باندې دغير د اړخه صدقه واجب كولې شی.نوصدقة الفطر د نفقه په شان شو.اوكه د صغير سره مال وی.نودده صدقه به هم دده په مال كي واجب وی.نودغه ډول صدقه به هم د ده په مال كي واجب وی.په دې شرط چې دده سره مال وی.

**وَهٰذَا إِذَا كَانُوا لِلْخِدْمَةِ وَلَا مَالَ لِلصِّغَارِ** اودا هغه وخت كله چې غلامان د خدمت لپاره وی.او دوړوكی اولاد مال نه وی. **فَإِنْ كَانَ لَهُمْ مَالٌ يُؤَدِّي مِنْ مَالِهِمْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ تَعَالَى** [1] كه مال ئې وو نوددوی دمال به اداكوی دشيخينو رحمهما الله په نزد.

**اخراج صدقة الفطر عن الاولاد الصغار الاغنياء**۞اود اولاد صغار صدقه په پلار باندې هغه وخت واجب وی.چه كله د اولاد صغارسره مال قطعاً موجود نه وی.اوكه اولاد صغار سره مال موجود وی. نود شيخينو رحمهما الله په نيز به هم ددوی دمال نه ددوی صدقه اداكولې شی

**خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ** رحمه الله په خلاف د امام محمد رحمه الله نه **لِأَنَّ الشَّرْعَ أَجْرَاهُ مَجْرَى الْمُؤْنَةِ فَأَشْبَهَ النَّفَقَةَ** ځكه چې شرع وجوب دصدقې لره په ځائې دمونت اينبودې دې نوې د نفقې مشابه شوه.

[1]) القول الراجح هو هذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فی العناية (۲۲۱\۲) و رد المحتار(۸۱\۲) والهندية (۱۹۲\۱) البحرالرائق (۲۵۳\۲)نقلاً عن القول الراجح (۱۸۹\۱)-



**تشريح**:: د امام محمد رحمه الله په نيزبه د اولاد صغار د مال نه صدقه نه اداكوی.پلار به پخپله د خپل مال نه اداكوی.تردې كه پلار د اولاد صغار د مال نه اداكړه.نوپلار به ددې ضامن وی.

**دلائله**::①د امام محمد رحمه الله دليل دادې.چه صدقة الفطر په شريعت كي زكاة دې.لكه د مال زكاة،اود صغير په مال كي زكاة واجب نه وی.نوصدقة الفطر به هم ددوی په مال كي واجب نه وی.② دوهم دليل دادې.چه صدقة الفطر عبادت دې.اوصغير د وجوب عبادت اهل نه دې.په دې وجه به دده په مال كي صدقه هم واجب نه وی.

## دښځې صدقه فطر

**وَلَا يُؤَدِّي عَنْ زَوْجَتِهِ لِقُصُورِ الْوِلَايَةِ وَالْمُؤْنَةِ** او نه به اداكوی د خپلې بی بی د اړخ نه.په ولايت اومونت كي د قصور په وجه **فَإِنَّهُ لَا يَلِيهَا فِي غَيْرِ حُقُوقِ النِّكَاحِ** ځكه چې خاوند په بی.بی ولايت نه لری دنكاح دحقوقو نه په علاوه كي. **وَلَا يَمُونُهَا فِي غَيْرِ الرَّوَاتِبِ كَالْمُدَاوَاةِ** اونه بارد مونت پورته كوی د روابتونه په علاوه كي لكه دوائی كول.

**تشريح:- عدم وجوب الفطر عن الزوجة**۞ مسئله* په مالداره خاوند باندې دده د ښځې صدقه واجب نه ده.

**دليله**۞ځكه چې په ښځه باندې د خاوند ولايت هم ناقص دې.او مؤونت هم ناقص دې.ولايت خوپه دې وجه ناقص دې.چه خاوند ته په ښځه باندې د نكاح د أمورو نه علاوه هيڅ ولايت نشته.بلكه صرف د نكاح په أموروكي ولايت حاصل دې.نو خاوند ته كامل ولايت حاصل نشو.اومؤونت په دې وجه ناقص دې.چه خاوند د ښځې صرف هم هغه مصارف برداشت كوی.كوم چې شرعاً ثابت دی.مثلاً نان نفقه، سكنی، اوددې نه علاوه مؤونت برداشت كول واجب نه دی.مثلاً كه ښځه بيماره شی.نوددې علاج معالجه په خاوند باندې واجب نه ده.نوهركله چې ولايت او مؤونت دواړه ناقص دی.نوپه خاوند به د ښځې صدقه هم واجب نه وی.ځكه چې د صدقة الفطر وجوب په ولايت كامله اوپه مؤونت كامله سره كيږی.

## د بالغ اولاد صدقة الفطر

**وَلَا عَنْ أَوْلَادِهِ الْكِبَارِ وَإِنْ كَانُوا فِي عِيَالِهِ** او نه به اداكوی دخپل بالغ اولاد د اړخ نه اګر چې هغوی دده په عيال كي وی **لِانْعِدَامِ الْوِلَايَةِ** دولايت نه كيدو په وجه.

**تشريح:- عدم وجوب الفطر عن الاولاد الكبار**۞مسئله* په پلارباندې دبالغ اولاد صدقه واجب نه ده.اګرچه كبار اولاد دده په عيال كي داخل وی.ځكه چې پلارته په بالغ اولاد باندې هيڅ ولايت نه وی.

**وَلَوْ أَدَّى عَنْهُمْ أَوْ عَنْ زَوْجَتِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِمْ أَجْزَأَهُ اسْتِحْسَانًا لِثُبُوتِ الْإِذْنِ عَادَةً** اوكه ددوی د اړخه يا دخپلې بی.بی نه ئې په غير ددوی د امرنه اداكړه نو ادا به شی.

**تشريح:- جواز الاداء عنهم** ۞خوكه پلار د بالغ اولاد داړخه اداكړه.يا خاوند دخپلې ښځې د اړخه اداكړه.اودا اداكول بغير دده دحكم نه اوموندلې شوه.نوهم استحساناًصدقه ادا شوه.ځكه چې اجازت عادة ثابت دې.اوكوم څيزچه عادة ثابت وی.هغه داسې دې.لكه چې په نص او صراحت سره ثابت وی.

## د مكاتب، مدبر،او ام ولد صدقة الفطر

**وَلَا يُخْرِجُ عَنْ مُكَاتَبِهِ لِعَدَمِ الْوِلَايَةِ** اونه به اوباسی دخپل مكاتب داړخه .په وجه دعدم ولايت.

**تشريح:- عدم وجوب الفطر عن المكاتب على المولى**۞مسئله* په مولا باندې دمكاتب صدقة الفطر واجب نه ده.ځكه چې د مكاتب يداً اود تصرفاتو په اعتبارسره د آزاديدلو په وجه مولا ته په ده باندې مكمل ولايت حاصل نه دې.حالانكه د صدقه د وجوب سبب كامل ولايت وی.

**وَلَا الْمُكَاتَبُ عَنْ نَفْسِهِ لِفَقْرِهِ** اونه به مكاتب (اوباسی) دخپل اړخه .په وجه دده دفقر

**تشریح:- عدم وجوب الفطر علی المکاتب**۞ اوپه مکاتب پخپله هم خپله صدقة الفطر اداکول واجب نه دي.ځکه چې مکاتب خو د بدل کتابت اداکولومحتاج وي.په دې وجه کوم مال چې دده سره وي.هغه وارده د مولا مملوك وي.اوهرکله چې دا د مولا مملوك شو.نومکاتب فقیر پاتې شو.اوپه فقیر باندې صدقة الفطر واجب نه وي.په دې وجه په مکاتب باندې په خپله دخپل اړخه صدقة الفطر ادا کول واجب نه ده.

**وَفِی الْمُدَبَّرِ وَأُمِّ الْوَلَدِ وِلَايَةُ الْمَوْلٰی ثَابِتَةٌ فَيُخْرِجُ عَنْهُمَا** اوپه مدبر او ام ولد کې ولایت دمولی ثابت دې.نو آقا به ددوی د اړخ نه اوباسي.

**تشریح:- وجوب صدقة الفطر عن ام ولد والمدبر**۞ او پاتې شو مدبر،او ام ولد ،نوچونکه په دوی باندې مولا ته رقبة اویدأ دواړه قسمه کامل ولایت حاصل وي.اوددوی مؤونت هم مولا برداشت کوي.په دې وجه د دوی د اړخه به صدقة الفطرهم په مولا باندې واجب وي.

**وَلَا يُخْرِجُ عَنْ مَمَالِيكِهِ لِلتِّجَارَةِ** اونه به اوباسي دخپلو تجارتي غلامانو داړخه. **خلافا للشافعي** (رحمه الله) په خلاف د امام شافعي (رحمه الله) نه **فَإِنَّ عِنْدَهُ وُجُوبَهَا عَلَى الْعَبْدِ** ځکه چې ددوی په نزد دصدقې وجوب په غلام دې **وَوُجُوبَ الزَّكَاةِ عَلَى الْمَوْلٰى فَلَا تَنَافِيَ** او وجوب د زکاة په مولی دې.نودا ددې منافی نه دې

**تشریح:- المذهبان فی وجوب الفطر عن العبد للتجارة**۞ ① اوکوم غلامان او وینځې چې د تجارت لپاره وي.د دوی اړخه به صدقه به هم په مولا باندې واجب نه وي.② او امام شافعي (رحمه الله) فرمائي.چه د تجارت د غلامانو او وینځو د اړخه به صدقه اوباسي

**دلیل الشافعي** (رحمه الله)۞ ځکه چې د امام شافعي (رحمه الله) په نیزصدقة الفطرپه غلام باندې واجبیږي.اگرچه دده د اړخه ئې مولا اداکړي.اوددوی زکاة په مولا باندې واجبیږي.نوصدقه او زکاة دوې [دوه] حقونه دي.چه په دوې [دوه] مختلفو مقاماتوکې ثابتیږي.یعنی صدقه په غلام باندې ثابت ده.او زکاة په مولا باندې ثابت دي.نوپه دې دواړوکې څه منافات نشته.او چې منافات نشته.نود دواړوجمع کول جائز دي.

**وَعِنْدَنَا وُجُوبُهَا عَلَى الْمَوْلٰى بِسَبَبِهِ الثَّنَى كَالزَّكَاةِ فَيُؤَدِّي إِلَى الثَّنَى** او زموږ په نزد وجوب د صدقې په مولی دې او مملوك په سبب سره لکه زکاة.نودا به مکرر اړخ ته بوتلونکې وي.

**تشریح:- دلیل الاحناف** (رحمهم الله)۞ او زموږ په نیز د غلام د صدقه وجوب په مولا باندې وي.لکه څنگه چې د زکاة وجوب په مولا باندې وي.نوکه د تجارت د غلامانوصدقه په مولا باندې واجب کړې شوه.نو په دې غلامانوکې به په یوکال کې دوې [دوه] څله مالی فریضه واجب کول لازم شي.یو په صورت د صدقة الفطر،او دوهم په صورت د زکاة،حالانکه په یوکال کې دوې [دوه] څله مالی فریضه واجب کول جائز نه دي.لکه څنگه چې د رسول ﷺ حدیث ﴿لا ثنی فی الصدقة﴾ دې،ثنی،د ثاء په کسره او په الف مقصوره سره دې.یعنی په کال کې به دوې [دوه] څله صدقه نشي اخستلې.

## دغلام مشترك صدقه فطر

**وَالْعَبْدُ بَيْنَ شَرِيكَيْنِ لَا فِطْرَةَ عَلٰى وَاحِدٍ مِنْهُمَا** ، اوکوم چې غلام د دوې [دوه] شریکانو نه په مینځ کې وي نوفطر په دواړو کښې په یو نشته.

**تشریح:- عدم وجوب الفطر عن غلام واحد**۞ مسئله داده.چه که یوغلام د دوې [دوه] کسانوپه مینځ کې مشترك وي. نو بالاتفاق په دواړوکې به په چاهم ددې غلام صدقة الفطر واجب نه وي.ځکه چې د دواړو ولایت هم ناقص دې. او مؤونت هم ناقص دې.اوداخبره تیره شویده.چه د صدقة الفطر د وجوب سبب ولایت کامله او مؤونت کامله دې. نو هرکله چې سبب موجود نشو.نوصدقة الفطربه هم واجب نه وي.



**لِقُصُورِ الْوِلَايَةِ وَالْمُؤْنَةِ فِي حَقِّ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا** په وجه د ناقصوالی د ولایت اومونت دهر شریك په حق کښې. **الْعَبِيدُ بَيْنَ اثْنَيْنِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** (رحمه الله) [1] دغه ډول که څو غلامان ددوې [دوه] شریکانو په مابین کې وي دامام ابوحنیفه (رحمه الله) په نزد.

**تشریح:- المذهبان فی العبید المشترکین بین المالکین**۞ اوکه ډیرغلامان ددوې [دوه] کسانوپه مینځ کې مشترك وي.① نود امام ابوحنیفه (رحمه الله) په نیزبه په شریکینوکې په چاهم د هیڅ یوغلام صدقه واجب نه وي

**عَلٰى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَا يَخُصُّهُ مِنَ الرُّءُوسِ دُونَ الْأَشْقَاصِ** صاحبین (رحمهما الله) فرمائی چې هر شریك به صدقه وي دهغې سرونو کوم چې د ده لپاره خاص وي نو ددوی په اشقاصو کې.

**تشریح:-** اود صاحبینو (رحمهما الله) په نیزبه د هرشریك برخې ملاووله شي.څومره راس چې کامل شي.د هغې صدقه به په هغوی واجب وي.اوکوم راس چې کامل نه وي.بلکه خانله ټکړه پاتې شي.د هغې به واجب نه وي.مثلاً پنځه غلامان د دوې [دوه] کسانوپه مینځ کې مشترك وي.اود هرشریك په برخه کې پنځه نصفه راشي.اود پنځو نصفو دوې [دوه] غلامان کامل اونصف راشي.نوپه شریکین کې به په هریو باندې د دوې [دوه] دوې [دوه] غلامانوصدقه واجب وي.اود نصف نصف صدقه به په دواړو واجب نه وي.

**بِنَاءً عَلٰى أَنَّهُ لَا يَرَى قِسْمَةَ الرَّقِيقِ** بنا پدې کښې چې امام صاحب ئې ویش ته نه گوری. **وَهُمَا يَرَيَانِهَا** او صاحبین (رحمهما الله) ئې ویش ته گوری

**تشریح:- بناء الاختلاف**۞ د اختلاف بنا (بنیاد) دادې.چه د ابوحنیفه (رحمه الله) په نیز د رقیق اوغلام تقسیمول او بتواره جائزنه ده.اوصاحبین (رحمهما الله) دې ته جائز وائی.نود امام صاحب (رحمه الله) په نیزچونکه ویش جائزنه دې.په دې وجه به په شریکینوکې هریوکس په هر یوغلام کې برخه دار وي.اوهرکله چې په هرغلام کې هر یوحصه دارشو.نوپه دواړو کې به هریوکس د هیڅ یوکامل غلام اوددې د پوره مالك نه وي.اوهرکله چې د پوره غلام څوك مالك نشو.نو په شریکینوکې به د چاهم ولایت اومؤونت کامل نه وي.اوچه په یوغلام د.یوکس هم ولایت اومؤونت کامل نه دې.نو په چابه هم صدقة الفطر واجب نه وي.

**دلیل الصاحبین** (رحمهما الله)۞ اود صاحبینو (رحمهما الله) په نیزچونکه د غلام ویش جائزدې.په دې وجه به ددوی په نیز هریو د کامل غلام مالك کیدلې شي.نود هریوغلام ټکړې چې ملاؤکړې شي.اوڅومره راس کامل شي.د هغې صدقة الفطر به واجب وي.اوکومه ټکړه چې پاتې شي.د هغې صدقة به واجب نه وي.لکه چې مثال ئې تیرشو.

**وَقِيلَ: هُوَ بِالْإِجْمَاعِ لِأَنَّهُ لَا يَجْتَمِعُ النَّصِيبُ قَبْلَ الْقِسْمَةِ** او وئیلې شوی دی چې دا په اجماع سره ده ځکه چې د ویش نه مخکې برخې جمع کیداې نشی. **فَلَمْ تَتِمَّ الرَّقَبَةُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا** نود یو شریك لپاره به هیڅ رقبه پوره نه وي.

**تشریح:- القول الثالث**۞ اوبعض حضرات فرمائی.چه ډیرغلامان د دوې [دوه] کسانوپه مینځ کې مشترك وي.نوپه دې صورت کې په شریکینوکې به په چاهم صدقة الفطر واجب نه وي.اودا د آیمه ثلاثه (امام صاحب، اوصاحبین (رحمهما الله)) په نیزمتفق علیه دې.ځکه چې د ویش نه مخکې برخې نشی یوځائې کیدلې.نود هر شریك لپاره به هیڅ یو رقبه پوره نه وي.اوهرکله چې دچا لپاره هم هیڅ یوه رقبه پوره نشوه.نوصدقة الفطربه هم واجب نه وي.

**وَيُؤَدِّي الْمُسْلِمُ الْفِطْرَةَ عَنْ عَبْدِهِ الْكَافِرِ لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا** اواداکوی به مسلمان فطره دخپل کافر غلام داړخه دهغې حدیث د اطلاق په وجه چې کوم موږ روایت کړو.

---

[1]) القول الراجح هو هذا قول أبی حنیفة (رحمه الله) كذا فی العناية (۲۲۲\۲) وردالمحتار(۸۲\۲) وتقريرات الرافعی (۱۴۳\۲) والهندية (۱۹۳\۱) والتاتر خانية (۴۲۲\۲) نقلاً عن القول الراجح(۱۹۰\۱)-

تشریح:- **وجوب صدقة العبد كافر**۞ مسئله داده.① چه مسلمان مالك نصاب كه د كافرغلام مالك وی.نوپه ده به دكافرغلام صدقة الفطرهم واجب وی.

**وَلِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي حَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ**ﷺ اوبه حديث د ابن عباس ﷺ د نبی ﷺ د ارشاد په وجه {**أَدُّوا عَنْ كُلِّ حُرٍّ وَعَبْدٍ**} وركوئ د هر آزاد او غلام لپاره **يَهُودِيٍّ أَوْنَصْرَانِيٍّ أَوْمَجُوسِيٍّ** } **الْحَدِيثَ**()كه يهودی وی اوكه نصرانی وی اوكه مجوسی وی د حديث د آخره پورې

تشریح:- **دلائله**۞ ①زمونږ دليل دادې.چه په اول باب كي دثعلبه بن صغير حديث۞[أدوا عن كل حر وعبد... الحديث]۞ مطلق دې.چه عبد مسلم اوعبدكافر دواړو ته ګډ دې.② دوهم دليل د ابن عباس ﷺ حديث دې.علامه ابن الهمام د دري قطنی په حواله دا حديث داسې ذكركړې دې.۞[قال رسول الله ﷺ أدوا صدقة الفطر عن كل صغير وكبير ذكر وانثى يهودیّ اونصرانیّ حر اومملوك نصف صاع من بر اوصاع من تمر اوشعير]۞

**وَلِأَنَّ السَّبَبَ قَدْ تَحَقَّقَ** اوځكه چې سبب متحقق شو **وَالْمَوْلٰى مِنْ أَهْلِهٖ** او مولی د دې (سبب) د اهل ځنی دې

تشریح:- دريم دليل دادې.چه د صدقة الفطر د وجوب سبب اوموندې شو.ځكه چې مسلمان مولا ته په كافرغلام باندې ولايت كامله حاصل دې.اوده مكمل طورمؤونت هم برداشت كوی. او مولا د وجوب صدقه اهل هم دې.اګرچه غلام دكفر په وجه اهل نه دې.خوچه كله سبب اوموندې شو.اوپه مولاكي اهليت هم موجود دې.نوپه مولا به د كافرغلام د اړخه صدقه واجب وی. ه ادا كړی دهر آزاد او غلام د اړخ نه يهودی وی اوكه نصرانی وی اوكه مجوسی وی (الحديث).او ځكه چې سبب متحقق شو اوآقا ددې اهل دې

**وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ** رحمه الله اوپه دې كي خلاف دشافعی رحمه الله دې **لِأَنَّ الْوُجُوبَ عِنْدَهٗ عَلَى الْعَبْدِ، وَهُوَ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهٖ** ځكه چې دده په نزد دوجوب دصدقې په غلام دې.اوهغه ددې اهل نه دې

تشریح:- د امام شافعی رحمه الله په نيزد كافرغلام د اړخه به مسلمان مولا صدقه نه اداكوی.هم دا قول د امام مالك اوامام احمد رحمهما الله دې.

۞**دليله**۞اود امام شافعی رحمه الله په نيزصدقة الفطرچونه په غلام باندې واجب وی.اګرچه مولا ئې اداكړی. او كافر غلام ددې لائق نه دې.چه په ده د صدقة الفطرپه شان عبادت وجب كړې شی.په دې وجه به د كافرغلام صدقه واجب نه وی.

**وَلَوْ كَانَ عَلَى الْعَكْسِ فَلَا وُجُوبَ بِالِاتِّفَاقِ** اوكه ددې عكس وه نوپه اتفاق صدقه واجب نه ده.

تشریح:- **عدم وجوب صدقة العبد المسلم على الكافر**۞اوكه مسئله په عكس وی.يعنی غلام مسلمان وی.اومولا كافر وی.نوپه اتفاق به صدقه واجب نه وی.زمونږ په نيزخوپه دې وجه چې مولا دكفرپه وجه نه د صدقه دوجوب اهل دې.اونه د صدقه اداكولو،اود امام شافعی رحمه الله په نيز اګرچه وجوب په غلام وی.ليكن ادا كول به ئې په مولا وی.اومولا د كفرپه وجه د عبادت ادا كاوه اهل نه دې.په دې وجه به په دې صورت كي بالكل صدقه واجب نه وی.

## د غلام په مشتری د صدقة الفطر وجوب

**وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا وَأَحَدُهُمَا بِالْخِيَارِ** چا غلام خرڅ كړو اوپه دواړو كي يولره خياروو. **فَفِطْرَتُهٗ عَلٰى مَنْ يَصِيرُ لَهٗ** نوفطره به ئې په هغه چا وی دچا چې شی **مَعْنَاهُ إِذَا مَرَّ يَوْمُ الْفِطْرِ وَالْخِيَارُ** باته معنی ئې داده چې دفطر ورځ تيره شوه.او اوس خيار پاته دې.

تشریح:- **وجوب صدقة الفطر على من؟**۞ ①صورت د مسئلې دادې.چه كه چا خپل غلام خرڅ كړو.اوبائع يا

---

[1] من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه الدارقطني في سننه (۱۵۰/۲) لكن ليس فيه ذكرالمجوسي (نصب الراية ۴۳۰/۲)۔



مشتری د خپل ځان لپاره د دريو ورځوخيارشرط واخستلو.نوصدقة الفطربه په هغه كس باندې واجب وی.چه داغلام د چا شی.يعنی كه بيع پوره شی.نو صدقه به په مشتری باندې واجب وی.اوكه ماته شی.نوصدقه به په بائع باندې واجب وی.صاحب د هدايه فرمائی.ددې مطلب دادې.چه د اخترورځ تيره شوه.خو خيار اوس هم پاته دې.نوپه دې سې صورت كي به صدقه په هغه كس واجب وی. دچاچه دا غلام شی.يعنی كه بيع اوشوه.نومشتری به ئې اداكوی.اوكه صاحب دخيار بيع ماته كړی. نوپه بائع به واجب وی.دا خيال ساتل پكاردی.چه دا غلام د خدمت لپاره وو.اومشتری ئې هم دخدمت لپاره اخلی.ځكه چې په تجارتی غلام كي په چاهم صدقه واجب نه وی.

**وَقَالَ زُفَرُ: عَلٰى مَنْ لَهُ الْخِيَارُ** امام زفر رحمه الله فرمائی چې په هغه به وی چالره چې خياروی **لِأَنَّ الْوِلَايَةَ لَهٗ** ځكه ولايت ده لره دې

تشریح:- اود امام زفر رحمه الله مذهب دادې.چه دچا لپاره خيار دې.صدقه به هم په هغه واجب وی.ځكه چې دصدقة الفطرسبب كامل ولايت دې.او ولايت كامله هم هغه كس ته حاصل وی.دچا لپاره چې خيار وی.په دې وجه كه ده بيع جائز اوګرځوله.نوبيع به پوره شی.اوكه جائز ئې نه كړه.نوفسخ به شی.نوهركله چې ولايت كامله ،من له الخيار، ته حاصل دې.نوصدقه به هم په هغه واجب وی.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ عَلٰى مَنْ لَهُ الْمِلْكُ** او امام شافعی رحمه الله فرمائی چې په هغه به وی دچا چې ملك دې، **لِأَنَّهٗ مِنْ وَظَائِفِهٖ كَالنَّفَقَةِ** ځكه چې وجوب په د فسطر د وظائفو دملك نه دې.لكه نفقه شوه.

تشریح:- اود امام شافعی رحمه الله مذهب دادې.چه ددې غلام صدقه به په هغه كس واجب وی.دچا لپاره چې ملك ثابت وی.اوملك ثابتيږی.د مشتری دپاره.ځكه چې ددوی په نيز خيارشرط د مشتری لپاره ملك ثابتول نه منع كوی.نوحاصل دا شو.چه د امام شافعی رحمه الله په نيز د غلام صدقة الفطر په مشتری باندې واجب وی.كه خيار شرط دهرچا لپاره وی.

**دليله**۞دامام شافعی رحمه الله دليل دادې.چه صدقة الفطر د ملك د وظائفوځنې ده.په دې وجه په مالك به واجب وی.اود خيارشرط په صورت كي ملك ثابتيږی د مشتری دپاره، لكه څنګه چې د امام شافعی رحمه الله مذهب دې.ځكه به صدقة الفطرهم په مشتری باندې واجب وی.لكه څنګه چې دخيار په موده كي د غلام نفقه په مشتری باندې واجب وی.

**وَلَنَا أَنَّ الْمِلْكَ مَوْقُوفٌ** او زمونږ دليل دادې،چه ملك موقوف دې. **لِأَنَّهٗ لَوْ رُدَّ عَلَيْهِ إِلٰى قَدِيمِ مِلْكِ الْبَائِعِ** ځكه چې بيعه رد شی.نو دبائع ملك ته به واروسته شی **وَلَوْ أُجِيزَ يَثْبُتُ الْمِلْكُ لِلْمُشْتَرِي مِنْ وَقْتِ الْعَقْدِ** اوكه اجازت وركړې شی نوملك به مشتری لره ثابت شی دوخت دعقد نه **فَيَتَوَقَّفُ مَا يَبْتَنِي** نو څه چې په ملك باندې مبنی دی هغه به هم موقوف وی

تشریح:- ۞ **دليل الاحناف** رحمهم الله ۞زمونږ دليل دادې.چه مونږ دا خبره منو.چه صدقة الفطر د ملك وظيفه ده.خو دلته كي ملك موقوف دې.ځكه چې ،من له الخيار،كه په خپل خيارسره بيع منع كړی.نود بائع ملك به واروسته راشی.اوكه جائز ئې كړی.نود عقد د وخت څخه به مشتری لپاره ملك ثابت شی.او قاعده ده.چه په شئ موقوف باندې كوم شی مبنی وی.نوهغه به هم موقوف وی.نوثابته شوه.چه موقوف ملك دچا لپاره ثابت شی.صدقة الفطر به هم په هغه واجب وی.

**بِخِلَافِ النَّفَقَةِ** په خلاف دنفقې **لِأَنَّهَا لِلْحَاجَةِ النَّاجِزَةِ** ځكه چې داخو د فوری اړتيا لپاره ده **فَلَا تَقْبَلُ التَّوَقُّفَ** نودا توقف نه قبلوی.

تشریح:- په خلاف د نفقهٔ، چې نفقه اګرچه په ملك باندې مبنی ده. خودا د فوری اړتيا په وجه ثابتيږی.په دې وجه دا توقف نه قبلوی.بلكه د نفقه په اړه كي به فوری فيصله كول ضروری وی.اوصدقة الفطر داسې نه

دي بلکه څو ورځي روسته هم ادا کیداې شي.نو ددې توپیر په وجه صدقة الفطر په نفقه باندي قیاس کول ټیك نه دی.

**وَزَكَاةُ التِّجَارَةِ عَلَى هَذَا الْخِلَافِ** اوزکاة دتجارت پدې اختلاف باندي دې.

**تشریح:- الاختلاف في العبید التجارية**۞ صاحب د هدایه رحمه الله فرمائی.چه د تجارتی غلامانو په زکاة کي هم دغه اختلاف دی.مثلاً د چاسره تجارتی غلامان دی.ده په خیارشرط دا خرڅ کړل.اود خیار په موده کي عید الفطر شو. نو زموږ په نیز به په هغه کس زکاة واجب وی.څوك چي ددې غلامانو مالك شی.اود امام زفر رحمه الله په نیز به په هغه کس واجب وی.چاله چي خیار دې.اود امام شافعی رحمه الله په نیز به په هغه کس واجب وی.دچا لپاره چي په دغه وخت کي ملك ثابت وی.یعنی په مشتری به واجب وی.والله اعلم.

## فصل في مقدار الواجب ووقته

فصل دې د واجب مقدار اوددې د وخت د وجوب په بیان کي.

**تشریح:- الربط بما قبله**۞د اوسه پورې د صدقة الفطر د وجوب اوددې د شرطونو اود هغه خلگو بیان وو.په چا چي صدقه واجبیږی.اود چا دارخه چي واجبیږی.په دې فصل کي به هغه شی بیانوی.په څه چي صدقه ادا کیږی. او ددې مقدار به بیانوی.

### په غنمو، اوړو،اوربشو او کجوروکي د صدقة الفطر مقدار

**الْفِطْرَةُ نِصْفُ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ أَوْ دَقِيقٍ أَوْ سَوِيقٍ أَوْ زَبِيبٍ** صدقه فطر نیم صاع ده.د غنمو نه یا د اوړو نه یا د ستوانونه یا د اوشکو نه **أَوْ صَاعٌ مِنْ تَمْرٍ أَوْ شَعِيرٍ** ویو وړئ دي دقجورو نه یاد اوربشو نه،

**حل اللغة***①بر:غنم ②دقیق:اوړه ③سویق:ستوان ④تمر: کهجوري ⑤شعیر:اوربشې

**تشریح:- مذهب ابی حنیفة رحمه الله فی المسئلة**۞د صدقة الفطر په مقدارکي څه قدري اختلاف دی.د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په غنمو، یا ددې په اوړو، یا ستوانو،یا اوسکو سره که فطر ادا کولې شي.نوددې مقدار نیم صاع دې.اوپه کجورو یا اوربشو سره که اداکولې شي.نوددې مقدار به یوصاع وی.

**وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللَّهُ الزَّبِيبُ بِمَنْزِلَةِ الشَّعِيرِ** ()صاحبین رحمهما الله وائي چي اوخکي پشان د اوربشودی. **وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله** اودا یو روایت دې د امام صاحب رحمه الله نه. **وَالْأَوَّلُ رِوَايَةُ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ** او اولني د جامع صغیر روایت دی.

**تشریح:- مذهب الصاحبین رحمهما الله**۞د صاحبینو رحمهما الله مذهب هم دغه دی.خوصرف دومره توپیر دې.چه ددې په نیز اوسکې د اوربشو په حکم کي دی.یعنی د اوربشو په شان اوسکي به هم یوصاع واجب وی.د امام ابوحنیفه رحمه الله نه هم یو روایت دادې. اود رومبني یعنی اوسکونه نیم صاع واجب کیږی.دجامع صغیر روایت دې.خو فتوی په دې نه ده.

**تائید مذهب الصاحبین رحمهما الله**۞د صاحبینو رحمهما الله د مذهب تائید د حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه د حدیث نه هم کیږی. «قال کنا نخرج علی عهد رسول الله ﷺ صاع تمر اوشعیر او اقط او زبیب.... الحدیث» په دې حدیث سره په عهد رسالت کي د اوسکو یوصاع اوبشکل ثابت دی.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: مِنْ جَمِيعِ ذَلِكَ صَاعٌ** اوامام شافعی رحمه الله فرمائی چي ددې ټولو نه یوصاع دې. **لِحَدِيثِ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ** رضی الله عنه دحدیث ابوسعید خدری رضی الله عنه په وجه. **قَالَ: كُنَّا نُخْرِجُ ذَلِكَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ ﷺ** (١) دې فرمائی چي موږ

(١) القول الراجح هو هذا قول الصاحبین رحمهما الله کذا فی فتح القدیر(٢/٢٢٥) والکفایة (٢/٢٢٥) وردالمحتار(٢/٨٣) ومجمع الأنهر(١/٢٢٩) والهندیة (١/١٩١) نقلاً عن القول الراجح (١/١٩١)-



به دا ویستله دنبی کریم ﷺ په زمانه کي.

**تشریح:- مذهب الایمة الثلاثة**۞ امام شافعی،امام مالك،او امام احمد رحمهم الله فرمائی.چه په صدقة الفطرکي په هرڅیز کي یوصاع واجبیږی.تردې چي د اوربشو وغیره په شان د غنموبه هم یوصاع واجب وی.

**دلیل الائمة رحمهم الله**۞ددې حضراتو دلیل دحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه هغه حدیث دې.کوم چي امام ترمذی روایت کړې دې.حدیث دادې.چه مروان ابن الحکم ابوسعید خدری رضی الله عنه ته اولیکل.چه دصدقة الفطر په اړه کي څه حکم دې.نوحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه اوفرمائیل. «کنا نخرج زکاة الفطر إذا کان فینا رسول الله ﷺ صاعاً من طعام او صاعاً من شعیر اوصاعاً من تمر اوصاعاً من زبیب اوصاعاً من أقط»(١)په دې حدیث کي لفظ دطعام استعمال کړې شوې دی.چه آئمه ثلاثه رحمهم الله په غنمو باندي محمول کړې دې.

**وَلَنَا مَا رَوَيْنَا** () **وَهُوَ مَذْهَبُ جَمَاعَةٍ مِنَ الصَّحَابَةِ** اودا دصحابه کرامو دیوجماعت مذهب دی. **فِيهِمُ الْخُلَفَاءُ الرَّاشِدُونَ رِضْوَانُ اللَّهِ عَلَيْهِمْ أَجْمَعِينَ** (٣) چي په دې کي خلفاء راشدین هم دی. الله ﷻ دې د دوی نه راضی شی.

**تشریح:- دلائل جمهور الاحناف رحمهم الله**۞ ① زموږ دلیل هغه حدیث دې.کوم چي په اول باب کي ذکر دې.چه د هغې الفاظ دادی. «أدوا عن کل حر وعبد صغیر اوکبیر نصف صاع من بر اوصاعاً من تمر اوصاعاً من شعیر» په دې حدیث کي په صراحت سره ذکردی.چه دغنمو نیم صاع واجب دې. ② د احنافو رحمهم الله د مذهب تائید د ترمذی په دې حدیث سره هم کیږی. «أن النبی ﷺ بعث منادیاً فی فجاج مکة ألا أن صدقة الفطر واجبة علی کل مسلم ذکر او انثی حر اوعبد صغیر اوکبیر مدان من قمح اوسواه صاع من طعام» یعنی رسول الله ﷺ د مکې په کوڅوکي یو آوازکونکې اولیږلو.چه صدقة الفطر واجب ده.په هرمسلمان باندي که سړې وی.اوکه ښځه، آزاد وی اوکه غلام، نابالغه وی اوکه بالغ، دوې [دوه] مد یا ددې نه علاوه د غلې یو صاع.چه په یو صاع کي څلور مد وی.نود دوې [دوه] مده نیم صاع شو.نوثابته شوه.چه د غنمو نیم صاع واجبیږی. ③ دغه ډول په طحاوی شریف کي د اسماءبنت ابی بکر روایت دې. «قالت کنا نؤدی زکاة الفطر علی عهد رسول الله ﷺ مدین من قمح» یعنی موږ خلگو به د رسول الله ﷺ په زمانه کي په صدقة الفطرکي دوې [دوه] مد غنم ادا کول. ④ صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه د صحابو رضی الله عنهم د یو جماعت مذهب هم دادې.اود خلفاء راشدینو رضی الله عنهم مذهب هم دادې.چه په صدقة الفطرکي د غنمونیم صاع واجبیږی.سیو صاع نه واجبیږی.

**وَمَا رَوَاهُ مَحْمُولٌ عَلَى الزِّيَادَةِ تَطَوُّعًا** اوامام شافعی رحمه الله چي کوم روایت کړې دې دغه محمول دې په زیاتی په طور د نفلو.

**تشریح:- الجواب عن حدیث ابی سعید الخدری رضی الله عنه**۞ ① زموږ د اړخه د ابوسعید خدری رضی الله عنه د حدیث څواب دا دې.چه په یوصاع غنموکي به ابوسعید خدری رضی الله عنه نصف خو د وجوب په طور اداکول.اونیم به ئې د نفل په طور اداکول.اوددې بناء په احتیاط وه.څکه چي د نبی کریم ﷺ په زمانه کي به د هریو داسې خوراك نه یوصاع اداکولې شو.کوم چي په هغه زمانه کي موجود وو.خوچه کله به غنم په ملاؤ شول.نو ابوسعید خدری رضی الله عنه به احتیاطاً د غنمو نه هم یوصاع اداکول. ② دوهم څواب دادې.چه د ابوسعید خدری رضی الله عنه په حدیث کي چي د «صاعاً من طعام» کوم لفظ راغلې دې.زموږپه نیز په دې کي د طعام نه مراد غنم نه دی.بلکه اوربشې یا

(١) أخرجه البخاری فی الزکاة باب ٧٣ رقم ١٥٠٦ ومسلم فی الزکاة رقم ١٧ وأبوداود فی الزکاة باب ٢٠ رقم ٦١٦ وابن ماجه فی الزکاة باب ١٢ والدارمی فی الزکاة باب ٢٧ ومالك فی الزکاة رقم ٥٣ وأحمد فی المسند (٣/٢٣)_

(٢) یشیر إلی حدیث عبدالله بن ثعلبة المتقدم فی أول الکتاب )

(٣) نقل الزیلعی رحمه الله الأحادیث التی یثب منها مذهب الخلفاء الراشدین فراجعه إن تریدالإطلاع علیها نصب الرأیة /٤٤٤)_

باجره وغيره ده.په غنمو د طعام دلفظ اطلاق د هغه وخت نه پيل شو.كله چې د غنمو استعمال زيات شو.خود نبی كريمﷺ په زمانه كي د روستو زمانو په شان د خلګو عامه غذا غنم نه وو.اوهغه وخت به چې دطعام لفظ اووئيلې شو.نو جوار......يا باجره وغيره به مراد اخستلې شوه.لكه څنګه چې هم دا حديث دابوعمر حفص بن ميسره په طريق سره نقل دې.په هغې كي دا جمله هم ده. «قال ابوسعيد وكان طعامنا الشعير والزبيب والأقط والتمر» ددې جملې نه معلوميږی.چه هغه وخت عام غذا غنم نه وو.دغه ډول حافظ ابن حجر رحمه الله د حضرت بن عمر رضی الله عنه روايت نقل كړې دې. «قال لم تكن الصدقة على عهد رسول اللهﷺ إلا التمر والزبيب والشعير ولم تكن الحنطة» ددې رواياتونه معلوميږی.چه په عهد رسالت كي به د طعام د لفظ اطلاق د غنمو په ځائې په نورو څيزونو باندې كيدلې شو.وجه هم دغه وه.چه په دغه زمانه كي غنم ډير كم وو.بهرحال د ابوسعيد رضی الله عنه په حديث كي د طعام نه غنم مراد نه دی.نو هركله چې د ابوسعيد رضی الله عنه په حديث كي د طعام نه مراد غنم نه دی.نو په صدقة الفطر كي د غنمو په يو صاع كيدلو باندې به ددې روايت پيش كول څنګه ټيك وی.

| وَهُمَا فِي الزَّبِيبِ أَنَّهُ وَالتَّمْرَ يَتَقَارَبَانِ فِي الْمَقْصُودِ او داوخكو په اړه كي د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه اوخكې اوخرما په مقصود كي دواړه نژدې دی |
|---|

تشريح:- دليل الصاحبين رحمهما الله فی الذبيب زبيب(اوسكی)دكجورو په منزله كي كيدلو باندې د صاحبينو رحمهما الله د اړخه دا دليل دې.چه اوسكې او كجورې مقصود يعنی په خوند او لذت حاصلولوكي نژدې نژدې دی.په دې وجه د صدقه په اداكولوكي د دواړو حكم برابر دې.يعنی د دواړو به يوصاع واجب وی.او وړاندې د ابوسعيد حديث،او ،صاعاً من زبيب، تيرشوی دې.

| وَلَهُ أَنَّهُ وَالْبُرَّ يَتَقَارَبَانِ فِي الْمَعْنَى اودامام صاحب رحمه الله دليل دا دې چې اوخكې اوغنم په معنى كي نژدې دی. لِأَنَّهُ يُؤْكَلُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِجَمِيعِ اجزائه ځكه چې په دوی كي هريو دخپلو ټولواجزاؤ سره خوړلې شی. |
|---|

تشريح:- دليل ابی حنيفة رحمه الله فی قدري لذبيب د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه زبيب اوغنم د معنى په اعتبارسره دواړه نژدې نژدې دی.ځكه چې په دې دواړوكي هريو په خپلوټولو اجزاؤ سره خوړلې شی.

| بِخِلَافِ الشَّعِيرِ وَالتَّمْرِ لِأَنَّ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يُؤْكَلُ اوپه خلاف دَ خرما او اوربشو چې دَدې هريوڅيز نه شی خوړلې وَيُلْقَى مِنَ التَّمْرِ النَّوَاةُ وَمِنَ الشَّعِيرِ النُّخَالَةُ د خرما هډوكې اود اوربشو بوسه غورزولے شی. وَبِهَذَا ظَهَرَ التَّفَاوُتُ بَيْنَ الْبُرِّ وَالتَّمْرِ اوپه دې سره فرق ظاهرشو په غنمو اوخرما كي اوداوړو |
|---|

تشريح:- اوپاتې شوی كجورې،او اوربشې،نود كجورو هډوكی غورزولې شی.اود اوربشو بهوس غورزولې شی.نو زبيب به په غنمو باندې قياس كول مناسب دی.په كجورو او اوربشو باندې به مناسب نه وی.په دې تقرير سره د غنمواوكجورو په مينځ كي توپير ښكاره شو.يعنی د كجورو چونكه بعض اجزاء لكه هډوكی غورزولې شی.اود غنمو واړه اجزاء د كار اود خوراك دی.په دې وجه د غنمونصف صاع اود كجورو يو صاع مقرر كړې شو.

| وَمُرَادُهُ مِنَ الدَّقِيقِ وَالسَّوِيقِ مَا يُتَّخَذُ مِنَ الْبُرِّ اود ستوانو نه مراد هغه دی كوم چې دغنمو نه جوړ كړې شوی،أَمَّا دَقِيقُ الشَّعِيرِ فَكَالشَّعِيرِ پاتې شو د اوربشو اوړه نودغه ډول د اوربشو دی |
|---|

تشريح:- توضيح عبارة المتن په دې عبارت كي صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چه د متن د عبارت اود دقيق او سويق نه ښكاره معلوميږی.چه مطلقاً په اوړو اوستوانوكي نصف صاع واجبيږی.حالانكه داسې نه ده. بلكه د غنمو په اوړو او ستوانوكي نصف صاع واجبيږی.اوپاتې شو.د اوربشو اوړه، نودا د اوربشو په حكم كي دی.يعنی څنګه چې اوربشې يوصاع واجبيږی.دغه ډول ددې اوړه هم يوصاع واجبيږی.

| الْأَوْلَى أَنْ يُرَاعَى فِيهِمَا الْقَدْرُ وَالْقِيمَةُ احْتِيَاطًا اوغوره خو داده چې رعايت اوساتلې شی په دوی كي دمقدار اوقيمت احتياطا |
|---|



تشريح:- استحباب رعاية القدر والقيمة فی السويق صاحب د هدايه رحمه الله فرمائی.غوره دادی چه په اوړو او ستوانوكي احتياطاً د مقدار او قيمت دواړو رعايت اوساتی.تفصيل دادې.كه څوك د فطرانې ادا كاوه لپاره نيم صاع د غنمو اوړه صدقه كړی.اود نيم صاع اوړو قيمت دنيم صاع غنمو برابر، يا ددې نه زيات دې. نودا كس به په احتياط باندې عمل كونكې شمارلې كيږی.ځكه چې دنيم صاع مقدار هم اوموندې شو. اود نيم صاع غنموقيمت هم موجود شو.اوكه د غنمو اوړه نې د نيم صاع نه كم وركړل.حالانكه ددې قيمت د نيم صاع غنمو برابر دې.يائې د غنمود اوړو نيم صاع وركړو.خو ددې قيمت نيم صاع غنمو نه كم جوړيدو.نوداكس به په احتياط باندې عمل كونكې نه شمارلې كيږی.ځكه چې په اول صورت كي د قيمت رعايت موجودشو.خود نيم صاع مقدار اونه موندې شو.اوپه دوهم صورت كي د مقدار رعايت خو اوشو.خود قيمت رعايت اونشو

| وَإِنْ نُصَّ عَلَى الدَّقِيقِ فِي بَعْضِ الْأَخْبَارِ اګر چې په بعضو احاديثوكي اوړه هم منصوص عليه دی وَلَمْ يُبَيِّنْ ذَلِكَ فِي الْكِتَابِ اعْتِبَارًا لِلْغَالِبِ اوپه كتاب كښ ئې دې لره نه دی بيان كړی په اعتبار د غالب سره |
|---|

تشريح:- ذكرالدقيق فی الاحاديث صاحب د هدايه رحمه الله فرمائی.چه اګرچه په بعضو احاديثوكي د اوړو صراحت ذكردې.لكه چې د ابوهريره رضی الله عنه نه نقل دی. «أن النبیﷺ قال أدوا قبل خروجكم زكاة فطركم فإن على كل مسلم مدين من قمح او دقيقة» (عنايه)يعنی نبی كريمﷺ فرمائيلی دی.چه د اختر په ورځ د وتلونه مخكې خپله فطرانه (سرسايه) ادا كوئ. په دې وجه هرمسلمان باندې دوې [دوه] مد(نصف صاع) غنم يا د دې اوړه واجب دی.

ذكر البر فی الاحاديث دغه ډول د اوربشو د اوړو په اړه كي حديث وراد شوی دې.د زيد بن ثابت رضی الله عنه نه په دې رقطنی كي روايت دې. «قال خطبنا رسول اللهﷺ من كان عنده شئ فليصدق بنصف صاع من بر اوصاع من شعير اوصاع من تمر اوصاع من دقيق اوصاع من زبيب او صاع من سلت» په دې حديث كي د دقيق نه مراد د اوربشو اوړه دی .اود ،سلت، نه مراد اوربشې يا د بورې نه بغير اوربشې.

التوافق بين الروايتين بهرحال په دې احاديثوكي اګرچه ددې خبرې صراحت دې.چه دغنمو د اوړو نيم صاع اود اوربشو د اوړو يوصاع د صدقة الفطر په طورواجبيږی.خو ددې باوجود احتياط په دې كي دې.چه په اوړو اوستوانوكي د مقدار او قيمت دواړو رعايت اوكړې شی.دا احتياطی خبره په متن كي ذكر نه كړې شوه.او وجه دا ده.چه په متن كي د غالب وختونو اعتبار كړې شوې دې.يعنی عام طورد جوارو يوصاع اود غنمو نيم صاع سره برابر وی.بلكه ددې نه هم زيات وی.خوكله كله نيم صاع اود غنمو قيمت دنيم صاع غنمو نه كم وی.لكه د كروندې په زمانه كي ،يعنی په كوم موسم كي چې غنم كرلې شی.په دغه زمانه كي د تخم غنم ګران وی.اود غنمو اوړه ارزان وی.نوحاصل داشو.چه صاحب د هدايه رحمه الله په احتياط باندې د عمل كولواعتباركړې دې.او امام محمد رحمه الله د جامع صغير په متن كي د غالب حالاتو اعتباركړې دې.

| وَالْخُبْزُ تُعْتَبَرُ فِيهِ الْقِيمَةُ هُوَ الصَّحِيحُ اوپه ډوډۍ كښ قيمت متعبردې.دا صحيح ده. |
|---|

تشريح:- القول الصحيح فی الخبز اودصحيح قول مطابق په روټوكي قيمت معتبردې.يعنی په دومره اندازه ډوډۍ اداكولوسره صدقه ادكيږی.چه د نيم صاع غنمو ، يا ددې د قيمت برابروی.

| ثُمَّ يُعْتَبَرُ نِصْفُ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ وَزْنًا فِيمَا يُرْوَى عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله [1] بيا دغنمو نيم صاع د وزن په لحاظ سره معتبر دې په هغه قول چې كوم دامام صاحب رحمه الله نه روايت دې. وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ يُعْتَبَرُ كَيْلًا اود امام محمد رحمه الله نه روايت دې چې د پيمانې په لحاظ سره معتبر دې |
|---|

[1] القول الراجح هو هذا قول أبی حنيفة رحمه الله كذا فی فتح القدير(٢٢٩|٢) والهندية (١٩٢|١) نقلاً عن القول الراجح (١٩٢|١)_

**تشریح:- المذهبان فی الصاع والنصف للکیل اوالقیمة**❀ پاتې شوه دا خبره چې د غنمونیم صاع اود نوروخیزونو یوصاع دې.نوپه دې کې د وزن اعتباردې.یا دپیمانې.په دې اړه کې ① د حضرت امام اعظم رحمه الله نه روایت دې.چه د وزن په اعتبارسره نیم صاع یا یوصاع ورکولې شي. ② اود امام محمد رحمه الله د روایت مطابق به د پیمانې اعتبار کولې شي.

**دلیل ابی حنیفة رحمه الله**❀ د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه د صاع په مقدار کې د عالمانو اختلاف دې.بعض وائي.چه یوصاع د اته رتلو وي.او بعض وائي.چه د پنځو رطلو اود یورطل د دریمې برخې وي.او رطل د وزن کاوه یوه آله ده.دپیمانش(او دناپ) کولونه ده.نوپه دې باندې د ټولو اتفاق دې.چه صاع د وزن لپاره معتبردې.د پیمانش د پاره نه دې.نود غنمونیم صاع او د نوروخیزونو(غلو) یوصاع د وزن په اعتبار سره معتبر دې.

**دلیل محمد رحمه الله**❀ د امام محمد رحمه الله دلیل دادې.چه په احادیثوکې د صاع لفظ راغلې دې.اوصاع د مکیال او پیمانې نوم دې.د وزن کاوه د آله نوم نه دې.په دې وجه په صدقة الفطر اداکولوکې نیم صاع غنم یا یوصاع په نورو څیزونوکې ، د صاع اعتبار به د پیمانې په اعتبارسره کیږي.د وزن په اعتب

> وَالدَّقِیْقُ أَوْلٰی مِنَ الْبُرِّ اوړه غوره دي د غنمونو نه وَالدَّرَاهِمُ أَوْلٰی مِنَ الدَّقِیْقِ فِیْمَا یُرْوٰی عَنْ أَبِیْ یُوْسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ درهم غورډي د اوړونه په هغه روایت کې کوم چې دامام ابویوسف رحمه الله نه دې. وَهُوَ اخْتِیَارُ الْفَقِیْهِ أَبِیْ جَعْفَرٍ رحمه الله (۱)
> اودا مختار دې په نزد د فقیه ابی جعفر لِأَنَّهُ أَدْفَعُ لِلْحَاجَةِ وَأَعْجَلُ بِهِ ځکه چې دا زیات حاجت لرې کوی او زر پکاریږي.

**فضل العجین علی البر**❀ علامه مرغینانی رحمه الله فرمائي.چه د غنمو اوړه اداکول د غنمو اداکولونه بهتر دي.ځکه چې اوړه فورا پکار راتلې شي.او نغد(رقم) اداکول د اوړو ادا کاوه نه غوره دي.ځکه چې پیسې ضروریات زیات پوره کولې شي.ځکه چې پیسې وي.نود خوراک نه علاوه کپړې اوپه علاج کولوکې هم پکار راځي.داد امام ابویوسف رحمه الله روایت دې.

> وَعَنْ أَبِیْ بَکْرِ الْأَعْمَشِ تَفْضِیْلُ الْحِنْطَةِ اودابی بکراعمش نه غوره والې د غنمو راغلې دې. لِأَنَّهُ أَبْعَدُ مِنَ الْخِلَافِ ځکه چې دا داختلاف نه ډیر لرې دې. إِذْ فِی الدَّقِیْقِ وَالْقِیْمَةِ خِلَافُ الشَّافِعِیِّ رحمه الله ځکه چې په اوړو اوقیمت کښې دامام شافعی رحمه الله اختلاف دې.

**تشریح:-** د فقیه ابوجعفر رحمه الله خوښ مذهب دې.اود ابوبکر اعمش رحمه الله نه نقل دی.چه د غنمو ورکول افضل دي.ځکه چې د غنموپه جواز کې د هیڅ چا اختلاف نشته.اود اوړو د قیمت په جواز کې دحضرت امام شافعی رحمه الله اختلاف دې.نو متفق علیه شي اختیارول غوره دي.په نسبت د مختلف فیه څیزد اختیارولو .

> قَالَ او صاحب دکتاب فرمائی وَالصَّاعُ عِنْدَ أَبِیْ حَنِیْفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ ثَمَانِیَةُ أَرْطَالٍ بِالْعِرَاقِیِّ .(۲) اوصاع د طرفینو په نزد اته رطله عراقی دي.

**تشریح:- المذهبان فی قدر الصاع**❀ د صاع په اړه کې د عالمانو اختلاف دې.① طرفین فرمائی.چه صاع هغه دې.چه پکې عراقی اته رتله وزن برابرغنم وغیره څه شی راځي.یعنی صاع دعراقی اته رتلو برابروی.او په یو

(۱) القول الراجح هو هذا القول الأول یعنی الدری هم أولی من الدقیق کذا فی الدری لمختار (۲/۸۴) ومجمع الأنهر (۱/۲۲۹) [illegible]

الحقائق (۱/۳۰۹) وردالمحتار (۲/۸۳) نقلاً عن القول الراجح (۱/۱۹۴)۔



صاع کې څلور ،مد ، وي.او یو رطل شل ،استار، وي.اویو استار شپږنیم درهمو وزن برابر وي.گویاچه یو رطل د یوسل دیرشو درهمو وي.

> وَقَالَ أَبُوْیُوْسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ: خَمْسَةُ أَرْطَالٍ وَثُلُثُ رِطْلٍ اوامام ابویوسف رحمه الله فرمائي چې پنځه رطله او دریمه برخه د رطل ده. وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِیِّ رحمه الله دا د امام شافعی رحمه الله قول دې. لِقَوْلِهِ ﷺ {صَاعُنَا أَصْغَرُ الصِّیْعَانِ} (۱) دنبی ﷺ د ارشاد په وجه چې زمونږصاع د ټولو صاعو نه وړوکې دې.

**تشریح:-** امام ابویوسف رحمه الله فرمائي.چه یوصاع پنځه رطله اود یورطل د دریمې برخې برابر وي.هم دا قول د امام شافعی امام مالك او امام احمد رحمهم الله دې.

**دلائل ابی یوسف رحمه الله**❀ د امام ابویوسف رحمه الله ① دلیل دا حدیث دې. {صاعنا اصغر الصیعان} یعنی زمونږ صاع د ټولو صاعونو نه وړوکې وي.اوښکاره ده.چه پنځه رطله اود یورطل دریمه برخې برابرصاع په نسبت اته رطلووالا د صاع نه وړوکې وي.په دې وجه مونږ وایو.چه صاع د پنځه رطلواو د یورطل د دریمې برخې برابر وي. ② علامه ابن الهمام رحمه الله دحسن بن ولید قریشي رحمه الله روایت بیان کړې دې.چه امام ابویوسف رحمه الله چې کله دحج نه وارووسته شو.او زمونږ خواله راغې.او وې وئیل.چه زه تاسو باندې د علم یوه دروازه کلاو کړم.څه چې زه په ډیرفکرکې اچولې ووم.نوددې لټون اوکړو.نو زه مدینې منورې ته لاړم.اوما د صاع په اړه کې معلومات اوکړل.نو خلګو اووئیل.چه زمونږ دا صاع د رسول الله ﷺ صاع دې.ما اووئیل.چه تاسوسره ددې څه دلیل دې.چه دا درسول الله ﷺ صاع دې.دوی اووئیل.چه مونږ به صباله په اول وخت کې تاسوته دلیل پیش کړو.کله چې صباشو.نوزما خواله تقریباً پنځوس نفر بوډاګان راغلل.چه دا د انصار او مجاهدینو اولاد وو.دهر یو دخادرلاندې یوصاع وو.اوهر یو دخپل نیکه نه سند بیان کړو.وې چه دا د رسول الله ﷺ صاع دې.نوکله چې ما دا اوکتل.نوواړه برابروو.اوما چې ددې ناپ تول اوکړلو.نوپنځه رطله اود یورطل دریمه برخه کمه اوختل.کله چې ما دا اوکتل.نوما دحضرت الاستاذ قول ترك کړلو.

> وَلَنَا مَا رُوِیَ {أَنَّهُ عَلَیْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ کَانَ یَتَوَضَّأُ بِالْمُدِّ رِطْلَیْنِ اوزمونږ دلیل دې چې روایت دې.د نبی ﷺ نه چې دوی به اودس کاوه په یومد دوي [دوه] رطلو سره وَیَغْتَسِلُ بِالصَّاعِ ثَمَانِیَةَ أَرْطَالٍ} (۲) او غسل به ئې کاوه په یوصاع اته رطلو سره.

**تشریح:- دلیل الصاحبین**❀ زمونږ دلیل د حضرت انس رضی الله عنه اود حضرت جابر رضی الله عنه دا روایت دې. {أنه ﷺ کان یتوضأ بالمد رطلین ویغتسل بالصاع ثمانیة أرطال} یعنی رسول هاشمی ﷺ به یو مد یعنی په دوي [دوه] رطله اوبوسره اودس کولو.او یوصاع یعنی اته رطله اوبوسره به ئې غسل کولو.اوهم دغه ډول حضرت عمر رضی الله عنه صاع وو.بهرحال ددې حدیث نه معلومه شوه.چه صاع اته رطله وي.

> وَهٰکَذَا کَانَ صَاعُ عُمَرَ (۳) اوحضرت عمر رضی الله عنه هم داسې وو وَهُوَ أَصْغَرُ مِنَ الْهَاشِمِیِّ، وَکَانُوْا یَسْتَعْمِلُوْنَ الْهَاشِمِیَّ اودا وړوکې دې د هاشمی نه اوهغوی به هاشمی استعمالولو.

**تشریح:- الجواب عن اصغر الصیعان**❀ اود امام ابویوسف رحمه الله دا رخه د پیش کړې روایت {صاعنا أصغر الصیعان} کې د اصغرصاع نه مراد دادې.چه د اتو رطلو والاصاع د هاشمی صاع نه وړوکې دی.ځکه چې هاشمی صاع

(۱) من غربه الزیلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم ذکرماهو بمعناه من حدیث ابی هریرة رضی الله عنه أخرجه ابن حبان فی النوع التاسع والعشرون من القسم الرابع (نصب الرأیة ۴۴۶/۲)۔

(۲) من حدیث أنس رضی الله عنه أخرجه الدارقطنی فی سننه (۱۵۴/۲)

(۳) من روایة حسن بن صالح أخرجه ابن ابی شیبة فی مصنفه [illegible]۔

د دوې [دوه] ډېرشورطلو وي.او خلګ وبه هم دا استعمالولو.رسول اکرمﷺ به عراقي صاع(چه پکې اته رطله وو) استعمالولو .نود هاشمي صاع په مقابله کې او وئيلې شو.چه «صاعنا أصغر من صيعان»

**طرق معرفة الصاع**۞فوائد ْد صاع وزن معلومولو درې طريقې دی.① د صاع وزن د مثقال په حساب سره يو مثقال څلور ماشې اوڅلور تې وی.د مثقال په حساب سره د صاع وزن درې زره او دوې [دوه] سوه څلويښت ماشې جوړيږی .يعنی دوې [دوه] سوه اويا تولې.په دې حساب سره درې سيره اود شپږ چټاکو پوره صاع شو.او يونيم سير د درې چټاکو نيم صاع شو.② د درې همو په اعتبارسره يو درهم د دريو ماشو او يوه رتۍ ، اود يوې رتۍ د پنځمې برخې برابر وی.په دې حساب سره يوصاع دوې [دوه] سوه او درې اويا تولې شو.او نيم صاع د يوسل شپږ ديرشو تولو اود شپږو ماشو جوړيږی.ګويا د انګريزی سير په حساب سره پوره صاع درې سيره شپږ چټاکۍ اود دريو تولو برابر وی.او نيم صاع د نيم سير ،دريوچټاکو اود يوې نيمې تولې برابر وی.③ د مد په اعتبارسره يو مد اته شپيته تولې اود درې ماشو وی.په دې حساب سره يو صاع د دوې [دوه] سوه اتيا تولې او څه ماشې جوړيږی.اونيم صاع يوسل څلويښت تولې اود درېو ماشو وی.ګويا پوره صاع درې نيم سيره اود شپږماشو شو.اونيم صاع پاؤباندې دوې [دوه] سيره درې ماشې شو.ښکاره دې وی.چه يوصاع څلور مد وی.(درس ترمذی ج۲ص۴۹۴)

**اعتبار الطرق الثلاثة**۞د صاع د وزن چې کومې درې طريقې ليکلې شوې دی.په دې کې چې کومه يوه طريقه اوحساب هم چې اختيارکړې شی.صدقة الفطر ادکيږی.خوچونکه په آخری حساب کې زياتوالې دې.په دې وجه ددې مطابق اداکولوکې زيات احتياط دې.يعنی پاؤباندې دوې [دوه] سيره او درې ماشې غنم يا درې نيم سيره او شپږ ماشې اوربشې وغيره په فطره (سرسايه)کې اداکولې شی.

## د صدقه فطر د وجوب وخت

وَقَالَ وَوُجُوْبُ الْفِطْرَةِ يَتَعَلَّقُ بِطُلُوْعِ الْفَجْرِ مِنْ يَوْمِ الْفِطْرِ اود فطرې وجوب ديوم فطر د سهار ختلوسره متعلق دې. وَقَالَ الشَّافِعِي: بِغُرُوْبِ الشَّمْسِ فِي الْيَوْمِ الْأَخِيْرِ مِنْ رَمَضَانَ اوامام شافعی رحمه الله فرمائی چې د رمضان د آخری ورځې په لمر پريوتلو پورې متعلق دې

**تشريح:- المذهبان فی وقت وجوب صدقه الفطر**۞①زموږ په نيزد وړوکی اختر د سهار نه د صدقة الفطر اداکول واجبيږی.هم دا قول د امام مالك رحمه الله دې.② او امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه د رمضان په آخری ورځ د لمر د پريوتلو نه روسته اداکول واجبيږی.حاصل دا چې د اخترپه شپه د شوافعو رحمهم الله په نيز د واجب صدقة الفطر ادا کاوه وخت د لمر پريوتلو نه روسته پيل کيږی.او زموږ به نيز د صباصادق په راختلوسره پيل کيږی.

حَتّٰى أَنَّ مَنْ أَسْلَمَ أَوْوُلِدَ لَيْلَةَ الْفِطْرِ تَجِبُ فِطْرَتُهُ عِنْدَنَا، وَعِنْدَهُ لَا تَجِبُ تردې چې کوم سړی اسلام راوړو يا پيدا شو په شپه دفطر(وړوکی اختر) نودده فطره واجب ده په نزد زموږ اود امام شافعی رحمه الله په نزد واجب نه ده. وَعَلٰى عَكْسِهِ مَنْ مَاتَ فِيْهَا مِنْ مَمَالِيْكِهِ أَوْوَلَدِهِ اوددې عکس دې که څوك مړشو په دې کې دده دغلامانونه يا اولاد دده نه،

**تشريح- ثمرة الاختلاف**۞د اختلاف ثمره به داسې ښکاره کيږی.چه داخترپه شپه کې د صباصادق نه مخکې که کافر مسلمان شو.يا ماشوم پيدا شو.نو زموږ په نيز به دده فطرانه واجب وی.اود امام شافعی رحمه الله په نيز به واجب نه وی.اوکه د اخترپه شپه کې د صباصادق نه مخکې د چاغلام مړ شو.يا دده ماشوم مړشو.نو زموږ په نيز به دده فطره واجب نه وی.ځکه چې د ادا کاوه د وخت پيل کيدو نه مخکښې مړ شو.اود امام شافعی رحمه الله په نيز به واجب وی.ځکه ددوی په نيز د ادا کاوه د وخت نه روسته مړ شوې دې.

لَهُ أَنَّهُ يَخْتَصُّ بِالْفِطْرِ د امام شافعی رحمه الله دليل دادې چې د صدقې وجوب مختص په فطر پورې دې وَهٰذَا وَقْتُهُ او دائې وخت دې



**تشريح:- دليل الشافعی** رحمه الله۞د امام شافعی رحمه الله دليل دادې.چه دصدقة الفطر وجوب فطر(د روژه ماتی وخت)سره مختص دې.ځکه چې ابن عمر رضی الله عنه فرمائيلی دی. «فرض رسول اللهﷺ زكاة الفطر»او فطريعنی د افطار وخت د نمرپريوتلو نه پيل کيږی.په دې وجه او وئيلې شو.چه دصدقة الفطر وجوب د رمضان په آخری ورځ ، لمرپريوتلو سره متعلق دې.

وَلَنَا أَنَّ الْإِضَافَةَ لِلِاخْتِصَاصِ اللَّيْلِ، وَالِاخْتِصَاصُ الْفِطْرِ بِالْيَوْمِ دُوْنَ ،اوزموږدليل دادې چې اضافت لپاره د اختصاص دې او دفطر اختصاص د ورځې سره دې.د شپې سره نه دې.

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله۞ او زموږ دليل دادې.چه په صدقة الفطرکې د صدقه اضافت فطر اړخ ته د اختصاص لپاره دې.يعنی صدقه فطرسره مختص ده.اود فطر نه مراد د صوم ضد دې.اود صوم تعلق د ورځ سره وی. دشپې سره نه وی.نود فطر تعلق به هم ورځ سره وی.شپې سره به نه وی.اودا معلومه شوې ده.چه د فطرسره خاص ده.اود فطر نه مراد ورځ ده.نو صدقه به ورځ سره مختص وی.او ورځ د صباصادق نه پيل کيږی.په دې وجه د صدقة الفطر وجوب اداکول به هم د اختر د شپې د صباصادق سره متعلق وی.

## دصدقهٔ فطر مستحب وخت

وَالْمُسْتَحَبُّ أَنْ يُخْرِجَ النَّاسُ الْفِطْرَةَ يَوْمَ الْفِطْرِ قَبْلَ الْخُرُوْجِ إِلَى الْمُصَلّٰى ومستحب دی چې اوباسی خلګ فطره په ورځ د اختر مخکې دوتلو نه عيدګاه ته.

**تشريح:- اخراج صدقة الفطر قبل الخروج الى المصلى**۞مسئله ْد صدقة الفطر په اداکولوکې مستحب عمل دادې.چه د خلګو عيدګاه ته د تللونه مخکې اداکړی.

لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يُخْرِجُ قَبْلَ أَنْ يَخْرُجَ لِلْمُصَلّٰى(1) ځکه چې نبی کريمﷺ به ويستله عيدګاه ته دوتلو نه مخکې

**تشريح:- دلائله**۞ دليل د ابن عمر رضی الله عنهما حديث دې.حديث دادې. «كان يأمرنا أن نخرجها قبل الصلاة وكان رسول اللهﷺ يقسمها قبل أن يصرف إلى المصلى ويقول أغنوهم عن الطواف فى هذا اليوم» يعنی رسول اللهﷺ به موږ ته حکم فرمائيلو چه موږ د اختر دلمانځه نه مخکې مخکې صدقه اداکړو.او پخپله به نبی کريمﷺ هم عيدګاه ته د تللونه مخکې مخکې صدقه تقسيموله.وويل به ئې.چه فقيرانو ته په دې ورځ در په درګرځيدلونه بې پرواه کړئ.يعنی بغير د غوښتلو نه د لمونځ نه مخکې دوی ته صدقه ورکوئ.

وَلِأَنَّ الْأَمْرَ بِالْإِغْنَاءِ كَيْ لَا يَتَشَاغَلَ الْفَقِيْرُ بِالْمَسْأَلَةِ عَنِ الصَّلَاةِ اود مستغنی کاوه حکم ځکه دې چې فقير په سوال کولوکې دلمانځه نه غافله نشی. وَذٰلِكَ بِالتَّقْدِيْمِ اودا مقصد په اول ورکولوکښې حاصليدلې شی.

**تشريح:-** دوهم دليل دادې.چه دفقيرانو د بې پرواه کاوه حکم هم ددې مقصد لپاره دې.چه دوی د سوال کاوه په وجه د اختر د لمانځه نه پاتې نشی.اودا مقصد به هم په دې صورت کې پوره کيږی.چه صدقه د اختر د لمانځه نه مخکې ورکړې شی.په دې وجه تقديم (مخکې ورکول) مستحب او مندوب اوګرځولې شو.

## صدقهٔ فطر د وخت نه وړاندې ادکول

فَإِنْ قَدَّمُوْهَا عَلٰى يَوْمِ الْفِطْرِ جَازَ که د اختر دورځې نه ئې وړاندې ورکړه.نوجائز ده

**تشريح:- جواز تقديم الصدقة يوم الفطر**۞مسئله داده.که چا د اختر د ورځ نه مخکې صدقه ادا کړه.نو جائزده.

(1) من حديث ابن عمر رضی الله عنهما أخرجه الحاكم فى علوم الحديث باب الأحاديث التى إنفرد بها راو واحد وراه البيهقى فى السنن الكبرى (۲۹۲/٤) رقم ۷۷۳۹)_

لِاَنَّهُ اَدّٰى بَعْدَ تَقَرُّرِ السَّبَبِ ځکه چې ده د تقرر د سبب نه روسته اداکړه. فَاَشْبَهَ التَّعْجِيْلَ فِي الزَّكَاةِ نو مشابه شوه د پیشکۍ (یعنی د وړاندې) زکاة اداکاوه سره

**تشریح:- دلائله** ① دلیل دادې چه صدقة الفطر د وجوب د سبب متحقق کیدلو نه روسته اداشوې ده. اوسبب هغه راس دې چه ددې مؤونت برداشت کوی. اوپه دې باندې ولایت حاصل دې. نوکله چې د سبب متحقق کیدلو نه روسته اداکړی. نو ادا به وی. ② اودا داسې ده. لکه چې د حولان حول نه مخکې د وړاندې نه زکاة ورکړې شی. نو زکاة اداکیږی. ځکه چې نصاب کوم چې سبب دې. هغه موجود شو. ③ اود ابن عمر رضي الله عنهما حدیث دې. «وکانوا يعطون قبل الفطر بيوم أو يومين» یعنی صحابو رضي الله عنهم به یوه ورځ یا دوې [دوه] ورځې مخکې فطره ورکوله.

وَلَا تَفْصِيْلَ بَيْنَ مُدَّةٍ وَمُدَّةٍ هُوَ الصَّحِيْحُ اود یوې مودې نه تربلې مودې پورې څه تفصیل پکې نشته دې دا صحیح ده. وَقِيْلَ يَجُوْزُ تَعْجِيْلُهَا فِي النِّصْفِ الْاَخِيْرِ مِنْ رَمَضَانَ او وئیلې شوی دی. چه جائزدې وړاندې ورکول ددې په آخری نیمه برخه د رمضان کې، وَقِيْلَ فِي الْعُشْرِ الْاَخِيْرِ او وئیلی شوی دی چې په آخری لسو ورځو کښې. (ورکول جائزدی)

**تشریح:-** ① ددې هیڅ څه تفصیل نشته. چه څومره مخکې صدقه ورکول جائزدی. اوڅومره موده مخکې جائز نه ده. بلکه مطلقاً وړاندې ورکول جائز دی. اوهم دا صحیح قول دې. ② او نوح بن ابی مریم رحمه الله فرمائی. چه د نصف رمضان نه وړاندې صدقه ورکول جائزدی. ددې نه وړاندې ورکول جائز نه دی. ③ اوبعض وائی. چه د رمضان په آخری عشره کې ورکول جائز دی. ددې نه مخکې ورکول جائز نه دی. (عنایه)

## د وخت نه روستو کولو حکم

وَاِنْ اَخَّرُوْهَا عَنْ يَوْمِ الْفِطْرِ لَمْ تَسْقُطْ اوکه داختر دورځې نه ئې روستو کړه نو نه ساقطیږی. وَكَانَ عَلَيْهِمْ اِخْرَاجُهَا خو دده په ذمه به ئې اداکول لازم وی.

**تشریح:- الروایتان فی سقوط الصدقة بخروج وقتها** ① اوکه خلګو د اختر په ورځ فطرانه اداکړه. اود اختر ورځ تیره شوه. نوصدقه ددوی د ذمې نه ساقط نشوه. بلکه په دوی به واجب پاتې وی. اوپه دوی به دا اوښکل لازم وی. که هرڅومره تاخیر اوشی. ② اوحسن بن زیاد رحمه الله فرمائی. چه د اختر ورځ تیره شی. نو ساقط به وی. ځکه چې صدقه داسې عبادت دې. چه د وړوکی اخترسره مخصوص دې. نود قربانۍ په شان شو. لکه څنګه چې قربانی د غټ اختر ورځو تیریدلو سره ساقطیږی. دغه ډول صدقه به هم د اختر ورځ تیریدلوسره ساقطیږی.

لِاَنَّ وَجْهَ الْقُرْبَةِ فِيْهَا مَعْقُوْلٌ فَلَا يَتَقَدَّرُ وَقْتُ الْاَدَاءِ فِيْهَا ځکه چې پدې کې دقربت وجه معقوله ده نوپه دې کې به دا څه وخت پورې مقرر نه وی

**تشریح:-** ځکه چې دا مالی صدقه ده. اوهر وخت د فقیرانو حاجت لرې کاوه لپاره مشروع شوې ده. نوپه دې کې به د ادا کولوڅه مقرروخت نه وی. او د وجوب نه روسته به د زکاة په شان بغیر د اداکولونه ساقطیږی

بِخِلَافِ الْاُضْحِيَّةِ، وَاللّٰهُ اَعْلَمُ په خلاف د اضحیه. الله ﷻ پوهه دې.

**تشریح:- الجواب عن القیاس** په خلاف د قربانۍ چې په هغې کې عبادت وینه تویول دی. او وینه تویول غیرمعقوله عبادت دې. نوهرکله چې دا عبادت غیرمعقوله او خلاف قیاس دې. نوپه خپل مورد به منحصر نه وی. اود حدیث په مطابق قربانی صرف د غټ اختر په ورځوکې کیږی. په دې وجه که یوکس د غټ اختر په ورځوکې قربانی اونکړه. او دا ورځې تیرې شوې. نودده د ذمې څخه به قربانی ساقط شی. خوددې خاروی صدقه کول به واجب وی. والله اعلم.



# کتاب الصوم

(دا) کتاب (په بیان) د روژې (کې) دې.

**تشریح:- الربط بما قبله** امام محمد رحمه الله په جامع صغیرکې کتاب الصوم د کتاب الصلاة نه روسته ذکرکړې دې. او وجه ئې دا بیان کړې ده. چه دواړه د بدن د عبادتونو د قبیلې څخه دی. په خلاف د زکاة چې دا عبادت مالیه دې. او دلته په قدوری او هدایه کې د کتاب الصلاة نه روسته کتاب الزکاة ذکرشوې دې. چه د قرآن عظیم (وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ) اقتداء اوشی.

**تاریخ فرضیة الصوم** روژه د کلمه توحید نه روسته د اسلام دریم رکن دې. اود رمضان د روژو فرضیت دهجرت په دوهم کال د شعبان په میاشت کې اوشو. یعنی د هجرت نه اتلس میاشتې روسته د شعبان په میاشت کې د قبلې د تحویل نه روسته د رمضان روژې فرض شوی دی. اوددې نه وړاندې به رسول اکرم ﷺ اوصحابه کرامو رضي الله عنهم د عاشوره اود ایام بیض (د قمری میاشتې دیارلسم، څوارلسم، پنځلسم تاریخ) روژې نیولې.

**معنی الصوم** په لغت کې د صوم معنیٰ مطلقاً امساک (بندیدل) راځی. که د څه څیزنه هم بندشی. لکه چې «صام عن الکلام» د کلام او خبرو اترو نه د بندیدلو نوم صوم دې.

**المذهبان فی فرضیة الصوم** بیا په دې کې اختلاف دې. چه د عاشوره او ایام بیض روژې هغه وخت فرض وې اوکه نه؟ ① حنفیه وائی. چه دا روژې هغه وخت فرض وې. خو شوافع رحمهم الله ددې قائل دی. چه د رمضان روژو نه مخکې هیڅ روژه فرض نه وه. بلکه د عاشوره وغیره روژې مخکې هم سنت وې. او اوس هم سنت دی.

**التدریج فی فرضیة صیام رمضان** د رمضان د روژو فرضیت په تدریج سره شوې دې. په پیل کې د [يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ] په ذریعه مطلقاً روژه فرض کړې شوه. یعنی ای ایمان والوا فرض کړې شوه په تاسوروژه لکه څنګه چې فرض کړې شوې وه. ستاسونه مخکې خلګ وباندې. بیا د «مَعْدُوْدٰتٍ اَيَّامٍ» په ذریعه تعین اوکړې شو. چه دا د شمیریو څو ورځې دی. اوددې نه مراد د رمضان میاشت ده. یعنی د رمضان روژې فرض کړې شوې. خودا اختیار ووچه که غواړی. روژه اونیسی. اوکه نه ئې نیسی. اوددې په ځائې فدیه ورکړی. یعنی یومسکین ته په مړه ګیډه دوې [دوه] وخته خوراک ورکړی. په آیت «وَعَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهٗ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِيْنٍ ۭ فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَّهٗ ۭ» کې هم دا اختیار بیان شوی دې. یعنی د کومو خلګ وچه د روژه نیولو توان شته. دوی لپاره ددې بدله ده. یوفقیر ته خوراک ورکول. خود اختیار ور کاوه باوجود دا هم اوفرمائیل. چه روژه نیول بهتردی. لکه چې ارشاد دې. «وَاَنْ تَصُوْمُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ» بیاڅو ورځې روسته دا اختیارمنسوخ کړې شو. اوپه هره تندرست مقیم باندې روژه ساتل لازم کړې شوه. لکه چې د الله تعالی ارشاد دې «فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ ۭ» یعنی څوک چې په تاسوکې دا میاشت بیامومی. نو روژه دې ضرور اونیسی. په دې آیت روژه ساتل ضروری شو. او فدیه ورکول، اود روژې پریښولو اجازت پاته پاتې نشو.

**نسخ حرمة الجماع بعدالنوم فی اللیل** بهرحال د رمضان روژه خولازم کړې شوه. خوپه پیل کې دا حکم وو. چه په روژه کې د شپې په پیل کې د خوراک سکاک اوښځو سره د صحبت کولواجازت وو. خود اوده کیدلونه روسته ددې څیزونو ممانعت وو. بعض حضرات صحابه کرامو رضي الله عنهم ددې خلاف اوکړو. اود اوده کیدلونه روسته ئې جماع اوکړه. بیا نبی کریم ﷺ له راغلل. اود خپل قصور اقرار اود ندامت اظهار ئې اوکړو. اود توبه لپاره ئې ددوی نه سوال اوکړو. نوپه دې دا آیت نازل شو. «اُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ اِلٰى نِسَآئِكُمْ ۭ هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَاَنْتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ ۭ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنْكُمْ ۚ فَالْئٰنَ بَاشِرُوْهُنَّ وَابْتَغُوْا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ ۠ وَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ

﴿الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ﴾ شو تاسوته د روژې په شپه ښځې پردګي (صحبت) خپلوښځوسره. دوى لباس دې ستاسو. اوتاسو لباس ئې د دوى. الله ته معلومه ده. چه تاسوخيانت كوئ خانونوسره. نومعاف كړلوتاسوته اوبخښنه ئې اوكړه تاسوته. نوملاويږئ (صحبت) كوئ خپلوښځوسره اوطلب كوئ. هغه چې ليكلى دى الله تعالى ستاسو دپاره. اوخورئ سكئ ترهغه پورې چې صفاپه نظر راشى تاسوته تارسپين د صبا جلا د تور تارد شپې نه. بيا پوره كړئ روژه د شپې پورې.

| |
|---|
| ﴿قَالَ رَحِمَهُ اللَّهُ (الصَّوْمُ ضَرْبَانِ: وَاجِبٌ وَنَفْلٌ) دروژې دوې [دوه] قسمونه دى واجب او نفل. |

**تشريح:- الاقسام الثلاثة للصوم**﴿شيخ ابوالحسن قدورى رحمه الله د روژې ويش كړې دې. فرمائى. چه د روژې دوې [دوه] قسمه دى. ① واجب ② نفل. حالانكه د روژې درې قسمه دى. ① فرض ② واجب ③ نفل يعنى غير واجب چې سنت مستحب او نفل ټولو ته ګډ دې. ددې ځواب دادې. چه واجب لفظ فرض او واجب دواړو ته ګډ دې. ځكه چې د واجب معنى ثابتول دى. نوكه په دليل قطعي سره ثابت وى. نوفرض ده. اوكه په دليل ظنى سره ثابت وى. نو واجب ده. صاحب د قدورى رحمه الله د دواړو بيانولو لپاره صرف واجب (ثابت) استعمال كړې دې.

| |
|---|
| وَالْوَاجِبُ ضَرْبَانِ: بيا دواجبو دوې [دوه] قسمونه دى مِنْهُ مَا يَتَعَلَّقُ بِزَمَانٍ بِعَيْنِهِ كَصَوْمِ رَمَضَانَ وَالنَّذْرِ الْمُعَيَّنِ يو هغه چې د خاص زمانې سره تعلق ساتى لكه درمضان دمياشتې او د نذر معين روژه. |

**تشريح:- القسمان للصوم الواجب**﴿بيا د واجب دوې [دوه] قسمه دى. ① معين ② غير معين يعنى يو هغه چې د متعين زمانه سره متعلق وى. لكه د رمضان روژې. اود نذر معين روژې. مثلاً يوكس اووئيل. چه په ما د الله لپاره د دې مياشتې په اوله جمعه روژه لازم ده. نوددې مياشتې اوله جمعه متعين شوه. دوهم هغه چې ديو متعين زمانه سره متعلق نه وى. لكه د رمضان قضاء روژې. چه ددې هيڅ متعين وخت نشته. بلكه د منهي عنها (ممنوع) ورځونه علاوه چې كله غواړى. قضاء دې راوړى.

| |
|---|
| فَيَجُوزُ صَوْمُهُ بِنِيَّةٍ مِنَ اللَّيْلِ وَإِنْ لَمْ يَنْوِ حَتَّى أَصْبَحَ أَجْزَأَهُ النِّيَّةُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الزَّوَالِ) نودا جائز ده پداسې نيت سره چې دشپې نه وى كه نيت ئې اونكړو تر سحره پورې نوكافى دې ده لپاره نيت كول دسحر د زوال په مينځ كې. |

**تشريح:- المذهبان فى مبيت النية للصيام المختلفة**﴿صاحب د هدايه رحمه الله ړومبې د واجب معين احكام ذكركړې دى. ① فرمائى. چه د رمضان اود نذر معين روژې د نورو قسمونو روژو په شان په شپه كې نيت كولوسره جائزكيږى. او كه د رمضان يا د نذر معين روژو په شپه كې نيت اونشى. تردې چې صباشو. نوكه د سهار اود زوال په مينځ كې نيت اوكړې شو. نوهم جائز دې.

| |
|---|
| وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يُجْزِيهِ. امام شافعى رحمه الله فرمائى چې كافى نه دې. اعْلَمْ أَنَّ صَوْمَ رَمَضَانَ فَرِيضَةٌ لِقَوْلِهِ تَعَالَى {كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ} پوهه شه چې درمضان دمياشتې روژه فرض ده په دليل ددې قول دالله تعالى. فرض كړې شوې ده په تاسو روژه وَعَلَيْسِ فَرْضِيَّتِهِ انْعَقَدَ الْإِجْمَاعُ اوددې په فرض كيدو اجماع منعقد ده وَلِهَذَا يَكْفُرُ جَاحِدُهُ پدې وجه ددې منكر ته كافر ونيلې شى وَالْمَنْذُورُ وَاجِبٌ لِقَوْلِهِ تَعَالَى {وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ} او نذر روژه واجب ده په دليل ددې قول د الله تعالى اوپوره دې كړى خپل نذرونه. |

**تشريح:-** امام شافعى رحمه الله فرمائى. كه د رمضان روژې يا د نذر معين روژې په شپه كې نيت اونكړې شى. بلكه د سهار راختلونه روسته نيت اوكړى. نوجائزنه دې. البته د نفلى روژې نيت د سهار نه روسته كول هم جائز دې. هم دا قول د امام محمد رحمه الله دې.

**دلائل فرضية صوم رمضان ووجوب النذر**﴿صاحب د هدايه رحمه الله په مختلف فيه مسئله كې د فريقينو دليلونو بيانولو نه مخكې دتمهيد په طور يوځوخبرې ذكر كړې دى. ① اوله خبره خودا چې د رمضان روژه فرض ده. اوپه فرضيت باندې د الله تعالى قو ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ﴾ اود امت اجماع د ليل دې. هم دغه وجه ده. چې



د رمضان د روژو د فرضيت نه انكار كونكې كافرشمارلې شى. ② اود نذر روژه واجب ده. دليل د الله تعالى قول ﴿وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ﴾ دې. ځكه چه ﴿وَلْيُوفُوا﴾ د امر صيغه ده. او امر په وجوب دلالت كوى.

| |
|---|
| وَسَبَبُ الْأَوَّلِ الشَّهْرُ اود اول سبب مياشتې درمضان ده وَلِهَذَا يُضَافُ إِلَيْهِ په دې وجه ئې دې ته اضافت كولې شى وَيَتَكَرَّرُ بِتَكَرُّرِهِ او ددې په مكرر كيدو سره مكرر كيږى وَكُلُّ يَوْمٍ سَبَبٌ لِوُجُوبِ صَوْمِهِ اوهره ورځ ددغې ورځې د روژې دوجوب سبب دې. |

**تشريح:- المذهبان فى سبب وجوب رمضان**﴿صاحب د هدايه رحمه الله فرمائى. چه د رمضان روژوسبب د رمضان مياشت ده. هم دغه وجه ده. چه د صوم اضافت رمضان اړخ ته كيږى. اوصوم رمضان (د رمضان روژې) وئيلې كيږى. او اضافت د سبب كيدلو علامت دې. نوثابته شوه. چه د رمضان د روژوسبب د رمضان مياشت ده. اوچونكه د سبب تكرار د مسبب تكرار ته مستلزم وى. په دې وجه د رمضان مياشت په مكرر كيدلوسره د رمضان روژې هم مكرر كيږى. بعضو مشائخوهم دا اختياركړى دى. چه د رمضان مياشت د رمضان د روژو سبب دې. او علامه فخرالاسلام فرمائى. چه د هرې ورځې د روژې د وجوب سبب هم هغه ورځ ده. ځكه چې د رمضان روژې د متفرقو عباداتو په شان دى. په دې وجه دواړوبه مينځ كې داسې زياتى وخت (شپه) راځى. چه په هغې كې مطلقاً د روژې صلاحيت نشته. نه د ادا اونه د قضاء. نود رمضان روژې د مونځونوپه شان دى. لكه څنګه چې د هرلمونځ سبب ددې لمونځ وخت دې. دغه ډول هره ورځ ددغه ورځې د روژې سبب دې.

**التوافق بين المذهبين**﴿صاحب د هدايه رحمه الله دا دواړه اقواله جمع كړې دى. ځكه چې د وجوب دوې [دوه] قسمه دى. يونفس وجوب. دوهم وجوب د ادا. نود رمضان مياشت سبب دې د نفس وجوب. او هره ورځ سبب دې ددغې ورځ د وجوب ادا. د صاحب هدايه رحمه الله ددې وضاحت نه روسته په دواړه اقوالوكې هيڅ اختلاف پاتې نشو.

| |
|---|
| وَسَبَبُ الثَّانِي النَّذْرُ اود ثانى سبب نذر دې. وَالنِّيَّةُ مِنْ شَرْطِهِ اونيت شرط دې د روژې دشرطونو نه وَسَنُبَيِّنُهُ وَنُفَسِّرُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى اودا به موږ سره دتفسيرنه بيان كړو انشاء الله. په مسئله خلافيه كې |

**تشريح:- سبب نذر معين**﴿اود نذر معين روژې سبب نذر دې. اونيت ددې شرط دې. إن شاء الله، د روژو د ټولو شرطونو ذكر به په راروانوصفحوكې كولې شى.

| |
|---|
| وَجْهُ قَوْلِهِ فِي الْخِلَافِيَّةِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {لَا صِيَامَ لِمَنْ لَمْ يَنْوِ الصِّيَامَ مِنَ اللَّيْلِ} [1] دامام شافعى دقول وجه د نبى ﷺ ارشاد دې. دهغه روژه نشته چا چې دشپې نه دروژې نيت نه وى كړې |

**تشريح:- دلائل الشافعى رحمه الله فى المسئلة الاختلافية**﴿صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى. چه د متن په مختلف فيه مسئله كې يعنى په دې مسئله كې چې زموږ په نيزد زوال نه مخكې نيت كول شرط دى. اود امام شافعى رحمه الله په نيز په شپه كې نيت كول ضرورى دى. كه د زوال نه مخكې نيت اوكړې شو. نومعتبربه نه وى. ① د امام شافعى رحمه الله دليل دا حديث دې. ﴿لا صيام لمن لم ينو الصيام من الليل﴾ يعنى چاچه په شپه كې د روژې نيت اونكړو. دهغه روژه اونشوه.

| |
|---|
| وَلِأَنَّهُ لَمَّا فَسَدَ الْجُزْءُ الْأَوَّلُ لِفَقْدِ النِّيَّةِ فَسَدَ الثَّانِي ضَرُورَةَ أَنَّهُ لَا يَتَجَزَّأُ او ځكه چې هركله چې اول جزء فاسد شو د نيت نه كيدوپه وجه. نوجزء ثانى به هم فاسد وى ځكه چې متجزى كيږى بِخِلَافِ النَّفْلِ لِأَنَّهُ مُتَجَزِّئٌ نه په خلاف دنفل نه ځكه چې نفل روژه دده په نزد متجزى ده. |

[1] من حديث حفصة رضي الله عنها أخرجه أبوداود فى الصوم باب ٧١ رقم ٢٤٥٤ والترمذى فى الصوم باب ٣٣ رقم ٧٣٠ والنسائى فى الصوم باب ٦٨ رقم ٢١٩٦ وابن ماجه فى الصيام باب ٢٦ رقم ١٧٠٠ )_

**تشریح:-** دوهم دلیل دادې.چه که په شپه کي د صباصادق نه مخکي د روژې نیت اونکړی.نود روژې اولنې جزء
یعنی هغه برخه په کوم کي نې چې نیت نه دې موجود شوې.نیت چې شرط دې.ددې د نه موجود کیدلوپه وجه
سره فاسد شو.اوهرکله چې د روژې اولنې جزء فاسد شو.نوجزء ثانی یعنی هغه برخه په کوم کي چې نیت
موجود شوې دې.هغه به هم فاسد شي. ځکه چې روژه خو متجزی(تقسیمیدونکی) نه ده.چه ددې یوه برخه
صحیح او دویمه فاسد وی.نوکله چې متجزی نه ده.نود جزء ثانی بناء به په جزء اول باندې وی.او جزء اول د
نیت د نه موجودیدلوپه وجه سره فاسد دې. اوقاعده ده.چه په فاسد باندې بناء کیدونکی هم فاسد وی.په
دې وجه ټوله روژه فاسد شوه.اوهرکله چې په شپه کي نیت نه کولوسره روژه فاسد شوه.نوپه شپه کي نیت
کول شرط اوضروری شو.د حضرت امام شافعی رحمه الله په نیز په نفلی روژه کي د شپې نه نیت کول شرط نه
دی.ځکی چې نفلی روژه ددوی په نیز متجزی کیږی.نوکومه حصه چې بغیر د نیته شوه.هغه فاسد ده.اوکومه
حصه چې په نیت سره شوه.هغه به صحیح شمارلې کیږی.

وَلَنَا قَوْلُهُ {بَعْدَمَا شَهِدَ الْأَعْرَابِي بِرُؤْيَةِ الْهِلَالِ أَلَا مَنْ أَكَلَ فَلَا يَأْكُلَنَّ بَقِيَّةَ يَوْمِهِ وَمَنْ لَمْ يَأْكُلْ فَلْيَصُمْ} (١) زموږ دلیل دنبی ﷺ ارشاد دې چې روسته دهغې نه چې یو صحرائی دمیاشتې دلیدو ګواهی ورکړه خبردار! چا چې څه خوړلی دی پاته ورځ دې نه خوری اوچا چې څه وی خوړلی هغه دې روژه اونیسی.

**تشریح:- ① دلائل الاحناف رحمهم الله** ① زموږ دلیل دادې.چه کله یو اعرابی(بانډیچی)د رمضان میاشت دلیدلو
ګواهی ورکړه.نو رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل.چه کوم کس څه خوړلې وی.هغه دې پاته ورځ څه نه خوری.اوچاچه
نه دی خوړلی.هغه دې روژه اونیسی.یعنی د روژې نیت دې اوکړی.ددې حدیث نه معلومه شوه.چه د سهار نه
روسته د روژې نیت کول جائزدی.په قول ملاعلی قاری رحمه الله د شرح نقایه داحدیث غیرمشهور دې. خوپه
سنن اربعه کي د ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دې. «قال جاء أعرابي إلى رسول الله ﷺ فقال إني رأيت الهلال قال الحسن في
حديثه يعني رمضان فقال أتشهد أن لا إله إلا الله قال نعم قال أتشهد أن محمداً رسول الله قال نعم قال يا بلال أذن في الناس
فليصوموا» یعنی ابن عباس رضي الله عنه فرمائی.چه په دربار رسالت کي یو بانډیچی حاضرشو.اوهغه اووئیل.چه ما
میاشت لیدلې ده.حسن په خپل حدیث کي اوفرمائیل.چه د رمضان میاشت،نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه آیا ته
د کلمه توحید ګواهی ورکوې؟هغه اووئیل.آو، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه آیاته د محمد د رسول
کیدلوګواهی ورکوې.هغه اووئیل.آو، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه بلاله ! په خلګ وکي اعلان اوکړه.چه دوی
روژه اونیسی.دا روایت هم په ښکاره طور زموږ مستدل نه جوړیږی. ځکه چې په روایت کي ددې تصریح نه
ده شوې.چه د شهادت دا واقعه دمیاشت لیدلو نه روسته هم په شپه کي راپیښه شوې ده.یا په راروانه ورځ د
سهار راپیښه شوې وه.که په شپه کي راپیښ شوی وی.نودا روایت زموږ دلیل نشی جوړیدلې .اوکه په
راروانه ورځ د سهار راپیښه شوې وی.نو په یقین سره زموږ دلیل جوړیږی.ځکه چې په راروانه ورځ د سهار
ددې واقعې راپیښیدلو مطلب دا دې.چه نبی کریم ﷺ هم په دې ورځ د روژې نیولوحکم ورکړې دې.اودا
ښکاره ده.چه ددې ورځ دا روژه به د شپې په نیت سره نه وی. اوهرکله چې نیت د سهار نه روسته
اوشو.نوثابته شوه.چه په شپه کي نیت کول شرط نه دی.② زموږ دمذهب په تائید کي واضح حدیث دادې.چه
د سلمه ابن الاکوع نه بخاری اومسلم روایت کړې دې.حدیث دادې. «أنه ﷺ أمر رجلاً من أسلم أذن في الناس أن من
أكل فليصم بقية يومه ومن لم يكن أكل فليصم فإن اليوم يوم عاشوراء» یعنی رسول پاک ﷺ د قبیله اسلم یوسړی ته حکم
اوکړو.چه په خلګ وکي اعلان اوکړی.چه چاڅه خوړلې یا سکلی وی.هغه دې پاته ورځ روژه اونیسی.اوچاچه

(١) غربه الزيلعي ثم قال وذكره ابن جوزي رحمة الله في ،التحقيق، وقال إن هذا حديث لا يعرف وإنما المعروف أنه شهد عنده
برؤية الهلال فأمر أن ينادي في انسا أن تصوصوى غداً وقد رواه الدارقطني (١٥٨/٢) بلفظ صريح أن أعرابياً جاء ليلة
شهر رمضان فذكر الحديث وفي لفظ أبي يعلى الموصلي رحمة الله قال أبصرت الهلال الليلة الحديث (نصب الرأية ٤٥٥/٢)۔



نه وی خوړلې.هغه دې روژه اونیسی.یعنی د روژې نیت دې اوکړی.ځکه چې دا ورځ د عاشوره ورځ ده.دا
واقعه دهغه وخت ده.کله چې دعاشوره روژه فرض وه.او فرضیت په رمضان سره نه وومنسوخ شوې.نوددې نه
ثابته شوه.چه دفرض روژې نیت په ورځ کي کول جائز دی.

وَمَا رَوَاهُ مَحْمُولٌ عَلَى نَفْيِ الْفَضِيلَةِ وَالْكَمَالِ اوامام شافعی رحمه الله چې کوم روایت کړې دې دغه محمول دې په نفی
دفضیلت اوکمال باندې ،أَوْ مَعْنَاهُ لَمْ يَنْوِ أَنَّهُ صَوْمٌ مِنَ اللَّيْلِ یا ئې معنا داده چې ده دشپې نه دانیت نه وو کړې
چې روژه ده.

**تشریح:- الجوابان من مستدل الشافعی رحمه الله** ① اود امام شافعی رحمه الله د اړخه دپیش شوی حدیث «لا صيام لمن
لم ينو الصيام من الليل» ځواب دادې.چه په دې حدیث کي د اصل روژې نفی نه ده شوې.بلکه د روژې د فضیلت
اود کمال نفی شوې ده.یعنی که په شپه کي د روژې نیت اونکړې شو.نودغه روژه به افضله اواکمله نه
وی.البته نفس روژه به اداشی.لکه څنګه چې په حدیث «لا صلاة لجار المسجد إلا في المسجد» کي دکمال صلاة
اود لمونځ د فضیلت نفی شوې ده.د اصل صلاة اود لمونځ د صحت نفی نه ده شوې.② دوهم ځواب
دادې.چه ددې حدیث مطلب دادې.چه ددې کس روژه به نه کیږی.چه دا نیت اونکړی.چه دشپې نه روژه دار
دې.حاصل داشو.چه یوکس چې نیت ئې د ورځ نه کړې دې.خودا نیت ئې نه دې کړې.چه زما دا روژه د شپې
یعنی د صباصادق نه ده.بلکه کوم وخت ئې چې نیت کړې دې.بلکه هم دهغه وخت نه ئې د روژې نیت کړې
دې.نوښکاره ده.چه دا روژه به ټیک وی.ځکه چې روژه خوهغه معتبرده.کومه چې د صباصادق نه وی.

،وَلِأَنَّهُ يَوْمُ صَوْمٍ فَيَتَوَقَّفُ الْإِمْسَاكُ فِي أَوَّلِهِ عَلَى النِّيَّةِ الْمُتَأَخِّرَةِ الْمُقْتَرِنَةِ بِأَكْثَرِهِ كَالنَّفْلِ او ځکه چې دا دروژې ورځ ده
نوددې ورځې د اول امساک به په هغې نیت موقوف وی کوم چې دامساک نه دپاتې ورځې د اکثر برخې سره
یوځائې وی لکه نفل.

**تشریح:- ② الدلیل العقلی للاحناف رحمهم الله** زموږ د اړخه عقلی دلیل دادې.چه درمضان ورځ اود نذرمعین ورځ هم
د روژه ورځ ده.ځکه چې په دغه ورځ روژه فرض ده.نوهرکله چې دا ورځ د روژې لپاره مقرر ده.نود ورځ په
پیل کي چې کوم امساک یعنی د خوراک سکاک اود جماع نه بندیدل موجود شو.هغه به هم په هغه نیت
باندې موقوف وی.کوم چې مؤخر دې.اود ورځ اکثرې برخې سره مقترن مولبنتی دې.لکه څنګه چې په نفلی
روژه کي دی.نوکه یو کس د سهار راختلونه د خوراک سکاک او د جماع نه بند شو. نودا امساک په راروان
نیت باندې موقوف دې.نوکه ده د راروانې روژې نیت اوکړو.او اوس د ورځ زیاته برخه پاته ده.نو وئیلې به
شی.چه د ورځ د لومړنی برخې امساک هم روژه ده.اوکه د راروان ورځ ئې د افطار نیت اوکړو.نو وئیلې به
شی.چه د پیل امساک هم روژه نه وه.نومعلومه شوه.چه د پیل امساک په راروان نیت باندې موقوف وی.

وَهَذَا لِأَنَّ الصَّوْمَ رُكْنٌ وَاحِدٌ مُمْتَدٌّ اودا توقف ځکه دې چې صرف رکن واحد ممتد وَالنِّيَّةُ لِتَعْيِينِهِ لِلَّهِ تَعَالَى فَتَتَرَجَّحُ
بِالْكَثْرَةِ جَنَبَةُ الْوُجُودِ اونیت دې لره دالله جل جلاله لپاره دمعین کاوه لپاره دې نو داکثرې برخې سره جانب د وجود به
راجح وی.

**تشریح:- ③ توقف الامساک علی النیة** صاحب د هدایه رحمه الله فرمائی.چه د پیل ورځ امساک په راروان نیت باندې
موقوف کیدل په دې وجه دی.چه روژه یو رکن دې.خو دری ز(اوګد) دې.اوس په دې کي داهم احتمال دې.چه
دا رکن دعادت په طور وی.اودا هم احتمال شته.چه د عبادت یعنی د روژه په طور وی. نودا متعین کول،چه
دا امساک خالص د الله لپاره دې.اودا د عبادت په طور دې.د عادت په طورنه دې.دا هم په نیت سره کیدلې
شی.په دې وجه اووئیلی شو.چه د پیل ورځې امساک په راروان نیت باندې موقوف دې.اوس که دا نیت د
ورځ په اکثره برخه کي موجود شو.نوچونکه اکثر دکل قائم مقام وی.په دې وجه د کثرت په وجه سره د وجود
اړخ ته به د عدم وجود په اړخ باندې ترجیح ورکولې شی.او وئیلې به شی.چه نیت په ټوله ورځ کي موجود

شوې دي.اوهرکله چې نيت په ټوله ورځ کي موجود شوې دي.نو روژه به ټيک وی.نوثابته شوه.چه د روژې په شپه کي نيت کول ضروري نه دی.

بِخِلَافِ الصَّلَاةِ وَالْحَجِّ لِأَنَّ هُمَا أَرْكَانًا په خلاف د لمانځه او حج نه چې دايو څو ارکان دی. فَيُشْتَرَطُ قِرَانُهَا بِالْعَقْدِ عَلَى أَدَائِهِمَا روسته شرط دی دنيت ددې دواړو د ادا کاوه د عقد سره مولبنتی کيدل.

تشریح:- **شرطية النية فی ابتداء الصلاة والحج** ددې په خلاف لمونځ اوحج دې.چه په دې دواړو کي د پيل نه نيت کول ضروري دی.په دې دواړوکي به د «للأكثر حكم الكل» قاعده نشی جاری کولې.ځکه چې د دې دواړو څوڅو ارکان دی.لکه چې په لمانځه کي قيام، رکوع ، سجده، د قران قرات وغيره ارکان دی. اوپه حج کي وقوف عرفه او طواف ارکان دی.اوس که د تکبير تحريمه په وخت په اول د لمانځه کي نيت اونکړې شو.اود احرام په وخت په اول دحج کي دحج نيت اونکړې شو.نو بعض ارکان به بغير د نيت نه پاتې شی.اوکوم ارکان چې بغير دنيت نه ادا شی.هغه به باطل وی.او بغير ددې ارکانو نه لمونځ اوحج نه اداکيږی.په دې وجه دې دواړوکي په پيل کي نيت کول ضروري دی.روسته که نيت اوکړې شو.نوهغه به معتبر نه وی.

وَبِخِلَافِ الْقَضَاءِ لِأَنَّهُ يَتَوَقَّفُ عَلَى صَوْمِ ذَلِكَ الْيَوْمِ په خلاف دقضانه ځکه چې دغه ددغې ورځې په روژه موقوف دې. وَهُوَ النَّفْلُ اودغه نفل دې.

تشریح:- **الاعتراض التقديری** دا عبارت د يوسوال ځواب دې.سوال دادې.چه روژه که يو ممتد(اوګد)رکن دې.اود زوال نه مخکي مخکي نيت کول جائزدی.نو د رمضان په قضاءکي هم د زوال نه مخکي مخکي نيت جائزکيدل پکاردی.حالانکه داسې نه ده.بلکه د رمضان په قضاء کي هم د شپې نه نيت کول شرط دی.

**الجواب** ځواب دادې.چه درمضان اود نذر معين روژې نه علاوه د ټولې ورځې د نفلی روژو لپاره مشروع دی.سوې د ,منهی عنها, يعنی شريعت چې ددې ورځو روژې په ده نه دی لازم کړې.خوکه دې نفلی روژه نيسی.نود رمضان اود نذرمعين ورځونه علاوه کي امساك يعنی د خوراك سکاك اود جماع نه بنديدل هم ددغې ورځ په روژه باندې موقوف دی.او ددغه ورځ روژه نفلی ده.نوددې ورځ روژه به نفلی شمارلې کيږی.خوکه د پيل ورځ نه يعنی د سهار صادق نه ئې د قضاء وغيره روژې نيت کړې وی. نوصحيح به وی.نوثابته شوه.چه دقضاء روژو نيت د شپې نه کول شرط دی.که د صباصادق نه روسته دزوال نه وړاندې نيت اوکړې شو.نومعتبر به نه وی.

وَبِخِلَافِ مَا بَعْدَ الزَّوَالِ لِأَنَّهُ لَمْ يُوجَدْ اقْتِرَانُهَا بِالْأَكْثَرِ او په خلاف د مابعد د زوال نه ځکه چې دنيت داکثرې برخې سره مولبنتی کيدل اونه موندلې شو فَتَرَجَّحَتْ جَنْبَةُ الْفَوَاتِ نود فوت جانب راجح شو.

تشریح:- **السوال التقديری** دا عبارت هم د يوسوال ځواب دې.سوال دادی.چه هرکله روژه يو ممتد رکن دې.نود نيت مولبنتی کول د ورځې قليل اوکثير دواړوسره برابرکيدل پکار ی.يعنی که نيت د ورځ په اکثرحصه کي موجود شی.يا په کمه برخه کي موجود شی.په دې طريقه چې د زوال نه روسته ئې نيت کړې وی.نوپه دواړو صورتونوکي روژه ټيک کيدل پکاردی.حالانکه د زوال نه روسته د نيت کاوه په صورت کي روژه نه جائزکيږی؟

**الجواب** اصل خودا وو.چه نيت د ورځ په پيل برخه کي اوشی.يعنی چې په سهار صادق کيدلو سره د روژې نيت اوشی.خوکه د ورځ اکثر برخې سره د نيت اقتران موجود شو.په دې طريقه چې د زوال نه مخکي مخکي نيت اوکړې شی.نود «للأكثر حكم الكل» قاعدې په وجه سره دا اصل موږ پريښولو . اوچونکه د زوال نه روسته دنيت کولوپه صورت کي د ورځ په اکثره برخه کي نيت موجود نشو.په دې وجه په دې صورت کي دعدم وجود(چه نيت پکي نه دې شوې) اړخ ته ترجيح ورکړې شوه.او اووئيلې شو.چه پوره ورځ نيت اونه



مونډې شو.او روژه بغير د نيت نه ساتلې شوې ده.اوښکاره ده.چه بغير د نيت نه روژه معتبر نه وی.په دې وجه د زوال نه روسته نيت کاوه په صورت کي هم روژه معتبر نه وی.

ثُمَّ قَالَ فِي الْمُخْتَصَرِ: مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الزَّوَالِ بيا په مختصر کي وئيلې دی چې مابينه وبين الزوال ،وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ قَبْلَ نِصْفِ النَّهَارِ او په جامع صغير کښې ئې فرمائيلی دی چې وړاندې د نيمې ورځې نه

تشریح:- **اختلاف عبارة القدوری والجامع الصغير** په دې عبارت سره صاحب د هدايه رحمه الله د قدوری او جامع صغيرد عبارتونو توپير بيان کړې دې.فرمائی.چه د قدوری متن دې. «اذا لم ينو حتى أصبح أجزأته النية مابينه وبين الزوال» يعنی که يوکس په شپه کي نيت اونکړو.او صباشو.نودې د د زوال نه يعنی د لمر کښته کيدلو نه مخکي مخکي نيت اوکړی.اود جامع صغير متن دې. «قبل نصف النهار» يعنی د نصف النهار(غرمه) نه مخکي مخکښې دې نيت اوکړی.

وَهُوَ الْأَصَحُّ او په جامع صغير کي قبل نصف النهار او دابالکل صحيح ده لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ وُجُودِ النِّيَّةِ فِي أَكْثَرِ النَّهَارِ زيرا ځکه چې دورځې په اکثره کي نيت کول ضروري دی وَنِصْفُهُ مِنْ وَقْتِ طُلُوعِ الْفَجْرِ إِلَى وَقْتِ الضَّحْوَةِ الْكُبْرَى لَا إِلَى وَقْتِ الزَّوَالِ اونيمه ئې د سهار د وختونو نه تر وخت د لوئې غرمې پورې وی.نه وخت دزوال. فَتُشْتَرَطُ النِّيَّةُ قَبْلَهَا لِتَتَحَقَّقَ فِي الْأَكْثَرِ روسته شرط دې نيت مخکي ددې نه چې په اکثر، ورځ کي او اوموندې شی.

تشریح:- **التطبيق بين العبارتين** صاحب د هدايه رحمه الله فرمائی.چه د جامع صغيرعبارت زيات صحيح دې.ځکه چې په روژه کي نهارشرعی معتبردې.عرفی نهار نه دې معتبر،نهارشرعی د سهار صادق راختلونه د لمر پريوتلو پورې وی.او نهار عرفی دنمر راختلونه تر د لمر پريوتلو پورې وی.اود زوال وخت د نهارعرفی نيمه وی.د نهارشرعی نيمه نه وی.ځکه چې د نهارشرعی نيمه د ساخت وخت د آخره پورې وی.مثلاً نن ۸ جنوری د سهار راختلو وخت پاؤکم شپږ بجې دی.اود لمر پريوتلو وخت ځليريشت منټه کم شپږ بجې دی. نوددې نيمه اتلس منټه کم دولس بجې شوې.ګويا د جامع صغير مطابق اتلس منټه کم دولس بجې چې د ساختی آخری وخت دې.چه ورته «ضحوة كبرى» وائی.ددې نه مخکي مخکي نيت کول ضروری دی. چې د شرعی نهار په اکثره برخه کي نيت موجود شی.اونن ۸ جنوری سن ۸۶ د لمر راختلو وخت پنځيشت سربيره پنځه بجې دې.اود لمر پريوتلو وخت ځليريشت منټه کم شپږ بجې دې.ددې نيمه پنځيشت سربيره دولس بجې او ديرش سيکنډه دې.ګويا چې د قدوری مطابق پنځيشت سربيره دولس بجې چې ورته د زوال وخت وئيلې شی.ددې نه مخکي مخکي به نيت کول ضروری وی.

**وجه ترجيح صاحب الهدايه** صاحب د هدايه رحمه الله د جامع صغير متن صحيح په دې وجه ګرځولې دې. چې په روژه کي شرعی ورځ معتبروی.اود شرعی ورځ نصف د زوال وخت نه وی.بلکه د زوال د وخت نه تقريباً يوه ګنټه مخکي کيږی.

وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْمُسَافِرِ وَالْمُقِيمِ عِنْدَنَا، خِلَافًا لِزُفَرَ رَحِمَهُ اللَّهُ او مسافر اومقيم په مينځ کي هېڅ توپير نشته په خلاف د امام زفر رحمه الله لِأَنَّهُ لَا تَفْصِيلَ فِيمَا ذَكَرْنَا مِنَ الدَّلِيلِ ځکه چې کوم دليل موږ ذکر کړو په هغې کي هېڅ تفصيل نشته.

تشریح:- **المذهبان فی اعتبارنية المسافر قبل الزوال** صاحب د هدايه رحمه الله فرمائی.چه په رمضان اود نذر معين په روژه کي دنصف النهار نه مخکي مخکي دنيت معتبر کيدل د مسافر او مقيم دواړو په حق کي برابر دی.ځکه چې کوم دليل بيان کړې شوې دې.په هغې کي هيڅ تفصيل نشته.البته د امام زفر رحمه الله په نيز د مسافر لپاره په شپه کي نيت کول شرط دی.د سهار نه روسته د نصف النهار نه مخکي نيت به معتبر نه وی.

## د واجب معین لپاره د مطلق نیت کفایت

وَهٰذَا الضَّرْبُ مِنَ الصَّوْمِ يَتَأَدّٰى بِمُطْلَقِ النِّيَّةِ وَبِنِيَّةِ النَّفْلِ وَبِنِيَّةِ وَاجِبٍ آخَرَ. او د روژې دا ډول ادا کیږي په مطلق نیت سره اود نفلو په نیت سره او د نورو واجبو په نیت سره

**تشریح:- جواز صوم المعین بمطلق النیة**◉مسئله داده. چه دا ډول یعني واجب معین په مطلق سره هم ادکیږي. اود نفل په نیت سره هم اود واجب آخر په نیت سره هم، د قدوري د مصنف رحمه الله په عبارت کي لږه شان تسامح ده. په دې طریقه چي په واجب معین کي د رمضان روژه اود نذر معین روژه دواړه داخل دی. نو ددې مطلب داشو چه لکه څنګه چي د رمضان روژه په مطلق نیت، د نفل په نیت، اود واجب آخر په نیت اداکیږي. دغه ډول د نذرمعین روژه هم په ذکرشوی نیتونوسره اداکیږي. حالانکه داسې نه ده. ځکه چي د نذر معین روژه په مطلق نیت اود نفلو په نیت سره اداکیږي. خود واجب آخر مثلاً په قضاء یاکفاره په نیت سره اداکیږي بلکه که د نذر معین د ورځ په شپه کي د واجب آخر نیت اوکړې شی. نو واجب آخر به اداشی خود نذر معین روژه به ادا نه وی. بهرحال د احنافو رحمهم الله مذهب دادې. چه د رمضان روژه په مطلق نیت سره هم اداکیږي. مثلاً داسې نې اوویل چه زه به صباله روژه نیسم. اود نفلو په نیت سره هم اداکیږي. مثلاً داسې اووائی چه صباله به نفلی روژه نیسم. اود واجب آخر په نیت سره هم ادا کیږي. مثلاً اووائی چه زه به صباله د کفاره یا د تیرې میاشتي د رمضان قضاء روژه نیسم.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ فِي نِيَّةِ النَّفْلِ عَابِثٌ او امام شافعي رحمه الله فرمائی چي دنفلو په نیت کي به دې عابث وی

**تشریح:- خلاف الشافعي رحمه الله فی انعقاد رمضان بمطلق النیة**◉اوکه په رمضان کي نې دمطلق روژې نیت اوکړو. نو په دې کي د امام شافعي رحمه الله دوې (دوه) قوله دی. یودا چي په مطلق روژې سره به د رمضان روژه اداشي. دوهم داچه د رمضان روژه به نه اداکیږي. هم دا د امام مالك او امام محمد رحمه الله قول دې.

وَفِي مُطْلَقِهَا لَهُ قَوْلَانِ او په مطلق نیت کي دد دوې (دوه) قولونه دی. لِأَنَّهُ بِنِيَّةِ النَّفْلِ مُعْرِضٌ عَنِ الْفَرْضِ فَلَا يَكُونُ لَهُ الْفَرْضُ ځکه چي دنفلو په نیت کي دغه دفرضو نه اعراض کوتکي دې نوفرض به ده ته حاصل نه وی.

**دلیل الشافعي رحمه الله فی عدم جواز رمضان بنیة النفل**◉ په دې مسئله کي چي د نفل په نیت سره د رمضان روژه نه ادکیږي. د امام شافعي رحمه الله دلیل دادې چه د رمضان په میاشت کي د نفلی روژې نیت کولوسره ګویا ده د فرضونه اعراض کړې دې ځکه چي په فرض او نفل کي مغایرت دې نود فرض نه اعراض کول داسې دی. لکه چي نیت نې ترك کړې وی اودا خبره ښکاره ده چه په ترك د نیت سره روژه نه ادکیږي. په دې وجه به په دې صورت کي د رمضان روژه نه اداکیږي اوچونکه د نفلی روژې وخت نه دې. په دې وجه به نفلی روژه هم ادا نه وی.

**دلیل الشافعي رحمه الله فی عدم رمضان بنیة المطلق**◉د مطلق نیت په صورت کي د امام شافعي رحمه الله د قول اول دلیل دادې چه کله د رمضان په میاشت کي د مطلق روژې نیت موجود شو نودا کس په دې نیت سره د فرض نه اعراض کونکې نه شمارلې کیږي اوهر کله چي د فرض نه اعراض نه شمارلې کیږي. نود رمضان روژه به اداشی. د دوهم قول دلیل دادې چه څنګه اصل روژه عبادت دې دغه ډول د فرضیت وصف هم عبادت دې او اصل روژه بغیر د نیت نه نه اداکیږي نوځنګه چي اصل روژه بغیر د نیت نه نه اداکیږي. دغه ډول د فرضیت وصف به هم بغیر د نیت نه نه اداکیږي اود مطلق نیت په صورت کي چونکه د صف د فرضیت معدم دې په دې وجه نفس صوم به هم معدوم وی.

وَلَنَا أَنَّ الْفَرْضَ مُتَعَيَّنٌ فِيهِ فَيُصَابُ بِأَصْلِ النِّيَّةِ زموږ دلیل دادې چي دغه وخت فرض متیعن دی نو په اصل نیت سره به حاصل شی



**تشریح:- دلیل الاحناف رحمهم الله**◉زموږ دلیل دادې. چه د رمضان میاشت د فرض روژو لپاره متعین ده. لکه چي رسول اکرم ﷺ فرمائیلی دی. «اذا انسلخ شعبان فلا صوم إلا رمضان» یعني چي کله د شعبان میاشت ختمه شي نو د رمضان د رژې نه بغیر هیڅ روژه نشته. یعني په دې میاشت کي سوې د رمضان نه بله کومه روژه نشته. نو چه هرکله د رمضان میاشت د فرض روژې لپاره متعین ده. نو د روژې فرضیت به په اصل نیت سره اداکیږي.

كَالْمُتَوَحِّدِ فِي الدَّارِ يُصَابُ بِاسْمِ جِنْسِهِ لکه په مکان کښ یواځې سړې وی نودغه به په اسم جنس سره موندلې شي.

**تشریح:- نظیره**◉لکه که په یو کور کي صرف یو کس وی. اودې په اسم جنس سره راؤغوښتلې شی. نوهم دغه کس به مراد وی. اودا آواز کول به هم ټیك وی. مثلاً اووائی. ائ حیوان، نو په یا حیوان سره به م دغه کس مراد وی. خوك چي په کور کي موجود دی. لکه چي په یا انسان اودده په علم مثلاً یا زید سره هم داکس مراد وی. دغه ډول د رمضان میاشت چي هرکله د فرض روژو لپاره متعین ده. نوفقط د روژې په نیت کولوسره به هم روژه اداشمارلې شی. دکومې چي میاشت پیل ده.

وَإِنْ نَوَى النَّفْلَ أَوْ وَاجِبًا آخَرَ فَقَدْ نَوَى أَصْلَ الصَّوْمِ وَزِيَادَةَ جِهَةٍ اوکله چي ده دنفلو یا دنورو واجبو نیت اوکړو نود اصل روژې سره د زیات دجهت نه نې نیت اوکړو. وَقَدْ لَغَتِ الْجِهَةُ فَبَقِيَ الْأَصْلُ وَهُوَ كَافٍ او جهت لغوه شو روسته د اصل روژې نیت پاته پاتې شو او دغه کافی دې.

**تشریح:- دلیل جواز صوم رمضان بمطلق النیة**◉اوهرکله چي ده د نفل یا د واجب اخر نیت اوکړو. نو ګویا د اصل روژې نیت نې اوکړو. اود یو زیاتی شی یعني د نفل یا د وجوب نیت نې اوکړو. نودا زیاتی اړخ به خو لغو وی ځکه چي وخت یعني د رمضان میاشت دا نه قبلوی. اوهرکله چي زیاتی اړخ لغوشو. نود اصل روژې نیت پاته پاتې شو. او وړاندې تیرشوی دی. چه په اصل نیت سره د رمضان روژه اداکیږي. په دې وجه د نفل یا د واجب آخر په نیت سره به هم د رمضان روژه اداکیږي.

وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْمُسَافِرِ وَالْمُقِيمِ وَالصَّحِيحِ وَالسَّقِيمِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ (۱) اوفرق نشته په منیځ د مسافر ومقیم اوروغ اوناجوړه کښې. په نزد د صاحبینو رحمهما الله باندې. لِأَنَّ الرُّخْصَةَ كَيْ لَا تَلْزَمَ الْمَعْذُورَ مَشَقَّةٌ ځکه چي رخصت په دې وجه وو چي معذور ته مشقت لاحق نشی فَإِذَا تَحَمَّلَهَا الْتَحَقَ بِغَيْرِ الْمَعْذُورِ اوهرکله چي ده مشقت برداشت کړو نودغیر معذور سره لاحق شو.

**تشریح:- جواز الصوم الواجب الاخر فی رمضان للمسافر عند الصاحبین رحمهما الله**◉صاحبین رحمهما الله فرمائی. په دې حکم کي چي د رمضان روژه په مطلق نیت، د نفل په نیت، اود واجب آخر په نیت سره اداکیږي. مسافر، مقیم، تندرست، او بیمار واړه برابر دی. ځکه چي مسافر او بیمارته د رمضان د روژې د مؤخر کاوه رخصت په دې وجه ورکړې شوې دې. چه دې خلګو ته د سفر عذر اود مرض په عذرسره مشقت ملاؤ نشی. خوچه دې خلګو دا مشقت برداشت کړو. نودا خلګ به غیرمعذور سره لاحق کولې شي. اود غیر معذور په اړه کي تیرشوی دې چه ددوی د رمضان روژه په مطلق نیت، د نفل په نیت، اود واجب آخر په نیت سره ادا کیږي. نود مسافر اود بیمار د رمضان روژه به هم په دې دريٍ واړو سره ادکیږي.

وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ: إِذَا صَامَ الْمَرِيضُ وَالْمُسَافِرُ بِنِيَّةِ وَاجِبٍ آخَرَ يَقَعُ عَنْهُ او د امام صاحب رحمه الله په نزد هرکله چي روژه [illegible] واقع شی لا [illegible]

(۱) [illegible] (۱۹/۱) نقد عن اصول الراجح (۱۰،۴۱۱)-

لِتَعَيُّنِهِ لِلْحَالِ خكه چې ده وخت لره په امراهم سره بوخت كړو. ددې فى الحال دحتمى كيدو وَتَخَيُّرِهِ فِى صَوْمِ رَمَضَانَ اِلَى اِدرِيكَ الْعِدَّةِ او په صوم رمضان كې داحتياط دشمار پوره كاوه په ورځوكې

تشريح:- مذهب ابى حنيفة رحمة الله عليه فى المسئلة ۞ او امام ابوحنيفه رحمة الله عليه فرمائى. چه كه مسافر يا بيمار په رمضان كې د واجب آخر په نيت سره روژه اونيوله. نو واجب آخر به ادا شى. د رمضان روژه به ادا نه وى. او دليل داده چه واجب آخر يعنى د قضاء يا د كفاره روژه، خو په ده فى الحال لازم ده. كه په دې حال كې مړ شو. نو ددې واجب په اړه كې به عندالله ماخوذ وى. اود رمضان د روژې د مرض او سفر په وجه سره د مؤخر كاوه اختيار وركړې شوې دې. يعنى كه دا كس په دې مرض يا په دې سفركې مړشو. نو ددې رمضان روژو په اړه كې به ماخوذ نه وى. نومعلومه شوه. چه د مريض اومسافر په حق كې واجب آخر مهم او رمضان غير مهم دې. او وخت په مهم سره مشغولول او مهم وړاندې اداكول اولى او غوره دى. په نسبت د غير مهم اداكولو. په دې وجه حضرت امام صاحب رحمة الله عليه اوفرمائيل. چه په رمضان كې مسافر اومريض كه د واجب آخر نيت اوكړى. نودغه واجب آخر به ادا وى. د رمضان روژه به ادا نه وى.

وَعَنْهُ فِى نِيَّةِ التَّطَوُّعِ رِوَايَتَانِ اودنفلو په نيت كې دامام صاحب رحمة الله عليه نه دوې [دوه] روايتونه دى، اِحْدَاهُمَا اَنَّهُ مَا صَرَفَ الْوَقْتَ اِلَى الْاَهَمِّ په كوموكې چې په يوه وجه دفرق دادى چې ده وخت لره په امرمهم كې صرف نكړو. وَالْفَرْقُ عَلَى

الروايتان عن ابى حنيفة رحمة الله عليه فى نية صوم التطوع للمسافر ۞ كه مسافر په رمضان المبارك كې د نفلى روژې نيت اوكړو. نوپه دې كې د امام ابوحنيفه رحمة الله عليه نه دوې [دوه] روايتونه دى. ① يودا چې په دې صورت كې به د رمضان روژه ادا وى. نفل روژه به ادا نه وى. ② دوهم دا چې نفل روژه به ادا وى. د رمضان روژه به ادا نه وى.

دلائل الروايتين ۞ د اولنى روايت دليل دادې. چه مسافر په رمضان كې د نفلى روژې نيت اوكړو. نو وخت ئې په مهم كار كې بوخت نكړو. بلكه مقصود ثواب حاصلول دى. او ثواب د رمضان په روژه كې زيات دې. په نسبت د نفلى روژې. په دې وجه د نفلى روژې نيت كاوه باوجود به هم د رمضان روژه اداوى. اود دوهم روايت دليل دادې. چه د مسافر په حق كې د رمضان مياشت داسې ده. لكه چې د مقيم په حق كې دشعبان مياشت ده. اود شعبان په مياشت كې د نفل يا د واجب آخردخه هم چې نيت كوى. هم هغه به اداكيږى. نوهم دغه ډول مسافرچه د رمضان په مياشت كې د څه هم نيت كوى. د نفل يا د واجب آخر، هم هغه به اداكيږى.

## واجب غير معين روژې

قَالَ وَالضَّرْبُ الثَّانِي مَا يَثْبُتُ فِي الذِّمَّةِ او دوهم قسم هغه دې كوم چې په ذمه ثابت وى كَقَضَاءِ رَمَضَانَ لكه درمضان دمياشتې قضا. وَالنَّذْرِ الْمُطْلَقِ وَصَوْمِ الْكَفَّارَةِ فَلَا يَجُوزُ او روژه دكفارې نو دا جائز نه ده اِلَّا بِنِيَّةٍ مِنَ اللَّيْلِ مگر دشپې نه په نيت سره لِاَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَيِّنٍ خكه چې دا غير متعين ده فَلَا بُدَّ مِنَ التَّعْيِينِ مِنَ الِابْتِدَاءِ نومتعين كول ئې ضرورى دى دابتداء نه

تشريح:- وجوب مبيت النية فى الواجب الغيرالمعين ۞ د روژې ډول ثانى كوم چې ثابت فى الذمه وى. او ددې لپاره هيڅ وخت متعين نه وى. لكه د رمضان قضاء روژې، دكفاره يمين روژې، دظهار د كفاره روژې، د قتل د كفاره روژې، د صيد د جزاء روژې، اود نذر مطلق روژې. ددې ډول حكم دادې. چه د شپې نه يا په صباصادق كيدلو كې كه نيت اوكړې شى. نوجائز دې. اوكه د سهار راختلونه روسته ئې نيت اوكړو. نو روژه په ټيك نه وى. خكه چې ددې ډول روژو هيڅ وخت متعين نه وى. بلكه په پوره كال كې د رمضان اود، منهى عنها، ورځونه علاوه هركله نيولې كيداې شى. په دې وجه به د ورځ د پيل نه متعين كول ضرورى وى. او ورځ پيل كيږى. د سهار په راختلوسره، په دې وجه د سهار راختلو نه مخكې نيت اوكړې شى. يا د صباپه راختلوكې نيت اوكړې شى.



وَالنَّفْلُ كُلُّهُ يَجُوزُ او نفل ټولې روژې مخكې د زوال نه بِنِيَّةٍ قَبْلَ الزَّوَالِ) په نيت سره جائز دى

تشريح:- لمذهبان فى مبيت النية للنفل ۞ ① اود نفلى روژو لپاره د نصف نهار نه مخكې مخكې نيت كول ضرورى دى. د نهارشرعى نصف برخه تيريدلو نه روسته كه نيت اوكړې شو. نو روژه به معتبر نه وى.

خِلَافًا لِمَالِكٍ رحمة الله عليه په خلاف د امام مالك رحمة الله عليه نه فَاِنَّهُ يَتَمَسَّكُ بِاِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا چې هغه تمسك كوى دهغې حديث په اطلاق چې موږ روايت كړې دې

تشريح:- امام مالك رحمة الله عليه فرمائى. چه دنفلى روژې لپاره هم د شپې نه نيت كول ضرورى دى. كه د سهار راختلونه روسته ئې نيت اوكړو. نو نفل روژه به هم معتبر نه وى.

دليله ۞ د امام مالك رحمة الله عليه دليل دادې. چه حديث «لاصيام لمن لم ينو الصيام من الليل» مطلق دې. په دې كې د فرض او نفل روژې هيڅ تفصيل نشته. نود هر روژې لپاره به د شپې نه نيت كول ضرورى وى.

وَلَنَا قَوْلُهُ بَعْدَ مَا كَانَ يُصْبِحُ غَيْرَ صَائِمٍ او زموږ دليل د نبى ﷺ ارشاد دې نود هغې نه چې دوى ﷺ به په غير دروژې نه صباح كړو اِنِّي اِذًا لَصَائِمٌ[1] چه. خما اوس روژه ده وَلِاَنَّ الْمَشْرُوعَ خَارِجَ رَمَضَانَ هُوَ النَّفْلُ فَيَتَوَقَّفُ الْاِمْسَاكُ فِى اَوَّلِ الْيَوْمِ عَلَى صَيْرُورَتِهِ صَوْمًا بِالنِّيَّةِ عَلَى مَا ذَكَرْنَا او خكه چې خارج درمضان نه مشروع روژه خو نفل ده. نو ددغې ورځې په اول كې د امساك روژه كيدل به په نيت باندې موقوف وى لكه چې موږ ذكر كړې دې.

تشريح:- دلائل الاحناف رحمهم الله ۞ ① زموږ دليل دحضرت عائشه رضى الله عنها حديث دې. «أن رسول الله ﷺ كان يدخل على نسائه و يقول هل عندكن من غذاء فإن قلن لا. قال إني إذا الصيام» يعنى رسول الله ﷺ به خپلو بيبيانو ته تشريف اوړلو. او فرمائيل به ئې. چه تاسو سره څه دخوراك لپاره شته. نوكه دوى به وئيل چې نه، نو فرمائيل به ئې. چه اوس زه روژه دار يم. يعنى د صباكيدلو نه روسته به چې دوى ته د خوراك څه شي ملاؤ نشو. نودوى به د روژې نيت كولو. ددې نه معلومه شوه. چه د نفلى روژې نيت د لمر راختلونه روسته هم جائز دې. ② او عقلى دليل دادې. چه درمضان المبارك نه علاوه پوره كال دنفلى روژو لپاره مشروع دې. نود ورځ په اوله برخه كې امساك يعنى د خوراك سكاك اود جماع نه د بنديدلو نوم روژه كيدل په نيت باندې موقوف دى. په دې شرط چې نيت د ورځ په اكثرحصه كې موجود شى. اونيت به د ورځ په اكثره برخه كې هغه وخت متحقق كيږى. چه د نصف النهار نه مخكې اوكړې شى.

وَلَوْ نَوَى بَعْدَ الزَّوَالِ لَا يَجُوزُ اوكه نيت ئې اوكړو نوروسته د زوال نه نو جائزبه نه وى

تشريح:- نية صوم النفل بعد الزوال ۞ ① اوكه د نفلى روژې نيت د زوال نه روسته اوكړې شو. نو زموږ په نيز جائز نه دى.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجُوزُ وَيَصِيرُ صَائِمًا مِنْ حِينِ نَوَى اِذْ هُوَ مُتَجَزِّءٌ عِنْدَهُ لِكَوْنِهِ مَبْنِيًّا عَلَى النَّشَاطِ، وَلَعَلَّهُ يَنْشَطُ بَعْدَ الزَّوَالِ اِلَّا اَنَّ مِنْ شَرْطِهِ الْاِمْسَاكَ فِى اَوَّلِ النَّهَارِ امام شافعى رحمة الله عليه فرمائى چې جائز به وى او دے به روژه دارشى دهغه وخت نه چې نيت ئې اوكړو. خكه چې دده په نزد صوم متجزى ده په خوش خاطرئ باندې دمبنى كيدلو په وجه سره او دزړه نشاط ممكن دې چې د زوال نه روسته وى مگر ددې لپاره د ورځې داول نه امساك شرط دې.

تشريح:- البته د امام شافعى رحمة الله عليه په نيز جائز دې. خود امام شافعى رحمة الله عليه په نيز به روژه دار د هغه وخت نه شمارلې شى. د كوم وخت نه ئې چې د روژې نيت كړې دې.

دليل الشافعى رحمة الله عليه ۞ خكه چې د امام شافعى رحمة الله عليه په نيز نفلى روژه متجزى او ټكړې كيدلې شى. او دليل د

[1] من حديث عائشة رضى الله عنها أخرجه مسلم فى الصيام رقم ١٦٩ وأبوداود فى الصوم باب ٧٢ رقم ٢٤٥٥ والنسائى فى الصيام باب ٦٧ وأحمد فى المسند (٤٩/٦)_

دي دادي.چه د نفلي کار دارومدار د طبعيت په شوق او خوشحالئ باندې مبني وي.نو ډيره ممکنه ده چه په طبعيت کي د زوال نه روسته شوق پيداشي.نوکله چې د زوال نه روسته شوق پيداشو.نوهم دغه وخت ئې نيت اوکړو.او روژه ئې پيل کړه.نودا روژه به هم ددې نيت د وخت نه شمارلې شي.خوددې شرط دادې.چه امساك د اول نهار نه اوموندې شي.مثلاً که يوکس د سهار راختلونه د زوال نه روسته پورې نه څه اوخوړل اونه ئې څه اوسکل.او بيا د زوال نه روسته مثلاً ۲ بجې نه ئې د روژې نيت اوکړو.نود امام شافعي رحمه الله په نيز به د ۲ بجې نه د لمر پريوتلو پورې دده نفلي روژه معتبر وي.اوکه د سهار راختلونه روسته ئې څه اوخوړل، يا ئې څه اوسکل،بيا ئې ددې نه روسته د نفلي روژې نيت اوکړو.نودا روژه به معتبر نه وي.

وَعِنْدَنَا يَصِيرُ صَائِمًا مِنْ أَوَّلِ النَّهَارِ لِأَنَّهُ عِبَادَةُ قَهْرِ النَّفْسِ، وَهِيَ إِنَّمَا تَتَحَقَّقُ بِإِمْسَاكٍ مُقَدَّرٍ فَيُعْتَبَرُ قِرَانُ النِّيَّةِ بِأَكْثَرِهِ اوزموږ په نزدې د ورځې داول څخه به روژه دارشي څکه چې روژه دقهر نفس عبادت دې کومه چې متحقق کيږي په امساك مقدر سره پدې وجه دا اکثرې ورځې سره دنيت متصل کيدل به متغيروي.

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله او زموږ په نيز چونکه روژه نه تکړې کيږي.په دې وجه به د روژې اعتبار د اول نهار(شروع د ورځ) نه معتبر وي.اووجه داده.چه روژه د نفس مغلوب کاوه يوعبادت دې.اودا عبادت يو مقدار اويه معين امساك سره متحقق دې.اود امساك دا مقدار پوره يوه ورځ ده.يعنى د سهار راختلونه د نمرپريوتلو پورې ده.نود نيت اقتران به د ورځ اکثر برخې سره معتبر وي.يعنى که د ورځ اکثرحصه کې نيت موجود شو.نو روژه به معتبر وي.ګنې معتبر به نه وي.

## د مياشت د ليدو حکم

قَالَ (يَنْبَغِي لِلنَّاسِ أَنْ يَلْتَمِسُوا الْهِلَالَ فِي الْيَوْمِ التَّاسِعِ وَالْعِشْرِينَ مِنْ شَعْبَانَ د رويت حلال په اړه کې خلګولره پکار دی چې په غور سره اوګوری مياشت د شعبان په يوکم ديرشم تاريخ باندې دشعبان، فَإِنْ رَأَوْهُ صَامُوا که وئې ليدله نو روژه دې اونيسی وَإِنْ غُمَّ عَلَيْهِمْ أَكْمَلُوا عِدَّةَ شَعْبَانَ ثَلَاثِينَ يَوْمًا ثُمَّ صَامُوا) اوکه وريځ پټه کړه نوپوره دې کړی شمير ديرش ورځې د شعبان بيا دې روژه کړی

**تشريح:- لزوم الصوم برؤية الهلال او تکميل شعبان** علامه ابن الهمام رحمه الله په فتح القدير کې ليکلی دی.چه په ۲۹ شعبان د رمضان المبارك مياشت(سپوږمۍ) کتل واجب على الکفايه دی.څکه چې مياشت کله د ۲۹ ورځو وی.اوکله د ديرشو وی.نوکه په ۲۹ شعبان مياشت په نظر راغله.نو روژه به نيولې شی.اوکه مياشت په نظر رانغله.نود شعبان ۳۰ ديرش ورځې به پوره کولې شی.اوبه راروانه ورځ به روژه نيولې شی.

لِقَوْلِهِ {صُومُوا لِرُؤْيَتِهِ وَأَفْطِرُوا لِرُؤْيَتِهِ، فَإِنْ غُمَّ عَلَيْكُمْ الْهِلَالُ فَأَكْمِلُوا عِدَّةَ شَعْبَانَ ثَلَاثِينَ يَوْمًا}[1] څکه چې د نبی ﷺ ارشاد دې چې دمياشتې په ليدو سره روژه کړئی اودَ مياشتې په ليدو سره اختر کړئی. که مياشت پټه کړه اوريځو نو ديرش ورځې د شعبان پوره کړئی

**تشريح:- دليله** دليل د رسول الله ﷺ قول «صوموا لرؤيته وافطروا لرؤيته فان غم عليكم الهلال فأكملوا عدة شعبان ثلاثين يوما» دې.

وَلِأَنَّ الْأَصْلَ بَقَاءُ الشَّهْرِ فَلَا يُنْقَلُ عَنْهُ إِلَّا بِدَلِيلٍ وَلَمْ يُوجَدْ اوڅکه چې اصل بقاء دمياشتې ده نو ددې نه منتقل کيدلې نشی مګر په دليل سره اوهغه اونه مودلې شو.

**تشريح:-** عقلی دليل دادې.چه اصل هم دادې.چه د شعبان مياشت پاته وی.څکه چې د شعبان مياشت د مخکې نه په يقين سره راروانه ده.نو بغير د دليل څخه به ددې نه رمضان اړخ ته انتقال نه کيږي.او دلته کې هيڅ دليل نشته.څکه چې په ۲۹ شعبان په يقين سره مياشت په نظر رانغله.بلکه د وريځ په وجه شك دې.اود

[1] من حديث أبى هريرة رضى الله عنه أخرجه البخارى فى الصوم باب ۱۱ رقم ۱۹۰۹ ومسلم فى ا لصوم رقم ۱۷)_



شك په وجه يقين نه زائل کيږي.نو په ۲۹ شعبان د سپوږمۍ د شك په صورت کې به د شعبان مياشت ختمه نه وی.بلکه ۳۰ تاريخ پورې به د شعبان مياشت پاته وی.

## د يوم الشك د روژې حکم

(وَلَا يَصُومُونَ يَوْمَ الشَّكِّ إِلَّا تَطَوُّعًا) ودشك په ورځ به روژه نه نيسی مګردنفلي په طور. لِقَوْلِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {لَا يُصَامُ الْيَوْمُ الَّذِي يُشَكُّ فِيهِ أَنَّهُ مِنْ رَمَضَانَ إِلَّا تَطَوُّعًا}[1] څکه چې دنبی کريم ﷺ ارشاد دې.چه په هغه ورځ به روژه نه نيسی په کومه کې چې شك وی چې دغه د رمضان ده مګر په نفلي طوره سره.

**تشريح:- تعريف يوم الشک** د يوم الشك نه مراد د شعبان آخره ورځ ده.چه ددې اړه کې داهم احتمال دې.چه دا د رمضان اوله ورځ وی.اودا هم احتمال دې.چه د شعبان آخری ورځ وی.يعنى د شعبان ۳۰ تاريخ وی.ليکن دا خبره دې ښکاره وی.چه د شعبان آخری ورځ يعنى ۳۰ شعبان به يوم الشك په دې صورت کې وی.چه په ۲۹ شعبان مطلع صفا نه وی.چه ددې په وجه د مياشت په راختلو اوپه نه راختلوکې شك وی.اوکه مطلع صفا وی.نو راروانه ورځ به يوم الشك نه شمارلې کيږي.

**کراهية الصوم غيرالتطوع يوم الشک** بهرحال په يوم الشك کې به د نفلي روژې نه علاوه روژه نشی نيولې.او دليل دا حديث دې. «لايصام اليوم الذى يشك فيه من رمضان» علامه مرغينانی په دې مسئله کې پنځه صورتونه ذکر کړی دی.

وَهَذِهِ الْمَسْأَلَةُ عَلَى وُجُوهٍ اودامسئله په صورتونو ده أَحَدُهَا: أَنْ يَنْوِيَ صَوْمَ رَمَضَانَ وَهُوَ مَكْرُوهٌ لِمَا رَوَيْنَا يودا چې د رمضان د روژې نيت اوکړی اودا مکروه دی لکه چې موږ روايت کړو

**تشريح:- نية صوم رمضان** که چا په يوم الشك کې د رمضان د روژې نيت اوکړو.نودا صورت مکروه دې.او دليل هغه حديث دې.چه دوې [دوه] کرخې وړاندې ذکرشوې دې.

**الاعتراض والجواب** په دې باندې به يو اعتراض دې.هغه دا چې په حديث کې «لاصيام» د نفی صيغه ده. او نفی په عدم جواز باندې دلالت کوی.نوددې نه په يوم الشك کې د رمضان روژې په نيت سره روژه نيول ناجائز ثابت شو.مکروه ثابت نشو؟

ځواب٭ په حديث کې نفی، د نهی په معنیٰ کې ده.او نهی د مشروعيت تقاضا کوی.نوثابت شو.چه په يوم شك کې د رمضان په نيت سره روژه ساتل ،فی نفسه،مشروع دی.خود نهی په وجه سره ،ممنوع لغيره، دی.اود ممنوع لغيره دوهم نوم مکروه دې.په دې وجه اوويلی شو.چه په دې ورځ د رمضان روژې په نيت سره روژه ساتل جائز دی.خومکروه دی.

وَلِأَنَّهُ تَشَبُّهٌ بِأَهْلِ الْكِتَابِ لِأَنَّهُمْ زَادُوا فِي مُدَّةِ صَوْمِهِمْ او څکه چې دا داهل کتابوسره مشابهت دې څکه چې دوی دخپلې روژې موده زياته کړې وه.

**تشريح:- الدليل العقلى فى جوازنية رمضان يوم الشک** عقلی دليل دادې.چه په يوم الشك کې د رمضان په نيت سره روژه ساتلوکې د يهود اونصاریٰ سره مشابهت لازميږي.په دې طريقه چې هغوی به په خپلو روژوکښې اضافه کوله.اود اضافه وجه داوه.چه که روژې به د ګرمۍ په ورځوکې راغلې.نوددوی عالمانو به دوی ته د يخنۍ په زمانه کې کولې.او ددې تغير په وجه به ئې د څو روژو اضافه کوله.نو چونکه په يوم الشك کې د رمضان روژه نيولوکې دا مشابهت دې.په دې وجه په دې ورځ روژه د رمضان په نيت سره مکروه اوګرځولې شوه.

[1] قال الزيلعى رحمة الله غريب جداً (نصب الرأية ۲/۴۶۰)_

**ثُمَّ إِنْ ظَهَرَ أَنَّ الْيَوْمَ مِنْ رَمَضَانَ يُجْزِيهِ** بیا که ظاهره شوه چې دغه ورځ د رمضان ده نو دده لپاره به کافي شي **لِأَنَّهُ شَهِدَ الشَّهْرَ وَصَامَهُ** ځکه چې دی په میاشت د رمضان کې حاضر شو او روژه ئې اونیوله.

**تشريح:- حكم صوم يوم الشک بنية رمضان مالاً**۞ بهرحال په یوم الشك کې د رمضان په نیت سره روژه ساتل مکروه دي. خو که دده باوجود چا اونیوله. او بیا روسته معلومه شوه. چه واقعی دا د رمضان ورځ وه. نو دده دا روژه به د رمضان روژه حسابیږي. اوپه ده باندې به ددې ورځ د روژې قضاء لازم نه وي. ځکه چې دا کس د رمضان په میاشت کې موجود دې. او روژه ئې ساتلې ده. نودې د الله تعالى په قول ((فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ)) باندې عمل کوونکې شو. اوکه روسته معلومه شي. چه دا د شعبان ورځ وه. نودا به نفلی روژه حسابیږي. او سره د کراهته به جائز وي.

**وَإِنْ ظَهَرَ أَنَّهُ مِنْ شَعْبَانَ كَانَ تَطَوُّعًا** اوکه ښکاره شوه چې شعبان دې نو روژه به نفلي شي **وَإِنْ أَفْطَرَ لَمْ يَقْضِهِ** اوکه ماته ئې کړه نو قضا به ئې نه راوړي

**تشريح:- حكم فساد صوم التطوع يوم الشک**۞ اوکه ده روژه ماته کړه. اودا ثابته شوه. چه دا ورځ د شعبان ورځ ده. نو په ده باندې به ددې قضاء لازم نه وي. ځکه چې داکس د مظنون په حکم کې شو. یعنی ده په دې ګمان سره روژه پیل کړه. چه په ما واجب ده. حالانکه واجب نه وه. او په مظنون باندې قضاء واجب نه وي.

**لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْمَظْنُونِ** ځکه چې دې په معنا د مظنون دې.

**تشريح:- نظيره**۞ مثلاً یوکس د ماپښین لمونځ اوکړو. بیا وریاد نشو. ده دوباره د ماپښین فرض لمونځ پیل کړو. بیا وریاد شو. چه د ماپښین لمونځ ئې خوکړې دې. اوس که ده داپوره کړل. نو نفل به اوشی. اوکه په مینځ کې ئې مات کړل. نودې نفلو قضاء به واجب نه وي. نو هم دغه ډول که یوکس په یوم الشك کې د رمضان په نیت سره روژه اونیوله. او بیا معلومه شوه. چه نن رمضان نه دې پیل شوې. نوکه ده دا روژه پوره کړه. نو ټیك شوه. اوکه په مینځ کې ئې ماته کړه. نودې قضاء به واجب نه وي.

## په یوم الشك د بل واجب روژې نیولوحکم

**وَالثَّانِي: أَنْ يَنْوِيَ عَنْ وَاجِبٍ آخَرَ وَهُوَ مَكْرُوهٌ أَيْضًا لِمَا رَوَيْنَا** دوهم داچه دواجب آخر نیت اوکړي داهم مکروه دی دهغې حدیث په رو سره کوم چې مونږ روایت کړې دي **إِلَّا أَنَّ هَذَا دُونَ الْأَوَّلِ فِي الْكَرَاهَةِ** مګر دا کراهت داول نه کم دې.

**تشريح:- كراهة نية واجب اخر يوم الشک**۞ دوهم صورت دادې. چه د شك په ورځ ئې د رمضان نه علاوه د بل واجب نیت اوکړو. مثلاً د تیر رمضان د قضاء روژې، یا د کفاره روژې، نیت ئې اوکړو. نودا هم سره د کراهته جائز دی.

**دليله**۞ دلیل هغه حدیث دې. کوم چې مونږ روایت کړې دې. ﴿لايصام اليوم الذی يشك فيه... الحديث﴾ خو په دې صورت کې د اولنی صورت په مقابله کې کراهت کم دې. ځکه چې په دې صورت کې د اهل کتاب سره مشابهت نه لازمیږي.

**ثُمَّ إِنْ ظَهَرَ أَنَّهُ مِنْ رَمَضَانَ يُجْزِيهِ لِوُجُودِ أَصْلِ النِّيَّةِ** بیا که دغه ورځ د رمضان ظاهره شوه نو کافي به شی دده لپاره د اصلیت نید د وجود په وجه

**تشريح:- حسابه من رمضان فی صورة رمضان**۞ اوس د واجب اخر په نیت سره د روژې ساتلو نه روسته که معلومه شی. چه دا د رمضان ورځ ده. نو د رمضان روژه به اداشی. ځکه چې د واجب آخر په ضمن کې اصل نیت هم موجود شو. او په اصل نیت سره د رمضان روژه اداکیږي. په دې وجه به دا روژه هم د رمضان شمارلې شی.

**وَإِنْ ظَهَرَ أَنَّهُ مِنْ شَعْبَانَ فَقَدْ قِيلَ: يَكُونُ تَطَوُّعًا لِأَنَّهُ مَنْهِيٌّ عَنْهُ** اوکه د شعبان ظاهره ظاهر شوه نو وئیلی شوی دی



چه نفل به شي ځکه چې دغه منهی عنه ده **فَلَا يَتَأَدَّى بِهِ الْوَاجِبُ** نو پدې سره واجب نه اداکیږي. **وَقِيلَ: يُجْزِيهِ عَنِ الَّذِي نَوَاهُ وَهُوَ الْأَصَحُّ** او وئیلې شوی دی چې دکوم نیت ئې کړی دې دهغه څخه به کافی شی اودا صحیح ده. **لِأَنَّ الْمَنْهِيَّ عَنْهُ وَهُوَ التَّقَدُّمُ عَلَى رَمَضَانَ بِصَوْمِ رَمَضَانَ لَا يَقُومُ بِكُلِّ صَوْمٍ** ځکه چې منهی عنه تقدم دې په رمضان باندې په روژه د رمضان سره نودا دهرې روژې سره نه قائمیږي

**تشريح:- القولان فی حسابه عن واجب اخرفی صورة شعبان**۞ اوکه روسته معلومه شی چه دا ورځ د شعبان ده. نو ① بعض حضرات فرمائی. چه دا روژه به د واجب آخر په نیت سره د نیولو باوجود نفل شمارلې شی. ځکه چې په ،یوم الشك، کې روژه ،منهی عنه، ده. په دې وجه به دا روژه ناقص وي. اوکومه روژه چې دده په ذمه واجب ده. هغه کامل ده. اود کامل اداکول په ناقص روژې سره نه کیږي. لکه چې که د اختر په ورځ د واجب آخر روژه اونیولې شی. نو واجب روژه نه ادکیږي. ② او بعض حضرات فرمائی. چه د کوم واجب نیت ئې کړې دې. هم هغه به اداکیږي. او هم دا صحیح قول دې.

**دليل القول الصحيح**۞ ځکه چې د ابوهریره﷛ په حدیث ﴿لاتتقدموا على رمضان بصوم يوم ولا بصوم يومين﴾ (په رمضان باندې یوه ورځ یا دوې [دوه] ورځې روژه مه مقدم کوئ) کې د رمضان روژه مراد ده. یعنی په رمضان باندې یوه یا دوې [دوه] روژې د رمضان د روژو په خیال سره مه مقدم کوئ.

**خلاصة الكلام**۞ حاصل داچه د رمضان نه مخکې د مطلقاً روژه ساتلو نه منع نه ده شوې. بلکه د رمضان نه مخکې د رمضان د روژې په خیال سره د روژې ساتلونه منع کړې شوې ده. او د کوم واجب آخر نیت ئې چې کړې دې. ښکاره خبره ده. چه دا ئې د رمضان د روژې په خیال سره نه ده نیولې. په دې وجه د واجب آخر روژه په دې ورځ ،منهی عنه، نه ده. اوچه منهی عنه نه ده. نو په دې ورځ د واجب آخر روژه په ساتلو سره به واجب آخر اداکیږي. په دې کې به هیڅ باك نه وي.

**بِخِلَافِ يَوْمِ الْعِيدِ** په خلاف د ورځې د اختر نه **لِأَنَّ الْمَنْهِيَّ عَنْهُ وَهُوَ تَرْكُ الْإِجَابَةِ يُلَازِمُ كُلَّ صَوْمٍ** ځکه چې منهی عنه کوم چې د قبول دعوت ترك ددې د هرې روژې لپاره لازم دې

**تشريح:- الجواب عن القياس**۞ او پاتې شو د اختر په ورځ د روژې ممنوع کیدل، نوددې وجه داده. چه د اختر په ورځ د الله تعالى واړه بنده ګان د هغه ملمانه وي. نو په دې ورځ روژه نیول د الله تعالى دعوت نه قبلول دی. اود الله تعالى دعوت پریخودل ،منهی عنه، دی. په دې وجه د اختر په ورځ مطلقاً د روژې نیولونه منع کړې شوې ده. ځکه چې د دعوت قبلولو، د پریښولو معنی په هرقسمه روژه کې موندلې شی.

**وَالْكَرَاهِيَةُ هَهُنَا لِصُورَةِ النَّهْيِ** اوکراهت دلته دنهی دصورت سره دې.

**تشريح:- الاعتراض**۞ ﴿والكراهة هنا بصورة النهی﴾ کې د یوسوال ځواب دې. سوال دادې. چه هرکله په رمضان باندې، د رمضان د روژې په خیال سره مقدم کول منهی عنه دی. نود رمضان نه مخکې به واجب آخر روژه بلاکراهت جائز کیدل پکار وو. حالانکه تاسو اووئیل. چه مع الکراهة جائز ده.

**الجواب**۞ چونکه دلته کې د نهی صورت موجود شو. لکه چې ارشاد دې. ﴿لايصام اليوم.... الحديث﴾ په دې وجه د واجب آخر روژه مکروه تنزیهی اوګرځولې شوه.

## په یوم الشك د نفلی روژې نیول

**وَالثَّالِثُ: أَنْ يَنْوِيَ التَّطَوُّعَ وَهُوَ غَيْرُ مَكْرُوهٍ لِمَا رَوَيْنَا** دوهم دا چې دنفلو نیت اوکړي دا مکروه نه دې

**تشريح:- جواز صوم التطوع يوم الشک**۞ دریم صورت دادې. چه په یوم الشك کې د نفلی روژې نیت اوکړي. نفلی روژه په دې ورځ غیرمکروه ده. ځکه په ﴿لايصام اليوم الذی يشك فيه أنه من رمضان إلا تطوعا﴾ کې نفلی روژه مستثنی ده.

**دليلنا** ﴿زمونږ دليل په حديث ﴿لايصام اليوم الذي﴾ کي ﴿إلا تطوعاً﴾ دي. ځکه چې په دې حديث کي مطلقاً د شک په ورځ د نفلي روژې نيولواجازت ورکړې شوې دې. که دا د معمول مطابق راغلې وي. اوکه دمعمول مطابق نه وي راغلې. نودا حديث دخپل اطلاق په وجه سره د امام شافعي رحمه الله په خلاف حجت دې.

| وَهُوَحُجَّةٌعَلَى الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللّٰهُ فِي قَوْلِهِ يُكْرَهُ عَلَى سَبِيلِ الْإِبْتِدَاءِ دغې حديث په وجه سره چې مونږ کوم روايت کړو |
|---|

**تشريح:- خلاف الشافعي رحمه الله** ﴿ امام شافعي رحمه الله فرمائي. چه، على سبيل الإبتداء، په يوم الشک کي نفلي روژه ساتل مکروه دی. د، على سبيل الإبتداء، مطلب دادې. چه کومه ورځ يوم الشك وی. هغه ورځ خو نه دده د روژو نيولو د معمول مطابق وه. اونه ددې کس د مياشتې په آخرى ورځوکي د روژو نيولوعادت وو. مثلاً يوم الشك د شنبه (خالي) په ورځ راغله. اودده د دوشنبه او پنج شنبه ورځو د روژو نيولوعادت وو. او د دې کس د مياشتې په آخرى ورځو کي د روژو نيولوعادت هم نه وو. نودا دشنبه ورځ چې په اتفاق سره د شك ورځ ده. که دده ددې ورځ روژه اوساتله. نودا روژه د امام شافعي رحمه الله په نيزمکروه ده.

| وَالْمُرَادُبِقَوْلِهِ {لَاتَتَقَدَّمُوارَمَضَانَ بِصَوْمِ يَوْمٍ وَلَابِصَوْمِ يَوْمَيْنِ} الْحَدِيثَ[1] اودا حجت دې په امام شافعي رحمه الله دده په پدې قول کي چې روژه په طريقه د ابتداء مکروه ده، التَّقَدُّمُ بِصَوْمِ رَمَضَانَ اود نبی کريم ﷺ ددې ارشاد مراد دادې چې په يوه ورځ يا دوې [دوه] ورځو په رمضان روميې ولې مه کوئ په روژې سره. درمضان په روژې سره دپيش قدمئ نه منع کول دی لِأَنَّهُ يُؤَدِّيهِ قَبْلَ أَوَانِهِ ځکه چې دغه د وخت خپل نه مخکې اداکول دی. |
|---|

**الجواب عن مستدل الشافعي رحمه الله** ﴿اود امام شافعي رحمه الله د پيش کړې شوی حديث ځواب دادې. چه کومه روژه په رمضان باندې مقدم کولونه منع شوې ده. هغه د رمضان روژه ده. يعنی د رمضان نه وړاندې هيڅ روژه به د رمضان په خيال باندې نشی نيولې. ځکه چې که د رمضان نه وړاندې روژه اونيولې شوه. نو دا به د وخت نه مخکې وی. اود رمضان د روژې وخت د رمضان مياشت ده. نوددې نه وړاندې ادا کاوه سره به نه اداکيږی. په حديث کي د مطلق روژه ساتلو نه منع نه ده شوې. په دې وجه د امام شافعي رحمه الله .على سبيل الإبتداء. په يوم شك کي روژه ساتل مکروه ګڼړل ټيک نه دی.

| ثُمَّ إِنْ وَافَقَ صَوْمًا كَانَ يَصُومُهُ فَالصَّوْمُ أَفْضَلُ بِالْإِجْمَاعِ بيا که دغه دده معمول والا روژې سره يوشان راغله نو په اجماع سره روژه کول افضل دی. وَكَذَا إِذَا صَامَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مِنْ آخِرِ الشَّهْرِ فَصَاعِدًا دغه ډول که دې دهرې مياشتې درې آخرى روژې نيسی يا زياتې |
|---|

**تشريح:- الصوم المعتاد يوم الشک** ﴿صاحب د هدايه رحمه الله فرمائي. چه که دا نفلي روژه ددې سې روژې موافق شوه. کوم چې دده عادت وو. نوپه دې سې صورت کي روژه ساتل بالاجماع افضل دی. مثلاً په دوشنبه(دګل په ورځ) روژه ساتل دده معمول وو. چه په هره دوشنبه به ئې روژه ساتله. اوس په اتفاق سره د شك ورځ د دوشنبه په ورځ راغله. نونفلي روژه نيول په اتفاق سره افضل دی. دغه ډول که دده عادت د هرې مياشتې آخرى دريو يا زياتې روژو نيولو وو. نوپه دې صورت ک... شك کي روژه نيول افضل وی.

**دليل الشافعي رحمه الله** ﴿د... دي. ﴿لاتتقدموا على رمضان بصوم يوم ولا بصوم يومين إلا أن يكون ...

... يوه روژه يا دوې [دوه] روژې مه مقدم کوئ. مګر داچه ... ولـه. ددې حديث نه معلوميږي. چه په يوم الشك کي ... راشی. نومکروه نه ده. مثلاً د يوکس عادت د پنج

---

[1] ... الصوم باب ۱۴ ... رقم ۲۱ وأبوداود فى الصوم باب ۱۲ رمق ... الصيام باب ۳۱ ... صيام باب ۵ وأحمد فى المسند (۲/۲۳۴)۔



شنبه په ورځ د روژه نيولو وو. اتفاقاً د شك ورځ پنج شنبه راغله. نوپه دې صورت کي په يوم شك کي نفلي روژه مکروه نه ده.

| وَإِنْ أَفْرَدَهُ فَقَدْ قِيلَ: الْفِطْرُ أَفْضَلُ احْتِرَازًا عَنْ ظَاهِرِ النَّهْيِ اوکه يواځې ددې ورځې نې اونيوله نو وئيلې شوی دی چې روژه نه نيول افضل دی دظاهر ممانعت په وجه سره |
|---|

**تشريح:- صوم التطوع اتفاقا يوم الشک** ﴿که د يوم شك ورځ دده د معمول مطابق رانغله. اونه دده هره مياشت د آخرى دريو يا دکم و زيات روژو نيولو عادت وو. بلکه په يوم شك کي ئې هسې اتفاقي نفلي روژه اونيوله. نو① د شيخ محمد بن مسلمه رحمه الله په نيز افطارکول افضل دی. چه د ښکاره نهی. لايصام اليوم الذى يشك فيه. نه بچ شي.

| وَقَدْ قِيلَ: الصَّوْمُ أَفْضَلُ اقْتِدَاءً بِعَلِيٍّ وَعَائِشَةَ او وئيلې وی دی روژه افضل ده دحضرت على اوحضرت عائشې رضي الله عنهما د اقتداء په وجه سره. فَإِنَّهُمَا كَانَا يَصُومَانِهِ[1] ځکه چې دې دواړو به روژه نيوله. |
|---|

**تشريح:- الرواية الثانية** "د نصيربن يحيى په نيز روژه نيول افضل دی. دليل دادې. چه په روژه نيولوکي به دحضرت على ﷺ اود حضرت عائشه رضي الله عنها اقتداء اوشی. ځکه چې دې دواړو به په يوم شك کي روژه ساتله. او فرمائيل به ئې. چې مونږ ته په شعبان کي روژه نيول خوښ دی. په نسبت د رمضان په ورځ د افطار کاوه نه. يعنی که دا ورځ د شعبان ده. نوپه روژه نيولوکي څه حرج دې. خوکه د رمضان ده. اومونږ افطار اوکړو. نوپه رمضان کي افطار کول لازميږی .اوښکاره خبره ده. چه دا قطعاً ناخوښه دې. په دې وجه په دې ورځ هم روژه نيول غوره دی. يوم شك که د شعبان ورځ وی. اوکه د رمضان وی.

| وَالْمُخْتَارُ أَنْ يَصُومَ الْمُفْتِي بِنَفْسِهِ أَخْذًا بِالْإِحْتِيَاطِ، وَيُفْتِي الْعَامَّةَ بِالتَّلَوُّمِ إِلَى وَقْتِ الزَّوَالِ اومختار داده چې مفتی يواځې پخپله روژه کړی د امله د احتياط نه او فتوی دې ورکړی عواموته تر زواله پورې د انتظار کولو |
|---|

**تشريح:- صوم التطوع للمفتى** ﴿ د صاحب هدايه رحمه الله په نيزمختار مذهب دادې. چه مفتی خو پخپله د يوم شك روژه اونيسی. چه په احتياط باندې عمل اوشی. ځکه چې په يوم شك کي دا احتمال شته. چه دا د رمضان ورځ وی. نوکه مفتی په دې ورځ افطار اوکړو. نوپه رمضان کي به افطار کول لازم شی. اودا د احتياط خلاف دې. نو احتياط په روژه نيولوکي دې. خو مفتی به عامو خلګو ته دا فتوی ورکوی. چه دوی د زوال پورې انتظار اوکړی. که د زوال پورې د مياشت ثبوت اوشو. نو صحيح ده. ګنی بيا دې د افطار فتویٰ ورکړی. يعنی که د زوال وخت پورې د رمضان ثبوت اونشو. نو په دې وجه دې عامو خلګ وته د افطار فتوی ورکړی.

| ثُمَّ بِالْإِفْطَارِ نَفْيًا لِلتُّهْمَةِ بيا دافطار کاوه د تهمت لرې کاوه دپاره. |
|---|

**حكم الافطار بعد الزوال** ﴿ځکه چې په دې کي د تهمت نفی کول دی. ① يو خو په دې وجه چې د روافضو په نيز په يوم الشك کي روژه نيول واجب دی. اوس که مفتی په ،يوم الشك، کي عامو خلګ وته د روژې نيولو فتوی ورکړی. نو خلګ به مفتی صاحب متهم کړی. چه اوګوره. مفتی صاحب رافضی شو. ددې تهمت نه دې د بچ کيدلو لپاره د افطار فتوی ورکړی. ② دويمه داچه نبی کريم ﷺ په يوم الشك کي د روژې نيولو نه منع فرمائيلې ده. نو خلګ به خود حديث په پوره مفهوم پوهه نشی. او په مفتی صاحب باندې به د رسول اکرم ﷺ د مخالفت الزام اولګوی. په دې وجه مفتی له پکار دی. چه په يوم شك کي د زوال وختـه پورې د انتظار کاوه نه روسته عامو خلګو ته د افطار کاوه فتوی ورکړی.

---

[1] غربه الزيلعى رحمة الله ثم وقال وفى التحقيق لابن الجوزى رحمة الله مذهب على وعائشة رضي الله عنهما أنه يجب صوم يوم الثلاثين من شعبان إذا حال دونه غيم أونحوه قال وهو أصح الروايتين عن أحمد قال وعلى هذه الرواية لا يسمى يوم شك بل هو من رمضان حكماً والله أعلم (نصب الرأية ۲/۴۶۲)۔

وَالرَّابِعُ: أَنْ يُضْجَعَ فِي أَصْلِ النِّيَّةِ او څلورم دا چې اصل نيت كې دې تردد كوي بِأَنْ يَنْوِيَ أَنْ يَصُومَ غَدًا إِنْ كَانَ مِنْ رَمَضَانَ وَلَا يَصُومُهُ إِنْ كَانَ مِنْ شَعْبَانَ داسې چې نيت اوكړي چې سهار به روژه نيسم كه رمضان وو. اوروژه به نه نيسم كه شعبان وو. وَفِي هَذَا الْوَجْهِ لَا يَصِيرُ صَائِمًا اوپدې صورت كې به دغه روژه دار نه وي

**تشريح:- عدم انعقاد الصوم بالنية المترددة**۞څلورم صورت دادې.چه نيت په روژه نيولو اونه نيولوكې دائركړي.په دې طريقه چې د يوم شك په شپه كې دا نيت اوكړي.چه كه صباله ورځ د رمضان شوه.نو روژه به نيسم.اوكه د شعبان شوه.نو روژه به نه نيسم.په دې نيت سره به روژه معتبر نه وي.

لِأَنَّهُ لَمْ يَقْطَعْ عَزِيمَتَهُ ځكه چې ده قطعي عزم نه دې كړې

**تشريح:- دليله**۞ځكه چې په دې صورت كې دده نيت قطعي اوحتمي نه دې.بلكه د اصل روژې نيت متردد(په شك كې) دې.اوچه په اصل نيت كې تردد وي.نو روژه معتبر نه وي.

فَصَارَ كَمَا إِذَا نَوَى أَنَّهُ إِنْ وَجَدَ غَدًا غَدَاءً يُفْطِرُ،نوداسې شو لكه داسې نيت اوكړي چې كه سهار مې خوراك اوموندلو نو افطار به اوكړم وَإِنْ لَمْ يَجِدْ يَصُومُ اوكه اومې نه موندلو روژه به كوم.

**تشريح:- نظيره**۞لكه چې كه يوكس دا نيت اوكړي.كه صباله خوراك ملاؤ شي.نو افطار به كوم.اوكه ملاؤ نشي.نو روژه به نيسم.په دې صورت كې به هم روژه ټيك نه وي.

وَالْخَامِسُ: أَنْ يُضْجَعَ فِي وَصْفِ النِّيَّةِ پنځم داچه په وصف دنيت كې تردد اوكړي بِأَنْ يَنْوِيَ إِنْ كَانَ غَدًا مِنْ رَمَضَانَ يَصُومُ عَنْهُ داسې نيت اوكړي چې كه سهار رمضان وو نو درمضان روژه به نيسم ،وَإِنْ كَانَ مِنْ شَعْبَانَ فَعَنْ وَاجِبٍ آخَرَ،اوكه دا شعبان وو نودبل واجب روژه به نيسم. وَهَذَا مَكْرُوهٌ دا مكروه دى

**حل اللغة**① **يضجع**: ترددوالي كول،شك كول

**تشريح:- كراهة التردد فى وصف النية**۞د يوم شك د روژې پنځم صورت دادې.چه د نيت په وصف كې شك اوكړي.مثلاً اووائي.چه كه صباله ورځ د رمضان شوه.نو زه به د رمضان نيسمه.اوكه د شعبان شوه. نود واجب آخر يعنى د قضاء ياكفاره روژه به نيسم.دا صورت مكروه دې.

لِتَرَدُّدِهِ بَيْنَ أَمْرَيْنِ مَكْرُوهَيْنِ او د امله د تردد د ده نه په دوې [دوه] كارونو مكروهو كې .

**تشريح:- دليل الكراهة**۞ځكه چې په كومو دوې [دوه] روژو كې ئې نيت دائر كړې دې.دا دواړه په دې ورځ مكروه دى.يعنى په يوم شك كې د رمضان د روژې نيت كول هم مكروه دى.اود واجب آخر نيت كول هم مكروه دى.

ثُمَّ إِنْ ظَهَرَ أَنَّهُ مِنْ رَمَضَانَ أَجْزَأَهُ لِعَدَمِ التَّرَدُّدِ فِي أَصْلِ النِّيَّةِ بيا كه ظاهره شوه چې دا رمضان وو نو جائز دى دده لپاره د امله دعدم تردد نه په نيت كې .

**تشريح:- حسابه عن رمضان ان كان من رمضان**۞بيا د روژه نيولو نه روسته كه ښكاره شى.چه دا ورځ د رمضان ده.نود رمضان روژه ادا شوه.ځكه چې په اصل نيت كې تردد موجود نشو.اود رمضان روژه په اصل نيت سره ادا كيږي.په دې وجه دې نيت سره به هم د رمضان روژه ادا كيږي.

وَإِنْ ظَهَرَ أَنَّهُ مِنْ شَعْبَانَ لَا يُجْزِيهِ عَنْ وَاجِبٍ آخَرَ اوكه ظاهر شو چې دغه شعبان دې نودبل واجب څخه به كافى نه وى لِأَنَّ الْجِهَةَ لَمْ تَثْبُتْ لِلتَّرَدُّدِ فِيهَا ځكه چې جهت ثابت نه شو پدې كې د تردد كيدو په وجه سره. ،وَأَصْلُ النِّيَّةِ لَا يَكْفِيهِ او اصل نيت ددې واجبو لپاره كافى نه دې

**تشريح:- حسابه من النفل ان كان من شعبان**۞اوكه ښكاره شى.چه دا ورځ د شعبان وه.نو واجب آخر به نه ادا كيږي.ځكه چې د نيت په وصف كې د تردد په وجه د وجوب اړخ نو نه ثابتيږي.البته اصل نيت موجود



شو.خو اصل نيت د واجب اخر ادا كاوه لپاره كافى نه وى.ځكه چې د اصل نيت په صورت كې د واجب اخر تعين نه كيږي.حالانكه تعين ضروري دې.

لَكِنَّهُ يَكُونُ تَطَوُّعًا غَيْرَ مَضْمُونٍ بِالْقَضَاءِ لِشُرُوعِهِ فِيهِ مُسْقِطًا ليكن دانفل شو داسې چې دقضا راوړو ذمه وارى نې اغستلې نه ده د امله د پيل دده په دې كې ساقطوئكې

**تشريح:- عدم قضاءه بالفساد**۞خودا روژه به داسې نفل شى.چه ددې په فاسد كاوه به قضاء نه لازميږي.يعنى دا روژه كه فاسد كړي.نوددې قضاء به واجب نه وى.ځكه چې ده دا روژه په دې سې نيت سره پيل كړې وه.چه دده د ذمه نه واجب ساقط شى.يعنى چې د رمضان روژه ادا شى.خومعلومه شوه.چه دده په ذمه واجب شوې نه ده.ځكه چې د رمضان ثبوت نه دې شوې.نوددې په ماتولو به قضاء نه لازميږي.ځكه چې دا هم د مظنون د روژې په شان شو.

وَإِنْ نَوَى عَنْ رَمَضَانَ إِنْ كَانَ غَدًا مِنْهُ وَعَنِ التَّطَوُّعِ إِنْ كَانَ مِنْ شَعْبَانَ يُكْرَهُ اوكه نيت ئې اوكړو درمضان كه سهار رمضان وو او دنفلو سهار شعبان و نو مكروه دى لِأَنَّهُ نَاوٍ لِلْفَرْضِ مِنْ وَجْهٍ ځكه چې دې نيت كوئكې د فرضو دې من وجه.

**الصورة الثانية الشك فى وصف النية**۞ اوكه د يوم شك په شپه ئې نيت اوكړو.چه صباله رمضان شو. نو زما روژه د رمضان ده.اوكه شعبان شو.نو زما روژه نفلى ده.نودا هم مكروه دى.ځكه چې په دې صورت كې هم من وجه د فرض نيت موجود شو.حالانكه د فرض نيت كاوه په دې ورځ كې مكروه دى.

ثُمَّ إِنْ ظَهَرَ أَنَّهُ مِنْ رَمَضَانَ أَجْزَأَهُ عَنْهُ لِمَا مَرَّ بياكه ظاهره شوه چې دغه رمضان و نو درمضان څخه به كافى شى لكه چې تيرشو.

**صحة النيتين**۞اوس كه روسته ښكاره شوه.چه دا ورځ د رمضان وه.نود رمضان روژه به ادا شى.ځكه چې په اصل نيت كې تردد اونه موندې شو.اوكه ښكاره شى.چه دا ورځ د شعبان وه.نو نفلى روژه به ادا شى.ځكه چې نفلى روژه په اصل نيت سره ادا كيږي.

وَإِنْ ظَهَرَ أَنَّهُ مِنْ شَعْبَانَ جَازَ عَنْ نَفْلِهِ اوكه ظاهر شو چې شعبان دې نه نفل به ئې جائز شى لِأَنَّهُ يَتَأَدَّى بِأَصْلِ النِّيَّةِ ځكه چې نفلى روژه په اصل نيت سره اداكيږي ،وَلَوْ أَفْسَدَهُ يَجِبُ أَنْ لَا يَقْضِيَهُ اوكه فاسد ئې كړه نو لازه ده قضا نې راو نړى لِدُخُولِ الْإِسْقَاطِ فِي عَزِيمَتِهِ مِنْ وَجْهٍ ځكه چې دده په نيت كې دفرضو ساقط كيدل داخل شو من وجه.

**تشريح:- عدم القضاء بالفساد**۞اوكه دا روژه ئې ماته كړه.نوددې قضاء به لازم نه وى.ځكه چې قضاء هغه وخت واجبيږي.چه په نيت كې جزم او يقين وى.او دلته كې د سره جزم نشته.په دې وجه چې كه ده د نفلى روژې نيت كړې دې.نوددې سره سره د رمضان كيدلو په صورت كې ده دخپلې ذمې نه دفرض ساقطولو نيت هم كړې دې.نودا هم د صوم مظنون په شان شو.او وړاندې تير شوى دى.چه په صوم مظنون فاسد كاوه سره ددې قضاء نه واجبيږي.

## د يوكس د رمضان د مياشتې ګواهى رد كيدل

قَالَ وَمَنْ رَأَى هِلَالَ رَمَضَانَ وَحْدَهُ صَامَ چا چې يواځې درمضان مياشت اوليده نودې به روژه نيسى وَإِنْ لَمْ يَقْبَلِ الْإِمَامُ شَهَادَتَهُ اكر چې امام دده شهادت قبول نكړي.

**تشريح:- وجوب الصوم على الرائى وان رد شهادته**۞مسئله داده.كه يوكس يواځې مياشت اوليدله.مطلع صفا وو.اود بيدارئ(ويخې) په حالت كې ښكاره اوليدله.په خوب كې نه.نودا كس به پخپله روژه نيسى.اګرچه امام دده ګواهى په څه وجه نه وى قبول كړي.

**لِقَوْلِهِ {صُومُوا لِرُؤْيَتِهِ وَافطروا لرؤيته}**(۱) دنبی کریم ﷺ دارشاد په وجه سره چې په ليدو روژه اونيسئ اوپه ليدو يې ماتوئی. **وَقَدْرَأَى ظَاهِرًا** او ده ظاهراً مياشت اوليده

**تشريح:- دلائله**۞ ① دليل دادې.چه نبی کريم ﷺ فرمائيلي دی. «صوموا الرؤيته وافطروا الرؤيته» نوكله چې دده په حق کي رؤيتِ هلال(د سپوږمئ ليدل) موجود شو.نوپه ده به روژه نيول واجب وی.② او چې کله ده د بيدارئ په حالت کي ښکاره مياشت اوليدله.نودده په حق کي د مياشت شهود موجود شو.يعنی دده په حق کي رمضان موجود شو.او الله تعالی فرمائيلی دی.((**فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ**)) چې د چا په حق کي رمضان موجود شی.په هغه باندې د رمضان روژه فرض شوه.نو آيت او روايت دواړه دده په حق کي د رمضان د روژو په وجوب باندې دلالت کوی.

**وَإِنْ أَفْطَرَ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ دُونَ الْكَفَّارَةِ** اوکه ده روژه ماته کړه نو په ده قضا لازم ده نه که کفاره.

**تشريح:- وجوب القضاء فقط عند الفساد**۞اوکه دې کس په دې ورځ کي روژه ماته کړه.اګرچه په جماع ئې ماته کړې وی.نو په ده به ددې روژې قضاء واجب وی.کفار به واجب نه وی.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: عَلَيْهِ الْكَفَّارَةُ إِنْ أَفْطَرَ بِالْوِقَاعِ** اوامام شافعی رحمه الله وائی چې په ده کفاره هم ده که په جماع سره ئې ماته کړه. **لِأَنَّهُ أَفْطَرَ فِي رَمَضَانَ حَقِيقَةً لِتَيَقُّنِهِ بِهِ** ځکه چې ده په رمضان کي ماته کړه په حقيقت کي ده درمضان د يقين په وجه سره **وَحُكْمًا لِوُجُوبِ الصَّوْمِ عَلَيْهِ** اوحکمی طور هم په ده د روژې دوجوب په وجه سره.

**تشريح:- خلاف الشافعی رحمه الله فی وجوب الكفارة با لاجماع**۞او امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه که په جماع سره ئې روژه ماته کړې ده.نو په ده باندې به د قضاء سره د روژې کفاره هم واجب وی.اوکه په خوراك څكاك سره ئې ماته کړې ده.نو په ده به د روژې کفاره واجب نه وی.هم دا قول د امام مالك او امام احمد رحمه الله دې.

**دليل الشافعی رحمه الله**۞ د امام شافعی رحمه الله دليل دادې.چه ددې کس په حق کي رمضان حقيقتاً هم موجود شو.او حکماً هم.حقيقتاً خو ځکه چې د مياشت ليدلو په وجه ده ته د رمضان د راتلو يقين اوشو.او حکماً ځکه چې شريعت په ده باندې د روژه واجب کولوحکم اوکړو.نوهرکله چې دده په حق کي رمضان حقيقتاً هم موجود شو.اوحکماً هم موجود شو.نو ګويا لکه چې ده په رمضان کي روژه اونيوله.او په قصد ئې ماته کړه.اود رمضان روژه په قصد سره د ماتولو په وجه قضاء او کفاره دواړه واجبيږی.په دې وجه به په ده باندې قضاء اوکفاره دواړه واجب وی.

**وَلَنَا أَنَّ الْقَاضِيَ رَدَّ شَهَادَتَهُ بِدَلِيلٍ شَرْعِيٍّ** زموږ دليل دادې.چه قاضی د يوشرعی دليل يعنی دغلطئ دتهمت په وجه دده شهادت قبول نکړو **وَهُوَ تُهْمَةُ الْغَلَطِ، فَأَوْرَثَ شُبْهَةً** نودې يو قسمه شبه پيدا کړه **وَهَذِهِ الْكَفَّارَةُ تَنْدَرِءُ بِالشُّبُهَاتِ** اودا کفاره دشبهاتو په وجه سره ساقطيږی

**تشريح:- دليل الاحناف رحمهم الله**۞زموږ دليل دادې.چه هرکله قاضی دده شهادت رد کړو.نودا کس شرعا دروغژن کړې شو.او قاضی دده شهادت هم په شرعی دليل سره رد کړې دې.اوشرعی دليل د غلطئ الزام دې.ځکه چې مطلع صفا وو.او ددې باوجود هم صرف ده ته مياشت په نظر راغله.نور هيڅ چاته په نظر رانغله.حالانکه په دې ورځ د مسلمانانو ګڼړه وی.او واړه د مياشت ليدلو کوښښ کوی.نو يواځی ده ته مياشت په نظر راتګ .او نورو ته په نظر نه راتګ .په دې سره د مياشت په نظر راتلوکي يوقسم شبه پيدا کيږی.او کفاره د شبهاتو په وجه ساقط کيږی.نو په دې صورت کي به هم په دې کس باندې د روژې ماتولو په وجه سره کفاره واجب نه وی.

**وَلَوْ أَفْطَرَ قَبْلَ أَنْ يَرُدَّ الْإِمَامُ شَهَادَتَهُ اخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ فِيهِ** اوکه ده ماته کړه مخکي ددې نه چې امام دده شهادت قبول نکړی،و ددې په بابت کي مشانخوا ختلاف کړې دي

(۱)حديث أبی هريرة رضی الله عنه أخرجه البخاری فی الصوم باب ۱۱ رقم ۱۹۰۹ ومسلم فی ا لصوم رقم ۱۷)_



**تشريح:- المذهبان فی وجوب الكفارة قبل رد شهادته**۞اوکه امام تر اوسه پورې دده ګواهی نه ده رد کړې.بلکه دې کس ددې نه مخکي روژه ماته کړه.نود کفاره په وجوب کي د مشائخو رحمهم الله اختلاف دې.① بعضی فرمائی.چه په دې صورت کي به کفاره واجب وی.ځکه چې شبه پيدا کونکې قاضی دده شهادت رد کول وو.اود قاضی د اړخه د شهادت رد کول موجود نشو.په دې وجه شبه هم اونه مونده شوه. اوهرکله چې د رمضان په ثبوت کي څه قسمه شبه اونه مونده شوه.نو په رمضان کي د روژه ماتولو په وجه سره به په ده باندې د قضاء سره کفاره هم واجب وی.② خوصحيح قول دادې.چه په دې صورت کي به کفاره واجب نه وی.

**دليل القول الاصح**۞ځکه چې د شهادت رد کولونه مخکي هم شبه موجود ده.ځکه چې امام ترمذی او ابوداؤد رحمهما الله د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت نقل کړې دې.چه «أنه قال الصوم يوم تصومون والفطر يوم تفطرون» يعنی نبی کريم ﷺ فرمائی.چه په کومه ورځ تاسو روژه نيسئ.هغه د روژې ورځ ده.او په کومه ورځ چې تاسو افطار کوئ.هغه ورځ د افطار ده.حاصل داچه په کومه ورځ عام خلګ روژه نيسی.هغه د فرض روژې ورځ ده.او په کومه ورځ چې عام خلګ افطار کوی.هغه د فرض افطار ورځ ده.ددې حديث نه معلومه شوه.چه فرض روژه به هغه وخت شمارلې شی.چه کله عام خلګ په دې ورځ روژه اونيسی.او په ذکرشوی صورت کي عامو خلګو روژه نه ده نيولې.په دې وجه به فرض روژه هم نه شی شمارلې.نوددې روژې په فرض کيدلو کي شبه پيدا شوه.اوچونکه شبهات کفاره دفع کوی.په دې وجه په دې صورت کي هم د روژې په ماتولوسره کفاره نه واجب کيږی.

**وَلَوْ أَكْمَلَ هَذَا الرَّجُلُ ثَلَاثِينَ يَوْمًا لَمْ يُفْطِرْ إِلَّا مَعَ الْإِمَامِ** اوکه يو سړی ديرش روژې پوره کړې.نو افطار به نه کوی.مګر دامام سره. **لِأَنَّ الْوُجُوبَ عَلَيْهِ لِلِاحْتِيَاطِ** ځکه چې په ده وجوب د احتياط په وجه وو. **وَالِاحْتِيَاطُ بَعْدَ ذَلِكَ فِي تَأْخِيرِ الْإِفْطَارِ** اوددې نه روسته احتياط په تاخير د افطار کي دې. **وَلَوْ أَفْطَرَ لَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ اعْتِبَارًا لِلْحَقِيقَةِ الَّتِي عِنْدَهُ** اوکه افطار ئې اوکړو وکفاره پرې نشته ددغې حقيقت د اعتبار په وجه،کوم چې دده په نزد دې.

**تشريح:- عدم جواز الافطار عند تكميل ثلاثين**۞اوس که دې کس ۳۰ روژې پوره کړې.اود امام او د عامو مسلمانانو ۲۹ شوې.او په ۲۹ رمضان باندې د اختر مياشت(سپوږمئ) په نظر رانغله.نودا کس به هم په دې خيال افطار نه کوی.چه زما ۳۰ روژې پوره شوې.بلکه د امام سره به افطار کوی.اود امام سره به راروانه ورځ روژه نيسی.

**دليله**۞ځکه چې د رمضان مياشت دده په ځانله ليدلو باندې يواځې په ده باندې احتياطاً روژه واجب کړې شوه.د رمضان قطعی فرض روژه په خيال باندې نه واجب کړې شوې.او دلته کي د افطار په تاخير کي احتياط دې.ځکه ممکن ده.چه د رمضان په مياشت کي ده ته دهوکه شوې وی.يعنی لومړئی روژه کومه چې ده د رمضان روژې په خيال سره نيولې ده.هغه د رمضان نه وی.بلکه د شعبان وی.نودده به د رمضان روژې ۲۹ وی.نو احتياطاً به داکس هم د امام وخت سره افطار کوی.

**عدم وجوب الكفارة بعد تكميل ثلاثين**۞ خوکه ددې باوجود ده خپلې ۳۰ روژې پوره کړې.او يواځې ئې ځانله افطار اوکړو.نو په ده به کفاره واجب نه وی.ځکه چې په ۳۰ روژو پوره کاوه باندې ددې کس په خپل ځان باندې يقين دې.چه نن د اختر ورځ ده.نود اختر د شبه په وجه به په ده باندې کفاره واجب نه وی.

**قَالَ (وَإِذَا كَانَ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ قَبِلَ الْإِمَامُ شَهَادَةَ الْوَاحِدِ الْعَدْلِ فِي رُؤْيَةِ الْهِلَالِ** وکله چې په آسمان کي علت وی نو قبوله دې کړی امام ګواهی ديو عادل په ليدو دمياشتې باندې. **رَجُلًا كَانَ أَوِ امْرَأَةً حُرًّا كَانَ أَوْ عَبْدًا)** سړې وی که ښځه.آزاد وی اوکه غلام وی.

**تشريح:- قبول شهادة الواحد فی يوم غيم**۞ مسئله داده.چه که مطلع صفا نه وی.بلکه وريځ وی.يا دوړه يا لوګې

وغيره وي. ① نو د رمضان د مياشت رؤيت (ليدل) د يو کس په ګواهۍ سره ثابتيږي. دا کس که سړی وي، او که ښځه وي، آزاد وي او که غلام وي.

**لِأَنَّهُ أَمْرٌ دِينِيٌّ، فَأَشْبَهَ رِوَايَةَ الْأَخْبَارِ** ځکه چې دا ديني معامله ده نو روايت دحديث سره مشابه شوه

**تشريح:- دليلنا** ❁ زموږ دليل دادي. چه دا يوه ديني معامله ده. يعنې دې کس دا خبر ورکړو. چه په خلګو باندې د رمضان روژې فرض شوی دی. او په خلګو باندې د رمضان د روژو واجبيدل ښکاره خبره ده. چه دا ديني امردې. اود امر ديني ثابتولو لپاره عدالت خو شرط دې. خو عدد، آزادي، او مذکر کيدل شرط نه دی. لکه څنګه چې د احاديثو روايت کول يو ديني کار دې. نود احاديثو په روايت کولوکي نه عدد شرط دې. نه آزادي شرط ده. اونه مذکر کيدل شرط دی. بلکه د احاديثو روايت د يوکس هم قبول وی. د غلام هم ،اود ښځې هم قبول وی.

**وَلِهَذَا لَا يَخْتَصُّ بِلَفْظِ الشَّهَادَةِ** پدې وجه په لفظ دشهادت سره مختص نه ده.

**عدم شرطية لفظ الشهادة فى الشهادة** ❁ رؤيت هلال چونکه يو ديني امردې. په دې وجه ددې د ثابتولو لپاره لفظ د شهادت شرط نه دې. يعنې دا وئيل شرط نه دی. چه زه ګواهي ورکوم، يا زه شهادت ورکوم، چې ماد رمضان مياشت ليدلې ده. لکه څنګه چې په دنياوی امورو کې د ګواهي ور کاوه لپاره لفظ د شهادت ضروري وی.

**وَتُشْتَرَطُ الْعَدَالَةُ لِأَنَّ قَوْلَ الْفَاسِقِ فِي الدِّيَانَاتِ غَيْرُ مَقْبُولٍ** اوعادل والې شرط دې ځکه چې مقبول نه دې قول دفاسق په ديانات کښې

**تشريح:- شرطية العدالة** ❁ او پاتې شو د عدالت شرط کيدل، نو ددې وجه داده. چه په ديني امورو کې د فاسق سړی قول مقبول نه وی.

**وجه ذکر ايراد المقبول مکان المردود** ❁ که څوک دا سوال اوکړی. چه صاحب د هدايه رحمه الله غير مقبول ولې اوفرمائيل. داسې ئې ولې اونه فرمائيل. چه په ديني امورو کې د فاسق قول مردود دې. يعنې د لفظ غير مقبول په ځائې ئې د مردود لفظ ولې استعمال نکړو. ددې ځواب دادې. چه د فاسق قول مطلقاً مردود نه وی. بلکه موقوف وی. چه که د تحقيق نه روسته دده د قول صادق کيدل ثابت شی. نومقبول به وی. اوکه کاذب کيدل معلوم شی. نو رد به کړې شی. لکه چې د الله تعالی ارشاد دې. [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوا] يعنې ای د ايمان والو، که راشی تاسوته څوک ګناهګار، چه خبرنې راوړلې وی. نو تحقيق کوئ. بهر حال درمضان د مياشت په سلسله کې د فاسق قول قبول نه وی. په دې باندې د امامانو اوعالمانو اتفاق دې.

**وَتَأْوِيلُ قَوْلِ الطَّحَاوِيِّ عَدْلًا كَانَ أَوْ غَيْرَ عَدْلٍ أَنْ يَكُونَ مَسْتُورًا** اودقول د طحاوی تاويل چې عادل وی اوکه غير عادل وی دادې چې دغه مستو الحال وی. **وَالْعِلَّةُ غَيْمٌ أَوْ غُبَارٌ أَوْ نَحْوُهُ** اوعلت وريځ او ګرځ وغيره دې.

**تشريح:- رواية قبول شهادة الفاسق عن الطحاوى رحمه الله** ❁ خود امام طحاوی رحمه الله نه روايت کولې شی. چه د رمضان په مياشت کتلوکې د يوکس قول قبول وی. که عادل وی اوکه غيرعادل وی. ددې نه معلوميږي. چه د امام طحاوی رحمه الله په نيز به د غيرعادل يعنې د فاسق قول قبلولې شی. حالانکه د امام طحاوی رحمه الله په نيزهم د فاسق قول نه قبليږي.

**تاويل قول الطحاوى رحمه الله** ❁ صاحب د هدايه رحمه الله د امام طحاوی رحمه الله ددې قول تاويل بيان کړې دې. فرمانې. چه د امام طحاوی رحمه الله د قول ،عادل، نه مراد دادې. چه دده عادل او پرهيزګاره کيدل په خلګ وکې معروف او مشهور وی. اود غيرعادل نه مراد دادې. چه په خلګ وکې مشهور نه وی. بلکه دده حال مستور او پټ وی. نود غيرعادل نه مستورالحال مراد دی. فاسق مراد نه دې. اوس حاصل داشو. چه د امام طحاوی رحمه الله په نيز په رؤيت هلال کې دهغه کس قول هم قبلولې شی. چه د هغه عدالت په خلګ وکې معروف او مشهور



وی. اود هغه کس قول به هم قبلولې شی. چه د هغه عدالت مستور او پټ وی. خود کوم کس فاسق کيدل چې په خلګ وکې مشهور وی. د هغه قول د حضرت امام طحاوی رحمه الله په نيزهم نشی قبلولې. د علت نه مراد دادې. چه په آسمان باندې وريځ وی، يا دوړه وی، يا لوګې وغيره وی.

**وَفِي إِطْلَاقِ جَوَابِ الْكِتَابِ يَدْخُلُ الْمَحْدُودُ فِي الْقَذْفِ بَعْدَ مَا تَابَ** اوپه مطلق ځواب دکتاب کې محدود فى القذف هم داخل دې کله چې هغه توبه کړې وی **وَهُوَ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ لِأَنَّهُ خَبَرٌ دِينِيٌّ**، اودا ظاهر الرايه دې. ځکه چې دا خو خبرې دی.

**تشريح:- رواية قبول شهادة المحدود فى القذف** ❁ صاحب د هدايه رحمه الله فرمائی. چه د قدوری عبارت «قبل الإمام شهادة الواحد العدل» مطلق کيدل، ددې خبرې نشاندهي کوی. چه د توبه نه روسته د ،محدود فى القذف، قول هم په رؤيت هلال کې قابل قبول اومعتبر دې. اوهم دا ظاهرالرواية دې.

**دلائله** ❁ ځکه چې د مياشت ليدلوګواهی ورکول په حقيقت کې خبردې. شهادت نه دې. اود توبه نه روسته چونکه ،محدود فى القذف، عادل شو. په دې وجه د رؤيت هلال په خبر ورکولوکې به دده قول قبلولې شی. ② او دا هم د ليل دې. چه ابوبکره رضی الله عنه ،محدود فى القذف، وو. د توبه کاوه نه روسته په رؤيت هلال کې صحابو رضی الله عنهم دده قول قبول کړې دې. (الکفايه)

**وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ: أَنَّهَا لَا تُقْبَلُ لِأَنَّهَا شَهَادَةٌ مِنْ وَجْهٍ** اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې چې نه به شی قبلولې. ځکه چې من وجه دا هم شهادت دې.

**رواية عدم قبول شهادة المحدود فى القذف** ❁ د امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دادې. چه په رؤيت هلال کې به د ،محدود فى القذف، قول نشی قبلولې.

**دليله** ❁ او دليل ئې دا بيان کړې دې. چه د رؤيت هلال خبر، من وجه، شهادت دې. په دې طريقه چې په دې قول باندې به عمل کول د قاضی د فيصلې نه روسته واجب وی. ددې اختصاص هم د قضاء مجلس سره دې. اود مخبر (خبر ورکونکی) لپاره عدالت شرط دې. دا ټولې خبرې په شهادت کاوه باندې دلالت کوی. او ،محدود فى القذف، شهادت د توبه نه روسته نه قبليږي. لکه چې په قرآن کې دی. ﴿وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا﴾ يعنې ددوی ګواهی هيڅ کله هم مه منئ. يعنې نه د توبه نه وړاندې. اونه د توبه نه پس.

**وَكَانَ الشَّافِعِيُّ فِي أَحَدِ قَوْلَيْهِ يَشْتَرِطُ الْمَثْنَى** او امام شافعی پخپل يو قول کې دوې [دوه] کيدل شرط کوی **وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا ذَكَرْنَا** اوپده هغه حجت دې کوم چې موږ ذکرکړو.

**تشريح:- الجواب عن دليل الشافعى رحمه الله** ❁ امام شافعی رحمه الله چې په يوقول کې دا فرمائيلی دی. چه رؤيت هلال به د دوې [دوه] سړو په ګواهۍ سره ثابتيږي. نود امام شافعی رحمه الله خلاف خو اولاً هغه دليل حجت دې. کوم چې موږ بيان کړې دې. چه دا ديني امر دې. نو روايت د حديث مشابه شو.

**وَقَدْ صَحَّ (أَنَّ النَّبِيَّ قَبِلَ شَهَادَةَ الْوَاحِدِ فِي رُؤْيَةِ هِلَالِ رَمَضَانَ** [1]) او دنبی کريم ﷺ نه په صحيح طور ثات ده چې دوی قبول کړې دې شهادت د يو تن په ليدو درمضان دمياشتې.

**تشريح:-** او دويمه خبره داده. چه د رسول الله ﷺ نه دا ثابت دی. چه د رمضان د مياشت په رؤيت کې ئې د يو کس ګواهی قبوله کړې ده. لکه چې حديث دې. «قال ابن عباس رضی الله عنهما جاء أعرابی إلى النبی ﷺ فقال إنی رأيت الهلال يعنی هلال رمضان، فقل أتشهد أن لا إله إلا الله. قال نعم قال أتشهد أن محمداً رسول الله. قال نعم قال يا بلال أذن فى الناس فليصوموا

[1] من حديث ابن عباس رضی الله عنهما أخرجه الدارقطنی فى السنن (۲/۱۵۸)_

غداﷺ یعنی ابن عباسؓ فرمائی.چه په دربار رسالت کي يو بانډيچى حاضرشو.اوهغه اووئیل چه ما میاشت لیدلې ده.یعنی د رمضان میاشت،نبی کریمﷺ اوفرمائیل.چه آیا ته د کلمه توحید ګواهی ورکوې؟هغه اووئیل.آو، نبی کریمﷺ اوفرمائیل.چه آیاته د محمد د رسول الله کیدلوګواهی ورکوې.هغه اووئیل.آو، نبی کریمﷺ اوفرمائیل.چه بلاله! په خلګ وکي اعلان اوکړه.چه دوی روژه اونیسی.ددې حدیث نه هم معلومه شوه.چه د رمضان د رؤیت هلال په سلسله کي د یو کس خبرهم قبلیږي.

| ثُمَّ إِذَا قَبِلَ الْإِمَامُ شَهَادَةَ الْوَاحِدِ وَصَامُوا ثَلَاثِينَ يَوْمًا بیا چې هرکله امام دیو تن شهادت قبول کړو او روژې ئې دیرش اونیولې. لَا يُفْطِرُونَ فِيمَا رَوَى الْحَسَنُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ لِلِاحْتِيَاطِ نو دوی به افطار کوی په روایت دحسن کښې دامام ابوحنیفه رحمه الله داحتیاط په وجه سره وَلِأَنَّ الْفِطْرَ لَا يَثْبُتُ بِشَهَادَةِ الْوَاحِدِ اوځکه چې فطر دیوتن په شهادت سره نه ثابتیږي. |
|---|

**تشریح:- حکم الافطار بعد الثلاثین عند ثبوت رمضان بشهادة الواحد**۞اوس سوال دادې.چه امام المسلمین د یوکس شهادت قبول کړو.اود رمضان روژو نیولو اعلان ئې اوکړو. خلګو د شهادت د ورځ نه ۳۰ روژې پوره کړې.د دیرشمې روژې په ماښام باندې میاشت په نظر رانغله.نو اوس به خلګ راروانه ورځ افطار کوی اوکه روژه به نیسی.

**الروایة الاولی ودلیلها**۞نو په دې اره کي ① حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله نه د حسن بن زیاد روایت دادې.چه احتیاط هم په دې کي دې.چه خلګ په یودیرشم ورځ باندې هم افطار اونکړي.بلکه روژه اونیسی.ګویا د افطار نه کاوه مدار په احتیاط دې.او دوهم دلیل دادې.چه که د د یرشو روژو پوره کیدلو نه روسته د افطار حکم ورکړې شي.نودا افطار به د یوکس په حکم سره ثابت شي.یعنی د کوم کس په ګواهۍ سره چې لومړئی روژه نیولې شوې وه.ګویا د هغه په ګواهۍ سره افطار اوشو.حالانکه افطار د یوکس په ګواهۍ سره نه ثابتیږي.بلکه کم ازکم د دوې [دوه] کسانو ګواهی ضروری ده.

| وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُمْ يُفْطِرُونَ (١) او دامام محمد رحمه الله روایت د ې.چه افطار به کوی وَيَثْبُتُ الْفِطْرُ بِنَاءً عَلَى ثُبُوتِ الرَّمَضَانِيَّةِ بِشَهَادَةِ الْوَاحِدِ او فطر ثابتیږي په شهادت د یوتن دثبوت د رمضان دنیت په بناء باندې. وَإِنْ كَانَ لَا يَثْبُتُ بِهَا ابْتِدَاءً اګرچې ابتداء ددې ثبوت دیو شهادت سره نشي کیدلې. |
|---|

**تشریح:- الروایة الثانیة و دلیلها**۞اود امام محمد رحمه الله نه روایت دې.چه د دیرشو روژو پوره کاوه نه روسته خلګ افطار اوکړي.اګرچه د دیرشو روژو پوره کیدلونه روسته ماښام میاشت په نظر نه وی راغلې.او دلیل دادې.چه ډیرکرته یو شی ضمناً ثابتیږي.اګرچه په ابتداء کي ثابت نه وی.لکه څنګه چې د وزه دحمل بیع په ابتداء کي جائز نه ده.بلکه د وزه په ضمن کي د حمل بیع هم ثابت او جائز وی.نوهم دغه یوم فطر اګرچه په ابتداء کي د یوکس په ګواهۍ سره نه ثابتیږي.خود رمضان د ثبوت په ضمن کي د یوکس په ګواهۍ هم ثابتیږي.په دې طریقه چې هرکله د یوکس په ګواهۍ سره د رمضان ثبوت اوشو.او خلګو پوره دیرش روژې اونیولې.نو راروانه ورځ به پخپله د فطر ورځ وی.ځکه چې په شریعت کي یوه میاشت هم د دیرشو ورځو نه زیاته نه وی.

| كَاسْتِحْقَاقِ الْإِرْثِ بِنَاءً عَلَى النَّسَبِ الثَّابِتِ بِشَهَادَةِ الْقَابِلَةِ لکه د دائی په شهادت سره دثابت شده نسب په بناء د |
|---|

---

(١) القول الراجح هو هذا قول محمد رحمه الله ثم قال بعنوان ،،التوفيق بين الروايتين ،، قال العلامة ابن الهمام رحمه الله والتحقيق أن المفتى فى الوقائع لا بدله من ضرب أجتهاد ومعرفة بأحوال الناس وقد عرف أن الكفارة تفتقر إلى كمال الجناية فينظر فى صاحب الواقعة إن كان ممن يعاف طبعه ذلك أخذ بقول أبى يوسف رحمه الله وإن كان ممن لا أثر لذلك عنده أخذ بقول زفر) كذا [ف]ى فتح القدير(٢\٢٥١) وردالمختار(٢\١٠٣) والبحرالرائق (٢\٢٦) والهندية (١\١٩٨) نقلاً عن القول الراجح (١\١٩٦)



| وراثت استحقاق. |
|---|

**حل اللغة**° ① **القابلة**: دائی

**تشریح:- نظیره**۞ اودا داسې د ه.لکه چې دایښه یعنی یوه ښځه ګواهی ورکړي.چه دا بچې د فلانکی دې.نوددې یوې ښځې په ګواهۍ سره به ددې بچې د فلانکی نه ثابت شي.اود ثبوت نسب په ضمن کي به د وراثت استحقاق هم ثابت شي.یعنی په دې دواړو یعنی پلار اوځوی کي به وراثت جاری شي.پلار به ددې ځوی وارث وی.او زوې به ددې خپل پلار وارث شي.حالانکه که په ابتداء کي څوك په خپل وارث کیدلو باندې یو ګواه پیش کړي.نو نه به قبلیږي.ترکومه پورې چې دوې [دوه] ګواهان نه وی.

### د مطلع د صفا والي په صورت کي د رؤیت ثبوت

| قَالَ (وَإِذَا لَمْ تَكُنْ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ لَمْ تُقْبَلِ الشَّهَادَةُ) وکه نه وو په آسمان کي علت نوګواهی نشی قبولولې (حَتَّى يَرَاهُ جَمْعٌ كَثِيرٌ يَقَعُ الْعِلْمُ بِخَبَرِهِمْ) تر څو پورې چې اووینی کثیر ټولګې دکومو په بیان سره چې یقین راشی لِأَنَّ التَّفَرُّدَ بِالرُّؤْيَةِ فِي مِثْلِ هَذِهِ الْحَالَةِ يُوهِمُ الْغَلَطَ ځك چې پداسې حالت کي تفرد دلیدو دغلطۍ وهم کوی. فَيَجِبُ التَّوَقُّفُ فِيهِ حَتَّى يَكُونَ جَمْعًا كَثِيرًا نو واجب دې توقف پدې کي تر دې چې لیدونکی ډیروی |
|---|

**حل اللغة**° ①**علت**: یعنی چې په اوریځوخه شی وی

**تشریح:- وجود الجمع الغفیر عند عدم الغیم**۞مسئله داده.چه که په آسمان باندې وریځ،دوړه وغیره نه وی. بلکه مطلع بالکل صفا وی.نوپه رؤیت هلال کي به د دومره لوې جماعت ګواهی قبلولې شی.چه ددوی په خبرسره د میاشت لیدلو یقین حاصل شي.ځکه چې مطلع صفا وی.نو په دې صورت کي صرف د یوکس میاشت لیدل،اود پاته خلګو نه لیدل د غلطۍ وهم پیدا کوی.یعنی دا وهم پیدا کیږي.چه که میاشت موجود وه.نو نورو ته به هم په نظر راغلې وه.نوداسې معلومیږي.چه د یوکس دوې [دوه] د میاشت په لیدلوکي غلطی واقع شوې ده.

| بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ په خلاف دهغې چې کله په آسمان کي علت وی لِأَنَّهُ قَدْ يَنْشَقُّ الْغَيْمُ عَنْ مَوْضِعِ الْقَمَرِ فَيَتَّفِقُ لِلْبَعْضِ النَّظَرُ ځکه چې وریځ کله دمیاشتې دځائې نه په اړخ کیږي نو بعضې خلګ ئې لیدلې شی. |
|---|

**حل اللغة**° ① **غیم**: اوریځې ② **ینشق**: د اوریځو اخواکیدل

**تشریح:-** خوکه په آسمان باندې وریځ وی.نود یوکس دوې [دوه] ګواهی به هم قبلولې شی.ځکه چې د وریځ په صورت کي کله داسې کیږي.چه د میاشت په ځائې کي وریځ جلا شي.اوکوم یو کس ته په نظر راشی.او وریځ بیا یوځائې شی.

| ثُمَّ قِيلَ فِي حَدِّ الْكَثِيرِ أَهْلُ الْمَحَلَّةِ بیا دکثیر په حدکي وئیلې شوی دی چې هل محله دی، وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ خَمْسُونَ رَجُلًا اعْتِبَارًا بِالْقَسَامَةِ او دابویوسف رحمه الله نه روایت دې.چه پنځوست سړی دی په قیاس دقسامت |
|---|

**حل اللغة**° ① **القسامة**: یعنی چې مقتول په یوعلاقه کي ملاؤشی او د هغه قاتل معلوم نه وی نود پنځوسو کسانونه چې کوم قسم اخستې شی هغې ته قسامت وائی

**تشریح:- الاقوال فی الجمع الغفیر**۞ پاتې شوه داخبره چې دکثیر مقدار څه دې.نو① د بعض حضرات فرمائی.چه د کثیر نه مراد د محله واړه خلګ دی.یعنی پوره محله خلګ ومیاشت او کتله، نو رؤیت به ثابت وی.
② اود امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی.چه دکثیر نه مراد پنځوس نفر دی.امام ابویوسف رحمه الله دا په قسامت باندې قیاس کړې ده.یعنی که په محله کي څوك مقتول بیا موندې شو.او قاتل معلوم نه دې.نود محله د پنځوسو کسانو څخه به په لاعلمۍ(ناخبرۍ)باندې قسم اخستلې شی.نولکه څنګه چې دلته کي د پنځوسو

کسانو د قسم نه د قاتل په اړه کي د لاعلمۍ یقین کیږي.دغه ډول د میاشت په اړه کي هم د پنځوسو کسانو په لیدلوسره رؤیت ثابتیږي.

**وَلَافَرْقَ بَيْنَ أَهْلِ الْمِصْرِوَمَنْ وَرَدَمِنْ خَارِجِ الْمِصْرِ** او دښار او بهر نه په راتلونکو کښې هیڅ توپیر نشته دي. **وَذَكَرَ الطَّحَاوِيُّ أَنَّهُ تُقْبَلُ شَهَادَةُ الْوَاحِدِ** او امام طحاوی رحمه الله ذکر کړې دي.چه دیو تن ګواهي به قبوله وي **إِذَاجَاءَمِنْ خَارِجِ الْمِصْرِلِقِلَّةِ الْمَوَانِعِ** کله چې دښار ته دبهر نه راشي.د موانعو دقلت په وجه، **وَإِلَيْهِ الْإِشَارَةُفِي كِتَابِ الْإِسْتِحْسَانِ** كتاب الاستحسان، کي دي اړخ ته اشاره ده. **وَكَذَاإِذَاكَانَ عَلَى مَكَانٍ مُرْتَفِعٍ فِي الْمِصْرِ** دغه ډول که په ښار کي په اوچت ځائي وو.

**تشریح:- القولان فی مقام الروایتین**۞ صاحب د هدایه رحمه الله فرمائي.چه که مطلع صفا وي.نود یوکس دوي [دوه] ګواهي به نه قبلیږي.چه ترکومه پوري کثیرجماعت نه وي.اوس دا ګواهي ورکونکی حضرات به① هغه وي.چه په ښار او آبادۍ کي ئې میاشت لیدلې ده.② یا به هغه وي.چه د ښار نه بهر ئې کتلي وي.او راغلی وي.په دواړوصورتونوکي د کثیر جماعت کتل شرط دی.امام طحاوی رحمه الله فرمائي.چه میاشت کتونکي که د آبادۍ نه بهر لیدلی وي.او راغلې وي.نود یوکس شهادت به هم قبلولې شی.ځکه چې دښار نه بهر د لیدلو مواقع کم دی.یعنی په ښار کي دننه خو لوګي، اوګرځ وغبار وي.خوبهر هیڅ نه وي.په دې وجه به دده قول قبلولې شی.په کتاب الاستحسان کي هم دې قول اړخ ته اشاره ملاویږي.اود امام طحاوی رحمه الله په نیز دغه ډول که یوکس په ښار کي دننه په اوچت ځائې ودریدلو.او میاشت ئې اولیدله.نود یوکس ګواهي به قبلولې شی.

## د اختر په میاشت کې د یوعادل د شهادت حیثیت

قَالَ **(وَمَنْ رَأَى هِلَالَ الْفِطْرِوَحْدَهُ لَمْ يُفْطِرْ) احْتِيَاطًا** او چا چې د وړوکی اخترمیاشت یواځې اولیده نو افطار به نه کوی د احتیاط په طور. **وَفِي الصَّوْمِ الْاِحْتِيَاطُ فِي الْإِيجَابِ** اوپه ورژه کي احتیاط په واجب کولوکي دي.

**تشریح:- عدم الفطر برؤية الواحد هلال شوال**۞ مسئله داده.که یوکس یواځې د اختر میاشت اولیدله.که مطلع صفا وي اوکه صفا نه وي.نودا کس به احتیاطاً افطار نه کوی.اوکه افطار ئې اوکړو.نوپه ده به قضاء واجب وي.اوپه روژه ماتولوسره به قضاء واجب نه وي.اود رمضان د میاشتې په صورت کي احتیاط په روژه واجب کیدلوکي دې.په دې وجه د رمضان میاشت د ځانله د یوکس د کتلو په ګواهۍ باندې روژه واجب کړې شوې ده.

## د وریځ په ورځ د ګواهانو د شمار تفصیل

قَالَ **وَإِذَاكَانَ بِالسَّمَاءِعِلَّةٌ لَمْ يُقْبَلْ فِي هِلَالِ الْفِطْرِإِلَّاشَهَادَةُرَجُلَيْنِ أَوْرَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ** اوکله چې په آسمان کي څه علت وو نه به قبلوی په میاشت داخترکي مګر شهادت د دوؤ کسانو یا دیوسړی او ددوؤ ښځو

**تشریح:- شروط ثبوت الرؤية فی الفطر**۞مسئله داده.چه ٢٩ رمضان که په آسمان وریځ یا ګرځ وغبار وغیره وي.نود وړوکی اخترد سپوږمۍ په ثبوت کي ①د دوې [دوه] سړو یا د یوسړی اود دوې [دوه] ښځو ګواهي ضروري ده.د یوکس ګواهي به کافي نه وي.② اود ګواهانو آزادکیدل،او، محدودفی القذف،نه کیدل هم ضروري دی. ،محدود فی القذف،که توبه کړې وي.نوبیا هم د وړوکی اختر په میاشت کتلوکي به دده شهادت معتبر نه وي.③ دغه ډول ددې ګواهۍ په لفظ د شهادت سره کیدل ضروري دی.

**لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ نَفْعُ الْعَبْدِوَهُوَالْفِطْرُ** ځکه چې ددې سره نفع دبنده تړلې ده او هغه فطردې. **فَأَشْبَهَ سَائِرَحُقُوقِهِ** نو مشابه شو د ټولو حقوقو سره

**تشریح:- دلیله**۞دلیل دادې.چه د وړوکی اختر سپوږمۍ سره د بندګانو نفع متعلق ده.اوهغه د فطر نفع ده.یعنی



په رمضان کي چې د خوراك څکاك ګومې پابندیانې وې.د اخترمیاشت سره هغه ټولې ختمې شوې.او ښکاره ده.چه په دې کي د بندګانو نفع ده.اوهرکله چې په دې کي د بندګانو نفع ده.نودا خالص دینی امر پاتې نشو.بلکه دا دحق العباد مشابه شو.اود حقوق العباد ثابتولو لپاره شهادت کامله ضروري وي.یعنی دوې [دوه] سړی یا یوسړې اودوې [دوه] ښځې به ګواهي ورکوی.په دې شرط چې دوی آزاد وي.مسلمان وي.عادل وي.، محدود فی القذف، نه وي.او په لفظ د شهادت سره ئې ګواهي ورکړې وي.نوهرکله چې د وړوکی اختر د میاشت معامله هم د حق العباد مشابه ده.نوددې د ثابتولو لپاره هم شهادت کامله ضروري دې.د یوسړی ګواهي به کافي نه وي.

**وَالْأَضْحَى كَالْفِطْرِفِي هٰذَافِي ظَاهِرِالرِّوَايَةِ وَهُوَالْأَصَحُّ** او لوئې اخترپشان د وړوکی (اختر) دې.پدې کي په ظاهر روایت کي اودا صحیح ده

**تشریح:- الروایتان فی حکم رؤية هلال عيدالاضحی**۞ ①صاحب د هدایه رحمه الله فرمائي.چه د غټ اختر د میاشت حکم هم د وړوکی اختر د میاشت په شان دې.یعنی د غټ اختر د میاشت ثبوت هم د یوسړی په ګواهۍ سره نه کیږي.بلکه د دوې [دوه] سړو یا د یوسړی اود دوې [دوه] ښځو کیدل ضروري دی.په شرط ددې چې ذکر شوی واړه شرطونه موجود وي.دا حکم د ظاهرالروایة مطابق دې.اودا صحیح قول دې.② البته په ،نوادر، کي د امام ابوحنیفه رحمه الله نه ددې خلاف روایت دې.د ،نوادر،د روایت مطابق د غټ اختر میاشت،د رمضان د میاشت په شان ده.یعنی د رمضان د میاشت په شان د یوسړی ګواهۍ سره ثابتیږي.په دې شرط چې آسمان ګردجن وي.یعنی مطلع صفا نه وي.

**خِلَافًالِمَارُوِيَ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَرَحِمَهُ اللّٰهُ: أَنَّهُ كَهِلَالِ رَمَضَانَ** په خلاف دهغې چې روایت شوې دې دامام رحمه الله نه.چه لوئې د اختر میاشت د رمضان پشان ده

**تشریح:- دلیل روایة النوادر**۞د ،نوادر،د روایت دلیل دادې.چه د غټ اخترمیاشت سره یو دینی امرمتعلق دې.یعنی د حج وخت ښکاره کیدل،اود دینی امورو د ثابتولو لپاره د یوعادل سړی ګواهي کافي ده.نود رمضان په شان د غټ اختر د میاشت په ثبوت کي به هم د یوعادل سړی ګواهي کافي وي.

**لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ نَفْعُ الْعِبَادِوَهُوَالتَّوَسُّعُ بِلُحُومِ الْأَضَاحِيِّ** ځکه چې ددې سره هم دبندګانو نفع تړلې ده.اوهغه فراخي ده په غوښو د اضحیه.

**تشریح:- دلیل ظاهرالروایة**۞اود ظاهرالروایة دلیل دادې.چه د غټ اخترمیاشت سره د بندګانو نفع متعلق ده.یعنی د غټ اختر په ورځوکي بندګان د خپل رب ملمانه وي.اود قربانۍ د غوښو ډیره هله ګوله وي. اوښکاره ده.چه په غوښه کي د فراخۍ مطلب د بندګانو نفع ده.نودا هم د حقوق العباد مشابه شو.اود حقوق العباد ثابتولو لپاره د یوسړی ګواهي ناکافي وي.په دې وجه د غټ اختر میاشت ثابتولو لپاره به هم د یوسړی ګواهي کافي نه وي. بلکه د وړوکی اختر دمیاشت په شان د غټ اختر د میاشت لپاره هم شهادت کامله ضروري دې.

## د اختر د ثبوت لپاره د جم غفیرشرطیت

**وَإِنْ لَمْ تَكُنْ بِالسَّمَاءِعِلَّةٌ لَمْ يُقْبَلْ** وکه په آسمان کښې څه نه وو نونه به شي قبلولې. **إِلَّاشَهَادَةُجَمَاعَةٍيَقَعُ الْعِلْمُ بِخَبَرِهِمْ** مګر ددې سې ټولګی شهادت د کومو خبرو چې یقیني شی لکه چې موږ ذکر کړې دي. **كَمَاذَكَرْنَا**

**تشریح:-** عبارت واضح دې.او وړاندې ددې تفصیل هم تیرشوې دې.هلته ئې اوګورئ.

د روژې د وخت ابتداء او انتهاء

قَالَ وَوَقْتُ الصَّوْمِ مِنْ حِيْنِ طُلُوْعِ الْفَجْرِ الثَّانِيْ إِلَى غُرُوْبِ الشَّمْسِ او دروژې وخت د سهار ثانی دختونه تر پریوتلو دنمر پورې دې.

**تشريح:- اول وقت الصوم و اخره**۞ په دې عبارت کې د روژې اول او اخر بيان شوې دې. فرمائی. چه دروژې وخت د صباصادق راختلو د وخت نه تر د لمر پريوتلو پورې وی.

لِقَوْلِهٖ تَعَالَى {وَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ} اللَّيْلِ ځکه چې دحق تعالی ارشاد دې خورئی اوسکئ ترهغه وخت پورې چې ښکاره په نظر راشی تاسو ته سپين مزئی. جدا مزئی دسپين نه {ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ} تردې چې فرمائی بيا پوره کړئی روژه تر شپې پورې وَالْخَيْطَانِ بَيَاضُ النَّهَارِ وَسَوَادُ إِلَى أَنْ قَالَ مزی دورځې سپينوالئ اودشپې توروالئ دې.

**تشريح:- دليله**۞ دليل د الله تعالی قول دې ((وَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ او ودې نه روسته فرمائی. ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ)) په آيت کې د خيط ابيض نه مراد د صبارڼا ده. اود خيط اسود نه مراد د شپې چاغه ده. نوپه دې آيت کې د شپې چاغه په تورخط، او د صبارڼا په سپين خط په مثال سره د روژې پيل کيدلو، اود خوراك څکاك د حرام کيدلوصحيح وخت متعين کړې شوې دې.

### د روژې تعريف

وَالصَّوْمُ هُوَ الْإِمْسَاكُ عَنِ الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ وَالْجِمَاعِ نَهَارًا مَعَ النِّيَّةِ او روژه چې ده منع کيدل دی دخوراك څکاك اوجماع کاوه نه د ورځې نه. سره د نيت نه په پيل کې لِأَنَّهُ فِيْ حَقِيْقَةِ اللُّغَةِ: هُوَ الْإِمْسَاكُ عَنِ الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ وَالْجِمَاعِ لِوُرُوْدِ الْاِسْتِعْمَالِ فِيْهِ ځکه چې صوم په حقيقت لغوی کې مطلق منع کيدل دی. په دې معنا کښ داستعمال راتګ و په وجه إِلَّا أَنَّهُ زِيْدَ عَلَيْهِ النِّيَّةُ فِي الشَّرْعِ لِتَتَمَيَّزَ بِهَا الْعِبَادَةُ مِنَ الْعَادَةِ ليکن په شريعت کې دنيت د اضافې پورې شوې ده چې دې په دې ذريعه عبادت دعادت نه ممتاز شی.

**تشريح:- تعريف الصوم لغة**۞ دلته کې د روژې تعريف شوې دې. فرمائی. چه په شريعت کې روژه په نيت سره دخوراك څکاك اود جماع نه د بنديدلو نوم دې. ځکه چې په لغت کې د صوم لفظ مطلقاً د امساك په معنی کې ده. په دې وجه چې د اسلام نه مخکې هم دا لفظ د امساك معنی کې استعماليدلو. خوپه شريعت کې په دې باندې د نيت اضافه اوکړې شوه. چه د نيت په وجه سره د عبادت په طور امساك اود عادت په طور امساك په مينځ کې توپير اوشی.

وَاخْتَصَّ بِالنَّهَارِ لِمَا تَلَوْنَا اوپه ورځ پورې مختص کيدل ددې په وجه چې موږ تلاوت کړو. ،وَلِأَنَّهُ لَمَّا تَعَذَّرَ الْوِصَالُ كَانَ تَعْيِيْنُ النَّهَارِ أَوْلَى او په دې وجه چې هرکله وصال متعذر شو نو د ورځې تعين اولی دې لِيَكُوْنَ عَلَى خِلَافِ الْعَادَةِ، وَعَلَيْهِ مَبْنَى الْعِبَادَةِ چې شی خلاف د عادت نه. په دې دعبادت بناء ده

**تشريح:- الصوم شرعاً و دلائله**۞ اوشرعی صوم ورځ سره خاص ده① د الله تعالی د قول ((لَكُمْ ۞ وَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ)) او ((الْفَجْرِ ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ)) په وجه سره، ځکه چې په دې آيت کې صوم د سهار راختلونه د شپې پورې بيان شوې دې.② او عقلی دليل دادې. چه صوم وصال يعنی د شپې ورځې روژه ساتل، خو متعذر دی. ځکه چې پيوسته يوه مياشت شپه او ورځ خورك څکاك نه کاوه سره د مرګ قوی امکان دې. نوپه شپه ورځ کې به يود روژې لپاره متعين کول ضروری وی. نود عقل تقاضا داده. چه ورځ متعين کول اولی دی. چه د ورځې خوراك څکاك نه بنديدل د عادت خلاف واقع وی. اود عبادت بنا (بنياد) هم په دې باندې دې. چه دا د عادت اوخواهشاتو خلاف وی.



وَالطَّهَارَةُ عَنِ الْحَيْضِ وَالنِّفَاسِ شَرْطٌ اود حيض اونفاس نه پاکيدل شرط دی لِتَحَقُّقِ الْأَدَاءِ فِيْ حَقِّ النِّسَاءِ دتحقق د ادا کوولو لپاره په حق دښځو کې.

**تشريح:- عدم الحيض والنفاس فی حق النساء**۞ اود ښځو په حق کې د صوم اداکول متحقق کيدلو لپاره ددوی دحيض او نفاس نه پاکيدل شرط دی. نود حيض او نفاس په حالت کې د صوم اداکول خوصحيح نه وی. خود نفس وجوب په وجه سره د پاکيدلو نه روسته به قضاء واجب وی. والله أعلم بالصواب.

## باب ما يوجب القضاء والكفارة

(دا) باب د هغه څيزونو د وجوب (په بيان) کې دې. چه قضاء او کفاره واجبوی.

**تشريح:- الربط بما قبله**۞ د روژې د انواع او اقسام نه د فارغ کيدلو نه روسته اوس دهغه صورتونو بيان کيږی. چه په هغه کې روژه فاسديږی. اود فساد په کوم صورت کې قضاء او کفاره دواړه واجبيږی. او په کوم صورت کې صرف قضاء واجبيږی.

قَالَ (وَإِذَا أَكَلَ الصَّائِمُ أَوْ شَرِبَ أَوْ جَامَعَ نَهَارًا نَاسِيًا لَمْ يُفْطِرْ) که څه اوخوری روژه يا دا چې څه اوڅښی اويا جماع اوکړی په هيره سره نو روژه نه ماتيږی

**تشريح:- فساد الصوم بالمفطرات**۞ مسئله:① که روژه دار په هيره خوراك اوکړی. ياڅکاك اوکړی. يا جماع اوکړی. نو د ده روژه به نه ماتيږی.

وَالْقِيَاسُ أَنْ يُفْطِرَ، وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ رحمه الله اوقياس دې چې ماته شی. اودا دامام مالك رحمه الله قول دې. لِوُجُوْدِ مَا يُضَادُّ الصَّوْمَ فَصَارَ كَالْكَلَامِ نَاسِيًا فِي الصَّلَاةِ ددې سې شی دموندو په وجه په ضد د روژې دې نوداسې شی لکه په لمانځه کې چې خبرې اوکړی په هيره سره.

**تشريح:-** اودقياس تقاضا داده. چه روژه ماته شی. هم دا د امام مالك رحمه الله قول دې. د قياس وجه داده. چه خوراك څکاك اوجماع کول د روژې ضد دې. اود شئ ضد شئ معدوم کوی. ځکه چې په يو وخت کې د ضدينو موجود کيدل محال دی. نوهرکله چې د روژې ضد يعنی خوراك څکاك وغيره موجود شو. نوروژه معدوم شوه. اودا داسې شوه. لکه په لمونځ کې په هيره خبرې کول، نولکه څنګه چې په لمانځه کې هيره خبرې کول، لمونځ ماته وی. دغه ډول په هيره خوراك څکاك کول هم روژه ماته وی.

او په يوحديث کې دی. «أن من أفطر فی شهر رمضان ناسياً فلا قضاء عليه ولا كفارة» يعنی کوم کس چې په هيره په روژه کې افطار اوکړو. نو نه په ده قضاء شته، اونه کفاره. بهرحال دا واړه حديثونه په دې خبره دلالت کوی. چه په هيره خوراك څکاك سره روژه نه ماتيږی.

وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ {قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ} او وجه داستحسان دا قول د نبی ﷺ دې لِلَّذِيْ أَكَلَ وَشَرِبَ نَاسِيًا هغه چا ته چې خوراك او څکاك ئې اوکړل په هيره تِمَّ عَلَى صَوْمِكَ فَإِنَّمَا أَطْعَمَكَ اللهُ وَسَقَاكَ[1] پوره کړه روژه خپله تاته الله ﷻ خوراك او څکاك درکړو

**تشريح:- وجه الاستحسان**۞ وجه د استحسان داحديث دې. چه يوکس د روژې په حالت کې څه اوخوړل، يا ئې اوڅکل، نوده ته نبی کريم ﷺ اوفرمائيل. چه ته خپله روژه پوره کړه. ځکه چې الله تعالی په تاخوراك څکاك کړې دې.

---

[1] من حديث أبی هريرة رضي الله عنه أخرجه البخاری فی الصومب باب ۲۶ ومسلم فی الصوم رقم ۱۷ وأبوداود فی الصيام باب ۴۰ رقم ۲۳۹۸ والترمذی فی الصوم باب ۲۶ رقم ۷۲۱ وابن ماجه فی الصيام باب ۱۵ رقم ۱۶۷۳ والدارمی فی الصوم باب ۲۳ وأحمد فی المسند (۲/۳۹۵)_

**الاعتراض:** پاتې شو دا اعتراض چې داحديث د كتاب الله متعارض دې.ځكه چې په كتاب الله كي دي.﴿ ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ ﴾اود صيام او صوم معنى ،امساك، ده.يعني بنديدل،او په هيره د خوراك څكاك په صورت كي امساك موجود نشو.نوپه هيره د خوراك څكاك په صورت كي آيت دلالت كوي.په بطلان د صوم باندې.او حديث دلالت كوي.په بقاء د صوم باندې.

**الجواب:** ددې ځواب دادې.چه په كتاب الله كي د نسيان په معاف كيدلو دلالت دې.لكه چې ارشاد دې.[ رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا إِنْ نَسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا ] نوهركله چې نسيان معاف دې.نوپه حديث او كتاب الله كي هيڅ تعارض پاتې پاتې نشو.

**الدلائل التائيدى للاحناف:** ① پاتې شو زموږ د مذهب تائيد ،نو په دې حديث سره هم كيږي. كوم چې شيخين رحمهما الله روايت كړې دې.حديث دادې. ﴿عن أبي هريرة رضي الله عنه عن النبي ﷺ قال من نسي وهو صائم فأكل او شرب فليتم صومه فإنما أطعمه الله وسقاه﴾ يعني رسول اكرم ﷺ فرمائيلي دى.كوم كس چې هيركړو.حالانكه دې روژه داردې.بيا ده اوخوړل،يا اوڅكل،نو خپله روژه دې پوره كړي.ځكه چې الله تعالى په ده خوراك كړې دې. او څكاك كړې دې

اوپه دې رقطني كي دى. ﴿أن رجلاً سأل رسول الله ﷺ فقال إني كنت صائماً فأكلت وشربت ناسياً، فقال ﷺ أتم صومك فإن الله أطعمك وسقاك﴾ يعني يوكس د رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوكړو.او وې وئيل.چه زما روژه وه.ماپه هيره خوراك څكاك اوكړو.نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل.چه ته خپله روژه پوره كړه.ځكه چې الله تعالى په تا خوراك څكاك كړې دې.

| وَإِذَا ثَبَتَ هَذَا فِي الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ ثَبَتَ فِي الْوِقَاعِ لِلِاسْتِوَاءِ فِي الرُّكْنِيَّةِ اوهركله چې ثابته شو دا دخوراك او څښاك (څښاك) په اړه كي نو ثابته شوه د جماع په حق كي د املة د برابر والى نه په ركنيت كي |
|---|

**تشريح:- السوال التقديرى:** ﴿وإذا ثبت هذا في حق الأكل........إلخ﴾ سره د سوال ځواب دې.سوال دادې.چه په هيره خوراك څكاك سره د روژې نه ماتيدل،خلاف قياس په نص(حديث) سره ثابت دى.اوكوم څيز چې خلاف قياس ثابت وى.هغه غير اړخ ته نه متعدى كيږي.نود روژې دنه ماتيدلوحكم په هيرره جماع كاوه اړخ ته متعدى كيدل نه دى پكار،يعني په هيره جماع كولوسره روژه ماتيدل پكاردى.حالانكه تاسو په هيره جماع كول،په هيره خوراك څكاك باندې قياس كړىدى.اوپه دې دې هم دروژې ماتيدلو حكم لګولې دې.

**الجواب:** ددې ځواب دادې.چه په هيره جماع كولوسره د روژې نه ماتيدل، دقياس نه ثابت نه دى. بلكه دلالت النص سره ثابت دى.په دې طريقه چې د خوراك څكاك اود جماع كولونه بنديدل،د روژې په ركن كيدلوكي واړه برابر دى.نوجماع،د خوراك څكاك په شان شو.اوچونكه د نص(حديث) په وجه سره نسياناً د خوراك څكاك په حق كي د صوم دعدم فساد حكم ثابت دې.نو نسياناً د جماع په حق كي به هم دلالةً د صوم د عدم فساد حكم ثابت وى.

| بِخِلَافِ الصَّلَاةِ لِأَنَّ هَيْئَةَ الصَّلَاةِ مُذَكِّرَةٌ فَلَا يَغْلِبُ النِّسْيَانُ په خلاف د لمانځه ځكه چې حالت د لمانځه يادونكي دې نو هير به غالب نه وى وَلَا مُذَكِّرَ فِي الصَّوْمِ فَيَغْلِبُ، وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْفَرْضِ وَالنَّفْلِ لِأَنَّ النَّصَّ لَمْ يُفَصِّلْ اوپه روژه كي يادونكي نشته نوهير به غالب وو اوپه فرض اونفل روژه كي څه توپير نشته دې ځكه چې نص تفصيل نه دې كړيدي. |
|---|

**تشريح:- الجواب عن قياس مالك رحمه الله:** ﴿بخلاف الصلاة.....إلخ﴾ سره د امام مالك رحمه الله د قياس على الصلاة ځواب دې.د ځواب حاصل دادې.چه روژه په لمونځ باندې قياس كول مع الفارق دى.په دې طريقه چې د لمونځ حالت ،حالتِ مذكره، دې.يعني د لمونځ په حالت كي هر وخت دا ياد وى.چه زه په لمانځه كي يم.ځكه دلمونځ حالت،بغير د لمونځ دحالت نه بالكل مختلف وى.نود لمونځ په حالت كي د نسيان اوهيرې غلبه



نه وى.ددې په خلاف روژه ده.چه د روژه دار او غير روژه دار دواړو حالت برآبر وى.ځكه چې د روژې تعلق د باطن سره وى.د ظاهرسره نه وى.نو چونكه د روژه دار ظاهرى حالت د عامو انسانانو په شان وى.په دې وجه په دې د نسيان غالب راتګ ، امكن او اكثر دى.اوس تاسو اوګورئ.چه د دومره زيات توپير په موجودګئ كي به روژه په لمانځه باندې قياس كول،څنګه ټيك وى؟ صاحب د هدايه رحمه الله فرمائي.چه روژه نفلي وى.اوكه فرضي وى.په دواړه صورتونوكي په هيره خوراك څكاك كول،اوجماع كول روژه نه فاسدوى.ځكه چې په حديث كي د صوم نفل اود صوم فرض هيڅ تفصيل نه دې بيان شوې.

### په خطاء يا په زور د روژې ماتيدل

| وَلَوْ كَانَ مُخْطِئًا أَوْ مُكْرَهًا فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ اوكه روژه دار مخطى وويا مجبور كړې شو نوپده باندې قضاء ده خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ په خلاف د امام شافعي رحمه الله فَإِنَّهُ يَعْتَبِرُهُ بِالنَّاسِي ځكه چې هغه ده له هيرونكى قياس كوى |
|---|

**تشريح:- الفرق بين الناسى والخاطى:** د نسيان او خطاء په مينځ كي توپير دادې.چه د نسيان په صورت كي ناسي(هيرونكې)د فعل اراده خوكوى.خو روژه ياده نه وى.يعني ناسى د خوراك څكاك اراده خوكوى.خوده ته خپله روژه ياده نه وى.او خاطى ته روژه خو ياده وى.خودې د فعل اراده نه كوى.مثلاً روژه دار كلى اوكړه.او بلا اراده په حلق كي اوبه لاړلې.

**المذهبان فى فساد الصوم بالخطاء والاكراه:** ① بهرحال زموږ په نيز كه يو روژه دارخطاءً خوراك څكاك اوكړو.يا ده په زوره خوراك څكاك اوكړو.نوپه ده به ددې روژې قضاء واجب وى. ② او امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه قضاء به واجب نه وى.هم دا قول دامام احمد رحمه الله دې.

**دليل الشافعى رحمه الله:** امام شافعي رحمه الله مخطى او مكره په ناسي باندې قياس كړې دې.يعني لكه څنګه چې په هيره خوراك څكاك سره روژه نه ماتيږي.اوددې قضاء نه واجبيږي.دغه ډول خطاء او اكراهاً خورك څكاك سره هم روژه نه ماتيږي.اوددې قضاء به واجب نه وى.

| وَلَنَا أَنَّهُ لَا يَغْلِبُ وُجُودُهُ او زموږ دليل دادې چې دخطاء او كراه كيدل غالب نه دى وَعُذْرُ النِّسْيَانِ غَالِبٌ او د هيرو عذر غالب دې |
|---|

**تشريح:- دليل الاحناف رحمهم الله:** زموږ دليل دادې.چه دا قياس مع الفارق دې.ځكه چې د خطاء او اكراه وجود په كثرت سره نه وى.بلكه ډير كم وى.اود نسيان عذر په كثرت سره موجوديږي.

| وَلِأَنَّ النِّسْيَانَ مِنْ قِبَلِ مَنْ لَهُ الْحَقُّ او ځكه چې هير دهغه چا د اړخ نه پيدا شو چا لره چې حق دې وَالْإِكْرَاهَ مِنْ قِبَلِ غَيْرِهِ فَيَفْتَرِقَانِ او اكراه دغير داړخه ده نو په دواړو كي توپير دې |
|---|

**تشريح:- وجه عدم صحة القياس:** او نسيان خود صاحب حق الله جل جلاله د اړخه دې.او اكراه د بل د اړخه وى.نود مقيس او مقيس عليه په مينځ كي د زمكې او آسمان توپير شو.اود توپير په موجودګئ كي قياس كول ټيك نه وى.په دې وجه د امام شافعي رحمه الله دا قياس به هم قابل قبول نه وى.

| كَالْمُقَيَّدِ وَالْمَرِيضِ فِي قَضَاءِ الصَّلَاةِ لكه دمقيد اومريض په اړه كښې چې د قضاء لمونځ توپير دې. |
|---|

**تشريح:- نظيره:** اودا داسې ده.لكه چې يوكس په درنده ګانو كي مينځ كي راګير دې.اوده ته په ولاړه د لمونځ كولوقدرت نشته دې.نوكه ده په ناسته لمونځ اوكړو.نوپه ده باندې به د آزاديدلو نه روسته قضاء واجب وى.اوكه مريض د مرض په وجه سره په ناسته لمونځ اوكړو.نوپه ده به قضاء واجب نه وى.ځكه چې مرض خود صاحب حق يعني د الله تعالى د اړخه دې.او قيد وبند د الله نه سواء د نورو داړخه دې.

**الاعتراض والجواب:** خوكه دا سوال اوشي.چه په حديث ﴿رفع عن الأمتي الخطاء والنسيان﴾ كي د خطاء اونسيان دواړو حكم مرفوع دې.نوپه دواړه صورتونوكي روژه ماتيدل نه دى پكار.ددې ځواب دادې.چه په حديث كي اخروى حكم مراد دې.يعني د خطاء او نسيان په صورت كي به د آخرت په عذاب كي ماخوذ نه وى.بلكه د

اخرت عذاب به دده نه اوچتولې شي.دنياوي حکم به نشي لرې کولې. کني په قتل خطاء کي به ديت او کفاره نه واجب کيدله.حالانکه ددې ثبوت په کتاب الله سره دې.لکه چي د الله تعالى ارشاد دې﴿ وَمَن قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَئًا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ﴾ يعني څوک چي قتل کړي مسلمان په غلطئ سره، نوآزاد دې کړي سټ د يومسلمان،او ديت دې اورسوی دده کور والو ته.اوګورئ چي په آيت کي د فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ، نه د قتل خطاء کفاره،اود فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ، نه دده ديت مراد دې.که د خطاء حکم دنياوی اعتبارسره هم پورته شوې وې.نود قتل خطاء په صورت کي به ديت اوکفاره ولې واجب کيدله؟

## په شيطاني خوب د روژې ماتيدل

قَالَ ﴿فَإِنْ نَامَ فَاحْتَلَمَ لَمْ يُفْطِرْ﴾ نوکه اوده شو او احتلام ئې اوشو نونه ماتيږي

**تشريح:- عدم الفساد بالاحتلاف**۞مسئله:که روژه دار اوده شو.اوده ته په هم په دې حالت کي احتلام اوشو.نودده روژه به فاسد نه وي.

**لِقَوْلِهِ**ﷺ دحضور دارشاد په امله سره ﴿ثَلَاثٌ لَا يُفْطِرْنَ الصِّيَامَ الْقَيْءُ وَالْحِجَامَةُ وَالْاِحْتِلَامُ﴾[1] چي درې شيان (څيزونه) نه دی چي روژه نه ماتوی قي، رګ وهل او احتلام کيدل.

**تشريح:- دليله**۞ ① څکه چي په حديث «ثلاث لايفطرن الصيام ألقئ و الحجامة والإحتلام» کي درې شيان (څيزونه) مفسد د صوم نه دی.يو بې اختياره قئ راتګ ، دوهم ښکر لګول، دريم احتلام کيدل.

وَلِأَنَّهُ لَمْ تُوجَدْ صُورَةُ الْجِمَاعِ وَلَا مَعْنَاهُ اوځکه دجماع صورت نه موندې شوې اونه معنی وَهُوَ الْإِنْزَالُ عَنْ شَهْوَةٍ بِالْمُبَاشَرَةِ اودغه انزال کيدل په شهوت سره دمباشرت نه.

**تشريح:-** دوهم دليل دا دې.چه په احتلام کي جماع نه صورة موجود شوه.او نه معنی.صورة خوځکه چي د جماع صورت دادې.چه يو شرم ګاه په بل شرمګاه کي داخل شي.او په احتلام کي داخبره نه وي.او معنی جماع په دې وجه موجود نشوه.چه معنی جماع داده.چه ښځه اوسړې په شهوت سره خپلوکي ملاوشی.او ادخال اونشي. خو انزال اوشي.نود احتلام په صورت کي چي هرکله نه صورة جماع موجود شوه.اونه معنی جماع موجود شوه.نود روژې فاسد کيدلو هډو سوال پاتې نشو.

## د ښځې شرمګاه ته په کتلو انزال کيدل

وَكَذَا إِذَا نَظَرَ إِلَى امْرَأَةٍ فَأَمْنَىٰ) لِمَا بَيَّنَّا دغه ډول که ښځې ته ئې اوکتل اومنی ئې اووتله په هغې وجه چي مونږ بيان کړه فَصَارَ كَالْمُتَفَكِّرِ إِذَا أَمْنَىٰ او شو پشان د فکر کوئنکی کله چي ئې منی اوځي

**تشريح:- عدم الفساد بالانزال بوجه النظر الى فرج**۞که يو روژه دار يوښائسته شان ښځې يا ددې شرمګاه ته اوکتل.اود غريب مني اووتله.نودده روژه به فاسد نه وي.ځکه چي په دې صورت کي هم جماع نه صورة موجود شوه.او نه معنی.اودا داسې شولکه چي يو روژه دار د يوښائسته ښځې په تصور کي کيناستلو.او هم په دې تصورکي ئې منی خارج شوه.نودده روژه به فاسد نه وي.

وَكَالْمُسْتَمْنِي بِالْكَفِّ عَلَىٰ مَا قَالُوا او دموټي وهونکي پشان شو بنا په هغې چي مشائخو وئيلي دی.

**تشريح:- الروايتان فی فساد الصوم بالاستمناء**۞ ① لکه چي روژه دار په خپل لاس سره منی اوباسی.نودده روژه به فاسد نه وي.بعض مشائخ ﷺ ددې قائل دی.② البته د بعضوخيال دې.چه د ،استمناء باليد ، په صورت کي به قضاء واجب وي.ځکه چي د ،استمناء باليد،په صورت کي معنی جماع موجود شوې ده.

---

[1] حديث أبي سعيدالخدری﷛ أخرجه الترمذی فی الصوم بب ۲٤ ذقم ۷۱۹)_



**الاستمناء من حيث الحکم**۞اوس پاتې شوه داخبره چي د غيرصائم لپاره دا حرکت جائزدې اوکه نه؟ نوپه دې کي څه قدرې تفصيل دې.① که په ،استمناء باليد ،سره شهوت پوره کول مقصود وي.نو قطعاً جائز نه دی.ځکه چي الله تعالى فرمائيلي دی.((وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَافِظُونَ ۞ إِلَّا عَلَىٰ أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ ۞ فَمَنِ ابْتَغَىٰ وَرَاءَ ذَٰلِكَ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْعَادُونَ)) ابن جريج فرمائي.چه ماد عطاء نه پوښتنه اوکړو.نو عطاء اوفرمائيل.چه ما اوريدلی دی.چه يوقوم به په قيامت کي په دې سې حالت کي راځي.چه ددوی لاسونه به په حمل کي وی.نو زما خيال دې.چه دغه خلګ به هم دا ،استمناء باليد ،کونکي وی.او نبی کريمﷺ فرمائيلی دی.«ناکح اليد ملعون»په لاس سره جماع کونکې ملعون دې.او په لاس سره جماع کونکې هم دغه استمناء باليد ده.② اوکه استمناء باليد سره شهوت يخول مراد وی.نو په دې کي هيڅ باك نشته.(عنايه شرح نقايه)

وَلَوِ ادَّهَنَ لَمْ يُفْطِرْ) لِعَدَمِ الْمُنَافِي اوکه تيل ئې اولګول نو روژه ئې ماته شوه دمنافي نه کيدو په امله سره.

**تشريح:- عدم فساد الصوم بالدهن والاکتحال**۞مسئله:په بدن يا سرکي تيل لګول،روژه نه فاسدوی.ځکه چي روژه هغه وخت فاسديږی.چه کله د روژې منافی څه شی موجود شی.او تيل لګول د صوم منافی نه دی.په دې وجه دې سره روژه نه فاسديږی.

وَكَذَا إِذَا احْتَجَمَ) لِهَٰذَا وَلِمَا رَوَيْنَا اوداشان چي رګ اووهی په دې دليل اوپه روايت چي مونږ بيان کړو.

**تشريح:- عدم الفساد بالحجامة ودليله**۞اوښکر لګول هم مفسد د صوم نه دی.يوخو په دې وجه چي ښکر لګول د صوم منافی نه دی. دوهم دهغه حديث په وجه سره کوم چي مونږ وړاندې روايت کړې دې.يعنی «لا يفطرن الصيام ألقئ و الحجامة والإحتلام»

وَلَوِ اكْتَحَلَ لَمْ يُفْطِرْ) اوکه چا رانجه پورې کړل نو روژه نه ماتيږی لِأَنَّهُ لَيْسَ بَيْنَ الْعَيْنِ وَالدِّمَاغِ مَنْفَذٌ ځکه چي دسترګو اود دماغو په مينځ کي څه لار نشته

**تشريح:-** اوکه رانجه ئې اولګول، بيابه هم روژه فاسد نه وي.اګرچه په حلق کي ددې مزه محسوسه شي.ځکه چي په سترګو اودماغ په مينځ کي لاره نشته.په دې وجه د رانجو په حلق کي تلل ممکن نه دی.

**السوال والجواب**۞اوپاتې شو داچه هرکله په سترګو او دماغو په مينځ کي هيڅ لاره نشته.نو په حلق کي ددې مزه ولې محسوس شوه.نوددې ځواب دادې.چه مزه د رانجو اثر دې.نه د عين رانجو، او روژه د عين رانجو په حلق کي تللوسره ماتيږی.د رانجو په اثر سره نه ماتيږی.

وَالدُّهْنُ يَتَرَشَّحُ كَالْعَرَقِ او اوښکې دخولې پشان څاځی وَالدَّاخِلُ مِنَ الْمَسَامِّ لَا يُنَافِي او څه څيز چي مسامته داخل شی دغه د روژې منافی نه دې

**تشريح:- السوال الثانی والجواب**۞ اوپاتې شو دا اعتراض چي دسترګو او دماغو په مينځ کي چي هرکله هيڅ لاره نشته.نو اوښکې د کوم ځائې نه راوځی.ددې ځواب دادې.چه اوښکې د خولو پشان د مساماتو دننه نه راوځی.او دمساماتو په ذريعه داخليدونکی څيزد روژې منافی نه دې.نوپه دې سره به روژه نه ماتيږی.

كَمَا لَوِ اغْتَسَلَ بِالْمَاءِ الْبَارِدِ لکه چي غسل اوکړی په يخو اوبوسره.

لکه که يو روژه دار په يخو اوبوسره غسل اوکړو.اود يخوالی اثر زړه او دماغوته اورسيدلو.نوپه دې سره به روژه نه ماتيږی.ځکه چي د يخوالی حاصليدلو ذريعه مسامات دی.

**السوال الثالث**۞خوکه دا سوال اوکړې شی.چه د حديث نه معلوميږی.چه د روژې په حالت کي رانجه لګول منع دی.ځکه چي معبد بن هوذه انصاری﷛ د الله د رسولﷺ نه روايت کوی.چه رسول اللهﷺ اوفرمائيل. «عليکم بالأثمد ألمروح وقت النوم وليتقه الصائم»يعنی ته د اوده کيدلوپه وخت آرام ده.اثمد رانجه لګوه.او روژه دار دې ددې نه ځان ساتی.ددې حديث نه معلومه شوه.چه روژه دار دې د رانجو استعمال نه کوی.

**الجواب**۞صاحب د عنايه رحمه الله فرمائي.چه رسول اکرم ﷺ د عاشوره روژه او په دغه ورځ رانجه لګول مستحب ګرځولي دي.او امت د عاشوره په ورځ رانجو لګولو باندې اتفاق هم کړې دې.نودا روايت د تيرشوي روايت نه راجح دې.

**دلائل عدم الفساد بالاكتحال**۞ ① ملاعلی قاری رحمه الله په شرح نقايه کې د ابن ماجه په حواله سره د عائشه صديقه رضي الله عنها حديث نقل کړې دې. «أنه ﷺ إكتحل وهو صائم»دا واړه روايتونه ددې خبرې شاهد دی.چه رسول الله ﷺ به د روژې په حالت کې رانجه استعمالول.② صاحب د کفايه رحمه الله د ابو رافع رضي الله عنه حديث بيان کړې دې. «أن النبي ﷺ دعا بمكحلة أثمد في رمضان فاكتحل وهو صائم»يعنی نبی کريم ﷺ د اثمد رانجو رانجرومه (د رانجو ساتلو کسوړئ) په رمضان کې اوغوښتله.بيادوی په حالت د روژه کې رانجه اولګول.③ د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حديث دې. «قال خرج رسول الله ﷺ عاشورا من بيت أم سلمة وعيناه مملوتان كحلا كحلة أم سلمة رضي الله عنها»رسول الله ﷺ د عاشوره په ورځ د ام سلمه رضي الله عنها دکورنه په دې سې حال کې راؤ وتلو.چه ددوی دواړه سترګې د رانجو نه ډکې وې.ام سلمه رضي الله عنها هم رانجه لګولي وو.عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائی.چه دا دهغه وخت خبره ده.کله چې د عاشوره روژه فرض وه.او بيا منسوخ شوه.

## بغير د انزال نه د ښکلولو حکم

> **وَلَوْقَبَّلَ لَايَفْسُدُ صَوْمُهُ**که ښخه ئې ښکل کړه نو روژه ئې نه فاسديږی **يُرِيْدُ بِهِ إِذَا لَمْ يُنْزِلْ لِعَدَمِ الْمُنَافِي صُوْرَةً وَمَعْنًى** ددې نه مراد دادې چې انزال ئې نه وی شوې صورتًا اومعنی دروژې دمنافی نه کيدو په امله سره

**تشريح:- عدم فساد الصوم بالقبلة**۞ مسئله داده.که روژه دار ښخه ښکل کړله.او دده انزال اوشو.نو دده روژه به فاسد نه وی.ځکه چې بغير د انزال نه د کوکئ اخستلو په صورت کې جماع نه صورةً موجود شوه.او نه معنیً موجود شوه.حالانکه مفسد د صوم جماع وی.که صورةً وی.اوکه معنیً وی.

> **بِخِلَافِ الرَّجْعَةِ وَالْمُصَاهَرَةِ**.په خلاف د رجعت اومصاهرت **لِأَنَّ الْحُكْمَ هُنَاكَ أُدِيْرَ عَلَى السَّبَبِ عَلَى مَا يَأْتِي فِي مَوْضِعِهِ إِنْ شَاءَ اللهُ** ځکه چې هلته حکم په سبب دائر کړې شوې دې لکه چې په خپله موقع به راشی انشاء الله تعالی.

**حل اللغة**① **المصاهرة:** حرمت د مصاهره، سخرګنې رشته دار ② **الرجعة:** د طلاق نه روسته روجوع کول أدبر: تاوول راتاوول

**تشريح:- ثبوت الرجعة والمصاهرة بالقبلة**۞په خلاف د رجعت اومصاهرت،چه دا دواړه په شهوت سره د کوکئ اخستلو (ښکلولو)، او په شهوت سره د لاس په اوړلو سره ثابتيږی.يعنی د طلاق رجعی په صورت کې که خاوند په عدت کې دننه دخپلې رجعيه طلاق شوې ښځې په شهوت سره کوکئ واخستله.نو رجعت به ثابت شی.دغه ډول که د يوې ښځې په شهوت سره کوکئ واخلی.نوحرمت مصاهرت به ثابت شی.اګرچه ده ته په کوکئ اخستلوسره انزال نه وی شوې.ځکه چې ددې دواړو د سبب مدار په جماع باندې دې.يعنی رجعت او مصاهرت چې څنګه په جماع سره ثابتيږی.دغه ډول دجماع په سبب سره هم ثابتيږی.ددې تفصيل په کتاب النکاح کې او پنځم ټوک باب الرجعت کې اوګورئ.

## په ښکلولو سره د انزال حکم

> **وَإِنْ أَنْزَلَ بِقُبْلَةٍ أَوْلَمْسٍ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ دُوْنَ الْكَفَّارَةِ** که په ښ کاوه يا مسه کولونې انزال اوشو نوپه ده باندې قضاء دکفارې پرې نشته دې.

**تشريح:- وجوب القضاء بالانزال دون الكفارة**۞که روژه دار د ښځې نه کوکئ واخستله.يا دې ته لاس يوړلو.او انزال اوشو.نودده روژه فاسد شوه.اوس به په ده باندې ددې روژې قضاء واجب وی.کفاره به واجب نه وی.



> **لِوُجُوْدِ مَعْنَى الْجِمَاعِ** د معنی جماع موندو په امله سره **وَوُجُوْدُ الْمُنَافِي صُوْرَةً أَوْمَعْنًى يَكْفِي لِإِيْجَابِ الْقَضَاءِ احْتِيَاطًا** او صورتًا يا معنًا دمنافی موندل په طور داحتياط دقضا واجبولو د پاره کافی دی.

**تشريح:- دليل وجوب القضاء**۞قضاء خو به په دې وجه واجب نه وی.چه جماع صورةً اګرچه نه ده موجود شوې.ځکه چې ښځه اوسړې په شهوت سره ملاؤشی.او انزال اوشی.دې ته معنی جماع وائی.او احتياطاً قضاء واجبولو لپاره د صوم منافی موجود کيدل کافی دی.که صورةً موجود شی.او که معنی موجود شی.

> **أَمَّا الْكَفَّارَةُ فَتَفْتَقِرُ إِلَى كَمَالِ الْجِنَايَةِ** پاتې شو کفاره نو په دې کې دکامل جرم احتياذ دې **لِأَنَّهَا تَنْدَرِءُ بِالشُّبُهَاتِ كَالْحُدُوْدِ** ځکه چې کفاره د حدودوپشان د شبهاتو په امله سره مندفع کيږی.

**تشريح:- دليل عدم وجوب الكفارة**۞او پاتی شو.د کفاره نه واجبيدل.نو ددې وجه داده.چه کفاره هغه وخت واجبيږی.چه کله جرم مکمل طور باندې متحقق شی.او دلته کې صورةً جماع نه موجود کيدلوپه وجه سره جرم سپک شو.بلکه يو ډول د عدم جماع شبه پيدا شوه.اودا خبره منلې شوې ده.چه د شبهاتو په وجه سره کفارات لرې کولې شی.کله څنګه چې د شبهاتو په وجه سره حدود لرې کولې شی.

## په نفس د قابو په وخت کې د ښکلولو اجازت

> **وَلَابَأْسَ بِالْقُبْلَةِ إِذَا أَمِنَ عَلَى نَفْسِهِ) أَيِ الْجِمَاعَ أَوِ الْإِنْزَالَ** اوپه ښکلولو کښې باك نشته دې کله چې پخپل نفس قابوموی يعنی جماع او يا دانزال نه.

**تشريح:- عدم كراهة القبلة عند الامن من الانزال**۞مسئله: روژه دار که په خپل نفس باندې اطمينان لری.نوده له د خپلې ښځې نه دکوکئ په اخستلو کې هيڅ باك نشته.يعنی په جماع کې د واقع کيدلو نه که اطمينان وی.اود منی خارجيدلو نه اطمينان وی.نود روژې په حالت کې د کوکئ په اخستلو کې هيڅ باك نشته.

**دلائل عدم كراهة القبلة**۞بهرحال ثابت شو.چه د امن په حالت کې د روژه دار لپاره کوکئ اخستل بلاکراهت جائزدی.① په صحيحين کې دی. «أنه ﷺ كان يقبل ويباشر وهو صائم»يعنی رسول الله ﷺ به د روژې په حالت کې د ښځې کوکئ اخستله.او خپلوکې به يوځائې کيدل.② حضرت ام سلمه رضي الله عنها نه نقل دی. «أنه كان يقبلها وهو صائم»ام سلمه رضي الله عنها فرمائی.چه رسول الله ﷺ به ددې نه د روژې په حالت کې کوکئ اخستله.ددې دواړو روايتونو نه هم د روژه دار لپاره د کوکئ اخستلو اجازت معلوميږی.

> **وَيُكْرَهُ إِذَا لَمْ يَأْمَنْ)** اومکروه دی کله چې اطمينان نه وی **لِأَنَّ عَيْنَهُ لَيْسَ بِمُفْطِرٍ** ځکه چې پخپله ښکلولو نه ماتوی **وَرُبَّمَا يَصِيْرُ فِطْرًا بِعَاقِبَتِهِ** بلکه ډير ځل پخپل انجام سره فطرشی **فَإِنْ أَمِنَ يُعْتَبَرُ عَيْنُهُ وَأُبِيْحَ لَهُ** نوکه مطمئن وو نودعين بوسې په اعتبار سره درله مباح کړې شو **وَإِنْ لَمْ يَأْمَنْ تُعْتَبَرُ عَاقِبَتُهُ وَكُرِهَ لَهُ** اوکه مطمئين وو.نود انجام په اعتبار سره ورله مکروه کړې شو

**تشريح:- كراهة القبلة عند خوف الانزال والجماع**۞اوکه اطمينان نه وی.بلکه په جماع کې د اخته کيدلو ويره وی.ياد منی خارجيدلو خطره وی.نوپه دې سې صورت کې د روژه دار لپاره کوکئ اخستل مکروه دی.

**دليل كراهة القبلة**۞ځکه چې کوکئ اخستل پخپله خو روژه نه ماتوی.خو ډيرکرته د انجام په اعتبار سره د صوم د فساد سبب جوړيږی.په دې طريقه چې روژه دار دخپلې ښځې نه کوکئ واخستله.او صبر ئې اونکړې شو.نوصحبت ئې اوکړو.يادومره لګيا شو.چه په کوکئ اخستلواخستلو ئې انزال اوشو.نو په دې دواړو صورتوکې به روژه فاسد وی.نوکه روژه دار په دې خبره مطمئن وی.چه د بد انجام وخت به نه راځی.نوخاص د کوکئ اعتبار به کولې شی.اود کوکئ اجازت به ورکولې شی.خوکه دا اطمينان نه وی.نود انجام اعتبار به کولې شی.اومکروه به ګرځولې شی.

> **وَالشَّافِعِيُّ أَطْلَقَ فِيْهِ فِي الْحَالَيْنِ** او امام شافعی جواز په دواړو کښ مطلق کړې دې **وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا ذَكَرْنَا** اوپه ده

حجت هغه دي کوم چي موږ ذکر کړو.

تشريح: - **خلاف الشافعي** ﷬حضرت امام شافعي ﷬ په امن او غير امن دواړه حالتونو کي کوکي بغير د کراهته جائز ګرځولي ده. خو زموږ د اړخه بيان شوي دليل د امام شافعي ﷬ خلاف حجت دي.

**وَالْمُبَاشَرَةُ الْفَاحِشَةُ مِثْلُ التَّقْبِيلِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ** او مباشرت فاحشه د بوسي مثل دي په ظاهر الرايه کي.

تشريح: - **حكم المباشرة الفاحشة** ﷬مباشرت فاحشه دادي چه ښځه او سړي دواړه برېنډشي اوخپل شرمګاهونه د يو بل سره ملاوکړي او ادخال اونکړي بهرحال د ظاهر الرواية مطابق مباشرت فاحشه د کوکي په شان دي يعني که د مباشرت فاحشه باوجود په خپل ځان باندي اطمينان وي نو بلاکراهت جائزدي اوکه اطمينان نه وي نو مکروه دي.

**دليله** ﷬ددي تائيد د ابوداؤد ددي روايت نه هم کيږي. «عن أبي هريرة ﷺ أنه سأله رجل عن المباشرة للصائم فرخص له وأتاه آخر فنهاه فإذا الذي رخص له شيخ، والذي نهاه شاب» يعني يوکس د روزه لپاره دمباشرت په اړه کي پوښتنه اوکړو نونبي کريم ﷺ هغه ته اجازت ورکړو او دوهم کس دوی له راغي. نوهغه ني منع کړو نوکوم کس ته ئي چي اجازت ورکړي وو هغه بوډا سړي وو اوکوم کس نې چي منع کړي وو هغه ځوان سړي وو اوګورئ چه په دي حديث کي هم هغه تفصيل ذکردي کوم چي موږ معتبر کړي دي.

**وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ كَرِهَ الْمُبَاشَرَةَ الْفَاحِشَةَ** اود امام محمد ﷬ نه روايت دي چي دوی مباشرت فاحشه مکروه کړي دي **لِأَنَّهَا قَلَّمَا تَخْلُو عَنِ الْفِتْنَةِ** ځکه چي دا دفتني نه ډيرکم خالي وي.

تشريح: - **رواية كراهة مباشرة الفاحشة مطلقا** ﷬او امام محمد ﷬ د روژي په حالت کي مباشرت فاحشه مطلقا مکروه ګرځولي دي ځکه چي ددي امکان ډير کم دي چه اور او بهوس ملاوشي او اور اونه لګي يعني چي ښځه او سړي برېنډشي يوځاي شي او وريسي هيڅ اونشي دا څنګه کيدلي شي؟ په دي وجه خيريت هم په دي کي دي چه دمباشرت فاحشه ارتکاب اونکړي هم په دي وجه حضرت امام محمد ﷬ د روژي په حالت کي دا علي الاطلاق مکروه ګرځولي دي.

## په حلق کي د مچ تللو حکم

**وَلَوْ دَخَلَ حَلْقَهُ ذُبَابٌ وَهُوَ ذَاكِرٌ لِصَوْمِهِ لَمْ يُفْطِرْ** که د روژه دار په حلق کي مچ لاړو اوده نه خپله روژه ياده وه نوماته نشوه.

تشريح: - **عدم فساد الصوم بدخول الذباب استحسانا** ﷬مسئله داده که د روژه دار په حلق کي مچ پخپله داخل شي او معدي ته اورسي اوده نه خپله روژه ياده هم ده نو استحساناً به دده روژه فاسد نه وي.

**وَفِي الْقِيَاسِ يَفْسُدُ صَوْمُهُ لِوُصُولِ الْمُفْطِرِ إِلَى جَوْفِهِ** اوپه قياس کي روژه فاسديږي ځيني ته دماتونکي درسيدو په اصله سره. **وَإِنْ كَانَ لَا يُتَغَذَّى بِهِ كَالتُّرَابِ وَالْحَصَاةِ** اګرچي په دي سره غذا حاصليږي لکه خاوره او ګټکي.

تشريح: - **وجه القياس** ﷬اوقياسا به فاسد وي. د قياس وجه داده چه د روژه فاسدونکي يوڅيز معدي ته لاړلو اګرچه په دي سره عادة غذا نه حاصليږي.

**وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّهُ لَا يُسْتَطَاعُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ** وجه استحسان داده چي ددي نه د بچ کيدو ګنجائش نشته دي. **فَأَشْبَهَ الْغُبَارَ وَالدُّخَانَ** نود لوګي او ګردخ مشابه شو.

تشريح: - **وجه الاستحسان** ﷬او وجه د استحسان داده چه د مچ نه بچکيدل ممکن نه دي بلکه مچ ډير ځله بغير د ارادي نه په خوله کي داخليږي او ځيني ته رسيږي نو مچ د دوړو او لوګو مشابه شو که بي اختياره داخل شي نو په دي سره بالاجماع روژه نه فاسديږي نود مچ بي اختياره په نس کي د داخليدلو په صورت کي هم روژه نه فاسديږي.



**وَاخْتَلَفُوا فِي الْمَطَرِ وَالثَّلْجِ** او مشائخو اختلاف کړي دي په باران اوپه واوره کي **وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يُفْسِدُ لِإِمْكَانِ الِامْتِنَاعِ عَنْهُ** واضح داده چي فاسديږي ددي نه د ځان ساتلو د ممکن کيدو په امله سره **إِذَا آوَاهُ خَيْمَةٌ أَوْ سَقْفٌ** هرکله چي ورته خيمه يا چت پناه ورکړي.

تشريح: - **فساد الصوم بدخول المطر والثلج** ﷬اوکه د روژه دار په خوله کي د باران ساسکي او ګلئ اوغورزيږي او معدي ته لاړشي نو روژه به ماتيږي او که نه؟ په دي اړه کي د امت د مشائخو اختلاف دي. ① بعض فرمائي چه باران ساسکي مفسد دي. خو ګلئ مفسد نه ده. او بعضو ددي په عکس فرمائيلي دي. ② اود عامو مشائخو ﷬ قول دادي چه په دواړو سره روژه فاسديږي. او هم دا زيات صحيح قول دي.

**دليله** ﷬دليل ددي دادي چه دباران ساسکي او د آسماني واوري نه بچکيدل ممکن دي. په دي طريقه چي کله باران او واوره وريږي نو په يوه خيمه يا د چهت د لاندي په سوري کي پناه واخلي. نو هرکله چي ددي دواړو نه بچکيدل ممکن دي نودا د دوړو او لوګو مشابه نشو.

**السوال** ﷬صاحب د فتح القدير ﷬ په دي علت باندي اعتراض کړي دي. فرمائي که صائم مسافر وي. او ملته کي نه څه خيمه وي. او نه څه چهت وي. نو په دي سي صورت کي چونکه د باران او آسماني واوري مه بچکيدل ممکن نه دي. په دي وجه روژه فاسد کيدل نه دي پکار. حالانکه روژه په دي صورت کي هم فاسديږي.

**العلة المناسبة للفساد** ﷬صاحب د فتح القدير ﷬ فرمائي. چه زياته بهتره خبره داده. چه علت دابيان کړي شي چه خوله بنده کړي شي نود باران د اوبو او ګلئ نه بچکيدل ممکن دي. نودا علت به ټولو صورتونو ته ګډ وي. که صائم په حضرکي وي. اوکه په سفر کي وي. خو موږ وايو چه د علامه مرغيناني مقصد دادي. چه باران او ګلئ داسي شی نه دي. چه ددي نه بچکيدل د انسان په توان کي نه وي. بلکه ددي نه بچکيدل د انسان په توان کي شته که دي خوله بنده کړي. اوکه په خيمه يا د چهت لاندي پناه واخلي. والله اعلم بالصواب. جميل غفرله

## د غاښونو غوښه خوړل

**وَلَوْ أَكَلَ لَحْمًا بَيْنَ أَسْنَانِهِ فَإِنْ كَانَ قَلِيلًا لَمْ يُفْطِرْ** اوکه وي خوړله دغاښونو نه دغوښي ريشه نوکه لږه وه نوماته به نه وي **وَإِنْ كَانَ كَثِيرًا يُفْطِرُ** اوکه ډيره وه نوماته به وي.

تشريح: - **المذهبان في فساد الصوم بالقليل ما بين الاسنان** ﷬مسئله داده. ① چه د غوښي ريښه (نيله) کومه چي په غاښونو کي اينختي پاتي شوي وي. او روژه دار په خوله کي دننه د ژبي په حرکت ورکولوسره اوخوړله. نوکه دغه ريښه (نيله) قليل مقدار کي وي. نو روژه به فاسد نه وي. اوکه په کثير مقدار کي وي. نو روژه به فاسد وي.

**وَقَالَ زُفَرُ يُفْطِرُ فِي الْوَجْهَيْنِ** امام زفر فرمائي چي په دواړو صورتونوکښي به ماته شي. **لِأَنَّ الْفَمَ لَهُ حُكْمُ الظَّاهِرِ حَتَّى لَا يَفْسُدُ صَوْمُهُ بِالْمَضْمَضَةِ** ځکه چي دخولي حکم دظاهر دي تردي چي خولي وينځلو سره دده روژه نه فاسديږي.

تشريح: - امام زفر ﷬ فرمائي. چه په دواړه صورتونو کي به فاسد وي.

**دليله** ﷬د امام زفر ﷬ دليل دادي. چه د خولي دننه برخي ته د بنکاره بدن حکم حاصل دي. په دي وجه د روژي په حالت کي په غرغري کولوسره روژه نه ماتيږي. حالانکه اوبه د بهر نه په خوله کي اچولي شوي دي. نو هرکله چي د خولي دننه برخي ته د بنکاره بدن حکم حاصل دي. نو د غوښي کومه ريشه چي په خوله کي وه دا د حلق نه لاندي کوزول داسي دي. لکه چي د خولي نه د بهر څه شی اوخوري اود خارج نه د څه قليل شی خوراك هم مفسد د صوم دي. نو ددي غوښي د نيلي په تيرولو سره به هم روژه فاسديږي.

**وَلَنَا** زموږ دليل دادي **أَنَّ الْقَلِيلَ تَابِعٌ لِأَسْنَانِهِ** چې قليل د ده دغاښونو تابع دي **بِمَنْزِلَةِ رِيقِهِ** په شان دده دلاړو

**تشريح:- دليل لجمهور الاحناف** رحمهم الله ۞ زموږ دليل دادې. چه دغوښې د نيلې قليل مقدار د غاښونو تابع دې. ځكه چې ددې نه بچكيدل ممكن نه دى. نودا په منزله د لاړو شو. اود لاړو په تيرولو روژه نه فاسديږي. نود غوښې په دې قليل نيلې سره به هم روژه نه فاسديږي.

**بِخِلَافِ الْكَثِيرِ لِأَنَّهُ لَا يَبْقَى فِيمَا بَيْنَ الْأَسْنَانِ** په خلاف د ډيرنه ځكه چې دغه دغاښونو په مينځ كې پاته نه پاتې كيږي **وَالْفَاصِلُ مِقْدَارُ الْحِمَّصَةِ وَمَا دُونَهَا قَلِيلٌ** او حد فاصل د چنړو مقدار دې او ددې حكم قليل دې.

**تشريح:-** په خلاف د كثير، چه دا په عامه توګه په غاښونوكې پاته نه پاتې كيږي. نوددې ځخه به بچ كيدل ممكن وى. اود قليل او كثير په مينځ كې حد فاصل(زياتوالې)د چنړې برابر دې. يعنى د چنړې مقدار ته به كثير وئيلې شى. او ددې نه كم ته به قليل وئيلې شى.

## د غاښونو د مينځ ځيز راويستل او بيا خوړل

**وَإِنْ أَخْرَجَهُ وَأَخَذَهُ بِيَدِهِ ثُمَّ أَكَلَهُ يَنْبَغِي أَنْ يَفْسُدَ صَوْمُهُ** اوكه راوې ويستلو په لاسونوكښې بيا ئې اوخوړه نو روژه فاسده پكارده

**تشريح:- فساد الصوم باكل مابين الاسنان قصداً** ۞ مسئله داده. چه كوم شى په غاښونوكې اينختې دې. روژه دار دا په خپله خپلو لاسونوسره د خولې نه بهر راويستلو. او بيا ئې دا اوخوړلو. نو مناسب دادى. چه په دې صورت كې روژه فاسد شى. اګرچه دا شى د چنړې د دانې نه په كم مقدار كې وى.

**لِمَا رُوِيَ عَنْ مُحَمَّدٍ** رحمه الله لكه چې دامام محمد رحمه الله نه روايت دې. **أَنَّ الصَّائِمَ إِذَا ابْتَلَعَ سِمْسِمَةً بَيْنَ أَسْنَانِهِ لَا يَفْسُدُ صَوْمُهُ** چه كه روژه دار دغاښونو دمينځ نه كونجته (كونځله) راؤويستله تيره ئې كړه نو روژه ئې نه فاسديږي **وَلَوْ أَكَلَهَا ابْتِدَاءً يَفْسُدُ صَوْمُهُ** اوكه ابتداءً ئې اوخوړه نو روژه به ئې فاسده شى **وَلَوْ مَضَغَهَا لَا يَفْسُدُ** اوكه وې جوله نو نه فاسديږي **لِأَنَّهَا تَتَلَاشَى** ځكه چې دغه به لاشے شى

**حل اللغة** ① **سمسمة:** دَ تل دانه ② **تتلاشي:** نيست اونابود، ختميدل

**تشريح:-** ځكه چې د امام محمد رحمه الله نه نقل دى. چه روژه دار كه د غاښونو په مينځ كې اينختې د كونځلو دانه تيره كړى. نو روژه به فاسد نه وى. اوكه كونجته (كونځله) يا د كونځلې په اندازه ئې څه شى په پيل كې په خوله كې واچولو. او وې خوړلو. نو روژه به فاسد شى. اوكه دكونځلو دانه ئې په خوله كې واچوله. او وې جويله. او تيره ئې كړه. نو په دې سره به روژه نه فاسديږى. ځكه چې دكونځلو دانه په خوله كې اوجوى. نو دا به غاښونو او ژبې سره اولګى. او هم دلته كې به ختمه شى. په دې به دننه داخليدل نه صادقيږى. او هركله چې نس كې دننه داخليدل صادق رانغلل. نو روژه به هم فاسد نه وى.

**وَفِي مِقْدَارِ الْحِمَّصَةِ عَلَيْهِ الْقَضَاءُ** اوپه مقدار دچنړو كې پده باندې قضاء ده **دُونَ الْكَفَّارَةِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ** رحمه الله نه كفاره. په نيز د دابويوسف رحمه الله

**حل اللغة** ① **الحمصة:** د چنړې دانه

**تشريح:- المذهبان فى وجوب الكفارة باكل ماقدر الحمصة** ۞ صاحب د هدايه رحمه الله فرمائى. كه د چنړې برابر څه شى ئې د غاښونو نه دننه تيركړو. نو وړاندې ددې حكم تيرشو. چه په دې سره به روژه فاسديږى. او قضاء په واجب وى. خو د كفاره په وجوب كې اختلاف دې. ① د حضرت امام ابويوسف رحمه الله په نيز به كفاره واجب نه وى.

**وَعِنْدَ زُفَرَ عَلَيْهِ الْكَفَّارَةُ أَيْضًا** اوپه نيز د زفر رحمه الله په ده كفاره هم ده. **لِأَنَّهُ طَعَامٌ مُتَغَيِّرٌ** ځكه چې دغه وران شوې خوراك دې

**تشريح:-** او امام زفر رحمه الله فرمائى. چه كفاره به هم واجب وى.



**دليله** ۞ د امام زفر رحمه الله دليل دادې. چه د چنړې په اندازه كوم ځيز چې په غاښونوكې اينختې دې. هغه هم طعام دې. اګرچه بدبودار طعام دې. او طعام بالاراده خوړلوسره قضاء او كفاره دواړه واجبيږى. خو په دې شرط چې د رمضان روژه وى. په دې وجه به په دې صورت كې هم قضاء او كفاره دواړه واجبيږى.

**وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ يَعَافُهُ الطَّبْعُ** اود ابى يوسف رحمه الله دليل دادې چې طبيعت ددې نه كركه كوى.

**حل اللغة** ① **يعافه:** د طبيعت مكروه ګڼړل

**تشريح:- دليل ابى يوسف** رحمه الله ۞ اود امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې. چه كوم شى په غاښونوكې اينختې پاتې شو. ددې په غذائيت كې نقصان پيدا شو. په دې وجه په دې كې ډيركرته دومره ناخوښه بدبوئى پيدا كيږى. چه روغ طبيعت ددې نه نفرت كوى. نوددې په خوراك سره جنايت موجود شو. خو ناقص، او په ناقص جنايت سره كفاره نه واجبيږى. په دې وجه به په دې صورت كې كفاره نه واجبيږى.

## په قئ باندې د روژې ماتيدل

**فَإِنْ ذَرَعَهُ الْقَيْءُ لَمْ يُفْطِرْ** كه روژه دار قئ اوكړو نو روژه ئې نده ماته **لِقَوْلِهِ {مَنْ قَاءَ فَلَا قَضَاءَ عَلَيْهِ وَمَنْ اسْتَقَاءَ عَامِدًا فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ}**[1] ځكه چې د نبى ﷺ ارشاد دې چاچه قې اوكړو په ده قضا نشته دې اوچا چې قصداً قې اوكړو پده قضاء ده

**حل اللغة** ① **ذرعه:** پخپله قې راتګ ② **قاء:** قې كول ③ **استقاء:** په قصد سره قې كول

**تشريح:- عدم الفساد بالقئ ودليله** ۞ مسئله داده. كه قئ پخپله اوشو. نو روژه به فاسد نه وى. قئ كه قليل وى. اوكه كثير وى. دليل داحديث دې. ﴿من قاء فلا قضاء عليه ومن استقاء عامداً فعليه القضاء﴾ يعنى د كوم كس چې په خپله قئ اوشى. نو په هغه باندې قضاء نشته.

**فساد الصوم بالاستقاء و دليله** ۞ كوم كس چې قصداً قئ اوكړو. په هغه قضاء واجب ده. د ترمذى الفاظ دى چه ﴿من ذرعه القئ وهو صائم فليس عليه القضاء ومن استقاء عمداً فليقض﴾ يعنى روژه دار له كه پخپله قئ راغلو. نوپه ده باندې قضاء واجب نه ده. او كوم كس چې په قصد سره قئ اوكړو. هغه به قضاء راوړى.

**وَيَسْتَوِي فِيهِ مِلْءُ الْفَمِ فَمَا دُونَهُ** اوبرابر دې په دې كې د ډكې خولې او كم ددې نه

**تشريح:-** صاحب د هدايه رحمه الله فرمائى. چه هم په دې حكم كې په ډكه خوله قئ، اود ډكې خولې نه كم دواړه برابردى. يعنى كه قئ بغير د اراده نه پخپله اوشو. نوكه دا په ډكه خوله وى. اوكه د ډكې خولې نه كم وى. په دواړو صورتونوكې به روژه فاسد نه وى. ځكه چې حديث مطلق دې. په دې كې د قليل اوكثير هيڅ تفصيل نشته.

**فَلَوْ عَادَ وَكَانَ مِلْءَ الْفَمِ فَسَدَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ** نوكه واروسته لاړو اوپه ډكه خوله وو نوفاسد شو په نيز د ابويوسف رحمه الله **لِأَنَّهُ خَارِجٌ حَتَّى انْتَقَضَ بِهِ الطَّهَارَةُ** ځكه چې دغه خارج دې تر دې چې ماتيږى په دې سره اودس. **وَقَدْ دَخَلَ** او حال دا چې داخل شو

**عود القئ بنفسه بعد الخروج بنفسه** ۞ كه په ډكه خوله قئ په خپله راؤوتلو. او بيا په پخپله دننه واروسته لاړلو. نود حضرت امام ابويوسف رحمه الله په نيز روژه فاسد شوه.

**وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ لَا يَفْسُدُ** اوپه نيز د محمد رحمه الله به فاسد نه وى **لِأَنَّهُ لَمْ تُوجَدْ صُورَةُ الْفِطْرِ وَهُوَ الِابْتِلَاعُ** ځكه چې صورت دفطر اونه موندلې شو اوهغه تيرول دى. **وَكَذَا مَعْنَاهُ** او داشان معنا دفطر اونه موندلې شوه. **لِأَنَّهُ لَا يَتَغَذَّى بِهِ عَادَةً**

[1] من حديث أبى هريرة رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى الصوم باب ۳۳ رقم ۲۳۸۰ والترمذى في الصوم باب ۲۵ رقم ۷۲۰ وابن ماجه فى الصيام باب ۱۶ رقم ۱۶۷۶ والدارمى فى الصوم باب ۲۵ وأحمد فى ا لمسند(۴۹۸/۲)_

خکه په دې سره غذا نه حاصلیږی عادتا

حل اللغة * ① ابتلاع: تیرول ② يتغذى: خوراك حاصلول ]

**تشریح:- دليل ابي يوسف رحمه الله** ۞ د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې.چه په ډکه خوله قئ په خپله راتګ په شریعت کې د خارجیدلو په مرتبه کې دی.خکه په دې اودس هم ماتیږی.نوهرکله چې دا واروسته دننه لاړ شی. نوګویا چې د بهرنه څه شی دننه داخل شو.اود بهر نه د داخلیدلوپه صورت کې روژه فاسدیږی.نوپه دې صورت کې به هم روژه فاسدیږی.

په زیر بحث مسئله کې د امام محمد رحمه الله په نیز به روژه فاسد نه وی. د امام محمد رحمه الله دلیل دادې.چه قئ (که په ډکه خوله وی)دننه واروسته لاړشی.نوپه دې صورت کې نه صورتاً افطار موجود شو.او نه معنی.صورةً خوپه دې وجه موجود نشو.چه صورةً افطار دادې.چه یوکس څه شی په خوله کې واچوی.او تیر ئې کړی.اودا خبره دلته موجود نه ده.په دې وجه صورةً افطار نشو.اود افطار معنی په دې وجه موجود نشوه.چه عادةً په قئ سره غذا نشی حاصلولې. حالانکه د افطار معنی ده په یوځیز سره غذا حاصلول، نو هرکله چې افطار نه صورةً شته او نه معنی.نو روژه به هم فاسد نه وی.

**وَإِنْ أَعَادَهُ فَسَدَ بِالْإِجْمَاعِ** اوکه پخپله ئې واروسته کړو نو فاسده شوه په اجماع سره **لِوُجُودِ الْإِدْخَالِ بَعْدَ الْخُرُوجِ** خکه چې داخل والئ دخروج نه اوموندې شو **فَتَتَحَقَّقُ صُورَةُ الْفِطْرِ** نو صورت د فطر متحقق شو

**تشریح:- الصورتان الاخريان فى فساد الصوم وعدمه** ۞ اوکه قئ د ډکه خوله په مقدار په خپله اووتلو.بیا ئې داپه خپله اراده دننه واروسته کړلو.نو په اتفاق سره به روژه فاسد شی.خکه چې په دې صورت کې د خروج نه روسته داخلول اوموندلې شو.نو په دې صورت کې افطار متحقق شو.اوهرکله چې د افطار صورت متحقق شو.نو روژه به هم فاسد وی.خکه چې په افطار سره روژه هم پاته نه پاتې کیږی.افطار که صورةً وی.اوکه معنی وی.

**وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنْ مِلْءِ الْفَمِ فَعَادَ** اوکه دډکې خولې نه کم وو نو واروسته شو **لَمْ يَفْسُدْ صَوْمُهُ لِأَنَّهُ غَيْرُ خَارِجٍ وَلَا صُنْعَ لَهُ فِي الْإِدْخَالِ** نونه فاسده وی روژه دده خکه چې غیر خارج دې اوپه دې خلولوکې دده فعل نشته.

**تشریح:-** که په خپله وتلې شوې قئ د ډکه خولې نه کم وی.او هغه بیا په خپله واروسته شو.نود امام ابویوسف او امام محمد رحمه الله دواړو په نیز به روژه فاسد نه وی.خکه چې دا خونه شرعاً د خارجولو په حکم کې دې.اونه د روژه دار څه اختیاری فعل ددې په دې خلولوکې دې.

**الاصل فى القئ والعود** ۞فوائد:د قئ په عود او اعاده( په خپله یا په قصد سره داخلولو)کې دحضرت امام ابویوسف رحمه الله اصل دادې.چه خروج معتبر دې.اوخروج په ډکه خوله قئ سره متحقق کیږی.یعنی که د قئ خروج موجود شو.نو روژه به فاسد وی.ګنی فاسد به نه وی.که د قئ عود وی.اوکه اعاده وی.اود امام محمد رحمه الله اصل دادې.که د قئ اعاده ئې اوکړه.یعنی که په قصد سره ئې واروسته کړو.نو روژه به فاسد وی.ګنی فاسد به نه وی.که قئ قلیل وی اوکه کثیر وی.(فتح القدير)

**وَإِنْ أَعَادَهُ فَكَذٰلِكَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله** که قې نې واروسته کړو نو هم داسې ده په نزد دَ امام ابویوسف رحمه الله **لِعَدَمِ الْخُرُوجِ** دَ وجه دَ نه وتلو **وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ يَفْسُدُ صَوْمُهُ لِوُجُودِ الصُّنْعِ مِنْهُ فِي الْإِدْخَالِ** اوپه نزد دمحمد رحمه الله به دده روژه فاسدیږی داخلولوکې دده د اړخ نه دکار موندو په امله سره. **(فَإِنِ اسْتَقَاءَ عَمْدًا مِلْءَ فِيهِ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ)** لِمَا رَوَيْنَا که قې ئې اوکړو قصداً په ډکه خوله نو په ده قضاء ده

**تشریح:- فساد الصوم بالاستقاء عمداً مل ء الفم** "که د ډکې خولې نه کم وتلې شوې قئ ئې په خپله اراده سره دننه واروسته کړو.نود امام ابویوسف رحمه الله په نیز به روژه فاسد نه وی. خکه چې خروج اونه موندې شو.اود امام محمد رحمه الله په نیز به فاسد وی.خکه چې قئ دننه داخلولوکې د روژه دار اختیاری فعل اوموندلې شو.



**وَالْقِيَاسُ مَتْرُوكٌ بِهِ** دهغه حدیث په امله سره چې کوم موږ روایت کړې دې او قیاس په مقابله دحدیث کې متروك دې

**تشریح:- دليله** ۞ددې دلیل هغه حدیث دې.کوم چې په تیره شوې مسئله کې تیرشوې دې.یعنی «من إستقاء عامداً فعليه القضاء» د قیاس تقاضا خودا وه.چه په قئ کولوسره روژه ماته نشی.خکه چې روژه د څه شی په دې خلولوسره ماتیږی.په خارجولوسره نه ماتیږی.لکه بولې او لوئې حاجت ماتې خارجولوسره روژه نه ماتیږی.خود قئ په سلسله کې د حدیث «من إستقاء عامداً فعليه القضاء» په وجه سره قیاس ترك کړې شوې دې.

**وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ لِعَدَمِ الصُّورَةِ** اوکفاره پرې نشته دصورت دفطر نه کیدو په امله سره.

**تشریح:- السوال** ۞ اوس به سوال داکیږی.چه هرکله په قصد سره په ډکه خوله قئ کول مفطر اومفسد د صوم دی.نو په قصد سره د افطار کاوه په وجه سره د قضاء سره کفاره هم واجب کیدل پکار وو.حالانکه په دې صورت کې کفاره نه ده واجب کړې شوې.

**الجواب** ۞ ①په قصد سره په ډکه خوله قئ کاوه په صورت کې صورةً افطار موجود نشو.خکه چې د افطار صورت لپاره د یوځیزدننه داخلولو ضروری دی.اود قئ په صورت کې دخول موجود نشو.بلکه د معده نه خروج شوې دې.نوهرکله چې د افطار صورت موجود نشو.نوجنایت کامله هم موجود نشو. اوهرکله چې کامل جنایت موجود نشو.نوکفاره به هم واجب نه وی.خکه چې کفاره په کامل جنایت سره واجبیږی.② دوهم ځواب دادې.چه په قئ کولوسره د روژه ماتیدل خلاف قیاس د حدیث نه ثابت دی.اوپه حدیث کې فقط د قضاء ذکر دې.دکفاره ذکر نه دې.نود حدیث په مورد باندې د انحصار په لحاظ سره به صرف قضاء واجب وی. کفاره به واجب نه وی.

**وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنْ مِلْءِ الْفَمِ فَكَذٰلِكَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ** اوکه کم وو د ډکې خولې نه بیا هم دغه ډول ده دمحمد رحمه الله په نزد **لِإِطْلَاقِ الْحَدِيثِ** د حدیث داطلاق په امله سره

**تشریح:- فساد الصوم فى الاستقاء القليل** ۞اوکه په قصد سره ئې په ډکه خوله قئ اوکړو.نو بیاهم ①دحضرت امام محمد رحمه الله په نیز د روژې قضاء واجب ده.خکه چې حدیث «من إستقاء عامداً فعليه القضاء» مطلق دې.په دې کې د قلیل اوکثیر هیڅ تفصیل نشته.بلکه که چاهم په قصد سره قئ اوکړو.نوپه ده باندې قضاء واجب ده.که دا قئ قلیل یعنی د ډکې خولې نه کم وی.اوکه کثیر یعنی په ډکه خوله وی.

**وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ لَا يَفْسُدُ** اوپه نیزد ابویوسف رحمه الله نه فاسده وی روژه **لِعَدَمِ الْخُرُوجِ حُكْمًا** حکماً دخروج نه کیدو په وجه سره

**تشریح:-** حضرت امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه د قئ قلیل په صورت کې به روژه فاسد نه وی.خکه چې د قئ قلیل په صورت کې حکماً خروج اونه موندلې شو.هم دغه وجه ده.چه د قئ قلیل په اوبنکلو یا په خپله په وتلو سره اودس نه ماتیږی.نوهرکله چې د قئ قلیل په صورت کې خروج موجود نشو.نو روژه به هم فاسد نه وی.خکه چې روژه یو شی معده ته دننه په دې خلولوسره ماتیږی.یا د خولې په لارې د یو شی په وتلو سره ماتیږی.او دلته کې دواړه خبرې موجود نه دی.نو روژه به فاسد نه وی.

**ثُمَّ إِنْ عَادَ لَمْ يَفْسُدْ عِنْدَهُ لِعَدَمِ سَبْقِ الْخُرُوجِ** بیاکه دغه واروسته شونونه فاسده وی دابویوسف رحمه الله په نیز دسابق خروج نه کیدو په امله سره

**تشریح:- عدم فساد الصوم بصورة القئ القليل بنفسه** ۞ اوکه قئ قلیل ئې په قصد سره اوکړو.بیاهغه په خپله د خولې نه دننه واروسته شو.نود حضرت امام ابویوسف رحمه الله په نیز به روژه فاسد نه وی.خکه چې د قئ قلیل په

صورت کې خروج نه دې موجود شوې.لکه څنګه چې وړاندې تیرشوی دی.اوهرکله چې خروج موجود نشو.نود دخول هډو سوال نه پاتې کیږی.اوهرکله چې د معدې نه نه د څه شی خروج اوشو.اونه دخول اوشو.نو روژه به څنګه فاسد وی؟

وَإِنْ أَعَادَهُ فَعَنْهُ: أَنَّهُ لَا يَفْسُدُ لِمَا ذَكَرْنَا او که ده وارسته کړو نو دده نه یوروایت دادې چې مفسد نه دې لکه چې مونږ ذکر کړو وَعَنْهُ: أَنَّهُ يَفْسُدُ فَأَلْحَقَهُ بِمِلْءِ الْفَمِ لِكَثْرَةِ الصُّنْعِ او دوهم روایت دادې چې مفسد دې نودائې د ډکې خولې سره یوځائې کړو دفعل د کثیر په امله سره

**تشریح:- الروایتان فی حکم اعادة القیٔ القلیل**۞ او قیٔ قلیل ده په قصد سره واروسته کړلو.نود امام ابویوسف رحمه الله نه دوې [دوه] روایتونه دی.① یودا چې روژه به فاسد نه وی② دوهم داچه په دې صورت کې به روژه فاسده وی.

**دلائلهما**۞د رومبنی روایت دلیل خو هم هغه دې.کوم چې وړاندې تیرشوې دې.چه د قیٔ قلیل په صورت کې خروج نه دې متحقق شوې.اود دوهم روایت دلیل دادې.چه حضرت امام ابویوسف رحمه الله دا قیٔ قلیل د ډکې خولې په قیٔ یعنی د قیٔ کثیر سره لاحق کړې دې.څکه چې په دې صورت کې فعل کثیر اوشو.په دې طریقه چې یوځل ئې په قصد سره قیٔ قلیل اوکړو.بیا ئې دا په حلق کې واروسته کړو.یاخوددې تکرار په وجه سره داسې اوشو.لکه چې ده دوباره لړلږ قیٔ اوکړو.او دا کثیرشو.او په قیٔ کثیر سره روژه ماتیږی.نوپه دې سره به هم ماتیږی.

## د کټکې یا اوسپنې تیرول

قَالَ (وَمَنْ ابْتَلَعَ الْحَصَاةَ أَوْ الْحَدِيدَ أَفْطَرَ) دکوم روژه دار چې کټکۍ یا اوسپنه تیره شوه نوماته شوه لِوُجُودِ صُورَةِ الْفِطْرِ صورت دفطر په امله سره

**تشریح:- فساد الصوم بابتلاع الحدید دون الکفارة**۞مسئله: که یوکس څه کانړې یا د اوسپنې یوه ټکړه اوخوړله.نو په ده به قضاء واجب وی.خوکفاره به واجب نه وی.قضاء خوبه په دې وجه واجب وی.چه د افطار صورت موجود شو. **دلیله**۞څکه چې یوڅیز خیټې ته رسولې شوې دې.

(وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ) لِعَدَمِ الْمَعْنَى اوپده کفاره نشته دې دمعنا دفطر نه کیدو په امله سره.

**تشریح:-** اوکفاره به په دې وجه واجب نه وی.چه معنی افطار نه دې موجود شوې.څکه چې معنی افطار، د یونفع ورکونکی شی خیټې ته دننه داخلول دی.که دغه شی د غذا د قبیلې څنې وی.اوکه د دوائی د قبیلې څنې وی.نو چونکه د افطار معنیٰ نه ده موجود شوې.په دې وجه سره جنایت ناقص شوې دې.په دې وجه به کفاره هم واجب نه وی.

## په احد السبیلین کې د جماع حکم

(وَمَنْ جَامَعَ فِي أَحَدِ السَّبِيلَيْنِ عَامِدًا فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ) که چا روژه دار جماع اوکړه په یو د دواړو لاروکی په قصد سره نوپده باندې قضا ده. اسْتِدْرَاكًا لِلْمَصْلَحَةِ الْفَائِتَةِ د فوت شده مصحلت د تدارک دپاره. (وَالْكَفَّارَةُ لِتَكَامُلِ الْجِنَايَةِ اوکفاره هم ده.دجرم د کامليدو په امله سره

**تشریح:- وجوب القضاء والکفارة بالجماع**۞ مسئله داده.که روژه دار په قصد سره جماع اوکړه.که په فرج کې وی،کوم چې حلال محل دې.اوکه په مقعد کې وی.کوم چې حرام محل دې.نو په ده باندې قضاء هم واجب ده.اوکفاره هم واجب ده.قضاء خو په دې وجه واجب ده.چه فوت شوې مصلحت او نیکی حاصله کړې شی.د روژې مصلحت د نفس اماره مغلوب کول دی.اود جماع په وجه دا مصلحت فوت شوې دې.څکه چې د روژې په حالت کې جماع کول، نفس اماره غالب کول شو.مغلوب کول نشو.نو هرکله چې د جماع په وجه د روژې



مصلحت فوت شو.نو روژه هم پاته پاتې نشوه.او هرکله چې روژه پاته پاتې نشوه.نو ددغه ورځې روژې قضاء به واجب وی.او کفاره به په دې وجه واجب وې چه جنایت په کامله درجه موجود شو.یعنی د یوشرمګاه د بل په شرمګاه کې داخلول موجود شو.اودا صورةً هم جماع ده او معنیٰ هم جماع ده.

وَلَا يُشْتَرَطُ الْإِنْزَالُ فِي الْمَحَلَّيْنِ اعْتِبَارًا بِالِاغْتِسَالِ اوشرط نه دی انزال کیدل په دواړو لاروکې اعتبار کول په غسل سره

**تشریح:- عدم شرط الانزال لوجوب الکفارة**۞صاحب د هدایه رحمه الله فرمانی.چه د جماع په وجه د کفاره د وجوب لپاره انزال شرط نه دې.یعنی که روژه دار په قبل یا دُبر کې جماع اوکړه.نو کفاره به واجب وی.که انزال شوې وی.اوکه نه وی شوې.د کفاره د وجوب لپاره ادخال شرط دې.انزال شرط نه دې.

**دلیل القیاس**۞صاحب د هدایه رحمه الله د کفاره وجوب د غسل په وجب باندې قیاس کړی دی.په دې طریقه چې لکه څنګه ، ادخال فرج فی الفرج، سره غسل واجبیږی.اګرچه انزال نه وی شوې.دغه ډول بغیر د انزال څخه به کفاره هم واجب وی.

وَهَذَا لِأَنَّ قَضَاءَ الشَّهْوَةِ يَتَحَقَّقُ دُونَهُ او دا څکه چې قضا دشهوت ددې نه بغیر متحقق دې. وَإِنَّمَا ذَلِكَ شِبَعٌ او انزال خو موړوالیٔ دې

**حل اللغة**① شبع: مړیدل

**تشریح:- الاعتراض**۞اوس که دا سوال اوکړې شی.چه ،جماع بدون الإنزال، صورةً جماع ده.خو معنیٰ جماع نه ده.څکه چې دجماع په معنی کې د شهوت قضاء داخل ده.او بغیر د انزال نه د شهوت پوره کیدل نه متحقق کیږی.نو د جماع معنی د نه موجودیدلو په وجه دعدم جماع شبه پیدا شوه.اود شبه په وجه کفاره ساقطیږی.نو ،جماع بدون الإنزال، په صورت کې کفاره واجب کیدل نه دی پکار.او پاتې شو د غسل وجوب،نو دا په احتیاط باندې مبنی دې.

**الجواب**۞ ددې ځواب دادې.چه بغیر د انزال نه د شهوت نه پوره کیدل موږ نه منو.څکه چې قضاء د شهوت بغیر د انزال نه متحقق کیږی.البته په انزال سره مړیدل (دشهوت قلاریدل) هم ثابتیږی.نوهرکله چې دا ثابت شو.چه په قضاء د شهوت کې انزال ته هیڅ دخل نشته.نودا هم ثابت شو.چه بغیر د انزال نه دجماع معنی متحقق کیږی.اوهرکله چې بغیر د انزال نه دجماع معنیٰ متحقق شوه.نود عدم جماع شبه پاتې نشوه.اوهرکله چې شبه پاتې نشوه.نو کفاره به هم نه ساقطیږی.بلکه کفاره به ثابت وی.تاسو کله هم په دې غور نه دې کړې.که روژه دار په قصدسره یوه لقمه اوخوری.نو په ده به کفاره واجب وی.حالانکه په یوه لقمه سره مړیدل نه کیږی.نوهم دغه ډول د جماع په صورت کې د کفاره وجوب به د مړخت په حاصلولو(انزال) باندې موقوف نه وی.بلکه د شهوت په قضاء باندې به موقوف وی.اود شهوت د قضاء تحقق بغیر د انزال نه کیږی.نو بغیر د انزال نه جماع کولوسره به هم کفاره واجب وی.

**الدلیل الثانی لعدم وجوب الکفارة**۞د کفاره د وجوب لپاره د انزال په نه شرط کیدلو باندې صاحب د کفایه رحمه الله یو دلیل دابیان کړې دې.چه د حد واجب کاوه لپاره انزال شرط نه دې.یعنی که د یو فرج د بل په فرج کې ادخال موجود شو.نو حد به واجب وی.اګرچه انزال نه وی شوې.حالانکه حد صرف یو عقوبت او سزا ده.نوکفاره کوم چې عبادت او عقوبت دواړو ته کډ دې.ددې د وجوب لپاره به په درجه اولیٰ انزال شرط نه وی.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ: أَنَّهُ لَا تَجِبُ الْكَفَّارَةُ بِالْجِمَاعِ فِي الْمَوْضِعِ الْمَكْرُوهِ اوداامام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دې چې په مکروه ځائې کې کفاره په جماع سره نه واجبیږی اعْتِبَارًا بِالْحَدِّ عِنْدَهُ قیاس په حد باندې دده په نیز وَالْأَصَحُّ أَنَّهَا تَجِبُ لِأَنَّ الْجِنَايَةَ مُتَكَامِلَةٌ لِقَضَاءِ الشَّهْوَةِ او اصح داده چې کفاره به واجب وی څکه چې جرم پوره شوېه قضاء

دشهوت سره.

**الروايتان فی وجوب الكفارة بالدخول فی الدبر** ۞ ① دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دادې چه په دبر كي جماع (لواطت) كولوسره كفاره نه واجب كيږي. حضرت امام اعظم رحمه الله دا په وجوب حد باندې قياس كړې دې. يعني لكه څنګه چې په دې غيرفطری اوناخوښه حركت باندې حد نه واجبيږي. دغه ډول به په دې حركت سره د روژه كفاره هم نه واجبيږي. او علت مشتركه د جنايت كامله نه موجود كيدل دی. يعني دحد او كفاره دواړو د وجوب لپاره د جنايت كامله كيدل ضروري دی. او حضرت امام اعظم رحمه الله دا كامل جنايت نه دې شمار كړې. ځكه چې روغ تبيعت د ځناورتوب ددې كارنه نفرت كوی. ② اود حضرت امام اعظم رحمه الله دوهم روايت دادې. كه فاعل او مفعول دواړه روژه دار وی. نو په دواړو به كفاره واجب وی. هم دا دصاحبينو رحمهما الله قول دې. اوهم دا زيات صحيح دې. ځكه چې په دبر كي دننه دجماع په وجه هم چونكه شهوت پوره كيږي. په دې وجه دې صورت كي هم جنايت په كامله درجه موجود شو. اوجنايت كامله موجب د كفاره دې. نوپه دې صورت كي به هم كفاره واجب وی.

## د حيوان وطي كولو حكم

**وَلَوْجَامَعَ مَيْتَةً أَوْبَهِيمَةً فَلَاكَفَّارَةَ** وكه جماع ئې اوكړه دمړے ښځې يا ځاروی سره نوكفاره نشته **أَنْزَلَ أَوْلَمْ يُنْزِلْ** انزال اوشي اوكه او نشي. **خِلَافًالِلشَّافِعِي رَحِمَهُ اللهُ** په خلاف د امام شافعی رحمه الله **لِأَنَّ الْجِنَايَةَ تَكَامُلُهَا بِقَضَاءِ الشَّهْوَةِ فِي مَحَلٍّ مُشْتَهًى** نه ځكه چې جنايت كاملوالئ په قابل شهوت محل كي په پوره كاوه دشهوت سره دې **وَلَمْ يُوجَدْ** اوهغه اونه موندلې شو

**حل اللغة:** ① **تكامل:** پوره كيدل

**تشريح:- المذهبان فی وجوب الكفارة بوطی الحيوان** ۞ صورت د مسئلې دادې. كه روژه دار مړې ښځې يا د يوځناورسره جماع اوكړه. ① نو په ده كفاره واجب نه ده. كه دده انزال شوې وی. اوكه انزال ئې نه وی شوې. خوكه انزال ئې شوې وی. نو په ده به قضاء واجب وی. اوبغير د انزال ځخه به قضاء هم واجب نه وی.

② او امام شافعی رحمه الله فرمائی. چه په ده به كفاره واجب وی.

**دليل الشافعی رحمه الله** ۞ د امام شافعی رحمه الله دليل دادې. چه دكفاره د وجوب سبب داسې جماع وی. چه د كفارد جماع نه د بنديدلو صورت معدوم كونكی وی. او دلته كي داسې جماع موجود شوه. په دې وجه به كفاره واجب وی.

**دليل الحنفية رحمهم الله** ۞ او زمونږ دليل دادې. چه دكفاره سبب جنايت كامله دې. او جنايت كامل كيږي د شهوت په محل كي د شهوت په پوره كولوسره. او دلته كي د شهوت محل موجود نه دې. ځكه چې روغ تبيعت د مړې ښځې او ځناور سره د جماع كاوه نه نفرت كوی. نوكه چا داسې اوكړل. دا به ليونتوب او ډير زيات كم عقل توب وی. حاصل داچه په دې صورت كي كامل جنايت موجود نشو. اوهركله چې كامل جنايت موجود نشو. نو كفاره به هم واجب نه وی.

**ثُمَّ عِنْدَنَا كَمَا تَجِبُ الْكَفَّارَةُ بِالْوِقَاعِ عَلَى الرَّجُلِ تَجِبُ عَلَى الْمَرْأَةِ** بيا زمونږ په نيز څنګه چې واجبيږی كفاره په جماع كولوسره په سړی باندې دغه ډول په ښځه هم واجبيږی

**تشريح:- وجوب الكفارة علی المرءة** ۞ صاحب د هدايه رحمه الله فرمائی. چه په كومه جماع سره په سړی باندې كفاره واجبيږی. په ښځه به هم واجب وی. په دې شرط كه ښځې په رضا او شوق باندې كړې وی. او كه د ښځې سره په زور او اكراه سره جماع شوې وی. نو په ښځه به كفاره واجب نه وی. دغه ډول كه ښځه په ابتداء كي خو مكرهه وه. يعني په ابتداء كي خو زبردستئ سره شوې وه. خوچه په مينځ كي كله دې ته مزه راغله. نو په رضا شوق باندې پرته وه. نوپه دې صورت كي به هم په ښځه باندې كفاره واجب نه وی.



**وَقَالَ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللهُ فِي قَوْلٍ: لَاتَجِبُ عَلَيْهَا** امام شافعی رحمه الله په يوقول كي فرمائی چې په ښځه كفاره واجب نده **لِأَنَّهَا مُتَعَلِّقَةٌ بِالْجِمَاعِ وَهُوَفِعْلُهُ** ځكه كفاره د جماع سره متعلق ده او دغه دسړی فعل دې **وَإِنَّمَاهِيَ مَحَلُّ الْفِعْلِ** ښځه خو ددې فعل محل دې **وَفِي قَوْلٍ: تَجِبُ** اوپه يوقول كي واجب، **وَيَتَحَمَّلُ الرَّجُلُ عَنْهَا اعْتِبَارًا بِمَاءِ الْاِغْتِسَالِ** او سړې تحمل كوی ددې دطرفنه دلمبولو په اوبو قياس كول.

**تشريح:- القولان للشافعی رحمه الله** ① حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی. چه په ښځه به كفاره واجب نه وی. ځكه چې دكفاره تعلق دجماع سره دې. او جماع كول دسړی فعل دې. د ښځې فعل نه دې. ښځه خود جماع كولومحل دې. نوهركله چې جماع د سړی فعل دې. نو په سړی به كفاره واجب وی. په ښځه به واجب نه وی. ② د امام شافعی رحمه الله دوهم قول دادې. چه په جماع سره كفاره به په ښځه هم واجب وی. خود ښځې د اړخه به ئې سړې ادا كوی. اودا قول د غسل په اوبو باندې قياس شوې دې. مثلاً كه د شپې خاوند د خپلې ښځې سره جماع اوكړه. اود لامبلو اوبه په قيمت سره ملاويدلې. نود ښځې لپاره د لامبلو اوبه د سړی په ذمه دی.

**وَلَنَا قَوْلُهُ {مَنْ أَفْطَرَفِي رَمَضَانَ فَعَلَيْهِ مَاعَلَى الْمُظَاهِرِ}**[1] زمونږ دليل د نبی ﷺ ارشاد دې چې چا په رمضان كي افطار اوكړو په ده هغه دی كوم چې په مظاهر باندې دی **وَكَلِمَةُمَنْ تَنْتَظِمُ الذُّكُورَوَالْإِنَاثَ** اوكلمه دامن ښځو سړو دواړو لپاره شامله ده

**تشريح:- دلائل الاحناف رحمهم الله** او زمونږ ① دليل دا حديث دې. «من أفطر فی رمضان فعليه ما علی المظاهر» يعني كوم كس چې په رمضان كي افطار اوكړو. يعني روژه ئې ماته كړه. نو په ده هغه واجب دی. كوم چې په ظهار كونكی باندې واجبيږی. او په حديث كي لفظ د «من» سړی او ښځې دواړو ته ګډ دې. نود روژې ماتولوپه صورت كي به كفاره په سړی هم واجب وی. او په ښځه به هم واجب وی.

**وَلِأَنَّ السَّبَبَ جِنَايَةُ الْإِفْسَادِلَانَفْسُ الْوِقَاعِ** اوځكه چې دكفارې سبب دروژې ماتولو جرم دې نه كه خالی جماع **وَقَدْ شَارَكَتْهُ فِيهَا** او په دې كي دښځې سره هم شريكه

**تشريح:-** ② او دوهم دليل دادې. چه د كفاره د وجوب سبب د روژه فاسد كاوه جرم دې. نفس جماع نه دې. او په دې جرم كي دسړی سره ښځه هم برابره شريكه ده. نو لكه څنګه چې په سړی باندې كفاره واجب ده. دغه ډول به په ښځه هم واجب وی.

**وَلَايَتَحَمَّلُ لِأَنَّهَا عِبَادَةٌ أَوْعُقُوبَةٌ** او تحمل به ځكه نه وی چې كفاره عبادت دې يا سزا ده **وَلَاتَجْرِي فِيهَا التَّحَمُّلُ** اوپه دې كي تحمل نشی جاری كيدلې.

**تشريح:- الجواب من القول الثانی للشافعی رحمه الله** ۞ او پاتې شو د امام شافعی رحمه الله په خپل دوهم قول كي دا دليل، چه په ښځه باندې كفاره واجب ده. خوددې ادا كاوه بوجه به سړې برداشت كوی. نوددې ځواب دا دې. چه كفاره يا عبادت دې او يا عقوبت دې. او په دې دواړوكي نيابت نه جاری كيږی يعني داسې هم نه ده. چه دچا د اړخه ځوك فرض عبادت ادا كړی. نودا به اداشی. اوداسې هم نه ده. چه سزا په يوكس واجب

[1] قال الزيلعی رحمة الله قلت حديث غريب بهذا اللفظ والمصنف رحمة الله إستدل به ههنا علی أن الكفارة تجب علی المرأة كما تجب علی الرجل يعنی فی الجماع لأن معنی (من) تطلق علی المذكر والمؤنث خلاف للشافعی رحمة الله فی أحد قوليه وبمذهبنا قال أحمد والحديث لم أجده ولكن إستدل ابن الجوزی رحمة الله .فی التحقيق. لمذهبنا ومذهبه بما أخرجاه فی الصحيحين عن أبی هريرة ﷺ أن النبی ﷺ أمر رجلاً أفطر فی رمضان أن يعتق رقبة أويصوم شهرين متتابعين أو يطعم ستين مسكيناً (البخاری فی الصوم باب ۳۰ رقم ۱۹۳۶ ومسلم فی الصيام رقم ۸۳) ووجه أنه ﷺ علق التكفير بالإفطار وهو معنی صحيح حسن (نصب الرأية ۴۷۳/۲)_

وي.اودا دې بل څوك برداشت كړي. نو هر كله چې عقوبت او عبادت دوهم كس نه شي ادا كولې.نوكفاره د صوم كومه چې په ښځه باندې واجب شي.هغه به هم ښځه ادا كوي.سړي به ئې نه ادا كوي.

**د خوراك د څيز په خوړلو د قضاء اوكفاره وجوب**

**وَلَوْأَكَلَ أَوْشَرِبَ مَايَتَغَذَّىٰ بِهِ أَوْيَتَدَاوَيٰ بِهِ** اوكه وې خوړلو يا ئې اوڅښلو داسې څيز چې غذا يا دوائي پرې كولاى شي **فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ وَالْكَفَّارَةُ** نوپه ده قضا او كفاره دي.

**تشريح:- المذهبان في وجوب الكفارة بالاكل والشرب**① ❁مسئله داده.كه روژه دار د غذا يا د دوائي په طورڅه شي په قصد سره اوخوړلو.يا ئې اوڅښلو .نو په ده به قضاء اوكفاره دواړه واجب وي.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ: لَاكَفَّارَةَ عَلَيْهِ** او امام شافعي رحمه الله فرمائي چې پده كفاره نشته **لِأَنَّهَا شُرِعَتْ فِي الْوِقَاعِ بِخِلَافِ الْقِيَاسِ** په توبې سره دګناه پورته كيدو په وجه سره نوپه دې غير لپاره نشي قياس كيدلې **لِارْتِفَاعِ الذَّنْبِ بِالتَّوْبَةِ فَلَا يُقَاسُ عَلَيْهِ غَيْرُهُ** زمونږ دليل دادې چې دكفارې تعلق په رمضان كښې په طريقه د كمال سره

**تشريح:-** او امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه په ده به كفاره واجب نه وي.هم دا قول د امام محمد رحمه الله دې.

**دليله**❁د امام شافعي رحمه الله دليل دادې.چه د روژه په حالت كې جماع كولوسره د كفاره مشروعيت خلاف قياس ثابت دې.ځكه چې د توبه په وجه سره دګناه مرتفع كيدل د حديث نه ثابت دى.لكه چې د رسول الله ﷺ ارشاد دې. «التوبة تمحوا الحوبة» توبه ګناه ختموي.خوچه كله يو بانديچې د رمضان د روژې په حالت كې د خپلې ښځې سره جماع اوكړه.او خپيمانه او شرمنده په دربار رسالت كې حاضر شو.نودده د توبه او ندامت تقاضا هم دغه ده.چه دده دا ګناه لرې شي.خوددې باجود رسول الله ﷺ په ده باندې د صوم كفاره واجب كړله.نو معلومه شوه.چه د كفاره وجوب خلاف قياس دې.اوكوم څيز چې خلاف قياس ثابت وي.په هغې بل شى نشى قياس كيدلې.په دې وجه به د رمضان په روژه كې په خوراك څكاك سره كفاره واجب نه وي.

**وَلَنَا أَنَّ الْكَفَّارَةَ تَعَلَّقَتْ بِجِنَايَةِ الْإِفْطَارِ فِي رَمَضَانَ عَلَىٰ وَجْهِ الْكَمَالِ** دافطار دجرم سره دې **وَقَدْ تَحَقَّقَتْ** اودغه متحقق دې اود آزادئى په واجبولو سره دكفارې كولونه

**دليل الاحناف** رحمهم الله ❁او زمونږ دليل دادې.چه د كفاره تعلق د افطار جنايت سره دې.كوم چې په رمضان كې على وجه الكمال،موجود شي.او جنايت كامله چې څنګه د جماع په صورت كې موجود وي.دغه ډول د خوراك څكاك په صورت كې هم موجود وي.نوځكه به د خوراك څكاك په صورت كې هم كفاره واجب وي.

**وَبِإِيْجَابِ الْإِعْتَاقِ تَكْفِيرًا عُرِفَ أَنَّ التَّوْبَةَ غَيْرُ مُكَفِّرَةٍ لِهٰذِهِ الْجِنَايَةِ** معلومه شوه چې توبه ددې جرم كفاره نه ده.

**تشريح:- الجواب عن دليل الشافعي** رحمه الله ❁ دا عبارت د امام شافعي رحمه الله د دليل ځواب دې.د ځواب حاصل دادې.چه د رمضان په روژه كې د جماع جنايت په توبه سره مرتفع كيدل، مونږ نه منو.ځكه چې شريعت ،اعتاق رقبه، ددې جنايت كفاره واجب كړې ده.نوكه توبه ددې جنايت لپاره مكفر وې.نو د كفاره په طوربه اعتاق رقبه نه واجب كيدلې.نو ثابته شوه.چه دا جنايت صرف په توبه سره نه لرې كيږي.لكه د غلا او زنا جنايتونه چې په توبه سره نه لرې كيږي.بلكه په حد سره لرې كيږي.او هركله چې د رمضان په روژه كې دجماع كولوجنايت په كفاره سره نه لرې كيږي.نو دكفاره ثبوت خلاف قياس نشو.بلكه د قياس مطابق شو.او هركله چې دا د قياس مطابق دې.نو په دې به بل شى قياس كول هم جائز وي.يعنى د رمضان په روژه كې د خوراك څكاك په صورت كې د كفاره وجوب هم په دې باندې قياس كيدلې شي.

**د روژې كفاره**

**ثُمَّ قَالَ (وَالْكَفَّارَةُ مِثْلُ كَفَّارَةِ الظِّهَارِ)** بيانې وئيلى دى چې درمضان كفاره د كفارې دظهار په شان ده.



**تشريح:- كفارة الصوم**❁امام قدوري رحمه الله فرمائي.چه د روژې كفاره، د ظهار د كفاره په شان دې.اود ظهار كفاره داده.چه مظاهر يعنى ظهار كونكې يو رقبه ازاد كړي.اوكه ددې قدرت نه وي.نو بلاناغه دې دوې [دوه] مياشتې روژې اونيسى.اوكه داهم توان نه وي.نو شپيتو مسكينانو ته د خوراك وركړي.

د اتيشتمې سيپارې په رومبئ ركوع كې دى [وَالَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مِّنْ قَبْلِ أَنْ يَّتَمَآسَّا ۭ ذٰلِكُمْ تُوْعَظُوْنَ بِهٖ ۭ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ۝ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَّتَمَآسَّا ۚ فَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا ۭ ذٰلِكَ لِتُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ۭ وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ۭ وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ أَلِيْمٌ ۝] يعنى كوم خلګ چې مور وواېي خپلوښځوته، بيا كول اوغواړي هغه كوم ئې چې وئيلي دى.نو ازاد دې كړي يوه رقبه مخكې ددې نه چې يوبل ته لاس يوسى.په دې به تاسوته نصيحت وى.او الله خبر اخلى دهغه كوم چې تاسو كوئ.بياچه څوك اونه مومى.نو روژې دى دوې [دوه] مياشتې لګاتار ،مخكې ددې نه چې يوبل ته لاس يوسى.بياچه څوك داسې اونكړې شي.نو خوراك وركول دى.شپيتو محتاجو ته.بهرحال كفاره د صوم، بالكل د ظهار مطابق ده.يعنى په ذكرشوى درې څيزونو(د غلام آزادول،دوې [دوه] مياشتې روژې،د شپيتو مسكينانو خوراك)كې به هم د هغه ترتيب لحاظ ساتلې شي.كوم چې په كفاره د ظهار كې ذكر دې.يعنى غلام دې آزاد كړي.كه په دې قدرت نه وي.نوپه دې صورت كې دې دوې [دوه] مياشتې لګاتار بلاناغه روژې اونيسى.اوكه په دې هم قدرت نه وي.نوپه دې صورت كې دې شپيتو مسكينانوته خوراك وركړي.

**لِمَا رَوَيْنَا** دهغه حديث په امله سره كوم چې مونږ روايت كړو

**تشريح:- مستدل الاحناف** رحمهم الله ❁زمونږ مستدل هغه حديث هم دې.كوم چې په تيره شوې مسئله كې ذكر دې. يعنى «من أفطر فى رمضان فعليه ما على المظاهر» په دې حديث كې هم د صوم كفاره د ظهار په كفاره باندې قياس شوې ده.اود ظهار په كفاره ترتيب او تتابع دواړه شرط دى.نود صوم په كفاره كې به هم دواړه شيان (څيزونه ) شرط وى.

**وَلِحَدِيْثِ الْأَعْرَابِيِّ** اوحديث دصحرائى په امله سره. **فَإِنَّهُ قَالَ: يَارَسُوْلَ اللّٰهِ هَلَكْتُ وَأَهْلَكْتُ**} چه صحرائى اووئيل يارسول الله ﷺ زه تباه شوم اوماتباه كړه **فَقَالَ: مَاذَا صَنَعْتَ قَالَ وَاقَعْتُ امْرَأَتِيْ فِيْ نَهَارِ رَمَضَانَ مُتَعَمِّدًا** دوى ﷺ ووئيل داسې څه كار دې اوكړو.هغه اووئيل چې درمضان په ورځ مې دخپلې بى بى سره په قصد جماع اوكړه، **فَقَالَ أَعْتِقْ رَقَبَةً** نو ووئيل دوى ﷺ يو ګردن آزاد كړه **فَقَالَ لَا أَمْلِكُ إِلَّا رَقَبَتِيْ هٰذِهِ** هغه اووئيل چې زه خو صرف دخپل ګردن مالك يم. **فَقَالَ: صُمْ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ** دوى ﷺ اوفرمائيل چې دوې [دوه] مياشتې بلا ناغه روژې اونيسى **فَقَالَ: وَهَلْ جَاءَنِيْ مَا جَاءَنِيْ إِلَّا مِنَ الصَّوْمِ** هغه عرض اوكړوچه څه راغلى دى دغه د روژې په امله سره دى. **فَقَالَ: أَطْعِمْ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا** دوى ﷺ اوفرمائيل چې شپيته مسكينانو له خوراك وركړه **فَقَالَ: لَا أَجِدُ** هغه عرض اوكړو نه ئې مومم. **فَأَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ وَسَلَّمَ أَنْ يُّؤْتٰى بِفَرَقٍ مِنْ تَمْرٍ** نو نبى عليه السلام حكم اوكړو چې يوفرق چوارې دې راوړې شى **وَيُرْوٰى بِعَرَقٍ فِيْهِ خَمْسَةَ عَشَرَ صَاعًا** په بعضو روايتونوكې دفرق په ځاى عرق دې په كوم كې چې پنځلس صاع خرما وى. **وَقَالَ فَرِّقْهَا عَلَى الْمَسَاكِيْنِ** دوى ﷺ اوفرمائيل چې دا په مسكنيانو ويش كړه. **فَقَالَ: وَاللّٰهِ مَا بَيْنَ لَابَتَيِ الْمَدِيْنَةِ أَحَدٌ أَحْوَجُ مِنِّيْ وَمِنْ عِيَالِيْ** هغه عرض اوكړو په الله ﷻ قسم دمدينې د دواړو اړخونوپه مينځ كې زما نه او زما داهل عيال نه محتاجه نشته دې. **فَقَالَ: كُلْ أَنْتَ وَعِيَالُكَ، يُجْزِيْكَ** نودوى ﷺ ووئيل ښه نو ته اوستا اهل دې اوخورى دا لره كافى دى. **وَلَا يُجْزِيْ أَحَدًا بَعْدَكَ**[1] ستا نه روسته به بل چالره كافى نه وى.

[1] من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه البخارى فى الصوم باب ۳۰ ومسلم فى الصيام رقم ۸۱ وأبوداود فى الصوم باب ۳۷ رقم ۲۳۹۰ والترمذى فى الصوم باب ۲۸ رقم ۷۲۴ وابن ماجه فى الصيام باب ۱۴ رقم ۱۶۷۱ والدارمى فى الصوم باب ۱۹ وأحمد

**حل اللغة:** ① **هلكت:** مجرد دې يعنی پخپله هلاك شو ② **اهلكت:** مزيد دې بل نی هلاك كړو ③ **واقعت:** جماع كول ④ **متتابعين:** وارپه وار ⑤ **فرق:** ټوكرئی ⑥ **فرقها:** ویش كول ⑦ **عيال:** ټبر، خاندان ⑧ **يجزيك:** كافی كيدل

**تشريح:- دليل عدم التخيير**۞ زمونږ دليل د باندېچی حديث دې. علامه ابن الهمام د كتب سته په حواله سره په دې الفاظوسره ذكر كړې دې. ﴿عن ابي هريرة﵁ قال أتی رجل النبی ﷺ قال هلكت قال ماشانك قال وقعت علی إمرأتی فی رمضان قال فهل تجد رقبة تعتقها قال لا، قال فهل تستطيع أن تصوم شهرين متتابعين قال لا، قال فهل تستطيع أن تطعم ستين مسكيناً قال لا، قال إجلس فأتی النبی ﷺ بعرق فيه تمر فقال تصدق به قال علی أفقر مني يارسول الله ﷺ فوالله مابين لابتيها يريد الحرتين اهل بيت أفقر من أهل بيتی فضحك ﷺ حتی بدت ثناياه وفی لفظ أنيابه وفی لفظ نواجذه ثم قال خذه فأطعمه أهلك وفی لفظ أبي داؤد زاد الزهری وإنما كان هذا رخصة له خاصة﴾ يعنی حضرت ابوهريره﵁ فرمائی. چه يوكس په دربار رسالت كي راغې. چه اې د الله رسوله ﷺ ازه خو برباد شوم. رسول الله ﷺ اوفرمائيل. څه اوشو؟ هغه اووئيل. چه درمضان په ورځ مې خپلې ښځې سره جماع اوكړه. رسول الله ﷺ اوفرمائيل. رقبه شته چې ته هغه آزاد كړې؟ هغه اووئيل نه. رسول الله ﷺ اوفرمائيل. پيوسته د دوې [دوه] مياشتو روژو نيولو توان شته؟ هغه اووئيل. نه. رسول الله ﷺ اوفرمائيل. چه شپيتو مسكينانو ته د خوراك ور كاوه توان شته؟ هغه اووئيل. نه. رسول الله ﷺ ووئيل كينه. نو جناب رسول الله ﷺ يوه ټوكرئ چې دې ته ،عرق، وئيلې شی. راؤړله. په هغې كي كجورې وې. رسول الله ﷺ اوفرمائيل. دا صدقه كړه. هغه اووئيل. اې د الله رسوله ﷺ! آيا زمانه هم زيات څوك محتاج شته؟ په خدائې قسم! ددې دوې [دوه] تورو كاڼړو والا زمكو په مينځ كي يعنی په مدينه كي هيڅ يوه كورنئ زما د كورنئ نه زياته محتاجه نه ده. رسول الله ﷺ (چه دا خبره واؤريدله) نو وې خندل. تردې چې د نبی كريم ﷺ مخكنی غاښونه ښكاره شو. او په يو روايت كي انياب (غاښونه) او په يو روايت كي د ،نواجذ، لفظ دې. بيا نبی كريم ﷺ اوفرمائيل. چه واخله. او خپلې ښځې او ماشومانو باندې اوخوره. اود ابوداؤد په روايت كي امام زهری رحمه الله دا زيادت كړې دې. چه دا رخصت خاص طور هم د هغه د پاره دې. هم دا روايت په لږشان لفظی تغير سره صاحب د هدايه ذكر كړې دې. چه دهغې ژباړه د عبارت ژباړه سره تيره شوې ده.

| |
|---|
| **وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ فِي قَوْلِهِ يُخَيَّرُ** اوپه امام شافعی رحمه الله باندې حجت دې دده په دې قول كښې چې دروژه ماتونكی اختيار دې |

**تشريح:- مذهب الشافعی رحمه الله**۞ حضرت امام شافعی رحمه الله په دې درې واړوڅيزونوكي اختيار وركوی. يعنی كه څوك په غلام ازادولو باندې قدرت لری. نودې په روژو سره كفاره اداكولې شی. او په غلام آزادولو اود روژو په نيولو باندې د قدرت باوجود مسكينانوته په خوراك وركولوسره كفاره اداكولې شی.

**تسامح صاحب الهداية**۞ حضرت مولانا عبدالحئ رحمه الله د هدايه په حاشيه كي ليكلی دی. چه امام شافعی رحمه الله په ذكر شوی درې څيزونو په مينځ كي د تخيير قائل نه دې. بلكه هم د هغه ترتيب قائل دې. كوم چې د ظهار دكفارة په موقع باندې په قرآن كي ذكر دې. لكه څنګه چې زمونږ مذهب دې. دغه ډول دعدم تتابع قائل امام مالك رحمه الله نه دې. بلكه ابن ابی ليلیٰ دې. او ابن ابی ليلی په دې څيزونو كي د تخيير قائل دې. حاصل داچه دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله د مذهب په مطابق امام شافعی او امام مالك رحمه الله هم د ترتيب او تتابع قائل دی. البته ابن ابی ليلیٰ نه د ترتيب قائل دې. اونه د تتابع قائل دې. بلكه د تخيير اود عدم تتابع قائل دې.

**دليل التخيير**۞ بهرحال كوم حضرات چې د تخيير قائل دی. د هغوی مستدل د حضرت سعد بن ابی وقاص حديث دې. حديث دادې. ﴿أنّ رجلاً سأل النبی ﷺ فقال إنی أفطرت فی رمضان فقال إعتق رقبة أو صم شهرين أو أطعم ستين

---

فی المسند(۲/۵۱۶) قال الزيلعی رحمة الله أما قوله ((تجزنک ولاتجزئ أحداً بعدک)) لم أجده فی شی من طرق الحديث ولا رواية ) نصب الرأية (۲/۴۷۶)_



مسكيناً﴾ يعنی يوكس د رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوكړو. او وې وئيل. چه ماپه رمضان كي افطار كړې دې. نبی كريم ﷺ اوفرمائيل. چه يوه رقبه ازاده كړه. يا دوې [دوه] مياشتې روژې اونيسه. يا شپيتو مسكينانو ته خوراك وركړه. په دې حديث كي ذكر شوی درې واړه شيان (څيزونه) په لفظ د ،او، سره ذكر شوی دی. او لفظ د ،او، دتخيير لپاره راځی. نودې نه معلومه شوه. چه د كفاره ادا كاوه لپاره ترتيب شرط نه دې. بلكه چې كوم هم ادا كوی. كفاره به ادا شی. اوكوم حضرات چې دعدم تتابع قائل دی. هغوی د كفاره روژې د قضاء په روژو باندې قياس كړی دی. يعنی لكه څنګه چې درمضان په قضاء روژوكي تتابع او تسلسل شرط نه دې. دغه ډول د كفاره په روژوكي هم تتابع شرط نه دې.

**الجواب عن دليل التخيير**۞ اود تخيير د قائلينو د اړخه پيش شوې دحضرت سعدبن ابی وقاص﵁ د حديث ځواب دادې. چه په دې حديث كي هغه شيان (څيزونه) بيانول مقصود دی. په كومې چې كفاره ادا كيږی. ترتيب يا تخيير بيانول مقصود نه دی. اود عدم تتابع د قائلينو د قياس ځواب دادې. چه قياس د نص په مقابله كي فاسد دې.

| |
|---|
| **لِأَنَّ مُقْتَضَاهُ التَّرْتِيبُ** ځكه چې دحديث مقتضاء ترتيب دې |

**الاستدلال بالاية**۞ ددې روايت نه يوه خبره خودا معلومه شوه. چه اعتاق رقبه، دوې [دوه] مياشتې روژې، او شپيتو مسكينانو ته خوراك ور كاوه په مينځ كي اختيار نه دې وركړې شوې. بلكه هم دا ترتيب ضروری دې. كه دغلام په آزادولو باندې قدرت لری. نو غلام آزادول ضروری دی. اوكه په دې باندې قدرت نه وی. نو دوې [دوه] مياشتې پيوسته روژې ساتل ضروری دی. اوكه په دې باندې هم قدرت نه وی. نوشپيتو مسكينانو ته به خوراك وركوی. دويمه خبره دا معلومه شوه. چه په دوې [دوه] مياشتو روژوكي تتابع او تسلسل شرط دې. ځكه چې په حديث كي د شهرين نه روسته د متتابعين لفظ هم موجود دې.

| |
|---|
| **وَعَلَى مَالِكٍ فِي نَفْيِ التَّتَابُعِ لِلنَّصِّ عَلَيْهِ** اوپه امام مالك حجت دې د تتابع په نفی كي ځكه چې تتابع منصوص دې. |

**مذهب مالك رحمه الله**۞ اوامام مالك رحمه الله د روژو نيولو په صورت كي دتتابع (لګاتار نيولو) په شرط كي اختلاف كوی. يعنی ددوی په نيز دوې [دوه] مياشتې روژې لګاتار واجب نه دی. بلكه بغير د تسلسل نه ئې كه دوې [دوه] مياشتې روژې اونيولې. بيا به هم كفاره اداشی. نو زمونږ دليل د دوی خلاف هم حجت دې.

### د فرج نه علاوه په بل ځائې كې په دخول سره انزال

| |
|---|
| **وَمَنْ جَامَعَ فِيمَا دُونَ الْفَرْجِ فَأَنْزَلَ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ** او چا چې جماع اوكړه په غير فرج كي نو انزال ئې اوشو نوپده باندې قضا ده. **لِوُجُودِ الْجِمَاعِ مَعْنًى** د امله د موندو دجماع نه معنی. **وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ** اوكفاره پرې نشته **لِانْعِدَامِهِ صُورَةً** دې صورتاً دجماع معدوم كيدو په امله سره. |

**تشريح:- وجوب القضاء دون الكفارة بالانزال بمادون الفرج**☆ د فرج نه مراد قبل او دبر دی. اوس مطلب داشو. كه د قبل او دبر نه علاوه كي مثلاً په پتونانو كي يا په نس كي د روژې په حالت كي ذكر استعمال كړې شو. او انزال اوشو. نو په ده به قضاء واجب وی. كفاره به واجب نه وی. قضاء خو به ځكه واجب وی. چه معنی جماع موجود شوه. او كفاره به ځكه واجب نه وی. چه صورةً جماع نه ده موجود شوې. ځكه چې دصورةً جماع لپاره ادخال د ،فرج فی الفرج، ضروری دې. اودا نه دې موجود شوې.

### د رمضان نه علاوه په نورو روژوكې عدم كفاره

| |
|---|
| **وَلَيْسَ فِي إِفْسَادِ صَوْمٍ غَيْرِ رَمَضَانَ كَفَّارَةٌ** اونشته دې درمضان نه سوې دبلې روژې په ماتولو باندې كفاره. |

**تشريح:- عدم وجوب الكفارة فی افساد صوم غير رمضان**☆ **مسئله:** كه په غير رمضان كي روژه اونيسی. او په قصد سره ئې ماته كړی. نودې په وجه به په ده باندې كفاره واجب نه وی.

لِأَنَّ الْإِفْطَارَ فِي رَمَضَانَ أَبْلَغُ فِي الْجِنَايَةِ ځکه چې رمضان کې روژه ماتول لوئې جرم دې. فَلَا يَلْحَقُ بِهِ غَيْرُهُ نو د دې سره غير لره نشي لاحق کولې.

**تشریح:- دلیله**۞دلیل دادې چه په رمضان کې روژه ماتول ډیر لوې جرم دې. په نسبت د دې چې په غیر رمضان کې ماته کړې شي. ځکه چې په رمضان کې د روژه ماتولو په صورت کې دوې [دوه] جنایتونه دي. یو جنایت علی الصوم، دوهم جنایت علی شهر رمضان، او په غیر رمضان کې صرف یو جنایت دې. یعنی جنایت علی الصوم. بهرحال په رمضان کې د روژه ماتولو جنایت اقوی دې. او په غیر رمضان کې د روژه ماتولو جنایت ادنی دې. او په اقوی کې دننه په حکم ثابتولو سره په ادنی کې د دې حکم ثابتول نه لازمیږي. په دې وجه د کفاره د ثبوت حکم په رمضان کې دننه د روژې ماتولو سره متعلق کيږي. خو په غیر رمضان کې دا حکم نه ثابتيږي. او د رمضان روژه ماتولو سره کفاره خلاف قیاس د نص نه ثابت ده. ځکه به په دې باندې د نورو روژو ماتولو قیاس نشي کيدلې.

### په دوائي وغیره خوړلو د روژې فساد

وَمَنِ احْتَقَنَ أَوِ اسْتَعَطَ أَوْ أَقْطَرَ فِي أُذُنِهِ أَفْطَرَ او چا چې حقنه اوکړه یا ئې پزه کې دوائی واچوله یائې په غوږ کې دوائی واچوله نو روژه ئې ماته شوه.

**تشریح:- فساد الصوم بالتداوی دون الکفارة**۞مسئله: که روژه دار حقنه اوکړه. یعنی د ډک اودس ماتې په لاره ئې دننه دوائی اورسوله. یائې د پوزې په ذریعه دوائی اورسوله. یا په غوږ کې دوائی او څسولې شوه. نو په دې درې واړو صورتونو کې به په هرصورت کې روژه ماتیږي.

لِقَوْلِهِ ﷺ {الْفِطْرُ مِمَّا دَخَلَ} ([1]) ځکه چې د نبی ﷺ ارشاد دې چې فطر په دې خلیدو سره دې وَلِوُجُودِ مَعْنَى الْفِطْرِ او د فطر د معنا موندو په امله سره وَهُوَ وُصُولُ مَا فِيهِ صَلَاحُ الْبَدَنِ إِلَى الْجَوْفِ او دغه رسیدل د دې سې شی دی په کوم کې چې د بدن بهتری ده خیټې ته (وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ) لِانْعِدَامِهِ صُورَةً او کفاره پرې نشته ځکه چې صورتًا دخول معدوم دې.

**تشریح:- دلیله**۞دلیل دادې چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی. ﴿أفطر مما دخل ولیس مما خرج﴾ یعنی د څه شی د دننه په نس کې تللو سره روژه ماتیږي. او په وتلو سره نه ماتیږي. دوهم دلیل دادې چه په ذکرشوی صورتونو کې د افطار معنی موجود ده. ځکه چې د افطار معنی ده. یو شی د بدن د نفع لپاره معده او ګیډې ته رسول.

### په غوږونوکې اوبه داخلیدل

وَلَوْ أَقْطَرَ فِي أُذُنِهِ الْمَاءَ أَوْ دَخَلَهُ لَا يَفْسُدُ صَوْمُهُ او که پخپلو غوږونوکې ئې اوبه او څڅولې یا پکې داخلې شوی نو نه فاسدوی روژه د ده لِانْعِدَامِ الْمَعْنَى وَالصُّورَةِ د امله د نشتوالی د معنا او صورت نه. بِخِلَافِ مَا إِذَا دَخَلَهُ الدُّهْنُ په خلاف د هغې چې تیل ئې پکې داخل کړل

**تشریح:- فساد الصوم بالتقطیر فی الاذن**۞مسئله: که روژه دار په خپلو غوږونوکې اوبه او څسولې. یا اوبه په خپله په غوږونوکې داخل شوې. په دې طریقه چې د دریاب نه په اوختلوکې اوبه په غوږونوکې لاړلې. نو په دې دواړو صورتونوکې به روژه فاسد نه وی. ځکه چې فطر نه معنی موجود دې. او نه صورة، معنی خو ځکه موجود نه دې. چه د بدن د اصلاح لپاره څه شی دننه نه دې رسولې شوې. او صورة ځکه نه دې. چې یو څیز په خوله کې اچول او تیرول نه دی موجود شوی. نو افطار چې هرکله نه معنی شو. او نه صورة. نو روژه به هم فاسد نه وی. خو که په غوږ کې ئې تیل داخل کړل. نو افطار به وی. ځکه چې په تیل اچولو سره چونکه د بدن اصلاح

[1]) من حدیث عائشة ﵂ أخرجه ابو یعلی الموصلی فی مسنده (۴۵۴/۲) وکذا أخرجه الهیثمی رحمة الله فی مجمع الزوائد)۔



مقصود ده. په دې وجه معنی افطار موجود شو.

### د خیټې یا دماغو زخم ته دوائې رسیدل

وَلَوْ دَاوَى جَائِفَةً أَوْ آمَّةً بِدَوَاءٍ که علاج ئې اوکړو د خیټې یا دماغو د زخم په څه دوائې سره فَوَصَلَ إِلَى جَوْفِهِ أَوْ دِمَاغِهِ ([1]) نو هغه نس یا دماغو ته اورسیدو أَفْطَرَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ نوماته شوه. دامام صاحب ﵀ په نیز، وَالَّذِي يَصِلُ هُوَ الرَّطْبُ او کومه چې رسیدلې ده دغه لنده دوائی ده

**حل اللغة*** ①**جائفه**: د خیټې د زخم دارو ②**آمة**: د دماغو زخم

**تشریح:- المذهبان فی فساد الصوم بتداوی جائفة او امة**☆صورت د مسئلې دادې چه روژه دار په جائفه یعنی د خیټې په زخم کې یا د سر په زخم کې لنده دوائی واچوله. او هغه خوره شوه. او ګیډې یا دماغوته اورسیدله. نو د حضرت امام ابوحنیفه ﵀ په نیز د ده روژه فاسد شوه.

وَقَالَا: لَا يُفْطِرُ ([1]) او صاحبین ﵉ وائی چې نه ده ماته. لِعَدَمِ التَّيَقُّنِ بِالْوُصُولِ، د امله د عدم یقین نه په رسید باندې لِانْضِمَامِ الْمَنْفَذِ مَرَّةً وَاتِّسَاعِهِ أُخْرَى ځکه چې لار کله بندوی او کله آزاده وی كَمَا فِي الْيَابِسِ مِنَ الدَّوَاءِ لکه په اوچه دوائی کې چې وی.

**حل اللغة*** ① **انضمام**: بندیدل ② **المنفذ**: لار، سوړه ③ **اتساع**: ګنجائش

**تشریح:-** اود صاحبینو ﵉ په نیز فاسد نشوه. دلیل دادې چه د زخم دننه اړخ د ګیډې یا دماغو پورې د دوائی رسیدلو لاره خو کله بنده وی. او کله کلاؤ وی. نو دننه پورې د دوائی رسیدلو یقین نشته. او هرکله چې یقین نشته. بلکه شك دې. او د شك په وجه سره روژه نه فاسدیږي. په دې وجه به په دې صورت کې روژه فاسد نه وی. لکه څنګه چې د اوچې دوائی اچولو په صورت کې روژه نه فاسدیږي.

وَلَهُ أَنَّ رُطُوبَةَ الدَّوَاءِ تُلَاقِي رُطُوبَةَ الْجِرَاحَةِ د امام صاحب ﵀ دلیل دادې چې د دوائې لوندوالې ملاؤ شی د رطوبت د زخم سره فَيَزْدَادُ مَيْلًا إِلَى الْأَسْفَلِ فَيَصِلُ إِلَى الْجَوْفِ. نو لاندې اړخ ته ئې تلل زیات شی. نو اورسی خیټې ته

**تشریح:- دلیل ابی حنیفه ﵀**۞د امام ابوحنیفه ﵀ دلیل دادې. چه د ګیډې یا د سر په زخم کې اچولې شوې دوائی د خیټې یا دماغو پورې د رسیدلو یقینی علم خو متعذر دې. ځکه چې دا یو باطنی شی دې. خو ښکاره هم داده. چه هرکله د دوائی رطوبت (لوندوالې) د زخم رطوبت سره ملاؤشی. نو دننه اړخ ته به د دې په میلان کې زیاتوالې کیږي. او هرکله چې دننه اړخ ته په میلان کې زیاتوالې اوشو. نو دا به په یقین سره خیټې او دماغوته دننه رسیږي. او هرکله چې خیټې یا دماغوته دننه اورسیدل. نو روژه به فاسد وی.

بِخِلَافِ الْيَابِسِ په خلاف د اوچې نه لِأَنَّهُ يُنَشِّفُ رُطُوبَةَ الْجِرَاحَةِ ځکه چې دغه د زخم رطوبت راکاږی فَيَنْسَدُّ فَمُهَا نو بندولې به شی خوله د هغې

**حل اللغة*** ① **ینشف**: جذب کیدل ② **ینسد**: بندیدل

**تشریح:- الجواب عن قیاس الصاحبین ﵉**۞د دې په خلاف اوچه دوائی چې کله دا په زخم باندې واچولې شی. نو دا د زخم رطوبت خپل ځان ته جذب کوی. او د زخم خوله بنده وی. او هرکله چې د زخم خوله بنده شوه. نو په نس کې دننه د دوائی رسیدلو امکان پاته پاتې نشو. په دې وجه د اوچې دوائی اچولو په صورت کې به روژه فاسد نه وی. او لنده دوائی به په اوچه دوائی باندې قیاس کول هم ټیك نه وی.

[1]) القول الراجح هو قول أکثر المشائخ ﵏ (لاقول ابی حنیفة ولا قول الصاحبین بل التفصیل) أی أن العبرة للوصول إلى الجوف والدماغ کذا فی ردالمحتار (۱۱۲/۲) والعنایة (۲۶۶/۲) نقلاً عن القول الراجح (۹۸/۱)۔

## د ذکر په سر کې دوائي اچول

وَلَوْ أَقْطَرَ فِي إِحْلِيلِهِ لَمْ يُفْطِرْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ (۱) اوکه د ذکر په سوري کي ئي دوائي اوڅڅوله نونه ماتيږي نیز دامام صاحب رحمه الله. وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: يُفْطِرُ او فرمائي ابويوسف رحمه الله چي ماتيږي. وَقَوْلُ مُحَمَّدٍ مُضْطَرِبٌ فِيهِ او قول د محمد رحمه الله په دي کي مضطرب دي

**حل اللغة:** ① احليل: د ذکر سوری ته وائی

**تشریح:- المذهبان فی فساد الصوم بالتقطیر فی الاحلیل** ① مسئله داده.که روژه دار د خپلو متیازو د خانې په سوره کي دوائي واچوله. ① نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به روژه فاسد نه وي. ② اود امام ابویوسف رحمه الله په نیز به فاسد وي.پاتي شو د امام محمد رحمه الله قول نو دا مضطرب دي.په مبسوط کي ذکر دي.چه امام محمد رحمه الله د امام ابوحنیفه رحمه الله سره دي.او امام طحاوی رحمه الله ذکر کړی دی.چه د امام ابویوسف رحمه الله سره دي.

فَكَأَنَّهُ وَقَعَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ أَنَّ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجَوْفِ مَنْفَذًا، گویا په نیز د امام ابویوسف رحمه الله دا ثبوت شوی چي دذکر او خیټي په مینځ کي لار ده وَهٰذَا يَخْرُجُ مِنْهُ الْبَوْلُ پدي وجه راوځی ددي نه بول وَوَقَعَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّ الْمَثَانَةَ بَيْنَهُمَا حَائِلٌ اود امام صاحب رحمه الله په نیز دا ثبوت شو چي ددوی په مینځ کي مثانه حائل ده. وَالْبَوْلُ يَتَرَشَّحُ مِنْهُ اوتش بول ددي نه څاخي

**حل اللغة:** ① وقع: واقع کیدل، ثابت کیدل ② منفذ: سوره

**تشریح:- بناء الاختلاف**⊛علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه ددي اختلاف بنا (بنیاد) په دي باندي دي.چه د متیازو د خانې د سوري اود خیټي ترمینځه څه داسي لاره شته اوکه نشته.چه په هغي سره څه شی داخل کړي شی.حضرت امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه د سوري او خیټي ترمینځه داسي لاره موجود ده.او دلیل د دي دادي.چه بولي د دننه ارخ نه هم په دي لاري راوځی.اوکه هیڅ لاره نه وي.نو بولي به څنګه راوتلي.نوهرکله چي د خیټي اود ذکر د سوري په مینځ کي لاره موجود ده.نو دوائی کومه چي د ذکر په سوره کي اچولي شوي ده.هغه به ګیډي ته اورسي.او خیټي ته د څه شی د بدن د اصلاح لپاره رسول مفسد د صوم دی.نو په دي سره به هم روژه فاسد شی.کله څنګه چي په حقنه سره فاسدیږی.اوحضرت امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله فرمائی.چه د میتازو د خانې د سوري او خیټي په مینځ کي مثانه حائل ده.او پاتي شو.د متیازو وتل.نو هغه ددي نه څاخي.نوهرکله چي د امام صاحب رحمه الله د تحقیق مطابق د خیټي او سوري په مینځ کي مثانه حائل ده.نو د ذکر په سوره کي اچولي شوي دوائی به خیټي ته نشی رسیدلي.او هرکله چي خیټي ته نشی رسیدلي.نو روژه به هم فاسد نه وي.

وَهٰذَا لَيْسَ مِنْ بَابِ الْفِقْهِ اودا دفقهي دباب نه نه ده.

**تشریح:- محاکمة صاحب الهدایه رحمه الله بین المذهبین**⊛علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه د ګیډي او د ذکر د سوري ترمینځه د لاري موجود کیدل یا نه کیدل د فقه مسئله نه ده.بلکه ددي تعلق د ډاکټرانو د علم ،تشریح الأبدان، سره دي.په دي وجه به په دي مسئله کي هم دوی ته رجوع کیږی.که ډاکټران اووائی.چه د خیټي اود ذکر د سوري په مینځ کي لاره شته.نود صوم فاسد کیدلوحکم به لګولي شی. لکه څنګه چي د قاضي ابویوسف رحمه الله مذهب دي.اوکه اووائی.چه لاره نشته.نود عدم فساد حکم به لګولي شی.لکه څنګه چي د امام الهمام قدوې ادوه الانام سیدناحضرت امام اعظم رحمه الله مذهب دي.

(۱) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار (۱۰۹/۲) والبحر الرائق (۲۷۹/۲) والهندية (۲۰۴/۱) نقلاً عن القول الراجح (۱۹۹/۱)_



## په خوله د یو څیز څکل

وَمَنْ ذَاقَ شَيْئًا بِفِيهِ لَمْ يُفْطِرْ اوچا چي اوڅښلو څه شی پخپله خوله نونه ماتيږي لِعَدَمِ الْفِطْرِ صُورَةً وَمَعْنًى د فطرت نه کیدو په امله سره صورتا اومعنی وَيُكْرَهُ لَهُ ذٰلِكَ او دا دده لپاره مکروه دی. لِمَا فِيهِ مِنْ تَعْرِيضِ الصَّوْمِ عَلَى الْفَسَادِ څکه چي پدي کي پیش کول د روژي دی په فساد باندي.

**حل اللغة:** ① تعریض: پیش کول

**تشریح:- عدم فساد الصوم بذوق شئ**⊛مسئله:که یوکس په خپلي خولي سره څه شی اوسکلو.نو روژه نه ماتیږی.څکه چي په دي صورت کي خو نه صورةً افطار شو.چه څه شی ئې تیر کړي وی.اونه معنیً افطار شو.چه د بدن د اصلاح لپاره څه شی خیټي ته رسولي شوي وی.نوهرکله چي نه صورةً افطار شو اونه معنیً افطارشو.نو روژه به څنګه فاسد وی؟ خودا عمل مکروه ضرور دي.وجه د کراهت داده.چه په دي عمل کي روژه فاسد ته پیش کول دی.

## د ښځي د ماشوم لپاره په خوله کي څه ژول

وَيُكْرَهُ لِلْمَرْأَةِ أَنْ تَمْضَغَ لِصَبِيِّهَا او مکروه دی ښځي له ژوول (ژوئیل) دخوراك دبچی لپاره الطَّعَامَ إِذَا كَانَ لَهَا مِنْهُ بُدٌّ لِمَا بَيَّنَّا که ددي نه بغیر کیدلو لکه چي مونږ بیان کړل

**حل اللغة:** ① تمضغ: شوخوند وهل ② بد: لاره ]

**تشریح:- الصورتان فی مضغ المراة شیئاً للولد**☆ د روژي په حالت کي د ښځي لپاره خپل بچی ته خوراك په ژوئیلو ژوئیلو سره خوړل مکروه دی.په دي شرط چي ددي ښځي لپاره څه بله یوه لار موجود وی.مثلاً دده سره څوك داسي کس ناست دي.چه په هغه روژه فرض نه وی.او هغه دي بچی ته په ژوئیلو خوړلي شی.نو په دي سي صورت کي ښځي له ژوول (ژوئیل) مکروه دی.او وجه د کراهت هم هغه ده.چه په دي صورت کي روژه په فساد باندي پیش کول لازمیږي.

وَلَا بَأْسَ إِذَا لَمْ تَجِدْ مِنْهُ بُدًّا او څه باك نشته دي کله چي دي نه خلاصي نه وی صِيَانَةً لِلْوَلَدِ دبچی د ساتنه په غرض سره

**تشریح:-** اوکه په خپله ژوئیلو نه بغیر څه بله لاره نه وی.نو بیا هیڅ حرج نشته.څکه چي دبچی ساتنه هم ضروری دي.

أَلَا تَرَى أَنَّ لَهَا أَنْ تُفْطِرَ إِذَا خَافَتْ عَلَى وَلَدِهَا آیا ته نه ګوری چي ښځي لره روژه نه ساتل جائز دی کله چي ویریده وی پخپل بچی باندي.

**تشریح:- دلیله**⊛تاسو اوګوری.که د پیوخورونکی بچی د زیاتي اولګي د لاسه د هلاکیدلو خطره وی.اوپه ښځه کي د روژي په حالت کي شیدي نه راځی.نو په دي صورت کي د ښځي لپاره د افطار اجازت دي.

## د روژه دار لپاره د جولي ژوئیل

وَمَضْغُ الْعِلْكِ لَا يُفْطِرُ الصَّائِمَ وژوول د جولي نه ماتوی روژه لِأَنَّهُ لَا يَصِلُ إِلَى جَوْفِهِ څکه چي دا نه رسی خیټي ته دده. وَقِيلَ: إِذَا لَمْ يَكُنْ مُلْتَئِمًا يُفْسِدُ لِأَنَّهُ يَصِلُ إِلَيْهِ بَعْضُ أَجْزَائِهِ وَقِيلَ: إِذَا كَانَ أَسْوَدَ يُفْسِدُ وَإِنْ كَانَ مُلْتَئِمًا لِأَنَّهُ يَتَفَتَّتُ او وئیلي شوی دی چي که نه وو یوځائي نو فاسدوی څکه چي رسی خیټي ته بعض اجزاء ددغي اووئیلي شوی دی چي که وو تور نوفاسدوی اګرچه یوځائي وی څکه چي دغه خس خس کیږی

**تشریح:- الاقوال الثلاثة فی فساد الصوم بمضغ العلك**☆مسئله: ① که روژه دار جوله اوچویی.نو دده روژه به فاسد نه وی.څکه چي جوله به د خپل اینختیدلو په وجه غابنونو پوري اینخلی.او خیټي ته به نه رسی.اوکوم څیز

چې خېټې ته نه رسي. هغه روژه نه فاسد کوي. ② او بعض فقهاء فرمائي. که جوله حل شوی نه وي. بلکه میده میده ریزې وي. نو ددې په جوئیلو سره به روژه فاسدیږي. ځکه چې په دې صورت کې د جولې بعض اجزاء خېټې ته رسي. ③ او بعض حضرات فقهاء فرمائي. که جوله تور رنګ کې وي. نو ددې په جوئیلو سره به روژه فاسدیږي. اګرچه دا حل شوې وي. ځکه چې تور رنګ جوله میده میده کیږي. او د میده ریزه کیدلو په وجه ددې بعض اجزاء خېټې ته رسي.

**إِلَّا أَنَّهُ يُكْرَهُ لِلصَّائِمِ** **لِمَا فِيهِ مِنْ تَعْرِيضِ الصَّوْمِ لِلْفَسَادِ**، مګر دا چې د روژه دار لپاره مکروه دي ځکه چې پدې کې روژه فساد ته پیش کول دي **وَلِأَنَّهُ يُتَّهَمُ بِالْإِفْطَارِ** او ځکه چې دی په افطار سره متهم کیږي.

**تشریح:- کراهیة مضغ العلک**☆بهرحال که د جولې په جوئیلو سره روژه فاسدیږي. بیا هم د روژه دار لپاره جوله ژوول مکروه دي.

**دلائله**۞ ① ځکه چې په دې کې روژه په فاسد باندې پیش کول دي. ځکه چې کیدلې شي. چه څه اجزاء د حلق نه لاندې کوز شي. ② دوهم دلیل دادې. چه خلګ به دې په افطار سره متهم کړي. یعنی کله چې څوک دې ښکاره خلګو ته بد په نظر راځي. نو دې به په روژه نه نیولو باندې متهم کوي. او خلګ به دا بدګنړي. او کوم فعل چې په ښکاره خلګو ته بد په نظر راځي. نو هغه مکروه وي. په دې وجه دا هم مکروه دي.

**وَلَا يُكْرَهُ لِلْمَرْأَةِ إِذَا لَمْ تَكُنْ صَائِمَةً لِقِيَامِهِ مَقَامَ السِّوَاكِ فِي حَقِّهِنَّ** او نه دي مکروه ښځې لپاره ملګ هرکله چې دا روژه داره نه وي ځکه چې هغه ددې په حق کې دمسواك قائمقام دی

**تشریح:- عدم کراهیة مضغ العلک للمراة**☆ او که ښځه روژه داره نه وي. نو دې له جوله ژوول مکروه نه دي. ځکه چې د ښځې په حق کې جوله جوئیل، دمسواك کاوه قائم مقام دی. او جوله دمسواك قائم مقام په دې وجه ګرځولې شوې دې. چه ښځې ډیرې کمزورې او نازکې وي. او ددوی غاښونه هم کمزور او اوریځ هم نازك وي. نو دوی د مسواك په شان بدن خراش (بدن باندې خارښ لګونکې) څیز څنګه برداشت کولې شي.

**وَيُكْرَهُ لِلرِّجَالِ عَلَى مَا قِيلَ إِذَا لَمْ يَكُنْ مِنْ عِلَّةٍ، وَقِيلَ: لَا يُسْتَحَبُّ لِمَا فِيهِ مِنَ التَّشَبُّهِ بِالنِّسَاءِ** او مکروه دي سړو له بنا په هغې چې وئیلې شوې دي هرکله چې دا په څه علت نه وي او وئیلې شوې دي چې مستحب نه دي ځکه چې پدې کې ښځو سره مشابهت دی.

**تشریح:-** که د سړو څه قسمه ناروغی (ناروغی (بیماری)) نه وي. نو ددوی لپاره جوله ژوول مکروه دي. او بعضو فرمائي. چې د سړو لپاره جوله ژوول مباح دي. خو مستحب نه دي. او مستحب په دې وجه نه دي. چه د سړو لپاره د جولې جوئیلو په صورت کې د سړو د ښځو سره مشابه کیدل لازمیږي. او تشبیه بالنساء قطعاً مناسب نه ده. په دې وجه د سړو لپاره جوله ژوول مکروه یاغیر مشتحب ګرځولې شوې دي.

## د روژه دار لپاره رانجه او تیل لګول

**وَلَا بَأْسَ بِالْكُحْلِ وَدَهْنِ الشَّارِبِ** **لِأَنَّهُ نَوْعُ ارْتِفَاقٍ** او څه باك نشته په رنجو لګولو او تیلو پورې کاوه په بریتو کې ځکه چې دایو ډول آسانتیا ده. **وَهُوَ لَيْسَ مِنْ مَحْظُورَاتِ الصَّوْمِ** او دا د روژې د ممنوعاتو نه دي.

**حل اللغة:** ① **اکحل**: رانجه ② **ارتفاق**: د ښانست حصول

**تشریح:- جواز الاکتحال للصائم**☆مسئله داده. چه د روژې په حالت کې رانجه لګول، او بریتانو ته تیل لګول بغیر د کراهتـه جائز دي. ځکه چې دواړه شیان (څیزونه) د ژوند د آرام ځنې دي. او د ژوند راحت د روژې په ممنوعاتو کې داخل نه دي. په دې وجه ددې دواړو څیزونو په استعمالولو کې هیڅ قباحت نشته.

**وَقَدْ نَدَبَ النَّبِيُّ إِلَى الْاِكْتِحَالِ يَوْمَ عَاشُوْرَاءَ** حال دادې چې نبی کریم ﷺ دعاشورې په ورځ د رانجو پورې کولو والي



**الصَّوْمِ فِيهِ** (1) اوپدې کې دروژې رغبت ورکړې دي. **وَلَا بَأْسَ بِالْاِكْتِحَالِ لِلرِّجَالِ إِذَا قَصَدَ بِهِ التَّدَاوِيَ** او نشته باك په رنجو پورې کاوه کې سړو لپاره هرکله چې پدې سره دوائی مقصود وي **دُونَ الزِّينَةِ** نه که زينت.

**تشریح:-** بلکه جناب رسول الله ﷺ د عاشوره په ورځ دوې [دوه] شیان (څیزونه) مستحب ګرځولې دي. یوه روژه او بل رانجه لګول. ددې نه ثابت شو. چه د روژې په حالت کې رانجو لګولو کې هیڅ باك نشته. ګنې نبی کریم ﷺ به د روژې په حالت کې رانجه لګول مستحب نه ګرځول.

**وَيُسْتَحْسَنُ دَهْنُ الشَّارِبِ إِذَا لَمْ يَكُنْ مِنْ قَصْدِهِ الزِّينَةُ** او په په بریتو تیل لګول ښه دي. هرکله چې نه وي مقصود پدې سره زینت **لِأَنَّهُ يَعْمَلُ عَمَلَ الْخِضَابِ** ځکه چې دا دخضابو کار کوي.

**حل اللغة:** ① **شارب**: بریت ② **دهن**: تیل

**تشریح:- حکم الاکتحال للرجال و تدهین الشارب**۞علامه مرغینانی رحمه الله فرمائي. چه د سړو لپاره د دوائی په غرض رانجه لګولو کې هیڅ حرج نشته. خود ښائست حاصلولو لپاره د سړو لپاره رانجه لګول مناسب نه دي. ځکه چې رانجه لګول د ښځوښائست دی. دغه ډول که بریتانو ته په تیل لګولو سره ښائست مقصود نه وي. نو مستحسن دي. ځکه چې بریتانو ته تیل لګول دخضاب کار ورکوي. او خضاب کول د سنت نه ثابت دي. په دې وجه بریتانو ته تیل لګول مستحسن او خوښ عمل دی.

**وَلَا يُفْعَلُ لِتَطْوِيلِ اللِّحْيَةِ** او نه به کوي داسې د ږیرې اوږدولو لپاره **إِذَا كَانَتْ بِقَدْرِ الْمَسْنُونِ وَهُوَ الْقَبْضَةُ** کله چې په قدر مسنون وي. او دغه یو موټی ده.

**حکم تدهین اللحیة والسنة فیها**۞علامه مرغینانی رحمه الله فرمائي. چه د ګیرې اوګدولو په اراده هم تیل مه لګوئ. په دې شرط چې ګیره مسنون مقدار یعنی یو موټې وي. د یو موټي په اندازه د ګیرې په مسنونیت باندې هغه حدیث دلیل دی. کوم چې امام ترمذی رحمه الله په جامع ترمذی کې روایت کړې دي. «عن رسول الله ﷺ أنه كان يأخذ من اللحية من طولها وعرضها» یعنی نبی کریم ﷺ به د خپلې ګیرې نه دطول اوعرض (اوږدوالی او پلن والی) اخستلو، یعنی کټ کاوه اوکمولو به ئې. خود حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حدیث ددې معارض دی. حدیث دادی. «أحفوا الشوارب واعفوا اللحى» یعنی بریتانو اوخرائی. او ګیره اوګده کړئ. ددې ځواب دادې. چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما کوم چې ددې حدیث راوی دی. دده خپل عمل داوو. چه د یوموټی نه زیاته ګیره به ئې کټ کوله. لکه چې نقل دي. «عن إبن عمر رضي الله عنهما أنه كان يقبض على لحية ثم يقبض ماتحت القبضة» یعنی حضرت ابن عمر رضي الله عنهما به خپل ګیره اونیوله. بیا به ئې د یو موټې نه لاندې ګیره کټ کوله.

## د روژه دار لپاره د مسواك حکم

**وَلَا بَأْسَ بِالسِّوَاكِ الرَّطْبِ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ لِلصَّائِمِ** او باك نشته دې د روژه دار لپاره سحر او ماښام په لوند مسواك کولو کې **لِقَوْلِهِ خَيْرُ خِلَالِ الصَّائِمِ السِّوَاكُ** (2) **مِنْ خَيْرِ فَصْلٍ** ځکه چې دنبی ﷺ ارشاد دی چې د روژدار لپاره غوره عادت مسواك دی بغیر د څه تفصیل نه.

**تشریح:- حکم السواک للصائم**☆مسئله داده. ① چه زموږ په نیز د روژه دار لپاره لوند او په اوبوکې خوشت شوې مسواك کول د سهار په وخت کې هم اود ماښام په وخت کې هم بغیر د کراهته جائز دي.

---

(1) أما الصوم ففى حديث سلمة بن الأكوع ﷺ أخرجه البخارى فى الصوم باب ٤٧ ومسلم فى الصيام رقم ١٣٦) وأما الإكتحال ففى ........حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه البيهقى فى شعب الإيمان باب ٢٣ رقم ٣٧٩٧)

(2) من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه ابن ماجه فى سننه رقم ١٦٧٧ والدارقطنى فى سننه (٢٠٣/٢ والبيهقى فى السنن الكبرى (٤٥٢/٤) رقم ٨٣٢٦)_

وَقَالَ الشَّافِعِي: يُكْرَهُ بِالْعَشِي امام شافعي رحمه الله فرمائی چې د زوال نه روسته مكروه دې لِمَافِيهِ مِنْ اِزَالَةِ الْأَثَرِ الْمَحْمُودِ، وَهُوَ الْخُلُوفُ ځكه چې پدې كي داثر محمود يعنى خلوف لرې كول دى فَشَابَهُ دَمَ الشَّهِيدِ نودا دشهيد د وينې مشابه شو.

**حل اللغة**: ① **الخلوف**: دَ خُلې بدبوئي چه دَ روژې په حالت كي دَ خُلې نه اوځي

**تشريح**:- د امام شافعي رحمه الله په نيزد مابنام په وخت روژه دار لپاره مسواك كول مكروه دى.

**دليله**: دليل دادې چه د روژه دار د خولې بدبوئي كومې ته چې په حديث كي د الله تعالى په نيزد مشكو دخوشبوئى نه بهتر وئيلى شوى دى. په مسواك كاوه سره ددې ختميدل لازميږي. نوددې د پاته ساتلو لپاره د مابنام په وخت د مسواك كاوه نه منع شوې ده. اودا بوئى د شهيد د وينې مشابه دې. نولكه ځنگه چې د شهيد دوينه نشى لرې كولې. بلكه بغير د غسل نه د فن كولې شى. دغه ډول به د روژه دار د خولې بدبوئى هم نشي ختمولې.

قُلْنَا: هُوَ أَثَرُ الْعِبَادَةِ اللَّائِقُ بِهِ الْإِخْفَاءُ موږ وايو چې خلوف دعبادت اثردې دكوم چې پواره مناسب دى.

**الجوابان عن الدليل العقلى للشافعى** رحمه الله ❁ ① د امام شافعي رحمه الله د عقلى دليل ځواب دادې چه خلوف دعبادت اثردې. او په عباداتوكي اخفاء غوره ده. چه د رياكارۍ شبه نه وى. او اخفاء هغه وخت كيدلې شي چه دمسواك په ذريعه ددې بوئى ختم كړې شي.

بِخِلَافِ دَمِ الشَّهِيدِ لِأَنَّهُ أَثَرُ الظُّلْمِ په خلاف د وينو دشهيد نه چې دغه اثرد ظلم دې وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الرَّطْبِ الْأَخْضَرِ وَبَيْنَ الْمَبْلُولِ بِالْمَاءِ لِمَا رَوَيْنَا اوهيڅ توپير نشته دې په شين لوند كي اوپه اوبو سره په لوند كي كوم چې موږ روايت كړې دې.

**تشريح**:- په خلاف د شهيد د وينې. چه هغه د ظلم اثر دې. د خپل مقابل نه د انصاف غوښتونكې دې. په دې وجه ددې پاته ساتل ضرورى دى.

په دې موقع علامه ابن الهمام رحمه الله ډيره ښه خبره كړې ده. چه دخلوف نه مراد هغه بهړاس دې. كوم چې د معدې نه دخالى كيدلو په وجه راوځى. په مسواك كولوسره دا نشى ختميدلې. په مسواك كولوسره خود غاښونو خيرن والې اوزيړوالې لرې كيدلې شى. نوكه د مابنام په وخت كي هم مسواك اوشى. نو په دې سره خلوف يعنى د معدې بړاس (او بدبوئى) كوم چې عندالله مطلوب دې. هغه نه ختميږى. بلكه د غاښونو زيړوالې كوم چې غير مطلوب دې. هغه ختميږى.

## د مرض د زياتيدو په وجه د افطار حكم

فَصْلٌ (وَمَنْ كَانَ مَرِيضًا فِي رَمَضَانَ فصل دې ځوك چې مريض وى په رمضان كي فَخَافَ إِنْ صَامَ ازْدَادَ مَرَضُهُ او ويريږى چې كه روژه نيسى نومرض ئې زياتيږى ماته دې كړى أَفْطَرَ وَقَضَ اوقضا دې راوړى

**حل اللغة**: ① **امتداد**: اوږديدل ]

**تشريح**:- **الاعذار المبيحة للافطار** ☆ د اوسه پورې د روژو د مسئلو ذكروو. په دې فصل كي به هغه عذرونه بيانولې شى. د كومو په وجه چې روژه نه نيول مباح او جائزدى. په قول د علامه ابن الهمام رحمه الله چې دكومو عذرونو په وجه افطار مباح كيږى. هغه اووه دى. ① ناروغى (ناروغى (بيمارى)) ② سفر ③ حمل كله چې روژه د ښځې يا د حمل لپاره ضررناك وى. ④ رضاعت (شيدې وركول) كله چې روژه د بچى لپاره ضررناك وى. ⑤ بوډهاتوب چې كله په روژه باندې توان نه لرى. ⑥ سخته تنده ⑦ سخته اولگه چې كله د روژې په وجه د ژوند ياد عقل د نقصان خطره وى.

[illegible] ❁ د ټولو نه ړومبې عذر ناروغى (ناروغى (بيمارى)) ده. خود افطار رخصت صرف په نفس [illegible] متعلق كيږى. بلكه د بيمارۍ دوې [دوه] قسمه دى ① يوهغه چې په هغې كي روژه زياتوالې



راولى ② دوهم هغه چې په هغې كي روژه كموالې راولى. نو په كومه بيمارۍ كي چې د روژې په وجه تخفيف راځى. يعنى روژه په دې بيمارۍ كي گټور (فائده مند) وى. نودې بيمارۍ سره د افطار رخصت نه متعلق كيږى. او د روژې په وجه چې كومه ناروغى (ناروغى (بيمارى)) زياتيږى ياد روژې په وجه ناروغى (ناروغى (بيمارى)) اوږديږى. نود هغه بيمارۍ سره د افطار رخصت متعلق كيږى.

**الافطار لخوف زيادة المرض** ❁ ماتن رحمه الله هم دا ناروغى (ناروغى (بيمارى)) بيان كړې ده. لكه چې فرمائى. كه ځوك په رمضان المبارك كي بيمار شو. اوده ته دا يره پيدا شوه. كه روژه ئې اوساتله. نو ناروغى (ناروغى (بيمارى)) به زياته شى. نوپه دې سې صورت كي زموږ په نيز افطار كول جائزدى. او په صحت راتلو باندې به ددې قضاء راوړى.

**دليل الاحناف** رحمهم الله ❁ زموږ دليل د الله تعالى قول ﴿ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ عَلَى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ ﴾ دې. په دې آيت كي دهر بيمار لپاره د افطار اباحت دې. خوچونكه دا خبره منلې شوې ده. چه د افطار مشروعيت د حرج لرې كاوه لپاره دې. اود حرج تحقق متعلق كيږى، زياتوالى د بيمارۍ يا د بيمارۍ ښه كيدلو په تاخيرسره. په دې وجه د افطار اجازت به هم په دې صورتونوكي وى.

وَقَالَ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا يُفْطِرُ او امام شافعي رحمه الله وائى چې نه به ماتوى هُوَ يَعْتَبِرُ خَوْفَ الْهَلَاكِ أَوْ فَوَاتَ الْعُضْوِ د اعتبار كوى دخوف دهلاكت يا دفوت كيدو د اندام كَمَا يَعْتَبِرُ فِي التَّيَمُّمِ لكه چې په تيمم كي معتبر وى

**تشريح**:- په زير بحث مسئله كي حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائى. چه داسې بيمار دې روژه نه پريږدى. بلكه روژه نيول ضرورى دى. خوكه د روژې نيولو په وجه د هلاكيدلو يره وى. يا د كوم يو اندام خرابيدلويره وى. نودافطاراجازت دې.

**دليل الشافعى** رحمه الله ☆ لكه ځنگه چې د امام شافعي رحمه الله په نيز كله اوبه موجود وى. د داسې بيمار لپاره د تيمم اجازت دې. كوم بيمار ته چې د اوبو استعمالولو په صورت كي د ځان دتلو يا د يواندام د ختميدلو خطره وى. كه دا خطره نه وى. نو ددوى په نيز د تيمم اجازت نشته.

وَنَحْنُ نَقُولُ: إِنَّ زِيَادَةَ الْمَرَضِ وَامْتِدَادَهُ او موږ وايو چه دمرض زياتې او اوږدوالې ئې هم قَدْ يُفْضِي إِلَى الْهَلَاكِ كله هلاكت ته رسوى فَيَجِبُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ نو ددې نه احتراز ضرورى دې.

**تشريح**:- **الجواب عن مستدلل الشافعى** رحمه الله ❁ اود امام شافعي رحمه الله د دليل ځواب دادې. چه كله كله د بيمارۍ زياتيدل اوددې اوږدوالې د سړى د هلاكت سبب جوړيږى. په دې وجه د مرض زياتيدلو اوددې د اوږديدلو نه هم ځان ژغورل ضرورى دى.

وَإِنْ كَانَ مُسَافِرًا لَا يَسْتَضِرُّ بِالصَّوْمِ كه داسې مسافر وى چې په روژه كښې نيولوكي ورته تكليف نه وو فَصَوْمُهُ أَفْضَلُ، نوروژه ئې افضله ده وَإِنْ أَفْطَرَ جَازَ اوكه افطار كوى نودا هم جائز دى.

**تشريح**:- **فضل الافطار للمسافر** ❁ مسئله داده. ① كه مسافر په روژه نيولوكي تكليف نه محسوسوى. نو دده لپاره روژه نيول افضل دى. خوكه افطار ئې اوكړو. نوجائزدى

لِأَنَّ السَّفَرَ لَا يَعْرَى عَنِ الْمَشَقَّةِ ځكه چې سفر د مشقت نه خالى نه وى. فَجُعِلَ نَفْسُهُ عُذْرًا نو نفس سفر عذر مقرر كړې شو

**تشريح**:- دليل دادې. چه نفس سفر د مشقت سبب دې. په دې وجه نفس سفر عذر مقرر كړې شو. او اووئيلى شو. چه مطلقاً د مسافر لپاره افطاركول جائزدى. كه ده ته په روژه نيولوكي تكليف وى اوكه نه وى.

بِخِلَافِ الْمَرَضِ فَإِنَّهُ قَدْ يُخَفَّفُ بِالصَّوْمِ په خلاف دمرض نه چې دغه كله په روژې سره كميږى فَشُرِطَ كَوْنُهُ مُفْضِيًا إِلَى الْحَرَجِ نوشرط شو كيدل دده مفضى الى الحرج.

**تشریح:-** ددې په خلاف ناروغی (بیماری) ده.چه کله روژه په بیمارئ کي فائده ورکوی. هیضې ناروغی (بیماری) ده.چه په دې کي روژه فائده ورکوی.نو په دې سې بیمارئ کي به د افطار اجازت نه وی.بلکه دا شرط به لګولې شی.که روژه ،مفضی الی الحرج. وی.نود افطار اجازت به وی.اوکه مفضالی الحرج. نه وی.بلکه روژه په دې بیمارئ کي نفع ورکوی .نوددې بیمارئ په وجه به د افطار اجازت نه وی.

| |
|---|
| **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: الْفِطْرُ أَفْضَلُ** } امام شافعی رحمه الله فرمائی چې افطار افضل دې **لِقَوْلِهِ {لَيْسَ مِنَ الْبِرِّ الصِّيَامُ فِي السَّفَرِ}**[1] ځکه چې د.نبی کریم ﷺ ارشاد دې چې نیکوکاری نه ده روژه ساتل په سفرکي |

**تشریح:-** په قول د صاحب دهدایه رحمه الله د حضرت امام شافعی رحمه الله په نیز دمسافر لپاره مطلقاً افطار افضل دې.

**دلائل الشافعی** رحمه الله ☆د امام شافعی رحمه الله دلیل ① د حضرت جابربن عبد الله رضی الله عنه حدیث دې. ﴿قال کان رسول الله ﷺ فی سفر فرأی زحاما ورجلاً قد ظلل علیه فقال ما هذا قالوا صائم، فقال من البر الصیام فی السفر﴾ یعنی رسول الله ﷺ په یوسفر کي وو.رسول الله ﷺ یوه ګڼړه اوکتله.او یوکس ئې اوکتلو.چه په هغه باندې سورې شوې وو.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.داڅه دی؟ خلګو اووئیل چې دا روژه دار دې.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه په سفر کي روژه نیول د نیکۍ خبره نه ده.

| |
|---|
| **وَلَنَا أَنَّ رَمَضَانَ أَفْضَلُ الْوَقْتَيْنِ** زمونږ دلیل دادې چې رمضان د دوؤ وختونونه افضل دې **فَكَانَ الْأَدَاءُ فِيهِ أَوْلَى** نوپه دې کي اداکول بهتر دی |

**تشریح:- دلیل الاحناف** رحمهم الله ۞زمونږ دلیل① دادې.چه د مسافر لپاره د رمضان د روژو دوې [دوه] وختونه دی.یو وخت خو په خپله د رمضان میاشت ده.لکه څنګه چې د [فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ] عموم دلالت کوی.چه مسافر اومقیم دواړه دې په رمضان کي روژې اونیسی.او دوهم وخت د رمضان نه علاوه دې.لکه چې په[فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ]کي ذکر دی.اود رمضان خلیفه دې.او خلیفه د اصل برابر نشی کیدلې.ځکه غیر رمضان د رمضان برابرنشی‌کیدلې.بلکه د رمضان وخت افضل دې.اود یوعبادت په افضل وخت کي اداکول هم افضل وی.په دې وجه په رمضان کي د مسافر لپاره روژه ساتل د افطار کاوه نه افضل دی.

| |
|---|
| **وَمَا رَوَاهُ مَحْمُولٌ عَلَى حَالَةِ الْجَهْدِ** اوشافعی رحمه الله چې کوم روایت کړې دې دغه محمول دې په حالت د مشقت. |

**تشریح:- الجواب عن دلائل الشافعی** رحمه الله ۞او پاتې شو هغه حدیثونه کوم چې د امام شافعی رحمه الله د اړخه پیش کړې شوی دی. دهغې ځواب دادې.چه هغه حدیثونه د مشقت په حالت باندې محمول دی.یعنی که په سفر کي روژه ساتل ډیرګران وی.او د خفګان سبب وی.نو په دې سې حالت کي روژه نیول واقعی څه نیکی نه ده.او په دې سې حالت کي روژه نیول نافرمانی اود معصیت خبره ده.

**تسامح صاحب الهدایه** رحمه الله ۞فوائد:د علامه مرغینانی رحمه الله نه د امام شافعی رحمه الله په مذهب رانقل کاوه کي تسامح شوې ده.ځکه چې د شوافع رحمهم الله په کتابونوکي ذکر دی.که مسافر روژه مشکله نه معلومیږی .نو هم روژه افضله ده.افطار افضل نه دې.هم دا د امام مالك رحمه الله مذهب دې.او هم دا زمونږ مذهب دې. خو چونکه علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه د مسافر لپاره مطلقاً افطار افضل دې.په دې وجه هم دا قول اخستې دې.اوه شوافعو رحمهم الله دلیلونه مو لیکلی دی.

---

[1] من حدیث جابر رضی الله عنه أخرجه البخاری فی الصوم باب ۳۶ ومسلم فی الصیام رقم ۹۲ وأبوداود فی الصوم باب ۴۳ والترمذی فی الصوم باب ۱۸ والنسائی فی الصیام باب ۴۶ وابن ماجه فی الصیام باب ۱۱)_



## په حالت د مرض یا سفرکې مرګ راتلل

| |
|---|
| **وَإِذَا مَاتَ الْمَرِيضُ أَوِ الْمُسَافِرُ وَهُمَا عَلَى حَالِهِمَا لَمْ يَلْزَمْهُمَا الْقَضَاءُ** هرکله چې مړشو مریض اومسافر او دواړه پخپل حال وو نوپه دوی قضا لازمه نده. **لِأَنَّهُمَا لَمْ يُدْرِكَا عِدَّةً مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ** ځکه چې دوی په نورو ورځوکي شمار اونه موندو. |

**تشریح:- عدم القضاء علی المریض والمسافراذا ماتا فی تلک الحالة** ۞مسئله داده.که بیمار د بیمارئ په حالت کي مړشو.اومسافر د سفر په حالت کي مړشو.نو ددوی په ذمه به قضاء لازم نه وی.یعنی د بیمارئ اود سفر په وجه چې د رمضان کومې روژې قضاء شوې دی.دهغې په وجه به عندالله ماخوذ نه وی. اونه به ددې څه فدیه واجب وی.ځکه چې په دوی د قضاء وجوب هغه وخت کیږی.چه د بیمارئ اود سفرختمیدلو نه روسته دومره زمانه بیامومی.چه په هغې کي روژې اونیسی.او دلته کي صورت دادې.چه دوی ته د قضاء وخت قطعاً ملاؤ نشو.په دې وجه به په دوې باندې قضاء لازم نه وی.

## په صحیح او مقیم د قضاء لزوم

| |
|---|
| **وَلَوْ صَحَّ الْمَرِيضُ وَأَقَامَ الْمُسَافِرُ ثُمَّ مَاتَا لَزِمَهُمَا الْقَضَاءُ** اوکه مریض تندرست اومسافر شو بیامړشو نولازمه به وی په دوی قضا **بِقَدْرِ الصِّحَّةِ وَالْإِقَامَةِ** په اندازه د صحت او مقیم کیدو |

**تشریح:- وجوب القضاء علی الصحیح والمقیم** ۞مسئله داده.که بیمار تندرست شو.او مسافر مقیم شو.بیا دوی مړه شول. نو په دوی به قضاء راؤړل لازم وی.نوکه د تندرست کیدلونه روسته اود مقیم کیدلو نه روسته دومره ورځې ژوندی پاتې شول .څومره ورځې روژې چې فوت شوې وې.نود فوت شوو ټولو ورځو قضاء به لازم وی.اوکه یو څو ورځې ژوندې پاتې شو.نود صحت په اندازه اود اقامت په اندازه به د روژو قضاء راؤړل واجب وی.مثلاً د بیمارئ یا د سفر په وجه شل روژې فوت شوې.بیاد تندرست کیدلو نه روسته یا د مقیم کیدلو نه روسته لس ورځې ژوندې پاتې شو.اود بل څه سبب په وجه مړشو.نو په ده به د لسو ورځو روژو قضاء راؤړل واجب وی.

| |
|---|
| **لِوُجُودِ الْإِدْرَاكِ بِهَذَا الْمِقْدَارِ** د امله د موجود کیدو د د رالاندې کولونه په دې اندازه باندې |

**تشریح:- دلیله** ۞ځکه چې د بیمار او مسافر په اړه کي د قرآن پاك ارشاد دې.((فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ)) یعنی چې څومره ورځې د بیمارئ یا د سفر په وجه سره ئې د رمضان روژې اونه نیولې.د دغه اومره ورځو قضاء به واجب وی.اود څومره ورځو قضاء چې واجب ده.دومره ورځې ژوندی پاتې کیدل هم ضروری دی.خوچه هرکله دا کس دچا چې شل روژې د بیمارئ یا د سفر په وجه سره فوت شوی دی.د صحت اود اقامت نه روسته ژوندې صرف لس ورځې پاتې شو.نود لسو ورځو روژو قضاء راؤړل به هم واجب وی.ځکه چې ددې نه د زیاتی قضاء راؤړلو باندې قدرت ثابت نشو.

| |
|---|
| **وَفَائِدَتُهُ وُجُوبُ الْوَصِيَّةِ بِالْإِطْعَامِ** اوفائده د دې وجوب د وصیت دې په خوراك ور کاوه سره |

**تشریح:- الاعتراض** ۞خو دلته کي یو سوال دې.هغه دا چې د تندرست کیدلو نه روسته اود مقیم کیدلو نه روسته لس ورځې خو بلاشبه ژوندې پاتې شو.خوچه هرکله ئې قضاء راؤنړله.او مړشو.نو اوس د قضاء واجب کاوه نه څه فائده ده؟

**الجواب** ۞ددې ځواب دا دې.چه د قضاء د وجوب فائده به د وصیت د وجوب په شکل کي ښکاره کیږی.یعنی د مرګ په وخت کي به په ده باندې دا وصیت کول لازم وی.چه زما د دریمې برخې مال نه زما دواجب روژو په اندازه فدیه اداکړئ.نوکه دا وصیت ئې اوکړو.او وارثانو د وصیت مطابق فدیه ورکړه نو.إنشاء الله. دې به عندالله ماخوذ نه وی.اوکه دا وصیت ئې اونکړو.نو ګناهګار به وی.او په قیامت کي به ماخوذ وی.

**وَذَكَرَ الطَّحَاوِيُ فِيهِ خِلَافًا بَيْنَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ([1]) وَبَيْنَ مُحَمَّدٍ** رحمه الله اوذکر دي دطحاوی رحمه الله اختلاف پدي کي دشخينو اوداامام محمد رحمه الله په مينځ کي **وَلَيْسَ بِصَحِيحٍ** اود صحيح نه دي.

**تشريح:-** د ظاهر مذهب په مطابق د صحت به اندازه اود اقامت په اندازه فديه لازميدل، د امام ابوحنيفه او د صاحبينو رحمهما الله متفق عليه فيصله ده. خو حضرت امام طحاوی رحمه الله ددې درې وارو په مينځ کي اختلاف ذکر کړې دې. دوی فرمائی. که د افطار د رخصت عذر يعنی ناروغی (ناروغی (بيماری)) او سفر ختم شول. اوپه فوت شوو روژو کي د بعضو په قضاء باندې قادرشو. اود بعضو په قضاء باندې قادر نشو. مثلاً د عذر زائل کيدلو نه روسته لس ورځې ژوندې پاتې شو. حالانکه فوت شوې روژې شل دی. نوکه ده د قدرت په مقدار يعنی د لسو ورځو روژو قضاء نې راوړله. او په دې کي نې بې غوری اونکړه. بيا مړشو. نود ما بقی لسو روژو قضاء به په ده باندې لازم نه وی. ځکه چې ده د مابقی لسو روژو د قضاء راوړلو وخت بيانه موندلو. اوهرکله چې وخت نې بيا نه موندلو. نو ددې قضاء به هم واجب نه وی.

که د قدرت په مقدار يعنی لس ورځې په کومو کي چې ژوندې پاتې شوې دې. په دې کي نې هم روژې اونه نيولې. تردې چې په هم دې حال کي مړشو. نو① د شيخينو رحمهما الله په نيز به په ده باندې د پوره شلو روژو قضاء واجب وی. يعنی د شلو روژو فديه ادا کاوه وصيت به په ده باندې لازم وی. ② او امام محمد رحمه الله فرمائی. چه په ده به صرف د ،ماقدر عليه، يعنی د لسوورځود روژو فديه ادا کاوه وصيت کول لازم وی. اود پاته لسو ورځو کومې چې ده بيانه موندلې. ددې روژو فديه ادا کاوه وصيت کول به لازم نه وی.

**وَإِنَّمَا الْخِلَافُ فِي النَّذْرِ** اختلاف خوپه مسئله دنذر کي دي.

**تشريح:-** علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی. چه د امام طحاوی رحمه الله دا اختلاف بيانول صحيح نه دی. بلکه په دې مسئله کي د شيخينو رحمهما الله قول هم هغه دې. کوم چې امام محمد رحمه الله اختيارکړې دې.

**الاختلاف فی مسئلة النذر**◉ دنذر په مسئله کي شيخينو رحمهما الله او امام محمد رحمه الله اختلاف کړې دې. يعنی که مريض دا اووئيل. چه زه د الله تعالی لپاره يوه مياشت روژو نذر منم. بيا دې د تندرست کيدلو نه مخکي مړشو. نو په ده به بالکل قضاء واجب نه وی. اوکه دې يوه ورځ تندرست پاتې شو. بيا دې اچانك مړشو. نو① د شيخينو رحمهما الله په نيز د پوره يو مياشت روژو فديه ادا کاوه وصيت کول ضروری دی. ② او امام محمد رحمه الله فرمائی. چه په ده باندې د صحت د اندازې مطابق روژو فديه ادا کاوه وصيت کول لازم دی.

**دليل محمد** رحمه الله ◉ حضرت امام محمد رحمه الله د بنده وجوب د الله تعالی په وجوب باندې قياس کړی دی. يعنی لکه څنګه چې د رمضان په قضاء روژو کي د صحت په اندازه قضاء راوړل لازم دی. اود قضاء نه راوړلو په صورت کي د فديه وصيت کول لازم دی. دغه ډول د نذر روژې به هم د صحت په اندازه واجب وی. اود روژې نه نيولو په صورت کي به د فديه ور کاوه وصيت لازم وی.

**وَالْفَرْقُ لَهُمَا أَنَّ النَّذْرَ سَبَبٌ أَدْرَكَ** دشيخينو رحمهما الله لپاره وجه دفرق داده چې نذر سبب دې. **فَيَظْهَرُ الْوُجُوبُ فِي حَقِّ الْخَلَفِ** نو ظاهريږی په وجوب په حق دخليفه کي. **وَفِي هٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ السَّبَبُ إِدْرَاكُ الْعِدَّةِ** اوپدې مسئله کي سبب ادرېك د عدت د ي. **فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِ مَا أَدْرَكَ** نو مقدر به وی په قدر د دهغه اندازه چې رالاندې کړی

**تشريح:-** **دليل الشيخين** رحمهما الله ◉ اود شيخينو رحمهما الله په نيزد رمضان اود نذر روژو په قضاء کي توپير دا دې. چه د نذر روژو واجب کيدلو سبب نذر دې. او نذر موجود دې. او مانع يعنی ناروغی (ناروغی (بيماری)) ختمه شوې ده. نو هرکله چې سبب يعنی نذر موجود دې. او مانع يعنی ناروغی (ناروغی (بيماری)) زائل شوې ده. نو

[1]) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة وأبي يوسف رحمهما الله كذا في ردالمحتار(۱۳۷\۲) وخلاصة الفتاوی (۱\۲۶۳) والهندية (۱\۲۱۰) والتاتر خانية (۲\۴۰۱)نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۰۰)_



په يقين سره به د روژو وجوب ښکاره وی. او هرکله چې وجوب متحقق شو. او اداکول موجود نشو. نو ددې خليفه يعنی فديه اړخ ته به رجوع کولې شی. يعنی د پوره مياشت روژو فديه ادا کاوه وصيت کول به لازم وی. او د رمضان د قضاء په مسئله کي د قضاء سبب د ،أيام أخر، موجود کيدل دی. او ،أيام أخر، پوره طريقې سره موجود نه شوې. بلکه بعض ايام موجود شوې. نو څومره قدرې ايام چې موجود شوې دی. ددې په اندازه به قضاء روژې واجب وی. اود قضاء نه کاوه په صورت کي به هم ددې روژو د فديه وصيت کول لازم وی. اود مابقی قضاء، به واجب نه وی.

## ددې په تفسم او اقسامو غور کول

**وَقَضَاءُ رَمَضَانَ إِنْ شَاءَ فَرَّقَهُ وَإِنْ شَاءَ تَابَعَهُ** اودرمضان قضا روژې که غواړی جلا جلا دې اونيسی اوکه غواړی نو بلا ناغه دې اونيسی. **لِإِطْلَاقِ النَّصِّ** د نص د اطلاق په امله سره.

**تشريح:-** **اقسام الصوم**◉ صاحب د عنايه رحمه الله فرمائی. چه په کتاب الله کي د اته قسمه روژو ذکر دې. ① صوم رمضان ② صوم کفارهٔ قتل: ③ کفارهٔ ظهار ④ کفارهٔ يمين: ⑤ قضاءِ رمضان: ⑥ صوم متعه: ⑦ کفارهٔ حلق راس. ⑧ صوم جزائې صيد:

**مايشترط فيها التتابع ومالا**◉ په دې کي ړومبنو څلوروکي تتابع اوبلاناغه اداکول شرط دی. اوپه آخروڅلوروکي اختيار دې. چه که غواړی نوپه متفرق طورباندې دې اداکړی. اوکه غواړی نو په تتابع سره دې بلاناغه اداکړی. د رمضان په روژه کي د تتابع اوتسلسل په وجوب کي هيڅ کلام نشته.

**الضابطة فی التتابع وعدمه**◉ او ددې نه په علاوه کي مشائخوپه قاعده ذکرکړې ده. قاعده دا ده. چه په کوم ځائې کي عتق رقبه مشروع ده. هلته په روژوکي تتابع شرط دې. اوکوم ځائې چې عتق رقبه مشروع نه ده. هلته په روژوکي تتابع شرط نه دې. نوددې قاعدې په رڼړا کي چې کوم ځائې د صوم رمضان د قضاء ذکر دې. هلته کي د عتق رقبه د مشروعيت بيان نه دې شوې. يعنی داسې نه ده. چه د رمضان د قضاء په ځائې عتق رقبه کافی شی. نود رمضان په روژو کي به متابعت اوتسلسل واجب نه وی. دوهم دليل دادې. چه نص. ((**فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ**)) مطلق دې. نوددې د اطلاق په وجه به نه تتابع شرط وی. اونه به عدم تتابع شرط وی. بلکه اختيار به وی. که په تتابع سره ئې ادا کوی. او که بغير د تتابع نه ئې اداکوی.

**الاعتراض**◉ دلته کي يوسوال دا دې چې قضاء د ادا خليفه وی. اود صوم رمضان په ادا کي تتابع واجب ده. نوددې په خليفه يعنې د رمضان دروژو په قضاء کي هم تتابع واجب کيدل پکاردی.

**الجواب عنه**◉ د ړومبی سوال ځواب دادې. چه يو ځلې د رسول اکرم ﷺ نه يو کس د رمضان قضاء په متفرق طور باندې ادا کاوه په اړه کي پوښتنه اوکړه. نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل. «ذالك إليك أرأيت لوكان على أحدكم دين فقضاء الدّرهم والدّرهمين ألم يكن قضاء، قال نعم قال فالله أحق أن يعفو ويغفر» يعنی نبی کريم ﷺ پوښتنه اوکړه. چه تاته ددې اختيار دې. بيانبی کريم ﷺ اوفرمائيل. ښه دا راته اووايه، که په تاسوکي په يوکس قرضه وی. اودې يو يو درهم او دوې [دوه] دوې [دوه] درهمه ادا کوی. نو آيا دابه اداکول نه وی؟ سوال کونکی اووئيل. بې شکه ادا به وی. بيا نبی کريم ﷺ اوفرمائيل. الله تعالی زيات لائق دې. چه خپل حق معاف کړی. او ښښنه اوکړی. مطلب دادې. چه کله بنده خپله قرضه په متفرق طورسره وصول کولې شی. نود الله تعالی قرضه که په متفرق طور باندې ادا کړې شوه. نو ولې به ادا نه وی. اوس تاسو اوګورئ. که معامله هغه وئ. کومه چې تاسو ذکر کړې ده. يعنی د رمضان په قضاء کي تتابع شرط کيدل. نو رسول الله ﷺ به دا ځواب نه ورکولو. کوم ئې چې سائل ته ورکړې دې.

**السوال الثانی**:- دوهم سوال دادې چه د حضرت ابی بن کعب قرات دې. ((فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ مُتَتَابِعَاتٍ)) نوځنګه چې په کفاره د یمین کې د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ د قرات، متتابعات، اعتبار شوې دې. دغه ډول د رمضان په قضاء کې هم د ابی بن کعب د قرات متتابعات اعتبار کول پکار دی.

**الجواب عنه**۞ د دوهم سوال ځواب دادې. چه د ابی بن کعب ﷺ قرات دومره مشهور نه دې. څومره چې د حضرت ابن مسعود ﷺ قرات مشهور دې. نود ابی بن کعب قرات د خبرواحد په مرتبه کې شو. اوپه خبر واحد سره په کتاب الله باندې زیاتوالې نشی کیدلې. په دې وجه د ابی بن کعب قرات، متتابعات، سره په کتاب الله یعنی [فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ] باندې زیاتوالې نشی کیدلې.

| لَكِنَّ الْمُسْتَحَبَّ الْمُتَابَعَةُ لیکن مستحب بلا ناغه دی. مُسَارَعَةً إِلَى إِسْقَاطِ الْوَاجِبِ دواجبو نه دزر خلاصیدو په امله سره. |
|---|

**تشریح:- استحباب التتابع فی قضاء رمضان**۞ علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه په قضاء د رمضان کې تتابع اګرچه شرط نه ده. خو مستحب ضرور ده. چه په واجب ادا کاوه کې مسارعت(جلتی) اوشی.

**د رمضان قضاء دوهم رمضان پورې روسته کول**

| وَإِنْ أَخَّرَهُ حَتَّى دَخَلَ رَمَضَانُ آخَرُ صَامَ الثَّانِي اوکه دومره تاخیر ئې اوکړو چې بل رمضان داخل شو نودوې بل رمضان دې اونیسی لأنه فی وقته وقضی الأول بعده ځکه چې دغه په خپل وخت کې دی. او اولنی دې دې نه روسته قضا راوړی. لأنه وقت القضاء ځکه چې دغه دقضا وخت دې. |
|---|

**تشریح:- المذهبان فی وجوب الکفارة بالتاخیر الی رمضان**۞ ① مسئله داده. چه په کوم کس باند د رمضان قضاء واجب ده. که ده قضاء مؤخر کړه. تردې چې دوهم رمضان راغې. نود دوهم رمضان روژې دې اونیسی. ځکه چې هغه روژې په خپل وخت کې دی. او ددې دوهم رمضان روژې په ده باندې متعین دی. په دې وجه په دې کې د نورو روژو ګنجائش نشته. اود تیر رمضان روژو قضاء به ددې دوهم رمضان نه روسته ادا کوی. ځکه چې دا زمانه هم د قضاء ده.

| وَلَا فِدْيَةَ عَلَيْهِ او فدیه پرې نشته دې لِأَنَّ وُجُوبَ الْقَضَاءِ عَلَى التَّرَاخِي ځکه چې دقضا وجوب په تراخئ باندې دې حَتَّى كَانَ لَهُ أَنْ يَتَطَوَّعَ تر دې چې ده ته دنفل روژې نیولو اجازت دې. |
|---|

**تشریح:-** اوددې تاخیر په وجه به په ده باندې فدیه واجب نه وی.

**دلیله**۞ زمونږ دلیل دادې. چه الله تعالی د قضاء امر مطلق فرمائیلې دې. اود امر مطلق موجب، علی الفور، نه وی. بلکه، علی التراخی، وی. هم دا وجه ده. که یوکس د رمضان تیریدلو نه روسته د رمضان د قضاء نه مخکې نفلی روژې اونیولې. نو په اتفاق سره جائزدی. که د رمضان قضاء، علی الفور، واجب وې. نود رمضان د قضاء نه بغیر به نفلی روژې جائز نه وې. نوهرکله چې د رمضان قضاء، علی التراخی، واجب دی. نوپه ژوند کې د مرګ نه وړاندې وړاندې کله چې اوغواړی. قضاء دې پوره کړی. پوره ژوند د قضاء وخت دې.

**د حاملې او مرضعې په ځان د هلاکت په ویره د روژې ماتول**

| وَالْحَامِلُ وَالْمُرْضِعُ إِذَا خَافَتَا عَلَى أَنْفُسِهِمَا أَوْ وَلَدَيْهِمَا أَفْطَرَتَا وَقَضَتَا حامله او شیدې ورکوونکې ته چې کله ویره وه پخپل نفس باندې یا پخپلو بچو باندې نو افطاربه کوی اوقضا به راوړی دَفْعًا لِلْحَرَجِ د حرج لیاره. (وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِمَا) او کفاره پدې دواړو نشته دې. لِأَنَّهُ إِفْطَارٌ بِعُذْرٍ ځکه چې دا افطار په عذرسره دې |
|---|

**تشریح:- جواز الافطار للحامل والمرضعة اذا خافتا الهلاک علی نفسه**۞ مسئله داده. چه حامله ښځه یا شیدې ورکونکې ښځې ته که د روژې په وجه د خپلوځانونو خطره وی. یا دخپلو بچو ویره وی. یعنی حاملې ته د خیټې د بچی ویره وی. او شیدې ورکونکې ښځې ته د شیدې څکونکی بچی ویره وی. نودا دواړه دې افطار



اوکړی. او روسته دې ددې روژو قضاء راوړی. خوپه دوی به کفاره واجب نه وی. د افطار اجازت ځکه ورکړې شوې دې. چه ددې دواړو نه خود حرج لرې کاوه لپاره ورکړې شوې دې. اوکفاره ځکه واجب نه ده. چه ددې دواړو افطار کول د عذر په وجه دی. اود عذر په وجه افطار کول جنایت نه دې. نو هرکله چې افطار جنایت نشو. نو ددې په وجه به کفاره هم واجب نه وی.

| وَلَا فِدْيَةَ عَلَيْهِمَا اونه په دوی فدیه شته دې. خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ فِيمَا إِذَا خَافَتْ عَلَى الْوَلَدِ خلاف دې شافعی لره په هغې کې چې ویره وی په بچی باندې هُوَ يَعْتَبِرُهُ بِالشَّيْخِ الْفَانِي هغه ده لره په بوډا فانی باندې قیاس کوی |
|---|

**تشریح:- المذهبان فی وجوب الفدیة علیها**۞ ① زمونږ په نیز به په دې دواړو باندې فدیه هم واجب نه وی. ② امام شافعی رحمه الله فرمائی. که حامله یا مرضعه د خپل بچی ضائع کیدلو په وجه روژه افطار کړی نو په دوی به د قضاء سره فدیه هم واجب وی.

**دلائل الشافعی** رحمه الله ۞ ① حضرت امام شافعی رحمه الله دا په شیخ فانی باندې قیاس کوی. یعنی لکه څنګه چې په شیخ فانی باندې فدیه واجب وی. دغه ډول په دوی به هم فدیه واجب وی. ② صاحب د عنایه رحمه الله د امام شافعی رحمه الله د اړخه یو دلیل دا بیان کړې دې. چه د حامله او مرضعه د روژو په افطار کاوه کې پخپله ددوی هم فائده ده. اوددوی د بچو هم فائده ده. نو ددوی ذاتی فائدې په لحاظ خو په دوی قضاء واجب کړې شوې ده. او ددوی د بچو د فائدې په لحاظ سره فدیه واجب کړې شوې ده.

| وَلَنَا أَنَّ الْفِدْيَةَ بِخِلَافِ الْقِيَاسِ فِي الشَّيْخِ الْفَانِي اوزمونږ دلیل ددې چې فدیه خلاف دقیاس ده په شیخ فانی کې. وَالْفِطْرُ بِسَبَبِ الْوَلَدِ لَيْسَ فِي مَعْنَاهُ اودبچی په سبب سره روژه ماتول نه دی پدې معنا کې لِأَنَّهُ عَاجِزٌ بَعْدَ الْوُجُوبِ ځکه چې بوډا عاجز دې روسته د وجوب نه، وَالْوَلَدُ لَا وُجُوبَ عَلَيْهِ أَصْلًا او په بچی باندې وجوب دسره نشته دې. |
|---|

**تشریح:- دلائل الاحناف** رحمهم الله ۞ زمونږ دلیل دادې. چه د شیخ فانی په حق کې فدیه د نص نه خلاف قیاس ثابت ده. په دې وجه به په دې باندې د بل څه صورت قیاس کول ټیک نه وی. اود بچی په وجه د حامله یا مرضعه افطار کول د شیخ فانی په معنی کې هم نه دی. ځکه چې شیخ فانی د روژو د وجوب نه روسته عاجز شوې دې. اوپه بچی د سره وجوب هم نشته. نو هرکله چې د بچی په وجه افطار کول د شیخ فانی په معنی کې نه دی. نود شیخ فانی حکم به د حاملې او مرضعې په حق کې دلالةً هم ثابت نه وی.

**د شیخ فانی لپاره د افطار حکم**

| وَالشَّيْخُ الْفَانِي الَّذِي لَا يَقْدِرُ عَلَى الصِّيَامِ يُفْطِرُ ډیر زوړ سړې چې روژه نشی نیولې نو افطار دې کوی وَيُطْعِمُ لِكُلِّ يَوْمٍ مِسْكِينًا كَمَا يُطْعِمُ فِي الْكَفَّارَاتِ اوطعام دې ورکوی دهرې ورځې لپاره دیو مسکین ته لکه چې طعام ورکولای شی په کفاراتو کې |
|---|

**تشریح:- جواز الافطار للشیخ الفانی**۞ د شیخ فانی نه مراد هغه بوډا سړې دې. چه په روژو نیولو قدرت نه لری. او فانی په دې وجه وئیلی شوی دی. چه دې فناء ته نژدې شوې دې. یا داچه دده قوت فناء شوې دې.

**وجوب الفدیة علی الشیخ الفانی**۞ د شیخ فانی په اړه کې ① زمونږ مذهب دادې. چه دې به روژه نه نیسی. اود هرې روژې په بدله کې به فدیه ورکوی. لکه څنګه چې په کفاراتو کې فدیه ورکولې شی.

| وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ تَعَالَى {وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ} او اصل پدې کې قول دالله ﷻ دې. اودچا چې توان وی دروژې ددوی په ذمه بدله ده دیو فقیر خوراک قِيلَ مَعْنَاهُ: لَا يُطِيقُونَهُ وئیلې شوی دی چې ددې معنا ده څوک چې دروژې توان نه لری |
|---|

**تشریح:- دلیل جواز الافطار**۞ علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه په دې اړه کې اصل دالله تعالی قول ﴿وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ﴾ دې. مفسرین فرمائی. چه ددې معنی ﴿لایطیقونه﴾ ده. یعنی څوک چې د روژې توان نه لری. یعنی شیخ فانی وی. په هغوی فدیه واجب ده. لکه چې دالله تعالی قول [يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ أَنْ

تَضِلُّوا] يعنى ﴿أَن لَّا تَضِلُّوا﴾ الله تعالى ستاسو لپاره بيانوى.چه تاسو بې لارې نشئ.ددې نه په استدلال باندې يو اشكال دې.

**الاشكال**﴿هغه داچه كله دا آيت نازل شو.نو مالدارو خلګو به روژه نه نيوله.بلكه د روژو فديه به ئې وركوله.او فقيرانو به روژه نيوله.او وجه ددې داوه.چه د اسلام په ابتداء كې به خلګو ته اختيار وو.چه دوى روژه نيسى.اوكه فديه وركوى.بيا دا اختيار د الله تعالى د قول[ وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ ] په وجه منسوخ شو.اود منسوخ نه استدلال كول جائز نه دى؟

**جواب السوال**﴿ددې ځواب دادې.كه دا آيت د شيخ فانى په حق كې نازل شوې دې.لكه څنګه چې د اسلافو رائې ده.نو ددې آيت نه په استدلال كې هيڅ باك نشته.اوكه د روژه او فديه په مينځ كې د اختيار په سلسه كې نازل شوې دې.نو مونږ وايو.چه د. قادر على الصوم.په حق كې منسوخ شوى دې.خود شيخ فانى په حق كې په خپل حال باندې پاته دې.لكه څنګه چې دمنسوخ كيدلو نه مخكې وو.

وَلَوْقَدَرَعَلَى الصَّوْمِ يَبْطُلُ حُكْمُ الْفِدَاءِ اوكه په روژه قادر شو نو دفديه حكم به باطل شى لِأَنَّ شَرْطَ الْخَلْفِيَّةِ اسْتِمْرَارُ الْعَجْزِ ځكه چې دخليفه كيدو شرط دائمى عجز دې.

تشريح:- **بطلان حكم الفدية بعد القدرة على الصوم**﴿علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.كه شيخ فانى روژه اونه نيوله.او فديه ئې ادا كړه.بيا دې په روژو باندې قادرشو.نود فديې حكم به باطل شى.ځكه چې خليفه يعنى د فديه واجبيدلوشرط دائمى عجز دې.خو هركله چې دا كس په روژه باندې قادرشو.نو دائمى عجز اونه مونده شو.او هركله چې دائمى عجز اونه مونده شو.نود فديه وجوب هم ثابت نشو.او هركله چې فديه واجب نشوه.نو ادا څه شو؟ فديه، كأن لم يكن، په مرتبه كې شوه.اود روژې قضاء به واجب وى.

## د فدې لپاره وصيت كول

وَمَنْ مَاتَ اوځوك چې مړ شو وَعَلَيْهِ قَضَاءُ رَمَضَانَ اوپه هغه باندې قضا د رمضان وه فَأَوْصَى بِهِ نوهغه وصيت اوكړو د هغې أَطْعَمَ عَنْهُ وَلِيُّهُ خوراك به وركوى د هغه د اړخه ولى د هغه لِكُلِّ يَوْمٍ مِسْكِينًا د هر مسكين لپاره نِصْفَ صَاعٍ نيمه دړۍ د غنمو أَوْصَاعًا مِنْ تَمْرٍ اويا يوه دړۍ د قجورو أَوْشَعِيرٍ اويا د اوربشو

تشريح:- **وجوب الفدية للصوم على العاجز**﴿صورت د مسئلې دادې.چه يو داسې كس چې په هغه باندې د رمضان قضاء روژې واجب وې.مرګ ته نژدې شو.او ده خپلو وارثانو ته د فديه ور كاوه وصيت اوكړو.نو دده ولى به دده د اړخه د هر روژې په بدله كې يو محتاج ته د غنمو نيم صاع وركوى.يا به د اوربشو يا كجورو يو صاع وركوى.

لِأَنَّهُ عَجَزَعَنِ الْأَدَاءِ فِي آخِرِ عُمْرِهِ ځكه چې دې عاجز شو د ادا كولو نه په آخر عمر خپل كښې فَصَارَ كَالشَّيْخِ الْفَانِي نواوګرځيدلو په څير د شيخ فانى

تشريح:- دليل دادې.چه هركله دا كس په آخرى عمر كې د قضاء روژو نيولو نه عاجز شو.نود شيخ فانى په شان شو.نولكه څنګه چې په شيخ فانى باندې د هرې روژې فديه واجب وى.دغه ډول به په ده باندې هم د هرې روژې فديه واجب وى.

ثُمَّ لَابُدَّ مِنَ الْإِيصَاءِ عِنْدَنَا بيا ضرورى دې وصيت زمونږ په نيز خِلَافًا لِلشَّافِعِي رحمه الله خلاف ثابت دې د امام شافعى رحمه الله په دې مسئله كې وَعَلَى هَذَا الزَّكَاةُ او د دې پشان اختلاف په زكاة كې هم دې

تشريح:- **المذهبان فى وجوب الوصية لتنفيذها**﴿علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.① چه زمونږ په نيز په وارث باندې د فديه اداكول لازمى كاوه لپاره د مړكيدونكى وصيت كول ضرورى دى.كه مړكيدونكى وصيت اونكړو.نو په وارث باندې به دده د اړخه فديه وركول لازمى نه وى.② خود حضرت امام شافعى رحمه الله په نيز وصيت كو



ضرورى نه دى.بلكه په وارثانو باندې دده د اړخه فديه ادا كول لازمى دى.كه مړكيدونكى وصيت كړى وى.اوكه وصيت ئې نه وى كړې.هم دا د امام مالك رحمه الله قول دې.

**الاختلاف المذكور فى باب الزكاة**﴿ هم دا اختلاف د زكاة په مسئله كې دې.يعنى كه په يوكس زكاة واجب دې.خو ادا ئې نكړو.او مړشو.نو زمونږ په نيزحكم دادې.كه ده دمړكيدلونه مخكې خپلو وارثانوته د خپل اړخه د زكاة ادا كاوه وصيت كړې دې.بيا خو وارثانو له دده د اړخه زكاة ادا كول لازم دى.ګنې لازم نه دى.اود امام مالك او امام شافعى رحمه الله په نيز په وارثانو باندې دده د اړخه په هرحال كې زكاة ادا كول لازم دى.كه ده وصيت كړې وى.اوكه وصيت ئې نه وى كړې.

**الاختلاف فى مد تنفيذ الوصية**﴿ دوهم اختلاف دادې.چه① زمونږ په نيز د فديه ادا كاوه ياد زكاة ادا كاوه وصيت به د مال د دريمې برخې نه پوره كولې شى.② اود امام مالك او امام شافعى رحمه الله په نيز به د پوره مال نه پوره كولې شى.يعنى د امام مالك او امام شافعى رحمه الله په نيز د مړى د اړخه فديه يا زكاة ادا كولوكې كه د پوره متروكه مال ور كاوه اړتيا وى.نو پوره مال به وركولې شى.او زمونږ په نيز به د متروكه مال دريمه برخه وركولې شى.كه پوره فديه يا پوره زكاة ادا شى اوكه ادا نشى.

هُوَ امام شافعى رحمه الله يَعْتَبِرُهُ قياس كوى دا (فديه او زكاة) بِدُيُونِ الْعِبَادِ په قرضونو د بندګانو باندې إِذْكُلُّ ذَلِكَ حَقٌّ مَالِيٌّ ځكه چې هر يو مالى حق دې تَجْرِي فِيهِ النِّيَابَةُ جارى كيږى په دې كې نيابت

تشريح:- **دليل الشافعى** رحمه الله ﴿حضرت امام شافعى رحمه الله فديه او زكاة، يعنى د الله تعالى دين ئې د بنده ګانو په دين باندې قياس كړې دې.اوعلت جامعه دادې.چه په دواړوكې هر يومالى حق دې.او په دواړو كې نيابت جارى كيږى.نو لكه څنګه چې د مړى د پوره مال نه د بنده ګانو قرضه ادا كولې شى.كه مړ كيدونكى وصيت كړې وى.اوكه وصيت ئې نه وى كړې.دغه ډول به دده د پوره مال نه د الله تعالى قرضه يعنى فديه او زكاة ادا كولې شى.اګرچه ده وصيت نه وى كړې.

وَلَنَا أَنَّهُ عِبَادَةٌ اوزمونږ دليل دا دې چې دا عبادت دې وَلَابُدَّ فِيهِ مِنَ الْاِخْتِيَارِ اونشته خلاصې په دې كې د اختيار نه وَذَلِكَ فِي الْإِيصَاءِ اودا اختيار په وصيت كاوه كې دې دُونَ الْوِرَاثَةِ نه په وراثت كې لِأَنَّهَا جَبْرِيَّةٌ ځكه چې دا وراثت خو جبرى شى دې

تشريح:- **دليل الاحناف** رحمهم الله ﴿زمونږ دليل دادې.چه فديه او زكاة يوعبادت دې.او كوم څيزچه عبادت وى.په هغې كې د بنده اختيار ضرورى وى.اوس مونږ ګورو.چه هركله مړكيدونكى د فديه يا زكاة ادا كاوه وصيت كړې دې.نو اختيار موجود شوې دې.خو كله چې بغير د وصيت نه مړشى.نو د وراثت په مال كې دده اختيار پاتې نشو.ځكه چې د مرګ نه روسته هيڅ اختيار پاته نه پاتې كيږى.اود مرګ نه روسته اختيار په دې وجه پاته نه پاتې كيږى.چه وراثت پخپله يوجبرى(غير اختيارى)څيز دې.

**تائيده**﴿لكه چې څوك سړې د مرګ په وخت دا اووائى.چه زه دا وارثان خپل وارث نه ګڼړم.نو دده د مرګ نه روسته به دا خلګ وارثان وى.اوكه يو وارث پاته نورو وارثانو ته اووئيل.چه ته ئې ويش كړه.زه د مال وارث نه يم.نودا كس په دې وينا سره د وارث كيدلو نه نه اوځى.معلومه شوه.چه وراثت جبرى اوغير اختيارى شى دې.نوكه مړكيدونكى وصيت كړې وى.نو په وارثانو باندې به د مال د دريمې برخې نه دده د اړخه فديه وركول لازمى وى.ګنې لازم به نه وى.

ثُمَّ بله دا هُوَتَبَرُّعٌ چې دا وصيت احسان دې ابْتِدَاءً په پيل كې حَتَّى يُعْتَبَرَمِنَ الثُّلُثِ هم دا وجه ده چې صحيح كيږى په دريمه برخه (دمال كې)

تشريح:- **الوصية تبرع عن الميت**﴿ علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه د مړكيدونكى د فديه ادا كاوه ياد زكاة ادا كولووصيت كول، په ابتداء كې خو تبرع ده.اګرچه په آخرت كې به دهغه شى قائم مقام وى.كوم چې په مړى

باندې واجب دی.يعنی د روژې اود زکاة قائم مقام به وی.او په ابتداء کي به تبرع په دې وجه وی.چه روژه د مکلف فعل وی.اود مرګ په وجه واړه افعال ساقط شوی دی.نوګويا روژه د دنيا په حق کي دده د ذمې نه ساقط شوه.او هرکله چې په دنياوی حق کي روژه ساقط شوه.نود فديه ادا کاوه وصيت ګول به هم تبرع وی.خوپه آخرت کي به دا فديه واجب يعنی د روژې عوض وی.بهرحال هرکله چې وصيت کول په ابتداء کي تبرع ده.نو ددې پوره کول به هم په دريمه برخه مال کي کيږی.ځکه چې د وصيت پوره کول په دريمه برخه مال کي کيږی.

**وَالصَّلَاةُ كَالصَّوْمِ** اولمونځ په څير د روژې دی **بِاسْتِحْسَانِ الْمَشَايِخِ** په استحسان د مشائخو سره **وَكُلُّ صَلَاةٍ تُعْتَبَرُ** او(فديه د ) هرلمونځ به قياس کولای شی **بِصَوْمِ يَوْمٍ هُوَ الصَّحِيحُ** په روژې د يوې ورځې هم دا خبره صحيح ده

**تشريح:- حکم الفدية فی الصلاة ووجهه**۞او مشائخو ﷺ استحسانا فرمائيلی دی.چه لمونځ د روژې په شان دی .يعنی لکه څنګه چې دمرګ نه روسته د روژو فديه ورکولې شی.دغه ډول د لمونځ فديه ورکول هم جائز دی.خو قياس دادې.چه د لمونځ فديه جائز نه وی.ځکه چې لمونځ لکه څنګه چې په ژوند کي مال سره نه اداکيږی.دغه ډول د مرګ نه روسته به هم نشی اداکولې.او استحساناً په دې وجه جائز ګرځولې شوی دی.چه په بدنی عبادت کيدلوکي لمونځ د روژې مشابه دې.دا خيال ساتل پکار دی.چه يو فرض لمونځ د يوې روژې برابر دې.د يو فرض لمونځ به هم هغه فديه وی.کومه چې د يوې روژې وی.هم دا صحيح قول دې.او بعضو حضراتو وئيلی دی.چه د يوې ورځې مونځونه د يوې روژې برابر دی.خودا قول صحيح نه دې.

## په روژه کې د نيابت عدم جواز

**وَلَا يَصُومُ عَنْهُ الْوَلِيُّ** او روژه دې نه نيسی دده دارخه ولی دده **وَلَا يُصَلِّي** اونه دې لمونځ کوی.

**تشريح:- حکم صوم الولی عن الميت**۞مسئله داده.چه د مړی په ذمه که روژې وی.يا مونځونه وی. او بياولی د مړی د اړخه روژه اوساتله.يا ئې لمونځ اوکړو.① نودا روژه او لمونځ به د مړی د اړخه نشی شمارلې.

**لِقَوْلِهِ** ﷺ ځکه چې دنبی کريم ﷺ ارشاددې {**لَا يَصُومُ أَحَدٌ** چې نه دې څوك د چا دارخه روژه نيسی **عَنْ أَحَدٍ وَلَا يُصَلِّي أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ** [1]} اونه دې څوك د چا دارخه لمونځ کوی.

**تشريح:- دلائلنا** ۞زمونږ دليل① د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما حديث دې. ۞«لا يصوم أحد عن أحد ولا يصلی أحد عن أحد»۞ يعنی نه دې يوکس دبل کس په بدله کي روژه نيسی.اونه دې څوك دبل کس په بدله کي لمونځ کوی.② دوهم دليل دادې.چه د صوم عبادت نه مقصود نفس اماره مغلوب کول دی.او دا مقصود د بل په فعل سره نه حاصليږی .ددې امله څخه به بل کس ته د مړی د اړخه روژې نيولو هم اجازت نه وی.اود عائشه رضی الله عنها دحديث ۞«صام عنه وليه»۞مطلب دادې. ۞«فعل عن ما يقوم مقام الصوم من الإطعام إذا وصی بذالك»۞يعنی د مړی ولی دې د روژې قائم مقام کار اوکړی.يعنی فديه دې ورکړی.په دې شرط چې مړی د فديه ور کاوه وصيت کړې وی.

**وَمَنْ دَخَلَ فِي صَلَاةِ التَّطَوُّعِ أَوْفِي صَوْمِ التَّطَوُّعِ ثُمَّ أَفْسَدَهُ قَضَاهُ** چا چې نفل لمونځ يا روژه پيل کړل او بيا ئې فاسد کړل قضابه ئې راوړی.

**تشريح:- حکم قضاء ما افسده**۞صورت د مسئلې دادې.چه که نفلی روژه ئې پيل کړه.بيا ئې دا فاسد کړه.نو په ده باندې ددې قضاء راوړل واجب دی.

---

[1] غربه الزيلعی رحمه الله مرفوعاً وذکره وقفه علی ابن عباس رضی الله عنهما أخرجه النسائی فی السنن الکبری فی الصوم (۱۷۵/۲) رقم ۲۹۱۸) نصب الراية ۴۸۸/۲)_



**خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ** په خلاف دامام شافعی رحمه الله. **لَهُ أَنَّهُ تَبَرَّعَ بِالْمُؤَدَّى فَلَا يَلْزَمُهُ مَا لَمْ يَتَبَرَّعْ بِهِ** دده دليل دادې چې دا خو دفعل مودی سره تبرع دې نو دکوم چې دتبرع نه ده کړې کول به ئې لازم نه وی.

**تشريح:-** امام شافعی او امام احمد رحمه الله فرمائی.چه په ده باندې مطلقا قضاء واجب نه ده.

**بناء الاختلاف بين الاحناف والشوافع** رحمهم الله ☆زمونږ اود شوافعو رحمهم الله په مينځ کې د اختلاف بنا (بنياد) دا دې.چه د روژه پيل کاوه نه روسته بغير د عذره افطار کول،زمونږ په نيز خو جائز نه دی.اود شوافعو رحمهم الله په نيز جائز دی.نو هر کله چې زمونږ په نيز افطار مباح نه دې.نودې به د افطار کاوه په وجه د جنايت مرتکب ګرځولې شی.او په جنايت کونکی باندې قضاء واجب وی.په دې وجه نفلی روژه ماتولو په وجه به زمونږ په نيز قضاء واجب وی.اود شوافعو رحمهم الله په نيز چونکه جائز دی.ځکه به افطار کول جنايت نه وی.اوچه جنايت نشو.نو ددوی په نيز به قضاء هم لازم نه وی.

**دليله**۞حضرت امام شافعی رحمه الله نفل لمونځ او نفلی روژه ماتولو باوجود په قضاء نه واجب کاوه باندې ددې نه استدلال کوی.چه نفلی روژه يا نفل لمونځ چې هرکله پيل کړی.اوددې يوه برخه ئې ادا کړه.نوددې برخې په اداکولوکي داکس متبرع اود يونيك کار کونکې شو.نود کومې پاته برخې سره چې ده تراوسه پورې تبرع نه ده کړې.نوهغه به په ده باندې لازم نه وی.ګنی نود آيت [**مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِنْ سَبِيلٍ**] خلاف به لازم شی.يعنی محسنين(تبرع کونکی)باندې د ګرفت (نيولو) هيڅ لاره نشته.بهرحال د نفلو پاته برخه چې کله په ده باندې لازم نشوه.نوددې په پريښولو باندې به قضاء هم واجب نه وی.ځکه چې قضاء هم دهغه واجبيږی.چه دهغې ادا لازم وی.اود کوم چې ادا ضروری نه وی.دهغې قضاء راوړل به هم لازم نه وی.ددې مثال داسې دې.لکه چې يوکس د صدقه په اراده سره دوې [دوه] درهمه په جيب کي واچولې.بيا ده يو درهم صدقه ورکړه.نود بلې صدقه کول به لازم نه وی.ځکه که دې يوه هم صدقه نکړی.نو په ده هيڅ لازم نه دی.

**وَلَنَا أَنَّ الْمُؤَدَّى قُرْبَةٌ وَعَمَلٌ فَتَجِبُ صِيَانَتُهُ بِالْمُضِيِّ عَنِ الْإِبْطَالِ** او زمونږ دليل دادې چې فعل مودی يو عبادت دې اوعمل دې نوپه کاوه سره دده دباطلولونه بچ کول واجب دی **وَإِذَا وَجَبَ الْمُضِيُّ وَجَبَ الْقَضَاءُ بِتَرْكِهِ** اوکله چې ئې کول واجب شو نو په ترك ئې قضا واجبه شوه.

**دلائل الاحناف** رحمهم الله ۞زمونږ① دليل دادې.چه نفلی روژه کومه چې پيل کړې شی.هغه عبادت اوعمل دې.او اعمال د باطليدلو نه بچکول واجب دی.لکه چې د الله تعالی ارشاد دې[**وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ**]او اعمال د باطليدلونه بچکول داسې کيداې شی.چه دا پوره کړې شی.بهرحال د پيل کاوه نه روسته عمل پوره کول واجب دی. او هرکله چې عمل پوره کول واجب دی.نود فساد په صورت کي به ددې قضاء راوړل هم واجب وی.

**ثُمَّ عِنْدَنَا لَا يُبَاحُ الْإِفْطَارُ فِيهِ بِغَيْرِ عُذْرٍ** بيا زمونږ په نيز په نفل روژه کي بلا عذره افطار کول مباح نه دی **فِي إِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ لِمَا بَيَّنَّا** په يو روايت کي ددوه روايتونونه لکه چې مونږ بيان کړل. **وَيُبَاحُ بِعُذْرٍ** او دعذر په وجه مباح دی

**فساد الصوم من غير عذر**۞په آخرکي فرمائی.چه دعذر په وجه نفلی روژه ماتول په اتفاق سره جائز دی.خو بغير د عذره ماتولوکي دوې [دوه] روايتونه دی.يود جواز،او بل د عدم جواز.په عدم جواز باندې دليل د الله تعالی قول [**وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ**]دې.

**وَالضِّيَافَةُ عُذْرٌ** او دعوت عذر دې **لِقَوْلِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {أَفْطِرْ وَاقْضِ يَوْمًا مَكَانَهُ** [1] لکه چې د نبی کريم ﷺ نه

---

[1] من حديث أبی سعيد الخدری رضی الله عنه أخرجه أبوداود الطيالسی رحمة الله فی مسنده (ص،۲۹۳) والدارقطنی فی سننه (۱۷۷/۲/۲)_

ارشاددې ماته کړه اوددې په ځائې يو قضا روژه اونيسه.

**جواز الافطار لاجل الضيافة**۞ ①علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه ضيافت هم عذر دې.يعنې که څوك د يوكس دعوت اوكړي.اود هغه نفلې روژه وي.نوكه دې دا نفلې روژه د ضيافت او دعوت په وجه ماتول اوغواړي.نو ماتولې شي.

**دليل الافطار**اود قول اول دليل دا حديث دې. «أنه ﷺ كان في ضيافة رجل من الأنصار فامتنع رجل من الأكل وقال إني صائم.فقال إنما دعاك أخوك لتكرمه فأفطر واقض يومًا مكانه» يعنې نبي كريم ﷺ د يو انصاري په دعوت كې شريك وو.يوصاحب د خوراك نه منع شو.او وې وئيل.چه زما روژه ده. نبي كريم ﷺ اوفرمائيل.چه ستا رور تاته دعوت دركړې دې.تاله د هغه اكرام كول پكار دي.ته افطار اوكړه. اوددې په ځائې د يوې ورځې قضاء راوړه. په زير بحث مسئله كې د امام ابوحنيفه رحمه الله نه د حسن بن زياد روايت دې.چه ضيافت عذر نه دې.

**دليل عدم الافطار**۞ځكه، نقل دي.چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي. «إذا دعي أحدكم فليجب فإن كان مفطرا فليأكل وإن كان صائمًا فليصل» يعنې كه په تاسوكې د يوكس دعوت اوشي.نو قبول ئې كړئ. بياكه دې روژه دار نه وي.نو اوخرئ.اوكه روژه دار وي.نو دعوت كونكي ته دخير دعا اوكړئ.ددې نه معلوميږي.چه ضيافت عذر نه دې.په دې وجه د روژې ماتولو اجازت نه دې وركړې شوې.

**قول بعض المشائخ في الافطار وعدمه**۞بعض مشائخ رحمهم الله فرمائي.چه كوربه (ملمستياكونكې) كه صرف په حاضرى كولوخوشحاله وي.اوپه نه خوراك سره تكليف محسوس نكړي.نو افطار به نه كوي.اوكه په نه خوراك سره تكليف محسوس كړي.نو افطار كول پكار دي.او روسته به ددې قضاء كوي.خو دا خيال ساتل پكاردي.چه د افطار اجازت د زوال نه وړاندې دې.د زوال نه روسته افطار نه دې كول پكار.خو كه د افطار نه كاوه په صورت كې د مورپلار يا په دې دواړو كې د يونافرماني كيږي.نو بيا د زوال نه روسته هم افطار كول جائزدي.

## د ماشوم بلوغ اود كافر اسلام په رمضان كې

وَإِذَا بَلَغَ الصَّبِيُّ أَوْ أَسْلَمَ الْكَافِرُ فِي رَمَضَانَ هركله چې بچې بالغ اوكافر مسلمان شو په رمضان كې أَمْسَكَا بَقِيَّةَ يَوْمِهِمَا قَضَاءً لِحَقِّ الْوَقْتِ بِالتَّشَبُّهِ نوبندوي په پاته ورځ دروژه داروسره د مشابهت دوخت دحق كاوه دپاره.

**حل اللغة** ①التشبه: مشابهت اختيارول

**تشريح:- القاعدة في الباب**۞ددې مسئلې مدار په يوه قاعده باندې دې.قاعده داده.چه د رمضان په ورځوكې كه څوك د ورځ په آخرى برخه كې په دې سې صفت اوحالت كې شو.چه كه دې د ورځ په اوله برخه كې په دې حالت باندې وې.نو په ده به روژه نيول فرض وو.نوپه دې كس به د ورځ په پاته برخه كې امساك يعنې د روژه دارو په شان اوسيدل واجب وي. اوامساك ځكه واجب دې چې امام محمد رحمه الله د مبسوط په كتاب الصوم كې ذكر كړي دي. «فليصم بقية يومه» او «فليصم» امر دې.اود امر صيغه په وجوب دلالت كوي.اود حائضه په اړه كې ئې فرمائيلي دي. «إذا طهرت في بعض النهار فلتدع الأكل والشرب» او «لتدع» هم د امر صيغه ده.چه په وجوب باندې دلالت كوي.

وَلَوْ أَفْطَرَا فِيهِ لَا قَضَاءَ عَلَيْهِمَا اوكه پاته ورځ ئې افطار اوكړو نو نشته قضا په دواړو باندې. لِأَنَّ الصَّوْمَ غَيْرُ وَاجِبٍ فِيهِ ځكه چې پدې كې روژه واجب نه ده. وَصَامَا مَا بَعْدَهُ لِتَحَقُّقِ السَّبَبِ وَالْأَهْلِيَّةِ اوددغې ورځې نه روسته به روژه نيسي دعدم خطاب په امله سره. وَلَمْ يَقْضِيَا يَوْمَهُمَا وَلَا مَا مَضَى لِعَدَمِ الْخِطَابِ او ددغې ورځې نه روسته روژه نيسي دعدم خطاب په وجه سره.



**تشريح:- عدم القضاء على الصبي والكافر بعد البلوغ والاسلام**۞هم ددې قاعدې لاندې دامسئله ده.چه د رمضان په ورځ كې يو نابالغ ماشوم بالغ شو.ياكافر مسلمان شو.نودا دواړه حضرات به پاته ورځ د خوراك څكاك اوجماع وغيره نه ځان ساتي.چه د روژه دارو سره مشابهت اختيارولو په وجه د رمضان د مقدس وخت حق پوره شي.ځكه دا بده خبره ده.چه ټوله دنيا خو په روژې سره وي.او دې خوراك څكاك كوي.په دې وجه دوى له هم د مفطراتو نه بنديدل پكار دي.خوددې باوجود كه نابالغ د بالغ كيدلو نه روسته اوكافر د مسلمانيدلو نه روسته د رمضان په ورځ څه خوراك څكاك اوكړو.نو په دوى به ددې ورځې قضاء واجب نه وي.ځكه چې په دوى باندې ددې ورځې روژه د سره واجب شوې نه ده.بلكه ددې ورځې پاته امساك يعنې د خوراك څكاك نه بنديدل واجب دي.او قضاء د روژې واجبيږي.د امساك نه واجبيږي.په دې وجه به په دوى باندې ددې ورځې قضاء واجب نه وي.خو ددې ورځې نه روسته چې د رمضان كومې ورځې دي.ددې روژې به په دوى باندې فرض وي.ځكه چې اوس په دوى كې د روژو نيولو.لياقت او اهليت هم شته.چه عاقل، بالغ او مسلمان دي.اود شرعي عذرونو نه پاك دي.اود صوم د فرضيت سبب يعنې رمضان هم موجود دې.نو هركله چې اهليت هم موجود دې.اوسبب هم متحقق دې.نود روژو په فرضيت كې څه اشكال دې.البته د تيرو شوو ورځو اود بالغ كيدلو د ورځې اود اسلام قبلولو د ورځې قضاء به واجب نه وي.ځكه چې په دغه ورځ دا دواړه حضرات د سره د شريعت مخاطب نه وو.

وَهٰذَا بِخِلَافِ الصَّلَاةِ او داپه خلاف د لمانځه ده. لِأَنَّ السَّبَبَ فِيهَا الْجُزْءُ الْمُتَّصِلُ بِالْأَدَاءِ ځكه چې په لمانځه كې سبب هغه جز دې كوم چې د اداسره متصل دې فَوُجِدَتِ الْأَهْلِيَّةُ عِنْدَهُ نو دغه وخت اهليت موجود دې وَفِي الصَّوْمِ الْجُزْءُ الْأَوَّلُ وَالْأَهْلِيَّةُ مُنْعَدِمَةٌ عِنْدَهُ اوپه روژه كښې سبب جزء اول وى اودغه وخت اهليت معدوم دې.

**تشريح:- حكم الصلاة بعد البلوغ والاسلام في الوقت**۞اوهركله چې مخاطب مكلف نشو.نو په ده باندې ادا واجب نشوه.اوهركله چې ادا واجب نشوه.نو قضاء به د كومې واجب وي.ددې په خلاف لمونځ دې.چه دلمونځ په بالكل آخرى وخت كې كه ماشوم بالغ شو.يا كافر مسلمان شو.نو په دوى به ددې لمونځ قضاء واجب وي.ځكه چې د لمونځ د وجوب سبب د وخت هغه جزء دې.كوم جزء چې ادا سره متصل وي.خوكه وخت تنګ وي.او لمونځ ئې ادا نكړو.نو هم دغه تنګ وخت به سبب وي.نوهركله چې په دې تنګ وخت كې كافرمسلمان شو.يا ماشوم بالغ شو.نوپه دوى كې دلمونځ لياقت او اهليت هم موجود شو.اوس چې په دوى كې اهليت د صلاة هم موجود دې.اود لمونځ د وجوب سبب هم موجود شو.نو په دوى باندې دا لمونځ لازم شو.خوچونكه د ادا وخت پاته پاتې نشو.په دې وجه به قضاء واجب وي.او پاتې شوه روژه، نوددې د وجوب سبب ددې ورځې اول جزء دې.يعنې هغه جزء سبب دې.كوم چې د سهار راختلوسره متصل دې.او په دې وخت كې يعنې ددې ورځې په اول جزء كښې د كفر اود عدم بلوغ په وجه اهليت معدوم دې.او هركله چې اهليت معدوم دې.نوددې ورځې روژه لازم نشوه.اوهركله چې روژه لازم نشوه.نو ددې قضاء به هم واجب نه وي.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّهُ إِذَا زَالَ الْكُفْرُ أَوِ الصِّبَا قَبْلَ الزَّوَالِ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې چې هركله كله كفر يا بچپن دزوال نه مخكې زائله شوې وى نو پده قضا ده لِأَنَّهُ أَدْرَكَ وَقْتَ النِّيَّةِ ځكه چې ده د نيت وخت بياموندو

**تشريح:- الرواية عن ابى يوسف رحمه الله في زوال العذر قبل الزوال**۞اود امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دي.كه كفر يا ماشوم توب د زوال نه مخكې زائل شو.يعنې د زوال نه مخكې كافر مسلمان شو.ماشوم بالغ شو.نو په دوى به ددې ورځې د روژې قضاء واجب وي.ځكه چې دوى د نيت وخت موندلې دې.ځكه د زوال نه مخكې مخكې كه د روژې نيت اوكړې شي.نو روژه صحيح كيږي.

**نظيره**۞ددې نظير دا دې. كه يوكس د افطار په نيت سره سهار كړو. خوڅه خوراك څكاك ئې نه دې كړې بيا د زوال نه وړاندې وړاندې كه د روژې نيت اوكړي. نو روژه به معتبر وي. اګرچه افطار حكماً د روژې منافي دې. دغه ډول كفر حكماً د روژې منافي دې. حقيقتاً نه دې. كه د زوال نه مخكې مسلمان شو. او د روژې نيت ئې اوكړو. نو دده روژه به معتبر وي. په دې شرط د سهار نه ئې څه خوراك څكاك نه وي كړې.

**وَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّ الصَّوْمَ لَا يَتَجَزَّأُ وُجُوبًا** د ظاهر الروايه وجه داده چې روژه متجزى نه ده په وجوب كښې. **وَأَهْلِيَّةُ الْوُجُوبِ مُنْعَدِمَةٌ فِي أَوَّلِهِ** او اهليت د وجوب معدوم دې د اول نه. **إِلَّا أَنَّ لِلصَّبِيِّ أَنْ يَنْوِيَ التَّطَوُّعَ فِي هَذِهِ الصُّورَةِ** مګر بچي له جائز دى چې نيت اوكړي دنفلو. پدې صورت كښې **دُونَ الْكَافِرِ عَلَى مَا قَالُوا** نه چې كافر لره بنا په هغې چې مشائخو وئيلى دى، **لِأَنَّ الْكَافِرَ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ التَّطَوُّعِ أَيْضًا**، ځكه چې كافر له دنفلو لياقت نشته **وَالصَّبِيُّ أَهْلٌ لَهُ** او بچي لره ددې لياقت شته دې.

**تشريح:- وجه ظاهر الرواية**۞د ظاهر الروايه وجه داده. چه روژه په وجوب كې نه تقسيميږي. يعنى داسې نشي كيدلې. چه روژه د ورځ په اول نصف كې غير واجب وي. او په نصف آخر كې واجب وي. اودا خبره فيصله شوې ده. چې د ورځ په اوله برخه كې عدم بلوغ اود كفر په وجه په دې دواړو كې د صوم اهليت معدوم دې. نوچونكه د ورځ په اوله برخه كې خود وجوب اهليت موجود نه وو. په دې وجه په دوى باندې روژه واجب نشوه. او په پاته ورځ كې په دې وجه واجب نشوه. چه روژه په وجوب كې نه تقسيميږي.

## د مسافر د اقامت نه روسته د روژې نيت كول

**وَإِذَا نَوَى الْمُسَافِرُ الْإِفْطَارَ ثُمَّ قَدِمَ الْمِصْرَ قَبْلَ الزَّوَالِ** هركه چې مسافر د افطار نيت اوكړو بيا ښار ته راغلو مخكې د زوال نه **فَنَوَى الصَّوْمَ أَجْزَأَهُ** **لِأَنَّ السَّفَرَ لَا يُنَافِي أَهْلِيَّةَ الْوُجُوبِ** اود روژې نيت ئې اوكړو جائزدې. ځكه چې سفر نه د اهليت دوجوب نه منافي دې **وَلَا صِحَّةَ الشُّرُوعِ** اودنه دصحت دشروع نه.

**تشريح:- جواز صوم التطوع بعد الاقامة قبل الزوال**۞صورت د مسئلې دادې. كه په غير رمضان كې يومسافر په شپه كې نيت اوكړو. چه صباله به روژه نه نيسم. بيا د زوال نه مخكې خپل وطن ته اورسيدلو. اودنفلى روژې نيت ئې اوكړو. حالانكه ده د تراوسه پورې څه خورا څكاك هم نه دې كړې. نو دده دا نفلى روژه به ادا وي. ځكه چې سفر خو نه د اهليت د ثبوت منافي دې. اونه د پيل د صحت منافي دې. يعنى د مسافر لپاره د روژې نيولو اهليت هم ثابت دې. او ددې نه د روژې پيل كول هم صحيح كيږي. تردې كه مسافر نفلى روژه فاسد كړي. نو قضاء به واجب وي.

**(وَإِنْ كَانَ فِي رَمَضَانَ فَعَلَيْهِ أَنْ يَصُومَ)** اوكه داسې په رمضان كې وو نوبه ده روژه نيلو لازم دى. **لِزَوَالِ الْمُرَخِّصِ فِي وَقْتِ النِّيَّةِ** دنيت وخت درخصت دهنده دزوال په امله سره.

**تشريح:- لزوم الصوم على المسافر بعد الاقامة قبل الزوال**۞اوكه د مسافر په شپه كې د افطار نيت كول، اود زوال نه مخكې خپل وطن ته رسيدل په رمضان كې پيښ شول. نو په ده باندې ددې ورځې روژه نيول لازم دى. ځكه چې د نيت په وخت كې يعنى د زوال نه مخكې مرخص (يعنى سفرچه افطار ته ئې رخصت ور كاوه هغه) زائل شو. نو هركله چې د نيت په وخت كې مرخص زائل شو. نو روژه نيول به لازم وي.

**أَنَّهُ لَوْ كَانَ مُقِيمًا فِي أَوَّلِ الْيَوْمِ ثُمَّ سَافَرَ لَا يُبَاحُ لَهُ الْفِطْرُ** آيا ته نه ګورې چې كه مقيم وو په اول دورځې كې بيا مسافر شو نودده لپاره افطار مباح نه دې **تَرْجِيحًا لِجَانِبِ الْإِقَامَةِ فَهَذَا أَوْلَى** ترجيح وركول جائز جانب اقامته ته. نو داصورت بدرجه اولى دې

**تشريح:- دليله فى ضوء النظير**۞ ځكه تاسو اوګورئ. كه څوك سړې د ورځ په اوله برخه كې مقيم شو. بيا ده سفرشروع كړو. نود سفر په وجه افطار جائز نه دې. ځكه چې د ورځې په اوله برخه كې د مقيم كيدلو تقاضا



داده. چه افطار مباح نه وي. اود ورځ په اخره برخه كې د مسافر كيدلو تقاضا داده. چه افطار جائز وي. نود مقيم اړخ ته ترجيح وركولو په صورت كې افطار ناجائز اوګرځولې شو. نوهركله چې په دې صورت كې افطار ناجائزدې. نوپه اولنى صورت (يعنى هركله چې مسافر د زوال نه مخكې مقيم شو) كې به په درجه اولى افطار جائز وي. ځكه چې په دويمه مسئله كې ددې باوجود چې د افطار په وخت مرخص يعنى سفر موجود دې. بياهم افطار جائز نه دې. نو په كوم صورت كې چې دافطار په وخت مرخص يعنى سفر هم موجود نه دې. نو په درجه اولى به افطار كول ناجائز وي.

**إِلَّا أَنَّهُ إِذَا أَفْطَرَ فِي الْمَسْأَلَتَيْنِ لَا تَلْزَمُهُ الْكَفَّارَةُ لِقِيَامِ شُبْهَةِ الْمُبِيحِ** مګر دومره خبره ده چې كه ده په دواړو صورتونو كې افطار اوكړو نو كفاره چې پرې نشته د امله د شبهې دمبيح نه.

**تشريح:- وجوب القضاء فقط دون الكفارة فى الصورتين**۞خو دومره خبره ضرور ده. چه په دواړو صورتونو كې كه ئې افطار اوكړو. نوصرف قضاء به واجب وي. كفاره به واجب نه وي. ځكه چې افطار مباح كونكې يعنى د سفر شبه موجود ده. اود شبه په وجه كفاره ساقطيږي. په دې وجه دې دواړو مسئلو كې به هم د افطار كاوه په وجه كفاره واجب نه وي.

## د بې هوشۍ د ورځ د روژې عدم قضاء

**وَمَنْ أُغْمِيَ عَلَيْهِ فِي رَمَضَانَ لَمْ يَقْضِ الْيَوْمَ الَّذِي حَدَثَ فِيهِ الْإِغْمَاءُ** څوك چې بيهوشه شو په رمضان كې نو قضا به ئې راوړي. ددغه ورځې دروژې چې پكې بې هوشي راغلې وي.

**تشريح:- عدم وجوب قضاء يوم الذى اغمى فيه**۞مسئله داده. كه د رمضان په مياشت كې د صبا راختلو نه روسته په يوكس باندې بې هوشي راغله. اود څو ورځو پورې بې هوشه پروت وو. نود كومې ورځې نه چې بې هوشي پيل شوې ده. ددې ورځې قضاء خوبه نه راوړي. البته ددې نه د روستو ورځو قضاء راوړل به واجب وي. ددې ورځې قضاء خو په دې وجه واجب نه ده. چه ددې ورځې روژه موجود شوه.

**لِوُجُودِ الصَّوْمِ فِيهِ وَهُوَ الْإِمْسَاكُ الْمَقْرُونُ بِالنِّيَّةِ إِذِ الظَّاهِرُ** د امله د روژې د موندو پدې كې اودغه دمفطراتو نه منع كيدل دى په نيت سره **إِذِ الظَّاهِرُ وُجُودُهَا مِنْهُ وَقَضَى مَا بَعْدَهُ لِانْعِدَامِ النِّيَّةِ** ځكه چې ظاهر ددې نه دنيت موندل دى اوددې نه د روسته روژو به قضا راوړي. دنيت نه كيدو په امله سره.

**تشريح:- دليله**۞په دې طريقه چې داكس د روژې نيت سره د مفطرات صوم نه منع شو. اود نيت تحقق په دې طريقه اوشو. چه دا كس مسلمان دې. اود رمضان په شپوكې د مسلمان ښكاره حال دادې. چه دده هيڅ يوه شپه بغير د نيت نه نه تيريږي. نوهركله چې د ښكاره حال د تقاضې مطابق په نيت سره د مفطرات نه بنديدل موجود شو. نو روژه موجود شوه. او هركله چې ددې ورځې روژه موجود شوه. نوددې د قضاء راوړلو هيڅ اړتيا نشته. او ددې نه د روستنو ورځو چونكه نيت نه دې موجود شوې. په دې وجه به په دې ورځو كې (بغير د نيته) د مفطرات نه بنديدل روژه نشى شمارلې. اونيت په دې وجه نه دې موجود شوې. چه اغماء يعنى بې هوشي راتګ، د نيت مانع دى.

## په اوله شپه د رمضان بې هوښي (بې هوشي) راتلل

**وَإِنْ أُغْمِيَ عَلَيْهِ أَوَّلَ لَيْلَةٍ مِنْهُ قَضَاهُ يَوْمَ تِلْكَ اللَّيْلَةِ** اوكه د رمضان په اوله شپه كې پرې بيهوشي راغله نود ټولو قضا به راوړي سوې ددغې شپې د ورځې نه. **لِمَا قُلْنَا** لكه چې مونږ اووئيل

**تشريح:- عدم وجوب قضاء اول يوم رمضان بعد الاغماء فيه**۞ صورت د مسئلې دادې. كه د رمضان په ړومبۍ شپه په يو كس باندې بې هوشي راغله. او پوره مياشت بې هوشه وو. نود ړومبۍ روژې نه علاوه دپوره مياشت قضاء واجب ده. ځكه چې د رمضان مياشت په نظر راتلو نه روسته د مسلمان ښكاره حال دادې. چه ده به د ړومبۍ روژې نيت كړې وي. اوهركله چې د ړومبۍ روژې نيت ئې اوكړو. نو دده دا روژه به شرعاً معتبر وي. او ددې

قضاء به واجب نه وي.اوچونکه ددې نه روسته د نورو روژو نيت موجود نشو.په دې وجه به ددې قضاء واجب وي.

| وقال مالك لايقضى مابعده مالك رحمه الله وائي دمابعد قضا به نه راوړي لأن صوم رمضان عنه يتأدى بنية واحدة خکه چې روژه درمضان دده په نيز ادا کيږي په يو نيت سره |
|---|

**تشريح:- وجوب قضاء كل رمضان فى صورة الاغماء قبل رمضان**⊛خوکه دا کس د مياشت ليدلو نه مخکې بې هوشه شو.نود رومبئ روژې قضاء به هم واجب وي.خکه چې د مياشت ليدلو نه مخکې نيت معتبر نه دی.

⊛ **خلاف مالك رحمه الله فى المسئلة**⊛ حضرت امام مالك رحمه الله فرمائی.که د رمضان په رومبئ شپه کې بې هوشي راغله.او پوره مياشت بې هوشه پاتې شو.اود مفطرات صوم نه بند شوې وو.نو په ده به بالکل قضاء واجب نه وي.بلکه د پوره مياشت روژې به شرعاً معتبر شمارلې شي.

⊛ **دليله** ⊛ د حضرت امام مالك رحمه الله دليل دادې.چه د رمضان ټولې روژې په يونيت سره ادا کيدلې شي.د هريوې روژې لپاره خانله خانله نيت کاوه هيڅ ارتيا نشته

| بمنزلة الاعتكاف لکه اعتکاف چې دې |
|---|

**تشريح:-** .لکه خنګه چې د پوره عشرې اعتکاف کاوه لپاره يونيت کافي وي.د هرورځې اعتکاف لپاره نيت ضروري نه وي.بهرحال هرکله چې د امام مالك رحمه الله په نيز د رمضان ټولو روژو لپاره يونيت کافي دې.او په رومبئ شپه کې د ښکاره حال مطابق نيت موجود شو.لکه چې احناف رحمهم الله هم ددې قائل دی.نو پوره رمضان په نيت سره امساك يعنى د صوم د مفطراتو نه منع کيدل موجود شو.او هرکله چې داخبره ده.نود پوره رمضان روژې ادا شوې.اوچه د پوره رمضان روژې ادا شوې.نوددې قضاء به ولې واجب وي؟

| وعندنا لابد من النية لكل يوم اوزموږ په نيز لابدی ده دنيت نه دهرې ورځې لپاره لأنها عبادات متفرقة خکه چې دا جلا جلا عباتونه دی لأنه يتخلل بين كل يومين ماليس بزمان لهذه العبادة خکه چې دهر دوو ورځو په مينځ کې داسې وخت حائل کيږي کومه چې ددې عبادت زمانه نده |
|---|

**تشريح:- دليل الاحناف رحمهم الله** ⊛او زموږ په نيز د هرې ورځې لپاره جلا جلا نيت کول ضروری دی.خکه چې د هرې ورځې روژه خانله يوعبادت دې.لکه تاسو اوګورئ چه د کومې يوې ورځې روژه فاسد شې.نود پاته ورځو روژې فاسد نه وي.دغه ډول که بعض ورځوکې اهليت معدوم وي.نوددې نه دا نه لازميږي.چه په پاته ورځوکې هم اهليت ثابت نه وي.بلکه کيدلې شي.چه د رمضان په بعضو ورځوکې يوکس د کفر په وجه دروژې اهل نه وي.خوچه کله ئې اسلام قبول کړو.نو په پاته ورځوکې اهليت ثابت شو.حاصل دا شوچه د رمضان ټولې روژې يوعبادت نه دې.بلکه د هرې ورځې روژه خانله خانله عبادت دې.لکه خنګه چې هرلمونځ خانله عبادت دې.اود رمضان روژې خانله خانله عبادت په دې وجه دې.چه په هر دوې [ادوا] روژو مينځ کې شپه يو داسې فاصل(جدائی پيداکونکی) وخت دې.چه ددې صوم د عبادت وخت نه دې.نو يوې ورځې وخت د بلې روژې وخت سره متصل نشو.اوهرکله چې د دوې [ادوا] روژو په مينځ کې اتصال پاتې نشو.نو دا به دوې [ادوا] عبادتونه شمارلې شي.يو عبادت به نشي شمارلې.ګنی که ټولې روژې يو عبادت شمار کړې شي.نود يو عبادت په مينځ کې به داسې فاصل وخت موجود کيدل لازم شي.کوم چې ددې عبادت وخت نه دې.او دا خبره د عبادت د موضوع خلاف ده.په دې وجه موږ اووئيل.چه ټولې روژې يو عبادت نه دې.لکه خنګه چې امام مالك رحمه الله فرمائيلې دی.بلکه هره روژه خانله خانله عبادت دې.او هرکله چې هره يوه روژه خانله خانله عبادت دې.نود هرې ورځې روژې لپاره جلا جلا نيت کول ضروری دی.

| بخلاف الاعتكاف په خلاف د اعتکاف نه. |
|---|



**تشريح:- الجواب عن دليل مالك رحمه الله**⊛په خلاف د اعتکاف.چه په دې کې شپه او ورځ ټوله د اعتکاف زمانه ده.په دې وجه اعتکاف واره په ټوله هم يوعبادت شمارلې کيږي.او ددې لپاره يو نيت کافی وي.خو په اعتکاف باندې روژې قياس کول ټيك نه دی.

## په ټول رمضان کې د بې هوشئ حکم

| ومن أغمي عليه في رمضان كله قضاه په چا چې په واړه رمضان کې بيهوشي تيره شوه قضا به ئې راوړي. |
|---|

**تشريح:- المذهبان فى وجوب قضاء رمضان على المغمى كله**⊛مسئله داده.که څوك پوره رمضان بې هوشه پاتې شو.نود پوره رمضان قضاء به راوړي.

| لأنه نوع مرض خکه چې اغماء يو ډول مرض دې يضعف القوى ولايزيل الحجى چې قوتونه ضعيف کوی اوعقل نه زائله کوی فيصير عذرا فى التأخير لا فى الإسقاط نودا په تاخير کې عذر شو نه که په ساقطولوکې. |
|---|

**حل اللغة:** ① الحجى: عقل

**تشريح:- دليله** ⊛ دليل اوريدلو نه مخکې داخبره په ذهن کې کينوئ.چه د اغماء په صورت کې عقل مستور خو وي.خو مسلوب او زائل نه وي.اود جنون په حالت کې عقل زائل کيږي. لکه تاسو ته به معلومه وي.چه د بيمارئ په زمانه کې په رسول الله ﷺ باندې بې هوشي راغله.حالانکه نبی کريم ﷺ د عقل زائل کيدلو نه معصوم دې.لکه خنګه چې ددوی ﷺ په اړه کې د حق الله ﷻ ارشاد دې[وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ]نوهرکله چې دا ثابته شوه.چه اغماء قوی(عقل)کمزوری کوی.خو عقل نه زائل کوی.بلکه عقل پاته پاتې وي.البته دغه وخت لپاره پټيږي.(يعنی کار نه کوی)خکه د اغماء په وجه روژه مؤخر کيدلې شی.خو ساقط کيدلې نشی.او هرکله چې د ،مغمی عليه، نه روژه ساقط نشوه.نو په ده به لازماً قضاء واجب وي.

## په ټول رمضان کې ليونی پاتې کيدل

| ومن جن رمضان كله لم يقضه او په چا چې په واړه رمضان کې ليونتوب تيرشو قضا به يې نه راوړي |
|---|

**تشريح:- اقسام الاعذار**⊛صاحب د کفايه رحمه الله ليکلی دی.چه اعذار په څلور قسمه وي.① يوهغه چې عادةً يوه ورځ او يوه شپه پورې ممتد(اوګد) نه وي.لکه خوب،ددې حکم دادې.چه ددې په وجه هيڅ يو عبادت نه ساقطيږي.خکه چې دا عذر موجب د حرج نه وي.② دوهم هغه عذر کوم چې مورزاده (پيدائشي) او خلگی طور باندې ممتد وي.لکه د عدم بلوغ زمانه،ددې حکم دادې.چه دا واړه عبادتونه ساقطوی.خکه چې دا موجب د حرج دې.نود حرج لرې کاوه لپاره د ماشوم نه واړه عبادتونه ساقط شوی دی. ③ دريم هغه عذر کوم چې عادةً د يولمونځ وخته پورې ممتد وي.خود روژې د وخت په مقدار ممتد نه وي.لکه اغماء،ددې حکم دادې.چه د يوې ورځې شپې نه که زيات شو.د حرج لرې کيدلو لپاره به دا عذر ګنړلې شی.يعنی که د اغماء په وجه شپږ مونځونه فوت شی.نوددې قضاء راوړل به واجب نه وي.يعنی د حرج لرې کاوه لپاره قضاء ساقط شوې ده. ④ څلورم داچه د لمونځ او روژې دواړو وخت ته ممتد کيدلې شی.اوکله نه ممتد کيږي. لکه جنون،ددې حکم دادې.چه که په دواړوکې ممتد شو.نو دواړه به ساقط کوی.

| خلافا لمالك هو يعتبره بالإغماء خلاف دې مالك چې هغه ليونتوب به په اغماء باندې قياس کوی |
|---|

**تشريح:- خلاف مالك رحمه الله فى المسئلة ودليله**⊛ ددې تفصيل نه روسته دې معلومه وي.که څوك واړه رمضان مجنون پاتې شو.نو په ده به ددې رمضان د روژو قضاء واجب نه وي.امام مالك رحمه الله فرمائی.چه د جنون په صورت کې به هم قضاء واجب وي.حضرت امام مالك رحمه الله جنون په اغماء باندې قياس کړې دې.خکه چې د دواړو په شان جنون هم د عقل فساد پيدا کوی.لکه خنګه چې د اغماء په صورت کې قضاء واجبيږي.دغه ډول د جنون په صورت کې به هم قضاء واجب وي.

**وَلَنَا أَنَّ الْمُسْقِطَ هُوَ الْحَرَجُ** او زمونږ دليل دادي چي ساقطونكي خو حرج دي **وَالْإِغْمَاءُ لَا يَسْتَوْعِبُ الشَّهْرَ عَادَةً فَلَا حَرَجَ** او اغماء عادتاً ټولو مياشت نه پاتې كيږي نو حرج نشته **وَالْجُنُونُ يَسْتَوْعِبُهُ فَيَتَحَقَّقُ الْحَرَجُ** او ليونتوب ټوله مياشت نيسي نو حرج متحقق شو.

**تشريح:- دليل الاحناف** ﷺ زمونږ دليل دادي چه د تيروشوو څلرو اقسامو نه معلومه شوه چه روژه يا لمونځ ساقطونكي څيزحرج دي يعني كه عذر داسې وي چه موجب د حرج وي نو عبادت به د ذمې نه ساقط شي او كه موجب د حرج نه وي نوددې عذر په وجه به عبادت نه ساقطيږي. اوس مونږ اوكتل چه اغماء په عامه توګه يومياشت پورې پاته نه پاتې كيږي. اوس كه كله اغماء د يومياشت پورې ممتد شي نو نا آشنا شى دي. په دې وجه به د يومياشت روژو قضاء راوړلوكي هيڅ حرج نه وي. او جنون چونكه دا يومياشت پورې ممتد وي. په دې وجه د جنون په صورت كي د يومياشت روژو قضاء راوړلوكي به حرج عادةً د لازميږي. نو هركله چي داخبره ښكاره شوه چه د اغماء په صورت كي حرج نشته. او د جنون په صورت كي حرج دې. نومونږ وايو چه د رمضان پوره مياشت مجنون پاتې كيدلو په صورت كي به قضاء واجب نه وي. خود رمضان پوره مياشت اغماء په صورت كي به قضاء واجب وي.

### په څيني رمضان كښي د ليونتوب حكم

**وَإِنْ أَفَاقَ الْمَجْنُونُ فِي بَعْضِهِ قَضَى مَا مَضَى** (١) كه ليونې درمضان په بعضې وخت كي ښه شو نو دتيرو ورځو قضا به راوړي.

**تشريح:- وجوب القضاء بعد الافاقة من المجنون** ﷺ صورت د مسئلې دادې. ① كه مجنون ته د رمضان په څه برخه كي افاقه اوشوه. نود تيروشوو ورځو دې قضاء اوكړي. او راروانې روژې دې اونيسي

**خِلَافًا لِزُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ رَحِمَهُمَا اللهُ** ﷺ په خلاف د امام زفراوشافعي ﷺ نه. **هُمَا يَقُولَانِ لَمْ يَجِبْ عَلَيْهِ الْأَدَاءُ لِانْعِدَامِ الْأَهْلِيَّةِ** هغوى فرمائي چي په ده ادائيګي واجب نه ده. دعدم اهليت په امله سره **وَالْقَضَاءُ مُرَتَّبٌ عَلَيْهِ** اوقضا په ادا متفرع ده **وَصَارَ كَالْمُسْتَوْعَبِ** او دې دټولې مياشت دليونى په څيرشو.

**تشريح:-** حضرت امام زفر او امام شافعي ﷺ فرمائي چه په ده به د تيرو ورځو قضاء واجب نه وي. هم دا د امام محمدؒ ﷺ قول دې.

**دليل الائمة** ﷺ ددې حضراتو دليل دادې چه مجنون چونكه د خطاب اهليت نه لرى. په دې وجه په ده باندې ادا نه وه واجب شوې. او قضاء چونكه په ادا باندې مرتب وي. په دې وجه هركله چي په مجنون باندې د افاقه نه د مخكي ورځو قضاء واجب نشوه. نو په ده به قضاء هم واجب نه وي. اودا داسې شو لكه چي څوك د رمضان پوره مياشت مجنون پاتې شو. يعنى لكه څنګه پوره رمضان د مجنون پاتې كيدلو په صورت كي قضاء نه واجبيږي. دغه ډول د رمضان په بعضو ورځوكي د مجنون پاتې كيدلو په صورت كي به هم قضاء واجب نه وي. ګويا دې حضراتو په بعض رمضان كي د جنون راپيښيدل، په واړه رمضان كي د جنون په پاته پاتې كيدلوصورت باندې قياس كړې دې.

**وَلَنَا أَنَّ السَّبَبَ قَدْ وُجِدَ وَهُوَ الشَّهْرُ** زمونږ دليل دادې چي سبب اوموندې شو اوهغه مياشت درمضان ده

**تشريح:- دليل الاحناف** ﷺ زمونږ دليل دادې چه كوم كس د رمضان په بعضو ورځو كي مجنون پاتې شو او بيا افاقه اوشوه. نو دده په حق كي د روژې د وجوب سبب موجود شو. او سبب شهود شهر دې. څكه چې د الله تعالى ارشاد دې[فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ] او داخبره فيصله شوې ده. چه په آيت كي د شهر نه مراد بعض شهر دې. څكه كه پوره شهر سبب اوګرځولې شي نو روژه به په شوال كي نيول پكار وي. څكه چې د مسبب وجود

(١) القول الراجح هو هذا قول الجمهور ﷺ كذا فى الكفاية (٢\٢٨٥) والعناية (٢\٢٨٥) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٠١)-



دسبب نه روسته وي. نو اوس به تقديرى عبارت داسې وي. ﴿ فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ ﴾ ،بعض الشهر فليصم الشهر كله﴾ په دې آيت كي د﴿ فَلْيَصُمْهُ ﴾د ،مفعول ضمير، مرجع لفظ د﴿ الشَّهْرَ ﴾دې. كوم چې په عبارت كي ذكر دې. بعض شهر نه دې. كوم چې مقدر منلې شوې دې. اوس به مطلب دا شى چه دكوم كس جنون، د رمضان پوره مياشت راګيره نكړه. نوده بعض مياشت بيا موندله. نو ده له به د پوره مياشت روژې نيول پكار وي. خوچونكه د جنون په وجه ئې د بعض ورځو روژې اونه نيولې. په دې وجه به ددې قضاء راوړي. او پاته به ادا كوى.

**وَالْأَهْلِيَّةُ بِالذِّمَّةِ، وَفِي الْوُجُوبِ فَائِدَةٌ** او اهليت په ذمه دې او په وجوب كښ فائده ده **وَهُوَ صَيْرُورَتُهُ مَطْلُوبًا عَلَى وَجْهٍ لَا يُحْرَجُ فِي أَدَائِهِ** اوهغه ددې نه په دېسې طريقو مطلوب والئ دې چي په ادا كاوه كښې ئې پرې حرج رانشي.

**السوال** ﷺ دا عبارت د يو سوال ځواب دې. سوال دادې. چه د مجنون په حق كي اګرچه سبب يعنى شهود شهر موجود شو. خو په ده باندې افاقه، د ړومبو ورځو د روژو د وجوب لپاره مانع موجود دې. يعنى د جنون په زمانه كي اهليت نه موجود كيدل. اودا خبره ښكاره ده. چه د صوم د وجوب لپاره د سبب نه علاوه اهليت(مكلف كيدل) هم ضرورى دى. هم دا وجه ده. چه په نابالغ باندې د رمضان روژه واجب نه ده. حالانكه سبب يعنى شهود شهرموجود شو. خوچونكه اهليت معدوم دې. په دې وجه په ده باندې د رمضان روژه واجب نشوه. نوهم دغه ډول كوم كس چې په كومه زمانه كي مجنون پاتې شو. په هغه كي د وجوب اهليت وجوب پاتې نشو. او هركله چي اهليت پاتې نشو. نو په ده به ددې زمانې ادا واجب نه وي. اوهركله چي ادا واجب نشوه. نو قضاء واجب كيدل هم نه دي پكار. حالانكه تاسو د تيروشوو ورځو قضاء واجب كړې ده.

**الجواب** ﷺ ددې ځواب دادې. چه د اهليت مدارصرف په دومره خبره باندې دې. چه داكس ددې ذمه دارئ اوعهده دارئ قابل وي. يعنى په مجنون كي بالفعل اګرچه د روژې نيولو اهليت نشته. خو دومره اهليت ضرور شته. چه روژه دده په ذمه اولګولې شى. اود تكليف مدار هم دا اهليت دې. نوهركله چې اهليت موجود شو. نود جنون زمانې روژې به هم دده په ذمه لازم وي. خوچونكه دا ئې ادا نكړې شوې. په دې وجه به په ده باندې قضاء واجب وي.

**بِخِلَافِ الْمُسْتَوْعَبِ لِأَنَّهُ يُحْرَجُ فِي الْأَدَاءِ فَلَا فَائِدَةَ** په خلاف دمستوعب نه. چه هغه په ادا كاوه كي حرج مومى. نو هيڅ فائده نشته **وَتَمَامُهُ فِي الْخِلَافِيَّاتِ** او ددې پوره بحث په خلافيات كي دې

**السوال الثانى** ﷺ خو كه دا سوال اوكړئ شى. چه دا خبره كه ټيك وى. نو كوم كس چې پوره رمضان مجنون پاتې شو. په هغه هم قضاء واجب كيدل پكاردى. حالانكه تاسو په ده باندې قضاء نه واجبوئ.

**الجواب** ﷺ ددې ځواب دادې. چه خالى د ذمه دارئ قبلولو لائق كيدل كافى نه دى. بلكه چې په دې كي فائده هم وي. او فائده داده. چه په دې سې طريقه روژه نيول مطلوب دى. چه ددې په اداكولوكي هيڅ حرج لاحق نه وي. نومونږ ګورو. چه د يوې مياشتې نه كم روژې واجبولوكي فائده موجود ده. په دې طريقه چې د يوې مياشتې نه دكمو روژو په قضاء كي هيڅ حرج نشته. په دې وجه د يومياشت نه كم روژې چې هركله واجب كړې شوې. نو په ده به ددې قضاء واجب وي. خو يومياشت يا ددې نه زيات د جنون په حالت كي د تيريدلو په صورت كي ، په ده باندې د روژو په وجوب كي هيڅ فائده نشته. څكه چې د يو مياشت روژو قضاء د حرج په وجه ساقطيږي. نوكه د يو مياشت روژې واجب هم كړې شى. نود حرج په وجه به ساقطيږي. نو په دې صورت كي په قضاء واجبولوكي هيڅ فائده نشته.

**خلاصة الكلام** ﷺ حاصل داچه ،وجوب فى الذمة، په اغماء ،عدم بلوغ، اود جنون په وجه سره نه معدوم كيږي. خوچونكه اغماء اوږده نه وي. په دې وجه قضاء نه ساقطوى. اوعدم بلوغ يعنى ماشوم توب چونكه اوږد وى په دې وجه دا قضاء بالكليه ساقطوى. او جنون اوږد هم وى. او مختصرهم وى. نوكه اوږد وى. نودا به د عدم بلوغ سره لاحق شى. اوكه اوږد نه وى. نود اغماء سره به لاحق شى. اوپه روژه كي د جنون اوږد مقدار يوه

مياشت ده.او په لمانځه کي د يوې شپې ورځې نه زياته ده.نود رمضان پوره مياشت که د جنون په حالت کي تيره شوه.نوقضاء به ساقط وي.اوکه ددې نه کم جنون پاتې شو.نو قضاء به ساقط نه وي.ددې مسئلې پوره تفصيل په ،خلافيات، کي ذکر دي.

ثم لافرق بين الأصلي والعارضي (¹)بيا داصل اوعارضي په مينځ کي هيڅ توپير نشته دې لأنه إذا بلغ مجنونا التحق بالصبي فانعدم الخطاب ځکه چې هرکله دغه ليوني بالغ شونوبچی سره لاحق شو نو خطاب معدوم شو. وهذا مختار بعض المتأخرين اودا مختار ده دبعضو متاخرينو.

**تشريح:- تعريف الجنون الاصلى والعارضى**⊛جنون اصلی دادې.چه يوکس د بالغ کيدلو نه مخکي مجنون وو.بيا بالغ هم د جنون په حالت کي شو.اوجنون عارضی دادې.چه بالغ خود عاقل په حالت کي شو.خو روسته مجنون شو.

**⊛عدم الفرق بين الجنون الاصلى والعارضى**⊛علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه د جنون اصلی اوجنون عارضی په مينځ کي هيڅ توپير نشته.يعنی په تيرشوی حکم کي دواړه برابر دی.بعض حضرات فرمائی.چه دا عدم توپير د ظاهرالروية مطابق دې.او امام محمد رحمه الله د دواړو په مينځ کي توپير کړې دې.دوی فرمائيلی دی.چه د جنون اصلی په صورت کي که د رمضان په څه برخه کي افاقه اوشوه.نو په ده به د تيروشوو ورځو قضاء واجب نه وي.لکه ماشوم که د رمضان په مينځ کي بالغ شو.نو په ده به د تيروشوو ورځو قضاء واجب نه وي.اود جنون عارضی په صورت کي به د تيروشوو ورځوقضاء واجب وي.د حضرت امام محمد رحمه الله بيان شوې توپير د بعض متاخرينو خوښ مذهب دې.

## په پوره رمضان کې د روژې او افطار نيت نه کول

ومن لم ينو في رمضان كله لا صوما ولا فطرا فعليه قضاؤه کوم سړی چې په واړه رمضان کي نيت اونکړو نه د روژې نه دفطر نو په ده د رمضان قضا واجب ده.

**تشريح:- وجوب القضاء على الصحيح المقيم اذا لم ينو الصوم فى رمضان**⊛ مسئله داده.که يوکس د رمضان په ورځ کي د مفطرات صوم نه منع شو.خوده نه د روژې نيت اوکړو،او نه ئې د افطار نيت اوکړو.نودا کس که مسافر وي.يا بيمار وي.نو بالاتفاق قضاء واجب ده.اوکه تندرست مقيم وي.نو زموږ په نيز قضاء واجب ده.

وقال زفر رحمه الله: يتأدى صوم رمضان بدون النية امام زفر رحمه الله فرمائی چې اداکيږی روژه درمضان په غير دنيت نه في حق الصحيح المقيم په حق د تندرست مقيم کښې.

**تشريح:- خلاف زفر رحمه الله**⊛خود امام زفر رحمه الله په نيز قضاء واجب نه ده.دحضرت امام زفر رحمه الله مذهب دادې. چې د رمضان روژه د تندرست مقيم په حق کي بغيرد روژې د نيته هم اداکيږی.

لأن الإمساك مستحق عليه، فعلى أي وجه يؤديه يقع عنه ځکه چې امساك خوپده واجب دې نودغه په هره طريقه چې هم دې اداءکړی واجب به اداشی كما إذا وهب كل النصاب من الفقير لکه يو توانګر چې واړه نصاب فقير ته هبه کړی.

**تشريح:- دليل زفر رحمه الله**⊛د امام زفر رحمه الله دليل دادې.چه د رمضان په ورځ د خوراك څکاك اود جماع نه بنديدل واجب دی.نوچه څنګه هم دا واجب ادا کړی.ادا به وي.که نيت اوکړی.اوکه نيت اونکړی.لکه يوکس په مال ...ندې دکال تيريدلو نه روسته پوره نصاب يو فقير ته هبه کړو.اود زکاة ادا کاوه نيت ئې اونکړو.نو

---

(¹) القول الراجح هو [illegible] ية يعنى لا فرق بين الأصلى والعارضى كذا فى العناية (۲\۲۸۷)وردالمحتار(۲\۱۳٤)نقلاً



زکاة به اداشی.دغه ډول د رمضان په ورځ کي که بغير د نيت نه ،إمساك عن المفطرات، موجود شو.نو په دې سره به د رمضان روژه اداشی.

ولنا أن المستحق الإمساك بجهة العبادة ولا عبادة إلا بالنية زموږ دليل دادې چې واجب هغه امساك دې کوم چې په طريقه دعبادت وی اوعبادت نه وی مګر په نيت سره

**تشريح:- دليل جمهور الاحناف** رحمهم الله⊛زموږ دليل دادې.چه د رمضان په ورځ د خوراك څکاك اود جماع نه مطلقا منع کيدل واجب نه دی.بلکه د عبادت په طريقه بنديدل واجب دی.او بغير د نيت نه د خوراك څکاك اود جماع نه بنديدل،عبادت نه وی.او دلته کي مسئله دا فرض کړې شوې ده.چه ده نيت اونکړو.نو په دې سره لازم شو.چه ده صوم عبادت ادا نکړو.اوهرکله چې ئې صوم عبادت ادا نکړو.نو په ده به قضاء واجب وی.

وفي هبة النصاب وجدت نية القربة على ما مر في الزكاة اودنصاب په هبه کي دقربت نيت موندې شی لکه چې په کتاب الزكاة کښې تيرشو.

**تشريح:- الجواب عن قياس زفر رحمه الله**⊛او پاتې شو پوره نصاب هبه کول.نو په دې کي د عبادت نيت موجود شو.په دې طريقه چې ده د ثواب حاصلولو په اراده فقير ته مال ورکړو.نو هرکله چې د عبادت نيت موجود شو.نو زکاة هم اداشو.تفصيل په كتاب الزكاة کي تيرشوې دې.

## بغير د نيت نه په رمضان کې خوراك كول

ومن أصبح غير ناو للصوم اوچا چې سحر کړو بغيرد نيت کاوه دروژې نه فأكل لا كفارة عليه عند أبي حنيفة رحمه الله (¹) نو څه ئې اوخوړل کفاره پرې نشته په نيز دامام ابوحنيفه رحمه الله.

**تشريح:- وجوب الكفارة على من اكل من غير نية الصوم**⊛صورت د مسئلې دادې.چه يوکس د رمضان په مياشت راسته نيت اونکړو.او صبائې کړو.بيا ئې صباله څه خوراك څکاك هم اوکړو .د زوال نه مخکي يا د زوال نه پس،نود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به په ده باندې کفاره واجب نه وی.البته قضاء به واجب وی.

وقال زفر: عليه الكفارة لأنه يتأدى بغير النية عنده او امام زفر رحمه الله فرمائی چې په ده کفاره ده ځکه چې دده په نيز د رمضان روژه دنيت نه ادا کيږی

**تشريح:-** اود امام زفر رحمه الله په نيز د قضاء سره به کفاره هم واجب وی. د امام زفر رحمه الله دليل دادې.چه ددوی په نيز د رمضان روژه چونکه بغير د نيته ادا کيږی.په دې وجه به وئيلی شی.چه ده د روژې په حالت کي صباکړو.او بيا هغه روژه کومه چې شرعاً په ده واجب وه.ماته ئې کړه.اود رمضان روژه په قصد سره د ماتولو په وجه کفاره واجبيږی.په دې وجه به په دې صورت کي هم کفاره واجب وی.اودا بالکل داسې ده.لکه چې په نيت سره روژه اونيسی.اوماته ئې کړی.

وقال أبو يوسف ومحمد رحمهما الله: إذا أكل قبل الزوال تجب الكفارة اوامام ابويوسف اوامام محمد رحمه الله وائی چې که خوراك ئې اوکړو مخکي د زوال نه واجب ده پرې کفاره

**تشريح:-** صاحبين رحمهما الله فرمائی.که د زوال نه ئې مخکي افطار اوکړو.نو کفاره به واجب وی.اوکه د زوال نه روسته ئې افطار اوکړو.نو کفاره به واجب نه وی.

لأنه فوت إمكان التحصيل فصار كغاصب الغاصب ځکه چې ده دروژې حاصلولو امکان فوت کړو نو دې غاصب الغاصب په څير شو

---

(¹) القول الراجح هو هذا قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى رد المحتار(۲\۱۱۲) وبدائع الصنائع (۲\۱۰۱) والهندية (۱\۲۰۶) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۰۲)_

**تشریح:- دلیلهما**۞ د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه د زوال نه مخکې مخکې نیت کول،او روژه نیول ممکن وو.خو چې کله ده د زوال نه مخکې څه خوراك څکاك اوکړو.نوده د صوم امکان فوت کړو .اود صوم حاصلولو امکان فوت کول داسې دی.لکه چې روژه اونیسی.او ماته ئې کړی.او روژه نیول،او ماتول موجب د کفارې دی.نو په دې صورت کې به هم کفاره واجب وی.اودا د ،غاصب الغاصب، په شان شو.

**نظیره**۞یعنی مثلاً زید د خالد نه یو څیزغصب کړو.نو په زید باندې ددې مغصوب شي واپس کول واجب دی.خو ده واپس نکړو.تردې چې د زید نه حامد هم دا شي غصب کړو.او تلف(هلاك) ئې کړو.نو حامد ددې مغصوب شي واپس کاوه امکان فوت کړو.نولکه څنګه چې خالد له د زید غاصب نه د تاوان اخستلو اختیار شته دې.دغه ډول د حامد (غاصب الغاصب)نه هم د تاوان اخستلو اختیار شته.خو په دې وجه نه چې حامد د خالد نه داڅیز غصب کړې دې.بلکه په دې وجه چې حامد ددې شي مالك ارخ ته د واپس کاوه امکان ختم کړو.اود یو شي امکان فوت کول داسې دی.لکه شی فوت کول.نو ګویا حامد د خالد نه یو شی غصب کړو.او فوت ئې کړو.او غاصب چې یو مغصوب شي فوت کړی.نو په ده تاوان واجب وی.په دې وجه په ،غاصب الغاصب، باندې تاوان واجبیږی.نو هم دغه ډول د زوال نه مخکې خوراك څکاك کاوه سره دې کس د صوم امکان فوت کړې دې.اود صوم امکان فوت کول،په حقیقت کې صوم فوت کول دی.اود صوم په فوت کولو،اود ماتولو په وجه کفاره واجبیږی.په دې وجه د زوال نه مخکې د افطار کاوه په صورت کې په کفاره واجب وی.اود زوال نه روسته د افطار کاوه په صورت کې چونکه د صوم حاصلیدلو امکان فوت کول نه لازموی.ځکه چې د زوال نه روسته د صوم د نیت وخت نه دې.په دې وجه د زوال نه روسته د افطار کاوه په صورت کې به کفاره واجب نه وی.

| |
|---|
| **وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ: أَنَّ الْكَفَّارَةَ تَعَلَّقَتْ بِالْإِفْسَادِ** دامام صاحب رحمه الله دلیل دادې چې دکفارې تعلق دروژې فاسدولو سره دې **وَهٰذَا امْتِنَاعٌ إِذْ لَا صَوْمَ إِلَّا بِالنِّيَّةِ** اودا مفروضه مسئله ده دروژې ساتلو نه متع کیدل دی.ځکه چې روژه بغیر د نیت نه نشته دې. |

**تشریح:- دلیل ابی حنیفة** رحمه الله ۞د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه کفاره واجبیږی.په قصد سره په روژه

ماتولو،اود روژې ماتول،ددې خبرې تقاضا کوی.چه روژه د مخکې نه موجود وی.او روژه بغیر د نیته نه موجودیږی.نود متن په ذکرشوې صورت کې د روژې نیت نه کاوه په وجه روژه د سره موجود نشوه.او هرکله چې روژه موجود نشوه.نو ددې ماتول څنګه اوشو؟ زیات نه زیات دا وئیلی شی.چه دا کس د روژې نیولو نه منع شو .او دا خبره ټولو ته معلومه ده.چه کفاره په روژه ماتولوسره واجبیږی.په روژه نه نیولوسره کفاره نه واجبیږی.ثابته شوه .چه په دې صورت کې به کفاره واجب نه وی.

## په حائضه او نفاسه د روژې قضاء

| |
|---|
| **وَإِذَا حَاضَتِ الْمَرْأَةُ أَوْ نَفِسَتْ أَفْطَرَتْ وَقَضَتْ** اوهرکله چې ښځې ته حیض یا نفاس راغلو نوافطار دې اوکړی نوقضا به راوړی |

**تشریح:- وجوب القضاء علی الحائض والنفساء**۞ مسئله: د رمضان په میاشت کې که یوې ښځې ته د حیض وینه پیل شوه.یا د ماشوم ولادت(پیدائش) اوشو.نوددې حکم دادې.چه د حیض اونفاس په حالت کې به روژه نه نیسی.او ددې روژو به د رمضان نه روسته قضاء راوړی.په خلاف د مانځه.یعنی د حیض اود نفاس په وجه د روژو قضاء نه ساقطیږی.البته د لمونځ قضاء ساقطیږی.

| |
|---|
| **بِخِلَافِ الصَّلَاةِ لِأَنَّهَا تُحْرَجُ فِي قَضَائِهَا** په خلاف د لمانځه نه ځکه چې دلمانځه په قضا کې حرج دې **وَقَدْ مَرَّ فِي الصَّلَاةِ** اودا په کتاب الصلات کې تیرشوی دی. |



**تشریح:- وجه الفرق بین الصلاة والصوم**۞وجه د توپیر داده.چه د مونځونو کثرت،او هره میاشت په حیض کې د اخته کیدلو په وجه د مونځونو قضاء ساقط کړې شوې ده.او روژه چونکه په کال کې یوځل راځی.نود روژو په قضاء راوړلو کې هیڅ حرج نه پیښیږی.په دې وجه د روژو قضاء پاته اوساتلې شوه.د حیض او نفاس په وجه دا ساقط نکړې شوه.

## په رمضان کې د حیض نه پاکیدل

| |
|---|
| **وَإِذَا قَدِمَ الْمُسَافِرُ أَوْ طَهُرَتِ الْحَائِضُ فِي بَعْضِ النَّهَارِ أَمْسَكَا بَقِيَّةَ يَوْمِهِمَا** کله چې واپس راشی مسافر یا پاکه شی حائضه دورځې په څه برخه کې نوامساك دې کوی پاته ورځ دواړه. |

**تشریح:- المذهبان فی وجوب الامساک علی المسافر والحائض اذا اقیم اوطهرت**۞ صورت د مسئلې دا دې. که یومسافر د رمضان په ورځ خپل وطن ته واپس راغې.یا حائضه پاکه شوه.① نو زمونږ په نیز په دې دواړو باندې د ورځ په پاته برخه کې د مفطرات نه امساك واجب دې.یعنی د دوی دواړو د مخکې نه روژه نه وه.خوددې باوجود به د ماښامه پورې د روژه دارو په څیر وخت تیروی.

| |
|---|
| **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ: لَا يَجِبُ الْإِمْسَاكُ** امام شافعی رحمه الله فرمائی چې امساك پرې واجب نه دې. **وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ كُلُّ مَنْ صَارَ أَهْلًا لِلُّزُومِ** اوپدې کې اختلاف دې.هرهغه سړې چې د لزوم قابل شوې وی **وَلَمْ يَكُنْ كَذٰلِكَ فِي أَوَّلِ الْيَوْمِ** او دورځې په پیل کې ددې قابل نه وی |

**تشریح:-** حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه په دوی د پاته ورځ امساك واجب نه دې.دا اختلاف د هرهغه کس په اړه کې دې.چه د ورځ په څه برخه کې د روژې کامل اهل شی.مثلاً کافر مسلمان شی.یا ماشوم بالغ شی.یا مجنون ته افاقه اوشی.نو زمونږ په نیز په دوی د ورځ په پاته برخه کې امساك واجب دې.خود امام شافعی رحمه الله په نیز واجب نه دې.

| |
|---|
| **هُوَ يَقُولُ التَّشْبِيهُ خَلَفٌ فَلَا يَجِبُ إِلَّا عَلٰى مَنْ يَتَحَقَّقُ الْأَصْلُ فِي حَقِّهِ** هغه دا فرمائی چې تشبه خلیفه دې نو په هغه به واجب وی دچا چې په حق کې اصل مقصود وی **كَالْمُفْطِرِ مُتَعَمِّدًا أَوْ مُخْطِئًا** لکه په قصد سره یا په خطاء سره افطار کوُنکې. |

**تشریح:- دلیل الشافعی** رحمه الله ۞دحضرت امام شافعی رحمه الله دلیل دادې.چه د روژه دارو سره مشابهت اختیارول،د روژې خلیفه دې.او قاعده ده.چه خلیفه په هغه کس واجبیږی.په کوم کس چې اصل واجب وی.اوپه کوم کس چې اصل واجب نه وی.په هغه به خلیفه هم واجب نه وی.نو هرکله چې په مسافر اوحائضه ښځه باندې اصل یعنی روژه واجب نه ده.نو ددې خلیفه یعنی امساك به څنګه واجب وی.اوکه مثلاً یوکس په رمضان کې قصداً افطار اوکړو.یا ئې په خطا سره افطار اوکړو.په دې طریقه چې په یوم شك کې ئې څه اوخوړل.بیا معلومه شوه.چه نن خو رمضان دې.یا ئې دا اوګڼړل،چه اوس لاشپه پاته ده.او پیشنمې ئې اوکړو.روسته معلومه شوه.چه سهار راختلې دې.نو چونکه په دې قصداً یا خطا افطار کونکې باندې اصل عینی روژه واجب وه.نود افطار کاوه نه روسته به په دوی باندې ددې خلیفه یعنی امساك هم واجب وی.

| |
|---|
| **وَلَنَا أَنَّهُ وَجَبَ قَضَاءً لِحَقِّ الْوَقْتِ لَا خَلَفًا** زمونږ دلیل دادې چې امساك واجب دې دوخت د حق پوره کاوه لپاره نه دخلیفه کیدو په جهت سره **لِأَنَّهُ وَقْتٌ مُعَظَّمٌ** ځکه چې دغه معظم وخت دې |

**تشریح:- دلیل الاحناف** رحمهم الله ۞ زمونږ دلیل دادې.چه د روژه دارو مشابهت اختیارول د روژې خلیفه دی.ځکه چې د روژه دارو سره مشابهت د ورځ په بعض برخه کې موجود شوې دې.او روژه د ټولې ورځې وی. اود بعض شئ خلیفه نه وی.نو ثابته شوه.چه په بعض برخه کې د مفطرات نه بندیدل،د روژې خلیفه کیدلو په وجه نه دی.بلکه د وخت یعنی د رمضان حق ادا کاوه لپاره واجب شوې دې.ځکه چې د رمضان ورځ یو معظم وخت دې.

بِخِلَافِ الْحَائِضِ وَالنُّفَسَاءِ وَالْمَرِيضِ وَالْمُسَافِرِ حَيْثُ لَا يَجِبُ عَلَيْهِمْ حَالَ قِيَامِ هٰذِهِ الْأَعْذَارِ په خلاف دحائضې اونفاسې اومریض اومسافر نه چې واجب نه ده په دوی باندې حال دقیام دد عذرونو کې لِتَحَقُّقِ الْمَانِعِ عَنِ التَّشْبِيهِ حَسَبَ تَحَقُّقِهِ عَنِ الصَّوْمِ دتشبه نه دامر مانع دمتحقق کیدوپه امله سره لکه دروژې نیولو نه مانع تحقق دې.

تشریح:- **وجه عدم وجوب الامساک علی الحائض والنفساء**ﷺ ددې په خلاف حائضه اود نفاس والا ښځه، او په بیمار او مسافر باندې، چه په دوی باندې ددې عذرونو موجود کیدلو په حالت کې امساک واجب نه دې. ځکه چې دا ذکرشوی عذرونـه (حیض، نفاس، سفر اونـاروغی (نـاروغی (بیماری)) چـه څنګـه د روژې نیولـو نـه مانع دی.دغـه ډول د روژه دارو سره د مشابهت اختیـارولو نـه هم مـانع دی.د حائضۍ او نفاسۍ په حق کې بالصائمین ځکه ممنوع دې.چه په دې دواړ روژه حرام ده.اوپه حرام فعل سره تشابه هم حرام وی.په دې وجه ددې دواړو په حق کې تشابه بالصائمین حرام ده.اود مریض اومسافر په حق کې تشابه بالصائمین ځکه ممنوع ده.چه دې دواړوته دافطار اجازت دحرج دفع کاوه لپاره ورکړې شوې دې.نوکه په دوی باندې د روژه دارو مشابهت اختیـارول لازم کړې شی.نو نقض موضوع به لازم شی.یعنی د روژې نه نیولواجازت بیمار اومسافر ته د حرج لرې کاوه لپاره ورکړې شوې وو.خوتشابه بالصائمین لازمولو سره ئې بیا په حرج کې اخته کړل.هم دا نقض موضوع دې.

**غلط فهمۍ سره د صبا نه روسته یا د غروب نه وړاندې خوراک کول**

قَالَ وَإِذَا تَسَحَّرَ وَهُوَ يَظُنُّ أَنَّ الْفَجْرَ لَمْ يَطْلُعْ فَإِذَا هُوَ قَدْ طَلَعَ فرمائی چې پیشنمې ئې اوکړو پدې خیال چې سهار نه شوې نه دې حال دادې چې هغه شوې وی أَوْ أَفْطَرَ وَهُوَ يَرَى أَنَّ الشَّمْسَ قَدْ غَرَبَتْ فَإِذَا هِيَ لَمْ تَغْرُبْ یا ئې روژه ماته کړه پدې خیال چې نمر پریوتلې دې اوحال دادې چې نمر نه وو پریوتلې أَمْسَكَ بَقِيَّةَ يَوْمِهِ) امساک به کوی پاته ورځ

تشریح:- **وجوب الامساک بعد الاکل بعد الصبح وقبل الغروب**ﷺ مسئله داده.چه د رمضان په شپه کې یوکس په دې خیال سره پیشنمې اوکړو.چه اوس لا سهار صادق نه دې راختلې.روسته تحقیق اوشو.چه سهار صادق راختلې وو.یا یوکس په دې خیال افطار اوکړو.چه لمر پریوتلې دې.بیا معلومه شوه.چه اوس لانمر نه.دې پریوتلې.نو په دې دواړو صورتونو کې د پاته ورځې امساک واجب دې.یعنی په اول صورت کې خو تقریباً پوره ورځ امساک واجب دې.او په دوهم صورت کې چې څومره د غروب وخت پاته دې.د هغې امساک واجب دې.او ددې ورځې روژې قضاء واجب ده.خودا کس به په دې خپل فعل باندې ګناهګار نه وی.اونه به په ده باندې کفاره واجب وی.

قَضَاءً لِحَقِّ الْوَقْتِ بِالْقَدْرِ الْمُمْكِنِ أَوْ نَفْيًا لِلتُّهْمَةِ.دوخت د حق ادا کاوه لپاره قدر ممکن سره یا دتهمت نه دبچکیدو دپاره.

تشریح:- **دلائل وجوب الاساک**ﷺ په دې دواړو صورتونو کې امساک خو ځکه واجب دې.① چه د رمضان د ورځې حق د امکان په اندازه اداشی.لکه څنګه چې ددې تفصیل په تیره شوې مسئله کې ذکر دې.② یا د تهمت لرې کاوه دپاره، ځکه که ده څه اوخوړل، یا ئې اوڅکل.او په ښکاره څه عذر هم نشته.نو خلګ به دې په فاسق توپ سره متهم کوی.اود تهمت د ځایونو نه بچ کیدل واجب دی.لکه چې په حدیث کې دی. «اتقوا مواضع التهمة»

وَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ لِأَنَّهُ حَقٌّ مَضْمُونٌ بِالْمِثْلِ،اوپه ده قضا واجب ده.ځکه چې دا حق دمضمون دې بالمثل. كَمَا فِي الْمَرِيضِ وَالْمُسَافِرِ لکه دبیمار اومسافر په حق کې چې دي



تشریح:- **دلیل وجوب القضاء**ﷺ او قضا په دې وجه واجب ده.چه روژه یو داسې شرعی حق دی.چه مضمون بالمثل دی.یعنی ادا په فوت کیدلو سره نه ساقطیږی.بلکه شرعاً ددې ضمان بالمثل واجب وی.یعنی د روژې په بدله کې به روژه واجب وی.لکه څنګه چې د بیمار اومسافر په حق کې دا ضمان واجب دې.

وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ) لِأَنَّ الْجِنَايَةَ قَاصِرَةٌ لِعَدَمِ الْقَصْدِ اوپده کفاره نشته دې. ځکه چې دعدم قصد په امله سره جرم قاصر دې

تشریح:- **دلیل عدم وجوب الکفارة**ﷺ ① اوکفاره به په دې وجه واجب نه وی.چه دا ناقص جرم دې.ځکه چې دده د صباصادق نه روسته پیشنمې کول،یا د لمر پریوتلو نه مخکې افطار کول، بالاراده نه دی.بلکه د د شپې په خیال سره پیشنمې اوکړو.اود لمر پریوتلو په خیال سره ئې افطار اوکړو.بهرحال جرم قاصر دې.او د قاصر جرم په وجه کفاره نه واجبیږی.د کفاره د وجوب لپاره کامل جرم کیدل ضروری دی.

وَفِيهِ قَالَ عُمَرُ مَا تَجَانَفْنَا لِإِثْمٍ، قَضَاءُ يَوْمٍ عَلَيْنَا يَسِيرٌ ([1]) او ددې سې صورت په اړه کې حضرت عمر رضی الله عنه فرمائیلی وو چې مونږ ګناه ته میلان نه دې کړې یوروژه قضا نیول موږ ته آسان دی

تشریح:- ددې تائید د فاروق اعظم رضی الله عنه د قول نه هم کیږی.نقل دی.چه یو ځل د رمضان په میاشت کې د لمر پریوتلو په وخت حضرت عمر رضی الله عنه اوبعض صحابه. ﴿ أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَائِكُمْ ۚ هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ ۗ عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ كُنتُمْ تَخْتَانُونَ أَنفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنكُمْ ۖ فَالْآنَ بَاشِرُوهُنَّ وَابْتَغُوا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَكُمْ ۚ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ۖ ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ ۚ ﴾ د مسجد کوفه په غولې (صحن) کې ناست وو.چه د پیو یوه پیاله روړلې شوه.حضرت عمر رضی الله عنه پخپله هم اوڅکل،او صحابه. ﴿ أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَائِكُمْ ۚ هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ ۗ عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ كُنتُمْ تَخْتَانُونَ أَنفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنكُمْ ۖ فَالْآنَ بَاشِرُوهُنَّ وَابْتَغُوا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَكُمْ ۚ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ۖ ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ ۚ ﴾ هم اوڅکل.او مؤذن ته ئې اووئیل.څه آذان اووایه.نو کله چې دې د اذان د پاره بره اوختلو.نو وې کتل.چه اوس لمر موجود دې.نو ده په چغه اووئیل. «والشمس یا أمیر المؤمنین» یا امیر المؤمنین لمر اوس هم موجود دې لا نه دې پریوتې.حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل. «بعثناک داعیًا ولم نبعثک راعیًا ما تجانفنا لإثم قضاء یوم علینا یسیر» یعنی موږ ته داعی اولیګلې.راعی مو نه وې لیګلې.مونږ (الله دې نکړی) د ګناه اراده نه ده کړې.موږ ته د یوې روژې قضاء راوړل آسان دی. د دې واقعې نه معلومیږی.چه په دې سې اجتهادی غلطۍ سره که روژه فاسد شی.نو صرف قضاء به واجب وی.نه به ګناهګار وی.اونه به کفاره واجب وی.

وَالْمُرَادُ بِالْفَجْرِ الْفَجْرُ الثَّانِي، وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي الصَّلَاةِ اود فجر نه مراد فجر ثانی دې لکه په کتاب الصلات کې موږ بیان کړې دی.

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه په متن کې د سهار نه مراد صباثانی دې.یعنی سهار صادق دې.

**د پیشنمۍ شرعی حیثیت**

ثُمَّ التَّسَحُّرُ مُسْتَحَبٌّ بیا پشنمې کول مستحب دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {تَسَحَّرُوا فَإِنَّ فِي السُّحُورِ بَرَكَةً ([2]) ځکه چې دنبی کریم ﷺ ارشاد دې چې پشنمې خورئی ځکه چې په پشنمی کولوکې برکت دې.

حل اللغة: ① التسحر: پیشنمې خوړل

[1] من حدیث أنس بن مالک رضی الله عنه أخرجه البخاری فی ا لصوم باب ٢٠ رقم ٩٧٧ ومسلم فی الصیام رقم ٤٥ والترمذی فی الصوم بَب ١٧ رقم ٧٠٨ والنسائی فی الصیام باب ١٨ وابن ماجه فی الصیام باب ٢٢ وأحمد فی المسند (٣٢/٣)_

[2] أخرجه ابن ابی شیبة فی مصنفه(نصب الرأية ٤٩٥/٢)_

**تشریح:- استحباب السحور**۞سحر، د شپې د آخری برخې نوم دې.او بعض وائی.چه د شپې آخری سدس دې.یعنی آخری شپږمه حصه،سحور (پیشنمې)د هغه شی نوم دې.کوم چې دغه وخت کې اوخوړلې شی. بهرحال پیشنمې خوړل مستحب دې.

**دلیله**۞ دلیل دا حدیث دې. «تسحروا فإنّ فی السّحور برکة»او په حدیث کې د برکت نه مراد د راروانې ورځ روژه باندې قوت حاصلول دی.ژباړه به داوی.چه پیشنمې کوئ.ځکه چې پیشنمی کاوه سره قوت حاصلیږی.

**الاشکال علی الحدیث**۞په دې حدیث ښکاره یو اشکال کیدلې شی.هغه داچه پیشنمې کول،د اهل اسلام اود رسول الله ﷺ د امت د خصوصیاتو څنې دی.نو په پیشنمی کې تاخیر د رسولانو اونبیانو عادتونه څنګه کیدلې شی؟ او پخپله نبی کریمﷺ فرمائیلی دی. «فرق مابین صیامنا وصیام أهل الکتاب أکل السّحور»یعنی زمونږ په روژو اود اهل کتاب د روژو په مینځ کې ،مابه الامتیاز، (فرق) پیشنمې کول دی.ددې حدیث نه هم معلومیږی .چه په تیرو شوو امتونوکې د پیشنمی کاوه رواج نه وو.نو هرکله چې په تیرو امتونوکې پیشنمې نه وو.نو د رسول اکرمﷺ فرمان «ثلاث من أخلاق المرسلین.... ..ألحدیث» به څنګه ټیک وی؟

**الجواب**۞ددې اشکال یو ځواب خو دادې.چه په دواړو حدیثنو کې څه تعارض نشته.ځکه ممکن ده.چه تیرو شوو نبیانو پیشنمې کولو.او ددوی د امتونو لپاره پیشنمې نه وو.نو اوس په ړومبی حدیث کې د پیشنمی تاخیر د رسولانو عادت ګنړل،اود اهل اسلام او اهل کتاب په مینځ کې پیشنمې کول،مابه الامتیاز،ګرځول دواړه ټیک دی.یو بل ځواب په عنایه وغیره کې ورکړې شوې دې. چې د اختصار په وجه پریخودلې شو.

| |
|---|
| إِلَّا أَنَّهُ إِذَا شَكَّ فِي الْفَجْرِ که په فجر ختلوکې شك وو وَمَعْنَاهُ تَسَاوِي الظَّنَّيْنِ (الْأَفْضَلُ أَنْ يَدَعَ الْأَكْلَ) تَحَرُّزًا عَنِ الْمُحَرَّمِ ،مراد دادې چې دواړه ګمانونه ئې یوشان وی.نو افضل داده چې ځوک خوراك پریږدی دحرام فعل نه دبچکیدو لپاره وَلَا يَجِبُ عَلَيْهِ ذَلِكَ اودا په ده واجب نه دی |

**تشریح:- عدم استحباب التاخیرفی صورة ظن طلوع الفجر**۞صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه پیشنمې کول خو بلاشبه مستحب دی.خوکه په سهار کې شك وی.چه سهار راختلې دې،او که نه.او دواړه اړخه برابر وی.نو افضل دادی.چه خوراك څکاك ترك کړی.او هیڅ مفطر شی استعمال نکړی.چه په یقین سره د حرام فعل نه بچ شی.اودا خوراك څکاك پریښول په ده باندې واجب نه دی.

| |
|---|
| وَلَوْ أَكَلَ فَصَوْمُهُ تَامٌّ لِأَنَّ الْأَصْلَ هُوَ اللَّيْلُ اوکه وې خوړلو نودده روژه پوره ده ځکه چې اصل خوشپه ده |

**تشریح:-** اوکه د شك باوجود ئې څه خوراك څکاك اوکړو.نو دده روژه به پوره شی.ځکه اصل خوشپه ده.نو هم ددې اصل حکم به پاتې وی. تر هغه وخته پورې چې ددې مخالف یعنی د سهار غالب ګمان نه وی پیدا شوې.نوکه د خوراك نه روسته دده په زړه کې غالب ګمان داشو.چه ماد سهار نه کیدلو نه روسته خوراك کړې دی.نو په ده به ددې روژې قضاء واجب وی.

| |
|---|
| وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ: إِذَا كَانَ فِي مَوْضِعٍ لَا يَسْتَبِينُ الْفَجْرَ، أَوْ كَانَتِ اللَّيْلَةُ مُقْمِرَةً أَوْ مُتَغَيِّمَةً. أَوْ كَانَ بِبَصَرِهِ عِلَّةٌ اود امام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دې چې که په دې سې ځائې کې وو کوم چې سهار واضح نه وو یا شپه دسپوږمۍ وه |



| |
|---|
| یا وریځ وه یا دده په نظرکې علت وو وَهُوَ يَشُكُّ لَا يَأْكُلُ اودده شك وو.نونه دې خوری وَلَوْ أَكَلَ فَقَدْ أَسَاءَ اوکه وې خوړلو نوګناهنګار دې. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {دَعْ مَا يَرِيبُكَ إِلَى مَا لَا يَرِيبُكَ}[1] ځکه چې دنبی کریمﷺ ارشاد دې چې کوم شی تا په شك کې اچوی هغه پریږده هغه اختیار کړه چې په شك کښې دې نه اچوی. |

**حل اللغة:** ① **لایستبین**:نه ښکاره کیدل ② **مقمرة**: دَ سپوږمۍ شپه ③ **متغیمة**: دَاوریځو شپه

**الروایة النادرة عن ابی حنیفة** رحمه الله **فی المسئلة**۞د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله نه په نوادر کې روایت دې.چه داکس که په دې سې ځائې کې وی.چه هلته کې د سهار راختلو پته نه لګی.مثلاً د غرونو په مینځ کې وی.یاد ځوارلسمې رنړائی شپه وی.یعنی داسې شپه وی.چه پکې د سهار صادق پورې سپوږمۍ وی. او د سپوږمۍ د رنړا په وجه د سهار راختلو علم نه وی.یا د شپې د وریځ په وجه د سهار پته نه لګی.یا ددې کس په سترګه کې څه ناروغی (بیماری)) وی.چه ددې په وجه سهار راختل نه وینی.او ده ته د سهار راختلو اود نه راختلو یوشان خیال وی.نوده له پیشنمې نه دی کول پکار.اوکه پیشنمې ئې اوکړو.نو غلط کار ئې اوکړو.ځکه چې د رسول اللهﷺ قول دې. «دع مایریبك إلی مالا یریبك»یعنی شك مند شی پریږده.او غیرمشکوك شی اختیار کړه.

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَ أَكْبَرُ رَأْيِهِ أَنَّهُ أَكَلَ وَالْفَجْرُ طَالِعٌ اوکه غالب ګمان ئې وو چې سهار شوې دې فَعَلَيْهِ قَضَاؤُهُ عَمَلًا بِغَالِبِ الرَّأْيِ نوپده قضاء ده په غالب ګمان عمل کول. وَفِيهِ الِاحْتِيَاطُ |

**تشریح:- الروایتان فی وجوب القضاء فی صور فساد الصوم**۞ ① اوکه غالب ګمان دا وی.چه ماد سهار راختلو نه روسته پیشنمې کړې دې.نو په ده به ددې ورځې روژې قضاء واجب وی.ځکه چې په غالب ګمان باندې عمل کول واجب دی.او احتیاط هم په دې کې دې.

| |
|---|
| وَعَلَى ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ لَا قَضَاءَ عَلَيْهِ لِأَنَّ الْيَقِينَ لَا يُزَالُ إِلَّا بِمِثْلِهِ اوېدې کې احتیاط دې اوپه ظاالروایه باندې قضا نشته په ده باندې ځکه چې نه زائله کیږی مګر دځان په څیر په یقین باندې. |

**تشریح:-** خو د ظاهرالروایة مطابق په ده باندې قضاء واجب نه ده.ځکه چې د شپې وجود خو اصلی او یقینی دې. او یقینی شی په یقین سره زائل کیږی.په غیر یقین سره نه زائل کیږی.او غالب ګمان یقین نه وی.نود شپې وجود کوم چې یقینی دې.دا به هغه وخت زائل کیږی.چه کله د صباراختلو یقین اوشی.په ظن غالب سره به نه زائل کیږی.نو هرکله چې په ظن غالب سره د شپې موجود کیدل نه زائل کیږی.نو ده پیشنمې په شپه کې خوړلې دې.د سهار راختلو نه روسته ئې نه دې کړې.او هرکله چې ئې پیشنمې په شپه کې کړې دې. نودده دا روژه به شرعاً معتبر وی.او هرکله چې دا روژه معتبر ده.نو ددې قضاء به واجب نه وی.

## په غلط فهمۍ کې د صبا راختو نه روسته په خوراك عدم کفارة

| |
|---|
| وَلَوْ ظَهَرَ أَنَّ الْفَجْرَ طَالِعٌ اوکه ظاهر شو چې سهار راختلې دې لَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ نوپده باندې کفاره نشته دې |

**تشریح:- عدم وجوب الکفارة بالاکل بعد الصبح یظن عد الطلوع**۞ مسئله داده.که د پیشنمی کاوه نه روسته ښکاره شی.چه د پیشنمی کولونه مخکې سهار راختلې وو.نو په ده به قضاء واجب وی.خوکفاره به واجب نه وی.

| |
|---|
| لِأَنَّهُ بَنَى الْأَمْرَ عَلَى الْأَصْلِ ځکه چې ده معامله په اصل بناءکړې فَلَا تَتَحَقَّقُ الْعَمْدِيَّةُ ده اوعمدیت (قصدیت) متحقق نه شو. |

---

[1] من حدیث حسن بن علیؓ أخرجه الترمذی فی صفة القیامة باب ۶۰ رقم ۲۵۱۷ والنسائی فی الأشربة باب الحدث علی ترک الشبهات من المجتبی وروه أیضاً فی السنن الکبری (۲۳۹/۳) رقم ۵۲۲۰ والبیهقی فی السنن الکبری (۵۴۶/۵) رقم ۱۰۸۱۹ وأبوداود الطیالسی فی مسنده (ص،۱۶۳ ) وأحمدفی المسند (۲۰۰/۱) والحاکم فی المستدرک (۱۳/۲)_

**تشریح:-** ځکه چې ده په دې خیال پیشنمې کړې دې. چه اوس شپه پاته ده. نوهرکله چې په دې خیال ئې پیشنمې کړې دې. نو په قصد سره افطار کول متحقق نشو. او هرکله چې په قصد سره افطار کول موجود نشو. نو کفاره به واجب نه وی. ځکه چې کفاره په قصد سره افطار کاوه په صورت کې واجبیږی.

## په غروب آفتاب کې د شك په وخت عدم افطار

وَلَوْشَكَّ فِي غُرُوبِ الشَّمْسِ لَايَحِلُّ لَهُ الْفِطْرُ اوکه شك ئې اوکړو په پریوتلو دنمرکې نوده لره روژه ماتول حلال نه دی لِأَنَّ الْأَصْلَ هُوَالنَّهَارُ ځکه چې اصل خو ورځ ده وَلَوْأَكَلَ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ عَمَلًا بِالْأَصْلِ اوکه وې خوړلو نوقضا پرې لازم ده په اصل عمل کول

**تشریح:- حکم التسویة بین ظن الغروب وعدمه**۞ ① مسئله داده. که روژه دار ته په لمر پریوتلو کې شك وی. یعنی په لمر پریوتلو اوپه نه پریوتلو کې دواړه اړخه برابر وو. نوده لـه افطار کول جائز نه دی. ځکه چې اصل خو ورځ ده. ځکه چې ورځ د مخکې نه پیل روانه ده. نود ورځ کیدل یقینی شو. او یقین په یقین سره زائل کیږی. په شك سره نه زائل کیږی. نو چونکه د ورځ کیدل یقینی دی. په دې وجه افطار کول به هم حلال نه وی. او ددې باوجود چې افطار کول حلال نه وو. که د څه اوخوړل، نو په ده به قضاء واجب وی. چه په اصل باندې عمل اوشی. ځکه چې اصل هم دادی. چه ورځ موجود ده.

وَإِنْ كَانَ أَكْبَرُرَأْيِهِ أَنَّهُ أَكَلَ قَبْلَ الْغُرُوبِ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ رِوَايَةً وَاحِدَةً اوکه دده غالب ګمان دا وو چې ده دنمر پریوتلو نه مخکې خوړلې دې نوپده قضا ده په یوروایت باندې لِأَنَّ النَّهَارَهُوَالْأَصْلُ ځکه چې ورځ اصل دې

**تشریح:- حکم غلبة الظن علی الاکل قبل الغروب**۞ اوکه دده غالب ګمان دا وو. چه ده د لمر پریوتلو نه مخکې خوراك کړې دې. نوپه ده به په اتفاق د روایاتو قضاء واجب وی. ځکه چې د ورځ موجود کیدل اصل دی. خو ددې سره غالب ګمان هم ملاؤشو. نو یقیناً به قضاء واجب وی.

وَلَوْكَانَ شَاكًّا فِيهِ وَتَبَيَّنَ أَنَّهَا لَمْ تَغْرُبْ يَنْبَغِي أَنْ تَجِبَ الْكَفَّارَةُ اوکه شك ئې وو پدې اړه کې اوظاهره شی چې نمر نه دې پریوتلې پکار دی چې واجب شی کفاره نَظَرًا إِلَى مَاهُوَالْأَصْلُ وَهُوَالنَّهَارُ نظر کول اصل یعنی ورځې ته.

**تشریح:- حکم الاکل عندالشک فی الغروب**۞ اوکه ده ته په لمر پریوتلو کې شك وو. او افطار ئې اوکړو. او بیا په دلیل سره معلومه شوه. چه لمر نه وو پریوتې. نو مناسب داده. چه په ده باندې د قضاء سره کفاره هم واجب وی. ځکه چې اصل هم دادی. چه ورځ موجود ده. او په دلیل سره هم د ورځ موجود کیدل، یعنی د نمرنه پریوتل، ثابت شو. نو ګویا ده په قصد سره په ورځ کې افطار کړې دې. او په ورځ کې افطار کول، قضاء اوکفاره دواړه واجبوی. په دې وجه د قضاء سره کفاره واجب کول هم مناسب دی.

## په روژه کې اول په هیره بیا په قصد خوراك کول

وَمَنْ أَكَلَ فِي رَمَضَانَ نَاسِيًا اوچا چې په رمضان کې په هیره څه اوخوړل وَظَنَّ أَنَّ ذَلِكَ يُفَطِّرُهُ فَأَكَلَ بَعْدَ ذَلِكَ مُتَعَمِّدًا اوګمان ئې اوکړو چې داکارده ده روژه ماتوی نو خوراك ئې اوکړو دد نه بعد په قصد سره عَلَيْهِ الْقَضَاءُ دُونَ الْكَفَّارَةِ په ده باندې قضا ده نه کفاره.

**تشریح:- عدم وجوب الکفارة علی من اکل ناسیاً ثم عمداً بظن الفطر**۞ صورت د مسئلې دادې. چه یوکس د رمضان په ورځ کې په هیره څه اوخوړل. بیا ئې خیال راغئ. چه په هیره خوراك کولوسره روژه ماتیږی. نو په دې خیال چې روژه خوهسې هم ماته شوه. ده په قصد سره هم څه اوخوړل. نو په ده باندې صرف قضاء واجب ده. کفاره واجب نه ده.



لِأَنَّ الْإِشْتِبَاهَ اسْتَنَدَ إِلَى الْقِيَاسِ فَتَتَحَقَّقُ الشُّبْهَةُ ځکه چې اشتباه قیاس ته مستند شوه شبه متحققه شوه.

**تشریح:- دلیله**۞ دلیل دادې. چه په هیره خوراك څکاك سره د روژې پاته نه پاتې کیدلو اشتباه د قیاس نه پیدا شوې ده. ځکه د قیاس تقاضا داده. چه په هیره خوراك څکاك سره روژه پاته پاتې نشی. ځکه چې په دې صورت کې د روژې رکن یعنی امساك منتفی شوې دې. نو هرکله چې دا اشتباه د صحیح قیاس اړخ ته منسوب ده. نو په هیره خوراك کاوه سره د روژې پاته نه پاتې کیدلو شبه پیدا شوه. ددې نه روسته چې کله ده په قصدسره خوراك اوکړو. نودا خوراك ګویا د روژې په حالت کې نشو. او هرکله چې په قصد سره خوراك د روژې په حالت کې نشو. نو په ده به کفاره هم واجب نه وی. ځکه چې کفاره خو په هغه وخت کې واجبیږی. چه کله په د روژې په حالت کې په قصد سره خوراك څکاك یا جماع موجود شی.

وَإِنْ بَلَغَهُ الْحَدِيثُ وَعَلِمَهُ(۱) فَكَذَلِكَ اوکه ده ته اورسیدو حدیث اودې پوهه شو بیا هم په ظاهر الروایه کې دغه ډول ده. فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ په ظاهر الروایه کې دغه ډول دی.

**حل اللغة:** ① حدیث: خبر

**تشریح:- عدم وجوب الکفارة فی الصورة المذکورة مع العلم بعد الفطر**۞ ① اوکه دې کس ته حدیث ﴿من نسی وهو صائم فأکل او شرب فلیتم صومه فإنما أطعمه الله وسقاه﴾ اورسیدلو. او ددې حدیث په مفهوم هم پوهه شو. چه په هیره خوراك څکاك سره روژه نه فاسدیږی. خو ددې باوجود په هیره د خوراك څکاك نه روسته ده په قصد سره خوراك یا څکاك اوکړو. نود ظاهرالروایة مطابق په ده باندې هم کفاره واجب نه ده.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّهَا تَجِبُ، وَكَذَا عَنْهُمَا او دامام صاحب رحمه الله نه روایت دې چې کفاره واجب ده اودغه ډول د صاحبینو رحمهما الله نه روایت دې لِأَنَّهُ لَا اشْتِبَاهَ فَلَا شُبْهَةَ ځکه چې اشباه نشته دې نوشبه هم نشته دې

**تشریح:- روایة وجوب الکفارة**۞ د امام صاحب رحمه الله ددې روایت دلیل دادې. چه هرکله ده ته حدیث معلوم دې. چه د هیرې په صورت کې روژه نه فاسدیږی. او داهم معلومه ده. چه د حدیث په مقابله کې قیاس پریخودلې شی. او متروك هیڅ قسمه شبه نه پیدا کوی. نو په دې صورت کې به هم د عدم صوم شبه نه متحقق کیږی. اوهرکله چې شبه موجود نشوه. نو کفاره به هم ساقط نه وی.

وَجْهُ الْأَوَّلِ قِيَامُ الشُّبْهَةِ الْحُكْمِيَّةِ بِالنَّظَرِ إِلَى الْقِيَاسِ د اول وجه داده چې په نظر دقیاس حکمی قائمه ده فَلَا يَنْتَفِي بِالْعِلْمِ نودا په علم سره نه لرې کیږی

**تشریح:- دلیل عدم وجوب الکفارة**۞ اود ظاهرالروایة مطابق د کفاره د عدم وجوب دلیل دادې. چه قیاس اړخ ته نظر کولوسره حکماً شبه موجود ده. په دې طریقه چې یوڅیز د خپل رکن په فوت کیدلوسره پاته نه پاتې کیږی. نوپه دې کې عالم اوجاهل دواړه برابر دی. یعنی په دې خبره عالم هم پوهیږی. چه د رکن په فوت کیدلوسره یو شئ پاته نه پاتې کیږی. اوجاهل هم پوهیږی. په دې وجه د حدیث ﴿من نسی... إلخ﴾ پوهیدلو سره به قیاس نه منتفی کیږی.

كَوَطْءِ الْأَبِ جَارِيَةَ ابْنِهِ لکه دپلار وطی کول دبنځې د ځوئې سره.

**تشریح:- نظیره**۞ لکه که پلار د خپل ځوی وینځې سره وطی اوکړی. نو په پلار به حد واجب نه وی. که پلار د دې حرمت نه خبر وی. اوکه خبر نه وی. ځکه چې دحدیث ﴿أنت و مالك لأبيك﴾ په وجه د ملك شبه ثابتیږی. نودغه ډول په هیره خوراك سره هم د فاسدیدلو شبه موجود ده. چه قیاس اړخ ته نظر اوکړې شی. نوهرکله چې شبه موجود ده. نوکفاره به واجب نه وی. ځکه چې کفاره په شبه سره ساقطیږی.

(۱) قال الزیلعی رحمة الله یشیر إلی حدیث ((تمم علی صومک فإنما أطعمک الله وسقاک)) نصب الرأیة ۲/۴۹۸_

## د ښكر لګولو نه روسته د افطار په ګمان قصدا خوراك كول

وَلَوِاحْتَجَمَ وَظَنَّ أَنَّ ذٰلِكَ يُفَطِّرُهُ كه احتجام ئې اوكړو او ګمان ئې اوكړو چې دده روژه ماته شوه ثُمَّ أَكَلَ مُتَعَمِّدًا بيا ئې په قصد سره اوخوړه نو په ده باندې قضاء اوكفاره ده. عَلَيْهِ الْقَضَاءُ وَالْكَفَّارَةُ

**تشريح:- وجوب الكفارة فى الاكل بعد الحجامة** صورت د مسئلې دادې. كه يو كس په حالت د روژې كې ښكر اولګولو. او بيا ئې دا ګمان اوكړو. چه ښكر لګول روژه فاسده وي. په دې وجه ښكر لګولوسره روژه فاسد شوه. او هركله چې روژه فاسد شوه. نو ده په قصد سره خوراك څكاك اوكړو. نو په دې صورت كې به په ده باندې قضاء اوكفاره دواړه واجب وي.

لِأَنَّ الظَّنَّ مَا اسْتَنَدَ إِلَى دَلِيلٍ شَرْعِيٍّ ځكه چې ګمان څه شرعي دليل اړخ ته مستند نه دې

**تشريح:- دليله** ځكه دده دا ګمان، چه ښكر لګول د روژې مفسد دى. هيڅ شرعي دليل اړخ ته منسوب نه دې. بلكه دليل شرعي خو عدم فساد دې. ځكه چې حجامت(ښكرلګول) د رګونو نه د وينو په وتلوكې د فصد، (رګ نه وينه اخستل) په شان دې. او ، فصد ، مفسد د صوم نه دې. نو ښكر لګول به هم مفسد د صوم نه وي. بهرحال هركله چې دده په ګمان باندې هيڅ شرعي دليل موجود نه دې. نو د صوم د فساد شبه هم نه پيدا كيږي. او هركله چې شبه پيدا نشوه. نوكفاره به نه ساقطيږي. ځكه چې كفاره د شبهاتو نه روسته ساقطيږي.

إِلَّا إِذَا أَفْتَاهُ فَقِيهٌ بِالْفَسَادِ مګر كله چې يو فقيه دفاسديدو فتوى وركړې وي لِأَنَّ الْفَتْوَىٰ دَلِيلٌ شَرْعِيٌّ فِي حَقِّهِ ځكه چې فتوى شرعي دليل دې دده په حق كې

**تشريح:- عدم وجوب الكفارة فى صورة فتوى المفتى بالفساد** خوكه دې ښكر لګونكى ته د روژې فاسدولو فتوى يو داسې فقيه وركړې وي. چه دده په فتوى باندې خلګ اعتماد كوي. بيا ده په قصدسره څه خوراك څكاك اوكړو. نو په ده به كفاره واجب نه وي. ځكه چې فتوى دده په حق كې دليل شرعي دې. نو ددې فتوى په وجه په ښكر لګولوسره دده روژه فاسد شوه. ددې نه روسته چې كله ده په قصد خوراك څكاك اوكړو. نو دې روژه دار نه وو. بلكه بې روژې وو. او د روژې دنه كيدلوپه حالت كې په رمضان كې قصداً په خوراك څكاك سره كفاره نه واجبيږي. بلكه صرف قضاء واجبيږي.

وَلَوْ بَلَغَهُ الْحَدِيثُ [1] وَاعْتَمَدَهُ فَكَذٰلِكَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالَىٰ [2] اوكه د ته حديث اورسيدو او اعتماد ئې پرې اوكړو بيا هم دامام محمد رحمه الله په نزد داسې ده. لِأَنَّ قَوْلَ الرَّسُولِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَا يَنْزِلُ عَنْ قَوْلِ الْمُفْتِي ځكه چې د نبى ﷺ فرمان نازليدلې نشي په قول د مفتى سره

**تشريح:-عدم وجوب الكفارة عند بلوغ حديث فساد الصوم بالحجامة** اوكه ښكر لګونكى روژه دار ته دا حديث اورسيدلو چه ﴿أفطر الحاجم والمحجوم﴾ يعنى ښكر لګونكى، او لګولو والا د دواړو روژه ماته شوه. او بيا ئې په دې حديث باندې اعتماد هم اوكړو. نو ① د امام محمد رحمه الله په نيز په دې صورت كې هم دا حكم دې. چه په ده باندې كفاره واجب نه ده. ځكه چې د رسول الله ﷺ فرمان د مفتى د قول نه په كمه درجه كې نه دې. حالانكه د مفتى په قول باندې اعتماد كولوسره كفاره واجب نه وه. نو په حديث شريف باندې په اعتماد سره به په درجه اولى كفاره واجب نه وي

[1]) قال الزيلعي رحمة الله يشير إلى حديث ((تم على صومك فإنما أطعمك الله وسقاك)) نصب الراية ۴۹۸/۲_

[2]) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(۲۹۴/۲) ورد المحتار(۱۱۸/۲) وتبيين الحقائق (۳۴۲/۱) والهندية (۲۰۶/۱) والفقه الإسلامى وأدلته (۶۵۵/۲) والبحر(۲۹۳/۲) وبدائع الصنائع (۲۲۸/۱) نقلاً عن القول الراجح (۲۰۴)_



وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالَىٰ خِلَافُ ذٰلِكَ او دامام ابويوسف رحمه الله نه ددې خلاف روايت دې لِأَنَّ عَلَى الْعَامِّيِّ الْاِقْتِدَاءَ بِالْفُقَهَاءِ لِعَدَمِ الْاِهْتِدَاءِ فِي حَقِّهِ إِلَى مَعْرِفَةِ الْأَحَادِيثِ ځكه چې دعامى دفقهاؤ اقتداء لازم ده. دحديثو په معرفت كې

**تشريح:-** او حضرت امام ابويوسف رحمه الله فرمائى. چه په دې صورت كې به كفاره نه ساقطيږي. ځكه چې په عوام الناس باندې صرف د فقهاؤ تابعدارى لازم ده. ځكه چې دوى له د احاديثو پيژندګلو حاصلول ناممكن دى. په دې طريقه چې يوحديث په خپل ظاهر باندې نه وي. يا منسوخ شوې وي. نودا خبرې يوعام كس څنګه پيژندلې شى. نود عام كس په حق كې د يومفتى فتوى وركول، خوشرعي حجت دې. خو حديث به ددوى په حق كې حجت نه وي. نو هركله چې د عام كس په حق كې حديث شرعي دليل نه دې. نوښكر لګول به هم د صوم د فساد شبه نه پيداكوي. او هركله چې د صوم د فساد شبه پاتې نشوه. نو كفاره به هم نه ساقطيږي.

وَإِنْ عَرَفَ تَأْوِيلَهُ تَجِبُ الْكَفَّارَةُ دلارې نه موندو په امله سره لِانْتِفَاءِ الشُّبْهَةِ اوكه په تاويل ئې پوهه شونوكفاره به پرې واجب وي دانتفاء دشبهې په امله سره

**تشريح:- التاويلات الثلاثة فى الحديث** ① علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى. كه ښكر لګونكې ته دا حديث اورسيدلو. اوده ته ددې حديث تاويل هم معلوم شو. اوتاويل دادې. چه ښكرلګونكې، او لګولو والا دواړو به د يوبل غيبت كولويوځل نبى كريم ﷺ دې دواړو سره تير شو. نونبى كريم ﷺ اوفرمائيل. ﴿أفطر الحاجم والمحجوم﴾ يعنى د غيب كاوه په وجه ددې دواړو د روژې ثواب ختم شو. راوى اوګڼړل، چه نبى كريم ﷺ د ښكرلګولو په وجه داسې فرمائيلى دى. نو ده د خپل سوچ موافق روايت اوكړو. او وې وئيل. چه په ښكرلګولوسره روژه فاسديږي. ② دوهم تاويل دادې. چه يوځل ښكر لګولو والابې هوشه شو. نو ښكر لګونكى دده په حلق كې اوبه واچولې. حالانكه دده روژه وه. نونبى كريم ﷺ اوفرمائيل. ﴿أفطر الحاجم والمحجوم﴾ يعنى ښكر لګونكى، د ښكر لګولو والا په حلق كې اوبه واچولې. نودده روژه ئې فاسد كړه. راوى اوګڼړل، چه نبى كريم ﷺ ﴿أفطر الحاجم والمحجوم﴾ فرمائيلى دى. يعنى په حديث كې ،الحاجم، فاعل او ،المحجوم، مفعول دې. راوى اوګڼړل، چه دواړه د عطف په طريقه فاعل دى. ③ دريم تاويل دادې. چه دا حديث منسوخ دې. بهرحال ښكر لګونكى ته كه ددې حديث تاويل معلوم وي. نود ښكرلګولو نه روسته قصداً په خوراك څكاك سره به يقيناً كفاره واجب وي. ځكه چې د حديث تاويل معلوميدلو نه روسته به په دې حديث سره دروژې فاسد كيدلو شبه نه وي. او هركله چې په ښكر لګولوسره د روژه فاسد كيدلو شبه نه وي. نوكفاره به هم ساقط نه وي.

وَقَوْلُ الْأَوْزَاعِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ لَا يُورِثُ الشُّبْهَةَ لِمُخَالَفَتِهِ الْقِيَاسَ اود اوزاعى قول مورث دشبهې نه دې قياس نه دمخالف كيدو په امله سره.

**تشريح:- اعتراض الشوافع رحمهم الله على عبارة الهداية** خوكه څوك دا اعتراض اوكړي. چه د عالمانو اختلاف هم شبه پيدا كوي. اود امام اوزاعى قول هم دا دې. چه په ښكر لګولوسره روژه فاسديږي. نو ددې شبه په وجه كفاره ساقط كيدل پكار دى.

**الجواب** ددې ځواب دادې. چه د امام اوزاعى رحمه الله قول شبه نه پيدا كوي. ځكه چې د امام اوزاعى رحمه الله قول د قياس مخالف دې. ځكه چې قياس خو دادې. ﴿أن الفطر مما يدخل لا مما يخرج﴾ يعنى كوم شى چې په نس كې داخليږي. په هغې سره روژه فاسديږي. او كوم څيزچه بهر راوځي. په هغې سره روژه نه فاسديږي. او په ښكر لګولوسره وينه د رګونو نه بهر راوځي. دننه څه شى نه داخليږي. نو قياس هم دا تقاضا كوي. چه په ښكر لګولوسره روژه فاسد نشي. او امام اوزاعى رحمه الله د فاسد كيدلو قائل دې. نو ددوى قول د قياس مخالف شو. او شبه به هغه وخت وي. چه كله ددوى قول د قياس موافق وې. نو هركله چې د امام اوزاعى رحمه الله په قول د صوم د فساد شبه نه پيداكيږي. نو كفاره به نه ساقطيږي.

﴿التناقض في عبارة الهداية﴾: دلته د علامه مرغیناني رحمه الله په عبارت کې تناقض معلومیږي. په دې طریقه چې مخکې ئې اوفرمائیل که یوفقیه په ښکر لګولو سره د روژې د فساد فتوی ورکړه. او بیا ده په قصد سره څه اوخوړل. نو کفاره نه واجبیږي. ځکه چې د فتوی په وجه د فساد شبه پیدا شوه. او بیا ئې اوفرمائیل. چې د امام اوزاعي رحمه الله قول شبه نه پیدا کوی. حالانکه امام اوزاعی رحمه الله پخپله ډیر لوئې فقیه دې. د فقیه په فتوی ورکولوسره د روژې د فساد شبه، د عام سړی په نسبت سره شوي ده. اود امام اوزاعی رحمه الله په قول سره شبه نه پیداکیدل، د هغه کس لپاره دی. خوك چې د حدیث ﴿أفطر الحاجم﴾ تاویل اود صحیح مراد نه خبر وی.

### د غیبت نه روسته په قصد خوراك كول

| |
|---|
| وَلَوْأَكَلَ بَعْدَمَا اغْتَابَ مُتَعَمِّدًا فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ وَالْكَفَّارَةُ كَيْفَ مَا كَانَ اوکه دغیبت کولونه بعد ئې په قصد سره روژه اوخوړه نوبه ده باندې قضاء ده اوکفاره ده. خواه هرڅنګه چې وی |

تشریح:- **وجوب القضاء والكفارة بالاكل بعد الغيبة**: مسئله داده. که یوکس د روژې په حالت کې غیبت اوکړو. او دا ئې اوګڼل چه په غیبت سره روژه فاسدیږی. په قصد سره ئې څه خوراك څکاك اوکړو. نو په ده باندې قضاء هم واجب ده. او کفاره هم واجب ده. اګرچه هغه حدیث رسیدلي وی په کوم کې چې غیبت ته مفطر وئیلی شوی دی. یا هغه حدیث نه وی رسیدلی. که ددې حدیث د تاویل نه خبر وی. او که نه وی. یومفتی د فساد فتوی ورکړې وی. اوکه فتوی ئې نه وی ورکړې.

| |
|---|
| لِأَنَّ الْفِطْرَ يُخَالِفُ الْقِيَاسَ ځکه چې په غیبت سره افطار خلاف د قیاس دی |

تشریح:- **دلیله**: ځکه چې دغیبت په وجه افطار د قیاس مخالف دی. اوحدیث ﴿الغيبة تفطر الصائم﴾ بالإجماع مؤول دې. یعنې دحدیث مطلب دادې. ځکه چې د غیبت کاوه په وجه د روژه دار اجر وثواب ختمیږی. نو هرکله چې بالاتفاق دا حدیث ماول دې. نو ددې حدیث په وجه به د صوم د فساد شبه هم نه وی. او هرکله چې شبه نه وی. نو کفاره به هم ساقط نه وی.

| |
|---|
| وَالْحَدِيثُ مُؤَوَّلٌ بِالْإِجْمَاعِ (۱) اوحدیث په اجماع سره مئول دې. |

تشریح:- **الحديث الوارد فى فساد الصوم بالغيبة**: صاحب د کفایه رحمه الله دا حدیث په دې الفاظوسره ذکر کړې دې. ﴿ثلاث يفطرن الصيام وينقضن الوضوء ويهدمن العقل الغيبة والنميمة والنظر إلى محاسن المرأة﴾ درې شیان (څیزونه) روژه فاسده وی. او اودس ماته وی. او عقل تباه کوی. ① غیبت ② چغلخوری ③ د ښځې محاسنو (دښائست خایونو) ته کتل. مراد دادې. چه په دې څیزونوسره د روژې او اودس ثواب ختمیږی. اود عقل کمال ختمیږی.

### د اوده یا لیونی سره جماع كول

| |
|---|
| وَإِذَا جُومِعَتِ النَّائِمَةُ أَوِ الْمَجْنُونَةُ وَهِيَ صَائِمَةٌ عَلَيْهَا الْقَضَاءُ دُونَ الْكَفَّارَةِ که د اوده یا لیونۍ ښځې سره جماع اوشوه حال دادې چې دهغې روژه وه نو په دې باندې قضا ده نه که کفاره. |

تشریح:- **وجوب القضاء على النائمة والمجنونة بالجماع**: صورت د مسئلې دادې. که یو روژه دار د اوده ښځې یا مجنونه ښځې سره جماع اوکړه. نو① په دې دواړو ښځو به قضاء واجب وی. خو کفاره به واجب نه وی.

---

(۱) قال الزيلعي رحمة الله يشيرإلى حديث ((الغيبة تفطر الصائم)) ثم قال ورد فى ذلك أحاديث كلها مدخولة فمنها ما رواه ابن أبى شيبة فى مصنفه (۴/۳)...عن أنس بن مالك ﷺ عن النبي ﷺ قال ((ما صام من ظلم يأكل لحوم الناس)) زاد اسحاق فى حديثه إذا إغتاب الصائم فقد أفطر (نصب الراية ۵۰۸/۲)_



| |
|---|
| وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ تَعَالَى: لَا قَضَاءَ عَلَيْهِمَا اعْتِبَارًا بِالنَّاسِي، امام زفر اوامام شافعی رحمه الله فرمائی. چه قضا پرې هم نشته قیاس په هیرونکی باندې وَالْعُذْرُ هُنَا أَبْلَغُ لِعَدَمِ الْقَصْدِ اودا عذر خوډیر لوئې دې دقصد نه کیدو په املهٔ سره. |

تشریح:- په زیر بحث مسئله کې امام زفر او امام شافعی رحمه الله فرمائی. چه په دوی باندې قضاء هم واجب نه ده.

﴿دليلهما﴾: بهرحال په اصل مسئله کې د امام زفر او امام شافعی رحمه الله دلیل، د روژې په حالت کې په هیره باندې خوراك کونکی باندې قیاس دې. یعنی لکه ځنګه چې په هیره د صوم منافی موجود کیدلو په وجه روژه نه فاسدیږی. دغه ډول د ،نوم، اود ،جنون، په حالت کې جماع کولوسره هم روژه نه فاسدیږی. ځکه چې د ،نوم، اود، جنون، عذر د نسیان نه زیات دې. ځکه چې په هیره خوراك کونکې کم ازکم دخوراك اراده خوکوی. اود، نوم، اود ،جنون، په صورت کې ددوی دارخه اراده هم موجود نه ده. نو هرکله چې په هیره خوراك کونکی باندې قضاء واجب نه ده. نود اوده شوې ښځې، اود مجنونه ښځې سره جماع کولوسره به په دې دواړو ښځو باندې هم په درجه اولیٰ قضاء واجب نه وی.

| |
|---|
| وَلَنَا أَنَّ النِّسْيَانَ يَغْلِبُ وُجُودُهُ وَهٰذَا نَادِرٌ او زموږ دلیل دادې چې دهیرووجود غالب دې او دا ناروې دې |

تشریح:- **دليل جمهور الاحناف** رحمه الله: زموږ دلیل دادې. چه اوده ښځه او مجنونه ښځه ناسی (هیرونکی) سره لاحق کول، به هغه وخت ټیك وو. چه ،نائمه، او ،مجنونه، ،من كل وجه، د ،ناسی، په معنی کې وی. حالانکه داسې نه ده. ځکه چې د نسیان وجود غالب دې. یعنی خلګو ته په کثرت سره نسیان راپیښیږی. او ،نائمه، او ،مجنونه، سره جماع کول، نا آشنا دی. نوچونکه د نسیان په کثرت سره د راپیښیدلو په وجه د قضاء حکم، مفضي الى الحرج، دې. په دې وجه د حرج لرې کاوه لپاره به د نسیان په صورت کې قضاء واجب نه وی. اود ،نائمه، او ،مجنونه، سره چونکه د جماع کولو په صورت کې قضاء واجب کولوسره حرج نه واقع کیږی. په دې وجه په دې صورت کې قضاء واجب کړې شوه.

تشریح:- **السوال على العبارة**: دلته په عبارت کې لږ شان اشکال دې. هغه داچه چې مجنونه ښځه څنګه روژه داره کیدلې شی. ځکه چې جنون او روژه دواړه نشې جمع کیدلې.

﴿الجوابان﴾: ددې دوې [دوه] ځوابونه دی. ① رومبې خو داچه په اصل کې دا لفظ ،مجبورة، وو. او مجبورۃ په معنی د مکرهه، یعنی هغه ښځه چې په جبر (زور) ورسره جماع شوې وی. کاتب په غلطۍ سره مجنونه لیکلې دی. او بیا دکتاب نسخې په اطراف عالم کې خورې شولې. نو دا (مجنونه) پرې کول او مجبورۃ لیکل ئې مناسب اونه ګنړل. ځکه چې توجیه ئې هم ممکن ده.

| |
|---|
| وَلَا تَجِبُ الْكَفَّارَةُ لِانْعِدَامِ الْجِنَايَةِ اوکفاهر واجب نه ده دجرم نه کیدو په املهٔ سره. |

تشریح:- **عدم الكفارة على النائمة والمجنونة**: البته په اوده اومجنونه ښځه باندې کفاره واجب نه ده. ځکه چې ددوی د ارخه د ارادې د نه موجود کیدو په وجه جنایت موجود نشو. او کفاره بغیر د جنایت نه نه واجبیږی. په دې وجه دوی باندې کفاره واجب نه کړې شوه. والله اعلم.

| |
|---|
| فَصْلٌ فِيمَا يُوجِبُهُ عَلَى نَفْسِهِ فصل دې دهغوی روژو په بیان کې کومې چې په ځان واجب کړی. |

تشریح:- **الربط بما قبله**: اوسه پورې د هغه عبادتونو بیان وو. کوم چې الله تعالی په خپلو بنده ګانو باندې واجب کړی دی. مثلاً فرض مونځ، زکاة، د رمضان روژه وغیره. په دې فصل کې ددې بیان دې. کوم چې بنده په خپله خپل ځان باندې واجب کوی.

**تعريف النذر واقسامه**۞ د بنده يوڅيز په خپله خپل ځان باندې واجب كولوته نذر وائي.اود نذر دوې [دوه] قسمونه دی :منجز ،او معلق.① منجز، چې په هيڅ شرط باندې معلق نه وی.مثلاً اووائی.چه په ما باندې يوه روژه ده.② معلق،چه په څه شرط باندې معلق وی.مثلاً اووائی.كه زما دا كار اوشو.نود الله لپاره به يوه روژه نيسم. بيا د نذر دوې [دوه] قسمونه دی: معين ،او غير معين ①معين، مثلاً چې راروانه جمعه به روژه نيسم.② غير معين ، مثلاً يوه روژه به نيسم.

**شروط صحة النذر**۞د نذر صحيح كيدلو يوځوضروری شرطونه دی.① شئ منذور بذاته،معصيت نه وی.لكه د ،غيرالله ، لپاره د روژې نيولو نذركول،نوچونكه دا پخپله حرام دې.په دې وجه هيڅ كله جائز نه دې.② منذور شئ داسې شی نه وی.كوم چې په ده پخپله واجب وی.كه ،فی الحال، وی.اوكه په راروانه زمانه كې وی.لكه كه يوكس دماسپښين لمونځ كاوه نذر اومنلو.نودا نذر صحيح نه دې.ځكه چې د ماسپښين لمونځ خو پخپله واجب دې.③چه منذور په خپله مقصود وی.د كوم يو عبادت وسيله نه وی.لكه د اودس، اود قرآن د قرات نذر كول صحيح نه دی.ځكه چې دا دواړه په خپله مقصود نه دی.بلكه د لمونځ وسيله دی.④ ،شئ منذور، محال نه وی. مثلاً كومه ورځ چې تيره شوه.ددې د روژې نذر كول،صحيح نه دی.⑤ د منذورر خيز د جنس نه په شريعت كې هم واجب وی.لكه د بيمارد عيادت كاوه نذر صحيح نه دې.ځكه چې په شريعت كې ددې د جنس نه هيڅ شی واجب نشته.

| |
|---|
| **وَإِذَاقَالَ لِلّٰهِ عَلَىٰ صَوْمُ يَوْمِ النَّحْرِ أَفْطَرَوَقَضٰى** كه وې ونيل چې دالله ﷻ لپاره په ماباندې دلوئې اختر روژه ده نو ماتوی به ئې اوقضا به ئې راوړی. **فَهٰذَاالنَّذْرُصَحِيْحٌ عِنْدَنَا** نو انذر صحيح دې زموږ په نزد |

**تشريح:- صحة نذر صوم يوم النحر**۞صورت د مسئلې دا دی.كه يوكس د غټ اختر په ورځ د روژې نيولو نذر اوكړو.نو ده له پكاردی.چه په دې ورځ روژه اونه نيسی.بلكه ددې په ځائې قضاء راوړی.حاصل داچه د ،يوم نحر،د روژې نذركول، زموږ په نيز صحيح دی.

| |
|---|
| **خِلَافًالِزُفَرَوَالشَّافِعِيِّ رَحِمَهُمَااللّٰهُ** رحمهما الله خلاف دې.امام زفر او امام شافعی رحمهما الله لره **هُمَايَقُولَانِ إِنَّهُ نَذْرٌبِمَاهُوَمَعْصِيَةٌ لِوُرُودِالنَّهْيِ عَنْ صَوْمِ هٰذِهِ الْأَيَّامِ**(١) هغوی وائی چې دا داسې څيزنذر دې كوم چې معصيت دې.ددغو ورځو د روژونه دممانعت واريدو په امله سره |

**تشريح:-** خود امام زفر اوامام شافعی رحمهما الله په نيز صحيح نه دی.او هم دا قول د امام مالك او امام احمد رحمهما الله دې.

**دليلهما**۞ددې دواړو حضراتو دليل دادې.چه ،يوم فطر،يوم نحر،او درې ورځې د ايام تشريق،په دې پنځو ورځوكې روژه نيول،په شريعت كې منع دی.د رسول الله ﷺ ارشاد دې. ﴿ألا لاتصوموا فى هذه الأيام﴾خبردار په دې ورځو كې روژه مه نيسئ:او په يوحديث كې دی. ﴿ألا لاتصوموا فى هذه الايام فإنها أيام أكل وشرب وبعال﴾خبرشئ:په دې ورځوكې روژه مه نيسئ:ځكه چې دا ورځې د خوراك څكاك اود مباشرت دی.بهرحال د رسول الله ﷺ د منع كاوه په وجه په دې ورځوكې د روژې نيولو نذركول،د معصيت نذر دې.اود معصيت نذر كول، صحيح نه دی.ځكه چې د رسول الله ﷺ ارشاد دې. ﴿لانذر فى معصية الله﴾په كوم كاركې چې د الله تعالى معصيت كيږی.دهغې نذر صحيح نه دې.نو ثابته شوه.چه په دې ورځوكې د روژې نيولو نذركول،صحيح نه دی.

---

(١) شيرالى حديث عمر رضي الله عنه أخرجه البخاری فی الصوم باب ٦٦ رقم ١٩٩٠ ومسلم فی الصيام رقم ١٣٨ وأبوداودفی الصوم باب ٤٨ ومالك فی العيدين رقم ٥ وأحمد فی المسند (٣٤/١)_



| |
|---|
| **وَلَنَاأَنَّهُ نَذْرٌبِصَوْمٍ مَشْرُوْعٍ** اوزموږ دليل دادې چې دا دمشروع نذر دې **وَالنَّهْيُ لِغَيْرِهٖ وَهُوَتَرْكُ إِجَابَةِ دَعْوَةِ اللّٰهِ تَعَالٰى** اونهی په بله وجه ده اوهغه ددعوت الهی پريښول دی. **فَيَصِحُّ نَذْرُهٗ** نو صحيح دې نذر دده |

**تشريح:- دليل جمهور الاحناف** رحمهم الله ۞او زموږ دليل دادې.چه د يوم نحر روژه د خپل ذات په اعتبارسره مشروع ده.خو، منهی عنه لغيره.ده.يعنی د يو داسې شی په وجه په دې دواړو كې دننه د روژې نيولو نه منع شوې ده.چه ددې په ذات كې داخل نه دې.هغه شی د الله تعالى د دعوت نه مخ اړول دی.يعنی په دې دواړو كې الله تعالى د خپلو بندګانو ضيافت كوی.اوس كه يوكس په دې ورځوكې روژه نيسی. نو ګويا ده د الله تعالى د دعوت نه اعراض اوكړو.اود الله تعالى د دعوت نه اعراض كول،ډيره بده خبره ده.بهرحال په دې پنځو ورځوكې روژه نيول،د خپل ذات په اعتبار سره مشروع دی.اګرچه د وصف په اعتبارسره معصيت او غيرمشروع دی.

| |
|---|
| **لَكِنَّهٗ يُفْطِرُاحْتِرَازًاعَنِ الْمَعْصِيَةِ الْمُجَاوِرَةِ** ليكن دې به افطاركوی لپاره د احتراز دمتصل معصيت په امله سره. **ثُمَّ يَقْضِي إِسْقَاطًالِلْوَاجِبِ** بيا به قضی راوړی د ذمې دوادجبونه د وتلو دپاره. |

**تشريح:-** خو ددې باوجود چې نذر صحيح دې.په دې ورځ به روژه نه نيسی.چه ددې معصيت اوګناه نه بچ شی.كومه د الله تعالى د دعوت نه د اعراض كاوه په وجه روژې سره متصل شوې ده.خود نذر په وجه چې كومه روژه واجب شوې ده.دهغې د ادا كاوه لپاره قضاء واجب ده.

| |
|---|
| **وَإِنْ صَامَ فِيْهِ يَخْرُجُ عَنِ الْعُهْدَةِ لِأَنَّهٗ أَدَّاهُ كَمَاالْتَزَمَهٗ** اوكه پدې كښې ئې روژه اونيوله بيا به هم ذمه وارئ نه اوځی.ځكه چې ده څنګه لازم كړې وو هغه شان ئې ادا كړه. |

**تشريح:-** كه د ممنوع كيدلو باوجود ئې په ،يوم نحر،كې روژه اونيوله.نو نذر به پوره شی.ځكه چې د څنګه روژې التزام ئې كړې وو.هم هغه شان روژه ده ادا كړه.يعنی په ،يوم نحر،كې د روژې نيولو د نذر په وجه چې كومه روژه په ده باندې واجب شوې ده.هغه ناقص ده.او ده هم ناقص اداكړه.نو څنګه چې واجب وه.هم هغه شان ئې ادا كړه.په دې وجه نذر پوره شو.

### په نذر كې د قسم نيت كول

| |
|---|
| **وَإِنْ نَوٰى يَمِيْنًا فَعَلَيْهِ كَفَّارَةُ يَمِيْنٍ يَعْنِي إِذَا أَفْطَرَ** اوكه دقسم نيت ئې اوكړو په ده به كفاره دقسم وی.يعنی چې افطار ئې اوكړو |

**تشريح:- الفرق بين النذر واليمين** ۞ په نذر او يمين كې توپير دادې.چه په نذركې فقط قضاء واجبيږی.او په يمين كې قضاء او كفاره د يمين دواړه واجبيږی.مثلاً كه يوكس د يومتعين روژې نيولو نذر اوكړو.او په دغه متعين ورځ ئې روژه اونه نيوله.نو ددې قضاء به واجب وی.اوكه قسم ئې اوخوړلو.چه د جمعې په ورځ به روژه نيسم.او وې نه نيوله.نو قضاء به هم واجب وی.او كفاره د يمين به هم واجب وی.

**نية اليمين فى صوم يوم النحر**۞ اوس صورت د مسئلې دادې.كه يوكس ﴿لله علی صوم يوم النحر﴾ سره د يمين نيت اوكړو.او په دې ورځ كې ئې روژه اونه ساتله.نو په ده به د قضاء سره د يمين كفاره هم واجب وی.

| |
|---|
| **وَهٰذِهِ الْمَسْأَلَةُ عَلٰى وُجُوْهٍ سِتَّةٍ** اودا مسئله په شپږو وجهو سره ده. **:إِنْ لَمْ يَنْوِشَيْئًا أَوْنَوَى النَّذْرَلَاغَيْرُ** كه ده هيڅ نيت نه ووكړې يا دنذر نيت ئې اوكړو ،**أَوْنَوَى النَّذْرَوَنَوٰى أَنْ لَايَكُوْنَ يَمِيْنًا** يا د نذرنيت ئې اوكړو اودا چې قسم به نه وی |

**تشريح:- الاقسام الستة للمسئلة**۞علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه ددې مسئلې شپږ صورتونه دی.① په دې كلام ئې هيڅ نيت نه وی كړې.② يا صرف د نذر نيت ئې كړې وی.③ يا داچه د نذر نيت ئې كړې وی.اودا نيت ئې كړې وی.چه يمين نه وی.④ يا ئې د يمين نيت كړې وی.اودا نيت ئې كړې وی.چه نذر نه وی.⑤ يا ئې د نذر او يمين دواړو نيت كړې وی.⑥يا داچه صرف د يمين نيت ئې كړې وی.

**يَكُونُ نَذْرًا** نو دده كلام نذر شو **لِأَنَّهُ نَذْرٌ بِصِيغَتِهِ كَيْفَ وَقَدْ قَرَّرَهُ بِعَزِيمَتِهِ** ځكه چې دا نذر دې په صيغه او لفظ سره وى نو قسم به شى

**تشريح:- حكم الصور الثلاثة الاول**۞ په ړومبنو درې صورتونو كې دا كلام بالاجماع نذر دې. دليل دادې. چه په دې كلام كې نذر حقيقت دې. او يمين مجاز دې. اودا خبره منلې شوې ده. چه حقيقت د نيت محتاج نه وى. البته مجاز د نيت محتاج وى. نو په ړومبنى صورت كې دا كلام د نذر ځكه دې. چه په دې صورت كې هيڅ نيت نه دې كړې شوې. او بغير د نيت او ارادې نه كلام په حقيقت باندې محمول وى. په مجاز باندې محمول نه وى. او حقيقت نذر دې. په دې وجه دې صورت كې به دا كلام په نذر باندې محمول وى. او په دوهم صورت كې چونكه نيت سره نذر متعين كړې شو. ځكه به په طريقه اولى دا كلام د نذر وى. او په دريم صورت كې چونكه نذر نيت سره متعين كړې شو. اود يمين نفى هم اوكړې شوه. نو دا كلام به په درجه اولى په نذر باندې محمول وى.

**إِنْ نَوَى الْيَمِينَ وَنَوَى أَنْ لَا يَكُونَ نَذْرًا يَكُونُ يَمِينًا، لِأَنَّ الْيَمِينَ مُحْتَمِلُ كَلَامِهِ وَقَدْ عَيَّنَهُ وَنَفَى غَيْرَهُ** ځكه چې قسم دده د كلام محتمل دې اودې لره دې معينه كړه او دماسوې نه ئې نفى او كړه.

**تشريح:- حكم الصورة الرابعة**۞ په څلورم صورت كې به دا كلام صرف يمين وى. اودا حكم متفق عليه دې. د دې دليل دادې. چه ددې كلام حقيقت اګرچه نذر دې. خودا كلام د يمن (مجاز) هم احتمال لرى. په دې طريقه چې په ﴿لله علی...... إلخ﴾ كې لام دې. او لام كله د ، با ، په معنى هم راځى. نو لام چې د ، با ، په معنى كې واخستلې شى. نو ، بالله ، به شى. او ، با ، د يمين او قسم لپاره راځى. نو ثابته شوه. چه په دې كلام كې د يمين معنى هم احتمال دې. او كلام چې دكومې معنى احتمال لرى. د هغې نيت كول ټيك دى. په دې وجه په دې كلام سره به د يمين نيت كول درست وى. او هركله چې په دې كلام سره د يمين نيت كول درست دى. نو دا كلام به يمين وى.

**وَإِنْ نَوَاهُمَا** اوكه د دواړو نيت ئې اوكړو **يَكُونُ نَذْرًا وَيَمِينًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ** رحمهما الله (١) نو نذر اوقسم دواړه به وى دطرفينو په نزد، **وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ يَكُونُ نَذْرًا** اودامام يوسف رحمه الله په نزد به نذر وى

**تشريح:- حكم الصورة الخامسة**۞ په پنځم صورت كې د طرفين رحمهما الله په نيز دا كلام د نذر اويمين دواړو دې. او د امام يوسف رحمه الله په نيز صرف د نذر دې.

**وَلَوْ نَوَى الْيَمِينَ فَكَذَلِكَ عِنْدَهُمَا وَعِنْدَهُ يَكُونُ يَمِينًا** اوكه دقسم نيت ئې اوكړو بيا هم داسې ده دطرفينو په نزد. اود ابويوسف رحمه الله په نزد به قسم وى.

**تشريح:- الاختلاف فى الصورة السادسة**۞ او په شپږم صورت كې ① د طرفين رحمهما الله په نيز خو نذر اويمين دواړه وى. ② خود امام ابويوسف رحمه الله په نيز به صرف يمين وى.

**لِأَبِي يُوسُفَ أَنَّ النَّذْرَ فِيهِ حَقِيقَةٌ وَالْيَمِينَ مَجَازٌ حَتَّى لَا يَتَوَقَّفَ الْأَوَّلُ عَلَى النِّيَّةِ** دابويوسف رحمه الله دليل دا دې چې پدې كلام كښې نذر حقيقت دې اويمين مجاز دې تردې چې اولنې په نيت موقوف ندې، **وَيَتَوَقَّفُ الثَّانِي فَلَا يَنْتَظِمُهُمَا، ثُمَّ الْمَجَازُ يَتَعَيَّنُ بِنِيَّتِهِ، وَعِنْدَ نِيَّتِهِمَا تَتَرَجَّحُ الْحَقِيقَةُ** او دوهم پرې موقوف دې نودا كلام به د دواړو لره ګډ نه وى. بيا مجاز په نيت متعين شو اود دواړو دنيت په وخت به حقيقت لره ترجيح وى

**حل اللغة** ① **ينتظم هما**: شامليدل

(١) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فى الخانية (١٠٦\١) والدرى لمختار (١٣٦\٢) والبحر (٢٩٤\٢) نقلاً عن القول الراجح (٢٠٤\١)_



**تشريح:- دليل ابى يوسف** رحمه الله ۞ د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې. چه په دې كلام ﴿لله علی صوم يوم النحر﴾ كې نذر خو حقيقت دې. او يمين مجاز دې. هم دا وجه ده. چه ددې كلام نذر كيدل، په نيت باندې موقوف نه دى. البته يمين كيدل په نيت باندې موقوف دى. اوس كه نذر او يمين دواړه مراد واخستلې شى. نو حقيقت اومجاز جمع كيدل به لازم شى. حالانكه په لفظ واحد سره حقيقت او مجاز جمع كول جائز نه دى. نو په دې كلام سره نذر اويمين دواړه مراد اخستل خو محال دى. نو هركله ئې چې د دواړو نيت اوكړو. نو حقيقت ته به ترجيح وى. او حقيقت يعنى نذر به مراد وى. او هركله چې حقيقت مراد دې. نو مراد به مجاز نه وى. او هركله ئې چې د يمين نيت اوكړو. نو مجاز په نيت سره متعين شو. نو حقيقت به مراد نه وى.

**وَلَهُمَا أَنَّهُ لَا تَنَافِيَ بَيْنَ الْجِهَتَيْنِ لِأَنَّهُمَا يَقْتَضِيَانِ الْوُجُوبَ** دطرفينو رحمهما الله دليل دا دې چې په دواړو جهتونو كښې هيڅ منافات نشته دې. ځكه چې دواړه مقتضى د وجوب دى **إِلَّا أَنَّ النَّذْرَ يَقْتَضِيهِ لِعَيْنِهِ وَالْيَمِينَ لِغَيْرِهِ، بِالدَّلِيلَيْنِ** صرف دومره ده چې نذر ددې مقتضى په خپل ذات كې دې. اويمين لغيره، **فَجَمَعْنَا بَيْنَهُمَا عَمَلًا** نو موږ دواړو دليلونو لره جمع كړل په دواړو دعمل كاوه دپاره

**تشريح:- دليل الطرفين** رحمهما الله ۞ د طرفينو رحمهما الله دليل دادې. چه په دې كلام سره نذر او يمين دواړه مراد اخستلو باوجود، جمع بين الحقيقة والمجاز، نه لازميږى. ځكه چې ﴿لله علی صوم يوم النحر﴾ د وجوب لپاره موضوع دې. او هم په وجوب كې مستعمل دې. په غير وجوب كې قطعاً نه دې مستعمل. البته دا كلام په وجوب كې په دوې [دوه] طرفونو سره مستعمل دې. او په دې دواړه طرفونو كې هيڅ منافات نشته. په دې كې يو اړخ نذر دې. او دوهم اړخ يمين دې. خو دومره توپير دې. چه نذر د وجوب تقاضا ، لذاته ، كوى. ځكه چې د الله تعالى ارشاد دې. ﴿ نُذُورَهُمْ وَلْيُوفُوا ﴾ او يمين د وجوب تقاضا ، لغيره ، كوى. اوهغه ، غير ، د الله تعالى نوم د بې حرمتئ نه بچ كول دى. يعنى پوره كول، ځكه واجب دى. چه د الله تعالى د نوم بې حرمتى اونشى. ګنى په قسم ماتولوكې خامخا د الله تعالى د نوم بې حرمتى كيږى. نوحاصل دا شو. چه ددې كلام موجب او حقيقت وجوب دې. خود وجوب تقاضا په دوې [دوه] طرفو ده. يود نظر د اړخه ، او دوهم د يمين د اړخه ، او په دې دواړو باندې عمل كول هم ممكن دى. ځكه چې په دواړوكې هيڅ منافات نشته. نو مونږ د وجوب په دواړه طرفونو او دواړه دليلونو باندې عمل اوكړو. او نذر اويمين مو دواړه جمع كړو.

**كَمَا جَمَعْنَا بَيْنَ جِهَتَيِ التَّبَرُّعِ وَالْمُعَاوَضَةِ فِي الْهِبَةِ بِشَرْطِ الْعِوَضِ** لكه هبه به شرط عوض تبرع اومعاوضه دواړه جهتونو كښې موجمع كړې ده.

**تشريح:- نظيره**۞ لكه هبه په شرط د عوض كې ئې تبرع اومعاوضه دواړه جمع كړل. مثلاً شاهد مامون ته يو كور په دې شرط باندې هبه وركړو. چه مامون به ده ته زر روپۍ عوض وركوى. نو هبه كومه چې تبرع او احسان وى. د عوض شرط لګولو سره د انجام په اعتبار سره معاوضه شوه. په دې وجه شفيع ته د حق شفعه دعوى كاوه اختيار شته دې. حالانكه كه صرف معاوضه وې. نود شفعه حق به حاصل نه وو. نو لكه څنګه چې دلته كې د تبرع اړخ اود معاوضه اړخ د عدم منافات په وجه جمع كړې شو. دغه شا په ذكرشوې مسئله كې هم د عدم منافات په وجه نذر اويمين دواړه جمع كړې شو. په دې كلام كې ، جمع بين الحقيقة والمجاز، هغه وخت لازميږى. چه كله موږ په دې كلام سره د وجوب اوغير وجوب دواړو اراده اوكړو. حالانكه موږ صرف د وجوب اراده كړې ده.

**الجواب من دليل ابى يوسف** رحمه الله ۞ د حضرت امام ابويوسف رحمه الله د دليل يوځواب صاحب د نورالانوار وركړې دې. د ځواب حاصل دادې. چه د حقيقت اومجاز جمع كول، په لفظ واحد كې ناجائز دى. خو په دوې [دوه] لفظونوكې كه د يونه حقيقت مراد وى. اود دوهم نه مجاز مراد وى. نو بيا هيڅ باك نشته. دلته كې هم

دغه خبره ده. ځکه چې لفظ د «لله» په معنی د «والله یا بالله» سره یمین مراد دي. او په لفظ د «علی» سره نذر مراد دي.

## د یو معین کال نذر کول

**وَلَوْقَالَ: لِلّٰهِ عَلَيَّ صَوْمُ هٰذِهِ السَّنَةِ أَفْطَرَ يَوْمَ الْفِطْرِ وَيَوْمَ النَّحْرِ وَأَيَّامَ التَّشْرِيقِ وَقَضَاهَا** او که وې وئیل چې دالله ﷻ لپاره په ما ددې کال روژې دی نو په واړه اختر لوئې اختر او یام تشریق کې به افطار کوی او بیابه ئې قضا راوړي.

تشریح:- **نذر صوم السنة معینا**۞صورت د مسئلې دادې. که یوکس د یومعین کال د روژو نذر اوکړو. په دې طریقه چې وې وئیل، ددې کال روژې به نیسم، نو په ده به د یوکال روژې لازم وی. خود «یوم فطر، یوم نحر، اود ایام تشریق» روژو به افطار کوی. او روسته به ددې قضاء راوړي.

**لِأَنَّ النَّذْرَ بِالسَّنَةِ الْمُعَيَّنَةِ نَذْرٌ بِهٰذِهِ الْأَيَّامِ** ځکه چې د معین کال نذر کول ددې ورځو هم نذر دې

تشریح:- ځکه چې دمتعین یوکال روژو نذر ددې پنځو ورځو روژو هم دې. ځکه چې دا پنځه ورځې هم په کال کې داخل دی. اوکه په دې پنځو ورځو کې ئې هم روژې اونیولې. نو ادا به شی. ځکه چې ځنګه ئې لازم کړې وې. هغه شان ئې ادا کړې. خو په دې صورت کې به په دې کس باندې د رمضان قضاء واجب نه وی. ځکه چې په دې نذر سره به په رمضان کې د نذر روژې لازم نه وی. ځکه چې په رمضان کې د رمضان نه سوې د بلې روژې ګنجائش نشته.

**وَكَذَا إِذَا لَمْ يُعَيِّنْ لَكِنَّهُ شَرَطَ التَّتَابُعَ** هم داسې که ده معین نه کړه لیکن پرله پسې شرط ئې اوکړو **لِأَنَّ الْمُتَابَعَةَ لَا تَعْرِىْ عَنْهَا** ځکه چې بلا ناغه به ددې ورځو نه خالی نه وی

تشریح:- **نذر صوم السنة غیر معین**۞اوکه کال ئې متعین نه کړو. بلکه مطلقاً د یوکال روژو نذر ئې اوکړو. نو ددې دوې [دوه] صورتونه دی. یا به د تتابع شرط ذکر وی. یا به ذکر نه وی. یعنی یا به ئې دا وئیلی وی چه، زه به د یوکال روژې بلا ناغه نیسم، یا به ئې د بلا ناغه والی شرط نه وی ذکرکړې. که د تتابع شرط ئې ذکر کړې وی. نو ددې حکم به هم هغه وی. کوم حکم چې د معین کال دې. ځکه چې بلا ناغه د یوکال د روژو نذرکول، ددې پنځو ورځو نه خالی نه دې.

**لَكِنْ يَقْضِيهَا فِي هٰذَا الْفَصْلِ مَوْصُولَةً** لیکن په دې صورت کې به ددغو پنځو ورځو قضا موصولاً کوی **تَحْقِيقًا لِلتَّتَابُعِ بِقَدْرِ الْإِمْكَانِ** چې د بلا ناغه والی شرط په قدر ممکن سر متحقق شی.

تشریح:- **وجوب تتابع الایام الخمسة مع السنة الماضیة**۞خو په دې صورت کې داخبره ضروری ده. چه ددې پنځو روژو قضاء به د نذر روژوسره متصلاً راوړي. یعنی کله چې کال پوره شی. نو هم په راروانه ورځ به ددې پنځو روژو قضاء راوړي. چه د امکان په اندازه تتابع اوتسلسل موجود شی.

**وَيَتَأَتّٰى فِي هٰذَا خِلَافُ زُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ** او پدې کې راځي اختلاف دامام زفر اوشافعی رحمهما الله **لِلنَّهْيِ عَنِ الصَّوْمِ فِيهَا** پدې ورځوکې دروژې دممانعت واردیدو په امله، **وَهُوَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {أَلَا لَا تَصُومُوا فِي هٰذِهِ الْأَيَّامِ فَإِنَّهَا أَيَّامُ أَكْلٍ وَشُرْبٍ وَبِعَالٍ}** اودغه دنبی صلی الله علیه وسلم ارشاد دې چې خبردار پدې ورځوکې روژه مه نیسئ ځکه چې دادخوراک څښاک (څښاک) اوجماع ورځې دی.

حل اللغة:۞ ① بعال: جماع

تشریح:- **المذهبان فی قضاء الایام الخمسة**۞ددې پنځو روژو په قضاء کې د امام زفر او امام شافعی رحمهما الله اختلاف شوې دې. یعنی ددې دواړو حضراتو په نیز ددې پنځو ورځو قضاء واجب نه ده. ځکه چې په حدیث «ألا

(۱) من حدیث ابن عباس رضی الله عنهما أخرجه الطبرانی فی معجمه كذا عزاه إليه الهیثمی فی مجمع الزوائد (۲۰۳/۳)۔



لا تصوموا......الحديث» کې په پنځو ورځوکې د روژو نیولو نه منع شوې ده. نو ددې ورځو نذر هم صحیح نه دی. او هرکله چې نذر صحیح نه دې. نوددې قضاء به هم واجب نه وی.

**وَقَدْ بَيَّنَّا الْوَجْهَ فِيهِ وَالْعُذْرَ عَنْهُ** او موږ ددې وجه او ددې ځواب بیان کړې دې.

تشریح:- خو زموږ په نیز په دې ورځوکې د نذر د صحت وجه، اود پیش کړی حدیث ځواب د فصل په ړومبئ مسئله کې تیر شوې دې. هلته کې ئې اوګورئ.

**وَلَوْلَمْ يَشْتَرِطِ التَّتَابُعَ لَمْ يُجْزِهِ صَوْمُ هٰذِهِ الْأَيَّامِ** اوکه دبلا ناغه شرط ئې نه ووکړې نوجائز به نه وی روژې ددې ورځو **لِأَنَّ الْأَصْلَ فِيمَا يَلْتَزِمُهُ الْكَمَالُ** ځکه چې اصل پدې کې کوم چې ده په ځان لازم کړې دی کاملیدل دی، **وَالْمُؤَدّٰى نَاقِصٌ لِمَكَانِ النَّهْيِ** او څه چې ئې اوکړل هغه ناقص دی او دنهی واردیدو په امله سر

تشریح:- **صورة عدم تعین العام والتتابع**۞اوکه نه ئې خوکال متعین کړې دې. او نه ئې تابع شرط کړې دې. نوپه دې پنځو ورځوکې به روژې نیولو سره نذر نه اداکیږي. بلکه په ده به د ۳۵۱ ورځو روژو قضاء راوړل واجب وی. پنځه خو ددې ورځو. او دیرش د رمضان، ددې پنځو روژو قضاء به ځکه واجب وی. چه ده په خپل ځان کومې روژې لازم کړی دی. په دې کې اصل دادی. چه دا کامل وی. نو ګویا په ده باندې کاملې روژې واجب شوی دی. او په دې ورځوکې ئې چې کومې پنځه روژې نیولی دی. دا دحدیث په وجه ناقص دی. او قاعده ده. چه «ما وجب كاملاً لا يتأدّى ناقصًا» یعنی کوم شئ چې «علی سبیل الکلام» واجب وی. هغه په ناقص ادا کولوسره نه اداکیږي. نو هرکله چې په دې پنځو ورځوکې کامل روژې ادا نکړې شوې. نو ددې قضاء به واجب وی.

**بِخِلَافِ مَا إِذَا عَيَّنَهَا لِأَنَّهُ الْتَزَمَ بِوَصْفِ النُّقْصَانِ** په خلاف د هغې صورت نه کوم چې ده معین کړو ځکه چې ده د وصف دنقصان سره لازم کړې دې **فَيَكُونُ الْأَدَاءُ بِالْوَصْفِ الْمُلْتَزَمِ** نوادائیګی به ددې وصف سره وی دکوم چې ده التزام کړې وی.

**حکم تعین العام**۞ددې په خلاف که ده کال متعین کړې وی. اودې کس په دې پنځو ورځوکې هم روژې اونیولې نو ادا به وی. ځکه چې د کال متعین کاوه په وجه چې په دې پنځو ورځو کې کومې روژې لازم شوی دی. هغه ناقص دی. او ده هم ناقص اداکړی دی. او قاعده ده. چه «ما وجب ناقصًا جاز أن يتأدّى ناقصًا» یعنی کومې روژې چې ناقص واجب شوی دی. نودا ناقص ادا کول جائز دی.

**عدم دخول صیام رمضان فی صیام السنة غیرالمعینة**۞بهرحال د رمضان د دیرشو ورځو قضاء په دې وجه واجب ده. چې هرکله ئې کال متعین نه کړو. نو مطلقاً د دولسو میاشتو روژې به لازم وی. اوپه دې دولسومیاشتوکې رمضان داخل نه دې. ځکه چې د رمضان په ورځوکې دغیر رمضان روژو هیڅ ګنجائش نشته. په دې وجه د نذر روژو دولس میاشتو تعداد پوره کاوه لپاره به د رمضان په عوض کې یوه میاشت، یعنی د دیرشو ورځو روژو قضاء به لازم وی.

## د قسم د کفارې نیت کول

**قَالَ وَعَلَيْهِ كَفَّارَةُ يَمِينٍ إِنْ أَرَادَ بِهِ يَمِينًا** او وئیلې شوی دی چې پده کفاره دیمین ده که ده په کلام سره دیمین مراد کړې وو **وَقَدْ سَبَقَتْ وُجُوهُهُ** اوددې امله مخکې بیان شوی دی.

تشریح:- **ارادة الیمین بالنذر**۞ مسئله داده. چه کوم کلام د نذر لپاره وئیلې شوې دې. که ده په دې سره د یمین نیت کړې وی. نود حانث کیدلو په صورت کې به په ده باندې د یمین کفاره واجب وی. او ددې شپږ صورتونه وړاندې تیر شوی دی.

## د يوم النحر روژې ماتولو حکم

وَمَنْ أَصْبَحَ يَوْمَ النَّحْرِ صَائِمًا ثُمَّ أَفْطَرَ لَا شَيْءَ عَلَيْهِ چا چې دلوئې اختر په ورځ په حالت د روژې کښې سهار کړو بيائې ماته کړه نو ده څه نشته دي

**تشريح:- قضاء فساد صوم يوم النحر** صورت د مسئلې دادې. که يوکس په ،منهی عنها، ورځو کې د کومې يوې ورځې د روژې نيت اوکړو. او روژه ئې پيل کړه. بيا ئې دا فاسد کړه. ① نو په ده به د دې روژې قضاء واجب نه وی. هم دا ظاهر الرواية دې.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ فِي النَّوَادِرِ أَنَّ عَلَيْهِ الْقَضَاءَ او د صاحبينو رحمهما الله نه په ،نوادر، کې روايت دې چې په ده قضا ده لِأَنَّ الشُّرُوعَ مُلْزِمٌ كَالنَّذْرِ، وَصَارَ كَالشُّرُوعِ فِي الصَّلَاةِ فِي الْوَقْتِ الْمَكْرُوهِ ځکه چې پيل کول په مثل د نذر لازم کوُنکی دی اودا په مکروه وخت کې دلمانځه پيل کوُنکی په څير شو

**تشريح:-** اود صاحبينو رحمهما الله نه د ،نوادر، روايت دادې. چه په ده قضاء واجب ده.

**دليل الصاحبين** د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې. چه نفلی روژه په پيل کولوسره لازميږی. نو هر کله چې په پيل کولوسره لازم شوه. نود فاسدولو په صورت کې به ددې قضاء لازم وی. مثلاً که يوکس د ،منهی عنها، ورځو روژو نذر اوکړو. نودا روژه به ددې ورځو نه علاوه کې واجب وی. لکه څنګه که يوکس په مکروه وخت کی نفل لمونځ پيل کړو. او بيا ئې فاسد کړو. نو په ده به ددې لمونځ قضاء واجب وی.

وَالْفَرْقُ لِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ، وَهُوَ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ أَنَّ بِنَفْسِ الشُّرُوعِ فِي الصَّوْمِ يُسَمَّى صَائِمًا او وجه دفرق داده چې امام صاحب رحمه الله لپاره اودا ظاهر الروايه دې چې په نفس پيل کولوسره په روژه کښې مسمی کولای شی په صائم باندې حَتَّى يَحْنَثَ بِهِ الْحَالِفُ عَلَى الصَّوْمِ تر دې چې په روژه قسم کوُنکې په پيل کولوسره حانث کيږی فَيَصِيرُ مُرْتَكِبًا لِلنَّهْيِ نو په شرو کاوه سره دنهی مرتکب شو ،فَيَجِبُ إِبْطَالُهُ فَلَا تَجِبُ صِيَانَتُهُ وَوُجُوبُ الْقَضَاءِ يَبْتَنِي عَلَيْهِ، او ددې ابطال ضروری شو نو ساتنه ئې واجب نشو اود قضا وجوب پدې مبنی ده.

**تشريح:- وجه عدم قضاء صوم يوم النحر** اود امام ابوحنيفه رحمه الله د مذهب مطابق د يوم نحر د روژې نذر، اود نحر په ورځ کې د روژې پيل کاوه په مينځ کې ،اود نحر په ورځ کې د روژې پيل کولو، اوپه مکروهه وختونوکې د مونځونو پيل کاوه په مينځ کې ، وجه د توپير داده. چه روژه پيل کولوسره فوراً سړی ته صائم وئيلی شی. تردې که يوکس قسم اوخوړلو. چه زه به نفلی روژه نه نيسم. بيا ده په يوم نحر کې د روژې په نيت سره روژه پيل کړه. نو په پيل کولوسره به حانث وی. نو معلومه شوه. چه په ،يوم نحر، کې څنګه دې روژه پيل کړی. نودا ،صائم، روژه نيونکې شو. اودا معلومه ده. چه ،يوم نحر، په هغه پنځه ورځوکې يوه ده. په کومو کې چې د روژو نيولوممانعت شوې دې. نو په ،يوم نحر، کې روژه پيل کولوسره به دا کس د ،منهی عنه، فعل مرتکب شی. اوچونکه د ،منهی عنه، فعل باطلول واجب دی. په دې وجه ددې روژې اتمام، او پوره کول واجب پاتې نشو. نو ددې قضاء به هم واجب نه وی. ځکه چې د قضاء وجوب د اتمام په وجوب باندې مبنی وی. يعنی د کوم شی اتمام چې واجب وی. په فاسد کولوسره به ددې قضاء واجب وی. اود کوم شی چې اتمام واجب نه وی. هغه که فاسد کړې شی. نو د هغې قضاء به هم واجب نه وی. نو ثابته شوه. چه په ، يوم نحر، کې نفلی روژه پيل کاوه نه روسته که فاسد کړې شوه. نو ددې قضاء به واجب نه وی.

وَلَا يَصِيرُ مُرْتَكِبًا لِلنَّهْيِ بِنَفْسِ النَّذْرِ وَهُوَ الْمُوجِبُ اود نفس نذر په امله سره نهی مرتکب کېږی نه اوواجبوُنکې نذر دې،

**تشريح:- نذر صوم يوم النحر** او پاتې شو، د ، يوم نحر، د روژې نذر کول، نو په نفس نذر سره به د ،منهی عنه، فعل نه مرتکب کيږی. ځکه چې په ،يوم نحر، کې روژه نيول ممنوع دی. د روژې نذر کول ممنوع نه دی. او دا خبره هم منلې شوې ده. چه د نذر روژې واجب کونکې نذر دې. نو موجب د صوم نذر شو. او په نفس نذر سره



د ،منهی عنه، فعل ارتکاب کول، نه لازميږی. نو ددې نذر پوره کول واجب دی. خو چونکه په ،يوم نحر، کې روژه نيول ګناه ده. په دې وجه به ددې نذر روژې په بله يوه ورځ ادا کوی.

وَلَا بِنَفْسِ الشُّرُوعِ فِي الصَّلَاةِ حَتَّى يُتِمَّ رَكْعَةً، اونه صرف په لمونځ پيل کاوه سره دنهی مرتکب کيږی تر دې چې يو رکعت پوره کړی وَلِهَذَا لَا يَحْنَثُ بِهِ الْحَالِفُ عَلَى الصَّلَاةِ پدې وجه په لمانځه کښې قسم کوُنکې پدې سره نه حانث کيږی فَتَجِبُ صِيَانَةُ الْمُؤَدَّى وَيَكُونُ مَضْمُونًا بِالْقَضَاءِ نو د فعل مودی ساتنه واجب پاتې شو نو دې دقضا کاوه ضامن کيږی

**تشريح:- وجوب القضاء بفساد ماشرعه فی الاوقات المكروهة من الصلاة** دغه ډول په مکروه وختونوکې ئې لمونځ پيل کړو. اوبيا ئې فاسد کړو. نو په دې صورت کې به هم قضاء واجب وی. ځکه چې لمونځ پيل کاوه سره ده ته لمونځ کونکې نشی وئيلې کيدلې. بلکه د لمونځ اطلاق به هغه وخت کيږی. کله چې يو رکعت پوره شی. يعنی چې يو رکعت په سجده سره مقيد کړی. هم دغه وجه ده. چه که يوکس اووئيل. چه زه به نفل لمونځ نه کوم. بيا ده نفل لمونځ پيل کړلو. نو صرف په پيل کاوه سره به نه حانث کيږی. نو هر کله چې په مکروه وخت کې نفل لمونځ پيل کړی. او لااوس ئې رکوع اوسجده نه دی کړی. نو دې ته به لمونځ نشی وئيلې کيدلې. او هر کله چې په دې د لمونځ اطلاق نه کيږی. نو په دې مکروه وخت کې د ،منهی عنه، فعل مرتکب هم نشو. او هر کله چې د ،منهی عنه، فعل مرتکب نشو. نود مؤدی (يعنی کومه برخه چې ئې اداکړې ده) ساتنه واجب دې. اود کوم شی چې ساتنه او اتمام واجب وی. په فاسد کاوه سره ددې قضاء واجب وی. په دې وجه که دا مؤدی ئې فاسد کړه. نو ددې قضاء به واجب وی. ددې تقرير نه معلوميږی. که په مکروه وخت کې ئې نفل لمونځ پيل کړو. اود يو رکعت پوره کاوه نه پس، يعنی د سجده کاوه نه روسته ئې دا فاسد کړو. نو ددې قضاء به واجب نه وی. ځکه چې د يو رکعت پوره کيدلو نه روسته به په دې باندې د لمونځ اطلاق کيږی. او په دې مکروه وخت کې لمونځ کول ممنوع دی. نو ددې باطلول به واجب وی. اوکوم شی چې باطلول وی. د هغې په فاسد کولوسره ددې قضاء نه واجبيږی. په دې وجه به په دې صورت کې قضاء واجب نه وی.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ: أَنَّهُ لَا يَجِبُ الْقَضَاءُ فِي فَصْلِ الصَّلَاةِ أَيْضًا، وَالْأَظْهَرُ هُوَ الْأَوَّلُ، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ او امام صاحب رحمه الله نه روايت دې. چې دلمانځه په صورت کې هم قضا واجب نه ده اوليکن اظهر اولنې روايت دې.

**تشريح:- الرواية الثانية فی عدم قضاء ما افسده من الصلاة فی الوقت المكروه** د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دادې. چه په مکروه وخت کې نفل لمونځ پيل کاوه نه پس، د فاسد کولوپه صورت کې به هم قضاء واجب نه وی. خود امام صاحب رحمه الله رومبنې قول زيات ښکاره دې. والله اعلم بالصواب،

# باب الاعتكاف

(دا) باب د اعتکاف (په بيان کې) دې.

**الربط بما قبله** روژه ئې په اعتکاف باندې په دې وجه مقدم کړې ده. چه روژه د اعتکاف لپاره شرط دې. او شرط د شئ ، په شئ باندې مقدم وی. ځکه ئې روژه په اعتکاف باندې مقدم کړه.

**معنی الاعتكاف** اعتکاف د ،باب افتعال، مصدر دې. د ،عکف، نه ماخوذ دې. او ،عکف، متعدی دې. او ،عکوف، لازم دې. د شريعت په اصطلاح کې اعتکاف په نيت سره جمات کې ايساريدلو ته وائی.

### د اعتكاف حكم

قَالَ (الِاعْتِكَافُ مُسْتَحَبٌّ) وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ اعتکاف مستحب دې. او صحيح دا ده چې سنت مؤکده دې.

**تشريح:- نية الاعتكاف فی العشر الاواخر من رمضان** صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی. چه د رمضان د اخری عشرې اعتکاف مستحب دې. خوصحيح خبره داده. چه د رمضان د آخری عشرې اعتکاف سنت مؤکده دې.

لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَاظَبَ عَلَيْهِ الْعَشْرَ الْأَوَاخِرَ مِنْ رَمَضَانَ [1] ځکه چې نبی کریمﷺ د رمضان په آخری عشره کې په دې مواظبت فرمائیلې دې.

**حل اللغة** ① مواظبت: همیشه والې

**تشریح:- دلیله** ۞ دلیل دا دې چه نبی کریمﷺ په دې باندې مواظبت کړې دې. لکه ارشاد دې چه ﴿قالت عائشة رضی الله عنها أن رسول اللهﷺ كان يعتكف فى العشر الأخير من رمضان حين قدم المدينة إلى أن توفاه الله تعالى﴾ حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی. چه کله نبی کریمﷺ مدینې ته تشریف راوړلو. نود وفاته پورې ئې د رمضان په آخری عشره کې اعتکاف کولو

والمواظبة دليل السنة او مواظبت دلیل د سنتوالی دې.

**تشریح:-** اود نبی کریمﷺ په یوځیز باندې مداومت کول، ددې د مسنون کیدلو دلیل دې. په دې وجه د رمضان په آخری عشره کې اعتکاف سنت مؤکده دې.

**السوال** ۞ خو دلته کې دا اعتراض کیدلې شی. چه د رسول اللهﷺ مواظبت کول، د وجوب علامت دې. نو د رمضان د آخری عشرې اعتکاف واجبیدل پکار دی.

**الجواب** ۞ ددې ځواب دادې. چه رسول اللهﷺ به کوم شی واجب ګرځول غوښتل، نو په هغې به ئې مواظبت کولو. اود مواظبت نه روسته به ئې د هغې د کولو حکم فرمائیلو. او په پریخودونکی به ئې نکیر فرمائیلو. حالانکه نبی کریمﷺ خو نه ددې حکم فرمائیلې دې. اونه ئې ددې په پریښولو باندې نکیر فرمائیلې دې. نوکه د رمضان د آخری عشرې اعتکاف واجب وې. نو نبی کریمﷺ به خلګو ته ددې حکم فرمائیلې وې. او په پریخودونکی به ئې نکیر فرمائیلې وې. نو ثابته شوه. چه دا واجب نه دې.

**دليل عدم وجوب الاعتكاف** ۞ د اعتکاف د عدم وجوب دلیل دا هم دې. چه یو ځلې نبی کریمﷺ د اعتکاف کاوه لپاره په مسجد کې خیمې لګولویعنی د پرده اچولو حکم اوکړلو. بیا جومات ته داخل شو. نو دوی [دوه] خیمې ئې نورې هم اولیدلې. ددې اړه کې ئې پوښتنه اوکړو. نو معلومه شوه. چه یوه خیمه د عائشه رضی الله عنها ده. او یوه د حفصه رضی الله عنها ده. چه دا ئې اولیدلې. نو نبی کریمﷺ په غصه شو. نود خپلې خیمې لرې کاوه حکم ئې اوکړو. اودې کال ئې اعتکاف پریښولو. ددې نه هم معلومیږی. چه اعتکاف واجب نه دې. ځکه چې د وجوب دلیل بغیر د پریښولو مواظبت کول دی.

### د اعتکاف تعریف، رکن او شرط

وَهُوَ اللُّبْثُ فِي الْمَسْجِدِ مَعَ الصَّوْمِ وَنِيَّةِ الْإِعْتِكَافِ اودغه پاتې کیدل دی په مسجد کې سره د روژې او د نیت د اعتکاف نه.

**تشریح: الاعتكاف لغة وشرعا** ۞ په لغت کې اعتکاف مطلق ایساریدلو ته وائی. که هرځائې کې وی. او چې د کوم مقصد لپاره وی. الله تعالی فرمائیلی دی [إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِ مَا هَٰذِهِ التَّمَاثِيلُ الَّتِي أَنتُمْ لَهَا عَاكِفُونَ] یعنی څه دی دا تماثیل (بوتان) چه دې سره څواکې تاسو پراته ئې. اود شریعت په اصطلاح کې اعتکاف نوم دې. د اعتکاف په نیت، دروژې سره په جمات کې قیام کول، ګویا د اعتکاف لپاره څلور شیان (څیزونه) ضروری دی. ① ایساریدل ② جومات ③ د اعتکاف نیت ④ روژه.

أَمَّا اللُّبْثُ فَرُكْنُهُ لِأَنَّهُ يُنْبِئُ عَنْهُ فَكَانَ وُجُودُهُ بِهِ هرچه پاتې کیدل دی نودائې رکن دې ځکه چې لفظ د اعتکاف دې لره ښائی نو د اعتکاف وجود به پدې سره وی

[1] من حديث عائشة رضى الله عنها أخرجه البخارى فى الإعتكاف باب ۱ رقم ۲۰۲۶ ومسلم فى الإعتكاف رقم ۲ وأبوداود فى الصوم باب ۷۷ رقم ۲۴۶۲ والترمذى فى الصوم باب ۷۱ وأحمد فى المسند (۶/۵۰)_



**تشریح: رکنه** ۞ علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه ایساریدل خود اعتکاف رکن دې. ځکه چې د اعتکاف لفظ په لغت کې د ایساریدلو په معنیٰ باندې دلالت کوی. په دې وجه د ایساریدلو موجودیدل ضروری دی.

وَالصَّوْمُ مِنْ شَرْطِهِ عِنْدَنَا او روژه ئې شرط ده په نزد زمونږ خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رحمه الله خلاف دې امام شافعی رحمه الله لره

**تشریح:** روژه زمونږ په نیز د اعتکاف لپاره شرط دې خود امام شافعی او امام احمد رحمهما الله په نیز شرط نه دې. په دې مسئله کې حضرت امام مالك رحمه الله هم زمونږ سره دې.

**دليل الشافعي** رحمه الله ۞ امام شافعی اود امام احمد رحمهما الله دلیل دادې. چه روژه یو عبادت دې. او په خپله اصل دې. او کوم شی چې په خپله اصل وی. هغه د نورو لپاره شرط نه وی. ځکه به روژه د اعتکاف لپاره شرط نه وی.

**دليلنا** ۞ زمونږ دلیل ① د عائشه رضی الله عنها حدیث دې. ﴿قالت قال رسول اللهﷺ لا إعتكاف إلا بصوم﴾ یعنی بغیر د روژې نه اعتکاف صحیح نه دې.

وَالنِّيَّةُ شَرْطٌ فِي سَائِرِ الْعِبَادَاتِ او نیت شرط دې په ټولو عبادتونو کې

**تشریح:** او نیت چونکه د عادت او عبادت په مینځ کې د توپیر پیدا کاوه په ټولو مقصودی عبادتونو کې شرط دی. نو د اعتکاف لپاره به هم شرط وی

هُوَ يَقُولُ: إِنَّ الصَّوْمَ عِبَادَةٌ وَهُوَ أَصْلٌ بِنَفْسِهِ امام شافعی رحمه الله فرمائی. چه روژه عبادت دې او په خپله اصل دې فَلَا يَكُونُ شَرْطًا لِغَيْرِهِ نو د بل عبادت لپاره به شرط نه وی.

**دليل الشافعي** رحمه الله ۞ امام شافعی اود امام احمد رحمه الله دلیل دادې. چه روژه یو عبادت دې. او په خپله اصل دې. او کوم شی چې په خپله اصل وی. هغه د نورو لپاره شرط نه وی. ځکه به روژه د اعتکاف لپاره شرط نه وی.

وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {لَا اعْتِكَافَ إِلَّا بِالصَّوْمِ} [1] زمونږ دلیل د نبی کریمﷺ ارشاد دې چې اعتکاف نشته دې مګر د روژې سره

**دليلنا** ۞ زمونږ دلیل ① د عائشه رضی الله عنها حدیث دې. ﴿قالت قال رسول اللهﷺ لا إعتكاف إلا بصوم﴾ یعنی بغیر د روژې نه اعتکاف صحیح نه دې.

وَالْقِيَاسُ فِي مُقَابَلَةِ النَّصِّ الْمَنْقُولِ غَيْرُ مَقْبُولٍ او قیاس په مقابله د نص منقول کې دې

**الجواب عن قياس الشافعي** رحمه الله ۞ د حضرت امام شافعی رحمه الله د قیاس ﴿أن الصوم عبادة......إلخ﴾ ځواب دادې. چه قیاس د صحیح حدیث په مقابله کې پریخودلې شی. په دې وجه د عائشه رضی الله عنها حدیث ﴿لا إعتكاف إلا بصوم﴾ په مقابله کې به د امام شافعی رحمه الله قیاس پریخودلې شی.

ثُمَّ الصَّوْمُ شَرْطٌ لِصِحَّةِ الْوَاجِبِ مِنْهُ رِوَايَةً وَاحِدَةً بِيَوْمٍ بیا روژه شرط ده د واجب اعتکاف د صحت لپاره په یو روایت کې.

**تشریح:- وجوب الصوم للاعتكاف الواجب** ۞ صاحب د هدایه رحمه الله فرمائی. چه د واجب اعتکاف لپاره په اتفاق د روایاتو روژه شرط ده. یعنی د احنافو رحمهم الله واړه عالمان په دې متفق دی. چه د واجب اعتکاف لپاره روژه نیول شرط دی. د واجب اعتکاف صورت دادې. چه یوکس د یومیاشت یا د یو ورځ اعتکاف نذر اوکړی. یا دا ووایي. که زما دا کار اوشو. نو په ما د دومره مودې اعتکاف دې.

[1] من حديث عائشة رضى الله عنها أخرجه الدارقطنى فى سننه (۲/۲۰۰) والبيهقى فى السنن الكبرى (۴/۵۲۱) رقم ۸۵۸۰_

**وَلِصِحَّةِ التَّطَوُّعِ فِيمَا رَوَى الْحَسَنُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ لِظَاهِرِ مَا رَوَيْنَا** او د نفلي اعتکاف د صحيح والي لپاره په روايت د حسن کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله نه د ظاهر حديث په امله سره **وَعَلَى هٰذِهِ الرِّوَايَةِ لَا أَقَلَّ مِنْ يَوْمٍ** او پدې روايت به اعتکاف کم نه وي. د يوې ورځې نه

تشريح:- **الروايتان في وجوب الصوم للاعتکاف النفلي**۞ او د نفلي اعتکاف د صحيح کيدلو لپاره د روژې په شرطيت کې دوې [دوه] روايتونه دی. ① يو روايت کوم چې حسن بن زياد رحمه الله د حضرت امام اعظم رحمه الله نه روايت کړې دې. چه د نفلي اعتکاف لپاره هم روژه شرط ده. ځکه چې حديث ﴿لا إعتكاف إلا بصوم﴾ مطلق دې. په دې کې د واجب او نفلي اعتکاف هيڅ تفصيل نشته. بلکه د هريو اعتکاف لپاره روژه ضروري ده. خو دا په ذهن کې ساتل پکاردی. چه ددې روايت په بنا (بنياد) باندې نفلي اعتکاف د يو ورځ نه کم نشي کيدلې. ځکه چې د نفلي اعتکاف لپاره ددې روايت مطابق روژه شرط ده. او روژه د يوورځ نه کم ممکن نه دې.

**وَفِي رِوَايَةِ الْأَصْلِ. وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالَى أَقَلُّهُ سَاعَةٌ**[1] او په روايت د اصل کې او دغه قول د امام محمد رحمه الله دې چې کم تر اعتکاف يو ساعت دې **فَيَكُونُ مِنْ غَيْرِ صَوْمٍ. لِأَنَّ مَبْنَى النَّفْلِ عَلَى الْمُسَاهَلَةِ أَلَا تَرَى أَنَّهُ يَقْعُدُ فِي صَلَاةِ النَّفْلِ مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَى الْقِيَامِ** نو دا به دروژې نه بغير وي ځکه چې د نفلونو بنا په سهولت ورکولو ده. آيا ته نه ګورې چې په نفل لمونځ کې کيناستلې شی سره د قدرت نه په قيام باندې

تشريح:- دوهم روايت په مبسوط کې دې. او هم دا ظاهر الرواية دې. او هم دا د امام محمد رحمه الله يو قول دې. چې د نفلي اعتکاف لپاره روژه شرط نه ده. ددې روايت به بناء باندې د نفلي اعتکاف لپاره هيڅ وخت مقرر نه دې. بلکه د اعتکاف په نيت سره چې څومره وخت په جمات کې تيره وي. هغه به اعتکاف وي. که يوه ساعت (لمحه) (يعنی ډيرلږ وخت) ولې نه وي. دليل دادې. چه د نفل مدار په سهولت او اسانۍ باندې دې. تاسو اوګورئ. چه لمونځ کې قيام فرض دې. خو نفل لمونځ د ،قدرت على القيام، باوجود، که په ناسته اوکړئ شی نو جائز دې. نو ددې نه معلومه شوه. چه د نفلو بنا (بنياد) په سهولت او آسانۍ باندې دې. او سهولت د اعتکاف وخت (اندازه) په نه مقررولو کې دې. په دې وجه موږ وايو. چه د نفلي اعتکاف لپاره هيڅ وخت (اندازه) مقرر نه دې.

**وَلَوْ شَرَعَ فِيهِ ثُمَّ قَطَعَهُ لَا يَلْزَمُهُ الْقَضَاءُ فِي رِوَايَةِ الْأَصْلِ لِأَنَّهُ غَيْرُ مُقَدَّرٍ** او که اعتکاف ئې پيل کړو بيا ئې مات کړو نو قضا پرې لازم نه ده په روايت د اصل کې ځکه چې ددې څه مقدار مقرر نه دې. نو ماتول ئې باطلول نه دی. **فَلَمْ يَكُنِ الْقَطْعُ إِبْطَالًا وَفِي رِوَايَةِ الْحَسَنِ يَلْزَمُهُ لِأَنَّهُ مُقَدَّرٌ بِالْيَوْمِ كَالصَّوْمِ** او په روايت د حسن کښې قضا لازم ده ځکه چې دغه د روژې په څير په يوې ورځې سره مقدر دې.

تشريح:- ۞ **ثمرة الاختلاف بين الروايتين**۞ په دواړو روايتونو کې د اختلاف ثمره ښکاره کاوه لپاره فرمائی. که يو کس نفلي اعتکاف پيل کړو. او بيا ئې دا قطع کړو. نود ،مبسوط، روايت مطابق به په ده باندې قضاء لازم نه وي. ځکه چې د نفلي اعتکاف هيڅ اندازه مقرر نه ده. په دې وجه به قطع کول، باطلول نه وي. بلکه پوره کول به وي. او د يو څيز پوره کاوه په صورت کې ددې قضاء نه واجبيږي. او د حسن بن زياد رحمه الله د روايت مطابق به په ده باندې قضاء لازم وي. ځکه چې ددې روايت مطابق نفل اعتکاف (اندازه) کم از کم د يو ورځ سره مقرر ده. لکه ځنګه چې روژه يوه ورځ وي. نو هرکله چې ده يوه ورځ پوره کيدلو نه مخکې دا قطع کړو. نو دا باطل شو. او نفلي عبادتونه که د پوره کاوه نه مخکې فاسد کړې شی. نو ددې قضاء لازم وي. په دې وجه ددې روايت مطابق په ده به هم د اعتکاف قضاء لازم وي.

[1] القول الراجح هو هذا رواية الأصل كذا في العناية (۲\۳۰۸) والدر المختار(۲\۱٤۲) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۰۵)-



**ثُمَّ الْاِعْتِكَافُ لَا يَصِحُّ إِلَّا فِي مَسْجِدِ الْجَمَاعَةِ** بيا اعتکاف صحيح نه دې مګر په جمات کې **لِقَوْلِ حُذَيْفَةَ رضي الله عنه لَا اعْتِكَافَ إِلَّا فِي مَسْجِدِ جَمَاعَةٍ**[1] په دليل د قول د حذيفه رضي الله عنه چې اعتکاف نشته دې مګر په جمات د جماعت کښې

تشريح:- **شرطية المسجد لصحة الاعتکاف**۞ د اعتکاف د جواز په شرطونو کې د جامع جمات کيدل هم دی. يعنی اعتکاف به په هغه جمات کې صحيح وي. په کوم چې امام او موذن مقرر وي. او پنځه واړه مونځونه په جماعت سره اداکيږي. يا بعض مونځونه په جماعت سره اداکيږي. ددې دليل د حضرت حذيفه رضي الله عنه حديث ﴿لا اعتكاف إلا في مسجد جماعة﴾ او د ابن عباس رضي الله عنه قول دې. ﴿إن أبغض الأمور إلى الله تعالى البدع، وإن من البدع الإعتكاف في المساجد التي في الدور﴾ يعنی د الله تعالى په نيزهر مبغوض ترين شی بدعتونه دی. او په بدعتونو کې په هغه جماتونو کې اعتکاف کول هم دی. کوم چې په کورونو کې دی. ددې دواړه روايتونو نه معلوميږي. چه د اعتکاف لپاره د داسې جمات کيدل ضروري دی. چه په هغې کې په جماعت سره لمونځ ادا کيږي.

**وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ لَا يَصِحُّ إِلَّا فِي مَسْجِدٍ يُصَلَّى فِيهِ الصَّلَوَاتُ الْخَمْسُ** او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې چې نه صحيح کيږي مګر په داسې مسجد کې چې پنځه وخته مونځونه پکې نه کيږي، **لِأَنَّهُ عِبَادَةُ انْتِظَارِ الصَّلَاةِ فَيَخْتَصُّ بِمَكَانٍ تُؤَدَّى فِيهِ** ځکه چې اعتکاف د لمانځه د انتظار عبادت دې نو په داسې ځائې پورې به مختص وي په کوم کې چې لمونځ کيږي.

تشريح:- ۞ **شرطية المسجد الجامع للاعتکاف في رواية**۞ او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دا دې. چه د اعتکاف د صحت لپاره داسې جمات کيدل شرط دی. چه په هغې کې پنځه واړه مونځونه په جماعت سره ادا کيږي. هم دا د امام محمد رحمه الله يو قول دې. ددې دليل دادې. چه اعتکاف د لمونځ د انتظار عبادت دې. نو د اعتکاف عبادت به د هغه ځائې لپاره خاص وي. کوم ځائې کې چې لمونځ اداکيږي. يعنی هر لمونځ اداکيږي.

**أَمَّا الْمَرْأَةُ** هرچه ښځه ده **فَتَعْتَكِفُ** نو دا به اعتکاف کوی **فِي مَسْجِدِ بَيْتِهَا** په جمات د خپل کور کښې

تشريح:- **صحة اعتکاف المراة في مسجد بيتها**۞ ① او د ښځې لپاره زموږ په نيز افضل دا دی. چه دوی د خپل کور په جمات کې اعتکاف اوکړی. يعنی په کور کې د لمانځه لپاره چې کوم ځائې مقرر دې. په هغې کې اعتکاف کول د ښځې لپاره افضل دی.

**لِأَنَّهُ هُوَ الْمَوْضِعُ لِصَلَاتِهَا** هر چې ښځه ده دا به د خپل کور په مسجد کې اعتکاف کوی ځکه چې ددې د لمانځه لپاره دغه ځائې دې **فَيَتَحَقَّقُ انْتِظَارُهَا فِيهِ** نو متحقق کيږي انتظار د لمانځه ددې په ذريعه پدغې کښې

تشريح:- **دليله** ۞ دليل دا دې. چه موږ وړاندې وئيلی دی. چه اعتکاف د لمونځ د انتظار عبادت دې. او ښځه د کور په جومات کې د لمونځ انتظار کوی. په شرعی جمات کې نه کوی. نو هرکله چې په کورکې د لمونځ انتظار کوی. نو اعتکاف به هم په دې کې کوی.

**ولو لم يكن لها في البيت مسجد تجعل موضعا فيه فتعتكف فيه** او که ددې په کورکې مسجد نه وونو په کور کې دې يو ځائې جوړ کړی نو په هغې کې دې اعتکاف کوی.

تشريح:- او که په کورکې د لمونځ لپاره څه مقرر نه وی. نو يو ځائې دې مقرر کړی. په هغې کې دې اعتکاف اوکړی.

[1] من أثر حذيفة رضي الله عنه أخرجه الدارقطني في سننه(۲/۲۰۰)_

## د جمات نه د معتکف لپاره د وتلو د اجازت عذرونه.

**وَلَا يَخْرُجُ مِنَ الْمَسْجِدِ إِلَّا لِحَاجَةِ الْإِنْسَانِ أَوِ الْجُمُعَةِ** اونه به اوځي دمسجد نه مګر د حاجت انساني لپاره اويا دجمعې دلمانځه دپاره.

**تشريح: جواز الخروج من المسجد للضرورة**۞صورت د مسئلې دادې.چه د معتکف لپاره د اعتکاف د جمات نه وتل جائز نه دی.سوې د دوې [دوه] ضرورتو نه،چه ① يو طبعي اړتيا دې.لکه د تش او ډک اودس ماتي ضرورت، ② دوهم ديني اړتيا لکه د جمعې اود جنابت د غسل ضرورت.

**أَمَّا الْحَاجَةُ فَلِحَدِيثِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا** هرچه حاجت دې دحديث د عائشې بي‌بي په امله سره **كَانَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَا يَخْرُجُ مِنْ مُعْتَكَفِهِ** چې.نبي کريمﷺ به دخپل ځائې داعتکاف نه نه وتلو **{إِلَّا لِحَاجَةِ الْإِنْسَانِ}**(1) مګر دحاجت انساني دپاره.

**حل اللغة:** ① **معتكف:اسم ظرف، باب افتعال:** دَ اعتکاف ځاى

**تشريح:- ① دلائله**۞بهرحال د طبعي او انساني اړتيا لپاره د وتلو په جواز باندې دليل ① د عائشه رضي الله عنها حديث دې.يعني «كان النبيﷺ لا يخرج من معتكفه إلا لحاجة الإنسان» يعني رسول اللهﷺ به د خپل معتکف نه بهرتشريف نه اوړلو.سوې د انساني او طبعي اړتيا پوره کاوه لپاره يعني د وړوکي او غټ اودس ماتي دپاره،

**وَلِأَنَّهُ مَعْلُومٌ وُقُوعُهَا، وَلَا بُدَّ مِنَ الْخُرُوجِ فِي تَقْضِيَتِهَا** اوځکه چې ددې وقوع معلومه ده دکوم دپوره کاوه لپاره چې دوتلو نه بغير چاره نشته دې **وَفَيَصِيرُ الْخُرُوجُ لَهَا مُسْتَثْنًى** نوددې لپاره وتل به مستثنا وی.، **وَلَا يَمْكُثُ بَعْدَ فَرَاغِهِ مِنَ الطُّهُورِ** اووخت به نه تيروی روسته دَ اوزګاريدلو د اودس نه **لِأَنَّ مَا ثَبَتَ بِالضَّرُورَةِ يَتَقَدَّرُ بِقَدْرِهَا** دغه په قدر د اړتيا وی.

**تشريح:-** دوهم دليل دادې.چه د انساني ضرورياتو واقع کيدل د مخکې نه معلوم دی.اودا هم معلومه ده.چه ددې د پوره کاوه لپاره وتل ضروری دی.ددې نه بغير خلاصې نشته.نو ددې ضرورتونو لپاره به وتل پخپله مستثنی وی.ځکه چې دغير اختياری اُمورو انسان مکلف نه وی.خو دومره خبره ضرور ده.چه د انساني اړتيا پوره کيدلو نه پس،د طهارت نه د فارغيدلو نه فوراً روسته خپل معتکف ته لاړشی.د طهارت نه د فارغيدلو نه روسته دې په خپل کورکي نه ايساريږی.ځکه چې د انساني حاجتونو لپاره وتل ضرورةً ثابت دی.او کوم شی چې ضرورةً ثابت وی.نو هغه د اړتيا په اندازه ثابت وی.په دې وجه د اړتيا په اندازه د اعتکاف د جمات نه د بهر پاتې کيدلو اجازت دې.ددې نه زيات اجازت نشته.

**وَأَمَّا الْجُمُعَةُ فَلِأَنَّهَا مِنْ أَهَمِّ حَوَائِجِهِ وَهِيَ مَعْلُومٌ وُقُوعُهَا** اوهرچه جمعه ده نودا د مهمو ضرورتونو دده ده اوددې وقوع هم معلوم دې.

**حل اللغة:** ① **تقضيتها: مصدر باب تفعيل:** پوره کول

**تشريح:- ① الخروج لصلاة الجمعة**۞او پاتې شو د جُمعې د لمانځه لپاره وتل.① نو دا زموږ مذهب دې.

---

(1) غربه الزيلعى رحمة الله بهذا اللفظ ثم قال وأخرج الأئمة الستة (أى البخارى فى الإعتكاف باب ۳ ومسلم فى الحيض رقم ۶ وأبوداود في الصوم باب ۷۹ رمق ۲۴۶۷ والترمذى فى الصوم باب ۷۹ رقم ۸۰۵ والنسائى فى السنن الكبرى (۲۶۶/۲) وابن ماجه فى الصوم رقم ۱۷۷۸ ومالك فى الإعتكاف رقم ۱ وأحمد فى المسند (۱۸۱/۶) والبيهقى فى السنن الكبرى (۵۱۸/۴) رقم ۴۵۷۰) عن عائشة رضى الله عنها قال كان رسول اللهﷺ إذا إعتكف يدنى إلى رأسه فأرجله وكان لا يدخل البيت إلا لحاجة الإنسان (نصب الراية ۵۱۸/۲)_



**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: الْخُرُوجُ إِلَيْهَا مُفْسِدٌ لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ الِاعْتِكَافُ فِي الْجَامِعِ** امام شافعي رحمه الله وائي چې جمعې ته وتل مفسد داعتکاف دی ځکه چې ده لره په جامع مسجد کښې اعتکاف کول ممکن دی

**تشريح:-** د امام شافعي او امام مالک رحمهما الله په نيزد جُمعې لپاره وتل جائز نه دی.تردې که د جمعې د لمانځه لپاره او وتلو.نو اعتکاف به فاسد وی.

**تشريح:- دليله**۞ددې دواړو حضراتو دليل دادې.چه خروج د اعتکاف يعنی په يوځائې کې د وخت تيرولو ضد دې.او شئ د خپل ضد په راتلوسره فاسديږی.په دې وجه اعتکاف په ،خروج من المسجد ،سره فاسديږی.خو په دې صورتونوکې به نه فاسديږی.په کومو صورتونوکې چې خروج متحقق دې.لکه واړه اوغټ بول(اودس ماتی) لپاره وتل،اود جمعې د لمانځه لپاره د وتلو هيڅ اړتيا نشته.ځکه که ده د اووه ورځو نه کم اعتکاف کړې دې.نو په کوم جمات کې چې غواړی.اعتکاف دې اوکړی.اوکه د اووه ورځو نه زيات اعتکاف ني کړې دې.نوپه جامع مسجد کې دې اعتکاف اوکړی.نو په دې دواړوصورتونوکې څه داسې اړتيا موجود نشو.چه د جمعې د لمانځه لپاره خروج جائز اوګرځوی.او هرکله چې داسې اړتيا متحقق نشو.نود جمعې د لمانځه لپاره به د وتلو هم اجازت نه وی.

**وَنَحْنُ نَقُولُ: الِاعْتِكَافُ فِي كُلِّ مَسْجِدٍ مَشْرُوعٌ** موږ وايو چې اعتکاف په هر جمات کې مشروع دې **وَإِذَا صَحَّ الشُّرُوعُ فَالضَّرُورَةُ مُطْلَقَةٌ فِي الْخُرُوجِ** اوکله چې پيل کول صحيح شو نو اړتيا دوتلو اجازت ورکوی.

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله۞زموږ دليل دادې.چه په دليل سره داخبره ثابته شوې ده.چه اعتکاف په هرجمات کې مشروع دې.لکه چې د الله تعالى ارشاد دې[**وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنْتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ**]نو هرکله چې په هر جمات کې اعتکاف مشروع دې.نود جمعې لپاره وتل به دده د نذر اعتکاف لپاره داسې مستثنی وی.لکه ځنګه چې د انساني اړتيا لپاره وتل مستثنی دی.ځکه چې د اعتکاف د ساتنه لپاره د جمعې لمونځ پريښول قطعًا جائز نه دی.ځکه چې د نذر په وجه د اعتکاف وجوب د جمعې د لمانځه د وجوب نه کمتر دې.اود جمعې د لمانځه د وجوب نه کمتر ځکه دې.چه د جمعې لمونځ د الله تعالى په واجبولوسره واجب شوې دې.او اعتکاف د بنده په واجبولوسره واجبيږی.په دې طريقه چې ده د اعتکاف نذر کړې دې.اود بنده لپاره د الله تعالى واجب کړې وظيفه ساقطولو اجازت نشته.نو ثابته شوه.چه د اعتکاف په وجه د جمعې لمونځ نشی پريخودلې.اوهرکله چې د جمعې لمونځ نشی پريخودلې.نود جمعې د لمانځه لپاره به د وتلو هم اجازت وی.

**وَيَخْرُجُ حِينَ تَزُولُ الشَّمْسُ لِأَنَّ الْخِطَابَ يَتَوَجَّهُ بَعْدَهُ** او اوځی به دنمر دزوال په وخت ځکه چې خطاب ددې نه بعد متوجه کيږی

**تشريح:- وقت الخروج لصلاة الجمعة**۞اوس پاتې شوه داخبره چې د جُمعې د لمانځه لپاره کوم وخت وتلو اجازت دې.نو ددې حکم دادې.چه د اعتکاف ځائې که جامع جوماتٔ سره نژدې وی.نود زوال نه روسته دې اوځی.ځکه چې د جمعه ادا کاوه خطاب د زوال نه روسته متوجه کيږی.اوهرکله چې دا خطاب متوجه شی.نو هله به اړتيا لاحق کيږی.او هرکله چې اړتيا لاحق شی.نو هله به د جمعې د لمانځه لپاره وتل هم جائزوی.نو چونکه د جمعه ادا کاوه اړتيا د زوال نه روسته متحقق شوې دې.ځکه به د زوال نه روسته اوځی.

**وَإِنْ كَانَ مَنْزِلُهُ بَعِيدًا عَنْهُ يَخْرُجُ فِي وَقْتٍ يُمْكِنُهُ إِدْرَاكُهَا وَيُصَلِّي قَبْلَهَا أَرْبَعًا** اوکه دده ځائې د اعتکاف دجامع مسجد نه لرې وو نوداسې وخت به اوځی چې جمع موندل ممکن وی او لمونځ اوکړی مخکې تر څلوررکعتو نه **وَفِي رِوَايَةٍ سِتًّا، الْأَرْبَعُ سُنَّةٌ، وَالرَّكْعَتَانِ تَحِيَّةُ الْمَسْجِدِ** اوپه روايت شپږ ،څلور سنت اودوې [دوه] تحيه المسجد ،، **وَبَعْدَهَا أَرْبَعًا أَوْ سِتًّا عَلَى حَسَبِ الِاخْتِلَافِ فِي سُنَّةِ الْجُمُعَةِ** اودجمعې نه بعد څلور يا شپږ رکعتونه اوکړی دهغې اختلاف موافق کوم چې دجمعې دسنتو په اړه کې دې

**تشريح:-** خوکه د اعتکاف ځائې د جامع جمات نه لرې وی.نو دومره مخکې دوتلو اجازت دې.چه دده لپاره د جمعې لمونځ سره د خطبې نه رالاندې کول ممکن وی.اود خطبې نه مخکې څلور رکعته سنت اوکړی.اوپه يو روايت کې دی.چه د جمعې نه مخکې شپږ رکعته اوکړې شی.څلور سنت،او دوې [دوه] رکعته تحية المسجد، او ددې معتکف لپاره اجازت دې.چه دې د جمعې نه روسته څلور رکعته سنت په جامع مسجد کې اداکړی.لکه څنګه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله قول دې.يا شپږ رکعته اوکړی.لکه چې ابويوسف رحمه الله فرمائی

| وَسُنَّتُهَا تَوَابِعُ لَهَا فَأُلْحِقَتْ بِهَا اودجمعې سنت ددې تابع دی نودجمعې سره لاحق شو |
|---|

**تشريح:-** .ددې دليل دادې.چه د جمعې سنت د جمعې تابع دی.نو سنت به هم د جمعې د لمانځه سره لاحق کولې شی.يعنی لکه څنګه چې د جمعې د لمانځه لپاره دينی اړتيا متحقق دې.دغه ډول به ددې د سنتو لپاره هم متحقق وی.

| وَلَوْ أَقَامَ فِي مَسْجِدِ الْجَامِعِ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ لَا يَفْسُدُ اعْتِكَافُهُ اوکه پاتې شو په جامع مسجد کې زيات ددې نه نونه فاسد وی اعتکاف دده لِأَنَّهُ مَوْضِعُ اعْتِكَافٍ إِلَّا أَنَّهُ لَا يُسْتَحَبُّ ځکه چې دغه هم داعتکاف ځائې دې مګر داسې کول مستحب نه دی لِأَنَّهُ الْتَزَمَ أَدَاءَهُ فِي مَسْجِدٍ وَاحِدٍ فَلَا يُتِمُّهُ فِي مَسْجِدَيْنِ مِنْ غَيْرِ ضَرُورَةٍ ځکه چې ده په يو مسجد کې دادا کاوه التزام کړې دې نوپه دوؤ مسجدونو کې دې ه پوره کوی بغير د اړتيا نه. |
|---|

**تشريح:- خلاصة الكلام**۞ددې تقرير نه ښکاره شوه.چه د جامع جومات نه په علاوه کې اعتکاف کونکی کس لپاره په جامع جومات کې د جمعې مونځ،خطبه او ددې دسنتو په اندازه د قيام کاوه اجازت دې.خوکه ددې نه ئې زيات قيام اوکړو.نو دده اعتکاف فاسد خو به نه وی.البته خلاف اولی او غيرمستحب به وی.اعتکاف خو به فاسد ځکه نه وی.چه جامع جمات هم د اعتکاف مقام دې.او خلاف اولی ځکه دې.چه ده په يوجمات کې اعتکاف اداکول په خپل ځان باندې لازم کړې وو.نو بې ضرورته به ئې په دوې [دوه] جماتونوکې نه پوره کوی.ددې عبارت نه معلوميږی.که ده په جامع جومات پوره کړو.يا زيات وخت ايسار شو.نو اعتکاف اوشو.خو مکروه شو.اودا هم معلومه شوه.چه دعذر په وجه د يوجمات نه بل جمات اړخ ته منتقل کيدل جائز دی.مثلاً په کوم جمات کې چې معتکف وو.د هغې چهت پريوتلو.يا په هغې کې د ځان خطره ده.نو ددې نه منتقل کيدل،او بل جمات ته تلل جائز دی.والله اعلم،

## بغير عذر د جمات نه دوتلو حکم

| وَلَوْ خَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ سَاعَةً بِغَيْرِ عُذْرٍ فَسَدَ اعْتِكَافُهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى (۱) که د مسجد نه اووتلو يو ساعت بغير د عذر نه نواعتکاف ئې فاسد شو په نيز د امام ابوحنيفه رحمه الله لِوُجُودِ الْمُنَافِي دمنافی امر د موندو په امله سره وَهُوَ الْقِيَاسُ، وَقَالَا: لَا يَفْسُدُ حَتَّى يَكُونَ أَكْثَرَ مِنْ نِصْفِ يَوْمٍ او قياس هم دادې.او صاحبين رحمهما الله فرمائی چې نه فاسديږی تر دې چې دنيمې ورځې نه زيات شی وَهُوَ الْاِسْتِحْسَانُ لِأَنَّ فِي الْقَلِيلِ ضَرُورَةً او دا استحسان دې ځکه چې په لږه وقفه کښې اړتيا دې. |
|---|

**تشريح: المذهبان فی فساد الاعتکاف بالخروج من غير عذر**۞مسئله داده.که معتکف بغير د عذره د جومات نه اووتلو.اګرچه د يو لمحه.. لپاره وتلې وی.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دده اعتکاف فاسد شو.او قياس هم

(۱) القول الراجح هو هذا قول أبی حنيفة رحمه الله كذا فی فتح القدير(۳۱۰\۲) وردالمحتار(۱٤۵\۲) والخانية (۱۰۷\۱) وشرح الوقاية (ص،٤۵۵) والفقه الإسلامی وأدلته (۷۱۹\۲) والهندية (۲۱۲\۱) نقلاً عن القول الراجح (۲۰٦\۱)



دا دې.او صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه اعتکاف به فاسد نه وی.خوکه د نيمې ورځې نه ئې زياته بغير د عذره د جمات نه بهر تيره کړه.نو اعتکاف به فاسد وی.او استحسان هم دا دې.

**۩دليل ابی حنيفة رحمه الله**۞د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه د اعتکاف رکن،لبث فی المسجد، (په جومات کې ايساريدل) دی.اود جمات نه وتل ددې منافی دی.او شئ د خپل منافی اود ضد په موجود کيدلو سره فوت کيږی.په دې وجه اعتکاف په ،خروج من المسجد ،سره فوت کيږی.خروج که د لږ وخت لپاره وی.اوکه د زيات وخت لپاره وی.لکه د روژې په حالت کې خوراك روژه فاسدوی.که لږه ئې خوړلې وی.اوکه زياته ئې خوړلې وی.دغه ډول لکه څنګه چې مطلقاً حدث ناقض د اودس دې.حدث که لږ وی.اوکه زيات وی.

**۩دليل الصاحبين رحمهما الله**۞دصاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه د لږ وخت لپاره د جومات نه وتل،د حرج لرې کاوه لپاره معاف دی.اود زيات وخت لپاره وتل معاف نه دی.اود قليل او کثير په مينځ کې حد فاصل نيمه ورځ نه زياتی ده.يعنی د نيمې ورځ نه زيات ته کثير وئيلې شی.او نيمه او ددې نه کم ورځې ته به قليل وئيلې شی.لکه څنګه چې په رمضان کې د نيمې ورځ نه زياتی کې که نيت موجود شو.نو روژه به معتبر وی.ګنی معتبر به نه وی.

## په اعتکاف کې خوراك

| قَالَ (وَأَمَّا الْأَكْلُ وَالشُّرْبُ وَالنَّوْمُ يَكُونُ فِي مُعْتَكَفِهِ اود معتکف خوړل څښل اوخوب کول به پخپل ځائې داعتکاف کې کوی |
|---|

**تشريح:۩ جواز الاكل والشرب فی الاعتكاف**۞ مسئله:د معتکف لپاره په جومات کې خوراك څکاك او اوده کيدل جائز دی.

| لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَأْوًى إِلَّا الْمَسْجِدَ(۱) ځکه چې د .نبی کريم ﷺ هيڅ ټکانه نه وه سوې دجمات نه |
|---|

**تشريح:-** دليل دادې.چه د رسول الله ﷺ د اعتکاف په حالت کې سوې د جمات نه هيڅ ځائې نه وو.او هرکله چې د جومات نه علاوه ئې هيڅ ځائې نه وو.نو ښکاره خبره ده.چه خوراك څکاك او اوده کيدل به ئې هم هلته کې وو

| وَلِأَنَّهُ يُمْكِنُ قَضَاءُ هَذِهِ الْحَاجَةِ فِي الْمَسْجِدِ فَلَا ضَرُورَةَ إِلَى الْخُرُوجِ اوځکه چې دې حاجت لره په مسجد کې پوره کول ممکن دی نوهيڅ اړتيا نشته دې وتلوته. |
|---|

**تشريح:-** . دوهم دليل دادې.چه ددې خوراك څکاك اود اوده کيدلو اړتيا په جومات کې پوره کيدل ممکن هم دی.نو دده لپاره د وتلوهيڅ اړتيا نشته.

## د معتکف لپاره د بيع اوشراء حکم

| وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَبِيعَ وَيَبْتَاعَ فِي الْمَسْجِدِ وڅه باك نشته دې په اخستلو خرڅولو کې په مسجدکښې دننه مِنْ غَيْرِ أَنْ يُحْضِرَ السِّلْعَةَ لِأَنَّهُ قَدْ يَحْتَاجُ إِلَى ذَلِكَ بغير د راوړ د سامان نه مسجد ته دننه.ځکه چې کله دې ته اړتيا وی بِأَنْ لَا يَجِدَ مَنْ يَقُومُ بِحَاجَتِهِ پدې طور چې دې خپل حاجت پوره کوُنکې نه مومی. |
|---|

**حل اللغة:** ①سلعة: د تجارت سامان

**تشريح:۩ جواز البيع والشراء للمعتكف**۞مسئله:د معتکف لپاره په جومات کې دننه په اخستلو خرڅولو کې هيڅ باك نشته.په دې شرط چې سامان جومات ته رانوړی.ځکه چې ډير ځله معتکف لپاره د اخستلو خرڅولو

(۱) قال الزيلعی رحمة الله هذا معلوم من الأحاديث والنصوص المتطابقة (نصب الرأية ۵۱۹/۲)۔

ارتيا پيښيږي.اوهيڅ څوك داسي كس دده سره موجود نه وي.چه دده بندوبست اوكړي.نو د دي ارتيا په لحاظ سره معتكف ته ددي اجازت وركړي شوي دي.

إلا أنهم قالوا: يُكْرَهُ إِحْضَارُ السِّلْعَةِ لِلْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ ليكن مشائخو وئيلي دي چي مكروه دي سامان حاضرول اخستلو او خرڅولو دپاره. لِأَنَّ الْمَسْجِدَ مُحَرَّرٌ عَنْ حُقُوقِ الْعِبَادِ، وَفِيهِ شَغْلُهُ بِهَا ځكه چي جوماتونه دبندګانو حقوقو نه محفوظ ساتلي شوي دي اوپه حاضرولو دمتاع كي مسجد ته پدي سره مشغولول دي

تشريح:- كراهة الاحضار المبيع۞خو فقهاؤ د اخستلو خرڅولو لپاره په جومات كي دننه سامان راوړل مكروه ګرځولي دي.ځكه چي جمات خالص د الله ﷻ لپاره وي.اود بنده ګانو دحقونو نه ئي دا محفوظ ساتلي دي. نوچونكه جمات ته دننه په سامان راوړلوكي دا د بندګانو د حقونو اوسامان سره مشغولول لازميږي.په دي وجه به جمات ته دننه د اخستلوخرڅولو سامان راوړلو،او ايخودلو اجازت نه وي.

وَيُكْرَهُ لِغَيْرِ الْمُعْتَكِفِ الْبَيْعُ وَالشِّرَاءُ فِيهِ او دغير معتكف لپاره په جماعت كي اخستل خرڅول مكروه دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ { جَنِّبُوا مَسَاجِدَكُمْ صِبْيَانَكُمْ دارشاد نبوي ﷺ په امله سره چي خپلوجوماتونو ته دخپلو بچونه اوساتئى إِلَى أَنْ قَالَ وَبَيْعَكُمْ وَشِرَاءَكُمْ (١) تر دي پوري چي دخپلو اخستلو خرڅولو نه.

تشريح:- كراهة البيع والشراء لغير المعتكف ودلائله۞علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه دغير معتكف لپاره په جمات كي دننه اخستل خرڅول هم مكروه دي.دليل دادي①چه ابن ماجه په خپل سنن كي د وائله بن الاسقع نه روايت كړي دي.چه دهغي الفاظ دادي.(أن النبي ﷺ قال جنبوا مساجدكم صبيانكم ومجانيكم وشرائكم وبيعكم وخصوماتكم ورفع اصواتكم وإقامة حدودكم وسل سيوفكم..واتخذوا على أبوابها المطاهر وجمروها في الجمع)يعني رسول الله ﷺ اوفرمائيل.چه د خپلوجماتونو نه لري ساتئ،خپل ماشومان،او ليوني،او اخستل خرڅول،او خپلي جګړي،او خپل آوازونه اوچتول،او سزاګاني قائمول،او توري بربندي كول،(راوښكل)اود خپلو جماتونو په دروازوكي د طهارت ځايونه جوړوئ.او په جمعو كي دي له خوشبوئى وركوئ.

## په اعتكاف كي دخبرو چوپ اوسيدل

قَالَ وَلَا يَتَكَلَّمُ إِلَّا بِخَيْرٍ وَيُكْرَهُ لَهُ الصَّمْتُ او خبري به نه كوي مګر راسته خبري او مكروه دي دده لپاره چوپ اوسيدل

تشريح: كراهة الصمت للمعتكف۞معتكف له پكار دي.چه غلطي خبري نه كوي.بلكه نيكي اوښي خبري كوي.اود عبادت په خيال باندي بالكل خاموش اوسيدل،هم مكروه دي.

لِأَنَّ صَوْمَ الصَّمْتِ لَيْسَ بِقُرْبَةٍ فِي شَرِيعَتِنَا ځكه چي روژه دسكوت د قربت نه دي زموږ په شريعت كي لَكِنَّهُ يَتَجَانَبُ مَا يَكُونُ مَأْثَمًا ليكن ددي سي خبرونه به لري اوسی كومي چي ګناه وي.

تشريح:- المطالب الثلاثة للسكوت۞ ①ددي يو مطلب خو دادي.چه بالكل د خبرو نه كولونذر اوكړي.لكه څنګه چي مخكينو شريعتونو كي وو.② او يومطلب دادي.چه بغير د نذر نه خاموش اوسيږي.او خبري بالكل نه كوي. ③ او يومطلب دادي.چه د روژي نيت اوكړي.يعنى د ،مفطرات ثلاثه،نه د بنديدلو نيت اوكړي.اودي سره سره د كلام نه كولوهم نيت اوكړي.دلته كي هم دا دريم صورت مناسب دي.ځكه چي علامه مرغيناني رحمه الله دليل بيان كړي دي.چه د خاموش اوسيدلو روژه زموږ په شريعت كي عبادت نه دي.بلكه د مجوسيانو فعل دي.نود مجوسيانو دمشابهت نه د بچ كيدلو لپاره بالكل خاموش اوسيدل مكروه دي.خود ګناه خبرونه جلا اوسيږئ.

(١) من حديث واثلة رضي الله عنه أخرجه ابن ماجه فى سننه فى المساجد باب ٥ رقم ٧٥٠)_



## په حالت د اعتكاف كي د وطي حرمت

يَحْرُمُ عَلَى الْمُعْتَكِفِ الْوَطْءُ ) اوپه معتكف وطي كول حرام دي. لِقَوْلِهِ تَعَالَى { وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنْتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ } د امله د ارشاد د الله ﷻ نه مباشرت مه كوئي د ښخو سره چي تاسو په جماعتونوكي معتكف يئ:

تشريح: حرمة الجماع على المعتكف۞مسئله: معتكف كه د انساني حاجت لپاره د جومات نه بهر اووتلو.اودانساني حاجت پوره كولونه روسته ئي د ښځي سره جماع هم اوكړه.نو دده دا فعل حرام دي.يعنى د اعتكاف په حالت كي جماع كول حرام دي.ځكه چي د رسول الله ﷺ په زمانه كي د خلګو عادت دا وو. چي دوى به د اعتكاف په حالت كي د جمات نه وتل.اود خپلو ښځو سره به ئي جماع كوله.بيا به ئي غسل اوكړو.او خپل معتكف ته به راتګ .نود الله تعالى دا قول[وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنْتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ]نازل شو.په دي كي د اعتكاف په حالت كي دجماع كاوه نه منع كړي شوي ده.

وَكَذَا اللَّمْسُ وَالْقُبْلَةُ لِأَنَّهُ مِنْ دَوَاعِيهِ فَيَحْرُمُ عَلَيْهِ دغه ډول مسح كول اوښكلول دي ځكه چي دا دواعى دوطى دي.نوحرام به وي پده. إِذْ هُوَ مَحْظُورٌ كَمَا فِي الْإِحْرَامِ چي وطى ددي دممنوعاتو نه ده لكه په احرام كي

تشريح:- حرمة القبلة والمس۞اود معتكف لپاره ښځي سره لاس لګول،او مچى كول (ښكلول) هم حرام دي.ځكه چي دا دواړه خبري د جماع دواعى (مقدمات يا اسباب) دي.او جماع چونكه د اعتكاف د ممنوعاتو څني ده.په دي وجه به ددي دواعى هم د اعتكاف په ممنوعاتو كي ګڼ وي.اوكوم شي چي ممنوع وي.هغه حرام وي.په دي وجه به دا دواړه خبري په معتكف باندي حرامي وي.لكه څنګه چي د احرام په حالت كي مباشرت حرام دي.دغه ډول د مباشرت دواعى هم حرام دي.

بِخِلَافِ الصَّوْمِ لِأَنَّ الْكَفَّ رُكْنُهُ لَا مَحْظُورُهُ فَلَمْ يَتَعَدَّ إِلَى دَوَاعِيهِ په خلاف د روژي نه.ځكه چي دوطى نه منع كيدل ددي ركن دي نه كه محظور نودواعى ته به متعدى نه وي.

تشريح: جواز القبلة فى الصوم۞په خلاف د روژي چي د روژي په حالت كي مباشرت حرام اومفسد د صوم دي.خو لاس لګول،او مچى كول (ښكلول) د صوم مفسد نه دي.ځكه چي جماع د روژي د ممنوعاتو څني نه ده.بلكه د جماع نه ځان ژغورل د روژي ركن دي.او ركن د شيء غير اړخ ته نه متعدى كيږي.په دي وجه به جماع په روژه كي ،د روژي دواعى اړخ ته نه متعدى كيږي.يعنى داسي به نه وي.چه څنګه د جماع نه ځان ژغورل د روژي ركن دي.دغه ډول د لاس لګول، اوښكلول نه بنديدل به هم د روژي ركن وي.اوهركله چي ددي دواړو څيزونو نه ځان ساتل،د روژي ركن نه دي.نو ددي جرم په كولوبه روژه هم نه فاسديږي.

## په هيره يا په قصد به جماع كولو د اعتكاف فساد

فَإِنْ جَامَعَ لَيْلًا أَوْ نَهَارًا عَامِدًا أَوْ نَاسِيًا بَطَلَ اعْتِكَافُهُ) اوكه جماع ئي اوكړه دشپي يا دورځي په قصد سره يا په هيره سره نوباطل شو اعتكاف دده. لِأَنَّ اللَّيْلَ مَحَلُّ الِاعْتِكَافِ بِخِلَافِ الصَّوْمِ ځكه چي شپه محل داعتكاف دي په خلاف د روژي

تشريح: حرمة الجماع على المعتكف۞مسئله: كه معتكف په شپه كي يا په ورځ كي ،قصدا يا په هيره جماع اوكړه.نو دده اعتكاف باطل شو.كه انزال شوي وي.اوكه نه وي شوي.ځكه چي شپه هم د اعتكاف محل دي.نوكوم شي چي د اعتكاف په وجه په ورځ كي ممنوع وي.هغه په شپه كي هم ممنوع وي.په خلاف د روژي،چه شپه د روژي محل نه دي.نود روژي په وجه چي كوم شي په ورځ كي ممنوع وي. هغه به د روژي په وجه شپه كي
ممنوع نه وي.نود غير معتكف لپاره د رمضان په شپوكي جماع كول حلال دي.خود معتكف لپاره حلال نه دي.

وَحَالَةُ الْعَاكِفِينَ مُذَكِّرَةٌ فَلَا يُعْذَرُ بِالنِّسْيَانِ او د اعتكاف كوونكو حالت يادوونكو دې نو معذور به نه وي په هيرو سره.

**تشريح:- السوال** خو كه څوك دا اعتراض اوكړي چه اعتكاف د روژې فرع ده. او فرع په حكم كې اصل سره لاحق كيږي. نو لكه څنګه چې د رمضان په ورځ كې په هيره جماع كاوه سره روژه نه فاسديږي. دغه ډول په هيره جماع كولو سره اعتكاف هم فاسديدل نه پكار نه دي. حالانكه ستاسو په قول اعتكاف فاسديږي.

**الجواب** نو ځواب دا دې. چه حالت د اعتكاف مذكر (يادوونكې) دې. يعني د اعتكاف حالت هر وخت سړي ته دا ياد راولي. چه ته په اعتكاف كې ئې. او د روژې حالت مذكر نه دې. ځكه چې په ښكاره روژه دار سړي روژه دار دواړه برابر وي. نو چونكه د اعتكاف حالت مذكر دې. په دې وجه د اعتكاف په حالت كې نسيان عذر اونه ګرځولې شو. او د روژې حالت چونكه غير مذكر دې. په دې وجه د روژې په حالت كې نسيان عذر او غير اوګرځولې شو.

## د دخول نه سوي په بله طريقه د انزال كيدلو حكم

وَلَوْ جَامَعَ فِيمَا دُونَ الْفَرْجِ فَأَنْزَلَ أَوْ قَبَّلَ أَوْ لَمَسَ فَأَنْزَلَ بَطَلَ اعْتِكَافُهُ او كه جماع ئې اوكړه په ماسوې د فرج كې نو انزال ئې اوشو يائې ښكل كړه يا ئې مسحه كړه نو انزال ئې اوشو باطل شو اعتكاف د ده. لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْجِمَاعِ حَتَّى يَفْسُدَ بِهِ الصَّوْمُ ځكه چې دا په معنا د جماع كې دى تردې چې فاسديږي په دې روژه.

**تشريح:- فساد الاعتكاف بالانزال بمقدمات الجماع** صورت د مسئلې دادې. كه معتكف د فرج نه علاوه په ورون وغيره كې جماع اوكړه. او انزال اوشو. يا ئې ښځې سره لاس اولګولو. يا ئې ښكل كړه. او انزال اوشو. نو په دې صورتونوكې به هم اعتكاف باطل وي. ځكه چې په دې طريقه شهوت پوره كول د جماع په معنى كې دى. دغه وجه ده. چه په دې سره روژه فاسديږي. او جماع كول اعتكاف فاسدوي. نو كوم يز چې د دې په معنى كې وي. هغه به هم اعتكاف فاسدوي.

وَلَوْ لَمْ يُنْزِلْ لَا يَفْسُدُ وَإِنْ كَانَ مُحَرَّمًا او كه انزال ئې اونشو نو نه فاسديږي اګرچه داسې كول حرام دى لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي مَعْنَى الْجِمَاعِ وَهُوَ الْمُفْسِدُ ځكه چې دا نه دى په معنا د جماع كې. او جماع مفسده ده وَلِهَذَا لَا يَفْسُدُ بِهِ الصَّوْمُ په دې وجه پدې سره روژه نه فاسديږي.

**تشريح:- عدم فساد الاعتكاف بمقدمات الجماع من غير انزال** او كه په ذكر شوي صورتونوكې انزال اونشو. نو اعتكاف به فاسد نه وي. اګرچه د اعتكاف په حالت كې دا فعل حرام دې. ځكه چې بغير د انزال نه دا فعل د جماع په معنى كې نه دې. حالانكه د اعتكاف مفسد جماع ده. او بغير د انزال نه په ،مادون الفرج، كې مباشرت د جماع په معنى كښې نه دې. په دې وجه دې سره روژه نه فاسديږي.

## د ورځو د اعتكاف په نذر سره د شپو شامليدل

قَالَ (وَمَنْ أَوْجَبَ عَلَى نَفْسِهِ اعْتِكَافَ أَيَّامٍ لَزِمَهُ اعْتِكَافُهَا بِلَيَالِيهَا) او چا چې واجب كړو په ځان اعتكاف دو ورځو نو لازم دې پده باندې اعتكاف د شپو سره

**تشريح: وجوب اعتكاف الليل بنذر اعتكاف الايام** صورت د مسئلې دادې. كه يوكس د څو ورځو اعتكاف په ځان باندې لازم كړو. په دې طريقه چې وې وئيل، د الله لپاره په ما باندې د لسو ورځو اعتكاف لازم دې، نو د لسو ورځو اعتكاف به د دې د شپو سره لازم وي. او بلا ناغه به لازم وي. اګرچه د بلا ناغه والي شرط ئې نه وي كړې.



لِأَنَّ ذِكْرَ الْأَيَّامِ عَلَى سَبِيلِ الْجَمْعِ يَتَنَاوَلُ مَا بِإِزَائِهَا مِنَ اللَّيَالِي، ځكه چې ورځو له په طريقه د جمعې ذكر كول خپلو مقابلو شپو له شامل دى. يُقَالُ: مَا رَأَيْتُكَ مُنْذُ أَيَّامٍ وَالْمُرَادُ بِلَيَالِيهَا وئيلې شي چې ماته د څو ورځو نه وې ليدلې او مراد ترې سره د شپو وي.

**تشريح:- القاعدة** د ورځو په ذكر كاوه سره به شپې ځكه ګډ وي. چه قاعده ده. چه د جمع په صيغه سره ،ايام، ذكر كول، د دې په مقابل كې شپو ته هم شامليږي. مثلاً كه يوكس دا اووائي. «ما رأيتك منذ أيام» ماته د څوورځو داسې اونه ليدلې. نو مراد دادې. چه د څو ورځو، سره د دې د شپو ئې نه دې ليدلې. دا مطلب هيڅ كله نه دې. چه ماته د څو ورځو يعنې په ورځ كې اونه ليدلې. البته د شپې مې كتلې وې. دغه ډول كه يوكس قسم اوكړي. چه زه به د فلانى كس سره يومياشت خبرې نه كوم. نو دا قسم به ،ايام او ليالى، دواړو ته ګډ وي.

**دليل شمول الليالى فى الايام** لكه تاسو د حضرت زكريا ﷺ قصه اوګورئ. چه دوى ته يو ځلې الله تعالى اوفرمائيل. ﴿قَالَ آيَتُكَ أَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ إِلَّا رَمْزًا﴾ او يوځلې ئې اوفرمائيل. ﴿قَالَ آيَتُكَ أَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلَاثَ لَيَالٍ سَوِيًّا﴾ په دې دواړو آيتونوكې يوه قصه ذكر ده. خو په يو ځائې كې د ،ايام، لفظ دې. او يوځائې د ،ليال، لفظ دې. نو د دې هم دادې. چه ،ايام مع ليالى، مراد دې. او ،ليالى مع ايام، مراد دې. بهرحال ثابته شوه. چه د ،ايام، ذكر د جمع په صيغه د دې شپو ته هم ګډ وي. نو هركله چې څوك د څو ورځو د اعتكاف نذر اوكړي. نو دا اعتكاف به سره د شپو واجب وي.

وَكَانَتْ (مُتَتَابِعَةً وَإِنْ لَمْ يَشْتَرِطِ التَّتَابُعَ:) او دا د اعتكاف ورځې به بلا ناغه وي اګر چې واړه وختونه د دې قابل دى لِأَنَّ مَبْنَى الِاعْتِكَافِ عَلَى التَّتَابُعِ، په خلاف د روژې ځكه چې مبنى د روژې لِأَنَّ الْأَوْقَاتَ كُلَّهَا قَابِلَةٌ لَهُ او دا د اعتكاف ورځې به بلا ناغه وي اګر چې واړه وختونه د دې قابل دى

**دليل وجوب التتابع** او بلا ناغه به په دې وجه لازم وي. چه د اعتكاف بنا (بنياد) په تتابع او تسلسل باندې دې. ځكه چې د شپې ورځې واړه وختونه د اعتكاف قابل دى.

بِخِلَافِ الصَّوْمِ په دې تتابع وضاحت اوكړي. ،لِأَنَّ مَبْنَاهُ عَلَى التَّفَرُّقِ ځكه چې بناء د دې په جداوالى ده لِأَنَّ اللَّيَالِيَ غَيْرُ قَابِلَةٍ لِلصَّوْمِ ځكه چې شپې نه دى قابلې لپاره د روژې فَيَجِبُ عَلَى التَّفَرُّقِ نو واجبيږي به جلا جلا حَتَّى يَنُصَّ عَلَى التَّتَابُعِ البته دا صراحت اوكړي (په پرله پسې روژې نيولو باندې)

**تشريح:-** د دې په خلاف روژه ده. كه د يوڅو ورځو د روژو نذر ئې كړې وي. نو دا روژې به بلا ناغه لازم نه وي. بلكه ده ته به اختيار وي. چه بلا ناغه ئې نيسي. يا ئې جلا جلا نيسي. ځكه چې د روژې بنا (بنياد) په تفرق (جداوالى) باندې دې. ځكه چې شپې د روژو قابل نه دى. بلكه روژه صرف په شپوكې كيږي. لكه چې د الله تعالى ارشاد دې [ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ] نو هركله چې د روژې بنا (بنياد) په تفرق باندې دې. نو د څو ورځو نذر كولو سره به دا روژې په متفرق طور باندې واجب وي. بلا ناغه به واجب نه وي. خو كه په روژو كې هم د تتابع او تسلسل شرط اولګولې شي. نو بلاشبه به بلا ناغه لازم وي.

وَإِنْ نَوَى الْأَيَّامَ خَاصَّةً صَحَّتْ نِيَّتُهُ) لِأَنَّهُ نَوَى الْحَقِيقَةَ او كه خاص كړ د ورځو نيت ئې اوكړو نو صحيح دې نيت دده ځكه چې نيت ئې اوكړو د حقيقت.

**تشريح:- عدم دخول الليالى فى اعتكاف الايام خاصة** او كه يوكس د څوورځو د اعتكاف نذر اوكړو. او د ورځو نه ئې خاص طور باندې د دواړو نيت اوكړو. نو دده نيت صحيح دې. ځكه چې ده د حقيقت نيت كړې دې. مثلاً وې وئيل، چه په ما باندې د لسو ورځو اعتكاف واجب دى، او په لسو ورځو ئې د ورځو نيت اوكړو. د شپو ئې اونكړو. نو په ده به د لسو ورځو پورې صرف د ورځو اعتكاف واجب وي. د شپې اعتكاف به واجب نه وي.

## د دوې [دوه] ورځو د اعتكاف په نذر سره د شپو د اعتكاف وجوب

مَنْ أَوْجَبَ عَلٰى نَفْسِهِ اعْتِكَافَ يَوْمَيْنِ اوچا چې لازم كړو اعتكاف په ځان باندې د دوؤ ورځو وَيَلْزَمُهُ بِلَيْلَتَيْهِمَا نو دشپو ورسره لازم شو.

**تشريح:** **الروايتان فى دخول الليل فى نذر اعتكاف اليومين** مسئله داده.كه يوكس د دوې [دوه] ورځو د اعتكاف نذر اوكړو.نو① په ده به دوې [دوه] ورځې اعتكاف سره ددې د شپو لازم وى.

وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: لَاتَدْخُلُ اللَّيْلَةُ الْأُوْلٰى امام يوسف رحمه الله فرمائى چې اوله شپه پكې داخله نه ده. لِأَنَّ الْمُثَنّٰى غَيْرُ الْجَمْعِ ځكه چې تثنيه دجمعې نه علاوه ده، وَفِى الْمُتَوَسِّطَةِ ضَرُوْرَةُ الْإِتِّصَالِ اوپه درمیانى شپه كې داتصال ارتيا دې.

**تشريح:**- او امام ابويوسف رحمه الله فرمائى.چه اوله شپه به داخل نه وى.نو ګويا د ابويوسف رحمه الله په نيز دوې [دوه] ورځې اود يوې شپې اعتكاف لازم دې.

**دليل ابى يوسف رحمه الله** د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه په تثنيه اوجمع كې مغايرت وى.نود مثنى او مفرد دواړه لفظونه به برابر وى.يعنى كوم حكم چې د لفظ مفرد وى.هم هغه به د لفظ مثنى وى.او مفرد لفظ يعنى ،يوما، ونيلو په صورت كې به اوله شپه د نذر په حكم كې داخل نه وى.يعنى صرف د لمر راختلو نه ترد لمر پريوتلو پورې به اعتكاف واجب وى.اود شپې اعتكاف به واجب نه وى.نوهم دغه ډول لفظ مثنى يعنى ،يومين، ونيلو په صورت كې به هم ړومبۍ شپه دې خل نه وى.او پاتې شوه مينځمۍ شپه، نو هغه به داخل وى.ځكه چې د اعتكاف لپاره اتصال ضرورى دې.او اتصال هغه وخت ممكن دې. چې د مينځمۍ شپې اعتكاف هم اوكړې شى.نود اتصال د ارتيا په وجه به مينځمۍ شپه دې خل وى.اودا ارتيا په ړومبۍ شپه كې موجود نه دې.په دې وجه به ړومبۍ شپه دې خل نه وى.

وَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّ فِى الْمُثَنّٰى مَعْنَى الْجَمْعِ دظاهر الروايه وجه داده چې تثنيه كې معنا دجمعې ده فَيَلْحَقُ بِهِ احْتِيَاطًا لِأَمْرِ الْعِبَادَةِ، وَاللهُ أَعْلَمُ نو عبادت په كاركې داحتياط په وجه دجمعې سره لاحق كولې شى.

**تشريح:** **دليل ظاهر الرواية** اود ظاهرالرواية وجه داده.چه په تثنيه كې د جمع معنى موجود ده.هم دغه وجه ده.چه نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى. «الإثنان فما فوقها جماعة»نوچونكه په تثنيه كې د جمع معنى پرته ده.او اعتكاف يو عبادت دې.په دې وجه دعبادت كيدلو په وجه احتياطًا تثنيه د جمع سره لاحق كړې شوه.اود جمع(يعنى د لفظ ،ايام،) په صورت كې چې د څومره ورځو اعتكاف واجبيږى.هم د دومره شپو هم واجبيږى. نود تثنيه په صورت كې هم دواړو سره د دوې [دوه] شپو اعتكاف واجب وى.والله اعلم

جمع(يعنى د لفظ ،ايام،) په صورت كې چې د څومره ورځو اعتكاف واجبيږى.هم د دومره شپو هم واجبيږى. نود تثنيه په صورت كې هم دواړو سره د دوې [دوه] شپو اعتكاف واجب وى.والله اعلم

# كتاب الحج

دا كتاب دحج په بيان كښې دې.

**تشريح:- وجه تاخيرالحج عن الصوم** ① چې روژه هركال مكرر وى.اوحج مكرر نه وى.بلكه په عمر كې صرف يو ځل فرض دې.د دې امله روژې ته احتياج زيات وى.په نسبت سره د حج،اوكوم شى ته چې احتياج زيات وى.هغه د تقديم زيات لائق وى.د دې امله ئې روژه په حج باندې مقدمه كړه.او روستو ئې حج ذكر كړلو. ②دويمه وجه داده.
حج چونكه مركب دې.د عبادت بدنى او عبادت مالى نه. ځكه ئې د روژې نه روستو كړلو.كوم چې صرف عبادت بدنى دې.ځكه چې مركب د مفرد نه روستو وى.



**معنى الحج لغة واصطلاحاً** لفظ دحج «بفتح الحاء وبكسر الحاء» دواړه شان استعماليږى.بفتح الحاء لكه [الْحَجُّ أَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ ۚ فَمَنْ فَرَضَ فِيْهِنَّ الْحَجَّ] الأية او بكسر الحاء لكه [وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيْلًا] الآية دى.د حج لغوى معنى څه معظم او لوئې شى ته اراده كول دى.اودشريعت په اصطلاح كې د مخصوص ځائې مخصوص فعل سره په خاص وخت كښې اراده كول دى.

**تاريخ فرضية الحج** پاتې شوه دا خبره چې حج كله فرض شوې دې.نو په دې اړه كښې په بذل المجهود كې متعدد اقوال مذكور دى.①نهمه هجرى ②پنځمه هجرى③ شپږمه هجرى ④ د هجرت نه وړاندې ملا على قارى په شرح د ،نقايه، كښې ليكلى دى.چه رسول الله ﷺ د حج فريضه په لسمه هجرئ كې ادا كړې وه.كوم چې د حجة الوداع په نوم باندې يادولې شى.اوحضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په نهم هجرئ كې حج كړې وو.اوحج هم په دغه كال فرض شوې وو.او اتمه هجرئ كې د مكې د فتح په موقع باندې عتاب بن اسيد خلګو ته حج كړې وو.نبى ﷺ د مكې د فتحې نه روسته هم دوى امير مقرر كړى وو.

**كم حج الرسول ﷺ قبل الهجرة؟** په دې اړه كې ډير اختلاف دې.①ابن الاثير رحمه الله فرمائى.چه د هجرت نه وړاندې نبى ﷺ به هر كال حج كولو.②جابربن عبدالله رضي الله عنه فرمائى.چه رسول الله ﷺ صرف درې حجونه كړى دى.دوې [دوه] د هجرت نه وړاندې او يو د هجرت نه روسته په لسمه هجرئ كې حجة الوداع ③اوابن عباس رضي الله عنهما فرمائى.چه رسول الله ﷺ د هجرت نه وړاندې درې حجونه كړى وو④ ابن الجوزى رحمه الله فرمائى.چه رسول الله ﷺ ډير حجونه كړى وو.د هغې شمار مونږ ته معلوم نه دې.

**فرضية الحج على الامم السابقة** پاتې شوه دا چې حج په پخوانو امتونو فرض وو.اوكه نه،نو په دې كې دوې [دوه] اقوال دى.①په اولنو امتونو باندې هم حج فرض وو.حافظ ابن حجر رحمه الله دې ته ترجيح وركړې ده.

**دليله** حافظ ابن حجر رحمه الله استدلال كوى.اوفرمائى. «ما من نبى إلا حج البيت» يعنى هيڅ يو پيغمبر نشته.مګر حج د بيت الله ئې كړې دې.او دا خبره هم شوې ده.چه حضرت آدم عليه السلام د هندوستان نه پيدل څلويښت حجونه كړى دى.جبرئيل عليه السلام آدم عليه السلام ته اووئيل.ستا نه اووه زره كاله وړاندې به فرتو د بيت الله طواف ته راتلې.

دوهم قول دادې چې د حج وجوب د امت محمدى سره خاص دې.په اولنو امتونو حج فرض نه وو.

**الجواب من مستدل القول الاول** د دوهم قول قائلينو حضراتو ځواب وركړې دې.چه د وړاندينى دلائلونه صرف دومره معلوميږى.چه دپخوانو پيغمبرانو په زمانه كې حج مشروع وو.اود مشروعيت نه وجوب اوفرضيت نه لازميږى.او دا هم ممكن دى.چه حج په پخوانو پيغمبرانو واجب وو.خو د هغوى په امتونو واجب نه وو.نو په دې صورت كې حج د پيغمبرانو د خصوصياتو ځنې دې.او امت محمدى ته دا خصوصيت حاصل دې.

**دلائل فرضية الحج** دحج فرضيت د كتاب سنت او اجماع درې واړو نه ثابت دې.①كتاب الله خو د الله تعالى ارشاد دې. [وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيْلًا] په ،على الناس، كښې كلمه د ،على، د ايجاب لپاره ده.②او سنت د نبى ﷺ حديث دې.چه «بنى الإسلام على خمس..... الحديث»

## د حج شرعى حيثيت او د وجوب شرطونه

الْحَجُّ وَاجِبٌ عَلَى الْأَحْرَارِ الْبَالِغِيْنَ الْعُقَلَاءِ الْأَصِحَّاءِ واجب دى په دې سې كسانو چې آزاد ،بالغان عاقلان،تندرست وى. إِذَا قَدَرُوْا عَلَى الزَّادِ وَالرَّاحِلَةِ فَاضِلًا عَنِ الْمَسْكَنِ وَمَا لَابُدَّ مِنْهُ چې قادر وى په توښې او سپرلۍ چې زياتى وى د استوګنې او هغه څيزونو نه چې خلاصې ترې نه وى. وَعَنْ نَفَقَةِ عِيَالِهٖ إِلٰى حِيْنِ عَوْدِهٖ و د خرچ د عيال نه تر واپس راتلو وَكَانَ الطَّرِيْقُ آمِنًا دده پورې او وى لاره په امن

تشریح:- صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی. چه حج په هغه چا واجب دي. چه ازاد عاقل، بالغ صحیح وی. په دې شرط چې په توښې او سپرلۍ قادر وی. اوتوښه او سپرلۍ د اوسیدو دځائې نه، اود کور د ضروریاتو او خپل کور ته د واپس راتلو پورې د خرچې نه زیاتی وی. او لار په امن وی.

**وصفه بالوجوب وهوفريضة محكمة** او صفت ئې اوکړو ددې په وجوب سره حالانکه دا فرض يقيني دې. **ثبتت فرضيتها بالكتاب** ثابت شوې دې فرضيت ددې په کتاب سره **وهوقوله تعالى ((والله على الناس حج البيت)) الآية** او هغه قول د الله تعالى دې [وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا] الايه.

تشریح:-**وجه اطلاق الوجوب على الحج**۞صاحب د هدایه رحمه الله فرمائی. چه قدوری د حج لپاره د وجوب لفظ استعمال کړلو. حالانکه د حج فرضیت قطعی دې. ددې فرضیت په کتاب الله [وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا] سره ثابت دې.

**الجواب**۞ددې ځواب دا دې. چه د قدوری په عبارت کې وجوب اصطلاحی مراد نه دې. بلکه وجوب په معنی د ثبوت او لزوم سره مراد دې. یعنی حج ثابت او لازم دې. په آزاد عاقل بالغ اوصحیح باندې نو په دې صورت کې دا لفظ فرض ته هم ګډ دې.

## د حج په ټول عمر کې يو ځل فرضيت

**وَلَا يَجِبُ فِي الْعُمُرِ اِلَّا مَرَّةً وَاحِدَةً** او نه واجبيږی (حج په ټول) عمرکې مګر يو ځل،

تشریح:- **فرضية الحج في العمر مرة**۞حج په ژوند کې صرف يو ځل فرض دې. هرکال فرض نه دې.

**اَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قِيْلَ لَهُ {اَلْحَجُّ فِيْ كُلِّ عَامٍ اَوْ مَرَّةً وَاحِدَةً؟** ځکه چې نبی ﷺ ،اووئیلی شو دوی ته آيا حج په هر کال کې (فرض دې) اوکه (په واړه عمرکښ يو ځل، **لِ فَقَالَ لَا بَلْ مَرَّةً وَاحِدَةً فَمَا زَادَ فَهُوَ تَطَوُّعٌ** [1]) نو نبی ﷺ اوفرمائیل. نه بلکه يو ځل (په واړه عمر کې فرض دې اوچه (د يو ځل نه) زيات وی. نو هغه نفلی دې.

تشریح:- **دلائله**۞او ددې دليل دا حديث دې. ①په صحيح مسلم کې دی. ﴿عن أبي هريرة ؓ قال خطبنا رسول الله ﷺ فقال يا أيها الناس قد فرض عليكم الحج فحجوا فقال رجل أكل عام يا رسول الله ﷺ فسكت حتى قالها ثلاثاً فقال رسول الله ﷺ لو قلت نعم لوجبت ولما استطعتم ثم قال ذروني ما تركتم فإنما هلك من كان قبلكم بكثرة سوالهم وخلافهم على أنبيائهم فإذا أمرتكم بشئ فأتوا منه ما استطعتم وإذا نهيتكم عن شئ فدعوه﴾ ابوهريره ؓ فرمائی. چه رسول الله ﷺ موږ ته خطبه وئیله. نو وې فرمائیل. اې خلګو په تاسو حج فرض دې. نو حج کوئ. يوکس اووئیل. اې د الله پيغمبره آيا هرکال؟ نبی ﷺ چوپ شو. هغه دا پوښتنه درې ځله اوکړلو. نو نبی ﷺ اوفرمائیل. که ما وئیلی وو. چه آو نو فرض شوې به وو. خوتاسو به ئې توان نشو لرلې. بيا نبی ﷺ اوفرمائیل. تاسوما پريږدئ. ترڅو چې زه تاسو پريږدمه. ځکه چې هلاك شوی دی هغه ځوك چې وړاندې ستاسو نه وود زياتو سوالونو او خپلو پيغمبرانو سره د اختلاف په وجه. نو کله چې زه تاسو ته د يو ځيزحکم درکړم. اود خپل توان مطابق په هغې عمل کوئ. او کله چې تاسو د څه شی نه منع کړم. نو هغه پريږدئ. ددې حديث په لفظ کې ﴿لوقلت نعم لوجبت ولما استطعتم﴾ په دې دلالت کوی. چه په حج کښې تکرار نشته. فرضی حج په واړه ژوند کښې يو ځل دې. بار بار فرض نه دې.

**وَلِاَنَّ سَبَبَهُ الْبَيْتُ** او ځکه چې سبب د دې بيت الله دې. **وَاَنَّهُ لَا يَتَعَدَّدُ فَلَا يَتَكَرَّرُ الْوُجُوْبُ** او بيت الله متعدد نه دې. نو نه مکرر کيږی وجوب.

[1]) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه ابوداود فى المناسک باب ۱ رقم ۱۷۲۱ وابن ماجه فى المناسک باب ۲ رقم ۲۸۸۶ وأحمد فى المسند (۳۵۲/۱) والحاكم فى المستدرک (۴۴۱/۱)_



تشریح:- دوهم دليل دا دې. چه د حج د فرضيت سبب بيت الله دې. هم دا وجه ده. چه د حج نسبت بيت ته کيږی. او حج بيت الله وئيلی شی. او اضافت د سببيت نښانه ده. نو معلومه شوه. چه د حج سبب بيت الله دې. او بيت الله يو دې. ګڼړيدې نشی. بلکه هم يو به پاتې وی. او دا معلومه ده. چه سبب که مکرر نه وی. نو مسبب هم نه مکرر کيږی. ددې امله وئيلې شوی دی. چه حج په ژوند کې يو خل فرض دې.

## دحج د فوريت اوعلى التراخى حکم

**ثُمَّ هُوَ وَاجِبٌ عَلَى الْفَوْرِ عِنْدَ اَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** بيا دا واجب على الفور دې په نيز د ابويوسف. **وَعَنْ اَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ مَا يَدُلُّ عَلَيْهِ** ([1]) اود ابوحنيفه رحمه الله (نه هغه خبره نقل ده. کومه چې دلالت کوی په دې.

تشریح:- **المذهبان في فرضية الحج على الفور اوعلى التراخى**۞مسئله دا ده. چه کله په يو کس کې د حج د فرضيت واړه شرطونه موجود شی. نو حج به هم په دغه کال على الفور واجب وی اوکه على التراخى. ①د امام ابويوسف رحمه الله په نيز په دغه کال على الفور واجب دې. تردې که بغير د عذره ئې روستو کړلو. نو ګناهګار به وی. هم دا د اما احمد رحمه الله قول دې. او هم ددې قائل امام کرخی رحمه الله دې. او امام اعظم رحمه الله نه هم ددې سې خبر روايت شوې دې. د کومې نه چې معلوميږی. چه حج على الفور واجب دې. نقل دی. چه يو ځل د امام ابوحنيفه رحمه الله نه پوښتنه اوشو. چه د يو کس سره مال وی. نو هغه حج اوکړی که نکاح؟ حضرت امام صاحب رحمه الله ورته اوفرمائيل. چه حج دې اوکړی. ددې نه ښکاره کيږی. چه د امام صاحب رحمه الله په نيز حج على الفور واجب دې.

**وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ وَالشَّافِعِيِّ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ عَلَى التَّرَاخِيْ** اوبه نيز د امام محمد او شافعی رحمهما الله (واجب دې على التراخى **لِاَنَّهُ وَظِيْفَةُ الْعُمُرِ فَكَانَ الْعُمُرُ فِيْهِ كَالْوَقْتِ فِي الصَّلَاةِ** ځکه چې دا عبادت د واړه عمر دې. نو شو (ټول) عمر په دې کې په خير د وخت په لمانځه کښې،

تشریح:- او امام محمد او امام شافعی رحمهما الله په نيز على التراخى واجب دې. که په اولنی کال ئې حج اونکړلو. بلکه روستو ئې کړلو. نو د دوی په نيزنه ګناهګاريږی.

**الفرق بين قول محمد والشافعى رحمهما الله**۞او دامام محمد او امام شافعی رحمهما الله په قول کې هم توپير دې. هغه دا چې د امام صاحب رحمه الله په نيز په تاخير کې اجازت په دې شرط دې. چه د مرګ په وجه نه فوت کيږی. اوکه حج ئې روستو کړلو. اوبغير د حج ادا کاوه مړ شو. ګناهګار به وی. او امام شافعی رحمه الله په نيزدتاخير په وجه نه ګناهګاريږی. اګرچه مړ شی.

**دليل الصاحبين** رحمهما الله ۞بهر حال ددې دواړو حضراتو دليل دا دې. چه د حج د فرضيت وخت واړه ژوند دې. نو د حج لپاره واړه ژوند داسې دې. لکه څنګه چې د لمانځه لپاره د لمونځ وخت دې. نو څنګه چې په آخر وخت کې لمونځ ادا کول جائز دی. دغه ډول حج هم په آخری عمر کې ادا کول جائز دی.

**وَجْهُ الْاَوَّلِ اَنَّهُ يَخْتَصُّ بِوَقْتٍ خَاصٍّ**، وجه د اولنی روايت دا ده. چه حج خاص دې په يو خاص وخت پورې. **وَالْمَوْتُ فِيْ سَنَةٍ وَاحِدَةٍ غَيْرُ نَادِرٍ** او مرګ په يو کال کې څه ناشنا نه دې. **فَيَتَضَيَّقُ اِحْتِيَاطًا** نو تنګولې به شی لپاره د احتياط.

تشریح:- **دليل ابى يوسف رحمه الله**۞اود امام ابويوسف رحمه الله د قول وجه دا ده. چه حج د يو خاص وخت يعنی اشهر حج (شوال، ذی قعده، ذی الحجه سره مخصوص دې. او کوم شی چې د کوم خاص وخت سره مخصوص وی. اوهغه د خپل وخت نه فوت شی. نو هغه به دغه شی په مقرر وخت کې ادا کوی. اوس چې د حج وخت فوت شی. نو ددې نه روسته دوباره به يوکال روسته بيا راځی. او د کال موده ډيره لويه ده. په دې موده کې

[1]) القول الراجح هو هذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار(۱۵۲\۲) والخانية (۱۳۵\۱) والبحرالرائق (۳۰۹\۲) والهندية (۲۱۶\۱) نقلاً عن القول الراجح (۲۰۶\۱)_

مرګ او ژوند دواړه برابر دی. یعنی په دې موده کښې مرګ راتګ څه ناشنا نه دی. بلکه مرګ راتلې شي. څکه احتیاط هم په دې کې دې. چه د حج وخت تنګ کړې شي. او دا اوونیلی شي. چه په کوم کال کې شرطونه جمع شی. هم په هغه کال کې حج فرض دې. خو دا خیال ساتل پکار دی. که په دغه کال ئې اونه کی (اونکړی). نو چه کله ئې هم کوی. هغه به ادا وی. قضا به نه وی. څکه چې د وخت دتنګئ دارومدار په احتیاط دې. په تحقیق نه دې.

**وَلِهٰذَا كَانَ التَّعْجِيلُ أَفْضَلَ** او ددې امله تلوار غوره دې. **بِخِلَافِ وَقْتِ الصَّلَاةِ لِأَنَّ الْمَوْتَ فِي مِثْلِهِ نَادِرٌ** په خلاف د وخت دلمونځ څکه چې مرګ په مثل ددې کې (یعنی د لمونځ په وخت کې) ناشنا دې.

تشریح:- امام ابویوسف رحمه الله خپل دلیل مضبوطوی. او فرمائی. چه د حج په ادا کاوه کې جلتی کول په اتفاق سره غوره ده. په خلاف د لمونځ څکه چې د هغې په وخت کې د مرګ راتګ ناشنا دی. نو څکه لمونځ په خپل وخت کې روستو کول د احتیاط سره منافی نه دې.

## دحریت، بلوغ عقل او صحت د شرطونو دلائل

**وَإِنَّمَا شَرَطَ الْحُرِّيَّةَ وَالْبُلُوغَ** او یقیناً شرطیت د آزادئ او د بلوغ **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {أَيُّمَا عَبْدٍ حَجَّ عَشْرَ حِجَجٍ ثُمَّ أُعْتِقَ فَعَلَيْهِ حَجَّةُ الْإِسْلَامِ** نبی ﷺ د ارشاد د امله دې. چه هر هغه غلام چې حج اوکړی لس حجونه بیا آزاد شی. نو په ده باندې حج د اسلام (باقی) دې.

تشریح:- د حریت د شرطیت لپاره نقلی دلیل دا دې ﴿أیما عبد حج عشر حجج ثم عتق فعلیه حجة الإسلام وأیما صبی حج عشر حجج ثم بلغ فعلیه حجة الإسلام﴾ یعنی غلام که لس حجونه اوکړی. او بیا آزاد شی. نو په ده باندې د اسلام فرض حج لازم دې. یعنی د آزادئ نه وړاندې چې ئې کوم حجونه کړی وو. په هغې سره د حج فریضه نه اداکیږی. او د حدیث په دوهم جزء کې د بلوغ د شرطیت بیان دې یعنی کوم ماشوم چې لس حجوه اوکړل بیا بالغ شو. نو په ده باندې فرض حج لازم دې. یعنی د بلوغ نه وړاندې چې ئې کوم حجونه کړی وو. په هغې سره فرض حج نه دې ساقط شوې.

**وَأَيُّمَا صَبِيٍّ حَجَّ عَشْرَ حِجَجٍ ثُمَّ بَلَغَ فَعَلَيْهِ حَجَّةُ الْإِسْلَامِ** (1) او هر هغه ماشوم چې حج اوکړی لس حجونه، بیا بالغ شی. نو په ده باندې حج د اسلام (باقی) دې.

تشریح:- د حریت د شرطیت لپاره عقلی دلیل دا دې چې حج بغیر د مال نه نشی کیدې. څکه چې د حج د فرضیت لپاره توښه او سپرلئ باندې قدرت شرط دې. او غلام د توښې او سپرلئ په ملکیت باندې قادر نه دې. نو څکه دې د وجوب حج اهل هم نه دې.

**وَلِأَنَّهُ عِبَادَةٌ وَالْعِبَادَاتُ بِأَسْرِهَا مَوْضُوعَةٌ عَنِ الصِّبْيَانِ** او بله دا چې دا (حج) عبادت دې. او عبادات پورته شوی دی. د ماشومانو نه (یعنی فرض پرې نه دی)

تشریح:- دوهم دلیل دا دې. چه حج یو عبادت دې. اود ماشومانو نه واړه عبادتونه پورته شوی دی. نو څکه حج هم په ماشومانو فرض نه دې.

**وَالْعَقْلُ شَرْطٌ لِصِحَّةِ التَّكْلِيفِ** او عقل شرط ددې دصحت د تکلیف **وَكَذَا صِحَّةُ الْجَوَارِحِ لِأَنَّ الْعَجْزَ دُونَهَا لَازِمٌ** او دغه شان د اندامونو صحت (شرط دې.) څکه چې بغیر د اندامونود صحت نه عجز لازمیږی.

تشریح:- **شرط العقل ودلیله**۞ اودعقل شرط دې امله لګولې شوې دې. چه د عقل نه بغیر مکلف کول تیک نه دی. **شرط الصحة ودلیله**۞ اودصحت شرط ددې امله لګولې شوې دې. چه بغیر د صحت نه عجز لازمیږی. و عاجز د هیڅ یو عبادت مکلف نه دې. نو څکه په ده حج فرض نه دې.

(1) من حدیث ابن عباس رضی الله عنهما أخرجه الحاکم فی المستدرک (۱/۴۷۱) والبیهقی فی السنن الکبری (۵/۲۹۱) رقم ۹۸۴۹.



## د ړوند د حج شرعی حیثیت

**وَالْأَعْمَى إِذَا وَجَدَ مَنْ يَكْفِيهِ مُؤْنَةَ سَفَرِهِ** او ړوند کله چې اومومی هغه څوك چې کافی کیږی د ده لپاره د مشقت د سفر دده نه. **وَوَجَدَ زَادًا وَرَاحِلَةً لَا يَجِبُ عَلَيْهِ الْحَجُّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** (1) اومومی توښه او سپرلئ نو نه واجبیږی

تشریح:- **المذهبان في وجوب الحج على الاعمى**۞ مسئله دا ده. چه ړوند کس که په زاد او راحله قادر وی. خو (قائد څوك چې په ده باندې د حج فریضه ادا کولې شی) نه پیدا کیږی. نو په دې صورت کښې په اتفاق سره په ړوند باندې حج فرض نه دې. ① اوکه قائد موجود وی. نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په دې صورت کښې هم حج فرض نه دې. لکه څنګه چې په ړوند باندې چې قائد ئې وی نو هم د جمعې لمونځ فرض نه دې. ② او د صاحبینو رحمهما الله په نیز واجب دې. ه ده باندې حج په نیز د ابوحنیفه

**خِلَافًا لَهُمَا** خلاف ثابت دې د صاحبینو رحمهما الله، **وَقَدْ مَرَّ فِي كِتَابِ الصَّلَاةِ** او یقیناً تیر شوې دې. (ددې اختلاف بیان) په کتاب الصلاة کې.

تشریح:- **بناء الاختلاف**۞ بنا (بنیاد) د اختلاف دا دې. چه د بل په قدرت سره کوم توان حاصلیږی. ① د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز هغه معتبر نه دې. ② او د صاحبینو رحمهما الله په نیز معتبر دې. اوس پاتې شوه دا خبره چې ړوند سره قائد نه وی. او دې په زاد او راحله باندې قادر وی. نو بل چا ته مال ورکول چې دده نه حج اوکړی په ده واجب دی. اوکه واجب نه دی. نو ددې حکم دا دې. چه امام اعظم رحمه الله په نیز واجب نه دی. او د صاحبینو رحمهما الله په نیز واجب دی. ددې تفصیل په کتاب الصلاة کې تیر شوی دې.

**وَأَمَّا الْمُقْعَدُ، فَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّهُ يَجِبُ** (2) او هر چې شل دې. نو د امام ابوحنیفه رحمه الله نه (روایت دې چه) حج واجبیږی

تشریح:- **الروایتان عن ابی حنیفة في فرضیة الحج على المقعد**۞ مسئله، ① د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله نه په ظاهر روایت کې نقل دی. چه په د ګه، شل او فالج وهلی او چې دواړه پښې ئې کټ شوی وی. حج فرض نه دې. اګرچه دې په زاد او راحله قادر وی. تردې چې په ده باندې په خپل مال سره په بل باندې حج کول هم واجب نه دی. څکه چې کله اصلی حج واجب نه دې. نو بدل به هم نه وی واجب (څکه بدل خو تقاضا کوی د مبدل منه د فرضیت) ② اوحسن بن زیاد رحمه الله د ابوحنیفه رحمه الله نه روایت کړې دې. چه په شل وغیره باندې حج واجبیږی. علامه مرغینانی هم دا روایت ذکر کړې دې.

**لِأَنَّهُ مُسْتَطِيعٌ بِغَيْرِهِ** (په ده باند) څکه چې دې توان لرونکې دې. (دحج په ادا کولو) د بل په ذریعه **فَأَشْبَهَ الْمُسْتَطِيعَ بِالرَّاحِلَةِ** نو مشابه شو د توان لرونکی سره (چه توان لری) د سپرلئ

تشریح:- **دلیل الوجوب**۞ دلیل دا دې. چه شل د بل کس په ذریعه توان لرونکې او صاحب قدرت دې. نو دې د هغه چا سره مشابه شو. چه هغه د سپرلئ توان لری. نو په هغه باندې حج فرض وی. او چې د سپرلئ توان لری. نو په شل مستطیع به هم حج فرض وی.

(1) القول الراجح هو هذا قول أبی حنیفة رحمه الله فی ادا الحج بنفسه کذا فی ردالمحتار (۲\۱۵۴) والهندیة (۱\۲۱۸) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۰۸) وفی وجوب الإحجاج عنه القول الراجح هو قول الصاحبین رحمهما الله أی الوجوب کذا فی ردالمحتار (۲\۱۵۴) والبحرالرائق (۲\۳۱۱) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۰۸).

(2) القول الراجح هو هذا ظاهرالروایة کذا فی الکفایة (۱\۳۲۶) والعنایة (۲\۳۲۶) وردالمحتار (۲\۱۵۴) والخانیة (۱\۱۳۴) والهندیة (۱\۲۰۸) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۰۹).

وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالٰى أَنَّهُ لَا يَجِبُ او د امام محمد رحمه الله نه روايت دې.چه نه واجبيږی (په ده باندې حج) لِأَنَّهُ
غَيْرُ قَادِرٍ عَلَى الْأَدَاءِ بِنَفْسِهِ ځکه چې دې قادر نه دې.په ادا کاوه په خپله

تشريح:- روايۃ عدم الوجوب عن محمد رحمه الله اودامام محمد رحمه الله نه نقل دی.چه په شل باندې حج فرض نه دې. ځکه چې دې په خپل لاس او پښو باندې حج نشی کولې.

بِخِلَافِ الْأَعْمٰى لِأَنَّهُ لَوْ هُدِيَ په خلاف د ړوند ځکه چې دې ادا کوی (حج) په خپله (قائد صرف نيولې وی) يُؤَدِّي
بِنَفْسِهِ فَأَشْبَهَ الضَّالَّ عَنْهُ نو مشابه شو د هغه چا سره چې د حج لاره ئې نه ورکه کړې وی.

تشريح:- الفرق بين الاعمى والمقعد ددې په خلاف ړوند که هغه سره رهبر وی.نو هغه په خپل لاس او پښو باندې د حج ارکان ادا کولې شی.نو ړوند د هغه چا سره مشابه شو.چه لار تري ورکه شوې وی.که لار خودونکې ورته ملاؤ شی.نوبه هغه باندې حج لازميږی.نو دغه ډول که ړوند ته هم قائد ملاو شی.نوبه ده باندې حج فرض کيږی.

**د توښه او سپرلۍ شرطيت**

وَلَا بُدَّ مِنَ الْقُدْرَةِ عَلَى الزَّادِ وَالرَّاحِلَةِ او نشته خلاصيدل د قدرت نه په توښه او سپرلۍ باندې وَحَاجِبًا وَهُوَ قَدْرُ مَا
يَكْتَرِي بِهِ شِقَّ مَحْمِلٍ أَوْ رَأْسَ زَامِلَةٍ او دا (قدرت دا دې) چې په دومره مال قادر وی.چه په کرايه واخلی په هغې سره يو اړخ د کجاوه اويا (واخلی په کرايه) سر د زامله،، وَقَدْرَ النَّفَقَةِ ذَاهِبًا او د تګ راتګ په خرچه باندې قادر وی.

حل اللغة° ① زاملة: يو اړخ ته کجاوه

تشريح:- شرط القدرة على الراحلة په دې عبارت کې د توښه او سپرلۍ د قدرت بيان دې.يعنی د حج د وجوب لپاره توښه او سپرلۍ باندې قدرت شرط دې.

قسمي القدرة ① اوس دا قدرت به يا په طريقه د ملکيت وی.په دې طريقه چې د سپرلۍ مالك وی.② اويا به په طريقه د استيجار(کرايه)وی.يعنی چې ده سره دومره مال وی.چه دې د کجاوې يو اړخ په کرايه اخستې شی.ځکه چې د کجاوې دوې [دوه] طرفونه وی.او د يوې سپرلۍ لپاره يو اړخ کافی کيږی.او يا د زامله يوسر په کرايه باندې اخستې شی.زامله هغه اوښ ته وائی.چه مسافرخپل سامان وغيره په هغې بارکړی ددې تفصيل دا دې.که سړې کمزورې وی.او په خپله ئې د کجاوې يو اړخ په کرايه باندې د اخستلو قدرت وی.اوکه په خپله ئې طاقتور وی.نود سامان بارولو لپاره د يوې زاملۀ په کرايه باندې د اخستلو قدرت ئې وی.اود تګ راتګ په خرچه باندې ئې هم قدرت وی.

لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ سُئِلَ عَنِ السَّبِيلِ إِلَيْهِ ځکه چې نبی ﷺ نه ((سبيل إلى الحج)) په اړه کې پوښتنه اوشو.فَقَالَ:
الزَّادُ وَالرَّاحِلَةُ [1] نو نبی ﷺ ووئيل.چه دا زاد او راحله ده.

تشريح:- دليله ځکه چې د نبی ﷺ نه پوښتنه اوشو.د [مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيْلًا] په اړه کې ،نو نبی ﷺ اوفرمائيل. توښه او سپرلۍ

وَإِنْ أَمْكَنَهُ أَنْ يَكْتَرِيَ عُقْبَةً فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ او که ممکنه وی.چه په کرايه (سره سپرلۍ واخلی) په طريقه د نوبت (واړه وار چې کله پرې يو سوريږی اوکله بل) نو نشته څه شی په ده باندې. لِأَنَّهُمَا إِذَا كَانَا يَتَعَاقَبَانِ لَمْ
تُوجَدِ الرَّاحِلَةُ فِي جَمِيعِ السَّفَرِ ځکه چې دا دواړه نفر کله نوبت په نوبت سوريږی.نو موجود نشوه سورلی په واړه سفر کې (ځکه چې د حج د فرضيت لپاره په واړه سفر کې د سپرلۍ قدرت ضروری دې).

[1] من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه الترمذی فی الحج باب ٤ رقم ٨١٣ وابن ماجه فی المناسك باب ٦ رقم ٢٨٩٦)_



حل اللغة° ① کترى: په کرايه اخستل

تشريح:- عدم الفرضية بالقدرة عقبة اوکه يو کس د واړه سفر لپاره په کرايۀ باندې د سپرلۍ اخستلو قدرت نه وی.البته د نوبت په طريقه په کرايۀ باندې د سپرلۍ اخستلو قدرت لری.په دې طريقه چې دوې [دوه] نفر ملاؤ شی.اويواوښ داسې په کرايه واخلی.چه يو منزل يو کس سورلی کوی او بل منزل بل کس سورلی کوی. نو په دې صورت کې په ده باندې حج فرض نه دې.

دليله ځکه چې دا دواړه نفر کله نوبت په نوبت سوريږی.نو په واړه سفر کښې سپرلۍ موجود نشوه.حالانکه د حج د فرضيت لپاره دا شرط دې.چه د واړه سفر په سپرلۍ باندې کاوه قدرت لری.

**د زاد او راحله د ضرورياتو د ژوند نه زيادت**

وَيُشْتَرَطُ أَنْ يَكُوْنَ فَاضِلًا عَنِ الْمَسْكَنِ وَعَمَّا لَا بُدَّ مِنْهُ او شرط کولای شی چې وی (دا زاد او راحله) زياتی د خانې د ستوګنې نه او د هغه څه نه چې خلاصې نه وی د هغې نه،(يعنی ضروری وی) وَكَالْخَادِمِ وَأَثَاثِ الْبَيْتِ
وَثِيَابِهِ لکه خادم او سامان دکور او دده جامې

حل اللغة° ① المسكن: اسم ظرف دَ اوسيدوځائ يعنی کور ② الاثاث: دَ کور سامان

تشريح:- كون الزاد والراحلة زائدتان عن الحاجة الاصلية وړاندې تير شو.چه د حج د وجوب لپاره زاد او راحلۀ باندې قدرت شرط دې.خو په دې شرط کې دا هم دی.چه هغه مال په کوم چې زاد او راحله حاصلوی.دده د اوسيدو د کور او ضروری سامان نه زياتی وی.ضروری سامان لکه خادم ،دکور سامان لکه بستره ،توشك،د اخلې پخلی سامان اودده د استعمال جامې د سپرلۍ لپاره اس (او په موجوده وخت کې سائيکل موټرسائيکل وغيره او وسلۀ وغيره

لِأَنَّ هٰذِهِ الْأَشْيَاءَ مَشْغُوْلَةٌ بِالْحَاجَةِ الْأَصْلِيَّةِ ځکه چې دا شيان (څيزونه ) بوخت دی په حاجت اصلی کې

تشريح:- ځکه چې دا واړه شيان (څيزونه ) په حاجت اصلی کښ بوخت دی.اوکوم شی چې په حاجت اصلی کې بوخت وی.نو هغه دمعدوم په څير وی(لکه چې هغه هډو شته نه)

وَيُشْتَرَطُ أَنْ يَكُوْنَ فَاضِلًا عَنْ نَفَقَةِ عِيَالِهِ إِلٰى حِيْنِ عَوْدِهِ او شرط کولای شی چې وی (دا زاد او راحله) زياتی د خرج د عيال دده نه تروخت د واپس کيدو دده

تشريح:- كون الزاد والراحلة زائدتان عن نفقة العيال الى العود اودا مال (په کوم چې زاد او راحله حاصلوی) دده د واپس راتلو پورې د اهل وعيال د نفقه نه زياتی وی.ځکه چې نفقه د ښځې واجب ده.اوحق د بنده په شريعت کې مقدم وی.

لِأَنَّ النَّفَقَةَ حَقٌّ مُسْتَحَقٌّ لِلْمَرْأَةِ ځکه چې نفقه (د خپل بال بچ)حق لازم دې لپاره د ښځې ،وَحَقُّ الْعَبْدِ مُقَدَّمٌ عَلٰى حَقِّ
الشَّرْعِ بِأَمْرِهِ اوحق د بنده مقدم وی په حق د شريعت باندې په حکم د شريعت.

دليله لکه په قرآن پاك کې ارشاد دې [وَقَدْ فَصَّلَ لَكُمْ مَّا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ] يعنی تاسو ته ئې هغه واړه شيان (څيزونه ) په تفصيل سره بيان کړل.کوم چې په تاسو حرام شوی دی.مګر دا چې تاسو ورته مجبوره شئ.اوګورئ په دې آيت کې الله رب العزت د بنده د مجبورئ د امله حرام شی دده لپاره مباح ګرځولې دې.او دده حق ئې په خپل حق باندې مقدم کړې دې.

**د مکې د خلقو لپاره د زاد او راحله عدم شرطيت**

وَلَيْسَ مِنْ شَرْطِ الْوُجُوْبِ عَلٰى أَهْلِ مَكَّةَ وَمَنْ حَوْلَهُمُ الرَّاحِلَةُ اونه دې شرط د وجوب څنې،دمکې په خلګو او په هغه چا چې شاو خوا دی د دوی نه (شرط د) سورلۍ

تشريح:- عدم شرطية الراحلة لاهل مكة وړاندې تير شو.چه د حج د وجوب په شرطونو کې زاد او راحله باندې

قدرت هم دی.خو د مکي او ددي په خواوُ شا کي اوسیدونکو باندي د حج د فرضیت لپاره د راحلة شرط نه دی.ځکه چي ددي ځائي اوسیدونکو کي که یو کس د راحله قدرت نه لری.نو په هغه باندي بیا حج واجب دی.خو په دي شرط چي په پیدل تګ باندي قادر وی.البته دا شرط ضروری دی.چه دده د تلو او واپس راتلو پوري د بال بچ نفقه لپاره خوراك کافی وی.

**من هم حوالی مکة**۞پاتي شوه دا چي د حوالی مکه نه څه مراد دی.نو په دي کښي دوي [دوه] اقوال دی.یو دا چي کوم خلګ د مکي او میقات په مینځ کښي آباد دي.هغي ټولو ته حوالی مکه وائي. دوهم دا چي ددوی او د مکي په مینځ کي د دریو ورځو نه کم مسافه وی.ددي خلګو لپاره د سپرلۍ شرط نشته.

| |
|---|
| **لِأَنَّهُ لَا تَلْحَقُهُمْ مَشَقَّةٌ زَائِدَةٌ فِي الْأَدَاءِ فَأَشْبَهَ السَّعْيَ إِلَى الْجُمُعَةِ** ځکه چي دوی پوري نه مولښتی کیږي مشقت زیاتی په ادا کاوه (د حج کښي په سبب د تګ مناسك دحج ته) نو مشابه شو سعی د جمعې سره، |

**تشریح:-دلیله**۞دلیل دا دي.چه دي خلګو ته بغیر د سپرلۍ نه د حج په کاوه څه زیات مشقت نشته.نو د دوی حج ته تلل د جمعي لمانځه ته تګ سره مشابه شوه.او د جمعي لمانځه ته د تلو لپاره سپرلۍ شرط نه ده. اګرچه مشقت وی.نو دغه ډول د مکي او د حوالی مکه لپاره هم د حج د فرضیت لپاره راحله شرط نه دی.

| |
|---|
| **وَلَا بُدَّ مِنْ أَمْنِ الطَّرِيقِ لِأَنَّ الِاسْتِطَاعَةَ لَا تَثْبُتُ دُونَهُ** او نشته خلاصي د امن د لاري نه،ځکه چي طاقت(تلو)نه ثابتیږي بغیر د دي (امن د لاري) نه |

**تشریح:- شرط امن الطریق**۞ علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه د وجوب حج لپاره د لاري امن هم شرط دي.یعنی په دغه لار کي چي غالب ګمان د سلامتیا او د امن وی.ځکه چي د لاري امن نه وی.نو قدرت نه ثابتیږی.

| |
|---|
| **ثُمَّ قِيلَ: هُوَ شَرْطُ الْوُجُوبِ حَتَّى لَا يَجِبَ عَلَيْهِ الْإِيصَاءُ** بیا وئیلي شوی دی.چه دا شرط د وجوب (د حج دي) تردي چي نه واجبیږی په ده باندي وصیت وهو مروی عن أبی حنیفة رحمه الله او دا (خبره) نقل ده.د ابوحنیفه رحمه الله نه، **وَقِيلَ: هُوَ شَرْطُ الْأَدَاءِ دُونَ الْوُجُوبِ** اووئیلي شوی دی.چه دا شرط د ادا دي.د وجوب نه دي. |

**تشریح:- المذهبان في نوعیة شرط امن الطریق**۞بیا په دي کي اختلاف دي.چه د لاري امنیت د وجوب حج لپاره شرط دي.او که د حج ادا کاوه لپاره ،①نو بعضي مشائخو رحمهم الله فرمائیلی دی.چه د لاري امنیت د وجوب حج لپاره شرط دي.هم دا د حضرت امام صاحب رحمه الله نه د نوادر په روایت سره نقل دی.اوهم دا د امام کرخي او امام شافعي رحمه الله قول دي.بعضي مشائخو رحمهم الله فرمائیلی دی.چه د لارے امن د حج د ادا کاوه لپاره شرط دي.هم دا د امام احمد رحمه الله قول دي.

| |
|---|
| **لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فَسَّرَ الِاسْتِطَاعَةَ بِالزَّادِ وَالرَّاحِلَةِ لَا غَيْرُ** [1] ځکه چي نبی ﷺ تفسیر کړي دي د استطاعت په زاد او راحله سره نه په بل څیز. |

**حل اللغة**①الزاد: د سفر توښه ②الراحلة: سورلی

**تشریح:-دلیله** ۞د قول ثانی د قائلینو دلیل بیانوی.او علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه رسول الله ﷺ د [وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا] تفسیر صرف په زاد او راحله سره کړي دي.که د لاري امن د وجوب لپاره شرط وي.نورسول الله ﷺ به د زاد او راحله سره د لاري امن هم ذکر کړي وو.نو چي نبی ﷺ د زاد او راحلة سره د لاري امن نه دي ذکر کړي.نو دا ددي خبري دلیل دي.چه د لاري امن د زاد او راحله په څیر د حج لپاره شرط نه دي.بلکه د حج ادا کاوه لپاره شرط دي.

**ثمرة اختلاف المذهبین**۞د اختلاف ثمره به دا وی.که یو کس په زاد او راحله باندي قادر وی.او نور واړه

[1] یشیر إلی الحدیث السابق من حدیث ابن عمر رضی الله عنهما_



شرطونه موجود وی.خو د لاري د عدم امن د امله دي حج نشی ادا کولي.تردي چي مرګ ته نزدي شی.نو د اولنی قول د قائلینو په نیز په ده باندي د حج وصیت واجب نه دي.ځکه چي د لاري د امن شرط نه دي موجود شوي .نو حج پري واجب شوي نه دي.نو د حج د وصیت کاوه څه سوال پیدا کیږی؟ اود دوهم قول د قائلینو رحمهم الله په نیز په ده د حج وصیت واجب دي.ځکه چي نفس حج په ده باندي واجب شوي ووخودلاري دعدم امن په وجه ده اندا نکړي شو.نو ځکه دحج فریضه خپلي ذمے نه لري کاوه لپاره به په خپل مال کي دحج کاوه وصیت کول ضروری او لازمی وی.

## د ښځي لپاره د خاوند یا محرم شرطیت

| |
|---|
| **قَالَ (وَيُعْتَبَرُ فِي الْمَرْأَةِ أَنْ يَكُونَ لَهَا مَحْرَمٌ تَحُجُّ بِهِ** صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.او معتبر دي په ښځه کي چي وی ددي لپاره محرم چي حج کوی دا د هغه په ذریعه **أَوْ زَوْجٌ، وَلَا يَجُوزُ لَهَا أَنْ تَحُجَّ بِغَيْرِهِمَا** او یا خاوند وی.او نه دي جائز ددي لپاره چي حج اوکړی بغیر ددي دواړو ځني **إِذَا كَانَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ مَكَّةَ مَسِيرَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ** کله چي وی په مینځ د دي او د مکه کي مسافه د دري ورځو |

**تشریح:- شرط وجود الزوج او المحرم مع المراة**۞صورت د مسئلي دا دي.که د ښځي د ښار او د مکي مکرمي په مینځ کي د دري ورځو یا ددي نه زیات مسافه وی.نو د ښځے لپاره د حج لپاره تلل په هغه وخت کي جائز دی.چه ددي سره محرم وی.یا ددي خاوند وی.

**تعریف المحرم**۞محرم هغه چا ته وائی.چا سره چي همیشه لپاره نکاح نه کیږی.که د خپلوئ په وجه وی اوکه د رضاعت په وجه وی.اوکه مصاهرت (سخرګنی) په وجه وی.خو د محرم لپاره شرط دي.چه هغه عاقل بالغ آزاد یا غلام وی.که کافر وی اوکه مسلمان.

| |
|---|
| **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجُوزُ لَهَا الْحَجُّ إِذَا خَرَجَتْ فِي رُفْقَةٍ وَمَعَهَا نِسَاءٌ ثِقَاتٌ** او فرمائی امام شافعی رحمه الله چي جائز دي ددي لپاره حج کله چي دا اوځی په قافله کي او ددي سره ښځي اعتباری وی. **لِحُصُولِ الْأَمْنِ بِالْمُرَافَقَةِ** د امله د حاصلیدو د امن نه په ملګرتیا سره |

**حل اللغة**①رفق اندیوال ②ثقاة: مضبوط عاقل

**تشریح:- جوازسفرالمراة عند الشافعی رحمه الله** ۞حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی.که ښځه د ملګرو سره بوځائي د حج په سفر اوځی.چه دي سره نیکاني بااعتماده ښځي وی.نو ددي لپاره حج ته تلل جائز دی.اګرچه دي سره محرم او خاوند نه وی.ځکه چي د رفاقت په وجه امن حاصل دي.

| |
|---|
| **وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** او زموږ لپاره دلیل قول د رسول الله ﷺ دي **لَا تَحُجَّنَّ امْرَأَةٌ إِلَّا وَمَعَهَا مَحْرَمٌ** [1] .چه حج به نه کوی ښځه مګر دي سره به وی محرم |

**حل اللغة** ① **حج یحج**: حج کول

**تشریح:-دلائل الاحناف** رحمهم الله ۞زموږ دلیل دا دي.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی.بغیر د محرم نه دي هیڅ یوه ښځه د حج لپاره نه ځی.او د (مسلم او ابوداؤد) روایت دي. «لا یحل لإمرأة تؤمن بالله والیوم الآخر تسافر سفراً یکون ثلاثة أیام فصاعداً إلا ومعها أبوها أو إبنها أو زوجها أو أخوها أو محرم منها» یعنی چي په الله او په ورځ د آخرت ایمان راوړی نو د هغه ښځي لپاره د دري ورځو یا ددي نه زیات سفر جائز نه دي.مګر دا چي دي سره ددي پلاریا ځوئي یا ددي خاوند یا ددي رور یا ددي محرم وی.ددي حدیث نه هم معلومه شوه.چه بغیر د محرم د ښځي لپاره سفر کول جائز نه دی.اګرچه هغه سفر د حج وی

[1] من حدیث ابن عباس رضی الله عنهما أخرجه البزار فی مسنده والدارقطنی فی سننه (۲۲۲/۲) رقم ۳۰)_

وَلِأَنَّهَا بِدُونِ الْمَحْرَمِ يُخَافُ عَلَيْهَا الْفِتْنَةُ او بله دا چې بغير د محرم نه ويره كيداې شي په دې باندې د فتنه وَتَزْدَادُ بِانْضِمَامِ غَيْرِهَا إِلَيْهَا او زياتيږي په يو ځاې كيدو د بل چا دې سره ، وَلِهَذَا تَحْرُمُ الْخَلْوَةُ بِالْأَجْنَبِيَّةِ وَإِنْ كَانَ مَعَهَا غَيْرُهَا او ددې امله حرام دې ځانله والې د پردئ ښځي سره اګرچه وى ددې سره بل څوك هم

تشريح:- دوهم دليل دا دې.چه بغير د محرمه په ښځه باندې د فتنې ويره ده.او كله چې دوى ګنړے شى.نودوى د عقل په اعتبار سره ناقصې هم دى.او د دين په اعتبار سره هم ناقصې دى.نو په فتنه كې به نوره هم اضافه اوشى.هم دا وجه ده.چه د سړى لپاره د پردې ښځې سره ځانله والې حرام دې.اګرچه دغه ښځې سره بله ښځه هم موجود وى.ځكه چې اول يوه فتنه وه.او اوس دوې [دوه] فتنې شوې .نو حاصل دا شو.چه بغير محرمه د درې ورو په سفر د ښځې
لپاره وتل جائز نه دى.

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ مَكَّةَ أَقَلُّ مِنْ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ په خلاف د هغه چې كله وى په مينځ ددې او د مكه كې كم مسافه د درې ورځو نه . لِأَنَّهُ يُبَاحُ لَهَا الْخُرُوجُ إِلَى مَا دُونَ السَّفَرِ بِغَيْرِ مَحْرَمٍ ځكه چې مباح دى. د دې لپاره وتل ترهغه ځاې پورې چې حد د سفر شرعى ته نه رسى بغير دمحرم ځنې.

تشريح:- **جوازالخروج في اقل من مسافة السفر**۞البته كه د ښځې او مكې په مينځ كې د درې ورځو نه كم مسافه وى.نو د ښځې لپاره بغير محرمه او بغير خاونده حج ته تلل جائز دى.ځكه چې شريعت اسلامى بغير محرمه ښځې ته د سفر د مسافه نه په كمه اندازه د وتلو اجازت وركړې دې.او په دومره لږه موده كې د فتنې ويره هم نشته.

## د محرم په وجود كې د خاوند منع كولوحكم

وَإِذَا وَجَدَتْ مَحْرَمًا لَمْ يَكُنْ لِلزَّوْجِ مَنْعُهَا اوكله چې موجود وى محرم نه دى جائز لپاره د خاوند منع كول ددې

تشريح:- **المذهبان في خيارالمنع للزوج المراة من السفر**۞صورت د مسئلې دا دې.چه كومه ښځه د حج اراده كوى.كه دې سره محرم وى.نو د خاوند اختيار نشته.چه دا د حج د فريضې ادا كاوه نه منع كړى. امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَهُ أَنْ يَمْنَعَهَا لِأَنَّ فِي الْخُرُوجِ تَفْوِيتَ حَقِّهِ اووئيلى دى شافعى رحمه الله دده ( خاوند لپاره جائزدى) ځكه چې ددې (ښځې) په وتلو كې فوت كيږى.حق دده،

تشريح:- او امام شافعى رحمه الله فرمائ.چه خاوند ته دا اختيار شته.چه دا منع كړى.

**دليل الشافعى رحمه الله** ۞د امام شافعى رحمه الله دليل دا دې.چه د ښځې محرم سره په سفر تلو كې د خاوند حق فوت كيږى.او وړاندې تير شوى دى.چه حق د بنده د الله په حق باندې مقدم وى.نوځكه خاوند د خپل حق د ساتنه لپاره دا د حج د ارادې نه منع كولې شى.نودا داسې شوه لكه چې يوې ښځې د حج نذر كړې وى.نو خاوند ته دا اختيار شته.چه دا نذر پوره كاوه نه منع كړى.

وَلَنَا أَنَّ حَقَّ الزَّوْجِ لَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ الْفَرَائِضِ اوزمونږ دليل دادې.چه د خاوندحق نه ښكاره كيږى.په اړه د فرائضوكي ، وَالْحَجُّ مِنْهَا او حج هم ددې (فرائضو)ځنې دې. ، حَتَّى لَوْ كَانَ الْحَجُّ نَفْلًا لَهُ أَنْ يَمْنَعَهَا تردې كه چرې وى دا حج نفل،نو(اختيار) شته دې (خاوند)ته چې منع كړى داښځه،

**دليل الاحناف** رحمهم الله ۞او زمونږ دليل د دې.چه د خاوند حق د فرائضو په حق كې نه ظاهريږى.نو خاوند ته دا اختيار نشته.چه دا خپله ښځه د لمونځ كاوه نه منع كړى.يا د رمضان د روژې نه ئې منع كړى. البته كه ښځې دنفلى حج اراده كړې وى.نو خاوند دا منع كولې شى.ځكه چې دا په فرائض كې نه دې.

وَلَوْ كَانَ الْمَحْرَمُ فَاسِقًا قَالُوا: لَا يَجِبُ عَلَيْهَا اوكه وى محرم فاسق نو(عالمانو)وئيلى دى. نه دې واجب په دې



باندې لِأَنَّ الْمَقْصُودَ لَا يَحْصُلُ بِهِ ځكه چې مقصود نه حاصليږى په ده باندې.

تشريح:- **حكم الحج اذا كان المحرم فاسقا**۞اوكه د ښځې محرم فاسق وى.يعنى په بدكارئ كې بيباكه وى.نو مشائخو رحمهم الله فرمائيلى دى.چه په ښځه باندې حج نه فرض كيږى.ځكه چې د داسې محرم په وجود سره مقصود نه حاصليږى.(هغه ساتنه د ښځې دې.د فتنې نه او په دې صورت كې خو فتنه زياته ده.ځكه چې يوبل سره به نزديكت زيات وى)

## د ليونى اوماشوم محرم سره دښځې حج

وَلَهَا أَنْ تَخْرُجَ مَعَ كُلِّ مَحْرَمٍ اوجائز دى ددې (ښځې) لپاره چې اوځى (د حج لپاره ) د هرمحرم سره،

تشريح:- **جوازالسفر مع المحرم**۞مسئله دا ده.چه په سفر كې د ښځې لپاره د محرم سره وتل جائز دى.كه هغه آزاد وى اوكه غلام وى.مسلمان وى اوكه يا ذمى او كافر وى.

إِلَّا أَنْ يَكُونَ مَجُوسِيًّا مګردا چې مجوسى وى. ځكه چې دې اعتقاد كوى. لِأَنَّهُ يَعْتَقِدُ إِبَاحَةَ مُنَاكَحَتِهَا اباحت د نكاح كاوه دې سره

تشريح:- **عدم جوازالسفر مع المحرم المجوسى**۞البته كه مجوسى وى.نو ده سره د وتلو اجازت نشته.ځكه چې د مجوسيانو دا عقيده ده.چه د خپلے مور او لور سره هم بغير نكاح نه جماع جائز ګنړى.او د نورو محارمو سره نكاح كول او جماع كول جائزدى.نو ددې فاسدې عقيده په صورت كې ښځې د فتنه نه چرته محفوظ پاتې كيداې شى.او كله چې د فتنے نه ساتنه نشته.نود مجوسى محرم سره سفر هم جائز نه دې.

وَلَا عِبْرَةَ بِالصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ او نشته اعتبار ماشوم او ليونى لره. لِأَنَّهُ لَا تَتَأَتَّى مِنْهُمَا الصِّيَانَةُ ځكه چې نشى پوره كيداې په دې دواړو سره ساتنه وَالصَّبِيَّةُ الَّتِي بَلَغَتْ حَدَّ الشَّهْوَةِ بِمَنْزِلَةِ الْبَالِغَةِ اوماشومه هغه چې رسيدلې وى حد د شهوت ته په منزله د بالغې ده ، حَتَّى لَا يُسَافِرَ بِهَا مِنْ غَيْرِ مَحْرَمٍ .تردې چې سفر به نشى كولې په دې سره بغير د محرمه

حل اللغة: ① تتاتى: باب تفعل: حاصليدل ② الصيانة: ساتنه

تشريح:- **عدم اعتبارالمحرم الصبى والمجنون**۞او په محرم كې د نابالغه اوليونى څه اعتيار نشته.ځكه چې په دې دواړو باندې د ښځې ساتنه نه كيږى.او چې ساتنه نشى حاصليدې.نوددوى په وجود كې څه فائده ده.اوكومه ماشومه چې بالغه نه وى.خود شهوت حد ته رسيدلے وى.نو هغه به د بالغه په مرتبه كښې وى.تردې چې ددې به د محرم نه بغير سفر كول جائز نه وى.اګرچه په دې ماشومه حج فرض نه دې.

وَنَفَقَةُ الْمَحْرَمِ عَلَيْهَا او نفقه د محرم په دې باندې ده لِأَنَّهَا تَتَوَسَّلُ بِهِ إِلَى أَدَاءِ الْحَجِّ ځكه چې دا رسيږى په واسطه دده ادا كاوه د حج ته

تشريح:- **نفقة المحرم على المراة**۞پاتې شوه دا خبره چې د سفر د انډيوالان محرم نفقه به په چا واجب وى.نو علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه د محرم نفقه په هغه ښځه ده.چا چې دې خپل انډيوال جوړ كړې دې.ځكه چې هم ښځې دې د حج ادا كاوه ذريعه جوړه كړې ده.ددې نه معلومه شوه.چه د ښحې په حق كې د توښه او سپرلئ د قدرت په اړه كې دا هم ګډ دى.چه د محرم د نفقه قدرت هم لرى.

وَاخْتَلَفُوا فِي أَنَّ الْمَحْرَمَ شَرْطُ الْوُجُوبِ أَوْ شَرْطُ الْأَدَاءِ او اختلاف كړې دې عالمانو رحمهم الله په دې كې چې محرم شرط د وجوب دې او كه شرط د ادا دې. عَلَى حَسَبِ اخْتِلَافِهِمْ فِي أَمْنِ الطَّرِيقِ ، په څير د اختلاف د دوى په امن د لار كې.

تشريح:- **اختلاف المشائخ في كون المحرم شرط الوجوب اوالاداء**۞ د مشائخو رحمهم الله په دې كې اختلاف دې.چه د محرم وجود د حج د وجوب شرط دې.او كه د حج د ادا شرط دې.په دې كښې هم هغه اختلاف دې.كوم چې د لارې د امن په سلسله كې تير شوې دې.

ثمره د اختلاف دا ده.چه د کومو حضراتو په نیز د محرم وجود د حج د وجوب شرط نه دې.د هغوی په نیز مالداره ښځه که د محرم د عدم وجود په وجه حج نشي کولې.نو د مرګ په وخت کښ به په خپل مال کې د حج کاوه وصیت کول په دې واجب نه وي.ځکه چې په دې باندې حج فرض شوې نه دې.نو بیا وصیت به ځنګه واجب شي.او کوم حضرات چې د محرم وجود د حج د ادا لپاره شرط ګرځوي.نود هغوی په نیز په ښځه باندې وصیت کول واجب دی.ځکه چې د دوی په نیز په دې باندې ج فرض شوې دې.خو د محرم د عدم وجود د امله دې ادا نشوه کولې.نود حج فریضه د خپل ځان نه ساقط کاوه لپاره په دې باندې وصیت کول واجب دی.ځه زما په مال کښ دې بل کس حج بدل اوکړي.که هغې وصیت اونکړو.نو ګناهګاره به وي.

## د احرام نه روسته د ماشوم بالغ کېدل

وَإِذَا بَلَغَ الصَّبِيُّ بَعْدَمَا أَحْرَمَ أَوْ عَتَقَ الْعَبْدُ وکه د احرام تړلو نه روسته ماشوم بالغ شو.یا غلام آزاد کړې شو. فَمَضَيَا نو دې دواړو خپل حج جاري اوساتلو لَمْ يُجْزِهِمَا عَنْ حَجَّةِ الْإِسْلَامِ.نه جائز کیږي د دې دواړو لپاره د اسلامي حج نه، لِأَنَّ إِحْرَامَهُمَا انْعَقَدَ لِأَدَاءِ النَّفْلِ ځکه چې د دوی احرام تړلې شوې وو لپاره ادا کاوه د نفلي حج فَلَا يَنْقَلِبُ لِأَدَاءِ الْفَرْضِ نو نه ګرځي.د ادا کولود فرض دپاره.

حل اللغة* ① مضيا: مضى يمضي (ض): تیریدل، پوره کول

تشریح:- عدم اداء فريضة الحج بالاحرام للنفل ۞ مسئله دا ده.که نابالغه ماشوم داحرام تړلو نه روسته بالغ شو. یا غلام د احرام تړلو نه روسته آزاد شو.بیا دې دواړو د حج ارکان پوره کړل.نوفرض حج ادا نشو.بلکه د دوی د زاد او راحله قدرت وي.نو په هر یو باندې فرضي حج ادا کول لازم دی.لکه چې دې دواړو دنفلي حج لپاره احرام تړلې وو.نودا به د فرضي حج ادا کاوه باندې نه بدلیږي.نو په دې احرام سره هم نفلي حج ادا کولې شي.د فرضي حج ادا کاوه لپاره به بیا سفر کوي.

السوال ۞ دلته یو سوال کیږي.هغه دا چې په حج کي احرام شرط دې.لکه ځنګه چې د لمانځه لپاره اودس شرط دې.اود بلوغ نه روسته په دغه اودس باندې لمونځ کول جائز دې.کوم چې ئې د بلوغ نه وړاندې کړې وو.خودا په هغه وخت کي دې.چه هغه د عمر په اعتبار سره بالغ شوې وي.ځکه که د احتلام په وجه بالغ شوې وي.نودده اودس ماتیږي.بهرحال لکه ځنګه چې په دې اودس باندې فرض لمونځ کول جائز دې.کوم چې ئې د بلوغ نه وړاندې کړې وو.دغه ډول په هغه احرام باندې فرض حج ادا کول باید ده چې جائز شي.کوم احرام چې د بلوغ نه وړاندې تړلې شوې وي.

الجواب ۞ ددې ځواب دا دې.چه زموږ په نیز احرام په نیت سره متحقق کیږي.اود احرام تړلو سره دستي د حج افعال پیل کیږي.د حج د افعالو پیل کاوه لپاره د نوی نیت اړتیا نه وي.ددې په خلاف اودس ځکه چې دا د لمونځ پیل کاوه نه وړاندې متحقق کیږي.حاصل دا چې د احرام اودحج د افعالوشروع کاوه په مینځ کښې څه وخت فاصل نه وي.بلکه د احرام تړلو سره دستي د حج افعال پیل کیږي.اود اودس او لمونځ په مینځ کي وخت فاصل وي.نو ددې توپیر باوجود یو په بل باندې قیاس کول ځنګه ټیک کیداې شي.ددې امله که ماشوم د اودس پیل کاوه نه روسته دستي لمونځ باندې پیل اوکړله.او بیا دې د عمر په اعتبار بالغ شو.نوده د لمونځ نیت بدل کړلود فرض نیت ئې اوکړلو.نو دا لمونځ فرض نه ګرځي.نو دغه شان چې کله ماشوم احرام اوتړي.او نفلي حج پیل کړي.بیا بالغ شي.اوده د فرضي حج ادا کاوه نیت اوکړلو.نودا نفلي حج په فرضي کي نه بدلیږي.



## د ماشوم د بلوغ نه وړاندې د نیت تجدید

وَلَوْ جَدَّدَ الصَّبِيُّ الْإِحْرَامَ قَبْلَ الْوُقُوفِ اوکه نوې کړلو ماشوم احرام وړاندې د وقوف نه په عرفات، وَنَوَى حَجَّةَ الْإِسْلَامِ جَازَ اونیت ئې اوکړلو.د فرضي حج نو جائز دې. وَالْعَبْدُ لَوْ فَعَلَ ذَلِكَ لَمْ يُجْزِ وغلام که داسې اوکړلو.نو نه جائز کیږي

حل اللغة* ① جدد: د نوې سر نه کول

تشریح:- جواز تجديد احرام الصبى دون الغلام ۞ صورت د مسئلې دا دې.چه ماشوم احرام اوتړلو.اوبیا بالغ شواودوقوف عرفه نه وړاندې ئې احرام مات کړلو.اود فرض حج لپاره ئې احرام اوتړلو.نوجائز دی.خو که غلام احرام اوتړلو.اوبیا آزاد شو.که ده احرام مات کړلو.اود وقوف عرفه نه وړاندې ئې د فرضي حج لپاره احرام اوتړلو.نوجائز نه دی.

لِأَنَّ إِحْرَامَ الصَّبِيِّ غَيْرُ لَازِمٍ .ځکه چې احرام دماشوم نه لازمیږي. لِعَدَمِ الْأَهْلِيَّةِ، أَمَّا د امله د عدم اهلیت نه، إِحْرَامُ الْعَبْدِ لَازِمٌ او احرام د غلام لازمیږي. فَلَا يُمْكِنُهُ الْخُرُوجُ عَنْهُ نو نه دی ممکن دده لپاره خروج ددې نه بِالشُّرُوعِ فِي غَيْرِهِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ په پیل کاوه سره په بل (حج) کي.

تشریح:- وجه الفرق بينهما ۞ وجه د توپیر دا ده.چه د نابالغه احرام د هغه د عدم اهلیت اود اسلام په احکامو د عدم تکلیف د امله غیرلازم وو.هم دا وجه ده.که ده د ممنوع فعل ارتکاب کړې وي.نو په ده باندې تاوان واجب نه دې.نوهرکله چې دده احرام غیر لازم شو.نوددې ماتول هم جائز شو.پاتې شوغلام نو دهغه احرام لازمونکې دې.ځکه چې هغه د شریعت په احکامو مکلف دې.هم دا وجه ده.که ده د احرام په حالت کي ښکار اوکړلو.نوپه ده باندې روژې واجبیږي.ځکه ده ښکار اوویشتلو.نوددې په وجه ئې په خپل احرام کي د جنایت ارتکاب اوکړلو.البته دومره خبره ضرور ده.چه دې کفاره په مال سره نشي ادا کولې.ځکه چې غلام د مال مالك نه وي.نو ددې امله په مال سره د کفاره ادا کاوه اهل هم نه دې .بهرحال کله چې د غلام احرام لازمونکې دې.نودا احرام نشي ماتولې چې ددې په ځائې بل احرام اوتړي.

## د میقات تعریف اوځایونه

فَصْلٌ وَالْمَوَاقِيتُ: (دا فصل د مواقیتو (په بیان کي) دی. الَّتِي لَا يَجُوزُ أَنْ يُجَاوِزَهَا الْإِنْسَانُ إِلَّا مُحْرِمًا خَمْسَةٌ هغه (ځایونه) چې جائز نه دی چې تیر شي د هغې نه انسان مګربه حالت داحرام کښې پنځه دی.

حل اللغة* ① مواقيت جمع ميقات: معين وخت

تشریح:- الربط بما قبله ۞ تراوسه پورې ددې بیان اوشو.چه حج په چا فرض دې او په چا نه دې.اود حج د فرضیت کوم کوم شرطونه دی.اوس په دې فصل کي ددې بیان کیږي.چه د حج پیل به د کوم ځائې نه کیږي.

معنى المواقيت ۞ مواقیت جمع د میقات ده.اومیقات د مقرر وخت لپاره راځي.خو دلته مجازاً د ځائې لپاره استعمال شوې دې.اوس دلته د مواقیت نه هغه ځایونه مراد دی.د کومو نه چې بغیر داحرام نه تیریدل جائز نه دی.او مواقیت پنځه دی.

لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ ذُو الْحُلَيْفَةِ، وَلِأَهْلِ الْعِرَاقِ ذَاتُ عِرْقٍ. وَلِأَهْلِ الشَّامِ الْجُحْفَةُ، وَلِأَهْلِ نَجْدٍ قَرْنٌ، وَلِأَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمُ د مدینې د خلګو لپاره ذوالحلیفه اود عراق د خلګو لپاره ذات عرق، اودشام د خلګو لپاره جحفه اود نجد د خلګو لپاره قرن اود یمن د خلګو لپاره یلملم

تشریح:- المواقيت الخمسة ۞ ① د مدینې د خلګو میقات ذوالحلیفه دې.حلیفه د حلفة تصغیر دې.دلته وړاندې یوه وونه وه.او اوس پکي جمات جوړ شوې دې.دا د مدینې منورې نه شپږ میله لرې دې.② د عراقیانو لپاره ذات عرق میقات دې.دا د مکې مکرمې نه په دوې [دوه] څلویښت میله کي پروت دې.حضرت عمر ﷺ د کوفې او بصره د فتح کاوه نه روسته هم دا ځائې میقات مقرر کړې وو.

**السوال وجوابه**﴿خو په دې باندې اعتراض کيږي.چه ﴿هكذا وقت رسول الله ﷺ هذه المواقيت﴾ څنګه ټيک دی.حالانکه د نبی ﷺ په وخت کې عراق فتح شوې نه وو.ددې ځواب دا دې.چه نبی ﷺ ته د وحی په ذريعه دا خبر ورکړې شوي وو.چه شام او عراق به فتح کيږي.او عراق به د شام په څير دارالاسلام وی. ددې امله نبی ﷺ د عراقيانو او شاميانو لپاره ميقات مقرر کړې وو.③د شاميانو ميقات جحفه ده. هم دا د مصريانو ميقات دې.ددې ځائې نه مکه ٨٢ ميله لرې ده.او مدينه منوره درې منزله او ،بحر قلزم، شپږ ميله لرې دې.④ د نجديانو ميقات،قرن، دې.⑤ د يمنيانو ميقات يلملم دې.دا د مکې نه د جنوب په اړخ ديرش ميله لرې دې.

| |
|---|
| هَكَذَا وَقَّتَ رَسُولُ اللَّهِ هَذِهِ الْمَوَاقِيتَ لِهَؤُلَاءِ (١) هم دغه ډول مقرر کړی دی رسول الله ﷺ دا مواقيت ددې خلګو دپاره، |

**تشريح:- دلائلها**﴿صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چه مواقيت د احاديثو نه ثابت دی.د ذات عرق نه سوې د پاتې څلورو ميقاتونو ثبوت په صحيحينو کې دې.او ذات عرق ثبوت په مسلم او ابوداود کې دې.①په صحيحينو کې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما حديث دې.چه ﴿أن رسول الله ﷺ وقت لأهل المدينة ذالحليفة ولأهل الشام الجحفة ولأهل نجد قرن المنازل ولأهل اليمن يلملم هن لهن ولمن أتى عليهن من غير أهلهن من أراد الحج والعمرة ومن كان دون ذالك فمن حيث شاء حتى أهل مكة من مكة﴾ يعنی رسول الله ﷺ مقرر کړی دی.د مدينې د خلګو لپاره ذوالحليفه او د شاميانو لپاره جحفه او د نجديانو لپاره قرن منازل او د يمنيانو لپاره يلملم دا د دوی لپاره دی او د هغه چا لپاره چې په دوی باندې راځی سوې د دوی نه ځوک چې اراده د حج او د عمره لری.او د دوی نه علاوه چې ځوک په دې راشی.نو د کوم ځائې نه چې ئې خوښه وی.تردې چې د مکې د خلګو لپاره مکه ده.چه ددې نه دې احرام تړی.

| |
|---|
| وَفَائِدَةُ التَّأْقِيتِ الْمَنْعُ عَنْ تَأْخِيرِ الْإِحْرَامِ عَنْهَا او فائده د ميقات منع ده د روستو کاوه د احرام ددې ځايونو نه، لِأَنَّهُ يَجُوزُ التَّقْدِيمُ عَلَيْهَا بِالْاِتِّفَاقِ ځکه چې جائز دې تقديم (د احرام) په دې باندې په اتفاق سره. |

**حل اللغة:** ① **تاقيت:** د وخت تعين کول

**تشريح:-** علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه ددې ميقاتونو د مقرر کاوه فائده دا ده.چه چې ددې ميقاتونو نه د احرام تاخير منع دې.دا مطلب نه دې.چه ددې ميقاتونو نه وړاندې احرام نشی تړلې.ځکه چې د ميقات نه وړاندې احرام تړل په اتفاق سره جائز دې.

### د آفاقی لپاره بغير احرامه د ميقات نه د تيريدو حکم

| |
|---|
| ثُمَّ الْآفَاقِيُّ إِذَا انْتَهَى إِلَيْهَا عَلَى قَصْدِ دُخُولِ مَكَّةَ عَلَيْهِ أَنْ يُحْرِمَ بيا آفاقی چې کله اورسی دې ته په قصد د داخليدو د مکې،لازم ده په ده باندې چې احرام او تړی قَصَدَ الْحَجَّ أَوِ الْعُمْرَةَ أَوْ لَمْ يَقْصِدْ عِنْدَنَا وَغَيْرُهُمَا که قصد ئې د حج کړې وی او که نه زمونږ په نيز، |

**حل اللغة:** ① **آفاقی:** دمواقيت نه بهر اوسيدونکې

**تشريح:- ميقات اهل مکة**﴿آفاقی هغه خلګو ته وائی.چه د ميقات نه بهر اوسی.او ځوک چې د ميقات دننه اوسی.هغه ته مکی وائی.دآفاقی کسانو ميقاتونه خو هغه دی.کوم چې مونږ په تيرو شوو صفحاتو کې ذکر

(١) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه البخاری فی الحج باب ٧ رقم ١٥٢٤ ومسلم فی الحج رقم ١١ وابوداود فی المناسک باب ٨ رقم ١٧٣٨ وأحمد فی المسند(١/٢٣٨)_



کړل.او مکی يعنی دهغه خلګو ميقات چې د ذکر شوو ميقاتونو او د حرم په مينځ کې اوسيږی.،زمين حل، دې.يعنی د حرم پيل کيدو نه وړاندې وړاندې دې احرام اوتړی.

**احرام المتجاوز عن الميقاتين وعن الميقات الواحد**﴿ ①د صاحب عنايه رحمه الله بيان مطابق ضابطه دا ده.چه کوم کس د آفاقی او مکی دواړو ميقاتونو نه تيريدل غواړی.نو د هغه لپاره داحرام نه بغير تيريدل جائز نه دی.او کوم کس چې صرف د يو ميقات يعنی د آفاقی د ميقات نه د تيريدو اراده لری.②او که د مکی د ميقات نه ئې د تيريدو اراده نه وی.نو دده لپاره بغير احرامه تلل جائز دی.مثلاً چې يو کس په حِل يا جده کې يو ځائې ته د تلو اراده لری.نو په ده باندې د احرام تړل واجب نه دی.

**المذهبان في وجوب الاحرام على عازم المكة لغير الحج والعمرة**﴿ددې ضابطه په رڼا کې صورت د مسئلې دا دې.که يو آفاقی کس مکه مکرمه ته د داخليدو په اراده ميقات ته اورسيدلو.①نو زمونږ په نيز په ده باندې احرام تړل واجب دی.که د ده اراده د حج کاوه وی او که دعمره،يا ددې نه علاوه د تجارت وغيره اراده ئې وی.هم دا د امام احمد رحمه الله مذهب دې.②او دامام شافعی رحمه الله په نيز که حج يا دعمرې ادا کاوه لپاره ئې د مکې دتلو اراده وی.نو احرام تړل به واجب وی.او که ددې نه علاوه بله څه اراده ئې وی. نو داحرام تړل واجب نه دی.

**دلائل الشافعی رحمه الله**﴿ ①دامام شافعی رحمه الله دليل دا دې.چه احرام دحج يا عمرې لپاره مشروع شوې دې.نو چه په دې دواړو کې د کوم اراده لری.نو احرام به لازم وی.ګنی نه به وی.② دوهم دليل دا دې.چه رسول الله ﷺ فتح مکه په موقع مکې ته بغير احرامه داخل شوې وو.ځکه چې د فتح مکه په موقع د نبی ﷺ اراده نه د حج وه او نه دعمرې،بلکه فتح مکه ئې اراده وه.

**الجواب من حديث الشافعی**﴿او دامام شافعی رحمه الله د اړخه چې د فتح مکه کوم حديث پيش شوې دې. د هغې نه ځواب دا دې.چه د فتح مکه په ورځ د نبی ﷺ بغير داحرامه داخليدل دهغوی د خصوصياتو څخه دی.لکه څنګه چې نبی ﷺ د مکې د فتح په ورځ په خپله خطبه کې فرمائيلی وو. ﴿إن مكة حرام حرمها الله تعالى يوم خلق السموات والأرض وإنها لم تحل لأحد قبلي ولا تحل لأحد بعدی وإنما أحلت لی ساعة من نهار ثم عادت حراماً إلى يوم القيامة﴾ يعنی مکه معظمه الله تعالی د هغه ورځ نه محترم پيدا کړې ده.د کومې ورځې نه چې ئې مځکه او آسمانونه پيدا کړی دی.نه زما نه وړاندې دچا لپاره حلاله شوې ده.او نه زما نه روسته به دچا لپاره حلاله شی.البته زما لپاره د ورځې په يو ساعت کې حلاله شوې وه.او بيا ددې حرمت د قيامته پورې واپس شو.يعنی اوس که زه هم مکې ته داخليږم.نو زما لپاره به هم احرام تړل ضروری وی.

| |
|---|
| لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {لَا يُجَاوِزُ أَحَدٌ الْمِيقَاتَ إِلَّا مُحْرِمًا} (١) د امله د وينا د رسول الله ﷺ نه دې تيريږی ځوک د ميقات نه مګر په حالت د احرام کې، |

**دليل الاحناف رحمهم الله**﴿زمونږ دليل دابن عباس رضي الله عنهما حديث دې. ﴿قال رسول الله ﷺ يقول لا يجاوز الميقات أحد إلا محرماً﴾فرمائی.چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلی دی.چه فرمائيل ئې.هيڅ کس دې د ميقات نه د احرام نه بغير نه تيريږی.ددې حديث اطلاق په دې دلالت کوی.چه د ميقات نه تيريږی او مکې ته ځی. نو که هغه د حج يا عمرې اراده کړې وی.او يا ئې د تجارت وغيره اراده کړې وی.په هر صورت کې په ده باندې احرام واجب دې.

| |
|---|
| وَلِأَنَّ وُجُوبَ الْإِحْرَامِ لِتَعْظِيمِ هَذِهِ الْبُقْعَةِ الشَّرِيفَةِ او ځکه چې وجوب د احرام د تعظيم د دې زمکې مقدسې لپاره دې. |

(١) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه ابن ابی شيبة فی مصنفه والطبرانی فی معجمه والشافعی فی مسنده والبيهقی فی المعرفة وفی السنن الکبری (٤٤/٥) رقم ٨٩٢٤)_

**فَيَسْتَوِي فِيهِ الْحَاجُّ وَالْمُعْتَمِرُ** نو برابر دي په دې كې حاجي اوغيرد حاجي.

**حل اللغة** ① **يستوي،استوى يستوي**: برابر كيدل

**تشريح:-** دوهم دليل دا دې.چه احرام تړل د حرم د زمكې د عزت لپاره مقرر شوې دې.دحج يا عمرې د امله نه دې مقرر شوې .هم دا وجه ده.چه كوم نفر په حرم اومكه كښې اوسيږي .په هغوى باندې هم احرام واجب دې.بهرحال احرام تړل د مكې د زمكې د تعظيم لپاره مشروع شوې دې .اوپه تعظيم كښې واړه برابر دى.كه هغه د حج اراده كوى اوكه د عمرې.اويا ددې دواړو نه سوې د تجارت وغيره اراده كوى.

## په ميقات كې د ننه اوسيدونكې لپاره بغير احرامه داخليدل

**وَمَنْ كَانَ دَاخِلَ الْمِيقَاتِ لَهُ أَنْ يَدْخُلَ مَكَّةَ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ لِحَاجَتِهِ** اوڅوك چې وى داخل په ميقات كې جائز دى ده لپاره چې داخل شى مكې ته بغيراحرامه،د امله د حاجت دده،

**تشريح:- جوازدخول مكة بغيرالاحرام لداخل الميقات**۞مسئله دا ده.چه كوم كس په ميقات كې دننه وى. كه دې دهغه ځائې د اوسيدونكو څنې وى اوكه د څه حاجت لپاره هلته موجود وى.كه دا كس د څه حاجت لپاره مكې ته داخليږي.نوده لپاره بغيراحرامه داخليدل جائز دى.اګرچه د حرم دتعظيم اعتقاد په دې كس باندې واجب دې.خو په بدن باندې ددې اظهار دده نه پورته شوې دې.

**لِأَنَّهُ يَكْثُرُ دُخُولُهُ مَكَّةَ** ځكه چې زيات وى داخليدل دده مكې ته، **وَفِي إِيجَابِ الْإِحْرَامِ فِي كُلِّ مَرَّةٍ حَرَجٌ بَيِّنٌ** او په واجبولو د احرام كې په هرځل كې حرج ښكاره دې.

**حل اللغة**① **يكثر**: زياتيدل ② **بين**: واضح

**تشريح:- دليله**۞ځكه چې انسانى حاجتونو او دنياوى ضروورياتوپوره كاوه لپاره دا كس زيات مكې ته داخليږي. او په ورځ كښې څو څو ځله تګ راتګ كيداې شى.نوكه په دې كس باندې هرځل داخليدو لپاره د احرام تړل واجب اوګرځولې شى.نو په دې كې ښكاره حرج دې.اوالله تعالى د بندګانو نه حرج پورته كړې دې. ارشاد دې.وَمَا [وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ]

**فَصَارَ كَأَهْلِ مَكَّةَ حَيْثُ يُبَاحُ لَهُمُ الْخُرُوجُ مِنْهَا ثُمَّ دُخُولُهَا بِغَيْرِ إِحْرَامٍ لِحَاجَتِهِمْ** نو شو په څير د اهل مكه په دې سې شان چې جائز دى ددوى لپاره وتل ددې نه او بيا داخليدل بغير احرامه،د امله دحاجت ددوى،

**حل اللغة** ① **يباح، باح يبوح (ن)**: ښكاره كيدل

**تشريح:- نظيره**۞نوچه په ميقات كې دننه اوسيږي.دې په څير دهغه چا شو.چه په مكه كې دننه اوسيږي. نو لكه څنګه چې د مكې خلګو لپاره بغيراحرامه د مكې نه وتل او بيا ورته داخليدل مباح دى.دغه شان چې څوك په ميقات كې دننه اوسيږي.د هغه لپاره هم بغيراحرامه مكې ته داخليدل جائز دى.

**بِخِلَافِ مَا إِذَا قَصَدَ أَدَاءَ النُّسُكِ لِأَنَّهُ يَتَحَقَّقُ أَحْيَانًا فَلَا حَرَجَ** په خلاف ددې صورت چې قصد ئې كړې وى.د ادا كاوه د مناسك ،ځكه چې دا پيښيږي كله كله نو نشته حرج (په واجبولو د احرام كې)

**تشريح:- وجوب الاحرام للميقاتى عند الدخول بقصدالحج اوالعمرة**۞خوكه يو ميقاتى كس د حج يا د عمرې په اراده مكې ته داخليدل غواړي.نودده لپاره احرام تړل واجب دى.ځكه چې په دې اراده باندې تلل خو كله كله وى.اوكله كله احرام تړلو كې حرج نشته.نوځكه په دې اراده مكې ته د داخليدو لپاره احرام تړل واجب كړې شو.

**استدلال صاحب العناية**۞صاحب دعنايه رحمه الله فرمائى.چه اصل دا دې.چه د لرګو راجمع كونكى ته رسول الله ﷺ بغيراحرامه مكې ته د اخليدو اجازت كړې وو.ددې نه معلومه شوه.چه په ميقات كې دننه او دمكې نه بهر وى.نود هغوى لپاره هم د خپلو ضروورياتو پوره كولوپه غرض بغيراحرامه مكې ته داخليدل جائز دى.



## په ميقاتونو باندې د احرام د تقديم حكم

**فَإِنْ قَدَّمَ الْإِحْرَامَ عَلَى هَذِهِ الْمَوَاقِيتِ جَازَ** كه وړاندې ئې كړلو احرام په دې ميقاتونو جائز دې.

**تشريح:- جوازتقديم الاحرام على الميقات**۞مسئله وړاندې بيان شوې ده.چه د آفاقى لپاره ميقات ته په رسيدو احرام تړل واجب دى.ددې دا مطلب هيڅ كله نه دې.چه د ميقات نه وړاندې احرام تړل جائز نه دى.كه يو كس د خپل كور نه احرام اوتړلو.نوجائزده.بلكه غوره ده.

**لِقَوْلِهِ تَعَالَى** ((**وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ**)) د امله د قول د الله تعالى نه **وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ** {**وَإِتْمَامُهُمَا أَنْ يُحْرِمَ بِهِمَا مِنْ دُوَيْرَةِ أَهْلِهِ**، **وَأَتِمُّوا الْحَجَّ**،او اتمام ددې دواړو دا دې.چه احرام اوتړي. ددې دواړو لپاره د كورونو د خپل اهل نه، **كَذَا قَالَهُ عَلِيٌّ وَابْنُ مَسْعُودٍ** رضي الله عنهما داسې وئيلى دى حضرت على او ابن مسعود **وَالْأَفْضَلُ التَّقْدِيمُ عَلَيْهَا** او غوره تقديم دې په دې ميقاتونو باندې

**تشريح:- دليله**۞دليل دا دې.چه دالله تعالى د قول( **وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ**)ګنړ تفسيرونه شوى دى.يو تفسيردا شوې دې.چه د حج اوعمرې لپاره دخپل وطن نه احرام اوتړئ.اوپوره ئې كړئ.هم دا تفسيرد حضرت علىاوعبدالله بن مسعود نه منقول دې.ددې تفسير نه معلومه شوه.چه احرام په ميقاتونو باندې مقدم كول جائز دې.

**وجه تصغيرالدار**۞په دې ځائې كې د (دار) تصغير راوړلو وجه دا ده.چه د بيت الله د عظمت په مقابله كې هر كور وركوټې دې.

**لِأَنَّ إِتْمَامَ الْحَجِّ مُفَسَّرٌ بِهِ وَالْمَشَقَّةُ فِيهِ أَكْثَرُ وَالتَّعْظِيمُ أَوْفَرُ** ځكه چې د اتمام د حج تفسير شوې دې.په دې باندې(چه د كور نه احرام اوتړي) او مشقت په دې كې زيات دې.او تعظيم په كې ډير دې.

**تشريح:- وجوه تقديم الاحرام على المواقيت**۞صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى.چه په ميقاتونو باندې د احرام وړاندې كول افضل دى.① اول خو ددې امله چې په آيت (**وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ**)كې د آيت تفسير په دې سره شوې دې.② بله خبره دا ده.چه د كور نه احرام تړلو كې مشقت زيات دې.اوچه په كوم عبادت كې مشقت زيات وى.هغه افضل وى.لكه چې په حديث كې راغلى دى. ۞[أفضل العبادات أحمضها]۞ عبادت هغه غوره دې.چه په كوم كې مشقت زيات وى.③ دريمه خبره دا ده.چه په دې كې د بيت الله تعظيم ډيرزيات دې.اود حج او عمرې مقصد تعظيم د بيت الله دې.نود احرام په تقديم كې په دې تعظيم كې زياتوالې دې.

**وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ إِنَّمَا يَكُونُ أَفْضَلَ إِذَا كَانَ يَمْلِكُ نَفْسَهُ أَنْ لَا يَقَعَ فِي مَحْظُورٍ** اود ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې.چه افضل دې خو په دې شرط چې مالك وى د نفس خپل چې اخته به نشى په محرماتو د احرام كې

**تشريح:- فضل تقديم الاحرام بشرط الاجتناب عن المحظورات**۞دامام ابوحنيفه رحمه الله نه يوروايت دا هم دې.چه په ميقات باندې د احرام تقديم په هغه صورت كې افضل دې.چه د سړي په خپل نفس باندې قابووى.چه دې به څه ناجائز كار اونكړي.كه دا قابو ئې نه وى.نوبيا ميقات ته په رارسيدو د احرام تړل غوره دى.

## په ميقات كې د ننه خلقو ميقات

**وَمَنْ كَانَ دَاخِلَ الْمِيقَاتِ فَوَقْتُهُ الْحِلُّ** اوڅوك چې وى دننه په ميقات كې نو ميقات دده زمين حل دې، **مَعْنَاهُ الْحِلُّ الَّذِي بَيْنَ الْمَوَاقِيتِ وَبَيْنَ الْحَرَمِ لِأَنَّهُ يَجُوزُ إِحْرَامُهُ مِنْ دُوَيْرَةِ أَهْلِهِ** مراد ددې (زمين)حل دې.هغه چې په مينځ د ميقات او حرم كې دې.ځكه چې جائز دې احرام دده د كورونود خپل اهل نه، **وَمَا وَرَاءَ الْمِيقَاتِ إِلَى الْحَرَمِ مَكَانٌ وَاحِدٌ** اود ميقات نه اخواه ترحرمه پورې يوځائې دې.

**تشريح:- إحرام المكى من الحل**۞مسئله دا ده.چه كوم كس په ميقات كې دننه اوسيدونكې وى.نودده د احرام تړلو ځائې زمين حل (بهردحرم) دې.اود ،حل، نه هغه برخه مراد ده.كومه چې د آفاقى خلګو د ميقاتونو او حرم

په مينځ کې ده.

دليله۞دليل دا دې.چه ورانديې تير شوی دی.چه د حج يا عمرې اراده کونکو لپاره د خپل وطن نه احرام تړل جائز دی.اودده وطن چونکه په ميقات کې دننه دې.نوځکه دده لپاره په ميقات کې دننه يعنی د زمين حل نه احرام تړل دی.اوچونکه دده لپاره د خپل وطن نه احرام تړل جائز وو.ځکه چې په زمين حِل کې اوسيږی.نوچه د کوم ځائې نه ئې خوښه وی.احرام تړلے شی.ځکه چې د ميقات دننه نه واخله تر حرم مکې پورې چې کوم حدود دی.دا واړه يو ځائې دې.

**دمکی د حج او عمرې داحرام ځايونه**

وَمَنْ كَانَ بِمَكَّةَ فَوَقْتُهُ فِي الْحَجِّ الْحَرَمُ وَفِي الْعُمْرَةِ الْحِلُّ اوڅوك چې وی دننه په مکه کې نوميقات د ده په حج کې حرم دې اوپه عمره کې زمين حل دې

تشريح:- **ميقات المکی للحج الحرم وللعمرة الحل** ۞ ①صورت د مسئلې دا دې.چه کوم کس په مکه کې موجود وی.برابره ده که هغه د مکې اوسيدونکې وی.اوکه وختی طور پکې ديره وی .نود حج کاوه په صورت کې د هغه د احرام تړلو ميقات حرم دې.يعنی د حرم په حدودو کې چې د کوم ځائې نه ئې خوښه وی.احرام دې اوتړی.②اوکه د عمرې احرام تړی.نود حرم د حدودو نه دې بهر شی.چه د زمين حل نه دې احرام اوتړی.اود عمرې ارکان دې ادا کړی.

لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَمَرَ أَصْحَابَهُ أَنْ يُحْرِمُوا بِالْحَجِّ مِنْ جَوْفِ مَكَّةَ(١) ځکه چې نبی ﷺ حکم کړې وو صحابؤ ﷺ خپلو ته چې احرام اوتړی د حج لپاره د مکې د مينځ نه،

حل اللغة: ①جوف: دننه برخه

تشريح:- **دليل ميقات الحج**۞دليل دا دې.چه نبی ﷺ د حجة الوداع په موقع صحابه کرامو ﷺ ته فرمائيلی وو.چه په تاسو کې چا ځان سره هدی نه وی راوستے.هغه دې عمره اوکړی.اوحلال دې شی.نوهغوی هم داسې اوکړلو.بيا چې کله د ترويه ورځ شوه.نونبی ﷺ صحابؤ ﷺ ته حکم اوکړلو.چه په مکه کې دننه احرام اوتړی.هغوی ته ئې د مکې نه د وتلو حکم نه وو کړې.ددې نه معلومه شوه.چه کوم کس په مکه کې وی.د هغه لپاره په مکه کې د حج لپاره احرام تړل جائز دی.

وَأَمَرَ أَخَاعَائِشَةَ أَنْ يُعْمِرَهَا مِنَ التَّنْعِيمِ(٢) او حکم ئې کړې وو رور دعائشه ﷺ ته چې عمره اوکړی په هغې باندې د تنعيم نه، وَهُوَفِي الْحِلِّ اودا (تنعيم) په زمين حل کې دې.

تشريح:- **دليل ميقات العمرة**۞بيادې دا خبره ښکاره وی.چه حضرت عائشې ﷺ هم د نورو صحابؤ ﷺ سره د عمرې لپاره احرام تړلې وو.خود هغې د حيض وينه راغله.نو نبی ﷺ ورته حکم اوکړلو.چه د عمرې احرام پرانيزه.بيا چې کله د ترويه ورځ راغله.نو د حج د احرام حکم ئې ورته ورکړلو.بيا چې کله د حج نه فارغ شول.نوحضرت عائشې ﷺ عرض اوکړلو.يا رسول الله ﷺ «تنطلقون بحجة وعمرة وأنطلق بحج فأمر عبدالرحمن بن ابی بکر ﷺ أن يخرج معها إلى التنعيم فاعتمرت بعد الحج» يعنی حضرت عائشې ﷺ عرض اوکړلو.يارسول الله ﷺ تاسو او ستاسو صحابؤ حج اوعمره دواړه اوکړل.او واپس کيږئ. او ما صرف حج اوکړلو.او خم.نو نبی ﷺ د ام المؤمنين ﷺ ارمان پوره کاوه لپاره ددې رور حضرت عبدالرحمن بن ابی بکر ﷺ ته حکم اوکړلو.چه په خور باندې د مقام تنعيم نه عمره ادا کړه.يعنی د عمرې لپاره د مقام تنعيم نه احرام اوتړه.اوتنعيم د حدود

(١) من حديث جابر ﷺ أخرجه مسلم فی الحج رقم ١٣٩ والبخاری فی الحج باب ٨٢ وأحمد فی المسند (٣/٣١٨، ٣٧٨)_

(٢) من حديث عائشة (رض) أخرجه البخاری فی الحج باب ٦٣ ومسلم فی الحج رقم ١٣٢ وأبوداود فی المناسک باب ٢٣ وأحمد فی المسند (٦/١٢٤)_



د حرم نه بهر زمين حل دې.ددې نه معلومه شوه. چې د عمرې لپاره به زمين حل ته ځی.هلته ځخه به احرام تړی.اوبيا به حرم ته داخليږی.اوعمره به کوی.

وَلِأَنَّ أَدَاءَ الْحَجِّ فِي عَرَفَةَ وَهِيَ فِي الْحِلِّ فَيَكُونُ الْإِحْرَامُ مِنَ الْحَرَمِ لِهَذَا اوبله دا چې ادا کول د حج په ډګر عرفات کې وی.اوهغه په حل کې دې.نوشی به احرام د حرم نه، لِيَتَحَقَّقَ نَوْعُ سَفَرٍ، دې لپاره چې ثابت شی يو ډول د سفر وَأَدَاءُ الْعُمْرَةِ فِي الْحَرَمِ فَيَكُونُ الْإِحْرَامُ مِنَ الْحِلِّ او ادا کول د عمرې وی په حرم کې ،نووی به احرام دحل نه،ددې وجې،

تشريح:- **الدليل الثانی العقلی للمسئلتين**۞ دوهم دليل دا دې.چه دحج او عمرې لپاره څه سفرمتحقق کول پکار دی.اوس موږ اوکتل.چه حج په ډګر عرفات کې ادا کيږی.اوميدان عرفات په حل کې دې.نوځکه د حج احرام د حرم نه تړل پکار دی.چه يو ډول سفر متحقق شی.يعنی چې احرام اوتړی.اود حرم نه زمين حل ته تلل متحقق شی.اوچونکه عمره ادا کولای شی په حرم کې ،نو ددې امله د عمرې احرام لپاره دې زمين حل ته لاړ شی.چه يو قسم سفر متحقق شی.

إِلَّا أَنَّ التَّنْعِيمَ أَفْضَلُ لِوُرُودِ الْأَثَرِ بِهِ مګر دومره ده چې تنعيم افضل دې.د امله د واردکيدو د اثر نه په دې کې ،والله اعلم،

تشريح:- **فضل الاحرام من التنعيم**۞هسے خو د عمرې احرام په زمين حل کې چې د کوم ځائې نه ئې خوښه وی.تړلې شی.خو د مقام تنعيم نه د عمرې احرام تړل افضل دی.چه په پوره شان د نبی ﷺ د حديث اتباع اوشی.ځکه چې حضرت عائشې ﷺ ته هم د مقام تنعيم نه د عمرې لپاره د احرام تړلو حکم شوې وو.والله اعلم بالصواب

## باب الإحرام

دا باب د احرام په بيان کې دې.

تشريح:- **معنی الاحرام لغةً واصطلاحاً**۞دمواقيت د ذکر نه روسته دهغه احرام تړلو طريقه بيانوی.کوم چې په ميقاتونو باندې تړلې شی.احرام په لغت کې په حرمت کې داخليدو ته وائی.اوپه اصطلاح دفقهاؤ کې په خپل ځان باندې مباحات حرامول ددې لپاره چې په عبادت د حج يا په عبادت د صلاة کې داخل شی. په عباداتو کې حج او صلاة دواړه داسې عبادتونه دی.چه ددې لپاره تحريم او تحليل دی.اوروژه او زکاة دواړه داسې عبادتونه دی.چه ددې لپاره تحريم او تحليل نشته.

**د احرام تړلو لپاره د غسل يا اودس کول**

وَإِذَا أَرَادَ الْإِحْرَامَ اغْتَسَلَ أَوْ تَوَضَّأَ وَالْغُسْلُ أَفْضَلُ اوکله چې اراده اوکړی.د احرام نو غسل دې اوکړی،يا دې اودس اوکړی.اوغسل افضل دې. لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ اغْتَسَلَ لِإِحْرَامِهِ(١) ځکه روايت شوې دې.چه نبی ﷺ غسل کړې وود احرام خپل دپاره،

تشريح:- **الغسل اوالوضوء قبل الاحرام**۞کله چې يو کس د احرام تړلو اراده اوکړی.نوهغه دې اول غسل اوکړی يا دې اودس اوکړی.خوغسل کول افضل دی.

دليله۞ځکه چې رسول الله ﷺ د احرام لپاره غسل کړې وو.

السوال ۞که څوك دا سوال اوکړی.چه غسل افضل دې.نوبيا بايد ده چې اودس ددې قائم مقام نه وې.حالانکه علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.که غسل نه کوی نو اودس دې اوکړی.

الجواب۞ددې ځواب دا دې.چه د احرام نه وړاندې د غسل کاوه حکم د وجوب د امله نه دې.بلکه د پاکئ حاصلولو لپاره دې.

(١) من حديث زيد بن ثابت ﷺ أخرجه الترمذی فی الحج باب ١٦ رقم ٨٣٠)_

إِلَّا أَنَّهُ لِلتَّنْظِيفِ حَتَّى تُؤْمَرَ بِهِ الْحَائِضُ مګر دومره ده چې دا د لپاره پاکۍ حاصلولو دې.تردې چې حکم به کولای شی په دې باندې حائضه ته، وَإِنْ لَمْ يَقَعْ فَرْضًا عَنْهَا فَيَقُومُ الْوُضُوءُ مَقَامَهُ اګرچه نه واقع کیږی فرض په ده باندې.اودریږی به اودس په مقام ددې، ،كَمَا فِي الْجُمُعَةِ لکه په جمعه کې

تشريح:- تائيده في ضوء المسئلة ۞ هم دا وجه ده.چه د احرام تړلو نه وړاندې د ښځې دحیض یا نفاس وینه راغلې نو هغې ته به هم د غسل حکم کولې شی. اګرچه په دې غسل د ښځې فرض نه ادا کیږی.ځکه چې وینه نه وی ودریدلې.نوددې نه وړاندې داغسل هغه نشی پاکولې.نوچه د احرام نه وړاندې غسل کول د وجوب د امله نه دې.بلکه د پاکۍ حاصلولو لپاره دې.نواودس ددې قائم مقام ګرځیدې شی.لکه په جمعه کې که غسل اونکړی.نواودس ددې قائم مقام ګرځی.

لَكِنَّ الْغُسْلَ أَفْضَلُ ،خو غسل غوره دې.لِأَنَّ مَعْنَى النَّظَافَةِ فِيهِ أَتَمُّ ځکه چې معنی د پاکۍ په دې کې زیاته ده. ،وَلِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ اخْتَارَهُ اوبله دا چې نبی ﷺ غوره کړې دې دا (غسل)

تشريح:- فضل الغسل ودلائله ۞ خوافضل هم غسل کول دی.① اول ددې امله چې په غسل کې د اودس په نسبت نظافت زیات دې.② دوهم ددې امله چې نبی ﷺ پخپله د احرام لپاره غسل کړې وو.

## د احرام لپاره د جامو بدلول

قَالَ (وَلَبِسَ ثَوْبَيْنِ جَدِيدَيْنِ أَوْ غَسِيلَيْنِ إِزَارًا وَرِدَاءً) صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی او وادې غوندی دوې [دوه] جامې نوې یا وینځلې شوې یو لنګ اوبل پټو (څادر)

حل اللغة: ① غسيلين: غسيل په معنی دَ مفسول: وینځلې شوې

تشريح:- لبس ثوبين جديدين او غسيلين ۞ مسئله دا ده.چه دغسل نه روسته دې دوې [دوه] جامې لنګ اوڅادر واچوی.دواړه جامې که نوې وی اوکه وینځلې شوې وی.لنګ به د نامه نه واخله ترلاندې پنډو پورې وی. اوڅادربه داسې وی.چه په شا دواړو اوږو اوسینه باندې و.

، لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ائْتَزَرَ وَارْتَدَى عِنْدَ إِحْرَامِهِ[1] ځکه چې نبی ﷺ لنګ وهلې وو.اوڅادر ئې اچولې وو په وخت د احرام کې ،

تشريح:- دلائله ۞ ① دلیل دا دې.چه نبی ﷺ په احرام کې هم دا دوې [دوه] جامې اچولې وې.

وَلِأَنَّهُ مَمْنُوعٌ عَنْ لُبْسِ الْمَخِيطِ اوبله دا چې دې منع شوې دې د اغوستلو د ګنډلې شوو جامو نه، لَا بُدَّ مِنْ سَتْرِ الْعَوْرَةِ وَدَفْعِ الْحَرِّ وَالْبَرْدِ اوبله دا چې دا ستر د عورت دې،اولرې کول د ګرمۍ اویخنۍ دی. ،وَذَلِكَ فِيمَا عَيَّنَّاهُ اودا (خبره حاصلیږی) په هغه جامو کومې چې موږ معین کړې.

تشريح:- عقلی دلیل دا دې.چه د محرم لپاره ګنډلې شوې جامې اغوستل ممنوع دی.اودا هم معلومه ده.چه د ګرمۍ اویخنۍ لرې کول هم ضروری دی.نودا دواړه خبرې هم په دې صورت کې حاصلیدې شی.کوم چې موږ بیان کړل.ځکه چې لنګ اوڅادر اچولو سره د ګنډلې شوو جامو د اغوستلو نه هم بچ شو. اودګرمۍ اویخنۍ نه هم محفوظ شو.

وَالْجَدِيدُ أَفْضَلُ لِأَنَّهُ أَقْرَبُ إِلَى الطَّهَارَةِ اونوې افضل دی.ځکه چې دا زیات نزدې دی طهارت ته.

تشريح:- افضلية الثوبين الجديدين ۞ صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه وینځلې شوې جامې اګرچه کافی دی.خو نوې جامې اچول افضل دی.ځکه چې دا پاکۍ ته زیاتې نزدې دې.ځکه تراوسه پورې دې ته ظاهری مرداری نه ده لګیدلې.

[1] من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه البخاري فی الحج باب ٢٣)_



## د احرام تړلو لپاره د خوشبو لګول

قَالَ وَمَسَّ طِيبًا إِنْ كَانَ لَهُ صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.او ودې لګوی خوشبوئی که وی دده سره.

حل اللغة: ① مس: باب (ن،س) مس يمس مسا : لاس لګول

تشريح:- المذهبان في التطيب ذات جرم ۞ ① امام قدوری رحمه الله فرمائی.که وی ورسره نو خوشبوئی دې اولګوی وړاندې د احرام نه،

عَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ: أَنَّهُ يُكْرَهُ إِذَا تَطَيَّبَ بِمَا تَبْقَى عَيْنُهُ بَعْدَ الْإِحْرَامِ ،اوداامام محمد رحمه الله نه نقل دی.چه دا مکروه دی. چې داسې خوشبوئی اولګوی.چه پاته پاتې کیږی ذات د هغې روسته د احرام نه، ،وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ وَالشَّافِعِيِّ رَحِمَهُمَا اللَّهُ اوهم دا قول د امام مالك اوامام شافعی رحمهما الله دې. ،لِأَنَّهُ مُنْتَفِعٌ بِالطِّيبِ بَعْدَ الْإِحْرَامِ ځکه چې دې نفع اخستونکې دې په خوشبوئی روسته د احرام نه،

حل اللغة: ① تطيب باب تفعيل: خوشبو لګول

تشريح:- اود امام محمد رحمه الله نه نقل دی.چه د داسې خوشبوئې لګول چې د هغې ذات اوجوثه د احرام نه روسته پاته وی مکروه دی.لکه مشك اوټینګ عطرلګول،هم دا د امام مالك اوامام شافعی رحمهما الله قول دې.

دلیل امام محمد رحمه الله ۞ داامام محمد رحمه الله دلیل دا دې.چه د داسې خوشبوئې لګولو په صورت کې د احرام تړلو نه روسته هم د هغې نه فائده اخستې شی.حالانکه د احرام تړلو نه روسته د خوشبو استعمال منع دې.

،وَجْهُ الْمَشْهُورِ حَدِيثُ {عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ كُنْتُ أُطَيِّبُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِإِحْرَامِهِ قَبْلَ أَنْ يُحْرِمَ[1] او وجه د مشهور روایت حدیث دعائشې رضي الله عنها دې.فرمائی.ووم چې خوشبویه کاوه به مې رسول الله ﷺ د احرام لپاره وړاندې ددې چې احرام به ئې تړلو،

تشريح:- دليل الاحناف رحمهم الله ۞ زمونږدلیل دا دې.چه په صحیحینوکې دی.چه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی.ما به رسول الله ﷺ ته د احرام تړلو لپاره خوشبوئی لګوله.یعنی اول به د نبی ﷺ په بدن پورې خوشبوئی اولګولې شوه.اوبیا به نبی ﷺ احرام اوتړلو.

طريق الاستدلال ۞ صاحب دعنایه رحمه الله لیکلی دی.په حدیث د عائشې رضي الله عنها کې داسې خوشبوئی مراد ده.چه د هغې اثر به د احرام لګولونه روسته هم پاته وو.ځکه چې په بعضې روایاتو کې دا الفاظ هم دی. «ولقد رأيت وبيص الطيب في مفارق رسول الله ﷺ بعد إحرامه» یعنی عائشه رضي الله عنها فرمائی.چه ما به د رسول الله ﷺ د ویختو په لاره کې د خوشبوئی اثر لیدلو.پس د احرام تړلو نه،نو ددې حدیث نه ثابته شوه. چې داحرام نه وړاندې داسې خوشبوئی لګول چې د هغه ذات د احرام نه روسته هم پاته وی.مکروه نه دی

وَالْمَمْنُوعُ عَنْهُ التَّطَيُّبُ بَعْدَ الْإِحْرَامِ اوبله دا چې منع تړې شوې ده.هغه خوشبوئی لګول دی روسته د احرام نه، وَالْبَاقِي كَالتَّابِعِ لَهُ لِاتِّصَالِهِ بِهِ اوپاته په خیر د تابع دې د هغې،د امله د اتصال د هغې په ده پورې،

تشريح:- الدليل الثانى للاحناف رحمهم الله ۞ دوهم دلیل دا دې.چه منع شوې خو د احرام تړلو نه روسته خوشبوئی لګول دی.کومه خوشبوئی چې د احرام نه وړاندې لګیدلې وی.دهغه نه فائده اخستل ممنوع نه دی.اوکومه خوشبوئی چې د احرام نه روسته پاته وی.هغه خو د محرم تابع شوه.ځکه چې هغه د محرم په بدن پورې مولښتې ه وی.لکه چې خوشبودارې کوټ ورپورې لګیدلې وی.بهرحال پاته خوشبوئی تابع ده.اود تابع لپاره څه حکم نه وی.نودا خوشبوئی په منزله د عدم شوه.

[1] من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه البخاري فی الحج باب ١٨ رقم ١٥٣٩ ومسلم فی الحج رقم ٤٥ وابوداود فی المناسک باب ١٠ رقم ١٧٤٤٦ والترمذی فی الحج باب ٧٧ والنسائی فی المناسک باب ٤١ وابن ماجه فی المناسک باب ٧٠)_

بِخِلَافِ الثَّوْبِ لِأَنَّهُ مُبَايِنٌ عَنْهُ په خلاف د جامې ځکه هغه خو جلا کیدونکی دی دده نه،

**حل اللغة:** ① مباين: جدا، ځان له

**تشريح:- وجه كراهة لبس الثوب المخيط** ❁ په خلاف دګنډلو جامو، يعنى چه يو كس د احرام نه وړاندې ګنډلې شوې جامې اغوستې وى. بيا هغه د احرام تړلو نه روسته هم دده په بدن وى. نو دا ممنوع ده. او د اول نه ګنډلې شوې کالى د اغوستلو په مرتبه کې دى. تردې چې په ده به ددې په وجه جزا د جنايت واجب وى. وجه ددې دا ده. چه کالى چونکه د محرم د بدن نه جلا وى. نو ځکه هغه د سرې دبدن تابع نه ده.

## د احرام د دووه رکعتونوحکم

قَالَ: وَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ صاحب د قدورى رَحِمَهُ اللهُ فرمائى. اولمونځ دې اوکړى دوې [دوه] رکعته. لِمَا رَوَى جَابِرٌ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ صَلَّى بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ عِنْدَ إِحْرَامِهِ (١) ځکه چې روايت کړې دې جابر ❁. چه نبى ﷺ لمونځ کړې وو په ذى الحليفه کې دوې [دوه] رکعته په وخت د احرام خپل

**تشريح:- مسئله** دا ده. چه دوې [دوه] رکعته لمونځ دې اوکړى. خو دا دوې [دوه] رکعته به په مکروه وخت کې نه کوى. او که د احرام تړلو نه وړاندې ئې فرض لمونځ اوکړلو. نو هغه به ددې دوو رکعتونو نه کافى شى.

**دليله** ❁ دليل دا دې. چه حضرت جابر ❁ فرمائى. رسول الله ﷺ د ذوالحليفه په مقام د احرام تړلو نه وړاندې دوې [دوه] رکعته نفل کړى وو.

**عدم ذكر الركعتين في حديث جابر** ❁ علامه ابن همام رَحِمَهُ اللهُ فرمائى. چه په حديث د جابر ❁ خو کې دا مشهور دى. چه نبى ﷺ د ذوالحليفه په جمات کې لمونځ کړې وو. خود رکعتونوتعداد ذکر نه دې. هم دا خبره ملاعلى قارى رَحِمَهُ اللهُ په شرح نقايه کې فرمائيلې ده. لکه چې د نبى ﷺ د ذوالحليفه په جمات کې لمونځ کول ثابت دې. خودوې [دوه] رکعته ذکر نه دى.

**ذكرالركعتين في حديث ابن عباس** رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ❁ البته په ابوداود کې د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په حديث کې د دوو رکعتونو ذکر هم شته. د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا الفاظ دا دى. «قال خرج رسول الله حاجاً فلما صلى في مسجد بذى الحليفة ركعتين فأوجب في مجلسه» حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمائى. چه رسول الله د حج په اراده باندې اووتلو. کله چې ئې د ذوالحليفه په جمات کې دوې [دوه] رکعته اوکړل. نوهم په دغه ناسته کې ئې حج واجب کړلو. (يعنى احرام ئې اوتړلو. ددې نه دا ثابته شوه. چه د احرام نه وړاندې دوې [دوه] رکعته کول سنت دى.

**ما يقرأ في ركعتي الاحرام** ❁ په دې دواړه رکعتونو کې ورته د فاتحه لوستلو نه روسته اختيار دې. چه د قرآن پاک کرمه برخه وائى. البته افضل دا دى. چه په اول رکعت کې د سورة فاتحه نه روسته سورة الکافرون او په دوهم رکعت کې د سورة فاتحه نه روسته سورة اخلاص اووائى. په دې طريقه به د نبى ﷺ د فعل برکت حاصل شى.

## د حج د نيت په وخت کې دعا لوستل

قَالَ: وَقَالَ: اَللّٰهُمَّ إِنِّي أُرِيدُ الْحَجَّ فَيَسِّرْهُ لِي وَتَقَبَّلْهُ مِنِّي صاحب د قدورى رَحِمَهُ اللهُ فرمائى. اووائى دې اى الله زه اراده لرم د حج اسان ئې کړې ماته او قبول ئې کړې زما نه

**تشريح:- الدعاء عندالاحرام** ❁ صاحب دقدورى رَحِمَهُ اللهُ فرمائى. چه دوې [دوه] رکعته اوکړى. اوکله د حج د احرام اراده اوکړى. نو دا دعا دې کوى. چه اې الله زه اراده کوم د حج ته ئې آسان کړې ماته او قبول ئې کړې مانه،

---

١) غربه الزيلعى من حديث جابر ❁ فى ذكرعدد الركعات ثم ذكرحديث ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عند مسلم فى الحج باب التلبية) قال كان رسول الله ﷺ يركع بذى الحليفة ركعتين ثم إذا استوت به الناقة قائمة عند مسجد ذى الحليفة أهل بهولاء الكلمات الحديث (نصب الراية (٢٥/٣)_



لِأَنَّ أَدَاءَهَا فِي أَزْمِنَةٍ مُتَفَرِّقَةٍ وَأَمَاكِنَ مُتَبَايِنَةٍ فَلَا يَعْرِي عَنِ الْمَشَقَّةِ عَادَةً فَيَسْأَلُ التَّيْسِيرَ ځکه چې ادا کول ددې په وختونو مختلفواو ځايونوجلا جلا کې دى. نو نه خالى کيږى د مشقت نه عام طور، نو سوال دې کوى دآسانتيا

**حل اللغة:** ① ازمنة: د زمن جمع: وخت ② اماكن دمكان جمع الجمع: ځاى ③ يعرى باب (س): بربنډيدل، خالى کيدل]

**تشريح:- وجه دعاء تسهيل الحج** ❁ د آسانتيا دعا خو ددې امله کوى. چه حج يو عظيم عبادت دې. او په دې کې ډير مشقت دې. مشقت ځکه زيات دې. چه حج په يو وخت کې نه ادا کيږى. بلکه د اتمې ذى الحجه نه واخله تر ديارلسمې ذى الحجه پورې په مختلف وختونوکې ادا کيږى. او په يوځائې کې نه بلکه په مختلفو ځايونو او مقاماتو کې ادا کيږى. کله په ذکر عرفات کې د کولې ؤ آسمان لاندې قيام وى. او کله د صفا مروه په غرونو چکرې لګول وى. شپه په مزدلفه کې تيره شى. نو ورځ د منى په کاڼريچ خوړونو کې تيره شى. کله په ګنړه اوبيړه کې د شيطانانو ويشتل وى اوکله په سخته ګرمئ کې د بيت الله نه طواف وى. هرکله چې په حج کولوکې دومره سختيانې او مشقتونه دى. نو د حج فريضه په آسانتيا او سهولت سره ادا کاوه لپاره دعا کول مستحب دى.

**وجه دعاء قبول الحج** ❁ اود قبوليت دعا دې ځکه کوى. چه دهرعبادت قبليدل ضرورى نه دى. هم دا وجه ده. چه د خانه کعبه د جوړولو په وخت کې حضرت ابراهيم او حضرت اسماعيل عليهما السلام به بار بار دا دعا کوله چې [رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ]

وَفِي الصَّلَاةِ لَمْ يَذْكُرْ مِثْلَ هٰذَا الدُّعَاءِ او په لمانځه کې نه ده ذکر شوې په شير ددې سې دعا لِأَنَّ مُدَّتَهَا يَسِيرَةٌ وَأَدَاءَهَا عَادَةً مُتَيَسِّرٌ ځکه چې ددې وخت کم وى. اوادا کول ددې په عامه توګه آسان وى.

**تشريح:-** البته د فرض مونځونو ادا کاوه په وخت کې داسې دعا منقول نه ده. ځکه چې په عامه توګه د لمونځ ادا کول آسان دى. نوچونکه د لمونځ ادا کول آسان دى. نود آسانتيا دعا کاوه ته څه اړتيا نشته.

## د تلبيه حکم

قَالَ: ثُمَّ يُلَبِّي عَقِيبَ صَلَاتِهِ صاحب د ،قدروى، رَحِمَهُ اللهُ فرمائى. چه بيا دې تلبيه اووائى. پس د لمانځه خپل نه، لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَبَّى فِي دُبُرِ صَلَاتِهِ (١) ځکه چې نبى ﷺ تلبيه وئيلې وه روسته د لمانځه خپل نه،

**تشريح:- الروايتان في ترتيب التلبية** ❁ ① شيخ ابوالحسن قدورى رَحِمَهُ اللهُ فرمائى. چه بيا دې تلبيه اووائى. د حج نيت دې اوکړى. ځکه چې هيڅ عبادت بغير د نيت نه نه صحيح کيږى. ② ملاعلى قارى رَحِمَهُ اللهُ فرمائى. چې غوره دا ده. چه اول د احرام لمونځ اوکړى. بيا دعا اوکړى. بيا دا اووائى. چه ما دحج نيت اوکړلو. اود الله تعالى لپاره مې احرام اوتړلو. اوبيا تلبيه اووائى.

وَإِنْ لَبَّى بَعْدَ مَا اسْتَوَتْ بِهِ رَاحِلَتُهُ جَازَ او که تلبيه ئې اووئيله روسته ددې نه چې برابر شوه په ده باندې سپرلئ د ده، (يعنى په سپرلئ کيناستلو) نو جائز ده. وَلٰكِنَّ الْأَوَّلَ أَفْضَلُ لِمَا رَوَيْنَا خواولنې صورت افضل دې. د هغه حديث د وجې کوم چې موږ روايت کړلو.

**حل اللغة:** ① راحلة: سورلى

**تشريح:- ترجيح القول الاول** ❁ خو زموږ په نيز غوره دا ده. چه د احرام د لمونځ نه روسته دستى تلبيه اووائى. يعنى د لمونځ اوتلبيه په مينځ کې دې په بل شى سره جدائى نه راولى. ځکه رسول الله ﷺ د لمانځه نه

---

١) من حديث ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أخرجه الترمذى فى الحج باب ٩ رقم ٨١٩ والنسائى فى المناسك باب ٥٦)_

روسته تلبيه ونيلې وه.لکه څنګه چې نقل دی چې ﴿فقال ابن عباس رضي الله عنهما لبى دبر صلاته﴾ يعنى ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی.چه نبی ﷺ د لمانځه نه روسته تلبيه اوونيله.اوکه د سپرلۍ حيوان (ځاروي) نيغ اودروی. اوبيا تلبيه اووائی.نو هم جائز ده.خو اول صورت د نبی ﷺ د عمل د امله افضل دې.يعنی د لمانځه نه روسته دستی تلبيه ونيل.

### د حاجی مفرد په تلبيه کې نيت

فَإِنْ كَانَ مُفْرِدًا بِالْحَجِّ اوکه وی په حج خپل کي مفرد نو نيت به کوی په تلبيه خپله کښې دحج يَنْوِي بِتَلْبِيَةِ الْحَجِّ لِأَنَّهُ عِبَادَةٌ وَالْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ ځکه چې حج عبادت دې.اوداعمالودارومدار په نيت دې.

حل اللغة: ① مفرد: حج افرادکونکې

تشريح:- نية المفرد بالحج ﴿مسئله دا ده.که يوکس حاجی مفرد وی.يعنی صرف د حج ادا کاوه اراده ئې وی.د عمرې اراده ئې نه وی.نودې به په خپله تلبيه کي صرف دحج نيت کوی.ځکه چې حج عبادت دې.اود اعمالو اوعباداتوصحت په نيت باندې موقوف دې.

### دتلبيه الفاظ اوپه دې کې کمي زيادت

وَالتَّلْبِيَةُ أَنْ يَقُولَ: اوتلبيه دا ده.چه اووائی، لَبَّيْكَ اللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ، لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ، لَا شَرِيكَ لَكَ حاضر يم اې الله حاضر يم.تا سره څوك شريك نشته.حاضر يم بيشکه حمد اونعمت ستا لپاره دې.اوبادشاهی هم ستا لپاره ده.نشته څوك شريك ستا، وَقَوْلُهُ إِنَّ الْحَمْدَ بِكَسْرِ الْأَلِفِ لَا بِفَتْحِهَا اوينا د ماتن چې (إنّ الحمد) په کسره د الف سره دې په فتحه سره نه دې. اِبْتِدَاءً لَا بِنَاءً چې شی ابتداء نه بناء لِيَكُونَ إِذِ الْفَتْحَةُ صِفَةٌ الْأُولٰى ځکه چې فتحه صفت اولی دې

تشريح:- الفاظ التلبية واعراب كلمة ان ﴿د مسنون تلبيه الفاظ دا دی. ﴿لبيك اللهم لبيك لبيك لا شريك لك لبيك إن الحمد والنعمة لك والملك لا شريك لك﴾صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چه په ﴿إن الحمد﴾ کي په الف باندې کسره ده فتحه نه ده.ځکه چې د کسره په صورت کي به دا جمله مستقله شی.د ما قبل سره به ئې څه تعلق نه وی.اود فتحه په صورت کي به دا د لومړنی کلمې صفت شی.

وَهُوَ إِجَابَةٌ لِدُعَاءِ الْخَلِيلِ صَلَوَاتُ اللّٰهِ عَلَيْهِ او هغه قبول والې د دعاء د خليل عليه السلام دې. عَلَى مَا هُوَ الْمَعْرُوفُ فِي الْقِصَّةِ کومه چې مشهوره ده په قصه کې

تشريح:- نداء ابراهيم عليه السلام لحج البيت ﴿صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چه تلبيه د حضرت ابراهيم عليه السلام د نداء د قبوليت ځواب دې.مشهوره واقعه ده.چه کله حضرت ابراهيم عليه السلام د خانه کعبه د جوړولو نه فارغ شو.نوالله تعالی ورته حکم اوکړلو.چه دحج اعلان اوکړه.ابراهيم عليه السلام عرض اوکړلو.اې زما معبوده زما آواز به څنګه (ټولو خلګ وته) اورسی.الله تعالی ورته اوفرمائيل.ته آواز اوکړه.آواز رسول زما کار دې.حضرت ابراهيم عليه السلام عرض اوکړلو.اې ربه زه څه آواز اوکړم.الله تعالی اوفرمائيل.دا اووايه. ﴿يا أيها الناس كتب عليكم الحج فحجوا البيت العتيق﴾ اې خلګو په تاسو باندې حج د بيت الله فرض شو.حج اوکړئ د کور پخوانی، د حضرت ابراهيم عليه السلام د خولې نه دا الفاظ وتل وو.چه دا آواز زمکې او آسمان په مينځ کي چې څومره انسانان وو.ټولو ته اورسيدلو.تردې چې دپلارانو په شاګانو او د مياندو په رحمونو کي چې څوك وو. هغوی ته دا آواز اورسيدلو.چا يوځل ځواب ورکړلو.چا دوې [دوه] ځله اوچا ددې نه زيات،نو چا چې څو ځله ځواب ورکړې وی.هغه ته به انشاءالله دهغه هومره حج کاوه سعادت ملاويږی.(الله دې اوکړی.چه زما شمار هم په دې کسانو کي شوې وی. آمين)د قرآن پاك په دې آيت کي هم دا واقعه ذکر ده وَإِذْ [وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَاهِيمَ مَكَانَ الْبَيْتِ أَنْ لَا



تُشْرِكْ بِي شَيْئًا وَطَهِّرْ بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْقَائِمِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ ۝ وَأَذِّنْ فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ مِنْ كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ ۝] اوکله چې مونږ برابر کړلو.ابراهيم عليه السلام ته ځائې د ددې کور،چه مه شريکوه ما سره هيڅ شی اوپاك کړه کور زما لپاره د طواف کونکو،اوقيام کونکواورکوع او سجده کونکو،اواعلان اوکړه په خلګو کي د حج چې راځی ستا اړخ ته پيدل اوپه هرکمزوری مانده اوښه د لرې لارو نه.(ژباړه شيخ الهند)

وَلَا يَنْبَغِي أَنْ يُخِلَّ بِشَيْءٍ مِنْ هٰذِهِ الْكَلِمَاتِ او مناسب نه دی چې کمې اوکړی د څه شی په دې کلماتو کي ، لِأَنَّهُ هُوَ الْمَنْقُولُ بِاتِّفَاقِ الرُّوَاةِ فَلَا يَنْقُصُ عَنْهُ ځکه چې دا منقول ده په اتفاق د راويانو سره نه به شی کولې کمې د دې نه،

تشريح:- كراهة النقصان في كلمات التلبية ﴿فاضل مصنف رحمه الله فرمائی.چه د تلبيه په نقل شوو الفاظو کي به کمې نه کوی.ځکه چې دا الفاظ د ټولو راويانو په اتفاق سره نقل شوی دی.نوځکه په دې کي کمې کول مناسب نه دی.

وَلَوْ زَادَ فِيهَا جَازَ اوکه زياتې ئې اوکړلو.نوجائز دې. خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ خلاف ثابت دې د امام شافعی فِي رِوَايَةِ الرَّبِيعِ رَحِمَهُ اللّٰهُ عَنْهُ په روايت د ربيع رحمه الله کي د هغوی نه،

تشريح:- المذهبان في ازدياد كلمات التلبية ﴿① اوکه څه کلمات ئې زياتی کړل.نوجائز دی.② خوپه دې کي د امام شافعی رحمه الله خلاف دې.په هغه روايت کي کوم چې ربيع رحمه الله د هغوی نه نقل کړې دې.چه د تلبيه په الفاظو کي زيادت کول جائز نه دې.

هُوَ اعْتَبَرَهُ بِالْأَذَانِ وَالتَّشَهُّدِ مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ ذِكْرٌ مَنْظُومٌ هغوی قياس کړې دې ددې (تلبيه) په اذان اوتشهد باندې په دې حيثيت چې دا ذکر منظوم دې.

حل اللغة: ① منظوم: منظوم کلام د نثرضد

تشريح:- دليل الشافعی رحمه الله ﴿امام شافعی رحمه الله تلبيه په اذان او تشهد باندې قياس کوی.يعنی لکه څنګه چې د اذان اوتشهد په کلماتو کي کمې زياتې اوبدلون جائز نه دې.نودغه ډول د تلبيه په الفاظو کي هم کمې زياتې جائزنه دې.اوعلت مشترکه په دې دواړوکي دا دې.چه لکه څنګه اذان او تشهد په مخصوص کلماتو کي مرتب دې.دغه ډول د تلبيه کلمات په خاص ترتيب سره مرتب دی.

وَلَنَا أَنَّ أَجِلَّاءَ الصَّحَابَةِ كَابْنِ مَسْعُودٍ وَابْنِ عُمَرَ وَأَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُمْ زَادُوا عَلَى الْمَأْثُورِ اوزمونږ دليل دا دې.چه جليل القدرصحابو رضي الله عنهم لکه ابن مسعود ابن عمراو ابوهريره رضي الله عنه زيادت کړې وو په دې باندې،

تشريح:- دليل الاحناف رحمهم الله ﴿زمونږ دليل دا دې.چه جليل القدرصحابو رضي الله عنهم لکه عبدالله بن مسعود،عبدالله بن عمراوابوهريره رضي الله عنه د تلبيه په الفاظو باندې زيادت کړې دې.دابن عمر رضي الله عنهما په حديث کي ددې الفاظو زيادت منقول دې. ﴿لبيك وسعديك والخير بيديك والرغباء إليك﴾ دابن مسعود رضي الله عنه په حديث کي دا الفاظ زياتی دی. ﴿لبيك عدد التراب﴾ او د ابوهريره رضي الله عنه په حديث کي د ﴿إله الحق لبيك﴾ الفاظ راغلی دی.بهرحال د تلبيه په ذکرشوو الفاظو باندې زيادت منقول دې.

وَلِأَنَّ الْمَقْصُودَ الثَّنَاءُ وَإِظْهَارُ الْعُبُودِيَّةِ فَلَا يُمْنَعُ مِنَ الزِّيَادَةِ عَلَيْهِ اوبله دا چې مقصود ثناء اود معبوديت اظهار دې.نونه به شی منع کولې د زيادت نه په دې باندې

تشريح:- دوهم دليل دادې.چه د تلبيه مقصود د الله تعالی ثناء اودخپلې بندګئ اظهار دې.نوپه کلماتو کي زيادت ددې مقصود نه مانع نه دې. بلکه په دې مقصد کي يو ډول زيادت دې.

### د تلبيه په وئيلو سره محرم کرځيدل

قَالَ وَإِذَا لَبّٰى فَقَدْ أَحْرَمَ صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.اوکله چې تلبيه اووائی.نويقيناً دې محرم شو. يَعْنِي

إِذَا نَوٰى لِأَنَّ الْعِبَادَةَ لَا تَتَأَدّٰى إِلَّا بِالنِّيَّةِ يعنی چې نيت اوکړی .ځکه چې عبادت نه ادا کيږی .مګرپه نيت سره،

**تشریح:- التلبية والنية شرطان للاحرام**۞مسئله دا ده.چه کوم کس د احرام تړلو اراده اوکړله.چه ده نيت اوکړلو.اوتلبيه ئې اووئيله.نو دی محرم شو.صرف په تلبيه بغير د نيته، دغه ډول صرف په نيت بغيرد تلبيه نه محرم نه ګرځی.بلکه د محرم کيدو لپاره نيت او تلبيه دواړه ضروری دی.ځکه چې هيڅ عبادت د نيت نه بغير نه ادا کيږی.

إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْهَا لِتَقْدِيمِ الْإِشَارَةِ إِلَيْهَا فِي قَوْلِهِ "اَللّٰهُمَّ إِنِّي أُرِيدُ الْحَجَّ" دومره ده چې دوی(صاحب د قدوری) ذکر نکړلو دا نيت،د امله د وړاندې اشارې کاوه نه دې اړخ ته په وينا دده کې چې ،اې الله زه راده کوم د حج.

**تشریح:- سبب ترک القدوری رحمه الله للنية**۞ پاتې شوه دا خبره چې په دې مقام کې امام قدوری رحمه الله د نيت ذکر ولې اونکړلو.نو ددې ځواب دا دې.چه چونکه وړاندې د نيت شرطيت ته ددې قول په ضمن کې اشاره شوې وه.چه «انی ارید الحج»نوځکه د دوباره ذکر کاوه څه اړتيا نشته.د دوهم ځيزذکر په راروان عبارت کې راځی.

**بغيرد نيت د الفاظو د تلبيه حکم**

وَلَا يَصِيرُ شَارِعًا فِي الْإِحْرَامِ بِمُجَرَّدِ النِّيَّةِ مَا لَمْ يَأْتِ بِالتَّلْبِيَةِ اونه ګرځی پيل کونکې په احرام کې صرف په نيت سره ترڅو چې ئې راتګ نه وی کړې په تلبيه باندې خِلَافًا لِلشَّافِعِي رَحِمَهُ اللهُ خلاف ثابت دې د امام شافعی رحمه الله

**تشریح:- المذهبان في حكم النية بغيرالتلبية**۞په دې عبارت کې د دوېمې خبرې ذکر دې.يعنی بغير دتلبيه نه صرف په نيت کاوه سره محرم نه ګرځی.بلکه د نيت سره د تلبيه ذکر هم ضروری دې.② حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه صرف په نيت کولوسره محرم ګرځی.که نيت ئې کړې وی اوکه نه وی.اوهم دا د امام مالک او امام احمد رحمه الله عليه قول دې.

**Ⓐدليل الشافعی**۞امام شافعی رحمه الله حج په روژه باندې قياس کوی.يعنی لکه څنګه چې روژه د څه ممنوعاتو نه د منع کيدو نوم دې.دغه ډول حج هم د «کف عن المحظورات» نوم دې.اود روژې پيل کاوه لپاره صرف نيت کافی دې.دغه ډول د حج لپاره هم صرف نيت کافی دې.تلبيه وئيل ضروری نه دی.

**قياس الحج على الصلاة**۞خواحناف رحمهم الله حج په لمونځ باندې قياس کوی.لکه څنګه چې په لمانځه کې مونځګذار په ځان باندې د څه افعالو (مثلاً قيام، رکوع، سجده وغيره) التزام کوی.دغه ډول په حج کې دافعالو التزام کوی.مثلاً طواف سعی ،وقوف عرفه، رمی د جماراو قربانۍ وغيره،اوپاتې شو د ممنوعاتو نه منع کيدل نو دا يو ضمنی شی دې.اودلمانځه دشروع کاوه لپاره صرف نيت کافی نه دې.بلکه داسې ذکر ضروری دې.چه په هغې د لمونځ پيل صحيح شی.نودغه ډول د حج لپاره هم صرف نيت کافی نه دې.بلکه داسې شی ضروری دې.چه په هغې پيل صحيح شی.که تلبيه وی.اوکه د تلبيه قائم مقام وی.بهرحال زموږ په نيزد محرم ګرځيدو لپاره د نيت سره تلبيه ضروری ده.

لِأَنَّهُ عَقْدٌ عَلَى الْأَدَاءِ فَلَا بُدَّ مِنْ ذِكْرٍ ځکه چې احرام يو عقد دې په ادا باندې،نونشته مخلص د ذکرکولودې نه، كَمَا فِي تَحْرِيمَةِ الصَّلَاةِ لکه څنګه چې په تحريمه دلمانځه کې دی. وَيَصِيرُ شَارِعًا بِذِكْرٍ يُقْصَدُ بِهِ التَّعْظِيمُ اوګرځی پيل کونکې په دې سې ذکر چې قصد کولای شی په هغې باندې تعظيم. ،سِوَى التَّلْبِيَةِ فَارِسِيَّةً كَانَتْ أَوْ عَرَبِيَّةً، هٰذَا هُوَ الْمَشْهُورُ عَنْ أَصْحَابِنَا رَحِمَهُمُ اللهُ رحمهم الله برابره ده تلبيه که په فارسۍ کې وی اوکه په عربۍ کې ،هم دا مشهوره ده زموږ دعالمانو نه،

**تشریح:- دليل الاحناف**۞ اودليل دا دې.چه احرام د داسې عبادت په ادا کاوه باندې تړلې شوې دې.چه په هغې کې مختلف ارکان دی.اوچه کوم عبادت داسې وی.نود هغې د پيل کاوه لپاره داسې ذکر ضروری دې.چه د هغې نه تعظيم مقصود وی.که هغه تلبيه وی اوکه د تلبيه نه علاوه بل څه وی.که په عربۍ کې وی اوکه په



فارسۍ کې وی.زموږ دمشائخو رحمهم الله مشهور مذهب دا دې.

وَالْفَرْقُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الصَّلَاةِ عَلَى أَصْلِهِمَا اوفرق په مينځ ددې(حج)او په مينځ د لمانځه کې په اصل ددوی(صاحبينو رحمهما الله) باندې دادې. أَنَّ بَابَ الْحَجِّ أَوْسَعُ مِنْ بَابِ الصَّلَاةِ چې باب د حج فراخه دې د باب د لمانځه نه، حَتّٰى يُقَامَ غَيْرُ الذِّكْرِ مَقَامَ الذِّكْرِ تردې چې اودرولې شی غير ذکر په ځاني د ذکر، كَتَقْلِيدِ الْبُدْنِ فَكَذَا غَيْرُ التَّلْبِيَةِ وَغَيْرُ الْعَرَبِيَّةِ لکه د بدنه په غاړه کې غاړکۍ اچول،نودغه ډول د تلبيه اود عربۍ نه علاوه شو.

**تشریح:- الفرق بين الحج والصلاة في حق الشروع بغيرالتلبية**۞په «والفرق بينه وبين الصلاة إلخ» سره دصاحبينو رحمهما الله په اصل باندې د حج اولمانځه په مينځ کې توپير بيانول مقصود دی.اوددې اړتيا د دې امله پيښ شو.چه امام ابويوسف رحمه الله عليه په لمانځه کې پيل د تکبير د لفظ سره خاص کړې ده. او امام محمد رحمه الله په لمانځه کې پيل د عربۍ ژبې سره خاص کړې ده.اود حج پيل کاوه لپاره نه د تلبيه تخصيص شته او نه د عربۍ ژبه،بلکه داسې ذکر ضروری دې.چه دهغې نه تعظيم مقصود وی.که تلبيه وی اوکه بل څه وی که په عربۍ ژبه کې وی اوکه په بله ژبه کې وی.نوپه حج او لمونځ کې وجه د توپير دا ده.چه د حج بنا (بنياد) په وسعت او آسانتيا باندې دې.تردې چې غيرذکر هم په حج کې د ذکر قائم مقام ګرځی.تردې که په حج کې ،بدنه، ته غاړکۍ واچوی.اود حج د ارادې سره هغې سره متوجه شی. نومحرم شو.اګرچه په ژبه تلبيه اونه وائی.او هرکله چې هغه شی چې ذکر نه وی.د تلبيه قائم مقام ګرځی. نو د تلبيه نه سوې چې بل هريو ذکر وی.هغه خو به په طريقه اولی سره د تلبيه قائم مقام ګرځی.

**Ⓑجوازالتلبية بغيرالعربية**۞اوکه تلبيه دعربۍ نه سوې په بله ژبه کې اووائی.نوهم کافی ده.اوچونکه په لمانځه کې دا وسعت نشته،نوځکه د تکبير وئيل ضروری دی.لکه څنګه چې دابويوسف رحمه الله مذهب دې.اوعربی ضروری ده.لکه څنګه چې امام محمد رحمه الله فرمائی.

**ممنوعات د احرام**

قَالَ وَيَتَّقِي مَا نَهَى اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ مِنَ الرَّفَثِ وَالْفُسُوقِ وَالْجِدَالِ فرمائی.اوځان به ساتی دهغه څه نه چې منع کړی دی الله تعالی د رفث،فسوق اوجدال نه،

**تشریح:- ممنوعات الاحرام**۞مسئله دا ده.چه احرام اوتړی.نود هغه خبرو نه دې پرهيزکوی.دکومو نه چې الله تعالی منع کړې ده.لکه رفث فسوق اوجدال،

وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ تَعَالٰى او اصل په دې کې قول د الله تعالی دې [فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ] چې نه به وی رفث اونه فسوق او جګړه په حج کې ،[فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ] فَهٰذَا نَهْيٌ بِصِيغَةِ النَّفْيِ نودا نهی ده په صيغه د نفی،

**تشریح:-** ځکه چې د الله تعالی ارشاد دې. [فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ] يعنی چا چې د حج په ورځوکې په ځان باندې حج فرض کړلو.نوهغه دې نه رفث کوی.اونه دې د فسوق ارتکاب کوی.اونه دې جګړه کوی.صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چه په آيت کې صيغه د نفی ده.خو مراد ترې نهی ده.يعنی دا کارونه مه کوئ.

وَالرَّفَثُ الْجِمَاعُ أَوِ الْكَلَامُ الْفَاحِشُ، أَوْ ذِكْرُ الْجِمَاعِ بِحَضْرَةِ النِّسَاءِ اورفث جماع يا کلام فحش دې.اوذکر د جماع په حضور د زنانوکې دې.

**تشریح:- الاقوال الثلاثة في المراد من الرفث**۞پاتې شوه دا خبره چې په آيت کې د درې کارونو نه څه مراد

دی.①نوفرمائی چې د ،رفث، نه مراد یا خوجماع ده.ځکه چې د الله تعالی په قول[أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَائِكُمْ] کې د ،رفث، نه مراد جماع ده.یعنی د روژې په شپو کې ستاسو لپاره د خپلو بیبیانو سره جماع حلال کړې شو.②یا د ،رفث، نه مراد د ژبې ګنده اوفضول خبرې دی.③د ښځو په موجودګۍ کې دجماع اود هغه څیزونو خبرې کول دی.کوم چې د جماع اسباب وی.

| وَالْفُسُوقُ الْمَعَاصِي اوفسوق ګناهونه دی. وَهُوَ فِي حَالِ الْإِحْرَامِ أَشَدُّ حُرْمَةً او دا په حالت داحرام کې زیات حرام دی، وَالْجِدَالُ أَنْ يُجَادِلَ رَفِيقَهُ، وَقِيلَ: مُجَادَلَةُ الْمُشْرِكِينَ فِي تَقْدِيمِ وَقْتِ الْحَجِّ وَتَأْخِيرِهِ اوجدال دا دې.چه جګړه کول د خپل انډیوالان سره،اووئیلی شوی دی.چه د حج د وخت په تقدیم اوتاخیر کې د مشرکانو سره جګړه کول مراد دی. |
|---|

تشریح:- المرادمن الفسوق◉اود فسوق نه مراد مطلق ګناهونه اومعاصی دی.ګناهونه اګرچه په ټولو حالاتو کې حرام دی.خود احرام په حالت کې سخت حرام دی.لکه د سړو لپاره د ریښمو جامې اغوستل په عامو حالاتو کې هم حرامې دی.خود لمانځه په حالت کې زیاتې حرامې دی.

القولان في المراد من الجدال◉اوجدال دا دې.چه دخپل انډیوالان یا خادم سره جګړه اوکړی.②اویا چا وئیلی دی.چه د جدال نه مراد دا دې.چه د مشرکانو سره د حج د وخت په تقدیم اوتاخیر کې جګړه اوکړی.

| وَلَا يَقْتُلُ صَيْدًا) لِقَوْلِهِ تَعَالَى لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ اونه دې قتلوی ښکار د قول دالله تعالی د وجې ﴿لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ﴾ چې تاسو مه قتلوئ ښکار(چه ئې تاسو محرم)په دې سې حال کې چې تاسو په احرام کې ئې. |
|---|

تشریح:- په حالت د احرام کې د وحشي ځناور قتلول هم حرام دی.که قتل په ذبح سره وی اوکه په بله طریقه وی.البته د اوبو ځناورو ښکار جائز دې.ځکه چې الله تعالی فرمائیلی دی.﴿لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ﴾ یعنی هیڅ یوښکار مه قتلوئ.په دې سې حال کې چې تاسو په حالت داحرام کې ئې.اود وچې د ځناورو د ښکار قید ئې ددې امله لګولې دې.چه د الله تعالی ارشاد دې. [وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا] کې د دې صراحت موجود دې.یعنی په تاسو باندې د وچې د ځناور ښکار حرام دې.ترڅوچه تاسو په حالت د احرام کې ئې.

## ښکار طرف ته اشاره اوخودنه

| وَلَا يُشِيرُ إِلَيْهِ وَلَا يَدُلُّ عَلَيْهِ اونه به اشاره کوی دې ته اونه به خودنه کوی. |
|---|

حل اللغة:①اشرتم: اشار یشیر: اشاره کول ②دللتم،دل یدل (ن): لاخودنه کول

تشریح:- حرمة الاشارة والدلالة الى الصید◉مسئله داده.چه محرم لپاره نه ښکارته اشاره جائز نه ده.اونه په هغې دلالت کول.اشاره تقاضا کوی چې ښکار مخکې موجود وی.اودلالت تقاضا کوی چې ښکار مخکې موجود نه وی.ددلالت مثال به دا وی.چه محرم غیرمحرم ته اووائی.چه په فلانی ځائې کې ښکار موجود دې.نودا دواړه خبرې د محرم لپاره ممنوع دی.

| لِحَدِيثِ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ {أَنَّهُ أَصَابَ حِمَارَ وَحْشٍ وَهُوَ حَلَالٌ خرښکار کړلو.په دې سې حال کې چې دې حلال وو. وَأَصْحَابُهُ مُحْرِمُونَ اوددہ انډیوالان په احرام کې وو. فَقَالَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِأَصْحَابِهِ:نونبی ﷺ خپلو صحابوؓ ته اوفرمائیل. هَلْ أَشَرْتُمْ؟ هَلْ دَلَلْتُمْ؟ هَلْ أَعَنْتُمْ؟آیا تاسو ورته اشاره کړې ده؟ آیا تاسو ورته خودنه کړې ده؟آیا تاسوورسره کومک کړې دې؟، فَقَالُوا: لَا، فَقَالَ: إِذًا فَكُلُوا (١) صحابوؓ عرض اوکړلو نه،نونبی ﷺ اوفرمائیل.چه داسې ده نوخوراک کوئ. |
|---|

---

١) من حدیث أبی قتادة ؓ أخرجه البخاری فی الحج باب ٦١ ومسلم فی الحج رقم ٦٠ والترمذی فی الحج باب ٤٠ رقم ٨٤٧



حل اللغة:①اعنتم، اعان یعین: اعانت کول امداد کول

تشریح:- دلائل الحرمة◉ددې دلیل دا دې.چه حضرت ابوقتادهؓ یوځل ځنګلی خر ښکار کړلو.دې په خپله غیرمحرم وو.خو انډیوالان ئې محرم وو.هغوی د دې خرغوښه اوخوړله.بیا نبی ﷺ ته ددې خبر ورکړې شو.نونبی ﷺ صحابوؓ ته اوفرمائیل.آیاتاسوښکارته اشاره کړې وه.هغوی عرض اوکړلو نه، نبی ﷺ ورته اوفرمائیل.تاسو ورته خودنه کړې وه.هغوی عرض اوکړلو نه،نبی ﷺ ورته اوفرمائیل.آیا تاسو ورسره بل څه کومک کړې وو؟هغوی عرض اوکړلونه،نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل. اوس په خوراک کې څه باک نشته.بلکه کومه غوښه چې پاتې ده.دا هم اوخورئ.ددې حدیث نه معلومه شوه.چه د محرم لپاره اشاره،خودنه او هر قسم کومک کول ممنوع دی.

| وَلِأَنَّهُ إِزَالَةُ الْأَمْنِ عَنِ الصَّيْدِ اوبله دا چې دا(اشاره او دلالت) زائله کول د امن دی دښکار نه لِأَنَّهُ آمِنٌ بِتَوَحُّشِهِ وَبُعْدِهِ عَنِ الْأَعْيُنِ ځکه چې دې (ښکاری ځناور) په امن کې د امله د توحش خپل نه اود امله د لرې والی دده د سترګو (د خلګ ونه) |
|---|

تشریح:- دوهم دلیل دا دې.چه دښکارځناور د خپل نفرت اود خلګو د نظرونو نه د لرې والی په وجه په امن کې وی.اوذکر شوی شیان (څیزونه ) اشاره وغیره دا امن زائله کوی.حالانکه د چا امن ختمول حرام دی.نودا ذکر شوی شیان (څیزونه ) ځکه حرام دی.

## په حالت د احرام کې د ملبوساتوممانعت

| قَالَ وَلَا يَلْبَسُ قَمِيصًا وَلَا سَرَاوِيلَ وَلَا عِمَامَةً وَلَا خُفَّيْنِ فرمائی.اونه به اغوندی قمیص اونه پاېکالی (پرتوګ) اونه لنګوټه (پټکې)اونه موزې، إِلَّا أَنْ لَا يَجِدَ نَعْلَيْنِ فَيَقْطَعُهُمَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ البته دا چې نه مومی پنړې نو کټ دې کړی دا لاندې د کعبینو(د قدم د مینځ هډوکی) نه، |
|---|

حل اللغة:①یلبس لبساً (س): کپړې اغوستل ②سراویل: پاجامه

تشریح:- حرمة لبس المخیط من الثیاب◉مسئله دا ده.چه د محرم لپاره ګنډلې شوې کالی اغوستل جائز نه ده.مثلاً قمیص، لنګ، پټکې، اوموزه وغیره،البته دا چې محرم سره پنړې نه وی.نوده لپاره ددې سې موزو اچول جائز دی.چه د هغې د کعبینو نه لاندې برخه کټ شوې وی.اودکعب نه مراد ګیټې نه ده. بلکه د قدم د مینځ هډوکې مراد دې.

| لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {نَهَى أَنْ يَلْبَسَ الْمُحْرِمُ هَذِهِ الْأَشْيَاءَ ددې امله چې روایت شوې دې.چه نبی ﷺ منع کړې ده ددې څیزونو نه. وَقَالَ فِي آخِرِهِ {وَلَا خُفَّيْنِ إِلَّا أَنْ لَا يَجِدَ نَعْلَيْنِ وویل ئې دی په آخرد هغې کې چې نه (به اغوندی)موزې مګردا چې نه مومی پنړې فَلْيَقْطَعْهُمَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ ()نوکټ دې کړی دا دواړه لاندې د کعب نه، |
|---|

تشریح:- دلیله◉ دلیل دادې. ①عن ابن عمر رضي الله عنهما قال رجل یارسول الله ﷺ ماتأمرنا أن نلبس من الثیاب في الإحرام قالﷺ لاتلبسوا القمص ولا السراویلات ولا العمائم ولا البرانس ولا الحفاف إلا أن یکون أحد لیس له نعلان فلیلبس الخفین ولیقطع

---

والنسائی فی الحج باب ١٦٠ رقم ٢٦٥٠ وأبوداود فی الحج رقم ١٨٥٢ وابن ماجه فی الحج رقم ٣٠٩٣ والدارمی فی المناسک باب ٣٠)

١) من حدیث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه البخاری فی الحج باب ٢١ ومسلم فی الحج رقم ١ وابوداود فی الحج باب ٣١ رقم ١٨٢٣ والترمذی فی الحج رقم ٨٣٣ والنسائی فی المناسک رقم ٢٤٩٩ وابن ماجه فی الحج باب ١٩ رقم ٢٩٢٩ وأحمد فی المسند (٢٩/٢) والدارمی فی المناسک باب ٩)_

الخفين أسفل من الكعبين ولا تلبسوا شيأ مسه زعفران ولا ورس» يعنى ابن عمر رضي الله عنهما فرمائى. چه يو سړي عرض اوكړو. اې دالله پيغمبره! تاسومونږ ته څه حكم كوئ. چه مونږ ئې اغوندو د جامو نه چې مونږ په احرام كې يو. نونبى ﷺ ووئيل تاسو مه اغوندئ قميصونه اونه پرتوګونه اونه لنګوټې اونه شړئ اونه موزې مګر دا چې وي يوكس چې نه وي د ده سره دوې [دوه] پڼې نو وادې چوى موزې اوكټ دې كړي موزې لاندې د كعبينو نه، اوتاسو مه اچوئ هغه شى چې رسيدلے وي ورته زعفران اونه ګل ورس. (دا يو ډول ګياه ده. چه د رنګ كاوه په كار راځى) د دېحديث نه معلومه شوه. چه د محرم لپاره د هغه جامو اچول ممنوع دى. كوم چې په متن كې ذكر دى. اوپه مخصوص حالت كې دخاص ډول موزو اچول جائز دى.

| |
|---|
| وَالْكَعْبُ هُنَا الْمِفْصَلُ الَّذِي فِي وَسَطِ الْقَدَمِ عِنْدَ مَعْقِدِ الشِّرَاكِ اود كعب نه مراد په دې ځائې كې هغه جوړ دې چې په مينځ د قدم كې وى، د ځائې د تړلو د تسمې سره دُونَ النَّاتِئِ فِيمَا رَوَى هِشَامٌ عَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ نه ده راوتلى هډوكى په هغه روايت كې چې نقل كړې دې هشام د امام محمد رحمه الله نه |
| **حل اللغة*** ① **مفصل:** جوړ ② **معقد:** دتړلو ځائ |

**تشريح:- المراد من الكعب في باب الاحرام**﴿ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى. چه د كعب دوې [دوه] تفسيرونه شوى دى. ① ګيټه يعنى د قدم دواړوطرفونو ته راوچت شوى هډوكى ② دقدم په مينځ كې دتسمې تړلو ځائې چرته چې دګوتو هډوكى راجمع كيږى. هشام دامام محمد رحمه الله نه هم دا روايت كړى دى. نودلته د كعب دوهم تفسير مراد دې. اوپه كتاب الطهارة كې په «أرجلكم إلى الكعبين» كې اولنے تفسيرمراد دې.

### دمحرم لپاره د سر اومخ پټول

| | |
|---|---|
| قَالَ وَلَا يُغَطِّي وَجْهَهُ وَلَا رَأْسَهُ | اونه دې پټوى مخ خپل اونه سر خپل |
| **حل اللغة*** ① **يغطى، تغطية:** پواړه | |

**تشريح:- المذهبان في تغطية وجه الرجل**﴿ ① دمحرم سړي لپاره خپل مخ اوسر پواړه جائز نه دى.

| |
|---|
| وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى: يَجُوزُ لِلرَّجُلِ تَغْطِيَةُ الْوَجْهِ لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او فرمائى شافعى رحمه الله جائز دى لپاره دسړي پواړه د مخ خپل د امله د قول د نبى ﷺ نه، {إِحْرَامُ الرَّجُلِ فِي رَأْسِهِ وَإِحْرَامُ الْمَرْأَةِ فِي وَجْهِهَا} (١) چې احرام د سړي په سر د ده كې دې اواحرام د ښځې په مخ دده كې دې. |

**تشريح:-** اوامام شافعى رحمه الله فرمائى. چه د محرم سړي لپاره د خپل مخ پواړه جائز دى. هم دا د امام مالك اوامام احمد رحمهما الله قول دې.

**دليله** ① دامام شافعى رحمه الله دليل دا حديث دې. چه «إحرام الرجل في رأسه وإحرام المرأة في وجهها» يعنى د سړي احرام د هغه په سر كې دې اود ښځې احرام دهغې په مخ كې دې. خاصل دا شو. چه چونكه د سړي احرام دهغه په سركې دې. نودهغې پواړه به جائزنه وى. اوپه مخ كې ئې احرام نشته. نوددې پواړه به جائزوى.

| |
|---|
| وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَا تُخَمِّرُوا وَجْهَهُ وَلَا رَأْسَهُ فَإِنَّهُ يُبْعَثُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مُلَبِّيًا (٢) اوزمونږ لپاره دليل د نبى ﷺ قول دې. چه (تاسو مه پټوئ مخ دده اونه سر دده ځكه چې دې به راپاسولې شى په ورځ د قيامت تلبيه ويونكې، قَالَهُ فِي مُحْرِمٍ تُوُفِّيَ نبى ﷺ دا فرمائيلى وو. په هغه محرم كې چې وفات شوې وو. |

**تشريح:- دلائل الاحناف** ①﴿ رحمهم الله زمونږدليل د ابن عباس رضي الله عنهما حديث دې. «أن رجلاً وقصته راحلته وهو محرم فمات

---

(١) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه البيهقى فى السنن الكبرى (٧٤/٥) رقم ٩٠٤٨ والدارقطنى (٢٩٤/٢) رقم ٢٦٠)_

(٢) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه مسلم فى الحج رقم ٩٤ والنسائى فى الحج باب ٩٧ رقم ٢٥٤٤ وابن ماجه فى المناسك باب ٨٩ باب ٣٠٨٤)_



فقال رسول الله ﷺ إغسلوه بماء وسدر، وكفنوه في ثوبيه ولا تمسوه طيباً ولا تخمروا رأسه ولا وجهه فإنه يبعث يوم القيامة ملبياً» يعنى يوسړې چې په حالت د احرام كې وو. دهغه سپرلئ دهغه څټ مات كړلو. اومړ شو. نو نبى ﷺ اوفرمائيل. ده ته په هغه اوبو باندې غسل وركړئ. چه د بيرے پاڼړې پكې جوش شوى وى. اودې په خپلودواړوجاموكې دفن كړئ. اوخوشبوئى پرې مه لګوئ. اوده سر مه پټوئ او مه ئې مخ پټوئ. ځكه چې دې به د قيامت په ورځ تلبيه ويونكې راپاسى. ددې حديث نه معلومه شوه. چه دمحرم سړي لپاره د خپل مخ پواړه جائز نه دى.

| |
|---|
| وَلِأَنَّ الْمَرْأَةَ لَا تُغَطِّي وَجْهَهَا مَعَ أَنَّ فِي الْكَشْفِ فِتْنَةً اوبله دا چې ښځه نه پټوى مخ خپل سره ددې چې په ښكاره كاوه كې فتنه ده. فَالرَّجُلُ بِالطَّرِيقِ الْأَوْلَى نوسړې خو به په درجه اولى سره (نه پټوى) |

**تشريح:-** دوهم دليل دا دې. چه ښځه په حالت د احرام كې خپل مخ نه پټوى. حالانكه د هغې په مخ ښكاره كاوه كې فتنه ده. نوسړې (چه دده په مخ ښكاره كولوكې فتنه هم نشته) به په طريق اولى سره مخ نه پټوى.

| |
|---|
| وَفَائِدَةُ مَا رُوِيَ الْفَرْقُ فِي تَغْطِيَةِ الرَّأْسِ اوفائده د هغه حديث كوم چې (امام شافعى رحمه الله) روايت كړې دې. فرق كول دى په پټولو د سر كې. |

**تشريح:- الجواب من الدليل**﴿ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى. چه امام شافعى رحمه الله كوم حديث روايت كړې دې. چې «إحرام الرجل ... الحديث» نو دهغې فائده د سرپه پټولو كې د سړي اوښځې په مينځ كې توپير بيانول دى. يعنى د ښځې لپاره دخپل سر پواړه جائز دى. ځكه چې د هغې د احرام اثر د هغې په مخ كې وى. په سر كې نه وى. اودسړي لپاره د سر پواړه جائز نه دى. ځكه چې د احرام اثر دده په سر كې وى.

### د محرم لپاره د ويښتواو نوكونو كټ كول

| |
|---|
| قَالَ (وَلَا يَمَسُّ طِيبًا) (علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى. اونه به لګوى خوشبوئى لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {الْحَاجُّ الشَّعِثُ التَّفِلُ} (١) د امله د وينا د رسول الله ﷺ چې حاجى بيخوشبويه اوبيرسرې وى. (وَكَذَا لَا يَدَّهِنُ) لِمَا رَوَيْنَا) (٢) اودغه ډول نه به لګوى تيل، د امله د هغه حديث نه چې مونږ روايت كړلو. |

**تشريح:- عدم مس الطيب**﴿ محرم به خوشبوئى نه لګوى. ځكه چې نبى ﷺ فرمائيلى دى. «الحاج الشعث التفل» د شين په فتحه او د عين په كسره، چه ويخته ببراوګردآلوده وى. او «تفل» دتاء په فتحه او فاء په كسره خوشبوئى نه لګول. يعنى حاجى هغه دې. چه ويخته ئې ببر وى. اوخوشبوئى ئې نه وى لګولې. اوددې حديث د امله د تيلو استعمال لګول هم جائز نه دې.

| |
|---|
| لَا يَحْلِقُ رَأْسَهُ وَلَا شَعْرَ بَدَنِهِ اونه به خرائى سر خپل اونه ويخته خپل، لِقَوْلِهِ تَعَالَى {وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ} الْآيَةَ د امله د وينا دالله تعالى نه ((وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ)) (وَلَا يَقُصُّ مِنْ لِحْيَتِهِ) اونه به كټ كوى ږيره خپله لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْحَلْقِ ځكه چې دا په معنى د خريلو كې ده. وَلِأَنَّ فِيهِ إِزَالَةَ الشَّعَثِ وَقَضَاءَ التَّفَثِ اوبله دا چې په دې كې لرې كول د ببروالى د ويختو اود خيرو دى. |

**تشريح:-** اود خپل سر اوبدن ويخته به هم نه كټ كوى. ځكه چې الله تعالى فرمائيلى دى. [وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ] اوخپله ږيره به هم نه كټ كوى. ځكه چې دا د خريلو په معنى كې دې. اوددې امله چې د

---

(١) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه الترمذى فى تفسيرسورة ٣ باب ٦ رقم ٣١٩٧ وابن ماجه فى المناسك باب ٦ رقم ٢٨٩٦)_

(٢) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه الترمذى فى تفسيرسورة ٣ باب ٦ رقم ٣١٩٧ وابن ماجه فى المناسك باب ٦ رقم ٢٨٩٦)_

ويختو خريل اوکټ کاوه سره هغه بېرسرى توب لرې کيږي. کوم چې دحاجى نه غوښتلې شى. نوددې امله دې هم ويخته نه کټ کوى اونه خرائى.

## درنګ شوي جامې اغوستل

قَالَ (وَلَا يَلْبَسُ ثَوْبًا مَصْبُوغًا فرمائى اونه به اغوندى جامې رنګ شوې په ورس خوشبوئى بِوَرْسٍ وَلَا زَعْفَرَانٍ وَلَا عُصْفُرٍ) او نه په زعفرانو، اونه په ګل عصفر لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {لَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ ثَوْبًا مَسَّهُ زَعْفَرَانٌ وَلَا وَرْسٌ}[1] ځکه چې نبى ﷺ فرمائيلى دى. نه به اغوندى محرم داسې کالى چې لګيدلې وى ورپورې زعفران يا ورس خوشبوئى

حل اللغة: ① مصبوغ: رنګ شوې ② ورس: يو ډول خوشبودار واښه دکوم نه چې د رنګ کاراخستې شى ③ زعفران: کيسر

تشريح:- حرمة استعمال الثوب المصبوغ ﷺ حاصل د مسئلې دا دې. چه د رنګ شوې جامې اغوستل لکه ورس يا زعفران يا عصفر، ځکه چې رسول الله ﷺ فرمائيلى دى. چه محرم دې داسې جامې نه اغوندى. چه په هغې پورې زعفران يا عصفر لګيدلې وى. دصحاح په کتابونو کې د محرم په اړه کې دا الفاظ راغلى دى. «لاتلبسوا شيأ مسه زعفران ولا ورس»

قَالَ إِلَّا أَنْ يَكُونَ غَسِيلًا لَا يَنْفُضُ البته دا چې وى وينځلې شوې چې خوشبوئى نه کوى. لِأَنَّ الْمَنْعَ لِلطِّيبِ لَا لِلَّوْنِ ځکه چې منع (راغلې ده. نو) د خوشبو د امله ده. د رنګ د امله نه ده.

تشريح:- جوازما لا طيب له ﷺ البته که په دې ذکرشوى څيزونو سره رنګ شوې وى. اود رنګ نه روسته بيا داسې وينځلې شوې وى. چه خوشبوئى ترې نه ځى. نودهغې استعمال جائز دې. اګرچه رنګ ئې پاته وى. ځکه چې د محرم لپاره د خوشبوئې استعمال ناجائزدې د رنګ استعمال ناروې نه دې.

دليله ﷺ اواصل په دې کې د طحاوى رحمه الله په حواله د ابن عمر رضي الله عنهما روايت شوې حديث دې. «قال قال رسول الله لا تلبسوا ثوبا مسه ورس أو زعفران إلا أن يکون غسيلا» ابن عمر رضي الله عنهما فرمائى. چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلې دى. تاسومه اغوندئ هغه جامې چې لګيدلې وى ورپورې ورس يا زعفران البته دا چې وى وينځلې شوې.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا بَأْسَ بِلُبْسِ الْمُعَصْفَرِ اوامام شافعى رحمه الله فرمائى. نشته باك په عصفر سره رنګ شوې کالى کې لِأَنَّهُ لَوْنٌ لَا طِيبَ لَهُ ځکه چې دا داسې رنګ دې چې د دې خوشبوئى نشته

تشريح:- مسلک الشافعى رحمه الله في الثوب المعصفر ﷺ امام شافعى رحمه الله فرمائى. چه د ورس رنګ شوې کالى اغوستل دمحرم لپاره جائز ده. او وړاندې تير شوى دى. چه د احرام په ممنوعاتو کې خوشبو لګول دى رنګ شوې کالى منع نه ده.

وَلَنَا أَنَّ لَهُ رَائِحَةً طَيِّبَةً ځکه چې دا داسې رنګ دې چې خوشبوئى نه کوى. اوزموږ دليل دا دې. چه ددې خوشبونى شته.

تشريح:- دليل الاحناف رحمهم الله ﷺ زموږ دليل دا دې. چه په عصفر کې هم يو ډول خوشبوئى وى. زمونږ اود شوافعو رحمهم الله په مينځ کې بنا (بنياد) د اختلاف دا دې. چه د شوافعو رحمهم الله په نيز په عصفر کې خوشبو نه وى. اوزموږ په نيز په کې وى. (نوکه عصفرداسې وى. چه خوشبو په کې وى. نوپه اتفاق سره د هغې استعمال جائزنه

[1] من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه البخارى فى الحج باب ۲۱ ومسلم فى الحج رقم ۱ وابوداود فى الحج باب ۳۱ رقم ۱۸۲۳ والترمذى فى الحج رقم ۸۳۳ والنسائى فى المناسک رقم ۲۴۹۹ وابن ماجه فى الحج باب ۱۹ رقم ۲۹۲۹ وأحمد فى المسند ۲۹/۲) والدارمى فى المناسک باب ۹)_



دې. اوکه نه وى. نو په اتفاق سره ئې استعمال جائزدې.

## غسل کول اوحمام ته داخليدل

(وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَغْتَسِلَ وَيَدْخُلَ الْحَمَّامَ فرمائى اونشته باك چې غسل اوکړى. او داخل شى حمام ته قَالَ لِأَنَّ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اغْتَسَلَ وَهُوَ مُحْرِمٌ ځکه چې حضرت عمر رضي الله عنه غسل کړې وو اوهغوى محرم وو.

حل اللغة: ① حمام: دغسل ځاى

تشريح:- جوازغسل المحرم ودخوله الحمام ﷺ مسئله داده. چه په محرم باندې دجنابت غسل واجبيږى. اود ده مکې معظمې ته د داخليدو لپاره غسل کول مستحب دې. ځکه چې رسول الله ﷺ د احرام لپاره غسل کړې وو. اود محرم لپاره حمام ته د ګرمو اوبود استعمال لپاره داخليدل جائزدى. ځکه چې حضرت عمر رضي الله عنه د دې باوجود چې محرم وو. غسل کړې وو.

وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَسْتَظِلَّ بِالْبَيْتِ وَالْمَحْمِلِ اونشته باك چې سيورې اوکړى په کور يا په کجاوه

حل اللغة: ① يستظل، استظلالا: سورې حاصلول ② محمل: کجاوه

تشريح:- المذهبان في تظليل المحرم ﷺ ① مسئله دا ده. چه زموږ په نيز د محرم لپاره د چت يا کيجاوې د سيورى حاصلول جائز دى.

وَقَالَ مَالِكٌ: يُكْرَهُ أَنْ يَسْتَظِلَّ بِالْفُسْطَاطِ وَمَا أَشْبَهَ ذَلِكَ اوامام مالک رحمه الله فرمائى. چه مکروه دې سيورې حاصلول په خيمه کې اوپه هغه څه کې چې ددې په څير وى. لِأَنَّهُ يُشْبِهُ تَغْطِيَةَ الرَّأْسِ ځکه چې دا مشابه دې د سر پټولو سره،

حل اللغة: ① فسطاط: لويه خيمه ② تغطية: پوښه

تشريح:- اودامام مالک اواحمد رحمهما الله په نيز د غټې خيمې يا ددې په څير د بل شى لاندې سيورې حاصلول مکروه دې.

دليله ﷺ د امام مالک رحمه الله دليل دا دې. چه د لوئې خيمې سيورې حاصلول د سر پټولو په څير دې. اووړاندې تير شو. چه د محرم لپاره د سرپوښه جائز نه دى. البته دومره ده چې د خيمې د سيورى د لاندې کيدل په حقيقت کې د سرپوښه نه دى. نو سيورې حاصلول به جائز وى. خوچونکه د سرپټولو سره مشابهت لرى. نوددې مشابهت د امله به مکروه وى.

وَلَنَا أَنَّ عُثْمَانَ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُ كَانَ يُضْرَبُ لَهُ فُسْطَاطٌ فِي إِحْرَامِهِ او زموږ دليل دا دې. چه حضرت عثمان رضي الله عنه لپاره به لګولې شوه خيمه په حالت د احرام کې،

تشريح:- زموږ دليل دا دې. چه عقبه بن حبان رحمه الله فرمائى. چه ما حضرت عثمان رضي الله عنه اوليدلو. چه دهغوى لپاره به غټه خيمه لګولې شوه. اودهغه توره به ووڼې ته اويزانده کولې شوه. حالانکه هغوى به په حالت د احرام کې وو.

وَلِأَنَّهُ لَا يَمَسُّ بَدَنَهُ فَأَشْبَهَ الْبَيْتَ اوبله دا چې دا نه لګى په بدن دده پورې نو مشابه شو د کور سره.

تشريح: بل دليل دا دې. چه لويه خيمه د محرم په بدن پورې نه لګى. نودا د کور د چت سره مشابه شو. اود کور د چت لاندې د سيورى نه فائده اخستل مکروه نه دى. نودغه ډول د لوئې خيمې په ښخولو کې اود سيورى حاصلولو کې به هم کراهت نه وى.

## د محرم لپاره د کعبه په پوښ کې ننوتل

وَلَوْدَخَلَ تَحْتَ أَسْتَارِ الْكَعْبَةِ حَتَّى غَطَّتْهُ اوکه داخل شی (محرم) د کعبې د پوښ لاندې تردې چې پټ کړی دې. إِنْ كَانَ لَا يُصِيبُ رَأْسَهُ وَلَا وَجْهَهُ فَلَا بَأْسَ بِهِ لِأَنَّهُ اسْتِظْلَالٌ چې نه لګی په سر دده اوپه مخ دده.نونشته باك په دې ځکه چې دا سیورې حاصلول دی.

حل اللغة ① استارت جمع ستر: پرده ② غطته، غطا (ن،ض): پواړه ]

تشریح:- جواز الاستظلال باستار الکعبة◈محرم د کعبه د پردو لاندې ورننوتلو.تردې چې په هغې کې پټ شو .نوددې دوې [دوه]

صورتونه دی.که پرده دده د سر اومخ سره نه لګی.نوپکې څه باك نشته.

دليله◈ځکه چې دا سیورې حاصلول دی.اود سیوری په حاصلولو کې څه قباحت نشته.اوکه په سر یا په مخ پورې لګی.نومکروه به وی.ځکه چې په دې صورت کې دا د سرپټولو سره مشابه شو.

## د محرم لپاره د همیانه تړلو حکم

وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَشُدَّ فِي وَسَطِهِ الْهِمْيَانَ اونشته باك په دې چې اوتړی په شا خپله پورې همیانه

حل اللغة ① همیان:هغه پیټۍ چې د تهیلئی یا بټوې کار ورکوی

تشریح:- المذهبان في شد الهمیان◈زموږ په نیز د محرم لپاره د همیانه په تړلو کې څه قباحت نشته.که د لنګ سربیره ئې اوتړی اوکه لاندې،

وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ: يُكْرَهُ إِذَا كَانَ فِيهِ نَفَقَةُ غَيْرِهِ اوفرمائی امام مالك رحمه الله چه مکروه ده.چه وی په دې کې خرچه دبل چا، لِأَنَّهُ لَا ضَرُورَةَ ځکه چې دې ته څه اړتیا نشته.

تشریح:- امام مالك رحمه الله فرمائی.که په همیانه کې خپله خرچه او نفقه وی. نو بغیر کراهته ئې تړل جائز دی.اوکه د بل خرچه اوروپۍ پکې وی.نومکروه ده.

دليله◈دامام مالك رحمه الله دلیل دا دی.چه په همیانه کې دبل روپۍ وی.نودې ته څه اړتیا نشته.اوبغیر ضرورته د محرم لپاره د همیانه تړل مکروه دی.اوکه دده خپلې روپۍ په کې وی.نوچونکه اړتیا متحقق دی.ځکه په کې کراهت نشته.

وَلَنَا أَنَّهُ لَيْسَ فِي مَعْنَى لُبْسِ الْمَخِيطِ فَاسْتَوَتْ فِيهِ الْحَالَتَانِ او زموږ لپاره دلیل دا دی.چه دا نه ده په معنی د اغوستلو د ګنډلو جاموکې ،نوبرابر شو په دې کې دواړه حالتونه،

تشریح:- دليل الاحناف رحمهم الله◈اوزموږ دلیل دا دی.چه همیانه چونکه د ګنډلو جامو په څیر نه ده.نوځکه ددې تړل مکروه نه دی.که خپلې روپۍ پکې وی اوکه د بل چا،دواړه حالتونه برابر دی.

الاشكال الاول على الدليل العقلي◈صاحب دهدایه رحمه الله چه کوم عقلی دلیل پیش کړې دې.په دې باندې یو اشکال دې.① هغه دا چې د محرم لپاره د لنګ یا پټو (څادر) په رسۍ تار وغیره باندې تړل په اجماع سره مکروه دی.حالانکه رسۍ او تار د ګنډلو جامو په څیر نه دی. د دې نه ځواب دا دې چې په رسۍ وغیره تړلو کې کراهت په نص سره ثابت دې.نقل دی چې «أن النبی ﷺ رأى رجلاً قد شد فوق إزاره حبلاً فقال ﷺ إلق هذا الحبل ویلك» یعنی نبی کریم ﷺ یو محرم سړې اولیدلو.چه هغه د خپل لنګ سربیره یوه رسۍ تړلې وه.نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل. هلاك شې دا رسۍ اوغورځوه.

الاشكال الثاني على الدليل العقلي◈ دوهم اشکال دا دې که محرم په خپل سرباندې پټۍ اولګوله .نودا هم مکروه ده.تردې چې د پوره یو ورځ تړلو په صورت کې پرې صدقه واجبیږی.حالانکه د ګنډلو جامو په معنی



کې نه ده د دې نه ځواب دا دې.چه چونکه د سر یوه برخه پټه شوې وی.نوځکه پرې صدقه واجبیږی.ځکه چې په حالت داحرام کې د سر پواړه ممنوع دی.

## په خطمی سره د سر اوږیرې وینځل

وَلَا يَغْسِلُ رَأْسَهُ وَلَا لِحْيَتَهُ بِالْخِطْمِيِّ اونه دې وینځی سرخپل اونه ږیره خپله په خطمی سره لِأَنَّهُ نَوْعُ طِيبٍ ځکه چې دا یو ډول خوشبوئی ده وَلِأَنَّهُ يَقْتُلُ هَوَامَّ الرَّأْسِ. اوبله دا چې دا وژنی سپګې د سر

حل اللغة ① لحية: ږیره ② خطمی: یو ډول بوټې چې په دوایانوکې په کار راځی ③ هوام جمع هامة: چیچونکی وغیره، دلته مراد مردار دې ]

تشریح:- وجه استعمال الخطمی للمحرم◈ دمحرم لپاره خپل سر او ږیره په خطمی سره وینځل جائز نه دی.

دلائله◈ ① دلیل دا دې.چه ګل خطمی یو ډول خوشبوئی ده.اود محرم لپاره د خوشبو لګول جائز نه دی. ② دوهم دلیل دا دې.چه خطمی د سر سپګې وژنی.حالانکه د محرم لپاره د هیڅ ډول ځناور قتل جائز نه دې.

## د تلبیه په کثرت سره وئیل

قَالَ وَيُكْثِرُ مِنَ التَّلْبِيَةِ عَقِيبَ الصَّلَوَاتِ فرمائی اوزیاته دې وائی تلبیه روستو د مونځونو نه،

تشریح:- فرمائی اوزیاته دې وائی تلبیه روستو د مونځونو نه،اوهرکله چې خیژی اوچت ځائې ته اوکوزیږی کښته ځائې ته،اوملاؤ شی د سورو (خلګ و)سره او په وخت د پیشلمی کې ،ځکه چې صحابۀ ﷺ د رسول الله ﷺ به تلبیه وئیله په دې حالاتوکې ،اوتلبیه په احرام کې په لمانځه کې د تکبیر وئیلو په څیر ده.نووئیلې به شی دا په وخت د بدلیدلو د یوحال نه بل حال ته.

تشریح:- الروايتان في التلبية بعدالصلاة◈ ① صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه محرم دې تلبیه روسته د مونځونونه زیاته وائی.مونځونه که فرض وی اوکه نفل وی.که ادا وی اوکه قضا وی. ② صاحب د طحاوی رحمه الله فرمائی .چه د فرض مونځونو نه روسته به وئیلی شی.د نفلو او قضا مونځونو نه روسته به نشی وئیلې.

وَكُلَّمَا عَلَا شَرَفًا أَوْهَبَطَ وَادِيًا أَوْلَقِيَ رَكْبًا وَبِالْأَسْحَارِ اوهرکله چې خیژی اوچت ځائې ته اوکوزیږی کښته ځائې ته،اوملاؤ شی د سورو (خلګ و)سره او په وخت د پیشلمی کې ،

تشریح:- مواقع اكثار التلبية◈اوکله چې په موړه خیژی یا کندې ته کوزیږی.یا نورو سورو (خلګ و)سره ملاقات اوکړی.نوپه دې حالتونو کې به تلبیه زیاته وائی.اود پیشلمی په وخت کې دې هم زیاته وائی.

لِأَنَّ أَصْحَابَ رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ كَانُوا يُلَبُّونَ فِي هٰذِهِ الْأَحْوَالِ ځکه چې صحابۀ ﷺ د رسول الله ﷺ به تلبیه وئیله په دې حالاتوکې ،

تشریح:- دلائله◈ ① دلیل دا دې.چه صحابه کرامو ﷺ به په دې وختونو کې تلبیه زیاته وئیله.

وَالتَّلْبِيَةُ فِي الْإِحْرَامِ عَلٰى مِثَالِ التَّكْبِيرِ فِي الصَّلَاةِ، فَيُؤْتٰى بِهَا عِنْدَ الْإِنْتِقَالِ مِنْ حَالٍ إِلٰى حَالٍ اوتلبیه په احرام کې په لمانځه کې د تکبیر وئیلو پشان ده.نووئیلې به شی دا په وخت د بدلیدلو د یوحال نه بل حال ته.

تشریح:- ② دوهم دلیل دا دې.چه په احرام کې د تلبیه مثال داسې دې.لکه په لمانځه کې د تکبیرپشان،نولکه څنګه چې په لمانځه کې د یوحالت نه بل حالت ته اوړی.نوتکبیر وائی.دغه ډول په احرام کې هم چې د یو حالت نه بل حالت ته اوړی.نوتلبیه دې وائی.

## اوچت آواز سره تلبیه وئیل

وَيَرْفَعُ صَوْتَهُ بِالتَّلْبِيَةِ اوپورته کوی به آواز خپل په تلبي

**تشريح:- رفع الصوت بالتلبية**﴿زموږ په نيز په تلبيه كې آواز اوچتول مسنون دى. اګرچه په دعا اوذكر كې افضله اخفاء ده. وجه دا ده. چه د قرآن پاك د آيت ((أُدْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً)) تقاضا هم دا ده. چه د دعا اوذكرونو په موقع باندې اخفاء اوكړې شى.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د امله د قول د رسول الله ﷺ {أَفْضَلُ الْحَجِّ الْعَجُّ وَالثَّجُّ}[1] افضل حج، عج اوثج دې.

**حل اللغة** ① العج (ن): آواز اوچتول

**تشريح:- دليله**﴿ دليل دا دې. چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى. ﴿أفضل الحج العج والثج﴾

فَالْعَجُّ رَفْعُ الصَّوْتِ بِالتَّلْبِيَةِ، وَالثَّجُّ إِسَالَةُ الدَّمِ نوعج پورته كول د آواز دى. او ثج بيول د وينې دى.

**تشريح:-** عج وائى په اوچت اواز سره تلبيه وئيل او ثج وائى وينې تويولو ته. يعنى بهترين حج هغه دې. چه هغې كې تلبيه په اوچت آواز وى. اود هدى وغيره قربانى په كې اوكړې شى. اووينه توئې كړې شى.

## مكې ته د داخليدو آداب

قَوْلُهُ ﴿فَإِذَا دَخَلَ مَكَّةَ ابْتَدَأَ بِالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ فرمائى. كله چې داخل شى مكې ته نو پيل دې اوكړى د مسجد حرام نه،

**تشريح:- اول ما يبدء به المحرم عند دخول مكة**﴿فرمائى. محرم چې څنګه مكې ته داخل شى. نو د ټولو نه اول به جمات ته داخليږى.

لِمَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كُلَّمَا دَخَلَ مَكَّةَ دَخَلَ الْمَسْجِدَ}[2] ځكه چې روايت شوې دې. چه نبى ﷺ څنګه داخل شو مكې ته نو داخل شو جمات ته،

**تشريح:-** ځكه چې رسول الله ﷺ كله مكې ته داخل شو. نود ټولو نه اول جمات ته داخل شو. ①په صحيحينو كې د حضرت عائشه رضي الله عنها دا حديث داسې دې. ﴿إن أول شئ بدأ به رسول الله ﷺ حين قدم مكة أن توضأ ثم طاف بالبيت﴾ يعنى مكې مكرمې ته چې نبى ﷺ تشريف راوړلو. نود ټولونه په اولنو كارونو كې دا وو. چه اودس ئې اوكړلو. اود بيت الله نه ئې طواف اوكړلو.

وَلِأَنَّ الْمَقْصُودَ زِيَارَةُ الْبَيْتِ وَهُوَ فِيهِ اوبله دا چې مقصود د بيت الله ليدل دى. او هغه په دې (جمات) كې دې.

**تشريح:-** دوهم دليل دا دې چه د سفر مقصود د بيت الله زيارت كول دى. اوبيت الله په جمات كې دې. نود ټولو نه اول دې جمات ته داخل شى. اوبيا د مسجد حرام په دروازو كې د باب السلام نه داخليدل مستحب دى. ځكه چې نبى ﷺ هم په دې دروازه مسجد حرام ته داخل شوې وو. اودا دعا ئې وئيله. ﴿اللهم أنت ربى وأنا عبدك جئت لأودى فرضك وأطلب رحمتك وألتمس رضاك متبعاً لأمرك راضياً بقضائك أسلك مسئلة المضطرين المشفقين من عذابك أن تستقيلنى اليوم بعفوك وتحفظنى برحمتك وتجاوز عنى بمغفرتك وتعيننى على أداء فرائضك اللهم افتح لى أبواب رحمتك، وأدخلنى فيها وأعذنى من الشيطان الرجيم﴾ اې الله ته زما رب اوزه ستا بنده يم. زه ستا د فرض ادا كاوه لپاره حاضرشوې يم. ستا د رحمت غوښتونكې يم. ستا دحكم تابعدارى كوم. او ستا د رضا طلبګار يم. زه ستا په فيصله په سرسترګو راضى يم. زه ستا نه دهغه كسانو پشان سوال كوم. چه محتاج وى اوستاد عذاب نه ويريږى. چه ته نن ما سره د معافۍ سلوك اوكړې. اوپه خپل رحمت زما ساتنه اوكړې. اوته په خپل مغفرت ما ته معافى اوكړې. اودخپلو فرائضو په ادا كولوكې ماسره كومك اوكړې. اې الله زما لپاره دخپل رحمت دروازې پرانيزې. اوما ورته داخل كړه. اود شيطان رټلى شوى نه زما ساتنه اوكړې.

[1] من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه الترمذى باب ۶ رقم ۳۱۹۷ وابن ماجه فى المناسك باب ۶ رقم ۲۸۹۶)

[2] من حديث عائشة أخرجه البخارى فى الحج باب ۶۳ رقم ۷۸ ومسلم فى صلاة المسافرين وقصرها رقم ۷۴)۔



وَلَا يَضُرُّهُ لَيْلًا دَخَلَهَا أَوْ نَهَارًا اوضرر نه رسوى ده ته كه د شپې داخليږى اوكه د ورځې، لِأَنَّهُ دُخُولُ بَلْدَةٍ فَلَا يَخْتَصُّ بِأَحَدِهِمَا ځكه چې دا داخليدل دى ښار ته نو خاص به نه وى په يوپورې (چه شپه اوورځ ده)

**تشريح:- جوازالدخول ليلا ونهاراً**﴿صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى. چه دمحرم لپاره مكې معظمې ته داخليدل دشپې هم جائزدى اود ورځې هم. ځكه چې مكه يوښار دې. اوښار ته د داخليدو لپاره دشپې او ورځې تخصيص نه وى. نومكې ته هم ددې خليدو لپاره د شپې اود ورځې تخصيص نشته.

## د بيت الله د ليدو په وخت كې مسنون عمل

وَإِذَا عَايَنَ الْبَيْتَ كَبَّرَ وَهَلَّلَ اوكله چې اووينى بيت الله. نوتكبير دې اووائى. اوتهليل دې اووائى

**حل اللغة** ①عاين، معاينة: كتل ②مشاهد جمع مشهد: د خلكو درې جمع كيدوځاى

**تشريح:- الافعال المسنون عند رؤية البيت**﴿مسئله دا ده. چه كله ئې په بيت الله نظراولګى. نو الله اكبر دې اووائى. اوبه زړه كې دې ددې مقدس مقام عظمت حاضر كړى. اود توحيد د تجديد لپاره دې ﴿لا إله إلا الله﴾ اووائى. او چې هغه وخت څه مناسب وى. نوهغه دعا دې اوكړى. ځكه چې د بيت الله د ليدو په وخت كې دعا مستجابه اومقبوله وى.

وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنه يَقُولُ: إِذَا لَقِيَ الْبَيْتَ بِاسْمِ اللَّهِ وَاللَّهُ أَكْبَرُ[1] او وو ابن عمر رضي الله عنهما كله چې به ئې اوليدلو بيت نو وئيل به ئې ((بسم الله والله أكبر))

**تشريح:-** په تكبير اوتهليل باندې دحضرت عبدالله رضي الله عنه عمل مستدل دې. چه هغوى به كله هم د بيت الله زيارت كولو. نو ﴿بسم الله والله أكبر﴾ به ئې وئيل.

وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ لَمْ يُعَيِّنْ فِي الْأَصْلِ اوامام محمد رحمه الله نه دې مقرر كړې په اصل مبسوط كې لِمَشَاهِدِ الْحَجِّ شَيْئًا مِنَ الدَّعَوَاتِ لپاره دمناسك د حج څه څيز د دعاګانو نه، التَّوْقِيتَ يُذْهِبُ بِالرِّقَّةِ ځكه مقرر كول لرې كوى نرم والې (دزړه او حضور قلبى) لِأَنَّ، وَإِنْ تَبَرَّكَ بِالْمَنْقُولِ مِنْهَا فَحَسَنٌ. اوكه تبرك ئې حاصل كړلو په نقل شوې دعا سره نو ښه ده.

**حل اللغة** ① دعوات جمع دعوة: دعا

**تشريح:- وجه عدم تخصيص الدعاء عند محمد** رحمه الله ﴿صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى. چه امام محمد رحمه الله په اصل (مبسوط) كې دمشاهد حج لپاره څه دعا نه ده مقرركړې. ځكه چې تعين ددعا دزړه نرم والې زائله كوى (ځكه چې د سړى ژبه په كومو الفاظو بلده شى. نوبيا بغيرد څه سوچ اوفكر نه هغه كلمات وائى. عقل اوفكرئې په بل ځائې كې وى. صرف زبانى جمع خرچ وى.) حالانكه په دعا كې رقت قلب مطلوب دې. خوكه په منقول دعاګانو كې ئې يوه دعا اووئيله. نوجائزده. بلكه بهتره ده. منقول دعاګانې پورته تيرې شوې.

## دحجراسود ښكلول

قَالَ ﴿ثُمَّ ابْتَدَأَ بِالْحَجَرِ الْأَسْوَدِ فَاسْتَقْبَلَهُ﴾ فرمائى. بيا دې پيل اوكړى د حجر اسود نه نومخ دې كړى دې ته ﴿وَكَبَّرَ وَهَلَّلَ﴾ اوتكبير دې اووائى. اوتهليل دې اووائى.

**حل اللغة** ①هلل: لا اله الاالله وئيل

**تشريح:- استقبال الحجر**﴿فقهاء كرام رحمهم الله فرمائى. چه مسجد حرام ته د داخليدو نه روسته دټولو نه اولنې كارطواف كول دى. كه دا كس محرم وى اوكه غيرمحرم وى. اوپه طواف كې به پيل د حجر اسود نه كوى.

لِمَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَابْتَدَأَ بِالْحَجَرِ} ددې امله چې روايت شوې دې. چه نبى ﷺ داخل

[1] غربه الزيلعى رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل عن ابن عمر رضي الله عنهما برواية البيهقى فى السنن الكبرى (۱۲۸/۵) رقم ۹۲۵۰) أن كان يقول ذلك عند إستلام الحجر، كذا فى نصب الراية (۴۲/۳)۔

شو جمات ته، نو پیل ئې اوکړله په حجر اسود، **فَاسْتَقْبَلَهُ وَكَبَّرَ وَهَلَّلَ**[1] نو مخ ئې کړلو ورته او تکبیر ئې اووئیل. او تهلیل ئې اووئیل.

**تشریح:- دلیله** ځکه چې نقل دی. کله چې نبی ﷺ مسجد حرام ته داخل شو. نو د حجر اسود نه ئې د طواف پیل اوکړله. او حجر اسود ته دې مخ کړی او «الله اکبر» او «لااله الا الله» دې اووائی.

**(وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ)** صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی بیا به پورته کړی لاسونه خپل

**تشریح:- رفع الایدی عند استلام الحجر** شیخ ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائی. چه د طواف په پیل کې به د تکبیر وئیلو په وخت کې دواړه لاسونه تراوږو پورې پورته کړی.

**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** امله د قول د رسول الله ﷺ نه **لَا تُرْفَعُ الْأَيْدِي إِلَّا فِي سَبْعَةِ مَوَاطِنَ** چې نه به شی پورته کولی لاسونه مګر په اووه ځایونو کې، **وَذَكَرَ مِنْ جُمْلَتِهَا اسْتِلَامَ الْحَجَرِ**[2] او ذکر کړې ئې دې د هغې نه مچی کول (ښکلول) د حجر اسود،

**حل اللغة** ① **مواطن جمع موطن**: دَ اقامت ځایَ ③ **استلام**: ښکلول، لاس لګول

**تشریح:- دلیله** ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی. «لا ترفع الأيدی إلا في سبع مواطن» یعنی صرف په اووه ځایونو کې به لاسونه پورته کولې شی. او من جمله د هغې نه یوه موقع د حجر اسود مچی کول دی.

**قَالَ وَاسْتَلَمَهُ إِنِ اسْتَطَاعَ مِنْ غَيْرِ أَنْ يُؤْذِيَ مُسْلِمًا** او ښکل دې کړی (حجراسود) که توان لری بغیر تکلیف ور کاوه نه مسلمان ته،

**تشریح:- معنی الاستلام** فرمائی چې د حجر اسود استلام دې کوی. استلام «سلمة» نه ماخوذ دې. د دې معنی د کاڼړی ده. او س د استلام معنی دا ده. چه کاڼړی اخستل په لاس سره یا په بوسه سره، یا دې دا په لاس سره مس کړی.

**لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَبَّلَ الْحَجَرَ الْأَسْوَدَ وَوَضَعَ شَفَتَيْهِ عَلَيْهِ**[3] ځکه چې روایت شوې دې. چه نبی ﷺ ښکل کړلو حجر اسود او کیخودې ئې دواړه شونډې په هغې **وَقَالَ لِعُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: إِنَّكَ رَجُلٌ أَيِّدٌ** او وې فرمائیل عمر ﷺ ته ته داسې سړې ئې. چه قوی (مضبوط) ئې. **تُؤْذِي الضَّعِيفَ فَلَا تُزَاحِمِ النَّاسَ عَلَى الْحَجَرِ** تکلیف به ور کوې کمزوری ته، نو بیړه مه جوړه وه د خلګو په حجر اسود، **وَلَكِنْ إِنْ وَجَدْتَ فُرْجَةً فَاسْتَلِمْهُ** بلکه که موندله دې موقع نو ښکل ئې کړه. **وَإِلَّا فَاسْتَقْبِلْهُ وَهَلِّلْ وَكَبِّرْ**[4] او که نه (یعنی د حجر اسود د ښکلولو موقع درته نه ملاویدله) نو مخ کړه ورته او تهلیل اووایه. او تکبیر اووایه،

**حل اللغة** ① **شفتیه، تشنیة شفة**: شونډې ⑤ **تزاحم، مزاحمه**: تنګی کول ⑥ **فرجة**: کولې ووالې

[1] یقول العبد الضعیف أما إبتداءه ﷺ بإستلام ا لحجر الأسود ففی حدیث جابر ﷺ الطویل خرجته بالکمبیوتر من «موصوعة الأحادیث النبویة» فهو فی صحیح مسلم فی الحج باب حجة النبی ﷺ رقم ۲۱۳۷) و أما الإستقبال والتکبیر والتهلیل فأیضاً خرجته من الموصوعة فهو حدیث عمر ﷺ أخرجه أحمد فی مسندالعشرة المبشرین بالجنة فی مسند عمربن الخطاب ﷺ رقم ۱۸۵ وألفاظه عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ يَا عُمَرُ إِنَّكَ رَجُلٌ قَوِيٌّ لَا تُزَاحِمْ عَلَى الْحَجَرِ فَتُؤْذِيَ الضَّعِيفَ إِنْ وَجَدْتَ خَلْوَةً فَاسْتَلِمْهُ وَإِلَّا فَاسْتَقْبِلْهُ فَهَلِّلْ وَكَبِّرْ)_

[2] تقدم تخریجه مراراً_

[3] من حدیث ابن عمر رضی الله عنهما أخرجه ابن ماجه فی الحج رقم ۲۹۴۵) والحاکم فی المستدرک (۱/۴۵۴)

[4] من حدیث عمر ﷺ أخرجه أحمد فی مسندالعشرة المبشرین بالجنة فی مسند عمربن الخطاب ﷺ رقم ۱۸۵)



**تشریح:- کیفیة الاستلام** د استلام کیفیت دا دې. که د حجر اسود استلام په خوله سره ممکن نه وی. نو په دې باندې دې خپل لاس کیږدی. او خپل لاس دې ښکل کړی.

**دلیله** نقل دی چې رسول الله ﷺ حجراسود ښکل کړلو. او خپلې شونډې ئې په هغې باندې کیخودې. ② دا هم نقل دی. چه حضرت عمرفاروق ﷺ په خپل دور خلافت کې حجراسود ته نزدې تشریف راوړلو. نو وې فرمائیل. ماته دا پته ده. چه ته یو کاڼړې ئې. نه ضرر رسولې شې او نه فائده، که ما رسول الله ﷺ نه وو لیدلې چه ته ئې ښکل کړې وې. نو ما به ته نه وې ښکل کړې. د حضرت عمر ﷺ دا خبره چې حضرت علی ﷺ ته اورسیدله. نو هغوی اوفرمائیل. کاڼړې نفع رسونکې دې. حضرت عمر ﷺ ورته اوفرمائیل. اې د الله د پیغمبر زومه! څه فائده ده په کې؟ نو حضرت علی ﷺ اوفرمائیل. ما د رسول الله ﷺ نه دا اوریدلی وو. چه کله الله تعالی د آدم علیه السلام د واړه اولاد نه وعده واخستله. او د «أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى» په ذریعه ئې اقرار اوکړلو. نو الله تعالی هغه اقرار په دې کاڼړی کې امانت کیخودلو. نو کوم کس چې استلام کوی. نو لکه چې هغه د دې ښکلولو سره د هغې وعدې تجدید کوی. او کاڼړے به د قیامت په ورځ دده لپاره ګواهی ورکوی.

**فضل استلام الحجر** بهرحال که مسلمان ته د تکلیف رسولو نه بغیر د حجر اسود مچی کول ممکن وی. نو د حجراسود استلام دې خامخا اوکړی.

**دلیله** ځکه چې رسول الله ﷺ حجر اسود ښکل کړې وو. او په هغې ئې خپلې شونډې کیخودې وې.

**دلائل ترک الاستلام عند اذی المسلم** ① او نبی کریم ﷺ حضرت عمر ﷺ فرمائیلی وو. چه ته مضبوط سړې ئې. کمزوری ته به تکلیف اورسوې. نو په حجراسود باندې خلګو سره چیړ مکوه. یعنی ګنړه مه لرې کوه. ګنی کمزوری ته به ستا نه تکلیف اورسی. خو که ځائې خالی وی. او رش نه وی. نو استلام کوه. یعنی په خوله یا لاس سره دې مس کړی. او که ګنجائش نه وی. بلکه بیړه وی. نو دې ته دې مخکی اودریږی. او تکبیر او تهلیل دې اووائی.

**وَلِأَنَّ الِاسْتِلَامَ سُنَّةٌ وَالتَّحَرُّزَ عَنْ أَذَى الْمُسْلِمِ وَاجِبٌ** او بله دا چې مچی کول سنت دی. او ځان ژغورل د تکلیف ور کاوه نه خلګ وته، دا واجب دی. (نو د سنت د کاوه لپاره به واجب نشی پریښولې (پریخودې))

**تشریح:-** دوهم دلیل دا دې. چه استلام سنت دې. او د مسلمان د تکلیف رسولو نه ځان ژغورل واجب دی. او د سنت ادا کاوه لپاره د واجب د پریخودو شریعت بیخی اجازت نه ورکوی. نو ځکه مسلمان ته د ضرر رسولو نه بغیر که استلام ممکن وی. نو استلام دې اوکړی. ګنی په استقبال دې اکتفاء اوکړی.

## حجر اسود د بل څیز په ذریعه ښکلول

**قَالَ (وَإِنْ أَمْكَنَهُ أَنْ يَمَسَّ الْحَجَرَ شَيْئًا فِي يَدِهِ** فرمائی. او که ممکن وی د ده لپاره چې مس کړی حجر اسود په څه شی باندې چې په لاس دده کې وی. **الْعُرْجُونِ وَغَيْرِهِ ثُمَّ قَبَّلَ ذَلِكَ فَعَلَ** لکه ښاخ وغیره او بیا ښکل کړی هغه نو اودې کړی.

**حل اللغة** ① **عرجون**: دَ کهجورې دَ غونچې بیخ کوم چې کوږ وی او د کهجورو په پرې کاوه باندې تنې پورې اوچ پاته وی

**تشریح:-** بهرحال مسئله دا ده. که حجر اسود مچی کول او یا لاس وراوړل ممکن نه وی. نو که ممکن وی. نو په لاس کې دې لرګے واخلی. او هغه دې حجر اسود ته وراوړی. بیا دې هغه ښکل کړی. ځکه

**لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ طَافَ عَلَى رَاحِلَتِهِ وَاسْتَلَمَ الْأَرْكَانَ بِمِحْجَنِهِ**[1] ځکه چې روایت شوې دې. چه نبی ﷺ

[1] من حدیث ابن عباس رضی الله عنهما أخرجه البخاری فی الحج باب ۵۸ رقم ۱۶۰۷ ومسلم فی الحج رقم ۲۵۳ وابوداود فی المناسک باب ۴۸ رقم ۱۸۷۷ والنسائی فی المناسک رقم ۲۷۶۵ وابن ماجه فی المناسک باب ۲۸ رقم ۲۹۴۸)_

طواف اوکړلو په خپله سپرلۍ سربیره اوپه خپل کوږ شل (امسا یا کونټۍ) ئې د ارکانو استلام اوکړلو.

**حل اللغة** ① **راحلة**: سورلی ③ **محجن**: چوکه

**تشریح:-** دلیل دا دې چې رسول الله ﷺ طواف کولو. اوپه لاس کې ورسره شل (امسا) وو. په هغې ئې ارکان یعنی د حجراسود اود رکن یمانی استلام کولو

**وَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ شَيْئًا مِنْ ذَلِكَ اسْتَقْبَلَهُ** اوکه توان نه لري د څه څیز، نو مخ دې کړي ورته **وَكَبَّرَ وَهَلَّلَ وَحَمِدَ اللَّهَ وَصَلَّى عَلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** وتکبیر دې ووايي اوتهلیل دې اووائی. او ثناء دې ووايي دالله او درود دې ووايي په نبی ﷺ

**تشریح:-** اوکه ددې توان ئې هم نه وی. نوحجر اسود ته دې مخکی اودریږی. او «الله اکبر» او «لا اله الا الله» دې اووائی. اود الله تعالی حمد دې اووائی. اوپه نبی ﷺ دې درود شریف اووائی.

## د اضطباع حکم

**قَالَ ثُمَّ أَخَذَ عَنْ يَمِينِهِ مِمَّا يَلِي الْبَابَ** فرمائی. بیا دې پیل اوکړی دخپل ښی اړخ نه دهغه ځائې نه چې نزدې دې دروازې ته، **وَقَدْ اضْطَبَعَ رِدَاءَهُ قَبْلَ ذَلِكَ** په دې سې حال کې چې اضطباع ئې کړې وی په پټو (څادر) خپل، **فَيَطُوفُ بِالْبَيْتِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ** نوچکردې اولګوی د بیت الله نه اووه چکرې، **لِمَا رُوِيَ {أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ اسْتَلَمَ الْحَجَرَ ثُمَّ أَخَذَ عَنْ يَمِينِهِ مِمَّا يَلِي الْبَابَ فَطَافَ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ}** ددې امله چې روایت شوې دې. چه نبی ﷺ استلام د حجر اسود اوکړلو. بیا ئې پیل اوکړله دښی اړخ د حجراسود نه) دهغه ځائې نه چې نزدې دې دروازې ته، نوچکرئې اولګولو اووه چکرونه،

**حل اللغة** ① **اضطبع، اضطباعًا**: دَ ښی تیخرګ نه پټو (څادر) راویستل او په ګسه اوږه باندې اچول ② **اشواط جمع دَشوط**: چکر

**تشریح:- ابتداء الاشواط من ایمن المستلم** ۞ **مسئله**: لکه څنګه چې د حجراسود نه پیل کول واجب دی. دغه ډول د ښی اړخ نه پیل کول هم واجب دی. یعنی د حجر اسود نه ښی اړخ ته کوم ځائې چې دروازې سره جخت دې. د هغه اړخه دې طواف پیل کړی.

۞ **حکم الطواف المشروع من الجانب الایسر** ۞ اوکه د ښی اړخ په ځائې ئې د چپه اړخ نه ئې په طواف پیل اوکړله. اوداسې ئې اووه چکرې اولګولې. نودا طواف معکوس شو. زموږ په نیز ددې حکم دا دې. چې ترڅو په مکه کې وی. نود دې طواف به اعاده کوی. اوکه د اعاده نه وړاندې ئې مکه پریخودله. او خپل وطن ته واپس شو. نوپه ده به دم واجب وی. بهرحال طواف به د حجر اسود د ښی اړخه پیل کوی. اوپه دې طریقه به اووه چکرې پوره کوی. څکه چې رسول الله ﷺ هم داسې کړی وو.

**وَالِاضْطِبَاعُ أَنْ يَجْعَلَ رِدَاءَهُ تَحْتَ إِبْطِهِ الْأَيْمَنِ وَيُلْقِيهِ عَلَى كَتِفِهِ الْأَيْسَرِ** او اضطباع دا ده. چه اوګرځوی پټو (څادر) خپل لاندې د ښئ اوږې خپلې، او راوائې چوی په ګسه اوږه خپله، **وَهُوَ سُنَّةٌ وَقَدْ نُقِلَ ذَلِكَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** (2) اودا سنت دی. اویقیناً نقل شوی دی د رسول الله ﷺ نه

**تشریح:- معنی الاضطباع وسنیته** ۞ صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی. چه اضطباع د «ضبع» نه ماخوذ دې. اوددې کیفیت دا دې. چه خپل پټو (څادر) د خپلې ښئ اوږې دلاندې نه راوُباسی. اوپه ګسه اوږه ئې واچوی. فرمائی دا درویشانه کیفیت مسنون دې. اود رسول الله ﷺ نه منقول دې.

(1) من حدیث جابر ﷺ أخرجه مسلم فی الحج باب حجة النبی ﷺ رقم ۲۱۳۷)_

(2) من حدیث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه ابوداود فی المناسک باب ٤٩ رقم ١٨٨٤)_



## طواف په حطیم نه بهر وی

**قَالَ (وَيَجْعَلُ طَوَافَهُ مِنْ وَرَاءِ الْحَطِيمِ)** فرمائی. اودې ګرځوی طواف خپل بهر دحطیم نه، **وَهُوَ اسْمٌ لِمَوْضِعٍ فِيهِ الْمِيزَابُ،** اودا نوم دې دهغه ځائې چې په هغې کې ناوه ده. **سُمِّيَ بِهِ لِأَنَّهُ حُطِمَ مِنَ الْبَيْتِ: أَيْ كُسِرَ** نوموسل شوې ده په دې باندې څکه چې دا حطم یعنی مات شوې دې د بیت الله نه، **وَسُمِّيَ حِجْرًا لِأَنَّهُ حُجِرَ مِنْهُ: أَيْ مُنِعَ،** او ددې نوم حجر هم دې. څکه چې دا محجور شوې دې. ددې (بیت الله) نه، یعنی منع شوې دې، **وَهُوَ مِنَ الْبَيْتِ** اودا (حصه) ده د بیت الله،

**حل اللغة** ① **حطیم**: دَ خانه کعبې هغه برخه چې رکن زمزم او دَ مقام ابراهیم په مینځ کې ده ② **میزاب**: ناوه ]

**تشریح:- توضیح الحطیم** ۞ حطیم دهغه ځائې نوم دې. چه په هغې کې میزاب رحمت دې. حطیم د حطم نه ماخوذ دې. اود حطم معنی ده ماتول، اودې ته حطیم څکه وائی. چه مشرکانو د بیت الله د جوړولو په وخت کې دحلال مال د کمی د امله د بیت الله نه مات کړې وو. اوپه نوې آبادئ کې ئې نه وو داخل کړې. د حطیم دوهم نوم حِجر (بکسر الحاء) دې. چه ددې معنی منع کول دی. یعنی داحصه د بیت الله په نوی تعمیر کې شاملولو نه منع کړې شوې وه.

**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي حَدِيثِ عَائِشَةَ رضي الله عنها** د امله د قول د رسول الله ﷺ نه په حدیث د عائشې رضي الله عنها کې، **فَإِنَّ الْحَطِيمَ مِنَ الْبَيْتِ** (1) چې حطیم دبیت څنې دې.

**تشریح:- تاریخ اخراج الحطیم من البیت** ۞ خویاد ساتئ چې حطیم د بیت الله یوه برخه ده. کوم احکام چې د بیت الله دی. هغه احکام به ددې هم وی. په دې باندې د حضرت عائشې رضي الله عنها حدیث ګواه دې. صاحب د عنایه رحمه الله چه کوم حدیث ذکر کړې دې. دهغې ژباړه دا ده. چه حضرت عائشې رضي الله عنها دا نذر منلې وو. که رسول الله ﷺ مکه فتح کړه. نوزه به په بیت الله کې دوې [دوه] رکعته لمونځ کوم. د مکې دفتح نه روسته رسول الله ﷺ د حضرت عائشې رضي الله عنها لاس اونیولو. اوحطیم ته ئې داخله کړه. اووې فرمائیل ورته «صلی ههنا فإن الحطیم من البیت» دلته لمونځ اوکړه. څکه حطیم د بیت الله برخه ده. خو چونکه ستا قوم قریشو سره خرچه کمه شوې وه. نوڅکه هغوی دا د بیت الله نه بهر کړې وو. ګوره عائشې رضي الله عنها که ستا د قوم زمانه شرک ته نزدې نه وه. نومابه خانه کعبه شهیده کړې وه. اودا به مې د ابراهیم خلیل الله ﷺ د آبادئ مطابق جوړه کړې وه. اوحطیم به مې په خانه کعبه کې داخل کړې وو. اوچوکاټ به مې د زمکې سره ملاؤ کړې وو. اوددې لپاره به مې یوه دروازه مشرق اړخ ته ویستې وه. اویوه لویدیځ اړخ ته، که راروان کاله پورې ژوندې پاتې شوم. نودا کار به ضرور کوم. حضرات خلفاء راشدینو ﷺ ته د نور مهمو کارونو د امله دې ته فراغت ملاؤ نشو.

۞ **بناء ابن زبیر** ۞ ردې چې دحضرت عبدالله بن زبیر ﷺ زمانه راغله. اوهغوی د حضرت عائشې رضي الله عنها نه دا حدیث واوریدلو. نوهغه دواړه کارونه ئې اوکړل. کوم چې د نبی ﷺ ارمان وو. نودحضرت ابراهیم ﷺ په بنا (بنیاد) ونو ئې خانه کعبه جوړه کړه. اوحطیم ئې په بیت الله کې ګډ کړلو.

۞ **بناء حجاج بن یوسف** ۞ خوچه کله ابن زبیر ﷺ شهید کړې شو. اوحجاج بن یوسف ثقفی برسراقتدرې راغلو. نوهغه د حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ جوړه کړې کعبه ئې شهیده کړله. اودا ئې په هغه طریقه بیا جوړه کړه. په کومه طریقه چې قریشو جوړه کړې وه. اګرچه حجاج بن یوسف د حدیث اوریدو نه روسته ډیر پښیمانه شو. بیاد بنوعباس په دور خلافت کې حضرت هارون الرشید رحمه الله دا اراده اوکړله. چه دا د ابراهیم ﷺ د

(1) من حدیث عائشة رضي الله عنها أخرجه البخاری فی الحج باب ٤٢ ومسلم فی الحج رقم ٤٠٥ وابوداود فی المناسک باب ٩٣ رقم ٢٠٢٨ والترمذی فی الحج باب ٤٨ رقم ٨٧٦ والنسائی فی المناسک باب ١٢٩ باب الصلاة فی الحجر)_

ابادئ مطابق جوړه کړي.خو حضرت امام مالك اونورو بزرګانو ددې ویرې نه منع کړلو.چه روستو به د خانه کعبه د جوړولو نه یوه لوبه جوړه شي.هرکس به د خپلې خوښې مطابق په دې کې تغير او تبديل راولي

**فَلِهٰذَا يُجْعَلُ الطَّوَافُ مِنْ وَرَائِهِ** نوځکه به کولای شي طواف بهر ددې نه، **حَتّٰى لَوْ دَخَلَ الْفُرْجَةَ الَّتِي بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْبَيْتِ لَا يَجُوْزُ** تردې که داخل شو په هغه راؤ (فرجه) کې چې په مینځ دده اود بیت کې ده.نو جائزبه نه وی.

**تشریح:- الطواف خارج الحطيم**۞بهرحال صورت د مسئلې دا دې.چه طواف به د حطيم نه بهر کوی.په حطيم کې دننه به نه کوی.که طواف کونکې په حطيم کې ورداخل شو.اوطواف ئې اوکړلو.نودا جائز نه دی.

**دلیله**۞دليل دا دې.چه حطيم د بيت الله برخه ده.لکه چې د حضرت عائشې رضي الله عنها دحديث نه ثابته شوه.چه ﴿إن الحطيم من البيت﴾ اوحکم چې شوې دې.نوهغه د بيت الله نه بهر د طواف کاوه دې په بيت الله کې دننه د طواف حکم نه دې شوې .لکه چې د الله تعالی ارشاد دې[وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيْقِ۞] اوطواف دې اوکړی د بيت عتيق ګورئ د قديم بيت د طواف حکم شوې دې.په قديم بيت کې دننه د طواف حکم نه دې شوې .اود قديم بيت نه ټوله خانه کعبه مراد ده.نود واړه بيت طواف ضروری شو.اوپه واړه بيت کې حطيم هم ګډ دې.نوپه طواف کې د حطيم راګيرول هم ضروری شو.

**إِلَّا أَنَّهُ إِذَا اسْتَقْبَلَ الْحَطِيْمَ وَحْدَهُ لَا تُجْزِيْهِ الصَّلَاةُ** البته دا ده.که چرې دې مخ کړی صرف حطيم ته.نونه جائز کيږي دده نه مونځ، **لِأَنَّ فَرْضِيَّةَ التَّوَجُّهِ ثَبَتَتْ بِنَصِّ الْكِتَابِ** ځکه چې فرضيت د مخ کاوه قبله ته ثابت دې په نص د قرآن **فَلَا تَتَأَدّٰى بِمَا ثَبَتَتْ بِخَبَرِ الْوَاحِدِ احْتِيَاطًا** نو نشي به ادا کولې په هغه څه چې ثابت شوې وی په خبر واحد سره،د امله د احتياط نه، **وَالْاِحْتِيَاطُ فِي الطَّوَافِ أَنْ يَّكُوْنَ وَرَاءَهُ** او احتياط په طواف کې دا دې.چه وی بهر د حطيم نه

**تشریح:- السوال**۞ عبارت د يو د سوال مقدر ځواب دې.سوال دا دې .که حطيم د بيت برخه وی.نو بايد ده چې صرف حطيم ته مخ کړې شي.اولمونځ اوکړې شي.نودا دې جائز وې.ځکه حطيم هم د بيت برخه ده.حالانکه دا جائز نه ده.

**الجواب**۞د دې ځواب دا دې.چه بيت الله ته مخ کول په نص قرآني سره ثابت دې.الله تعالی فرمائيلی دی[فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهُ] اودا خبره چې حطيم د بيت الله برخه ده.په خبر واحد سره ثابته شوې ده. اود احتياط تقاضا دا ده.چه کوم شي په نص قطعي سره ثابت شوې وی.هغه د هغه شي د امله ترك نکړې شي.کوم چې په خبرواحد ثابت شوې وی.نوپه طواف کې احتياط په دې کې دې.چه حطيم په طواف کې ګډ کړې شي.

### په اولنو درې چکرونو کې پهلوانی کول

**قَالَ** (**وَيَرْمُلُ فِي الثَّلَاثَةِ الْأُوَلِ مِنَ الْأَشْوَاطِ**) فرمائی او رمل به کوی په دريو اولنو کې د چکرونوځنې، **وَالرَّمَلُ أَنْ يَّهُزَّ فِي مِشْيَتِهِ الْكَتِفَيْنِ** او رمل دا دې.چه خوزوی په تګ خپل کې اوږې **كَالْمُبَارِزِ يَتَبَخْتَرُ بَيْنَ الصَّفَّيْنِ** پشان د مقابله کونکې چې فخر کوی په مينځ د دوو صفونو کې ، **وَذٰلِكَ مَعَ الْاِضْطِبَاعِ** اودا به وی سره د اضطباع نه،

**حل اللغة**۞ ①**يرمل، رملا**: اوږو خوزولو سره ځغستل(منډه وهل) ②**هز، يمزهزا**(ن): خوزول ③**كتفين** دَ كتفت تثنيه ده: اوږه ④ **مبارز**: دَ جنګ دَ پاره دَ مقابلې وتونکې ⑤ **يتبختر، تبخترا**: پهلواني کاوه سره تلل

**وَكَانَ سَبَبُهُ إِظْهَارَ الْجَلَدِ لِلْمُشْرِكِيْنَ حِيْنَ قَالُوْا**:او وو سبب ددې ښکاره کول د بهادریٔ مشرکانو ته،په کوم وخت کې چې وئيلې وو هغوی **أَضْنَاهُمْ حُمّٰى يَثْرِبَ** کمزوری کړی دی دوی تبې د يثرب

**تشریح:- سبب الرمل**۞د رمل سبب دا دې.چه د حديبيه په کال چې رسول الله ﷺ د عمرې لپاره مکې معظمې ته داخليدل غوښتل،نومشرکانو د مکې د عمرې اود بيت الله د زيارت نه مسلمانان منع کړل.اوپه دې باندې صلح اوشوه.چه سخ کال به بغيرد عمرې نه واپس لاړ شي.اوراروان کال ته به بغير د جنګي سازوسامان نه مکې ته داخل شي اوعمره به اوکړی اودرې ورځې به په مکه کې قيام اوکړی.په راروان کال چې کله نبي ﷺ



د عمرې ادا کاوه لپاره تشريف يوړلو.نود مکې خلګو درې ورځو لپاره خانه کعبه خالي کړې وه.اوپه خپله غر ته ختلې وو.نورسول الله ﷺ د صحابوؓ سره د خانه کعبې طواف کولو.نبي ﷺ په دغه مهال کې د مشرکانو نه واوريدل.چه بعضې په کې بعضو نورو ته وائی.مسلمانان د يثرب تبې کمزورې کړی دی.چه نبي دا واوريدل.نوخپل دواړه لاسونه ئې کهولاؤ کړل.او رمل ئې پيل کړلو.اوصحابوؓ ته ئې هم ددې حکم اوکړلو.چه د مسلمانانو د بهادریٔ او توان مشرکان په خپلو سترګو مشاهده اوکړی.

**ثُمَّ بَقِيَ الْحُكْمُ بَعْدَ زَوَالِ السَّبَبِ فِي زَمَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَبَعْدَهُ** بيا پاته پاتې شو حکم روسته د زوال د سبب نه، په زمانه د نبي ﷺ کې او روستو ددویﷺ نه.

**تشریح:- وجه بقاء حكم الرمل مع زوال سببه**۞دا سبب اګرچه زائله شوې دې.خو حکم ئې پاته دې.ځکه چې د حضرت جابراو ابن عمرؓ نه نقل دی.چه په حجة الوداع کې نبي ﷺ په يوم النحرکې په اولنو درې چکرونوکې رمل کولو.حالانکه د حجة الوداع په کال په مکه کې مشرك پاتې نه وو.نوهرکله چې د سبب د زوال نه روسته هم نبي ﷺرمل کړې دې.نوموږ د نبي ﷺ په تابعدارئ کې هم د رمل کاوه زيات مستحق يو.

### پاته څلور ګښتونه (چکرونه) په اطمينان سره کول

**قَالَ** (**وَيَمْشِي فِي الْبَاقِي عَلٰى هَيْنَتِهِ**) فرمائی اوځی به په پاته چکرونو کې په خپل وقار سره، **عَلٰى ذٰلِكَ اتَّفَقَ رُوَاةُ نُسُكِ رَسُوْلِ اللّٰهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** (۱) په دې باندې متفق دی راويان د افعالو د حج د رسول الله

**حل اللغة**۞ ①**هيئة**: وقار ②**رواة** دَ راوی جمع: نقل کونکې ]

**تشریح:- عدم الرمل في الاشواط الاربعة**۞صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه په پاته څلورو چکرونو کې به په خپل وقار او په اطمينان سره ځی.رمل به نه کوی.

**دليله**۞ځکه چې کومو صحابوؓ د نبي دحج افعال نقل کړی دی.د هغوی ټولو په دې باندې اتفاق دې. چې نبي په اولنو درې چکرونو کې رمل کړې وو.اوپه پاته څلورو چکرونو کې ئې رمل نه وو کړې.

**وَالرَّمَلُ مِنَ الْحَجَرِ إِلَى الْحَجَرِ** او رمل د حجراسود نه ترحجر اسوده پورې وی. **هُوَ الْمَنْقُوْلُ مِنْ رَمَلِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** (۲) هم دا منقول دی.د رمل د رسول الله ﷺ نه

**تشریح:- محل ابتداء الرمل** ۞اود رمل يوچکر به د حجراسود نه پيل کيږی.اوهم په حجر اسود به ختميږی.ځکه چې د رسول الله ﷺ د رمل په اړه کې هم دا منقول دی.

### په ګڼړه کې د رمل حکم

**فَإِنْ زَحَمَهُ النَّاسُ فِي الرَّمَلِ قَامَ** که ګڼړه جوړه کړی خلګ په ده باندې په رمل کې ،نواودې دريږی. **فَإِذَا وَجَدَ مَسْلَكًا رَمَلَ** کله چې مومی ځائې نو رمل دې کوی.

**حل اللغة**۞ ①**زحمه، زحاما**(ف): ګڼړه کول ②**مسلك**:لاره

**تشریح:- عدم سقوط الرمل لوجه الازدحام**۞وړاندې تير شوی دی.چه په اولنو چکرونو کې رمل کول واجب دی.نوکه د ګڼړې د امله د رمل کول ممکن نه وی.نواودې دريږی تردې چې لار بيا مومی.نو رمل دې کوی.بغيرد رمل دې طواف نه کوی.

---

(۱) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه البخاری فی الحج باب ۸۰ رقم ۱۶۴۴ ومسلم فی الحج رقم ۲۳۰ وأحمد فی المسند (۹۸/۲)_

(۲) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه مسلم فی الحج رقم ۲۳۳ وابوداود فی المناسک باب ۵۰ رقم ۱۸۹۱ والنسائی فی المناسک باب ۱۵۴ رقم ۲۷۵۱ وابن ماجه فی المناسک باب ۲۹ رقم ۲۹۵۰ )_

**لِأَنَّهُ لَا بُدَّ لَهُ فَيَقِفُ حَتَّى يُقِيمَهُ عَلَى وَجْهِ السُّنَّةِ** ځکه چې نشته بدل ددې (رمل) دپاره، نو اودرېږي به تردې چې ادا ئې کړي په طريقه د سنت

**تشريح:- دليله**۞دليل دا دې چه د رمل متبادل بل څه نشته.ددې امله که د ګڼړې د امله په اولنودرې چکرونو کې رمل کول ممکن نه وي.نو انتظار دې کوي.چه په سنت طريقه رمل اوکړي

**بِخِلَافِ الِاسْتِلَامِ لِأَنَّ الِاسْتِقْبَالَ بَدَلٌ لَهُ** په خلاف د استلام (دحجر اسود) ځکه چې مخ كول (حجراسود ته) بدل دې د هغې (استلام) نه

**تشريح:-** په خلاف د حجر اسود دښکلولو ځکه چې هلته د حجر اسود استلام متعذر شي.نو انتظار دې نه کوي.بلکه حجر اسود ته دې مخ کړي.او وړاندې دې تير شي.ځکه چې استقبال د استيلام بدل دې.

## په هرچکر کې د حجر اسود استيلام

**قَالَ وَيَسْتَلِمُ الْحَجَرَ كُلَّمَا مَرَّ بِهِ** فرمائي اواستيلام به کوي د حجراسود هرکله چې تيريږي په دې باندې، **إِنْ اسْتَطَاعَ** که توان لري.

**تشريح:- الاستيلام في كل شوط**۞صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي.چه کله هم په طواف کې د حجر اسود نه تيريږي.نود قدرت په صورت کې به ددې استيلام کوي.يعني ښکلوي به ئې.

**لِأَنَّ أَشْوَاطَ الطَّوَافِ كَرَكَعَاتِ الصَّلَاةِ** ځکه چې ګښتونه (چکرونه) د طواف په شان د رکعتونو د لمانځه دی. **فَكَمَا يَفْتَتِحُ كُلَّ رَكْعَةٍ بِالتَّكْبِيرِ يَفْتَتِحُ كُلَّ شَوْطٍ بِاسْتِلَامِ الْحَجَرِ،** نولکه څنګه چې پيل کيږي دهر رکعت په تکبير سره دغه ډول به پيل کيږي هرچکر په استيلام د حجر اسود،

**تشريح:- دليله**۞ځکه چې په طواف کې ګښتونه پشان د لمونځ د رکعتونو دې.لکه څنګه چې د رسول الله ﷺ ارشاد دې. «الطواف بالبيت صلاة» نولکه څنګه چې د لمانځه هر رکعت د تکبير نه پيل کيږي.دغه ډول به د طواف هريوچکر د استيلام د حجر اسود نه پيل کيږي.

**تائيده**۞ددې تائيد د بخاري شريف د حديث نه هم کيږي. «أن النبي ﷺ طاف على بعير كلما أتى على الركن اليماني أشار إليه بشيء في يده».

**وَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الِاسْتِلَامَ اسْتَقْبَلَ وَكَبَّرَ وَهَلَّلَ عَلَى مَا ذَكَرْنَا** اوکه توان نه لري د استيلام نومخ کوي دې اوتکبير دې وائي اوتهليل دې وائي.څنګه چې موږ بيان کړي دی.

**تشريح:- استقبال الحجر عند عدم القدرة**۞اوکه د استيلام قدرت نه وي.نوحجراسودته دې مخ کوي.اوتکبير اولااله الا الله دې وائي.

**وَيَسْتَلِمُ الرُّكْنَ الْيَمَانِيَ وَهُوَ حَسَنٌ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ،**(١) اوښکلوي دې رکن يماني دا مستحب دی په ظاهرروايت کې ، **وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّهُ سُنَّةٌ** اودامام محمد رحمه الله نه روايت دې.چه دا سنت دی.

**تشريح:- الروايتان في حكم استلام الركن اليماني**۞صاحب د قدوري رحمه الله فرمائي.چه په هرچکرکې دې استيلام درکن يماني کوي.د ظاهر روايت مطابق د رکن يماني استيلام مستحب اومندوب دې.②او د امام محمد رحمه الله دقول مطابق مسنون دی.

**وَلَا يَسْتَلِمُ غَيْرَهُمَا** اونه دې ښکلوي سوې ددې دواړو نه، **فَإِنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يَسْتَلِمُ هَذَيْنِ الرُّكْنَيْنِ**

(١) القول الراجح هو هذا ظاهر الرواية كذا فى فتح القدير(٢\٣٥٩) وردالمحتار(٢\١٨٤) والهندية (١\٢٢٦) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٠٩)-



(١) ځکه چې نبي ﷺ به استيلام کاوه ددې دواړو **وَلَا يَسْتَلِمُ غَيْرَهُمَا** او استيلام به ئې نه کاوه سوې ددې نه.

**تشريح:- عدم استلام الركن الشامي والعراقي ودليله**۞اود حجراسود اورکن يماني نه سوې دې د رکن شامي اورکن عراقي استيلام نه کوي.ځکه چې رسول الله ﷺ به د حجراسود اود رکن يماني استيلام کولو.خود رکن شامي اورکن عراقي استيلام به ئې نه کولو.

**وَيَخْتِمُ الطَّوَافَ بِالِاسْتِلَامِ يَعْنِي اسْتِلَامَ الْحَجَرِ** اوختموي به طواف په استيلام يعني په استيلام دحجراسود.

**تشريح:- اختتام الطواف باستلام الحجر الاسود**۞صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي.چه د طواف اختتام دې د حجراسود په استيلام سره کوي.د رکن يماني په استيلام سره دې نه کوي.

## په مقام ابراهيم کې نفل کول

**قَالَ ثُمَّ يَأْتِي الْمَقَامَ فَيُصَلِّي عِنْدَهُ رَكْعَتَيْنِ** فرمائي بيا به لاړ شي مقام (ابراهيم عليه السلام) ته،نولمونځ به اوکړي دهغې سره دوې [دوه] رکعته **أَوْ حَيْثُ تَيَسَّرَ مِنَ الْمَسْجِدِ** يا چې په کوم ځائې کې ورته آسان وي د جمات (په حدودو) کې

**تشريح:- المراد من المقام**۞دمقام ابراهيم نه هغه کاڼړې مراد دې.په کوم باندې چې حضرت ابراهيم عليه السلام د خانه کعبې جوړولو په وخت کې ولاړ وو.د هغوی داودريدو په وجه په دې کاڼړې دهغوی د قدمونو نښې جوړې شوې دی.

**وَهِيَ وَاجِبَةٌ عِنْدَنَا** اودا واجب دی په نيز زموږ

**تشريح:- المذهبان في حكم ركعتي الطواف**۞مسئله دا ده.چه د طواف نه اوزګار شي.نود مقام ابراهيم عليه السلام يا چې په مسجدحرام کې ورته په کوم ځائې کې آسانه وي.دوې [دوه] رکعته دې کوي.دا لمونځ زموږ په نيز واجب

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: سُنَّةٌ** اوفرمائي شافعي رحمه الله (چه دا ) سنت دی. **لِانْعِدَامِ دَلِيلِ الْوُجُوبِ** د امله د نشتوالي د دليل د وجوب،

**تشريح:-** اود امام شافعي رحمه الله په نيزسنت دې.

**دليله**۞دامام شافعي رحمه الله دليل دادې.چه ددې لمونځ په وجوب باندې چونکه څه دليل نشته.ځکه دا واجب نه دې.

**وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ { وَلْيُصَلِّ الطَّائِفُ لِكُلِّ أُسْبُوعٍ رَكْعَتَيْنِ** (٢) اوزموږ لپاره قول د نبي ﷺ دې.چه لمونځ دې کوي طواف کونکې د هراووه چکرونو لپاره دوې [دوه] رکعته

**تشريح:- دلائل الاحناف** رحمهم الله ۞اوزموږ دليل دا دې.①چه نبي ﷺ فرمائيلي دی. «وليصل الطائف لكل أسبوع ركعتين» لمونځ دې کوي طواف کونکې د هراووه چکرونو لپاره دوې [دوه] رکعته،په حديث کې د «ليصل» د امر صيغه ده.او امر لپاره د وجوب وي.②اوپه يو بل حديث کې دی.چه کله نبي ﷺ مقام ابراهيم ته اورسيدلو.نودا آيت ئې تلاوت کړلو.(وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى) اوبيا ئې دوې [دوه] رکعته اوکړل.په دې آيت کې هم ((وَاتَّخِذُوا)) د امرصيغه ده.دکوم نه چې وجوب ثابتيږي.

**وَالْأَمْرُ لِلْوُجُوبِ** او امر لپاره د وجوب وي.

(١) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه الجماعة إلا الترمذى كذا قاله الزيلعى رحمه الله نصب الراية ٣/٥٣)_

(٢) غربه الزيلعى رحمه الله بهذا اللفظ ثم قال وأخرجه البخارى ومسلم عن نافع عن ابن عمر رضي الله عنهما أن رسول الله ﷺ كان إذا طاف بالحج والعمرة أول مايقدم فإنه يسعى ثلاثة أطواف ويمشى أربعاً ثم يصلى سجدتين كذا فى نصب الراية (٣/٥٣)_

**تشریح:- السوال** ﴿ څوک څوک دا سوال اوکړي. چه نبی ﷺ په کوم وخت کي باندېچي‌ته لمونځ تعلیم ورکاوه نو هغه وئیلی وو. ﴿هل علی غیرهن﴾ نبی ﷺ په ځواب کي فرمائیلی وو. ﴿لا إلا أن تطوع﴾ ددې حدیث نه معلومه شوه. چه د پنځو مونځونو نه سوې بل لمونځ واجب او فرض نه دې.

**الجوابان** ﴿ ① نوددې ځواب دا دې. چه حدیث د باندېچي متروك الظاهر دی. ځکه چې په دې باندې د ټولو اتفاق دې. چه لمونځ د جنازې او لمونځ د اخترونو واجب دی. (د اخترونو د لمونځ په اړه کي د اتفاق دعوی محل نظر دې. ځکه ددې په وجوب کي د امامانو اختلاف دې.) حالانکه په دې حدیث کي ددې مونځونو بیان نشته. ② او دوهم ځواب دا دې. چه ممکن ده. حدیث د باندېچي ددې نه وړاندې وی.

## د سعی نه وړاندې استلام د حجر اسود

ثُمَّ يَعُودُ إِلَى الْحَجَرِ فَيَسْتَلِمُهُ بیابه واپس شي حجر (اسود) ته، نوښکل به کړي دا، لِمَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَمَّا صَلَّى رَكْعَتَيْنِ عَادَ إِلَى الْحَجَرِ} [1] ددې امله چې روایت شوې دې. چه نبی ﷺ چې کله لمونځ اوکړلو. دوې [دوه] رکعته نو واپس شو حجر اسود ته.

**تشریح:- استلام الحجر بعد رکعتی الطواف** ﴿ فرمائی که د طواف او صلاة طواف نه روسته ئې د سعی اراده وی. نو د صلاة طواف نه روسته دې حجر اسود ته لاړ شی. او هغه دې ښکل کړي. ځکه چې په حدیث د حضرت جابر ﷺ کي دی. چه کله نبی ﷺ د طواف دوې [دوه] رکعتونه اوکړل. نو واپس حجر اسود ته لاړلو. او هغه ئې ښکل کړلو.

وَالْأَصْلُ أَنَّ كُلَّ طَوَافٍ بَعْدَهُ سَعْيٌ يَعُودُ إِلَى الْحَجَرِ او اصل دا دې. چه هر هغه طواف چې وي روسته د هغې نه سعی نو واپس کیږي به په کي حجر اسود ته.

**تشریح:- القاعدة** ﴿ صاحب دهدایه رحمه الله دا قاعده ذکر کړې ده. چه د کوم طواف نه روسته د صفا مروه په مینځ کي د سعی اراده وی. نو په هغې کي به د طواف او صلاة طواف نه روسته حجر اسود ته واپس کیږي. او هغه به ښکلوی. او د کوم طواف نه روسته چې سعی نه وی. نو په هغې کي حجر اسود ته واپس کیدلو ضروت نشته.

لِأَنَّ الطَّوَافَ لَمَّا كَانَ يُفْتَتَحُ بِالِاسْتِلَامِ ځکه چې طواف هر کله وو چې پیل کیدو د استیلام نه فَكَذَا السَّعْيُ يُفْتَتَحُ بِهِ نو دغه ډول سعی هم د استیلام نه پیل کیږي. بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَكُنْ بَعْدَهُ سَعْيٌ په خلاف دهغه صورت چې نه وي روسته ددې نه سعی

**تشریح:- دلیله** ﴿ دلیل دا دې. چه لکه څنګه افتتاح د طواف هم د استلام سره وو. دغه ډول به د سعی افتتاح هم په استلام سره کوی.

## د طواف قدوم شرعی حیثیت

قَالَ (وَهَذَا الطَّوَافُ طَوَافُ الْقُدُومِ) صاحب د قدوری فرمائی. او دا طواف، طواف قدوم دې. وَيُسَمَّى طَوَافَ التَّحِيَّةِ او نوموړل کولای شی په طواف تحیه سره،

**تشریح:- اسماء طواف القدوم** ﴿ مصنف د قدوری رحمه الله فرمائی. چه مکې معظمې ته په دې خلیدو چې کوم طواف کیږي. هغه ته طواف قدوم وائی. او ددې دوهم نوم طواف تحیه او دریم نوم طواف لقاء او څلورم نوم طواف اول عهد دې.

وَهُوَ سُنَّةٌ وَلَيْسَ بِوَاجِبٍ او دا سنت دې. واجب نه دې.

[1] أخرجه مالک فی مؤطاه کتاب الحج باب الإستلام فی الطواف رقم ۱۱۲ ومسلم فی الحدیث الطویل فی خطبة الحجة الوداع النبویة عن جابر ۱۴۷)_



**تشریح:- المذهبان في حکم طواف القدوم** ﴿ زموږ په نیز دا طواف د آفاقی لپاره سنت دې واجب نه دې.

وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللَّهُ: إِنَّهُ وَاجِبٌ لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او امام مالك رحمه الله فرمائی. چه واجب دې. د امله د قول د نبی ﷺ نه {مَنْ أَتَى الْبَيْتَ فَلْيُحَيِّهِ بِالطَّوَافِ} [1] چې څوك راشی بیت الله ته، نو پیشکشی دې وړاندې کړي (ورته) په طواف کاوه سره (یعنی طواف دې اوکړي.

**تشریح:-** او د امام مالك رحمه الله په نیز واجب دې.

**دلیله** ﴿ د امام مالك رحمه الله دلیل دا حدیث دې. چه ﴿من أتى البيت فليحيه بالطواف﴾ یعنی کوم سړې چې بیت الله ته لاړ شی. نو تحیه دې ورته په طواف سره پیش کړي. لکه څنګه چې د مومن سره تحیه په لفظ د سلام سره ده. په دې حدیث کي د طواف حکم په صیغه د امر ورکړې شوې دې. او د امر موجب وجوب وی.

وَلَنَا أَنَّ اللَّهَ تَعَالَى أَمَرَ بِالطَّوَافِ، او امر لپاره د وجوب وی) او زموږ لپاره دلیل دا دې. چه الله تعالی حکم کړې دې. د طواف وَالْأَمْرُ الْمُطْلَقُ لَا يَقْتَضِي التَّكْرَارَ. او امر مطلق تقاضا نه کوی د تکرار، وَقَدْ تَعَيَّنَ طَوَافُ الزِّيَارَةِ بِالْإِجْمَاعِ او یقیناً متعین شوې دې (د فرضیت دپاره) طواف زیارت په اجماع.

**تشریح:- دلیل الاحناف** رحمهم الله ﴿ زموږ دلیل دا الله تعالی ارشاد دې. چه ((الْعَتِيقِ بِالْبَيْتِ وَلْيَطَّوَّفُوا)) په دې کي د طواف حکم دې. او امر مطلق د تکرار تقاضا نه کوی. او د طواف زیارت فرضیت په اجماع سره متعین دې. نو هر کله چې طواف زیارت د فرضیت لپاره متعین شوې دې. نو بل طواف به واجب نه وی. ګنی په امر کي به تکرار لازم شی. (او دا جائز نه ده)

وَفِيمَا رَوَاهُ سَمَّاهُ تَحِيَّةً او په هغه حدیث کي چې نامدار کړې دې نبی ﷺ په پیشکشئ سره وَهُوَ دَلِيلُ الِاسْتِحْبَابِ دا دلیل د استحباب دې. وَلَيْسَ عَلَى أَهْلِ مَكَّةَ طَوَافُ الْقُدُومِ او نشته په اهل مکه باندې طواف قدوم، (لِانْعِدَامِ الْقُدُومِ فِي حَقِّهِمْ د امله د نشتوالی د راتلونه په حق د دوی کي.

**تشریح:- الجواب من مستدل مالک** رحمه الله ﴿ د امام مالك رحمه الله د پیش کړي حدیث نه ځواب دا دې. چه په دحدیث کي ئې طواف ته د تحیه طواف وئیلې دې. او تحیه په استحباب باندې دلالت کوی. ځکه چې په لغت کي تحیه دهغه اکرام نوم دې. چه دهغې پیل علی سبیل التبرع وی. نو د لفظ تحیه د قرینه په وجه وجوب نه ثابتیږي. دا خیال ساتئ. چه د مکې د اوسیدونکو په حق کي دا طواف مسنون هم نه دې. ځکه چې دا طواف د بهرنه د راتلونکو لپاره د قدوم په وجه باندې سنت دې. او د مکې د خلګو په اړه کي قدوم نشته. نو دا طواف به هم نه وی.

## د صفا ډیرئ مسنون اعمال

قَالَ ثُمَّ يَخْرُجُ إِلَى الصَّفَا فَيَصْعَدُ عَلَيْهِ فرمائی بیا به اوځی اړخ د صفا ته نو اودې خیژی په هغې باندې، وَيَسْتَقْبِلُ الْبَيْتَ وَيُكَبِّرُ وَيُهَلِّلُ وَيُصَلِّي عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او مخ دې کړي قبله ته، او، لا اله الا الله، دې اووائی. او درود دې ووایي په نبی ﷺ وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ وَيَدْعُو اللَّهَ لِحَاجَتِهِ او لاسونه دې اوچت کړي. او سوال دې اوکړي د الله نه،

**حل اللغة:** ① یصعد، صعوداً (س): ختل

**تشریح: کیفیة السعی من الصفا** ﴿ مسئله دا ده. چه د طواف قدوم نه فارغ شی. نو اول به د صفا مروه په مینځ کي سعی اوکړي. نو صفا ته به اوخیژی. او بیت الله ته به مخ کړي. او تکبیر او، لا اله الا الله، به اووائی. او په نبی ﷺ به درود اووائی. او لاس دې اوچت کړي. د خپل حاجت لپاره دې د الله تعالی نه دعا اوغواړي.

[1] قال الزیلعی رحمه الله غریب جداً نصب الرأیة (۵۷/۳)_

لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ صَعِدَ الصَّفَا حَتَّى إِذَا نَظَرَ إِلَى الْبَيْتِ ځكه نقل دي چه نبي ﷺ اوختلو صفا ته ترديچي كله ئې اوكتلو بيت الله. قَامَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ يَدْعُو اللَّهَ (۱) نو ودريدلو مخ په قبله. او دعاء ئې غوښتله د الله ﷻ نه.

**تشريح:- دلائله**ځكه نقل دي. ①چه نبي ﷺ صفا ته اوختلو. ترديچه بيت الله ئې په نظرشو. نوقبلې ته ئې مخ كړلو. اودعا ئې اوكړله.

لِأَنَّ الثَّنَاءَ وَالصَّلَاةَ يُقَدَّمَانِ عَلَى الدُّعَاءِ تَقْرِيبًا إِلَى الْإِجَابَةِ اوځكه چې ثناء اودرود دواړه وړاندې وي په دعا باندې، چه نزدې وي قبلوالى ته، وَكَمَا فِي غَيْرِهِ مِنَ الدَّعَوَاتِ لكه په غير ددې (دعا) نه په نورو دعاګانوكې (چه د دعا نه وړاندې ثناء اودرود وئيلى شي) وَالرَّفْعُ سُنَّةُ الدُّعَاءِ او (لاسونه) پورته كول د دعا سنت دي.

**تشريح:-** اوددې امله چې ثناء اودرود دواړه په دعا باندې مقدم وي. ځكه چې په دې سره دعا قبليدو ته نزدې كيږي. لكه څنګه چې په نورو دعاګانو كې دي. (لكه لمونځ راواخله. چې اول درود دې. اوبيا ورپسے دعا ده.

وَإِنَّمَا يَصْعَدُ بِقَدْرِ مَا يَصِيرُ الْبَيْتُ بِمَرْأًى مِنْهُ اوخيژى به (په صفا) په دومره اندازه چې شي بيت الله په ځائې د ليدو ده ته، لِأَنَّ الِاسْتِقْبَالَ هُوَ الْمَقْصُودُ بِالصُّعُودِ ځكه قبله ته مخ كول مقصود دى. وَيَخْرُجُ إِلَى الصَّفَا مِنْ أَيِّ بَابٍ شَاءَ اواوځى (اړخ د) صفا ته، د(مسجد حرام د) كومے دروازې نه چې ئې خوښه وي. وَإِنَّمَا خَرَجَ النَّبِيُّ بَابَ بَنِي مَخْزُومٍ اويقيناً وتلې وو نبي ﷺ د دروازې د بنومخزوم نه، وَهُوَ الَّذِي يُسَمَّى بَابَ الصَّفَا اودا هغه (دروازه) ده. چه نوم ورته اخستلې شي باب الصفا ،، لِأَنَّهُ كَانَ أَقْرَبَ الْأَبْوَابِ إِلَى الصَّفَا لَا أَنَّهُ سُنَّةٌ (۲) ځكه چې دا (دروازه) د ټولونه نزدې ده صفا ته، ددې امله (ددې دروازې نه وتل) نه دى. چې دا سنت (عمل) دې.

**تشريح:- كيفية الصعود على الصفا**صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى. چه په صفاغونډئ به دومره خيجى. چې بيت الله دده نظر ته مخكى راشي. ځكه چې په صفا باندې د ختلونه مقصود د بيت الله استقبال دې. اودا مقصود به هم په دې صورت كې حاصليږي. صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى. چه صفا اړخ ته د تللو لپاره حاجى ته اختيار دې. چه دكومې دروازې نه غواړى. اودې ځى. او نبي كريم ﷺ د باب بنى مخزوم نه وتلې وو. باب بنى مخزوم ته باب صفا هم وائى. ددې دروازې نه د نبي كريم ﷺ وتل په دې وجه وو. چه دا دروازه د صفا غونډئ ته ډيره نژدې ده. نو ددې دروازې څخه به وتل مستحب وى. سنت به نه وى. لكه چې امام شافعى رحمه الله د باب صفا نه وتلو ته سنت وائى.

## په مروه باندې مسنون اعمال

قَالَ ثُمَّ يَنْحَطُّ نَحْوَ الْمَرْوَةِ وَيَمْشِي عَلَى هَيْنَتِهِ "فرمائى بيا دې راكوز شى اړخ د مروه ته، اوروان دې وى په خپل وقار، فَإِذَا بَلَغَ بَطْنَ الْوَادِي يَسْعَى بَيْنَ الْمِيلَيْنِ الْأَخْضَرَيْنِ سَعْيًا كله چې اورسيږى مينځ د وادئ ته، نو منډه دې وهى په مينځ د ميلين اخضرين كې په منډې وهلو سره، ثُمَّ يَمْشِي عَلَى هَيْنَتِهِ حَتَّى يَأْتِيَ الْمَرْوَةَ فَيَصْعَدُ عَلَيْهَا بيا دې روان وى په خپل وقار سره ترديچې اورسيږى مروه ته، اواوخيژى په هغې باندې، وَيَفْعَلُ كَمَا فَعَلَ عَلَى الصَّفَا اوكوى به هغه شان څنګه ئېچه كړى وو په صفا،

**حل اللغة:** ①**ينحط، انحطاطاً**: راكوزيدل ②**هينة**: وقار ③**مشى، مشيا** (ض): تلل

**تشريح:- كيفية السعى الى المروة** امام قدورى رحمه الله فرمائى. چه د صفا نه دې مروه اړخ ته راكوز شى. اوډيرپه آرام دې روان وى. بيا چې كله بطن وادى ته اورسى. نود ميلين اخضرين سره دې منډه اووهى. بيا دې په آرام

(۱) تقدم تخريجه فى حديث جابر رضي الله عنه الطويل)_

(۲) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه النسائى فى السنن الكبرى (۲/۴۰۱) رقم (۳۹۵۸)_



سره روان وى. ترديچې مروه ته اورسى. اوپه هغې دې اوخيژى. اوهغه شان اعمال دې اوكړى څنګه چې ئې په صفا كړى وو.

لِمَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَزَلَ مِنَ الصَّفَا وَجَعَلَ يَمْشِي نَحْوَ الْمَرْوَةِ ددې امله چې روايت شوې دې. چه نبي ﷺ د صفا نه راكوز شو. اوشروع ئې اوكړله چې تللو اړخ د مروه ته، وَسَعَى فِي بَطْنِ الْوَادِي حَتَّى إِذَا خَرَجَ مِنْ بَطْنِ الْوَادِي اومنډه ئې اووهله په مينځ د وادئ كې ، ترديچې تيرشو د مينځ د وادئ نه، مَشَى حَتَّى صَعِدَ الْمَرْوَةَ نوروان وو. ترديچې اوختلو په مروه باندې، وَطَافَ بَيْنَهُمَا سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ (۱) اوګنبتونه (چكرونه) ئې لګولى وو په مينځ ددې دواړو كې اووه ځله

**تشريح:- دليله**ځكه چې نقل شوى دى. چه نبي ﷺ د صفا نه راكوز شو. او په ارام سره مروه اړخ ته روان وو. اوپه بطن وادى كې ئې منډه اووهله. چه بيا كله د بطن وادى نه تير شو. نومروه ته اوختلو. اود دې دواړو په مينځ كې ئې اووه چكرې اولګولې.

قَالَ (وَهَذَا شَوْطٌ وَاحِدٌ اودا يوچكر دې.

**تشريح:- القولان في كيفية عدد الاشواط** ①صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى. چه دصفا نه مروه ته تلل يو شوط دې. ②اوامام طحاوى رحمه الله فرمائى. چه د صفا نه مروه ته تلل اوبيا واپس مروه ته راتګ دواړه يو شوط دې. خو اصح قول هغه دې. كوم چې علامه مرغينانى ذكركړې دې.

**دليل القول الاصح**ځكه چې د نبي ﷺ دحج د ناقلينو ټولو راويانو په دې باندې اتفاق دې. چه نبي ﷺ د صفا اومروه په مينځ كې اووه چكرې لګولې وې. اود امام طحاوى رحمه الله د بيان مطابق د اووه په ځائې څوارلس اشواط جوړيږي. نوځكه د صاحب هدايه رحمه الله قول اصح معلوميږي.

## د سعى د پيل اواختتام ځايونه

فَيَطُوفُ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ يَبْدَأُ بِالصَّفَا وَيَخْتِمُ بِالْمَرْوَةِ نوكوى دې اووه شوطونه، شروع به كوى د صفا نه او ختموى به ئې په مروه باندې. وَيَسْعَى فِي بَطْنِ الْوَادِي فِي كُلِّ شَوْطٍ اومنډه به وهى په بطن الوادى كې ، په هريوشوط كې، لِمَا رَوَيْنَا دهغه حديث د امله كوم چې موږ روايت كړو. ، وَإِنَّمَا يَبْدَأُ بِالصَّفَا لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِيهِ اويقيناً پيل به كوى د صفا نه د امله د قول د نبي ﷺ په دې اړه كې {ابْدَءُوا بِمَا بَدَأَ اللَّهُ تَعَالَى بِهِ (۲) چې پيل كوئ په هغه څه چې پيل كړې ده الله تعالى په هغې باندې (يعنى په قرآن كې اول د صفا اوبيا د مروه ذكر دې)

**حل اللغة:** ① **يبدا، بدءاً** (ف): پيل كول ② **يختم، ختماً** (ض): ختم كول

**تشريح:- وجوب ابتداء السعى من الصفا**صاحب دقدورى رحمه الله فرمائى. چه سعى اووه شوطونه (چكرې) دى. د شوط پيل به د صفا نه كيږى. اوپه مروه به ختميږى. اوپه هرشوط كې به په بطن وادى كې منډه وهى.

**دلائله** ①دليل هغه حديث دې. كوم چې د تيرے شو، مسئلې په ضمن كې تيرشوې دې. يعنى «أن النبي ﷺ نزل من الصفا وجعل يمشى ؛ حوالمروة الحديث» ②اود صف نه د سعى په پيل كولودا حديث دليل دې. «ابدأوا بما بدالله تعالى به» يعنى ، كوم ځائې نه چې الله تعالى په قرآن كې پيل كړې ده. د هغه ځائې نه سعى پيل كوئ. اوالله تعالى د صفا نه پيل كړې ده. فرمائى. [إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ][۱] په دې. حديث كې لفظ د «اسعوا» صيغه د امر ده. نود صفا څخه به پيل كول واجب وى.

ثُمَّ السَّعْيُ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَاجِبٌ بيا سعى په مينځ دصفا اومروه كې واجب ده. وَلَيْسَ بِرُكْنٍ اوركن نه دې.

(۱) تقدم تخريجه فى حديث جابر رضي الله عنه الطويل)_

(۲) أخرجه النسائى باب القول بعد ركعتى الطواف رقم ۷۷۲ والدارقطنى (۲/۲۵۵) والبيهقى (۵/۱۵۱) رقم (۹۳۳۷)_

تشريح:- **المذهبان في حكم السعي**: پاتې شوه دا خبره چې د صفا مروه په مينځ كې سعى كول واجب دي كه ركن؟ نو په دې اړه كې د عالمانو رحمهم الله اختلاف دې. ① زمونږ په نيز ركن نه دې بلكه واجب ده.

**وَقَالَ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللّٰهُ: إِنَّهُ رُكْنٌ لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** او امام شافعي رحمه الله فرمائي. چه دا ركن دې. د امله ددې وينا د نبى ﷺ **إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى كَتَبَ عَلَيْكُمُ السَّعْيَ فَاسْعَوْا**[1] چې الله تعالى فرض كړې ده په تاسو باندې سعى نو سعى كوئ.

تشريح:- او د امام شافعي رحمه الله په نيز ركن دې. هم دا د امام مالك او امام احمد رحمهما الله قول دې.

**دليله**: د امام شافعي رحمه الله دليل دا حديث دې. چه «إن الله كتب عليكم السعى فاسعوا» يعنى الله تعالى په تاسو باندې سعى كول ليكلې ده. نو سعى كوئ. او د كتب لفظ په فرضيت كې استعماليږى. نو څكه سعى ركن دې.

**وَلَنَا قَوْلُهُ تَعَالَى {فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا** او زمونږ لپاره دليل ارشاد دالله تعالى دې. نشته ګناه په ده چې طواف اوكړى په دې دواړو (صفا او مروه) **وَمِثْلُهُ يُسْتَعْمَلُ لِلْإِبَاحَةِ فَيَنْفِي الرُّكْنِيَّةَ وَالْإِيجَابَ** او پشان د داسې كلام استعمال كيږى په اباحت كې، نو نفى شو ركنيت او وجوب،

تشريح:- **دليل الاحناف** رحمهم الله: او زمونږ دليل دالله تعالى ارشاد دې. {فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا} په دې. آيت باندې استدلال په دې طريقه دې چه په دې. كې لفظ د {فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ} د اباحت لپاره استعماليږى. لكه د الله تعالى په دې. ارشاد كې {فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا النِّسَاءِ خِطْبَةِ مِنْ بِهِ عَرَّضْتُمْ}) كې هم اباحت مقصود دې. څكه چې د كومې ښځې خاوند وفات شوې وى. نو هغې ته په موده د عدت كې په كنايه سره خطبه د نكاح ليګل نه فرض دى او نه واجب دى. بهرحال لفظ د {فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ} د اباحت لپاره مستعمل دې. او كوم لفظ چې داباحت لپاره مستعمل وى. هغه د فرضيت او وجوب نفى كوى. د آيت ظاهر هم دا وائى. چه د صفا مروه په مينځ كې سعى نه فرض ده او نه واجب ده.

**إِلَّا أَنَّا عَدَلْنَا عَنْهُ فِي الْإِيجَابِ** صرف دومره ده چې مونږ عدول اوكړلو ددې (اباحت نه) په واجبولو كې (چه سعى مونه فرض كړه. لكه څنګه چې امام شافعي رحمه الله فرمائى. او نه مباح لكه څنګه چې د آيت د ظاهر نه معلوميږى. اود دې. دواړو په مينځ كې قول مو اختيار كړلو. چه وجوب د سعى دې)

تشريح:- **وجوه العدول عن الاباحة الى الايجاب**: ① خود ايجاب په حق كې مونږ د ايجاب نه عدول اوكړلو. يعنى د آيت ظاهر اګرچه دا وائى. چه سعى واجب نه ده. خو په دې. ظاهر باندې مونږ عمل پريښولو. د آيت په ظاهر باندې مو عمل څكه پريښولو. چه په حديث «إن الله كتب عليكم السعى فاسعوا» خبرواحد دې. او خبرواحد په وجوب دلالت كوى. ② دويمه وجه د استدلال دا ده. چه ددې آيت په اول كې دى. (( إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ)) او شعائر جمع د شعيرة ده. او شعيره نښانه ته وائى. او نښانه د دين فرض وى. نو د آيت دا برخه د سعى په فرضيت دلالت كوى. او هم ددې آيت آخرى برخه {فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ} په اباحت دلالت كوى. نو مونږ په دواړو عمل اوكړلو. او د وجوب قول مو اختيار كړو. څكه چې واجب اعتقاداً خو فرض نه وى. البته عملاً فرض وى. ③ دريمه وجه دا ده. چه د ايجاب د نفى عمل مو په اجماع باندې پريښولو. څكه چې د سعى د اباحت څوك هم قائل نه دى.

**وَلِأَنَّ الرُّكْنِيَّةَ لَا تَثْبُتُ إِلَّا بِدَلِيلٍ مَقْطُوعٍ بِهِ وَلَمْ يُوجَدْ** او بله دا چې ركنيت نه ثابتيږى مګر په دې سې دليل چې يقين شوې وى د هغې، او موجود نه دې. (داسې دليل په فرضيت د سعى)

[1] من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه الدارقطني في معجمه كذا عزاه إلى الهيثمي رحمه الله في مجمع الزوائد (۲۴۸/۳)۔



تشريح:- **الدليل الثاني لعدم ركنية السعي**: د سعى په وجوب او عدم ركنيت باندې زمونږ دوهم دليل دا دې. چه ركنيت په دليل قطعي سره ثابتيږى. او دليل قطعي نشته. نو ركنيت هم منتفي شو.

**ثُمَّ مَعْنَى مَا رُوِيَ كُتِبَ اسْتِحْبَابًا** بيا معنى د هغه څه چې روايت ئې شوې دې په لفظ د ((كتب)) (نو استحباب ترې مراد دې. (اګرچه د كتب متبادره معنى فرضيت دې. او په دې. روايت كې كتب په معنى د استحباب داسې دې) **كَمَا فِي قَوْلِهِ تَعَالَى {كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ} الْآيَةَ** لكه په قول دالله تعالى كې {كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ} چې دې. (يعنى په دې. آيت كې د وصيت لپاره لفظ د كتب استعمال شوې دې. حالانكه وصيت كول په اتفاق سره مستحب دې)

**الجواب من مستدل الشافعي رحمه الله**: د امام شافعي رحمه الله د اړخه د پيش كړې شوى حديث چې «إن الله كتب عليكم السعى فاسعوا» نه ځواب دا دې. چه د سعى استحباب ليكلې شوې دې. لكه په بل آيت كې {كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ} چې د مرګ په وخت وصيت كول مستحب دى. فرض نه دى. (حالانكه الله تعالى ترې تعبير په كتب سره كړې دې.) نو لكه څنګه چې دلته، كتب، د استحباب لپاره مستعمل دې. دغه ډول په مسئله د سعى كې هم ،كتب، د استحباب يعنى غيرفرض لپاره استعمال شوې دې.

## د سعى نه روسته داحرام په حالت كې په مكه كې قيام

**قَالَ (ثُمَّ يُقِيمُ بِمَكَّةَ حَرَامًا) لِأَنَّهُ مُحْرِمٌ بِالْحَجِّ** بيا دې. اوسيږى په مكه كې په حالت داحرام كې، ځكه چې دې. محرم دې. **فَلَا يَتَحَلَّلُ قَبْلَ الْإِتْيَانِ بِأَفْعَالِهِ** په حج نو نه به حلاليږى وړاندې د ادا كاوه د افعالو دهغې (حج)

حل اللغة: ① يتحلل، تحللاً: حلال كيدل

تشريح:- **القيام في مكة محرما بعد السعي**: صاحب د قدورى رحمه الله فرمائى. چه د طواف قدوم او سعى نه فارغ شى. نو ددې نه روسته دې. دا سړې په حالت د احرام كې په مكه كې اوسيږى. څكه چې ده دحج ادا كاوه لپاره احرام تړلې وو. نو اوس به د حج د افعالو ادا كولونه بغيرد احرام نه نه خارجيږى. يعنى داسې څه كار به نه كوى. چه په هغې باندې داحرام نه بهر شى.

**قَالَ (وَيَطُوفُ بِالْبَيْتِ كُلَّمَا بَدَا لَهُ)** او طواف دې. كوى د بيت الله نه چې كله ئې خوښه وى. **لِأَنَّهُ يُشْبِهُ الصَّلَاةَ قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** څكه چې دا مشابه دې. د لمانځه سره، فرمائيلى دى نبى ﷺ **الطَّوَافُ بِالْبَيْتِ صَلَاةٌ**[1] **وَالصَّلَاةُ خَيْرُ مَوْضُوعٍ** طواف د بيت الله لمونځ دې. او لمونځ بهترينه نيكى مقرر كړې شوې ده. **فَكَذَا الطَّوَافُ** نو دغه ډول طواف هم دې.

تشريح:- البته په دغه موده كې چې ئې څومره خوښه وى. د بيت الله طوافونه دې كوى

**دليله**: ددې دليل دا دې. چه نبى ﷺ طواف د لمانځه سره مشابه كړې دې. فرمائيلې ئې دى. «الطواف بالبيت صلاة إلا أن الله تعالى أحل فيه المنطق فمن نطق فيه فلا ينطق إلا بخير» يعنى د خانه كعبې نه طواف كول د لمانځه سره مشابه دې. نو څوك چې طواف كوى. خبرې دې. نه كوى. مګر ښه خبرې، ددې حديث نه ښكاره كيږى. چه طواف د لمانځه پشان دې. او لمونځ يو كار دې. چه د مخصوص ځايونو نه سوې په هرځائې كې په هروخت كې ادا كولې شى. نو دغه ډول طواف هم هر وخت ادا كولې شى.

**إِلَّا أَنَّهُ لَا يَسْعَى** مګر دومره ده چې دې. به سعى نه كوى **عَقِيبَ هَذِهِ الْأَطْوِفَةِ فِي هَذِهِ الْمُدَّةِ** روستو ددې چكرونو نه په دې. موده كې، **لِأَنَّ السَّعْيَ لَا يَجِبُ فِيهِ إِلَّا مَرَّةً** څكه چې سعى نه واجبيږى په دې. كې مګر يوځل، **وَالتَّنَفُّلُ بِالسَّعْيِ غَيْرُ مَشْرُوعٍ**

[1] من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه ابن حبان في صحيحه في النوع السادس والستين من القسم الثالث والحاكم في المستدرك (۴۵۹/۱)۔

اونفل په سعی کښې غير مشروع دې.(چه د طواف نه بغير د صفا مروه سعی کوی.نودا عبادت نه دې)

**تشريح:- عدم السعى بعدالطواف النفلى**۞البته دومره خبره ضرور ده.چه ددې نفلى طوافونو نه روسته دې د صفا اومروه په مينځ کښې سعی نه کوی.ځکه چې سعی صرف يوځل واجب ده.اوهغه د طواف قدوم نه روسته شوې ده.اوپه نفلی حيثيت سره سعی کول مشروع شوې نه ده.نود يوې سعی نه روسته دې. سعی نه کوی.

يُصَلِّي لِكُلِّ أُسْبُوعٍ رَكْعَتَيْنِ اولمونځ دې. کوی د هر اووه شوطونو لپاره دوې [دوه] رکعته، وَوَهِيَ رَكْعَتَا الطَّوَافِ عَلَى مَا بَيَّنَّا اودا رکعتونه د طواف دی.لکه څنګه چې موږ بيان کړی دی.

**تشريح:- ركعتان بعدسبعة اشواط**۞صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چه نفلى طواف کونکې دې. دهراووه شوطونو نه روسته دوې [دوه] رکعته کوی.دې. دوو رکعتونو ته صلاة الطواف وائی.لکه وړاندې چې حديث تير شوې دې.

## په اوومه ذوالحجه خطبه وئيل

قَالَ (فَإِذَا كَانَ قَبْلَ يَوْمِ التَّرْوِيَةِ فرمائی کله چې وړاندې ورځ شی د ورځ د ترويه نه، بيوم خطب الامام خطبة يَوْمٍ خَطَبَ الْإِمَامُ خُطْبَةً يُعَلِّمُ فِيهَا النَّاسَ الْخُرُوجَ إِلَى مِنًى نوخطبه دې. اوکړی خطيب يوه خطبه،په دې. کښې به خودنه کوی خلګو ته، منی ته د تلو، وَالصَّلَاةَ بِعَرَفَاتٍ وَالْوُقُوفَ وَالْإِفَاضَةَ) په عرفات کښې د لمونځ کولو،وقوف عرفات اودهلته نه د روانيدو. وَالْحَاصِلُ أَنَّ فِي الْحَجِّ ثَلَاثَ خُطَبٍ أَوَّلُهَا مَا ذَكَرْنَا حاصل دا چې په حج کښې درې خطبې دی.يوه دا کومه چې موږ ذکر کړه. وَالثَّانِيَةُ بِعَرَفَاتٍ يَوْمَ عَرَفَةَ دويمه په عرفات په ورځ د عرفه، "وَالثَّالِثَةُ بِمِنًى فِي الْيَوْمِ الْحَادِي عَشَرَ دريمه په منی کښې په يوولسمه ورځ(د ذوالحجه)

**حل اللغة**① **وقوف**: ودريدل ② **افاضة**: واپس کيدل

**تشريح:- الخطب الثلاث في الحج**۞ ①صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه په اوومه ذوالحجه به د ماپښين دلمانځه نه روسته امام خلګو ته يوه خطبه اووائی. ②اودويمه خطبه په نهمه ذوالحجه په ورځ دعرفه په ډګر عرفات کښې د ماپښين دلمانځه نه وړاندې اووائی. ③اودريمه خطبه په منی کښې د ماپښين دلمانځه نه روسته

فَيَفْصِلُ بَيْنَ كُلِّ خُطْبَتَيْنِ بِيَوْمٍ نوجدا والی به کوی په مينځ د هرې يوې خطبه کښې په يوه ورځ،

**تشريح:- الجلوس في الخطبيت**۞په اوله اودريمه خطبه کښې به د دوو خطبو په مينځ کښې نه کينی.بلکه صرف يوه خطبه به وائی.اوپه دويمه خطبه کښې يعنی د عرفات په خطبه کښې د دوو خطبو په مينځ کښې کښيناستل ضروری دی.

**المذهبان في ايام الخطبيت**۞ علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه دې. درې خطبو کښې به د هرو دوو خطبو په مينځ کښې د يوې ورځ جدائی وی.يعنی د اولې اودويمې خطبې په مينځ کښې به د اتمې ذوالحجه فصل وی.اوپه دويمه اودريمه خطبه کښې به د لسمې ذوالحجه فصل وی.

وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ يَخْطُبُ فِي ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ مُتَوَالِيَةٍ اوامام زفر رحمه الله فرمائيلی دی.چه خطبه به وائی درې ورځو کښې پرله پسې، أَوَّلُهَا يَوْمُ التَّرْوِيَةِ لِأَنَّهَا أَيَّامُ الْمَوْسِمِ وَمُجْتَمَعُ الْحَاجِّ اوله په ورځ د ترويه،ځکه چې دا ورځې دحج دی.اود جمع کيدو د خلګو دی.

**حل اللغة** ① **متوالية**:يوبل پسې

**تشريح:-** اوحضرت امام زفر رحمه الله فرمائی.چه دا درې واړه خطبې به بلا ناغه وی.يعنی اوله خطبه به په اتمه ذوالحجه اودويمه په نهمه اود دريمه په لسمه ذوالحجه وی.

دليل زفر رحمه الله ۞ دامام زفر رحمه الله دليل دا دې.چه دا درې واړه ورځې، د حج دافعالو اود حاجيانو د جمع کيدو ورځې دی.نوپه دې. ورځو کښې خطبې وئيل مناسب دی.



وَلَنَا أَنَّ الْمَقْصُودَ مِنْهَا التَّعْلِيمُ وَيَوْمُ التَّرْوِيَةِ وَيَوْمُ النَّحْرِ يَوْمَا اشْتِغَالٍ،او زموږ دليل دا دې.چه مقصود ددې نه خودنه ده.اوورځ د ترويه اوورځ داختر ورځې د مشغولتيا د خلګو دی. فَكَانَ مَا ذَكَرْنَاهُ أَنْفَعَ وَفِي الْقُلُوبِ أَنْجَعَ.نوده هغه طريقه چې موږ بيان کړه. زياته ګټور ه ده.اوپه زړونو کښې زياته اثرناکه ده.

**تشريح:-** اوزموږ دليل دا دې.چه ددې خطبو مقصود حاجيانوته د حج د افعالو تعليم ورکول دی.او اتمه او لسمه ذوالحجه د حج د افعالو په کاوه کښې مشغولتيا ورځې دی.اوپه اوومه ،نهمه اويوولسمه ذوالحجه کښې خلګ څه قدرې اوزګار شوی وی.نوځکه په دې. ورځو کښې خلګو ته خطبې وئيل فائدې. مندې هم دی.اواثرناکې هم.ددې نه علاوه د نبی ﷺ د غار د انډيوالان حضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه معمول هم دا وو.

## په يوم الترويه منی کښې اقامت

فَإِذَا صَلَّى الْفَجْرَ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ بِمَكَّةَ خَرَجَ إِلَى مِنًى کله چې لمونځ اوکړی د سهار په ورځ ترويه په مکه کښې ،نواوبه وځی منی ته فَيُقِيمُ بِهَا حَتَّى يُصَلِّيَ الْفَجْرَ مِنْ يَوْمِ عَرَفَةَ اوقيام به اوکړی هلته تردې چه اوکړی لمونځ د سهار په ورځ د عرفې، لِمَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ صَلَّى الْفَجْرَ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ بِمَكَّةَ ددې امله چې روايت شوې دې چه نبی ﷺ لمونځ اوکړو د سهار په ورځ د ترويه په مکه کښې فَلَمَّا طَلَعَتِ الشَّمْسُ رَاحَ إِلَى مِنًى نوکله چې راوختلو لمر روان شومنی ته، فَصَلَّى بِمِنًى الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ وَالْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ وَالْفَجْرَ نو لمونځ ئې اوکړلو په منی کښې د ماسپخين،مازيګر، ماښام، ماسخوتن او د صبا. ثُمَّ رَاحَ إِلَى عَرَفَاتٍ([1]) بيا روان شو عرفات ته.

**حل اللغة**① **راح، رواحًا (ن)**: دَ ماښام په وخت کښې تګ راتګ

**تشريح:- الذهاب الى منى يوم التروية**۞دحج افعال بيانوی.امام قدوری رحمه الله فرمائی.چه په ورځ د ترويه چې په مکه کښې د سهار لمونځ اوکړی.نو منی ته دې. روان شی.اوپه منی کښې به د نهمې ذوالحجې نه واخله ترلسمې ذوالحجې د سهار د لمونځ پورې ايسار شی.تردې. چې د سهار لمونځ به هم په منی کښې اوکړی.

**وقوع التسامح عبارة القدورى**۞دقدوری د عبارت نه دا معلوميږی.چه په ورځ د ترويه چې څنګه د سهار لمونځ اوکړی.نو منی ته به روانيږی.حالانکه دا د سنت نه خلاف ده.بلکه سنت دا ده.چه د ترويه په ورځ چې د سهار د لمانځه نه روسته لمر راوخيژی.نومنی ته به روانيږی.لکه صاحب دهدايه چې کوم حديث ذکرکړې دې .د هغې نه ثابته ده.ارشاد دې. «أن النبى ﷺ صلى الفجر يوم التروية بمكة فلما طلعت الشمس راح إلى منى فصلى بمنى الظهروالعصر والمغرب والعشاء والفجرثم راح إلى عرفات»

## په منی کښې قيام او عرفات ته تلل

وَلَوْ بَاتَ بِمَكَّةَ لَيْلَةَ عَرَفَةَ وَصَلَّى بِهَا الْفَجْرَ ثُمَّ غَدَا إِلَى عَرَفَاتٍ اوکه شپه ئې تيره کړه په مکه کښې شپه د عرفې،اولمونځ ئې اوکړلو دلته د صبا ،اوبيا سهار لاړلو عرفات ته وَمَرَّ بِمِنًى أَجْزَأَهُ) اوتير شو په منی نو جائز ده ورله. لِأَنَّهُ لَا يَتَعَلَّقُ بِمِنًى فِي هَذَا الْيَوْمِ إِقَامَةُ نُسُكٍ ځکه چې نه دی متعلق په منی پورې په دې. ورځ کښې ادا کول د افعالو دحج، "وَلَكِنَّهُ أَسَاءَ بِتَرْكِهِ الِاقْتِدَاءَ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوده بدکار اوکړلو.د امله د پرېښولو داقتداء په نبی ﷺ پسې،

**حل اللغة**① **بات، بياتا (ض)**: شپه تيرول ② **غدا، غدوې (ن)**: دَ سحر وخت کښې تلل

**تشريح:- جوازترک القيام بمنى يوم الثامن مع الكراهة**۞صاحب دقدوری رحمه الله که بالفرض په اتمه ذوالحجه منی ته اونه رسيدلو.اود اتمې ذوالحجې ورځ اود نهمې ذوالحجې شپه ئې په مکه کښې تيره کړه.اوپه نهمه ذوالحجه ئې په مکه کښې د سهار لمونځ اوکړلو.اود منی په لاره تيرشو.اوعرفات ته اورسيدلو.نودا هم کافی

---

[1] تقدم تخريجه فى حديث جابر رضی الله عنه الطويل )_

ده.څکه چې په اتمه ذوالحجه په منی کې د حج د افعالونه څه عمل نشته.البته دې. سړی چونکه د نبی ﷺ اقتداء پریخودله.نو ددې امله د یوې غلطۍ مرتکب شو.

قَالَ (ثُمَّ يَتَوَجَّهُ إِلَى عَرَفَاتٍ فَيُقِيمُ بِهَا) امام قدوری فرمائی بیا به روان شی عرفات ته،نو ایسار به شی دلته، لِمَا رَوَيْنَا، وَهٰذَا بَيَانُ الْأَوْلَوِيَّةِ د امله دهغه حدیث نه کوم چې مونږ نقل کړې دې.اودا بیان د افضلیت دې.

**تشریح:- الخروج الی عرفات بعد طلوع الشمس**۞صاحب د قدوری رحمه الله اصل مسئلې ته واپس کیږي. اوفرمائی چه په نهمه ذوالحجه چې د سهار لمونځ په منی کښې اوکړي.نو د لمر راختو نه روسته دې. عرفات ته روان شی. دلیل وړاندیني حدیث دې.

أَمَّا لَوْ دَفَعَ قَبْلَهُ جَازَ لِأَنَّهُ لَا يَتَعَلَّقُ بِهٰذَا الْمَقَامِ حُكْمٌ تردې که لاړلو وړاندې ددې نه نوجائزده.څکه چې نه دې. متعلق په دې. ځائې پورې څه حکم (دافعالودحج څخه

**تشریح:- جوازالخروج بعدصلاة الفجر**۞خودا خیال ساتل پکار دی.چه د لمر راختو نه روسته دګر عرفات ته روانیدل صرف مستحب خبره ده.که د سهار لمونځ نه روسته روان شی.نوهم جائز ده.څکه چې په اتمه ذوالحجه دمنی سره د حج افعالو نه څه عمل متعلق نه دې.نوکه د سهار لمونځ نه روسته عرفات ته روان شی.نوڅه قباحت په کې نشته.

قَالَ فِي الْأَصْلِ: وَيَنْزِلُ بِهَا مَعَ النَّاسِ امام محمد رحمه الله) فرمائیلی دی په اصل (مبسوط) کې ،چه ایسار به شی په دې. ځائې کې د خلګو سره، لِأَنَّ الْانْتِبَاذَ تَجَبُّرٌ وَالْحَالُ حَالُ تَضَرُّعٍ څکه چې یواځې پاتې کیدل تکبر دې.اودا حال (د محرم) د عاجزۍ دې. وَالْإِجَابَةُ فِي الْجَمْعِ أَرْجَى اواجابت د دعا په جمع کې زیاته قبلیږي. وَقِيلَ مُرَادُهُ أَنْ لَا يَنْزِلَ عَلَى الطَّرِيقِ كَيْ لَا يُضَيِّقَ عَلَى الْمَارَّةِ او وئیلی شوی دی.چه مراد د دوی(امام محمد رحمه الله) دا دې.چه نه دې. ایساریږی په لاره کې ،چه تنګه نشی (لار) په تیریدونکو.

**حل اللغة**: ① انتباذ: دَ خلګو نه جلا کیدل ② تجبر: تکبر کول ③ تضرع: عاجزی کول ④ اجابت: قبولیت ⑤ ارجی: په امید سره کیدل ⑥ مارة دَ مار جمع: تیریدونکی

**تشریح:- التوجیهان لقول محمد رحمه الله**۞صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه امام محمد رحمه الله په مبسوط کې لیکلی دی.①چه حاجی دې. په دګر عرفات کې د خلګو سره کوز شی.یعنی د خلګو نه دې. نه جلا کیږي. څکه چې په دې. کې تکبر دې.حالانکه دا موقع د عاجزۍ اوانکسارۍ ده.دویمه خبره دا ده.چه په جمع سره دعا کول هم زیات قبلیږي.②بعضې خلګو وئیلی دی.چه دامام محمد رحمه الله مقصد دا دې.چه په لار کې دې. نه کوزیږی.څکه چې په دې. صورت کې په لارتیریدونکی خلګو ته تکلیف ملاویږي.

### په عرفات کې جمع بین الصلاتین

قَالَ (وَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ يُصَلِّي الْإِمَامُ بِالنَّاسِ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ) فرمائی.اوکله چې زائله شی نمرنولمونځ دې. اوکړي امام خلګو ته د ماپښین اومازیګر، فَيَبْتَدِئُ فَيَخْطُبُ خُطْبَةً يُعَلِّمُ فِيهَا النَّاسَ الْوُقُوفَ بِعَرَفَةَ نو پیل دې.اوکړي په خطبه،نوخطبه دې.اووائی یوه خطبه،ښائی دې. په هغې کې خلګو ته طریقه د قیام په عرفات وَالْمُزْدَلِفَةِ وَرَمْيِ الْجِمَارِ وَالنَّحْرِ وَالْحَلْقِ وَطَوَافِ الزِّيَارَةِ اومزدلفه کې ،اوویشتل د شیطانانواوقربانی اوسرخرئیل اوطواف زیارت. يَخْطُبُ خُطْبَتَيْنِ يَفْصِلُ بَيْنَهُمَا بِجَلْسَةٍ كَمَا فِي الْجُمُعَةِ خطبه به وانی دوې [دوه] خطبې جدائی دې.راولی په مینځ د دغه دواړو کې په ناستې سره لکه په جمعه کې (چه څنګه ددوو خطبو په مینځ کې کینی) وَيَخْطُبُ هٰكَذَا فَعَلَهُ رَسُولُ اللّٰهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ هم دغه ډول کړی دی رسول الله ﷺ

**اللغة**: ① یبتدی، ابتداء: پیل کول ② تذکیر: یادول ③ اوان: وخت ]



**تشریح:- المذهبان في محل الخطبة**۞صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه په نهمه ذوالحجه دې. امام یا د هغه نائب خلګو ته د ماپښین اومازیګردواړه مونځونه د ماپښین په وخت کې ادا کړي.①ترتیب دا دې.چه اول دې. خطبه اووائی.چه په هغې کې خلګو ته د افعالود حج تعلیم ورکړي.اود جمعې پشان به دوې [دوه] خطبې وی.د هغې دواړو په مینځ کې به کینی.هم دا درسول الله ﷺ معمول وو.

وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ: يَخْطُبُ بَعْدَ الصَّلَاةِ، لِأَنَّهَا خُطْبَةُ وَعْظٍ وَتَذْكِيرٍ اوفرمائی امام مالک رحمه الله چه خطبه به وائی.پس د لمانځه نه،څکه چې دا خطبه د وعظ اونصیحت ده. فَأَشْبَهَ خُطْبَةَ الْعِيدِ نومشابه شوه د خطبه د اختر سره،

**تشریح:-** امام مالک رحمه الله فرمائی. چې د عرفې د ورځې خطبه د لمانځه نه روسته ده.وړاندې نه ده.

**دلیله**۞دامام مالک رحمه الله دلیل دا دې.چه دا خطبه دوعظ اونصیحت لپاره ده.نود اختر د خطبې سره مشابه شوه.اود اخترونو خطبه چونکه د لمانځه نه روسته وی.نودغه ډول دا به هم د لمانځه نه روسته وی.

وَلَنَا مَا رَوَيْنَا، وَلِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنْهَا تَعْلِيمُ الْمَنَاسِكِ وَالْجَمْعُ مِنْهَا اوزمونږ لپاره هغه حدیث (دلیل) دې.کوم چې مونږ روایت کړو.اوڅکه چې مقصود ددې (خطبو) نه خودنه ده خلګو ته اوجمع (بین الصلاتین)هم ددې (مناسکو)څخه ده

**تشریح:- دلائل الاحناف** رحمهم الله۞زمونږدلیل هغه روایت دې.کوم ته چې د حضرت جابر رضی الله عنه په حدیث کې اشاره شوې ده.اوپه حدیث د حضرت جابر رضی الله عنه کې دا ښکاره ذکر دې.چه نبی ﷺ خطبه د لمانځه نه وړاندې وئیلې وه.②دوهم دلیل دا دې.چه په عرفات کې دخطبې وئیلو مقصود دا دې.چه خلګ وته مناسک دحج اوښائی.اوجمع بین الصلاتین هم په مناسک حج کې دی.اود تعلیم مقصد په دې. کې حاصلیږي.چه خطبه د لمانځه نه وړاندې وی روستو نه.ددې امله زمونږ په نیزد لمانځه نه وړاندې دخطبې وئیلوحکم ورکولې شی.

وَفِي ظَاهِرِ الْمَذْهَبِ: إِذَا صَعِدَ الْإِمَامُ الْمِنْبَرَ فَجَلَسَ أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُونَ كَمَا فِي الْجُمُعَةِ اوپه ظاهر مذهب کې دی.کله چې اوخیژی امام منبر ته، او کینی. نو اذان دې. اوکړی اذان کونکی لکه په (خطبه د ) جمعه کې ،

**تشریح:- الروایة الاولی في وقت الاذان**۞پاتې شوه دا خبره چې په عرفات کې به موذن اذان کله کوی.د خطبې نه وړاندې که روستو.نوپه دې. اړه کې زمونږ دعالمانو رحمهم الله ظاهر مذهب دا دې.چه کله امام په منبر باندې دخطبې وئیلو لپاره کینی.نواذان به کوی.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالَى أَنَّهُ يُؤَذِّنُ قَبْلَ خُرُوجِ الْإِمَامِ اودامام ابویوسف رحمه الله نه روایت دې. چې اذان دې.کوی وړاندې د راوتلو د امام نه (خطبې وئیلوته)

**تشریح:-** دامام ابویوسف رحمه الله نه یو روایت دا دې.چه دامام دخپلې خیمې نه راوتلو نه وړاندې دې. موذن اذان کوی.چه کله موذن د اذان نه فارغ شی. نوامام دې. د خیمې نه راوځی.

**دلیله**۞څکه چې دا اذان د ماپښین د لمانځه لپاره دې.نولکه څنګه چې په نورو روځو کې د لمر دزوال نه روسته اذان کولې شی.نولکه څنګه چې په نورو ورځو کې دامام تشریف راوړلو نه وړاندې اذان کولې شی.دغه ډول دې. د عرفې په ورځ هم د امام د راتلو نه وړاندې اذان اوکړې شی.

وَعَنْهُ أَنَّهُ يُؤَذِّنُ بَعْدَ الْخُطْبَةِ اوددوی نه دا روایت (هم) شته.چه دې. به اذان کوی روسته د خطبې نه،

**تشریح:- الروایة الثانیة في وقت الاذان**۞دامام ابویوسف رحمه الله دوهم روایت دا دې.چه د خطبې نه روسته دې. اذان کوی.امام مالک رحمه الله هم ددې قائل دې.

**دلیل روایة الثانیة**۞ددې روایت دلیل دا دې.چه په حدیث د جابر رضی الله عنه کې ذکر دی.چه حضرت بلال په ډګر عرفات کې د خطبې نه روسته اذان کړې وو.

وَالصَّحِيحُ مَاذَكَرْنَا لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَمَّا خَرَجَ وَاسْتَوَى عَلَى نَاقَتِهِ اوصحيح قول هغه دي. كوم چي موږ ذكر كړو. څكه چي نبي ﷺ كله اووتلو. (خطبه ته) اوبرابر شو په خپله اوښه باندې، أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُونَ بَيْنَ يَدَيْهِ[1] نو اذان اوكړلو اذان كونكو مخكې نبي ﷺ ته،

**تشريح:- وجوه ترجيح الرواية الاولى**۞ خوصحيح مذهب هم هغه دي. كوم چي موږ ذكر كړو. يعني چي امام د خيمې نه رابهر شي. اوتشريف راوړي. نود هغه مخكې به اذان كوي. څكه چي نبي ﷺ كله د خپلې خيمې نه رابهر شو. اوپه خپله اوښه باندې كيناستلو. نوددې نه روسته موذن د هغوی مخكې اذان كړې وو. ② د ظاهر مذهب دصحت دليل دا هم دي. چه حديث د جابر ﷺ تقاضا كوي. چه اذان دې. د خطبې نه روسته اوشي. اودا روايت تقاضا كوي. چه د خطبې نه مخكې دې. اذان اوكړې شي. نود تعارض د امله به دواړه احاديث پريښولې (پريخودې) شي او په قياس على الجمعه به عمل كولې شي.

وَيُقِيمُ الْمُؤَذِّنُ بَعْدَ الْفَرَاغِ مِنَ الْخُطْبَةِ او اقامت دې. اوكړي موذن روسته د فراغت د خطبې نه، لِأَنَّهُ أَوَانُ الشُّرُوعِ فِي الصَّلَاةِ فَأَشْبَهَ الْجُمُعَةَ څكه چې دا وخت د پيل كيدو دي. په لمانځه كي. نومشابه شو د جمعې سره، (لكه څنګه چي د جمعې په لمانځه كي د خطبې نه روسته اود لمانځه نه وړاندې اقامت كوي. دغه ډول به دلته هم كوی)

**تشريح:- وقت الاقامة يوم عرفة**۞ صاحب دقدوري رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمائي. چه امام د خطبه نه فارغ شي. نوموذن دې اقامت اوكړي. څكه چي د لمانځه پيل كيدو هم دا وخت دي. نولكه څنګه چي د خطبې وئيلو نه روسته په جمعه كي اقامت كولې شي. دغه ډول به په عرفات كي هم د خطبې وئيلو نه روسته د ماپښين لپاره اقامت كولې شي.

### په جمع بين الصلاتين كي يواذان اودوې [دوه] اقامتونه

قَالَ وَيُصَلِّي بِهِمُ الظُّهْرَ الْعَصْرَفِي وَقْتِ الظُّهْرِ بِأَذَانٍ وَإِقَامَتَيْنِ فرمائي اولمونځ به وركوی دوی ته امام د ماپښين اومازيګر په وخت د ماپښين كي په يو اذان او دوو اقامتونو. وَقَدْ وَرَدَ النَّقْلُ الْمُسْتَفِيضُ بِاتِّفَاقِ الرُّوَاةِ بِالْجَمْعِ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ اويقيناً وارد شوي دي نقل مستفيض په اتفاق د راويانو سره په جمع بين الصلاتين باندې. ،وَفِيمَا رَوَى جَابِرٌ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّاهُمَا بِأَذَانٍ وَإِقَامَتَيْنِ[2] اوپه هغه روايت كي چي نقل كړې دي. جابر ﷺ چې نبي ﷺ كړی وو دا دواړه (مونځونه) په يو اذان او دوو اقامتونو،

**حل اللغة:** ① **مستفيض**: مشهور

**تشريح:- الجمع بين الصلاتين**۞ په ډګر عرفات كي به امام خلګ وته د ماپښين اومازيګردواړه مونځونه په يواذان او دوو اقامتونو سره ادا كړی.

**دليله**۞ د جمع بين الصلاتين باندې نقل مشهور دي. څكه چي د نبي ﷺ نه چي كومو راويانو جمع بين الصلاتين نقل كړې ده. دهغې ټولوپرې اتفاق دي.

**دليل الاذان والاقامتين**۞ اود يو اذان اودوو اقامتونو دليل هغه حديث دي. په كوم كي چي ذكر دی. چه رسول الله ﷺ دا دواړه مونځونه په ډګر عرفات كي په يو اذان او دوو اقامتونو سره كړی دی

ثُمَّ بَيَانُهُ أَنَّهُ يُؤَذِّنُ لِلظُّهْرِ وَيُقِيمُ لِلظُّهْرِ بيا تفصيل ددې دا دې چه دې. به اذان كوی لپاره د ماپښين اواقامت به كوی ثُمَّ يُقِيمُ لِلْعَصْرِ لِأَنَّ الْعَصْرَ يُؤَدَّى قَبْلَ وَقْتِهِ الْمَعْهُودِ بيا به اقامت كوی لپاره دمازيګر، څكه چي مازيګرادا كيږی

---

[1] قال الزيلعی رَحِمَهُ اللّٰهُ قلت غريب جداً (نصب الرأية (۳/۶۷)_

[2] تقديم تخريجه فی حديث جابر ﷺ الطويل )_



وړاندې د خپل وخت مقرر نه. فَيُفْرِدُ بِالْإِقَامَةِ إِعْلَامًا لِلنَّاسِ نوځانله والې به كوی په اقامت سره لپاره د خبرور كاوه خلګو ته.

**حل اللغة:** ① **معهود**: مقرر ③ **اعلام**: خبرداري

**تشريح:-** د دي. تفصيل دا دي. چه اول دي. د ماپښين لپاره اذان اوكړی. بيا دی. اقامت اوكړی. اوبيا د مازيګر لپاره اقامت څكه چې د مازيګر لمونځ دخپل مقرر وخت نه وړاندې ادا كولې شي. او خلګ واړه حاضر وی. نو حاضرينو ته دخبر ور كاوه لپاره صرف اقامت كافی دي. اود اذان څه اړتيا نشته.

### د ماپښين او مازيګر په مينځ كي نفل كول

وَلَا يَتَطَوَّعُ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ تَحْصِيلًا لِمَقْصُودِ الْوُقُوفِ اونفل به نه كوی په مينځ د دواړو مونځونو كي لپاره د حاصلولو د مقصود د وقوف وَلِهٰذَا قُدِّمَ الْعَصْرُ عَلَى وَقْتِهِ اوددې امله مقدم كړې شوې دې د مازيګر لمونځ د خپل وخت نه،

**تشريح:- وجه كراهة النفل بين الصلاتين**۞ مسئله دا ده. چه امام او مقتديان دواړه دې. د ماپښين او مازيګر د مونځونو په مينځ كي نفل نه كوی. يعنی د فرض نه سوې سنت وغيره به نه كوی.

**دليله**۞ څكه چي په نن ورځ وقوف دعرفات مقصود دي. نود دې. مقصود حاصلولو لپاره دې. خپل وخت په نفلو وغيره بل عمل كي نه لګوی. هم ددې مقصود لپاره د مازيګر لمونځ په خپل وخت باندې مقدم شوې دي.

فَلَوْ أَنَّهُ فَعَلَ فَعَلَ مَكْرُوهًا كه ده اوكړلو (نفل) نوكړې به ئې وی مكروه وَأَعَادَ الْأَذَانَ لِلْعَصْرِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ اواعاده د مازيګر د اذان به كوی په ظاهرروايت كي ، ،خِلَافًا لِمَا رُوِيَ عَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ خلاف ثابت دې. دهغه قول چې نقل شوې دې د امام محمد رَحِمَهُ اللّٰهُ نه.

**تشريح:- الروايتان في الاذان للعصرعندالفصل بالنفل**۞ ① خوددې باوجود كه امام يا مقتدی د ماپښين اومازيګر مونځونو په مينځ كي نفل اوكړلو. نو د ظاهر روايت مطابق دا نقل دی. چه د مازيګر لپاره دې. داذان اعاده اوكړی. ② اودامام محمد رَحِمَهُ اللّٰهُ په نيز به په دې. صورت كي هم اعاده نه كوی.

لِأَنَّ الِاشْتِغَالَ بِالتَّطَوُّعِ أَوْ بِعَمَلٍ آخَرَ څكه چې بوخت كيدل په نفلو يا په عمل بل كي يَقْطَعُ فَوْرَ الْأَذَانِ الْأَوَّلِ فَيُعِيدُهُ لِلْعَصْرِ ختموی اتصال د اذان اول نوراګرځوی به اذان لپاره د مازيګر.

**تشريح:- دليل ظاهرالرواية**۞ د ظاهرروايت دليل دا دی. چه د ماپښين د لمانځه نه روسته نفل وغيره كي بوخت كيدل چونكه د اولنی اذان سره اتصال ختموی. نوځكه به د مازيګر لپاره د اذان اعاده كوی.

### د خطبې اويا د جمع بين الصلاتين د جماعت پريښول

فَإِنْ صَلَّى بِغَيْرِ خُطْبَةٍ أَجْزَأَهُ كه لمونځ ئې اوكړلو بغير خطبې نو جائزدې. ورته لِأَنَّ هٰذِهِ الْخُطْبَةَ لَيْسَتْ بِفَرِيضَةٍ څكه چي دا خطبه نه ده فرض. قَالَ (وَمَنْ صَلَّى الظُّهْرَ فِي رَحْلِهِ وَحْدَهُ (امام قدوری) فرمائي. چا چي لمونځ كاوه د ماپښين په خپله خيمه كي ځانله، صَلَّى الْعَصْرَ فِي وَقْتِهِ) عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالَى[1] نولمونځ به كوی د مازيګرپه وخت خپل كي په نيز د امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ

**تشريح: المذهبان في اداء العصرعند اداء الظهرمنفرداً**۞ صورت د مسئلې دا دې. ① كه يوحاجی د ماپښين لمونځ په خپله خيمه كي اوكړلو. نودامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ په نيزبه دا كس د مازيګر لمونځ په خپل وخت كي

---

[1] القول الراجح هو هذا قول أبی حنيفة رحمه الله كذا فی فتح القدير (۲/۳۷۱) وردالمحتار (۲/۱۸۹) والهندية (۱/۲۲۸) نقلاً عن القول الراجح (۱/۲۱۰)_

کوی.یعنی ماپښین اومازیګر به د ماپښین په وخت کې نه جمع کوی.

وَقَالَا: يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا الْمُنْفَرِدُ اوفرمائی صاحبين رحمهما الله چې جمع به کوی په مینځ ددې دوارو کې منفرد، لِأَنَّ جَوَازَ الْجَمْعِ
لِلْحَاجَةِ إِلَى امْتِدَادِ الْوُقُوفِ ځکه چې جواز د جمعې لپاره د حاجت د اوږدولی د وقوف وَالْمُنْفَرِدُ مُحْتَاجٌ إِلَيْهِ اومنفرد
محتاج دې. (جمع بين الصلاتين) ته،

حل اللغة * حل اللغة* ① امتداد: اوږدوالی

تشریح:- صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه ځانله لمونځ کونکې به هم جمع بين الصلاتين کوی.یعنی منفرد په جماعت سره د جمع بين الصلاتين سره برابر دې.

① دليل الصاحبين رحمهما الله ۞ د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه په عرفات کې حاجی ته د جمع بين الصلاتين اجازت ځکه ملاو شوې دې.چه وقوف د عرفات زيات نه زيات اوکړی.یعنی د وقوف عرفات د اوږدوالی لپاره د جمع بين الصلاتين اجازت ورکړې شوې دې.اوهم دا وجه ده.چه په چا وقوف دعرفات فرض نه وی.نوهغه ته د جمع بين الصلاتين اجازت هم نشته.اوپه دې. اړتيا کې منفرد او په جماعت سره لمونځ ادا کونکی دواړه برابر دی.نوځکه به د جمع بين الصلاتين حکم د دوارو لپاره يوشان وی.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّ الْمُحَافَظَةَ عَلَى الْوَقْتِ فَرْضٌ بِالنُّصُوصِ اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه ساتنه کول د وخت فرض دې.د امله د نص نه، فَلَا يَجُوزُ تَرْكُهُ إِلَّا فِيمَا وَرَدَ الشَّرْعُ بِهِ نوجائز نه دی پريښول ددې.مګرپه هغه صورت کې چې وارد شوې وی شريعت په هغې باندې، وَهُوَ الْجَمْعُ بِالْجَمَاعَةِ مَعَ الْإِمَامِ اوهغه جمع په جماعت سره ده سره دَ امام.

تشریح:- دليل ابی حنيفة رحمه الله ۞ دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه په وخت کې دننه د لمونځ پابندی فرض ده.دالله تعالى ارشاد دې [إِنَّ الصَّلَوٰةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَٰبًا مَّوْقُوتًا ۞] اوکوم ځيزچه په نصوص قرآنی سره ثابت وی.د هغې پريښول جائز نه دی.مګردا چې د هغې خلاف شريعت وارد شوې وی.او د شريعت ورود په هغه صورت کې دې.چه د امام سره په جماعت لمونځ ادا کړې شی.نوثابته شوه چې په ورځ د عرفې يوحاجی د ماپښين اومازيګر لمونځ په جماعت اوکړی.نوهله به د مازيګرلمونځ دهغې په وخت مقدم کوی. او جمع بين الصلاتين به کوی.اوکه داسې نه وی.(یعنی د ماپښين لمونځ ئې په جماعت سره نه وی کړې.نود مازيګرلمونځ به د خپل وقت نه وړاندې نه کوی.

وَالتَّقْدِيمُ لِصِيَانَةِ الْجَمَاعَةِ اوتقديم د ساتنه د جماعت لپاره دې.(چه جماعت فوت نشی) لِأَنَّهُ يَعْسُرُ عَلَيْهِمُ الِاجْتِمَاعُ لِلْعَصْرِ بَعْدَ مَا تَفَرَّقُوا فِي الْمَوْقِفِ ځکه چې ګرانه ده په دوی (حاجيانو) باندې راجمع کيدل روسته د دې. نه چې خپاره شوی وی په ډګر عرفات کې ، لَا لِمَا ذَكَرَاهُ نه دهغه امله چې ذکرکړې ده صاحبينو رحمهما الله

حل اللغة * ① صيانة: ساتنه ② يعسر، عسرا(ن،ض): سختيدل، مشکل کيدل ③ موقف: دَ اودريدو ځایْ

تشریح:- الجواب من دليل الصاحبين رحمهما الله ۞ د «والتقديم لصيانة الخ» نه د صاحبينو رحمهما الله د دليل نه ځواب دې. حاصل د ځواب دا دې.چه د عرفې په ورځ د مازيګر د لمونځ تقديم د وقوف عرفات د اوږدوالی د امله نه دې.لکه څنګه چې صاحبين رحمهما الله فرمائی.ځکه چې د لمونځ اووقوف په مينځ کې څه منافات نشته.دواړه يوځائې جمع کيدې شی.بلکه د مازيګروړاندې کول د جماعت د ساتنه لپاره دې.(چه د جماعت لمونځ فوت نشی)ځکه که د ماپښين لمونځ اوکړی.او خلګ په ډګر عرفات کې خپاره شی.نود مازيګر لپاره به د دوی راجمع کول ډيرګران شی.نوددې ګرانوالی او د جماعت د فضيلت حاصلولو لپاره به د مازيګرلمونځ په خپل وخت باندې وړاندې کوی.اود ماپښين اومازيګردجمع کاوه حکم شوې دې.

إِذْ لَا مُنَافَاةَ ثُمَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله ځکه چې نشته منافات بيا په نيز دامام ابوحنيفه رحمه الله الْإِمَامُ شَرْطٌ فِي



الصَّلَاتَيْنِ جَمِيعًا (١) امام شرط دې. په دواړو مونځونو کې ،وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ: فِي الْعَصْرِ خَاصَّةً لِأَنَّهُ هُوَ الْمُغَيَّرُ عَنْ وَقْتِهِ اوفرمائی امام زفر رحمه الله چه په مازيګرکې خاص کر،ځکه چې هغه بدليدونکې دې. دخپل وخت نه، وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ الْإِحْرَامُ بِالْحَجِّ اوهم په دې. خلاف باندې دې. احرام په حج سره.

تشریح:- الاختلاف في شرطية الامام للجمع بين الصلاتين ۞ صاحب دهدايه فرمائی.① چه په دې. دواړو مونځونو کې خوښکاره ده چې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د امام يا دهغه د نائب وجود شرط دې.② امام زفر رحمه الله فرمائی.چه خاص کر د مازيګر لپاره شرط دې.هم دا اختلاف په احرام کې هم دې.یعنی د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د جمع بين الصلاتين لپاره احرام شرط دې.اودامام زفر رحمه الله په نيز صرف د مازيګر لپاره احرام شرط دې.اودصاحبينو رحمهما الله په نيز د يو لپاره هم شرط نه دې.

① ثمرة الاختلاف ۞ ثمره د اختلاف دا ده.چه حلال (غيرمحرم) کس د امام سره د ماپښين لمونځ اوکړلو .بيا ئې دحج لپاره احرام اوتړلو.نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز مازيګر ماپښين په وخت کې ادا کول جائز نه دی.اودامام زفر رحمه الله په نيزجائزدی.حاصل دا چې د صاحبينو رحمهما الله په نيزد جمع بين الصلاتين جواز په دواړومونځونو کې احرام سره معلق دې.اودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزاحرام،جماعت،اوامام المسلمين باندې معلق دې.اودامام زفر رحمه الله په نيزدا واړه شرطونه صرف د مازيګر لپاره دی.

① دليل زفر ۞ دامام زفر رحمه الله دليل دادې.چه دمازيګرلمونځ د خپل وخت نه بدل شو.اود تغيرد امله د امام شرطيت دې.نوددې امله خاص د مازيګرپه لمانځه کې امام شرط دې.د ماپښين په لمانځه نه دې.

① دليل الصاحبين رحمهما الله ۞ دصاحبينو رحمهما الله دليل خوښکاره دې.چه دهغوی په نيز دجمع بين الصلاتين لپاره جماعت شرط نه دې.بلکه منفرد به هم دا دواړه مونځونه جمع کوی.نوهرکله چې جماعت شرط نه دې.نو امام به څنګه شرط شی.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّ التَّقْدِيمَ عَلَى خِلَافِ الْقِيَاسِ اودامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه تقديم خلاف قياس (ثابت شوې دې) عُرِفَ شَرْعُهُ فِيمَا إِذَا كَانَتِ الْعَصْرُ مُرَتَّبَةً عَلَى ظُهْرٍ مشروعيت ددې.په هغه صورت کې چې وی (د) مازيګر(مونځ) مرتب په ماسپخين، مُؤَدًّا بِالْجَمَاعَةِ مَعَ الْإِمَامِ فِي حَالَةِ الْإِحْرَامِ بِالْحَجِّ چې ادا شوې وی په جماعت سره د امام په حالت د احرام کې په حج، فَيُقْتَصَرُ عَلَيْهِ نوبسوالې به کوی په دې باندې،

حل اللغة * ① يقتصر، اقتصار: اکتفا کول

تشریح:- دليل ابی حنيفة رحمه الله ۞ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه دمازيګرلمونځ د خپل وخت وړاندې کول په هغه صورت کې جائزګرځولې شوې دې.چه د مازيګر لمونځ ترتب به د ماپښين په دې سې لمونځ باندې وی .چه د احرام په حالت کې په جماعت سره د امام سره ادا شوې وی.اوقاعده دا ده.چه کوم شی خلاف القياس ثابت شی .نوهغه به خاص وی دخپل مورد پورې.او مورد د شريعت دا دې.چه په نهمه ذوالحجه په ډګر عرفات کې لمونځ د امام سره په جماعت ادا شوې وی.اود حج د احرام په حالت کې ادا شوې وی.نوترقيامته پورې ددې شرطونو خيال ساتل ضروری دی.تردې. که يوشرط هم موجود نشو.نود جمع بين الصلاتين جواز به ساقط شی.

ثُمَّ لَا بُدَّ مِنَ الْإِحْرَامِ بِالْحَجِّ قَبْلَ الزَّوَالِ فِي رِوَايَةٍ بيا نشته خلاصې (یعنی ضروری دی)د احرام نه په حج سره وړاندې د زوال نه په يوروايت کې تَقْدِيمًا لِلْإِحْرَامِ عَلَى وَقْتِ الْجَمْعِ لپاره د وړاندې والی د احرام په وخت د جمع

تشریح:- المذهبان في تقدم الاحرام على الزوال ۞ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.① چه د عرفه په ورځ د جمع بين الصلاتين د جواز لپار[illegible] ضروری ده.چه د حج احرام د لمر د زوال نه وړاندې وی.ځکه احرام د جمع بين

(١) القول الراجح هو [illegible]ذا قول الإمام أبی حنيفة رحمه الله كذا فی ردالمحتار(١٨٩|٢) وبدائع الصنائع (ص،١٥٣)-

الصلاتین لپاره شرط دې.اود یو شی شرط په هغه شی باندې مقدم وی.نوځکه به احرام په جواز د جمع بین الصلاتین باندې مقدم وی.اودجواز د جمع بین الصلاتین د لمر په زوال باندې متحقق کیږی.نوځکه ضروری ده.چه احرام د زوال نه وړاندې اوتړی.چه احرام ته په جواز دجمع بین الصلاتین باندې تقدم حاصل شی.

وَفِي أُخْرَى يَكْتَفِي بِالتَّقْدِيمِ عَلَى الصَّلَاةِ اوپه بل روایت کي بسوالې به کوی په تقدیم د لمانځه لِأَنَّ الْمَقْصُودَ هُوَ الصَّلوٰة ځکه مقصود هغه لمونځ دې.

**تشریح:**- او یو روایت دا دې.چه احرام په زوال باندې مقدم کول ضروری نه دی.بلکه په لمانځه د ماپښین باندې مقدم کول کافی دی.ځکه چې مقصود لمونځ دې.وخت خو مقصود نه دې.نوځکه په لمونځ باندې مقدم کول کافی دی.په وخت د زوال مقدم کول ضروری نه دی.

## جبل رحمت سره نزدې ودریدل

قَالَ ثُمَّ يَتَوَجَّهُ إِلَى الْمَوْقِفِ فَيَقِفُ بِقُرْبِ الْجَبَلِ فرمائی بیا به روان شی ځائې د اودریدو ته نو اوبه دریږی نزدې د غرسره وَالْقَوْمُ مَعَهُ عَقِيبَ انْصِرَافِهِمْ مِنَ الصَّلَاةِ اوقوم دده سره (هغوی به هم ځائې داودریدو ته روان شی)روستو د فراغت ددوی د لمانځه نه. لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ (1) ځکه چې نبی ﷺ تلې وو موقف ته روسته د لمانځه نه وَالسَّلَامُ رَاحَ إِلَى الْمَوْقِفِ عَقِيبَ وَالْجَبَلُ يُسَمَّى جَبَلَ الرَّحْمَةِ او(دغه) نومول کولای شی په جبل رحمت سره، وَالْمَوْقِفُ الْأَعْظَمُ اود اودریدو د ځائې نوم موقف اعظم دې.

**حل اللغة:** ① **عقیب:** شاته ② **انصراف:** واپس کیدل ③ **راح، رواحاً (ف):** دَ ماښام وخت کي تلل راتګ ]

**تشریح:**- **القیام بقرب جبل الرحمة**۞مسئله دا ده.چه د جمع بین الصلاتین نه چې فارغ شی.نوامام او خلګ واړه به موقف اړخ ته روان شی.اوغرته دې. نزدې. اودریږی.اود دې. ځائې د اودریدو نوم موقف اعظم دې. اودلته به ځکه اودریږی.چه نبی ﷺ هم دلته ودریدلې وو.

## میدان عرفات ټول موقف دې.

قَالَ وَعَرَفَاتٌ كُلُّهَا مَوْقِفٌ إِلَّا بَطْنَ عُرَنَةَ فرمائی اوعرفات واړه ځائې د اودریدو دې.مګربطن ،وادیءعرنه، لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَرَفَاتٌ كُلُّهَا مَوْقِفٌ د امله د وینا د نبی ﷺ چې عرفات واړه موقف دې. وَارْتَفِعُوا عَنْ بَطْنِ عُرَنَةَ (2) اود بطن عرنه نه اوچت اوسیږئ. وَالْمُزْدَلِفَةُ كُلُّهَا مَوْقِفٌ اومزدلفه واړه ځائې د اودریدو دې. ،وَارْتَفِعُوا عَنْ وَادِي مُحَسِّرٍ اواوچت اوسیږئ.د وادی محسر نه.

**حل اللغة:** ① **موقف:** دَ اودریدو ځایْ ② **بطن عرنه:** په عرفات کي یوه وادي ده ③ **محسر:** عاجزی کول، دَمنی او مزدلفه په مینځ کي یوه وادی ده ]

**تشریح:**- **عدم القیام في وادی عرنة**۞فرمائی چې د بطن عرنه نه سوې نور واړه ډګر عرفات د قیام ځائې دې. یعنی په بطن عرنه کي به نه اودریږی.اوپاته په واړه ډګر کي اودریدې. شی.

**دلیله**۞بعضې حضراتو فرمائلی دی.چه نبی ﷺ په بطن عرنه کي شیطان لیدلې وو.ځکه ئې په دې. مقام کي د اودریدو نه منع کړې ده.دغه ډول د وادی محسرنه سوې پاته ټوله علاقه په مزدلفه کي موقف دې.

## دامام د قیام مستحب کیفیت

قَالَ وَيَنْبَغِي لِلْإِمَامِ أَنْ يَقِفَ بِعَرَفَةَ عَلَى رَاحِلَتِهِ فرمائی اومناسب دی لپاره د امام چې اودریږی په ډګر عرفات

---

(1) تقدم تخریجه فی حدیث جابر رضی الله عنه الطویل )_

(2) من حدیث جابر رضی الله عنه أخرجه ابن ماجه فی المناسک باب ۵۵ رقم ۳۰۱۲)_



کي په خپله سپرلئ باندې لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَقَفَ عَلَى نَاقَتِهِ (1) ځکه چې نبی ﷺ ولاړ وو په خپله سپرلئ دپاسه، (وَإِنْ وَقَفَ عَلَى قَدَمَيْهِ جَازَ) اوکه اودریدو په خپلو قدمونو جائز ده. وَالْأَوَّلُ أَفْضَلُ لِمَا بَيَّنَّا اواوله طریقه افضله ده.دهغه حدیث د امله چې موږ نقل کړلو.

**حل اللغة:** ① **راحلة:** سورلی ② **وقف، وقوفاً (ض):** حصاریدل ]

**تشریح:**- **الوقوف علی الراحلة**۞مسئله دامام المسلمین لپاره په سپرلئ باندې سور وقوف کول افضل دی.ځکه چې د نبی ﷺ سنت هم دا دی.خوکه په خپلو پښو باندې ودریدلو.نوهم څه قباحت نشته.

وَيَنْبَغِي أَنْ يَقِفَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ اومناسب دی چې اودریږی مخ په قبله. لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَقَفَ كَذَلِكَ ځکه چې نبی ﷺ ولاړ وو هم دغه شان، ،وَقَالَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {خَيْرُ الْمَوَاقِفِ مَا اسْتُقْبِلَتْ بِهِ الْقِبْلَةُ (2) اوفرمائیلی دی نبی ﷺ بهترین ځایونه د قیام هغه دی.چه مخ کړې شی په هغې کي قبلې اړخ ته،

**تشریح:**- **استقبال القبلة**۞اومخ په قبله ودریدل هم افضل دی.ځکه چې د رسول الله ﷺ عمل هم داسې وو.اود دوی حکم هم دا دې.په یوحدیث کي دی. ﴿إن لکل شئ شرفاً وإن شرف المجالس ما استقبل به القبلة﴾ اوپه یو روایت کي دی. ﴿أکرم المجالس ما إستقبل به القبلة﴾

## دامام دعا کول اوخلقو ته د مناسك حج تعلیم ورکول

وَيَدْعُو وَيُعَلِّمُ النَّاسَ الْمَنَاسِكَ او(امام دې.) دعا کوی.اوښائی دې. خلګو ته افعال دحج، لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يَدْعُو يَوْمَ عَرَفَةَ ددې امله چې نقل شوی دی.چه نبی ﷺ دعا کوله په ورځ د عرفې مَادًّا يَدَيْهِ كَالْمُسْتَطْعِمِ الْمِسْكِينِ (3) اوږدونکې وو د لاسونو خپلو پشان د ډوډئ غوستونکی فقیر، وَيَدْعُو بِمَا شَاءَ اودعا دې کوی هغه چې ئې خوښه وی وَوَرَدَ الْآثَارُ بِبَعْضِ الدَّعَوَاتِ اګرچه وارد شوی دې. آثار، د بعضې دعاګانو په اړه کي وَإِنْ، وَقَدْ أَوْرَدْنَا تَفْصِيلَهَا فِي كِتَابِنَا اوموږ راوړې دې. تفصیل دهغې په خپل کتاب . الْمُتَرْجَمِ بِعِدَّةِ النَّاسِكِ فِي عِدَّةٍ مِنَ الْمَنَاسِكِ ] بِتَوْفِيقِ اللَّهِ تَعَالَى المترجم بعدة المناسك في عدة المناسك.کي ، په توفیق دالله تعالی.

**حل اللغة:** ① **مناسک:** دَحج افعال او ارکان ② **ماداً:** خورونکې ]

**تشریح:**- د کومو دعاګانو په اړه کي چې آثار راغلی دی.په هغې کي یو اثرد حضر علی رضی الله عنه دې. ﴿عن علی رضی الله عنه أنه ﷺ قال أکثر دعائی ودعاء الأنبیاء من قبل عشیة عرفة لا إله إلا الله وحده لا شریك له.له الملك وله الحمد.یحی ویمیت وهو حی لا یموت.بیده الخیر ،وهو علی کل شئ قدیر ،اللهم اجعل في قلبی نوراً وفي سمعی نوراً وفي بصری نوراً اشرح لی صدری ویسرلی أمری وأعوذبك من وسواس الصدر وشتات الأمر وفتنة القبر ،اللهم إني أعوذبك من شر ما یلج في البحر وشر ما تهب به الریاح﴾

## امام سره نزدې اودهغه شا ته اوریدل

قَالَ (وَيَنْبَغِي لِلنَّاسِ أَنْ يَقِفُوا بِقُرْبِ الْإِمَامِ) فرمائی اومناسب دی لپاره د خلګ و چې نزدې اودریږی د امام سره، لِأَنَّهُ يَدْعُو وَيُعَلِّمُ فَيَعُوا وَيَسْمَعُوا ځکه چې امام به دعا کوی. او تعلیم به ورکوی.نو خلګ به ئې یادوی.اوغوږ به ورته ږدی.

---

(1) تقدیم تخریجه فی حدیث جابر رضی الله عنه الطویل )_

(2) غربه الزیلعی رحمه الله بهذا للفظ ثم أخرج من حدیث ابن عباس عن النبی ﷺ قال إن لکل شئ شرفاً وإن شرف المجالس ما استقبل به القبلة الحدیث أخرجه الحاکم فی المستدرک (۲۷۰/۴) وعزاه الهیثمی إلی الطبرانی (مجمع الزوائد ۵۹/۸)_

(3) من حدیث ابن عباس رضی الله عنهما أخرجه البیهقی فی السنن الکبری (۱۹۰/۵) رقم ۹۴۷۴)_

حل اللغة: ① ينبغي: ښکار دی ② يعلم، تعليماً: خودل، تعليم ورکول

تشريح:- مصنف فرمائی چې خلګ دې په ډګر عرفات کې امام سره نږدې. اودرېږي.چه د هغه خبرې اوري اويادې کړي.

وَيَنْبَغِي أَنْ يَقِفَ وَرَاءَ الْإِمَامِ او مناسب دی (د خلګ ودپاره) چې اودرېږي شا ته د امام لِيَكُونَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ چې شي مخ کونکی قبلې ته، «وَهٰذَا بَيَانُ الْأَفْضَلِيَّةِ او دا بيان د افضليت دې. لِأَنَّ عَرَفَاتٍ كُلَّهَا مَوْقِفٌ عَلَى مَا ذَكَرْنَا ځکه چې عرفات واړه ځائې د قيام دې.بناء په هغې، چې موږ ذکر کړل.

تشريح:- دويمه دا چې داامام شا ته دې. اودرېږي. چې مخ ئې قبلې ته وی.خودا خبرې واجب نه دی.بلکه مستحب دی.

## د وقوف عرفه نه وړاندې غسل کول

قَالَ (وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَغْتَسِلَ قَبْلَ الْوُقُوفِ صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.اومستحب دی چې غسل اوکړی وړاندې دوقوف نه په عرفات وَيَجْتَهِدَ فِي الدُّعَاءِ او کوښښ اوکړی په دعا کې،

حل اللغة: ① يجتهد، اجتهاداً: پوره کوښښ کول

تشريح:- سنية الغسل قبل الوقوف بعرفة۞صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه د وقوف عرفات نه وړاندې غسل کول اوپه دعا کې کوښښ کول سنت دی.واجب نه دی.د مستحب وضاحت کوی.

أَمَّا الِاغْتِسَالُ فَهُوَ سُنَّةٌ وَلَيْسَ بِوَاجِبٍ هرچه غسل کول دی.نودا سنت دې.واجب نه دې. «وَلَوِ اكْتَفَى بِالْوُضُوءِ جَازَ كَمَا فِي الْجُمُعَةِ وَالْعِيدَيْنِ وَعِنْدَ الْإِحْرَامِ اوکه اکتفا ئې اوکړله په اودس جائز دې.لکه (څنګه چې اکفتاء کول) په جمعه او اخترونواود احرام تړلو په وخت کې کافی ده.

حل اللغة: ① اكتفى، اكتفاء: کفايت کول

تشريح:- علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه د وقوف عرفه نه وړاندې غسل کول سنت دې. واجب نه دې.نوکه په اودس ئې اکتفاء اوکړله.هم جائز ده.لکه څنګه چې جمعه اخترونو اوداحرم تړلو نه وړاندې غسل کول سنت دی.خوکه په اودس ئې اکتفا اوکړله.نوجائزده.

وَأَمَّا الِاجْتِهَادُ فَلِأَنَّهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجْتَهَدَ فِي الدُّعَاءِ فِي هٰذَا الْمَوْقِفِ لِأُمَّتِهِ او هرچه کوښښ (په دعا کې) دې نوځکه چې نبی ﷺ کوښښ کړې وو په دعا کې په دې. مقام کې ،دخپل امت دپاره، فَاسْتُجِيبَ لَهُ إِلَّا فِي الدِّمَاءِ وَالْمَظَالِمِ (1) نو قبوله شوه د هغوی،مګر په وينو اوظلمونو کې ،(چه دا دواړه ورته الله تعالی نه معاف کوی)

تشريح:- المبالغة في الدعا۞اوپه دعا کې کوښښ کول مستحب دې.ځکه چې نبی ﷺ هم په دې. مقام کې د خپل امت لپاره په دې. مقام کې په دعا کې ډير کوښښ کړې وو.اود قتل ناحق اوظلمونو نه سوې چې کوم حقوق العباد دی.نودهغې په اړه کې هم ټولې دعاګانې قبولې شوې.

## د وقوف په ځاى کې تلبيه وئيل

وَيُلَبِّي فِي مَوْقِفِهِ سَاعَةً بَعْدَ سَاعَةٍ اوتلبيه به وائی په موقف کې ساعت په ساعت،

حل اللغة: ① يلبي، تلبية: تلبيه وئيل ②

(1) من حديث عباس بن مرداس أخرجه ابن ماجه في المناسک باب ٥٦ رقم ٣٠١٣ والطبرانی فی معجمه وعبدالله بن احمد بن حنبل فی مسند أبيه والحديث مطول فی مسند الإمام احمد (١٤/٤، ١٥)_



تشريح:- المذهبان في محل قطع التلبية۞مسئله دا ده.① چه حاجی دې. په ډګر عرفات کې برابر تلبيه وائی.تردې. چې په منی کې د جمره عقبه رمی اوکړي.

وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالَى: يَقْطَعُ التَّلْبِيَةَ كَمَا يَقِفُ بِعَرَفَةَ او فرمائی امام مالك چې ختموی به تلبيه کله چې اودرېږي په عرفات، لِأَنَّ الْإِجَابَةَ بِاللِّسَانِ قَبْلَ الِاشْتِغَالِ بِالْأَرْكَانِ ځکه چې ځواب ورکول په ژبه وی وړاندې د بوخت کيدو نه په ارکانو،

حل اللغة: ① يقطع، قطعاً (ف): پريکول، ختمول ② اجابة: قبلول، ځواب ورکول ]

تشريح:- اوامام مالك رحمه الله فرمائی.چه څنګه په ډګر عرفات کې وقوف پيل کړي.نوتلبيه به پريږدی.

دليله۞دامام مالك رحمه الله دليل دا دې.چه تلبيه په ژبه باندې دحاضرئ ځواب دې.اوپه ژبه باندې دحاضرئ ځواب ترهغه وخته پورې وی.چه ترڅو ئې د حج په ارکانو کې پيل نه وی کړې.نوچه کله په ډګر عرفات کې په رکن يعنی وقوف باندې پيل اوکړی.تلبيه به ختمه کړی.

وَلَنَا مَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ مَا زَالَ يُلَبِّي حَتَّى أَتَى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ} (1) اوزموږ لپاره هغه حديث (دليل) دې.دکوم چې روايت شوې دې.چه نبی ﷺ هميشه وو چې تلبيه به ئې وئيله.تردې. چې راغلو جمره عقبه ته، وَلِأَنَّ التَّلْبِيَةَ فِيهِ كَالتَّكْبِيرِ فِي الصَّلَاةِ اوبله دا چې تلبيه په دې. (حج) کې پشان د تکبير ده په لمانځه کې، فَيَأْتِي بِهَا إِلَى آخِرِ جُزْءٍ مِنَ الْإِحْرَامِ نوراتګ به کوی په دې. (يعنی وائی به ئې) ترآخری جزء د احرام پورې.

تشريح:- دليل الاحناف رحمهم الله ۞ ①زموږ دليل دا دی.چه نبی ﷺ د رمی جمره عقبه پورې برابر تلبيه وئيله.② دوهم دليل دا دې.چه په حج کې تلبيه داسې ده.لکه په لمانځه کې تکبير،اوپه لمانځه کې تکبيرمکرر وئيلې شي.تردې چې د لمانځه تراخره پورې تکبير وئيلی شی.نوهم په دې. باندې به قياس کولې شی. اوتلبيه به هم تر آخره پورې وئيلې شی.

السوال والجواب۞ خوسوال کيدې. شی.چه د قياس تقاضا خو بيا دا ده.چه تلبيه د آخری وخته پورې وئيلی شی.حالانکه داسې نه ده.بلکه چې څنګه جمره عقبه په اولنی کانړی سره اوويشتې شی. نو تلبيه پريښولې (پريخودې) شی.ځواب دا دې.چه د قياس تقاضا خو هم دا ده.خود اجماع اوحديث د امله دا قياس پريښولې (پريخودې) شو.

## مزدلفې ته تګ کول

قَالَ (فَإِذَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ أَفَاضَ الْإِمَامُ وَالنَّاسُ مَعَهُ عَلَى هِينَتِهِمْ فرمائی اوکله چې ډوب شی نمر ،نوراکوز به شی امام او خلګ دده سره په خپل وقار، حَتَّى يَأْتُوا الْمُزْدَلِفَةَ تردې چې راشی مزدلفې ته،

حل اللغة: ① غرب، يغرب غروباً (ن): ډوبيدل ② افاض، افاضة: واپس کيدل، روانيدل ③ هينة: وقار

تشريح:- الافاضة من عرفات۞مسئله: په نهمه ذوالحجه د لمر د ډوبيدو نه روسته به د ماښام لمونځ کاوه نه بغير خلګ د عرفات نه راکوز شی.اومزدلفې ته به روان شی.

(1) من حديث فضل بن عباس رضي الله عنهما أخرجه البخاری فی الحج باب ٢٢ ومسلم فی الحج رقم ٢٦٦ وأبوداود فی الحج باب ٢٧ رقم ١٨١٥ والترمذی فی الحج باب ٧٨ رقم ٩١٨ والنسائی فی المناسک باب ٢٠٤ رقم ٢٨٨٧ وابن ماجه فی المناسک باب ٦٩ رقم ٣٠٤٠ والدارمی فی المناسک باب ٦٠ وأحمد فی المسند (١١٤/١)_

لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دَفَعَ بَعْدَ غُرُوبِ الشَّمْسِ، (١) ځکه چې نبی ﷺ راغلي وو روسته د ډوبيدو د لمر نه، وَلِأَنَّ فِيهِ إِظْهَارَ مُخَالَفَةِ الْمُشْرِكِينَ، اوبله دا چې په دې. کې اظهار دې. د مخالفت د مشرکانو، وَكَانَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ يَمْشِي عَلَى رَاحِلَتِهِ فِي الطَّرِيقِ عَلَى هَيْئَتِهِ (٢) اووو نبی ﷺ روان په خپله سپرلۍ باندې په لار کې په خپل وقار باندې.

تشریح:- دلائله ﷺ ځکه چې نبی ﷺ د لمر ډوبيدو نه روسته واپس شوې وو. ② بله دا چې په دې. کې د مشرکانو د مخالفت اظهار دې. ځکه چې مشرکان به په جاهليت کې د لمر ډوبيدو نه وړاندې واپس کيدل. او نبی ﷺ په لار کې په خپله اوښه قصواء باندې ډيرېه وقار او اطمينان سره روان وو.

## دامام نه وړاندې مزدلفې ته تلل

فَإِنْ خَافَ الزِّحَامَ فَدَفَعَ قَبْلَ الْإِمَامِ وَلَمْ يُجَاوِزْ حُدُودَ عَرَفَةَ أَجْزَأَهُ که ويرېږی د ګڼړې نه، نو راكوز شي وړاندې د امام نه، او تیر نشي د حدودو د عرفه نه، نو جائز ده، لِأَنَّهُ لَمْ يُفِضْ مِنْ عَرَفَةَ ځکه چې دې. نه دې. راكوز شوې د عرفات نه، وَالْأَفْضَلُ أَنْ يَقِفَ فِي مَقَامِهِ لِأَنْ يَكُونَ آخِذًا فِي الْأَدَاءِ قَبْلَ وَقْتِهَا او غوره دا ده. چه اودرېږی په مقام خپل کې، د دې لپاره نشي پيل کونکې په ادا کاوه کې وړاندې د وخت د هغې نه،

حل اللغة* ① خاف، خوفًا (س): ويره ② زحام: رش ③ دفع، دفعًا (ف): واپس تلل ④ يجاوز، مجاوزة: تجاوز کول، دحدنه وتل

تشریح:- جواز الدفع قبل الامام ﷺ مسئله دا ده. که حاجی د ګڼړې د امله د امام د روانيدو نه وړاندې د عرفات نه روان شو. او د عرفات د حدودو نه بهر نشو. نو جائز ده. ځکه چې دې. ته د عرفات نه تګ نشي وئیلې. خو بیا هم خلاف اولی ده. بلکه افضل دا ده. چه په خپل ځائې قيام اوکړی. د دې لپاره چې د خپل وخت نه ادامخکې یعنی د عرفات نه روانيدل متحقق نشي.

وَلَوْ مَكَثَ قَلِيلًا بَعْدَ غُرُوبِ الشَّمْسِ وَإِفَاضَةِ الْإِمَامِ که وخت ئې تير كړلو لږ غوندې. روسته د ډوبيدو د لمر نه او د راکوزیدو د امام نه، لِخَوْفِ الزِّحَامِ او راكوز شو امام د امله د ويرې د ګڼړې نه، فَلَا بَأْسَ بِهِ لِمَا رُوِيَ أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا بَعْدَ إِفَاضَةِ الْإِمَامِ نو نشته باك د دې امله چې روايت شوې دې. چه حضرت عائشې رضي الله عنها روسته ددې نه چې راكوز شو امام دَعَتْ بِشَرَابٍ فَأَفْطَرَتْ ثُمَّ أَفَاضَتْ راوئې غوښتل د څکاك څيز، ورژه ئې ماته كړه. او بیا راكوزه شوه.

تشریح:- جواز التاخیر عن الامام ﷺ دويمه مسئله دا ده. که حاجی د لمر ډبيدو نه روسته او د امام د روانيدو نه روسته لږ غوندې. تاخير اوكړلو نو په دې. کې قباحت نشته.

ⓐ دلیله ﷺ ځکه چې روايت شوې دې. چه حضرت عائشې رضي الله عنها د امام د تلو نه روسته او به راوغوښتلې. او روژه ئې ماته كړله. او بیا روانه شوه. او ښکاره خبره ده. چه په اوبو راغوښتلو او روژه ماتې کې به څه وخت لګيدلې وي. نو معلومه شوه. چه د امام د تلو نه روسته او د لمر ډبيدو نه روسته لږ وخت روستو کيدل څه قباحت نه لري.

(١) من حديث على بن أبى طالب رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى المناسک باب ٦٣ رقم ١٩٢٢ مقطعاً والترمذى فى الحج باب ٥٤ رقم ٨٨٥ وابن ماجه فى المناسک باب ٥٥ رقم ٣٠١٠)

(٢) تقدم تخريجه فى حديث جابر رضي الله عنه الطويل )



## په مزدلفه کې جبل قزح سره نزدې ودريدل

قَالَ (وَإِذَا أَتَى مُزْدَلِفَةَ فَالْمُسْتَحَبُّ أَنْ يَقِفَ بِقُرْبِ الْجَبَلِ فرمائی او كله چې مزدلفې ته راشي. نو مستحب دا ده. چه اودرېږی نزدې. د غر هغه سره الَّذِي عَلَيْهِ الْمِقْيَدَةُ يُقَالُ لَهُ قُزَحُ) چې په هغې باندې انګيټۍ ده. او وئيلې شي ورته قزح، لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَقَفَ عِنْدَ هَذَا الْجَبَلِ (١) ځکه چې نبی ﷺ ددې غر سره ودريدلې وو. وَكَذَا عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او دغه ډول حضرت عمر رضي الله عنه (هم ودريدلې وو)

حل اللغة* ① اتى، اتيانًا (ض): راتګ ② مقيدة: آتشدان ددې نوم قزح دې

تشریح:- الوقوف بقرب الجبل القزح ﷺ د حاجی لپاره مستحب دی. چه په مزدلفه کې د جبل قزح سره نزدې اودرېږی. ځکه چې نبی ﷺ دې. سره نزدې. ودريدلې وو. او دغه ډول حضرت عمر فاروق رضي الله عنه هم دې. سره نزدې. اودريلې وو.

وَيَتَحَرَّزُ فِي النُّزُولِ عَنِ الطَّرِيقِ او ځان دې ساتی په راكوزيدو کې لارې نه، كَيْ لَا يَضُرَّ بِالْمَارَّةِ فَيَنْزِلُ عَنْ يَمِينِهِ أَوْ يَسَارِهِ چې تکليف اونه رسی په لار تيريدونكو ته، نو راکوزېږی دې. ښی اړخ ته او چپه اړخ ته د هغې (لار) نه،

حل اللغة* ① يتحرز، تحرزًا: بچ كيدل، احتراز کول ② ينزل، نزولاً (ض): راكوزيدل ③ مارة د مار جمع: د تيريدو لار

تشریح:- التحرز فى النزول عن الطريق ﷺ او حاجی ته پكار دی. چه لارې ته نه راکوزېږی. بلکه ښی یا چپه اړخ ته دې. راکوزېږی. ځکه چې په لار کې راكوزيدو کې تيريدونكو ته تکليف ملاويږی.

وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَقِفَ وَرَاءَ الْإِمَامِ او مستحب دی چې اودرېږی شا ته دامام، لِمَا بَيَّنَّا فِي الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ د هغې امله نه كومه چې موږ بيان كړه په وقوف عرفات کې

تشریح:- القيام وراء الامام ﷺ او د حاجی لپاره پكار دی. چه د مزدلفې په قيام کې د امام شا ته اودرېږی. دليل هغه دې. کوم چې موږ د عرفات په وقوف کې د امام شا ته په اودريدو کې بيان كړې دې.

قزح په ضمه د ،قاف، او ،د، په فتحه سره، دا لفظ د قزح په معنی د ارتفاع نه ماخوذ دی. د اوچتوالی د امله دې. ته قزح وائی. په دې. غر باندې انګيټۍ وه. چه هغه به د جاهليت په وخت کې خلګو بلوله. او د هارون الرشيد په زمانه کې به په مزدلفه باندې شمع بلولې شوه. او د هارون الرشيد نه روسته به لوئې لوئې ډيوې بلولې شوې.

## دامام لمونځ په يو اذان او يو اقامت سره ادا كول

قَالَ وَيُصَلِّي الْإِمَامُ بِالنَّاسِ الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ بِأَذَانٍ وَإِقَامَةٍ وَاحِدَةٍ فرمائی او لمونځ دې وركړی امام خلګو ته د ماښام او ماسخوتن په يو اذان او يو اقامت،

تشریح:- المذهبان في اقامة العشاء بمزدلفة ﷺ مسئله دا ده. ① چه امام دې. په مزدلفه کې د ماښام او ماسخوتن مونځونه په يو اذان او يو اقامت باندې جمع كړی

وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ: بِأَذَانٍ وَإِقَامَتَيْنِ اعْتِبَارًا بِالْجَمْعِ بِعَرَفَةَ او فرمائی امام زفر رحمه الله په يو اذان او دوو اقامتونو سره، قياس كوی په جمع (بين الصلاتين) په عرفه باندې،

حل اللغة* ① جمع، جميعًا (ف): جمع کول، راټولول

(١) من حديث على بن أبى طالب رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى المناسک باب ٦٣ رقم ١٩٢٢ مقطعاً والترمذى فى الحج باب ٥٤ رقم ٨٨٥ وابن ماجه فى المناسک باب ٥٥ رقم ٣٠١٠)_

**تشریح:-** دامام زفر رحمه الله مذهب دا دی.چه په یو اذان او دوو اقامتونو به ئې جمع کوی.

**دلیله** امام زفر رحمه الله په مزدلفه کي د ماښام او ماسخوتن مونځونه جمع کول په عرفات کي د ماپښین اومازیګر دمونځونو په جمع کاوه باندې قیاس کوی.نولکه څنګه چې هلته د دواړو مونځونو لپاره یو اذان اودوې [دوه] اقامتونه کولی شی.دغه ډول به دلته په مزدلفه کي هم دماښام اوماسخوتن د دواړو مونځونو لپاره یواذان او دوې [دوه] اقامتونه کولی شی.

| وَلَنَا رِوَايَةُ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ {أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَمَعَ بَيْنَهُمَا بِأَذَانٍ وَإِقَامَةٍ وَاحِدَةٍ (١) او زموږ لپاره دلیل دحضرت جابر ﷺ روایت دی.چه نبی ﷺ جمع کړی وو دا دواړه (مونځونه د ماښام اوماسخوتن) په یو اذان اویواقامت سره، |
|---|

**تشریح:- دلیل جمهور الاحناف** رحمهم الله زموږ دلیل دحضرت جابر ﷺ حدیث دی.چه نبی ﷺ په مزدلفه کي د ماښام او ماسخوتن دواړه مونځونه په یواذان او یواقامت سره جمع کړی وو.

| وَلِأَنَّ الْعِشَاءَ فِي وَقْتِهِ فَلَا يُفْرَدُ بِالْإِقَامَةِ إِعْلَامًا اوبله دا چې د ماسخوتن لمونځ په خپل وخت کي ادا کیږی.نونشی به خانله کولې په اقامت سره، لپاره داعلان کولو. |
|---|

**تشریح:-** دوهم دلیل دا دی.چه ماسخوتن په خپل وخت کي ادا کیږی.نو خلګو ته د وخت داخلیدو اعلان هډو څه اړتیا نشته

| بِخِلَافِ الْعَصْرِ بِعَرَفَةَ لِأَنَّهُ مُقَدَّمٌ عَلَى وَقْتِهِ په خلاف د مازیګرلمونځ په عرفه کي ، څکه چې هغه وړاندې وی په خپل وخت باندې فَأُفْرِدَ بِهَا لِزِيَادَةِ الْإِعْلَامِ نوځانله کولې به شی په په اقامت سره د پاره د زیادت د اعلان. |
|---|

**تشریح:-** په خلاف د مازیګر لمونځ په عرفه کي څکه چې هلته خو د مازیګر وخت لا داخل شوې نه وی.نوددې امله خلګو ته د زیاتی خبر ور کاوه لپاره اقامت کولې شی.

## دماښام او ماسخوتن په مینځ کي د نفلوحکم

| (وَلَا يَتَطَوَّعُ بَيْنَهُمَا) لِأَنَّهُ يُخِلُّ بِالْجَمْعِ اونفل دې نه کوی په مینځ ددې دواړو(مونځونود ماښام او ماسخوتن) وَلَوْ تَطَوَّعَ أَوْ تَشَاغَلَ بِشَيْءٍ أَعَادَ الْإِقَامَةَ لِوُقُوعِ الْفَصْلِ اوکه نفل ئې اوکړلو .یا بوخت شو په څه شی کي .نوراګرځوی به اقامت د امله د واقع کیدو د جدائي نه، |
|---|

**حل اللغة** ① تشاغل، تشاغلاً: بوخت کیدل، بوخت کیدل ② وقوع: واقع کیدل

**تشریح:-** مسئله دا ده.چه په مزدلفه کي به دماښام او ماسخوتن د مونځونو په مینځ کي نفل نه کوی.څکه چې نفل په جمع بین الصلاتین کي خلل راولی.اوکه په مینځ کي نفل اوکړلو یا ئې څه بل عمل اوکړلو .نواقامت دې دوباره اوکړی.څکه چې په جمع کي جدائی واقع شوه.

| وَكَانَ يَنْبَغِي أَنْ يُعِيدَ الْأَذَانَ كَمَا فِي الْجَمْعِ الْأَوَّلِ بِعَرَفَةَ اومناسب دا دی.چه راوګرځوی اذان لکه په لومړنی جمع (بین الصلاتین په عرفات کي) |
|---|

**حل اللغة** ① یعید،اعادة:واپس کول

**تشریح:-** اومناسب خو دا وه.چه اذان ئې هم راګرځولې وو.لکه څنګه چې په عرفات کي که د ماپښین او مازیګرپه مینځ کي نفلو سره جدائی راولی.نوهلته دا حکم وو.چه د اذان اعاده به ئې کوله.

| إِلَّا أَنَّا اكْتَفَيْنَا بِإِعَادَةِ الْإِقَامَةِ که ئې د دواړو مونځونو په مینځ کي کړی وو.نوهلته د اذان راګرځولوحکم |
|---|

(١) من حدیث جابر ﷺ أخرجه ابن أبی شیبة فی مصنفه کذا فی نصب الرأیة ٧٧/٣)_



| وو)مګر دومره ده چې موږ اکتفا اوکړله په راګرځولو داقامت کي لِمَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ صَلَّى الْمَغْرِبَ بِمُزْدَلِفَةَ ثُمَّ تَعَشَّى ددې امله چې روایت شوې دې چې نبی ﷺ لمونځ اوکړلودماښام په مزدلفه کي ،بیا ئې ډوډۍ اوخوړله. ثُمَّ أَفْرَدَ الْإِقَامَةَ لِلْعِشَاءِ (١) اوبیائې خانله اوکړلواقامت دماسخوتن دپاره. |
|---|

**تشریح:-** خودلته موږ صرف د اقامت په راګرځولو څکه اکفتا اوکړله.چه نبی ﷺ په مزدلفه کي دماښام د لمانځه نه روسته ډوډۍ اوخوړله.اوبیا ئې اقامت اوکړلو .او دماسخوتن لمونځ ئې اوکړلو.نوچونکه نبی ﷺ صرف د اقامت اعاده کړې ده.د اذان ئې نه ده کړې.څکه موږ هم صرف د اقامت د راګرځولو حکم ورکوو.

## دماښام او ماسخوتن په جمع بین الصلاتین کي د جماعت حکم

| وَلَا تُشْتَرَطُ الْجَمَاعَةُ لِهٰذَا الْجَمْعِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ او نشی شرط کولې جماعت په نیز د ابوحنیفه |
|---|

**حل اللغة** ① تشترط، اشتراطًا: شرط لګول

**تشریح:- عدم اشتراط الجماعة في المزدلفة** دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزد په مزدلفه کي د ماښام او ماسخوتن جمع لپاره جماعت شرط نه دی.اوپه عرفات کي د ماپښین اومازیګرجمع کاوه لپاره جماعت شرط دی.

| لِأَنَّ الْمَغْرِبَ مُؤَخَّرَةٌ عَنْ وَقْتِهَا څکه چې ماښام روستو دی. دخپل وخت نه، بِخِلَافِ الْجَمْعِ بِعَرَفَةَ په خلاف د جمع (بین الصلاتین) په عرفه کي ،، لِأَنَّ الْعَصْرَ مُقَدَّمٌ عَلَى وَقْتِهِ څکه چې (هلته) مازیګروړاندې وود خپل وخت نه |
|---|

**تشریح:- وجه الفرق بین الجمعین** وجه د توپیر دا ده.چه په مزدلفه کي دماښام لمونځ دخپل وخت نه روستو کولې شی.او د وخت وتلو نه روسته د لمونځ کول د قیاس سره موافق دی.څکه چې په ټولو مونځونوکي قضا مشروع شوې ده.چه دخپل وختونو نه پاتې شی.قیاس سره د موافقت د امله د مورد نص خیال ساتل واجب نشو.او په عرفه کي دمازیګرلمونځ د خپل وخت نه وړاندې کولې شی.اود خپل وخت نه وړاندې کول په هر اعتبار سره د قیاس نه خلاف دی.نوکوم شی چې ثابت شی خلاف قیاس هغه به مختص وی په خپل مورد پورې.اوپه هغې کي به د نص پوره پوره خیال ساتلې شی.اود ماپښین اومازیګرپه لمونځ کي په جماعت باندې نص وارد شوې دی.نوځکه به هلته جماعت شرط وی.

## د مزدلفه په لار کي د لمونځ کولوحکم

| قَالَ (وَمَنْ صَلَّى الْمَغْرِبَ فِي الطَّرِيقِ لَمْ يُجْزِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ، وَعَلَيْهِ او چا چې لمونځ اوکړلود ماښام په لار د مزدلفه کي نونه جائز کیږی ورله په نیز د امام ابوحیفه اوامام محمد رحمهما الله إِعَادَتُهَا مَا لَمْ يَطْلُعِ الْفَجْرُ (٢) اوپه ده باندې راګرځول دهغې دی.ترڅوچه نه وی راختلې صبا، |
|---|

**حل اللغة** ① یطلع، طلوعاً (ف): راختل

**تشریح:- المذهبان في جواز المغرب في الطریق** مسئله دا ده.① که حاجی د ماښام لمونځ د مزدلفې په لار کي

(١) غربه الزیلعی رحمه الله بهذا اللفظ جاری ثم أخرج حدیث ابن مسعود بن.... عبدالرحمن بن یزید قال حج عبدالله بن مسعود ﷺ فأتینا المزدلفة حین الأذان بالعتمة أو قریباً من ذلک فأمر رجلاً فأذن وأقام ثم صلی المغرب وصلی بعدها رکعتین ثم دعا بعشائه فتعشی ثم أمر أری فأذن وأقام قل عمروبن خالد لا أعلم الشک إلا من زهیرثم صلی العشاء رکعتین فلما طلع الفجر قال ان رسول الله ﷺ کان لا یصلی هذه الساعة إلا هذه الصلاة فی هذا المکان من هذا الیوم قال عبدالله هاتان صلاتان تحولان عن وقتهما صلاة المغرب بعد مایأتی الناس المزدلفة والفجر حین بزع الفجر قال رأیت رسول الله ﷺ یفعله (نصب الرأیة ٧٩/٣)_

(٢) القول الراجح هو هذا قول الطرفین رحمهما الله کذا فی الدری لمختار(١٩٢\٢) والبحر(١٩٢\٢) والهندیة (٢٣٠\١) نقلاً عن القول الراجح (٢١٢\١)_

اوکړلو.نود طرفينو رحمهما الله په نيزدا لمونځ صحيح نه دې.بلکه په ده باندې د سهار راختو نه وړاندې وړاندې ددې راګرځول واجب دی.امام زفر اوحسن بن زياد رحمهما الله هم ددې قائل دی.

**وَقَالَ أَبُويُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: يُجْزِيهِ وَقَدْ أَسَاءَ** اوفرمائی امام ابويوسف رحمه الله جائز کيږی ورله خوګناهګار دې. **وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا صَلَّى بِعَرَفَاتٍ** اوهم دغه شان چې لمونځ اوکړی په عرفات کې ، **لِأَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ أَدَّاهَا فِي وَقْتِهَا** امام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې.چه ده لمونځ اوکړلو په خپل وخت کې ، **فَلَا تَجِبُ إِعَادَتُهَا كَمَا بَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ** نونه دی واجب راګرځول،لکه څنګه چې روسته د راختلود سهار نه، **إِلَّا أَنَّ التَّأْخِيرَ مِنَ السُّنَّةِ فَيَصِيرُ مُسِيئًا بِتَرْكِهِ** (دطرفينو رحمهما الله په نيزبيا راګرځول نشته.که سهار راوخيژی)البته دومره ده چې روستو والې (د ماښام په لمونځ کې ) سنت دې.نوګرځی ګناهګار په پريخودو د دې.

**تشريح:-** مام ابويوسف رحمه الله فرمائی.چه لمونځ ټيک دې.البته د سنت په پريخودو سره ګناهګارشو.هم دا اختلاف په هغه صورت کې دې.چه د ماښام لمونځ په ډګر عرفات کې اوکړی.يعنی په دې. صورت کې هم د طرفينو رحمهما الله په نيزماښام ټيک نه دې.اود امام ابويوسف رحمه الله په نيزماښام صحيح دې.

**دليله** ﴿دامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې.چه دې.حاجی دماښام لمونځ په خپل وخت کې اوکړلو.اوکوم لمونځ چې په خپل وخت کې اوشی.دهغې راګرځول واجب نه وی.نودغه ډول ددې لمونځ راګرځول هم واجب نه دی.لکه څنګه چې په هغه صورت کې په ده باندې ددې راګرځول واجب نه دی.چه سهار راوخيژی.البته دومره خبره خامخا ده.چه د ماښام لمونځ روستو کول سنت دی.نود سنت د پريخودو په وجه دا کس ګناهګار دې.

**وَلَهُمَا مَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَالَ لِأُسَامَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ** اود طرفينو رحمهما الله دليل هغه دې دکوم چې روايت شوې دې چې نبی ﷺ فرمائيلی وو.حضرت اسامه رضي الله عنه ته **فِي طَرِيقِ الْمُزْدَلِفَةِ: الصَّلَاةُ أَمَامَكَ**([1]) په لار د مزدلفې کې ،لمونځ ستا وړاندې دې. **مَعْنَاهُ: وَقْتُ الصَّلَاةِ** ددې معنی دا ده چې د لمانځه وخت (وړاندې په مزدلفه کې) دې.. **وَهٰذَا إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّ التَّأْخِيرَ وَاجِبٌ** اودا قول اشاره ده چې تاخير واجب دې.

**تشريح:- دليل الطرفين** ﴿دطرفينو رحمهما الله دليل دا دې.چه حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه د مزدلفې په لار کې نبی ﷺ ته عرض اوکړلو.اې دالله پيغمبره! لمونځ اوکړئ.نونبی ﷺ ورته اوفرمائيل. ﴿الصلاة أمامك﴾ يعنی د لمونځ وخت ستا وړاندې دې.يعنی په مزدلفه کې ،ددې نه معلومه شوه.چه د ماښام لمونځ روستو کول واجب دی.

**وَإِنَّمَا وَجَبَ لِيُمْكِنَهُ الْجَمْعُ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ بِالْمُزْدَلِفَةِ** اوواجب دې ددې لپاره چې قدرت ملاؤ شی ده ته په جمع بين الصلاتين په مزدلفه کې **فَكَانَ عَلَيْهِ الْإِعَادَةُ مَا لَمْ يَطْلُعِ الْفَجْرُ** نودی په ده باندې راګرځول ترڅوچه نه وی راختلې صبا **لِيَصِيرَ جَامِعًا بَيْنَهُمَا** ددې لپاره چې اوګرځی جمع کونکې ددې دواړو (مونځونو) **وَإِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ لَا يُمْكِنُهُ الْجَمْعُ** اوکله چې راوخيژی سهار نو ممکن نه دی،ده لره جمع کول **فَسَقَطَتِ الْإِعَادَةُ** ، نوساقط شو راګرځول (ددې مونځونو)

**تشريح:-** اوددې روستو کول صرف په دې. غرض واجب دی.چه په مزدلفه کې جمع بين الصلاتين اوشی.نوددې جمع بين الصلاتين لپاره به د سهار راختو نه وړاندې وړاندې دماښام د لمونځ اعاده کوی. خو چې کله سهار راوخيژی.نوچونکه اوس د دواړو مونځونوجمع کول ممکن پاتې نشو. نو ځکه د سهار راختو نه روسته اعاده ساقطه شوه.

---

[1]) من حديث أسامة (رض) أخرجه الشيخان كذا في نصب الراية (۳/۸۰)_



## په لسمه ذوالحجه دصبا لمونځ په چاغه کښې کول

**قَالَ (وَإِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ يُصَلِّي الْإِمَامُ بِالنَّاسِ الْفَجْرَ بِغَلَسٍ)** فرمائی اوکله چې راوخيژی سهار لمونځ دې. ورکړی امام خلګو ته د سهار په چاغه کې ،

**حل اللغة:** ①غلس: چاغه

**تشريح:- اداء صلاة الفجر بغلس** ﴿مسئله دا ده.چه کله د اخترپه ورځ سهار شی.نوامام به خلګ وته د سهار لمونځ په چاغه کې کوی.

**لِرِوَايَةِ ابْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ صَلَّاهَا يَوْمَئِذٍ بِغَلَسٍ}**([1]) د امله د حديث د ابن مسعود رضي الله عنه نه،چه نبی ﷺ کړې وو دا (لمونځ دصبا) په دغه ورځ (د اختر) په چاغه کې ،

**تشريح:- دلائله** ﴿ ①دليل دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت دې.چه نبی ﷺ په دغه ورځ د سهار لمونځ په چاغه کې کړې وو

**وَلِأَنَّ فِي التَّغْلِيسِ دَفْعَ حَاجَةِ الْوُقُوفِ** اوبله دا چې په چاغه کې لمونځ کاوه کې لرې کول دحاجت د وقوف دی. **فَيَجُوزُ كَتَقْدِيمِ الْعَصْرِ بِعَرَفَةَ** نوجائزدې لکه وړاندې کول د مازيګر لمانځه په عرفه کې

**تشريح:-** دوهم دليل دا دې.چه د سهار د لمونځ په چاغه کې کول په مزدلفه باندې دوقوف لپاره دی.لکه څنګه چې په عرفات کې دوقوف لپاره دمازيګرلمونځ دخپل وخت نه وړاندې کولې شی. نو هرکله چې د وقوف عرفات لپاره د مازيګرلمونځ دخپل وخت نه وړاندې کولې شی.نوپه مزدلفه کې د وقوف لپاره خوبه د سهار لمونځ دخپل معتاد وخت نه په طريق اولی سره مخکې کولې شی.اودا به جائز وی.

### د صبا دمانځه نه روسته دعا اووقوف کول

**ثُمَّ وَقَفَ وَوَقَفَ مَعَهُ النَّاسُ وَدَعَا** بيا به اودريږی (امام) اودده سره خلګ ،اودعا به اوکړی.

**حل اللغة:** ①دعا، يدعوا، دعاءً (ن): دعا کول، رابلل

**تشريح:- الدعاء بالمزدلفة** ﴿صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه امام جبل قزح ته اورسی.نووقوف به اوکړی اودده سره به خلګ هم وقوف اوکړی.اوامام او خلګ دې. په دې. ځائې کې دعاګانې کوی.

**لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَقَفَ فِي هٰذَا الْمَوْضِعِ يَدْعُو** ځکه چې نبی ﷺ ولاړ وو په دې. ځائې کې اودعا ئې کوله **حَتَّى رُوِيَ فِي حَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ** تردې چې روايت شوې دې په حديث د ابن عباس رضي الله عنهما کې **عَنْهُمَا فَاسْتُجِيبَ لَهُ دُعَاؤُهُ لِأُمَّتِهِ حَتَّى الدِّمَاءِ وَالْمَظَالِمِ**([2]) چې د دوی ﷺ دعاګانې قبولې شوې د امت دپاره،تردې. چې وينې اوظلمونه.

**حل اللغة:** ① استجيب، استجابة: قبلول

**تشريح:- دليله** ﴿ځکه چې دا ځائې ددعا د قبليدو دې.هم دا وجه وه.چه نبی ﷺ کريم په دې. مقام کې دعا کړې وه.اود حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د روايت مطابق ټولې دعاګانې ئې قبولې شوې وې.تردې. چې په ناحقه قتل کونکو اوظلم کونکو ته هم د معاف کاوه دعائې قبوله شوې وه.يعنی دقيامت په ورځ به الله تعالی ناحق مقتول اومظلوم ته دومره څه ورکړی.چه هغه دالله تعالی نعمتونو اوانعاماتو ته اوګوری.نوخپل مدعيان عليهم به معاف کړی.نودغه قاتل اوظالم به د مغفرت مستحق شی.

---

[1]) من حديث ابن مسعود رضي الله عنه أخرجه الشيخان )_

[2]) تقدم من حديث جابر رضي الله عنه الطويل)_

نوټ: نبي ﷺ د خپل امت د قاتلانواوظالمانو لپاره هم د عرفې په ورځ د مغفرت دعا کړې وه.خوهغه نه وه قبول شوې .بلکه په مزدلفه کې د وقوف په مهال کې پوره شوه.نواوس دا اعتراض نشي کيدې.چه د عرفې په ورځ دې. دواړه قسمه خلګو ته د ګناه نه معاف کول بيان شوي وو.اودلته قبولوالې بيانيږي.

## په مزدلفه د وقوف شرعي حيثيت

ثُمَّ هَذَا الْوُقُوفُ وَاجِبٌ عِنْدَنَا وَلَيْسَ بيادا وقوف واجب دې. زموږ په نيز،تردې. بِرُكْنٍ، حَتَّى لَوْ تَرَكَهُ بِغَيْرِ عُذْرٍ يَلْزَمُهُ الدَّمُ كه دا ئې پريښولو .بغير د عذر.نولازميږي پرې وينه،

حل اللغة:① يلزم،لزوماً (س):لازم کيدل، ضروري کيدل

تشريح:- المذهبان في حكم الوقوف بالمزدلفة: صاحب د قدوري رحمه الله فرمائي.چه زموږ په نيز وقوف د مزدلفې واجب دی رکن نه دې.تردې. که وقوف د مزدلفې ئې بغيرعذره پريښولو .نويه ده به دم لازم وي.

قَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: إِنَّهُ رُكْنٌ لِقَوْلِهِ تَعَالَى [فَاذْكُرُوا اللَّهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ] اوفرمائي امام شافعي رحمه الله چه دا رکن دې.د امله د قول دالله تعالى نه چې فَاذْكُرُوا اللَّهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ)) تاسو الله تعالى د مشعرحرام سره يادوئ وَبِمِثْلِهِ تَثْبُتُ الرُّكْنِيَّةُ،اوپه مثل ددې (چه قرآن کې پرې حکم شوې وي) ثابتيږي رکنيت،

حل اللغة: ① يثبت، ثبوتاً (ن): ثابت کيدل

تشريح:- اوامام شافعي رحمه الله فرمائي.چه وقوف د مزدلفې رکن دې.

دليل الركنية: دليل ئې دالله تعالى دا ارشاد دې [فَإِذَا أَفَضْتُمْ مِنْ عَرَفَاتٍ فَاذْكُرُوا اللَّهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ وَاذْكُرُوهُ كَمَا هَدَاكُمْ] يعنى کله چې تاسو د عرفات نه راواپس شئ.نود مشعرحرام سره د الله تعالى ذکر کوئ. او مشعرحرام په مزدلفه کې دې.نوپه مشعرحرام کې به دالله تعالى ذکرهم په هغه وخت کې ممکن وي. چې حاجي په عرفات باندې قيام اوکړي.اوهغې نه بيا مزدلفې ته راشي.اووقوف کوي.اود آيت د امله د ذکرالله رکينت ثابت دې.اودا وقوف دې.وقوف د مزدلفې،اوقاعده دا ده.چه د رکن موقوف عليه هم رکن وي.نووقوف په مزدلفه رکن دې.

وقوع الخطاء فى النسبة الى الشافعي رحمه الله: صاحب د عنايه د نهايه په حواله سره ذکر کوي.چه ددې قول امام شافعي رحمه الله ته په نسبت کاوه کې د کاتب سهوه ده.ځکه چې د شوافعو رحمهم الله په کتابونو کې ذکردی.چه وقوف د مزدلفه سنت دې.په مبسوط کې دامام شافعي رحمه الله په ځائې د ليث بن سعد رحمه الله نوم ذکردې.اوپه کتاب الاسرار کې دامام شافعي رحمه الله په ځائې د علقمه نوم ذکردې.اوپه فتاوى قاضي خان کې دامام شافعي رحمه الله په ځائې د امام مالك رحمه الله نوم ذکردې.

وَلَنَا مَا رُوِيَ أَنَّهُ قَدَّمَ ضَعَفَةَ أَهْلِهِ بِاللَّيْلِ[1] او زموږ لپاره هغه حديث دې.چه روايت ئې شوې دی.چه نبي ﷺ وړاندې اوليږل کمزوري د خپل اهل وعيال د شپې، وَلَوْ كَانَ رُكْنًا لَمَا فَعَلَ ذَلِكَ اوکه چرته رکن وې نو ولې به ئې داسې کول

حل اللغة: ① ضعفة دَ ضعيف جمع: کمزوري، بې توان

تشريح:- دليل عدم الركنية: او زمونږدليل دا دې.چه نبي ﷺ د خپل کور کمزوری نفر دشپې منى ته ليږلي وو. يعنى په مزدلفه کې د وقوف نه بغير ئې منى ته ليږلي وو.اودا حکم ئې ورته کړې وو.چه دجمره عقبې رمى مه کوئ.تردې. چې نمر راوخيژي.که چرته وقوف په مزدلفه کې رکن وو.نونبي ﷺ به داسې نه وو کړې. يعنى کمزوري به ئې د شپې وړاندې نه ليږل.ځکه چې رکن.د عذر د امله هم پريښول جائز نه وي.

[1]) من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه البخارى فى الحج باب ۹۸رقم ۱۶۸۰ ومسلم فى الحج رقم ۲۹۴ والنسائى فى الحج باب ۲۱۲ وابن ماجه فى المناسك باب ۶۲ والدارمى فى المناسك باب ۵۳ وأحمدفى المسند (۶/۹۴)_



وَالْمَذْكُورُ فِيمَا تَلَا الذِّكْرُ اوذکرشوې په هغه آيت کې چې وې لوستلو ذکر دې. وَهُوَ لَيْسَ بِرُكْنٍ بِالْإِجْمَاعِ اوهغه (ذکر) رکن نه دې.په اجماع سره،

تشريح:- الجواب من مستدل الشافعي رحمه الله: اودامام شافعي رحمه الله د پيش کړې دليل نه ځواب دا دې.چه په دې. آيت کې ذکرمذکور دې.اوذکر کول په اجماع سره رکن نه دې.نوچه په کوم ځيزباندې ذکر موقوف وي.يعنى وقوف د مزدلفې، هغه به هم رکن نه وي.

وَإِنَّمَا عَرَفْنَا الْوُجُوبَ بِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {مَنْ وَقَفَ مَعَنَا هَذَا الْمَوْقِفَ اويقيناً موږ پيژندلې دې. وجوب په قول د نبي ﷺ سره،څوک چې موږ سره ودريدلو په دې. مقام کې وَقَدْ كَانَ أَفَاضَ قَبْلَ ذَلِكَ مِنْ عَرَفَاتٍ فَقَدْ تَمَّ حَجُّهُ} [1] په داسې حال کې چې راغلې وی وړاندې ددې د عرفات نه يقيناً پوره شو حج دده. عَلَّقَ بِهِ تَمَامَ الْحَجِّ، وَهَذَا يَصْلُحُ أَمَارَةً لِلْوُجُوبِ نبي ﷺ معلق کړلو په دې. (وقوف) پورې پوره والې دحج اودا صلاحيت لرى چې شى نښانه د وجوب،

تشريح:- او د وقوف مزدلفه وجوب د حديث نه ثابت دې.نبي ﷺ فرمائيلى دی.چاچه زموږ سره په مزدلفه کې وقوف اوکړلو .حالانکه دې. ددې نه وړاندې د ذکر عرفات نه راغلې وي.نودده حج پوره شو په دې. حديث کې د حج تکميل اوپوره والې په وقوف مزدلفه پورې معلق شوې دې.اومعلق کول د وجوب علامت وي.نوپه مزدلفه کې وقوف واجب دې.

غَيْرَ أَنَّهُ إِذَا تَرَكَهُ بِعُذْرٍ البته دومره ده.چه دا پريږدی په عذر سره، بِأَنْ يَكُونَ بِهِ ضَعْفٌ أَوْ عِلَّةٌ أَوْ كَانَتْ امْرَأَةً تَخَافُ الزِّحَامَ په دې شان چې وی په ده کمزوری يا څه عذر اويا وی ښځه چې د ويريږی د ګڼړې نه. (لَا شَيْءَ عَلَيْهِ لِمَا رَوَيْنَا نونشته څه شى په دې. باندې د امله دهغه حديث نه چې موږ ئې روايت اوکړلو.

تشريح:- البته که د عذر د امله ئې وقوف پريخودل.نوپه ده باندې دم وغيره واجب نه دی.لکه په حديث د «قدم ضعفة أهله إلخ» کې چې تير شو.اود عذر مثال د حاجي کمزوری، ناروغي (ناروغي (بيماري)) ،يا دښځې په بيړه کې ويريدل وغيره دی.

## وادي محسر موقف نه دې

وَالْمُزْدَلِفَةُ كُلُّهَا مَوْقِفٌ إِلَّا وَادِي مُحَسِّرٍ فرمائي اومزدلفه واړه ځائې د اودريدو دې.مګروادی محسر، لِمَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ د امله دهغه حديث نه چې موږ نقل کړې دې. وړاندې.

حل اللغة: ① روى، يروى رواية (ض): روايت کول ]

تشريح:- واضح ده.

## د نمر راختو نه روسته منى ته روانيدل

(فَإِذَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ أَفَاضَ الْإِمَامُ وَالنَّاسُ مَعَهُ فرمائي کله چې راوخيژي لمر نو روان به شى امام او خلګ حَتَّى يَأْتُوا مِنًى تردې چې اورسي منى ته،

حل اللغة: ① طلع، يطلع طلوعاً (ف): راختل ② ياتوا، اتياناً: راتګ

تشريح:- الافاضة الى منى: صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي.چه د يوم النحر لمر راوخيژي نو روان به شى امام او خلګ د مزدلفې نه منى ته به لاړ شي.

[1]) من حديث عروة بن مضرس أخرجه أبوداودفى المناسك باب ۶۸ رقم ۱۹۵۰ والترمذى فى الحج باب ۵۷ رقم ۸۹۱ والنسائى فى المناسك باب ۲۱۱ رقم ۲۸۴۵ وابن ماجه فى المناسك باب ۵۷ رقم ۳۰۱۶)_

قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ وائی بنده ضعيف عَصَمَهُ اللّٰهُ تَعَالٰى: هٰكَذَا وَقَعَ فِي نُسَخِ الْمُخْتَصَرِ وَهٰذَا غَلَطٌ داسې واقع شوی دی په نسخو د مختصر القدوری کې، اودا غلط دی. وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ إِذَا أَسْفَرَ أَفَاضَ الْإِمَامُ وَالنَّاسُ اوصحيح دا دي چه کله رڼائی شی، نو روان به شی امام او خلګ، لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دَفَعَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ (١) ځکه چې نبی ﷺ روان شوې وو وړاندې د راختو د لمر نه

حل اللغة ① عصم، يعصم عصماً بچ کول

تشريح:- صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی چه د قدوری په بعضې نسخوکې دی. چې د لمر راختو نه وړاندې به منی ته روان شی. خوموږ وايو چه د قدوری دا عبارت هم ټيك دې. ځکه چې د «إذا طلعت الشمس» معنی به وی «إذا قربت إلى الطلوع» نو په دې. دواړو نسخو کې څه تعارض نشته.

## د جمره عقبه رمی

قَالَ فَيَبْتَدِئُ بِجَمْرَةِ الْعَقَبَةِ فَيَرْمِيهَا مِنْ بَطْنِ الْوَادِي فرمائی نوشروع به کوی په (رمی د) جمره عقبه نه، نو اوولی به ئې د بطن وادی نه، بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ مِثْلَ حَصَى الْخَذْفِ په اووه ګيټکو پشان د کاڼو د ټيکرو،

حل اللغة ① يرمی، رمياً (ض): غورزول ② حصاة: کاڼړی ③ خذف: ټيکری

تشريح:- مواضع احكام الرمی ۞ د رمی په اړه کې په دولس ځايونو کې کلام دې. ① وخت ئې يوم النحر اودرې ورځې ددې نه روسته دی ② د ويشتلو ځائې ئې بطن وادی دې. ③ د رمی محل ئې درې ځايونه دی. جمره عقبه، مسجد خيف اوجمره وسطی. ④ دګيټکو شمار دهرې جمرې سره اووه دی. ⑤ مقدار د ګوتې د بند هومره دې. ⑥ د ويشتلو طريقه دا په کتاب کې موجود ده. ⑦ د رمی مقدارنودا هم په کتاب کې ذکر ده. ⑧ د ويشتونکی صفت دا دې چه دې. به يا سور وی يا پيدل ⑨ د ګيټکو غورځيدو ځائې ⑩ دکوم ځائې نه چې ګيټکی راخلی. (١١) ګيټکی به څنګه وی. هغه دا چې د زمکې د جنس څنې به وی. (١٢) په اوله ورځ به صرف د جمره عقبه رمی کولې شی. اوپه پاته ورځو کې به د درې واړو جمراتو رمی کولې شی.

رمی الجمرة العقبة ۞ صاحب دقدروی رحمه الله فرمائی. چه د رمی پيل به د جمره عقبه نه کيږی. نود وادی د کښته برخې څخه به اووه ګيټکی اولی. اودا ګيټکی به د ګوتود بندونو په برابر وی. اود مسواکې ګوتې په دده باندې ويشتلې شی.

لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا أَتَى مِنًى لَمْ يُعَرِّجْ عَلَى شَيْءٍ ځکه چې نبی ﷺ کله راغلو منی ته نوهيڅ کار ئې نه وو کړې حَتّٰى رَمٰى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ (٢) تردې چې وې ويشتله جمره عقبه،

حل اللغة ① يعرج، عروجاً (ف): ختل

تشريح:- دليله ۞ دليل دا دې چه نبی ﷺ کله منی ته تشريف يوړلو. نوبغير د څه توقف نه ئې جمره عقبه ويشتې وه.

وَقَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْكُمْ بِحَصَى الْخَذْفِ اوفرمائيلی دی نبی ﷺ په تاسو باندې (اخستل) د ګټکی د ټيکری دی. لَا يُؤْذِي بَعْضُكُمْ بَعْضًا (١) اوتکليف دې نه رسوی په تاسوکې بعضې بعضې نورو ته

---

(١) من حديث عمروبن ميمون ﷺ أخرجه البخاری فی الحج باب ١٠٠ رقم ١٦٨٤ وأبوداود فی المناسک باب ٦٤ رقم ١٩٣٨ والترمذی فی الحج باب ٦٠ رقم ٨٩٦ والنسائی فی المناسک باب ٢١٣ رقم ٢٨٥٣ وابن ماجه فی المناسک باب ٦١ رقم ٣٠٢٢ والدارمی فی المناسک باب ٥٥ وأحمد فی المسند (٣٩/١)_

(٢) تقدم تخريج من حديث جابر ﷺ الطويل )_



تشريح:- اونبی ﷺ فرمائيلی دی. په تاسو باندې ګيټکی ويشتل لازم دی. په تاسوکې دې. بعضې خلګ بعضو نورو ته تکليف نه رسوی.

## د رمی د ګيټکو غټوالی

وَلَوْ رَمٰى بِأَكْبَرَ مِنْهُ جَازَ اوکه ويشتل ئې اوکړلو په غټ سره ددې نه نوجائز دی. لِحُصُولِ الرَّمْيِ. د وجې د حاصليدو د مقصود د رمی غَيْرَ أَنَّهُ لَا يَرْمِي بِالْكِبَارِ مِنَ الْأَحْجَارِ البته دومره ده چې دې. به نه اوولی په غټ د کاڼو نه كَيْ لَا يَتَأَذّٰى بِهِ غَيْرُهُ چې تکليف اونه رسی چاته، (وَلَوْ رَمَاهَا مِنْ فَوْقِ الْعَقَبَةِ أَجْزَأَهُ) اوکه وې ويشتل دا سربيره د جمره عقبه نه جائزدې. لِأَنَّ مَا حَوْلَهَا مَوْضِعُ النُّسُكِ ځکه چې شاو خوا ځائې د ادا کولود افعالو دحج دې. وَالْأَفْضَلُ أَنْ يَكُونَ مِنْ بَطْنِ الْوَادِي اوغوره دا ده چې وی اولی د بطن وادی نه، لِمَا رَوَيْنَاهُ د امله دهغه حديث نه چې موږ نقل کړلو.

حل اللغة ① يتاذی، تاذياً: تکليف اوچتول ② رمی، رمياً (ض): ويشتل، غورزول

تشريح:- مقدار الحصاة ۞ په اوږدوالی اوپلنوالی سره د ګيټکو اندازه ئې بيان کړله. چه د ګوتې د بند برابر به پلن اواوږد وی. خوکه ددې نه ئې په غټ ګټکی رمی اوکړله. نوهم جائز ده. ځکه چې مقصود د رمی حاصل شو. البته دومره ده چې په غټو کاڼو دې. رمی نه کوی. ګنې خلګو ته به تکليف اورسی.

غوره خودا ده. چه رمی د بطن وادی نه اوکړی. خوکه د جمره عقبه سربيره اړخ نه ئې رمی اوکړله. نو هم جائز ده. ځکه چې د جمره نه څلورو طرفونو ځايونه د افعالو دحج دی.

وَيُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ) اوتکبيربه وائی دهر ګيټکی سره. كَذَا رَوَى ابْنُ مَسْعُودٍ وَابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ (٢) دغه ډول روايت کړی دی حضرت ابن مسعود او حضرت ابن عمر (وَلَوْ سَبَّحَ مَكَانَ التَّكْبِيرِ أَجْزَأَهُ) اوکه تسبيح ئې اووئيل په ځائې د تکبير نه جائز ده ورله، لِحُصُولِ الذِّكْرِ د امله د حاصليدو د ذکر نه. وَهُوَ مِنْ آدَابِ الرَّمْيِ اودا د آدابو د رمی څنی ده.

حل اللغة ① يكبر، تكبيراً: لوئ بيانول، تکبير وئيل ② سبح، تسبيحاً: بزرګی بيانول، تسبح کول

تشريح:- التكبير عند الرمی ۞ دهر ګيټکی سره به الله اکبروائی. لکه څنګه چې د ابن مسعود اوابن عمرو ﷺ دحديث نه معلومه شوې ده. خوکه د تکبير په ځائې تسبيح اووائی. نوهم صحيح ده. ځکه چې ذکرالله حاصل شو. او هم ذکرالله د رمی د آدابو څنې دې.

وَلَا يَقِفُ عِنْدَهَا) اونه به اودريږی ددې (جمره عقبه) سره، لِأَنَّ النَّبِيَّ لَمْ يَقِفْ عِنْدَهَا (٣) ځکه چې نبی ﷺ نه وو لاړ دې. سره،

تشريح:- عدم الوقوف عند الجمرة ۞ حاجی به د جمره عقبه سره نه اودريږی. ځکه چې رسول الله ﷺ هم نه وو ودريدلې.

وَيَقْطَعُ التَّلْبِيَةَ مَعَ أَوَّلِ حَصَاةٍ) اوختمه به کړی تلبيه د اول ګيټکی سره، لِمَا رَوَيْنَا عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د امله د هغه حديث نه کوم چې موږ روايت کړې دې د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه وَرَوَى جَابِرٌ روايت کړې دې

---

(١) هذا قريب من حديث عمروبن الأحوص عن أمه أخرجه أبوداود فی المناسک باب ٧٧ رقم ١٩٦٦ وابن ماجه فی المناسک باب ٦٤ رقم ٣٠٣١ وأحمد فی المسند (٥٠٣/٣)_

(٢) أما حديث ابن مسعود ﷺ فأخرجه البخاری فی الحج باب ١٣٧ رقم ١٧٤٩ ومسلم فی الحج رقم ٣٠٥، وأما حديث ابن عمر رضی الله عنهما فأخرجه البخاری فی الحج باب ١٤٠ رقم ١٧٥١)_

(٣) من حديث ابن عمر رضی الله عنهما أخرجه البخاری فی الحج باب ١٤٠ رقم ١٧٥١)_

حضرت جابر رضي الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطَعَ التَّلْبِيَةَ چې نبی ﷺ وراندې کړې وه تلبيه عِنْدَ أَوَّلِ حَصَاةٍ وخت د اولنی ګیټکی کې رَمَى بِهَا جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ (۱) چې ويشتلې ئې وه په هغې باندې جمره عقبه.

تشریح:- قطع التلبية⊛اوداولنی ګیټکی ويشتلو سره به تلبيه ونيل پرېږدی.ځکه چې دحضرت ابن مسعود او حضرت جابر رضي الله عنهما په حديث کې هم دا ذکر دی.

## د ګیټکی ويشتلو طریقه

أَمَّا كَيْفِيَّةُ الرَّمْيِ أَنْ يَضَعَ الْحَصَاةَ عَلَى ظَهْرِ إِبْهَامِهِ الْيُمْنَى وَيَسْتَعِينَ بِالْمُسَبِّحَةِ بيا طريقه د رمی دا ده.چه کيږدی ګیټکی په شا د متي ګوتي خپلې (د) ښی (لاس) اومدد به حاصل کړی د مسواکي ګوتي نه،

حل اللغة:⊙ يضع،وضعاً (ف) ساتل ۞ يستعين،استعانةً: امداد اخستل

تشریح:- رمی الحصاة⊛ د رمی کیفیت بیانوی.اوفرمائی.چه ګیټکې به د خپل ښی لاس د متي ګوتي په شا باندې کیږدی.اود مسواکي ګوتي په کومك سره به رمی اوکړی

وَمِقْدَارُ الرَّمْيِ أَنْ يَكُونَ بَيْنَ الرَّامِي وَبَيْنَ مَوْضِعِ السُّقُوطِ خَمْسَةُ أَذْرُعٍ فَصَاعِدًا اومقدار د رمی دا دې.چه وی په مینځ د رمی اويه مینځ د ځائې د پريوتوکي پنځه ګزه. كَذَا رَوَى الْحَسَنُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ دغه ډول روايت کړي دې. حسن رحمه الله امام ابوحنيفه رحمه الله نه، لِأَنَّ مَا دُونَ ذَلِكَ يَكُونُ طَرْحًا ځکه چې کم ددې مقدار نه وی غورځول (ويشتل نه)

تشریح:- اوباید ده چې د رمی کونکی اود ګیټکی د پريوتو په ځائې کي کم اوکم پنځه ګزه فاصله وی.حسن بن زیاد رحمه الله امام ابوحنيفه رحمه الله نه هم دا روايت کړې دې.

دليله⊛دليل دا دې.چه ددې نه کمه فاصله رمی باندې د رمی اطلاق نه کیږی.بلکه د غورځولو اطلاق پرې کیږی.

وَلَوْ طَرَحَهَا طَرْحًا أَجْزَأَهُ اوکه وې غورځول په غورځولو سره نوجائزده. لِأَنَّهُ رَمَى إِلَى قَدَمَيْهِ إِلَّا أَنَّهُ مُسِيءٌ لِمُخَالَفَتِهِ السُّنَّةَ ځکه چې ده ويشتل اوکړل خپلو قدمونو ته،البته دې. ګناهګار دې. د املة د پريخودو د سنت نه.

تشریح:- حكم الرمی في الاقل من القدر المذکور⊛اوکه ده ګیټکی د ويشتلو په ځائې په قصد سره اوغورځولو نوهم جائزده.ځکه چې ده ګیټکی خپلو قدمونو اړخ ته اوغورځول.خود سنت د مخالفت د املة به ګناهګار وی.

وَلَوْ وَضَعَهَا وَضْعًا لَمْ يُجْزِهِ لِأَنَّهُ لَيْسَ بِرَمْيٍ اوکه کیخودل په کیخودو سره نوجائز نه ده.ځکه چې دا نه ده رمی.

تشریح:- اوکه ده ګیټکی کیخودل.نوجائز به نه وی.ځکه چې دا رمی نه ده.(بلکه کیخودل دی.)

## د جمره سره د ګیټکی نزدې پريوتل

وَلَوْ رَمَاهَا فَوَقَعَتْ قَرِيبًا مِنَ الْجَمْرَةِ يَكْفِيهِ اوکه وې ويشتل اووېريوتل نزدې. د جمرۀ سره نو کافی ده ورله، لِأَنَّ هَذَا الْقَدْرَ مِمَّا لَا يُمْكِنُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ ځکه چې په دومره اندازه لرې دهغه قبيلې ځنې دې.چه ممکن نه دې. ځان ژغورل ددې نه، وَلَوْ وَقَعَتْ بَعِيدًا مِنْهَا لَا يُجْزِيهِ اوکه پريوتل لرې ددې (جمره) نه،نوجائز نه ده. لِأَنَّهُ لَمْ يُعْرَفْ قُرْبَةً إِلَّا فِي مَكَانٍ مَخْصُوصٍ ځکه چې دا (رمی) نه ده مشروع شوې عبادت مګر په ځائې خاص کي ، وَلَوْ رَمَى بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ جُمْلَةً فَهَذِهِ وَاحِدَةٌ اوکه ويشتل ئې اوکړلو په اووه ګیټکو په يوځل نودا يوځل ويشتل دی. ،لِأَنَّ الْمَنْصُوصَ عَلَيْهِ تَفَرُّقُ الْأَفْعَالِ ځکه چې نص په کوم کیفیت وارد شوې دې.هغه جلا جلا رمی کول دی.

(۱) تقدم ما في معناه في الحديث الطويل لجابر رضي الله عنه ـ



حل اللغة:⊙ يكفي،كفاية (ض): کافی کیدل

تشریح:- تشریح واضح ده.

## د ګیټکو اخستلو ځائې

وَيَأْخُذُ الْحَصَى مِنْ أَيِّ مَوْضِعٍ شَاءَ إِلَّا مِنْ عِنْدِ الْجَمْرَةِ واخلی دې ګیټکی د کوم ځائې نه چې ئې خوښه وی.البته نه به ئې راخلی د جمره دخوا نه، فَإِنَّ ذَلِكَ يُكْرَهُ ځکه چې دا مکروه دې.ځکه چې ددې سره کوم ګیټکی وی.هغه رد کړې شوی وی. لِأَنَّ مَا عِنْدَهَا مِنَ الْحَصَى مَرْدُودٌ دغه ډول راغلی دی په اثر کي ،نوګناهګاریږی به په دې باندې، هَكَذَا جَاءَ فِي الْأَثَرِ فَيَتَشَاءَمُ بِهِ وَمَعَ هَذَا لَوْ فَعَلَ أَجْزَأَهُ لِوُجُودِ فِعْلِ الرَّمْيِ اوددې باوجود که وې کړل نوجائز دې. ورله د املة د وجود د فعل د رمی.

حل اللغة:⊙ ياخذ،اخذاً (ن): اخستل، نيول ۞ يكره، كرهاً (س): مکروه ګنړل، ناخوښه کول ۞ يتشاءم، تشاءماً: فال اخستل خيال کول ]

تشریح:- كراهية اخذالحصاة من عندالجمرة⊛صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه د جمره عقبه نه سوی چې د کوم ځائې نه چې ئې خوښه وی.ګیټکی دې. راخلی.ځکه چې دا مکروه دی.ځکه چې دجمره عقبه سره کوم ګیټکی وی.هغه واړه مردود وی.هم دغه ډول په حديث کي راغلی دی.نوددې ځائې د ګیټکو په راخستو کي سپيره والي دې.يعنی د کوم حاجي حج چې قبول نشی.نودهغه ګیټکی واپس کیږی.اوکه د کراهت باوجود ئې دجمره عقبه نه ګیټکی راواخستل.نوکافی دې. ورله.ځکه چې د رمی عمل ئې اوکړلو.اوهم دا فعل مقصود دې.

## د ګیټکی (وړې) د جنسیت بیان

وَيَجُوزُ الرَّمْيُ بِكُلِّ مَا كَانَ مِنْ أَجْزَاءِ الْأَرْضِ عِنْدَنَا اوجائزده (رمی) په هرهغه ګیټکی چې وی د جنس د زمکي، په نيز زمونږ، خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ خلاف ثابت دې. د امام شافعي رحمه الله

حل اللغة:⊙ يجوز، جوازاً (ن): جائز کیدل

تشریح:- زمونږ په نيزبه هر هغه څيزباندې رمی جائزده.چه هغه د جنس دزمکي ځني وی.که لوټه وی اوکه اوچه خټه وی اوکه کانړې وی.۞اوحضرت امام شافعي رحمه الله په نيزصرف په کانړی باندې جائزده.

⊛اما شافعي رحمه الله دليل د اثر تابعداری ده.(چه په اثرکي د ګانړی ذکر راغلې دی.)

لِأَنَّ الْمَقْصُودَ فِعْلُ الرَّمْيِ ځکه چې مقصود فعل د رمی دې. وَذَلِكَ يَحْصُلُ بِالطِّينِ كَمَا يَحْصُلُ بِالْحَجَرِ بِخِلَافِ مَا إِذَا رَمَى بِالذَّهَبِ أَوِ الْفِضَّةِ اودا حاصليږی په خټه،لکه څنګه چې حاصليږی په کانړی،په خلاف دهغه صورت چې ويشتل اوکړی په سره زرو يا سپينو زرو ، لِأَنَّهُ يُسَمَّى نِثَارًا لَا رَمْيًا ځکه چې دې. ته ونيلی شی شيندل نه ويشتل.

تشریح:- اوزمونږ دليل دا دې.چه مقصود فعل د رمی دې.اوفعل د رمی لکه څنګه چې په کانړی حاصليږی.دغه ډول په لوټه هم حاصليږی.نوبه رمی کي کانړې اولوټه دواړه برابر دی.البته په سرو زور اوسپينو زرو سره رمی کول جائز نه ده.ځکه دې. ته شيندل ونيلی شی.خو رمی او ويشتل ورته نشی ونيلې. حالانکه مقصود رمی يعنی ويشتل دی.

## د ذبح، حلق، اوقصر احکام

قَالَ (ثُمَّ يَذْبَحُ إِنْ أَحَبَّ ثُمَّ يَحْلِقُ أَوْ يُقَصِّرُ) فرمائی بيا دې ذبح اوکړی که زړه ئې غواړی بيا دې سراوخرائی يا دې قصر اوکړی.

**حل اللغة:** ① **يذبح، ذبحاً(ف):** حلالول ② **يقصر، تقصيراً:** وړوکي کول

**تشريح:- الذبح والحلق:** صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي. چه د رمي جمره عقبه نه روسته که غواړي. نوقرباني دې اوکړي. او سر دې. اوخرائي يا دې. قصر (د ويختوځه برخه کټ کول) اوکړي.

| |
|---|
| **لِمَا رُوِيَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَنَّهُ قَالَ** ددې امله چې روايت شوې دې د نبی ﷺ نه، چه دوی فرمائيلی دی. {**إِنَّ أَوَّلَ نُسُكِنَا فِيْ يَوْمِنَا هٰذَا أَنْ نَرْمِيَ ثُمَّ نَذْبَحَ ثُمَّ نَحْلِقَ**}[1] يقيناً اول فعل د حج زموږ په دې ورځ چې موږ رمي اوکړو. اوبيا ذبح اوکړو. اوبيا سراوخرايو، |

**تشريح:- دلائله:** ① دليل دا دې. چه نبی ﷺ فرمائيلی دی. په نن ورځ يعنی د نحر په ورځ اولنے نسك دا دې. چه مونږ رمي اوکړو. بيا قرباني اوکړو. اوبيا حلق اوکړو.

| |
|---|
| **وَلِأَنَّ الْحَلْقَ مِنْ أَسْبَابِ التَّحَلُّلِ، وَكَذَا الذَّبْحُ** اوبله دا چې حلق داسبابو دحلال والی ځنې دې اودغه ډول ذبح، **حَتّٰى يَتَحَلَّلَ بِهِ الْمُحْصَرُ فَيُقَدَّمُ الرَّمْيُ عَلَيْهِمَا** تردې چې حلاليږي په دې باندې محصر (هغه کس چې د احرام تړلو نه روسته د څه عذرد امله ايسار شی) نووړاندې کوی به رمی په دې. دواړو باندې، |

**حل اللغة:** ① **يتحلل، تحللاً:** حلال کيدل

**تشريح:-** دوهم دليل دا دې. چه حلق داحرام نه د وتلو په اسبابوکي دې. اوقرباني هم د احرام نه د وتلو په اسبابو کې ده. ګورئ محصرپه قربانئ کاوه سره حلاليږي. نوهرکله چې قرباني اوحلق دواړه د حلالوالی د اسبابوځنی دی. نورمی به په دواړو باندې مقدم کولې شی.

| |
|---|
| **ثُمَّ الْحَلْقُ مِنْ مَحْظُوْرَاتِ الْإِحْرَامِ فَيُقَدَّمُ عَلَيْهِ الذَّبْحُ** بيا حلق د ممنوعاتو د احرام ځنې دې. (چه ترڅو په احرام کې وی. نوحلق نشی کولې) نو وړاندې کوی به په دې باندې ذبح، **وَإِنَّمَا عَلَّقَ الذَّبْحَ بِالْمَحَبَّةِ لِأَنَّ الدَّمَ الَّذِيْ يَأْتِيْ بِهِ الْمُفْرِدُ تَطَوُّعٌ** اومعلق ئې کړله ذبحه په خوښې سره (که دده خوښه وی‌نو قرباني دې اوکړی. حالانکه خوښه خو د وجوب منافی ده) ځکه چې وينه (تويول) چې راتګ پرې کوی حاجی مفرد (يعنی حاجی مفرد چې کومه قربانی کوی) نفلی ده، **وَالْكَلَامُ فِي الْمُفْرِدِ** اوکلام (په دې. مقام کې په احکامو بيانولو د حاجی) مفرد کې دې. |

**تشريح:-** بيا حلق چونکه د احرام په ممنوعاتو کې دې. نوقرباني به په دې. باندې وړاندې کوی. اوقرباني ئې خوښه پورې ځکه معلق کړه. چه حاجی مفرد چې کومه قرباني کوی. هغه نفل وی. واجب نه وی. اوپه دې. مقام کې کلام د حاجی مفرد په احکامو کې دې.

### د حلق افضليت

| |
|---|
| **وَالْحَلْقُ أَفْضَلُ** اوحلق غوره دې |

**حل اللغة:** ① **تفث:** کوټ

**تشريح:-** صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي. چه د سرخريل واجب دی. اوکه ديو کس په سرباندې ھډو ويختہ نه وی. نوپه هغه واجب دی چې په خپل سرچاړه راښکی.

| |
|---|
| **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** د امله د وينا د نبی ﷺ نه، **رَحِمَ اللّٰهُ الْمُحَلِّقِيْنَ} الْحَدِيْثَ، ظَاهَرَ بِالتَّرَحُّمِ عَلَيْهِمْ**[1] رحم دې اوکړی الله تعالی په سرخريونکو باندې فرمائيلې ئې وو دا درې ځله، {حديث ښکاره دې. په رحم کاوه کې په دوی باندې، |

[1]) غربه الزيلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم أخرج من حديث أنس بن مالك وعزاه إلى البخاری فی الوضوء باب ٣٢ ومسلم فی الحج رقم ٣٢٦ وأبوداود فی المناسك باب ٧٨ رقم ١٩٨١ والترمذی فی الحج باب ٧٣ رقم ٩١٢)_



**تشريح:-** د حلق د افضليت دليل د نبی ﷺ حديث دې. په صحيحينوکې راغلی دی. چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی. «اللهم ارحم المحلقين قالوا والمقصرين يارسول الله قال اللهم ارحم المحلقين قالوا والمقصرين يا رسول الله قال اللهم ارحم المحلقين قالوا و المقصرين يا رسول الله قال ﷺ والمقصرين» په حديث کې سر خريونکو لپاره نبی ﷺ درې ځله د رحمت دعا کړې ده. اود قصر کونکو لپاره ئې يوځل درحمت دعا کړې ده. نود رحمت دتکرار دعا د حلق په افضليت باندې ښکاره دليل دې.

| |
|---|
| **وَلِأَنَّ الْحَلْقَ أَكْمَلُ فِيْ قَضَاءِ التَّفَثِ وَهُوَ الْمَقْصُوْدُ** اوبله دا چې خريل زيات کامل دی. په لرې کاوه د کوټ کې اوهم دا مقصود دې. **وَفِي التَّقْصِيْرِ بَعْضُ التَّقْصِيْرِ** اوپه سر کټ کاوه کې څه بې غوری ده. **فَأَشْبَهَ الْإِغْتِسَالَ مَعَ الْوُضُوْءِ**، نومشابه شو د غسل کاوه سربيره د اودس، |

**تشريح:-** دوهم دليل دا دې. چه مقصود دبدن پاکول دی. اوپه دې. مقصود حاصلولو کې حلق اکمل دې. د قصر نه، اوپه ويختو کټ کاوه کې د دې. مقصود په حاصلولوکې بې غوری ده. يعنی په ويختو کټ کاوه کې پوره پاکې نه حاصليږي. نودا دغسل او اودس سره مشابه شو. دغه ډول حلق د قصر نه افضل دې.

| |
|---|
| **وَيَكْتَفِيْ فِي الْحَلْقِ بِرُبُعِ الرَّأْسِ اعْتِبَارًا بِالْمَسْحِ** او اکتفا به کوی په حلق کې په څلورمه برخه د سر، د امله د قياس کولونه په مسح (د سر په اودس کې)، **وَحَلْقُ الْكُلِّ أَوْلٰى اقْتِدَاءً بِرَسُوْلِ اللّٰهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ**[2] اوخريل د واړه (سر) غوره دی د امله د اقتداء نه په رسول الله ﷺ پورې، |

**تشريح:-** اود حلاليدو لپاره دسر دڅلورمې برخې پرې کول کافی دی. لکه څنګه چې په اودس کې د څلورمې برخې سره مسح کافی ده. البته دواړه سر خريل افضل دی. ځکه چې په دې. کې د رسول الله ﷺ د فعل اقتداء ده.

| |
|---|
| **وَالتَّقْصِيْرُ أَنْ يَأْخُذَ مِنْ رُءُوْسِ شَعْرِهِ مِقْدَارَ الْأُنْمُلَةِ)** اوتقصيردا دې. چې کټ کړی د سرونو د ويختو خپلو نه په اندازه د سرونو د ګوتو، |

**تشريح:-** اوتقصيريعنی د ويختو پرې کول دا دی. چه د خپلې ګوتې په برابر باندې ويخته کټ کړی.

### د حلق نه روسته د جماع نه سوې ټول محظورات جائزيدل

| |
|---|
| **قَالَ (وَقَدْ حَلَّ لَهُ كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا النِّسَاءَ** اويقيناً حلال شو ده لپاره هريوځيز مګرزنانه، |

**تشريح:- المذهبان في مس الطيب بعد الحلق:** ① فرمائي چې د حلق يا قصر نه روسته د محرم لپاره هرهغه ځيزحلال شو. کوم چې د احرام په وجه ممنوع وو. سوې د ښځو سره د جماع اود اسبابو دجماع نه،

| |
|---|
| **وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ: وَإِلَّا الطِّيْبَ أَيْضًا** اوفرمائي امام مالك مګرخوشبوئی هم، **لِأَنَّهُ مِنْ دَوَاعِي الْجِمَاعِ** ځکه چې دا داسبابود جماع ځنې دې. |

**تشريح:-** امام مالك رحمه الله فرمائي. چه د جماع پشان خوشبولګول هم حلال نه دی.

**دليله:** ځکه چې خوشبوئی لګول د اسبابود جماع ځنې دی. لکه څنګه چې ښځې مس کول اود هغې نه بوسه اخستل د دواعی دجماع ځنې دی.

[1]) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه البخاری فی الحج باب ١٢٧ رقم ١٧٢٧ ومسلم فی الحج رقم ٣١٨)_

[2]) من حديث أنس بن مالك ﷺ أخرجه البخاری فی الوضوء باب ٣٢ ومسلم فی الحج رقم ٣٢٦ وأبوداود فی الحج باب ٧٨ رقم ١٩٨١ والترمذی فی الحج باب ٧٣ رقم ٣١٢)_

وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِيهِ {حَلَّ لَهُ كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا النِّسَاءَ} (١) اوزموږ لپاره دليل قول د نبي ﷺ دي.چه حلال شو ده لپاره هريوڅيزمګر زنانه، وَهُوَ مُقَدَّمٌ عَلَى الْقِيَاسِ اودا حديث مقدم دي. په قياس باندي،

**حل اللغة**° ① **حل، حلالاً**: حلال كيدل

**تشريح:- دليل الاحناف** ﷫ اوزموږ دليل د نبي ﷺ قول دي.چه ﴿حل له كل شيء إلا النساء﴾ يعني د محرم لپاره (دحلق نه پس) هرڅيزحلال شو.اودا نص د امام مالك ﷫ خلاف حجت دي.(ځكه چي قياس د نص په مقابله كي مردود وي)

وَلَا يَحِلُّ لَهُ الْجِمَاعُ فِيمَا دُونَ الْفَرْجِ عِنْدَنَا، خِلَافًا لِلشَّافِعِي رَحِمَهُ اللَّهُ اوجائز نه ده ورله جماع كول په ما سوی د شرمګاه كي ،په نيز زموږ. خلاف ثابت دی دامام شافعي

**تشريح:- المذهبان في الجماع فيما دون الفرج** ① زموږ په نيز د شرمګاه نه علاوه د بل ځائي په ذريعه جماع كول هم حلال نه دی.(مثلاً په ورون يا نس كي په دخول سره انزال وغيره) ② اګرچه امام شافعي ﷫ د حلت قائل دي.

لِأَنَّهُ قَضَاءُ الشَّهْوَةِ بِالنِّسَاءِ ځكه چي دا پوره كول د شهوت دی په زناوُ سره، فَيُؤَخَّرُ إِلَى تَمَامِ الْإِحْلَالِ نو روستوكولي به شي ترپوره حلاليدو پوري.

**تشريح:- دليل الاحناف** ﷫ زمونږدليل دا دي.چه د شرمګاه نه علاوه په بل ځائي كي جماع كول هم د شهوت پوره كول دی.نوځكه به دا هم د پوره حلالوالی پوري يعني د طواف زيارت پوري مؤخركولي شي.

## د رمی د احرام نه د وتلو په سببيت كي اختلاف

ثُمَّ الرَّمْيُ لَيْسَ مِنْ أَسْبَابِ التَّحَلُّلِ عِنْدَنَا بيا رمی چي ده نو نه ده د اسبابو د وتلو د احرام څني زموږ په نيز

**تشريح:- المذهبان في كون الرمی محللاً** امام قدوري ﷫ فرمائی چي حلق كاوه نه وړاندي د جمره عقبه د رمی نه روسته حاجی د احرام نه نه اوځی.يعني زموږ په نيز كه حاجی رمی د جمره عقبه اوكړله.نوبه دي. د احرام نه نهٔ اوځی.ترڅو. چي حلق اوكړي.

خِلَافًا لِلشَّافِعِي رَحِمَهُ اللَّهُ خلاف ثابت دي. دامام شافعي ﷫ هُوَ يَقُولُ: إِنَّهُ يَتَوَقَّتُ بِيَوْمِ النَّحْرِ كَالْحَلْقِ هغوی فرمائی.چه دا موقت ده په ورځ د قربانئ پوري پشان د حلق، فَيَكُونُ بِمَنْزِلَتِهِ فِي التَّحْلِيلِ نووی به په منزله دهغي په حلالوالی كي ،

**حل اللغة** ° ① **حل اللغة**° ① **يقول، قولاً** (ن) : وينا كول ② **يتوقت، توقتاً**: مقرركيدل

**تشريح:-** اوامام شافعي ﷫ فرمائی.چه د جمراتو په رمی سره حلاليږی. او دده لپاره د ښځونه سوي هريوڅيز حلال دي.

**دليله** دامام شافعي ﷫ دليل دا دي.چه رمی د جمره د يوم النحرسره موقت ده.اوكوم څيزچه د يوم النحرسره موقت وی.نوهغه داحرام نه ويستونكي وی.لكه حلق چي د يوم النحر پوري مؤقت دي.او محلل دي.نودغه ډول به رمی جمرات هم محلل وی.

وَلَنَا أَنَّ مَا يَكُونُ مُحَلِّلًا يَكُونُ جِنَايَةً فِي غَيْرِ أَوَانِهِ كَالْحَلْقِ، اوزموږ لپاره دليل دا دي.چه كوم شی وی محلل نو وی به ګناه په غير د وخت خپل كي ،پشان د سرخريلو، وَالرَّمْيُ لَيْسَ بِجِنَايَةٍ اورمی نه دي. جنايت

**تشريح:- دليل الاحناف** ﷫ اوزموږ دليل دا دي.چه كوم شی محلل وی.هغه د حلاليدو د وخت نه وړاندي جرم

(١) من حديث عائشة ﵂ أخرجه أبوداود فی المناسک باب ٧٧ رقم ١٩٧٨ والدارقطني فی سننه (٢٧٦/٢) _



وی.لكه څنګه چي حلق د احرام په حالت كي جرم دي.اورمی د جمار جرم نه دي.نوكه په حالت د احرام كي څوك لاړ شي.اورمی اوكړي.نوځه جرم نه دي.نوهم ددې قاعدې. مطابق رمی د جمار به محلل نه وی.

غَيْرِ أَوَانِهِ، بِخِلَافِ الطَّوَافِ، په خلاف د طواف فِي لِأَنَّ التَّحَلُّلَ بِالْحَلْقِ السَّابِقِ لَا بِهِ ځكه چي حلالوالي په مخكني حلق سره دي. نه دي. په دي. (طواف) سره

**تشريح:- الجواب عن السوال التقديری** په خلاف د طواف په دي. عبارت سره د يوتقديری سوال ځواب وركوی. سوال دا دي.چه ددې ضابطې مطابق خو بيا طواف هم بايد ده چي جرم وی.ځكه چي په طواف زيارت سره د ښځو سره جماع كول جائز كيږی.اوستاسود قول مطابق چي كوم شی محلل وی.هغه د حلاليدو د وخت نه وړاندي جرم وی.نوطواف د احرام په حالت كي جرم شو.حالانكه داسې نه ده.

**الجواب** ددې ځواب دا دي.چه طواف زيارت محلل نه دي.بلكه ددې نه وړاندي په حلق سره حلال والي متحقق شوې دي.اوحلق وړاندي واقع شوې دي.نوبه طواف سره حلالوالي نه واقع كيږی.البته دومره خبره ضرور شته.چه دښځي نه د شهوت پوره كولونه وړاندي طواف كول پكار دی.

## د اختر په ورځ مكي ته راتلل

قَالَ {ثُمَّ يَأْتِي مَكَّةَ مِنْ يَوْمِهِ ذَلِكَ أَوْ مِنَ الْغَدِ أَوْ مِنْ بَعْدِ الْغَدِ، فرمائی بيا به راشی هم په دغه ورځ (داختر) يا په سهار يا د سهار نه په بل سهار مكي ته، فَيَطُوفُ بِالْبَيْتِ طَوَافَ الزِّيَارَةِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ} نوطواف به اوكړي د بيت الله نه طواف زيارت،اووه چكرو

**حل اللغة**° ① **يطوف، طوافاً** (ن): طواف كول، راتاويدل

**تشريح:- متى يذهب الى مكة لطواف الزيارة** فرمائی چي د اختر په ورځ به د رمی،حلق اوذبح نه روسته هم په دغه ورځ مكي ته لاړ شی.يا په يو لسمه يا په دولسمه،بيا دي. د بيت الله طواف اوكړي.ددې طواف نوم طواف زيارت دي.اود حج په اركانو كي يو ركن دي.

،لِمَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَمَّا حَلَقَ ددې امله چي روايت شوې دي.چه نبي ﷺ كله اوخريل سر مبارك أَفَاضَ إِلَى مَكَّةَ فَطَافَ بِالْبَيْتِ نو روان شو مكي ته،نو طواف ئې اوكړلو.د بيت الله ثُمَّ عَادَ إِلَى مِنًى وَصَلَّى الظُّهْرَ بِمِنًى} (١) بيا واپس شو منی ته،اولمونځ ئې اوكړو د ماپښين په منی كي

**تشريح:- دليله** دليل دا دي.چه نبي ﷺ هم حلق كړې وو.بيا مكي ته تلي وو.اودبيت الله طواف ئې كړې وو.اوبيا ئې منی ته واپس تشريف اوړې وو.اوپه منی كي ئې د ماپښين لمونځ كړې وو.

## په ايام النحر كي د طواف زيارت وخت

وَوَقْتُهُ أَيَّامُ النَّحْرِ او وخت ددې (طواف زيارت) ورځي د قربانئ دی.

**تشريح:- وقت طواف الزيارة** امام قدوري ﷫ فرمائی.چه د طواف زيارت وخت د قربانئ ورځي دی.يعني يوولسمه دولسمه او ديارلسمه د ذوالحجه،

لِأَنَّ اللَّهَ تَعَالَى عَطَفَ الطَّوَافَ عَلَى الذَّبْحِ ځكه چي الله تعالی عطف كړې دي. طواف په ذبح باندي، قَالَ {فَكُلُوا مِنْهَا} ثُمَّ قَالَ {وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ} فرمائيلي ئې دی.فَكُلُوا مِنْهَا بيا ئې فرمائيلی دی {وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ} فَكَانَ وَقْتُهُمَا وَاحِدًا نوشو وخت ددې يو.

**حل اللغة**° ① **فكلوا، اكل ياكل** (ن): خوړل

(١) قال الزيلعي ﷫ أخرجه مسلم عن عبيدالله بن عمر أنه أفاض يو م النحر ثم رجع فصلى الظهر بمنى (نصب الرأية ٩٣/٣)_

تشریح:- **دلیله**۞ځکه الله تعالی فرمائیلي دي [لِّيَشْهَدُوا مَنَافِعَ لَهُمْ وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ فِي أَيَّامٍ مَّعْلُومَاتٍ عَلَىٰ مَا رَزَقَهُم مِّن بَهِيمَةِ الْأَنْعَامِ ۖ فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْبَائِسَ الْفَقِيرَ۞] په دې. کې ئې طواف په قربانۍ باندې عطف کړې دې. او د معطوف او معطوف علیه دواړو وخت یو وی. ددې امله د طواف اود قربانۍ وخت یو دې. البته دومره خامخا ده. چه قرباني ددې ورځو نه روسته جائز نه ده.

طواف ددې ورځو نه روسته هم سره د کراهته مشروع دې. اود طواف اول وخت دیوم النحر د سهار راختو نه روسته پیل کیږي. ځکه چې د سهار راختو نه وړاندې د شپې وخت خود عرفې د وقوف وخت دې. اوطواف په وقوف باندې مرتب دې. یعنی د وقوف د وخت نه روسته د طواف وخت دې.

**وَأَوَّلُ وَقْتِهِ بَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ مِنْ يَوْمِ النَّحْرِ** او اول وخت ددې روسته د راختود سهار نه په ورځ د قربانۍ. **لِأَنَّ مَا قَبْلَهُ مِنَ اللَّيْلِ وَقْتُ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ** ځکه چې وړاندې ددې نه چې شپه وی هغه وخت دې. د وقوف په عرفه **وَالطَّوَافُ مُرَتَّبٌ عَلَيْهِ** اوطواف مرتب دی په دې باندې. **أَوَّلُهَا، وَأَفْضَلُ هَذِهِ الْأَيَّامِ أَوَّلُهَا كَمَا فِي التَّضْحِيَةِ** او افضل په دې. ورځو کې لومړنۍ ده. لکه ځنګه چې په قربانۍ کې وی. **وَفِي الْحَدِيثِ أَفْضَلُهَا**[1] اوپه حدیث کې دی. چه په دې. ورځو کې لومړنۍ ورځ لومړنۍ ده.

تشریح:- **فضل الیوم الاول للطواف**۞البته په دې. ورځو کې لومړنۍ ورځ د طواف زیارت لپاره غوره ده. لکه ځنګه چې په دې. ورځو کې لومړنۍ ورځ د قربانۍ لپاره غوره ده. اوپه حدیث کې هم دا دی. چه په دې. ورځو کې لومړنۍ ورځ افضله ده.

## د طواف زیارت نه روسته سعی کول

**فَإِنْ كَانَ قَدْ سَعَى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ عَقِيبَ طَوَافِ الْقُدُومِ** که وی دې چې سعی ئې کړې وی روسته د طواف قدوم نه **لَمْ يَرْمُلْ فِي هَذَا الطَّوَافِ وَلَا سَعْيَ عَلَيْهِ** نو رمل به نه کوی په دې. طواف کې، او نشته سعی په ده باندې.

حل اللغة: ① **سعی، سعیاً** (ف): سعی کول، کوښښ

تشریح:- **القاعدة في الرمل في طواف الزيارة**۞مسئله دا ده. که حاجی د طواف قدوم نه روسته د صفا مروه په مینځ کې سعی کړې وی. نو په طواف زیارت کې به رمل نه کوی. او ددې نه روسته سعی هم واجب نه ده.

**وَإِنْ كَانَ لَمْ يُقَدِّمِ السَّعْيَ رَمَلَ فِي هَذَا الطَّوَافِ وَسَعَى بَعْدَهُ** او که وی چې نه ئې وی کړې سعی مخکې، نو رمل به کوی په دې. طواف کې، او سعی به کوی روسته ددې نه، **لِأَنَّ السَّعْيَ لَمْ يُشْرَعْ إِلَّا مَرَّةً** ځکه چې سعی نه ده مشروع شوې مګر یو ځل، **وَالرَّمَلُ مَا شُرِعَ إِلَّا مَرَّةً فِي طَوَافٍ بَعْدَهُ سَعْيٌ** او رمل نه دې. مشروع شوې مګر یو ځل په هغه طواف کې چې روسته د هغې نه سعی وی.

حل اللغة: ① **لم يقدم، قدم تقديماً**: مقدم کول، وړاندې کول ② **شرع، شروعاً**: پیل کول مشروع کیدل ]

تشریح:- اوکه اول ئې سعی په مینځ د صفا مروه کې نه وی کړې. نوپه دې. طواف کې به رمل کوی. او ددې نه روسته به سعی هم کوی. ځکه چې سعی هم یو ځل مشروع شوې ده. اورمل هم یو ځل په دې سې طواف کې مشروع شوې دې. چه دهغې نه روسته سعی وی.

## د طواف نه روسته دوې [دوه] رکعته کول

**وَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ هَذَا الطَّوَافِ** او لمونځ به کوی دوې [دوه] رکعته روسته ددې طواف نه **لِأَنَّ خَتْمَ كُلِّ طَوَافٍ بِرَكْعَتَيْنِ فَرْضًا كَانَ الطَّوَافُ أَوْ نَفْلًا لِمَا بَيَّنَّا** ځکه چې ختمول دهر طواف په دوو رکعتونو سره وی که

[1] قال الزيلعي رحمه الله غريب جداً وأعاده في الأضحية نصب الراية ٣/٩٤)_



فرض (طواف) وی اوکه نفل (طواف) وی. د امله دهغه دلیل نه کوم چې موږ بیان کړې دې. **قَالَ وَقَدْ حَلَّ لَهُ النِّسَاءُ وَلَكِنْ بِالْحَلْقِ السَّابِقِ** (امام قدوری) فرمائی. اوحلالې شوې دده لپاره زنانه، خو په حلق وړاندینی سره، **إِذْ هُوَ الْمُحَلِّلُ لَا بِالطَّوَافِ** ځکه چې هغه حلالونکې دې. نه په طواف سره. **إِلَّا أَنَّهُ أَخَّرَ عَمَلَهُ فِي حَقِّ النِّسَاءِ** صرف دومره ده چې روستو شوې وو عمل دهغې (حلق) په حق د زنانو کې

تشریح:- ښکاره ده.

## د طواف زیارت شرعی حیثیت

**قَالَ (وَهَذَا الطَّوَافُ هُوَ الْمَفْرُوضُ فِي الْحَجِّ) وَهُوَ رُكْنٌ فِيهِ** فرمائی او دا طواف فرض دې. په حج کې، اودا رکن په (حج) کې، **إِذْ هُوَ الْمَأْمُورُ بِهِ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى [وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ۞]** ځکه چې هم ددې حکم شوې دې په قول دالله تعالی کې، ((وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ۞)) **وَيُسَمَّى طَوَافَ الْإِفَاضَةِ وَطَوَافَ يَوْمِ النَّحْرِ** او نوموول کولای شی په طواف الافاضه اوطواف د یوم النحر،

حل اللغة: ① **يسمى، تسمية**: نوم کیخودل ② **موقف، وقت، توقيتاً**: مقررول ]

تشریح:- **الطواف الركن في الحج**۞طواف زیارت په حج کې فرض دې. اود رکن حیثیت لري. ځکه چې د الله تعالی په قول ((وَلْيَطَّوَّفُوا)) کې هم ددې امر شوې دې. ددې دوهم نوم طواف الافاضه اودریم نوم طواف یوم النحر دې.

**وَيُكْرَهُ تَأْخِيرُهُ عَنْ هَذِهِ الْأَيَّامِ** **لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ مُوَقَّتٌ بِهَا** او مکروه دې. روستو کول ددې د دې. ورځو نه. د امله دهغه دلیل نه کوم چې موږ بیان کړې دې. چه دا (طواف) موقت دې. په دې. (ورځو) پورې، **وَإِنْ أَخَّرَهُ عَنْهَا لَزِمَهُ دَمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** اوکه روستو ئې کړلو ددې (ورځو) نه نو لازمیږی پرې وینه په نیزد امام ابوحنیفه **(وَسَنُبَيِّنُهُ فِي بَابِ الْجِنَايَاتِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى** او زرده چې موږ به ئې بیان کړو. په باب الجنایات کې، ان شاءالله تعالی

تشریح:- **وقت طواف الركن**۞امام قدوری رحمه الله فرمائی. چه دا طواف د ایام النحر نه روستو کول مکروه تحریمی دې. ددې دلیل وړاندې تیرشوې دې. چه دا په ایام النحر پورې موقت دې. خوددې باوجود که دا طواف ئې ددې ورځو نه روستو کړلو. نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز پرې دم لازمیږی. د دې. تفصیل به انشاء الله په باب الجنایات کې راشی.

## د طواف زیارت نه روسته منی ته تلل

**قَالَ (ثُمَّ يَعُودُ إِلَى مِنًى فَيُقِيمُ بِهَا** فرمائی بیا به واپس شی منی ته، نوډیره به شی هلته،

حل اللغة: ① **يعود، عوداً** (ن): واپس کیدل ② **يقيم، اقامة**: ودریدل، حصاریدل ③ **رجع، رجوعاً** (ض): واپس کیدل ④ **زالت، زال زوالاً** (ن): زائل کیدل، ختمیدل ⑤ **يحمد، حمداً** (س): تعریف بیانول، حمد کول ]

تشریح:- **الرجوع الى منى بعد طواف الزيارة**۞صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی. چه حاجی دې. د طواف زیارت نه روسته منی ته لاړ شی. او هلته دې. قیام اوکړی.

**لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ رَجَعَ إِلَيْهَا كَمَا رَوَيْنَا**[1] ځکه چې نبی ﷺ واپس شوې وودې. ته د امله دهغه حدیث نه کوم چې موږ روایت کړې دې. **وَلِأَنَّهُ بَقِيَ عَلَيْهِ الرَّمْيُ وَمَوْضِعُهُ بِمِنًى** اوبله دا چې پاته ده په ده باندې رمی اومحل د هغې منی ده.

تشریح:- **دلائله**۞ځکه چې وړاندې حدیث تیرشوې دې. چه نبی ﷺ د طواف زیارت نه روسته منی ته واپس شو.

[1] تقدم تخريجه قبل واحدة من الحاشية)_

او هلته ئې د ماپښين لمونځ اوکړلو. ② دوهم دليل دا دې. چه په حاجی باندې لا رمی جمار پاتې ده. اود رمی جمار محل منی ده. ددې امله هم منی ته تګ ضروری دې.

﴿فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ مِنَ الْيَوْمِ الثَّانِي مِنْ أَيَّامِ النَّحْرِ رَمَى الْجِمَارَ الثَّلَاثَ﴾ کله چې زائله شی. نمر په دويمه ورځ د ورځو د نحر نه، نورمی به کوی د درې واړو جمراتو، ﴿فَيَبْدَأُ بِالَّتِي تَلِي مَسْجِدَ الْخَيْفِ فَيَرْمِيهَا بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ﴾ پيل به کوی دهغې نه چې نزدې ده مسجد خيف ته، نو اولی به هغه په اووه ګيټکو، ﴿يُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ وَيَقِفُ عِنْدَهَا﴾ تکبير به وائی دهرې ګيټکی سره، او اودريږی به دهغې سره، ﴿ثُمَّ يَرْمِي الَّتِي تَلِيهَا مِثْلَ ذَلِكَ وَيَقِفُ عِنْدَهَا﴾ بيا به اولی هغه چې نزدې وی هغې ته، ددې نه او اودريږی به دهغې سره، ﴿ثُمَّ يَرْمِي جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ كَذَلِكَ وَلَا يَقِفُ عِنْدَهَا﴾ بيا به اولی هغه جمره عقبه، هم دغه ډول اونه به اودريږی دهغې سره،

تشريح:- **وقت رمی الجمرات الثلاث**۞ بيا په يوولسمه ذوالحجه چې کله د لمر زوال اوشی. نود درې واړه جمراتو رمی به اوکړی. شروع به دهغه جمره نه اوکړی. کومه چې مسجد خيف سره متصل ده. دا به په اووه ګيټکو اوولی. اود هرويشتلو سره به تکبير وائی. اودې. جمره سره په اودريږی. بيا به دغه ډول دهغه جمره رمی اوکړی. کومه چې دې. سره نزدې. ده. اودې. دويمې جمرې سره به هم اودريږی. بيا به دغه ډول د جمره عقبه رمی کوی. البته هغې سره به نه اودريږی.

﴿هَكَذَا رَوَى جَابِرٌ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فِيمَا نَقَلَ مِنْ نُسُكِ رَسُولِ اللَّهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ مُفَسَّرًا﴾ هم دغه ډول روايت کړې دې. حضرت جابر ﷺ په هغه روايت کې چې نقل کړی ئې دی په کې افعال دحج د رسول الله ﷺ په تفصيل سره، ﴿وَيَقِفُ عِنْدَ الْجَمْرَتَيْنِ فِي الْمَقَامِ الَّذِي يَقِفُ فِيهِ النَّاسُ﴾ او اودريږی به د دوو جمرو سره، په مقام هغه کې چې اودريږی په هغې کې خلګ، ﴿وَيَحْمَدُ اللَّهَ وَيُثْنِي عَلَيْهِ﴾ وحمد به ووايي دالله او ثناء به ووايي، ﴿وَيُهَلِّلُ وَيُكَبِّرُ وَيُصَلِّي عَلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ، وَيَدْعُو بِحَاجَتِهِ﴾[1] او تهليل به ووايي او تکبير به ووايي او درود به ووايي په نبی ﷺ باندې او دعا به کوی دخپل حاجت دپاره.

تشريح:- **دليله**۞ هم داسې دحضرت جابر ﷺ په حديث کې نقل دی. په لومړنی او دويمې جمره کې به هغه ځائې کې اودريږی. کوم ځائې کې چې خلګ اودريږی. هلته به دالله تعالی حمد او ثناء وائی. او تکبير او تهليل به وائی. او په نبی ﷺ به درود شريف وائی. او دعا به کوی.

## جمرتينوسره لاسونه اوچتول

﴿يَرْفَعُ يَدَيْهِ﴾ ﴿لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَا تُرْفَعُ الْأَيْدِي إِلَّا فِي سَبْعِ مَوَاطِنَ﴾ او پورته کوی به دواړه لاسونه خپل، د امله د وينا د نبی ﷺ نه به شی پورته کولی لاسونه مګر په اووه ځايونو کې، ﴿وَذُكِرَ مِنْ جُمْلَتِهَا عِنْدَ الْجَمْرَتَيْنِ﴾[2] او ذکر کړی ئې دی په جمله ددغه (اووه ځايونو) کې د جمرتينو سره، ﴿وَالْمُرَادُ رَفْعُ الْأَيْدِي بِالدُّعَاءِ﴾ او مراد پورته کول دلاسونو دی په دعا سره،

حل اللغة: ① يرفع، رفعًا (ف): اوچتول ② يستغفر، استغفاراً: ښښنه غوښتل، استغفار کول ③ انتهت، انتهاء: پوره کيدل

تشريح:- **رفع الايدی في الدعاء**۞ مسئله دا ده. چه د جمرتينو سره چې کله اودريږی. نو دواړه لاسونه به پورته کوی. او دعا به کوی. ځکه چې په مشهور حديث کې نقل دی. چه د لاسونو پورته کولونه مراد په دعا کې لاسونه پورته کول دی.

[1] قال الزيلعي رحمه الله غريب عن جابر ﷺ والذی فی حديثه الطويل أنه ﷺ رمی الجمرة العقبة يوم النحر لاغير ثم نقل ما يثبت منه هذه الكيفية وعزاه إلى البخاری (نصب الراية ۹۵/۳)_

[2] تقدم تخريجه مراراً



﴿وَيَنْبَغِي أَنْ يَسْتَغْفِرَ لِلْمُؤْمِنِينَ فِي دُعَائِهِ فِي هَذِهِ الْمَوَاقِفِ﴾ او مناسب دی بخښنه او غواړی لپاره د مؤمنانو په دې ځايونو کې، ﴿لِقَوْلِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِلْحَاجِّ وَلِمَنِ اسْتَغْفَرَ لَهُ الْحَاجُّ}﴾[1] ځکه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی. اې الله بخښنه اوکړه حاجی ته او هغه چاته چې بخښنه او غواړی د هغه لپاره حاجی.

تشريح:- **الدعاء للمؤمنين**۞ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی. چه په دې. مقاماتو کې دې. د ټولو مسلمانانو لپاره د بخښنې دعا کوی. ځکه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی. اې الله بخښنه اوکړه حاجی ته او هغه چاته چې بخښنه او غواړی د هغه لپاره حاجی. ددې حديث نه معلومه شوه. چه حاجی د نورو لپاره هم د مغفرت دعا کوی.

﴿ثُمَّ الْأَصْلُ أَنَّ كُلَّ رَمْيٍ بَعْدَهُ رَمْيٌ يَقِفُ بَعْدَهُ﴾ بيا قاعده دا ده. چه هره يوه رمی چې د هغې نه روسته رمی وی. نو اودريږی به روسته د هغې نه ﴿لِأَنَّهُ فِي وَسَطِ الْعِبَادَةِ فَيَأْتِي بِالدُّعَاءِ فِيهِ وَكُلُّ رَمْيٍ لَيْسَ بَعْدَهُ رَمْيٌ لَا يَقِفُ﴾ ځکه دې. (رمی کونکې) په مينځ د عبادت کې دې. نو راتګ به کوی په دعا سره په دې. (اودريدو) کې ﴿لِأَنَّ الْعِبَادَةَ قَدِ انْتَهَتْ﴾ او هره يوه رمی چې نه وی روسته دهغې نه رمی، نه به اودريږی ځکه چې عبادت پوره شو. ﴿وَلِهَذَا لَا يَقِفُ بَعْدَ جَمْرَةِ الْعَقَبَةِ فِي يَوْمِ النَّحْرِ أَيْضًا﴾ او ددې امله به نه اودريږی روسته د جمره عقبه نه، په ورځ د نحر دغه شان

تشريح:- **القاعدة**۞ صاحب دهدايه رحمه الله يوه قاعده ذکر کړې ده. چه هرهغه رمی چې د هغې نه روسته بله رمی وی. نو اودريږی به، ځکه چې دا کس اوس د عبادت په مينځ کې دې. نو ځکه به ددې په مينځ کې دعا هم کوی. او د کومې رمی نه روسته چې بله رمی نه وی. نود هغې نه روسته به نه اودريږی. ځکه چې اوس عبادت ختم شوې دې. هم دا وجه ده. چه په يوم النحر کې د جمره عقبه نه روسته ودريدل نه کيږی.

## په دولسمه ورځ د رمی نه روسته روانيدل

﴿فَإِذَا كَانَ مِنَ الْغَدِ رَمَى الْجِمَارَ الثَّلَاثَ بَعْدَ زَوَالِ الشَّمْسِ﴾ فرمائی او کله چې شی سهار (دولسمه ورځ) نو رمی به اوکړی د جمراتو درې واړو روسته د زوال د لمر نه، هم دغه شان، ﴿وَإِنْ أَرَادَ أَنْ يَتَعَجَّلَ النَّفْرَ إِلَى مَكَّةَ﴾ او که اراده لری. چه روان شی زر نو روان دې. شی مکې ته، ﴿نَفَرَ﴾ او که اراده لری چې ايسار شی نو رمی دې. اوکړی د جمرات درې واړو په ورځ څلورمه کې روسته د زوال نه،

حل اللغة: ① يتعجل، تعجلاً: تندی کول ② اتقی، اتقاء: تقوی اختيارول، ويريدل ]

تشريح:- **الخيار في النفر في الثالث والرابع من ايام النحر**۞ مسئله دا ده. چه حاجی به د نحر د ورځو په دريمه ورځ يعنی په دولسمه ذوالحجه هم د لمر د زوال نه روسته د وړاندې پشان د درې جمراتو رمی اوکړی. اوس که دده تلوار وی. نود رمی نه روسته دې. هم په دولسمه ذوالحجه باندې مکې ته روان شی. او که د ايساريدو اراده ئې وی. نود نحر د ورځو په څلورمه ورځ يعنی په ديارلسمه ورځ دې. هم د لمر د زوال نه روسته د درې واړو جمراتو رمی اوکړی. او بيا دې. مکې ته روان شی. هم ددې امله د دولسمې ذوالحجه تلو ته نفر اول وائی. اود ديارلسمې ذوالحجه روانيدو ته نفر ثانی وائی.

﴿لِقَوْلِهِ تَعَالَى: فَمَنْ تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ، وَمَنْ تَأَخَّرَ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ لِمَنِ اتَّقَى﴾ د امله د وينا د الله تعالی څوک چې تلوار کوی په دويمه ورځ نو نشته ګناه په ده باندې، او څوک چې ايساريږی نو نشته ګناه په ده باندې، (دا حکم دهغه چا لپاره دې.) چه ځان ساتی (د محظوراتود حج نه)

[1] من حديث أبی هريرة ﷺ أخرجه الحاكم فی المستدرک (۴۴۱/۱)_

تشريح:- **دليله**۞دليل دالله تعالى ارشاد دي. ﴿فَمَنْ تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ﴾ او غوره دا ده. يعنې کوم کس چې دولس تاريخ باندې زر روان شي. نو په ده باندې هم څه ګناه نشته. او څوك چې ديارلسمې ورځې ته ايسار يږي. نو ده باندې هم څه ګناه نشته.

**وَالْأَفْضَلُ أَنْ يُقِيمَ لِمَا رُوِيَ** {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ صَبَرَ} او غوره دا ده. چه ايسار شي. ددې امله چې روايت شوې دې. چه نبي ﷺ ايسار شوې وو. **حَتَّى رَمَى الْجِمَارَ الثَّلَاثَ فِي الْيَوْمِ الرَّابِعِ**} (١) تردې. چې رمي ئې اوکړه د جمراتو درې واړو په ورځ څلورمه کې

تشريح:- **الافضل في النفر**۞خو غوره هم دا ده. چه د ديارلسمې ذوالحجه پورې په منى کې ايسار شي. ځکه چې رسول الله ﷺ په منى کې ايسار شوې وو. تردې. چې په څلورمه ورځ يعنې د ذوالحجه په ديارلسمه ورځ ئې د درې واړه جمراتو رمي اوکړله.

## په ديارلسمه ذوالحجه مکې ته روانيدل

**وَلَهُ أَنْ يَنْفِرَ مَا لَمْ يَطْلُعِ الْفَجْرُ مِنَ الْيَوْمِ الرَّابِعِ**، او جائزدى ده (حاجي) لره چې روان شي ترڅو چې نه وي راختلې سهار د څلورمې ورځې (د قربانۍ) **فَإِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ لَمْ يَكُنْ لَهُ أَنْ يَنْفِرَ لِدُخُولِ وَقْتِ الرَّمْيِ** کله چې راوخيږي سهار (د ديارلسمې ذوالحجه) نه دى جائز ده لره چې لاړ شي د امله د داخليدو د وخت د رمي

حل اللغة: ① **ينفر، نفراً** (ض): تلل، واپس کيدل ② **طلع، طلوع** (ن): راختل ]

تشريح:- صاحب د قدوري رحمه الله فرمائي. چه حاجي ته د ديارلسمې ذوالحجه د سهار راختو نه وړاندې مکې ته د تلو اختيار دې. خو چه کله د ديارلسمې ذوالحجه سهار راؤختلو. نو اختيار ئې ختم شو. ځکه چې اوس د رمي وخت داخل شو.

**وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ** اوپه دې. (مسئله) کې خلاف ثابت دې. د امام شافعي رحمه الله

تشريح:- .البته په دې. کې دامام شافعي رحمه الله اختلاف دې. هغوى فرمائي. چه په دولسمه ذوالحجه چې څنګه لمر پريوځي. نو د ده د روانيدو اختيار ختم شو.

## په ديارلسمه ذوالحجه د رمي وخت

**وَإِنْ قَدَّمَ الرَّمْيَ فِي هَذَا الْيَوْمِ) يَعْنِي الْيَوْمَ الرَّابِعَ** او که وړاندې ئې کړه رمي په دې. ورځ يعنې په څلورمه ورځ (د ايام النحر څخه) وړاندې **(قَبْلَ الزَّوَالِ بَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** (٢) د زوال نه او پس د راختو د سهار نه، نو جائزده په نيز د امام ابوحنيفه **وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ** او دا (حکم لګول) استحسان دې.

حل اللغة: ① **قدم، تقديماً**: مقدم کول، وړاندې کول ② **تفاوت**: فاصله، توپير ③ **التحق، التحاقاً**: ملاويدل، لاحق کيدل ④ **ظهر ظهوراً** (ف): ښکاره کيدل ⑤ **ترک**: پريښول ]

تشريح:- صورت د مسئلې دا دې. چه په ديارلسمه ذوالحجه د لمر د زوال نه وړاندې رمي جائز ده که نه ده؟ ① په دې. مسئله کې دامام اعظم رحمه الله مذهب د جواز دې. او دا استحسان دې.

**وَقَالَا لَا يَجُوزُ اعْتِبَارًا بِسَائِرِ الْأَيَّامِ** او فرمائي صاحبين رحمهما الله چې جائز نه ده، قياس کوي په ټولو ورځو (چه په لسمه يوولسمه او دولسمه باندې هم د زوال نه وړاندې رمي نشي کولې)

---

(١) من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه ابوداود في سننه وابن حبان والحاكم (نصب الراية (٩٧/٣)_

(٢) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (١٤١/١) وردالمحتار (٢٠٠/٢) والبحر الرائق (٣٤٩/٢) نقلاً عن الق... (٢١٣/...)-



اود صاحبينو رحمهما الله مذهب دعدم جواز دې. او امام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دې.

تشريح:- **دليل الصاحبين** رحمهما الله۞صاحبينو رحمهما الله د ديارلسمې ذوالحجه رمي د نورو ورځو په رمي باندې قياس کړې ده. يعنې لکه څنګه چې د يوولسمې او دولسمې ذوالحجې رمي د زوال نه وړاندې جائز نه ده. دغه ډول په ديارلسمه ورځ هم د زوال نه وړاندې جائز نه ده.

**وَإِنَّمَا التَّفَاوُتُ فِي رُخْصَةِ النَّفْرِ**، او يقيناً توپير خو په رخصت د روانيدو کې دې. **فَإِذَا لَمْ يَتَرَخَّصِ الْتَحَقَ بِهَا** خو چه ده رخصت قبول نکړلو. نو يوځائې شوه (څلورمه ورځ د نورو ورځو سره) او

تشريح:- صرف دومره توپير دې. چه په ديارلسمه ذوالحجه باندې د رمي کاوه نه بغير تلل جائز دى. او په نورو ورځو کې د رمي نه بغير تلل جائز نه دى. بهرحال په ديارلسم تاريخ د رمي نه بغير تلل جائز وو. خو چه ده د رخصت نه فائده وانه خستله. نو د ديارلسم تاريخ ورځ به هم د نورو ورځو سره لاحق شي. او دهغه ورځو حکم دا دې. چه د زوال نه وړاندې رمي کول جائز نه ده. نو هم دا حکم به د ديارلسم تاريخ هم وي.

**وَمَذْهَبُهُ مَرْوِيٌّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا** مذهب د امام ابوحنيفه رحمه الله مروى دې. د ابن عباس رضي الله عنهما نه، **وَلِأَنَّهُ لَمَّا ظَهَرَ أَثَرُ التَّخْفِيفِ فِي هَذَا الْيَوْمِ فِي حَقِّ التَّرْكِ** او بله دا چې هر کله ښکاره شو اثر د تخفيف په دې. ورځ کې په حق د پريخودو کې ، **فَلَأَنْ يَظْهَرَ فِي جَوَازِهِ فِي الْأَوْقَاتِ كُلِّهَا أَوْلَى** نو ثابتيږي به په جواز ددې (رخصت) کې په ختونو ټولو کې ، په درجه اولى سره،

تشريح:- **دلائل ابى حنيفة**۞دامام ابوحنيفه رحمه الله يو دليل دا دې. ① چه د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه يو روايت دا مروى دې. چه په يوم النفر يعنې په ديارلسمه ورځ چې نمر اوچت وي. نو رمي د جمراتو جائز ده. ② دوهم دليل دا دې. چه هر کله په ديارلسم تاريخ باندې د رمي پريښول جائز ده. نو دا به په درجه اولى سره جائز وي. چه د ديارلسم تاريخ په ټولو وختونو کې رمي جائز شي.

**بِخِلَافِ الْيَوْمِ الْأَوَّلِ وَالثَّانِي حَيْثُ لَا يَجُوزُ الرَّمْيُ فِيهِمَا** په خلاف د ورځې اولې او دويمې، ځکه چې جائز نه ده رمي په دې. دواړو (ورځو) کې **إِلَّا بَعْدَ الزَّوَالِ فِي الْمَشْهُورِ مِنَ الرِّوَايَةِ** مګر پس د زوال (د نمر) نه، په مشهور کې د روايت نه، **لِأَنَّهُ لَا يَجُوزُ تَرْكُهُ فِيهِمَا فَبَقِيَ عَلَى أَصْلِ الْمَرْوِيِّ** ځکه چې جائز نه دى پريښول ددې (رمي) په دې. دواړو (ورځو) کې ، نو پاتې شوه مسئله په اصل نقل شوى باندې،

تشريح:- **الجواب من قياس الصاحبين** رحمهما الله۞ددې په خلاف د يوولسم او دولسم تاريخ رمي چې په هغې کې د مشهور روايت مطابق د زوال نه روسته رمي جائز ده وړاندې جائز نه ده. ځکه چې په دغه دواړو ورځو کې رمي پريښول جائز نه دى. نو حکم به په هغه اصل پاته وي. کوم چې روايت شوې دې. يعنې د زوال نه پس.

## د قربانۍ په ورځ د رمي د وخت ابتداء

**فَأَمَّا يَوْمُ النَّحْرِ فَأَوَّلُ وَقْتِ الرَّمْيِ مِنْ وَقْتِ طُلُوعِ الْفَجْرِ**. هرچه ورځ د قربانۍ ده نو اول وخت د رمي په دې. کې د راختلو د سهار نه دې.

حل اللغة: ① **رخص، ترخيصاً**: رخصت ورکول ② **رعاء**: شپونکې ③ **لاترموا، رميرميا** (ض): رمي کول ④ **يمتد، امتداداً**: اوږدول ، خورول ]

تشريح:- **المذهبان في اول وقت ا لرمي**۞ ① صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي. چه په لسمه ذوالحجه د جمره عقبه دويشتلو وخت د سهار راختو نه روسته پيل کيږي.

**وَقَالَ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللهُ تَعَالى: أَوَّلُهُ بَعْدَ نِصْفِ اللَّيْلِ** اوفرمائي شافعي رحمه الله اول وخت ددې روسته د نيمې شپې نه دې. **لِمَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَخَّصَ لِلرِّعَاءِ أَنْ يَرْمُوا لَيْلًا** [1] ددې امله چې روايت شوې دې چه نبي ﷺ رخصت ورکړې ووڅاروو څرونکو ته چې رمي اوکړي د شپې،

تشريح:- اوامام شافعي رحمه الله فرمائي چې د نيمې شپې نه روسته پيل کيږي.

**دليل الشافعي** ۞دامام شافعي رحمه الله دليل دا دې.چه نبي ﷺ څاروو څرونکو ته د شپې د رمي اجازت کړې وو.که چرته د صبا راختو نه وړاندې د رمي اجازت نه وو.نو نبي ﷺ به ولې دڅاروو څرونکو ته اجازت ورکولو.

**وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {لَا تَرْمُوا جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ إِلَّا مُصْبِحِينَ}** [2] اوزموږ لپاره دليل د نبي ﷺ قول دې. چې تاسو رمي مه کوئ. مګرپه دې سې حال چې ئې تاسو سهار کونکي، **وَيُرْوَى حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ** [3] او روايت شوې دې (چه نبي ﷺ داسې اوفرمائيل) تردې.چه راوخيژي نمر، **فَيَثْبُتُ أَصْلُ الْوَقْتِ بِالْأَوَّلِ وَالْأَفْضَلِيَّةُ بِالثَّانِي** نوثابتيږي اول وخت د اول (حديث) نه اوافضليت د دوهم (حديث نه)

تشريح:- **الدليلان للاحناف** رحمهم الله ۞او زموږ دليل دا دې.①چه نبي ﷺ فرمائيلي دي.تاسو د جمره عقبه رمي مه کوئ. مګرپه دې سې حال کي چې تاسو سهار کړې وی.ددې حديث نه معلومه شوه.چه د جمره عقبه د رمي وخت د سهار راختو نه روسته پيل کيږي.②اوپه يوروايت کي دی. «حتى تطلع الشمس» يعني د جمره عقبه رمي مه کوئ.تردې. چې نمر راوخيژي.ددې حديث نه معلوميږي.چه په يوم النحر د جمره عقبه د رمي وخت د نمرراختو نه روسته پيل کيږي.

**التطبيق بين الحديثين** ۞ علامه مرغيناني رحمه الله په دواړو احاديثوکي تطبيق کوی.اوفرمائي.چه داول حديث «إلا مصبحين» نه دجمره عقبه اصلي وخت ثابتيږي.اود دوهم حديث نه د افضل وخت ثابتيږي.حاصل دا دې.چه د جمره عقبه د رمي وخت د يوم النحر د سهار راختو نه روسته جائز ده. او د لمر راختو نه روسته افضل ده.

**وَتَأْوِيلُ مَا رُوِيَ اللَّيْلَةَ الثَّانِيَةَ** اوتاويل دهغه (حديث) چې روايت ئې کړې دې. (امام شافعي رحمه الله) دويمه اودريمه شپه ده.(چه په دويمه **وَالثَّالِثَةَ** او دريمه شپه نبي ﷺ څاروو څرونکو ته د شپې د رمي اجازت کړې وو)

تشريح:- **الجواب من مستدل الشافعي** رحمه الله ۞حضرت امام شافعي رحمه الله چه کوم حديث په دليل کي پيش کړې دې.دهغې نه ځواب دا دې.چه په هغې کي د شپې نه مراد د يولسمي اودولسمي ذوالحجه شپه مراد ده.يعني چې په يولسمه اودولسمه ورځ د رمي وخت پيل شي.نود شپې د آخرپورې پاته وی.حاصل دا چې د رمي په حق کي شپې د تيرو شوو ورځو تابع وی.د راتلونکو شپو تابع نه وی.نونبي ﷺ دعذر د امله د څاروو څرونکو ته ددې اجازت ورکړې وو.چه د دولسمې ورځې رمي د شپې اوکړئ.

**وَلِأَنَّ لَيْلَةَ النَّحْرِ وَقْتُ الْوُقُوفِ وَالرَّمْيُ يَتَرَتَّبُ عَلَيْهِ** اوبله دا چې شپه د نحر وخت د وقوف دې.او رمي مرتب کيږي په هغې (وقوف باندې) **فَيَكُونُ وَقْتُهُ بَعْدَهُ ضَرُورَةً** نو وی به وخت ددې (رمي) روسته دهغې (وقوف) نه،خامخا،

تشريح:- **الدليل الثاني للاحناف** رحمهم الله ۞ دوهم دليل دا دې.چه د يوم النحر شپه د مزدلفه وخت دې.اورمي په وقوف باندې مرتب ده.ددې امله به د رمي وخت د وقوف نه روسته وی.نوثابته شوه.چه د رمي وخت د سهار

[1] من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه الطبراني فى المعجم عزاه إليه الإمام الهيثمى فى مجمع الزوائد(٣/ ٢٦٠)

[2] من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه الطحاوى فى شرح الآثار (١/ ٤١٢)

[3] من حديث عباس رضي الله عنهما أخرجه أصحاب سنن الأربعة (نصب الراية ٣/ ٩٩)_



راختونه روسته پيل کيږي.

**ثُمَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ يَمْتَدُّ هَذَا الْوَقْتُ إِلَى غُرُوبِ الشَّمْسِ** بيا په نيز دامام ابوحنيفه رحمه الله اووږديږي دا وخت تر وخت د پريوتو دنمر پورې، **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {إِنَّ أَوَّلَ نُسُكِنَا فِي هَذَا الْيَوْمِ الرَّمْيُ}** د امله د وينا د نبي ﷺ نه بيشکه اولنې فعل دحج زمونږپه دې.ورځ(دنحر)کي رمي ده **جَعَلَ الْيَوْمَ وَقْتًا لَهُ وَذَهَابُهُ بِغُرُوبِ الشَّمْسِ** (اوګرځوی)نبي ﷺ اوګرځوله ورځ وخت ددې (رمي) دپاره،اوخروج ددې (وخت) راځي په پريوتو دنمر،

تشريح:- **اخروقت الرمي عند ابي يوسف** ۞صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزپه يوم النحر د رمي وخت تر لمر ډوبيدو پورې دې.

**دليله** ۞ځکه چې نبي ﷺ فرمائيلي دي.په دې. ورځ يعني د نحر په ورځ زموږ دحج په افعالو کي د ټولو نه اولنې کار رمي ده.ګورئ نبي ﷺ د رمي وخت يوم النحرګرځولې ده.اود ورځ اطلاق ترنمر پريوتو پورې کيږي.نود رمي وخت به د ترنمر پريوتو پورې وی.

**الاقسام الثلاثة لوقت الرمي** ۞خوپه يوم النحر کي د رمي تفصيل دا دې.①چه د سهار راختونه تر لمر ختو پورې مع الكراهت د جواز وخت دې.②اود لمر راختو نه تر زواله پورې مسنون وخت دې.③اود زوال نه روسته تر لمر ډوبيدو پورې بلاکراهت وخت د جواز دې.

**وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ يَمْتَدُّ إِلَى وَقْتِ الزَّوَالِ** اودامام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې.چه دا (وخت د رمي) اوږديږي تر وخت د زواله پورې، **وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَا** اوحجت په دوی (امام ابويوسف رحمه الله) باندې هغه (حديث) دې.کوم چې موږ روايت کړې دې.

تشريح:- **اخروقت الرمي عند ابي يوسف** ۞دامام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې.چه په يوم النحر د رمي وخت ترزواله پورې پاته وی.ځکه چې دالله تعالى پيغمبر ﷺ دزوال نه وړاندې رمي کړې وه.خود امام ابويوسف رحمه الله خلاف هغه حديث حجت دې.کوم چې موږ وړاندې روايت کړې دې.

## د يوم النحر شپې ته د رمي روستوکول

**وَإِنْ أَخَّرَ إِلَى اللَّيْلِ رَمَاهُ وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ** اوکه روستوئې کړه (رمي) شپې ته،نو رمي دې. اوکړي.اونشته څه شی په ده باندې، **لِحَدِيثِ الرِّعَاءِ** امله د حديث د څروونکو نه (کوم چې وړاندې تيرشو) **وَإِنْ أَخَّرَ إِلَى الْغَدِ رَمَاهُ** اوکه روستوئې کړه سهار ته نو رمي دې وکړي.

**حل اللغة*** ①اخر، تاخيراً: روستوکول ②لاشئ: هيڅ شي نه ]

تشريح:- **جوازالرمي في الليل من غيركفارة** ۞مسئله دا ده.که په يوم النحر ئې رمي اونکړله.تردې. چې شپه راغله.نوپه شپه کي دې. رمي اوکړي.اوپه ده څه څيز(دم وغيره) واجب نه دې.دليل هغه حديث دې.په کوم کي چې د څاروو څرونکو ته د شپې د رمي اجازت ملاؤ شوې وو.

**لِأَنَّهُ وَقْتُ جِنْسِ الرَّمْيِ، وَعَلَيْهِ دَمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ** ځکه چې دا وخت دجنس رمي دې.اوپه ده باندې دم دې. په نيز دامام ابوحنيفه **لِتَأْخِيرِهِ عَنْ وَقْتِهِ كَمَا هُوَ مَذْهَبُهُ** د امله دتاخير د خپل وخت نه،څنګه چې دامام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دې.(چه په تاخيرسره دم لازموی)

تشريح:- **جوازالرمي في اليوم الثاني من النحرمع وجوب الدم** ۞اوکه د شپې ئې هم رمي اونکړله.تردې. چې د يوولسمې ذوالحجه ورځ شی.نوپه يوولسمه ذوالحجه دې. هم رمي اوکړي.ځکه چې يوولسمه ورځ هم د

[1] غربه الزيلعى رحمه الله بهذا اللفظ ثم أخرج من حديث أنس بن مالك وعزاه إلى البخارى فى الوضوء باب ٣٢ ومسلم فى الحج رقم ٣٢٦ وأبوداود فى المناسک باب ٧٨ رقم ١٩٨١ والترمذى فى الحج باب ٧٣ رقم ٩١٢)_

جنس رمی لپاره وخت دي. البته دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په ده باندې دم واجب شو. ځکه چې د جمره عقبه رمی د خپل وخت نه روستو شوه. اود امام ابوحنيفه رحمه الله دا مسلك دي. چه په مناسك حج کې يو منسك دخپل وخت نه روستو شی. نودم پرې لازموی.

### په سپرلئ د رمی حکم

قَالَ (فَإِنْ رَمَاهَا رَاكِبًا أَجْزَأَهُ) لِحُصُولِ فِعْلِ الرَّمْيِ فرمائی که رمی ئې اوکړه ددې په سپرلئ نوجائزده ورله، د دامله د حاصليدو د فعل د رمی،

حل اللغة: ① راكبًا: سوريدل ② ماشيًا: پيدل تګ ③ تضرع: عاجزی کول ]

تشريح: - جواز الرمی راكباً: مسئله دا ده. که يوکس په سپرلئ رمی اوکړله. نوجائزده. ځکه چې د رمی عمل حاصل شو.

وَكُلُّ رَمْيٍ بَعْدَهُ رَمْيٌ فَالْأَفْضَلُ أَنْ يَرْمِيَهُ مَاشِيًا وهره يوه رمی چې دهغې نه روسته رمی وی. نوافضل په کې دا ده. چه وی پيدل، وَإِلَّا فَيَرْمِيهِ رَاكِبًا اوکه (پيدل) نه وی. نورمی دې کوی په سورلئ،

تشريح: - القاعدة في رمی الجمار راكباً ام راجلاً: صاحب د قدوری رحمه الله يوه ضابطے ته اشاره کړې ده. هغه دا چې هره يوه رمی چه دهغې نه روسته رمی وی. نوپه هغې کې پيدل رمی کول افضل دی. ګنی په سپرلئ رمی افضل ده. ددې قاعدې. مطابق په يوم النحر په سپرلئ باندې د جمره عقبه رمی کول افضل دی. ځکه چې په يوم النحر دجمره عقبه د رمی نه روسته بله رمی نشته. اوپه نورو ورځوکې چونکه د جمره اولی او وسطی د رمی نه روسته بله رمی شته. نوځکه په هغې کې پيدل رمی افضل ده. او د دريمې جمره نه روسته چونکه بله رمی نشته. نوځکه په دې. رمی کې په سپرلئ باندې رمی کول افضل دی.

لِأَنَّ الْأَوَّلَ بَعْدَهُ وُقُوفٌ وَدُعَاءٌ عَلَى مَا ذَكَرْنَا فَيَرْمِيهِ مَاشِيًا ځکه چې د اوله (رمی) ددې نه روسته وقوف اودعا ده. بنا په هغه چې موږ ذکرکړلو. نو رمی به کوی پيدل لِيَكُونَ أَقْرَبَ إِلَى التَّضَرُّعِ چې وی نزدې. عاجزئ ته، وَبَيَانُ الْأَفْضَلِ مَرْوِيٌّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ اوبيان د افضل نقل دې. د امام ابويوسف رحمه الله نه

تشريح: - دليله: صاحب دهدايه رحمه الله دليل بيانوی اوفرمائی. چه که د رمی نه روسته رمی وی. نوپيدل رمی ځکه افضل ده. چه د لومړنی او دويمې رمی نه روسته چونکه ودريدل اودعا کول دی. نوځکه دې. پيدل رمی کوی. چې عاجزئ ته زياته نزدې. وی. دا افضليت د حضرت امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دې.

### په منی کې شپه تيرول

وَيُكْرَهُ أَنْ لَا يَبِيتَ بِمِنًى لَيَالِيَ الرَّمْيِ اومکروه دی چې نه تيروی شپه په منی کې په شپو د رمی کې،

حل اللغة: ① لايبيت، بات نباتًا (ض): شپه تيرول ② يوذب، تاديبًا: ادب خودل، په جرم سزا ورکول ③ متعمدًا: په قصد سره ⑤ يسهل، سهل سهولة (س): آسانيدل ⑥ جابر: نقصان پوره کونکې ]

تشريح: - حکم المبيت بمنی: ① صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی. چه دا خبره مکروه ده. چه حاجی د رمی په شپو کې په منی کې شپې نه تيروی. يعنی د رمی په شپو کې په منی کې شپې تيرول زموږ په نيز سنت دی.

لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بَاتَ (١) ځکه چې نبی ﷺ شپه تيره کړې وه په دې کې بِمِنًى، وَعُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ كَانَ يُؤَدِّبُ عَلَى تَرْكِ الْمُقَامِ بِهَا (٢) اوحضرت عمر رضی الله عنه به زورنه ورکوله په پريخودو د شپې تيرولو په منی کې،

(١) من حديث عائشة رضی الله عنها أخرجه ابن حبان والحاكم (نصب الراية ١٠٠/٣)

(٢) غربه الزيلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل عن ابن عمر رضی الله عنهما أن عمر رضی الله عنه كان ينهى أن يبيت أحد من وراء العقبة وكان يأمرهم أن يدخلوا منى أخرجه ابن ابی شيبة (كذا فی نصب الراية ١٠٠/٣)_



تشريح: - دليل سنية المبيت بمنی: دليل دا دې. چه رسول الله ﷺ د رمی شپې په منی کې تيرې کړې وې. اوکه يوحاجی به په منی کې قيام پريښولو. نوحضرت عمر رضی الله عنه به هغه ته زورنه ورکوله.

وَلَوْ بَاتَ فِي غَيْرِهَا مُتَعَمِّدًا لَا يَلْزَمُهُ شَيْءٌ عِنْدَنَا اوکه شپه ئې تيره کړه په بل ځائې کې په قصد سره، نه لازميږی پرې څه شی زموږ په نيز، خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ خلاف ثابت دې. د امام شافعی رحمه الله (په بل ځائې کې شپې تيرولو

تشريح: - که يوحاجی د منی نه علاوه په بل ځائې کې شپه تيره کړه. نو زموږ په نيز په ده باندې دم وغيره څه نه واجبيږی. البته دامام شافعی رحمه الله په نيز دم واجبيږی. ځکه چې په منی کې شپه کول د دوی په نيز واجب دی.

لِأَنَّهُ وَجَبَ لِيَسْهُلَ عَلَيْهِ الرَّمْيُ فِي أَيَّامِهِ ځکه نه واجبيږی چه) دا شپه تيرول په منی کې ) واجب ده. ددې لپاره چې آسانه شی په ده باندې رمی په خپلو ورځو کې ، فَلَمْ يَكُنْ مِنْ أَفْعَالِ الْحَجِّ فَتَرْكُهُ لَا يُوجِبُ الْجَابِرَ نو نشوه د افعالو د حج نه (شپه تيرول په منی کې )نو پريښول ددې نه لازموی نقصان پوره کونکې څيز.

تشريح: - دليل الاحناف رحمهم الله: زموږ دليل دا دې. چه دحاجی لپاره په منی کې شپه تيرول ددې لپاره دی. چه ده ته رمی آسانه شی. نومعلومه شوه چې په منی کې قيام کول د حج په مناسکو کې نه دی. اوهرکله چې واجب نه دی. نوددې په پريخودو سره به جابر يعنی نقصان پوره کونکې وينه نه لازميږی

### مکې ته سامان لېږل اومنی کې ايساريدل

قَالَ (وَيُكْرَهُ أَنْ يُقَدِّمَ الرَّجُلُ ثَقَلَهُ إِلَى مَكَّةَ) فرمائی اومکروه دی چې اوليږی سړې سامان خپل مکې ته وَيُقِيمَ حَتَّى يَرْمِيَ او ايسار شی په منی کې تردې. چې رمی اوکړی لِمَا رُوِيَ أَنَّ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ كَانَ يَمْنَعُ مِنْهُ وَيُؤَدِّبُ عَلَيْهِ ددې امله چې روايت شوې دې. چه حضرت عمر رضی الله عنه به منع کوله اوزورنه به ئې ورکوله په دې. باندې (چه سړې په خپله په منی کې ايسار شی. اوسامان مکې ته اوليږی) اوددې امله چې دا عمل به دده زړه بوخت ساتی.

حل اللغة: ① ثقل: بوج، دمسافرسامان ]

تشريح: - تشريح واضح ده.

### مکې ته په واپسئ کې مقام محصب کې ايساريدل

وَإِذَا نَفَرَ إِلَى مَكَّةَ نَزَلَ بِالْمُحَصَّبِ) وَهُوَ الْأَبْطَحُ وکله چې روان شی مکې ته نو ايسار به شی مقام محصب کې ،اودا مقام ابطح دې. وَهُوَ اسْمُ مَوْضِعٍ قَدْ نَزَلَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ (١) اودا نوم د يو ځائې دې. چه ايسار شوې وو په کې رسول الله ﷺ وَكَانَ نُزُولُهُ قَصْدًا هُوَ الْأَصَحُّ او وو ايساريدل د هغوی ﷺ په قصد سره، او هم دا (خبره) اصح ده. حَتَّى يَكُونَ النُّزُولُ بِهِ سُنَّةً تردې چې دی ايساريدل دلته سنت. ، عَلَى مَا رُوِيَ أَنَّهُ قَالَ لِأَصْحَابِهِ {إِنَّا نَازِلُونَ غَدًا بِالْخَيْفِ بنا په هغه چې روايت ئې شوې دې. چه نبی ﷺ فرمائيلی ووخپلو صحابوؓ ته، موږ به ايساريږو صباته مقام خيف کې، خَيْفِ بَنِي كِنَانَةَ حَيْثُ تَقَاسَمَ الْمُشْرِكُونَ فِيهِ عَلَى شِرْكِهِمْ} (٢) خيف د بنو کنانه، چې قسمونه خوړلی وو مشرکانو په هغې کې ،په خپل شرك باندې (چه په شرك به ټينګ ولاړ يو. اواسلام به نه قبول کوو) يُشِيرُ إِلَى عَهْدِهِمْ عَلَى هِجْرَانِ بَنِي هَاشِمٍ اشاره کوی کوښښ د دوی (مشرکانو) ته په ترك تعلق د بنو هاشم سره، (يعنی د شعب ابی

(١) من حديث أبی هريرة رضی الله عنه أخرجه البخاری فی المغازی باب ٤٨ ومسلم فی الحج رقم ٣٤٣)_

(٢) من حديث أسامه بن زيد رضی الله عنه أخرجه البخاری فی الجهاد باب ١٨٠ رقم ٣٠٥٨ ومسلم فی الحج رقم ٤٣٩ وأبوداود فی المناسک باب ٨٦ رقم ٢٠١٠ وابن ماجه فی المناسک باب ٢٦ وأحمد فی ا لمسند (٢٠٢/٥)_

طالب موده یادوی.چه مشرکانو د نبی اکرمﷺ خاندان سره ترك تعلق کړې وو) **فَعَرَفْنَا أَنَّهُ نَزَلَ بِهِ إِرَاءَةً لِلْمُشْرِكِيْنَ لَطِيْفَ صُنْعِ اللّٰهِ تَعَالٰى بِهِ** نوموړ اوپيژندل چې نبی ﷺ په دې. مقام کې ایسارشو لپاره د خودلو مشرکانو ته دالله تعالی احسان په ده (محمدﷺ) باندې **فَصَارَ سُنَّةً كَالرَّمَلِ فِي الطَّوَافِ** نو اوګرځیدلو (دا ایساریدل په مقام محصب کې ) سنت پشان د رمل په طواف کې

**حل اللغة**: ① **تقاسم، تقاسماً**: په خپل مینځ کې قسمونه خوړل ② **یشیر، اشارة**: اشاره کول ③ **هجران**: پرېښول ④ **عرفنا، عرف معرفة** (ض): پیژندګلو]

**تشریح**:- محصب دمکې اومنی په مینځ کې د یو کاڼریجن مقام نوم دې.دا مقام د مکې په نسبت منی ته نژدې. دې.ددې مقام تاریخی حیثیت دا دې.چه کله نبی ﷺ د نبوت دعوی اوکړله.اود شرك د بطلان حکم اعلان ئې اوکړلو.نودقریشو ټولې قبیلې په دې. مقام محصب کې راجمع شوې . اوټولو په دې. خبره قسمونه اوخوړل اووعدې. ئې اوکړلې.چه دخاندان نبوت یعنی بنوهاشم اوبنو مطلب سره بیخی تعلق پریږدې.نه به دوی سره لین دین کولې شی.اونه به ورسره خوراك څکاك کولې شی.آخردا چې ابوطالب صاحب وارډ مسلمانان او بنوهاشم واخستل اودې غر ته لاړو.اومشرکانو دغه معاهده اولیکله اوپه خانه کعبه کې ئې زوړنده کړه.درې کاله هم داسې تیر شو.او بنوهاشم ته ډیر تکلیفونه ملاؤ شول.د الله تعالی پیغمبرﷺ د وحی په ذریعه خلګو ته خبر ورکړلو.چه د معاهدې. دغه لیکل وینو(یو ډول چینجی دی) خوړلې دې.صرف د الله تعالی نوم په کې پاته دې.حضرت ابوطالب کافرانو ته ددې خبر ورکړلو.نوهغوی په غصه شو.او وې وئیل که دا خبره رښتیا وی.نوموړ به تاسو سره تعلقات بحال کړو.ابوطالب صاحب ورته د نبی ﷺ په اشاره سره اووئیل.که داسې نه وی شوې .نوموړ به تاسو ته محمد حواله کړو.آخر دا چې د قریشوسرداران راجمع شو.اود خانه کعبې دروازه ئې پرانسته.اوچه لوظ نامه ئې اوکتله.نود نبی ﷺ خبره سل فیصده ټیك وه.مشرکان ډیرحیران شو.مشرکانو خپله وعده پوره کړه.اود بنوهاشم سره ئې تعلقات پیل کړل.ددې واقعې نه څه موده روسته مکه معظمه فتح شوه.اود حجاز په مځکه اسلامی حکومت قائم شو.نو نبی ﷺ د حج په موقع په منی کې خپلو صحابوﷺ ته اوفرمائیل.چه موړ به صباته خیف بنوکنانه کې ایساریږو.نود فیصلې مطابق نبی ﷺ قصداً هلته کې ایسار شو.اواوس دلته ایساریدل سنت شو.دا دلته ددې لپاره ایسارشو.چه مشرکانو ته دالله تعالی کارونه اوښائی.چه پرون په دې. مقام باندې ستاسو قبضه وه.اونن الله تعالی موړ ته غلبه راکړه.نن سهار اګرچه هلته مشرکان نشته.خود مشرکانو په مقابله کې دخپل اوچت مقام اظهار لپاره دې. دلته خامخا ایساریږی.لکه څنګه چې په طواف کې رمل نن هم موجود دې.(اګرچه د رمل کول د یوعارضی سبب د امله وو.هغه سبب زائله شوې دې.خونن هم رمل پاته دې. د دې تفصیل وړاندې تیر شوې دې.نودغه ډول نن هم په مقام محصب کې ایساریدل سنت دی) بهرحال کله چې حاجی دمنی نه مکې ته روانیږی.نوپه مقام محصب کې به ایساریږی.

## د طواف صدر حکم

**قَالَ ثُمَّ دَخَلَ مَكَّةَ وَطَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ** فرمائی بیا به داخل شی مکې ته اوطواف به اوکړی د بیت الله نه ... **رَمَلَ فِيْهَا** ... رمل به نه کوی په دې. کې ،اودا طواف صدر دې. **وَهٰذَا طَوَافُ الصَّدَرِ** **وَيُسَمّٰى طَوَافَ الْوَدَاعِ** ... لای شی په طواف وداع،اود حج په زمانه کې د بیت الله آخری طواف،(طواف وداع ورته وائی) ... **آخِرَ عَهْدِهِ بِالْبَيْتِ لِأَنَّهُ يُوَدِّعُ الْبَيْتَ وَيَصْدُرُ بِهِ** څکه چې دې رخصتی اخلی د بیت نه، او(طواف صدر ورته وائی ... ې نه

... اخلیدل ② **لایرمل، رمل رملاً** (ن)، اوږې خوزولوسره ځغستل(منډه وهل) ③ **یودع، تودیعا** ... ④ **یصدر، صدري**: روانیدل ]



**تشریح**:- **طواف الصدر بعد الرمی** ﷺ په منی کې د حج د ټولوافعالو ادا کاوه نه روسته چې حاجی مکې ته داخل شی.نود بیت الله څخه به اووه چکرې اولګوی.اوپه دې. طواف کې به رمل نه کوی.دې. طواف ته طواف صدر،طواف وداع او(دحج په موسم کې ) د ټولونه آخری طواف دې.ددې طواف نوم طواف وداع څکه دې.چه دا طواف د بیت الله نه د واپس کیدو په وخت کې کیږی.

**وَهُوَ وَاجِبٌ عِنْدَنَا** اودا طواف واجب دې زموږ په نیز

**تشریح**:- **المذهبان في حکم طواف الصدر** ﷺ طواف صدر زموږ په نیز واجب دې.

**خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ** په خلاف د امام شافعی رحمه الله

**تشریح**:- اودامام شافعی رحمه الله په نیز سنت دې.دامام شافعی رحمه الله دلیل دا دې.چه طواف صدر پشان د طواف قدوم دې.

**دلیله** ﷺ هم دا وجه ده.چه دا دواړه طوافونه آفاقی کوی او مکی ئې نه کوی.حالانکه د حج په واجباتو کې آفاقی او مکی دواړه برابر دی.هرکله چې مکی دا دواړه طوافونه نه کوی.نودا ددې خبرې دلیل دې.چه دا دواړه طوافونه واجب نه دی.

**لِقَوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ** خلاف ثابت دې د امام شافعی رحمه الله څکه رسول اللهﷺ فرمائیلی دی. {**مَنْ حَجَّ هٰذَا الْبَيْتَ فَلْيَكُنْ آخِرَ عَهْدِهِ بِالْبَيْتِ الطَّوَافُ**} چاچه قصد اوکړو ددې بیت نو وی دې. آخری عمل دده په بیت باندې طواف،(چه طواف دې. کوی ددې نه)

**تشریح**:- **دلیل الاحناف** رحمهم الله ﷺ زموږ دلیل دا دې.چاچه د بیت الله حج اوکړلو.نودده آخری عمل پکارده چې طواف د بیت الله وی.

**وَرَخَّصَ لِلنِّسَاءِ الْحُيَّضِ تَرْكَهُ** (١) او حائضو ښځو ته ئې ددې (د پریخودو ) رخصت ورکړې دې.

**الاستدلال بحدیث رخصة الحیض** ﷺ ① او حائضوښځوته ئې رخصت ورکړې دې.یعنی د حائضو اونفاسو ښځو لپاره د طواف صدر نه بغیر تلل جائز دی.په دې. حدیث کې ﴿فلیکن﴾ امر دې.اوچه قرینه صارفه نه وی.نوامر لپاره د وجوب وی.نوثابته شوه چې طواف صدر واجب دې.② دویمه وجه دا ده.چه نبی ﷺ حائضو ښځو ته حکم ورکړې وو.چه دوی بغیرد طواف صدر نه لاړې شی.دا هم د وجوب دلیل دې.ګنی د رخصت د تخصیص به بیا څه فائده وی.(که طواف صدر واجب نه وو.نونبی ﷺ به ورته ولې وئیل.چه زه خیردې. تاسو دا طواف مه کوئ.هغوی به په خپله د طواف کاوه نه بغیر روانې شوې وې)

**إِلَّا عَلٰى أَهْلِ مَكَّةَ** **لِأَنَّهُمْ لَا يَصْدُرُوْنَ وَلَا يُوَدِّعُوْنَ** خوپه اهل مکه باندې دا طواف نشته.څکه چې دوی نه ددې نه څی.اونه رخصتیږی.

**تشریح**:- صاحب د قدوی فرمائی چې د مکې په خلګو طواف صدر واجب نه دې څکه چې د مکې اوسیدونکی نه خو چرته روانیږی او نه بیت الله ته وداع وائی

**قَالَ، وَلَا رَمَلَ فِيْهِ لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ شُرِعَ مَرَّةً وَاحِدَةً** اورمل به نه کوی په دې. کې د امله دهغه دلیل چې موږ بیان کړو.چه دا مشروع شوې دې یوځل،

**تشریح**:- په دې طواف کې رمل څکه نشته چې رمل صرف یو ځل مشروع دې اوهغه ئې په طواف قدوم یا طواف زیارت کې کړې دې څکه اوس د دوباره کاوه څه اړتیا نشته

(١) من حدیث إبن عباس رضي الله عنهما أخرجه البخاری فی الحیض باب ۶ ومسلم فی الحج رقم ۳۷۹ وأبوداود فی المناسک باب ۸۳ والنسائی فی الصیام باب ۶۴ وابن ماجه فی المناسک باب ۸۲)_

**وَيُصَلِّي رَكْعَتَي الطَّوَافِ بَعْدَهُ لِمَا قَدَّمْنَا** اولمونځ به کوی دوې [دوه] رکعته روسته ددې (طواف) نه،د امله دهغه دليل نه کوم چې مونږ وړاندې بيان کړې دې.

**تشريح:-** خو دا ده چې د طواف صدر نه روسته دې د طواف دوې [دوه] رکعته اوکړی ځکه چې په اول باب کې تير شوی دی چې هر طواف په دوې [دوه] رکعتو پوره کيږي که فرض طواف وی او که غير فرض وی

## د زمزم اوبه څکل

**ثُمَّ يَأْتِي زَمْزَمَ فَيَشْرَبُ مِنْ مَائِهَا** اورابه شی زمزم ته،اواوبه څکی د اوبو ددې نه، **لِمَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ اسْتَقَى دَلْوًا بِنَفْسِهِ فَشَرِبَ مِنْهُ** ددې امله چې روايت شوې دې.چه نبی ﷺ راوويستله يوه سلواغه په خپله،اوڅکاك ئې اوکړلو دهغې نه، **ثُمَّ أَفْرَغَ بَاقِيَ الدَّلْوِ فِي الْبِئْرِ** (١) بيا ئې راواړوله پاته سلواغه په کوهی کې

**حل اللغة:** ① استقى، استقاء: اوبه اخستل ② دلواً: ډولچه ③شرب، شرباً (س): څښل ④ افرغ، فراغاً: اچول، راړول ]

**تشريح:-** واضح ده.

## ملتزم پورې انختل اوچوکاټ ښکلول

**وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَأْتِيَ الْبَابَ وَيُقَبِّلَ الْعَتَبَةَ** ومستحب دی چې راشی دروازې ته او ښکل کړی چوکاټ (د بيت الله د دروازې) **ثُمَّ يَأْتِي الْمُلْتَزَمَ،وَهُوَ مَا بَيْنَ الْحَجَرِ إِلَى الْبَابِ** وراب‍ه شی مقام ملتزم ته،اودا هغه ځائې دې. چې په مينځ د حجر اسود اودروازې کې دې. **فَيَضَعُ صَدْرَهُ وَوَجْهَهُ عَلَيْهِ وَيَتَشَبَّثُ بِالْأَسْتَارِ سَاعَةً** ومخ خپل،په دې. (ملتزم) باندې.اواونښلی په پردو(د خانه کعبې)پورې څه وخته پورې، **ثُمَّ يَعُودُ إِلَى أَهْلِهِ** بيا به واپس شی خپل اهل وعيال ته، **هَكَذَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فَعَلَ بِالْمُلْتَزَمِ ذَلِكَ** (٢) هم دغه ډول روايت شوې دې.چه نبی ﷺ کړی وو د ملتزم سره،

**حل اللغة:** ① يقبل، تقبيلاً: خله ورکول ② عتبة: چوکاټ ③ فيضع، وضع وضعاً (ف): ساتل ④ يتشبث، تشبثاً: راتاويدل، اينختل ⑤ متباكياً: ژړيدونکې ⑥ متحسراً: حسرت کونکې ⑦ يخرج، خروجاً (ن): وتل ]

**تشريح:-** **تقبيل العتبة والتزام الملتزم**﴿صاحب قدوری رحمه الله فرمائی.چه د واپسئ په وخت کې مستحب دی.چه حاجی د خانه کعبې دروازې ته لاړ شی.اودهغې چوکاټ ښکل کړی.اوملتزم(کوم چې د حجراسود نه تردروازې د کعبې پورې دې.) باندې خپله سينه اومخ اولګوی.اود کعبې په پردو پورې اونښلی.اوبيا خپل وطن ته واپس شی.ځکه چې په دې سې کاوه کې د رسول هاشمی اتباع ده.

**قَالُوا: وَيَنْبَغِي أَنْ يَنْصَرِفَ وَهُوَ يَمْشِي وَرَاءَهُ وَوَجْهُهُ إِلَى الْبَيْتِ** عالمانو رحمهم الله فرمائيلی دی. اومناسب دی چې راواپس شی او رارروان وی په شا باندې،اومخ دده وی خانه کعبې ته، **مُتَبَاكِيًا مُتَحَسِّرًا عَلَى فِرَاقِ الْبَيْتِ** ژړا کونکې وی افسوس کونکې وی په پريخودو د بيت الله **حَتَّى يَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ فَهَذَا بَيَانُ تَمَامِ الْحَجِّ**.تردې چې اوځی د جمات نه، نودا بيان د پوره حج وو.

**تشريح:-** دبعضې عالمانو رحمهم الله خيال دې.چه د بيت الله نه رخصتيږی.نو په شا دې. راځی.چه مخ ئې خانه کعبې ته وی.اود بيت الله په جدائی باندې د افسوس اظهار کوی.اوسترګې ئې داوښکو ډکې وی.هم په دې. طريقه دې. د مسجد حرام نه رابهر شی.تردې. ځائې پورې د حج پوره طريقه بيان شوه.

---

(١) من حديث عطاء أخرجه ابن سعد فی الطبقات فی باب حجة النبی ﷺ (١٣١/١)_

(٢) من حديث عمرو بن شعيب عن أبيه شعيب رضي الله عنه أخرجه أبوداود فی سننه فی المناسک باب ٥٤ رقم ١٨٩٩ وابن ماجه فی المناسک رقم (٢٩٦٢)_



## د محرم مکې ته د داخليدو نه بغير عرفات ته تلل

**فَصْلٌ فَإِنْ لَمْ يَدْخُلِ الْمُحْرِمُ مَكَّةَ وَتَوَجَّهَ إِلَى عَرَفَاتٍ** فصل اوکه داخل نشو محرم مکې ته او لاړو عرفات ته، **وَوَقَفَ بِهَا عَلَى مَا بَيَّنَّا سَقَطَ عَنْهُ طَوَافُ الْقُدُومِ** او وقوف ئې اوکړو په هغې کې بنا په هغه طريقه چې مونږ بيان کړې ده.نوساقط شو دده نه طواف قدوم،

**تشريح:-** **جوازالتوجه الى عرفات من غيردخول مكة**﴿په دې. فصل کې دځو متفرقو مسئلو ذکر دې. لومړنی مسئله دا ده.چه محرم مکې ته د داخليدو نه بغير نيغ عرفات ته لاړ شی.اوهلته په هغه طريقه وقوف اوکړی.کومه چې شريعت بيان کړې ده.نودده د ذمې نه طواف قدوم ساقط شو.

**لِأَنَّهُ شُرِعَ فِي ابْتِدَاءِ الْحَجِّ عَلَى وَجْهٍ يَتَرَتَّبُ عَلَيْهِ سَائِرُ الْأَفْعَالِ** ځکه چې دا (طواف قدوم) مشروع شوې دې په ابتداء د حج کې په هغه طريقه چې مرتب کيږی په هغې باندې واړه احکام (دحج)، **فَلَا يَكُونُ الْإِتْيَانُ بِهِ عَلَى غَيْرِ ذَلِكَ الْوَجْهِ سُنَّةً** نونه به وی راتګ کول دې.(طواف قدوم) ته په غيرد هغه طريقه (کومه چې مشروع ده.يعنی چې د احرام نه روسته مکې ته داخل شی.نوبيا به طواف قدوم کوی.اوبه دې. طريقه کې چونکه مکې ته داخليدل نشته.نوطواف قدوم هم) سنت نه دې.

**تشريح:-** **دليله**﴿ځکه چې طواف قدوم په اول دحج کې په دې سې طريقه باندې مشروع دې.چه د حج نور واړه احکام په دې. باندې مرتب دی.نوددې طريقې نه علاوه په بله طريقه به طواف قدوم سنت نه وی.

**وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ بِتَرْكِهِ لِأَنَّهُ سُنَّةٌ وَبِتَرْكِ السُّنَّةِ لَا يَجِبُ الْجَابِرُ** اونشته څه شی په ده باندې په پريخودو ددې (طواف قدوم) ځکه چې دا سنت دې.او په پريخودو د سنت نه واجبيږی د نقصان پوره کونکې څيز.

**تشريح:-** **عدم وجوب شئ بتركه**﴿اود طواف قدوم په پريخودو په ده باندې دم وغيره نه واجبيږی.ځکه چې طواف قدوم سنت دې.اود سنت په پريخودو نقصان پوره کونکې شی نه واجبيږی.

## د وقوف عرفه وخت

**وَمَنْ أَدْرَكَ الْوُقُوفَ بِعَرَفَةَ مَا بَيْنَ زَوَالِ الشَّمْسِ مِنْ يَوْمِهَا** وچاچه رالاندې. کړو وقوف په (ورځ) د عرفې په مينځ د زوال د لمر هم په دغه ورځ (چه نهمه د ذوالحجی ده) **إِلَى طُلُوعِ الْفَجْرِ مِنْ يَوْمِ النَّحْرِ فَقَدْ أَدْرَكَ الْحَجَّ** تر سهار د ورځې د اختر پورې،نوده رالاندې کړلو حج، **فَأَوَّلُ وَقْتِ الْوُقُوفِ بَعْدَ الزَّوَالِ عِنْدَنَا** نواول وخت دوقوف روسته د زواله دې. په نيز زمونږ.

**حل اللغة:** ① ادرک: موندل ② فات، فوتاً (ن): فوت کيدل ]

**تشريح:-** په دې. اړه کې اختلاف دې.چه د وقوف عرفات وخت د کله نه پيل کيږی.نو زمونږ په نيز د عرفې په ورځ د لمر د زوال نه روسته پيل کيږی.نوکه يو حاجی د نمرد زوال نه روسته تر د يوم النحر د سهار راختلو پورې په کوم وخت کې هم وقوف اوکړلو.نودده حج ادا شو.

**لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَقَفَ بَعْدَ الزَّوَالِ** (١) ددې امله چې روايت شوې دې.چه نبی ﷺ وقوف کړې وو پس د زواله، **وَهَذَا بَيَانُ أَوَّلِ الْوَقْتِ** اودا بيان داول وخت دې. **وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ مَنْ أَدْرَكَ عَرَفَةَ بِلَيْلٍ فَقَدْ أَدْرَكَ الْحَجَّ** وفرمائيلی دی.نبی ﷺ چاچه رالاندې. کړه عرفه په شپه کې نوده رالاندې. کړلو حج، **وَمَنْ فَاتَهُ عَرَفَةُ بِلَيْلٍ فَقَدْ فَاتَهُ الْحَجُّ** (١) اوچه د چا نه فوت شوه عرفه په شپه کې (هم) نو بيشکه فوت شو دده نه حج،، **وَهَذَا بَيَانُ آخِرِ الْوَقْتِ** نودا بيان د آخر وخت دې.

---

(١) تقدم تخريجه فی حديث جابر رضي الله عنه )

تشریح:- **دلائله**ﷺ دليل دادي. ①چه نبي ﷺ د زوال نه روسته وقوف كړې وو. ددې حديث نه د وقوف اول وخت معلوم شو. ② دوهم حديث كي دی. چه نبي ﷺ فرمائيلی دی. چا چې په شپه كي وقوف د عرفات رالاندې كړو. نوده حج رالاندې. كړلو. اوچا چې په شپه كي هم وقوف عرفات لاندې. نكړلو. نوده نه حج فوت شو. په دې. حديث كي د وقوف عرفات د آخري وخت بيان دې. ددې دواړو حديثونو نه معلومه شوه. چه د وقوف عرفات وخت د عرفې په ورځ د زوال نه روسته پيل كيږي. اود يوم النحر د سهار راختلو نه وړاندې پورې وی.

| وَمَالِكٌ رَحِمَهُ اللَّهُ إِنْ كَانَ يَقُولُ: إِنَّ أَوَّلَ وَقْتِهِ بَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ أَوْ بَعْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ اوامام مالك اګرچه دا فرمائی. چه بيشكه اول وخت د دې. (وقوف په عرفه) روسته د راختلو د سهار دې. (په نهمه ذوالحجه) اويا روسته د راختلو د نمردې. (په نهمه ذوالجه) |
|---|

تشریح:- **خلاف مالك** ﷺ رحمه الله دامام مالك رحمه الله قول دا دې. چه د وقوف عرفات وخت د عرفې په ورځ د سهار راختو نه د لمر راختو نه روسته پيل كيږي.

**أدليله**ﷺ دامام مالك رحمه الله دليل دا حديث دې. ﴿الحج عرفة فمن وقف بعرفة ساعة من ليل أو نهار فقد تم حجه﴾ يعني د رسول الله ﷺ ارشاد دې. د حج نوم عرفه ده. نوچا چې د ورځې يا د شپې په څه برخه كي د لږ وخت لپاره قيام اوكړلو. نودده حج پوره شو. په حديث كي د ﴿نهار﴾ لفظ راغلی دې. او ﴿نهار﴾ د لمر راختلو نه پيل كيږي.

| فَهُوَ مَحْجُوجٌ عَلَيْهِ بِمَا رَوَيْنَا نو په هغه باندې حجت كيږي په هغه حديث كوم چې موږ روايت كړلو. |
|---|

تشریح:- **الحجة على مالك** رحمه الله ﷺ خودامام مالك رحمه الله خلاف د نبي ﷺ عمل حجت دې. ځكه چې نبي ﷺ د زوال نه روسته وقوف كړې وو. كه د زوال نه وړاندې هم د وقوف وخت وو. نو نبي ﷺ به خامخا د هغې بيان كړې وو.

## د زوال نه روسته لږغونډې وقوف عرفات كول

| ثُمَّ إِذَا وَقَفَ بَعْدَ الزَّوَالِ وَأَفَاضَ مِنْ سَاعَتِهِ أَجْزَأَهُ عِنْدَنَا بيا چې كله وقوف اوكړی روسته د زواله، او روان شي هم په هغه وخت كي، جائز دی ده لره په نيز زموږ. |
|---|

حل اللغة: ① تم، تماماً (ض): پوره كيدل ]

تشریح:- **المذهبان في اقل وقت الوقوف**ﷺ مسئله دا ده. ①چه زموږ په نيز كه د عرفې په ورځ د لمر د زوال نه روسته لږ ساعت لپاره وقوف اوكړی. اوبيا روان شي. نوجائزده.

| لِأَنَّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرَهُ بِكَلِمَةِ ځكه چې نبي ﷺ (وقوف عرفات) ذكر كړې دې. په كلمه د ،او، ذكر كړې ده. أَوْ فَإِنَّهُ قَالَ الْحَجُّ عَرَفَةُ فَمَنْ وَقَفَ بِعَرَفَةَ سَاعَةً مِنْ لَيْلٍ أَوْ نَهَارٍ فَقَدْ تَمَّ حَجُّهُ[2] ځكه چې فرمائيلي ئې دی. چا چې وقوف اوكړو په عرفات يو ساعت د شپې يا د ورځې نو پوره شو حج دده، وَهِيَ كَلِمَةُ التَّخْيِيرِ اودا كلمه د اختيار ده. |
|---|

---

[1]) من حديث عبدالرحمن بن يعمر الديلمي ﷺ أخرجه أبوداود في الحج باب ٦٨ رقم ١٩٣٩ والترمذي في الحج باب ٥٧ رقم ٨٨٩ والنسائي في المناسك باب فرض الوقوف بعرفة وابن ماجه في المناسك باب ٥٧ رقم (٣٠١٥)۔

[2]) قال الزيلعي رحمه الله فيه حديث عروة بن المضرس من شهد صلاتنا هذه ووقف معنا حتى ندفع فقد وقف بعرفة قبل ذلك ليلاً أو نهاراً فقد تم حجه وقضى تفثه أخرجه أبوداود في المناسك باب ٦٨ رقم ١٩٥٠ والترمذي في الحج باب ٥٧ رقم ٨٩١ والنسائي في المناسك باب فيمن لم يدرك صلاة الصبح مع الإمام بمزدلفة وابن ماجه في المناسك باب ٥٧ رقم (٣٠١٦)۔



تشریح:- **دليل الاحناف** عليهم السلام ﷺ زموږ دليل دا دې. چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی. ﴿الحج عرفة فمن وقف بعرفة ساعة من ليل أو نهار فقد تم حجه﴾ په دې. حديث كي كلمه د ،او، د اختيار لپاره ده. يعنی كه وقوف په ورځ كي اوكړی اوكه په شپه كي په دواړو صورتونو كي حج پوره كيږي. نومعلومه شوه. چه د وقوف لپاره نه ورځ شرط ده. اونه شپه هم دا حديث د امام مالك رحمه الله خلاف حجت دې.

| وَقَالَ مَالِكٌ: لَا يُجْزِيهِ إِلَّا أَنْ يَقِفَ فِي الْيَوْمِ وَجُزْءٍ مِنَ اللَّيْلِ اوفرمائي امام مالك رحمه الله نه دې. جائز ده لره (لږغونډې وقوف) مګردا چې اودريږی ورځ اوپه يوه برخه د شپه كي ، |
|---|

تشریح:- امام مالك رحمه الله فرمائي. چه ورځ اود شپې څه برخه كي وقوف ضروری دې. ګويا د امام مالك رحمه الله په نيز د عرفه په ورځ دغروب نه روسته روانيدل ضروری دی.

**أدليل مالك** رحمه الله ﷺ دامام مالك رحمه الله مستدل دا حديث دې. ﴿من أدرك عرفة بليل فقد أدرك الحج ومن فاته عرفة بليل فقد فاته الحج﴾ په دې. حديث كي د وقوف عرفات دارومدار په شپه دې. ددې امله امام مالك رحمه الله فرمائي. چه د شپې په يوه برخه كي وقوف ضروری دې.

| وَلَكِنَّ الْحُجَّةَ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَاهُ خوحجت په هغوی باندې هغه حديث دې. كوم چې موږ روايت كړې دې. |
|---|

تشریح:- **الجواب من مستدل مالك** رحمه الله ﷺ امام مالك رحمه الله چې كوم حديث په استدلال كي پيش كړې دې. په هغې كي د ﴿بليل﴾ لفظ زيادت غيرمشهور دې. مشهور صرف دومره ده. چه ﴿من أدرك عرفة فقد أدرك الحج ومن فاته عرفة فقد فاته الحج﴾ نودا حديث د امام مالك رحمه الله مستدل نشي جوړيدې.

## دخوب يا بيهوشۍ په حالت كي وقوف عرفات

| وَمَنِ اجْتَازَ بِعَرَفَاتٍ نَائِمًا أَوْ مُغْمًى عَلَيْهِ اوڅوك چې تيرشو د عرفات نه په حالت خوب يا بيهوشۍ كي أَوْ لَا يَعْلَمُ أَنَّهَا عَرَفَاتٌ جَازَ يا دې نه پوهيدلو چې دا عرفات دې. نوجائزدې. ورله د وقوف (عرفات) نه عَنِ الْوُقُوفِ ځكه چې كوم شی ركن وو. هغه موجود شو. لِأَنَّ مَا هُوَ الرُّكْنُ قَدْ وُجِدَ وَهُوَ الْوُقُوفُ اونه منتفی كيږی هغه په بيهوشۍ اوخوب سره، ،وَلَا يَمْتَنِعُ ذَلِكَ بِالْإِغْمَاءِ وَالنَّوْمِ كَرُكْنِ الصَّوْمِ پشان د ركن د روژې (چه روژه وی. اواوده وی. نوهم دده روژه صحيح ده) |
|---|

حل اللغة: ①اجتاز، اجتيازاً: تيريدل ②مغمى عليه: په چا چې بې هوشی راشی ③وجد، وجداناً (ض): موندل ④ لا يمتنع، امتنع، امتناعاً: مانع كيدونكې ]

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې. چه حاجی په حالت د خوب يا بيهوشۍ كي د عرفې په ورځ د عرفات نه تيرشي. ياده ته دا پته اونه لګی. چه د كوم ځائې نه زه تيريږم. دا عرفات دې. په دې. دری واړه صورتونو كي وقوف عرفات ادا شو. ځكه چې وقوف عرفات د حج ركن دې. اوهغه موجود شو. پاتې شوخوب اوبيهوشی نو دا د وقوف سره منافی نه دی. لكه څنګه چې يوكس د سهار نه د روژې نيت اوكړلو. اوبيا ټوله ورځ ويده (اوده) يا بيهوشه وو. نودده روژه ادا شوه

| بِخِلَافِ الصَّلَاةِ په خلاف د مانځه، لِأَنَّهَا لَا تَبْقَى مَعَ الْإِغْمَاءِ ځكه چې دا (مونځ) نه پاتې كيږی سره د بيهوشۍ، وَالْجَهْلُ يُخِلُّ بِالنِّيَّةِ وَهِيَ لَيْسَتْ بِشَرْطٍ لِكُلِّ رُكْنٍ اوجهل خلل راولی په نيت كي ،اودا (نيت) شرط نه دې. د هر ركن دپاره. |
|---|

تشریح:- په خلاف د لمانځه ځكه چې لمونځ د بيهوشۍ سره پاته نه پاتې كيږی. اوپاتې شوه داخبره چې عرفات نه پيژنی. نودا خبره په نيت كي خلل پيدا كوی. يعنی چې دكوم شی نيت نه وی. نوهغه معتبر نه وی. خودا خبره ده. چه د هر ركن لپاره نيت شرط نه دې. نود وقوف لپاره هم نيت شرط نه دې. اوهركله چې نيت شرط نشو. نوچه عرفات نه پيژنی. اوتيرشی. نودا هم څه ضرر نه رسوی.

## د بيهوشۍ په حالت کې چاته احرام اچول اووقوف عرفات پرې کول

**(وَمَنْ أُغْمِيَ عَلَيْهِ فَأَهَلَّ عَنْهُ رُفَقَاؤُهُ جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ)**[1] اوکه راغله په چا باندې بيهوشي او دده د اړخ دده ملګرو تلبيه اووئيله.نو جائزدی. په نيز دامام ابوحنيفه رحمه الله **(وَقَالَا: لَا يَجُوزُ)** اوفرمائی صاحبين رحمهما الله نه دې جائز،

[**حل اللغة:** ① **رفقاء**: انډيوال ② **امر، امرا**: حکم ورکول ③ **فاحرم، احرم احرامًا**: احرام تړل ④ **افاق، افاقة**: په هوش کې راتګ ،افاقه کيدل ⑥ **استيقظ،استيقاظًا**: بيداريدل ⑦ **رُفقة**: انډيوال کيدل ⑧ **استعان، استعانة**: امداد غوښتل ⑨ **يعجز، عجزًا** (ض): عاجز کيدل، توان نه لرل ]

**تشريح:- صورتئ مسئلة**۞صورت د مسئلې دا دې.چه په يوکس باندې بيهوشي راغله،اودده د اړخه دده د سفريو انډيوالان احرام اوتړلو.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزجائزده.په دې طريقه چې د سفرد انډيوالان احرام په خپله دده لپاره اصل دې.اود بيهوشه د اړخه د نيابت په طور دې.اوصاحبين رحمهما الله فرمائی.چه دا جائز نه ده.

**(وَلَوْ أَمَرَ إِنْسَانًا بِأَنْ يُحْرِمَ عَنْهُ إِذَا أُغْمِيَ عَلَيْهِ أَوْ نَامَ)** وکه حکم اوکړی يو انسان ته چې احرام اوتړی ده له،په کوم وخت کې چې بيهوشي راځی په ده باندې،اويا ويده (اوده) کيږی. **(فَأَحْرَمَ الْمَأْمُورُ عَنْهُ صَحَّ بِالْإِجْمَاعِ)**،نواحرام اوتړلو هغه چا چې حکم ورته شوی وی.صحيح دې په اجماع سره، **(حَتَّى إِذَا أَفَاقَ أَوِ اسْتَيْقَظَ وَأَتَى بِأَفْعَالِ الْحَجِّ جَازَ)** تردې که رابيدار شی.يا دخوب نه راپاسی،اوادا کړی افعال د حج جائزدی.

**تشريح:-** دوهم صورت دا دې.چه يوکس خپل انډيوالان ته حکم اوکړلو.که زه بيهوشه شوم.يا ويده (اوده) شوم.نو زما د اړخه احرام اوتړه.نوچاته چې ئې حکم کړې وو.هغه دده د اړخه احرام اوتړلو.نود احنافو رحمهم الله په اتفاق سره دا جائز دې.تردې چې کله هغه حکم کونکې د بيهوشۍ نه بيدار شی.يا د خوب نه راويخ شی.اوده د حج احکام اداکړل.نود نوی احرام نه بغيرجائز دی.

**(هُمَا أَنَّهُ لَمْ يُحْرِمْ بِنَفْسِهِ وَلَا أَذِنَ لِغَيْرِهِ بِهِ)** د صاحبينو رحمهما الله لپاره دليل دا دې.چه ده نه پخپله احرام تړلې دې.اونه ئې حکم کړې دې بل چاته،په احرام (تړلو) سره، **(وَهَذَا لِأَنَّهُ لَمْ يُصَرِّحْ بِالْإِذْنِ وَالدَّلَالَةُ تَقِفُ عَلَى الْعِلْمِ)** اودا اجازت ځکه دې چې ده تصريح نه ده کړې په اجازت سره، **(وَجَوَازُ الْإِذْنِ بِهِ لَا يَعْرِفُهُ كَثِيرٌ مِنَ الْفُقَهَاءِ فَكَيْفَ يَعْرِفُهُ الْعَوَامُّ)** اوجواز د اجازت په احرام سره نه پيژنی دا (جواز) ډير د فقهاؤ رحمهم الله خنی،نوڅه رنګه به ئې اوپيژنی عام خلګ ،،، **(بِخِلَافِ مَا إِذَا أَمَرَ غَيْرَهُ بِذَلِكَ صَرِيحًا)** په خلاف دهغه صورت چې حکم اوکړی بل ته ،په دې (احرام تړلو) سره،په صراحت سره،

**تشريح:- دليل الصاحبين** رحمهما الله۞په مختلف فيه مسئله کې د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه دې کس نه خو په خپله احرام تړلې دې.اونه ئې بل ته حکم کړې دې.چه په خپله ئې احرام نه دې تړلې دا خبره خو ښکاره ده.پاتې شوه بل صورت چې بل چاته ئې هم اجازت نه دې ورکړې.ځکه اجازت خو يا صرحتاً وی اويا دلالة وی.دريم څه صورت نشته.اودلته دواړه قسمه اجازت نشته.اود صريحی اجازت خو ښکاره مفقود کيدل دی.ځکه چې ده په ښکاره الفاظوکې څوك خپل نائب نه دې جوړ کړې.اودلالة اجازت ځکه نشته.چه دلالت په علم موقوف وی.يعنی چې دا مسئله معلومه وی.چه د احرام تړلو لپاره په اجازت ورکولوسره احرام تړلې کيږی.اودا مسئله ډيرو فقهاؤ ته نه ده معلومه،نولاپاتې عوام.اوهرکله چې ورته د اجازت د جواز علم نه وی.نودلالة اجازت هم موجود نشو.اوهرکله چې نه صراحةً اجازت شته اونه دلالةً. نوګويا چې هډو د احرام تړلو اجازت موجود شوې نه دې.اوهرکله چې دده د اړخه اجازت نشته.نود نيابت په طور به د بل د اړخه دده

[1] القول الراجح هو هذا قول أبی حنيفة رحمه الله كذا فی فتح القدير(٢\٤٠٢) ورد المحتار(٢\٠٠٢) والبحرالرائق (٢\٩٤٣) نقلاً عن القول الراجح (١\٣١٢)_



لپاره احرام تړل څنګه معتبر شی.حاصل دا چې په دې صورت کې احرام تړل نه اصالة موجود شوی دی اونه نيابة،نودا کس محرم شمارلې هم نشی.اود ده د اړخه دبل کس احرام تړل به هم شرعاً ټيك نه وی.په خلاف دهغه صورت چې ده بل ته د خپل اړخه د احرام تړلوحکم کړې وی.ځکه چې په دې صورت کې اجازت موجود شوې دې.نوپه دې صورت کې به دده د نائب د اړخه احرام تړل جائز وی.

**(وَلَهُ أَنَّهُ لَمَّا عَاقَدَهُمْ عَقْدَ الرُّفْقَةِ فَقَدِ اسْتَعَانَ بِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ)** اودامام ابوحنيفه رحمه الله لپاره دليل دا دې.چه ده کله معاهده اوکړه دوی سره معاهده د ملګرتيا نويقيناً ده کومك واخستلو په هريوکس د دوی نه، **(فِيمَا يَعْجِزُ عَنْ مُبَاشَرَتِهِ بِنَفْسِهِ)** په هغه کارکې چې عاجز وی دې د کاوه د هغې نه په خپله، **(وَالْإِحْرَامُ هُوَ الْمَقْصُودُ بِهَذَا السَّفَرِ)** اوهم احرام مقصود دې په دې سفرکې ، **(فَكَانَ الْإِذْنُ بِهِ ثَابِتًا دَلَالَةً)** نو شو اجازت په دې سره ثابت دلالة

**تشريح:- دليل ابی حنيفة** رحمه الله۞دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه هرکله ده د سفرملګرو سره د سفر کاوه پروګرام برابرکړلو.نود سفر په ملګرو کې دهريوکس نه ده په هغه کار کې کومك اوغوښتلو.دکوم کار د کاوه نه چې دې عاجز شی.اود حج په سفر کې مقصودی شی احرام تړل دې.اود بيهوشۍ د امله دې د هغې نه عاجز هم دې.نولکه چې ده د احرام په تړلو کې دخپلو ملګرو نه دلالةً کومك غوښتې دې.نودلالةً د احرام تړلو اجازت موجود شو.

**(وَالْعِلْمُ ثَابِتٌ نَظَرًا إِلَى الدَّلِيلِ وَالْحُكْمُ يُدَارُ عَلَيْهِ)** او علم ثابت دې په نظرکولوسره دليل ته،اود حکم مدار په دليل وی.

**تشريح:- الجواب من دليل الصاحبين** رحمهما الله۞پاتې شوه دا خبره چې دلالت په علم موقوف وی.نوموږ وايو.چه دليل ته په نظر کاوه سره علم ثابت دې.يعنی دده په هرکار کې کومك غوښتل ددې خبرې دليل دې.چه ده ته ددې د جواز علم شته.بهرحال دليل ته په نظرسره علم حاصل دې.اودحکم مداريه دليل سره وی.نوثابته شوه چې ده ته علم حاصل دې.اوچه علم حاصل دې.نودلالةً اجازت هم حاصل شو

## د ښځې اود سړی په احکامو کې فرق

قَالَ **(وَالْمَرْأَةُ فِي جَمِيعِ ذَلِكَ كَالرَّجُلِ)** **(لِأَنَّهَا مُخَاطَبَةٌ)** فرمائی اوښځه په دې ټولو حکامو کې پشان دسړی ده.ځکه چې ښځه هم د سړو پشان د شرعی احکامو مخاطبه ده.

[**حل اللغة:** ① **لاتكشف، كشف، كشفًا** (ض): کولې وول ② **سدلت،سدل سدلاً** (ن، ض): کپړې زوړندول ③ **جافته، جاف، جوفًا**: جلا ساتل، کولې و ساتل ④ **استظلال**: سورې غوښتل ⑤ **يستر، استر،سترًا** (ن): پواړه ⑥ **نهی،نهيًا**: بندول، منع کول ⑦ **تلبس،لبسًا** (س): اغوستل ⑧ **مخيط**: ګنډلې شوې ⑨ **مماسة**: بدن سره نښليدل ]

**تشريح:- تسوية الرجل والمراة في احكام الحج**۞صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه ښځه دحج په ټولواحکامو کې د سړو پشان ده.ځکه چې د الله تعالی خطاب [**حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا**] ښځو اوسړو ټولو ته ګډ دې.نوکوم کارونه چې سړې کوی هغه به ښځه هم کوی.سوې د يو څو څيزونو نه،

**(غَيْرَ أَنَّهَا لَا تَكْشِفُ رَأْسَهَا)** **(لِأَنَّهُ عَوْرَةٌ)** **(وَتَكْشِفُ وَجْهَهَا)** البته دا چې دا به نه ښکاره کوی سرخپل،ځکه چې دا عورت دې.اوښکاره کوی به مخ خپل

**تشريح:- عدم تغطية وجهها**۞مثلاً دښځې لپاره د سرښکاره کول جائز نه دی.ځکه چې دښځې سر هم عورت دې.يعنی واجب الستر دې.بلکه ښځه به خپل مخ ښکاره ساتی.

**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ إِحْرَامُ الْمَرْأَةِ فِي وَجْهِهَا** }[1] د امله د قول د نبی ﷺ نه،چه احرام د ښځې ددې په مخ کې

[1] تقدم تخريجه فی باب الإحرام)_

دي. (وَلَوْسَدَلَتْ شَيْئًا عَلٰى وَجْهِهَا وَجَافَتْهُ عَنْهُ جَازَ) اوکه دي څه شی را زوړند کړلو په مخ باندي او لري ئي اوساتلو د مخ نه نوجائزده.) هَكَذَا رُوِيَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا رضي الله عنها هم دغه ډول روايت شوي دي د حضرت عائشي رضي الله عنها نه،

تشريح:- دلائله۞ځکه چي په حديث کي دی. چه د ښځي احرام ددي په مخ کښي وی. البته دا که ښځي په خپل مخ باندي کپړه يا بل څه شی زوړند کړلو. اوهغه ئي د مخ نه جلا اوساتلو. نوجائزده.

وَلِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْاِسْتِظْلَالِ بِالْمَحْمَلِ اوځکه چي دا د کجاوي نه د سيوری حاصلولو په مرتبه کي دي.

تشريح:- او دوهم دليل دا دي. چه داکالی وغيره زوړندول په کجاوي سره سيوری حاصلولو سره مشابه شو. اود کجاوي نه سيوری حاصلول جائزدي. نودغه ډول په دي سره هم سيوری حاصلول جائز شو.

وَلَا تَرْفَعُ صَوْتَهَا بِالتَّلْبِيَةِ لِمَا فِيهِ مِنَ الْفِتْنَةِ اوښځه به په تلبيه کي خپل آواز نه اوچتوی. ځکه چي په دي کي فتنه ده. (وَلَا تَرْمُلُ وَلَا تَسْعٰى بَيْنَ الْمِيلَيْنِ او رمل به نه کوی او په منډه به نه وهی په مينځ د ميلين اخضرين کي، لِأَنَّهُ مُخِلٌّ بِسَتْرِ الْعَوْرَةِ ځکه چي دا خلل راولی په پټولو د عورت کي،

تشريح:- عدم رفع الصوت بالتلبية والرمل والسعى۞اوښځه به د تلبيه وئيلو په مهال کښي آواز نه اوچتوی. ځکه چي د آواز په اوچتولو کي د فتني ويره ده. اوپه طواف کښي به رمل نه کوی. اود ميلين اخضرين په مينځ کي به منډه نه وهی. ځکه چي دا دواړه شيان (ځيزونه) د عورت په پټولو کي خلل پيدا کوی.

وَلَا تَحْلِقُ وَلٰكِنْ تُقَصِّرُ) اوښځه به ويخته نه خروی البته قصر به کوی. لِمَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى النِّسَاءَ عَنِ الْحَلْقِ ددي امله چي روايت شوي دي. چه نبي ﷺ منع کړي وي زنانه د خرائيلو نه اوحکم ئي کړي وو دوی ته د قصر کولو. وَأَمَرَهُنَّ بِالتَّقْصِيرِ() وَلِأَنَّ حَلْقَ الشَّعْرِ فِي حَقِّهَا مُثْلَةٌ كَحَلْقِ اللِّحْيَةِ فِي حَقِّ الرَّجُلِ اوځکه چي خرئيل د سر ددي په حق کي. پشان د ږيري خرائيلودی په حق د سړو کي،

تشريح:- عدم الحلق۞اوښځي به سرنه خروئی. بلکه قصربه کوی.

①دلائله۞ځکه چي دالله تعالیٰ رسول ﷺ ښځي حلق نه منع کړی دی. اود قصرحکم ئي ورته کړي دي. ② دوهم دليل دا دي. چه دښځو په حق کښي حلق مثله يعني ممنوع حده پوري د شکل خرابول دی. لکه څنګه چي د سړو لپاره د ږيري خرائيل مثله ده.

وَتَلْبَسُ مِنَ الْمَخِيطِ مَا بَدَا لَهَا) لِأَنَّ فِي لُبْسِ غَيْرِ الْمَخِيطِ كَشْفُ الْعَوْرَةِ (لکه څنګه چي د ږيري خرئيل دسړو لپاره مثله(منع) ده. دغه ډول د سرخرئيل د ښځو لپاره مثله(منع) ده. اواغوندی دي دګنډلو جامو نه کومي چي ئي خوښي وی. ځکه چي په اغوستلو د ناګنډلي شوي جامو کي ښکاره کيدل دعورت دی.

①تشريح:- لبس المخيط۞اوښځه دي د احرام په حالت کي ګنډلي شوي جامي اغوندی. ځکه چي د ناګنډلي شوو جامو په اغوستلو کي ښکاره کيدل دعورت دی. اوښکاره کول د عورت په شريعت کي ممنوع دي.

قَالُوا: وَلَا تَسْتَلِمُ الْحَجَرَ إِذَا كَانَ هُنَاكَ جَمْعٌ اونه دي ښکلوی حجراسود چي وی هلته کي ګڼړه، لِأَنَّهَا مَمْنُوعَةٌ عَنْ مُمَاسَّةِ الرِّجَالِ إِلَّا أَنْ تَجِدَ الْمَوْضِعَ خَالِيًا ځکه چي دا منع شوي ده د مس کاوه د سړو نه، البته دا چي اومومی

---

(1) غريه الزيلعى رحمه الله بهذا اللفظ ثم قال كأنه حديث مركب فنهى النساء عن الحلق يه أحاديث منها ما رواه الترمذى (فى الحج باب ۷۵ رقم ۹۱۴ والنسائى فى الزينة رقم ۳۷۶) ...عن على رضي الله عنه قال نهى رسول الله ﷺ أن تحلق المرأة رأسها .....وأما أمرهن بالتقصير فأخرجه ابوداود فى سننه (فى المناسک باب ۷۸ رقم ۱۹۸۴) ... أن إبن عباس رضي الله عنهما قال قال رسول الله ﷺ ليس عى النساء الحلق إنما على النساء التقصير، كذا فى نصب الرأية (۳/۱۱۱)_



خاني خالی (نوبيا حجر اسود ښکلولي شی)

تشريح:- عدم استلام الحجر۞اوښځه به د ګڼړوالي په حالت کي دحجر اسود ښکلو کوښښ نه کوی. ځکه چي په دي صورت کي د سړو د بدنونو سره ښبليدل دی. حالانکه سړو سره ښبليدل ممنوع دی. البته که خالی خائي وو. نوپه حجراسود ښکلولو کي څه قباحت نشته.

## هر ډول غاړه کئ اچول قائم مقام د تلبيه دي

قَالَ وَمَنْ قَلَّدَ بَدَنَةً تَطَوُّعًا أَوْ نَذْرًا (امام محمد رحمه الله په جامع صغيرکي) فرمائي چه کوم کس بدني ته غاړکئ واچوله. که نفلی وی، اوکه نذر وی. أَوْ جَزَاءَ صَيْدٍ أَوْ شَيْئًا مِنَ الْأَشْيَاءِ وَتَوَجَّهَ مَعَهَا اوکه جزاء د ښکار وی. اود په ځيزونو کي د بل څه شی وی. اوروان شی د بدني سره پخپله يُرِيدُ الْحَجَّ فَقَدْ أَحْرَمَ چي اراده ئي لرله د حج نو دي محرم شو.

حل اللغة* ① قلد، تقليداً: هاريا پټه اچول ② بدنة: د قربانئ خناور

تشريح:- صيرورة المحرم اذا ذهب الى مكة مع البدنة۞صورت د مسئلي دا دي که يوکس د قربانئ څاروی ته قلاده واچوله. بدنه نفلی وه. او که د نذر وه. يا چرته مخکي د ښکار کولوپه وجه د جرماني حيوان (څاروي) وی. يا دم د تمتع وغيره وی. او دا کس د حج په اراده خپلي بدني سره مکي مکرمي ته روان هم وی نو دي محرم شو. که په ژبه ئي تلبيه وئيلی وی. او که ئي نه وی وئيلي.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {مَنْ قَلَّدَ بَدَنَةً فَقَدْ أَحْرَمَ} (1) د امله د وينا د رسول الله ﷺ نه، چاچه غاړکئ واچوله بدني ته نو دي محرم شو. وَلِأَنَّ سَوْقَ الْهَدْيِ فِي مَعْنَى التَّلْبِيَةِ فِي إِظْهَارِ الْإِجَابَةِ اوبله دا چي غاړګئ اچول په معنی د تلبيه وئيلودی په ښکاره کاوه د اجابت کي، لِأَنَّهُ لَا يَفْعَلُهُ إِلَّا مَنْ يُرِيدُ الْحَجَّ أَوِ الْعُمْرَةَ ځکه چي نه کوی دا (کار د غاړکئ اچولو) مګرهغه څوک چي اراده لری د حج، اويا دعمري، وَإِظْهَارُ الْإِجَابَةِ قَدْ يَكُونُ بِالْفِعْلِ كَمَا يَكُونُ بِالْقَوْلِ اواظهار د اجابت کله کيږی په فعل سره لکه څنګه چي کيږی په قول سره، فَيَصِيرُ بِهِ مُحْرِمًا لِاتِّصَالِ النِّيَّةِ بِفِعْلٍ نوګرځی په دي (تقليد) سره محرم، د امله د اتصال د نيت ددي سي فعل سره وَهُوَ مِنْ خَصَائِصِ الْإِحْرَامِ چه هغه د خصوصياتو د احرام څني دي.

حل اللغة* ① سوق: دروستونه ترټل

تشريح:- دلائله۞رومبی دليل د رسول الله ﷺ ارشاد دي. «من قلد بدنه فقد احرم» دوهم دليل دادي. چه د ابراهيم عليه السلام د دعاء د قبوليت په ځواب ورکولوکي هديه روانول، د تلبيه په معنی کي دی. ځکه چي د هدي بيولو (بوتللو) عمل هغه کس کوی. څوک چي دحج ياعمره اراده لری. د قبوليت اظهار لکه څنګه چي په قول يعني په تلبيه سره کيږی. دغه ډول په سوق، يعني په هدي سره هم کيږی. په دي وجه داکس په هدي روانولو سره محرم کيږی. ځکه چي نيت د حج په دي سي فعل سره متصل شوي دي. کوم فعل چي د احرام د خصوصياتو څني دي

وَصِفَةُ التَّقْلِيدِ أَنْ يَرْبِطَ عَلٰى عُنُقِ بَدَنَتِهِ قِطْعَةَ نَعْلٍ اوطريقه د غاړکئ اچولو دا ده. چه اوتړی په څټ د بدني پوري څه برخه د پڼري (ياڅپلی) أَوْ عُرْوَةَ مَزَادَةٍ أَوْ لِحَاءَ شَجَرَةٍ ياد لوټي لاستي (لاسکي) يا د پوست د ووني.

حل اللغة* ① يربط، ربطاً (ض،ن): تړل ② قطعة: ټکړه ③ عروة: لوټه ④ لجاء: پوست

تشريح:- صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. د تقليد صورت دادي. چه د بدنه په غاړه کي د چمپلان ټکړه يا د لوټي

---

(1) قال الزيلعى رحمه الله غريب مرفوعاً ووقفه ابن ابى شيبة فى مصنفه على ابن عباس وابن عمر رضي الله عنهم كذا فى نصب الرأية (۳/۱۱۱)_

لاستې (لاسكې) يا د ونې پوټ واچوي.

## د جلاله ،اشعار اوقلادهٔ په اچولو محرم نه ګرځېدل

فَإِنْ قَلَّدَهَا وَبَعَثَ بِهَا وَلَمْ يَسُقْهَا لَمْ يَصِرْ مُحْرِمًا كه دې ته ئې غاړكئ واچوله.اودا ئې اوليږله.خو په خپله ورسره لانړل.نومحرم نه ګرځي.

تشريح:- صورت د مسئلې دا دې.كه يوكس د هدي څاروى ته قلاده واچوله.اومكې اړخ ته ئې اوليږله.خودا ئې په خپله نه وى شړلې.نو په دې صورت كې دې نه محرم كيږى.

لِمَا رُوِيَ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ: كُنْتُ أَفْتِلُ قَلَائِدَ هَدْيِ رَسُولِ اللَّهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د دې امله چې روايت شوې دې دحضرت عائشې رضي الله عنها نه چې فرمائي چه ما به د رسول الله هدى ته غاړكئ اچوله. فَبَعَثَ بِهَا وَأَقَامَ فِي أَهْلِهِ حَلَالًا بيا نبى [1] هدى اوليږله.اوبه خپله په خپل كوركې په حلال حالت كې پاتې شو.

حل اللغة* ① اقتل، قتلاً (ض): رسئى غښتل ② قلائد: هار، پټه ③ فبعث، بعث بعثًا (ن): ليګل

تشريح:- دليله ﷺ دليل دحضرت عائشې رضي الله عنها دليل دې.چه ما به د رسول الله ﷺ د هدى لپاره قلاده جوړوله .او نبى ﷺ به د هدى څارولې ليږلو.اوپه خپله به ئې په كور كې په حالت د حلالوالى كې قيام كولو.ددې نه معلومه شوه.چه د محرم لپاره صرف د هدى حيوان (څاروې) ليګل كافى نه دى.بلكه دا په خپله باندې بوتلل ضرورى دى.

فَإِنْ تَوَجَّهَ بَعْدَ ذَلِكَ لَمْ يَصِرْ مُحْرِمًا حَتَّى يَلْحَقَهَا بيا كه ددې نه روسته په خپله هم متوجه شو.نومحرم نه ګرځي.تردې چې هدى سره ملاؤ شي. لِأَنَّ عِنْدَ التَّوَجُّهِ إِذَا لَمْ يَكُنْ بَيْنَ يَدَيْهِ هَدْيٌ يَسُوقُهُ ځكه چې د روانيدو په وخت كې چې ده سره هدى نه وه چې وې شړى. لَمْ يُوجَدْ مِنْهُ إِلَّا مُجَرَّدُ النِّيَّةِ نو دده داړخه سوې د نيت نه بل څه موجود نشو. وَبِمُجَرَّدِ النِّيَّةِ لَا يَصِيرُ مُحْرِمًا اوصرف په نيت كولو سره محرم نه ګرځي.

حل اللغة * ① يلحق، لحق لحوقًا (س): ملاويدل، لاحق كيدل

تشريح:- اوكه د هدى څاروى ليږلو نه روسته په خپله روان شو.نوصرف په روانيدو (چه هدى ورسره نه وى) محرم نه ګرځي.بلكه محرم به په هغه صورت كې ګرځي.چه په خپله روان شي.اوهدى رالاندې كړى.ځكه چې دده د روانيدو په وخت كې ده سره هدى نه وه.چه هغه ئې روانه كړې وې.اوهركله چې ده سره هدى نه وه.نودده د اړخه صرف نيت موجود شو. اوصرف په نيت سره محرم نه ګرځي. ترڅو چې ورسره د هدى حيوان (څاروې) نه وى.

فَإِذَا أَدْرَكَهَا وَسَاقَهَا أَوْ أَدْرَكَهَا نوكله چې ئې رالاندې كړى.اووې شړى. فَقَدِ اقْتَرَنَتْ نِيَّتُهُ بِعَمَلٍ هُوَ مِنْ خَصَائِصِ الْإِحْرَامِ نودده نيت د داسې عمل سره يوځائې شو.چه هغه د احرام د خصوصياتوځنې دې. فَيَصِيرُ مُحْرِمًا كَمَا لَوْ سَاقَهَا فِي الِابْتِدَاءِ نومحرم به ګرځي.لكه څنګه چې په اول كې هدى اوشړى.

حل اللغة* ① اقترنت، اقترن اقترانًا: ملاويدل

تشريح:- البته دا چې د هدى حيوان (څاروې) ئې رالاندې كړلو.اوهغه ئې روان كړلو.نودده نيت چونكه د داسې عمل سره يوځاې شو.كوم چې د احرام د خصوصياتو ځنى دې.نوځكه په دې عمل سره هغه محرم ګرځي.لكه څنګه كه ئې په اول كې هدى روانه كړې وې.(اودې ورسره په خپله وو.) په هغې سره به محرم ګرځيدلو.

---

[1]) أخرجه البخارى فى الحج باب ١١٠ ومسلم فى الحج رقم ٣٦٥ وأبوداود فى المناسك رقم ١٧٥٥ والترمذى فى الحج باب ٧٠ رقم ٩٠٩ والنسائى فى المناسك رقم ٢٦٠٥ وابن ماجه فى المناسك رقم ٣٠٩٦)_



قَالَ إِلَّا فِي بَدَنَةِ الْمُتْعَةِ فَإِنَّهُ مُحْرِمٌ حِينَ تَوَجَّهَ فرمائي.(امام محمد) البته صرف د بدنه په هدى كې.ځكه چې دا څنګه روانه شي.نومحرم ګرځي. مَعْنَاهُ إِذَا نَوَى الْإِحْرَامَ وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ مراد دا دې.چه كله د احرام نيت اوكړى.اودا استحسان دې. وَجْهُ الْقِيَاسِ فِيهِ مَا ذَكَرْنَا اود قياس وجه په دې كې هغه ده.كومه چې موږ بيان كړې ده.

حل اللغة* ① توجه، توجهًا: متوجه كيدل

تشريح:- الحكم الاستثنائى من محمد رحمه الله ﷺ امام محمد رحمه الله يواستثنائى صورت بيان كړې دې.اوفرمائيلى ئې دى چې د تمتع نه علاوه د نورو بدنو حكم دا دې.كه هدى اوليږى.اوپه خپله وريسې روستو روستو روان شي.نوچه دې څنګه روان شى.محرم شو.خوچه د احرام نيت ئې هم كړې وى.دا حكم استحساني دې.ګني قياس هم هغه دې.كوم چې موږ د نورو هدايو دڅاروو بيان كې ذكر كړو . او د هغې وجه مو هم بيان كړه.

وَوَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ هَذَا الْهَدْيَ مَشْرُوعٌ عَلَى نُسُكٍ مِنْ مَنَاسِكِ الْحَجِّ وَضْعًا لِأَنَّهُ مُخْتَصٌّ بِمَكَّةَ اووجه داستحسان دا ده چه دا هدى د پيل نه د حج په مناسكوكې يومنسك مقرر شوې دې.ځكه چې دا هدى دمكې پورې خاص ده. وَيَجِبُ شُكْرًا لِلْجَمْعِ بَيْنَ أَدَاءِ النُّسُكَيْنِ اودوې [دوه] نسكه (حج اوعمره) جمع كولو د شكريه په طورواجب دى. وَغَيْرُهُ قَدْ يَجِبُ بِالْجِنَايَةِ وَإِنْ لَمْ يَصِلْ إِلَى مَكَّةَ اوهدى تمتع كله د جنايت په وجه هم واجبيږى.اګرچه مكې ته اونه رسى. فَلِهَذَا اكْتَفَى فِيهِ بِالتَّوَجُّهِ د دې امله په هدى تمتع كې په توجه باندې اكتفاء اوكړې شوه. وَفِي غَيْرِهِ تَوَقَّفَ عَلَى حَقِيقَةِ الْفِعْلِ اودتمتع نه په سوې كې په حقيقت فعل باندې موقوف كړې وه.

حل اللغة* ① مناسك: دحج اركان ② لم يصل، وصل وصولاً: رسيدل، ملاويدل ]

تشريح:- د استحسان وجه دا ده.چه د تمتع هدى دشريعت د اړخه د حج په افعالوكې يوفعل دې دحج فعل ځكه دې.چه دا هدى دمكې سره خاص ده.اوعمره او حج د دواړوپه جمع كاوه باندې د شكر په طور دا واجب ده.اود هدي تمتع نسه علاوه كله د جنايت په وجه واجبيږى.اګرچه هغه مكې ته اورسيږى يعنى د جنايت وغيره د امله چې كومه هدى واجبيږى.هغه د مكې د خصوصياتوځنې نه ده.ددې توپير د وجې ئې په تمتع كې صرف په روانيدو اكتفاء كړې ده.اوددې نه علاوه په نورو هدايا كې حقيقت فعل يعنى سوق هدى باندې ئې موقوف كړې ده.

## دهدي سربيره څل اچول

فَإِنْ جَلَّلَ بَدَنَةً أَوْ أَشْعَرَهَا أَوْ قَلَّدَ شَاةً كه چا د بدنې سربيزه پټو (څادر) واچولو.يا ئې دهغې شعار اوكړلو.يا ئې غاړكئ واچوله ګډې ته، لَمْ يَكُنْ مُحْرِمًا نو نه ګرځي محرم

حل اللغة* ① جلل، تجليل: تال اچول ② اشعر، اشعارًا: د اوبښ قوب څيرل ③ قلد: هار، پټه ④ الحر: ګرمي

تشريح:- الصورالتى لايصيرفيهامحرماً ﷺ اشعاردې ته وائي چه بوق ورله زخمى كړى.اووينه ترې راوباسي .مسئله دا ده.كه يوكس په بدنه كپړه واچوله.يا ئې اشعار اوكړلو.يعنى د هغه بوق ئې څيرې كړلو.او وينه ئې ترې راؤيستله.يا ئې وزه ته غاړكئ واچوله.نوپه دې صورتونوكې محرم نه ګرځي.اګرچه د احرام نيت ئې كړې وى.

لِأَنَّ التَّجْلِيلَ لِدَفْعِ الْحَرِّ وَالْبَرْدِ وَالذُّبَابِ ځكه چې د څاروى سربيره پټو (څادر) اچول د لرې كاوه د ګرمئ اويخنئ اومچانو لرې كاوه لپاره وى. فَلَمْ يَكُنْ مِنْ خَصَائِصِ الْحَجِّ اونونشو د خصوصياتو د حج ځنې.

حل اللغة* ① البرد: يخوالې ② الذباب: مچ ]

تشريح:- دليله ﷺ ځكه چې په څاروو باندې كپړه اچول كله د يخنئ ګرمئ اومچانونه د ساتنه لپاره وى.نودا عمل دحج دخصوصياتوځنې نشو.حالانكه د احرام هغه نيت معتبر دې.چه د داسې فعل سره متصل شي.چه هغه د حج د خصوصياتو ځنې وى.

## د اشعار حكم

وَالْإِشْعَارُ مَكْرُوهٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالَى او اشعار مكروه دي په نيز د امام ابوحنيفه رحمه الله فَلَا يَكُونُ مِنَ النُّسُكِ فِي شَيْءٍ. نو نه كيږي د مناسك دحج څخه په هيڅ عمل كي،

**تشريح:- وجه عدم صيرورة المحرم عند ابى حنيفة رحمه الله** ۞ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چه په اشعار سره محرم نه ګرځي. ځكه چي اشعار د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز مكروه دي. او كوم شى چي مكروه وى. نو هغه مناسك څخه كيداى شي. او چه د مناسك حج څخه نشو. نو د احرام نيت د مناسك حج سره متصل نشو. او هر كله چي نيت د مناسك حج سره متصل نشو. نو محرم نه ګرځي.

وَعِنْدَهُمَا إِنْ كَانَ حَسَنًا فَقَدْ يُفْعَلُ لِلْمُعَالَجَةِ او په نيز د صاحبينو رحمهما الله اګرچه اشعار ښه (عمل) دي. (خو دا دحج دخصوصياتو څخه نه دي) ځكه چي كله كولاى شى د علاج د پاره، بِخِلَافِ التَّقْلِيدِ لِأَنَّهُ يَخْتَصُّ بِالْهَدْيِ په خلاف د غاړكۍ اچولو. ځكه چي دا خاص دي په هدى پورې، «وَتَقْلِيدُ الشَّاةِ غَيْرُ مُعْتَادٍ وَلَيْسَ بِسُنَّةٍ أَيْضًا او وزه ته غاړكۍ اچول معتاد نه دى. او سنت هم نه دي. (نو ددې په تقليد سره هم محرم نه ګرځي)

**حل اللغة** ۞ ① **معالجة**: دارو درمل

**تشريح:- وجه عدم صيرورة المحرم عند الصاحبين رحمهما الله** ۞ او د صاحبينو رحمهما الله په نيز اګرچه اشعار مستحسن (ښه) دي. او مكروه نه دي. خو دا دحج د خصوصياتو څخه نه دي. ځكه چي اشعار كله د علاج لپاره هم كولي شي. نو هر كله چي اشعار د صاحبينو رحمهما الله په نيز هم اشعار د حج دخصوصياتو څخه نشو. نو په دې سره محرم نه ګرځي.

**السوال** ۞ په خلاف د غاړكۍ اچولو چونكه هغه د حج د افعالو سره خاص دي. د بل غرض او مقصد لپاره نه كيږي. او س پاتې شوه دا خبره چي هر كله تقليد دحج احكامو پورې خاص دي. نو پكار ده چي وزه ته غاړكۍ اچولو سره محرم ګرځيدلو. حالانكه د وزه په مقلد كولو باندې هم محرم نه ګرځي.

**الجواب** ۞ نو ځواب دا دي. چه وزه ته غاړكۍ اچول معتاد نه دى. (يعنى د خلګو په عادت كي نشته) او سنت هم نه دى. (ځكه چي نبي ﷺ وزه ته غاړكۍ نه ده اچولې) بلكه تقليد صرف د بدنه يعنى د اوښ او غوې سره مخصوص دي. نو ځكه وزه ته غاړكۍ اچولو سره نه محرم كيږي.

## د بدني اجناس

قَالَ (وَالْبُدْنُ مِنَ الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ) (امام محمد رحمه الله) فرمائي او بدنه د اوښانو، او غواګانو څخه ده.

**تشريح:- المذهبان في جواز البقر في الهدى** ۞ ماتن يعنى امام محمد رحمه الله فرمائي. چه د بدنه اطلاق په اوښ او غوې دواړو باندې كيږي.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ: مِنَ الْإِبِلِ خَاصَّةً او فرمائي امام شافعي رحمه الله چي د اوښانو نه خاص كړ، لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي حَدِيثِ الْجُمُعَةِ {فَالْمُتَعَجِّلُ مِنْهُمْ كَالْمُهْدِي بَدَنَةً، وَالَّذِي يَلِيهِ كَالْمُهْدِي بَقَرَةً} د امله د حديث د نبي ﷺ نه په حديث د جمعه كي نو تلوار كونكي (د جمعي لمونځ ته) په دوى كي پشان د هدى ليږلو دي (په حج كي) په بدنې سره، فَصَلَ بَيْنَهُمَا[1] او هغه كس چي نزدې وى ده ته (په تلو كي جمعي ته) پشان د هدى ليږونكى د غوې دي. فَصَلَ بَيْنَهُمَا (نبي ﷺ) جدائي راوستلې ده په دې دواړو كي،

**حل اللغة** ۞ **حل اللغة** ۞ ① **مستعجل**: زر صفا كونكي

[1]) من حديث أبى هريرة رضى الله عنه أخرجه البخارى فى الجمعة باب ٤ ومسلم فى الجمعة رقم ١٠ وأبوداود فى الطهارة باب ١٢٧ والترمذى فى الجمعة باب ٦ والنسائى فى الجمعة باب ١٤ ومال فى المؤطا فى الجمعة رقم ٥ وأحمد فى المسند (٤٦٠/٢)۔



**تشريح:-** او امام شافعي رحمه الله فرمائي. چه صرف په اوښ باندې كيږي.

**دليله** ۞ د امام شافعي رحمه الله دليل حديث د جمعي دي. په هغې كي فرمائيلې شوي دي. چي كوم كس د جمعي لمانځه ته دوختنه لاړ شي. نو هغه ته دومره ثواب ملاويږي. لكه څنګه چي څوك مكې ته بدنه اوليږي. او څوك وروسته روستو متصل لاړ شي. نو هغه ته دومره ثواب ملاويږي. لكه څوك چي مكې ته غوې اوليږي. په دې حديث كي د بدنه او غوې په مينځ كي توپير شوې دي. نو معلومه شوه. چه بدنه د غوې نه علاوه بل څه شي دي.

وَلَنَا أَنَّ الْبَدَنَةَ تُنْبِئُ عَنِ الْبَدَانَةِ وَهِيَ الضَّخَامَةُ او زمونږ دليل دا دي. چه بدنه خبردارې وركوى د بدانة نه. او بدانة غټوالى ته وائي. «وَقَدِ اشْتَرَكَا فِي هٰذَا الْمَعْنَى او يقيناً دا دواړه (اوښ او غوا) شريك دي په دې معنى (د غټوالى) كي، وَلِهٰذَا يُجْزِي كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَنْ سَبْعَةٍ او ددې امله جائز دي هر يو ددې دواړو (اوښ او غوا) څخه د اووه كسانو نه

**حل اللغة** ۞ ① **تنبئ، انبياءً**: خبرور كول ② **اشتركا، اشتراكًا**: شريكيدل ]

**تشريح:- دليل الاحناف رحمهم الله** ۞ زمونږ دليل دا دي. چه د بدنه لغوى معنى د بدانت يعنى غټوالى نه ماخوذ ده. مطلب دا چي څرب څاروى ته بدنه وائي. او دا معنى په اوښ او غوې دواړو كښې موجود ده. نو د بدنه اطلاق په دې وړو باندې كيږي. هم دا وجه ده. چه په قربانۍ كي په اوښ او غوې دواړ كي هر يو د اووه كسانو لپاره كافي كيږي. (كه اووه نفر په يو اوښ يا يوه غوې كي شريك شي. نو قرباني ئې صحيح كيږي. داسې نه ده چي په اوښ كي صحيح كيږي او په غوې كښي نه صحيح كيږي)

وَالصَّحِيحُ مِنَ الرِّوَايَةِ فِي الْحَدِيثِ {كَالْمُهْدِي جَزُورًا}[1] وَاللّٰهُ تَعَالَى أَعْلَمُ او صحيح د روايت څخه په حديث كي دا دى. (تلوار كونكي جمعي ته) پشان د ليږونكى د اوښ دي. والله اعلم بالصواب

**تشريح:- الجواب من مستدل الشافعي رحمه الله** ۞ امام شافعي رحمه الله چي كوم حديث پيش كړې دي. د هغې نه ځواب دا دي. چه په صحيح روايت كښې د «كالمهدى بدنة» په ځائې «كالمهدى جزورا» دي. او جزور اوښ ته وائي. يعنى كوم كس چي اول جامع جمات ته لاړلو. نو هغه ته به د اوښ د قربانى كاوه ثواب ملاويږي. او چه څوك وروسته لاړلو. نو هغه ته به د غوې د قربانۍ ثواب ملاويږي.

## باب القران

دا باب د (حج) قران په بيان كي دي.

**تشريح:- الربط بما قبله** ۞ مصنف رحمه الله د حج مفرد د احكامو نه فارغ شو. نو اوس به د حج مركب يعنى قران او تمتع بيان كوى. خو چونكه زمونږ په نيز حج قران د حج تمتع نه افضل دي. ځكه د حج قران احكام وړاندې بيانولې شي.

**الاقسام الاربعة للمحرم** ۞ دا ياد ساتئ چي د محرم څلور قسمونه دى. ① مفرد بالحج د كوم بيان چي په وړاندې باب كي تيرشوې دي. ② مفرد بالعمره څوك چي په زړه كي د عمرې نيت اوكړي. او تلبيه د عمرې اووائى. او بيا د عمرې افعال ادا كړي. ③ قران قارن هغه دي چي دحج او عمرې دواړو لپاره نيت اوكړي. او بيا بغير د احرام پرانستلو نه حج اوكړي. ④ تمتع حاجى متمتع هغه دي. چه هغه د عمرې احرام اوتړي. او عمره ادا كړي. بيا هم په دغه كال دحج په موسم كي دحج لپاره احرام اوتړي. او دحج افعال ادا كړي.

[1]) قال الزيلعى رحمه الله قلت هذه اللفظة وإن كانت فى مسلم ولكن رواية البدنة أصح لاتفاقهم عليها فليس كما قال المنصف رحمه الله ثم ذكر لفظ مسلم (كذا فى نصب الرأية ١١٤/٣)۔

## د حج قران افضلیت

**الْقِرَانُ أَفْضَلُ مِنَ التَّمَتُّعِ وَالْإِفْرَادِ** قران غوره دې د تمتع او افراد نه، **وَقَالَ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللَّهُ: الْإِفْرَادُ أَفْضَلُ** اوفرمائی امام شافعی رحمه الله چې افراد غوره دې. **وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللَّهُ: التَّمَتُّعُ أَفْضَلُ مِنَ الْقِرَانِ** اوفرمائی امام مالك رحمه الله چې تمتع غوره دې.د قران نه،

**حل اللغة:** ① **قران:** دَ حج يو ډول

**تشريح:- الاقسام الثلاثة للحج**۞د محرم بالحج درې قسمونه دی.①مفرد بالحج ② قارن ③ متمتع

**المذاهب الثلاثة في الافضلية**۞ددې په افضلیت کې اختلاف دې.①زموږ په نیز قران افضل دې.② دامام شافعی رحمه الله په نیزافراد افضل دی.اودامام مالك رحمه الله په نیزتمتع افضل دې.

**لِأَنَّ لَهُ ذِكْرًا فِي الْقُرْآنِ وَلَا ذِكْرَ لِلْقِرَانِ فِيهِ**}.ځکه چې ددې ذکر راغلې دې په قران کې ،اونشته ذکر د قران لپاره په قرآن پاك کې ،

**تشريح:- دليل مالک** رحمه الله ۞دامام مالك رحمه الله دلیل دا دې.چه د تمتع ذکر په قران پاك کې دې.اود نورو دوو قسمونوذکر نشته.اودکوم شی ذکرچه په قرآن پاك کې وی.هغه به افضل وی.هغې ته په نسبت سره کوم چې په قرآن پاك کې ذکر نه وی.

**وَلِلشَّافِعِي قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {الْقِرَانُ رُخْصَةٌ**([1]) اودامام شافعی رحمه الله لپاره دلیل قول د نبی ﷺ دې.قران رخصت دې.

**تشريح:- دلائل الشافعی** رحمه الله ۞اودامام شافعی رحمه الله دلیل ①دحضرت عائشې حدیث دې.چه قران رخصت دې او افراد عزیمت دې.اوښکاره ده چې عزیمت باندې عمل کول غوره دی په نسبت سره رخصت باندې د عمل کاوه نه،نوثابته شوه چې افراد افضل دې.

**وَلِأَنَّ فِي الْإِفْرَادِ زِيَادَةَ التَّلْبِيَةِ وَالسَّفَرِ وَالْحَلْقِ** اوبله دا چې په افراد کې زیادت دَ تلبیه اود سفر اود حلق دې.(اوزیادت د افعالو موجب د زیادت د ثواب دې)

**تشريح:-** بله دا چې په افراد کې تلبیه سفراوحلق درې واړو زیادت دې.(هغه داسې چې قارن د حج او عمرې دواړو لپاره يوه تلبیه يو سفر اویوځل حلق کوی.اومفرد ځانله د حج لپاره تلبیه وائی.سفر کوی او حلق کوی.یعنی د قران په صورت کې درې واړه شیان (څیزونه ) حج اوعمرې دواړو ته منقسم کیږی.اود افراد په صورت کې نه منقسم کیږی.

**وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {يَا آلَ مُحَمَّدٍ أَهِلُّوا بِحَجَّةٍ وَعُمْرَةٍ مَعًا** ①اوزموږ لپاره دلیل قول د نبی ﷺ دې اې اولاده د محمد احرام اوتړئ په حج اوعمرې دواړو سره یوځاې.

**تشريح:- دلائل الاحناف** ① ۞ رحمهم الله اوزموږ دلیل دا دې.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی.اې د محمد اولاده! تاسو حج اود عمرې احرام په یوځائې تړئ.(غوراوکړئ د الله تعالی پیغمبر خپل اهل عیال ته د حج او عمرې دواړو په یوځائې د احرام تړلو حکم کړې دې.اودواړو لپاره په یوځائې احرام تړل قران دې.اودا هم ښکاره ده.چه پیغمبر ﷺ خپل اولاد ته د افضل شی حکم کوی دمفضول شی حکم نه کوی.نوثابته شوه چې قران افضل دې

**وَلِأَنَّ فِيهِ جَمْعًا بَيْنَ الْعِبَادَتَيْنِ** اوبله دا چې په دې کې جمع ده په مینځ د دوو عبادتونو، **فَأَشْبَهَ الصَّوْمَ مَعَ الِاعْتِكَافِ** نومشابه شو د روژې سره د اعتکاف نه، **وَالْحِرَاسَةِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ مَعَ صَلَاةِ اللَّيْلِ** اود څوکۍ په لار دالله تعالی کې سره د لمونځ دشپې،

[1]) قال الزيلعی غريب جدا )



**حل اللغة:** ① **فاشبه، اشبه اشباهاً:** مشابه کیدل

**تشريح:-** دوهم دلیل دا دې.چه د قران په صورت کې حج او عمره دواړه عبادتونه جمع کیږی.نودا داسې شوه لکه چې یوکس په رمضان کې روژه او اعتکاف دواړه جمع کړی،اویوکسدجهاد په ډګر کې د تهجدو لمونځ او داسلامی لښکرڅوکۍ دواړه کوی.

**غَيْرُ مَحْصُورَةٍ وَالسَّفَرُ غَيْرُ مَقْصُودٍ**، اوتلبیه بیشمیره ده.اوسفر غیرمقصود دې **وَالتَّلْبِيَةُ وَالْحَلْقُ خُرُوجٌ عَنِ الْعِبَادَةِ فَلَا تَرْجِيحَ بِمَا ذُكِرَ**.اوحلق خروج دې د عبادت نه، نوترجیح نشی موندلې په هغه څه سره چې ذکر کړی دی امام شافعی رحمه الله

**تشريح:- الجواب عن الدليل العقلی للشافعی** رحمه الله ۞دامام شافعی رحمه الله د عقلی دلیل نه ځواب دا دې.چه د تلبیه څه مقدار مقرر نه دې.نوقارن له پکار دی.چه د مفرد په مقابله کې تلبیه زیاته وائی.اوپاتې شو سفر نوهغه مقصود نه دې.بلکه دا خو دحج ادا کاوه یوه وسیله ده.نوځکه سفر وجه دترجیح نشی جوړیدې.اوپاتې شوحلق نودا في نفسه عبادت نه دې.بلکه د عبادت نه وتل دی.نوځکه حلق هم وجه د ترجیح نه ده.

**وَالْمَقْصُودُ بِمَا رُوِيَ نَفْيُ قَوْلِ أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ** اومقصود په هغه څه چې ذکر کړې ئې دی نفی د قول د اهل جاهلیت ده. **إِنَّ الْعُمْرَةَ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ مِنْ أَفْجَرِ الْفُجُورِ**([1]) چې عمره په زمانه د حج کې دَ لوې ګناهونو څنې ده.

**حل اللغة:** ① **فجور:** ګناه،نافرمانی

**تشريح:- الجواب عن الدليل النقلی للشافعی** رحمه الله ۞دامام شافعی رحمه الله د اړخه د بیان شوی حدیث نه ځواب دا دې.چې په حدیث کې د قران رخصت اود افراد عزیمت بیانول مقصود نه دی.بلکه د جاهلیت د زمانې د یوې غلطې عقیدې تردید مقصود دې.دهغوی عقیده دا وه.چه د حج په زمانه کې عمره کول ډیره لویه ګناه ده.نودالله تعالی رسول د هغوی د دې عقیدې تردید اوکړلو.چه قران رخصت اسقاط دې.او رخصت اسقاط په دې شریعت کې عزیمت شمارلې شی.نوهرکله چې د قران اجازت دې.نولکه چې د حج په ورځو کې دعمرې هم اجازت شته.

**وَلِلْقِرَانِ ذِكْرٌ فِي الْقُرْآنِ** اود قران لپاره ذکر شته په قرآن کې ، **لِأَنَّ الْمُرَادَ مِنْ قَوْلِهِ تَعَالَى {وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ}** ځکه چې مراد د قول د الله تعالی نه چې «{وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ}» **أَنْ يُحْرِمَ بِهِمَا مِنْ دُوَيْرَةِ أَهْلِهِ عَلَى مَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ** چې احرام اوتړی په دې دواړو سره د خپلو کورونو نه،بیا په هغه چې موږ روایت کړې دې وړاندې،

**حل اللغة:** ① **دويرة:** دَ دار **تصغير:** کور

**تشريح:- الجواب عن دليل مالک** رحمه الله ۞صاحب دهدایه رحمه الله د امام مالك رحمه الله د دلیل ځواب ورکوی اوفرمائی.چه د دوی دا قول چې د حج قران په قرآن پاك کې ذکر نشته.غلط دې.ځکه چې د الله تعالی په دې قول کې چې {**وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ**}هم دا مراد دې.چه د حج اوعمرې دواړو لپاره احرام دخپلو خلګو د کورونو نه تړئ.اود حج او عمرې دواړو لپاره په یوځل احرام تړل نه دې مګرقران دې.

**ثُمَّ فِيهِ تَعْجِيلُ الْإِحْرَامِ** بیا په دې کښې تلوار ته احرام تړلو تـه، **وَاسْتِدَامَةُ إِحْرَامِهِمَا مِنَ الْمِيقَاتِ إِلَى أَنْ يَفْرُغَ مِنْهُمَا** اوپاته پاتې کول دی د احرام ددې دواړو د میقات نه،تردې چې فارغ شی د دې دواړو نه، **وَلَا كَذَلِكَ التَّمَتُّعُ فَكَانَ الْقِرَانُ أَوْلَى مِنْهُ** اونه دې داسې حج تمتع،نوشو قران افضل ددې (تمتع) څنې.

**حل اللغة:** ① **ان يفرغ، فرغ فراغة** (ف): اوزګاریدل ]

**الوجهان لترجيح القران**۞ ①صاحب دهدایه رحمه الله وجه د ترجیح دا بیانوی.چه د قران په صورت کې د حج

[1]) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه البخاری فی الحج با ب ١٦ كذا مسلم نصب الرأية ١٢١/٣)_

تعجيل دي. ځكه چې د حج احرام ورسره تړلي شي. اود نيكۍ په كارونو كي تعجيل صفت محموده دي. ② دويمه وجه د ترجيح دا ده. چې د قران په صورت كي د ميقات نه واخله تر د دواړو افعالو پوره كاوه پورې په احرام كي پاتې كيږي. اوددې په خلاف په حج تمتع كي د عمرې د افعالو كاوه نه روسته د احرام نه خارجيږي. اود احرام استدامت هم محمود صفت دي. ځكه قران د تمتع نه غوره دي.

| |
|---|
| وَقِيلَ الِاخْتِلَافُ بَيْنَنَا وَبَيْنَ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللَّهُ او وئيلي شوي دي. چه اختلاف په مينځ زمونږ او د امام شافعي رحمه الله كي بِنَاءً عَلَى أَنَّ الْقَارِنَ عِنْدَنَا يَطُوفُ طَوَافَيْنِ بنا دې په دې چې قارن به طواف كوي دوې [دوه] طوافونه وَيَسْعَى سَعْيَيْنِ، وَعِنْدَهُ طَوَافًا وَاحِدًا وَسَعْيًا وَاحِدًا اوسعى به كوي دوې [دوه] سعى، اوپه نيز د امام شافعي رحمه الله به طواف كوي يو طواف، اوسعى يوه (به كوي) |

**بناء الاختلاف عندالبعض**﴿بعضې حضراتو فرمائيلي دي. چه دا اختلاف چې د احنافو رحمهم الله په نيز قران افضل دې اود امام شافعي رحمه الله په نيز افراد افضل دې. په دې باندې مبنى دې. چه قارن به د حج اوعمرې لپاره دوې [دوه] طوافونه او دوې [دوه] سعى كوي. اودامام شافعي رحمه الله په نيز به د دواړو لپاره يو طواف اويوسعى كوي. يعنى په طواف او سعى كي به تداخل وي. نود دواړو په جمع كاوه كي د امام شافعي رحمه الله د مذهب مطابق افعالو كي نقص راځي. په نسبت سره دې ته چې دهريو لپاره جلا جلا طواف اوسعى اوشي. د دې امله د امام شافعي رحمه الله په نيز حج افراد افضل دې.

**فوائد**﴿ بنا د اختلاف دا ده. چه نبى ﷺ كوم حج كړې وو. ① داحنافو رحمهم الله دعوى ده. چه نبى ﷺ حج قران كړې وو. ② امام مالك رحمه الله فرمائي. چه نبى ﷺ حج تمتع كړې وو. ③ اودامام شافعي رحمه الله دعوى ده. چه نبى ﷺ حج افراد كړي وو. دهريو دلائل د حديث په كتابونو كي ذكر شوي دي.

## دحج قران طريقه

| |
|---|
| قَالَ (وَصِفَةُ الْقِرَانِ أَنْ يُهِلَّ بِالْعُمْرَةِ وَالْحَجِّ مَعًا مِنَ الْمِيقَاتِ صاحب د قدوري رحمه الله فرمائي. اوطريقه د قران دا ده. چه احرام اوتړي دحج او د عمرې په يوځل دميقات نه، وَيَقُولُ عَقِيبَ الصَّلَاةِ: اللَّهُمَّ إِنِّي أُرِيدُ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَيَسِّرْهُمَا لِي وَتَقَبَّلْهُمَا مِنِّي و ووايي روسته د تلبيه نه اې الله زه اراده لرم دحج اود عمرې، او آسان كړې دا دواړه ماته او قبول ئې كړې زما نه، |

**تشريح:- كيفية القران**﴿شيخ ابوالحسن رحمه الله فرمائي. چه د قران طريقه دا ده. چه د ميقات نه د حج اوعمرې دواړو لپاره احرام اوتړي. اوپه يوځائې تلبيه اووائى. اود احرام د لمونځ نه روسته دې دا دعا اوكړي. چه اې الله زه اراده لرم د حج او د عمرې ته ئې آسان كړې ماته او قبول ئې كړې زما نه،

| |
|---|
| أَنَّ الْقِرَانَ هُوَ الْجَمْعُ بَيْنَ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ ځكه چې قران جمع كول دى په مينځ دحج اود عمرې، لِأَنَّهُ مِنْ قَوْلِكَ قَرَنْتُ الشَّيْءَ بِالشَّيْءِ إِذَا جَمَعْتَ بَيْنَهُمَا (ماخوذ دى) د قول ستا نه چې ﴿قرنت الشئ بالشئ﴾ ما قارن كړلو يو څيز دبل سره كله چې ئې ته جمع كړې. |

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ﴿دليل دا دې. چه قران يعنى حج اوعمره دواړه يوځائې كول د ﴿قرنت الشئ بالشئ﴾ نه ماخوذ دى. اودا محاوره په هغه وخت كي وئيلې شي. چه كله دوې [دوه] شيان (څيزونه ) يوځائې كړې شي.

| |
|---|
| وَكَذَا إِذَا أَدْخَلَ حَجَّةً عَلَى عُمْرَةٍ قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ لَهَا أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ اوهم دغه شان چې كله داخل كړى حج په عمره باندې وړاندې ددې نه چې طواف اوكړى ددې لپاره څلورچكرونه، لِأَنَّ الْجَمْعَ قَدْ تَحَقَّقَ إِذِ الْأَكْثَرُ مِنْهَا قَائِمٌ ځكه چې جمع متحقق شوه. ځكه چې اكثر په دې دواړو كښې قائم دې. |

**تسهيل نية القران بعد اقل اشواف العمرة**﴿صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي. كه يوكس صرف د عمرې احرام اوتړلو اود طواف په اووه چكرونو كي د څلورو نه كم اوكړي. مثلاً درې چكرې ئې وهلې وي. اوبيا د حج نيت



اوكړى. نودا كس اوس هم قارن ګرځي. اودده حج به حج قران وى. ځكه چې تراوسه پورې د طواف زيات ګښتونه پاته دى. نواكثر د كل قائم مقام شو. اودا به ونيلې شى. چه تراوسه پورې ده د عمرې طواف نه دې كړي. اوهر كله چې د عمرې لپاره طواف نه دې شوي. نوحج اوعمره دواړه متحقق شول.

| |
|---|
| وَمَتَى عَزَمَ عَلَى أَدَائِهِمَا يَسْأَلُ التَّيْسِيرَ فِيهِمَا اوكله چې قصد اوكړى د ادا كاوه ددې دواړو نو سوال به كوي د آسانتيا په دې دواړو كي، وَقَدَّمَ الْعُمْرَةَ عَلَى الْحَجِّ فِيهِ اووړاندې كوى به عمره په حج باندې په دې كي، وَلِذَلِكَ يَقُولُ: لَبَّيْكَ بِعُمْرَةٍ وَحَجَّةٍ مَعًا اودغه ډول به وائى ((لبيك بعمرة وحجة)) په يوځائې، لِأَنَّهُ يَبْدَأُ بِأَفْعَالِ الْعُمْرَةِ فَكَذَلِكَ يَبْدَأُ بِذِكْرِهَا ځكه چې دې پيل كوى په افعالو دعمرې نودغه ډول به پيل كوى په ذكردهغې، وَإِنْ أَخَّرَ ذَلِكَ فِي الدُّعَاءِ وَالتَّلْبِيَةِ لَا بَأْسَ بِهِ او كه روستو ئې كړه دا (عمره) په دعا اوپه تلبيه كي نونشته څه باك په دې كي، لِأَنَّ الْوَاوَ لِلْجَمْعِ ﴿ځكه چې كلمه د واو لپاره د جمعې ده. |

**تشريح:-** اوكله چې د دواړو د ادا كاوه قصد اوكړي. نوپه دواړو كي د آسانتيا پيدا كاوه لپاره به دعا اوكړي. اود عمرې افعال دې وړاندې ادا كړي. اود حج افعال دې بيا. اوپه تلبيه كي دې داسې وائى. ﴿لبيك بعمرة وحجة معا﴾ ځكه چې د قران په صورت كي چې كله پيل د عمرې نه كيږي. نوپه تلبيه كي به هم هغه مقدم كولې شى. خوددې باوجود كه په تلبيه كي ئې عمره روستو اووئيله. نوڅه باك په كي نشته. ځكه چې په ﴿بحجة وعمرة﴾ كي واؤ لپاره د جمع راځي. البته عمره مقدم كول افضل دى. ځكه چې الله تعالى په خپل قول [فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ] كي عمره مقدم كړې ده.

| |
|---|
| وَلَوْ نَوَى بِقَلْبِهِ وَلَمْ يَذْكُرْهُمَا فِي التَّلْبِيَةِ اوكه نيت اوكړى په زړه اوذكر اونه كى (اونكړى) ددې په تلبيه كي، أَجْزَأَهُ اعْتِبَارًا بِالصَّلَاةِ جائز دې ده لره، د امله د قياس كاوه نه په لمانځه (كه په لمانځه كي په زړه كي نيت اوكړى اوپه ژبه اونه وائى. نولمونځ صحيح كيږي. نودغه په حج كښې هم پكار ده) |

**تشريح:- عدم شرطية التلفظ بالحج والعمرة**﴿صاحب د قدوري رحمه الله فرمائي. كه يو كس صرف په زړه سره نيت اوكړلو. اوحج اوعمره ئې په تلبيه كي ذكر نكړه. نوجائز ده. لكه څنګه چې په لمانځه كي په ژبې سره نيت كول شرط نه دي. دغه ډول دلته (دحج په باب ) كي هم په ژبې سره نيت كول شرط نه دې.

## د قارن مكې ته داخليدل

| |
|---|
| فَإِذَا دَخَلَ مَكَّةَ ابْتَدَأَ فَطَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ كله چې داخل شى مكې ته نو پيل به كوى په طواف د بيت الله اووه چكرې يَرْمُلُ فِي الثَّلَاثِ الْأُوَلِ مِنْهَا رمل به كوى په دريو اولنوكي ددې نه، وَيَسْعَى بَعْدَهَا بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ اوسعى به كوى روسته ددې نه په صفا اومروه كي، وَهَذِهِ أَفْعَالُ الْعُمْرَةِ، ثُمَّ يَبْدَأُ بِأَفْعَالِ الْحَجِّ وودا افعال د عمرې دى بيا به پيل كوى په افعالو د حج فَيَطُوفُ طَوَافَ الْقُدُومِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ وَيَسْعَى بَعْدَهُ نوطواف به اوكړى اووه چكرې اوسعى به كوى روسته ددې نه، كَمَا بَيَّنَّا فِي الْمُفْرِدِ لكه څنګه چې موږ بيان كړل په (بيان د حج) مفرد كي، |

**حل اللغة** ① دخل، دخولاً (ن): داخليدل ② يطوف، طوافاً (ن): طواف كول، تاويدل

**تشريح:- ابتداء القارن بالعمرة**﴿صورت د مسئلې دا دې. چه حاجى قارن مكې ته داخل شى. نوطواف قدوم به نه كوى. بلكه د عمرې افعال به پيل كوى. نو اول دې طواف اوكړي. اود طواف په اولنو دريو چكرونو كي دې رمل اوكړى. بيا دې د صفا مروه په مينځ كي سعى اوكړى. دا خود عمرې افعال وو. اوبيا دې د حج په افعالو پيل اوكړى. نود مفرد بالحج پشان دې اول طواف قدوم اوكړى. بيا دې سعى اوكړى.

| |
|---|
| وَيُقَدِّمُ أَفْعَالَ الْعُمْرَةِ لِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿ {فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ} اووړاندې كوى به افعال دعمرې د امله د وينا دالله تعالى نه [فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ] وَالْقِرَانُ فِي مَعْنَى الْمُتْعَةِ اوقران په معنى د تمتع كي دې. |

**تشریح:- دلیل ترتیب القارن**۞صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه قارن دې د عمرې افعال اول ادا کړي.اود حج افعال دې بیا ادا کړي.دا ترتیب دقرآن نه ماخوذ دې.ځکه چې د الله تعالی په قول [فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ] کې عمره ابتداء او حج انتهاء ګرځولي ده.ځکه چې په تمتع او قران کې دوې [دوه] عبادتونه جمع کولې شي.اودواړه په یوسفر کې ادا کولې شي.نوکوم ترتیب چې په تمتع کې وی.هغه ترتیب په په قران کې هم وی.یعنی اول به عمره او بیا به حج وی.

| وَلَا يَحْلِقُ بَيْنَ الْعُمْرَةِ وَالْحَجِّ اوحلق به نه کوی په مینځ د عمرې اوحج کې ، لِأَنَّ ذَٰلِكَ جِنَايَةٌ عَلَى إِحْرَامِ الْحَجِّ ځکه چې دا جنایت دې په احرام د حج، وَإِنَّمَا يَحْلِقُ فِي يَوْمِ النَّحْرِ كَمَا يَحْلِقُ الْمُفْرِدُ اویقینا حلق به کوی په ورځ د اختر د قربانۍ،لکه څنګه چې حلق کوی مفرد (په ورځ د قربانی) |
|---|

**تشریح:- عدم الحلق اوالقصربعد العمرة**۞صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه قارن دې د عمرې ادا کاوه نه روسته حلق یا قصر نه کوی.ځکه چې قارن د عمرې د افعالو ادا کاوه نه روسته احرام نه پرانیزی.بلکه د احرام په حالت کې پاتې کیږی.نوکه دې د عمرې نه روسته حلق یا قصر اوکړی.دا به د حج په احرام کې باندې جنایت شی.اوښکاره خبره ده.چه دا ټیك نه ده.البته قارن به د قربانۍ په ورځ د مفرد پشان حلق کوی.

## دقارن د حلالیدو ځیز

| وَيَتَحَلَّلُ بِالْحَلْقِ عِنْدَنَا لَا بِالذَّبْحِ اوځان به حلال کړی په حلق سره،نه په ذبح سره، كَمَا يَتَحَلَّلُ الْمُفْرِدُ لکه څنګه چې حلالیږی (حاجی)مفرد ، ثُمَّ هَٰذَا مَذْهَبُنَا بیا دا مذهب زمونږ دې. |
|---|

**حل اللغة**① یتحلل، تحللاً: حلال کیدل

**تشریح:- تحلیل القارن بالحلق**۞صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه قارن به زمونږ په نیز دحلق په ذریعه د احرام نه حلالیږی.د ذبح په ذریعه به نه حلالیږی.لکه څنګه چې مفردبالحج د حلق په ذریعه داحرام نه حلالیږی.د ذبح په دې کې څه دخل نشته.نوکه قارن د قربانۍ په ورځ خوشبو وغیره استعمال کړی.نوپه ده باندې جرمانه لازمیږی.

**خلاف الائمة في المسئلة**۞صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه قارن چې د حج او عمرې هریو لپاره جلا جلا طواف اوجلا جلا سعی کوی.نودا زمونږ مذهب دې.

| وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: يَطُوفُ طَوَافًا وَاحِدًا اوفرمائی امام شافعی رحمه الله طواف به کوی طواف یو،اوسعی به کوی سعی یوه، وَيَسْعَى سَعْيًا وَاحِدًا لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ (دَخَلَتِ الْعُمْرَةُ فِي الْحَجِّ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ)[1] د امله د قول د نبی ﷺ نه چې داخل شوه عمره په حج کې تر ورځ دقیامته پورې، |
|---|

**تشریح:-** دامام شافعی رحمه الله مذهب دا دې.چه د دواړو لپاره به یوطواف اویوه سعی کوی.هم دا د امام مالك رحمه الله مذهب دې اودامام احمد بن حنبل رحمه الله یو قول دې.

**دلیله**۞ ①دامام شافعی رحمه الله دلیل دنبی ﷺ قول چه (دخلت العمرة في الحج إلىيوم القيامة) دې.یعنی عمره تر قیامته پورې په حج کې داخله شوه.نوددې حدیث نه ثابته شوه.چه د حج طواف اوسعی د عمرې لپاره کافی کیږی.د عمرې لپاره د جلا طواف اوجدا سعی اړتیا نشته.که داسې نشی نوعمره به په حج کې داخله نشی

| وَلِأَنَّ مَبْنَى الْقِرَانِ عَلَى التَّدَاخُلِ اوبله دا چې بناء د قران په تداخل ده. حَتَّى اكْتَفَى فِيهِ بِتَلْبِيَةٍ وَاحِدَةٍ وَسَفَرٍ وَاحِدٍ تردې چې اکتفا کولای شی په دې کې په تلبیه یوه،اوپه سفر یو، وَحَلْقٍ وَاحِدٍ اوپه حلق یو، فَكَذَٰلِكَ فِي |
|---|

[1] من حدیث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه مسلم فی الحج رقم ۱۴۷ وأبوداود فی المناسک باب ۲۳ رقم ۱۷۹۰ والترمذی فی الحج باب ۸۹ رقم ۳۳۲ والنسائی فی المناسک رقم ۲۶۳۹ وأحمد فی المسند(۲۳۶/۱)۔



| الْأَرْكَانِ نودغه ډول په ارکانو کې ، |
|---|

**تشریح:-** دوهم دلیل دا دې.چه د قران بنا (بنیاد) په تداخل دې.هم دا وجه ده.چه د قران لپاره یوه تلبیه وی.اویوسفر وی. اود حلالیدو لپاره یوحلق وی.نودغه ډول به په ارکانو یعنی حج اوعمره کې هم تداخل وی.یعنی یو طواف اویوه سعی به کافی وی.

| وَلَنَا أَنَّهُ لَمَّا طَافَ صُبَيُّ بْنُ مَعْبَدٍ طَوَافَيْنِ وَسَعَى سَعْيَيْنِ اوزمونږ دلیل دا دې.چه کله طواف اوکړلو صبی بن معبد دوې [دوه] طوافونه او سعی ئې اوکړه دوې [دوه] سعی، قَالَ لَهُ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُ هُدِيتَ لِسُنَّةِ نَبِيِّكَ[1] نو وویل ده ته حضرت عمر رضي الله عنه تاته خودنه اوشوه د طریقې د نبی ﷺ خپل، |
|---|

**تشریح:- دلیل الاحناف** رحمهم الله ۞زمونږدلیل دا دې.چه صبی بن معبد په حج قران کې دوې [دوه] طوافونه اوکړل.او دوې [دوه] سعی ئې اوکړې.نو حضرت عمرفاروق رضي الله عنه ورته اوفرمائیل.تادخپل پیغمبر طریقه خپله کړه. د دې حدیث نه معلومه شوه.چه سنت دا دی.چه قارن دوې [دوه] طوافونه اودوې [دوه] سعی اوکړی.اودا په دې صورت کې متحقق کیږی.چه دواړه اوکړی.

| وَلِأَنَّ الْقِرَانَ ضَمُّ عِبَادَةٍ إِلَى عِبَادَةٍ اوبله دا چې قران یوځائې کول د یو عبادت دی د بل سره، وَذَٰلِكَ إِنَّمَا يَتَحَقَّقُ بِأَدَاءِ عَمَلِ كُلِّ وَاحِدٍ عَلَى الْكَمَالِ اودا متحقق کیږی په ادا کاوه د هرعمل جلا جلا ،په طریقه دکمال، |
|---|

**تشریح:-** دوهم دلیل دا دې.چه قران یوعبادت دبل عبادت سره د یوځائې کاوه نوم دې.اودا په دې صورت کې متحقق کیږی.چه په حج اوعمره دواړوکې د هریو افعال پوره پوره ادا کړې شي.

| وَلِأَنَّهُ لَا تَدَاخُلَ فِي الْعِبَادَاتِ اوبله دا چې تداخل نه راځی په عبادات مقصوده کې ، |
|---|

**تشریح:-** زمونږ دا ړخه دریم دلیل دا دې.اوهم دا د امام شافعی رحمه الله د عقلی دلیل ځواب دې.چه په عبادات مقصوده کې تداخل نه کیږی.چه یولمونځ د بل لمونځ قائم مقام شي.

| وَالسَّفَرُ لِلتَّوَسُّلِ، وَالتَّلْبِيَةُ لِلتَّحْرِيمِ، وَالْحَلْقُ لِلتَّحَلُّلِ اوسفر لپاره د رسیدو دې (حج ته) اوتلبیه لپاره د تحریم ده اوحلق لپاره دتحلیل دې، فَلَيْسَتْ هَٰذِهِ الْأَشْيَاءُ بِمَقَاصِدَ نو نه دی دا شیان (څیزونه) مقاصد، |
|---|

**تشریح:- الجواب من تائیدات الشافعی** رحمه الله ۞پاتې شوسفر نودا خو مکې د رسیدو یوه ذریعه او وسیله ده.اوتلبیه ونیل خودهغه څیزونو دحراموالی ذریعه ده.کوم چې حرام نه وی.اوحلق د احرام نه د وتلو ذریعه ده.دا درې واړه شیان (څیزونه) د وسائلو حیثیت لری.ددې په خلاف ارکان دی.ځکه چې هغه د مقاصدو درجه لری.نو د دې امله په دې مسائلو د ارکانو قیاس کول ټیك نه دی.

| بِخِلَافِ الْأَرْكَانِ، أَلَا تَرَى أَنَّ شَفْعَيِ التَّطَوُّعِ لَا يَتَدَاخَلَانِ په خلاف د ارکانو،ته ګورې نه چې دوې [دوه] شفعې د نفلو نه داخلیږی په یوبل کې ، وَبِتَحْرِيمَةٍ وَاحِدَةٍ يُؤَدَّيَانِ (بلکه هردوې [دوه] رکعته به جلا جلا کولې شی) |
|---|

**تشریح:- تائیده بالنظیر**۞اوګورئ چې د نفلو نه روسته دوې [دوه] ، دوې [دوه] رکعتیز لمونځ یعنی دوې [دوه] دوې [دوه] رکعته نشی متداخل کیدې.یعنی داسې نشی کیدای چې د نفلو دوې [دوه] رکعتیز لمونځ ادا کولوسره دوې [دوه] ځله دوې [دوه] رکعتیز یعنی څلور رکعته لمونځ ادا شی. حالانکه که دوه،دوې [دوه] رکعتیز یعنی څلور رکعتونه په یوه تحریمه سره ادا کول غواړی.نوادا کولې شی.نو تحریمه کومه چې د

[1] قال الزیلعی رحمه الله هذا الحدیث لم یقع هکذا فقد أخرجه أبوداود (فی المناسک باب ۲۴ رقم ۱۷۹۸) والنسائی عن منصور (فی المناسک باب القران رقم ۲۵۴۸ ) وابن ماجه عن الأعمش (فی المناسک باب ۳۸ رقم ۲۹۷۰) کلاهما عن أبی وائل ن الصبی بن معبد الثعلبی رضي الله عنه قال أهللت بهما معاً فقال عمر رضي الله عنه هدیت لسنت نبیک کذا فی نصب الرأیة ۱۲۶/۳)۔

لمونځ كاوه وسيله ده.هغه دوه، دوې [دوه] ركعتيز يعنې څلور ركعتو لپاره كافي كيږي.خود عبادت اركان نه متداخل كيږي.ګني دوه،دوې [دوه] ركعتيز لمونځ چې متداخل شي.اوپه يو دوې [دوه] ركعتيز لمونځ سره به ادا شي.بلكه په زرګونو دوې [دوه] ركعتيز مونځونه به په يو دوې [دوه] ركعتيز لمونځ سره ادا شي.

وَمَعْنَى مَا رَوَاهُ دَخَلَ وَقْتُ الْعُمْرَةِ فِي وَقْتِ الْحَجِّ اوپه يوه تحريمه دواړه ادا كيږي اومطلب دهغه حديث چې روايت ئې كړې دې امام شافعي رحمه الله دا دې چې داخل شو وخت د عمرې په وخت د حج كې

**تشريح:- الجواب من مستدل الشافعي رحمه الله** ﴿پاتې شو دامام شافعي رحمه الله هغه حديث چې عمره په حج كې ترقيامته پورې داخله شوه.دهغې مطلب دا دې.چه عمرې وخت د حج په وخت كې داخل شو.اوپه دې سره مقصود د جاهليت د خلګو د قول (چه په دحج په مياشتو كې عمره كوله سخته ګناه ده) ترديد او ابطال دې.

## د قارن په سعي باندې د طواف قدوم تقديم

قَالَ (فَإِنْ طَافَ طَوَافَيْنِ لِعُمْرَتِهِ وَحَجَّتِهِ) فرمائي اوكه طواف اوكړلو (قارن) دوې [دوه] طوافونه لپاره دعمرې خپلې اوحج خپل، (وَسَعَى سَعْيَيْنِ يُجْزِيهِ) وسعي ئې اوكړله دوې [دوه] سعې (دعمرې اوحج دپاره) جائزدې ورته لِأَنَّهُ أَتَى بِمَا هُوَ الْمُسْتَحَقُّ عَلَيْهِ خكه چې ده راتګ اوكړلوپه هغه څه،كوم چې فرض وو په ده باندې وَقَدْ أَسَاءَ بِتَأْخِيرِ سَعْيِ الْعُمْرَةِ وَتَقْدِيمِ طَوَافِ التَّحِيَّةِ عَلَيْهِ اوبدكار ئې اوكړلوپه روستو كاوه د سعي دعمرې اوپه وړانديوالي د طواف د حج،(چه د عمرې سعي ئې روستواودحج طواف ئې وړاندې كړلو)

**حل اللغة:** ① اساء،اساءة: بدي كول،ګناه كول

**تشريح:- تاخير السعي وتقديم الطواف في القران** ﴿صورت د مسئلې دا دې.كه قارن دوې [دوه] طوافونه يعنې يوطواف د عمرې لپاره اووه ګردشه اوكړل.اوبيا ئې دوهم طواف يعنې دحج طواف قدوم اوكړلو.اوبيا ئې دوې [دوه] سعې اوكړلې يوه د عمرې لپاره اوبله دحج دپاره،نودا جائزدې.خكه چې كوم شي كول په ده باندې كول ضروري وو.هغه ئې اوكړلو.خو ده ښه اونكړلو.خكه چې د عمرې سعي د حج د طواف نه روستو شوه.حالانكه دعمرې سعي دحج د طواف نه وړاندې كول پكار وو.اوطواف قدوم د عمرې د سعي نه وړاندې شو.حالانكه دا طواف د عمرې د سعي نه روستو كول پكار وو.

وَلَا يَلْزَمُهُ شَيْءٌ أَمَّا عِنْدَهُمَا فَظَاهِرٌ اونه لازميږي په ده باندې څه څيز،هرچه په نيز د صاحبينو رحمهما الله دې.نوښكاره دې. لِأَنَّ التَّقْدِيمَ وَالتَّأْخِيرَ فِي الْمَنَاسِكِ لَا يُوجِبُ الدَّمَ عِنْدَهُمَا خكه چې وړانديوالي او روستوالي په مناسك حج كې نه واجبوي دم په نيز ددې دواړو(امام ابويوسف اوامام محمد)

**تشريح:- وجه عدم وجوب شئ عندهما** ﴿خويه دې تقديم او تاخيرپه ده باندې څه جرمانه (دم) نه واجبيږي.د صاحبينو رحمهما الله په نيز خو خكه چې په حج اوعمرې په مناسك كې په تقديم او تاخيره سره د دوى په نيز څه دم وغيره نه واجبيږي.

وَعِنْدَهُ طَوَافُ التَّحِيَّةِ سُنَّةٌ وَتَرْكُهُ لَا يُوجِبُ الدَّمَ اوپه نيز دامام ابوحنيفه رحمه الله (خكه جائزدې) چې طواف تحيه د دوې په نيزسنت دې اوپريښودل د سنت نه واجبوي دم، فَتَقْدِيمُهُ أَوْلَى نووړاندې كول ددې غوره دى. وَالسَّعْيُ بِتَأْخِيرِهِ بِالِاشْتِغَالِ بِعَمَلٍ آخَرَ لَا يُوجِبُ الدَّمَ اوسعي په تاخير دده (حاجي) حې بوخت شي په بل كار كې نه واجبوي دم فَكَذَا بِالِاشْتِغَالِ بِالطَّوَافِ نودغه ډول (به نه واجبوي دم كه ) بوخت شي په طواف .

**تشريح:- وجه عدم وجوب شئ عنده** ﴿اودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز خكه څه جرمانه (دم) وغيره نه واجبيږي.چه د هغوى په نيزطواف قدوم سنت دې.اوچه سنت بيخي پريږدي.نوهم څه دم وغيره نه واجبيږي.نوپه تقديم سره خو به په درجه اولى څه نه واجبيږي.اوپاتې شو د عمرې د سعي د طواف قدوم نه روستو كيدل نوپه دې باندې هم دم نه واجبيږي.خكه كه د سعي طواف په بل كار كې د مشغوليدو د امله روستو شي.نوپه دغه صورت



كې هم څه نه واجبيږي.مثلاً كه د عمرې د طواف نه روسته په خوراك څكاك يا ويده (اوده) كيدو كې بوخت شي.نوپه ده څه نه واجبيږي.نودغه ډول كه د حج په طواف قدوم كې بوخت شي.نوهم به څه نه واجبيږي.

## د قارن لپاره د ذبح حكم

قَالَ (وَإِذَا رَمَى الْجَمْرَةَ يَوْمَ النَّحْرِ ذَبَحَ شَاةً أَوْ بَقَرَةً أَوْ بَدَنَةً أَوْ سُبُعَ بَدَنَةٍ) فرمائي كله چې رمى د جمرې اوكړي.(قارن) نوذبح دې كړي ګډه يا غوې يا بدنه يا اوومه برخه د بدنه، فَهَذَا دَمُ الْقِرَانِ لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْمُتْعَةِ نودا دم قران دې.خكه چې دا په معنى د تمتع كې دې. وَالْهَدْيُ مَنْصُوصٌ عَلَيْهِ فِيهَا او هدى په قرباني باندې نص وارد شوې دې په دې (حج تمتع) كې ،

**حل اللغة:** ① رمى، رميًا (ض): رمى كول، ويشتل ② شاة: چيلئ ③ بقرة: غوې

**تشريح:- وجوب دم القران** ﴿فرمائي.كله چې قارن په يوم النحر باندې رمى د جمرې اوكړي.نوګډ يا غوې يا اوښ د بدنې يا اوومه برخه دې قرباني كړي.اوددې نوم دم قران دې.

**ادليله** ﴿اوددې قربانۍ د وجوب دليل دا دې.چه قران د حج اوعمرې په جمع كاوه كې د حج تمتع پشان دې.اوپه حج تمتع كې د هدى قربانۍ باندې نص وارد شوې دې.ارشاد دې [فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ] يعنې هركله چې په حج تمتع كې قرباني واجب ده.نوپه حج قران كې به هم واجب وي .خكه چې قران د تمتع پشان دې.

وَالْهَدْيُ مِنَ الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ اوهدى به د اوښ،غوې اوګډ څنى وي. عَلَى مَا نَذْكُرُهُ فِي بَابِهِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى بنا په هغه چې مونږ به ئې ذكر كړو په خپل باب كې انشاءالله تعالى وَأَرَادَ بِالْبَدَنَةِ هَاهُنَا الْبَعِيرَ اواراده كړې ئې ده دلته په بدنه سره اوښ، وَإِنْ كَانَ اسْمُ الْبَدَنَةِ يَقَعُ عَلَيْهِ وَعَلَى الْبَقَرَةِ اګرچه اسم د بدنه واقع كيږي په ده (اوښ) اوپه غوې باندې، عَلَى مَا ذَكَرْنَا،لكه مونږ چې ذكر كړې دى. وَكَمَا يَجُوزُ سُبُعُ الْبَعِيرِ يَجُوزُ سُبُعُ الْبَقَرَةِ اولكه څنګه چې جائز كيږي اوومه برخه د اوښ نو جائز كيږي اوومه برخه د غوا

**حل اللغة:** ① غنم: چيلئ ② بعير: اوښ ]

**تشريح:- المراد من الهدى والبدن** ﴿صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه هدى د اوښ،غوې اوګډ درې واړو كيږي . اوتفصيل به په باب الهدى كې انشاء الله ذكر شي.اودلته د بدنه نه مراد اوښ دې.اګرچه د بدنه اطلاق په اوښ اوغوې دواړو باندې كيږي.نولكه څنګه چې د اوښ په اوومه برخه قرباني كيږي.نودغه ډول به دغوې د اوومې برخې قرباني جائز وى.

## قارن لپاره د روژو حكم

فَإِذَا لَمْ يَكُنْ لَهُ مَا يَذْبَحُ صَامَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ هركله چې نه وى ده سره هغه څه چې ذبح اوكړې يې،نوروژه دې اونيسي درې ورځې،په حج كې آخِرُهَا يَوْمُ عَرَفَةَ وَسَبْعَةَ أَيَّامٍ إِذَا رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ چې آخرى ورځ ئې د عرفې وى.اواووه ورځې كله چې واپس شي خپل اهل ته،

**حل اللغة:** ① يذبح، ذبحًا (ف): حلالول ② صام، صومًا (ن) : روژه ساتل ③ رجع، رجع رجوعًا (ض): واپس كيدل

**تشريح:- وجوب الصيام عند العجز عن الهدي** ﴿مسئله دا ده.كه قارن په قربانۍ باندې قادر نه وى.يا قادر وى.خوخاروى نه وى.نوپه ده باندې لس روژې واجب دى.په دې طريقه چې درې روژې به د يوم النحر نه وړاندې نيسي.اواووه روژې چې كله خپل كور ته راواپس شي.

لِقَوْلِهِ تَعَالَى {فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعْتُمْ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ} د امله د وينا د الله تعالى څوك چې نه مومي نو روژې دى درې ورځې په حج كې اواووه كله چې راواپس شئ.تاسو دغه شوې لس پوره، فَالنَّصُّ وَإِنْ وَرَدَ فِي الْمُتَمَتِّعِ فَالْقَارِنُ مِثْلُهُ نونص اګرچه وارد شوې دې په حج تمتع كې خو قران ددې پشان دې. لِأَنَّهُ مُرْتَفِقٌ بِأَدَاءِ النُّسُكَيْنِ خكه چې دا دې (حاجي قارن) فائده اخستونكي دې په دوو عبادتونو،

**حل اللغة** ① **مرتفق**: منقطع كيدل، نفع اوچتول

**تشريح:- دليله**۞دليل دالله تعالى ارشاد دي. ﴿فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعْتُمْ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ﴾ دا آيت اگرچه د حج تمتع په اړه كي نازل شوي دي.خوچونكه قارن هم د متمتع پشان دي. ځكه چي دي هم د حاجى متمتع پشان د حج او عمري دوي [دوه] عبادتونه كوى.نوددي مماثلت اومشاركت د امله چي كوم حكم د متمتع وى.هغه به د قارن هم وى.

| |
|---|
| **وَالْمُرَادُ بِالْحَجِّ وَاللَّهُ أَعْلَمُ وَقْتُهُ** اومراد په حج سره الله ښه پوهيږى وخت ددي دي. **لِأَنَّ نَفْسَهُ لَا يَصْلُحُ ظَرْفًا** ځكه چي نفس حج صلاحيت نه لرى چي شى ظرف (لپاره د روژو) **إِلَّا أَنَّ الْأَفْضَلَ أَنْ يَصُومَ قَبْلَ يَوْمِ التَّرْوِيَةِ بِيَوْمٍ** مگر دومره ده چي غوره ده چي روژه اونيسى وړاندي د ورځي دترويه نه،يوه ورځ (په اوومه ذوالحجه) **وَيَوْمَ التَّرْوِيَةِ وَيَوْمَ عَرَفَةَ** اوپه ورځ د ترويه اوپه ورځ د عرفي، **لِأَنَّ الصَّوْمَ بَدَلٌ عَنِ الْهَدْيِ فَيُسْتَحَبُّ تَأْخِيرُهُ إِلَى آخِرِ وَقْتِهِ** ځكه چي رژه بدل ده د هدى نه نومستحب دى روستوكول ددي آخر وخت ددي ته، **رَجَاءَ أَنْ يَقْدِرَ عَلَى الْأَصْلِ** په دي اميد چي قادر شى دي په اصل (چه قرباني ده) |

**حل اللغة** ① **ان يقدر، قدر قدرة**: قادر كيدل ]

**تشريح:- استحباب تاخيرالصيام الى اخرالوقت**۞صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى.چه په آيت. [فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ]كي د حج نه مراد د حج وخت دي.ځكه چي نفس حج د ظرفيت صلاحيت نه لرى.دحج وخت چونكه د اولنى شوال نه پيل كيږى.نوچه كله غواړى درې روژې دي اونيسى.خوغوره دا ده.چه په اوومه،اتمه اونهمه ذوالحجه روژې اونيسى.ځكه چي روژې د هدى په بدل كي واجب شوى دى.نوځكه آخرى وخت ته روستو كول مستحب دى.چه كيداې شى.چه آخرپه اصل يعنى قربانۍ كاوه باندي قدرت بيامومى.لكه څنگه چي د هغه كس لپاره تيمم آخرى وخت ته روستو كول مستحب دى.چه په آخر وخت كي د اوبو موندلو اميد لرى.

## دحج د احكامونه روسته په مكه كي روژې نيول

| |
|---|
| **وَإِنْ صَامَهَا بِمَكَّةَ بَعْدَ فَرَاغِهِ مِنَ الْحَجِّ جَازَ** اوكه وې نيولې دا (روژې) په مكه كي روسته د فراغت د احكامو د حج نه،نوجائزدى. **وَمَعْنَاهُ بَعْدَ مُضِيِّ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ** اومطلب ددي دا دي.چه روسته د ايام التشريق نه ئې اونيسى. **لِأَنَّ الصَّوْمَ فِيهَا مَنْهِيٌّ عَنْهُ** ځكه چي روژه په دې ورځو كي منع شوې ده ددې نه، |

**حل اللغة** ① **مضى**: تيريدل

**تشريح:- المذهبان في محل الصيام**۞ ①وړاندې تيرشو.چه اووه روژې چي كله كورته واپس شى. اونيسى.خوكه قارن د حج د فراغت نه روسته هم په مكه كي روژې اونيسى،نوجائزدى.خوبه دې شرط چي د ايام التشريق د تيريدو نه روسته روژې اونيسى.ځكه چي په ايام التشريق كي د روژې نيولو نه منع شوې ده.

| |
|---|
| **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى: لَا يَجُوزُ لِأَنَّهُ مُعَلَّقٌ بِالرُّجُوعِ**،اوفرمائى امام شافعى رحمه الله چي جائزنه دى.ځكه چي دا (رژوې) معلق دى په واپس كيدو پورې، **إِلَّا أَنْ يَنْوِيَ الْمَقَامَ فَحِينَئِذٍ يُجْزِيهِ لِتَعَذُّرِ الرُّجُوعِ** البته دا چي نيت اوكړى د ستوگنې په مكه كي ،نوبه دغه وخت كي جائزدى ده لره د امله د تعذر د واپس كيدو نه، |

**حل اللغة** ① **ان ينوى، نوى نية (ض)**: نيت كول ② **تعذر**: سختى، مشكل كيدل

**تشريح:-** امام شافعى رحمه الله فرمائى.چه د قارن لپاره ددې اووه روژو په مكه كي نيول جائز نه دى.

**①دليله**۞ځكه چي الله تعالى فرمائيلى دى. [وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعْتُمْ] په دې آيت كي اووه روژې په واپس كيدو پورې معلق شوى دى.اوواپس كيدل په هغه وخت كي متحقق كيږى.چه دا كس خپل وطن ته اورسى.نوځكه په مكه كي ددې روژو نيول جائز نه دى.البته دا چي دې په مكه كي د ستوگنې نيت اوكړى.نوبيا ورته روژې



نيول جائز دى.ځكه چي په دې صورت كي واپس كيدل متعذر شو

| |
|---|
| **وَلَنَا أَنَّ مَعْنَاهُ رَجَعْتُمْ عَنِ الْحَجِّ: أَيْ فَرَغْتُمْ** اوزمونږ په نيز معنى دا ده.چه تاسو واپس شئ د حج نه يعنى فارغ شئ، **إِذِ الْفَرَاغُ سَبَبُ الرُّجُوعِ إِلَى أَهْلِهِ** ځكه چي فراغت سبب د واپس كيدو دې خپل اهل ته، **فَكَانَ الْأَدَاءُ بَعْدَ السَّبَبِ فَيَجُوزُ** نوشوه ادا روسته د سبب نه نوجائز شوې. |

**حل اللغة** ① **فرغتم، فرغ فراغة**: اوزگاريدل، خالى كيدل ]

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله۞اوزمونږ دليل دا دې.چه دالله تعالى د قول ﴿إذا رجعتم﴾ معنى ﴿إذا فرغتم﴾ ده. يعنى كله چي تاسو د حج نه فارغ شئ.نو روژې نيسئ،كه په مكه كي ئې اوكه په لار كي ئې اوكه په وطن كي ئې.صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى.چه د حج نه فراغت وطن ته د راتلو سبب دې.نوسبب په حقيقت كي د حج نه فراغت دې.نوچه د حج د فراغت نه روسته اووه روژې اونيسى.نود سبب نه روسته روژې موجود شوې.اود سبب نه روسته چي كوم شى موجود شى.هغه ادا كيږى.نوځكه چي دحج نه روسته دا اووه روژې اونيسى.نوادا كيږى به،اگرچه په مكه كي ئې اونيسى.

## ديوم النحر نه وړاندې درې روژې نه نيول

| |
|---|
| **فَإِنْ فَاتَهُ الصَّوْمُ حَتَّى أَتَى يَوْمَ النَّحْرِ لَمْ يُجْزِهِ إِلَّا الدَّمُ** اوكه فوت شوې ددې نه روژې تردې چي راغله ورځ د قربانۍ جائز نه دى ده لره مگر صرف دم، |

**حل اللغة** ① **فاته، فات فوتًا (ن)**: فوت كيدل، وركيدل ② **اتى، اتيانًا (ض)**: راتگ

**تشريح:- المذاهب الثلاث في فوت الصيام قبل يوم النحر**۞وړاندې ذكر اوشو.چه قارن كه د قربانۍ توان نه لرى.نولس روژې دې اونيسى.درې د يوم النحر نه وړاندې او اووه دحج نه د فراغت نه پس، ①خوكه دغه روژې ئې د يوم النحر نه وړاندې اونه نيوې شوې.تردې چي يوم النحر راغله.نواوس دم واجب شو. روژې نه كافى كيږى.

| |
|---|
| **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: يَصُومُ بَعْدَ هَذِهِ الْأَيَّامِ** اوفرمائى امام شافعى رحمه الله چي روژه به نيسى روسته ددې نه **لِأَنَّهُ صَوْمٌ مُوَقَّتٌ فَيُقْضَى كَصَوْمِ رَمَضَانَ** ځكه چي دا روژه ده موقته (چه وخت ورله مقرر دې)نوقضا به ئې راوړې شى.پشان د روژې د رمضان، |

**تشريح:-** امام شافعى رحمه الله فرمائى.چه دا روژې دې د ايام التشريق نه روسته اونيسى.

**②دليله**۞دامام شافعى رحمه الله دليل دا دې.چه دا روژې موقت دى.د الله تعالى ددې ارشاد د وجي [فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعْتُمْ] نوكه دا د يوم النحر نه وړاندې ادا نشوې.نود ايام التشريق نه دې روسته قضاء راوړى.ځكه چي كومې روژې دخپل وخت نه فوت شى.نودهغې قضا راوړې شى.لكه د رمضان روژې كه په رمضان كي اونه نيوې شى.نود رمضان نه روسته دهغې قضا راوړې شى.نودغه ډول به دلته هم د ايام التشريق نه روسته د هغې قضا راوړى.

| |
|---|
| **وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللَّهُ: يَصُومُ فِيهَا لِقَوْلِهِ تَعَالَى [فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعْتُمْ]** اوفرمائى امام مالك رحمه الله روژه به نيسى په دې كي د قول الله تعالى د امله چي [فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعْتُمْ] |

**تشريح:-** امام مالك رحمه الله فرمائى.چه هم په ايام تشريق كي دې اونيسى.

**③دليل مالك** رحمه الله ۞دامام مالك رحمه الله دليل دا دې.كه د يوم النحر نه وړاندې ئې دا درې روژې اونه نيولې.نوپه ايام التشريق كي دې ددې قضا راوړى.ځكه الله تعالى فرمائيلى دى.كوم كس چي د هدى حيوان (څاروې) بيا نه مومى نوهغه دې د حج په ورځوكي درې ورځې روژې اونيسى. اوايام التشريق هم د حج ورځې دى.

وَهٰذَا وَقْتُهُ اوددا وخت ددې دی.

تشريح:- ځکه چې رمی هم په دې ورځو کې کیږي. نود قرآن پاك د حكم مطابق په ایام التشريق کې دې ددې قضا راوړي.

وَلَنَا النَّهْيُ الْمَشْهُوْرُ عَنِ الصَّوْمِ فِيْ هٰذِهِ الْأَيَّامِ[1] اوزموږ لپاره دليل نهی مشهوره ده. د روژې نه په دې ورځو کې، فَيَتَقَيَّدُ بِهِ النَّصُّ أَوْيَدْخُلُهُ النَّقْصُ نومقيد کولې به شي په دې باندې نص اويا به داخليږي په دې کې نقصان، فَلَا يَتَأَدّٰى بِهِ مَا وَجَبَ كَامِلًا نو نه به شي ادا کولې په دې سره هغه عبادت چې واجب شوې وی کامل

تشريح:- دليل الاحناف ﷺ زموږ دليل دا دی. چه په ایام التشريق کې د روژو نيولو نه منع شوې ده. ځکه چې په حديث کې دی. «لا تصوموا في هذه الأيام» اودا حديث مشهور دې. اود حديث مشهور په وجه كتاب الله مقيد کولې شی. نوځکه به نص یعنی «ثلاثة أيام في الحج» د ایام التشريق نه علاوه په نورو ورځو پورې مقيد کولې شي. یعنی د ایام التشريق نه علاوه په نورو دريو ورځوکې ددې روژو نيولوحكم شوی دې. اوکه د كتاب الله نص په دې حديث سره مقيد نشي. نود نهی په وجه به ددې ورځو په روژو کې په يقين سره نقصان پیدا شي. اوپه قارن چې د دم قران په وجه کومې درې روژې واجب شوې وې. هغه کاملې وې. اودا قاعده ده چې کامل په ناقص سره نشی ادا کولې. لکه ځنګه چې پرونې د مازيګر قضا شوې لمونځ نن د لمر ډوبيدو په وخت کې نشی ادا کولې. بهرحال په ایام التشريق کې دا روژې نشی نيولې. اودا ایام التشريق نه روسته هم نشی ادا کولی. ځکه چې د دم په بدل کې د روژو وجوب خلاف قیاس ثابتې شوې وې. اودا قانون دې. چه کوم شی خلاف قیاس ثابت شی. هغه به مختص وی په خپل مورد پورې. اودهغې مورد د حج وخت دې. نوچه د حج وخت اوځی. ددې نه روسته روژه نيول ټيك نه دی. بلکه حکم به خپل اصل یعنی د هدی څاروی ته واپس کيږي. نوچه د هدی حیوان (څاروی) کله هم حاصل شی. دهغې قرباني به کوی.

### دایام التشريق نه روسته د روژو نيولوحکم

وَلَا يُؤَدِّيْ بَعْدَهَا اونه ادا کيږي روسته ددې (ایام التشريق) نه ځکه چې روژه بدل دې. لِأَنَّ الصَّوْمَ بَدَلٌ وَالْأَبْدَالُ لَا تُنْصَبُ إِلَّا شَرْعًا اوبدل نه روې کيږي مګرپه شريعت سره، وَالنَّصُّ خَصَّهُ بِوَقْتِ الْحَجِّ اونص خاص کړی دی دا په وخت د حج پورې، وَجَوَازُ الدَّمِ عَلَى الْأَصْلِ اودقربانۍ کول په خپل اصل دی.

حل اللغة: ① ولايؤدي، اديتادتة: اداکول ② لاتنصب، نصب نصبا (س): قائمول ]

تشريح: الردعلى الشافعى رحمه الله ﷺ په دې عبارت کې په امام شافعی رحمه الله باندې رد دې. په دې طريقه چې د درې ذکرشوو روژو قضا د ایام التشريق نه روسته هم ټيك نه ده. ځکه چې روژه د قربانۍ نه بدل دې. اوپوځيزد شريعت په حكم سره بدل ثابت کيدای شی. اونص قرآنی روژه د حج په وخت پورې خاص کړې ده. اود ایام التشريق نه روسته د حج وخت خارج شو. نود روژې نيولو اجازت به نه وی. ځکه چې دهغې خاص وخت ختم شو. اود قربانۍ جواز د روژې بدل نه دې. بلکه دا په خپل اصل دې. نود ایام التشريق تيريدو نه روسته صرف قرباني کوی. روژې نشی نيولې.

وَعَنْ عُمَرَ أَنَّهُ أَمَرَ فِيْ مِثْلِهِ بِذَبْحِ الشَّاةِ[1] اود حضرت عمر رضي الله عنه نه روايت دی. چه دوی په دې سې واقعه کې د ګډې په ذبح باندې حکم کړې وو.

[1] تقدم تخريجه في كتاب الصوم)_



تشريح:- تائيد الاحناف ﷺ اوزموږ تائيد په دې سره هم کيږي. چه يوقارن د هدی قربانی نشوه کولې. اود ایام الحج درې روژې ترې هم فوت شوې وې. ترددې چې يوم النحر راغلو. نوهغه ته عمر رضي الله عنه حکم اوکړلو چه وزه قربانی کړه. یعنی د هدی حیوان (څاروی) ورکړه. کوم چې اصل دې.

### په هدی باندې د عدم قدرت حکم

فَلَوْ لَمْ يَقْدِرْ عَلَى الْهَدْيِ تَحَلَّلَ وَعَلَيْهِ دَمَانِ: که قادر نشو قارن په هدی باندې نو ځان دې حلال کړی. اوپه ده دوې [دوه] قربانۍ دی. دَمُ التَّمَتُّعِ، وَدَمُ التَّحَلُّلِ قَبْلَ الْهَدْيِ قربانی د تمتع او قربانی د حلالوالی وړاندې د قربانۍ نه،

حل اللغة: ① لايقدر، قدر قدرة ض) قادرکيدل

تشريح:- وجوب الدمان على ا لقارن ﷺ صورت د مسئلې دا دې. که قارن درې روژې اونه نيولې. اوده ته په قربانۍ باندې قدرت حاصل نشو. نوځان دې حلال کړی. اوپه ده باندې دوې [دوه] قربانۍ واجب شوې. يوه قربانی د قران وبله قربانی ددې چې ده د هدی دڅاروی ذبح کاوه نه وړاندې ځان حلال کړلو.

فَإِنْ لَمْ يَدْخُلِ الْقَارِنُ مَكَّةَ وَتَوَجَّهَ إِلَى عَرَفَاتٍ که داخل نشوقارن مکې ته بلکه روان شو عرفات ته، فَقَدْ صَارَ رَافِضًا لِعُمْرَتِهِ بِالْوُقُوْفِ نواوګرځيدلو دې ماتونکې د عمرې خپلې په سبب د وقوف (په ډګر عرفات کې) لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ عَلَيْهِ أَدَاؤُهَا ځکه چې متعذر شو په ده باندې ادا کول ددې (عمرې) لِأَنَّهُ يَصِيْرُ بَانِيًا أَفْعَالَ الْعُمْرَةِ عَلَى أَفْعَالِ الْحَجِّ ځکه چې اوګرځيدو دې بناء کونکې د افعالودعمرې په افعالو د حج، وَذٰلِكَ خِلَافُ الْمَشْرُوْعِ اودا خلاف مشروع دې.

حل اللغة: ① رافضا: پريخودونکې

تشريح:- فسادالعمرة بالذهاب الى العرفات ﷺ دويمه مسئله دا ده. چه قارن مکې ته د داخليدو په ځائې نيغ عرفات ته لاړ شی. نودده عمره ماته شوه. ځکه چې اوس ددې قارن لپاره عمره کول متعذر شو. عمره کول ورته ځکه متعذرشو. که دې دحج نه روسته عمره اوکړی. نوپه دې کې دعمرې د افعالو ترتب په حج باندې راغلو. حالانکه دا د شريعت خلاف دې. مشروع دا دې. چه قارن اول عمره اوکړی. اوبيا حج اوکړی.

### صرف عرفات طرف ته په روانيدو د عمرې حکم

وَلَا يَصِيْرُ رَافِضًا بِمُجَرَّدِ التَّوَجُّهِ اونه ګرځی پريخودونکې (دعمرې) صرف په روانيدو سره عرفات ته، هُوَ الصَّحِيْحُ مِنْ مَذْهَبِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَيْضًا هم دا قول صحيح دې. په مذهب د امام ابوحنيفه رحمه الله ،

حل اللغة: ① توجه، متوجها: متوجه کيدل

تشريح:- الروايتان في ترک العمرة بالتوجه الى عرفات ﷺ ① مسئله دا ده. چه قارن صرف عرفات ته په روانيدو باندې دعمرې پريخودونکې نه ګرځی. بلکه ماتونکې به هله ګرځی. چه په نهمه ذوالحجه د زوال نه روسته عرفات ته اورسی. اوهلته وقوف اوکړی. د امام ابوحنيفه رحمه الله صحيح مذهب هم دا دې. ② البته دامام اعظم رحمه الله نه د حسن بن زياد رحمه الله په روايت کې دا منقول دی. چه عرفات ته صرف په روانيدو سره دده عمره پاتې کيږي. اوقياس دا دې. چه لکه څنګه په جمعه کې صرف جامع مسجد ته په روانيدو سره ماپښين ترک کيږي. نودغه شان چې قارن صرف عرفات ته روان شی. نودعمرې پريخودونکې دې شی.

وَالْفَرْقُ لَهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ مُصَلِّي الظُّهْرِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ إِذَا تَوَجَّهَ إِلَيْهَا اوفرق دامام ابوحنيفه رحمه الله لپاره په دې صورت اوپه مونځګذار

[1] قال الزيلعي رحمه الله قلت حديث غريب وكذا ذكره في المبسوط فنقل عن عمر رضي الله عنه أنه أتاه رجل يوم النحر فقال إني تمتعت بالعمرة إلى الحج فقال إذبح شاة قال ما معي شئ قال سل أقاربک قال ما ههنا أحد منهم فقال يا مغيث أعطه قيمة شاة) كذا في نصب الراية (١٢٩/٣)_

د جمعې د لمانځه په ورځ د جمعه کې دا دې.چه کله متوجه شی هغې (جمعې) ته، أَنَّ الْأَمْرَ هُنَالِكَ بِالتَّوَجُّهِ مُتَوَجِّهٌ بَعْدَ أَدَاءِ الظُّهْرِ، چې امر هلته (په باب د جمعه کې ) متوجه دې (ده ته) روسته د ادا کاوه د ماپښين نه، وَالتَّوَجُّهُ فِي الْقِرَانِ وَالتَّمَتُّعِ مَنْهِيٌّ عَنْهُ قَبْلَ أَدَاءِ الْعُمْرَةِ اوروانيدل په قران او تمتع کې منع شوې ده د دې نه وړاندې د ادا کاوه د عمرې نه.فَافْتَرَقَا نودواړه (صورتونه) جلا جلا شو.

**تشريح:- وجه الفرق بين المسئلتين**۞دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزيه دواړو مسئلو کې وجه د توپير دا ده.چه په جمعه کې کله د ماپښين لمونځ ادا کاوه نه روسته دې جامع مسجد ته روان شی.نود جمعې خطاب چې [وَاذْكُرُوا اللهَ] ده ته متوجه دې.اوپه حج قران او تمتع کې د عمرې ادا کاوه نه وړاندې د عرفات ته د تلو نه منع شوې دې.هرکله چې په دې دواړو مسئلو کښې دومره توپير دې.(چه په يو کې جمعې ته دتلو حکم متوجه دې.اوپه بل کې عرفات ته د تلو نه منع متوجه ده.) دا په جمعه باندې قياس کول نشی ټيک کيدې.

**د عمرې په پريخودو د دم قران ساقط کيدل**

قَالَ وَسَقَطَ عَنْهُ دَمُ الْقِرَانِ فرمائی اوساقط شو دده نه دم قران، لِأَنَّهُ لَمَّا ارْتَفَضَتِ الْعُمْرَةُ لَمْ يَرْتَفِقْ بِأَدَاءِ النُّسُكَيْنِ ځکه چې کله عمره پاتې شوه.نوده ته توفيق ملاؤ نشو،د ادا کاوه د دوو عبادتونو، فِيهِمَا وَعَلَيْهِ دَمٌ لِرَفْضِ الْعُمْرَةِ بَعْدَ الشُّرُوعِ اوپه ده باندې قرباني ده،د امله د پريخودو د عمرې روسته د پيل نه په دې کې،

**حل اللغة:** ① سقط،سقوطاً (ن): ساقط کيدل، پريوتل ② ارتفضت، ارتفاضاً: ترک کول، پريښول ③ رفض: پريښول]

**تشريح:- سقوط دم القران**۞مسئله دا ده.چه قارن د عمرې د افعالو ادا کاوه نه بغير نيغ عرفات ته لاړلو. نو دده د ذمې نه دم قران هم ساقط شو.ځکه چې دعمرې په پريخودو سره دې د دوو عبادتونو جمع کونکې نشو.اوهرکله چې ده ته د دوو عبادتونو جمع کاوه توفيق ملاؤ نشو.نو په ده باندې دم قران يعنی دم شکرهم واجب نشوه.البته په ده باندې د عمرې قضا واجب ده.اود عمرې پريخودو په وجه دم هم واجب دې.دم خو ددې امله واجب دې.چه ده په عمره کې د پيل کاوه نه روسته هغه ترک کړې ده.اوقضا د دې امله واجب ده.چه ده په عمره کې پيل صحيح شوې وه.اومسئله دا ده.چه نفل په پيل کاوه سره لازميږی.که هغه ترک کړی.نوقضا به ئې راوړی.

وَعَلَيْهِ قَضَاؤُهَا لِصِحَّةِ الشُّرُوعِ فِيهَا اوپه ده باندې قضا ددې ده،د امله د صحت د پيل په دې (عمره) کې، فَأَشْبَهَ الْمُحْصَرَ، وَاللهُ أَعْلَمُ نومشابه شو (دا قارن) د محصر سره (چه د عمرې احرام ئې تړلې وی.اوبيا د ادا کاوه نه بند شی.اوځان حلال کړی)والله اعلم

**تشريح:- وجوب الدم والقضاء**۞دا کس دمحصر پشان شو.محصر هغه څوک دې.چه احرام ئې تړلې وی.خود دشمن د ويرې يا د بل څه د امله د نسک د ادا کولونه بند شی.نودې به احرام پرانيزی.خوپه ده باندې يوه قربانی اوقضا شته.هم دغه ډول دعمرې په پريخودو باندې هم قربانی سره د قضا شته.والله اعلم

## باب التمتع

دا باب د تمتع په بيان کې دې.

**د حج تمتع افضلت**

التَّمَتُّعُ أَفْضَلُ مِنَ الْإِفْرَادِ عِنْدَنَا تمتع افضل دې د افراد نه

**حل اللغة:** ① التمتع، نفع اوچتول ② افراد: ځان له ③

**تشريح:- الرواية الواحدة في فضل التمتع**۞صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.① چه حج تمتع د حج افراد نه افضل دې.اوهم دا ظاهر روايت دې.



وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ الْإِفْرَادَ أَفْضَلُ، اودامام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې.چه افراد افضل دې. لِأَنَّ الْمُتَمَتِّعَ سَفَرُهُ وَاقِعٌ لِعُمْرَتِهِ ځکه چې متمتع سفردده واقع کيږی د عمرې لپاره وَالْمُفْرِدُ سَفَرُهُ وَاقِعٌ لِحَجَّتِهِ اوحاجی مفرد سفردده واقع کيږی د حج دپاره،

**تشريح:-** اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه په نادر روايت کې دا منقول دی.چه افراد افضل دې.امام شافعی رحمه الله هم ددې قائل دې.

**دليل نادرالرواية**۞د نادر روايت دليل دا دې.چه د حج تمتع سفر د عمرې لپاره وی.ځکه چې د ميقات نه د عمرې لپاره احرام تړی.اود حج افراد سفر د حج لپاره وی.ځکه چې دميقات نه د حج لپاره احرام تړی.اوعمره سنت ده.اوحج فرض دې.اودا ښکاره خبره ده.چه فرض افضل دی د سنت نه،نوکوم سفر چې د فرض حج لپاره وی.هغه به بهتر وی د هغه سفر نه کوم چې د سنت يعنی عمرې لپاره وی.نوافراد افضل شو تمتع نه.

وَجْهُ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ أَنَّ فِي التَّمَتُّعِ جَمْعًا بَيْنَ الْعِبَادَتَيْنِ اووجه د ظاهر روايت دا ده.چه په تمتع کې جمع د دوو عبادتونو ده، فَأَشْبَهَ الْقِرَانَ نومشابه شو د قران سره، ثُمَّ فِيهِ زِيَادَةُ نُسُكٍ وَهِيَ إِرَاقَةُ الدَّمِ بيا په دې (تمتع) کې زيادت د يو نسک دې.اوهغه (زيات) تويول د وينی (يعنی قربانی کول)دی.

**تشريح:- دليل ظاهرالرواية**۞دظاهر روايت دليل دا دې.چه نبی ﷺ حج قران کړې وو.اونبی ﷺ چې کوم حج کړې وی.هغه به افضل وی.نوقران افضل شو.اوتمتع هم د قران پشان ده.ځکه چې په دې کې دوې [دوه] عبادتونه جمع کيږی.نوتمتع به هم افضل وی.② دويمه خبره دا چې په تمتع کې يو نسک يعنی قربانی زياتی ده.اودا په افراد کې نشته.نوددې امله هم تمتع افضل دې د افراد نه.

وَسَفَرُهُ وَاقِعٌ لِحَجَّتِهِ اوسفر د ده واقع دې د حج دده دپاره، وَإِنْ تَخَلَّلَتِ الْعُمْرَةُ، لِأَنَّهَا تَبَعُ الْحَجِّ اګرچه په مينځ کې راغله عمره،ځکه چې دا (عمره) تابع ده د حج، كَتَخَلُّلِ السُّنَّةِ بَيْنَ الْجُمُعَةِ وَالسَّعْيِ إِلَيْهَا پشان د واقع کيدو د سنتو په مينځ د جمعې اوسعی کې

**تشريح:- الجواب من نادرالرواية**۞دنوادر د روايت ځواب ورکوی اوصاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چه چې د متمتع سفرهم دحج لپاره دې.اوپه مينځ کې د عمرې واقع کيدل ددې تابع دی.لکه څنګه چې د سعی الی الجمعه اوجمعې په مينځ کې سنت واقع شی.نودا نشی وئيلې چې دا سعی د سنتو لپاره ده.بلکه سعی هم د جمعې لپاره وی.اوسنت د جمعې تابع وی.دغه ډول دلته هم د متمتع سفرد حج لپاره وی.اګرچه په مينځ کې عمره واقع شی.

**د متمتع قسمونه**

وَالْمُتَمَتِّعُ عَلَى وَجْهَيْنِ مُتَمَتِّعٌ يَسُوقُ الْهَدْيَ ومتمتع په دوې [دوه] قسمه دې.هغه متمتع چې شړلې ئې وی هدی وَمُتَمَتِّعٌ لَا يَسُوقُ الْهَدْيَ اوبل هغه متمتع چې نه ئې وی شړلې هدی.

**حل اللغة:** ① هدی: د قربانئ ځناور

**تشريح:- قسمی التمتع**۞صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه دمتمتع دوې [دوه] قسمونه دی.① يوهغه چې حرم ارخ ته هدی اوشړی.② اوبل هغه چې هدی ئې نه وی شړلې.

وَمَعْنَى التَّمَتُّعِ التَّرَفُّقُ بِأَدَاءِ النُّسُكَيْنِ فِي سَفَرٍ وَاحِدٍ اومعنی د تمتع فائده اخستل دی په دوو عبادتونو(چه حج اوعمره دی) په يوسفر کې، مِنْ غَيْرِ أَنْ يُلِمَّ بِأَهْلِهِ بَيْنَهُمَا إِلْمَامًا صَحِيحًا بغير ددې نه چې المام صحيحه اوکړی دخپل اهل سره په مينځ ددې دواړو کې، وَيَدْخُلُهُ اخْتِلَافَاتٌ نُبَيِّنُهَا إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى اوداخليږی په دې (تعريف د تمتع) کې اختلافات چې بيان به ئې کړو انشاء الله

**حل اللغة:** ① ترفق: نفع اوچتول ② ان يلم، الم، الماماً: اقامت کول، راکوزيدل

**تشریح:- معنی التمتع**ۻ علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه د تمتع معنی ده.دحج اوعمرې په مینځ کي په خپل وطن کي بغیرد المام صحیحه نه په یوسفرکي د دوو عبادتونو نه نفع اخستل دی.

**معنی الالمام وقسمیه**ۻ د المام لغوی معنی ده.صفت د احرام پاته پریښول بغیرددې نه چې په خپل ایسار شی.اودا دوې [دوه] قسمه دی.① یوالمام صحیح ② اوبل المام فاسد،المام صحیح دا دې.چه حاجی متمتع خپل د هدی حیوان (څاروې) نه وی لیږلي.② اوالمام فاسد دا دې.چه د هدی څاروی اولیږی.د تمتع په تعریف کي څه اختلافات دی.انشاءالله موږ به هغه نزدې ذکر کړو.

## د تمتع طریقه

**وَصِفَتُهُ أَنْ يَبْتَدِئَ مِنَ الْمِيقَاتِ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ** اوطریقه ددې (حج تمتع) دا ده.چه پیل به اوکړی د میقات نه په میاشتود حج کي **فَيُحْرِمَ بِالْعُمْرَةِ وَيَدْخُلَ مَكَّةَ فَيَطُوفَ لَهَا وَيَسْعَى وَيَحْلِقَ أَوْ يُقَصِّرَ** نو احرام به اوتړی د عمرې اوداخل به شی مکې ته،نوطواف به اوکړی دې (عمرې) لپاره او سعی به اوکړی دې (عمرې) دپاره،اوحلق به اوکړی یا قصر **وَقَدْ حَلَّ مِنْ عُمْرَتِهِ** **وَهَذَا هُوَ تَفْسِيرُ الْعُمْرَةِ** اوحلال شو دې د عمرې خپلې نه،اوهم دا تفسیر د عمرې دې.

**حل اللغة:** ① ان یبداء ابتداء ابتداءً: پیل کول ]

**تشریح:-** واضح ده.

## دعمرې طریقه

**وَكَذَلِكَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يُفْرِدَ بِالْعُمْرَةِ فَعَلَ مَا ذَكَرْنَا** اودغه شان چې اراده اوکړی چې ځانله اوکړی عمره نوکوی به هغه کارونه کوم چې موږ ذکر کړل. **هَكَذَا فَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي عُمْرَةِ الْقَضَاءِ** (١) هم دغه ډول کړی وو رسول الله ﷺ په عمره د قضا کي

**حل اللغة:** ① اراد، ارادة اراده کول

**تشریح:-** صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.دعمرې چې کومه طریقه د حج تمتع په صورت کي بیان شوه.هم دغه طریقه دخالی عمرې هم ده.رسول الله ﷺ هم عمرة القضاء په دې طریقه کړې وه

**وَقَالَ مَالِكٌ: لَا حَلْقَ عَلَيْهِ** اوامام مالک رحمه الله فرمائی.چه نشته حلق په ده باندې، **إِنَّمَا الْعُمْرَةُ الطَّوَافُ وَالسَّعْيُ** عمره صرف طواف اوسعی ده.

**تشریح:-** البته امام مالک رحمه الله فرمائی.چه په عمره کونکی باندې حلق نشته.عمره صرف د طواف اوسعی نوم دی.

**وَحُجَّتُنَا عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَا** اوحجت زموږ په دوی باندې هغه دې کوم چې موږ روایت کړلو. **وَقَوْلُهُ تَعَالَى {مُحَلِّقِينَ رُءُوسَكُمْ} الْآيَةَ نَزَلَتْ فِي عُمْرَةِ الْقَضَاءِ** دا (آیت) نازل شوې دې په عمره د قضا کي ، **وَلِأَنَّهَا لَمَّا كَانَ لَهَا تَحَرُّمٌ بِالتَّلْبِيَةِ** اوبله دا چې هرکله ددې (دپاره) احرام وی په تلبیه وئیلو سره، **كَانَ لَهَا تَحَلُّلٌ بِالْحَلْقِ كَالْحَجِّ** نووی به ددې لپاره حلالیدل په حلق کاوه سره لکه د حج .

**تشریح:- دلائل الاحناف** رحمهم الله ۻ خودامام مالک رحمه الله خلاف یوخو د رسول الله ﷺ عمل حجت دې.ځکه چې په عمرة ا لقضا کي نبی ﷺ طواف سعی اوحلق درې واړه عملونه کړی وو.② دوهم دلیل دا دې.چه الله تعالی فرمائیلی دی. [لَقَدْ صَدَقَ اللَّهُ رَسُولَهُ الرُّؤْيَا بِالْحَقِّ لَتَدْخُلُنَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ إِنْ شَاءَ اللَّهُ آمِنِينَ مُحَلِّقِينَ رُءُوسَكُمْ وَمُقَصِّرِينَ لَا تَخَافُونَ] دا

---

(١) من حدیث ابن عمر رضی الله عنهما أخرجه البخاری فی الحج باب ١٠٤ رقم ١٦٩١ ومسلم فی الحج باب وجوب الدم علی المتمتع رقم ١٧٤)_



ایت دعمرة القضا په اړه کي نازل شوې دې.اوپه دې کي حلق اوقصر ذکر دی.نوحلق یا قصر ضروری دې.③ دریم دلیل دا دې.لکه څنګه تلبیه د عمرې لپاره تحریم دې.لکه څنګه چې تلبیه د حج لپاره تحریم دې.نوحلق یا قصر به ددې تحلیل وی.لکه څنګه چې حلق یا قصر د حج لپاره تحلیل دې.

## د طواف په پیل کي تلبیه پرېښول

**وَيَقْطَعُ التَّلْبِيَةَ إِذَا ابْتَدَأَ بِالطَّوَافِ** اوتلبیه به پرېږدی کله چې پیل اوکړی په طواف،

**حل اللغة:** ① یقطع، قطعاً (ف): ختم کول، ماتول

**تشریح:- المذهبان في وقت قطع التلبية**ۻ صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.① چه عمره کونکې چې څنګه په طواف پیل اوکړی.نوتلبیه وئیل به پرېږدی.

**وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللَّهُ: كُلَّمَا وَقَعَ بَصَرُهُ عَلَى الْبَيْتِ** اوفرمائی امام مالک رحمه الله څنګه چې واقع شی نظر دده په بیت الله باندې (نو تلبیه به پرېږدی) ؛ **لِأَنَّ الْعُمْرَةَ زِيَارَةُ الْبَيْتِ وَتَتِمُّ بِهِ** ځکه چې عمره زیارت د بیت الله دې.اوهغه پوره شو په دې (لیدو) باندې.

**حل اللغة:** ① وقع، وقوعاً (ف): پریوتل، واقع کیدل ② تتم، اتماماً (ض) پوره کیدل

**تشریح:-** اوامام مالک رحمه الله فرمائی.چه څنګه ئې په بیت الله نظر پریوځی.نوتلبیه وئیل به پرېږدی.

**دلیل مالک** رحمه الله ۻ دامام مالک رحمه الله دلیل دا دې.چه عمره د بیت الله د زیارت نوم دې.نوچه څنګه ئې په بیت الله نظر پریوځی. زیارت اوشو.نوتلبیه وئیل به پرېږدی.

**وَلَنَا {أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي عُمْرَةِ الْقَضَاءِ قَطَعَ التَّلْبِيَةَ حِينَ اسْتَلَمَ الْحَجَرَ}** (١) اوزموږ لپاره دلیل دا دې.چه نبی ﷺ په عمرة القضاء کي پریښولې (پریخودې) وه تلبیه کله چې ئې ښکل کړلوحجراسود،

**حل اللغة:** ① استلم، استلاً: لاس لګول

**دلائل الاحناف** رحمهم الله ۻ اوزموږ دلیل دا دې.چه نبی ﷺ په عمرة القضا کي چې کله په طواف کي حجر اسود ښکل کړلو.نوتلبیه وئیل ئې پریښولو .داسې نه چې د بیت الله په کتلو ئې تلبیه پریښولې (پریخودې) وه. نو معلومه شوه.چه د تلبیه د پریښولو وخت طواف دې

**وَلِأَنَّ الْمَقْصُودَ هُوَ الطَّوَافُ** اوبله دا چې مقصود خو طواف دې **فَيَقْطَعُهَا عِنْدَ افْتِتَاحِهِ** نوپرېږدی به تلبیه په وخت د پیل ددې (طواف) کي ، **وَلِهَذَا يَقْطَعُهَا الْحَاجُّ عِنْدَ افْتِتَاحِ الرَّمْيِ** اوددې امله قطع کوی به ئې حاجی په وخت د پیل د رمی کي

**تشریح:-** دوهم دلیل دا دې.چه د عمرې نه مقصود طواف دې.نوچه څنګه طواف پیل کړی.تلبیه دې پرېږدی.لکه څنګه چې حاجی څنګه په رمی پیل اوکړی.نوتلبیه وئیل پرېږدی.

## د متمتع د عمرې نه حلالیدل اودحج لپاره دوباره احرام تړل

**قَالَ وَيُقِيمُ بِمَكَّةَ حَلَالًا** او اوسیږی به په مکه کي حلال **لِأَنَّهُ حَلَّ مِنَ الْعُمْرَةِ** ځکه چې دې حلال شو دعمرې نه

**قَالَ فَإِذَا كَانَ يَوْمُ التَّرْوِيَةِ أَحْرَمَ بِالْحَجِّ مِنَ الْمَسْجِدِ** چې کله شی ورځ د ترویه نو احرام به اوتړی په حج سره د جمات نه، **وَالشَّرْطُ أَنْ يُحْرِمَ مِنَ الْحَرَمِ** اوشرط دا دې چې احرام اوتړی د حرم نه، **أَمَّا الْمَسْجِدُ فَلَيْسَ بِلَازِمٍ** هرچه جمات دې نو لازم نه دې (احرام تړل ددې نه)

**حل اللغة:** ① یقیم، اقامة: قیام کول، حصاریدل ② احرم، احراماً: احرام تړل

---

(١) من حدیث ابن عباس رضی الله عنهما أخرجه الترمذی فی الحج باب ٧٩ رقم ٩١٩ وأبوداود فی المناسک باب ٢٨ قم ١٨١٧ )_

**تشریح:- القيام في المكة ثم احرام الحج** ۞ مسئله دا ده.چه عمره کونکې کله د عمرې د احرام نه حلال شی.نودې به هم په دې حالت کي په مکه کي قیام کوی.(دا څه ضروری نه ده.چه د مکې څخه به بهر ته نه اوځی.)چه کله د ذوالحجه اتم تاریخ شی.نودحج لپاره به احرام اوتړی.ددې احرام د حرم نه تړل شرط دې.اود مسجد حرام نه ئې تړل افضل دی.دغه ډول د آتمې ذوالحجه نه وړاندې هم احرام تړل افضل دی.

**وهذا لأنه في معنى المكي** اودا خبره (څکه ده چه)دې (حاجی متمتع) په پشان د مکی دې. **وميقات المكي في الحج الحرم على ما بينا** اومیقات دمکی په حج کي حرم دې.بنا په هغه چې موږ بیان کړی دی (په باب المواقيت کي)

**تشریح:- دليله** ۞ دلیل دا دې.چه دا سړی د مکی په حکم کي دې.اومکی به په حرم کي احرام تړی.لکه څنګه چي ددې تفصیل په باب المواقيت کي تیر شوې دې.

**وَفَعَلَ مَا يَفْعَلُهُ الْحَاجُّ الْمُفْرِدُ** وکوی به (مناسك دحج) لکه څنګه چي کوی حاجی مفرد ، **لِأَنَّهُ مُؤَدٍّ لِلْحَجِّ إِلَّا أَنَّهُ يَرْمُلُ فِي طَوَافِ الزِّيَارَةِ** څکه چي دې ادا کونکې دحج دې.البته دومره ده چي دې به رمل کوی په طواف زیارت کي، **وَيَسْعَى بَعْدَهُ لِأَنَّ هَذَا أَوَّلُ طَوَافٍ لَهُ فِي الْحَجِّ** اوسعی به کوی روسته ددې (طواف زیارت) نه،څکه چي دا اول طواف دې دده (متمتع) په (موده د)حج کي ، (نوځکه به په کي سعی کوی.اوچونکه د کوم طواف نه روسته چي سعی وی.په هغې کي رمل وی.نودې به رمل هم کوی) **بِخِلَافِ الْمُفْرِدِ لِأَنَّهُ قَدْ سَعَى مَرَّةً** په خلاف د مفرد (هغه به سعی اورمل نه کوی)څکه چي هغه سعی یوځل کړې ده.(اوپه حج کي دوباره سعی مشروع نه ده)

**حل اللغة** ۞ ① **مؤد:** اداکونکې ② **سعی، سعیاً "ف":** کوښښ کول سعی کول ]

**تشریح:- اتحاد افعال المتمتع والمفرد الا في مسئلتين** ۞ صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.دا متمتع به اوس هغه احکام کوی.کوم چي مفرد بالحج کوی.څکه چي دې اوس هم دحج د افعالوادا کونکې دې.البته دومره توپیر شته.چي دا کس به په طواف زیارت کي رمل کوی.اوپه صفا مروه کي به سعی کوی.څکه چې په حج کي دا دده اولنې طواف دې.په خلاف د مفرد (هغه به رمل نه کوی.)څکه چې هغه د طواف قدوم نه روسته سعی کړې ده.اوسعی صرف یوځل مشروع ده.

## منی ته دتلو نه وړاندې د متمتع طواف او سعی کول

**وَلَوْ كَانَ هَذَا الْمُتَمَتِّعُ بَعْدَ مَا أَحْرَمَ بِالْحَجِّ طَافَ وَسَعَى** وکه وی دا متمتع روسته ددې نه چې احرام اوتړی د حج نوطواف اوکړی اوسعی اوکړی. **قَبْلَ أَنْ يَرُوحَ إِلَى مِنًى لَمْ يَرْمُلْ فِي طَوَافِ الزِّيَارَةِ** وړاندې ددې نه چې روان شی منی ته،نو رمل به نه کوی په طواف زیارت کي ، **وَلَا يَسْعَى بَعْدَهُ** اوسعی به نه کوی روسته ددې نه

**حل اللغة** ۞ ① متمتع، نفع اوچتونکې ② **ان يروح، راح، روحاً (ن):** تلل

**تشریح:- اداء طوف القدوم والسعی قبل الرمی** ۞ وړاندې تیرشو.چه متمتع د عمرې ارکان اوکړی.نوځان به حلال کړی.اوپه مکه کي به قیام اوکړی.اوبیا به په اتمه ذوالحجه د حج لپاره احرام اوتړی.اوس که دې متمتع دحج احرام اوتړلو.اومنی ته د تلو نه وړاندې ئې طواف قدوم اوسعی اوکړه.نودا کس دې په طواف زیارت کي رمل نه کوی.اونه دې ددې نه روسته سعی کوی.که په طواف قدوم کي ئې رمل کړې وی اوکه نه،

**لِأَنَّهُ قَدْ أَتَى بِذَلِكَ مَرَّةً** څکه چي راتګ کړې دې په سعی باندې یوځل،(اودوباره سعی نشته)

**تشریح:- دليله** ۞ د طواف زیارت نه روسته به سعی څکه نه کوی.چه سعی د طواف قدوم نه روسته یوځل مشروع ده. اویوځل ده کړې ده.او په طواف زیارت کي به رمل څکه نه کوی.چه سعی په دې سې طواف کي مشروع ده.چه د هغې نه روسته سعی وی.اود طواف قدوم نه روسته ده سعی کړې ده.ددې امله به د طواف زیارت نه روسته سعی نه کوی.اوچه سعی نشته.نورمل هم پاتې نشو.

**وَعَلَيْهِ دَمُ الْمُتَمَتِّعِ لِلنَّصِّ الَّذِي تَلَوْنَاهُ** اوپه ده باندې دم تمتع دې.د امله د هغه آیت نه چي مونږ اولوستل، (**فَإِنْ لَمْ**



**يَجِدْ صَامَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةً إِذَا رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ**) که نه مومی قربانی نو روژې به نیسی درې روژې په ورځو دحج کي اواووه کله چي واپس شی (خپل وطن ته) **عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي بَيَّنَّاهُ فِي الْقِرَانِ** په هغه طریقه چي موږ بیان کړی دی په (بحث د )قران کي ،

**حل اللغة** ۞ ① **لم يجد، وجد وجداناً(ض):** موندل

**تشریح:- وجوب الهدی علی المتمتع** ۞ صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه په حاجی متمتع باندې قربانی واجب ده. دلیل دالله تعالی ارشاد دې. [**فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ**] اوکه متمتع د هدی د څاروی په حاصلولو قادر نه وی.نود قارن پشان دې د حج په زمانه کي درې روژې اونیسی.اواووه روژې دې د حج د فراغت نه روسته اونیسی.تفصیل اودلیل په حج قران کي تیر شوې دې.

**فَإِنْ صَامَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مِنْ شَوَّالٍ** که روژې ئې اونیولې درې په میاشت د شوال کي **ثُمَّ اعْتَمَرَ لَمْ يُجْزِهِ عَنِ الثَّلَاثَةِ** بیا ئې عمره اوکړه.نه جائز کیږی ده لره د درې روژو نه (کومې چې د قربانۍ په بدله کي په ده باندې واجب شوی وی) **لِأَنَّ سَبَبَ وُجُوبِ هَذَا الصَّوْمِ التَّمَتُّعُ** څکه چې سبب د وجوب ددې (درې روژو) تمتع ده. **لِأَنَّهُ بَدَلٌ عَنِ الْهَدْيِ وَهُوَ فِي هَذِهِ الْحَالَةِ غَيْرُ مُتَمَتِّعٍ** څکه چې دا بدل دی د قربانۍ نه،اودې په دې حالت کي (چه د احرام تړلو نه وړاندې روژې اونیسی) نه دې متمتع ، **فَلَا يَجُوزُ أَدَاؤُهُ قَبْلَ وُجُودِ سَبَبِهِ** نودی جائز ادا کول ددې وړاندې د موجود کیدو د سبب ددې نه،

**حل اللغة** ۞ ① **اعتمر، اعتماراً:** عمره کول

**تشریح:- عدم اعتبار الصیام قبل احرام العمرة** ۞ صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.که یوکس په شوال کي درې روژې اونیولې.اوددې نه روسته ئې بیا دعمرې لپاره احرام اوتړل.نودغه درې روژې د حج تمتع د قربانی بدل نشی ګرځیدې.څکه چې ددې درې روژو د وجوب سبب تمتع دې.اودې کس چې کله روژې نیولې.نوپه هغه وخت کي دې متمتع نه وو.نود سبب نه وړاندې د یوڅیز موجود کیدل معتبر نه دی.څکه هغه روژې د تمتع د قربانۍ نه بدل نشی ګرځیدې.

**وَإِنْ صَامَهَا بِمَكَّةَ بَعْدَ مَا أَحْرَمَ بِالْعُمْرَةِ** وکه دا روژې ئې اونیولې روسته ددې نه چې احرام ئې تړلې وو دعمرې دپاره، **قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ جَازَ عِنْدَنَا** وړاندې ددې نه چې طواف اوکړی نوجائز دې زموږ په نیز

**تشریح:- المذهبان في اعتبار الصیام بعد احرام العمرة قبل الحج** ۞ ① اوکه دعمرې د احرام تړلو نه روسته ئې دا روژې اونیولې.نو زموږ په نیز دا جائز دی.

**خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ لَهُ قَوْلُهُ تَعَالَى {فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ}** خلاف ثابت دې د امام شافعی رحمه الله د هغوی لپاره قول د الله تعالی دې ﴿**فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ**﴾

**تشریح:-** اودامام شافعی رحمه الله په نیز جائز نه دی.

② **دليله** ۞ دامام شافعی رحمه الله دلیل د الله تعالی ارشاد دې.﴿**فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ**﴾ څکه چې ددې روژو لپاره حج مقرر شوې دې.نودا روژې به هله معتبر وی.چه د حج د احرام نه روسته وی.اوچه د حج د احرام نه وړاندې اونیولې شی.نودهغې به څه اعتبار نه وی.

**وَلَنَا أَنَّهُ أَدَاهُ بَعْدَ انْعِقَادِ سَبَبِهِ** او زمونږ دلیل دا دې.چه دا ادا کول (د روژو)دی روسته د وجود د سبب د هغې نه،

**تشریح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ۞ زمونږ دلیل دا دې.چه دې کس د سبب د وجود نه روسته یعنی د تمتع موندلو نه روسته روژې نیولی دی.اوکوم شی چې د خپل سبب نه روسته موجود شی.هغه معتبر وی.نوځکه د عمرې احرام تړلو نه روسته به دا روژې معتبر وی.

وَالْمُرَادُ بِالْحَجِّ الْمَذْكُورِ فِي النَّصِّ وَقْتُهُ او مراد په حج سره چې ذکر دې په نص کې وخت ددې (حج) دې. عَلٰى مَا بَيَّنَّا په هغه چې مونږ بيان کړې دی. (وړاندې) وَالْأَفْضَلُ تَأْخِيرُهَا إِلٰى آخِرِ وَقْتِهَا او غوره روستو کول ددې (روژې) دی آخر وخت ددې ته، وَهُوَ يَوْمُ عَرَفَةَ لِمَا بَيَّنَّا فِي الْقِرَانِ اودا ورځ د عرفې ده، لکه څنګه چې موږ بيان کړې دی په (باب) قران کې

تشريح:- الجواب من دليل الشافعي رحمه الله اوپه آيت کې د حج نه فعل د حج مراد نه دې. بلکه د حج وخت مراد دې. اود حج وخت د شوال ذوالقعدې او ذوالحجه لس روځې دی. نود حج په وخت کې روژې موجود شوې. خوغوره دا دی. چه دا روژې آخرى وخت ته روستو کړی. يعنی د عرفې په ورځ دا روژې ختمې کړی. نوپه دې به د اوومې اتمې او نهمې ذوالحجه روژې نيسی.

## د متمتع سائق الهدى طريقه د حج

وَإِنْ أَرَادَ الْمُتَمَتِّعُ أَنْ يَسُوقَ الْهَدْيَ أَحْرَمَ او که اراده اوکړه تمتع کوونکی چې روانه کړی هدی نو احرام دې اوتړی وَسَاقَ هَدْيَهُ او روانه دې کړی خپله هدی. وَهٰذَا أَفْضَلُ او داغوره ده

حل اللغة ① يسوق، سوقًا (ن): څناور د روستونه ترټل ② هدى: د قربانۍ څناور

تشريح:- فضل سوق الهدى مع نفسه مسئله دا ده. که متمتع هدی ليږل غواړی. نود عمرې احرام دې اوتړی. اوخپل هدی دې اوليږی. صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی. چه دمتمتع هدی څان سره بوتلل د نه بوتلو نه افضل دی. ځکه چې د الله تعالى پيغمبر ﷺ خپل څان سره د قربانۍ څاروی بوتلی وو.

لِأَنَّ النَّبِيَّ سَاقَ الْهَدَايَا مَعَ نَفْسِهِ (١) ځکه چې نبی ﷺ خپلې قربانۍ د څان سره بوتلې وې. وَلِأَنَّ فِيهِ اسْتِعْدَادًا وَمُسَارَعَةً اوځکه چې په دې کې سامان دخير او عجلت دې. فَإِنْ كَانَتْ بَدَنَةً قَلَّدَهَا بِمَزَادَةٍ أَوْ نَعْلٍ لِحَدِيثِ عَائِشَةَ عَلٰى مَا رَوَيْنَاهُ اوس که دغه اوښ يا غوې وه نو وی دې چوی ددې په غاړه کې دڅرمنې پټی يا پيزوان. په دليل د حديث دحضرت عائشې رضي الله عنها کوم چې موږ روايت کړې دې

حل اللغة ① مسارعة: تندی کول ② بدنة: اوښ غوې ③ قلدها، قلد تقليداً: د څناور په غاړه کښې پټه اچول ④ مزادة: توښه دان:

تشريح:- دلائله ① لکه څنګه چې په مسلم کې د حضرت جابر رضي الله عنه دحديث نه ښکاره ده. ② او دوهم دليل دا چې هدی څان سره بوځی. نوپه دې کې دنيکۍ تيارى اوبه واجب ادا کاوه کې تلوار دې. اودا دواړه خبرې خوښې شوی دی. ځکه د هدی څان سره بوتلل د نه بوتلو نه افضل دی.
اوس که د هدی حيوان (څاروې) اوښ ياغوې وی. نودهغې په غاړه کې دې د څرمنې ټوټه يا د چمپلان ټوټه واچوی. اوغاړکۍ دې ترې جوړه کړی. لکه د حضرت عائشې رضي الله عنها حديث «كنت أفتل القلائد هدى رسول الله ﷺ» نه چه ښکاره ده.

وَالتَّقْلِيدُ أَوْلٰى مِنَ التَّجْلِيلِ اوبتۍ اچول ورته بهتردی د پيزوان اچولونه

حل اللغة ① تجليل: څناورباندې څل اچول

تشريح:- فضل القلائد من التجليل صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی. چې څاروی ته د (جول) اچولو په نسبت غاړکۍ

---

(١) قال الزيلعى رحمه الله أخرجه البخارى ومسلم عن ابن عمر رضي الله عنهما قال تمتع رسول الله ﷺ فى حجة الوداع بالعمرة إلى الحج وأهدى فساق معه الهدى من ذى الحليفة وبدأ رسول الله ﷺ فأهل بالعمرة ثم أهل بالحج وتمتع الناس معه (كذا فى نصب الراية ١٣٣/٣)_



اچول غوره دی.
لِأَنَّ لَهُ ذِكْرًا فِي الْكِتَابِ اوځکه چې دتقليد ذکردی په قران کې وَلِأَنَّهُ لِلْإِعْلَامِ وَالتَّجْلِيلُ لِلزِّينَةِ اوځکه چې داد د خبرداری لپاره دې او پيزوان اچول د ښکلی والی لپاره دی.

حل اللغة ① اعلام: خبرول ]

تشريح:- دلائله ① دليل د افضليت دا دې. چه د قلائدو ذکر په قرآن پاک کې موجود دې. ارشاد دې [جَعَلَ اللّٰهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيَامًا لِّلنَّاسِ وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ وَالْهَدْيَ وَالْقَلَائِدَ] دوهم دليل دا دې. چه تقليد صرف د دې خبر ور کاوه لپاره دې. چه دا د هدی حيوان (څاروې) دې. ددې نه بله فائده په کې نشته. او (جول) اچول د زينت لپاره هم وی. اود ګرمۍ او يخنۍ لرې کاوه لپاره هم وی. نوتقليد بغيرد بل شی د احتمال نه د هدی نښانه ده. او (جول) اچول يقينی نښانه نه ده. نوځکه غاړکۍ د (جول) اچولو نه غوره ده.

ثُمَّ يُلَبِّي ثُمَّ يُقَلِّدُ، لِأَنَّهُ يَصِيرُ مُحْرِمًا بِتَقْلِيدِ الْهَدْيِ او تلبيه به اووائی، بيا به تقليد اوکړی ځکه چې دې محرم شو په تقليد د هدی وَالتَّوَجُّهِ مَعَهُ عَلٰى مَا سَبَقَ اوپه متوجه کيدلو ددې سره لکه چې مخکې بيان شوې دې وَالْأَوْلٰى أَنْ يَعْقِدَ الْإِحْرَامَ بِالتَّلْبِيَةِ او بهتره دا ده چې احرام اوتړی د تلبې سره

حل اللغة ① ان يعقد، عقد عقداً (ض) ترل

تشريح:- فضل الاحرام بالتلبية صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی. چه اول دې په تلبيه احرام اوتړی. اوبيا دې تقليد اوکړی. اوپه دې سره خو محرم شو. لکه څنګه چې وړاندې تيرشوی دی. خوغوره دا ده. چه تلبيه اووائی. اواحرام اوتړی. ځکه چې دا تلبيه اصل دې. اوتقليد ددې قائم مقام دې. اوچه ممکن وی نو په اصل باندې عمل کول غوره دی. نوځکه په تلبيه سره احرام پيل کول غوره دی.

وَيَسُوقُ الْهَدْيَ وَهُوَ أَفْضَلُ مِنْ أَنْ يَقُودَهَا او هدی اوشړی. او دا ددې نه بهتر دی چې قربانی د مخې نه راکاږی

حل اللغة ① ان يقودها، قاد قوداً (ن): د وړاندې نه راښکل

تشريح:- فضل سوق الهدى ① صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی. چه هدی چې د روستو نه شړی نه دا غوره ده دې ته په نسبت سره چې د مخکې نه ئې راکاږی.

لِأَنَّهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْرَمَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ وَهَدَايَاهُ تُسَاقُ بَيْنَ يَدَيْهِ (١) ځکه چې نبی ﷺ احرام اوتړلو په ذولحليفه کې او حال دا چې ددوی قربانی ددوی په وړاندې شړلې شوه. ولأنه أبلغ فى التشهير إلا إذا كانت لا تنقاد فحينئذ يقودها اوځکه چې داپه شهرت کې ډيره بليغه ده مګر که هدی نه منی (شړل) نو بيا به دمخې نشی راښکلې.

تشريح:- دلائله ① ځکه چې د الله تعالى پيغمبر ﷺ په مقام ذوالحليفه کې احرام اوتړلو. اود دوی دهدی حيوان (څاروې) ددې نه مخکې ي شړلې شو. ② دوهم دليل دا دې. چه په تقليد کې مقصد عوامو کې ددې تشهير کول دی. اود شا اړخ نه شړلو کې دا مقصد ښه حاصليږی نوځکه ترټل غوره دی. (د راښکلو نه) البته دا که د هدی حيوان (څاروې) په شړلو سره نه ځی. نوپه دې سې صورت کې د مخکښې نيول راښکل کولې شی. په دې کې څه حرج نشته.

## د بدنه داشعار حکم

قَالَ وَأَشْعَرَ الْبَدَنَةَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ (٢) اواشعار به کوی داوښ د صاحبينو رحمهما الله په نزد. وَلَا يُشْعِرُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ وَيُكْرَهُ او نشته اشعار په نيز د امام ابو حنيفه بلکه مکروه دې

---

(١) تقدم تخريجه فى باب القران)_
(٢) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله وما نقل عن الإمام من الكراهة فمهومها مذكور فى التسهيل)

**حل اللغة*** ① اشعر، اشعاراً: زخمي کولو سره زخم په وينا ککړول

**تشريح:- المذهبان في اشعار البدنة**۞ مسئله دا ده. ① که دهدي ښاروي وزه يا ګډه وي. نو په اتفاق سره به ددې اشعار نه کوي. او که بدنه وي. نود صاحبينو رحمهما الله په نيز به ددې اشعار کيدلې شي. ② او دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ددې اشعار کول مکروه دي.

**والاشعار** او اشعار به نه کوي دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد او اشعار مکروه دي. **هو الادماء بالجرح لغة** او اشعار په لغت کي زخمي کول او په وينه ککړول دي **وصفته ان يشق سنامها بان يطعن في اسفل السنام** او طريقه ئې داده چې داوښ بوق به څيرې کړي. په دې شان چې نيزه لاندې اړخ ته وې **من الجانب الايمن او الايسر** د ښى اړخ نه ياد چپه اړخ نه. **قالوا والاشبه هو الايسر** عالمان وائي چې حق مشابه چپه اړخ دې.

**حل اللغة*** ① الادماء: د زخم نه وينه ويستل ② جرح: زخم ③ ان يشق، شق شقًا (ن) شلول ④ سنام: قوب

**تشريح:- معنى الاشعار**۞ په لغت کي اشعار زخمي کول او وينه راويستل دي. او طريقه ئې دا ده. چه ښى اړخ ته د قوب نه لاندې به نيزه او هي. او دهغه ځائې به اوشلوي. متاخرين عالمان رحمهم الله فرمائي. چه صحت سره زيات مشابه چپه اړخ دې. يعنى چپه اړخ ته اشعار کول زيات مناسب دي.

**لان النبي صلى الله عليه وسلم طعن في جانب اليسار مقصودا**[1] ځکه چې نبي عليه السلام په چپه اړخ کي نيزه قصداً وهلې وه. **وفي جانب الايمن اتفاقا** او په ښى اړخ کي په اتفاق سره

**حل اللغة*** ① بان يطعن، طعن طلعنا (ف، ن): نيزه ورخښول

**تشريح:- دليله**۞ دليل دا دې. چه د نبي ﷺ نه دواړو طرفونو نه اشعار مروى دې. خو نبي ﷺ په قصد سره چپه اړخ ته نيزه وهلې وه. او ښى اړخ ته ئې اتفاقاً وهلې وه. او دا ښکاره خبره ده. چه پيغمبر کوم کار په قصد سره کوي نود امت لپاره هغه واجب الاتباع وي

**ويلطخ سنامها بالدم اعلاما** او ددې بوق به په وينو ګنده کړي د خبرور کاوه دپاره.

**حل اللغة*** ① يلطخ، لطخا (ف): ککړول

**تشريح:-** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چه د اشعار په وخت کي دې په وينه ښاروي قوب ککړ کړي. چه خلګ پوهيږي. چه دا دهدي حيوان (ښاروې) دې.

**وهذا الصنع مكروه عند ابي حنيفة رحمه الله** او دا حرکت مکروه دې. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد. **وعندهما حسن وعند الشافعي رحمه الله سنة** او د صاحبينو رحمهما الله په نيز ښه دې او دامام شافعي رحمه الله په نزد سنت دې

**تشريح:-** صاحب دهدايه رحمه الله د مذاهبو بيان کوي. او دا فرمائي. چه اشعار يعنى نيزه وهل او قوب زخمي کول دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز مکروه عمل دې. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز بغير کراهته جائز دې. او دامام شافعي رحمه الله په نيز مسنون دې. هم دا د حضرت امام مالك او امام احمد او جمهورو عالمانو رحمهم الله مذهب دې.

**لانه مروي عن النبي صلى الله عليه وسلم**[2] **وعن الخلفاء الراشدين رضي الله عنهم** ځکه چې دا د نبي ﷺ او خلفاء راشدينو رضي الله عنهم نه راويت دې.

---

[1]) قال الزيلعي رحمه الله رواية الطعن في الجانب الأيمن فأخرجه مسلم ...عن ابن عباس .... وأما رواية الطعن في الأيسر فرواها ابويعلى الموصلي في مسنده كذا في نصب الراية ٣/١٣٤)_

[2]) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه مسلم في الحج رقم ٢٠٥ وأبوداود في المناسك باب ١٤ رقم ١٧٥٩ والنسائي في المناسك باب ٦٤ رقم ٢٦٠٠ وابن ماجه في المناسك باب ٩٦ رقم ٣٠٩٧ والترمذي في الحج باب ٦٧ رقم ٩٠٦ وأحمد في المسند (١/٢٥٤)-



**تشريح:- دليل الشافعي رحمه الله**۞ دامام شافعي رحمه الله دليل دا دې. چه د اشعار عمل رسول الله ﷺ او د خلفاء راشدينو نه ثابت دې. لکه امام ترمذي چې ذکر کړې دې. او کوم عمل چې د رسول الله ﷺ نه ثابت شي. د هغې په مسنونيت کي څه شك پاتې شو.

**ولهما ان المقصود من التقليد ان لا يهاج اذا ورد ماء او كلأ**، د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې چې د تقليد مقصود دا دې. چه بدنه او نه شړلې شي کله چې اوبه او ښوته راشي **او يرد اذا ضل** يا دا واپس کړې شي کله چې بې درکه شي. **وانه في الاشعار اتم، لانه الزم** او دا خبره په اشعار کي په پوره طور ځکه ده. چه اشعار ښه لازم دې. **فمن هذا الوجه يكون سنة** نو په دې امله سره خو اشعار سنت شو **الا انه عارضه جهة كونه مثلة** مګر په دې کي د مثله کيدو وجه راغله. **فقلنا بحسنه** په دې امله سره موږ اووئيل چې دا ښه دې.

**تشريح:- دليل الصاحبين رحمهما الله**۞ د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې. چه د هدي ښاروې ته غاړکئ اچول ددې مقصد لپاره وي. که د هدي حيوان (ښاروې) د اوبو يا فصل ته ورشي. چه هغوى ئې نه شړي. يا که هغه ورك شي. هغه واپس کولې شي. او دا خبره په اشعار کي په کامله طريقه موجود ده. او لازمه هم ده. ځکه چې داسې زخم ډيرزر نه ښه کيږي. چه هرسړې دا ويني. نو پوهيږي به چې دا هدي حيوان (ښاروې) دې. بهرحال په دې اعتبار سره اشعار سنت دې. البته دا ده چې په اشعار کي مثله هم موجوديږي. او مثله ممنوع ده. نو ددې امله موږ مينځنئ لار اختيار کړه. او هغه دا چې اشعار نه مکروه دې. او نه سنت دې. بلکه مستحسن امر دې.

**السوال والجواب**۞ او که ته دا اووائې. چه اشعار د احاديثو نه ثابت دې. نو بيا څنګه مسنون نشو. نو ددې ځواب دا دې. چه احاديث دواړه قسمه وارد شوي دي. حراموونکي هم او مباح ګرځونکي هم، نو محرم ته ترجيح ورکړې شوه او اشعار مکروه اوګرځولې شو.

**ولابي حنيفة انه مثلة وانه منهي عنه** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې چې اشعار مثله ده او مثله ممنوعه ده. **ولو وقع التعارض فالترجيح للمحرم** او که تعارض راشي نو غوره والې به محرم لره وي.

**تشريح:-** دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې چې دا مثله ده او مثله کول ممنوع ده او که تعارض واقع شي نو ترجيح محرم ته وي

**واشعار النبي صلى الله عليه وسلم كان لصيانة الهدي**، او د نبي کريم ﷺ اشعار کول د هدي د ساتنه لپاره وو **لان المشركين لا يمتنعون عن تعرضه الا به** ځکه چې مشرکان به دهدي د چيړلو نه نه قلاريدل مګر به اشعار سره **وقيل: ان ابا حنيفة كره اشعار اهل زمانه** او وئيلې شوي دي چې امام ابوحنيفه رحمه الله دخپلې زمانې اشعار مکروه کړې دې **لمبالغتهم فيه على وجه يخاف منه السراية** چې دغو خلګ وبه په اشعار کي دومره مبالغه کوله په کوم سره چې نو بدن ته د خوريدو ويره به وه. **وقيل: انما كره ايثاره على التقليد** او دا هم وئيلې شوي دي چې دوى په تقليد باندې اشعار ته مکروه وئيلي دي.

**تشريح:- الاجوبة من مستدل الشافعي رحمه الله** ۞ ① اود «اشعار النبي ﷺ» نه د امام شافعي رحمه الله د دليل ځواب دې. د دليل حاصل دا دې. چه د نبي ﷺ اشعار کول د هدي د ښارو د ساتنه لپاره وو. ځکه چې مشرکان به د هدي د ښاروي د ذبح کاوه نه په هغه وخت کي منع کيدل. چه د هغې اشعار به شوې وو. او چونکه زموږ په زمانه کي دا خبره نشته. نو د اشعار څه اړتيا هم پاتې نشو. ② امام طحاوي رحمه الله فرمائي. چه امام ابوحنيفه رحمه الله دخپلې زمانې د خلګ اشعار ته مکروه وئيلي وو. ځکه چې دهغوى په زمانه کي به خلګو په اشعار کي دومره مبالغه کوله. چه بعضې وخت به هغه د ښاروى د هلاکت سبب اوګرځيدلو. نو نفس اشعار دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز مکروه نه دې. ③ او بعضې حضراتو فرمائيلي دي. چه اشعار کول مکروه نه دي. بلکه اشعار ته په قلاده باندې

ترجیح ورکول مکروه دی. یعنی غاړکۍ سنت ده. اګرچه اشعار هم سنت دی

## دمتمتع سائق الهدی اوغیرسائق الهدی په تحلیل کې فرق

قَالَ: (فَإِذَا دَخَلَ مَكَّةَ طَافَ وَسَعَى) وَهٰذَا لِلْعُمْرَةِ اوکله چې مکې ته دخول اوکړی نو طواف اوکړی. اودا دعمرې لپاره دی عَلٰى مَا بَيَّنَّا فِي مُتَمَتِّعٍ لَا يَسُوقُ الْهَدْيَ لکه چې موږ بیان کړې دې. دهغې متمتع په صورت کې چا چې هدی نه وی روانه کړې. (إِلَّا أَنَّهُ لَا يَتَحَلَّلُ حَتّٰى يُحْرِمَ بِالْحَجِّ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ) صرف دومره خبره ده چې دې نه حلالیږی ترهغه وخته پورې چې په ورځ د ترویه د حج احرام اوتړی

حل اللغة: ① دخل، دخولاً(ن): داخلیدل

تشریح:- الفرق بین تحلیل ساق الهدی وغیرساق الهدی ۞ مسئله دا ده. چه هغه متمتع چې ځان سره ئې هدی شړلې وی. چه مکې ته داخل شی. نود عمرې لپاره دې طواف اوسعی اوکړی. اودا طواف اوسعی داسې دی. لکه څنګه چې موږ دهغه متمتع په صورت کې بیان کړی دی. کوم چې هدی نه وی شړلې. البته دومره توپیر دې. چه کوم متمتع ځان سره هدی شړلې وی. دې دعمرې په طواف اوسعی باندې نه حلالیږی. یعنی د متمتع چې هدی ئې شړلې وی اوکه نه، د دواړو په طواف اوسعی کې څه توپیر نشته. البته دومره توپیر شته. چه کوم متمتع ځان سره هدی شړلې وی. دې د عمرې نه روسته نه حلالیږی. حالانکه دې به په یوم الترویه باندې دحج احرام تړی. حاصل دا چې هدی ځان سره شړونکې او قارن دواړه یوشان دی. لکه څنګه چې قارن دحج اوعمرې په مینځ کې نه حلالیږی. دغه ډول دا متمتع هم د حج اوعمرې په مینځ کې نه حلالیږی. فرق صرف دومره دې چې د قارن احرام د حج نه وړاندې موجود وی. اودا متمتع په یوم الترویه باندې دحج احرام تړی. ددې په خلاف هغه متمتع چې هغه ځان سره هدی نه وی شړلې. هغه دعمرې ادا کاوه نه روسته حلالیږی.

لِقَوْلِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {لَوِ اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِي مَا اسْتَدْبَرْتُ مِنْهُ} اد ارشاد په وجه که ماته په خپله اړه کې دمخکې نه معلومه هغه وې کوم چې روستو ظاهرشو. مَا سُقْتُ الْهَدْيَ وَلَجَعَلْتُهَا عُمْرَةً وَتَحَلَّلْتُ (١) نوما به هدی نه وه روانه کړې، اودا به مې عمره کړې وه. وَهٰذَا يَنْفِي التَّحَلُّلَ عِنْدَ سَوْقِ الْهَدْيِ دنبی او حلال شوې به هم وې. دا حدیث دهدی روانیدو په صورت کې دحلالیدو نه نفی کوی.

حل اللغة: ① تجعلتها، اجعل جعلاً (ف): کول، جوړول ]

تشریح:- دلیله ۞ دلیل دا دې. چه نبی ﷺ د حجة الوداع په موقع چې کله مکې ته داخل شو. نوصحابه کرامو ؓ ته ئې حکم اوکړلو. چه د حج احرام فسخ کړئ. اودعمرې احرام اوتړئ. صحابوؓ ددې حکم تعمیل اوکړلو. اود عمرې احکام ئې پوره کړل. ددې نه روسته صحابه کرام ؓ په دې انتظار کې وو. چه نبی ﷺ حلق کوی اوځان حلالوی که نه، په دې باندې نبی ﷺ اوفرمائیل. که ماته د وړاندې نه دا معلومه وه. چه سوق د هدی د حلالیدو نه مانع ده. نوما به ځان سره هدی نه راوستله. خوچونکه ما ځان سره هدی راوستې ده. نوځکه نه حلالیږم. ددې حدیث نه معلومه شوه. چه د سوق هدی په صورت کې متمتع چې د عمرې افعال اوکړی. نو نه حلالیږی.

## د عمرې نه روسته په ایام الحج کې احرام تړل

(وَيُحْرِمُ بِالْحَجِّ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ) كَمَا يُحْرِمُ أَهْلُ مَكَّةَ عَلٰى مَا بَيَّنَّا اودحج احرام به اوتړی په ورځ د ترویه لکه چې مکې واله تړی. څنګه چې موږ بیان کړی دی (وَإِنْ قَدَّمَ الْإِحْرَامَ قَبْلَهُ جَازَ)، اوکه احرام ئې مخکې اوتړلو د دې نه وړاندې، نو جائزدې وَمَا عَجَّلَ الْمُتَمَتِّعُ مِنَ الْإِحْرَامِ بِالْحَجِّ فَهُوَ أَفْضَلُ اومتمتع چې څومره زر احرام اوتړی. نودا

(١) من حديث انس ؓ أخرجه البخارى فى الحج باب ٨١ ومسلم فى الحج رقم ٢١١، ٢١٣)_



بهتر دی

تشریح:- صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی. چه متمتع به د عمرې افعالو پوره کاوه نه روسته په اتمه ذوالحجه د حج لپاره احرام تړی. لکه څنګه چې مکی په اتمه ذوالحجه احرام تړی. ځکه چې دې هم د مکی په حکم کې دې. خوکه د یوم الترویه نه وړاندې ئې احرام اوتړل. نوهم جائزده. بلکه افضله ده. ځکه چې متمتع د حج احرام څومره وړاندې اوتړی. نودا افضله ده.

لِمَا فِيهِ مِنَ الْمُسَارَعَةِ وَزِيَادَةِ الْمَشَقَّةِ ځکه چې په دې کې مسارعت او زیاتوالې د محنت دې. ،وَهٰذِهِ الْأَفْضَلِيَّةُ فِي حَقِّ مَنْ سَاقَ الْهَدْيَ اودا بهتر والې د هغه تمتع په حق کې دې چا چې هدی روانه کړې وی وَفِي حَقِّ مَنْ لَمْ يَسُقْ اودهغه په حق کې هم چې نه ئې وی روانه کړې. (وَعَلَيْهِ دَمٌ) اوپه ده دم دې. وَهُوَ دَمُ الْمُتَمَتِّعِ اودا قربانی د تمتع ده عَلٰى مَا بَيَّنَّا لکه چې موږ بیان کړې دې.

تشریح:- دلائله ۞ اودلیل دا دې. ① چه د احرام په تړلو کې جلتی کول مسارعت الی الخیرات دې. ② اوزیات مشقت دې. او عبادت د مشقت د زیادت په وجه افضل وی. په حدیث کې دی «أفضل العبادات أحمضها» علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه په دې افضلیت کې هغه کس چې هدی ئې شړلې وی اوهغه کس چې هدی ئې نه وی شړلې. دواړه برابر دی. یعنی د دواړو لپاره جلتی افضل ده.

(وَإِذَا حَلَقَ يَوْمَ النَّحْرِ فَقَدْ حَلَّ مِنَ الْإِحْرَامَيْنِ) اوکله چې سراوخرئی د قربانئی په ورځ نوحلال شود دواړو احرامونو نه. لِأَنَّ الْحَلْقَ مُحَلِّلٌ فِي الْحَجِّ ځکه چې دسرخرئیل حلالیدل دی په حج کې. ،كَالسَّلَامِ فِي الصَّلَاةِ فَيَتَحَلَّلُ بِهِ عَنْهُمَا لکه سلام چې په لمانځه کې دې.

تشریح:- تحلیل المتمتع بالحلق ۞ صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی. چه په متمتع حاجی باندې قربانی واجب ده. لکه څنګه چې وړاندې تیرشو. متمتع چې کله په یوم النحر حلق یا قصر اوکړلو. نودې د حج او عمرې دواړو احرامونو نه حلال شو. ځکه چې حلق په حج کې حلالونکې دې. لکه څنګه چې په لمانځه کې سلام حلالونکې دې. نوپه حلق سره به د حج اوعمرې دواړو د احرامونو نه حلال شی.

## د اهل مکه لپاره د تمتع او قران حکم

(وَلَيْسَ لِأَهْلِ مَكَّةَ تَمَتُّعٌ وَلَا قِرَانٌ) اودمکې والو لپاره نه تمتع شته اونه قران. ،وَإِنَّمَا لَهُمُ الْإِفْرَادُ خَاصَّةً د دوی لپاره خوصرف ځانله حج دې

تشریح:- المذهبان في التمتع والقران للمکی ۞ مسئله دا ده. چه د مکی اومیقاتی لپاره نه تمتع شته اونه قران. بلکه ددوی لپاره صرف حج افراد دې. خوکه ددې باوجود دوی تمتع یا قران اوکړلو. نو جائز دې. خوګناهګاردې. اوددې په وجه به په ده دم جبر لازمیږی

قَالَ خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ. په خلاف دامام شافعی رحمه الله

تشریح:- وامام شافعی رحمه الله فرمائی. چه دمکی اومیقاتی لپاره تمتع اوقران جائزدې. اوپه دوی باندې دم جبر نه لازمیږی. لکه څنګه چې په آفاقی باندې واجبیږی.

دلیله ۞ دامام شافعی رحمه الله دلیل د الله تعالی ارشاد دې. ((فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ)) دې کې دا حکم مطلق دې. د مکی اومیقاتی څه تفصیل په کې نشته. ځکه تمتع او قران دمکی او میقاتی دواړو لپاره جائزدې.

وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ قَوْلُهُ تَعَالٰى {ذٰلِكَ لِمَنْ لَمْ يَكُنْ أَهْلُهُ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ} اوپه ده حجت د الله ﷻ قول دې. ﴿ذٰلِكَ لِمَنْ لَمْ يَكُنْ أَهْلُهُ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ دا حکم دهغه چا لپاره دې چې کوروالا نه وی اونه اوسی د مسجد حرام په

خواکي.

**تشریح:- دلیل الاحناف** رحمهم الله ﴿زمونږ دلیل دالله تعالی دا ارشاد دی چه ﴿ذَلِكَ لِمَنْ لَمْ يَكُنْ أَهْلُهُ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ یعنی تمتع د هغه چا لپاره دی چه د ده کوروالـه د مسجد حرام سره نه اوسیږی. یعنی حج تمتع د غیرمکی آفاقی لپاره دی. نوثابته شوه چې تمتع د مکی لپاره نه دی. په دې آیت کې د ﴿ذلك﴾ مشار الیه زمونږ په نیز تمتع ده. اوداامام شافعی رحمه الله په نیزد وجوب هدی حکم دی.

**وَلِأَنَّ شَرْعَهُمَا لِلتَّرَفُّهِ بِإِسْقَاطِ إِحْدَى السَّفْرَتَيْنِ** اوځکه چې دتمتع اوقران مشروع کیدل په دوو سفرونوکې دیو په ختمولو سره د راحت ور کاوه لپاره **وَهَذَا فِي حَقِّ الْآفَاقِيِّ** دی. اودا راحت د آفاقی په حق کې دی.

**تشریح:-** دوهم دلیل دا دی چه حج تمتع اوقران ددې لپاره مشروع شوې دی. چه دحج او عمرې د دوو سفرونو نه یو ساقط کړی. او آسانتیا پیدا شی. اودا آسانتیا د آفاقی لپاره ده. د مکی لپاره نه ده. ځکه چې مکی خود سفر محتاج نه دی.

**وَمَنْ كَانَ دَاخِلَ الْمِيقَاتِ فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الْمَكِّيِّ** اوکوم سړی چې په مواقیتوکې دننه اوسیږی دې پشان دمکی د ی **حَتَّى لَا يَكُونَ لَهُ مُتْعَةٌ وَلَا قِرَانٌ** تر دې چې دده لپاره تمتع اوقران نیشتې.

**تشریح:- داخل المیقات في حکم المکی** ﴿صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی. چه په میقات کې دننه واړه خلګ د مکی په حکم کې دی. نود میقاتی لپاره د مکی پشان تمتع او قران نشته.

**بِخِلَافِ الْمَكِّيِّ إِذَا خَرَجَ إِلَى الْكُوفَةِ وَقَرَنَ** په خلاف د مکی کله چې دې کوفې ته داخل شی. اود هغه ځائې نه قران اوکړی **حَيْثُ يَصِحُّ، لِأَنَّ عُمْرَتَهُ وَحَجَّتَهُ مِيقَاتِيَّتَانِ** نو دا صحیح دې ځکه چې دده عمره اوحج دواړه میقاتی دی **فَصَارَ بِمَنْزِلَةِ الْآفَاقِيِّ** نودې په شان د آفاقی شو.

**تشریح:-** البته دا که یو مکی د حج دمیاشتو نه وړاندې د میقات نه بهر تلې وی. اود هغه ځائې نه احرام اوتړی. نو بغیرکراهته جائزدې. ځکه چې دده حج اوعمره دواړه میقاتی دی. نوځکه دا کس د آفاقی په مرتبه کې شو. اوآفاقی قران کولې شی. نودا کس هم قران کولې شی. البته دا خیال دې کولې شی. که یوکس د حج د میاشتو نه روسته کوفې ته داخل شی. نودهغه لپاره قران ممنوع دې.

## د متمتع دعمرې نه روسته خپل وطن نه واپس کیدل

**وَإِذَا عَادَ الْمُتَمَتِّعُ إِلَى بَلَدِهِ بَعْدَ فَرَاغِهِ مِنَ الْعُمْرَةِ** که واپس شو متمتع خپل ښارته دعمرې اداکولونه روسته **وَلَمْ يَكُنْ سَاقَ الْهَدْيَ بَطَلَ تَمَتُّعُهُ** اونه ئې وه بوتلې دځان سره قربانی نوباطل شودده متمتع

**حل اللغة:** ① عاد، عوداً (ن): واپس کول ② فراغ: فارغ کیدل ③ بطل، بطلاناً (ن): باطل کیدل

**تشریح:-** آفاقی چې د حج په میاشتو کې د عمرې افعال اوکړی. اوبیا خپل وطن ته واپس شی. اوبیا هم په دغه کال د حج لپاره احرام اوتړی. نودا کس متمتع دې که نه؟ نوددې دوې [دوه] صورتونه دی. یودا چې دې کس ځان سره هدې اوړی وی. اوبل صورت دا چې ځان سره ئې هدی نه وی اوړې. د اولنی صورت حکم په دوهم عبارت کې راځی. اوپه دوهم صورت کې د احنافو رحمهم الله په اتفاق سره دده تمتع باطل شو.

**لِأَنَّهُ أَلَمَّ بِأَهْلِهِ فِيمَا بَيْنَ النُّسُكَيْنِ إِلْمَامًا صَحِيحًا** ځکه چې ده ددوونسکوپه مینځ کې صحیح المام اوکړو. **وَبِذَلِكَ يَبْطُلُ التَّمَتُّعُ** اوپه دې سره تمتع باطل کیږی. **كَذَا رُوِيَ عَنْ عِدَّةٍ مِنَ التَّابِعِينَ** [1] داروایت دې دیوجماعت

[1] من أثرسعيد بن المسيب وعطاء وطاوس ومجاهد والنخعي أخرجه الطحاوی فی كتاب أحكام القرآن كذا فی نصب الرأية (١٤٠/٣)_



دتابعینو رحمهم الله نه.

**تشریح:-** دلیل دا دی چه د حج اوعمرې په مینځ کې ددې کس المام صحیحه موجود شو. اوپه المام صحیحه سره تمتع باطلیږی. نوځکه د ده تمتع باطل شو. هم داسې د تابعینو رحمهم الله د یو جماعت نه نقل شوی دی. امام طحاوی رحمه الله د حضرت سعید بن مسیب، عطاء بن ابی رباح، مجاهد او ابراهیم نخعی رحمهم الله نه روایت کړې دې.

## د سائق هدی د عمرې نه روسته وطن نه واپس راتلل

**وَإِذَا سَاقَ الْهَدْيَ فَإِلْمَامُهُ لَا يَكُونُ صَحِيحًا** اوکه ده هدی بوتلې وه نودده الما‌م به صحیح نه وی **وَلَا يَبْطُلُ تَمَتُّعُهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ** [1] اونه به وی باطل دده تمتع دشیخینو رحمهما الله په نزد

**تشریح:- المذهبان في تمتع ساقی الهدی ورجوعه الی الوطن** ﴿په دې عبارت کې د اولنی صورت بیان دی. هغه دا چې متمتع چې ځان سره ئې هدی بوتلې وی. هغه عمره اوکړی. اود عمرې نه روسته خپل وطن نه واپس شی. اوبیا هم په دغه کال حج ادا کړی. ① نودا کس د شیخینو رحمهما الله په نیز دده تمتع نه باطلیږی.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ يَبْطُلُ، لِأَنَّهُ أَدَّاهُمَا بِسَفْرَتَيْنِ** او امام محمد رحمه الله فرمائی چې باطل به شی ځکه چې ده حج او عمره په دوو سفرونوکې ادا کړل.

**تشریح:-** اودامام محمد رحمه الله په نیز دده تمتع باطلیږی.

**دلیله** ﴿دامام محمد رحمه الله دلیل دا دی. چه دې کس حج اوعمره په دوو سفرونو کې ادا کړل. حالانکه متمتع دواړه په یو سفر کې ادا کوی. نودا کس متمتع نشو.

**وَلَهُمَا أَنَّ الْعَوْدَ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهِ مَا دَامَ عَلَى نِيَّةِ التَّمَتُّعِ،** د شخینو رحمهما الله دلیل دا دې چې واپس کیدل په ده حق اولازم دی ترڅو چې دې په نیت د تمتع وو **وَلِأَنَّ السَّوْقَ يَمْنَعُهُ مِنَ التَّحَلُّلِ فَلَمْ يَصِحَّ إِلْمَامُهُ** ځکه چې لیږل دهدیه ده لره دحلالیدونه منع کوونکی دی نودده الما‌م به صحیح نه وی.

**تشریح:- دلیل الشیخین** رحمهما الله ﴿دشیخینو رحمهما الله دلیل دا دی. چه ترڅو پورې دا کس د تمتع په نیت قائم وی. نوپه ده باندې د وطن نه مکې معظمې ته واپس کیدل لازم دی. ځکه چې ده هدی ځان سره بوتلې ده. اودا (د هدی شړل) د حلالوالی نه مانع دی. نوځکه په ده باندې واپس کیدل واجب دی. (چه حج ادا کړی. او ځان حلال کړی) نود ده دا الما‌م صحیح نشو. بلکه فاسد شو. اوپه الما‌م فاسد سره تمتع نه باطلیږی.

**بِخِلَافِ الْمَكِّيِّ إِذَا خَرَجَ إِلَى الْكُوفَةِ** په خلاف د مکې اوسیدونکی، چه کله هغه کوفې ته لاړو **وَأَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ وَسَاقَ الْهَدْيَ حَيْثُ لَمْ يَكُنْ مُتَمَتِّعًا،** او احرام ئې اوتړلو دعمرې، اوهدی ئې روانه کړه چې نودې به هم متمتع نه وی **لِأَنَّ الْعَوْدَ هُنَاكَ غَيْرُ مُسْتَحَقٍّ عَلَيْهِ** ځکه چې په ده واپس کیدل لازم نه دی **فَصَحَّ إِلْمَامُهُ بِأَهْلِهِ** نودده الما‌م په خپل اهل کې صحیح شو.

**تشریح:- بطلان تمتع المکی اتفاقاً** ﴿په خلاف د مکی ځکه چې مکی کله کوفې ته لاړ شی. اود هغه ځائې نه هدی راولیږی. نودې متمتع نه ګرځی. ځکه چې دده وطن خو مکه ده. نوځکه په ده باندې واپس کیدل واجب نه دی. اود واپس کیدو نه مراد د وطن نه مکې ته تلل دی. اودا چونکه مکی دې. ددې امله دده په حق کې د وطن نه مکې ته واپس تلل ممکن نه دی. بهرحال دده الما‌م به صحیح وی. اوچه الما‌م ئې صحیح وی. نوتمتع

[1] القول الراجح هو هذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فی ردالمحتار (٢١٥\٢) والبحر الرايق (٣٦٧\٢) والتاتر خانية (٥٣٣\٢) نقلاً عن القول الراجح (٢١٤\١)_

به باطل وي.ځكه چې په الما م صحيحه سره تمتع باطليږي.د الما م تعريف اوويش دباب په اول كې تير شوي دي.هلته كې ئې اوګورئ.

## په اشهر الحج كې د عمرې د اكثر طوافونو په تمتع كړځولو كې كردار

وَمَنْ أَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ قَبْلَ أَشْهُرِ الْحَجِّ فَطَافَ لَهَا أَقَلَّ مِنْ أَرْبَعَةِ أَشْوَاطٍ اؤ چې احرام اوتړلو دعمرې د حج دمياشتونه مخكې نوطواف ئې اوكړو ددې لپاره كم د څلورو چكرو نه ثُمَّ دَخَلَتْ أَشْهُرُ الْحَجِّ فَتَمَّمَهَا بيا دحج مياشتې پيل شوې اوده د طواف چكرې پوره كړې وَأَحْرَمَ بِالْحَجِّ كَانَ مُتَمَتِّعًا دحج احرام ئې اوتړلونودې به متمتع وي.

**تشريح:-** كه يوكس د حج د مياشتو نه وړاندې احرام اوتړلو. زموږ مذهب دا دې.كه دعمرې څلور ګښتونه د طواف ئې په اشهرالحج كې ادا كړي وي.اودرې ددې نه وړاندې ،نودا كس متمتع دې.اوكه ددې په عكس وي.نومتمتع نه دې.

لِأَنَّ الْإِحْرَامَ عِنْدَنَا شَرْطٌ فَيَصِحُّ تَقْدِيمُهُ عَلَى أَشْهُرِ الْحَجِّ ځكه چې احرام زموږ په نزد شرط دې.نومقدم كول ئې دحج په مياشتو باندې صحيح دي. وَإِنَّمَا يُعْتَبَرُ أَدَاءُ الْأَفْعَالِ فِيهَا، وَقَدْ وُجِدَ الْأَكْثَرُ او بېشكه خودا ده چې دافعالو دعمرې اداكول په ورخود حج كې وي اود اكثرو اشواطو اداكول اوموندې شو وَلِلْأَكْثَرِ حُكْمُ الْكُلِّ او اكثرو لره حكم د كل دې.

**تشريح:-** دليل دا دې. چې احرام دعمرې لپاره شرط دې.نوپه اشهرالحج باندې ددې وړاندې والې داسې دې.لكه طهارت چې دلمانځه لپاره شرط دې.اوهغه په وخت باندې وړاندې كړې شي.نوجائزدې.البته دا چې دا ضروري ده.چه په اشهرالحج كې دعمرې افعال موجود شي.اوپه دې صورت كې څلور ګښتونه د طواف په اشهرالحج كې موجود شوي دي.نوګويا چې واړه طواف په اشهرالحج كې موجود شوې دې ځكه چې اكثرلره حكم دكل وي.نوهركله چې په اشهرالحج كې حج اوعمره جمع شوه.نوددې جمع كيدو نوم تمتع ده.نودا كس متمتع دې.

وَإِنْ طَافَ لِعُمْرَتِهِ قَبْلَ أَشْهُرِ الْحَجِّ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ فَصَاعِدًا اوكه دعمرې لپاره د طواف څلور يا دڅلورو نه زيات چكرې ئې دحج د مياشتو نه مخكې اوكړې ثُمَّ حَجَّ مِنْ عَامِهِ ذَلِكَ لَمْ يَكُنْ مُتَمَتِّعًا بيا ئې حج اوكړو په دغې كال نو متمتع به نه وي. لِأَنَّهُ أَدَّى الْأَكْثَرَ قَبْلَ أَشْهُرِ الْحَجِّ ځكه چې ده اكثره برخه د حج د مياشتونه وړاندې اوكړه. وَهَذَا لِأَنَّهُ صَارَ بِحَالٍ لَا يَفْسُدُ نُسُكُهُ بِالْجِمَاعِ اودا ځكه چې دې په دې سې حال شو چې اوس په جماع كاوه سره به دده عمره نه باطليږي. فَصَارَ كَمَا إِذَا تَحَلَّلَ مِنْهَا قَبْلَ أَشْهُرِ الْحَجِّ نودې داسې شو چې ګويا د اشهر حج نه مخكې دعمرې نه حلال شوې وي.

**تشريح:-** اوكه د اشهرالحج نه ئې وړاندې څلور ګښتونه كړي وي.اوبيا ئې هم په دې كال په اشهرالحج كې حج كې اوكړي.نودې متمتع نه دې.ځكه چې ده د حج د مياشتو نه وړاندې اكثر اشواط پوره كړل او اكثرلره حكم د كل وي نو لكه چې ده واړه طواف د حج د مياشتو نه وړاندې اوكړل او دا كس په دې صورت كې ځكه متمتع نه دې چې د طواف څلور چكرې اووهي نو ددې نه روستو عمر د جماع په وجه نه فاسديږي نو دا كس داسې شولكه چې د حج د مياشتې نه وړاندې حلال شوې وي اوچه د حج د مياشتې نه څوك وړاندې حلال شي نو هغه كس متمتع نشي كيدې.

وَمَالِكٌ رَحِمَهُ اللَّهُ يَعْتَبِرُ الْإِتْمَامَ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ اوامام مالك رحمه الله په اشهرحج كې دعمرې د اتمام اعتبار كوي. وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا ذَكَرْنَا او پده حجت هغه دې كوم چې موږ ذكر كړو.

**تشريح:-** په دې عبارت كې د امام مالك اختلاف ته اشاره ده ځكه چې امام مالك رحمه الله فرمائي.چه دا كس متمتع دې.اګرچه افعال دعمرې په اشهرالحج كې هم ادا نكړي.خوپه دې شرط دعمرې د احرام نه د



اشهرالحج كې حلال شوې وي.

**دليله** داما م مالك رحمه الله دليل دا دې.چه په ذكرشوي صورت كې حج اوعمره دواړه موجود شوي دي.هغه دا چې د عمرې د احرام نه هم د حج په مياشتو كې حلال شوې دې.اود حج داحرام نه هم د حج په مياشتو كې حلال شوې دې.يعنى د حلالوالى په اعتبار سره دواړه په اشهرالحج كې موجود شوي دي.نوددې اجتماع د امله به دا كس متمتع وي.

وَلِأَنَّ التَّرَفُّقَ بِأَدَاءِ الْأَفْعَالِ اوځكه چې نفع اخستل په ادا كاوه د افعالو سره ده. وَالْمُتَمَتِّعُ مُتَرَفِّقٌ بِأَدَاءِ النُّسُكَيْنِ فِي سَفْرَةٍ وَاحِدَةٍ فِي أَشْهُرِ الْحَجِّ اومتمتع هغه دې كوم چې په ادا دنسكينو سره نفع واخلى په يوسفر سره په مياشتو د حج كې.

**تشريح:-** دوهم دليل دا دې.چه ترفق يعنى راحت حاصلول د افعالو په ادا كولوسره راځي.اومتمتع هم په يوسفر د حج اوعمرې دوې [دوه] عبادتونه ادا كوي.اوفائده اخلى.نود تمتع لپاره ضروري دي.چه د عمرې واړه افعال يا اكثر په اشهرالحج كې ادا كړې شي.

## دحج مياشتې

قَالَ وَأَشْهُرُ الْحَجِّ شَوَّالٌ وَذُو الْقَعْدَةِ وَعَشْرٌ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ اودحج مياشتې شوال، ذوالقعده، اولس ورځې د ذى الحجه دي.

**تشريح:- المذهبان في اشهرالحج** صاحب دقدروي شيخ ابوالحسن رحمه الله فرمائي.چه دحج مياشتې شوال ذوالقعده اولس ورځې د ذوالحجه دي.② اوامام مالك رحمه الله فرمائي.چه اشهرالحج شوال ذوالقعده اوذوالحجه يعنى پوره درې مياشتې دي.

**دليل مالك** داما م مالك رحمه الله دليل دا دې.چه الله تعالى فرمائيلي دي. [الْحَجُّ أَشْهُرٌ مَعْلُومَاتٌ فَمَنْ فَرَضَ فِيهِنَّ الْحَجَّ] او «اشهر» جمع د شهر ده.اواقل د جمع درې دي.نو پوره درې مياشتې د حج مياشتې دي.

**الجواب من دليل مالك** د حضرت امام مالك رحمه الله د دليل نه ځواب دا دې.چه په آيت كې د اشهر الحج نه مراد دوې [دوه] مياشتې اوبعضې ورځې د دريمې مياشتې دي.دريمه مياشت پوره مراد نه ده.ځكه چې د جمعې اطلاق د يونه په زيات باندې كيږي.لكه دالله تعالى په دې قول كې [مَا جَعَلَ اللَّهُ لِرَجُلٍ مِنْ قَلْبَيْنِ فِي جَوْفِهِ][4] دوې [دوه] زړونه مراد دي. حالانكه قلوب د جمع په صيغه سره ذكر شوي دي.

كَذَا رُوِيَ عَنْ بِضْعٍ الْعَبَادِلَةِ الثَّلَاثَةِ وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ[1] داشان روايت د دې درې واړو عبادلو او عبدالله ابن زبير رضي الله عنه نه.

**تشريح:- دلائل الاحناف** اوزموږ دليل دا دې.چه د حضرت عبدالله بن مسعود،عبدالله بن عمر،عبدالله بن عباس اوعبدالله بن زبير رضي الله عنهم نه هم دا نقل دي.چه د حج مياشتې شوال ذوالقعده او د ذوالحجه لس ورځې دي.

وَلِأَنَّ الْحَجَّ يَفُوتُ بِمُضِيِّ عَشْرِ ذِي الْحِجَّةِ اوځكه چې حج فوت كيږي دتيريدو دلسمې ذوالحجه نه روسته وَمَعَ بَقَاءِ الْوَقْتِ لَا يَتَحَقَّقُ الْفَوَاتُ او د وخت پاته پاتې كيدو سره فوت كيدل نه متحقق كيږي. وَهَذَا يَدُلُّ عَلَى أَنَّ الْمُرَادَ مِنْ قَوْلِهِ

---

[1] أما رواية ابن عمر رضي الله عنهما فأخرجه الحاكم فى المستدرك (۲۷۶/۲) وأما رواية ابن عباس رضي الله عنهما فأخرجه الدارقطنى فى سننه ورواه أيضاً فى السنن الكبرى (۵۵۹/۴) رقم ۸۷۱۱ وأما رواية ابن مسعود رضي الله عنه فأخرجه الدارقطنى فى سننه رقم ۴۲ وراه أيضا فى السنن الكبرى (۵۵۹/۴) رقم ۸۷۱۲) وأما رواية أبن الزبير رضي الله عنهما فأخرجه الدارقطنى فى سننه رقم ۴۴ ورواه أيضا فى السنن الكبرى (۵۶۰/۴) رقم ۸۷۱۴)_

تَعَالٰی {اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمَاتٌ} اودا دلالت کوی په دې چې مراد ددې قول دالله ﷻ نه، چې ((لحج اشهر معلومات)) نه ,,شَهْرَانِ وَبَعْضُ الثَّالِثِ لَا كُلُّهٗ دوې [دوه] میاشتې پوره اود دریمې څه برخه ده.ټولې نه دی.

**حل اللغة** ① **حل اللغة** ① **يفوت، فوتًا** (ن): فوت کیدل

**تشريح:-** دوهم دلیل دا دې.چه ذوالحجه د لسو ورځو په تیریدو باندې حج فوت کیږی.یعنی که یوکس وقوف عرفات اونکړلو.اویوم النحر راغله.نودده نه حج فوت شو.که د ذوالحجه د آخره پورې د حج میاشتې وې.نود یوم النحر په تیریدو به حج نه فوت کیدو.ځکه چې وخت پاته وی.نوفوت کیدل نه متحقق کیږی.

## د اشهرالحج نه وړاندې دحج احرام تړل

فَإِنْ قَدَّمَ الْإِحْرَامَ بِالْحَجِّ عَلَيْهَا جَازَ إِحْرَامُهٗ نوکه مقدم ئې کړو احرام دحج لره په اشهرحج باندې نو جائز شو احرام ئې وَانْعَقَدَ حَجًّا اود حج لپاره به منعقد شی

**حل اللغة** ① **قدم، تقديمًا**: مقدم کول، وړاندې کول ② **انعقد، انعقادًا**: منعقد کیدل
③ ایجاب: واجب کول ]

**تشريح:- المذهبان في تقديم احرام الحج على اشهرها** ۞ مسئله دا ده.که یوکس د اشهرالحج نه وړاندې د حج لپاره احرام اوتړلو.① نوزمونږ په نیزدا احرام هم دحج لپاره منعقد کیږی.②

خِلَافًا لِّلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ په خلاف دامام شافعی رحمه الله فَإِنَّ عِنْدَهٗ يَصِيْرُ مُحْرِمًا بِالْعُمْرَةِ، لِأَنَّهٗ رُكْنٌ عِنْدَهٗ چې دده په نزد به دې محرم دعمرې شی.ځکه احرام رکن دې.دده په نزد

**تشريح:-** اودامام شافعی رحمه الله په نیزدا احرام دعمرې لپاره معتبر کیږی دحج لپاره نه،

**دليله** ۞ دامام شافعی رحمه الله دلیل دا دې.چه احرام دحج لپاره رکن دې.نولکه څنګه چې نور ارکان په وخت باندې نشی مقدم کولې.دغه ډول به احرام هم په وخت باندې نشی مقدم کولې.

**السوال على الشافعي رحمه الله والجواب** ۞ خوسوال دا دې.چه دا احرام هرکله د حج لپاره معتبر نه دې.نود عمرې لپاره ولې معتبر دې؟ ځواب دلته اګرچه احرام موجود شو.خود حج د وخت نه وړاندې چونکه په دې احرام کې د حج دافعالو ادا کاوه صلاحیت نشته.نودا احرام د لغو کیدو نه د بچ کیدو لپاره به په دې د عمرې لپاره معتبر شی.لکه که یوکس په ورځ کې د قضا شوې روژې نیت اوکړی.نوهغه روژه به نفل معتبر وی.ځکه چې د قضا روژې لپاره نیت په اول وخت یعنی سهار کې ضروری دې.نودا روژه د لغو کیدو نه د بچ کیدو لپاره به دنفلی روژې نیت حسابیږی.

وَهُوَ شَرْطٌ عِنْدَنَا.او زمونږ په نزد د دا شرط دې فَأَشْبَهَ الطَّهَارَةَ فِيْ جَوَازِ التَّقْدِيْمِ عَلَى الْوَقْتِ نومشابه شود اودس سره چې دا جائز دې وړاندې د وخت نه.

**تشريح:- دلائل الاحناف** رحمهم الله ۞ ① زمونږدلیل دا دې.چه احرام دحج لپاره شرط دې.نولکه څنګه چې طهارت د لمانځه لپاره شرط دې.اود وخت نه وړاندې طهارت جائزدې.دغه ډول د حج احرام هم په اشهرالحج باندې مقدم کول جائزدې.

وَلِأَنَّ الْإِحْرَامَ تَحْرِيْمُ أَشْيَاءَ وَإِيْجَابُ أَشْيَاءَ، اوځکه چې احرام څه څیزونو لره حراموی اوڅه واجبوی وَذٰلِكَ يَصِحُّ فِيْ كُلِّ زَمَانٍ فَصَارَ كَالتَّقْدِيْمِ عَلَى الْمَكَانِ او داخبره په هره زمانه کې صحیح ده اودا په مکان یعنی په میقات دمخکې کیدو پشان ده.

② **تشريح:-** دوهم دلیل دا دې.چه په احرام سره څوشیان (څیزونه ) حرامیږی.لکه ګنډلې شوې جامې اغوستل،ښکار کول وغیره اوڅه شیان (څیزونه ) واجبیږی لکه سعی اورمی وغیره ،اوداسې کول په هره زمانه کې صحیح دی.که د حج ایام وی اوکه نه وی.نوځکه احرام په هره زمانه کې جائز دې.③ دریم دلیل دا



دې چې احرام لکه څنګه په میقات یعنی د احرام تړلو په ځائې باندې مقدم کول جائز دی.دغه ډول په زمانه د حج یعنی په اشهرالحج باندې مقدم کول جائزدی.

## د کوفي دعمرې کولونه روسته مکه یا بصرې کې اقامت کول

قَالَ (وَإِذَا قَدِمَ الْكُوْفِيُّ بِعُمْرَةٍ فِيْ أَشْهُرِ الْحَجِّ، وَفَرَغَ مِنْهَا) یوکوفی د عمرې لپاره اشهر حج کې راغلو اودعمرې نه چې فارغ شو وَحَلَقَ أَوْ قَصَّرَ ثُمَّ اتَّخَذَ مَكَّةَ أَوِ الْبَصْرَةَ دَارًا حلق یا قصر ئې اوکړو بیا ئې مکه یا بصره خپل کور جوړ کړو. وَحَجَّ مِنْ عَامِهٖ ذٰلِكَ فَهُوَ مُتَمَتِّعٌ اوپه دې کال ئې حج اوکړو.نودې متمتع دې.

**حل اللغة** ① **قدم، قدومًا** (س): راتګ ② **فرغ، فراغة** (ف): فارغ کیدل

**تشريح:- صورتي التمتع** ۞ مسئله دا ده.چه د کوفې یوکس په اشهرالحج کې مکې ته د عمرې ادا کاوه لپاره راغلو.اودعمرې ادا کاوه نه روسته فارغ شو.یعنی حلق یا قصرئې اوکړلو.اوحلال شو.بیا بصره ته واپس لاړلو.اویا ئې مکه وطن اقامت اوګرځولو.بیائې هم په دغه کال حج اوکړلو.نودا کس په دواړو صورتونو کښې متمتع شو.

أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّهٗ تَرَفَّقَ بِنُسُكَيْنِ فِيْ سَفَرٍ وَاحِدٍ فِيْ أَشْهُرِ الْحَجِّ په هرحال اول خوځکه چې ده نفع واخستله په نسکینو سره په یو سفر کې په میاشت دحج کې.

**حل اللغة** ① **ترفق، ترفقا**: نفع اوچتونکې

**تشريح:- تمتع الصورة الاولى اتفاقًا** ۞ په اولنی صورت کې خوځکه متمتع شو.چه ده مکه وطن اقامت اوګرځولو.نوده په یوسفر کې دوې [دوه] عبادتونه جمع کړل.اوچونکه داسې کس ته متمتع وائی.نودا کس متمتع شو.

وَأَمَّا الثَّانِيْ فَقِيْلَ هُوَ بِالْاِتِّفَاقِ پاتې شو دوهم صورت نووئیلې شوی دی چې دا په اتفاق سره دې وَقِيْلَ هُوَ قَوْلُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ (1) اووئیلې شوی دی.چه دا دامام ابوحنیفه رحمه الله قول دې.وَعِنْدَهُمَا لَا يَكُوْنُ مُتَمَتِّعًا دصاحبینو رحمهما الله په نزد به متمتع نه وی.

**تشريح:- المذهبان في تمتع الصورة الثانية** ۞ اوپه دوهم صورت کې یعنی چې په بصره کې اقامت اختیار کړی.نوپه دې صورت کې هم بعضې حضرات فرمائی.چه ددې کس متمتع کیدل اتفاقی دی. اوبعضې فرمائی.① چه په دې صورت کې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزدې متمتع ګرځی.② اود د صاحبینو رحمهما الله په نزدې متمتع نه دې.

لِأَنَّ الْمُتَمَتِّعَ مَنْ تَكُوْنُ عُمْرَتُهٗ مِيْقَاتِيَّةً وَحَجَّتُهٗ مَكِّيَّةً ځکه چې متمتع هغه وی دکوم چې عمره میقاتی وی اوحج مکی وی. وَنُسُكَاهُ هٰذَانِ مِيْقَاتِيَّانِ حال دادې چې دده دا دواړه نسکونه میقاتی دی

**تشريح:- دليل الصاحبين** رحمهما الله ۞ د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه د متمتع دعمرې احرام د میقات نه وی.اود حج احرام ئې د مکې نه وی.اوپه دې صورت کې داسې نه ده.ځکه چې دده د حج اوعمرې دواړو احرام د میقات نه تړلې شوی دی.په دې طریقه چې کوفی کله د خپل کور نه وتل.نود میقات نه ئې د عمرې لپاره احرام تړلې وو.اوچه د عمرې نه فارغ شو.نوبصره کې مقیم شو.نودې حلال شو.اود میقات نه بهرته اووتل.یعنی بصره دمیقات نه بهر یو ښار دې.اوس چې دا کس د حج لپاره واپس کیږی.نودې به د حج لپاره احرام هم د میقات نه تړی.اوهرکله چې ده دحج اوعمرې دواړو لپاره احرام د میقات نه اوتړل.نودې متمتع نشو.

(1) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(٢١٦\٢) ثم قال في القول الراجح والأصح عدم الإختلاف بين علمائنا الثلاثة ارجع للتفصيل إلى القول الراجح (٢١٦\١)-

**وله أن السفرة الأولى قائمة ما لم يعد إلى وطنه** دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دي چي اولني سفر قائم دي ترخو چي دي خپل وطن ته نه وی تلي ، **وقد اجتمع له نسكان فيها فوجب دم التمتع** اوحال دا دي چي په دي سفرکي دده دواړه نسکونه يوځائي وی نو پيده دم دتمتع واجب دي.

**دليل ابي حنيفة** رحمه الله ۞ دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دي.چه کوم سفر کوفي د کوفي نه مکي ته کړي وو نو بصري ته دتلو باوجود دغه سفرپاته دي.ترخوچه خپل وطن ته واپس شوي نه وی.نودا کس د هغه چا پشان شو.چه هغه لا د ميقات نه وتلي نه وی.اوواپس راشی.حج اوکړی.حاصل دا چي په دي يوسفر کي ده ته دوي [دوه] عبادتونه حج اوعمره حاصل شول.اوچه په يوسفرکي دا دوي [دوه] عبادتونه جمع کړی.هغه متمتع وی.نودي به متمتع وی.اوپه ده به دم تمتع واجب وی.

## د عمري د فساد نه روسته بصره وطن اقامت جوړول اوبيا حج کول

**فإن قدم بعمرة فأفسدها وفرغ منها وقصر** د عمري لپاره راغلو او هغه ئي پريښوده او ددي نه فارغ شو قصرئي اوکړو بيا ئي جوړ کړو **ثم اتخذ البصرة دارا ثم اعتمر في أشهر الحج** بصره کور.بيائي په اشهر دحج کي عمره اوکړه. **وحج من عامه لم يكن متمتعا عند أبي حنيفة) رحمه الله ()** اوحج ئي اوکړو په دغي کال کي ،نونه به وی متمتع.دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد

**حل اللغة*** ① **فافسدها، افسد افسادًا:** فاسد کول

**تشريح:- المذهبان في المسئلة** ۞ مسئله دا ده.چه يوکس راغلو.د عمري لپاره ئي احرام اوتړلو.اوبيا ئي عمره فاسده کړه.مثلاً د عمري نه د حلاليدو نه وړاندي ئي د خپلي بی بی سره جماع اوکړه.خوددي باوجود ئي د عمري افعال ادا کړل.اوقصر ئي اوکړلو.ځان ئي حلال کړلو.بيا ئي په بصره کي اقامت اختيار کړلو .اوبيا ئي هم په دغه کال کي حج اوکړلو.① نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزدا کس متمتع نه ګرځي

**وقالا: هو متمتع)، لأنه إنشاء سفر وقد ترفق فيه بنسكين** اوصاحبين فرمائی چي متمتع به وی.ځکه چي دا ايجاد د سفر دي او حال دا دي چي ده د نسکينو نه فائده اوچته کړه.

**تشريح:-** اود صاحبينو رحمهما الله په نيز متمتع ګرځی.دا خيال ساتئ.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله اوصاحبينو رحمهما الله په مينځ کي اختلاف په هغه صورت کي دي.چه په اشهرالحج کي بصري اړخ ته خروج اوکړی.اوکه د اشهرالحج نه وړاندي ئي خروج کړي وی.اوبيا مکي ته داخل شوي وی.اوعمره ئي کړي وی.نوپه دي صورت کي په اتفاق سره دي متمتع دي.

**دليلهما** ۞ په مسئله مختلف فيه کي د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دي.چه د بصري نه مکي مکرمي ته راتګ مستقل يو سفر دي.اوپه دي سفر کي ده دوي [دوه] عبادتونه ادا کړل.يوحج اوبله عمره،اوپه يو سفرکي حج اوعمره جمع کول تمتع وی.خوپه دي شرط چي دا سفر په اشهرالحج کښي وی. نوځکه دا کس متمتع دي.

**وله أنه باق على سفره ما لم يرجع إلى وطنه** دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادي چي دي پخپل سفر پاته دي ترڅو چي واپس نشی خپل وطن ته.

**تشريح:- دليل ابي حنيفة** رحمه الله ۞ اودامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دي.چه دده اولني سفرپاته دي.ترڅوچه دي خپل وطن ته واپس شوي نه وی.او په دي سفر کي دده لومړئی عمره فاسده شوي وه.نودوي [دوه] نسکه دده

---

①) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(٢١٦/٢) والبحر الرائق (٣٧٠/٢) والهندية (٢٤٠/١) نقلاً عن القول الراجح (٢١٧/١)_



په صحيح طريقه جمع نکړل.حالانکه متمتع هغه وی.چه په يوسفرکي دوي [دوه] نسکه په صحيح طريقه جمع کړی.

## په يوکال کي خپل اهل ته تلل اوبيا عمره اوحج کول

**فإن كان رجع إلى أهله ثم اعتمر في أشهر الحج** بياکه دي خپل وطن ته واپس شوي وود دي نه روسته ئي په اشهرحج کي عمره **وحج من عامه يكون متمتعا في قولهم جميعا** او په دغي کال حج ادا کړونو متمتع به وي د ټولو په قول کي:

**حل اللغة*** ① **متمتعا:** نفع اوچتونکي ]

**تشريح:- كون الرجل متمتعاً في المسئلة** ۞ که يوکس دعمري لپاره راغلو.بيا ئي عمره فاسده کړه.اود عمري افعال ئي پوره کړل.بيا خپل وطن ته واپس شو.بيا ئي هم په هغه کال په موسم حج کي عمره اوکړه. او حج ئي اوکړلو.نودامام ابوحنيفه رحمه الله اوصاحبينو رحمهما الله په نيزدا کس متمتع دي.

**لأن هذا إنشاء سفر** ځکه چي دا ايجاد د سفردي. په وجه د ختميدو د ړومبی سفر **لانتهاء السفر الأول، وقد اجتمع له نسكان صحيحان فيه** او جمع شو ده لره په دي دوهم سفر کي دوي [دوه] نسکه صحيح.

**تشريح:-** ځکه چي وطن ته واپس کيدو سره دده اولني سفرختم شو.اواوس دوهم مستقل سفرشو.اوپه دي دوهم سفر کي دوي [دوه] نسکه جمع شو.اوپه ايام حج کي په يوسفر کي دوي [دوه] عبادتونه جمع کول تمتع ده.نودا کس متمتع شو.

## په ذکرشوي مسئله کي وطن ته واپس نه کول

**ولو بقي بمكة ولم يخرج إلى البصرة حتى اعتمر في أشهر الحج** اوکه دي په مکه کي ايسارشواوبصري ته لانړوتردي چي عمره ئي اوکړه په مياشتودحج کي **وحج من عامه لا يكون متمتعا بالاتفاق** اوپه دغي کال ئي حج ادا کړو نونه کيږی متمتع په اتفاق سره. **؛لأن عمرته مكية والسفر الأول انتهى بالعمرة الفاسدة** ځکه چي دده عمره مکی ده او ړومبي سفرپه فاسد شوي عمر سره ختم شو. **ولا تمتع لأهل مكة** او نشته دمکي والو لپاره تمتع.

**حل اللغة*** ① **بقي، بقاءً:** پاته پاتي کيدل، ثابتيدل ② **لم يخرج، خرج خروجاً (ن):** وتل ]

**تشريح:- كون الرجل غيرمتمتع في المسئلة المذكورة** ۞ مسئله، که يوکس دفاسدي عمري نه فارغ شی.اوهم په مکه کي ايسار شی.نه خپل وطن ته واپس لاړ شی.اونه بصري ته.اوبيا هم په دغه کال په اشهرالحج کي عمره اوکړی.اوحج اوکړی.نوپه اتفاق سره دا کس متمتع نه دي.ځکه چي اولني سفرخوپه فاسده عمره باندي ختم شو.اود دويمي صحيح عمري اوحج لپاره دده احرام هم د مکي نه تړلي شوي دي.نودا کس مکی شو.اودا معلومه ده.چه دمکی حج تمتع نه وی.نودا کس متمتع نشو.

## په اشهرالحج کي حج اوعمره جمع کول اوبيا يوفاسد کيدل

**ومن اعتمر في أشهر الحج وحج من عامه** چا چي په اشهر حج کي عمره ادا کړه او په دغي کال ئي حج ادا کړو **فأيهما أفسد مضى فيه** نو په دوی کي چي کوم فاسد کړی هغه به پوره کوی

**حل اللغة*** ① **اعتمر، اعتماراً:** عمره کول ② **مضى، مضياً:** تيريدل

**تشريح:- فساد احدالنسكين رفض للتمتع** ۞ مسئله دا ده.چه يوکس په اشهرالحج کي عمره اوکړه.اوبيا ئي هم په دغه کال حج اوکړلو.نوپه دي دواړو کي چي کوم يو فاسد کړی.دهغي پوره کول ضروری دی.

**لأنه لا يمكنه الخروج عن عهدة الإحرام إلا بالأفعال** چي نه دی ممکن ده لپاره وتل دعهدي د احرام نه مګر په ادا کولودافعالو سره. **(وسقط دم المتعة) لأنه لم يترفق بأداء نسكين صحيحين** اودم د تمتع به تري ختم شی ځکه چي

ده نفع نه ده اخستي په ادا کاوه د دوونسکینو سرفي سَفْرَةٍ وَاحِدَةٍ ځکه په یو سفر کي .

تشریح:- ځکه چي د افعالو پوره کاوه نه بغیرد احرام نه وتل ممکن نه دی. البته دم تمتع تري ساقط شو ځکه چي دم تمتع په هغه چا واجبیږی چه په یوسفر کي دوي [دوه] عبادتونه په صحیح طریقه جمع کړی. اودلته چونکه یوفاسد شو. نود دوو عبادتونو نه جمع کاوه په وجه متمتع نشو.

## د ښځي قرباني کول د دم تمتع نه عدم کفایت

وَإِذَا تَمَتَّعَتِ الْمَرْأَةُ فَضَحَّتْ بِشَاةٍ هر کله چي ښځي تمتع اوکړه اود اختر په ورځ ئي یو وزه قرباني کړه لَمْ يُجْزِهَا عَنِ الْمُتْعَةِ نو داګه دم تمتع لپاره کافي نه وی. لِأَنَّهَا أَتَتْ بِغَيْرِ الْوَاجِبِ ځکه چي ده د واجبیدو نه علاوه قرباني کړي ده. وَكَذَا الْجَوَابُ فِي الرَّجُلِ اودا ځواب دسړی په اړه کي دي.

حل اللغة: ① تمتعت، تمتع تمتعاً: نفع اوچتونکي ② فضحت، ضح تضحية: قرباني کول ]

تشریح:- عد قیام ذبح الأضحية عن دم التمتع: یوي ښځي تمتع اوکړله. اوبیا ئي د لوئي اختر قرباني اوکړله. نودا قرباني دد م تمتع قائم مقام نشي جوړیدي. ځکه چي د سفر په وجه په دې باندي د لوئي اختر قرباني نشته. اودم تمتع پري واجب ده. نو غیر واجب دواجب قائم مقام نشي جوړیدي. هم دا حکم د سړی دي.

نوټ: په دې مسئله کي ئي دښځي ذکر په خصوصیت سره ځکه اوکړلو. چه د امام ابوحنیفه رحمه الله نه یوي ښځي د دې مسئلي پوښتنه کړي وه. ګني د سړی هم دا حکم دي.

## په حالت د احرام کي د ښځي حیض راتلل

وَإِذَا حَاضَتِ الْمَرْأَةُ عِنْدَ الْإِحْرَامِ اغْتَسَلَتْ کله چي حیض راشي ښځي ته داحرام په وخت کي نوغسل دي اوکړي وَأَحْرَمَتْ وَصَنَعَتْ كَمَا يَصْنَعُهُ احرام دي اوتړي اوکوی دي لکه چي کوی حاجیان الْحَاجُّ غَيْرَ أَنَّهَا لَا تَطُوفُ بِالْبَيْتِ حَتَّى تَطْهُرَ بغیرددي نه چي طواف به نه کوی دبیت الله تردي چي پاکه شي.

حل اللغة: ① حاضت، حاض حيضاً (ض): دماهوارني وینه جاری کیدل ② اغتسلت، اغتسل اغتسل اغتسالاً: غسل کول

تشریح:- اداء الحائض مناسك الحج غير الطواف: مسئله دا ده. که یوه ښځه د احرام په وخت کي حائضه شي. نودا دي داحرام لپاره غسل اوکړی. اود حج واړه افعال دي اوکړی. سوي د طواف نه، چه کله پاکه شي. نوبیا دي طواف اوکړی.

لِحَدِيثِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا حِينَ حَاضَتْ بِسَرِفٍ [1] په دلیل د حدیث دعائشه رضي الله عنها چي کله دا په مقام سرف کي حائضه شوه

تشریح:- دلائله: ① ددي دلیل دحضرت عائشي رضي الله عنها حدیث دي. ځکه چي دا په مقام سرف کي حائضه شوه. چه رسول الله ﷺ تشریف راوړلو. نودا ناسته وه. ژړل ئي. نبی ﷺ تري په خپله پوښتنه اوکړه. ولي ژاړي. حیض راغلي څه؟ حضرت عائشي رضي الله عنها ورته عرض اوکړلو. هم دا خبره ده. نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل. دا خوداسي شی دي. چه د آدم علیه السلام په ټولو لونړو باندي دا ناروغي (ناروغی (بیماری)) راخی. نوحاجیان چي کوم افعال کوی هغه کوه. خود بیت الله طواف مکوه. ترڅوچه پاکه شوي نه ئي.

وَلِأَنَّ الطَّوَافَ فِي الْمَسْجِدِ وَالْوُقُوفَ فِي الْمَفَازَةِ او ځکه چي طواف په جمات کي وی اووقوف په بیابان کي وی،

تشریح:- دوهم دلیل دا دي. چه دحائضي لپاره جمات ته داخلیدل منع دی. اوطواف په مسجد حرام کي کیږی. نوځکه به طواف نه کوی. اووقوف عرفات چونکه په عام ذکر کنبي وی. نود ښځي لپاره په دې مقام کي

[1] من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه البخاري في الحيض باب ١ ومسلم في الحج رقم ١١٩ والنسائي في الطهارة باب ١٧٨ وابن ماجه في الطهارة باب ١٢١ والدارمي في الوضوء باب ١٠٧ وأحمد في المسند (٦٥/٦)_



وقوف څه قباحت نه لری. دغه شان چي د حج کوم نورافعال دی. دهغي او د حیض په مینځ کي څه منافات نشته نوحائضه به هغه واړه افعال کوی.

وَهَذَا الِاغْتِسَالُ لِلْإِحْرَامِ لَا لِلصَّلَاةِ اودا غسل کول به د احرام لپاره وی نه دلمونځ دپاره. فَيَكُونُ مُفِيدًا نومفید به وی. فَإِنْ حَاضَتْ بَعْدَ الْوُقُوفِ وَطَوَافِ الزِّيَارَةِ او که حیض ورته راغلو د وقوف اود طواف نه روسته نو، انْصَرَفَتْ مِنْ مَكَّةَ وَلَا شَيْءَ عَلَيْهَا لِطَوَافِ الصَّدَرِ واپس دي شي دمکي نه او هیڅ نشته په دې باندي دطواف صدر (په پریخودو) لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ رَخَّصَ لِلنِّسَاءِ الْحُيَّضِ فِي تَرْكِ طَوَافِ الصَّدَرِ [1] ځکه چي نبی ﷺ اجازت ورکړي وو حائضه زنانو ته د پریخودو د طواف صدر.

تشریح:- حکمة الغسل عند الاحرام: که څوک اعتراض اوکړی. چه حائضي ته غسل څه فائده نه ورکوی. نوبیا دي نه دغسل حکم ولي کولي شی. نوددي ځواب دا دي. چه د احرام په وخت کي غسل د احرام یا دلمانځه لپاره نه وی. بلکه د نظافت حاصلولو لپاره وی. اویقیني خبره ده. چه په دې غسل سره نظافت حاصلیږی.

اوکه یوه ښځه د وقوف عرفات او طواف زیارت نه روسته حائضه شی. نودا دي د مکي نه روانه شی. اود طواف صدر په پریخودو په دې باندي څه واجب نه دی. ځکه چي رسول الله ﷺ ښځو ته د طواف صدر پریخودو اجازت ورکړي وو.

## د مکي لپاره د طواف صدر حکم

وَمَنِ اتَّخَذَ مَكَّةَ دَارًا فَلَيْسَ عَلَيْهِ طَوَافُ الصَّدَرِ اوچا چي مکه کور جوړکړو نو په ده باندي طواف صدر نشته لِأَنَّهُ عَلَى مَنْ يَصْدُرُ ځکه چي دا خو په هغه چا دي څوک چي واپس کیږی.

حل اللغة: ① اتخذ، اتخاذاً: نیول جوړولو ② يصدر، صدوراً (ن): واپس کیدل

تشریح:- عدم طواف الصدر على مريد الاقامة بمكة: که یو آفاقی مکه معظمه خپل وطن جوړ کړلو. نو په ده باندي طواف صدر نشته. ځکه چي طواف صدر په هغه چا واجب دي. څوک چي د مکي معظمي نه روانیږی. اوخپل وطن ته واپس کیږی. حالانکه دا کس چي مکه معظمه د استوګني ځائي جوړوی. نودا اراده نه لری. نوځکه پري طواف صدر واجب نه دي.

إِلَّا إِذَا اتَّخَذَهَا دَارًا بَعْدَ مَا حَلَّ النَّفْرُ الْأَوَّلُ مګر که جوړئي کړومکه مبارکه کور روسته د نفراول د وخت راتلونه، فِيمَا يُرْوَى عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ په هغه روایت کي کوم چي دامام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دي. وَيَرْوِيهِ الْبَعْضُ عَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ اوبعضو دي لره روایت کړي دي د امام محمد رحمه الله نه

تشریح:- رواية الوجوب: البته دا که د دولسمي ذوالحجي نه روسته په دیارلسمه ذوالحجه باندي ئي نیت اوکړلو. چه مکه د استوګني ځائي جوړوی. نود امام ابوحنیفه رحمه الله نه په یو روایت کي په ده باندي طواف صدر شته. اوبعضي حضرات دا روایت د امام محمد رحمه الله نه نقل کوی.

لِأَنَّهُ وَجَبَ عَلَيْهِ بِدُخُولِ وَقْتِهِ ځکه چي دا په دې خلیدو د وخت سره واجب شو. فَلَا يَسْقُطُ بِنِيَّةِ الْإِقَامَةِ بَعْدَ ذَلِكَ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ نوددي نه روسته په نیت داقامت سره نه ساقط کیږی والله اعلم بالصواب.

تشریح:- دلیله: ددي روایت دلیل دا دي. چه په دیارلسمه ذوالحجه راتلو باندي په ده طواف صدر واجب شو. اوچه د وجوب نه روسته دي په مکه کي د اقامت نیت اوکړی. نوبه دي باندي هغه طواف نه ساقطیږی. کوم چي یو ځل واجب شوي دي. لکه چي یومقیم په رمضان کي په خپل وطن کي سهار کړی. او د سهار راختو نه روسته دي مسافر شي. نوده ته په دغه ورځ کي د افطار رخصت نشته. (ځکه چي په ده باندي روژه

[1] من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه البخاري في الحج باب ١٤٤ ومسلم في الحج رقم ٣٨٠)

په حالت قيام فرض شوي ده په سفر باندي په هغې رخصت نه پيدا كيږي.

## باب الجنايات

دا باب د جناياتو په بيان كي دي

تشريح- الربط بما قبله: د محرمينو د احرام او فسمونو نه چي فارغ شو نو دي نه روسته د هغه عوارضو ذكر كوي كوم چي احرام ته پېښيږي جنايات جمع د جنايت ده او جنايت هغه فعل ته وائي كوم چي شرعا حرام وي.

### د محرم لپاره د خوشبو د لګولو جنايت

وَإِذَا تَطَيَّبَ الْمُحْرِمُ فَعَلَيْهِ الْكَفَّارَةُ كله چي خوشبو اولګوله محرم نو په ده كفاره ده. فَإِنْ طَيَّبَ عُضْوًا كَامِلًا فَمَا زَادَ فَعَلَيْهِ دَمٌ او س كه خوشبو ني اولګوله په پوره اندام يا ندي زياته نو په ده دم دي وَذٰلِكَ مِثْلُ الرَّأْسِ وَالسَّاقِ وَالْفَخِذِ وَمَا أَشْبَهَهُ ذٰلِكَ او دا په مثل د سر، پندني، ورون او څه چي د دي پشان وي

حل اللغة: ① تطيبه تطيبًا: خوشبو لګول ② ساق: پندني ③ فخذ: ورون

تشريح- حرمة استعمال الطيب للمحرم: صاحب د قدوري رحمه الله فرمائي.چه محرم په خپل بدن باندي هر ډول خوشبو اولګوله نو په ده باندي كفاره واجب شوه لكه بنفشه، جامبيل، ريحان ګلاب او نور عطرونه.

لِأَنَّ الْجِنَايَةَ تَتَكَامَلُ بِتَكَامُلِ الْإِرْتِفَاقِ ځكه چي جرم پوره كيږي په كامله نفعي اخستلو سره وَذٰلِكَ فِي الْعُضْوِ الْكَامِلِ او كامله نفع په پوره اندام كي ده فَيَتَرَتَّبُ عَلَيْهِ كَمَالُ الْمُوجِبِ نو په دي به پوره موجب مرتب وي.

تشريح- دليله: دليل دا دي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي. «الحاج الشعث التفل» يعني حاجي به بيرسري اوخيرن وي او خوشبو لګول دا صفت لري كوي نو ځكه خوشبوني لګول جرم دي.نو كه په پوره اندام يا د دي نه په زيات باندي ني خوشبوني اولګوله نو په ده باندي دم واجب شو.د پوره اندام مثال لكه سر، لينګئ، ورون او د دي پشان نور اندامونه.او كه د پوره اندام نه كمي برخي پوري ني خوشبوني اولګوله نو صدقه پري واجب ده دليل دا دي چه جرم مكمل كيږي په پوره فائده اخستلو، او پوره فائده اخستل حاصليږي په پوره اندام سره،نو ځكه كامله سزا يعني دم به په پوره اندام خوشبو كاوه باندي وي.

### د اندام نه په كمه برخه خوشبو لګول

وَإِنْ طَيَّبَ أَقَلَّ مِنْ عُضْوٍ فَعَلَيْهِ الصَّدَقَةُ لِقُصُورِ الْجِنَايَةِ او كه خوشبو ني اولګوله د اندام نه لږه نو په ده صدقه ده د جرم د كموالي د وجي

حل اللغة: ① اقل: كم ② جناية: جرم، ګناه

تشريح- المذهبان في تطييب الاقل من عضو: ① مسئله دا ده كه د يو اندام په كمه برخه ني خوشبوني اولګوله نو په ده باندي صدقه واجب ده ځكه چي دده جرم كم دي

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ: يَجِبُ بِقَدْرِهِ مِنَ الدَّمِ(1) امام محمد رحمه الله فرمائي چي په قدر د جرم به دم واجب وي. اِعْتِبَارًا لِلْجُزْءِ بِالْكُلِّ د امله د قياس د جزء نه په واړه باندي،

(1) القول الراجح قال المفتي غلام قادر مدظله العالي والصحيح أن يوفق ويقال إن كان الطيب قليلاً فالعبرة للعضو لا للطيب حتى لو طيب به عضوي كاملاً يكون كثيرا يلزم دم وفيما دونه صدقة وإن كان الطيب كثيرا فالعبرة للطيب لا للعضو حتى لو طيب به ربع عضو يلزمه دم كذا يفهم من عبارات فتح القدير (۲۴۳۹) وردالمحتار (۲۱۸|۲) والبحر الرائق (۳|۳) نقلاً عن القول الراجح (۲۱۸|۱).



حل اللغة: ① يجب وجبة وجب وجوبًا(ض): واجب كيدل

تشريح- امام محمد رحمه الله فرمائي چه دم به په اندازه د جرم وي.مثلاً كه په نيم اندام ني خوشبوني لګولي وي نو نيم دم به واجب وي. او كه په دريمه برخه ني خوشبوني لګولي وي نو دريمه برخه دم به واجب وي علي هذا القياس. امام محمد رحمه الله جزء په كل باندي قياس كړي دي يعني چي په پوره اندام كي پوره دم واجب دي نو دا په يو جزء كي به د هغې په اندازه دم واجب وي.

وَفِي الْمُنْتَقٰى أَنَّهُ إِذَا طَيَّبَ رُبُعَ الْعُضْوِ فَعَلَيْهِ دَمٌ اِعْتِبَارًا بِالْحَلْقِ او په منتقى كتاب كي دي چه كله په څلورمه برخه د اندام خوشبو اولګوله نو په ده دم دي په وجه د قياس كولو نه په سرخريلو باندي وَنَحْنُ نَذْكُرُ الْفَرْقَ بَيْنَهُمَا مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ او موږ به لږ روستو د دي دواړو بيان كوو انشاء الله.

حل اللغة: ① ربع: څلورمه حصه ② نذكر، ذكر ذكرًا(ن): ذكر كول ]

تسهيل: رواية المنتقى ودليلها: په منتقى كي دي.چه په څلورمه برخه ني خوشبوني اولګوله.نو په ده باندي پوره دم واجب دي.په سرخريولو باندي قياس كړي شوي دي.يعني لكه څنګه چي څلورمه برخه سرخريلو باندي پوره دم واجبيږي. دغه ډول به په څلورمه برخه اندام باندي پوره دم واجبيږي.خو موږ به انشاء الله په دي دواړو كي توپير بيان كړو.

### په وزه سره د دم ادا كيدل

ثُمَّ وَاجِبُ الدَّمِ يَتَأَدّٰى بِالشَّاةِ فِي جَمِيعِ الْمَوَاضِعِ بيا واجب دم اداكيږي په وزه باندي په ټولو ځايونو كي اِلَّا فِي مَوْضِعَيْنِ نَذْكُرُهُمَا فِي بَابِ الْهَدْيِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى سوي د دوو ځايونو نه چي موږ به ني په باب الهدى كي ذكر كوو انشاء الله.

تشريح- كفاية الشاة في الدم: دقدوري رحمه الله فرمائي.كه په محرم باندي دم واجب شي.نو دا د وزه په ذبح كاوه باندي ادا كيږي.

اعدم كفاية الشاة في موضعين: سوي د دوو ځايونو نه، ① يو په هغه صورت كي چي طواف زيارت په حالت د جنابت د حيض او نفاس كي اوكړي. ② او دوهم په هغه صورت كي چي د وقوف عرفات نه روسته جماع اوكړي.نو په دي دواړو صورتونو كي د وزه ذبح نه كافي كيږي.بلكه اوښ يا غوي ذبح كول به واجب وي.

### د واجب شوي صدقي مقدار

وَكُلُّ صَدَقَةٍ فِي الْإِحْرَامِ غَيْرُ مُقَدَّرَةٍ فَهِيَ نِصْفُ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ او هره صدقه چي په احرام كي دهغې څه اندازه مقرره نه وي نو هغه نيمه صاع ده.د غنمو، إِلَّا مَا يَجِبُ بِقَتْلِ الْقَمْلَةِ وَالْجَرَادَةِ سوا د هغې نه چي دسپږي اود مولخ په قتل واجبيږي هٰكَذَا رُوِيَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالٰى داسي روايت د دابو يوسف رحمه الله نه.

حل اللغة: ① بر: غنم ② قملة: سپږي ③ جرادة: ملخان ]

تشريح- الصدقة مجهول القدر: فرمائي كه د احرام په جنايت كي داسي صدقه واجب شي.چه دهغې څه مقدار مقرر نه وي نو په هغې كي د نيم صاع غنم واجب دي.البته كه يو كس په حالت د احرام كي سپږه يا مُلخ مړكړلو نو دده چي څه خوښه وي.صدقه دي كړي.په دي كي څه مقدار مقرر نه دي.حضرت عمر رضي الله عنه فرمائيلي دي. «التمرة خيرة من جرادة» يعني يوه خرما (قجوره) د ملخ نه ښه ده.

### د نكريزو په خضاب لګولو سره د دم وجوب

قَالَ وَإِنْ خَضَبَ رَأْسَهُ بِحِنَّاءٍ فَعَلَيْهِ دَمٌ كه محرم په خپل سر دنكريزو خضاب اولګولو نو په ده قرباني واجب ده. لِأَنَّهُ

طِيبٌ قَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْحِنَّاءُ طِيبٌ (١) ځكه چې نكريزې خوشبو ده نبى ﷺ فرمائيلى دى چې نكريزه خوشبوداره ده.

**حل اللغة:** ① **خضب، خضوبًا** (ض،س): نكريزې لګول

**تشريح:- وجوب الدم بالحناء**۞مسئله كه يومحرم په خپل سر باندې د نكريزو خضاب اولګولو.نو په دې صورت كې په ده باندې دم يعنى قربانى واجب ده.ځكه چې نكريزې يو ډول خوشبوئى ده.اونبى ﷺ فرمائيلى دى «الحنا طيب» اود احرام په حالت كې نكريزې لګول جرم دې.نوځكه به پرې دم جنايت واجب وى.

وَإِنْ صَارَ مُلَبَّدًا فَعَلَيْهِ دَمَانِ دَمٌ لِلتَّطَيُّبِ وَدَمٌ لِلتَّغْطِيَةِ اوكه سر پرې پټ كړى،نو دوې [دوه] دمونه دى پرې.يودم د خوشبواوبل د پټيدلو.

**حل اللغة:** **تغطية**: سرپوړه

**تشريح:- وجوب الدمين بالحناء**۞اوكه په حالت د احرام كې ئې نكريزې داسې اولګولې.چه ويخته ئې اونختل.نو په دې محرم باندې دوې [دوه] دمونه واجب دى.خوبه دې شرط چې دا انختل پوره يوه ورځ يا يوه شپه پاته وى.يوه قربانى د خوشبو لګولو په وجه اوبله قربانى د سر پټولو په وجه ،

وَلَوْ خَضَبَ رَأْسَهُ بِالْوَسْمَةِ لَا شَيْءَ عَلَيْهِ اوكه پخپل سرئې د وسمې خضاب اولګولو.نوڅه پرې نشته. لِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِطِيبٍ ځكه چې وسمه خوشبوداره نه ده.

**حل اللغة:** ① **وسمه**: دَنيل دپاڼړو يا يو ډول بوټې دَ كوم دَ پاڼړو نه چې خضاب وسمه كوى

**تشريح:- عدم وجوب الدم بالخضاب**۞اوكه يومحرم په خپل سر باندې د وونې د پاڼړو په وسمه لګولو سره خضاب اولګولو.نوپه ده څه واجب نه دى.ځكه چې دا خوشبو نشى شمارلې

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّهُ إِذَا خَضَبَ رَأْسَهُ بِالْوَسْمَةِ، لِأَجْلِ الْمُعَالَجَةِ مِنَ الصُّدَاعِ فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ (٢) ابويوسف صاحب روايت دې كه پخپل سر ئې د وسمې خضاب اولګولو د لپاره د علاج د درد دسر.نوپه ده باندې جزاء واجب ده. بِاعْتِبَارِ أَنَّهُ يُغَلِّفُ رَأْسَهُ وَهٰذَا صَحِيحٌ اودامام په دې اعتبار چې ده سرپټ (سرپوښ) كړو.اودا صحيح ده.

**حل اللغة:** ① **معالجة**: دارو درمل كول،علاج كول

**تشريح:-** .اوامام ابويوسف رحمه الله نه نقل دى.كه د وونې د پاڼړو وسمه ئې په دې غرض په سر باندې اولګوله.چه په سر ئې درد وو.يعنى دعلاج په طور ئې استعمال كړه.نو په ده باندې كفاره واجب ده.خو د كفاره وجوب به ددې املـه نـه وى.چه په سر باندې وسمه اولګوله.بلكه ددې املـه چې ده د وسمې په وجه خپل سرپټ كړلو.اوپه حالت د احرام په اتفاق سره سر پوړه موجب د دم دى.هم دا صحيح قول دې.

ثُمَّ ذَكَرَ مُحَمَّدٌ فِي الْأَصْلِ رَأْسَهُ وَلِحْيَتَهُ بيا ذكر دى په مبسوط كې چې په سر او ږيره باندې (خضاب دنكريزوخضاب اولګوى) وَاقْتَصَرَ عَلَى ذِكْرِ الرَّأْسِ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ اوپه جامع صغير كې ئې صرف د سرپه ذكر باندې اكتفاء كړې دې. دَلَّ أَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَضْمُونٌ نوپه دې دلالت شوچه په دوى كې هريو مضمون دى په دم سره.

**تشريح:- الفرق بين العبارتين**۞صاحب دهدايه رحمه الله دمبسوط اوجامع صغيرپه رواياتوكې توپير كوى اوفرمائى .چه په مبسوط كې د ږيرې اوسردواړو ذكردې.اوپه جامع صغيركې صرف د سر ذكر دې.دجامع

---

(١) من حديث خولة بنت حكيم عن أمها أخرجه البيهقى فى المعرفة فى الحج والطبرانى فى معجمه عن أم سلمة رضى الله عنها كذا فى نصب الراية ٣/١٤٤_

(٢) القول الراجح هو هذا قول أبى يوسف رحمه الله عليه كذا فى العناية (٢\٤٤٠) والهندية (١\٢٤١) نقلاً عن القول الراجح (١\٢١٩)_



صغيرد روايت نه معلوميږى.چه د دم د وجوب لپاره په سر اوږيرې دواړو باندې على سبيل الاجتماع خضاب لګول شرط نه دې.بلكه په دې دواړو په هريو باندې خضاب لګولو سره قربانى واجبيږى.

## د زيتون د تيلو لګولو حكم

فَإِنْ ادَّهَنَ بِزَيْتٍ فَعَلَيْهِ دَمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ (١) كه د زيتون تيل ئې اولګول نو پده دم واجب دې.په نزدامام ابوحنيفه رحمه الله وَقَالَا عَلَيْهِ الصَّدَقَةُ او صاحبين رحمهما الله وائى چې په ده صدقه ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ إِذَا اسْتَعْمَلَهُ فِي الشَّعْرِ فَعَلَيْهِ دَمٌ اوامام شافعى رحمه الله فرمائى كه په ويختو كې ئې استعمال كړل نو پده دم دې

**حل اللغة:** ① **ادهن، ادهانًا**: تيل لګول ② **استعمل، استعمالاً**: استعمالول

**تشريح:- المذاهب الثلاثة في استعمال الزيتون**۞ ① كه محرم د زيتون تيل اولګولو.نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په ده باندې دم واجب دې.② اودصاحبينو رحمهما الله په نيزپرې صدقه واجب ده.③ امام شافعى رحمه الله فرمائى .كه د زيتون تيل ئې په ويختو كې اولګول.نوپه ده باندې دم واجب دې.اوكه د ويختو نه په بل ځائې كې ئې اولګولو.نوپه ده باندې څه نه دى واجب.هم دا د امام مالك رحمه الله مذهب دې.

لِإِزَالَةِ الشَّعَثِ د ګندګئ لرې كاوه په املـه سره ،وَإِنِ اسْتَعْمَلَهُ فِي غَيْرِهِ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ لِانْعِدَامِهِ اوكه ددې نه علاوه ئې استعمال كړل نو هيڅ نشته پرې دڅه نه لرې كيدو په وجه.

**حل اللغة:** ① **شعث**: خيرن والې، كوټ

**تشريح:- دليل الشافعى** رحمه الله۞دامام شافعى رحمه الله دليل دا دې.چه په ويختو كې د زيتون د تيلواستعمال د ويختونه خيرى او چټلې لرې كوى.حالانكه د حاجى لپاره كوټ لرې كول ممنوع دى.لكه چې حديث «الحاج الشعث التفل» پرې ګواه دې.اوپه حالت د احرام كې د ممنوع فعل ارتكاب موجب د دم دې.نوځكه به په دې صورت كې دم واجب وى.اود ويختونه علاوه په بل ځائې كې دزيتون د تيلوپه لګولو كې چونكه د خيرنتيا لرې والې نه موجوديږى .نوځكه به په دې صورت كې دم واجب نه وى.

وَلَهُمَا أَنَّهُ مِنَ الْأَطْعِمَةِ إِلَّا أَنَّ فِيهِ ارْتِفَاقًا اوصاحبين رحمهما الله فرمائى چې د زيتون تيل دخوراك دى ليكن په دې كې يو ډول نفع ده بِمَعْنَى قَتْلِ الْهَوَامِّ وَإِزَالَةِ الشَّعَثِ فَكَانَتْ جِنَايَةً قَاصِرَةً دسپږو وژلو اودګندګئ لرې كاوه نوجرم ناقص شو.

**حل اللغة:** ① **ارتفاقًا**: فائده اوچتول

**تشريح:- دليل الصاحبين** رحمهما الله۞د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه د زيتون تيل د خوشبوئې او زيب او زينت لپاره نه دى.بلكه دا خود خوراك لپاره استعماليږى.نوځكه ددې په استعمال باندې دم نه واجبيږى. البته دومره ده.چه د دې په استعمال كې لږه شان فائده شته.نوځكه به د محرم لپاره ددې استعمال ټيك نه دې خوكه محرم دا استعمال كړى.نوچونكه دا جنايت قاصره ده.نوپه ده به صدقه واجب وى.دم به پرې نه وى واجب.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّهُ أَصْلُ الطِّيبِ وَلَا يَخْلُو عَنْ نَوْعِ طِيبٍ، اودامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه دا خوشبو اصل دې اوپخپله هم ديو ډول خوشبو نه خالى نه دې. وَيَقْتُلُ الْهَوَامَّ وَيُلَيِّنُ الشَّعْرَ وَيُزِيلُ التَّفَثَ وَالشَّعَثَ او سپږې وژنى اوويختـه نرموى او چټلې لرې كوى فَتَتَكَامَلُ الْجِنَايَةُ بِهٰذِهِ الْجُمْلَةِ فَتُوجِبُ الدَّمَ نوپه دې ټولو سره جرم كامل شو.نودم واجبيږى

---

(١) القول الراجح هو هذا قول أبى حنيفة رحمه الله عليه كذا فى شرح الوقاية (١\٢٧٣) والدرى لمختار(٢\١٢١٩) والهندية (١\٢٤١) والبحر(٣\٨) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٢٠)_

تشریح:- دليل ابی حنيفة ۞ دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دي.چه د زيتون تيل اګرچه خوشبوئی نه ده.خود
خوشبوئي اصل اوجرړه ده.نولکه څنګه چې د خوشبوئي په استعمال سره دم واجبيږي.دغه ډول به ددې د
اصل په استعمال سره هم دم واجبيږي.دغه ډول د زيتون په تيلو کي خوشبوئی وی.هغه سپکي مرې کوی.د
بدن خيرنتيا لرې کوی.اوويخته نرموی.ددې ځيزونو د امله ددې د استعمال جنايت کامل دې.اود جنايت
کامل په ارتکاب سره دم واجبيږي.نوپه ده به دم واجب وی.

وَكَوْنُهُ مَطْعُومًا لَا يُنَافِيهِ كَالزَّعْفَرَانِ اوغذائيت ئې د دې منافی نه دی لکه زعفران.

تشریح:- الجواب من دليل الصاحبين ۞ اودصاحبينو رحمهما الله دا خبره چې د زيتون تيل د خوراك شی دې.نودا
خبره ټيک ده.چه دا خوراك شی دې.خو په خوراك اوپه دې کي چې دا سپکې مرې کوی،خيرنتيا لرې
کوی.اودويخته نرموی.څه منافات نشته.لکه څنګه چې زعفران په اتفاق سره د خوراك شی دې. او خوشبوئی
هم ده.

وَهٰذَا الْخِلَافُ فِي الزَّيْتِ الْبَحْتِ وَالْخَلِّ الْبَحْتِ اودا خلاف په خالصو تيلو د زيتونو اوخالصو تيلو د کُونځلو کي دې.أَمَّا
الْمُطَيَّبُ مِنْهُ كَالْبَنَفْسَجِ وَالزَّنْبَقِ وَمَا أَشْبَهَهُمَا پاتې شوخوشبودارجوړشوی لکه بنفشه چنبيلی اوددې پشان. يَجِبُ
بِاسْتِعْمَالِهِ الدَّمُ بِالِاتِّفَاقِ. لِأَنَّهُ طِيبٌ نوددې په استعمال دم واجب دې په اتفاق سره ځکه چې دا خوشبوده، وَهٰذَا إِذَا
اسْتَعْمَلَهُ عَلَى وَجْهِ التَّطَيُّبِ اودا هله ده چې کله استعمال شوی وی دخوشبو په طور.

تشریح:- المراد من الزيتون في المتن ۞ علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه دامام ابوحنيفه، امام شافعی
اوصاحبينو رحمهم الله په مينځ کي چې د زيتون يا دتل د تيلو په استعمال کښي کوم اختلاف دې.نودا خالص د زيتون
يا د تل په تيلوکي دې.که په دې تيلوکي بنفشه،چنبيل وغيره خوشبوئی ګډه شوې وی.نودهغې په استعمال
په اتفاق سره دم واجبيږي.ځکه چې اوس دا خوشبوئی شوه.دا واړه تفصيل په هغه وخت کي دې.چه دا چې
ئې د خوشبو لګولو په طريقه وی.

## د محرم لپاره په زخم د زيتون تيل لګول

وَلَوْ دَاوٰى بِهِ جُرْحَهُ أَوْ شُقُوقَ رِجْلَيْهِ فَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ اوکه په دې ئې دخپل زخم يا دپښو سورې بند کړې وی.نوپه ده
کفاره نشته.

حل اللغة: ① داوی، مداواة: علاج کول، دوائی کول

تشریح:- عدم الكفارة في استعمال الزيتون على وجه الدواء ۞ که محرم په زخم يا د پښې په چوندی باندې
دعلاج لپاره د زيتون تيل اولګولو.نوپه ده دم يا صدقه نه واجبيږي.

لِأَنَّهُ لَيْسَ عَلَى وَجْهِ التَّطَيُّبِ ځکه چې دا په خپله خوشبو نه ده.(بلکه دخوشبو لپاره اصل دې)

تشریح:- دليله ۞ ځکه چې د زيتون تيل بذات خود خوشبو نه ده.بلکه د خوشبو اصل او جرړه ده.يا من وجه
خوشبو ده.نوځکه ئې د دې په استعمال کي دا شرط اولګولو.چه ددې استعمال د خوشبوئې په طور وی.
نوبيا به کفاره يا دم واجبيږي.اوکه دعلاج په طور وی.نوپه ده باندې کفاره نه واجبيږي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا تَدَاوٰى بِالْمِسْكِ وَمَا أَشْبَهَهُ په خلاف ددې چې کله په مشکووغيره سره ئې دوائی کړې وی.

تشریح:- وجوب الكفارة باستعمال بقية الطيبات ۞ البته که د مشك عنبر کافور وغيره استعمال د علاج په طريقه
استعمال شی.نوبيا هم کفاره واجبيږي.ځکه چې دا شيان (ځيزونه) بذات خود خوشبوئی ده.نوپه کې د
خوشبوپه طريقه استعمالولو قيد نشی لګولې.بلکه که د علاج په طور استعمال شی.نوهم به په کي کفاره
واجب وی.



## پوره ورځ د ګنډلي جامې اچول اودسرپټول اود پوره ورځ نه د کم حکم

وَإِنْ لَبِسَ ثَوْبًا مَخِيطًا أَوْ غَطّٰى رَأْسَهُ يَوْمًا كَامِلًا فَعَلَيْهِ دَمٌ، که وائې غوستلې ګنډلې شوې جامې يا ئې پټ کړو سر
خپل يوه ورځ پوره نوپه ده دم دی وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنْ ذٰلِكَ فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ[1] اوکه د دې نه کم وی نوپه ده صدقه
واجب ده. وعن أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّهُ إِذَا لَبِسَ أَكْثَرَ مِنْ نِصْفِ يَوْمٍ فَعَلَيْهِ دَمٌ، وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَوَّلًا او د
ابويوسف رحمه الله نه روايت دې که د نيمې ورځې نه زياته کالی ئې واغوستله نو په ده دم دې.دامام رحمه الله هم
رومبې قول دا وو وَعَنْ وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ: يَجِبُ الدَّمُ بِنَفْسِ اللُّبْسِ. امام شافعی رحمه الله وائی چې د
اغوستلو سره به دم واجب وی.

حل اللغة: ① لبس، لبسًا (س): اغوستل

تشریح:- المذاهب الثلاثة في لبس المخيط ۞ صورت د مسئلې دا دې.که محرم يوه ورځ يا يوه شپه ګنډلې جامې
واغوستلې.يا ئې سر پټ اوساتلو.نو په ده باندې دم واجب دې.اوکه ديوې ورځې يا د يوې شپې نه کم ئې دا
اوساتلې نه صدقه واجب ده. ② اودامام ابويوسف رحمه الله نه روايت نقل دې.چه د ورځې يا د شپې اکثره برخه
ګنډلې شوې جامې واغوندی.يا سرپټ (سرپوښ) کړی.نوپه ده باندې دم واجب دې.دامام ابوحنيفه رحمه الله اول
قول هم دا وو.بيا ئې ددې نه رجوع اوکړله. ③ امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه څنګه ګنډلې شوې جامې
واغوندی.نودم پرې واجب شو.(د وخت مقدار په کې نشته)

لِأَنَّ الِارْتِفَاقَ يَتَكَامَلُ بِالِاشْتِمَالِ عَلَى بَدَنِهِ ځکه چې انتفاع پوره کيږی دبدن په شامليدو سره.

حل اللغة: ① ارتفاق: نفع اوچتول ② يتكامل، تكامل تكاملًا: کامل کيدل، پوره کيدل

تشریح:- دليل الشافعي رحمه الله ۞ دامام شافعی رحمه الله دليل دا دې.چه د راحت نه پوره نفع حاصله شوه.نوپه ده
به په يقين سره دم واجبيږي.

وَلَنَا أَنَّ مَعْنَى التَّرَفُّقِ مَقْصُودٌ مِنَ اللُّبْسِ فَلَا بُدَّ مِنِ اعْتِبَارِ الْمُدَّةِ زموږ دليل دادې چې د راحت موندو معنی
مقصود ده د اغوستلو نه،نو د مودې اعتبار ضروری دې لِيَحْصُلَ عَلَى الْكَمَالِ وَيَجِبُ الدَّمُ چې مقصود په
طريقه دکمال حاصل شی اودم واجب شی فَقُدِّرَ بِالْيَوْمِ لِأَنَّهُ يُلْبَسُ فِيهِ ثُمَّ يُنْزَعُ عَادَةً نو موده يوه ورځ مقرر شوه چې
په ورځ کي دعادت په طور اغوستلې شی بيا ويستلې شی وَتَتَقَاصَرُ فِيمَا دُونَهُ الْجِنَايَةُ فَتَجِبُ الصَّدَقَةُ غَيْرَ أَنَّ أَبَا يُوسُفَ
رَحِمَهُ اللّٰهُ أَقَامَ الْأَكْثَرَ مَقَامَ الْكُلِّ او د دې نه په کم کي به جرم ناقص وی نوصدقه واجب ده. صرف دومره خبره
ده چې ابويوسف رحمه الله اکثرلره د کل قائمقام ګرځولې ده.

تشریح:- دليل ابی حنيفة رحمه الله ۞ اوزموږ دليل دا دې.چه په جامو اچولو کي راحت حاصلول مقصود وی.يعنی د
ګرمۍ اويخنۍ نه ځان ساتل،ځکه اغوستل هم ددې لپاره وی.دالله تعالی ارشاد دې. [تَقِيكُمُ الْحَرَّ وَسَرَابِيلَ]اودا
معنی اوږده ده.نودا معنی کامله هم کيدای شی.اوقاصره هم،اوپه کامل اوقاصر کي حد فاصل ضروری
دې.چه جزاء هم د هغې مطابق مقرر کړې شی.نوحد فاصل يوه ورځ پوره يا يوه شپه پوره مقرر کړې
شوه.يعنی يوه پوره ورځ اغوستل کامل جرم دې.نوددې په وجه به جزاء هم کامله وی.چه وجوب د دم دې.اود
يو ورځ نه کم جرم قاصر دې.نوددې په ارتکاب به صدقه واجبيږي.

دليل ابی يوسف رحمه الله ۞ اوامام ابويوسف رحمه الله چونکه اکثرد کل قائم مقام ګرځوی.نود هغوی په نيزکه په
اکثره برخه د ورځې يا د شپې کې ئې ګنډلې جامې واچولې.يا ئې سرپټ کړلو.نودم جزاء کامل يعنی دم به
واجب وی.

[1] القول الراجح هو هذا قول الجمهور كذا فى الدرى لمختار(٢٢٠١٢) والهندية (٢٤٢١١) نقلاً عن القول الراجح (٢٢٠١١)۔

## قمیص د څادر په ځائې یا اضطباع یا لنګ په طور استعمالول

**وَلَوِ ارْتَدٰى بِالْقَمِيْصِ أَوْ اتَّشَحَ بِهٖ أَوِ اتَّزَرَ بِالسَّرَاوِيْلِ فَلَا بَأْسَ بِهٖ** که قمیص ئې په طور د پټو (څادر) واغوستلو یا ئې اتشاح اوکړو یعني پاېکالی (پرتوګ) ئې دلنګ پشان اوتړلو نو ددې باك نشته **لِأَنَّهٗ لَمْ يَلْبَسْهُ لُبْسَ الْمَخِيْطِ** ځکه چې ده د ګنډلي شوي په طور اغوستلې نه دی. **وَكَذَا لَوْ أَدْخَلَ مَنْكِبَيْهِ فِي الْقَبَاءِ وَلَمْ يُدْخِلْ يَدَيْهِ فِي الْكُمَّيْنِ** (١) دغه ډول که دننه ئې کړې اوږې په کوټ کې اولاسونه ئې په لستوڼوکې دننه نه وی.

**حل اللغة:** ① ارتدی: قمیص پټو (څادر) جوړول ② اتزر: پاجامه لنګوټه (پټکې) جوړول ③ المخیط: ګنډلې شوې کپړا ④ منکبیه: اوږې

**تشریح:- المذهبان في المسئلة** ۞ صورت د مسئلې دا دې. ① که محرم د قمیص نه پټو (څادر) جوړ کړلو. یا ئې دا د بنې اوږې لاندې نه راویستلو. اوپه ګسه اوږه سربیره ئې واچولو، یا ئې د قمیص نه لنګ جوړ کړلو. نوپه دې ټولو صورتونو کې په ده باندې څه واجب نه دی. ځکه چې ده په دې سې طریقه باندې دا اغوستل نه دی کړې په کومه طریقه چې ګنډلې شوې کالی اغوستلې شی. اوچه د ګنډلې شوې جامې پشان اغوستل موجود نشو. نودم جنایت هم نشو.

**خِلَافًا لِزُفَرَ** رحمه الله په خلاف دامام زفر **لِأَنَّهٗ مَا لَبِسَهٗ لُبْسَ الْقَبَاءِ** ځکه چې کوټ ئې پخپل طورباندې اغوستې دی، **وَلِهٰذَا يَتَكَلَّفُ فِي حِفْظِهٖ** په دې امله به ئې په ساتنه کې تکلیف وی. **وَالتَّقْدِيْرُ فِي تَغْطِيَةِ الرَّأْسِ مِنْ حَيْثُ الْوَقْتُ مَا بَيَّنَّاهُ** اواندازه په سرپټولوکې دوخت په لحاظ سره ده کومه چې مونږ بیان کړه.

**تشریح:-** اودامام زفر رحمه الله په نیز په ده باندې جزاء واجب ده.

**دلیله** ۞ دامام زفر رحمه الله دلیل دا دې. چه چوغه ګنډلې شوې کالی ده. کله چې محرم په دې کې خپلې اوږې ورداخلې کړې. نودې د ګنډلو شوو جامو اغوستونکې شو. اوکله چې محرم ګنډلې شوې جامې واغوندی. نوپه هغه یقیناً جزاء د جنایت واجب وی نوپه ده به هم جزاء د جنایت واجب وی.

**تشریح:- دلیل جمهورالاحناف** رحمهم الله ۞ زمونږ دلیل دا دې. چه ده قبا په هغه طریقه نه ده اغوستې. څنګه چې د هغې د اغوستلو طریقه ده. د چوغې د اغوستلو په عادت کې طریقه دا ده. چه په چوغه کې اوږې اولاسونه داخلولې شی هم دا وجه ده. چه لاسونه په لستوڼو کې داخل نکړې شی. نوپه دې صورت کې د چوغې په ساتنه کې مشقت وی. ځکه چې په دې صورت کې د هغې په اوږو باندې ایساره پاتې کیدل ګران وی. نوچه د قباد اغوستلو په طریقه نه ده. نوجزاء جنایت به هم نه وی.

**وَلَا خِلَافَ أَنَّهٗ إِذَا غَطّٰى جَمِيْعَ رَأْسِهٖ يَوْمًا كَامِلًا يَجِبُ عَلَيْهِ الدَّمُ** اوهیڅ اختلاف نشته که پټ ئې کړو واړه سر پوره ورځ نوواجب دې دم **لِأَنَّهٗ مَمْنُوْعٌ عَنْهُ** ځکه چې دا امر ممنوعه دې.

**تشریح:- اعتبارالیوم اواللیلة في سترالراس** ۞ صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی. چه په سر پټولوکې هم د پوره ورځې یا شپې اعتبار دې. که پوره ورځ یا پوره شپه سرپټ کړی. نوپه اتفاق سره پرې دم واجب دې. ځکه چې دا ممنوع شی دې.

**وَلَوْ غَطّٰى بَعْضَ رَأْسِهٖ فَالْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** اوکه ده بعضې سرپټ کړو نودامام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دا دې **أَنَّهٗ اعْتَبَرَ الرُّبُعَ** (٢) **اِعْتِبَارًا بِالْحَلْقِ وَالْعَوْرَةِ** چې ده اعتبارکړې دڅلورمې قیاس په حلق اوپه عورت باندې

---

(١) القول الراجح هو هذا قول الجمهور كذا في التاتارخانية (٢\٤٩٢) والهندية (١\٢٤٢) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٢١)_

(٢) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار (٢\٢٢١) والهندية (١\٢٤٢) والتاتارخانية (٢\٤٩٥) نقلاً عن



**تشریح:- اعتبار ستر ربع الراس عند ابی حنیفة** رحمه الله ۞ اوکه که د سرڅلورمه برخه ئې پټه کړه. نوامام ابوحنیفه رحمه الله په دې کې د سرڅلورمې برخې اعتبار کړې دې. یعنی که یوه ورځ یا یوه شپه ئې د سرڅلورمه برخه پټه اوساتله. نوپه ده باندې دم واجب دې.

**قیاسان** ۞ امام ابوحنیفه رحمه الله د سرپه خرئیلو اود څلورمې برخې ستر ښکاریدو باندې قیاس کوی. یعنی لکه څنګه که محرم دسرد څلورمې برخې حلق اوکړلو. نوپه ده باندې دم واجبیږی. دغه ډول که په لمانځه کې د واجب الستر اندام څلورمه برخه ښکاره شوه. نولمونځ فاسدیږی. دغه ډول دلته د احرام په حالت کې دڅلورمې برخې سر پټولوبه دم لازمیږی.

**وَهٰذَا لِأَنَّ سَتْرَ الْبَعْضِ اسْتِمْتَاعٌ مَقْصُوْدٌ** اودا ځکه چې بعضې سرپواړه انتفاع مقصوده ده **يَعْتَادُهٗ بَعْضُ النَّاسِ** کومه چې دبعضو خلګو عادت دې.

**تشریح:- دلیله** ۞ اود سرد څلورمې برخې په پټولوباندې دم ځکه لازمیږی. چه د بعضې سرپواړه نفع اخستل دی. چه مقصود دې. اودبعضې خلګ وعادت هم دې. چه هغوی د سر بعضې برخه پټوی او بعضې ښکاره کوی. لکه ترکیان او عراقیان داسې وړې ټوپۍ په سرکوی چې په هغې کې دسرڅلورمه برخه پټیږی.

**وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّهٗ يَعْتَبِرُ أَكْثَرَ الرَّأْسِ اعْتِبَارًا لِلْحَقِيْقَةِ** اودامام ابویوسف نه روایت دې چې دوی د اکثر سراعتبار کوی دحقیقت په اعتبار کاوه سره.

**تشریح:- اعتباراکثرالراس عندابی یوسف** رحمه الله ۞ حضرت امام ابویوسف رحمه الله د سر داکثرې برخې اعتبار کوی. یعنی که محرم د سر اکثره برخه پټه کړه. نودم پرې لازمیږی ګنی نه،

**دلیله** ۞ حضرت امام ابویوسف رحمه الله دحقیقت کثرت اعتبار کوی. اوپه حقیقت کې کثرت دا دې. چه د دې په مقابل کې اقل وی. اودا په هغه وخت کې کیدای شی. چه د نیم سر نه زیاته برخه پټه وی.

## دڅلورمې حصې سریا ږیرې کټ کول اوددې نه کم

**وَإِذَا حَلَقَ رُبُعَ رَأْسِهٖ أَوْ رُبُعَ لِحْيَتِهٖ فَصَاعِدًا فَعَلَيْهِ دَمٌ**، که وې خرئیلو څلورمه برخه سر اویا څلورمه برخه ږیره خپله یا زیاته، نو پده دم دې. **فَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنَ الرُّبُعِ فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ** اوکه د څلورمې برخې نه کم وو. نوپده صدقه واجب ده.

**حل اللغة:** ① حلق، حلقًا (ض): خرول

**تشریح:-** مسئله دا ده. که محرم څلورمه برخه د سر یا د ږیرې یا ددې نه زیاته اوخرایله. نوپه ده باندې دم واجب دې. اوکه ددې نه کمه وی. نوصدقه پرې واجب ده.

**وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ: لَا يَجِبُ إِلَّا بِحَلْقِ الْكُلِّ** اوامام مالك رحمه الله فرمائی چې واجب ندې مګر په خرئیلو دواړه

**تشریح:-** دامام مالك رحمه الله په نیزد وجوب دم لپاره د پوره سریا پوره ږیرې حلق ضروری دې.

دامام مالك رحمه الله دلیل دالله تعالی ارشاد دې [وَلَا تَحْلِقُوْا رُءُوْسَكُمْ] په دې کې د سر حلق ممنوع دې. او د سر اطلاق په واړه باندې کیږی. نوچه د پوره سر نه په کم مقدار باندې حلق اوکړی. په دې باندې به وجوب دم نه راځی. اوکه د پوره سر حلق اوکړی. نودم لازمیږی.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ يَجِبُ بِحَلْقِ الْقَلِيْلِ** اوشافعی رحمه الله فرمائی چې واجب دې په لږسر سره، **اِعْتِبَارًا بِنَبَاتِ الْحَرَمِ** قیاس کوی په ګیاه دحرم باندې.

**حل اللغة:** ① نبات: بوټې

---

القول الراجح (١\٢٢١)_

**تشريح:-** دامام شافعی رحمه الله په نيز د درې ويختو په حلق سره هم دم واجبيږی امام شافعی رحمه الله د سر او ږيرې خريل دحرم په ګياه باندې قياس کوی.لکه څنګه چې د حرم په ګياه کې کمه او ډيره برابر ده.دغه ډول د ويختو په حلق کې هم کم او ډير برابر دی.

وَلَنَا أَنَّ حَلْقَ بَعْضِ الرَّأْسِ ارْتِفَاقٌ كَامِلٌ؛ لِأَنَّهُ مُعْتَادٌ زمونږ دليل دا دې چې لږ سر خرئيل پوره نفع ده ځکه چې دا معتاد دې فَتَتَكَامَلُ بِهِ الْجِنَايَةُ وَتَتَقَاصَرُ فِيمَا دُونَهُ نو په دې سره جرم پوره کيږی او ددې نه په کم کې نقص دی.

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ﴿زمونږ دليل دا دې.چه د څلورمې برخې سر خريل هم پوره انتفاع ده.ځکه چې د بعضې خلګو دا عادت دې.د ترکيانو عادت دا دې.چه صرف د مينځ نه حلق کوی.او د بعضې علويانو صرف د تندې ويخته خريل دی.بهرحال کله چې د څلورمې برخې سر په حلق سره انتفاع کامله ده.نو په دې مقدار باندې حلق به هم د کامل جنايت موجب وی.او د څلورمې برخې نه په کم مقدار کې چونکه جنايت ناقص دې.او د جنايت کامله په صورت کې دم واجبيږی.او د جنايت قاصره په صورت کې صدقه واجبيږی.

بِخِلَافِ تَطْيِيبِ رُبُعِ الْعُضْوِ؛ لِأَنَّهُ غَيْرُ مَقْصُودٍ په خلاف د څلورمې برخې د اندام نه په خوشبو کولو.ځکه چې دغه غير مقصود دې. ،وَكَذَا حَلْقُ بَعْضِ اللِّحْيَةِ مُعْتَادٌ بِالْعِرَاقِ وَأَرْضِ الْعَرَبِ او دغسې بعض ږيره خرئيل معتاد دی په عراق او مځکه دعربو کې

**تشريح:- جواب سوال التقديری** ﴿په خلاف دهغه صورت کې که د يو اندام څلورمې برخې باندې خوشبوئی اولګوی.نو دم نه واجبيږی.ځکه چې دخوشبو لګولو په حق کې به د کامل اندام حکم هغه وی.کوم چې په حلق کې د څلورمې برخې وی.دغه ډول د څه ږيرې خريل د عراقيانو او عربانو عادت پاتې شوې دې.

## د څټ يا د تيخرلې د ويختو حلق

وَإِنْ حَلَقَ الرَّقَبَةَ كُلَّهَا فَعَلَيْهِ دَمٌ؛ لِأَنَّهُ عُضْوٌ مَقْصُودٌ بِالْحَلْقِ که پوره څټ ئې اوخرئيلو نو په ده دم دې.ځکه چې دا داسې اندام دې چې خريلې شی.

**حل اللغة:** ① رقبة: سټ

**تشريح:- وجوب الدم بحلق الرقبة** ﴿که محرم د پوره څټ حلق اوکړلو.نو په ده باندې دم جنايت واجب شو. ځکه چې څټ داسې اندام دې.چه ددې حلق په اراده سره کيږی.ډير خلګ ئې د ښائست او زينت لپاره حلق کوی.اګرچه داسې کول مکروه دی.

وَإِنْ حَلَقَ الْإِبْطَيْنِ أَوْ أَحَدَهُمَا فَعَلَيْهِ دَمٌ او که دواړه يا يو تيخرګ ئې اوخرئيلو.نو په ده دم دې. لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَقْصُودٌ ځکه چې هر تيخرګ په خرئيلو کې مقصود دې بِالْحَلْقِ لِدَفْعِ الْأَذَى وَنَيْلِ الرَّاحَةِ فَأَشْبَهَ الْعَانَةَ د ګندګئ لرې کولو او راحت حاصلولو لپاره نو د زيرناف سره مشابه شو.

**حل اللغة:** ① ابطين: ترخونه ② ادى: ګندګی، تکليف ③ نيل: موندل

**تشريح:- وجوب الدم بحلق البغل** ﴿او که محرم د واړو يا د يو تيخرګ حلق اوکړلو.نو په دې باندې هم دم واجبيږی. ځکه چې هر تيخرګ په اراده سره خريلې شی.چه چټلې ترې لرې شی.نو هر يو تيخرګ د زيرناف د ويختو پشان شو.يعنی لکه څنګه چې د زيرناف ويختو په حلق سره دم واجبيږی.دغه ډول به د تيخرګ د ويختو په حلق سره هم دم واجبيږی.

**السوال** ﴿دلته يو سوال پيدا کيږی.هغه دا چې هر کله د هر يو تيخرګ د ويختو حلق مستقل جنايت دې.نو بيا پکار دا ده.چه د دواړو ترخونو په حلق دوې [دوه] قربانئ واجبيږی.حالانکه تاسو يوه قربانئ واجبوئ.



**الجواب** ﴿ددې خواب دا دې.که دوې [دوه] جنايتونه د يو نوع خنی وی.نو يو ضمان به واجبيږی.هم دا وجه ده.که يو محرم په بال صفا باندې د واړه بدن ويخته اوخرائی.نو صرف يو دم پرې واجبيږی.نو دغه شان چې د دواړو ترخونو ويخته اوخرائی.نو هم به يو دم واجب وی.

ذَكَرَ فِي الْإِبْطَيْنِ الْحَلْقَ هَاهُنَا امام محمد رحمه الله دلته د ترخونو په اړه کې لفظ د حلق وَفِي الْأَصْلِ النَّتْفَ وَهُوَ السُّنَّةُ او په مبسوط کې لفظ دنتف ذکر کړې دې.او دا سنت دې.

**تشريح:- اختلاف عبارة الجامع الصغير والمبسوط** ﴿صاحب دهدايه د جامع صغير او مبسوط په عبارتونو کې توپير بيانوی.چه امام محمد رحمه الله دجامع صغير په روايت کې د ﴿حلق﴾ لفظ ذکر کړې دې.او د مبسوط په روايت کې ئې د ﴿نتف﴾ لفظ ذکر کړې دې.د وجوب دم په حق کې دواړه طريقې برابر دی.البته ﴿نتف﴾ سنت دې.

صاحبين رحمهما الله وائی که يو اندام ئې اوخرئيلو نو په ده باندې دم دې وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ فَطَعَامٌ أَرَادَ بِهِ الصَّدْرَ وَالسَّاقَ وَمَا أَشْبَهَ ذَلِكَ او که کم وو.نو طعام دې.په دې کې د اندام نه مراد سينه ،ورون او دې په مثل دی لِأَنَّهُ مَقْصُودٌ بِطَرِيقِ التَّنَوُّرِ فَتَتَكَامَلُ بِحَلْقِ كُلِّهِ ځکه چې دا د پوډرو لګولو په طور مقصود دی نو په ټولو خرئيلو کې جرم پوره او وَتَتَقَاصَرُ عِنْدَ حَلْقِ بَعْضِهِ او په بعضو کې به ناقص دې.

**تشريح:- وجوب الصدقة بحلق بعض العضو** ﴿صاحبين رحمهما الله فرمائی.که محرم د پوره اندام حلق اوکړلو.نو په ده باندې دم واجبيږی.او که د يو اندام نه ئې کم حلق اوکړلو.نو په ده باندې صدقه واجبيږی.صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چه د اندام نه د امام محمد مراد سينه لينګئ او ددې پشان نور اندامونه دی.لکه ورون ،ځکه چې په دې کې په يو باندې بال صفا لګول او يا کاوه مقصود وی.بعضې خلګ د خپل آسانتيا او ښائست لپاره په دې ويختو باندې بال صفا لګوی.او دا لرې کوی.او حلق هم ويخته لرې کوی.نو هر کله چې په دې کې د هر يو اندام حلق مقصود دې.نو د پوره اندام حلق به پوره جنايت وی.او د کم اندام به ناقص جنايت وی.او دا خبره وړاندې تيره شوې ده.چه د جنايت کامله په صورت کې دم واجبيږی.او د جنايت قاصره په صورت کې صدقه واجبيږی.نو ځکه د يو اندام په حلق سره دم واجبيږی.او د يو اندام نه د کم په حلق سره صدقه واجبيږی.

## د بريتود حلق حکم

وَإِنْ أَخَذَ مِنْ شَارِبِهِ فَعَلَيْهِ طَعَامٌ (حُكُومَةُ عَدْلٍ) که پرې ئې کړل خپل بريتونه نو په ده طعام دې دعادلانو په فيصلې سره. وَمَعْنَاهُ أَنَّهُ يُنْظَرُ أَنَّ هَذَا الْمَأْخُوذَ كَمْ يَكُونُ مِنْ رُبُعِ اللِّحْيَةِ ددې معنی داده چې او به کتلې شی چې څومره پريکړی شوې ده د څلورمې د برخې د ږيرې نه. فَيَجِبُ عَلَيْهِ الطَّعَامُ بِحَسَبِ ذَلِكَ نو په ده دغه حساب به طعام واجب، حَتَّى لَوْ كَانَ مَثَلًا مِثْلَ رُبُعِ الرُّبُعِ لَزِمَهُ قِيمَةُ رُبُعِ الشَّاةِ تر دې که رسيدلو څلورمې برخې ،د څلورمې برخې د ږيرې نه ،نو واجب به وی پرې قيمت د وزه د څلورمې حصې.

**حل اللغة:** ① اخذ ، اخذاً (ن): اخستل، نيول ② شارب جمع شوارب: بريت

**تشريح:- وجوب الصدقة بحلق ربع الشارب** ﴿مسئله، که محرم د بريتو حلق اوکړلو.يا ئې کټ کړلو.نو دوې [دوه] عادلان چې څه فيصله اوکړی.په هغه اندازه به په ده باندې کفاره او جزاء واجبيږی.مثلاً که هغوی اوګوری چې کوم بريت کټ شوی يا خريلې شوی دی.هغه د ږيرې د څلورمې برخې سره برابر دی که کم،نو هغه به معيار مقرر وی.او صدقه به پرې واجبيږی .مثلاً که کټ شوی بريت د څلورمې برخې ږيرې برابر وی.نو په ده به د يوې وزه صدقه کاوه قيمت لازم وی.

وَلَفْظَةُ الْأَخْذِ مِنَ الشَّارِبِ تَدُلُّ عَلٰى أَنَّهُ هُوَ السُّنَّةُ فِيهِ دُونَ الْحَلْقِ، اود بريتو نه دپرې کاوه لفظ په دې حال دلالت کوي.چه د بريتو نه پريکول سنت دی نه چې خرئيل وَالسُّنَّةُ أَنْ يُقَصَّ حَتّٰى يُوَازِيَ الْإِطَارَ اوسنت دومره پريکول دی.چه د اطار سره مقابل شي.

حل اللغة ° ① يوازي، وازى، يوازى، موازاة: برابرول، متوازى کول ② اطار: غاړه

تشريح:- السنة في الشارب﴿ علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه قدوري عبارت ﴿أخذ من شاربه﴾ په دې خبره دليل دې.چه د بريتو پرې کول مسنون دی.حلق مسنون نه دی.هم دا د بعضې متاخرينو مشائخو رحمهم الله مسلك دې.دنبي ﷺ نه نقل دی. ﴿أنه قال عشرة من فطرتي وفطرة إبراهيم خليل الله وذكر من جملتها قص الشارب﴾ په دې حديث کې د بريتو کټ کاوه ته سنت وئيلې شوی دی.حلق ته نه،صاحب دهدايه فرمائي.چه سنت دا دی.چه بريت دومره کټ کړی.چه د شونډو برابر شي.

## د حجامت د ځائې د ويښتو حلق

قَالَ وَإِنْ حَلَقَ مَوْضِعَ الْمَحَاجِمِ فَعَلَيْهِ دَمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ اوکه وې خرئيل ځائې دحجامت نوېده دم دې.
دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد

حل اللغة° ① محاجم: دښکر لګول ځائ

تشريح:- مسئله که محرم د حجامت د ځائې حلق اوکړلو.① نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزېه ده باندې دم واجبيږي.

وَقَالَا: عَلَيْهِ صَدَقَةٌ (¹) لِأَنَّهُ إِنَّمَا يَحْلِقُ الْحِجَامَةَ او صاحبين رحمهما الله وائی چې صدقه ده ځکه چې دغه ځائې خودرګ وهلو لپاره خرئيلې شی وَهِيَ لَيْسَتْ مِنَ الْمَحْظُورَاتِ فَكَذَا مَا يَكُونُ وَسِيلَةً إِلَيْهَا، وهل دممنوعاتو د احرام ځنې دی نودغه ډول کوم چې د دې وسيله وی.هغه به هم ممنوعه وی وَإِلَّا أَنَّ فِيهِ إِزَالَةَ شَيْءٍ مِنَ التَّفَثِ مګر په دې کې څه کوټ ميرې لرې کول دی فَتَجِبُ الصَّدَقَةُ اونشتر نو صدقه واجبيږي.

حل اللغة ° ① محظورات. ممنوعات: هغه شيان (څيزونه) د کوم نه چې منع کړې شوی ② وسيلة: ذريعه ③ تفث: کوټ ]

تشريح:- ② اود صاحبينو رحمهما الله په نيزېرې صدقه واجبيږي.

ⓐدليلهما﴿ دصاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه ښکرلګولو د ځائې حلق صرف د ښکر لګولو د امله کيږي. او ښکر لګول د ممنوعات احرام ځنی نه دی.نوکوم شی چې د ښکرلګولو ذريعه وه.هغه به هم د ممنوعات احرام ځنی نه وی .ددې دليل نه ثابته شوه.چه د ښکرلګولود ځائې په حلق په محرم باندې څه نه واجبيږي.البته دومره ده چې د دې ځائې نه د ويښتو په لرې کاوه سره کوټ لرې کيږي.اوپوره خيرنتوب نه موجوديږي.نودا ناقص جرم شو.اود ناقص جرم په صورت کې صدقه واجبيږي.نوځکه به په دې صورت کې هم صدقه واجب شي.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّ حَلْقَهُ مَقْصُودٌ دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې چې ددې خرئيل مقصود دې. لِأَنَّهُ لَا يُتَوَسَّلُ إِلَى الْمَقْصُودِ ځکه چې مقصود ته بغير ددې نه رسيدل نشی کيدې. إِلَّا بِهِ، وَقَدْ وُجِدَ إِزَالَةُ التَّفَثِ عَنْ عُضْوٍ كَامِلٍ اوحال دا دې چې لرې کول دخيرې اوموندې شو دکامل اندام فَيَجِبُ الدَّمُ نودم به واجب وی.

(¹) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار(٢٢١\٢) والبحر(١٤\٣) والفقه الإسلامى (٢٥٨\٣) نقلاً عن القول الراجح (٢٢٢\١)-



تشريح:- دليل ابى حنيفة رحمه الله﴿ دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه د ښکرلګولو د ځائې خرېل مقصود دې.ځکه چې بغيرد حلق نه ښکر لګول ممکن نه دی.اود مقصود وسيله هم مقصود وی.نود ښکرلګولو وسيله ويښته خرېل هم مقصود شو.اوچونکه دا ځائې د ښکرلګولو په حق کې کامل اندام دې.نوځکه د کامل اندام نه د کوټ لرې کول موجوديږي.اود کامل اندام نه په حالت د احرام کې کوټ لرې کول موجب د دم دې نوپه دې صورت کې به هم دم واجبيږي.

## د محرم د سرحلق په حالق اومحلوق باندې دصدقې اودم وجوب

وَإِنْ حَلَقَ رَأْسَ مُحْرِمٍ بِأَمْرِهِ أَوْ بِغَيْرِ أَمْرِهِ که يومحرم دبل سراوخرئيلو دده په حکم يا بغيرد حکم دده نه فَعَلَى الْحَالِقِ الصَّدَقَةُ، وَعَلَى الْمَحْلُوقِ دَمٌ نوپه خريونکی صدقه واجب ده اوپه خريلی شوی باندې دم.

حل اللغة° ① محرم: احرام تړونکې

تشريح:- المذهبان في وجوب الدم على المحلوق﴿ ① که چا د محرم سر اوخريل که د محرم په حکم وی اوکه بغيرد هغه د حکم نه وی.په دواړو صورتونو کې په حالق باندې صدقه او په محلوق باندې دم واجب دې

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ لَا يَجِبُ إِنْ كَانَ بِغَيْرِ أَمْرِهِ امام شافعي رحمه الله وائی چې په خريلی شوی واجب نه دې که بغير دحکم دده نه وو. وَبِأَنْ كَانَ نَائِمًا په دې طور چې هغه اوده وی؛ لِأَنَّ مِنْ أَصْلِهِ أَنَّ الْإِكْرَاهَ يُخْرِجُ الْمُكْرَهَ ځکه چې دده په نزد اصل داد دې.چه فعل د اکراه مکره لره د دې نه اوباسی مِنْ أَنْ يَكُونَ مُؤَاخَذًا بِحُكْمِ الْفِعْلِ چې په حکم د فعل سره د دې ماخوذ شی وَالنَّوْمُ أَبْلَغُ مِنْهُ او خوب خو د اکراه نه هم زيات دې.

حل اللغة ° ① نائما: اوده شوې

تشريح:- امام شافعي رحمه الله فرمائی.که بغيرد محلوق د حکم نه حلق واقع شوې وی.نوپه محلوق باندې دم واجب نه دې.ددې مثال چې دده د حکم نه بغير وی.لکه چې دې اوده يابيهوشه وی.يا په زور ترې سراوخرئيلې شی.نو په دې درې واړه صورتونو کې د امام شافعي رحمه الله په نيزېه محلوق باندې څه واجب نه دی.البته په حالق باندې صدقه واجب ده.هم دا د امام مالك مذهب اود امام احمد رحمه الله يوقول دې.

ⓐدليل الشافعي رحمه الله﴿ امام شافعي رحمه الله يو اصل بيان کړې دې.هغه دا چې مکره (په چا چې په زور يو کار اوکړې شی) باندې نه په دنيا کې څه مواخذه شته.اونه په آخرت کې .يعنی په دې صورت کې په محلوق باندې نه په دنيا کې موجب د جنايت لکه دم صدقه وغيره شته.اونه په آخرت کې په ده باندې د ګناه څه سزا شته.بلکه دې په دنيا اوآخرت دواړو کې خلاص دې.اوخوب د اکراه نه زيات دې.نود محلوق ځخه به په درجه اولی سره مواخذه ساقطه وی.اوهرکله چې دده نه مواخذه ساقطه شوه.نودم به واجب نه وی.

وَعِنْدَنَا بِسَبَبِ النَّوْمِ وَالْإِكْرَاهِ يَنْتَفِي الْمَأْثَمُ دُونَ الْحُكْمِ، اوزموږ په نزد په خوب اواکراه سره ګناه پورته کيږي نه چې حکم وَقَدْ تَقَرَّرَ سَبَبُهُ په دې سې حال کې چې په سبب ئې دم مقررشو. وَهُوَ مَا نَالَ مِنَ الرَّاحَةِ وَالزِّينَةِ اودغه راحت اوزينت دې کوم چې ده حاصل کړې دې فَيَلْزَمُهُ الدَّمُ حَتْمًا نو پده به قربانی لازم وی

حل اللغة ° ① ماثم: ګناه ② زينت: ښائست

تشريح:- دليل الاحناف رحمهم الله﴿ اوزموږ په نيز هيره اواکراه باندې د آخرت حکم يعنی ګناه لرې کيږي. خو دنياوی حکم پرې نه لرې کيږي.نوکه د ويده (اوده) يا د مکره سراوخريلې شو.نوپه ده به دنياوي حکم يعنی دم واجب وی.حالانکه په دې صورت کې د وجوب دم سبب هم موجود شوې دې.کوم چې زينت اوآرام ملاويدل دی.

بِخِلَافِ الْمُضْطَرِّ حَيْثُ يَتَخَيَّرُ، په خلاف د مجبوره کس،چه ده ته اختيار ور کولای شی لِأَنَّ الْآفَةَ هُنَاكَ سَمَاوِيَّةٌ وَهَاهُنَا مِنَ الْعِبَادِ ځکه چې دغلته آفت آسمانی دې.اودلته دبندګانو د اړخ نه دې.

حل اللغة ° ① مضطر: ناقراره

**تشريح:- الجواب من السوال التقديري**۞په خلاف دهغه محرم نه،کوم چې د بیمارئ د امله د سرخریلو ته مجبوره شی.نوهغه ته په درې خبروکې اختیار دې.یا خودې قرباني اوکړي.یا دې لسو مسکینانو ته دوه دوه ورکړي .اویا دې درې روژې اونیسی. او وجه ددې دا ده.چه د مضطرپه صورت کې آفت آسماني دې.اودلته د محلوق په صورت کې آفت د بندګانو د اړخه دې.

ثُمَّ لَا يَرْجِعُ الْمَحْلُوقُ رَأْسُهُ عَلَى الْحَالِقِ بیا محلوق په حالق باندې رجوع نشی کولې.(چه تاوان ترې واخلی)لِأَنَّ الدَّمَ إِنَّمَا لَزِمَهُ بِمَا نَالَ مِنَ الرَّاحَةِ ځکه په ده دم ددغه راحت په وجه لازم شوې دې کوم چې ده مونډلې دې.

**حل اللغة** ① **بما نال، نال ينال نيلاً (س):** مونډل ② **تلزم، لزم لزوماً(س):** لازم کیدل ]

**تشريح:- عدم الضمان على الحالق**۞پاتې شوه دا خبره چې د کوم کس نه په زور سره سراوخریلو شو.اوهغه ورکړه.نوآیا هغه به د حالق نه هغه قیمت اخلی.کوم چې ده په کفاره کې ورکړې وی که نه.نوپه دې اړه کې د احنافو عالمانو ﷺ مذهب دا دې.چه محلوق به د حالق نه هغه مال واپس نه اخلی.کوم چې ده په قربانئ کې خرچ کړې وی.ځکه چې په ده باندې قرباني دهغه آرام د امله لازم شوې ده.کوم چې ده حاصل کړې دې.نوهرکله چې قرباني دهغه راحت بدله.کوم چې محلوق حاصل کړې دې.نومحلوق به د حالق نه څنګه د قربانئ رقم اخلی.

فَصَارَ كَالْمَغْرُورِ فِي حَقِّ الْعُقْرِ نومحلوق په اړه دعقرکې د مغرور پشان شو. وَكَذَا إِذَا كَانَ الْحَالِقُ حَلَالًا دغه ډول که حالق حلال وو ،لَا يَخْتَلِفُ الْجَوَابُ فِي حَقِّ الْمَحْلُوقِ رَأْسُهُ نو دمحلوق په حق کې به ځواب مختلف نه وی.

**تشريح:- مثاله**۞ددې مثال داسې دې.لکه دعقر په حق کې معرور ،ددې مثال دا دې.چه بائع یوه وینزه په مشتری باندې خرڅه کړه.مشتری دهغې سره وطی اوکړه.اود هغې نه بچې پیدا شو.اوس یو دریم کس راپاسیدلو.اوهغه دعوې اوکړله.چه دا وینزه زما ده.بائع په تا باندې په دهوکه خرڅه کړې ده.اوخبره قاضی ته لاړله.قاضی د مدعی د استحقاق لپاره فیصله اوکړله.نواوس به مشتری وینزه دغه دریم کس ته ورکړي .اودماشوم قیمت به هم ورکړی.اوعقر به هم ورکړی.کوم قیمت چې مشتری د ماشوم مدعی ته ورکړی .د هغې قیمت به د دهوکه باز بائع نه واخلی.اود عقر کومه بدله چې ده مدعی ته حواله کړې ده.هغه به د بائع نه نۀ اخلی.ځکه چې عقر عوض د هغې نفعې دې.کومه چې ده د وینزې نه په وطی کاوه سره حاصل کړې ده.دغه ډول په دې مسئله د حلق کې محلوق اګرچه په زور باندې سرحلق کړې دې.خوچونکه د حلق فائده محلوق ته حاصله شوې ده.نوځکه به د حالق نه د قربانئ قیمت نه اخلی.

وَأَمَّا الْحَالِقُ تَلْزَمُهُ الصَّدَقَةُ فِي مَسْأَلَتَيْنَا فِي الْوَجْهَيْنِ پاتې شوحالق نوده لره به صدقه لازم وی زمونږ دمسئلې په دواړو صورتونو کې. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا شَيْءَ عَلَيْهِ او امام شافعی رحمه الله فرمائی چې په ده هیڅ نشته. وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ إِذَا حَلَقَ الْمُحْرِمُ رَأْسَ حَلَالٍ اوپه دې اختلاف دې.کله چې محرم دچا حلال سر اوخرئیل.

**تشريح:- المذهبان في وجوب الصدقة على الحالق غيرالمحرم**۞اوکه حالق غیرمحرم وی.اومحلوق محرم وی.نوپه دې صورت کې هم په محلوق باندې دم واجب دې.برابره ده که حلق د محلوق په اجازت سره واقع شوې وی اوکه نه،او که حالق محرم وی ①نو په دواړو صورتونو کې په ده باندې صدقه واجب ده.برابره ده که د محلوق په اجازت سره وی اوکه نه، ② اود امام شافعی رحمه الله په نیز په دې صورت کې په حالق باندې څه واجب نه دی.

لَهُ أَنَّ مَعْنَى الِارْتِفَاقِ لَا يَتَحَقَّقُ بِحَلْقِ شَعْرِ غَيْرِهِ وَهُوَ الْمُوجِبُ دامام شافعی رحمه الله دلیل داد دې چې دانتقاع معنی دبل په سرخرئیلوکې نه متحقق کیږی حال دادې چې واجبوونکې انتقاع ده.

**تشريح:- دليل الشافعي رحمه الله**۞د امام شافعی رحمه الله دلیل دا دې.چه دبل چا نه سرخریلو کې حالق ته څه فائده



نشته. حالانکه فائده حاصلیدل موجب د فدې ده.نوچه موجب د فدې موجود نشونوفدیه به څنګه موجود شی

وَلَنَا أَنَّ إِزَالَةَ مَا يَنْمُو مِنْ بَدَنِ الْإِنْسَانِ زمونږ دلیل داد دې چې کوم غټیږی.دبدن نه مِنْ مَحْظُورَاتِ الْإِحْرَامِ لِاسْتِحْقَاقِهِ الْأَمَانَ د هغې پرې کول د ممنوعاتود احرام ځنی دی.ددې دمستحق کیدو د امن په وجه، بِمَنْزِلَةِ نَبَاتِ الْحَرَمِ فَلَا يَفْتَرِقُ الْحَالُ بَيْنَ شَعْرِهِ وَشَعْرِ غَيْرِهِ په شان دحرم دګیاه ،نو په خپلو اوپردو ویښتوکې به دحالت توپیر نه وی.

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله۞اوزمونږ دلیل دا دې.چه د انسان په بدن باندې انختونکې شی یعنی ویختہ وغیره لرې کول د احرام په ممنوعاتوکې دی.ځکه چې په بدن باندې راټوکیدونکې څیزمستحق د امان دې.لکه څنګه چې د حرم ګیاه محترم او مستحق د امان ده.نولکه څنګه چې د حرم په ګیاه کټ کاوه سره جزاء یعنی صدقه واجبیږی. نو دغه ډول د بل د سر ویختو لرې کاوه باندې به هم جزاء یعنی صدقه واجبیږی.

إِلَّا أَنَّ كَمَالَ الْجِنَايَةِ فِي شَعْرِهِ صرف دومره ده چې مکمل جرم پخپلوکې دې.

**تشريح:- السوال والجواب**۞که څوك دا سوال اوکړی.چه خبره داسې شوه.نوبیا پکار دا ده.چه د بل چا د سریه خریلو باندې هم دم واجبیږی.لکه څنګه چې د خپل سریه خریلو باندې دم واجبیږی.نوددې ځواب دا دې.چه د خپل سر ویختو په خریلوکې چونکه جنایت کامل دې.نوجزاء به هم کامله یعنی وجوب د دم وی.اود بل چا د سرخریلو په صورت کې چونکه جنایت قاصر دې.نوجزاء به هم قاصره یعنی صدقه به واجبه وی.

## دمحرم، غیرمحرم بریت یا نوکونه کټ کول

فَإِنْ أَخَذَ مِنْ شَارِبِ حَلَالٍ أَوْ قَلَّمَ أَظَافِيرَهُ که دحلال بریت ئې پریکړل یا ئې ورله نوکونه پریکړل أَطْعَمَ مَا شَاءَ وَالْوَجْهُ فِيهِ مَا بَيَّنَّا نو څومره چې غواړی خوراك دې ورکړی. وجه ئې هغه ده چې مونږ بیان کړه

**حل اللغة** ①**شارب جمع شوراب:** بریت ②**اظافیره:** نوکونه

**تشريح:- الصدقة باخذالشارب والظفرمن غيرمحرم**۞مسئله دا ده.چه محرم د غیرمحرم بریت یا نوکونه کټ کړی.نوپه دې صورت کې چې دمحرم څه خوښه وی.هغه شی دې صدقه کړی.

**دليله**۞دلیل وړاندې تیر شوې دې.چه کوم شی په بدن باندې راخیژی.هغه د ممنوعات احرام ځنی وی .

وَلَا يَعْرَى عَنْ نَوْعِ ارْتِفَاقٍ، لِأَنَّهُ يَتَأَذَّى بِتَفَثِ غَيْرِهِ او دا دیو ډول ارتفاق نه خالی هم نده. ځکه چې دې دغیر په خیری اذیت مومی. وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنَ التَّأَذِّي بِتَفَثِ نَفْسِهِ فَيَلْزَمُهُ الطَّعَامُ اګرچه کم وی دهغه نه کوم په خپلوخیروباندې مومی.نولازم دی پرې طعام

**حل اللغة** ① **ولا يعرى، عرى عرية (س):** خالی کیدل، بربنډ کیدل ② **يتاذى، تاذياً:** تکلیف مونډل ]

**تشريح:-** اوچه محرم دغیرمحرم بریت یا نوکونه کټ کړی.نوپه دې کې محرم ته یو ډول راحت هم ملاویږی.هغه داسې چې سړې د بل سړی بریت نوکونه او کوټ لرې کړی.نوپه دې باندې ده ته داسې راحت ملاویږی. چې د هغه په لیدو دې تکلیف محسوسوی.اګرچه دا تکلیف معمولی وی په نسبت سره هغه خیری ته کوم چې د محرم په خپل بدن باندې وی.نوچه محرم د غیر محرم بریت یا نوکونه کټ کړی.نوده خپل ځان ته راحت اونیولو.خوچونکه دا راحت معمولی دې.نوځکه چې کوم طعام مناسب وی.هغه دې صدقه کړی.

## د پښولاسونو نوکونه کټ کول

وَإِنْ قَصَّ أَظَافِيرَ يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ فَعَلَيْهِ دَمٌ که محرم دخپلو دواړو لاسونواوپښو نوکونه پریکړل.نودم د دې پرې دې.

**حل اللغة** ①**اظافيرۀ ظفرجمع:** نوکونه

**تشريح:- وجوب الدم باخذالاظافيركلها**۞محرم که دخپل پښولاسونوواړه نوکونه کټ کړی.نوپه ده باندې دم لازم شو.

لِأَنَّهُ مِنَ الْمَحْظُورَاتِ لِمَا فِيهِ مِنْ قَضَاءِ التَّفَثِ ځکه چې دا د محظوراتو څني دې ځکه چې په دې کي کوټ لرې کول دی وَإِزَالَةِ مَا يَنْمُو مِنَ الْبَدَنِ اود هغه شی لرې کول دی چې دبدن نه پیدا کیږی. فَإِذَا قَلَّمَهَا كُلَّهَا فَهُوَ ارْتِفَاقٌ كَامِلٌ فَيَلْزَمُهُ الدَّمُ نو چې واړه نوکونه ئې پریکړل نودا کامل ارتفاق دې.نودم پرې لازم دې

**حل اللغة:** ① ينمو: لوئیدل

**تشريح:- دليله** دم پرې ځکه لازمیږی.چه په حالت داحرام کي د نوکونو پرې کول د احرام دممنوعاتو څنی دی. اود احرام د ممنوعاتو څنی ځکه دی.چه په دې سره یوخو کوټ لرې کیږی.اوبله دا چې کوم شی په بدن کي پیدا کیږی.هغه شی ختمولې شی.نوچه ده دا دواړو کارونه اوکړل.نوکامله فائده ئې واخستله.اود احرام په حالت کي کامله نفع اخستل موجب د دم وی.نوځکه په دې صورت کي دم واجبیږی.

وَلَا يُزَادُ عَلَى دَمٍ إِنْ حَصَلَ فِي مَجْلِسٍ وَاحِدٍ اوپه یودم زیاتوالې نشی کولي .که پریکول په یومجلس کي واقع وی لِأَنَّ الْجِنَايَةَ مِنْ نَوْعٍ وَاحِدٍ ځکه چې جرم یو ډول دې.

**تشريح:- وجوب الدم الواحد بتقليم الاظفار كلها** صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.که واړه نوکونه ئې په یومجلس کي کټ کړی وی.نوپه یودم به زیادت نشی کولې.ځکه چې جنایت تسمية اومعنی دواړه یوه نوع ده.

فَإِنْ كَانَ فِي مَجَالِسَ فَكَذَلِكَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ اوکه په جلا جلا مجلسونو کي وو.نوهم دا حکم دې دامام محمد رحمه الله په نزد .لِأَنَّ مَبْنَاهَا عَلَى التَّدَاخُلِ فَأَشْبَهَ كَفَّارَةَ الْفِطْرِ ځکه چې ددې کفارې مدارپه تداخل دې.نودکفارې دافطار مشابه شو

**تشريح:- مذهب محمد رحمه الله في تقليم الاظفار في مجالس مختلفة** اوکه څلورواړه لاس پښې ئې په څلورو مجلسونو کي کټ کړل.په دې طریقه چې په هریومجلس کي پنځه پنځه نوکونه کټ کړی.نوپه دې صورت کي هم د امام محمد رحمه الله په نیزیودم واجب دې.ځکه چې ددې کفاره په تداخل ده.خوپه دې شرط چې جنس واحد وی.

**نظيره** نودا کفاره د افطار د کفارې پشان شوه.یعنی که یوکس په رمضان کي څو روژې په قصد سره اوخوړلې.نوپه ده باندې په آخر کي د جنس د وحدانیت د امله یوه کفاره لازمیږی.دغه دلته هم د څلورو واړو لاسونو اوپښو نوکونه په څلورو مجلسونو کي کټ شول.نوپه ده باندې د جنس د اتحاد د امله یو دم لازمیږی.

إِلَّا إِذَا تَخَلَّلَتِ الْكَفَّارَةُ لِارْتِفَاعِ الْأُولَى بِالتَّكْفِيرِ مګر کله چې کفاره په مینځ کي راشی ځکه چې دکفارې ور کاوه په امله سره ړومبې جرم پورته شو.

**تشريح:- وقوع الكفارة في خلال التقليم** اوکه کفاره په مینځ کي واقع شوه.مثلا چې د یو لاس اوپښې نوکونه ئې کټ کړل.اوددې کفاره ئې ورکړه.بیا ئې په بل مجلس کي نور نوکونه کټ کړل.نوبیا به پرې بله کفاره لازمیږی.ځکه چې اولنې جرم د کفاره ور کاوه په وجه لرې شو.نو لومړنی کفاره صرف د موجود جرم شوه.اود دویم جرم لپاره به بله کفاره واجب وی.

وَعَلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ تَجِبُ أَرْبَعَةُ دِمَاءٍ اودشیخینو رحمهما الله په قول به څلور قربانۍ واجب وی. إِنْ قَلَّمَ فِي كُلِّ مَجْلِسٍ يَدًا أَوْ رِجْلًا[1] که چرې په هر مجلس کي ئې دیو لاس یا یوپښې نوکونه پریکړل. لِأَنَّ الْغَالِبَ

---

[1] القول الراجح هو هذا قول الشيخين رحمهما الله كذا في العناية (۴۵۰\۱۲) والدرى لمختار(۲۲۱\۲) والهندية (۲۴۴\۱) نقلاً عن القول الراجح (۲۲۳\۱)_



فِيهِ مَعْنَى الْعِبَادَةِ فَيَتَقَيَّدُ التَّدَاخُلُ بِاتِّحَادِ الْمَجْلِسِ ځکه چې په دې کفاره کي دعبادت معنی غالبه ده نو تداخل لره به په اتحاد دمجلس پورې مقید کولې شی

**تشريح:- مذهب الشيخين في المسئلة المذكورة** اوشیخینو رحمهما الله فرمائی.که ده په څلورو مجلسونو کي د یو لاس یا د یوې پښې نوکونه کټ کړل.نوپه ده باندې څلور قربانۍ واجب دی.که اول ئې کفاره ورکړې وی اوکه نه.ځکه چې د قربانۍ په کفاره کي د عبادت معنی غالب ده.نود اتحاد مجلس سره به تداخل مقید وی.یعنی که مجلس یووی.نوبه تداخل کیدآې شی.اویو دم به واجبیږی.اوکه مجلسونه جلا جلا وی . نو تداخل به نه کیږی.

كَمَا فِي آيِ السَّجْدَةِ لکه په آیتونو دسجده کي چې دی

**تشريح:- نظيره** لکه د تلاوت د سجدو پشان یعنی که یو آیت د سجدې په یومجلس کي باربار وائی.نود ټولو لپاره یوه سجده کافي کیږی.نوکه مجلسونه مختلف شول.نودهرتلاوت لپاره به جلا جلا سجده لازمیږی.

## د یوپښې اویولاس نوکونه کټ کول

وَإِنْ قَصَّ يَدًا أَوْ رِجْلًا فَعَلَيْهِ دَمٌ اوکه پریکړل ئې دیولاس یا یوې پښې نوکونه نوپه ده دم دې إِقَامَةً لِلرُّبُعِ مَقَامَ الْكُلِّ كَمَا فِي الْحَلْقِ څلورمې لره دواړه قائمقام کاوه په وجه لکه په حلق کي چې دی.

**حل اللغة:** ① اقامة: قائم کول، قائمقام جوړول ]

**تشريح:- وجوب الدم بتقليم ظفر اليد او الرجل** که محرم د یولاس یا د یوې پښې د پنځو ګوتو نوکونه کټ کړل.نوهم به دم واجب وی.ځکه چې د یولاس یا یوې پښې نوکونه د ټولو نوکونو څلورمه برخه ده.اود وجوب دم په حق کي څلورمه برخه د کل قائم مقام وی.لکه د څلورمې سر مسح د واړه سر مسحې برابر دې.

## دپنځونو نوکونو نه د کم کټ کولوحکم

وَإِنْ قَصَّ أَقَلَّ مِنْ خَمْسَةِ أَظَافِيرَ فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ اوکه دپنځونونه کم ئې پریکړل نوکونه،نو پده صدقه ده. مَعْنَاهُ تَجِبُ بِكُلِّ ظُفُرٍ صَدَقَةٌ ددې معنی داده چې د هرنوك په بدله کي صدقه ده.

**حل اللغة:** ① ظفر جمع اظافير: نوکونه

**تشريح:- المذهبان في وجوب الصدقة باقل من خمسة اظفار** ① مسئله دا ده.که محرم د پنځونوکونو نه کم نوکونه کټ کړل.نوپه دې صورت کي په ده باندې صدقه واجبیږی.یعنی د هرنوك په بدله کي دې یوه صدقه اوکړی.

وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ: يَجِبُ الدَّمُ بِقَصِّ ثَلَاثَةٍ مِنْهَا، امام زفر رحمه الله فرمائی چې دم به واجب وی په پریکولود درې نوکونودې پنځونه. هُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ الْأَوَّلُ اودا دامام ابوحنیفه رحمه الله ړومبې قول وو. وَلِأَنَّ فِي أَظَافِيرِ الْيَدِ الْوَاحِدَةِ دَمًا، وَالثَّلَاثُ أَكْثَرُهَا ځکه چې د یولاس په نوکونو کي دم واجبیږی.او درې پدوی کي اکثر دی

**تشريح:-** اوامام زفر رحمه الله فرمائی.چه که درې نوکونه کټ کړی.نودم پرې واجب دې.اودامام ابوحنیفه رحمه الله اولنې قول هم دا وو.

**دليله** ځکه چې په پنځو ګوتوکي درې اکثردی.اواکثرقائم مقام د کل وی.نوهرکله چې د یو لاس یا یوې پښې په نوکونو کټ کولوسره دم واجبیږی.نود دریو په کټ کاوه به هم واجبیږی.

وَجْهُ الْمَذْكُورِ فِي الْكِتَابِ أَنَّ أَظَافِيرَ كَفٍّ وَاحِدٍ أَقَلُّ مَا يَجِبُ الدَّمُ بِقَلْمِهِ، کتاب کي د ذکر شوې مسئلې وجه دا ده چه کمتر حد دنوکونوپریکولو چې دم پرې واجبیږی د یولاس پنځه نوکونه دی. وَقَدْ أَقَمْنَاهَا مَقَامَ الْكُلِّ، فَلَا يُقَامُ أَكْثَرُهَا مَقَامَ كُلِّهَا اومونږ دې لره قائمقام کړی دی دکل. لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى مَا لَا يَتَنَاهَى اوبه نواوس ددې اکثر لره نشی قائمقام کولې ځکه چې دا بوتلل کوی نه ختمیدونکې سلسله ته.

تشريح:- دليل جمهورالاحناف رحمهم الله ﴿اوکوم حکم چې په کتاب کې ذکر دې.ددې دليل دا دې.چه لکه ځنګه دېر
لاس يا د يوې پښې پنځه نوکونه د ټولو نوکونو قائم مقام دې.نواوس د يو لاس يا يوې پښې په نوکونو کې
اکثر د کل قائم مقام نشی ګرځيدې.ځکه چې داسې کاوه سره به يوه نه ختميدونکې سلسله پيل شی.ځکه
که داسې اوشی.نوبيا به موږ وايو.چه په دوو نوکونو کې هم دم واجب دې.ځکه چې دا دريو اکثردې.اوپه
يونيم کې هم دم واجب دې.ځکه چې دا د دوو اکثر دې.اوپه يوم نوک کې هم دم واجب دې.ځکه چې دا د
يونيم اکثر دې.اوپه يوکم يوکې هم دم واجب دې.ځکه چې دا د نيم اکثر دې.اوپه نيم کې دم واجب دې.ځکه
چې دا د يو اکثر دې.اودغه ډول به يوه نه ختميدونکې سلسله پيل شی.کوم چې ناممکنه ده.ددې امله موږ
د يولاس يا د يوې پښې نوکونه د ټولونوکونوقائم مقام اوګرځول.اوپه دې مو دم واجب کړلو.اوددې نه سو
داسې اونکړل.

## د دواړو لاسونو يا پښو په نوکونوکې د پنځونه د کمو کټ کول

وَإِنْ قَصَّ خَمْسَةَ أَظَافِيرَ مُتَفَرِّقَةٍ مِنْ يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ که ئې پريکړل پنځه نوکونه متفرق د دواړو لاسونه اود دواړو پښو
نه فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ) رَحِمَهُمَا اللَّهُ تَعَالَى (1) نوپه ده صدقه ده.دشيخينو په نزد.

حل اللغة ① قص، قصًا (ن): پريکول

تشريح:- المذهبان في حكم تقليم الخمس متفرقة ﴿ ① مسئله دا ده.که محرم د يولاس اويوې پښې نه جلا جلا پنځه
نوکونه کټ کړل.(مثلاً دوې [دوه] ئې د يو لاس اودرې د بلې پښې کټ کړل) نوپه دې صورت کې د شيخينو
رحمهما الله په نيزپه ده باندې صدقه واجب ده.يعنی د هرنوک په بدله کې به يوه صدقه ورکړي.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ): رَحِمَهُ اللَّهُ (عَلَيْهِ دَمٌ اعْتِبَارًا بِمَا لَوْ قَصَّهَا مِنْ كَفٍّ وَاحِدٍ اوامام محمد رحمه الله فرمائی چې دم دې قياس
کوی په هغې صورت کله چې دې لره ديولاس نه پريکړي. ،وَبِمَا إِذَا حَلَقَ رُبُعَ الرَّأْسِ مِنْ مَوَاضِعَ مُتَفَرِّقَةٍ اوپه قياس
دڅلورمې برخې دسرکله چې ئې متفرقو ځايونونه اوخرائی.

تشريح:- اوامام محمد رحمه الله فرمائی.چه په ده باندې دم واجب شو.

دليله ﴿دامام محمد رحمه الله دليل قياس دې.يعنې لکه ځنګه چې د يولاس يا ديوې پښې د پنځو نوکونو په
کټ کاوه باندې دم واجبيږي.دغه ډول که متفرق طور دا پنځو نوکونه کټ کړي.نوپه دې کې به هم دم
واجبيږي.بل که د سرد څلورمې برخې حلق د مختلفو ځايونو نه اوکړي.نوپه دې صورت کې هم دم
واجبيږي.نودغه ډول دلته د نوکونو په صورت کې به هم دم واجبيږي.

وَلَهُمَا أَنَّ كَمَالَ الْجِنَايَةِ بِنَيْلِ الرَّاحَةِ وَالزِّينَةِ دشيخينو رحمهما الله دليل دادې چې کامل جرم د راحت اوزينت په
حصول سره دې وَبِالْقَلْمِ عَلَى هَذَا الْوَجْهِ يَتَأَذَّى وَيَشِينُهُ ذَلِكَ په دې طريقه پرې کاوه به دې تکليف مومی اودا هيئت به
ده لره عيب دار جوړ کړي

حل اللغة ① يشينه، شان، شينًا (ض): عيب لګول

تشريح:- دشيخينو رحمهما الله دليل دا دې.چه دم واجبيږي په هغه صورت کې چې زينت اوراحت حاصل شی.اوچه د
مختلفو ځايونونوکونه کټ کړي.نوپه دې کې تکليف اوعيب دې.نوچونکه په دې صورت کې زينت اوراحت
حاصل نشو.نوجنايت کامل نشو.اوچه جنايت کامل نه وی.نوصدقه واجب وی.نودلته هم صدقه واجبيږي

بِخِلَافِ الْحَلْقِ؛ لِأَنَّهُ مُعْتَادٌ عَلَى مَا مَرَّ به خلاف دحلق ځکه چې دغه معتاد طريقه ده.لکه چې تيرشو وَإِذَا تَقَاصَرَتْ

---

(1) القول الراجح هو هذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فی البحرالرائق (۲۱\۳) والتاتر خانية (۵۰۳\۲) والهندية (۲۴۴\۱) والخانية (۱۳۷\۱) نقلاً عن القول الراجح (۲۲۴\۱)-



الْجِنَايَةُ تَجِبُ فِيهَا الصَّدَقَةُ اوهرکله چې جرم کم مقررشو نو په دې کې به صدقه واجب وی. فَيَجِبُ بِقَلْمِ كُلِّ ظُفْرٍ
طَعَامُ مِسْكِينٍ نود هرنوک په کټ کولوکې دې د يومسکين خوراک دې

تشريح:- الجواب من قياس محمد رحمه الله ﴿اوپاتې شود سر د مختلفو ځايونو نه ويخته خريل.نودا د خلګو
عادت دې.اوچه د خلګو عادت دې.نوپه دې کې زينت حاصل شو.اوچه زينت اوراحت حاصل شو.نوجنايت
کامل شو.اوچه جنايت کامل شو.نودم واجب وی.نوځکه د سر د مختلفوځايونونه ويخته خريل سبب د وجوب
دم دې.

وَكَذَلِكَ لَوْ قَلَّمَ أَكْثَرَ مِنْ خَمْسَةٍ مُتَفَرِّقًا دغه ډول که جلا جلا ئې د پنځو نوکونو نه زيات پريکړل إِلَّا أَنْ يَبْلُغَ ذَلِكَ دَمًا
فَحِينَئِذٍ يَنْقُصُ عَنْهُ مَا شَاءَ تردې چې قربانۍ؛ ته اورسی نوددې قيمت نه چې څه غواړی کم دې کړي.

تشريح:- اوکه دپنځونو نوکونونه ئې متفرق طور زيات نوکونه کټ کړل.نوپه دې صورت کې به د هرنوک په
بدله کې صدقه واجبيږي.البته که واړه صدقات راجمع کړي.اوهغه د يو دم قيمت ته رسيږي.نوپه دې صورت
کې به دهغې د قيمت نه لږ غوندې کم کړي.ځکه چې دم خو واجبيږي په هغه صورت کې چې جنايت کامل
وی.اوپه دې صورت کې جنايت قاصر دې.نوددې امله به د دم د قيمت سره نشی برابرولې.

## د مات نوك كټ كول

قَالَ: (وَإِنْ انْكَسَرَ ظُفْرُ الْمُحْرِمِ وَتَعَلَّقَ فَأَخَذَهُ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ که دمحرم نوک مات شو او زوړند وو اومحرم دالرې
کړو نو په ده هيڅ نشته.

حل اللغة ① انكسر، انكسارًا: ماتيدل

تشريح:- عدم وجوب شئ بقطع الظفر المقطوع ﴿مسئله دا ده.که د محرم نوک مات شو.اوده هغه نوک کټ
کړلو.نوپه ده باندې صدقه نه ده واجب.ځکه چې د ماتيدو نه روسته هغه نوک نه غټيږي

فَأَشْبَهَ الْيَابِسَ مِنْ شَجَرِ الْحَرَمِ نودا دحرم د اوچې ونې پشان شو. لِأَنَّهُ لَا يَنْمُو بَعْدَ الِانْكِسَارِ ځکه چې دماتيدونه روسته
دغه نه لوئيږي.

حل اللغة ① لاينمو،نما نموې (ن): وړاندې کيدل، مخکې کيدل

تشريح:- .نوددې مثال د حرم د اوچې ګياه پشان شو.اود حرم د اوچې ګياه په ګت کاوه کې څه نه واجبيږي.دغه
ډول د مات نوک په کټ کولوباندې هم څه نه واجبيږي.

## د عذرپه وجه خوشبولګول جامې اغوستل اوحلق كول

وَإِنْ تَطَيَّبَ أَوْ لَبِسَ مَخِيطًا أَوْ حَلَقَ مِنْ عُذْرٍ فَهُوَ مُخَيَّرٌ اوکه خوشبو ئې اولګوله يا ګنډلې جامې ئې واغوستلې په څه
عذر سره نودده اختياردې إِنْ شَاءَ ذَبَحَ وَإِنْ شَاءَ تَصَدَّقَ عَلَى سِتَّةِ مَسَاكِينَ بِثَلَاثَةِ أَصْوُعٍ مِنْ الطَّعَامِ غواړی وزه
دې ذبح کړي اوکه غواړی صدقه دې ورکړی شپږو مسکينانوته درې صاع د طعام نه وَإِنْ شَاءَ صَامَ ثَلَاثَةَ
أَيَّامٍ که اوکه غواړی روژې دې اونيسی درې ورځې

حل اللغة ① لبس، لبسًا (س): اغوستل

تشريح:- وجوب ثلاثة اشياء بالتطييب واللبس والحلق من عذر ﴿که محرم د عذر د امله خوشبو اولګوله .يا ئې
ګنډلې جامې واغوستلې يا ئې سراوخرائيل.نوپه دې صورتونوکې ده ته د دريو خبرو اختيار دې.يا دې يوه
وزه ذبح کړي.يا دې په شپږو مسکينانو درې صاع غنم صدقه کړي.اويا دې درې روژې اونيسی.

لِقَوْلِهِ تَعَالَى { فَفِدْيَةٌ مِنْ صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ ځکه چې دا د الله ﷻ حق دې.ارشاد دې،نوبدله دې ورکړی روژې يا
صدقه يا قربانی، وَكَلِمَةُ أَوْ لِلتَّخْيِيرِ اوکلمه د (أو) د پاره د اختياروی.

تشريح:- دليله ﴿دليل د الله تعالى ارشاد دي. [وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ ۚ فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِّن رَّأْسِهِ فَفِدْيَةٌ مِّن صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ ۚ فَإِذَا أَمِنتُمْ] په آيت كي كلمه د (أو) په دري څيزونو كي اختيار وركوي دا آيت د معذور په حق كي نازل شوي وو.

وَقَدْ فَسَّرَهَا رَسُولُ اللهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بِمَا ذَكَرْنَاهُ[1] اوددي تفسير كړي دي رسول الله ﷺ كوم چي موږ ذكر كړي دي. وَالْآيَةُ نَزَلَتْ فِي الْمَعْذُورِ اوآيت د معذور په حق كي نازل شوي دي.

تشريح:- اونبي ﷺ ددي آيت تفصيل د ذكرشوى تفصيل مطابق بيان كړي وو په حديث كي دي.چه حضرت كعب بن عجره ﷺ فرمائى.نبي ﷺ په ما باندي تيرشو.او سپږي زما په مخ باندي رواني وي.اوما خپلي كټوئي ته اور تازه كولو.نو نبي ﷺ راته وويل . ﴿أيؤذيك هوام رأسك﴾ آيا تاته د خپل سر سپږي تكليف دركوى نو ماورته عرض اوكړلو.چه آو،نودا آيت نازل شو [فَفِدْيَةٌ مِّن صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ] ما عرض اوكړلو چه روژي څومره نو نبي ﷺ اوفرمائيل.دري ورځي.حضرت كعب بن عجره فرمائى.كه نبي ﷺ تفصيل نه وو كړي.نوموږ خلگو به د شپږو مسكينانو په طعام باندي قياس كاوه .اوشپږ روژي به مو نيولي.نومعلومه شوه.چه ددي آيت تفسير رسول الله ﷺ په خپله كړي دي.

ثُمَّ الصَّوْمُ يُجْزِيهِ فِي أَيِّ مَوْضِعٍ شَاءَ ابيا روژه كافى ده هرهغه ځائي كي چرته چي غواړي لِأَنَّهُ عِبَادَةٌ فِي كُلِّ مَكَانٍ څكه چي دا په هرځائي كي عبادت دي.

تشريح:- علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.د څلورو امامانو په دي باندي اتفاق دي.چه دا دري روژي به هرځائي كي نيوي شي.حرم سره ددي څه تخصيص نشته.څكه چي دا عبادت دي. او د عبادت لپاره د مكان تخصيص نشته.

وَكَذَلِكَ الصَّدَقَةُ عِنْدَنَا لِمَا بَيَّنَّا اودغه ډول صدقه ده زموږ په نزد په دي وجه كومه چي موږ بيان كړه.

تشريح:- المذهبان في محل الصدقة ﴿① اوزموږ په نيزد صدقي لپاره هم تخصيص د ځائي نشته.هرځائي كي ني وركولي شى.دليل هم دا دي.چه ﴿لأنه عبادة في كل مكان﴾ ② امام شافعى رحمه الله فرمائى.چه دا صدقه به حرم پوري خاص ده.څكه چي ددي نه مقصود د حرم فقيرانو ته فائده رسول دى.اود حرم فقيرانو ته فائده به هغه صورت كي رسى.چه دا صدقه هم په حرم پوري خاص كړي شى.

وَأَمَّا النُّسُكُ فَيَخْتَصُّ بِالْحَرَمِ بِالِاتِّفَاقِ پاتي شوه قربانى نودغه مختص ده په حرم پوري په اتفاق سره

تشريح:- الجواب ﴿زمونږ ارخه ځواب دا دي.چه صدقه عبادت دي.اود عبادت لپاره د مكان تخصيص نه وي.په هرځائي كيږي.كه حرم وي اوغيرحرم وي.نودا د روژو پشان شوه.
﴿البكن دا خبره چي د عبادت لپاره تخصيص د مكان نشته.قابل نظر ده.څكه چي اعتكاف عبادت دي.خوبغير د جمات نه نه كيږي.طواف عبادت دي خو بغيرد مسجد حرام نه نه كيږي رمى عبادت دي.خوبغيرد منى نه نه كيږي.وقوف عرفات عبادت دي. خو بغيرد ذكر عرفات نه كيږي. والله اعلم
﴿تخصيص الذبح بالحرم﴾ پاتي شوه د وزه ذبح نودا د حرم سره خاص ده.يعني د جنايت د جزاء په طور چي كومه ذبح كولي شى.هغه دحرم پوري خاص ده.د حرم نه سوي په بل ځائي كي ني ذبح جائز نه ده.

[1] من حديث كعب بن عجرة ﷺ أخرجه البخارى فى المحصر باب ٥ ومسلم فى الحج رقم ٨٠ والترمذى فى الحج باب ١٠٥ ومالك فى الحج رقم ٢٣٨ وأحمد فى المسند (٢٤١/٤)_



لِأَنَّ الْإِرَاقَةَ لَمْ تُعْرَفْ قُرْبَةً إِلَّا فِي زَمَانٍ أَوْ مَكَانٍ څكه چي وينه تويول ثواب نه دي معلوم شوي مگر په يوزمانه يا يوځائي كي. وَهَذَا الدَّمُ لَا يَخْتَصُّ بِزَمَانٍ فَتَعَيَّنَ اخْتِصَاصُهُ بِالْمَكَانِ اودا قربانى د زمانې سره مختص نده نود يوځائي سره مختص كيدل ئي متعين شو.

تشريح:- دليله ﴿دليل دا دي.چه د څناور وينه تويول په يوه زمانه كي دننه مشهور دي. لكه په لسمه يوولسمه اودلسمه ذوالحجه كي د قربانئ كول عبادت دي.اودا زمانه ددي عبادت لپاره خاص ده.ياد ځائي كي مشهور وى.لكه جزاء اودكفاره په طور چي كوم حيوان (څاروي) ذبح كولي شى.نودهغي عبادت كيدل دحرم پوري خاص دي.لكه چي دالله تعالى ارشاد دي[هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ] دلته د كعبي نه مراد حرم دي.نوهركله چي وينه بيول په يوه زمانه كي عبادت دي.يا په يومكان كي عبادت دي.اودا منلي شوي ده.چه دجنايت د څاروى د ذبح كاوه لپاره د څه زمانې تخصيص نشته.نود مكان يعنى حرم سره ئي خصوصيت متعين شو.نوثابته شوه.چه د جنايت وزه ذبح كول په حرم كي دننه شرط دي.د حرم نه بهر به جائز نه وى.

## د صبا مابنام خوراك وركول

وَلَوِ اخْتَارَ الطَّعَامَ أَجْزَأَهُ فِيهِ التَّغْدِيَةُ وَالتَّعْشِيَةُ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ.كه ده طعام وركول اختيار كړل نو سحر مابنام خوروول به كافى وى.دامام ابويوسف رحمه الله په نزد اعْتِبَارًا بِكَفَّارَةِ الْيَمِينِ قياس كړي شوي دي په كفارې د قسم.

حل اللغة ﴿① اختار، اختيارا: اختيارول، خوښول ② تغدية: د ورځ خوراك وركول ③ تعشية: د شپې خوراك وركول

تشريح:- المذهبان في اطعام المساكين ﴿معذوره محرم چي كله صدقه وركول اختيار كړى.① نوامام ابويوسف رحمه الله دا په كفارة اليمين باندي قياس كوى.اوفرمائى.چه لكه څنگه په كفارة اليمين كي سهار مابنام دوديُ وركول كافى دى.دغه ډول دلته هم خوراك وركول كافى دى.

وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ لَا يُجْزِيهِ ② لِأَنَّ الصَّدَقَةَ تُنْبِئُ عَنِ التَّمْلِيكِ وَهُوَ الْمَذْكُورُ اودامام محمد رحمه الله په نزد به كافى نه وى څكه چي صدقه د تمليك آگاهي وركوى اوپه آيت كي صدقه ذكر ده.

حل اللغة ﴿① تنبئ،انباء: خبروركول

تشريح:- اوامام محمد رحمه الله فرمائى.چه خوراك وركول كافى نه دى.بلكه شپږو مسكينان د دري صاع غنمو مالكان جوړول ضرورى دى. څكه چي په قرآن پاك كي لفظ د صدقي ذكر دي.اود صدقي لغوى معنى څوك بغيرد څه عوض نه مالك جوړول دى. نوځكه د مسكينانو مالكان جوړول ضرورى دى.په خلاف د خوراك كولو.څكه چي هغه خومباح كول دى. (چه د فقير لپاره خوراك كول مباح شى)

﴿الجواب من قياس ابى يوسف رحمه الله ﴿اودامام ابويوسف رحمه الله په كفاره يمين باندي قياس كول صحيح نه دي.څكه چي په قرآن كريم كي لفظ د ﴿اطعام﴾ راغلي دي.اولفظ د اطعام د اباحت فائده وركوى د تمليك نه وركوى.نوځكه په كفاره د يمين كي به دا خوراك كول كافى وى.اوپه جزاء د جنايت كي به پرې خوراك كول كافى نه وى.

## د ښځي شرمگاه ته په شهوت سره كتل او انزال كيدل

فصل فَإِنْ نَظَرَ إِلَى فَرْجِ امْرَأَتِهِ بِشَهْوَةٍ فَأَمْنَى لَا شَيْءَ عَلَيْهِ فصل:كه محرم نظراوكړو دخپلي ښځي شرمگاه ته په

[1] القول الراجح هو هذا قول محمد رحمه الله كذا فى ردالمحتار (٢٢٨/٢) والبحر الرائق (٢٤/٣) والهندية (٢٤٤/١) نقلاً عن القول الراجح (٢٢٤/١)-

شهوت سره نو انزال ئې اوشو نوپه ده باندې څه لازم نه دی.

**تشریح:- عدم وجوب شئ بالانزال بالنظرالی الفرج**۞که محرم د خپلې بی بی یا د بلې ښځې فرج داخل ته په شهوت سره اوکتل.اوانزال ئې اوشو.نوپه ده باندې دم وغیره واجب نه دی.

لِأَنَّ الْمُحَرَّمَ هُوَ الْجِمَاعُ وَلَمْ يُوجَدْ ځکه چې حرامه خو جماع ده او دغه نه ده شوې. فَصَارَ كَمَا لَوْ تَفَكَّرَ فَأَمْنَى نودا داسې شوه لکه چې تصور اوکړی اوانزال ئې اوشی.

**تشریح:- دلیله**۞ځکه چې په حالت د احرام کې وطی حرامه ده.اوهغه نه ده موجود شوې.نوځکه څه واجب هم نه دی.اودا داسې شوه.لکه چې محرم د ښوې ښکلې انجلۍ (جینۍ) د تصویرتصور اوکړی.اوانزال ئې اوشی.نوپه ده باندې څه واجب نه دی.نودغه ډول د فرج داخل ته په کتلواوانزال کیدو کې به هم څه واجب نه وی.

**تعریف الجماع**۞جماع وائی دښځې اوسړی جمع کیدل اوصورة اومعنی شهوت پوره کول دی.صورة جماع دا ده.چه سړې خپل عضو تناسل د ښځې په شرمګاه کې ورداخل کړی.اومعنی جماع انزال کیدل دی.

وَإِنْ قَبَّلَ أَوْ لَمَسَ بِشَهْوَةٍ فَعَلَيْهِ دَمٌ اوکه ښکل ئې کړه یا ئې مسه کړه په شهوت سره نوپه ده دم واجب دی. وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ يَقُولُ: إِذَا مَسَّ بِشَهْوَةٍ فَأَمْنَى اوپه جامع صغیر کې وائی چې کله ئې په شهوت سره مسه کړه او انزال ئې اوشو، وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا أَنْزَلَ أَوْ لَمْ يُنْزِلْ ذَكَرَهُ فِي الْأَصْلِ اوهیڅ توپیر نشته په دې کې چې انزال ئې اوشی اوکه نه.دا په مبسوط کې ذکر دی

**تشریح:- الروایتان في وجوب الدم بالقبلة**۞ ① اوکه محرم د ښځه ښکل کړله.نوپه ده باندې دم واجب دې.که انزال شوې وی اوکه نه وی.دا په مبسوط کې ذکر دی.② اود جامع صغیر په عبارت کې د انزال شرط لګولې شوې دې.فرمائی.که محرم په شهوت سره ښځه مسه کړه.اوانزال ئې اوشو.نوپه ده باندې دم واجب دې.دجامع صغیرد عبارت نه دا معلومیږی. که انزال نه وی شوې نو په محرم باندې دم نه واجبیږی.

وَكَذَا الْجَوَابُ فِي الْجِمَاعِ فِيمَا دُونَ الْفَرْجِ اودا ځواب دې په هغه مباشرت کې چې د فرج نه په علاوه کې وی.

**تشریح:- حکم الجماع فیما دون الفرج**۞صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی که محرم په مادون الفرج یعنی په ورون یا بل ځائې کې جماع اوکړله.نوهم پرې دم واجبیږی که انزال ئې شوې وی اوکه نه لکه څنګه چې په عبارت د مبسوط کې دی.

وَعَنِ الشَّافِعِيِّ أَنَّهُ إِنَّمَا يُفْسِدُ إِحْرَامَهُ فِي جَمِيعِ ذَلِكَ إِذَا أَنْزَلَ وَاعْتَبَرَهُ بِالصَّوْمِ دامام شافعی رحمه الله نه روایت دې چې په دې ټولو صورتونو کې به دده احرام فاسد شی کله چې انزال اوشو. اودائې په روژه قیاس کړو.

**تشریح:- مذهب الشافعی ودلیله**۞دامام شافعی رحمه الله په نیز په ټولو صورتونو کې یعنی چې په شهوت سره مچې کول یا مسه کول یا په مادون الفرج کې وطی کول، که انزال ئې اوشی.نودده حج فاسد شو.امام شافعی رحمه الله په روژه باندې قیاس کړې دې.یعنی لکه څنګه په دغه صورتونو کې چې انزال ئې اوشی.نوروژه ماتیږی.دغه ډول احرام هم ماتیږی.

وَلَنَا أَنَّ فَسَادَ الْحَجِّ يَتَعَلَّقُ بِالْجِمَاعِ زمونږ دلیل دادې چې دحج فساد په جماع پورې متعلق دې وَلِهَذَا لَا يَفْسُدُ بِسَائِرِ الْمَحْظُورَاتِ په دې وجه په نورو ممنوعاتو سره نه فاسد کیږی. وَهَذَا لَيْسَ بِجِمَاعٍ مَقْصُودٍ فَلَا يَتَعَلَّقُ بِهِ مَا يَتَعَلَّقُ بِالْجِمَاعِ اودا مقصودی جماع نه ده.نوپه دې پورې هغه حکم نه متعلق کیږی کوم چې په جماع پورې متعلق دې. إِلَّا أَنَّ فِيهِ مَعْنَى الِاسْتِمْتَاعِ وَالِارْتِفَاقِ بِالْمَرْأَةِ مګر په دې کې دښځې د آرام او لذت حاصلولو معنی ده. وَذَلِكَ مَحْظُورُ الْإِحْرَامِ فَيَلْزَمُهُ الدَّمُ کومه چې په احرام کې ممنوعه ده نو دم به لازم وی.

**تشریح:- دلیل الاحناف** رحمهم الله ۞زمونږدلیل دا دې.چه حج فاسدیږی صرف په جماع سره،هم دا وجه ده.چه د جماع نه علاوه د احرام چې کوم نور ممنوعات دی.لکه خوشبوئی لګول،ګنډلې شوې جامې اغوستل په



هغې باندې حج نه فاسدیږی . البته دم پرې واجبیږی.نودغه ډول په دې صورتونو کې یعنی ښکلول،مسه کول، او په مادون الفرج کې جماع کول،په دې باندې به هم حج نه فاسدیږی.البته دومره ده.چه په دې څیزونو باندې محرم لذت اوخوند واخستل،اومحرم د لذت اوخوند اخستلو نه منع شوې دې.نوپه ده به دم واجب شی.

بِخِلَافِ الصَّوْمِ لِأَنَّ الْمُحَرَّمَ فِيهِ قَضَاءُ الشَّهْوَةِ په خلاف د روژې ځکه چې په دې کې ئې شهوت پوره کول حرام کړی دی. وَلَا يَحْصُلُ بِدُونِ الْإِنْزَالِ فِيمَا دُونَ الْفَرْجِ اودا د فرج نه سوې کې د انزال نه بغیرنشی حاصلیدې.

**تشریح:- الجواب من قیاس الشافعی** رحمه الله ۞په خلاف د روژې ځکه چې په هغې کې خوند حاصلول حرام دی. او په مادون الفرج کې بغیرد انزال نه پوره خوند نه حاصلیږی.نوځکه بغیرد انزال نه روژه نه فاسدیږی .البته که انزال اوشی.نوروژه فاسدیږی.

### د وقوف عرفات نه وړاندې په احدالسبیلین کې جماع کول

وَإِنْ جَامَعَ فِي أَحَدِ السَّبِيلَيْنِ قَبْلَ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ فَسَدَ حَجُّهُ،که محرم جماع اوکړه په یو د دوو لاروکې د وقوف عرفې نه مخکې نودده حج فاسد شو. وَعَلَيْهِ شَاةٌ، وَيَمْضِي فِي الْحَجِّ كَمَا يَمْضِي مَنْ لَمْ يُفْسِدْهُ اوپده وزه لازم ده.اودحج افعال دې کوی لکه چې هغه ئې کوی چا چې نه وی فاسد کړې. وَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ اوپه ده باندې قضا ده

**حل اللغة**° ① جامع، مجامعة: جماع کول ② فسد، فسادا (ن): فاسدکیدل

**تشریح:- فسادالحج بالجماع قبل الوقوف بعرفة**۞مسئله دا ده.که محرم د وقوف عرفات نه وړاندې ښځې سره په قبل یا دبر کې جماع اوکړه. نودده اود ښځې دواړو حج فاسد شو.اوپه دوی باندې د یوې وزه (یاګډ) قربانی واجب ده.یا په اوښ یا غوې کې اوومه برخه ،اودې به دحج افعال دهغه چا پشان پوره کوی.دچا حج نه وی فاسد شوې.البته په راروان کال کې به ددې حج قضا راوړی.

وَالْأَصْلُ فِيهِ مَا رُوِيَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ سُئِلَ عَمَّنْ وَاقَعَ امْرَأَتَهُ واصل په دې کې هغه دې کوم چې مروی دې چې دنبی کریم ﷺ نه پوښتنه اوشو دهغه سړی په اړه کې چې دخپلې ښځې سره ئې جماع اوکړه وَهُمَا مُحْرِمَانِ بِالْحَجِّ اودغه دواړه محرمان دحج وو. قَالَ: يُرِيقَانِ دَمًا وَيَمْضِيَانِ فِي حَجَّتِهِمَا وَعَلَيْهِمَا الْحَجُّ مِنْ قَابِلٍ[1] دوی ﷺ اوفرمائیل چې دواړه دې وینه توې کړی او خپل حج دې اوکړی اوراتلونکی کال ته پدوی حج لازم دې وَهَكَذَا نُقِلَ عَنْ جَمَاعَةٍ مِنَ الصَّحَابَةِ[2] اودغه ډول نقل دی داصحابودیوې ډلې نه

**تشریح - دلیله**۞ددې مسئلې اصل هغه حدیث دې.چه یوسړې د وقوف عرفات نه روسته دخپلې بی بی سره جماع اوکړه.اوبیا ئې نبی ﷺ ته ددې بیان اوکړلو.نونبی ﷺ ورته حکم اوکړلو.چه ستاسوحج فاسد شو.اووزه قربانئ کړه.اوپه راروان کال کې ددې حج قضا راوړئ.د صحابو ؓ د یوجماعت نه هم داسې نقل دی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: تَجِبُ بَدَنَةٌ اعْتِبَارًا بِمَا لَوْ جَامَعَ بَعْدَ الْوُقُوفِ،امام شافعی رحمه الله فرمائی چې بدنه واجب ده دوقوف نه روسته په جماع کولوباندې قیاس کوی. وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ إِطْلَاقُ مَا رَوَيْنَا اوپده حجت ددغې حدیث اطلاق دې کوم چې مونږ روایت کړو

**تشریح:- خلاف الشافعی** رحمه الله ۞امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه په دې صورت کې په ده باندې بدنه واجب ده.ځکه

---

[1] من أثریزیدبن نعیم أوزید بن نعیم رحمه الله أخرجه أبوداود فی مراسیله والبیهقی فی السنن الکبری (۲۷۲/۵) رقم ۹۷۷۸)
[2] من حدیث عمر وعلی وأبوهریرة ؓ أخرجه مالک فی موطاه (کتاب الحج.باب هدی المحرم إذا أصاب أهله رقم ۲۵۱) وکذا البیهقی فی السنن الکبری (۲۷۳/۵) رقم ۹۷۷۹)_

چې ده يولوئې جرم اوکړلو .هغوی په هغه کس باندې قیاس کوی.څوك چې هغه د وقوف عرفات نه روسته جماع اوكړي.نوهلته په هغه باندې دم واجبيږي.(حالانكه دهغه جرم دده د جرم نه كم دې.اودهغه حج هم نه دې فاسد شوې)نوپه دې صورت كې به هم دم واجب وي.(بلكه په درجه اولی سره به دم واجب وي.ځكه چې دده جرم داولنی د جرم نه لوئې دې)

**الجواب من المستدل**۞خوحديث ﴿يريقان دما﴾ په دې كې د مطلق قربانۍ ذكر دې.خامخا په يو پوره مقيد كولوته څه اړتيا نشته.

> **وَلِأَنَّ الْقَضَاءَ لَمَّا وَجَبَ وَلَا يَجِبُ إِلَّا لِاسْتِدْرَاكِ الْمَصْلَحَةِ** او ځكه چې كله قضاء واجب شوه نوواجبيږي نه مګر دمصلحت حاصلولو لپاره **خَفَّ مَعْنَى الْجِنَايَةِ فَيَكْتَفِي بِالشَّاةِ** نود جرم معنی سپكه شوه نو په وزه به اكتفاء كولای شي **بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْوُقُوفِ، لِأَنَّهُ لَا قَضَاءَ** په خلاف د جماع نه روسته دوقوف نه ځكه چې پدغې كې قضا واجب نه ده

**تشريح:- الدليل الثانی للاحناف** ﷺ۞ دوهم دليل دا دې.چه دحج د فساد د امله چې قضا واجب شوه.نوجرم وركوتې شو.اوپه وركوتی جرم كې وزه هم كافي كيږي.اودحج قضا ځكه واجب كړې وه.چه كوم حج چې فاسد شوې دې.هغه صحيح شي.اود وقوف عرفه نه روسته د جماع په صورت كې چونكه قضا واجب نه ده.نوهغه جرم وړوكې نشو.بلكه لوئې جرم شو.اوپه لوئې جرم كې بدنه واجب وي.نوځكه په هغه صورت كې چې د وقوف عرفات نه روسته جماع اوكړي.بدنه واجب ده.وزه په كې نه كافي كيږي.

> **ثُمَّ سَوَّى بَيْنَ السَّبِيلَيْنِ** ([1])بيائې دواړه لارې يوشان اينبودې دی **وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّ فِي غَيْرِ الْقُبُلِ مِنْهُمَا لَا يُفْسِدُ** اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت هم دې چې د سړي اوښځې د فرج نه سوې په بل ځائې كې وطی كول حج نه فاسد كوی. **لِتَقَاصُرِ مَعْنَى الْوَطْءِ فَكَانَ عَنْهُ رِوَايَتَانِ** په معنی د وطی كې د قصور راتلو په وجه.نودامام صاحب نه دوې [دوه] روايتونه شول.

**تشريح:- الروايتان في فسادالحج بالجماع في الدبر**۞صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.امام قدوری د وقوف عرفات نه وړاندې په قبل يا دبركې دجماع حكم يوشان ذكر كړې دې.دا د صاحبينو رحمهما الله مذهب دې.اودامام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت هم دې.②اودامام ابوحنيفه رحمه الله نه دوهم روايت دا دی.كه چې په قبل كې په جماع كاوه سره حج فاسديږي.خوپه دبر كې جماع كاوه سره نه فاسديږي.ځكه چې كامله وطی په قبل كې كيږي په دبر كې نه ،په دبركې وطی ناقصه وي.نوځكه په دبركې په وطی كولوسره حج نه فاسديږي.نوحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه په دبر كې جماع كاوه سره دوې [دوه] روايتونه منقول دی.يود فساد حج اوبل دعدم فساد ،

### دجماع په وجه دفاسد شوی حج په قضا كې د ښځې د جداوالی حكم

> **وَلَيْسَ عَلَيْهِ أَنْ يُفَارِقَ امْرَأَتَهُ فِي قَضَاءِ مَا أَفْسَدَاهُ عِنْدَنَا** اولازم نه دی په ده جداكيدل دخپلې ښځې نه.په هغې قضا كې كومه چې ده فاسده كړې وه. زمونږ په نزد **خِلَافًا لِمَالِكٍ رَحِمَهُ اللَّهُ إِذَا خَرَجَا مِنْ بَيْتِهِمَا** په خلاف د امام مالك رحمه الله كله چې دوی دخپل كورنه راوځي **وَلِزُفَرَ رَحِمَهُ اللَّهُ إِذَا أَحْرَمَا** اوپه خلاف دامام زفر رحمه الله چې كله دوی احرام اوتړي **وَلِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ إِذَا انْتَهَيَا إِلَى الْمَكَانِ الَّذِي جَامَعَهَا فِيهِ** اوپه خلاف دشافعي رحمه الله چې كله هغه ځائې ته اورسی كوم ځائې چې ئې ورسره جماع كړې وه

[1] القول الراجح هو هذا القول الأول يعنى التسوية بين السبيلين كذا فی ردالمحتار (۲۲۸|۲) والبحر الرائق (۲۶|۳) ومجمع الأنهر (۲۹۵|۱) والتاترخانية (۴۹۸|۲) نقلاً عن القول الراجح (۲۲۵|۱)_



**حل اللغة**° ①ان يفارق، فارق مفارقة: جلا كيدل ②خرجا،خرج خروجاً (ن): وتل

**تشريح:- المذاهب الاربعة في تفريق الزوجة في القضاء**۞مسئله دا ده.چه كوم حج يا عمره د جماع په وجه فاسد شی.نودهغې په قضا راوړلو كې زمونږ په نيز د ښځې نه جلا والې ضروری نه دې.چه قضا دې جلا جلا راوړي.②امام مالك رحمه الله فرمائی.چه څنګه د كور نه رابهر شی.نوجداً به شی.③امام زفر رحمه الله فرمائی. چې كله احرام اوتړي.نوجدا به شی.④ امام شافعی رحمه الله فرمائی چې كله هغه ځائې ته نزدې شی.په كوم كې چې ئې تيركال جماع كړې وه.نوجدا به شی.دا د امام احمد رحمه الله قول هم دې.صاحب دهدايه رحمه الله ددې حضراتو ددې قول لپاره دليل دا ذكر كړې دې.چه دا ښځه او خاوند كله دتير كال په دغه ځائې كې جماع ياده كړي.نوبياپه جماع كې د اخته كيدو ويره ده.ځكه به جلا شی.

> **ثُمَّ إِنَّهُمَا يَتَذَاكَرَانِ ذَلِكَ فَيَقَعَانِ فِي الْمُوَاقَعَةِ** د هغوی دليل دادې چې په هغه وخت به ورته يادشی.نو په مجامعت كې به اخته شی. **فَيَفْتَرِقَانِ** نو جلا دې شی

**حل اللغة** ° فيقعان،وقع وقوعاً (ف): پريوتل، واقع كيدل

**تشريح:- دليل المذاهب الثلاثة**۞صاحب د عنايه رحمه الله فرمائی.په دې مسئله كې اصل اوبنا (بنياد) د صحابوؤدا قول دې. چې ﴿إذا رجعا إفترقا﴾ كله چې دواړه د قضا لپاره راواپس شی.نوجدا دې شی.يعنی ديولار دې د بل دلار نه جلا وی.①امام مالك رحمه الله ظاهری معنی اخستې ده.چه كله سفرشروع كړی.نوجلا جلا لارې به اختيار كړی.②امام زفر رحمه الله چې د احرام دوخت څخه به جلا كيږی(ځكه چې داحكام د حج خود احرام نه پيل كيږی)③امام شافعی رحمه الله فرمائی چې كله هغه ځائې اورسی.په كوم ځائې كې چې ئې پروس كال جماع كړې وه.نوجدا دې شی.ځكه چې هغه ځائې ته په رسيدو به دوی ته خپله سابقه د جماع واقعه ياده شی. اوشهوت به ئې پيدا شی.نوبيا په جماع كې د واقع كيدو ويره پيدا كيږی.ځكه به په هغه مقام كې جلا شی.

> **وَلَنَا أَنَّ الْجَامِعَ بَيْنَهُمَا وَهُوَ النِّكَاحُ قَائِمٌ** اوزمونږ دليل دادې چې امرجامع يعنی نكاح پدوی كې قائم دې. **فَلَا مَعْنَى لِلِافْتِرَاقِ قَبْلَ الْإِحْرَامِ** نودجدا كيدو څه معنی نشته. نه د احرام نه مخكې دجماع د حلت په وجه **لِإِبَاحَةِ الْوِقَاعِ** او نه داحرام نه روسته ځكه چې پدغه به ورته يادیږی هغه خيزكوم چې دوی په سخت مشقت كې اوغورزول، **وَلَا بَعْدَهُ، لِأَنَّهُمَا يَتَذَاكَرَانِ مَا لَحِقَهُمَا مِنَ الْمَشَقَّةِ الشَّدِيدَةِ بِسَبَبِ لَذَّةٍ يَسِيرَةٍ فَيَزْدَادَانِ نَدَمًا وَتَحَرُّزًا فَلَا مَعْنَى لِلِافْتِرَاقِ** دلږشان لذت په وجه نودوی به زيات پښيمانه كيږی اوپرهيز به كوی نو دجداكيدو څه معنی ده.

**حل اللغة** ° ① يسيرة: سپك، لږ شان ⑤ ندما: شرمندګی، پښيمانتيا ⑥افتراق: جلا كيدل

**تشريح:- دليل الاحناف** ﷺ۞زمونږ دليل دا دې.چه ددې دواړو ښځه خاوند په مينځ كې يوځائې كونكې څيزيعنی نكاح قائم ده.نونه د د احرام نه وړاندې جلا كيدل څه معنی لري.ځكه چې د احرام نه وړاندې خو جماع جائزده.اونه د احرام نه پس،ځكه چې دوی ته به هروخت دا خبره يادیږی.چه دا دوباره حج چې مونږ ددې مشقت اوتكليف برداشت كوو.نوپه سابقه حج كې د كوتاهۍ د وجې،نودا ځل به ډير زيات احتياط كوی.چه هسې بيا رانه حج فاسد شی.اوبيا دا مشقت برداشت كول راپه غاړه شی.

**الجواب من حكم الصحابة**۞پاتې شو د صحابوؓ د جلا اوسيدو حكم نوهغه استحبابی حكم دې.كه يوكس په ځان ويريږی.چه دوباره به په جماع كې واقع شی.نوهغه دې د خپلې بی بی نه جلا شی.

### دوقوف عرفات نه روسته په جماع كولو د حج عدم فساد

> **وَمَنْ جَامَعَ بَعْدَ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ لَمْ يَفْسُدْ حَجُّهُ وَعَلَيْهِ بَدَنَةٌ** چا چې جماع اوكړه دوقوف عرفې نه روسته نوفاسد به نه وی دده حج اوپده بدنه واجب ده.

تشریح:- که محرم د وقوف عرفات نه روسته جماع اوکړه.نو دده حج فاسد نشو.اوپه ده باندې بدنه یعني د اوښ یا غوې قرباني واجب ده. امام شافعي رحمه الله فرمائي که د جمره عقبه د رمې نه وړاندې ئې جماع اوکړه نو دده حج به فاسد شي.

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ فِيمَا إِذَا جَامَعَ قَبْلَ الرَّمْيِ په خلاف دامام شافعي رحمه الله چې په دې صورت کې ئې جماع کړې وي د رمې نه وړاندې

دليله ۞ دامام شافعي رحمه الله دليل دا دې.چه د منی نه وړاندې وړاندې دې په کامل احرام کې دې.اوپه کامل احرام کې چې کوم شیان (ښځونه) حرام وي.هغه دده لپاره د رمې نه وړاندې نشي حلالیدې.اوپه کامل احرام کې جماع باندې حج فاسدیږي.نوچونکه په دې صورت کې هم جماع په کامل احرام کې واقع شوې ده.نودده حج فاسد شو.لکه څنګه چې د وقوف عرفات نه وړاندې په جماع باندې حج فاسدیږي.په خلاف د دې نه چې د رمې نه روسته جماع اوکړي.نوپه هغه صورت کې حج نه فاسدیږي.ځکه چې د رمې نه روسته د حلالیدو وخت راغلې دې.دې امله حلق کوم چې د محرم لپاره حرام وو.د رمې نه نه روسته حلالیږي.نود رمې نه روسته احرام کامل پاتې نشو.اوچه احرام کامل پاتې نشو.نوجماع مفسد د حج نه ده.

لِقَوْلِهِ مَنْ وَقَفَ بِعَرَفَةَ فَقَدْ تَمَّ حَجُّهُ[1] ځکه چې نبي ارشاد دې خوک چې په عرفات وقوف اوکړي دده حج تمام شو.
وَإِنَّمَا تَجِبُ الْبَدَنَةُ لِقَوْلِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما[2] اوبدنه واجب ده په قول د ابن عباس رضي الله عنه سره

حل اللغة: ①وقف،وقوفا (ض):ودریدل، حصاریدل

تشریح:- دلائل الاحناف رحمهم الله ۞ ①زمونږ دلیل دا دې.چه نبي ﷺ فرمائیلي دي.چاچه وقوف عرفات اوکړلو نو دده حج پوره شو.دحدیث مطلب دا نه دې.چه د حج افعال پوره شو.ځکه چې دده نه یورکن طواف زیارت اودغه ډول نورافعال لاپاتې دي.بلکه مقصد دا دې.چه د وقوف عرفات نه روسته دده حج د فساد نه محفوظ شو.اود بدنه وجوب د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د قول نه کیږي.نقل دی چې ابن عباس رضي الله عنهما فرمائیلي دي.
۞اذا جامع قبل الوقوف بعرفة فسد نسكه وعليه دم واذا جامع بعدالوقوف فحجه تامة وعليه بدنة۞

لِأَنَّهُ أَعْلَى أَنْوَاعِ الِارْتِفَاقِ فَيَتَغَلَّظُ مُوجَبُهُ یا ځکه چې جماع دلذت اخستلو اعلی درجه ده نودې په موجب کې به سختي وي.

تسهیل ۞ دوهم دلیل دا دې.چه جماع د لذت حاصلولو ټولو نه اوچت شی دې.نوچه کوم شی په دې جنایت باندې واجبیږي.هغه به هم لوئې وي.اوهغه بدنه ده.نوځکه بدنه واجب ده.

## دحلق نه روسته جماع کول

وَإِنْ جَامَعَ بَعْدَ الْحَلْقِ فَعَلَيْهِ شَاةٌ لِبَقَاءِ إِحْرَامِهِ فِي حَقِّ النِّسَاءِ اوکه دحلق نه روسته ئې جماع اوکړه نوپه ده باندې وزه ده.دښځو په حق کې دده د احرام دپاته پاتې کیدلو په وجه دُونَ لُبْسِ الْمَخِيطِ وَمَا أَشْبَهَهُ فَخَفَّتِ الْجِنَايَةُ فَاكْتَفَى بِالشَّاةِ نه دګنډلو جامو په حق کې او ددې پشان په نورو کې . نوجرم سپک شو په دې وجه په وزه به اکتفاء وي.

تشریح:- تشریح ښکاره ده.

## دعمرې د څلوروچکرونو نه وړاندې جماع کول

وَمَنْ جَامَعَ فِي الْعُمْرَةِ قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ فَسَدَتْ عُمْرَتُهُ اوچا چې جماع اوکړه په عمره کې مخکې د

[1] تقدم تخريجه_
[2] يشير إلى حديث رواه مالك رحمه الله عن ابن عباس رضي الله عنهما في مؤطاه في ال



څلوروچکرو دطواف نه نودده عمره فاسده شوه. فَيَمْضِي فِيهَا وَيَقْضِيهَا وَعَلَيْهِ شَاةٌ نو ددې افعال دې اوکړي او ددې قضا دې اوکړي اوپه ده باندې وزه واجب ده

حل اللغة: ①یقضیها، قضی یقضي قضاء (ض):پوره کول،اداکول

تشریح:- فسادالعمرة ووجوب الشاة بالجماع قبل اکثرالاشواط ۞ که یوکس د عمرې دڅلورو چکرونونه وړاندې جماع اوکړه.نو دده عمره فاسده شوه.څودې به د عمرې افعال پوره کوي.اوپه ده باندې ددې قضا ده.اودجماع د امله به وزه قرباني کوي.

وَإِذَا جَامَعَ بَعْدَ مَا طَافَ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ أَوْ أَكْثَرَ اوکه جماع ئې اوکړه روسته دڅلورو چکرو دطواف کولونه یا دزیاتو نه فَعَلَيْهِ شَاةٌ وَلَا تَفْسُدُ عُمْرَتُهُ نوپه ده وزه ده او عمره نه فاسدیږي.

حل اللغة: ① اشواط: چکرې

المذهبان في الجماع بعداکثرالاشواط ۞ اوکه د څلورو یا ددې نه د زیاتوچکرونو نه روسته ئې جماع اوکړه.نوپه ده باندې به د وزه قرباني واجب شی.خوعمره ئې نه فاسدیږي.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَفْسُدُ فِي الْوَجْهَيْنِ اوامام شافعي رحمه الله فرمائي چې په دواړو صورتونوکې به فاسده وَعَلَيْهِ بَدَنَةٌ اعْتِبَارًا بِالْحَجِّ اوپه ده باندې بدنه ده قیاس کوی په حج باندې. إِذْ هِيَ فَرْضٌ عِنْدَهُ كَالْحَجِّ ځکه چې دده په نزد عمره فرض ده پشان دحج

تشریح:- امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه په دواړو صورتونو کې دده عمره فاسده شوه.اوپه ده باندې د بدنه قرباني واجب ده.

①دلیله ۞ امام شافعي رحمه الله عمره په حج باندې قیاس کوی.نولکه څنګه چې په حج کې په جماع کاوه بدنه واجبیږي برابر ده که جماع د زیاتو چکرونودطواف نه وړاندې اوکړي اوکه روستو، نو دغه ډول په عمره کې هم په دواړو صورتونو کښې بدنه واجبیږي.که د څلوروچکرونونه وړاندې جماع اوکړي اوکه پس،

وَلَنَا أَنَّهَا سُنَّةٌ فَكَانَتْ أَحَطَّ رُتْبَةً مِنْهُ او زمونږ وایو چې داسنت ده نو دحج څخه به ئې مرتبه کمه وي فَتَجِبُ الشَّاةُ فِيهَا وَالْبَدَنَةُ فِي الْحَجِّ إِظْهَارًا لِلتَّفَاوُتِ په دې وجه په عمره کې وزه او په حج کې بدنه واجب ده د توپیر ظاهرولو دپاره.

حل اللغة: ① احط: کم ② تفاوت: توپیر ]

دلیلنا ۞ زمونږدلیل دا دې.چه حج فرض دې.اوعمره سنت ده.اود فرضو مرتبه اوچته ده د سنت نه.نوپه دواړو کې د توپیر ښکاره کاوه لپاره به د حج په باب کې بدنه واجب وي.اود عمرې په باب کې به وزه واجب وي.

## په هیره جماع کول

وَمَنْ جَامَعَ نَاسِيًا كَانَ كَمَنْ جَامَعَ مُتَعَمِّدًا اوچا چې په هیره جماع اوکړه دې داسې دې لکه چې قصداً ئې اوکړي.

حل اللغة: ①ناسیًا: هیره

تشریح:- المذهبان في فسادالحج بالجماع ناسیاً ۞ مسئله دا ده.①چه په هیره باندې په جماع کاوه سره داسې حج فاسدیږي.لکه څنګه چې په قصد جماع کاوه سره حج فاسدیږي.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ جِمَاعُ النَّاسِي غَيْرُ مُفْسِدٍ لِلْحَجِّ اوامام شافعي رحمه الله وائي چې دهیریدونکی جماع کې حج فاسدونکې نه ده. وَكَذَا الْخِلَافُ فِي جِمَاعِ النَّائِمَةِ وَالْمُكْرَهَةِ .اودغسې خلاف دې د اوده اومجبورې کړې شوې ښځې په جماع کې.

حل اللغة: ① نائمة: اوده شوي ښځه

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه په هیره سره په جماع کاوه حج نه فاسدیږی.دوی په روژه باندي قیاس کوی.لکه څنګه چې روژه په هیره جماع کاوه سره نه فاسدیږی.دغه ډول حج هم نه فاسدیږی.دا اختلاف په هغه صورت کي هم دي.چه د ویده (اوده) محرمي ښځي سره جماع اوکړی.یا ورسره په زور باندي جماع اوکړی.نوزموږ په نیزددې حج فاسد شو.اوامام شافعی رحمه الله په نیز ئي حج نه فاسدیږی.

**هُوَ يَقُولُ: الْحَظْرُ يَنْعَدِمُ بِهَذِهِ الْعَوَارِضِ فَلَمْ يَقَعِ الْفِعْلُ جِنَايَةً** دي وائی چې حرمت په دې عوارضو سره ورکیږی نودا فعل جرم نه شو.

**تشریح:- دلیل الشافعی رحمه الله:** امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه حرمت د هیرې خوب وغیره عوارضو په وجه معدوم کیږی.نودا فعل جنایت نشو.اوچه جنایت نشو.نوحج هم فاسد نشو.ځکه چې حج د جنایت په کولوسره فاسدیږی.

**وَلَنَا أَنَّ الْفَسَادَ بِاعْتِبَارِ مَعْنَى الِارْتِفَاقِ فِي الْإِحْرَامِ ارْتِفَاقًا مَخْصُوصًا،** زموږ دلیل دادي چې فساد په احرام کي دمخصوص ارتفاق په اعتبار سره دي **وَهَذَا لَا يَنْعَدِمُ بِهَذِهِ الْعَوَارِضِ** اوداخبره په دې عوارضو سره نشي ورکیدلي

**تشریح:- دلیل الاحناف رحمهم الله:** زمونږدلیل دا دي.چه په خاص ډول خوند حاصلولوسره حج فاسدیږی.یعنی په جماع سره حج فاسدیږی.اود هیرې وغیره عوارضو د امله نه معدوم کیږی.په هیره باندي اوپه زور باندي جماع کاوه سره غسل واجبیږی.اوحرمت مصاهرت هم ثابتیږی.نودغه ډول حج به هم په دې باندي فاسدیږی.

**وَالْحَجُّ لَيْسَ فِي مَعْنَى الصَّوْمِ** اوحج د روژې په معنی کي نه دي **لِأَنَّ حَالَاتِ الْإِحْرَامِ مُذَكِّرَةٌ بِمَنْزِلَةِ حَالَاتِ الصَّلَاةِ** ځکه چې داحرام حالت یادوونکي دي. په شان دحالاتو دمانځه. **بِخِلَافِ الصَّوْمِ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ** په خلاف د حالت د روژې (ځکه چې د روژې حالت یادونکي نه دي)

**تشریح:- الجواب من قیاس الشافعی رحمه الله:** پاتې شو دامام شافعی رحمه الله په روژه باندي د قیاس کولونه ځواب. نو مونږ ځواب دا کوو.چه د حج په روژه باندي قیاس کول ټیک نه دی.ځکه چې د روژې حالت غیرمذکره دي.(یعنی د روژه دارد شکل اوصورت نه دا نه معلومیږی.چه دې روژه داردې) نود حج قیاس په دې باندي ځکه صحیح نه دي.چه دحج حالت حالت مذکره دي.یعنی احرام وغیره ده ته یادوی.چه زه محرم یم.نوپه دې کي هیره معتبر نه ده.لکه څنګه چې د لمانځه حالت ،حالت مذکره دي.نوپه لمانځه کي هیره معتبر نه ده.(بلکه که په هیره باندي رکن پاتې شی.اود داسې ځیزارتکاب اوشی.چه لمونځ ماتوی.نولمونځ به فاسد وی) نودغه که په احرام کي جماع اوکړی.نودده حج فاسدیږی.اود روژې حالت چونکه غیرمذکره دي. نو هلته هیره عذر متعبر اوګڼلې شو.

## طواف قدوم په حالت د بې اودسۍ کي

**فَصْلٌ وَمَنْ طَافَ طَوَافَ الْقُدُومِ مُحْدِثًا فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ** چا چې طواف اوکړو طواف قدوم بې اودسه.نو پده صدقه واجب ده.

**تشریح:-** مسئله،د بې اودسه طواف قدوم زموږ په نیز معتبر دي.اګرچه په ده باندي صدقه واجب ده

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا يُعْتَدُّ بِهِ** اوامام شافعی رحمه الله فرمائی چې دغه به په څه کي نه حسابیږی. **لِقَوْلِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الطَّوَافُ بِالْبَيْتِ صَلَاةٌ إِلَّا أَنَّ اللَّهَ تَعَالَى أَبَاحَ فِيهِ الْمَنْطِقَ** ([1]) ځکه چې دنبی ارشاد دي چې طواف لمونځ دي مګر الله ﷻ په دې کي خبرې مباح کړی **فَتَكُونُ الطَّهَارَةُ مِنْ شَرْطِهِ** نواودس به ددې شرط وی

**تشریح:-** اوداامام شافعی رحمه الله په نیز معتبر نه دي.

[1]) تقدم تخریجه فی باب الإحرام)_



**دلیله:** دامام شافعی رحمه الله دلیل دا دي.چه نبی ﷺ فرمانیلی دی. «الطواف بالبیت صلاة» نبی ﷺ په د بیت الله د طواف تشبیه د لمونځ سره ورکړې ده.اوس ښکاره خبره ده د طواف ذات د لمونځ پشان نه دي.ځکه چې طواف خو د بیت الله نه تاویدل اوحرکت کول دی.اودا شی دلمانځه سره منافی دي.نومعلومه شوه.چه تشبیه په حکم کي ده.چه د دواړو حکم یو دي.نولکه څنګه چې بې اودسه لمونځ نه کیږی.دغه ډول بې اودسه طواف هم نه کیږی.

**وَلَنَا قَوْلُهُ تَعَالَى {وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ} مِنْ غَيْرِ قَيْدِ الطَّهَارَةِ** زموږ دلیل د الله ﷻ دا ارشاد دي چې طواف کوئی د زوړ کور.داودس دکیدو نه بغیر. **فَلَمْ تَكُنْ فَرْضًا** نوفرض نشو

**تشریح:- دلیل الاحناف رحمهم الله:** اوزموږ دلیل دالله تعالی دا ارشاد **{وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ}** دي.په دې کي د مطلق طواف حکم دي.د طهارت شرط په کي نشته.نوځکه د کتاب الله نه د طهارت فرضیت نه ثابتیږی.اوپاتې شو حدیث نو دا خبر واحد دي.اوپه خبرواحد سره په کتاب الله باندي زیادت جائز نه دي. حاصل دا چې د طواف لپاره طهارت فرض نه دي.

**ثُمَّ قِيلَ: هِيَ سُنَّةٌ، وَالْأَصَحُّ أَنَّهَا وَاجِبَةٌ** بیا وئیلی شوی دی چې اودس سنت دي او اصح دادی چې واجب دي **لِأَنَّهُ يَجِبُ بِتَرْكِهَا الْجَابِرُ، وَلِأَنَّ الْخَبَرَ يُوجِبُ الْعَمَلَ فَيَثْبُتُ بِهِ الْوُجُوبُ** ځکه چې د دې په پرېښودو سره جابر دنقصان واجبیږی. اوځکه چې خبرواحد موجب دعمل دي نوپه دې سره وجوب ثابتیږی.

**تشریح:-** البته د بعضې عالمانو رحمهم الله په نیز سنت دي.لکه د عبدالله بن شجاع رحمه الله قول دا دي. او اصح دا ده.چه طهارت واجب دي.لکه څنګه چې د ابوبکر رازی رحمه الله قول دي.

**دلائل وجوب الطهارة:** ① د وجوب دلیل دا دي.چه په طواف قدوم کي د طهارت په پریخودو سره د نقصان پوره کونکې صدقه واجبیږی.اود کوم شی په پریخودو چې کمې پوره کونکې واجب وی.نوهغه شی به په خپله هم واجب وی. نوځکه به طهارت واجب وی.② دوهم دلیل دا دي.چه «الطواف بالبیت صلاة» خبرواحد باندیې عمل کوی.نوځکه ددې حدیث نه د طهارت وجوب ثابتیږی.

**إِذَا شَرَعَ فِي هَذَا الطَّوَافِ وَهُوَ سُنَّةٌ يَصِيرُ وَاجِبًا بِالشُّرُوعِ** بیا چې کله دا طواف ئې پیل کړوحال دا چې دغه سنت دي نوپه پیل کاوه سره واجب شو. **وَيَدْخُلُهُ نَقْصٌ بِتَرْكِ الطَّهَارَةِ فَيُجْبَرُ بِالصَّدَقَةِ** اوپه بې اودسۍ سره په دې کي نقصان راغلونوپه صدقه کولوسره به پوره شي

**تشریح:-** د طواف قدوم لپاره د طهارت په پریخودو د وجوب صدقې دلیل دا دي.چه بې اودسه کله طواف پیل کړی.حالانکه طواف قدوم سنت دي.خودا په پیل کاوه سره واجب شو.اود طهارت په پریخودو سره په دې کي نقص راغلو.نوددې نقصان پوره والې به په صدقې کولوسره کیږی.اوکه طواف زیارت ئې په حالت د بې اودسۍ کي اوکړلو.نودهغه نقصان پوره والې په دم سره کیږی.

**إِظْهَارًا لِدُنُوِّ رُتْبَتِهِ عَنِ الْوَاجِبِ بِإِيجَابِ اللَّهِ** ددې د رتبې د کم ظاهرولو لپاره دهغو واجبونه کوم چې د الله ﷻ په ایجاب سره وی. **، وَهُوَ طَوَافُ الزِّيَارَةِ، وَكَذَا الْحُكْمُ فِي كُلِّ طَوَافٍ هُوَ تَطَوُّعٌ** اوهغه طواف زیارت اوداشان حکم دي په هرنفلی طواف کي.

**تشریح:- السوال والجواب:** پاتې شوه دا خبره چې ددې نقصان پوره والې په صدقې سره ولې کیږی.حالانکه که طواف د بې اودسۍ په حالت کي اوکړی.نودهغې پوره په دم سره کیږی.ددې ځواب دا دي.چه د طواف قدوم مرتبه د طواف زیارت نه د کمولو لپاره داسې کیږی.هم دا حکم د هر نفلی طواف دي.یعنی هرنفلی طواف چې بې اودسه اوکړې شی.نوپه ده به صدقه واجب وی.

## طواف زیارت په بې اودسۍ کې کول

وَلَوْطَافَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ مُحْدِثًا فَعَلَيْهِ شَاةٌ که طواف زیارت ئې بې اودسه اوکړو نوپه ده وزه لازم ده. لِأَنَّهُ أَدْخَلَ النَّقْصَ فِي الرُّكْنِ ځکه چې ده په رکن کې نقصان واچولو فَكَانَ أَفْحَشَ مِنَ الْأَوَّلِ فَيُجْبَرُ بِالدَّمِ كُلِّهِ نودا د رومبې نه بدکار دې نو ددې نقصان به وینې سره پوره کولې شي.

حل اللغة: ① ادخل، ادخالاً: داخلول ② افحش: ډیر فحش، بدتر

تشریح:- وجوب الشاة بالطواف محدثاً که محرم طواف زیارت د بې اودسۍ په حالت کې اوکړلو.نوپه ده باندې د وزه قرباني واجبیږي.ځکه چې رکن یعنی طواف زیارت کې نقصان پیدا شو.اوپه رکن کې نقصان پیدا کیدل په واجب کې د نقصان پیدا کیدو نه لوئې جرم دې.نوهرکله چې په رکن کې نقصان پیدا کول زیات جرم دې.نوددې تلافي چې په کوم څیز کیږي.هغه به هم باید ده چې لوئې وی.چه وزه ده. اوپه واجب یعنی په طواف قدوم کې نقصان پیدا کیدو پوره والې به په ورکوټي شي یعنی صدقه باندې کیږي.

وَإِنْ كَانَ جُنُبًا فَعَلَيْهِ بَدَنَةٌ اوکه دې جنب وو نو په ده بدنه ده كَذَا رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُمَا دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه داسې روایت دې وَلِأَنَّ الْجَنَابَةَ أَغْلَظُ مِنَ الْحَدَثِ اوځکه چې جنابت دحدث نه زیات سخت دې، فَيَجِبُ جَبْرُ نُقْصَانِهَا بِالْبَدَنَةِ إِظْهَارًا لِلتَّفَاوُتِ نوددې نقصان به په بدنه پوره کولې شي د تفاوت ظاهرولو دپاره

تشریح:- وجوب البدنة بالطواف جنباً اوکه طواف زیارت په حالت د جنابت کې اوکړي.نوپه ده باندې بدنه یعنی اوښ یا غوټې قرباني کول لازمیږي.ددې روایت دابن عباس رضي الله عنهما نه شوې دې. ② دوهم دلیل دا دې چه جنابت په نسبت سره حدث ته زیات غلیظ دې.نوپه دې دواړو کې د توپیر ښکاره کاوه لپاره که په حالت د جنابت کې طواف اوکړي.نود پیدا شوی نقصان تلافي به په بدنه سره کیږي.اوکه په بې اودسه سره نو د پیدا شوی نقصان تلافي به په وزه سره کولې شي.

وَكَذَا إِذَا طَافَ أَكْثَرَهُ جُنُبًا أَوْ مُحْدِثًا، داسې حکم دې کله چې اکثرطواف زیارت په جنابت یا بې اودسۍ کښې اوکړو لِأَنَّ أَكْثَرَ الشَّيْءِ لَهُ حُكْمُ كُلِّهِ ځکه چې د شي اکثرې برخې لره حکم دکل وی.

تشریح:- دغه ډول که د طواف زیارت زیاته برخه ئې په حالت د حدث کې اوکړله .نو دم به واجب وی.اوکه اکثره برخه ئې په حالت د جنابت کې اوکړله.نوبدنه به واجب وی. ځکه چې د یوڅیزداکثر هغه حکم وی.کوم چې د هغې د کل وی. اومشهوره قاعده ده.چه «للأکثر حکم الکل».

## په حالت د حدث یا جنابت کې د شوی طواف اعاده کول

وَالْأَفْضَلُ أَنْ يُعِيدَ الطَّوَافَ مَا دَامَ بِمَكَّةَ وَلَا ذَبْحَ عَلَيْهِ او غوره داده چې طواف واپس کړی ترڅو چې په مکه معظمه کې پاتې وی او حلاله به پرې پاتې نشي

حل اللغة: ① ان یعید،اعاد، اعادة: واپس کول

تشریح:- استحباب اعادة الطواف صاحب دقدوری رحمه الله فرمائي.کوم طواف چې په حالت د حدث یا د جنابت کې اوشي.نوپه دواړو صورتونوکې افضل دا دی.چه ترڅوپه مکه کې وی.ددې اعاده دې اوکړي. او د دې په اعاده کاوه سره د ده نه د وزه اود بدنه د قرباني کاوه حکم هم ساقطیږي.

وَفِي بَعْضِ النُّسَخِ: وَعَلَيْهِ أَنْ يُعِيدَ اوپه بعضو نسخوکې دی چې په ده دوباره کول واجب دی

تشریح:- فائدة اختلاف نسخ القدوری رحمه الله د قدوری رحمه الله په بعضې نسخوکې دا عبارت دې. «علیه أن یعید» دا دطواف د دوباره کاوه په وجوب باندې دلالت کوی



وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يُؤْمَرُ بِالْإِعَادَةِ فِي الْحَدَثِ اسْتِحْبَابًا وَفِي الْجَنَابَةِ إِيجَابًا. اوصحیح داده چې ده ته به د اعادې حکم کولای شی دحدث په صورت کې استحباباً اود جنابت صورت کې لِفُحْشِ النُّقْصَانِ بِسَبَبِ الْجَنَابَةِ وَقُصُورِهِ بِسَبَبِ الْحَدَثِ په وجه د نقض فاحش ، او په سبب دحدث د نقض قاصره په وجه.

تشریح:- صاحب دهدایه رحمه الله فرمائي.چه زیاته صحیح خبره دا ده .که طواف زیارت ئې په حالت د بې اودسۍ کې کړې وی.نواعاده مستحب ده.اوکه په حالت د جنابت کې ئې کړې وی.نواعاده واجب ده.اود بې اودسۍ په صورت کې طواف کول جنایت قاصره دې. نوځکه به اعاده مستحب وی

ثُمَّ إِذَا أَعَادَهُ وَقَدْ طَافَهُ مُحْدِثًا لَا ذَبْحَ عَلَيْهِ وَإِنْ أَعَادَهُ بَعْدَ أَيَّامِ النَّحْرِ، بیا کله چې ئې دطواف اعاده اوکړه اومخکښې ئې بې اودسه کړې وو.نوقرباني پرې لازم نده خوچه دایام نحر نه روسته ئې اعاده کړې وی. لِأَنَّ بَعْدَ الْإِعَادَةِ لَا يَبْقَى إِلَّا شُبْهَةُ النُّقْصَانِ ځکه چې په ده د اعادې نه روسته د شبه د نقصان سوې بل څه پاته پاتې نشو.

تشریح:- اعادة الطواف متوضأ بعدما طاف محدثاً صاحب دهدایه رحمه الله لړ په تفصیل سره بیان کوی.که په حالت د حدث کې ئې طواف زیارت کړې وی. او بیا ئې اعاده اوکړي.نوپه ده باندې قربانۍ وغیره واجب نه دی.برابره ده که اعاده ئې د قربانۍ په ورځو کې اوکړي اوکه د قربانۍ د ورځو نه پس،ځکه چې د طواف اعاده اوکړي.نود شبه نقصان نه سوې بل څه پاتې نشو.اوشبه نقصان څه څیزنه واجبوی.نوځکه په دې صورت کې قرباني وغیره نه واجبیږي.

وَإِنْ أَعَادَهُ وَقَدْ طَافَهُ جُنُبًا فِي أَيَّامِ النَّحْرِ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ اوکه اعاده ئې اوکړه په ایام نحر کې اومخکې ئې طواف په جنابت کښې کړې وو نوپه ده څه واجب نه دی. لِأَنَّهُ أَعَادَهُ فِي وَقْتِهِ ځکه چې ده طواف په وخت راوګرزولو. وَإِنْ أَعَادَهُ بَعْدَ أَيَّامِ النَّحْرِ لَزِمَهُ الدَّمُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اوکه د آیام نحرنه روسته ئې واپس کړو.نودم پرې لازم دې.دامام اوحنیفه رحمه الله په نزد، بِالتَّأْخِيرِ عَلَى مَا عُرِفَ مِنْ مَذْهَبِهِ دتاخیر په وجه لکه چې ددوی دمذهب نه معلومه ده

تشریح:- اعادة الطواف متوضا بعدما طاف جنبا «سقوط الدم» اوکه اول ئې په حالت د جنابت کې طواف زیارت کړې وی.اوبیا هم په ایام نحر کې ددې اعاده اوکړي.نوپه ده باندې څه واجب نه دی.ځکه چې ده طواف زیارت هم په خپل وخت کې ادا کړلو.اوکه د ایام النحر نه روسته ئې ددې اعاه اوکړه.نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز تړې بدنه خو ساقط شوه.البته دم یعنی د وزه قرباني به پرې واجب وی.ځکه چې په اعاده سره بدنه خو په اتفاق سره ساقط شوه.خودامام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دا دې.که د حج یوفعل دخپل وخت نه روستو شي.نودم لازمیږي.چونکه دلته طوافِ زیارت د خپل یعنی د ایام النحر نه روستو شوې دې.نودم به پرې لازم وی.

## جنبا د طواف زیارت کولونه روسته خپل اهل ته واپس کیدل

وَلَوْ رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ وَقَدْ طَافَهُ جُنُبًا عَلَيْهِ أَنْ يَعُودَ، اوکه د خپل اهل ته واپس شو حال دا چې طواف زیارت ئې په جنابت کې کړې وو نو واپسی باید ده لِأَنَّ النَّقْصَ كَثِيرٌ فَيُؤْمَرُ بِالْعَوْدِ اسْتِدْرَاكًا لَهُ وَيَعُودُ ځکه چې نقصان ډیردې نوددې پوره کاوه لپاره به دواپس کیدو حکم کولای شي بِإِحْرَامٍ جَدِيدٍ اوپه نوی احرام سره به واپس شي

حل اللغة: ① رجع، رجوعاً(ض): واپس کول ② استدراكاً: تلافي کول

تشریح:- وجوب الاعادة بعدما رجع الی اهله که یومحرم په حالت د جنابت کې طواف زیارت اوکړلو.اوبیا خپل اهل وعیال ته واپس شو. نوچونکه د ده په جنایت سره په طواف زیارت نقصان پیدا شوې دې.دهغې د پوره کاوه لپاره به واپس مکې ته تلل واجب وی.خودا خیال ساتئ.که دمیقات نه تیر شوې وی.نوبه نوی احرام سره به واپس کیږي.اوکه د میقات نه تیر شوې نه وی.نود نوی احرام څه اړتیا نشته.

وَإِنْ لَمْ يَعُدْ وَبَعَثَ بَدَنَةً أَجْزَأَهُ لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ جَابِرٌ لَهُ، اوکه دې واپس نشو او بدنه ئې اولیګله نوده له به کافي وی ځکه چې مونږ وئیلی دی بدنه ددې نقصان پوره کوونکې ده إِلَّا أَنَّ الْأَفْضَلَ هُوَ الْعَوْدُ خو افضل واپس کیدل دی وَلَوْ رَجَعَ

الی أَهْلِهِ وَقَدْ طَافَهُ مُحْدِثًا إِنْ عَادَ وَطَافَ جَازَ اوكه دې خپل اهل ته راغلو اوطواف زيارت ئې بې اودسه كړې وو.پس ددې نه چې واپس شو اوطواف ئې اوكړو نوجائز دې

حل اللغة ① بعثه بعثًا: (ن):ليږل ② ان يعود، عاد عودًا: واپس كيدل

تشريح:- جوازارسال البدنة ۞اوكه واپس شي.اود نقصان پوره كاوه لپاره مكې ته واپس نشي.بلكه بدنه اوليږي نودا هم جائزده. ځكه چې بدنه هم د نقصان تلافي كوي.خوافضل واپس كيدل دي.ددې لپاره چې جابر(چه نقصان پوره كوي) د مجبور(په كوم طواف كې چې نقصان راغلې دې) هغه په دې سې شي سره پوره شي.كوم چې د هغې د جنس څني وي.(چه طواف دې)يعني چې مكې ته واپس راشي.اوطواف اوكړي.نود نقصان تلافي به په هغه څيزسره اوشي.كوم چې د هغې د جنس څني دې.

وَإِنْ بَعَثَ بِالشَّاةِ فَهُوَ أَفْضَلُ، لِأَنَّهُ خَفَّ مَعْنَى النُّقْصَانِ اوكه وزه ئې اوليګله نو غوره ده ځكه چې نقصان سپك وو وَفِيهِ نَفْعٌ لِلْفُقَرَاءِ اوپه وزه ليګلو كښې دفقيرانو نفع ده

تشريح:- فضل ارسال ا لشاة في الطواف محدثاً۞اوكه په حالت د حدث كې ئې طواف زيارت كړې وي.اوبيا خپل وطن ته واپس شي.نوپه دې صورت كې كه د طواف د اعادۀ لپاره مكې ته واپس راشي.نوداجائز ده.خوافضله دا ده.چه وزه اوليږي.ځكه چې د حدث په صورت كې نقصان كم دې.اود وزه په راليږلو كې د حرم د فقيرانو فائده ده.نوځكه وزه ليږل افضل دي.

وَلَوْ لَمْ يَطُفْ طَوَافَ الزِّيَارَةِ أَصْلًا حَتَّى رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ شو خپل اهل ته فَعَلَيْهِ أَنْ يَعُودَ بِذَلِكَ الْإِحْرَامِ لِانْعِدَامِ التَّحَلُّلِ مِنْهُ نوپه ده لازم دی چې ددې احرام سره واپس شی ځكه چې ددې احرام نه حلاليدل معدوم دی وَهُوَ مُحْرِمٌ عَنِ النِّسَاءِ أَبَدًا حَتَّى يَطُوفَ اودې به دښځو په حق كې برابر محرم وی تردې چې طواف زيارت اوكړي.

تشريح:- اوكه محرم طواف زيارت نه وی كړې.اوخپل وطن ته واپس شي.نوپه ده باندې هم په دغه احرام كې واپس كيدل ضروری دی.ځكه چې د طواف زيارت نه كاوه د امله دا كس د خپل احرام نه حلال شوې نه دې.بلكه دې به د ښځو په حق كې هميشه لپاره محرم وی.(هغوی سره جماع وغيره نشی كولې) تردې چې طواف زيارت اوكړي.

## طواف صدر په حالت د حدث كې كول

وَمَنْ طَافَ طَوَافَ الصَّدَرِ مُحْدِثًا فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ) چا چې طواف صدر بې اودسه اوكړو نوپه ده صدقه ده لِأَنَّهُ دُونَ طَوَافِ الزِّيَارَةِ ځكه چې دا دطواف زيارت نه كم دې ،وَإِنْ كَانَ وَاجِبًا فَلَا بُدَّ مِنْ إِظْهَارِ التَّفَاوُتِ اګر چې واجب دې خو اظهار دتفاوت ضروری دې

تشريح:- وجوب الصدقة بطواف الصدرمحدثاً۞كه محرم طواف صدر (د واپسۍ طواف) په حالت د بې اودسۍ كې اوكړلو.نوپه دۀ باندې صدقه واجب ده.ځكه چې طواف صدر اګرچه واجب دې.خود طواف زيارت نه په كمه درجه كې دې.ځكه چې هغه ركن دې.نوددې دواړو په مينځ كې د توپير ښكاره كاوه لپاره وئيلې شوی دی.كه طواف زيارت په حالت د حدث كې اوكړي.نووزه واجب ده.اوكه طواف صدرپه حالت دحدث كې اوكړي.نوصدقه واجب ده.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ تَجِبُ شَاةٌ، إِلَّا أَنَّ الْأَوَّلَ أَصَحُّ اود امام ابو حنيفه رحمه الله نه دا روايت هم دې چې وزه واجب ده مګر اولنې روايت صحيح دې.

حل اللغة ① تجبه، وجب وجوبًا (ض): واجب كيدل،لازم كيدل ]

تشريح:- اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه يوروايت دا دې.چه طواف صدر په حالت د حدث كې هم وزه واجبوي.خواولنې روايت يعني وجوب د صدقې واله اصح دې.



وَلَوْ طَافَ جُنُبًا فَعَلَيْهِ شَاةٌ لِأَنَّهُ نَقْصٌ كَثِيرٌ اوكه په حالت دجنابت كښې ئې اوكړونو پده وزه ده ځكه چې دانقص كثير دې ثُمَّ هُوَ دُونَ طَوَافِ الزِّيَارَةِ فَيُكْتَفَى بِالشَّاةِ بيا دا دطواف زيارت نه كمتر دې نو په وزه كفايت اوشو.

تشريح:- وجوب الدم بطواف الصدرجنباً۞اوكه طواف صدر په حالت دجنابت كې اوكړي.نوپه ده باندې دم واجب دې.ځكه چې دجنابت په وجه نقصان زيات دې.البته چې طواف زيارت په حالت د جنابت كې اوكړي.نودهغې نه كم دې.نوځكه طواف صدر په حالت د جنابت كې وزه واجبوي.اوطواف زيارت په حالت د جنابت كې بدنه واجبوي.

## د طواف زيارت درې ګښتونه پريښودل

وَمَنْ تَرَكَ مِنْ طَوَافِ الزِّيَارَةِ ثَلَاثَةَ أَشْوَاطٍ فَمَا دُونَهَا فَعَلَيْهِ شَاةٌ) چا چې دطواف زيارت درې يا ددې نه كم ګښتونه پريښودل نو پده وزه ده. لِأَنَّ النُّقْصَانَ بِتَرْكِ الْأَقَلِّ يَسِيرٌ ځكه چې دكمو په پريښودو نقصان كم دې فَأَشْبَهَ النُّقْصَانَ بِسَبَبِ الْحَدَثِ فَتَلْزَمُهُ شَاةٌ نومشابه شو دنقصان سره چې په سبب د بې اودسۍ وی خو لازم ده چيلۍ.

حل اللغة ① اشواط: چكرې ② اقل: كم ③ يسير :كم،سپك ④ فيلزمه، لزم لزومًا (س): لازم كيدل

تشريح:- وجوب الدم بترک اقل الاشواط۞كه په طواف زيارت كې ئې درې ګښتونه پريخودل.نوپه دۀ باندې دم واجبيږي.ځكه چې درې ګښتونه د اووه په نسبت سره كوم چې كل دی.كم دی.نوجنايت اخف شو.ددې امله د وزه په قربانۍ سره دا پوره كيږي.اودا هغه نقصان مشابه شو.كوم چې د حدث د امله پيدا شوې وی.اود حدث د امله چې كوم نقصان پيدا شوې وی.هغه كم وی.دهغې تلافی په وزه سره كيږي.نودغه ډول دلته به هم د وزه قربانی لازميږي.

فَلَوْ رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ أَجْزَأَهُ أَنْ لَا يَعُودَ وَيَبْعَثَ بِشَاةٍ لِمَا بَيَّنَّا بياكه خپل وطن ته واپس شو نو ده له كافی دی چې واپس نشي اويوه وزه اوليږي. لكه چې موږ بيان كړی دی

تشريح:- جواز ارسال الشاة بعدالرجوع الى الوطن۞اوكه دا كس چا چې د طواف زيارت درې يا د دريو نه كم ګښتونه پريخودی وي.خپل وطن ته واپس شي.نود ده لپاره دا جائزده.چه مكې ته واپس لاړنشي.بلكه يوه وزه اوليږي.دليل وړاندې تير شوې دې.

وَمَنْ تَرَكَ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ بَقِيَ مُحْرِمًا أَبَدًا حَتَّى يَطُوفَهَا اوچا چې څلور ګښتونه پريښودل نو دې به هميشه محرم وی تر دې چې طواف اوكړي. لِأَنَّ الْمَتْرُوكَ أَكْثَرُ فَصَارَ كَأَنَّهُ لَمْ يَطُفْ أَصْلًا ځكه چې پريښودلی ګښتونه زيات دی نودې داسې شو لكه چې طواف ئې كړې نه وی.

تشريح:- حكم ترک اكثراشواط طواف الزيارة۞اوچا چې د طواف زيارت څلور ګښتونه پرخودل.نودې به هم محرم وی.ترڅوچه ئې طواف زيارت نه وی كړې.ځكه چې پاتې شوی ګښتونه اكثر دی.اودااكثر لپاره حكم د كل وی.نوځكه لكه چې ده هډو طواف زيارت كړې نه دې.اوچه طواف زيارت اونكړي.نوپه دې صورت كې به هميشه لپاره محرم وی.

## طواف صدر ټول يا اكثرګښتونه پريښودل

وَمَنْ تَرَكَ طَوَافَ الصَّدَرِ أَوْ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ مِنْهُ فَعَلَيْهِ شَاةٌ) اوچاچه طواف صدر پريښودو او ياڅلور ګښتونه دطواف صدرنه نوپده وزه ده. لِأَنَّهُ تَرَكَ الْوَاجِبَ أَوِ الْأَكْثَرَ مِنْهُ ځكه چې ده واجب پريښودل يا ئې زياته برخه پريښودله.

تشريح:- وجوب الدم بترک طواف الصدري و اكثر اشواطه۞كه يوكس د طواف صدر يا ددې څلور ګښتونه پريخودل.اوخپل وطن ته واپس شو.نوپه ده باندې قربانی واجب شوه.ځكه چې ده واجب يا د واجب اكثره برخه پريخودله.اود واجب يا ددې د اكثرې برخې په پريخودو چې كوم نقصان پيدا كيږي.هغه په قربانۍ سره پوره كيږي.نوپه دې دواړو صورتونو كې قربانی واجب ده.اوترڅوچه دې په مكه كښې وی.نوده ته به د طواف

صدر کاوه حکم کولي شي.چه واجب په خپل وخت کي ادا کړي.اود طواف صدر وخت د مکې پريښودو نه وراندې وراندې دې.اوکه د طواف صدر درې ګښتونه ئې پريښول نوپه ده باندې صدقه واجب ده.يعني د هر چکرپه بدله کي به نيم صاع غنم ورکوی.

وَمَادَامَ بِمَكَّةَ يُؤْمَرُ بِالْإِعَادَةِ إِقَامَةً لِلْوَاجِبِ فِي وَقْتِهٖ او ترڅو پورې چې په مکه معظمه کي وی ده ته به داعادې حکم کولي شي.دواجبو په وخت کښې د ادا کاوه دپاره (وَمَنْ تَرَكَ ثَلَاثَةَ أَشْوَاطٍ مِنْ طَوَافِ الصَّدْرِ فَعَلَيْهِ الصَّدَقَةُ) او چا چه ګښتونه دطواف صدر نه نو په ده باندې صدقه ده. وَمَنْ طَافَ طَوَافَ الْوَاجِبِ فِي جَوْفِ الْحِجْرِ او چا چې واجب طواف په حجر(حطيم) کښې دننه اوکړو فَإِنْ كَانَ بِمَكَّةَ أَعَادَهُ لِأَنَّ الطَّوَافَ وَرَاءَ الْحَطِيمِ وَاجِبٌ عَلَى مَا قَدَّمْنَاهُ نو ترڅو چه په مکه کي وی د دې اعاده دې اوکړی ځکه چې دحطيم نه چاپيره طواف کول واجب دی.لکه چې مخکي مونږ وئيلی دی وَالطَّوَافُ فِي جَوْفِ الْحِجْرِ أَنْ يَدُوْرَ حَوْلَ الْكَعْبَةِ اوطواف کول په حجر کښې دننه دادی چې دکعبې مبارکې نه چاپيره ګرځی وَيَدْخُلَ الْفُرْجَتَيْنِ اللَّتَيْنِ بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْحَطِيمِ اودننه کيږی په هغو دواړو کومې چې دبيت الله شريف اوحطيم په مينځ کي دی.

حل اللغة* ① مادام: ترکومې پورې ② وراء: علاوه ③ يدخل، دخل دخولاً (ن): داخليدل

تشريح:- حکم الطواف داخل الحطيم۞صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.که محرم واجب طواف په جوف حجر کي اوکړلو.اوپه جوف حجر کي طواف دا دې.چه د کعبې نه شاو خوا تاؤ شی.اود کعبې اوخطيم په مينځ کي چې کوم کولې ؤ ځائې دې.هغې کي داخل شی.يعني حطيم ته داخل شی.او ګښتونه اولګوی.

فَإِذَا فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدْ أَدْخَلَ نُقْصَانًا فِي طَوَافِهٖ نوکه داسې ئې اوکړل نونقصان ئې داخل کړوخپل طواف کي. فَمَادَامَ بِمَكَّةَ أَعَادَهُ كُلَّهُ نو ترڅوچه په مکه کي وی دواړه طواف اعاده دې اوکړی لِيَكُوْنَ مُؤَدِّيًا لِلطَّوَافِ عَلَى الْوَجْهِ الْمَشْرُوْعِ چې شی اداکوونکې په طريقه مشروعه باندې.

تشريح:- نوکه دا کس په مکه کي موجود وی.نودې به د طواف اعاده کوی.ځکه چې طواف د حطيم نه بهر کيږی.اوده طواف په حطيم کي دننه اوکړلو.نوځکه به وئيلی شی.چه ده مشروع طواف اونکړلو.نوبه مشروع طريقه د طواف ادا کاوه لپاره به ورته د دوباره طواف حکم کولې شي.

## دپريښودې شوی طواف د اعادې فائده

وَإِنْ أَعَادَ عَلَى الْحِجْرِ خَاصَّةً أَجْزَأَهُ اوکه صرف په حجر ئې اعاده اوکړه نودا هم کافی دی. لِأَنَّهُ تَلَافَى مَا هُوَ الْمَتْرُوْكُ ځکه چې څه پاتې وود هغې تلافئ ئې اوکړه.

حل اللغة* ① اعاد، اعادة: واپس کول ② خاصة: په خاص توګه

تشريح:- ترک الحجرفي الطواف۞چا چې د حطيم او دکعبې په مينځ کي دخالی ځائې (چه حجر ورته وائی)طواف پريښولو .نوکه ده صرف دحجرد طواف اعاده اوکړله هم جائزده.ځکه چې د کوم ځائې طواف ئې پريښولې (پريښودې) وو.دهغې تلافی ئې اوکړله.

وَهُوَ أَنْ يَأْخُذَ عَنْ يَمِيْنِهٖ خَارِجَ الْحِجْرِ حَتّٰى يَنْتَهِيَ إِلٰى آخِرِهٖ اود طواف دحجرصورت دادې چې حجر دبهردښی اړخ نه پيل کړی تردې چې آخر ته ئې اورسی ثُمَّ يَدْخُلَ الْحِجْرَ مِنَ الْفُرْجَةِ وَيَخْرُجَ مِنَ الْجَانِبِ الْآخَرِ بيا حجرته دننه شی په فراخه ځائې باندې اودبل اړخ نه اوځی هٰكَذَا يَفْعَلُهُ سَبْعَ مَرَّاتٍ دغه ډول اووه ګښتونه دې اوکړی.

تشريح:- وجوب اعادة طواف الحجر۞صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چه د حجرد طواف د اعادې طريقه دا ده.چه د حجرد اړخ نه پيل اوکړی.تردې چې دحجرد آخری سرته اورسی.اوبيا دې دخالی ځائې نه حجر کي داخل شی.اوپه بل اړخ دې ترې اوځی.دا يوچکردې.دغه ډول دې اووه ځله اوکړی.

فَإِنْ رَجَعَ إِلٰى أَهْلِهٖ وَلَمْ يُعِدْهُ فَعَلَيْهِ دَمٌ نوکه واپس شوخپل اهل ته اود طواف اعاده ئې اونکړه نو پده باندې دم دې.



لِأَنَّهُ تَمَكَّنَ نُقْصَانٌ فِي طَوَافِهٖ بِتَرْكِ مَا هُوَ قَرِيْبٌ مِنَ الرُّبُعِ ځکه چې څلوروته د نزدې چکرونو په پريخودو دده په طواف کي نقص راغلو. وَلَا تُجْزِيْهِ الصَّدَقَةُ نوصدقه به کافی نه وی.

تشريح:- وجوب الدم بترک الاعادة۞اوکه دا کس خپل وطن ته واپس شو.اود حطيم د طواف اعاده اونکړی. نو په ده باندې دم واجب دې.ځکه چې څلورمې برخې نه لږ غوندې کم چې ئې پريښولو .نودده په طواف کي نقصان پيدا شو.اود هغې د پوره کاوه لپاره صدقه کافی نه ده.بلکه دم واجب دې.

## د يودم او د قربانو د وجوب ځينې صورتونه

وَمَنْ طَافَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ عَلٰى غَيْرِ وُضُوْءٍ او چا چې طواف زيارت بې اودسه اوکړو وَطَوَافَ الصَّدْرِ فِي آخِرِ أَيَّامِ التَّشْرِيْقِ طَاهِرًا او طواف صدر ئې په آخری ورځو د ايام تشريق کي په پاکه فَعَلَيْهِ دَمٌ اوکړونوپده باندې دم دې فَإِنْ كَانَ طَافَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ جُنُبًا فَعَلَيْهِ دَمَانِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ[1] روسته که طواف زيارت ئې په جنابت کي اوکړو نوپده دوې [دوه] دمونه دی.په نزد دامام ابوحنيفه رحمه الله وَقَالَا عَلَيْهِ دَمٌ وَاحِدٌ او صاحبين رحمهما الله وائی چې پده يودم دې

تشريح:- المسئلتان في المتن۞په دې عبارت کي دوې [دوه] مسئلې بيان شوی دی.① يوه دا چې طواف زيارت بې اودسه اوکړی.اودايام التشريق په آخر کي طواف صدر اوکړی.نو په ده باندې په اتفاق سره يودم واجب ده.② دويمه مسئله دا چې طواف زيارت په حالت دجنابت کي اوکړی.اوطواف صدرد ايام التشريق په آخر کي په اودس کي اوکړی.نوپه دې صورت کي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دوې [دوه] دمونه او د صاحبينو رحمهما الله په نيز يو دم واجب دی.

لِأَنَّ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ لَمْ يُنْقَلْ طَوَافُ الصَّدْرِ إِلٰى طَوَافِ الزِّيَارَةِ ځکه چې په اول صورت کي طواف صدر نشی منتقل کولې طواف زيارت اړخ ته لِأَنَّهُ وَاجِبٌ، وَإِعَادَةُ طَوَافِ الزِّيَارَةِ بِسَبَبِ الْحَدَثِ غَيْرُ وَاجِبٍ ځکه دا واجب دې اواعاده دطواف زيارت په سبب د بې اودسئ واجب نه ده وَإِنَّمَا هُوَ مُسْتَحَبٌّ فَلَا يُنْقَلُ إِلَيْهِ بلکه مستحب ده.نوطواف صدر طواف زيارت ته نشی منتقل کولې.

تشريح:- وجه عدم الانتقال في الصورة الاولی۞په دې دواړو مسئلو کي وجه د توپير دا ده.چه په اولنی صورت کي طواف صدر طواف زيارت ته نشی منتقل کيدې.ځکه چې طواف صدر واجب دې.اود طواف زيارت اعاده د حدث اصغرد امله غيرواجب بلکه مستحب ده.نوځکه ددې څه اړتيا نشته.چه طواف صدر طواف زيارت ته منتقل کړې شی.بلکه طواف زيارت به په خپل ځائې وی اوطواف صدربه په خپل ځائې وی.البته چې طواف زيارت ئې بې اودسه کړې وی.نويو دم پرې واجبيږی.

وفي الوجه الثاني ينقل طواف الصدر إلى طواف الزيارة اوپه دوهم صورت کي منتقل کولې شی طواف صدر طواف زيارت ته. لأنه مستحق الإعادة فيصير تاركا لطواف الصدر ځکه چې طواف زيارت مستحب ده اعاده د دې نودغه طواف صدر پريښودونکې شو مؤخرا لطواف الزيارة عن أيام النحر او طواف زيارت لره د ايام تشريق نه روستوکوونکې شو.

تشريح:- وجه عدم الانتقال في الصورة الثانية۞ اوپه دوهم صورت کي چې طواف زيارت ئې په حالت د جنابت کي کړی وی.نوطواف صدر به طواف زيارت اړخ ته منتقل کولې شی.ځکه چې طواف زيارت سره د جنابت نه په منزله د عدم دې.نوځکه د هغې اعاده واجب ده.نوهرکله چې طواف زيارت د جنابت په وجه په منزله د

[1] القول الراجح هو هذا قول الإمام ابی حنيفة رحمه الله كذا فی الخانية (١٤٢١١) والمبسوط (١٤١٤) والبحرالرائق (٣٨١٣) والهندية (٢٤٦١١) والتاتر خانية (٥١٦١٢) نقلاً عن القول الراجح (٢٢٦١١)۔

عدم دې.نوطواف صدر کوم چې د ایام التشریق په اخره کې شوې وی.نوهغه به طواف زیارت ارخ ته منتقل کړې شی.اوداسې به اووئیلی شی.چه دا د طواف زیارت اعاده ده.اوس دا کس لکه چې د طواف صدر پریخودونکې اود طواف زیارت د ایام التشریق آخرئ ورځې ته روستو کونکې شو.

فَيَجِبُ الدَّمُ بِتَرْكِ الصَّدْرِ بِالِاتِّفَاقِ وَبِتَأْخِيرِ الْآخَرِ عَلَى الْخِلَافِ،نو واجب شو دم په پریښودلود طواف صدر.په اتفاق سره اوپه تاخیر دطواف زیارت په اختلاف یوه قربانی واجب وی. إِلَّا أَنَّهُ يُؤْمَرُ بِإِعَادَةِ طَوَافِ الصَّدْرِ مَا دَامَ بِمَكَّةَ خو ترڅو چې دې په مکه کښې وی امربه ورته کولای شی په اعادې دطواف صدر. وَلَا يُؤْمَرُ بَعْدَ الرُّجُوعِ عَلَى مَا بَيَّنَّا اود واپس کیدو نه روسته به دا حکم نشی کولې لکه چې موږ بیان کړی دی.

تشریح:- نواوس به یو دم د طواف صدر په پریخودو باندې په اتفاق سره واجب وی.او دوهم دم به صرف دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دې باندې واجب وی.چه طواف زیارت ئې د خپل وخت نه روستو کړلو.اود صاحبینو رحمهما الله په نیز واجب نه دې.(ځکه چې دصاحبینو رحمهما الله په نیز په تاخیرد مناسك حج سره دم نه واجبیږی) نوحاصل دا شو.چه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دوې [دوه] دمونه واجب شو.اودصاحبینو رحمهما الله په نیز صرف یو،البته دومره خبره ضرور شته.چه ترڅو پورې دې په مکه کې موجود وی.نوده ته به د طواف صدر د اعادې حکم کولې شی.اوکه وطن ته واپس شی.نوبیا به ورته حکم نشی کولې.

## په حالت د حدث کې دعمرې طواف اوسعی کول

وَمَنْ طَافَ لِعُمْرَتِهِ وَسَعَى عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ وَحَلَّ اوچا چې دخپلې عمرې لپاره بې اودسه طواف اوسعی اوکړل اوحلال شو فَمَا دَامَ بِمَكَّةَ يُعِيدُهُمَا وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نوترڅوچه په مکه کې وی د دې دواړو اعاده دې اوکړی اوبده څه نشته. أَمَّا إِعَادَةُ الطَّوَافِ فَلِتَمَكُّنِ النَّقْصِ فِيهِ بِسَبَبِ الْحَدَثِ دطواف اعاده خو په دې وجه ده.چه دبې اودسې نقص په کې راغلې دې وَأَمَّا السَّعْيُ فَلِأَنَّهُ تَبَعٌ لِلطَّوَافِ اوباتې شوه سعی نوځکه چې دا تابع د طواف ده. وَإِذَا أَعَادَهُمَا لَا شَيْءَ عَلَيْهِ لِارْتِفَاعِ النُّقْصَانِ اوکله چې ئې اعاده اوکړه د دواړو نوپه ده څه شی واجب نه دې د نقصان پوره کیدلو په وجه.

تشریح:- اعادة طواف العمرة وسعیها عند ادائهما محدثاً۞مسئله دا ده.چه یو کس دعمرې طواف اوسعی بې اودسه اوکړی.اوبیا ځان حلال کړی.نوچه دې ترڅوبه مکه کې وی.نود طواف اوسعی اعاده پرې واجب ده.د طواف اعاده خو پرې ځکه واجب ده.چه د عدم طهارت د امله په هغې نقص پیدا شوې دې.اودهغې نقصان د لرې کاوه لپاره به اعاده واجب وی.اود سعی لپاره اګرچه طهارت شرط نه دې.خوچونکه سعی د طواف تابع ده.نوچه د طواف اعاده واجب ده.نودغه ډول د سعی اعاده هم واجب شوه.اوس که دې ددې دواړو اعاده اوکړله.نوپه ده باندې څه شی واجب نه دې.ځکه چې کوم نقصان پیدا شوې وو.هغه په اعا ده سره پوره شو.

وَإِنْ رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ قَبْلَ أَنْ يُعِيدَ فَعَلَيْهِ دَمٌ اوکه خپل وطن ته واپس شو د اعادې کولونه وړاندې نوپده دم دې لِتَرْكِ الطَّهَارَةِ فِيهِ، وَلَا يُؤْمَرُ بِالْعَوْدِ لِوُقُوعِ التَّحَلُّلِ بِأَدَاءِ الرُّكْنِ دترك د طهارت په وجه اوده ته به د واپس کیدو حکم نشی کولې.د امله د واقع کیدو د تحلل په ادا کاوه د رکن سره، إِذِ النُّقْصَانُ يَسِيرٌ، وَلَيْسَ عَلَيْهِ فِي السَّعْيِ شَيْءٌ ځکه چې نقصان لږدې اوبه ده دسعی په اړه کې څه شی نشته لِأَنَّهُ أَتَى بِهِ عَلَى أَثَرِ طَوَافٍ مُعْتَدٍّ بِهِ ځکه چې دسعی د معتدبه طواف نه روسته کړې ده.

حل اللغة° ① وقوع: واقع کیدل ③ یسیر: سپك، آسان ]

تشریح:- وجوب الدم عند اعادة الطواف۞اوکه دې د طواف اوسعی د اعاده نه بغیروطن ته واپس شو.نوپه ده باندې دم واجب شو.ځکه چې په حالت د بې اودسۍ کوم طواف شوې دې.په هغې کې چې کوم نقصان پیدا شوې وو.د هغې پوره والې په دم سره کیږی.اوده ته به دوباره مکې د تلوحکم نشی کولې.ځکه چې ده د عمرې چې کوم ارکان یعنی طواف اوسعی وه.هغه ئې ادا کړی دی.اوکوم نقصان چې راغلې وو.هغه ډیر



معمولی وو.په دم سره پوره شو.اود سعی د عدم اعادې په وجه پرې څه واجب نه دی.ځکه چې ده سعی د داسې طواف نه روسته کړې ده.کوم چې شرعاً معتبر دې.

وَكَذَا إِذَا أَعَادَ الطَّوَافَ وَلَمْ يُعِدِ السَّعْيَ فِي الصَّحِيحِ اودغه ډول حکم دې کله چې ده طواف واپس اوکړو. اوسعی ئې واپس نکړه په صحیح قول کې

تشریح:- عدم وجوب الدم بترک اعادة السعی۞دغه ډول که په حالت د بې اودسۍ کې دعمرې د طواف اعاده اوکړی.اود سعی اعاده اونکړی.هم پرې څه واجب نه دی.البته بعضې عالمان فرمائی.چه په دې صورت کې پرې هم دم واجب ده.

## د سعی په پرېښودو د دم وجوب

وَمَنْ تَرَكَ السَّعْيَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَعَلَيْهِ دَمٌ وَحَجُّهُ تَامٌّ اوچا چې دصفا مروه په درمیان کې سعی پرېښوده نوپده دم دې اوحج ئې پوره دې. لِأَنَّ السَّعْيَ مِنَ الْوَاجِبَاتِ عِنْدَنَا ځکه چې سعی زموږ په نزد دواجباتو څخه ده فَيَلْزَمُ بِتَرْكِهِ الدَّمُ دُونَ الْفَسَادِ نوددې په ترك به دم واجب وی نه چې فساد دحج.

حل اللغة° ① تام: پوره ② بترکه،ترک ترکاً (ن): پرېښول ]

تشریح:- مسئله ښکاره ده.

## دامام نه وړاندې د عرفات نه تلل

وَمَنْ أَفَاضَ قَبْلَ الْإِمَامِ مِنْ عَرَفَاتٍ فَعَلَيْهِ دَمٌ څوك چې دعرفات نه مخکې دامام نه روان شونوپده دم دې.

تشریح:- المذهبان في وجوب الدم بالذهاب قبل الغروب یوم العرفة۞ ① که یوکس د نمرپریوتو نه مخکې د امام نه وړاندې د ډګر عرفات نه لاړلو.نوپه دۀ باندې دم واجب دا دې.هم دا دامام مالك اوامام احمد رحمهما الله یو قول دی.اوامام شافعی رحمه الله هم دا یو قول دې.

قَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا شَيْءَ عَلَيْهِ؛ امام شافعی رحمه الله فرمائی چې پده څه نشته دې وَلِأَنَّ الرُّكْنَ أَصْلُ الْوُقُوفِ فَلَا يَلْزَمُهُ بِتَرْكِ الْإِطَالَةِ شَيْءٌ ځکه چې رکن خونفس وقوف دې نوپه ترك داوږدوالی پرې څه لازم نه دی

حل اللغة° ① لاشیٔ: هیڅ شی نه ② اطالة: اوږدول ]

تشریح:- اود امام شافعی رحمه الله دوهم قول دا دې.چه په ده باندې څه واجب نه دی.

دلیله۞دامام شافعی رحمه الله دلیل دا دې.چه د حج رکن اعظم وقوف عرفات دې.لکه چې د حدیث ﴿الحج عرفة﴾ نه معلومیږی.اود وقوف اوږدول ضروری نه دی.نوکه دې د لمر پریوتو نه وړاندې لاړلو.په ده باندې به دم واجب نه وی.

وَلَنَا أَنَّ الِاسْتِدَامَةَ إِلَى غُرُوبِ الشَّمْسِ وَاجِبَةٌ زمونږ دلیل دادې چې د لمر پریوتلو پورې برابر وقوف واجب دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {فَادْفَعُوا بَعْدَ غُرُوبِ الشَّمْسِ} (1) ځکه چې دنبی ارشاد دې چې تاسو دنمر پریوتلو نه روسته راروانیګئ. فَيَجِبُ بِتَرْكِهِ الدَّمُ نوددې په ترك به دم لازم وی

تشریح:- دلیل الاحناف رحمهم الله۞زمونږ دلیل دا دې.چه لمر پریوتو پورې ایساریدل واجب دې.دنبی ﷺ ارشاد دې ﴿فادفعوا بعد غروب الشمس﴾ یعنی تاسو د عرفات نه د لمر پریوتو نه روسته روانیږئ.اوپه یو روایت کې دی.چه نبی ﷺ په خطبه کې اوفرمائیل. ﴿إن أهل الجاهلية كانوا يدافعون عن هذه الموضع إذا كانت الشمس على رؤس

(1) غربه الزیلعی رحمه الله ثم قال تقدم فی حدیث جابر الطویل فلم یزل واقفاً حتی غربت الشمس كذا فی نصب الرأية (۳/۱۵۴)

الجبال مثل عمائم الرجال في وجوهها وإنا ندفع بعد أن تغيب ﴾ يعني مشركانو به په زمانه دجاهليت كې ددې (عرفات) نه په دې سې وخت كې تګ كولو.چه لمر به د غرونو په سوكو داسې وو.لكه څنګه چې د سرو لنګوټې د هغوی په مخونو باندې نزدې وی.اومونږ به د لمر پريوتو نه روسته روانيږو.ددې دواړو احاديثو نه معلوميږی.چه د لمر پريوتو پورې وقوف اوږدول واجب دی.اودا كس چونكه د لمر پريوتو نه په وړاندې تلو سره د واجبو پريخودونكې شو.نود واجب په پريخودو پرې دم واجبيږی

بخلاف ما إذا وقف ليلًا په خلاف د هغې چې وقوف ئې دشپې كړې وی لأن استدامة الوقوف على من وقف نهارًا لا ليلًا خكه چې برابر وقوف كول هغه دې چې ورځې ئې وقوف كړې وی نه چې دشپې.

تشريح:- السوال التقديری ﴿بخلاف ما إذا وقف.. ﴾ الخ په دې عبارت سره د يو تقديری سوال ځواب وركوی .سوال دا دې.كه يو كس د نهمې ذوالحجه پسې چې كومه شپه راروانه وی.يعنی داختر شپه د هغې په يوه برخه كې وقوف اوكړلو.نودې كس د لمر پريوتو پورې وقوف اوږد نكړلو.پكار ده چې په ده هم دم واجب وې.حالانكه په ده دم نه واجبيږی.

الجواب ﴿ځواب دادې.چه د لمر پريوتو پورې د وقوف اوږدول په هغه چا باندې واجب دی.څوك چې په نهمه ذوالحجه باندې وقوف عرفات اوكړی.اوچونكه دې كس د نهمې ذوالحجه په ورځ وقوف نه دې كړې.بلكه په شپه كې ئې وقوف كړې دې.نوترك د ده په حق كې ترك د واجب نه دې موجود شوې.نوځكه پرې دم هم نه واجبيږی.

فإن عاد إلى عرفة بعد غروب الشمس لا يسقط عنه الدم في ظاهر الرواية بيا كه دنمر پريوتلو نه روسته واپس شو عرفات ته،نونه ساقطيږی دده نه دم په ظاهرروايت كې لأن المتروك لا يصير مستدركًا ځكه چې پريښولې (پريخودې) شوې نه ګرځی رالاندې كړې شوې

عدم سقوط الدم بالرجوع بعدالغروب ﴿صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.كوم كس چې دغروب نه وړاندې تلې وی.اوبيادلمر پريوتو نه روسته واپس راشی.اود امام سره د عرفات نه روان شی.نود ظاهرروايت مطابق دده نه وجوب د دم نه ساقطيږی.ځكه چې د غروب نه وړاندې چې په وقوف كې كوم نقصان راغلې دې.دهغې پوره كول ممكن نه دی.نوځكه دم نه ساقطيږی.

واختلفوا فيما إذا عاد قبل الغروب اوامامانوپه دې صورت كې اختلاف كړې دې كله چې واپس شی مخكې دغروب نه.

تشريح:- سقوط الدم بالرجوع قبل الغروب ﴿اوكه د غروب نه.وړاندې وړاندې دګر عرفات ته واپس راغلو. او بيا د امام سره روان شو.نوپه دې صورت كې هم د امام زفر رحمه الله په نيز دده نه وجوب دم نه ساقطيږی. البته د امام ابوحنيفه اوصاحبينو رحمهما الله په نيز ترې دم ساقطيږی.

## د وقوف مزدلفه په ترك سره وجوب د دم

من ترك الوقوف بالمزدلفة فعليه دم وچا چې پريخودو وقوف د مزدلفې نوپه ده دم دې ولأنه من الواجبات ځكه چې دا د واجباتو څنی دې.

تشريح:- مسئله ښكاره ده.

## د رمی په ټولو ورځو كې ترك د رمی الجماركول

ومن ترك رمي الجمار في الأيام كلها فعليه دم چا چې پرېښودوله رمی دجمرو په ټولو ورځوكې نو په ده دم دې لتحقق ترك الواجب ويكفيه دم واحد د ګنړو واجبو د پرېښودو دمتحقق كيدو په وجه اويودم ورله كافی دې

حل اللغة: ① يكفيه، كفى كفاية (ض) : كافی كيدل ]



تشريح:- د رمی څلور ورځې دی.لسمه يولسمه دولسمه اوديارلسمه كه يوكس د رمې په دې ټولو ورځو كې دشيطانانو ويشتل پريخودل.نوپه ده باندې دم لازم دې.ځكه چې رمی د شيطانانو واجب ده.اود واجب په پريخودو باندې دم لازميږی.نوپه ده دم واجب شو.البته دا چې دټولوورځو د شيطانانو د رمی په پريخودو سره صرف يو دم كافی كيږی.د رمی واړه شمار اويا دې.

لأن الجنس متحد كما في الحلق ځكه چې جنس متحده دې لكه په حلق كښې چې وی.

تشريح:- دليل دا دې.چه د ټولو ويشتلو جنس د ذات په اعتبار سره هم يو دې.اود محل په اعتبار سره هم يو دې. نودا واړه به يوه رمی حسابولې شی.اويودم به واجبولې شی.لكه څنګه چې يومحرم د واړه بدن ويخته اوخرائی.نوپه ده باندې صرف يو دم واجب دې.اګرچه په هغه صورت كې هم صرف يو دم واجبيږی.چه واړه سر يا د سر د څلورمې برخې ويخته اوخرائی.دلته هم د يودم د وجوب علت اتحاد دجنس دې.نولكه څنګه چې د حلق په باب كې يودم واجبيږی.دغه ډول به دلته د رمی په باب كې هم يو دم واجبيږی.

والترك إنما يتحقق بغروب الشمس من آخر أيام الرمي اوترك متحقق كيږی د رمی د ورځو د آخری ورځ په لمر پريوتلو سره لأنه لم يعرف قربة إلا فيها ځكه چې د رمی قربت كيدل معلوم نه دی مګرپه دغو ورځوكې وما دامت الأيام باقية فالإعادة ممكنة فيرميها على التأليف اوترڅو چې دغه ورځې پاته وی نواعاده پكې ممكنه ده نوپه ترتيب سره به تيولې رمئ اوكړی ، ثم بتأخيرها يجب الدم عند أبي حنيفة (¹) خلافًا لهما بيا د رمی په تاخير سره به دم واجب وی په نزد دامام ابوحنيفه رحمه الله په خلاف د صاحبينو رحمهما الله

تشريح:- وقت الرمی ﴿ علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه د رمی پريښول به په هغه وخت كې متحقق كيږی.چه د رمی آخری ورځ يعنی د ديارلسمې ذوالحجه د لمر پريوتو پورې.ځكه چې رمی چې عبادت ګرځولې شوې دې.نوصرف په دې ورځو كې ،اود رمی اعاده ترهغه وخته پورې ممكن ده.چه دا ورځې پاته وی.مثلاً كه په ديارلسمه ورځ ئې د رمې د اعادۀ كاوه اراده اوكړله.نوپه دغه ورځ دې د ټولو ورځو رمی په هغه ترتيب سره اوكړی.څنګه ترتيب چې ئې مقرر شوې دې.په دې صورت كې چونكه رمی د خپل وخت نه روستو شوه.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز پرې دم واجب دې.ځكه چې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز تاخير د واجب موجب د دم دې.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز تاخيرد واجب موجب د دم نه دې.

## د پوره يوې ورځې رمی پريخودل

وإن ترك رمي يوم واحد فعليه دم لأنه نسك تام اوكه ديوې ورځې رمی ئې ترك كړه نو په ده دم دې.ځكه چې دا پوره نسك دې.

تشريح:- وجوب الدم بترك رمی اليوم الواحد ﴿كه يوكس پوره د يوې ورځې رمی پريخودله.نوپه ده باندې دم واجب دې.ځكه چې د يوې ورځې رمی يونسك دې.اودا قاعده ده.چه د په حج كې د يونسك يادهغې د اكثرې برخې په پريخودو باندې دم واجبيږی.نودغه ډول به دلته هم دم واجب وی.

دفع الاشكال ﴿پاتې شوه دا خبره كه د درې واړو ورځو رمی پريږدی.نوهم پرې صرف يودم لازميږی. ځكه چې هلته كې د رمی جنس متحد دې.نود اتحاد جنس د امله په كې تداخل راغلو.اويودم د ټولو ورځو رمی پريخودو لپاره كافی شو.

ومن ترك رمي إحدى الجمار الثلاث فعليه اوكه پاتې ئې كړه د دريوجمرواتو نه د يوې جمرې رمی نوپه ده صدقه

¹) القول الراجح هو هذا قول أبی حنيفة رحمه الله عليه أی وجوب الدم بتركها رأسا وكذا بتاخيرها عن وقتها كذا فی الخانية (١١١٤١) وردالمحتار (٢٢٥١٢) والبحر الرائق (٤١١٣) والهندية (٢٤٧١١) وتبيين الحقائق (٦٣١٢) نقلاً عن القول الراجح (٢٢٧١١)_

ده. الصَّدَقَةُ لِأَنَّ الْكُلَّ فِي هَذَا الْيَوْمِ نُسُكٌ وَاحِدٌ فَكَانَ الْمَتْرُوكُ أَقَلَّ ځکه چې دا درې واړه رمی په دغه ورځ يو نسک دي نومتروك دنيمي نه كم دي

تشريح:- وجوب الصدقة بترك الرمى الواحد۞که يوکس د رمی د ورځونه په يوه ورځ کي د يوې جمرې رمی پريخوده.نوپه ده باندې د نيم صاع غنمو صدقه واجب ده.

دليله۞ځکه چې په يوه ورځ کي درې واړه جمرات ويشتل يونسک دې.اوچه ده د يوې جمرې ويشتل پريخودل.نودا د يونسک د نيمې نه هم کم عمل پريښولې (پريخودې) شو.اوچه ديو نسک د نيم نه هم کم پريښولې (پريخودې) شي.نوپه دې صدقه واجبيږي.نودلته به هم د يوې جمرې د رمی په پريخودو به صرف صدقه واجبيږي.

إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْمَتْرُوكُ أَكْثَرَ مِنَ النِّصْفِ مګردا چې که دنيمې نه زيات وی فَحِينَئِذٍ يَلْزَمُهُ الدَّمُ لِوُجُودِ تَرْكِ الْأَكْثَرِ نواوس به دم لازم وی د اکثر د ترک په وجه.

حل اللغة* ① حل اللغة*① حينئذ : دې وخت

تشريح:- وجوب الدم عندترك اكثرالرمى۞البته دا ده.که د پريښولې (پريخودې) شوی جمراتو رمی د نصف نه زياته وی. مثلاً د ټولوجمراتو ويشتلو شمار يوويشت دې.اوس که ده د لسو ګيټکو ويشتل اوکړل.نوپه ده باندې دم لازم دې.ځکه چې د يوولسو ګيټکو ويشتل پاتې شو.اويوولس اکثر دی.اود اکثر لپاره حکم د کل وی. نو لکه چې ده د درې واړوجمراتو ويشتل پريښولې (پريخودې) دی.اوپه هغه صورت کې دم واجبيږي.نودغه ډول به دلته هم دم واجبيږي.

وَإِنْ تَرَكَ رَمْيَ جَمْرَةِ الْعَقَبَةِ فِي يَوْمِ النَّحْرِ فَعَلَيْهِ دَمٌ اوکه پريخوده ئې د جمره عقبه رمی د قربانئی په ورځ نوپه ده دم دې. لِأَنَّهُ كُلُّ وَظِيفَةِ هَذَا الْيَوْمِ رَمْيًا ځکه چې ده د دغه ورځې ټوله وظيفه د رمی پريښوده دی. وَكَذَا إِذَا تَرَكَ الْأَكْثَرَ مِنْهَا دغه ډول که ده اکثره رمی پريښودله

تشريح:- وجوب الدم بترك الجمرة العقبة۞اوکه يوکس په يوم النحر باندې د جمره عقبه رمی پريخودله.تردې چې ديارلسمه ذوالحجه باندې لمر ډوب شو.نوپه ده باندې دم لازم دې.ځکه چې په يوم النحرصرف د جمره عقبه رمی پوره نسک دې.اوده په يوم النحر باندې رمی پريخودله.نويونسک ئې پريښولو .اود يو نسک په پريخودو باندې دم واجبيږي.نوپه ده باندې هم دم واجبيږي.

دغه ډول که په يوم النحر د جمره عقبه اکثره رمی يعنی څلور ګيټکو باندې ويشتل پريخودل.نوهم پرې دم واجبيږي.ځکه چې مشهوره قاعده ده.چه «للأكثرحكم الكل»

وَإِنْ تَرَكَ مِنْهَا حَصَاةً أَوْحَصَاتَيْنِ أَوْثَلَاثًا اوکه پريښودله ئې د دغې نه يوه ګيټئ يا دوې [دوه] ګيټی يا درې ګيټی تَصَدَّقَ لِكُلِّ حَصَاةٍ نِصْفَ صَاعٍ نوصدقه دې ورکړی د هرې ګيټئ نه نيم صاع إِلَّا أَنْ يَبْلُغَ دَمًا فَيُنْقِصَ مَا شَاءَ مګر که اورسی دا يو دم ته. نوکم دې کړی ترې څومره چې غواړی لِأَنَّ الْمَتْرُوكَ هُوَالْأَقَلُّ فَتَكْفِيهِ الصَّدَقَةُ ځکه چې متروك د نيم نه کم دې نوصدقه به کافی وی.

تشريح:- وجوب الصدقة بترك اقل الرمى۞اوکه يومحرم د وجوب نه روسته دهرې جمرې په رمی کې يو يا دوې [دوه] يا درې يعنی د اکثر نه کم ويشتل پريخودل.نوپه ده باندې د هرې رمی په بدله کې نيم صاع غنم صدقه کول واجب دی.خوکه دا واړه يوځائې شی.اود يوې وزه قيمت ته رسی.نوچه څومره ئې خوښ وی.هغه دې ترې کم کړی.ځکه چې کومه رمی پريښولې (پريخودې) شوې ده.هغه د نصف نه کمه ده.اوچه د نصف نه کمه وی.په هغې کې دم نه وی واجب بلکه صدقه واجب وی.اود صدقې قيمت چونکه د دم سره برابر دې.نوځکه دې په دې کې څه کم کړی.چه د دم برابر نشی.



## د ايام النحر نه حلق روستو کول

وَمَنْ أَخَّرَ الْحَلْقَ حَتَّى مَضَتْ أَيَّامُ النَّحْرِ فَعَلَيْهِ دَمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ،اوچا چې روستوکړوسرخرئيل تر دې چې تير شوې ورځې دقربانئی نو پده دم دې په نزد دامام ابوحنيفه صاحب وَكَذَا إِذَا أَخَّرَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ حَتَّى مَضَتْ أَيَّامُ التَّشْرِيقِ اودا شان کله چې ورستو ئې کړو طواف زيارت تردې چې تيرې شوی ايام تشريق فَعَلَيْهِ دَمٌ په ده باندې دم دې عِنْدَهُ() وَقَالَا: لَاشَيْءَ عَلَيْهِ فِي الْوَجْهَيْنِ اوصاحبين رحمهما الله وائی چې نشته په ده باندې په دواړو صورتونوکې څه څيز. وَكَذَا الْخِلَافُ فِي تَأْخِيرِ الرَّمْيِ اودا شان خلاف دې په تاخير کې وَفِي تَقْدِيمِ نُسُكٍ عَلَى نُسُكٍ او په تقديم دنسک کې په بل نسک باندې

حل اللغة* ① اخر، تاخيراً: روستو کول ② مضت، مضياً (ض): تيريدل ③ نحر، نحراً (ف): قربانی کول

تشريح:- الاختلاف في موجب تاخيرالنسك وتفريع ا لمسائل عليه۞په دې عبارت کې د بيان شوو مسئلو بيان په دې باندې کيخودې شوې دې.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزد نسک په تاخير باندې دم واجبيږي. اودصاحبينو رحمهما الله په نيز نه واجبيږي.امام قدوری رحمه الله فرمائی.①که محرم د ايام النحريعنی لسمه يوولسمه اودولسمه ورځ کې نه حلق اوکړلوانه ئې قصر اوکړلو.نوپه ده باندې دم واجب شو.②دغه که ده طواف زيارت روستو کړلو.نوپه ده دم واجب دې.اوپه ذکرشوې دواړو صورتونوکې د صاحبينو رحمهما الله په نيزقربانی نه ده واجب.③هم دا اختلاف په هغه وخت کې هم دې.چه د يوم النحر رمی د جمره عقبه يعنی دلسمې ذوالحجه رمی يوولسمې ته روستو کړی.يا د يوولسمې رمی دولسمې ته روستو کړی.يا د دولسمې هغه ديارلسمې يا د ديارلسمې هغه څوارلسمې ته روستو کړی.نوپه دې صورتونوکې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز پرې د تاخير په وجه دم واجب دې.اودصاحبينو رحمهما الله په نيز پرې دم نه دې واجب.

كَالْحَلْقِ قَبْلَ الرَّمْيِ وَنَحْرِ الْقَارِنِ قَبْلَ الرَّمْيِ وَالْحَلْقِ قَبْلَ الذَّبْحِ لکه حلق کول رومبې د رمی نه اوقربانی د قارن وړاندې د رمئ نه اود حاجی حلق کول مخکې د ذبحې نه.

تشريح:- الاختلاف في موجب تاخيرالنسك وتفريع ا لمسائل عليه۞اوکه د حج يونسک په بل باندې مقدم کړی.مثلاً ①حلق ئې په رمی د جمرات باندې مقدم کړلو.②يا متمتع يا قارن دم تمتع د رمی نه وړاندې ذبح کړله.③يا محرم د ذبح نه وړاندې حلق اوکړلو.نوپه دې ټولو صورتونوکې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزدم واجبيږي.اودصاحبينو رحمهما الله په نيز نه واجبيږي.

لَهُمَا أَنَّ مَافَاتَ مُسْتَدْرَكٌ بِالْقَضَاءِ دصاحبينو رحمهما الله دليل دادې چې کوم څيزدخپل وخت نه فوت شی هغه په قضا سره موندې کيږی وَلَا يَجِبُ مَعَ الْقَضَاءِ شَيْءٌ آخَرُ اود قضاء سره بل څيزواجب ندې.

تشريح:- دليل الصاحبين رحمهما الله۞دصاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه کوم څيزد خپل وخت نه فوت شی.نودهغې پوره کيدل په قضا سره کيږی.اوچه د کوم شی پوره والې په قضا سره کيږی.نوپه هغې کې بيا بل څه نه واجبيږي.لکه څنګه چې د شريعت د احکامو په لټون سره دا خبره معلوميږی.مثلاً د لمونځ په فوت کې باندې د قضا نه سوې بل څه واجب نه دی.دغه ډول د حج په مسائلو کې هم چې کله په يو نسک کې تاخير اوشی.نوصرف په تاخيره د قضا نه علاوه دم وغيره بل څه نه واجبيږي.

وَلَهُ حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ مَنْ قَدَّمَ نُسُكًا عَلَى نُسُكٍ فَعَلَيْهِ دَمٌ (٢) د امام ابوحينفه رحمه الله دليل

---

(١) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا فی ردالمحتار(٢٢٦\٢) والبحر(٤٢\٣) وتبيين الحقائق (٦٢\٢) وفتح القدير(٤٦٩\٢) نقلاً عن القول الراجح (٢٢٨\١)_

(٢) قال الزيلعی رحمه الله هكذا هو فی غالب النسخ ويوجد فی بعضها ابن عباس رضي الله عنهما وهو أصح رواه ابن ابی شيبة فی مصنفه عن

**حديث د ابن مسعود ﵁ دې دوی فرمائي چې کوم سړي نسك د بل نه ړومبې اوکړو نوپده دم دې**

**تشریح:- دلائل ابی حنیفة رحمه الله** ۞ ① دامام ابوحنیفه رحمه الله دليل دحضرت عبدالله بن مسعود ﵁ حديث دې. اوپه بعضې نسخو کې د حضرت عبدالله بن عباس ﵄ ذکر دې. حديث دا دې. چه چا يونسك په بل باندې وړاندې کړلو. نوپه هغه باندې دم دې.

**وَلِأَنَّ التَّأْخِيرَ عَنِ الْمَكَانِ يُوجِبُ الدَّمَ فِيمَا هُوَ مُوَقَّتٌ بِالْمَكَانِ كَالْإِحْرَامِ فَكَذَا التَّأْخِيرُ** او دا ځکه چې د خپل ځائې نه روستوکول موجب د دم دی. په هغه څيزکې کوم چې دځه ځائې پورې موقت شوی وی لکه احرام **عَنِ الزَّمَانِ فِيمَا هُوَ مُوَقَّتٌ بِالزَّمَانِ** نودا شان تاخير د وخت ځنې به هم موجب د دم وی په هغې کښې چې دوخت سره موقت وی.

**تشریح:-** دوهم دليل دا دې. چه کوم نسك په يومکان پورې مخصوص وی. نوکه د هغې نه روستو شی. دم به واجب وی. لکه که يوکس د ميقات نه تيرشو. اوبيا ئې احرام اوتړلو. نوپه ده باندې دم واجبيږی. دغه شان چې کوم نسك په کومه زمانه پورې خاص وی. دهغې نه روستو شی. نودم به لازميږی. په دې دواړو کې جامع د تاخيرنقصان پيدا کيدل دی.

## دحرم نه علاوه په بل ځائې حلق يا قصر کول

**وَإِنْ حَلَقَ فِي أَيَّامِ النَّحْرِ فِي غَيْرِ الْحَرَمِ فَعَلَيْهِ دَمٌ** که حلق ئې اوکړو په ورځو د قربانۍ کې په غير دحرم نه په حل کې نو پده دم دې **وَمَنْ اعْتَمَرَ فَخَرَجَ مِنَ الْحَرَمِ وَقَصَّرَ فَعَلَيْهِ دَمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ تَعَالَى** (①) او چاچه عمره اوکړه اوبيا د حرم نه بهر لاړو او قصرئې اوکړو پده دم دې د طرفينو رحمهما الله په نزد، **وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا شَيْءَ عَلَيْهِ** او امام ابويوسف رحمه الله وائی چې په ده باندې څه نشته.

**حل اللغة:** ① **اعتمر، اعتماراً:** عمره کول

**تشریح:- المذهبان في المسئلتين** ۞ په دې عبارت کې دوې [دوه] مسئلې ذکردی. ① يوه دا چې يوکس دحج نه روسته دحرم دحدودو نه بهر شی. اوحلق يا قصر ئې اوکړلو. ② دويمه مسئله دا ده. چه يوکس عمره اوکړله. يعنی د عمرې لپاره ئې طواف اوسعی اوکړله. اوبيا د حرم نه بهر شو. اوقصر ئې اوکړلو. نوپه دې دواړو صورتونو کې د طرفينو رحمهما الله په نيز په ده باندې دم واجب دې. اوامام ابويوسف رحمه الله فرمائي. چه په ده باندې څه نه دی واجب.

**قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: ذَكَرَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ قَوْلَ أَبِي يُوسُفَ فِي الْمُعْتَمِرِ** علامه مرغينانی رحمه الله وائی چې په جامع صغير کې ئې قول د ابويوسف رحمه الله د معتمر په اړه کې ذکر کړې دې **وَلَمْ يَذْكُرْهُ فِي الْحَاجِّ** دحاجی په اړه کې ئې نه دې ذکر کړې

**حل اللغة:** ① **ذكر، ذكراً (ن):** ذکر کول ② **معتمر:** عمره کونکې

**تشریح:- عدم ذکرقول ابی یوسف في الحج في الجامع الصغير** ۞ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چه امام محمد رحمه الله په جامع صغيرکې د امام ابويوسف رحمه الله نه د عمرې په اړه کې دا ذکرکړی دی. چه معتمر د عمرې نه روسته د حرم نه بهر قصر اوکړی. نو ه ده باندې څه نشته. خود حاجی په اړه کې چې حاجی د حج نه روسته دحرم نه بهر حلق اوکړی. نودا ذکرئې نه دې کړې. چه په ده څه واجب دی اوکه نه؟

---

ابن عباس ﵄ قال من قم شيأ من حجه أو أخره فليهرق دماً (كذا فى نصب الراية ۳/۱۵۶)_

(۱) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار(۲/۲۲۵) والبحر(۳/۴۲) والتبيين(۲/۶۲) والهندية (۱/۲۴۷) نقلاً عن القول الراجح (۱/۲۲۹)_



**قِيلَ هُوَ بِالِاتِّفَاقِ، لِأَنَّ السُّنَّةَ جَرَتْ فِي الْحَجِّ بِالْحَلْقِ بِمِنًى** او وئيلې شوی دی چې دا حکم په اتفاق دې ځکه چې طريقه جاری ده په حج کې دسرخرئيلو په منی کې **وَهُوَ مِنَ الْحَرَمِ** اومنی دحرم ځنې ده

**حل اللغة:** ① **جرت، جرياً (ض):** جاری کيدل ② **اصح:** ډير صحيح

**تشریح:- رواية اتفاق الائمة رحمهم الله** ۞ بعضې عالمانو رحمهم الله فرمائيلی دی. چه حاجی دحرم نه بهر حلق اوکړی. نوپه ده باندې اتفاق سره د طرفينو اودامام ابويوسف رحمهم الله په نيز دم واجب دې. ځکه چې د رسول الله او د صحابه کرامو ﵃ اوتابعنيو رحمهم الله هم دا طريقه راروانه ده. چه هغوی به په منی کې حلق کولو. اومنی د حرم په حدودو کې ده. نوددې توارث نه معلومه شوه. چه په حرم کې دننه حلق کول واجب دی. او هرکله چې دحرم نه بهرحلق واقع شو. نوواجب پريښولې (پريخودې) شو. اود په ترك د واجبو دم لازميږی. نوپه دې صورت کې هم دم واجبيږی.

**وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ عَلَى الْخِلَافِ** او صحيح داده چې دحاجی حکم هم په اختلاف باندې دې. **هُوَ يَقُولُ الْحَلْقُ غَيْرُ مُخْتَصٍّ بِالْحَرَمِ** ابويوسف رحمه الله فرمائي چې سرخرئيل په حرم پورې خاص دی **لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابَهُ أُحْصِرُوا بِالْحُدَيْبِيَةِ وَحَلَقُوا فِي غَيْرِ الْحَرَمِ**، ځکه چې نبی کريم ﷺ او دده صحابه کرامو ﵃ په حديبيه کې ايسارکړې شول. او دوی په غيردحرم کښې حلق اوکړو

**تشریح:- اختلاف الائمة في مسئلة الحج** ۞ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چه لکه څنګه په دې صورت کې چې دعمرې نه روسته قصر د حرم نه بهر اوکړی. دطرفينو رحمهما الله اوامام ابويوسف رحمه الله په مينځ کې اختلاف دې. نودغه ډول په دې کې ددوی اختلاف دې. چه حاجی د حرم نه بهر حلق اوکړی. نوپه دغه مسئله کې هم د صاحبينو رحمهما الله په نيز پرې دم واجب دې. اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز پرې څه واجب نه دی.

**تشریح:- دليل ابی يوسف رحمه الله** ۞ دامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې. چه حلق په حرم پورې خاص نه دې. ګورئ نه چې د صلح حديبيه په موقع کله چې نبی ﷺ اوصحابه کرام ﵃ د عمرې نه منع کړې شول. نونبی ﷺ اوصحابوﷺ په مقام حديبيه کې حلق اوکړل. اومقام حديبيه د حرم نه بهر ده. نومعلومه شوه. چه دحلق په حرم پورې خاص اوواجب نه دې. اوچه هرکله واجب نشو. نوکه د حرم نه بهرحلق واقع شی. واجب ترك نشو. اوچه واجب ترك نشو. نودم هم واجب نشو.

**وَلَهُمَا أَنَّ الْحَلْقَ لَمَّا جُعِلَ مُحَلِّلًا صَارَ كَالسَّلَامِ فِي آخِرِ الصَّلَاةِ فَإِنَّهُ مِنْ وَاجِبَاتِهَا**، رحمهما الله دليل دادې چې هرکله حلق حلالونکې مقررکړې شو. نوشو پشان دسلام په آخر دلمانځه کې ځکه چې سلام هم د لمانځه د واجباتو ځنې دې **وَإِنْ كَانَ مُحَلِّلًا، فَإِذَا صَارَ نُسُكًا اخْتَصَّ بِالْحَرَمِ كَالذَّبْحِ** اود طرفينو اګر چې محلل دې. اوکله چې حلق نسك مقررشونوذبحې پشان به دا هم په حرم پورې خاص وی.

**تشریح:- دليل الطرفين رحمهما الله** ۞ د طرفينو رحمهما الله دليل دا دې. چه حلق اګرچه حلالونکې دې. خوبيا هم دا د واجباتود حج ځنې دې. لکه څنګه چې سلام حلالونکې يعنی د لمانځه نه ويستونکې هم دې. اود لمونځ د واجباتوځنې دې. اوهرکله چې حلق دحج دواجباتوځنې دی. نودا د حرم سره خاص شو. ځکه چې دحج ځومره واجبات دی. هغه د حرم پورې خاص دی. اوچه د حرم نه بهر حلق واقع شی. نوواجب پاتې شو. اوچه واجب پاتې شی. نودم واجبيږی. نودلته هم دم واجبيږی.

**وَبَعْضُ الْحُدَيْبِيَةِ مِنَ الْحَرَمِ فَلَعَلَّهُمْ حَلَقُوا فِيهِ** او بعضې برخه دحديبيه دحرم ځنی ده. نوممکنه ده چې اصحابو ﵃ په دغه برخه کې حلق کړی وی.

**تشریح:- الجواب من دليل ابی يوسف رحمه الله** ۞ پاتې شوه د امام ابويوسف رحمه الله دا خبره چې نبی ﷺ اوصحابه کرامو ﵃ په حديبيه کې حلق کړې وو. اوحديبيه د حرم نه بهر ځائې دې. نودا خبره غلطه ده. چه حديبيه د حرم نه بهرده. بلکه ددې څه برخه په حرم کې ده. نوممکن ده. چه صحابو ﵃ په هغه ځائې کې حلق کړې وی. کوم چې

د حرم په حدودو کي وو.

فَالْحَاصِلُ أَنَّ الْحَلْقَ يَتَوَقَّتُ بِالزَّمَانِ وَالْمَكَانِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ لنډه دا چي سرخرئيل د زمان اومکان دواړو سره موقت دی په نزد دامام ابوحنيفه وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ لَا يَتَوَقَّتُ بِهِمَا اود امام ابويوسف رحمه الله په نزد په يو پوري هم موقت نه دی وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ يَتَوَقَّتُ بِالْمَكَانِ دُونَ الزَّمَانِ اوپه نزد دامام محمد رحمه الله په مکان پوري موقت دی نه چي په زمان پوري. ، وَعِنْدَ زُفَرَ يَتَوَقَّتُ بِالزَّمَانِ دُونَ الْمَكَانِ اود امام زفر رحمه الله په نزد په زمان پوري موقت دي نه چي په مکان پوري.

تشريح:- **المذاهب الاربعة في تخصيص الزمان والمكان للحلق**۞ ① صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی. چه په حج کي حلق د زمان اومکان دواړو سره خاص دي. زمان ئې ايام النحر دی. اومکان ئې حرم دي. نوکه حلق د ايام النحر نه روسته واقع شو. نوهم دم واجب شو. ځکه چي ددې په خپل وخت کي کول واجب دی. اوکه په ايام النحر کي حلق اوکړی. خود حرم نه بهر اوکړی. نوهم دم لازميږی. ځکه چې په دې صورت کي هم واجب ترک شو. اوپه ترک د واجبو دم واجبيږی. ② اودامام ابويوسف رحمه الله په نيزحلق د زمان اومکان دواړو سره خاص نه دي. نوکه د ايام النحر نه علاوه په نورو ورځوکي ئې حلق اوکړلو. يا ئې د حرم نه سوې په بل ځائې کي حلق اوکړلو. نوپه دې دواړو صورتونو کي پرې دم نه واجبيږی. ③ اودامام محمد رحمه الله په نيز حلق په حرم پورې خاص دې. اوپه زمان پورې خاص نه دې. نوکه د حرم نه بهر ئې حلق اوکړلو. دم پرې واجبيږی. اوکه د ايام النحر نه سوې په نورو ورځوکي ئې حلق اوکړلو. نودم پرې نه واجبيږی. ④ اودامام زفر رحمه الله په نيز حلق په زمانې پورې خاص دې. اوپه مکان پورې خاص نه دې. نوکه دحرم نه بهر ئې حلق اوکړلو. دم پرې نه واجبيږی. اوکه دايام النحرنه سوې په نورو ورځوکي حلق اوکړلو. نودم پرې واجبيږی.

وَهَذَا الْخِلَافُ فِي التَّوْقِيتِ فِي حَقِّ التَّضْمِينِ بِالدَّمِ اودا خلاف په توقيت کي په قربانۍ سره دضمان لازم کيدو په حق کي دې وَأَمَّا فِي حَقِّ التَّحَلُّلِ فَلَا يَتَوَقَّتُ بِالِاتِّفَاقِ پاتې شو داحرام نه دوتلو په حق کي نو په اتفاق موقت نه دې

تشريح:- **نوعية الاختلاف في المسئلة**۞ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی. چه دامامانوپه مينځ کي چې دا کوم اختلاف دې. نودا دم په وجوب اوعدم وجوب کي دې. يعنی څوک چي حلق د زمان اومکان پورې خاص کوی. نوکه په دغه زمان يا مکان کي اونشو. نودم پرې لازميږی. اوڅوک چي ئې په زمان او مکان پورې نه خاص کوی. دهغوی په نيزکه په دغه زمان يامکان کي اونشی. نوڅه نه واجبيږی. اوپه دې کي د ټولو په مينځ کي که د توقيت اومکان قائلين دی اوکه نه دی. چه په دغه حلق باندې حلاليدل واقع کيږی. يعنی د ټولو په نيزدغه حاجی په حلق سره حلاليږی.

## په عمره کي دحلق يا قصرد زمان يا مکان سره عدم تخصيص

وَالتَّقْصِيرُ وَالْحَلْقُ فِي الْعُمْرَةِ غَيْرُ مُوَقَّتٍ بِالزَّمَانِ بِالْإِجْمَاعِ اوقصراوحلق په عمره کښې د زمان سره موقت نه دې په اجماع سره.

حل اللغة° ① تقصير: قصرکول ② موقت: مقررول ]

تشريح:- **عدم التوقيت للحلق والقصرفي العمرة**۞ صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی. چه په عمره کي دحلق يا قصر لپاره څه زمانه خاص نه ده. بلکه چې په کومه زمانه کي ئې کوی بغيرد اختلافه صحيح ده. ځکه چي عمره د هيڅ وخت سره خاص نه ده. بلکه چې کله غواړی نوعمره کولې شی. ځکه چې عمره نوم دې د طواف اوسعی اوطواف اوسعی نوم دې د عمرې ، نود عمرې لپاره څه وخت متعين نه دې.

لِأَنَّ أَصْلَ الْعُمْرَةِ لَا يَتَوَقَّتُ بِهِ ځکه چې پخپله عمره د زمان سره موقت نه ده.

تشريح:- **وجه كراهة العمرة في ايام الحج**۞ پاتې شوه دا خبره چې د حج په موسم کي عمره مکروه ده. نوددې وجه



دا نه ده. چه عمره د موسم حج نه علاوه د نورو ورځو سره خاص ده. بلکه په موسم حج کي عمره ځکه مکروه ده. چه په دغه وخت کي د حج د افعالو ادا کاوه د امله ګنړه وی. نوکه په دغه وخت کي عمره ادا کوی. نوحاجيانوته به تکليف وی.

بِخِلَافِ الْمَكَانِ، لِأَنَّهُ مُوَقَّتٌ بِهِ په خلاف دمکان نه ځکه چي اصل عمره دمکان سره موقت ده.

تشريح:- **لمذهبان في تخصيص الحلق بالحرم**۞ البته دومره ده چې عمره د مکان يعنی حرم سره خاص ده. ① نوحلق اوقصر هم د طرفينو رحمهما الله په نيز د حرم پورې خاص دې. ② اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز دحرم پورې خاص نه دې.

## وطن ته د تلو نه روسته دوباره واپس کيدل اوقصرکول

قَالَ فَإِنْ لَمْ يُقَصِّرْ حَتَّى رَجَعَ وَقَصَّرَ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا که عمره کوونکی قصراونکړو تردې چې واپس شو اوپه حرم کي ئې قصراوکړو نوڅه پرې نشته د ټولو په قول کي. ٥عَنَاهُ: إِذَا خَرَجَ الْمُعْتَمِرُ ثُمَّ عَادَ، لِأَنَّهُ أَتَى بِهِ فِي مَكَانِهِ فَلَا يَلْزَمُهُ ضَمَانُهُ ددې معنی داده چې معتمر دحرم نه اووتلو بيا واپس شوځکه چې ده دا په خپل ځائې کي اوکړلو. نوضمان به پرې لازم نه وی.

حل اللغة° ① رجع، رجوعًا (ض): واپس کيدل ② جميعًا: واړه ③ خرج، خروجًا (ن): وتل ]

تشريح:- مسئله دا ده. که معتمردعمرې ارکان يعنی طواف اوسعی اوکړله. اوبيا دحرم نه بهر ته لاړلو. اوبهر ئې هم قصر اونکړلو. اوبيا واپس حرم ته داخل شو. اوقصريا حلق ئې اوکړلو. نوپه اتفاق دعالمانو رحمهم الله په ده باندې څه واجب نه دی. ځکه چې ده قصر هم په خپل محل کي اوکړلو. نود څه د واجب کيدو سوال پيدا نشو.

## د قارن د ذبح نه وړاندې حلق کول

فَإِنْ حَلَقَ الْقَارِنُ قَبْلَ أَنْ يَذْبَحَ فَعَلَيْهِ دَمَانِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ[1] که قارن دذبحې نه مخکې سراوخرئيلو نوپه ده دوې [دوه] دمونه دی. دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دَمٌ بِالْحَلْقِ فِي غَيْرِ أَوَانِهِ، لِأَنَّ أَوَانَهُ بَعْدَ الذَّبْحِ يو قربانی د بې وخته حلق کاوه په وجه، ځکه چې ددې وخت دذبحې نه روسته دې وَدَمٌ بِتَأْخِيرِ الذَّبْحِ عَنِ الْحَلْقِ اويوه قربانی په ذبحې د حلق نه روستو کاوه په وجه

حل اللغة° ① حلق، حلقًا (ض): خرول

تشريح:- **المذهبان في جزاء تقديم الحلق وتاخيرالذبح**۞ صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی. ① که حاجی قارن د ذبح نه وړاندې حلق اوکړلو. نوپه ده باندې دوې [دوه] دمونه لازم شول. يودم خوددې امله چې ده حلق دخپل وخت نه وړاندې اوکړلو. ځکه چې د حلق وخت د ذبح نه روسته دې. او دوهم دم ددې امله چې په ذبح کي ئې تاخيراوکړلو. ځکه چې ذبح د حلق نه وړاندې وی. اوده ده روستواوکړله. اودم قران ددې دوو نه علاوه دې. ځکه چې دا دواړه دمونه خود جنايت دی. نوګويا چې په دې صورت کي دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز باندې درې دمونه لازم دی. يودم قران او دوې [دوه] دم جنايت،

وَعِنْدَهُمَا يَجِبُ عَلَيْهِ دَمٌ وَاحِدٌ وَهُوَ الْأَوَّلُ اودصاحبينو رحمهما الله په نزد يوه قربانی ده اوهغه مخکې ده. ، وَلَا يَجِبُ بِسَبَبِ التَّأْخِيرِ شَيْءٌ عَلَى مَا قُلْنَا اوپه سبب د تاخير پرې څه واجب نه دی لکه چې موږ وئيلی دی.

تشريح:- اودصاحبينو رحمهما الله په نيز په ده باندې اول دم واجبيږی. يعنی د تقديم د حلق په وجه پرې دم

---

[1] القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الكافية في صدر فتح القدير(۲\۴۷۲) وردالمحتار(۲\۲۲۶) ومجمع الأنهر(۱\۲۹۷) والهندية (۱\۲۴۷) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۳۰)-

لازميږي.اود تاخيرپه وجه پرې دصاحبينو رحمهما الله په نيز څه نه واجبيږي.

**سهوصاحب الهداية**: د صاحب د قدورى رحمه الله د عبارت نه دا معلوميږي.چه د صاحبينو رحمهما الله قول (وهوالأول) كې د اول نه مراد هغه دم مراد دې.كوم چې د بې وخته حلق په وجه واجب شوې دې. حالانكه داسې نه ده.څكه چې د صاحبينو رحمهما الله په نيزلكه څنګه چې په تاخيرد نسك څه نه واجبيږي.دغه دول په تقديم باندې هم څه نه واجبيږي.بلكه داول نه مراد دم قران دې.

**السهوفي نقل مذهب ابى حنيفة**: اودامام ابوحنيفه رحمه الله د مذهب په نقل كاوه كې هم د صاحب دقدورى رحمه الله نه سهو شوې ده.څكه چې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په تقديم اوتاخيردواړو باندې يو دم واجبيږي.اوبل دم ،دم قران دې.نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز مجموعه دوې [دوه] دمونه دى.درې نه دى لكه څنګه چې صاحب د قدورى رحمه الله فرمائى.

## د ښځوځناورونه سوې د محرم لپاره د وو چې د ښكارحرمت

فَصْلٌ: اِعْلَمْ أَنَّ صَيْدَ الْبَرِّ مُحَرَّمٌ عَلَى الْمُحْرِمِ پوهه شه چې د اوچې ښكار حرام شوې دې په محرم باندې وَصَيْدُ الْبَحْرِ حَلَالٌ اود درياب ښكار حلال دې

**حل اللغة**: ① صيد: ښكار ② بر: اوچه

**تشريح:- تحليل صيدالبحر**: ماتن رحمه الله فرمائى.چه د محرم لپاره د وچې ښكار حرام دې.كه دده خپل مملوك وى.اوكه مباح وى.كه ماكول اللحم وى اوكه غيرماكول اللحم وى.البته د اوبوښكار ورله جائز دې.

لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى [أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ] اِلٰى آخِرِ الْآيَةِ په دليل د قول دالله ﷻ [أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ] تر آخر آيته پورې.

**تشريح:- دليله**: دليل دالله تعالى ارشاد دې. [أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهٗ مَتَاعًا لَّكُمْ] يعنى ستاسو لپاره د اوبود ښكاراود هغې خوراك حلال كړې شوې دې.دا ستاسو لپاره فائده دركول دى.

وَصَيْدُ الْبَرِّ مَا يَكُوْنُ تَوَالُدُهٗ وَمَثْوَاهُ فِي الْبَرِّ اود اوچې ښكار هغه دې چې زيږيدل اواوسيدل ئې په اوچه كې وى. وَصَيْدُ الْبَحْرِ مَا يَكُوْنُ تَوَالُدُهٗ وَمَثْوَاهُ فِي الْمَاءِ اود اوبو ښكار هغه دې چې زيږيدل او اوسيدل ئې په اوبو كې وى، وَالصَّيْدُ هُوَ الْمُمْتَنِعُ الْمُتَوَحِّشُ فِيْ أَصْلِ الْخِلْقَةِ اوښكار هغه ځناور دې چې په لاس نه راتلونكې اوپه اصلى خلګت كې وحشى وى

**حل اللغة**: ① توالد: تناسل: د بعضې د بعضونه پيداكيدل ② مثوى: منزل،تكانه ③ متوحش: تورپونه وهونكې، غيرمانوس ④ خلقة: زيږيدل

**تشريح:- تعريفات الاشياء الثلاثة**: علامه مرغينانى فرمائى.① چه د وچې ښكار هغه دې.چه دهغې زيږيدل اوژوند تيرول په وچه وى.② اود اوبوښكار هغه دې.چه دهغې زيږيدل اوژوند په اوبو كې وى.③ اوښكار هغه دې.چه هغه خان د ښكارى نه بچ ساتى.اودخپل حلقت په اعتبار سره ځنګلى وى.

وَاسْتَثْنٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْخَمْسَ الْفَوَاسِقَ او مستثنى كړى دى نبى ﷺ پنځه فواسقولره. وَهِيَ: اَلْكَلْبُ الْعَقُوْرُ، وَالذِّئْبُ وَالْحِدَأَةُ، وَالْغُرَابُ وَالْحَيَّةُ، وَالْعَقْرَبُ (1) اوهغه چيچوونكې سپې، شرمخ، او تپوس اومارغه اومارا ولړم دى.

**حل اللغة**: ① فواسق: خبيث، بدكار ② عقور: چكونه لګونكې ③ اذى: تكليف ④ ذئب: شرموښ ⑤ حداة:

(1) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه البخارى فى جزاء الصيد باب ٧ ومسلم فى الج رقم ٧٢ وأبوداود فى المناسك باب ٣٩ وابن ماجه فى المناسك باب ٩١ والدارمى فى المناسك باب ١٩ وأحمد فى المسند (٨/٢)



تپوس ⑥ حية: مار ⑦ عقرب: لړم

**استثناء الاشياء الخمسة**: وړاندې تيرشوچه د وچې د ځناورو قتلول د محرم لپاره ناجائزدى.خونبى ﷺ د پنځه قسمه سركښه (سركشه) ځناورو د قتل اجازت وركړې دې.① ليونې سپې ② شرمخ ③ شكره، ④ كارغه ⑤ مار ⑥ لړم

**وجه تسمية الفاسق**: په حديث كې لفظ د «فواسق» راغلې دې.(دا ځناور فواسق دى) فواسق جمع د فاسق ده.چونكه د ځناور پليت اوضررى دى.څكه ورته فاسق نوم كيخودې شوې دې.

**عدم المطابقة بين الشرح والحديث**: په حديث كې لفظ د خمس(پنځه) راغلې دې.او علامه مرغينانى شپږ ځناورذكركړى دى.① ددې يوځواب دا دې.چه په حديث كې شرموښ د ليونى سپى سره يوځائې كړې شوې دې. ② دوهم ځواب دا دې.چه په حديث كې د عدد بيانول ددې منافى نه دې.چه ددې څخه به زيات نه وى.لكه څنګه چې په بعضې احاديثو كې د مګې اوزمرى د وژلو اجازت هم موجود دې.

فَإِنَّهَا مُبْتَدِئَاتٌ بِالْأَذٰى څكه چې دوى مخكې كيږى په آزار رسولو كنبې وَالْمُرَادُ بِهِ الْغُرَابُ الَّذِيْ يَأْكُلُ الْجِيَفَ هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ اودغراب نه مراد هغه قارغه دې كوم چې مردارى خورى اوداسې روايت دې دامام ابويوسف رحمه الله نه.

**تشريح:- وجه جوازالقتل**: بهرحال د احرام په حالت كې ددې ځناورو د وژلو اجازت څكه وركړې شوې دې. چې دوى بغيرد څه تعرض نه په تكليف رسولوكې وړاندې والې كوى.اوپه حديث كې هغه كارګه (كارغه) مراد دې.كوم چې چتلې اومردارى خورى.اوكوم كارګه (كارغه) چې د پټى فصل خورى.هغه مراد نه دې.دا د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دى.

## دمحرم ښكاركول يا بل چاته خودل

قَالَ: وَإِذَا قَتَلَ الْمُحْرِمُ صَيْدًا أَوْ دَلَّ عَلَيْهِ مَنْ قَتَلَهٗ فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ كله چې محرم ښكار قتل كړو يا ئې ددې خودنه اوكړه هغه چاته چې دې ئې قتل كړونو پده جزاء د

**حل اللغة**: ① قتل،قتلاً (ن): قتل كول، وژل

**تشريح:- صورتئ الصيد**: مسئله، ① كه محرم په خپله ښكارقتل كړلو.② يا ئې ښكارى ته اوخودل.چه فلانى ځائې كې ښكار دې.اوهغه مدلول دغه ښكارقتل كړلو.نوپه دې دواړو صورتونوكې په محرم باندې دم واجب دې.

أَمَّا الْقَتْلُ فَلِقَوْلِهٖ تَعَالٰى {لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ وَمَنْ قَتَلَهٗ مِنْكُمْ مُتَعَمِّدًا فَجَزَاءٌ} الْآيَةَ د قتل په صورت كې څكه چې دحق تعالى ﷻ ارشاد دې مه وژنئ ښكاركله چې تاسو په احرام كې اوڅوك چې ئې مړكړى ستاسونه قصدا نوپه ده دم دې. نَصَّ عَلٰى إِيْجَابِ الْجَزَاءِ دا آيت په جزاء واجب كولوكې نص صريح دې

**حل اللغة**: ① متعمداً: په قصد سره

**تشريح:- دليله**: چه په خپله ښكارقتل كړى.نوپه دې صورت كې د دم د وجوب لپاره د الله تعالى دا ارشاد دليل دې. [لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ] يعنى تاسوښكار مكوئ په دې سې حال كې چې تاسو په احرام كنبې ئې.اوچا چې په قصد سره قتل كړلو.نوپه ده باندې دهغه پشان په ځناورو كې جزاء واجب ده.

وَأَمَّا الدَّلَالَةُ فَفِيْهَا خِلَافُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ پاتې شوخودل نوپه دې كې خلاف دې دشافعى رحمه الله

**تشريح:- الصورالعقلى للدلالة**: د دلالت په صورت كې د عقل په اعتبارسره واړه څلور صورتونه جوړيږى.① دال اومدلول دواړه حلال وى.② دال اومدلول دواړه محرم وى.③ دال حلال اومدلول محرم وى.④ دال محرم اومدلول حلال وى.

وحکم کل واحدمنها﴿اولنی صورت زمونږ بحث نه بهردې. دوهم کې په دې ل اومدلول دواړو باندې جزاء ده.په دریم صورت کې په مدلول باندې اوپه څلورم صورت کې په دې ل باندې جزاء ده.

هويقول: الجزاء تعلق بالقتل، والدلالة ليست بقتل دوی فرمائی چې دجزاء تعلق دقتل سره دې اود خودل قتل نه دې ،فأشبه دلالة الحلال حلالاً.نو دا مشابه شو دخودلو دحلال حلال ته.

**تشریح:- خلاف الشافعی** رحمه الله﴿دامام شافعی رحمه الله مذهب دا دې.چه په دې ل باندې په هیڅ صورت کې جزاء نشته.هم دا دامام مالك رحمه الله قول دې.

**دلیله**﴿دامام شافعی رحمه الله دلیل د الله تعالی ارشاد دې[لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنتُمْ حُرُمٌ ۚ وَمَن قَتَلَهُ مِنكُم مُّتَعَمِّدًا فَجَزَاءٌ مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ] په دې کې جزاء د قتل سره متعلق شوې ده.نوجزاء به په هغه چا وی. دچا نه چې قتل صادر شوې وی.نوپه دې ل باندې جزاء نشته.دا مسئله ددې پشان ده.چه دال اومدلول دواړه حلال وی. او دال مدلول ته په حرم کې دننه د ښکار لوخودنه اوکړی.اومدلول په حرم کې ښکار اوکړی.نوپه دې ل باندې جزاء نشته.البته په مدلول دې امله شته.چه هغه په حرم کې دننه ښکار اوکړلو.نودغه ډول په دې مسئله کې به هم په دې ل باندې جزاء نه وی.

ولنا ما روينا من حديث أبي قتادة رضي الله عنه.اوزموږ دلیل هغه روایت دې. کوم چې نقل شوې دې په دحدیث دابی قتاده رضی الله عنه نه

**تشریح:- دلائل الاحناف** ① ﴿ زمونږدلیل دحضرت ابوقتاده رضی الله عنه حدیث دې.کوم چې د احرام په باب کې تیرشوې دې. ﴿أنه أصاب حمار وحش وهو حلال وأصحابه محرمون فقال النبي ﷺ هل أشرتم هل أدللتم هل أعنتم. فقالوا لا فقال ﷺ إذا فكلوا﴾ د حدیث ژباړه اووجه د استدلال وړاندې تیره شوې ده.

وقال عطاء رحمه الله: أجمع الناس على أن على الدال الجزاء[1] اوعطا کې .فرمائی چې اجماع کړې ده خلګو په دې چې په خودونکی باندې جزاء ده.

**تشریح:-** دوهم دلیل دحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما د شاګرد رشید عطاء بن ابی رباح رحمه الله قول دې.چه د خلګو په دې باندې اجماع ده.چه د حرم د ښکار اوخ ته اشاره کونکی باندې جزاء ده.اوامام طحاوی رحمه الله فرمائیلی دی.دهیڅ صحابی رضی الله عنه نه ددې خلاف قول نقل نه دې.نوپه دې باندې اجماع شوه.چه په دې ل باندې جزاء واجبیږی

ولأن الدلالة من محظورات الإحرام اودا خکه چې دلالت د احرام دممنوعاتوڅخنی دې

**حل اللغة** * ① **محظورات:** ممنوعات

**تشریح:-** دریم دلیل دا دې.چه په حالت داحرام کې په ښکار باندې دلالت کول د احرام د ممنوعاتوڅخنی دې.نوچه د احرام په ممنوعاتوکې د یوممنوع ارتکاب اوشی.په هغې به خامخا ترتب د جزاء وی.

ولأنه تفويت الأمن على الصيد اوخکه چې خودل دښکار نه امن ورکول دی. إذ هو آمن بتوحشه وتواريه فصار كالإتلاف خکه چې ښکار دخپل وحشی کیدلو او پټیدلو په وجه په امن کې وی.نودا د تلف کولو پشان شو.

(١) قال الزيلعي رحمه الله قلت غريب وعطاء هذا كان ابن ابی رباح صرح به فی المبسوط وغیره وذكره ابن قدامة فی المغنی عن علی وابن عباس رضي الله عنه وقال الطحاوی رحمه الله هو مروی عن عدة من الصحابة رضي الله عنه ولم يرو عنهم خلافه فكان إجماعاً (نصب الرأية ١٦١/٣)



**تشریح:-** څلورم دلیل دا دې.چه په دلالت کاوه سره د ښکار امن زائله کیږی.خکه چې ښکار د خپل وحشت اود خلګو نه خان ساتلو په وجه په امن وی.خوچه ده پرې دلالت اوکړلو.اومدلول هغه قتل کړلو.نوهغه امن ده ختم کړلو.نودا داسې شوه لکه چې دغه خناور ده هلاك کړلو.اود خناور په هلاکاوه سره جزاء واجبیږی.نودغه ډول به په دې صورت کې هم جزاء واجبیږی.

ولأن المحرم بإحرامه التزم الامتناع عن التعرض اوخکه چې محرم دخپل احرام په وجه دښکارد تعرض نه د منع کیدو التزام کړې دې. فيضمن بترك ما التزمه كالمودع نود کوم شی چې ده التزام کړې دې دهغې په ترك سره به ضامن وی لکه امانت کیخودونکې بخلاف الحلال لأنه لا التزام من جهته په خلاف دحلال سړی.چه ده دارخه څه التزام نشته

**تشریح:-** پنځم دلیل دا دې.چه محرم د احرام په تړلوکې په خان باندې دا لازمه کړې وه.چه زه به د ښکار خناورو نه تعرض نه کوم.چه ده دلالت اوکړلو.نود هغه الزام خلاف ئې اوکړلو.اوچه د الزام خلاف اوشی.نوپه دې سې صورت کې ضمان واجبیږی.نوخکه په ده باندې ضمان یعنی جزاء واجبیږی.لکه څنګه چې یوکس د چا مال د خان سره امانت ایخودې وی.اوده د هغې د ساتنه په خان باندې التزام کړې دې.اوس که دې هغه التزام پریږدی.اوهغه مال هلاك شی.نودې به ضامن وی.

على أن فيه الجزاء على ما روي عن أبي يوسف وزفر رحمهما الله سوي ددې نه چې په دې کې جزاء ده. بناء په هغې چې دامام ابویوسف اود امام زفر رحمهما الله نه روایت دې

**تشریح:-** ددې نه علاوه د حضرت امام ابویوسف اوامام زفر رحمهما الله نه نقل دی.که دال د حرم د ښکار دلالت کړې وی.نوپه دې باندې هم جزاء واجب ده.ددې روایت مطابق د امام شافعی رحمه الله په حلال باندې قیاس کول هم ټیك نه دی.(خکه چې مقیس علیه هم مختلف فیه شوه.اوقیاس په هغه وخت کې صحیح کیږی.چه مقیس علیه د خصم په نیز منلې شوې وی)

والدلالة الموجبة للجزاء أن لا يكون المدلول عالماً بمكان الصيد اوموجب دجزاء هغه دلالت دې چې چا ته ئې دلالت کړې وی هغه ته پخپله د ښکار خائې معلوم نه وی وأن يصدقه في الدلالة حتى لو كذبه وصدق غيره لا ضمان على المكذب اودا چې هغه دلالت کوونکې رښتونې اوګڼړی تردې که مدلول دلالت کوونکې دروغژن کړلو. او دبل سړی تصدیق ئې اوکړو نو په دغه دروغژن شوی ضمان نشته. ولو كان الدال حلالاً في الحرم لم يكن عليه شيء لما قلنا اوکه دلالت کوونکې حلال وو په حرم کې نو په ده به هیڅ نه وی لکه چې موږ وئیلی دی.

**تشریح:- شروط الدلالة الموجبة**﴿صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه هغه دلالت په کوم چې جزاء واجبیږی.① شرط په کې دا دې.چه مدلول ته د ښکار خائې معلوم نه وی.اوکه هغه ته د ښکار خائې معلوم وی.نوپه ده دال باندې جزاء نه واجبیږی. ② دوهم شرط دا دې.چه مدلول دال لره رشتینې ګنډلې وی.اوکه مدلول دال لره دروغژن کړلو.اود بل کس په خبره ئې باور اوکړلو.اوښکار ئې اوکړلو.نوچه خوك ئې دروغژن ګنډلې دې په هغه جزاء نشته.البته هغه غیر که محرم وی.نوپه هغه باندې جزاء واجب ده.اوکه دال په حرم کې حلال وی.نوپه ده باندې جزاء نه واجبیږی.دلیل وړاندې تیر شوې دې.چه ده د ارخه د څه شی التزام نشته.(لکه محرم چې په حالت د احرام کې په خان باندې د ښکار نه کاوه التزام کړې وی.)

### د عامداوناسی په قتل اودلالت کې برابرتیا

وسواء في ذلك العامد والناسي اوبرابردی په ضمان ددې کښې قصداً کوونکې اوپه هیره کوونکې

**حل اللغة** * ① **سواء:** برابر ② **عامد:** په قصدسره کونکې ③ **ناسی:** هیرونکې

**تشریح:- استواء العامد والنسيان في جزاء الصيد**﴿صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه د ښکاریه قتل کې دغه ډول ددې په دلالت کې په قصد سره قتل کونکې اودلالت کونکې اوپه هیره سره قتل کونکې او دلالت کونکې

دواړه برابر دي. يعني لكه څنګه چې په په قصد سره قتل كاوه اودلالت كولو په صورت كي جزاء واجبيږي. دغه ډول په هيره سره هم جزاء واجبيږي. چه دده هيروي. چه زه خو محرم يم.

| لِأَنَّهُ ضَمَانٌ يَعْتَمِدُ وُجُوبُهُ الْإِتْلَافَ فَأَشْبَهَ غَرَامَاتِ الْأَمْوَالِ څكه چې دا داسې ضمان دې چې وجوب ئې داعتماد په تلف كاوه باندې دې نو دمالي نقصانونو سره مشابه شو. |
|---|

تشريح:- دليله ﴿ څكه چې جزاء داسې ضمان دې. چه دا په اتلاف يعني هلاكت پورې متعلق كيږي. نو كه دغه اتلاف په قصد راغلې وي اوكه په هيره په دواړو صورتونوكي به ضمان واجب وي. دا د مالي تاوان سره مشابه شو. لكه څنګه چې كه د چا مال په قصد سره يا په هيره سره هلاك كړي. نوپه دواړو صورتونوكي په دې هلاكونكي ضمان واجبيږي. دغه ډول د ښكار په صورت كي هم،

| وَالْمُبْتَدِئُ وَالْعَائِدُ سَوَاءٌ لِأَنَّ الْمُوجِبَ لَا يَخْتَلِفُ اواول څل كوونكې اوپه دوهم څل كوونكې پكي برابر دي څكه چې موجب نه مختلف كيږي. |
|---|

تشريح:- استواء البادى والعائد في الجزاء ﴿ دويمه مسئله دا كوي. كه په ښكار باندې اول چور كونكې اودوباره پرې حمله كونكې دواړه په جزاء كي برابر دي. يعني كه يو ښكار وي اوله چور پرې زيد اوكړي. اودويمه چور پرې بكر اوكړي. نوزيد اوبكر دواړه په جزاء كي برابردي. په هريوباندې به جزاء د ښكار وي.

## د شيخينو ﷫ په نيزپه جزاء كې د قيمت وجوب

| وَالْجَزَاءُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ أَنْ يُقَوَّمَ الصَّيْدُ فِي الْمَكَانِ الَّذِي قُتِلَ فِيهِ وجزاء د شيخينو ﷫ په نزد داده چې قيمت دې اولګولې شي دښكار په هغه ځائې كښې كوم ځائې كي چې ئې ښكار كړې دې أَوْ فِي أَقْرَبِ الْمَوَاضِعِ مِنْهُ إِذَا كَانَ فِي بَرِّيَّةٍ فَيُقَوِّمُهُ ذَوَا عَدْلٍ يا ورته په نزدې ځائې كښې كه په ځنګل كي وي نو قيمت دې مقرر كړي ددې دوې [دوه] انصاف كوونكي سړي |
|---|

حل اللغة: ① ان يقوم، قوم تقويماً: قيمت لګول ② مواضع دَ موضع جمع: ځايونه

تشريح:- د امام ابوحنيفه اوامام ابويوسف رحمه الله په نيزكه محرم په كوم ځائې كي ښكارقتل كړې وي. نوپه هغه ځائې كي به د دغه دوې [دوه] عادلان (چه په قيمت لګولوپوهيږي) د هغې ښكارقيمت مقرركړي. اوكه په هغه ځائې كي دغه ښكارنه وي. چه ورته نزدې كوم ځائې وي. چه په هغه ځائې كي ئې څه قيمت وي. هغه دې اولګوي.

| ثُمَّ هُوَ مُخَيَّرٌ فِي الْفِدَاءِ نو دده اختيار دې په قيمت كي إِنْ شَاءَ ابْتَاعَ بِهَا هَدْيًا وَذَبَحَهُ إِنْ بَلَغَتْ هَدْيًا كه غواړي قرباني دې پرې واخلي او ذبح دې كړي كه رسيږي قيمت ئې قربانئي ته وَإِنْ شَاءَ اشْتَرَى بِهَا طَعَامًا اوكه غواړي نو وادې خلي په دې غله وَتَصَدَّقَ عَلَى كُلِّ مِسْكِينٍ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ أَوْ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ أَوْ شَعِيرٍ وصدقه دې كړي هر مسكين ته نيم صاع دغنمو او يا يو صاع د قجور اويا د وربشو وَإِنْ شَاءَ صَامَ عَلَى مَا نَذْكُرُ[1] اوكه غواړي روژه دې اونيسى لكه چې بيان به ئې كړو. |
|---|

حل اللغة: ① فداء: قديه وركول ④ اشترى، اشتراء: اخستل ⑤ بر: غنم ⑥ تمر: كهجورې ⑦ شعير: اوربشي]

تشريح:- بيا كه دغه قيمت د قربانۍ څاروى ته رسيدلو. نوپه هغې دې قرباني اوكړي. اوغوښه دې د حرم په

---

[1] القول الراجح هو هذا قول الشيخين ﷫ كذا فى ردالمحتار (٢٣٢/٢) والخانية (١٣٨/١) والهندية (٢٣٧/١) والفقه الإسلامى (٢٦٦/٣) نقلاً عن القول الراجح (٢٣١/١)۔



مسكينانوباندې ويش كړي. اوكه قيمت ئې د څاروى برابرنه وو. نوپه هغې دې غنم واخلي. اود صدقة الفطر پشان دې هريو مسكين ته صدقه وركړي. يعني كه غنم واخلي نوهرمسكين ته دې نيمه نيمه صاع وركړي. اوكه كجهورې يا جوار پرې واخلي. نوهرمسكين ته دې يو يوصاع وركړي. اوكه خوښه ئې وي. نود هرمسكين د خوراك په ځائې دې روژه اونيسي. تفصيل به په راروانو پاڼرو كي ذكر كړو. انشاء الله تعالى.

## د ښكار په جزاء كې د امام محمد اوامام شافعي ﷫ مسلك

| وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَالشَّافِعِيُّ: يَجِبُ فِي الصَّيْدِ النَّظِيرُ فِيمَا لَهُ نَظِيرٌ امام محمد اوامام شافعي ﷫ وائي چې په ښكار كښې نظير واجبيږي دكوم چې نظير موجود وي فَفِي الظَّبْيِ شَاةٌ، وَفِي الضَّبُعِ شَاةٌ، وَفِي الْأَرْنَبِ عَنَاقٌ، نوپه هوسۍ كښې وزه اوپه كوړ كي وزه اوپه سوه كي د وزه بچې دې. وَفِي الْيَرْبُوعِ جَفْرَةٌ، وَفِي النَّعَامَةِ بَدَنَةٌ، وَفِي حِمَارِ الْوَحْشِ بَقَرَةٌ اوپه ځنګلي منږك كي د وزه دڅلورو مياشتو بچې دې په شترمرغ كي اوښ اوپه صحرائي خركي غوې ده |
|---|

حل اللغة: ① الضبع: منګوړ (كتمل) ② ارنب: سوې ③ عناق: دَ چيلئي بچې دَ كال پوره كيدو نه وړاندې ④ جفرة: دَ چيلنى بچې

تشريح:- په دې عبارت كي د ښكار په جزا كي دامام محمد اوامام شافعي ﷫ مسلك بيانوي. دوى فرمائي. چه د ښكار په جزاء كي چې د كوم څناور ښكارشوې وي. كه دهغې صورت يا نظيرموجود وي. هغه به واجبيږي. مثلاً د اوسۍ په جزا كي به وزه واجبيږي. او كوګ (خوښه خوړونكې دكانړو سترګو څناور) په جزاء كي وزه اود سوئې (خرګوش) په جزاء كي د وزه (ماده) بچې اود ځنګلي مګې پهجزاءكي دوزه څلورمياشتيزبچې واجبيږي. اودشترمرغ، اوښ اود ځنګلي خرپه جزاءكي غوې واجبيږي.

| لِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿فَجَزَاءٌ مِثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ﴾ دالله ﷻ ددې قول په وجه. نوبدله ده په مثل دهغې چې ئې قتل كړې دې دڅاروونه وَمِثْلُهُ مِنَ النَّعَمِ مَا يُشْبِهُ الْمَقْتُولَ صُورَةً اوپه څاروو كي ئې مثل هغه حيوان (څاروې) دې كوم چې د قتل شوى سره يوشان وى په صورت كي لِأَنَّ الْقِيمَةَ لَا تَكُونُ نَعَمًا څكه چې قيمت ته «نعم» نشى وئيلې |
|---|

تشريح:- دلائل محمد ﴿ رحمه الله د دوى دليل دالله تعالى ارشاد ﴿فَجَزَاءٌ مِثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ﴾ دې. څكه چې په دې آيت كي د ښكار په جزاء كي هغه څيزواجب كړې دې. كوم چې په څناورو كي د ښكار په شكل وي. اوقيمت خود څناورو پشان نشي كيدې. نوځكه قيمت نشى واجب كيدې.

| وَالصَّحَابَةُ أَوْجَبُوا النَّظِيرَ مِنْ حَيْثُ الْخِلْقَةُ[1] وَالْمَنْظَرِ فِي النَّعَامَةِ وَالظَّبْيِ وَحِمَارِ الْوَحْشِ وَالْأَرْنَبِ عَلَى مَا بَيَّنَّا اوصحابه كرامو ﷺ واجب كړې دې نظيرپه خلګ ت اوصورت كي . د شترمرغ اوهوسۍ اود صحرائى خر په ښكار كي وزه واجب ده |
|---|

حل اللغة: ① الظبى: هوسئى ⑥ نعامة: شترمرغ ⑦ خلقة: زيږيدل ⑧ حمامة: كونتره ]

تشريح:- اوصحابه كرامو ﷺ مثلاً عمر، على ابن مسعوداوابن عباس ﷺ وغيره په شترمرغ ،اوسۍ سوې په جزاء كي هم هغه شان څناور واجب كړې وو. كوم چې په خلګ ت اوصورت كي د هغې پشان وو.

| وَقَالَ ﴿الضَّبُعُ صَيْدٌ وَفِيهِ شَاةٌ﴾[2] اودكوم چې نظير نه وى نودامام محمد په نزد په كي قيمت واجب دې لكه چنچڼه اوكونتره او ددوى پشان |
|---|

---

[1] أخرج مالک فى موطاه (فى الحج رقم ٢٣٠) ....أن عمر ﷺ قضى فى الضبع بكبش وفى الغزال بعنز وفى الأرنب بعناق وفى اليربوع بجفرة كذا فى نصب الراية (١٦١/٣)۔

[2] من حديث جابربن عبدالله ﷺ أخرجه أبوداود فى الأطعمة باب ٣١ رقم ٢٦٥٩ رقم ٢٦٥٩ وابن ماجه فى المناسك باب ٩٠ رقم ٣٠٨٥ والصيد باب ١٥ رقم ٣٢٣٦ وأحمد فى المسند (٢٩٧/٣)۔

**تشریح:-** دغه نبی ﷺ فرمائیلی دی.چه کوړ ښکار دې.اودده په جزاء کې به ددې پشان ځاور واجبیږی.اوګوری که چرته د ښکارپه جزاء کې د قیمت ور کاوه جواز وو.لکه څنګه چې د شیخینو رحمهما الله مذهب دې.نوصحابه کرامو رضی الله عنهم اونبی ﷺ به د ښکار په جزاء کې د هغې پشان ځناورو قربانی نه واجبوله.ددې دواړو مستدلاتو نه معلومه شوه.چه د ښکارپه جزاء کې قیمت نه واجبیږی.بلکه د هغې پشان په صورت او خلګ ت کې ځناور واجبیږی.

| |
|---|
| **وَمَا لَيْسَ لَهُ نَظِيرٌ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَجِبُ فِيهِ الْقِيمَةُ مِثْلَ الْعُصْفُوْرِ وَالْحَمَامِ** چې قیمت واجب شو نودامام محمد رحمه الله قول د شیخینو رحمهما الله پشان شو **وَأَشْبَاهِهِمَا وَإِذَا وَجَبَتِ الْقِيمَةُ كَانَ قَوْلُهُ كَقَوْلِهِمَا** وکله امام شافعی رحمه الله په کونتره کې وزه واجبوی |

**تشریح:- اتفاق الاحناف في جزاء ما لا مثله له** البته دا ده.که دیوښکارپشان ځناور موجود نه وی.نودامام محمد رحمه الله په نیزیه هغې کې قیمت واجبیږی.لکه چنچڼه او کونتره،چه ددې پشان ښکار په ځناورو کې مثل نشته.نوپه دې سې ځناورو کې به قیمت واجب وی.نوپه دې صورت کې د امام محمد رحمه الله قول د شیخینو رحمهما الله دقول پشان شو.

| |
|---|
| **وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ يُوجِبُ فِي الْحَمَامَةِ شَاةً وَيُثْبِتُ الْمُشَابَهَةَ بَيْنَهُمَا مِنْ حَيْثُ إِنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَعُبُّ وَيَهْدِرُ** اوپه دوی کښې مشابهت داسې ثابتوی چې په دوی کې هر یوپه خوله کې اچول کوی.او په ګوټ سره اوبه څکی او آواز کوی. |

**تشریح:-** اوامام شافعی رحمه الله په کونتره کې وزه واجبوی.اوپه دې دواړو کې مشابهت داثابتوی.چه دا دواړه د عامو ځناوروخلاف په ګوټ ګوت اوبه څکی.اودواړه یوشان آواز راوباسی

### دشیخینود اړخه جواب

| |
|---|
| **وَلِأَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ أَنَّ الْمِثْلَ الْمُطْلَقَ هُوَ الْمِثْلُ صُورَةً وَمَعْنًى** دشیخینو دلیل دادې چې مطلق مثل هغه دې کوم چې صورتًا او معنیً په هرلحاظ سره مثل وی ، **وَلَا يُمْكِنُ الْحَمْلُ عَلَيْهِ فَحُمِلَ عَلَى الْمِثْلِ مَعْنًى** اوپه دې محمول کول ممکن نه دی نوپه مثل معنوی محمول شو |

**تشریح:- المراد مثل المعنوی عندالشیخین** دشیخینو رحمهما الله دارخه ځواب دا دې.چه په آیت {**فَجَزَاءٌ مِثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ**} مثل مطلق دې.اومثل هغه وی.چه په هغه د صورت اومعنی دواړو په اعتبارسره مماثل وی. خودلته دا معنی اخستل ممکن نه ده.یعنی په آیت کې حقیقي مثل مراد نه دې.ځکه چې هغه ځنګلی ځناور چې دهغې مثل نه وی.لکه چنچڼه اوکونتره،نوداسې ډول د آیت د عموم نه خارجیږی.حالانکه د آیت حکم ټولوته ګډ دې.نوپه دې آیت کې به «مثل» په مثل معنوی باندې حمل کولې شی.اومثل معنوی قیمت دې.

| |
|---|
| **لِكَوْنِهِ مَعْهُودًا فِي الشَّرْعِ كَمَا فِي حُقُوقِ الْعِبَادِ** ځکه چې دا په شرع کې معهود دې. لکه په حقوق العباد کې چې دی. |

**تشریح:- وجوه المراد المثل المعنوی** ① اوله وجه دا ده.چه مثل معنی په شریعت کې معروف اومشهور دې.مثلاً که یوکس د بل کس کالی هلاکه کړه.نوپه ده باندې د هغې جامې مثل معنوی یعنی قیمت لازم دې.

| |
|---|
| **أَوْ لِكَوْنِهِ مُرَادًا بِالْإِجْمَاعِ** یا ځکه چې دا بالاجماع مراد دی. |

**تشریح:-** دویمه وجه دا ده.چه په هغه ځناورو کې چې د هغې صوری مثل نه وی.لکه چنچڼه او کونتره، نوپه هغې کې په اجماع سره مثل معنوی مراد دې.لکه وړاندې چې په دې اړه کې د امام محمد رحمه الله موقف تیرشو.چه هغوی هم په هغه ځناوروکې چې نظیرئې نه وی.دمثل معنوی یعنی قیمت قائل دې. اوس به هغه



ځناورو کې چې د هغې مثل صوری موجود وی.دهغې پشان ځناور په جزاء کې لازم کړې شی.نوددې نه عموم مشترك یا په نورو الفاظو کې دحقیقت اومجاز په مینځ کې جمع راځی.نوځکه به په آیت کې د مثل نه صرف مثل معنوی یعنی قیمت مراد واخستې شی.

| |
|---|
| **أَوْ لِمَا فِيهِ مِنَ التَّعْمِيمِ، وَفِي ضِدِّهِ التَّخْصِيصُ** یا ځکه چې په دې کې تعمیم اوددې په ضد کې تخصیص دې |

**حل اللغة:** ① تعمیم: عمومًا

**تشریح:-** دریمه وجه دا ده.چه په مثل معنوی مراد کړې شی.نوپه دې کې تعمیم دې.ځکه چې په دغه وخت کې آیت هغه ته هم شاملیږی.چه نظیرئې وی اوهغې ته هم چې نظیر ئې نه وی.اوکه مثل صوری مراد واخستې شی.نوصرف هغه ځناورو ته شاملیږی.چه دهغې صوري نظیروی.اوچه د کوم صوری مثال نه وی.هغه ترې خارجیږی. حالانکه په تعمیم باندې عمل کول غوره دی.ځکه چې په دې صورت کې د آیت فائده عامه ده.

| |
|---|
| **وَالْمُرَادُ بِالنَّصِّ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ فَجَزَاءٌ قِيمَةُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ الْوَحْشِيِّ** اومراد په نص سره والله اعلم دادې.چه جزاء ده قیمت د هغې کوم چې ئې قتل کړې دې د وحشی ځناورو نه. **وَاسْمُ النَّعَمِ يَنْطَلِقُ عَلَى الْوَحْشِيِّ وَالْأَهْلِيِّ، كَذَا قَالَهُ أَبُو عُبَيْدَةَ وَالْأَصْمَعِيُّ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ** اولفظ د ((نعم)) وحشی او اهلی دواړو ته وئیلې شی دغه ډول وئیلی دی ابو عبیده او اصمعی. |

**تشریح:- الجواب من دلیل محمد رحمه الله** په «ولمراد بالنص» سره د امام محمد رحمه الله د دلیل ځواب دې.حاصل دځواب دا دې.چه لفظ د «نعم» لکه څنګه په کورنی ځناورو باندې صادقیږی.دغه ډول په ځنګلی ځناورو باندې هم صادقیږی.لکه څنګه چې د لغت امامان ،ابوعبیده اواصمعی رحمهما الله فرمائیلی دی.اوپه آیت کې د «مثل» نه مراد قیمت دې.اود «نعم» نه مراد ځنګلی ځناورمراد دی.اوس ژباړه دا شوه.چه د ښکار جزاء دهغه ځنګلی ځناور قیمت دې.کوم چې قتل شوې وی.

| |
|---|
| **وَالْمُرَادُ بِمَا رُوِيَ التَّقْدِيرُ بِهِ دُونَ إِيجَابِ الْمُعَيَّنِ** او د روایت نه مراد ددې سره اندازه ده نه چې متعین واجب کول دی. |

**تشریح:- المراد من الحدیث وقول الصحابة رضی الله عنهم** اود نبی ﷺ د قول چې «الضبع صید وفیه شاة» مطلب دا دې.چه د کوړ د قیمت اندازه به د وزه د قیمت نه لګولې شی.دا مطلب نه دې.چه نبی ﷺ د کوړ په بدله کې وزه واجب کړې ده.هم دا ځواب دصحابه کرامو رضی الله عنهم د فیصلې هم دې.مثلاً صحابه کرامو رضی الله عنهم په شترمرغ کې دهغې خاص نظیرنه دې واجب کړې.بلکه دا ئې وئیلی دی.چه دهغې نظیرته به کتلې شی. او د شترمرغ دقیمت به اندازه کولې شی.

### د ښکارپه جزاء کې د دريو څیزونواختیار

| |
|---|
| **ثُمَّ الْخِيَارُ إِلَى الْقَاتِلِ فِي أَنْ يَجْعَلَهُ هَدْيًا أَوْ طَعَامًا أَوْ صَوْمًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ** (1) بیا اختیارقاتل ته دې په دې کې چې قیمت ورکوی یا طعام ورکوی په نزد د ابوحنیفه رحمه الله او ابویوسف رحمه الله. |

**حل اللغة:** ① ان یجعله،جعل جعلاً (ف): کول، بهیول

**تشریح:- الاختیار في ثلاثة اشیاء لصائد** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه په کوم کس باندې د ښکار د امله جزاء واجب شی.نود شیخینو رحمهما الله په نیزده ته په یو د دریو خبروکې اختیار دې.① یاخوچه دوې [دوه] عادلان

---

(1) القول الراجح هو هذا قول الشیخین رحمهما الله کذا فی ردالمحتار (٢٣٣/٢) والخانیة (١٣٨/١) والهندیة (٢٣٧/١) نقلاً عن القول الراجح(٢٣٢/١)-

دهغه ښکار څه قیمت اولګوی. که هغه د هدی قیمت ته رسی. نوبه هغې دې د قربانۍ لپاره حیوان (څاروی) واخلی. اوقربانی دې کړی. اود حرم په مسکینانوته دې ویش کړی. ② یادې پرې غله واخلی. اودهرمسکین ته دې د صدقة الفطریه اندازه غله ورکړی. ③ یادې د یوې صدقة الفطرپه بدله کې یوه روژه اونیسی. مثلاً که دشلو صدقو (سرپایه) برابر وی. نوشل روژې دې اونیسی.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ: اَلْخِيَارُ اِلَى الْحَكَمَيْنِ فِي ذٰلِكَ اوویلی دی امام محمد اوشافعی رحمهما الله چې اختیار حکمینو ته دې فَإِنْ حَكَمَا بِالْهَدْيِ يَجِبُ النَّظِيرُ عَلٰى مَا ذَكَرْنَا نوکه دوی د هدی حکم اوکړو نو نظیر به واجب وی د ذکر شوی دلیل په وجه «وَاِنْ حَكَمَا بِالطَّعَامِ اَوْ بِالصِّيَامِ فَعَلٰى مَا قَالَ اَبُوْحَنِيْفَةَ وَاَبُوْيُوْسُفَ اوکه دطعام یا دروژې حکم ئې اوکړو نوپه هغه طریقه به وی. کوم چې شیخینو رحمهما الله وئیلی دی

حل اللغة * ① خیار: اختیار

تشریح:- مذهب محمد والشافعی رحمهما الله ⊛ اوامام محمداوامام شافعی رحمه الله فرمائی. چه دا اختیار ښکارکونکی قاتل ته دې نه حاصل. بلکه دوو عادلانو ته حاصل دې. که هغوی د ښکارپه بدله کې په دۀ باندې دهغې شان په صورت کې بل څناور مقرر کړل. نودهغې قربانی به کوی. مثلاً د شترمرغ په بدله کې به ورته د اوښ قربانی کاوه حکم کوی. اود اوسۍ په بدله کې به ورته د وزه د ذبح کاوه حکم کوی. اوکه هغوی د طعام یا د روژو فیصله اوکړله. نوبیا چې شیخینو رحمهما الله څنګه فرمائی. هغه شان دې اوکړی. یعنی غله دې واخلی. اوهرمسکین ته دې د صدقة الفطر په برابر خیرات ورکړی. اوکه روژې نیسی. نودهر صدقة الفطرپه بدله کې به یوه روژه نیسی.

ملحوظة ⊛ دا خبره دې په ذهن کې وی. چه په ذکرشوې مسئله کې چې عادلان قیمت لګوی. نود شیخینو رحمهما الله په نیز به د ښکارشوی څناور قیمت لګوی. اود امام محمد اوامام شافعی رحمهما الله په نیزبه د ښکار قیمت نه لګوی. بلکه کوم څیزچه د ښکارشوی څیزمماثل وی. دهغې قیمت به لګوی.

لَهُمَا اَنَّ التَّخْيِيْرَ شُرِعَ رِفْقًا بِمَنْ عَلَيْهِ فَيَكُوْنُ الْخِيَارُ اِلَيْهِ دشیخینو رحمهما الله دلیل دا دې چې اختیار ورکول د هغه په حق کښې د نرمۍ لپاره مشروع شوې دې په چا چې ضمان دې نواختیار به ده ته وی كَمَا فِي كَفَّارَةِ الْيَمِيْنِ لکه په کفاره دیمین کې.

تشریح:- دلیل الشیخین رحمهما الله ⊛ بهرحال هدی، خوراك ور کاوه او روژو نیولوکې د شیخینو رحمهما الله په نیز اختیار ور کاوه هغه چاباندې د آسانتیا کاوه لپاره دې. په چا چې د ښکار جزاء واجب شوې وی. اوجزاء دښکار په قاتل واجب شوې ده. نوځکه به اختیار هم ده ته ملاویږی. لکه څنګه چې په کفاره د قسم کې قسم خوړونکی باندې د آسانتیا لپاره هغه ته د دریو خبرو اختیار ورکړې شوې دې. چه یا دې مسکینانوته خوراك ورکړی. یا دې ورته جامې واچوی. اویا دې غلام آزاد کړی. نودغه ډول به دلته هم قاتل ته اختیار ورکولې شی.

وَلِمُحَمَّدٍ وَالشَّافِعِيِّ قَوْلُهُ تَعَالٰى {يَحْكُمُ بِهِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ هَدْيًا} اَلْاٰيَةَ () دمحمد اوشافعی رحمهما الله دلیل قول دالله ﷻ دې چې ((یحکم به ذواعدل منکم)). ذُكِرَ الْهَدْيُ مَنْصُوْبًا لِاَنَّهُ تَفْسِيْرٌ لِقَوْلِهِ تَعَالٰى {يَحْكُمُ بِهِ} هدی لره ئې منصوب ذکر کړه ځکه چې دا د ((یحکم به)) تفسیر دې وَمَفْعُوْلٌ لِحُكْمِ الْحَكَمِ، یا دا حُکم دحَکم مفعول دې. ثُمَّ ذَكَرَ الطَّعَامَ وَالصِّيَامَ بِكَلِمَةِ اَوْ فَيَكُوْنُ الْخِيَارُ اِلَيْهِمَا بیا ئې طعام اوصیام په کلمه د ،او، سره ذکر کړل نو اختیار حکمینو لره شو.

تشریح:- دلیل محمد رحمه الله ⊛ اودامام محمد اوامام شافعی رحمه الله دلیل د الله تعالی ارشاد ﴿يَحْكُمُ بِهِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ هَدْيًا﴾ ې. یعنی د ښکار جزاء دهغه ځنګلی څناور قیمت دې. کوم چې قتل شوې وی. فیصله به



کوی دوې [دوه] عادلان سړی په تاسوکې په دې سې حال کې چې هدی رسیدونکې وی کعبې ته، یا به (کفاره وی) د مسکینانو خوراك یا ددې برابر روژې دا ددې لپاره چې دځپلوکړو سزا بیا مومی.

وجه الاستدلال ⊛ وجه داستدلال داده. چه لفظ د ﴿هدیا﴾ ځکه منصوب دې. چه دا د ﴿یحکم به﴾ کې د ضمیرمجرور تفسیر دې. یا د ﴿یحکم﴾ فعل مفعول دې. په اولنی صورت کې به ژباړه دا وی. چه دوې [دوه] عادلان سړی دې ددې یعنی د هدی فیصله اوکړی. اوپه دوهم صورت کې ژباړه دا ده. چه دوې [دوه] عادلان سړی دې د هدی حکم اوکړی. په دې دواړو صورتونوکې د هدی مقرر کاوه اختیار دوې [دوه] عادلانو سړو ته ملاؤ شوې دې. اولفظ د ﴿کفارة﴾ او د ﴿عدل ذلك صیاما﴾ په کلمه د ﴿أو﴾ سره په ﴿هدیا﴾ باندې معطوف دی. اوقاعده دا ده. چه کوم حکم د معطوف علیه وی. هغه حکم به د معطوف هم وی. نوهرکله چې هدی اختیار دوو عادلانو ته دې. نودغه ډول به د کفاره اوروژې اختیار هم دوو عادلانوته وی.

قُلْنَا: اَلْكَفَّارَةُ عُطِفَتْ عَلَى الْجَزَاءِ لَا عَلَى الْهَدْيِ بِدَلِيْلِ اَنَّهٗ مَرْفُوْعٌ موږ وایو چې د کفارے عطف په جزاء شوې دې نه چې په هدی باندې په دې دلیل چې مرفوع دې وَكَذَا قَوْلُهُ تَعَالٰى {اَوْ عَدْلُ ذٰلِكَ صِيَامًا} مَرْفُوْعٌ اودغه ډول دې قول دالله ﷻ ((اوعدل ذالك صیاما)) مرفوع دې. فَلَمْ يَكُنْ فِيْهَا دَلَالَةُ اخْتِيَارِ الْحَكَمَيْنِ نو په اختیار د یام او طعام د ختیار دلالت نشته. وَاِنَّمَا يُرْجَعُ اِلَيْهِمَا فِي تَقْوِيْمِ الْمُتْلَفِ دوی ته خوبه دتلف شده په قیمت لګولو کې رجوع کولای شی.() ثُمَّ الْاِخْتِيَارُ بَعْدَ ذٰلِكَ اِلٰى مَنْ عَلَيْهِ ددې نه روسته به اختیار هغه ته وی چې چاچه واجب ده.

تشریح:- زموږ دا رخه ځواب دا دې. چه ددې دلیل بنا (بنیاد) په دې باندې دې. چه ﴿أوکفارة﴾ او ﴿أوعدل ذالك﴾ ددې عطف په ﴿هدیا﴾ باندې دې. حالانکه دا غلطه ده. ځکه چې ﴿هدیا﴾ منصوب او ﴿أوکفارة أو عدل ذلك﴾ مرفوع دی. اود اعراب د اختلاف په صورت کې عطف نه صحیح کیږی. البته ﴿کفارة أو عدل ذلك﴾ په په لفظ د ﴿جزاءٌ﴾ باندې معطوف دی. ځکه چې په دې صورت کې په اعراب کې اتحاد دې. نوبه طعام او صیام کې به دوو عادلانو ته اختیار نه وی. اوچه په دې دواړوکې دوو عادلانو نه اختیار نه وی. نوبه هدی کې به هم هغوی ته اختیار نه وی. ځکه چې د ﴿قول بالفصل﴾ څوك قائل نه دی. یعنی دا د چا مذهب نه دې. چه د هدی د فیصلې اختیاربه دوو عادلانوته وی. اود طعام او صیام اختیاربه دښکار قاتل ته وی. البته د هلاك شوی څناور په قیمت لګولوکې به دوو عادلانو ته رجوع کولې شی. او د دې نه روسته به اختیارهم هغه چاته حاصل وی. چه په چا باندې جزاء د ښکار واجب شوې وی.

## دقیمت اعتبار په محل د ښکاروی

وَيُقَوَّمَانِ فِي الْمَكَانِ الَّذِيْ اَصَابَهٗ وقیمت به اولګوی پداسې ځائې کې کوم ځائې چې ئې ښکار کړې دې لِاخْتِلَافِ الْقِيَمِ بِاخْتِلَافِ الْاَمَاكِنِ دځایونو په اختلاف سره د قیمتونو مختلف کیدو په وجه. فَاِنْ كَانَ الْمَوْضِعُ بَرًّا لَا يُبَاعُ فِيْهِ الصَّيْدُ نوکه دغه ځنګل وو چې ښکار نه شو خرڅیدلې يُعْتَبَرُ اَقْرَبُ الْمَوَاضِعِ اِلَيْهِ نود نزدې مکان اعتبار به کولې شی. کوم ځائې چې ښکار خرڅولې اخستلې شی. مِمَّا يُبَاعُ فِيْهِ وَيُشْتَرٰى. قَالُوْا: وَالْوَاحِدُ يَكْفِيْ وَالْمُثَنّٰى اَوْلٰى عالمانو وئیلی دی چې یو عادل کافی دې اودوې [دوه] غوره دی؛ لِاَنَّهٗ اَحْوَطُ وَاَبْعَدُ عَنِ الْغَلَطِ كَمَا فِيْ حُقُوْقِ الْعِبَادِ ځکه چې دا احتیاط اود غلطۍ نه لرې خبره ده. لکه چې په حقوق العباد کې دی وَقِيْلَ يُعْتَبَرُ الْمُثَنّٰى هٰهُنَا بِالنَّصِّ او وئیلی شوی دی چې معتبردی دوې [دوه] دلته په وجه دنص سره.

حل اللغة * ① یقومان، قوم تقویماً: قیمت لګول ② قیم: قیمتونه ③ اماکن: ځایونه ④ براً: قبضه ⑤ لیباع، باع بیعًا (ض): خرڅول اخستل ]

تشریح:- تشریح واضح ده.

## دهدي د ذبح مقام

وَالْهَدْيُ لَا يُذْبَحُ إِلَّا بِمَكَّةَ لِقَوْلِهِ تَعَالَى {هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ} اوهدی به نشی ذبح کولې مګر په مکه معظمه کې. څکه چې ارشاد دالله ﷻ دې هدی رسیدونکې کعبې ته وَيَجُوزُ الْإِطْعَامُ فِي غَيْرِهَا اوجائزدې طعام ورکول په غیر د مکې

تشريح:- المذهبان في اطعام الطعام في مصرف الاطعام۞صاحب دقدوری رَحِمَهُ اللهُ فرمائی. ① که دښکار په جزاء ورکولوکې ئې هدی غوره کړه. نودهدی د قربانی به صرف په حرم کې کوی. په بل ځائې کښې جائزنه ده. څکه چې دالله تعالی ارشاد دې. [جَعَلَ اللهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ] په دیې آیت کې د کعبې نه مراد عین خانه کعبه نه ده. بلکه حرم دې. وراك ورکول جائز دی په غیردمکې نه بل ځائې کې

خِلَافًا لِلشَّافِعِي رَحِمَهُ اللهُ هُوَ يَعْتَبِرُهُ بِالْهَدْيِ په خلاف دامام شافعی رَحِمَهُ اللهُ څه چې هغه په هدی قیاس کوی. وَالْجَامِعُ التَّوْسِعَةُ عَلَى سُكَّانِ الْحَرَمِ اوامرجامع فراخی ورکول دی اوسیدونکو د حرم ته.

حل اللغة: ① يعتبره، اعتبر اعتباراً: اعتبارکول ② توسعة: فراخی، کولې ووالی

تشريح:- اوامام شافعی رَحِمَهُ اللهُ فرمائی. چه د خوراك کول به هم د محرم مسکینانوپورې خاص وی. بل چا باندې د هغې خوراك نشی کولې. هغوی قیاس په هدی باندې کوی. چه لکه څنګه دهغې غوښه د حرم د فقیرانو نه سوې بل چا باندې نشی صدقه کولې. دغه ډول به خوراك هم نشی کولي. اوعلت مشترکه په دواړو کې د حرم مسکینانوته فائده ورکول دی.

وَنَحْنُ نَقُولُ: الْهَدْيُ قُرْبَةٌ غَيْرُ مَعْقُولَةٍ فَيَخْتَصُّ بِمَكَانٍ أَوْ زَمَانٍ اومونږ وایو چې هدی غیر معقول قربت ده. نومختص به وی په مکان اوزمان پورې. أَمَّا الصَّدَقَةُ قُرْبَةٌ مَعْقُولَةٌ هرچه صدقه ده نو دا قربت معلومه دې فِي كُلِّ زَمَانٍ وَمَكَانٍ په هریو وخت او ځائې کې

تشريح:- الجواب من قياس الشافعي رَحِمَهُ اللهُ ۞زمونږ ځواب دا دې. چه د هدی قربانی عبادت غیرمعقوله ده. نود دیوې زمانې اومکان پورې به خاص وی. اوصدقه په هره زمانه اوهرځائې کې صدقه ده. اوپه هرځائې کې د صدقې عبادت معقول دې. نویومعقول شی په غیرمعقول باندې قیاس کول ټیك نه دی.

## د روژې لپاره د مکان اوزمان عدم تخصیص

وَالصَّوْمُ يَجُوزُ فِي غَيْرِ مَكَّةَ لِأَنَّهُ قُرْبَةٌ فِي كُلِّ مَكَانٍ پاتې شوه صدقه نودغه معقول قربت دې په هره زمانه اوپه هرځائې کې. او روژه هم دمکې نه سوې په نورو ځایونوکې جائزده. ځکه چې دا قربت دې په هرمکان کښې.

حل اللغة: ① قربة: نیزدیکت، عبادت ]

تشريح:- مسئله واضحه ده.

## په غیرحرم کې قربانی د اطعام نه حسابیږی

فَإِنْ ذَبَحَ الْهَدْيَ بِالْكُوفَةِ أَجْزَأَهُ عَنِ الطَّعَامِ نوکه په کوفه کې ئې ذبح اوکړه نود طعام څخه به کافی شی. مَعْنَاهُ إِذَا تَصَدَّقَ بِاللَّحْمِ وَفِيهِ وَفَاءٌ بِقِيمَةِ الطَّعَامِ ددې معنی داده چې کله ئې غوښه صدقه کړې وی اوپه دې کښې قیمت دطعام پوره پریوتلې وی. لِأَنَّ الْإِرَاقَةَ لَا تَنُوبُ عَنْهُ څکه چې وینه تویول د طعام قائم مقام نه ګرځی.

حل اللغة: ① وفاء: پوره کول ② اراقة: بهیول ③ لاتنوب، ناب نوباً (ن): قائم مقام کیدل ]

تشريح:- حكم ذبح الهدى بغيرالحرم۞اوښکارکونکی د حرم په ځائې په بل ځائې کې د هدی د څاروی قربانی اوکړله. نود هغې غوښه به په فقیرانو باندې ویش کړی. خودا غوښه به د ښکارد جزاء قربانی نه حسابیږی. بلکه دا به په دې حیثیت د ده دښکار د جزاء لپاره کافی کیږی. چه د قیمت په اعتبارسره د هغې



حساب اوشی. یعنی داسې به ګڼلې شی. چه ده د هدی د قربانۍ په ځائې د هغې برابر قیمت باندې غوښه صدقه کړه. څکه چې د هدی د قربانۍ لپاره حرم خاص دې. په بل ځائې د ښکارد جزاء قربانی نه کیږی. نو اوس چې دا د قیمت په اعتبارسره صدقه ده. نوهرمسکین ته به دومره غوښه ورکړی. چه دهغې قیمت د نیم صاع غنمو یا د یوصاع جوارو سره برابر وی.

## په هدی کې د کفایت کونکې څاروی پیژندګلو

وَإِذَا وَقَعَ الْاِخْتِيَارُ عَلَى الْهَدْيِ يُهْدِي مَا يُجْزِيهِ فِي الْأُضْحِيَةِ اوکله چې واقع شو اختیار په هدی کښې نوهغه به ورکړی کومه چې اضیحه (قربانۍ) کې جائز ده. لِأَنَّ مُطْلَقَ اسْمِ الْهَدْيِ مُنْصَرِفٌ إِلَيْهِ څکه چې مطلق اسم د هدی دې ارخ ته منصرف کیږی.

حل اللغة: ① وقع، وقوعاً (ف): واقع کیدل ② اضحية: قربانی

تشريح:- المذهبان في عمرحيوان الهدى۞ ① که د ښکارقاتل د ښکار په جزاء کې هدی قربانی کول غوره کړل. نوپه هدی کې به هغه حیوان (څاروې) قبلولې شی. په کوم چې قربانی کیږی. مثلاً په اوښ کې پنځه کلن په غوې اومیښه کې دوې [دوه] کلن اوپه ګډه اووزه کې یوکلن، څکه په آیت کې هدی مطلق ده. اود مطلق هدی نه مراد هم دا څاروی دی.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَالشَّافِعِي: يُجْزِي صِغَارُ النَّعَمِ فِيهَا اوامام محمد اوشافعی رَحِمَهُمَا اللهُ فرمائی چې په دې کې واړه د څاروی هم جائز دی. لِأَنَّ الصَّحَابَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ أَوْجَبُوا عَنَاقًا وَجَفْرَةً څکه چې صحابه کرامو رضی الله عنهم عناق اوجفره لره واجب کړی دی.

حل اللغة: ① صغار: وړوکې ② جفرة: د چیلئی بچې څلور میاشتیز

تشريح:- امام محمداوشافعی رَحِمَهُمَا اللهُ فرمائی. چه دهدی په ذبح کې د ورکوټی عمرڅاروې هم کافی کیږی. څکه چې صحابو په هدی کې عناق (د وزه بچې) اود جفره (د ګډې د څلورمیاشتو بچې) قربانی واجبه کړې وه. ددې نه معلومه شوه. چه د هدی په ذبح کې ورکوټې حیوان (څاروې) هم کافی کیږی.

وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ يَجُوزُ الصِّغَارُ عَلَى وَجْهِ الْإِطْعَامِ (١) يَعْنِي إِذَا تَصَدَّقَ اود شیخینو رَحِمَهُمَا اللهُ په نزد واړه څاروی په طریقه د طعام جائز دی یعنی کله چې دغه صدقه کړی.

تشريح:- جوازدفع لحم صغارالحيوانات على وجه الاطعام۞د شیخینو رَحِمَهُمَا اللهُ په نیزباندې واړه بچی د ښکاره په جزاء کې د خوراك ور کاوه په طور جائزدې. یعنی چې دا ذبح کړی. اوغوښه ئې په مسکینانوویش کړی. چې هریومسکین ته د نیم صاع غنمو اود یوصاع جوارو د قیمت په برابری غوښه ورکړی.

## د خوراك ورکولو د قیمت اندازه

وَإِذَا وَقَعَ الْاِخْتِيَارُ عَلَى الطَّعَامِ يُقَوَّمُ الْمُتْلَفُ بِالطَّعَامِ عِنْدَنَا که اختیار واقع شو په طعام کې نوقیمت به اولګوی د تلف شوی طعام سره په نزد زمونږ. لِأَنَّهُ هُوَ الْمَضْمُونُ فَتُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ څکه چې تلف شوې مضمون دې نود هغه قیمت به معتبر وی.

حل اللغة: ① متلف: ضائع شوې شی

تشريح:- تقويم الصيد واعطاء القيمة على ماهوالمعهود۞اوکله چې د ښکارقاتل د ښکار د جزاء په طور مسکینانوته خوراك ورکول غوره کړی. نو دښکارشوی څناور قیمت به اولګوی. څکه چې دهغه په وجه په ده

(١) القول الراجح هو هذا قول الشيخين رَحِمَهُمَا اللهُ كذا فى فتح القدير (١٤/٣) وتبيين الحقائق (٦٥/٢) نقلاً عن القول الراجح (٢٣٣/١)-

ضمان واجبيږي.

وَإِذَا اشْتَرَى بِالْقِيمَةِ طَعَامًا تَصَدَّقَ عَلَى كُلِّ مِسْكِينٍ نِصْفَ صَاعٍ اوكه وائې خستلو په قيمت سره طعام نوورديې كړي هرمسكين ته نيم صاع مِنْ بُرٍّ أَوْ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ أَوْ شَعِيرٍ دغنمو نه يا پوره صاع د قجورو يا اوربشي

حل اللغة: ① تصدق، تصديقًا: صدقه كول ② بر: غنم ③ تمر: كهجورې ④ شعير: اوربشې.

تشريح:- اوپه هغه قيمت به بيا په هغه طريقه تفسيم كړي.په كومه طريقه چې صدقه فطروركولې شي.يعني هرمسكين ته به نيم صاع غنم يا يو صاع قجورې،يا جوار وركړي.اوهيڅ مسكين ته به د يوې صدقة الفطرنه كم نه وركوي.

وَلَا يَجُوزُ أَنْ يُطْعِمَ الْمِسْكِينَ أَقَلَّ مِنْ نِصْفِ صَاعٍ اوجائز نه دى يو مسكين ته د نيم صاع نه كم وركول. لِأَنَّ الطَّعَامَ الْمَذْكُورَ يَنْصَرِفُ إِلَى مَا هُوَ الْمَعْهُودُ فِي الشَّرْعِ ځكه چې مذكوره طعام منصرف كيږي هغې ته كوم چې شريعت مقرر كړې وى.

تشريح:- دليله ﴿ځكه چې په آيت كښې لفظ د ﴿إطعام﴾ ذكر دې.اوددې څخه به هم هغه مراد وى.كوم چې په شريعت كې معهود وى.يعنى د غنمو نيم صاع اود قجورو يوصاع لكه څنګه چې په صدقة الفطر اوپه كفاره د قسم كې وركولې شي.

### د روژو نيولو طريقه

وَإِنِ اخْتَارَ الصِّيَامَ يُقَوَّمُ الْمَقْتُولُ طَعَامًا اوكه روژه ئې اختيار كړه نو دمقتول اندازه به په طعام سره اوكړي ثُمَّ يَصُومُ عَنْ كُلِّ نِصْفِ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ أَوْ صَاعٍ مِنْ تَمْرٍ أَوْ شَعِيرٍ يَوْمًا بيا به د نيم صاع غنمو يا يو صاع قجورو يا يوصاع اوربشو په ځائې يوه روژه نيسى.

حل اللغة: ① اختيار، اختيارًا: خوښول، اختيارول

تشريح:- اختيار الصيام ﴿مسئله دا ده.كه د ښكارقتل كونكى روژې نيول غوره كړلو.د دې يوصورت دا دې.چه مثلاً د قتل شوى ښكارقيمت د يومن غنموبرابر وى.اوكه دا صورت ممكن نه وى.نواول دې دا اندازه اوكړي.چه دا ښكار د څومره ماليت وو. مثلاً اندازې لګونكو دا اندازه اولګوله.چه ددې قيمت سل روپۍ دې.نواوس به كتلې شى.چه په سل روپو كې څومره غنم كيږي.ياڅومره قجورې يا څومره جوار،نوبيا دې د هرنيم صاع غنمويا د نيم صاع قجورو يا د نيم صاع جوارو په بدله كې يوه روژه اونيسى.

لِأَنَّ تَقْدِيرَ الصِّيَامِ بِالْمَقْتُولِ غَيْرُ مُمْكِنٍ إِذْ لَا قِيمَةَ لِلصِّيَامِ فَقَدَّرْنَاهُ بِالطَّعَامِ ځكه چې د مقتول په روژې سره اندازه نامكنه ده.ځكه چې دروژې قيمت نشته. نوموږ ئې اندازه په طعام سره اوكړه وَالتَّقْدِيرُ عَلَى هَذَا الْوَجْهِ مَعْهُودٌ او دغه ډول اندازه كول په شرع كې معهود دى فِي الشَّرْعِ كَمَا فِي بَابِ الْفِدْيَةِ لكه چې په باب دفديه كښې دى.

حل اللغة: ① فقدرناه، قدر تقديرًا:اندازه لګول، مقررول ② يطعم، اطعامًا: خوراك وركول ]

تشريح:- چونكه د روژې څه قيمت مقرر نه وى.نوددې امله د قتل شوى ښكارپه روژوسره اندازه كول ممكن نه دى.نوموږد قتل شوى ښكار اندازه په خوراك سره اوكړله.اودا طريقه په شريعت كې معهود ده.لكه څنګه چې په باب الفديه كې دى.چه شيخ فانى به د هرې روژې په سريونيم صاع غنم فديه وركوى.

فَإِنْ فَضَلَ مِنَ الطَّعَامِ أَقَلُّ مِنْ نِصْفِ صَاعٍ فَهُوَ مُخَيَّرٌ نوكه زياتى شوه په غله كښې دنيم وصاع نه كم مقدار نودده اختيار دې إِنْ شَاءَ تَصَدَّقَ بِهِ وَإِنْ شَاءَ صَامَ عَنْهُ يَوْمًا كَامِلًا كه غواړى هغه دې صدقه كړى اوكه غواړى دهغې دارڅه دې يوه روژه اونيسى. لِأَنَّ الصَّوْمَ أَقَلَّ مِنْ يَوْمٍ غَيْرُ مَشْرُوعٍ ځكه چې روژه د ورځې نه كمه مشروع نده.

تشريح:- حكم الاقل من صدقة الفطر ﴿اوكه په آخركې د نيم صاع غنمو نه كم طعام بچ شو . نو ده ته اختيار



دې.كه خوښه ئې وى.نوهغه دي صدقه كړى.اوكه خوښه ئې وى.نودهغې په بدله كې دې هم يوه روژه اونيسى.ځكه چې د يوې ورځې نه كمه روژه نيول مشروع نه دى.

وَكَذَلِكَ إِنْ كَانَ الْوَاجِبُ دُونَ طَعَامِ مِسْكِينٍ يُطْعِمُ قَدْرَ الْوَاجِبِ دغه ډول كه قدر ئې د واجب يومسكين د طعام نه كم وو.نو په قدر د واجب دې وركړي أَوْ يَصُومُ يَوْمًا كَامِلًا لِمَا قُلْنَا يا دې روژه اونيسى پوره ورځ لكه چې موږ وئيلې دى.

تشريح:- دغه ډول كه د قتل شوى ښكار قيمت د نيم صاع غنمونه هم كم وو.نوپه هغې كې هم اختيار دې.كه غواړى نو هغه دې صدقه كړى.اوكه غواړى نودهغې په بدله كې دې يوه روژه اونيسى.دليل وړاندې تيرشوې دې.چه د يوې ورځې نه كمه روژه مشروع نه ده.

### په ښكاركې د عيب پيدا كولوتاوان

وَلَوْ جَرَحَ صَيْدًا أَوْ نَتَفَ شَعْرَهُ أَوْ قَطَعَ عُضْوًا مِنْهُ اوكه چرې ښكار ئې زخمى كړو يائې ورنه ويخته ويستل يا ئې ترې څه اندام پريكړو ضَمِنَ مَا نَقَصَهُ اعْتِبَارًا لِلْبَعْضِ بِالْكُلِّ كَمَا فِي حُقُوقِ الْعِبَادِ نوكوم نقصان چې ئې كړې دې دهغې به ضمان وى دبعضې په كل قياس كاوه په وجه.لكه په حقوق العباد كښې چې وى

تشريح:- كه محرم د ښكارځناور زخمى كړلو.يائې د هغې نه بڼې اويستلې.يائې دهغه يواندام ضائع كړلو. نو په دې ټولوصورتونوكې چې دهغه په قيمت كې څومره كمې راغلې وى.په محرم به د هغې ضمان وى. مثلاً ديوښكارقيمت لس روپۍ وو.دهغه د يواندام په ضائع كيدو د هغې قيمت پنځه روپۍ پاتې شو.نواوس به په محرم د پنځو روپو تاوان وى.دلته جزء په كل باندې قياس كولې شى.لكه څنګه چې په حقوق العباد كې دى.كه يوكس د بل انسان پوره نقصان اوكړلو.نوپوره تاوان به پرې راځى.اوكه بعضې نقصان ئې اوكړلو.نود بعضې دحصې مطابق به پرې تاوان راځى.

وَلَوْ نَتَفَ رِيشَ طَائِرٍ اوكه وې ويستل د مارغه نه وزرونه أَوْ قَطَعَ قَوَائِمَ صَيْدٍ يا ئې پريكړې پښې دښكار فَخَرَجَ مِنْ حَيِّزِ الِامْتِنَاعِ بيا هغه دځپل تحفظ نه اووتلو فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ كَامِلَةً. نوپدې پوره قيمت دې.

تشريح:- اوكه يومحرم د يوپرندې وزرې ماتې كړې.يا ئې د ښكارى ځناور پښې لاس مات كړل.تردې چې هغه پرنده او ځناوردځپل ساتنه نه عاجزه شو.اود خلګو نه د ځان ساتلوقابل پاتې نشى.نوپه دې صورت كې به په محرم باندې دهغې پوره قيمت تاوان وى.

لِأَنَّهُ فَوَّتَ عَلَيْهِ الْأَمْنَ بِتَفْوِيتِ آلَةِ الِامْتِنَاعِ فَيَغْرَمُ جَزَاءَهُ ځكه چې ده امن معدوم كړو په فوت كولو الى د تحفظ نود هغې د جزا تاوان دې وركړي

تشريح:- ځكه چې كله محرم دهغه د ساتنه ذريعه ختمه كړه.نولكه چې ده د هغه امن او امان ختم كړلو .اوكله چې ئې دهغه امن ختم كړلو.نولكه چې هغه ئې هلاك كړلو.اود هلاكاوه په صورت كې د قتل شوى ښكار پوره قيمت واجبيږي.نودغه ډول به په دې صورت كښې هم پوره قيمت واجبيږي.

### د شترمرغ د هګۍ ماتولو جزاء

وَمَنْ كَسَرَ بَيْضَ نَعَامَةٍ فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ اوكوم محرم چې د شترمرغ (هګۍ) ماتې كړې نوپدې قيمت دې وَهَذَا مَرْوِيٌّ عَنْ عَلِيٍّ (١) وَابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ ( دا روايت دې دحضرت على ﷺ اوابن عباس ﷺ نه وَلِأَنَّهُ أَصْلُ

(١) قال الزيلعى رحمه الله أما حديث على ﷺ فغريب وروى ابن أبى شيبة فى مصنفه ...عن معاويه بن قرة أن رجلاً أوطا بعيره بيض

الصَّيْدِ وَلَهُ عَرَضِيَّةٌ أَنْ يَصِيرَ صَيْدًا اوځكه چې هګۍ دښكار اصل دي اوځكه چې دا د ښكار د كيدو لپاره تيارى ده فَنَزَلَ مَنْزِلَةَ الصَّيْدِ احْتِيَاطًا مَا لَمْ يَفْسُدْ نو احتياط ئې دښكار په درجه كي كيخودې شو. ترڅو پورې چې خرابه شوى نه وي

حل اللغة* ① كسر، كسراً (ض): ماتول ② نعامة: شترمرغ ③ عرضية: صلاحيت

تشريح:- مسئله كه محرم دشترمرغ هګۍ ماته كړه. نوپه ده باندې به د هګۍ قيمت واجب وي. دحضرت على او ابن عباس رضي الله عنهما نه هم دا نقل دى. ② دوهم دليل دا دې. چه په هګۍ د ښكار اصل دې. اوپه هګۍ كي دا صلاحيت شته. چه ددې نه ښكار جوړ شي. اود ښكار هلال كاوه باندې په محرم باندې ضمان واجبيږي. نو دغه ډول به د هګۍ په ماتولوهم په ده ضمان واجبيږي.

فَإِنْ خَرَجَ مِنَ الْبَيْضِ فَرْخٌ مَيِّتٌ فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ حَيًّا نوكه راووتلو د هګۍ نه بچې مړنو په ده د ژوندى بچې قيمت دې وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دې

حل اللغة* ① فرخ: بچې

تشريح:- وجوب قيمة الفرخ بكسر بيض النعامة اوكه د ماتې شوې هګۍ نه مړ بچې راووتلو. نوپه دې صورت كي به د هغه بچى قيمت اچولې شي. اوهغه به په ده واجب وي. خودا حكم استحسانى دې. ځكه چې د بچى ژوند معلوم نه دې. ځكه چې كيداې شي دا د وړاندې نه مړشوى وي. دهګۍ په ماتولو سره نه وي مړې شوې.

وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَغْرَمَ سِوَى الْبَيْضَةِ قياس دادې چې علاوه د هګۍ نه دې ضامن نه وي لِأَنَّ حَيَاةَ الْفَرْخِ غَيْرُ مَعْلُومَةٍ ځكه چې دبچى ژوند معلوم نه دې. وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ الْبَيْضَ مُعَدٌّ لِيَخْرُجَ مِنْهُ الْفَرْخُ الْحَيُّ وجه داستحسان داده چې هګۍ ځكه چاغه شوې ده چې ددې نه ژوندې بچې راوځي وَالْكَسْرُ قَبْلَ أَوَانِهِ سَبَبٌ لِمَوْتِهِ فَيُحَالُ بِهِ عَلَيْهِ احْتِيَاطًا اومخكي د وخت نه ئې ماتول سبب دمرګ د هغه دې نومرګ لره به احتياطًا په ده محمول كولې شي

تشريح:- وجه القياس اوقياس دا دې. چه صرف د هګۍ دې ضامن شي. اووجه داستحسان دا ده. چه هګۍ ددې لپاره ده. چه ددې نه بچې راوځي. اوس چې دا د خپل وخت نه وړاندې ماته شوه. نوګويا چې ددې ماتول د بچې د مرګ سبب اوګرځيدو. نودا به د احتياط د امله په دې حمل كولې شي. چه د هګۍ د ماتولو د امله مړشوې دې.

وَعَلَى هَذَا إِذَا ضَرَبَ بَطْنَ ظَبْيَةٍ فَأَلْقَتْ جَنِينًا مَيِّتًا وَمَاتَتْ فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُمَا اوبناء په دې اصل ده كه وې وهله نس دهوسۍ اووې غورځولو مړه بچې. نو په ده د دواړو قيمت لازم دې.

تشريح:- نظيره اوهم د استحسان په بنا (بنياد) دا مسئله هم ده. چه اوسۍ په نس باندې اووهې. اودهغې نه مړبچې پيدا شي. اوپه خپله هم مړه شي. نوپه محرم باندې دوې [دوه] ضمانه دى. يود اوسۍ اوبل د بچې.

**دكومو ځناورو په قتل څه نه واجبيږي؟**

وَلَيْسَ فِي قَتْلِ الْغُرَابِ وَالْحِدَأَةِ وَالذِّئْبِ وَالْحَيَّةِ وَالْعَقْرَبِ وَالْفَأْرَةِ وَالْكَلْبِ الْعَقُورِ جَزَاءٌ اونشته په قتل د كارګه (كارغه) اوتپوس او شرموښ اومار اولړم او مږه او چيچونكى سپى كي جزاء.

حل اللغة* ① الغراب: قارغه ② الذئب: شرموښ ③ الحية: مار ④ الفارة: مږه ⑤ الكلب العقور: خوړاكى سپې ]

النعام فسأل علياً رضي الله عنه فقال عليك لک بيضة ضراب ناقة أوجنين ناقة فانطلق إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم فأخبره بما قال فقال قد قال ما سمعت وعليك فى كل بيضة صيام يوم أو إطعام مسكين :ذا فى نصب الراية (١٦٤/٣)_

[1] أخرجه عبدالرزاق فى مصنفه وكذا ابن ابى شيبة فى مصنفه كذا فى نصب الراية (١٦٥/٣)_



تشريح:- ماحل قتله للمحرم شيخ ابوالحسن قدورى رحمه الله فرمائى. كه محرم كارګه (كارغه) يا تپوس يا شرموښ يا مار يا لړم يا مګه يا چيچونكي سپې مړكړل. نوپه ده به څه جزاء واجب نه وي.

لِقَوْلِهِ خَمْسٌ مِنَ الْفَوَاسِقِ يُقْتَلْنَ فِي الْحِلِّ وَالْحَرَمِ د امله د دې قول د نبى ﷺ نه چې پنځه ځناور دبدكاروځنى دى كوم چې په حل اوحرم كي قتل كولې شي الْحِدَأَةُ وَالْحَيَّةُ وَالْعَقْرَبُ وَالْفَأْرَةُ وَالْكَلْبُ الْعَقُورُ كارغه، اومار اولړم اومږه اوچيچونكې سپې وَقَالَ يَقْتُلُ الْمُحْرِمُ الْفَأْرَةَ وَالْغُرَابَ وَالْحِدَأَةَ وَالْعَقْرَبَ وَالْحَيَّةَ وَالْكَلْبَ الْعَقُورَ اونبى ﷺ فرمائيلى دى چې محرم دې وژنى مږه او تپوس او كارګه (كارغه) اولړم اومارا و چيچونكې سپې

تشريح:- دلائله ① دليل د نبى ﷺ قول دې. چه هغوى د پنځوضرورى ځناورو په زمين حل اوحرم دواړو كي د قتلولواجازت وركړې دې. (تپوس، مار، لړم مګه چيچونكې سپې) ② دوهم حديث دا دې. چه مګه. كارګه (كارغه) تپوس، لړم، مار اوچيچونكي سپې محرم قتلولې شى.

السوال والجواب دلته يواشكال دا كيږي. چه نبى ﷺ محرم د ځناورو د قتلولو نه منع كړې دې. خو د دې پنځو د قتلولو اجازت ئې وركړې دې. اوپه بل حديث كي ئې شپږ شمارلى دى. ددې ځواب په اولنى فصل كي وركړې شوې دې.

وَقَدْ ذُكِرَ الذِّئْبُ فِي بَعْضِ الرِّوَايَاتِ[1] اوذكر كړې ئې دې شرموښ په بعضې روايتونو كي وَقِيلَ الْمُرَادُ بِالْكَلْبِ الْعَقُورِ الذِّئْبُ وئيلى شوى دى چې مراد دچيچونكى سپى نه شرموښ دې، أَوْ يُقَالُ إِنَّ الذِّئْبَ فِي مَعْنَاهُ اويا وئيلې شوى دى چې شرموښ په معنى دده دې.

تشريح:- السوال التقديرى د «وقد ذكر الذئب إلخ» سره هم ديو سوال ځواب دې. سوال دا دې. چه د بخارى او مسلم په روايت كي د «ذئب» ذكرنشته. صاحب د قدورى رحمه الله د «ذئب» اضافه دخپل اړخه كړې ده.

الجوابان ① ددې سوال ځواب دا دې. چه په بعضې نورو رواياتوكي د «ذئب» اضافه شته. ② دوهم ځواب دا دې. چه د صحيحينو په روايت كي چې د «كلب عقور» نه مراد «ذئب» دې. ياداسې اويايه چې «ذئب» د «كلب عقور» په معنى كي دى.

وَالْمُرَادُ بِالْغُرَابِ الَّذِي يَأْكُلُ الْجِيَفَ وَيَخْلِطُ لِأَنَّهُ يَبْتَدِئُ بِالْأَذَى اومراد په تپوس سره هغه دې چې خورى مردارې او دا نه خلط كوى ځكه چې دې په آزار رسولو كي ړومبې كيږي أَمَّا الْعَقْعَقُ فَغَيْرُ مُسْتَثْنًى لِأَنَّهُ لَا يُسَمَّى غُرَابًا اوهر چې عقعق دې نودې مستثنى ندې ځكه چې ده ته غراب نشي وئيلې، وَلَا يَبْتَدِئُ بِالْأَذَى اودې په آزاررسولوكي نه ړومبې كيږي.

تشريح:- المراد من الغراب في الحديث علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى. چه په حديث كي د قارغه نه هغه قارغه مراد دې. چه كلهٔ مردارى خورى اوكله دانې خورى. چونكه هغه په خوراك كي د نجاست نه پيل كوى. نودې هم د نجاست خور ځناور پشان شو. اوپاتې شو هغه قارغه كوم چې تور اوسپين وى. اود هغې آواز د «عقعق» سره وى. په حديث كي د هغې استثناء نشته. ځكه چې هغې ته قارغه نه وائى. نودهغې په قتل كولوبه جزاء واجبيږي. اودا عقعق د نجاست نه پيل هم نه كوى. بلكه دانه خورى. اوهم دې ته په خپل خوراك كي ترجيح وركوى.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّ الْكَلْبَ الْعَقُورَ وَغَيْرَ الْعَقُورِ وَالْمُسْتَأْنِسَ وَالْمُتَوَحِّشَ مِنْهُمَا سَوَاءٌ اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې چې چيچونكې اونه چيچونكې سپې برابر دى اوعادت شوې او وحشى دا واړه برابردى لِأَنَّ

[1] من حديث أبى هريرة رضي الله عنه أخرجه الطحاوى فى شرح الآثار باب ما يقتل المحرم من الدواب كذا نصب الراية (١٦٧/٣)_

**اَلْمُعْتَبَرُ فِي ذٰلِكَ الْجِنْسُ** ځکه چې معتبر په دې کې جنس دې **وَكَذَا الْفَارَةُ الْأَهْلِيَّةُ وَالْوَحْشِيَّةُ سَوَاءٌ** او وداشان عادت کړې شوه مږه او وحشي، **وَالضَّبُّ وَالْيَرْبُوْعُ لَيْسَا مِنَ الْخَمْسِ الْمُسْتَثْنَاةِ، لِأَنَّهُمَا لَا يَبْتَدِئَانِ بِالْأَذٰى** او سمساره او کوړنه دی دا پنځه مستثنا کړې شول. ځکه چې دا دواړه په آزار رسولو کې مخکې کیږي نه.

**تشريح:- عدم الاستثناء عن الضب واليربوع**۞ دامام ابوحنيفه رحمه الله نه یوروایت دا دې چې جزاء نه واجبیږي. په هغې کې چیچونکې اوناچیچونکې اوکورنې اوځنګلي واړه سپي برابر دی. ځکه چې د کوم سپي په قتل معتبر جنس دې. اوپه جنس کې کلب اوحقیقت کلب واړه برابردی. اودغه ډول کورنۍ اوځنګلي ټولې مګې برابردی. اوسمسره اوکربوړې په دې پنځوکې نه دی. دکوموچه نبي ﷺ استثناء کړې ده. ځکه چې دواړه ځناور په ضرر رسولوکې وړاندې والې نه کوی. دے

## ماشي، میږی، ورږې اوکټمل د قتل حکم

**وَلَيْسَ فِي قَتْلِ الْبَعُوْضِ وَالنَّمْلِ وَالْبَرَاغِيْثِ وَالْقُرَادِ شَيْءٌ،** اونشته په وژلو د ماشي اومیږی او ورږې او کونې کې څه څیز. **لِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِصُيُوْدٍ وَلَيْسَتْ بِمُتَوَلِّدَةٍ مِنَ الْبَدَنِ ثُمَّ هِيَ مُؤْذِيَةٌ بِطِبَاعِهَا** ځکه چې دا نه دی دښکار نه او نه دی پیداکیدونکې دبدن نه بیا دا پخپل طبیعت سره موذی دی.

**حل اللغة:** ① **بعوض:** ماشې ② **نمل:** میږې ③ **براغيث:** ورږه ④ **قراد:** کونې ⑤ **صيود:** ښکار ⑥ **طباع:** مورزاده (پیدائشي) عادت]

**عدم لزوم شئ بقتل هذه الاشياء**۞ که محرم ماشې، میګې ورګه یامنګوړ (کټمل) مړ کړل. نوپه محرم باندې څه واجب نه دی. ځکه چې دا ښکاری ځناور نه دی. ځکه چې ښکاری ځناورهغه وی. چه د بنیادم نه ویریږی. او دا ځناورد بنیادم ته رغبت کوی. او نه دا ځناور د بنیادم د بدن نه پیدا کیږي. زیات نه زیات دا وئیلی شی چې دا ځناور ضرری دی. اوکه د ځناور ځنګلي وی. نوچونکه دا ښکاری شو. ځکه چې د انسان نه ویریږی. اودښګاری په وژلو جزاء واجب کیږي. اوکه د بنیادم د بدن نه پیدا کیږي. نود انسان د بدن نه کوټ وغیره پاکوی. ددې امله ددې په قتل جزاء واجبیږي. خوچه کله دواړه خبرې نه وی. نوجزاء نه واجبیږي.

**وَالْمُرَادُ بِالنَّمْلِ السُّوْدُ أَوِ الصُّفْرُ الَّذِيْ يُؤْذِيْ** او دنمل نه مراد تور او زیړرنګۍ میږې دې کوم چې آزار رسوی **وَمَا لَا يُؤْذِيْ** اوکوم چې آزار نه رسوی، **لَا يَحِلُّ قَتْلُهَا، وَلٰكِنْ لَا يَجِبُ الْجَزَاءُ لِلْعِلَّةِ الْأُوْلٰى** حلال نه دی وژل دهغه خو جزاء پرې نه واجبیږي د اول علت په امله سره.

**تشريح:- المراد من النمل**۞ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی. چه د میګی نه تور یا زیړ میګې مراد دې. کوم چې انسان ته ضرر رسوی. ددې قتل کول جائزدی. اوپه قتل ئې جزاء هم واجب نه ده. اوهغه میګی چې چاته تکلیف نه رسوی. دهغې قتلول جائز نه دی. خوکه قتل کړې شو. نوجزاء هم واجب نه ده. ځکه چې نه خودا د ښکار په حکم کې دې. اونه د بنیادم د بدن نه پیدا کیږي.

## د سپګې وژل

**وَمَنْ قَتَلَ قَمْلَةً تَصَدَّقَ بِمَا شَاءَ)** او چا چې مړه کړه شپږه (سپږه) خیرات دې کوی څه چې غواړی **مِثْلَ كَفٍّ مِنْ طَعَامٍ** یوموټې غله

**حل اللغة:** ① **قملة:** سپګه ② **كف:** تلې

**تشريح:- الصدقة بقتل القمل**۞ ① که محرم د سریا د بدن د بلې برخې نه شپږه (سپږه) راوخسته. اومړه ئې کړه. یا ئې په مځکه اوغورځوله. نوبکارده چې صدقه ورکړی. مثلاً یوموټې غنم دې ورکړی. ② اوبعضې حضراتو وئیلی دی. چه په دوې [دوه] او دریوسپګوکې دې یو موټې غنم ورکړی. اوددې نه په زیاتوکې نیم صاع غنم صدقه کړی



**لِأَنَّهَا مُتَوَلِّدَةٌ مِنَ التَّفَثِ الَّذِيْ عَلَى الْبَدَنِ** ځکه چې شپږه (سپږه) د هغه خیری نه پیداکیږي کوم چې په بدن پورې وی. **وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ أَطْعَمَ شَيْئًا)** اوپه جامع صغیر کې دی چې څه طعام دې ورکړی **وَهٰذَا يَدُلُّ عَلٰى أَنَّهُ يُجْزِيْهِ أَنْ يُّطْعِمَ مِسْكِيْنًا شَيْئًا يَسِيْرًا عَلٰى سَبِيْلِ الْإِبَاحَةِ** دا په دې دال دې چې په یومسکین دې په طور د اباحت څه اوخوروی دا کافی دی **وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مُشْبِعًا** اګرکه نه وی په مړه خیټه.

**حل اللغة:** ① **تفث:** کوټ ② **مشبعا:** مړوشوې ]

**تشريح:- دليله**۞ دلیل دا دې. چه سپګې د هغه خیرونه پیدا کیږي. کوم چې په بدن باندې وی. اودخیرو په پاکاوه کې ئې فرمائیلی دی. چه د سپګو په وژلو یا په مځکه غورځولو هم څه غله واجبیږي. په جامع صغیر صدقه واجبیږي. نودغه ډول به د سپګو په وژلو یا په مځکه غورځولو هم څه غله واجبیږي. په جامع صغیر کې ئې فرمائیلی دی. چه «أطعم شيأ» یعنی څه دې ورکړی. د جامع صغیرد دې عبارت نه معلومیږی. چه مسکین باندې د اباحت په طور څه خوراك کول کافی دی. په مړه نس پرې خوراك کول شرط نه دې.

## د ملخ د قتل جزاء

**وَمَنْ قَتَلَ جَرَادَةً تَصَدَّقَ بِمَا شَاءَ** کوم محرم چې مړکړو ملخ نو صدقه دې ورکړی څه چې غواړی. **لِأَنَّ الْجَرَادَ مِنْ صَيْدِ الْبَرِّ** ځکه چې ملخ د اوچې ښکارد دې **فَإِنَّ الصَّيْدَ مَا لَا يُمْكِنُ أَخْذُهُ إِلَّا بِحِيْلَةٍ وَيَقْصِدُهُ الْآخِذُ** ځکه چې ښکارهغه دې دکوم چې دحیلې نه بغیر نیول ممکن نه وی اونیونکې ئې قصد اوکړی.

**حل اللغة:** ① **خرادة:** ملخ ]

**تشريح:-** مسئله دا ده. که محرم ملخ قتل کړلو. نوچه څه ئې خوښ وی. هغه دې صدقه کړی. دلیل دا دې. چه ملخ د وچې ښکاردې. ځکه چې ښکارهغه وی. چه بغیردحیلې نه نه دهغه نیول ممکن نه وی. او ښکارکونکې ئې اراده هم لری.

**وَتَمْرَةٌ خَيْرٌ مِنْ جَرَادَةٍ لِقَوْلِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ:** اویوچواره د یوملخ نه غوره ده. په دلیل قول دحضرت عمر رضي الله عنه دې. **تَمْرَةٌ خَيْرٌ مِنْ جَرَادَةٍ**[1] یوچواره غوره ده د یو ملخ نه.

**تشريح:-** صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی. چه یوه خرما (قجوره) د ملخ نه بهتره ده. دا په اصل کې دحضرت عمر رضي الله عنه قول دې. واقعه دا ده. چه د حمص اوسیدونکی محرم خلګو به د ملخانو ښکار زیات کولو. اوبیا به ئې دهرملخ په بدله کې یو درهم صدقه کولو. نوحضرت عمر رضي الله عنه ورته اوفرمائیل. چه یوه روپۍ د یوملخ په بدله کې صدقه کول ډیره ده. دیوملخ په بدله کې یوه خرما صدقه کول هم کافی دی.

## د کشف (شمشتۍ) په قتل کولوعدم جزاء

**وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ فِيْ ذَبْحِ السُّلَحْفَاةِ** اونشته څه شی په ده باندې په ذبح کاوه دشمشتۍ

**حل اللغة:** ① **سلحفاة:** شمشتئی

**تشريح:- عدم الجزاء بقتل السلحفاة**۞ مسئله دا ده. چه محرم کشور قتل کړه. نوپه ده باندې څه تاوان نه واجبیږي.

**لِأَنَّهُ مِنَ الْهَوَامِّ وَالْحَشَرَاتِ** ځکه چې دا د چینجوځنی ده **فَأَشْبَهَ الْخَنَافِسَ وَالْوَزَغَاتِ، وَيُمْكِنُ أَخْذُهُ مِنْ غَيْرِ حِيْلَةٍ** نومشابه شوه د ګونګټانواو چرموښکی (چرمخکۍ) سره اودحیلې نه بغیر نیول ئې ممکن دی **وَكَذَا لَا يُقْصَدُ بِالْأَخْذِ فَلَمْ يَكُنْ صَيْدًا** اودا شان ددې نیول مقصود نه دی نوښکار نه شو.

**حل اللغة:** ① **هوام:** چینجی ② **خنافس:** چینجې ③ **الوزعات:** چمچورکئی ]

**تشريح:- دلائله**۞ ① ځکه چې دا کشور د زمکې د حشراتوځنی ده. نودا د پلیتۍ د چینجواود چرمخکو پشان

[1] أخرجه مالك فى مؤطاه كتاب الحج رقم ۲۳۶)_

شوه.اود حشرات الارض په وژلوکي څه تاوان نه واجبيږي.نودغه ډول به د کشور په وژلوهم تاوان نه
واجبيږي.②دويمه خبره دا ده.چه د کشور بغيرحيلې نه نيول هم ممکن دي.اوڅوك ددې د نيولو اراده هم نه
کوي.نوځکه دا ښکارخناور هم نشو.حالانکه جزاء د ښکارد خناور په قتل باندې واجبيږي.نوځکه د کشور په
وژلو څه جزاء نه واجبيږي.

### د حرم د ښکارنه پيئ لوشل

وَمَنْ حَلَبَ صَيْدَ الْحَرَمِ فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ اوچا چې شيدې اولوشل دښکار دحرم نه نوپده ئې قيمت دې لِأَنَّ اللَّبَنَ مِنْ
أَجْزَاءِ الصَّيْدِ فَأَشْبَهَ كُلَّهُ ځکه چې شيدې دښکار د اجزاؤ څخه دي.نو دا واړه مشابه شو.

**حل اللغة:** ①حلب، حلباً: (ن،ض): شيدې ی لشل ② لبن: شيدې ی ]

**تشريح:** كه محرم د حرم د ښکارنه شيدې اولوشل.نوپه ده باندې د پيؤ د قيمت تاوان واجب دې.ځکه چې
شيدې د ښکاردبدن د اجزاء څخه دې.نومشابه شو عين ښکارسره،اوپه عين ښکارپه جزاء کې تاوان
واجبيږي. دغه ډول به ددې په پيؤ کې هم جزاء واجبيږي.

### د غير ماکول للحم ښکار د قتلولوجزاء

وَمَنْ قَتَلَ مَا لَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ مِنَ الصَّيْدِ كَالسِّبَاعِ وَنَحْوِهَا فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ اوچا چې قتل کړو داسې ښکار چې غوښه ئې
نشوه خوړلې لکه درندګان او ددې پشان نو پده جزاء ده إِلَّا مَا اسْتَثْنَاهُ الشَّرْعُ وَهُوَ مَا عَدَدْنَاهُ علاوه دهغونه کوم چې
شريعت مستثنی کړی دي او دغه هغه دی کوم چې موږ شمار کړل

**حل اللغة:** ①لايؤكل، اكل ياكل (ن): خوراك ② سباع: ماتونکی څناور ③ما استثناه، استثنی، استثناء: مستثنی کول، د
وراندینی حکم نه ویستل

**تشريح:- المذهبان في وجوب جزاء قتل غيرماكول اللحم** ۞ ①مسئله که محرم غيرماکول اللحم څناور قتل
کړلو.لکه ماتونکې څناور زمکې شرموښ وغیره نوددې په قتلولو به هم جزاء واجب وی.البته دهغه څناورو
په قتل جزاء نه واجبيږي.دکوموچه شریعت استثناء کړې ده.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا يَجِبُ الْجَزَاءُ لِأَنَّهَا جُبِلَتْ عَلَى الْإِيذَاءِ او وئيلي دی شافعی رحمه الله جزاء واجب نده ځکه چې
آزاررسول ددوی فطرت دي فَدَخَلَتْ فِي الْفَوَاسِقِ الْمُسْتَثْنَاةِ نودا په پنځه مستثنی فواسقوکې داخل شو وَكَذَا اسْمُ
الْكَلْبِ يَتَنَاوَلُ السِّبَاعَ بِأَسْرِهَا لُغَةً اودغه ډول نوم دسپی لغت ټولو درندګانو لره کډ دي.

**تشريح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی چه د غيرماکول اللحم څناورو په قتل به جزاء نه واجبيږي.
①**دليله** ۞ دليل دا دې.چه دا څناور د خپل فطرت په اعتبارسره ضرری او واقع شوی دی.نودا ماتونکې څناوره
دهغه فواسق سره ملحق کولی شی.په کوم کې چې د ضرر رسولو ماده موجود وی.(ځکه چې علت د استثناء
په دواړوکې يودې.چه ضرر رسول دی.اوچه اتحاد د علم سبب د اتحاد د حکم دې)

وَلَنَا أَنَّ السَّبُعَ صَيْدٌ لِتَوَحُّشِهِ وَكَوْنِهِ مَقْصُودًا بِالْأَخْذِ زمونږدليل دادې چې درنده ښکار دې د ده د توحش او
مقصوديت په وجه، إِمَّا لِجِلْدِهِ أَوْ لِيُصْطَادَ بِهِ أَوْ لِدَفْعِ أَذَاهُ يادده دڅرمنې لپاره يا پرې دښکار کاوه لپاره يا دده آزار
لرې کاوه لپاره

**تشريح:-** زمونږ دليل دا دې.چه ماتونکې څناور وحشی.د خلګو نه تختی.او خلګ ددې د نیولو اراده هم
کوی.يادد ې لپاره چې د هغې د څرمن نه فائده واخلی.لکه زمرې يا ددې لپاره چې دهغې په ذريعه ښکار
اوکړی.لکه باز، يا دهغې د ضررلرې کاوه لپاره لکه ځنګلی خنزير،اوپه کوموخناورو کې چې دا صفات
وی.نوهغه ښکاروی. نو ماتونکې څناورهم ښکارشو.اود ښکارپه اړه کښې دالله تعالی ارشاد دې.چه لَا تَقْتُلُوا
الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ نو ددې په قتل کاوه به جزاء واجبيږي.



وَالْقِيَاسُ عَلَى الْفَوَاسِقِ مُمْتَنِعٌ لِمَا فِيهِ مِنْ إِبْطَالِ الْعَدَدِ اوپه فواسق باندې ئې قياس کول ممنوع دی.ځکه چې په
دې کې عدد لره باطلول دی، وَاسْمُ الْكَلْبِ لَا يَقَعُ عَلَى السَّبُعِ عُرْفًا وَالْعُرْفُ أَمْلَكُ اواسم د کلب عرفاً په درنده نه واقع
کيږي اوعرف زيات قوی دې.

**تشريح:- الجواب من قياس الشافعي رحمه الله** ۞دامام شافعی رحمه الله د قياس څواب دا دې.چه ماتونکې څناورپه
فواسق باندې قياس ممتنع دې.ځکه چې د قياس په صورت کې چې کوم د پنځو شماريه حديث کې
ذکرشوی دې.هغه باطليږي.اودامام شافعی رحمه الله دا وينا چې د لفظ «کلب» په ماتونکوڅناورو باندې
اطلاق کيږي.غلطه ده.ځکه چې د «کلب» اطلاق په عرف کې په ماتونکې څناور باندې نه کيږي.اوهم
عرف قوی دليل دې.نوځکه ماتونکې څناور په کلب کې شمارل اود دې جزاء ساقط کولې نشی.بلکه د
ماتونکوخناورو د قتل په صورت کې به جزاء واجب وی.

### د وزه د قيمت نه د تجاوزپه صورت کې اختلاف

وَلَا يُجَاوِزُ بِقِيمَتِهِ شَاةً وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ: تَجِبُ قِيمَتُهُ بَالِغَةً مَا بَلَغَتْ اوددې په قيمت کې به ديوې وزه نه زياتې
نشی کولی.امام زفر رحمه الله فرمائی چه پوره قيمت به واجب وی.هرڅومره ته چې رسی اعْتِبَارًا بِمَأْكُولِ اللَّحْمِ
قياس په ماکول الحم باندې کوی،

**حل اللغة:** ①لايجاوز، تجاوز، يتجاوز تجاوزاً: تيريدل، د حدنه زياتې کول ②بالغة مابلغت: ترکومې ځای پورې چې
اورسی

**تشريح:- المذهبان في قدرجزاء صيدغيرماكول اللحم** ۞مسئله دا ده.①که محرم غيرماکول اللحم څناور قتل
کړلو.نوپه هغه باندې د جزاء په حيثيت دومره قدر تاوان واجبيږي.چه د يوې وزه قيمت ته نه رسی.②اودامام
زفر رحمه الله په نيزچه دهغه قيمت هرڅومره ته رسی.هم هغه به واجبيږي.دوی غيرماکول اللحم په ماکول اللحم
باندې قياس کوی.

وَلَنَا قَوْلُهُ ﷺ «الضَّبُعُ صَيْدٌ وَفِيهِ الشَّاةُ» (١) اوزمونږدليل دنبی ارشاد دې چې کوږ ښکار دې اوپده کې وزه ده وَلِأَنَّ
اعْتِبَارَ قِيمَتِهِ لِمَكَانِ الِانْتِفَاعِ بِجِلْدِهِ لَا لِأَنَّهُ مُحَارِبٌ مُؤْذٍ اوځکه چې دده دقيمت اعتبار ده دڅرمنې نه دنفعې
حاصلولو په دخل سره دې.نه چې دده د جنګ کولواوموذی کيدو په وجه. وَمِنْ هَذَا الْوَجْهِ لَا يُزَادُ عَلَى قِيمَةِ الشَّاةِ
ظَاهِرًا اوپه دې لحاظ سر به ظاهراً دوزه دقيمت نه نه زياتيږي

**تشريح:- دلائل الاحناف** ۞ ①ﷺ اوزمونږدليل د نبی ﷺ دا قول دې. «الضبع صيدوفيه شاة» ② او دوهم دليل دا
دې.چه د غيرماکول اللحم د قيمت اعتباربه دهغې د څرمن مناسب وی.ځکه چې دهغه غوښه نشی خوړلې
نوڅرمن پاتې شوه.اود څرمن قيمت چونکه د وزه د قيمت نه نه زياتيږي.دغه ډول دا څناور ضرری وی.
نوځکه موږ دا قول اختيارکړلو.چه د ماتونکې څناور جزاء به د وزه د قيمت نه زيات نه وی.

### د حملې کولوپه حال کښې د ماتونکی څناورد قتل د جزاء حکم

وَإِذَا صَالَ السَّبُعُ عَلَى الْمُحْرِمِ فَقَتَلَهُ لَا شَيْءَ عَلَيْهِ اوکه درنده چور اوکړی په محرم باندې اوده قتل کړو.نوپده څه
نشته

**حل اللغة:** ①صال، صولاً (ن): چور کول ②سبع: ماتونکې څناور

**تشريح:- المذهبان في جزاء الصيدالصائل** ۞مسئله دا ده.①که ماتونکې څناوريه محرم باندې چور اوکړله .اوده

١) غربه الزيلعي رحمه الله نصب الراية (١٦٨/٣)_

قتل کړلو.نوپه ده به جزاء نه وي

وَقَالَ زُفَرُ: يَجِبُ الْجَزَاءُ اعْتِبَارًا بِالْجَمَلِ الصَّائِلِ امام زفر رحمه الله فرمائی چې واجب ده قیاس په اوښ چور کوونکی باندې کوی.

**حل اللغة** * ① جمل: اوښ

**تشریح:-** اوامام زفر رحمه الله فرمائی.چه په ده باندې جزاء واجب ده.

**دليله**۞دامام زفر رحمه الله دلیل قیاس دې.که اوښ په انسان باندې چور اوکړله.اوده هغه اوښ قتل کړلو.نوپه ده باندې د هغې قیمت واجب دې.اګرچه ده د ضرر لرې کولود امله هغه قتل کړې وی.نودغه ډول دلته د ماتونکی ځناورد قتل په صورت کې هم جزاء واجب وی.

وَلَنَا مَا رُوِيَ عَنْ عُمَرَ أَنَّهُ قَتَلَ سَبُعًا وَأَهْدَى كَبْشًا اوزمونږ دلیل هغه اثردې کوم چې دحضرت عمر رضي الله عنه نه روایت دې.چه ده یودرنده قتل کړو اویوګډ ئې قربانی کړو.وَقَالَ: إِنَّا ابْتَدَأْنَاهُ [1] اووې فرمائیل چې موږ پده رومبی شوی وو

**حل اللغة** * ① كبشا: دوکالنې ګډ اود بعضو په قول څلورکالنې ګډ

**تشریح:- دلائل جمهورالاحناف** ۞ ① زمونږ دلیل دحضرت عمر رضي الله عنه اثردې.هغوی په یوماتونکی ځناور باندې چور اوکړله.اوهغه ئې قتل کړلو.نویوه وزه ئې د هدي په طور اولیږله.اودا ئې اوفرمائیل.چه موږ په هغه باندې چور کړې وه.ځکه موږ وزه اولیږله.یعنی موږ پرې وړاندې والې اوکړلو.که هغه چور کړې وه.نوبیا به په موږ څه واجب نه وو

وَلِأَنَّ الْمُحْرِمَ مَمْنُوعٌ عَنِ التَّعَرُّضِ لَا عَنْ دَفْعِ الْأَذَى اوځکه چې دې د ښکار دتعرض نه منع شوې دې.نه د آزادولو، وَلِهَذَا كَانَ مَأْذُونًا فِي دَفْعِ الْمُتَوَهَّمِ مِنَ الْأَذَى كَمَا فِي الْفَوَاسِقِ نوپه دې وجه ده ته اجازت ورکړې شوې دې د متوهم تکلیف لرې کاوه لکه په فواسقو کې فَلَأَنْ يَكُونَ مَأْذُونًا فِي دَفْعِ الْمُتَحَقِّقِ مِنْهُ چې ده. نوپه متحقق آزار لرې کاوه کې خوبه په طریق اولی ورته اجازت وی. أَوْلَى، وَمَعَ وُجُودِ الْإِذْنِ مِنَ الشَّارِعِ لَا يَجِبُ الْجَزَاءُ حَقًّا لَهُ اودشارع دارخه د اجازت باوجود جزاء نه واجبیږي.دشارع دحق کیدو په وجه،

**تشریح:-** دوهم دلیل دا دې.چه مُحْرِم ځناورته د تعرض کولونه منع شوې دې.اوددې نه نهٔ دې منع شوې.که په ده چور اوکړی.نودې به خپله دفاع نه کوی.هم دا وجه ده.چه په فواسقو کې د ضرر وهم وو.نود هغوی د ضرر لرې کولوپه وجه دهغوی دقتل اجازت ورکړې شوې دې.اوپه دې صورت کې چې ماتونکې ځناور چور اوکړی.نوتکلیف رسیدل یقینی دی.نودلته خوبه په درجه اولی سره د هغې د لرې کولواجازت وی.اوچونکه د درنده د ضرر لرې کولواجازت د شارع ﷺ د اړخه دې.نوځکه به د ماتونکی ځناور د قتل په صورت کې جزاء واجب نه وی.

بِخِلَافِ الْجَمَلِ الصَّائِلِ، لِأَنَّهُ لَا إِذْنَ مِنْ صَاحِبِ الْحَقِّ وَهُوَ الْعَبْدُ په خلاف د چور کوونکی اوښ نه ځکه چې دصاحب د حق یعنی بنده د اړخه ده ته اجازت نشته

**تشریح:- الجواب عن قياس زفر** رحمه الله ۞په خلاف د چور کونکی اوښ،یعنی که اوښ په چا باندې چور اوکړله. او ده هغه اوښ قتل کړلو.نوپه ده به د هغې قیمت واجب وی.ځکه چې په دې صورت کې د مالك د اړخه ده ته د قتل کولواجازت نه دې ملاؤ شوې.اوهرکله چې د مالك د اړخه د قتل کولواجازت نشته.نودهغه حق به هم نشی ساقط کیدې.

[1] غربه الزيلعی رحمه الله (نصب الرأية ۱۶۸/۳)_



## د اضطرار په حالت کې دښکارپه قتلولودجزاء وجوب

فَإِنِ اضْطُرَّ الْمُحْرِمُ إِلَى قَتْلِ صَيْدٍ فَقَتَلَهُ فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ که لاچاره شی محرم قتل دښکارته او قتل ئې کړو نو پده جزاء ده

**حل اللغة** * ① اضطر، اضطرارا: مجبوره کیدل، لاچاره کیدل ]

**تشریح:- وجوب الجزاء عند الاضطرار الى الصيد**۞مسئله دا ده.که محرم د سختې لوږې یا بل څه امله د ښکارقتلولو ته مجبورشو.اوښکار ئې قتل کړلو.نوپه دې صورت کې به هم په ده باندې جزاء واجب وی.

لِأَنَّ الْإِذْنَ مُقَيَّدٌ بِالْكَفَّارَةِ بِالنَّصِّ عَلَى مَا تَلَوْنَاهُ مِنْ قَبْلُ ځکه چې اجازت مقید دې دکفارې پورې د نص په ذریعه لکه چې موږ تلاوت کړې دې مخکې.

**تشریح:- دليله**۞ځکه چې شریعت محرم د ممنوعاتود احرام نه منع کړې دې.اوپه کوم صورت کې ئې د هغې د کولواجازت ورکړې دې.نود هغې جزاء ئې هم مقرر کړې ده.دالله تعالی ارشاد دې. [فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِنْ رَأْسِهِ فَفِدْيَةٌ مِنْ صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ فَإِذَا أَمِنْتُمْ] ګوره! الله تعالی د عذر په وجه محرم ته د سرخرئیلو اجازت ورکړې دې.خود کفاره ئې هم مقرر کړې ده.نودغه ډول دلته هم که د ښکارخوراك ته مجبور شو.نود ښکاراجازت ورته ملاویږی.خوورسره به د ښکارجزاء هم واجبیږی.دکوم تفصیل چې وړاندې تیر شوې دې.

## د ځینځناورو د ذبحې جواز

وَلَا بَأْسَ لِلْمُحْرِمِ أَنْ يَذْبَحَ الشَّاةَ وَالْبَقَرَةَ وَالْبَعِيرَ وَالدَّجَاجَةَ وَالْبَطَّ الْأَهْلِيَّ اونشته حرج په دې کې چې ذبح کړی محرم وزه یا غوې یا اوښه یا چرګه یا ساتلې شوې بطحه لِأَنَّ هَذِهِ الْأَشْيَاءَ لَيْسَتْ بِصُيُودٍ؛ لِعَدَمِ التَّوَحُّشِ ځکه چې دا شیان (ځیزونه ) دښکار نه دی.د وحشی نه کیدو په وجه، وَالْمُرَادُ بِالْبَطِّ الَّذِي يَكُونُ فِي الْمَسَاكِنِ وَالْحِيَاضِ؛ لِأَنَّهُ أَلُوفٌ بِأَصْلِ الْخِلْقَةِ ود بطحې نه مراد هغه ده کومه چې په کورونو اوحوضونوکې اوسی ځکه چې دا په اصل خلګت کې مانوس دی.

**حل اللغة** * ① لاباس: هیڅ باك نشته ② شاة: چیلئی ③ بقرة: غوې ④ بعير: اوښ ⑤ دجاجة: چرګه ⑥ البط الاهلى: کورنئی بطخ ⑦ مساكن: دَ اوسیدو ځائ ⑧ حياض: حوض، تالاب ⑨ الوف: خوزیدلې ]

**تشریح:-** مسئله ښکاره ده.

## د مسروله کونترې د ذبح کولوحکم

وَلَوْ ذَبَحَ حَمَامًا مُسَرْوَلًا فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ که ذبح ئې کړه پاموز کونتره (پیکوړووالا) نوپده باندې جزاء ده

**حل اللغة** * ① مسرولا: پاموزکونتره دَ کومې په پښوچه ویښته وی

**تشریح:- تعريف السرولة**۞مسروله هغه کونتره ده.د کومې په پښو چې ویخته اووزرې ښه ډیرې وې.لکه چې دې سروایل یعنی پایکالی (پرتوګ) اغوستې دې.دې ته پاموز وائی.

**المذهبان في ذبح الحمامة السرولة**۞مسئله دا ده.① که محرم مسروله کونتره ذبح کړه.نوزموږ په نیزپه ده باندې جزاء واجب ده.

خِلَافًا لِمَالِكٍ رَحِمَهُ اللَّهُ په خلاف د امام مالك رحمه الله لَهُ أَنَّهُ أَلُوفٌ مُسْتَأْنِسٌ وَلَا يَمْتَنِعُ بِجَنَاحَيْهِ لِبُطْءِ نُهُوضِهِ دده دلیل دادې چه دا عادت کیدونکې مانوس ده او بچاؤ نشی کولې په ځانګونوخپلو دسستو پورته کیدو په وجه،

**حل اللغة** * ① الوف: خوزیدلې ② مستانس: مانوس ③ جناح: وزرو ته وائی ④ بطوء: سست ⑤ نهوض: الوت.

**تشریح:-** اوامام مالك رحمه الله فرمائی.چه په جزاء واجب نه ده.

**دليله**۞دامام مالك رحمه الله دلیل دادې.چه سورله کونتره مانوس اود خلګو پاللې شوې وی. سمه اودریدې

اوالوتې نشي.نوځكه دا په خپلو وزرو خپل ځانته پوره نشى كولې.اوداسې ځناور د ښكار وئيلو مستحق نه دې.اوهركله چې ښكار نشو.نوددې په قتلولوكي به جزاء هم نه وي.

وَنَحْنُ نَقُوْلُ: اَلْحَمَامُ مُتَوَحِّشٌ بِأَصْلِ الْخِلْقَةِ مُمْتَنِعٌ بِطَيَرَانِهٖ اومور دا وايو چې كونتره وحشى ده پخپل اصل خلګ ت سره.اوپخپلو الوتلو سره ځان بچ كوئ. وَإِنْ كَانَ بَطِيْءَ النُّهُوْضِ اګر چې په پورته كيدو كي سسته ده.

تشريح:- دليل الاحناف ﷭ ۞زمونږدليل دا دې.چه كونتره د خپل خلګ ت اوفطرت په اعتبارسره ځنګلى وى. او د الوتو په وجه خپل ځانته هم كولې شى.اګرچه په الوتوكي چالاكه نه وى.

وَالْاِسْتِئْنَاسُ عَارِضٌ فَلَمْ يُعْتَبَرْ ۞پاتې شو ددې د خلګو سره مانوس كيدل دا عارضى وى.اواعتباراصلى معانيولره وى.عارضى لره نه وى.نوپه دې باندې د صيد تعريف صادق شو.اود صيد په ذبح كولوكي جزاء واجبيږى.نودغه ډول به ددې په ذبح كولوكي هم جزاء واجب وى.

## د بلدې اوسۍ د ذبح كولوحكم

وَكَذَا إِذَا قَتَلَ ظَبْيًا مُسْتَأْنَسًا لِأَنَّهٗ صَيْدٌ فِي الْأَصْلِ فَلَا يُبْطِلُهُ الْاِسْتِئْنَاسُ دغه ډول كه ساتلې هوسۍ مړه كړى ځكه چې دغه ښكار دې په اصل كښې نومانوس كيدل دې لره نه باطلوى.

حل اللغة: ① ظبى: هوسئى ② مستانس: خوزيدلې ③ فلا يبطله، ابطل، ابطالاً: باطل كول ]

تشريح:- وجوب الجزاء بذبح الظبى المانوس ۞مسئله دا ده.كه محرم بلده اوسۍ ذبح كړله.نوپه ده به جزاء واجب وى.ځكه چې اوسۍ د خپل خلګ ت په اعتبارسره صيد دې.اوددې د خلګو سره مانوس كيدل عارضى ځيزدې.نوځكه دا مانوس كيدل ددې ښكارى كيدل نه باطلوى.

كَالْبَعِيْرِ إِذَا نَدَّ لَا يَأْخُذُ حُكْمَ الصَّيْدِ فِي الْحُرْمَةِ عَلَى الْمُحْرِمِ لكه اوښ چې كله اوتريګى او تختى نونه اخلى حكم دښكار په حرمت كي په محرم باندې.

تشريح:- لكه اوښ يوكورنې ځناوردې.خوكه دا سركښه (سركشه) شى.نوددې دا سركشى د دې كورنې والې نه باطلوى.چه په دې د ځنګلى حكم اولګولې شى. او په محرم باندې لكه د ښكارى ځناور د حرمت حكم نه اخلى.نودغه ډول دلته د ساتلې شوې اوسۍ حكم هم حيثيت هم نه بدليږى.

## د محرم د ذبح حكم

وَإِذَا ذَبَحَ الْمُحْرِمُ صَيْدًا فَذَبِيْحَتُهٗ مَيْتَةٌ لَا يَحِلُّ أَكْلُهَا او كله چې محرم ښكار ذبح كړونودده ذبيحه ټوك ده خوراك ئې حلال نه دې.

حل اللغة: ① ذبح، ذبحًا (ف): حلالول ② ميتة: ټوك

تشريح:- المذهبان في حكم ذبيحة المحرم لغيرالمحرم ۞مسئله دا ده.① كه محرم د ښكارځناور ذبح كړلو. نودده ذبيحه ټوك ده.اوددې خوراك د حلال سړى لپاره هم جائز نه دې.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ: يَحِلُّ مَا ذَبَحَهُ الْمُحْرِمُ لِغَيْرِهٖ امام شافعى ﷬ وائى چې كه محرم ذبح اوكړه نودغه دغيرمحرم لپاره حلاله ده، لِأَنَّهٗ عَامِلٌ لَهٗ فَانْتَقَلَ فِعْلُهٗ إِلَيْهِ ځكه چې دې دغير لپاره كاركوونكې دې نودده فعل هغه ته منتقل شو.

تشريح:- امام شافعى ﷬ فرمائى.كه محرم د غيرمحرم لپاره ذبح د ښكار اوكړله.نود دغه غير لپاره ددهٔ ذبيحه خوړل حلال دى.ځكه چې ده د هغه لپاره دا ذبح كړې ده.نودا داسې شنوه.لكه چې حلال سړى ذبح كړې وى.اود حلال سړى ذبيحه حلاله وى.دغه ډول به دا هم حلاله وى.

وَلَنَا أَنَّ الذَّكَاةَ فِعْلٌ مَشْرُوْعٌ وَهٰذَا فِعْلٌ حَرَامٌ اوزمونږدليل دا دې چې ذبح كول مشروع كاردې اودمحرم دا فعل حرام دې فَلَا يَكُوْنُ ذَكَاةً كَذَبِيْحَةِ الْمَجُوْسِيِّ نو ذبح كيداې نشى لكه د آتش پرستو ذبيحه



تشريح:- دليل الاحناف ﷭ ۞زمونږدليل دا دې.چه ذبح يومشروع فعل دې.اود محرم ذبح غيرمشروع ده.ځكه چې الله تعالى فرمائيلى دى [لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ] يعنى تاسومه قتل كوئ ښكارپه دې سې حال كې چې تاسو په احرام كي ئې.ګورئ په دې آيت كي الله تعالى د محرم فعل ته قتل وئيلې دې.ذبح ئې نه ده وئيلې.نوځكه به د محرم ذبيحه ذبح نه وى.لكه مجوسى ذبح اوكړى.نوهغې ته ذبح نشى وئيلې.ځكه چې مجوسى د ذبح اهل نه دي

وَهٰذَا لِأَنَّ الْمَشْرُوْعَ هُوَ الَّذِيْ قَامَ مَقَامَ الْمُمَيِّزِ بَيْنَ الدَّمِ وَاللَّحْمِ تَيْسِيْرًا اودا ځكه چې ذبح مشروع په آسانتيا سره دغوښې اووينې په مينځ كښې د جدائې راوستلو قائمقام ده. فَيَنْعَدِمُ بِانْعِدَامِهٖ نوددې په نيشتوالى به حلاليدل معدوم شى.

تشريح:- .اوبله دا چې د ځناور د بدن وينه پليته وى.نودا وينه لرې كول ځكه ضرورى دى.چه دده غوښه د خوراك قابله شى.اود غوښې اووينې په مينځ كي امتياز كول ډيرګران كاردې.نوددې امتياز پيدا كاوه لپاره ذبح مشروع ددې قائم مقام كړې شوه.اوداسې اووئيلى شو.كه په مشروع طريقه ذبح اونشوه.نووينه د غوښې نه جلا نشو.اوددې غوښه حرامه شوه.نوهركله چې په مشروع طريقه ذبح معدوم شوه.نود غوښې حلالوالې هم موجود نشو.حاصل دا چې هركله د محرم ذبح مشروع نشوه.نودده ذبيحه ټوك شوه.اود مردارې خوړل د هيچا لپاره جائزنه وى.نودغه ډول د محرم د ذبيحې خوراك هم د هيچا لپاره جائزنه دې.

## د محرم دخپلې د ذبيحې نه خوراك كول

فَإِنْ أَكَلَ الْمُحْرِمُ الذَّابِحُ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا فَعَلَيْهِ قِيْمَةُ مَا أَكَلَ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ) رَحِمَهُ اللّٰهُ ([1] كه حلاله كوونكې محرم د دې نه څه اوخوړل،نوپه ده قيمت واجب دې.د هغې چې ده خوړلې دې. د امام ابى‌حنيفه ﷬ په نزد

حل اللغة: ① اكل، اكلاً (ن): خوراك ② ذابح: ذبح كونكې

تشريح:- وجوب قيمة اللحم باكل ذبيحته ۞مسئله دا ده.كه محرم د خپلې ذبيحې نه څه خوراك اوكړلو .ددې باوجود چې دده ذبيحه ټوك ده.نود امام ابوحنيفه ﷬ په نيزپه ده باندې هغومره غوښې قيمت واجب دې.كومه چې ده خوړلې ده.

وَقَالَا: لَيْسَ عَلَيْهِ جَزَاءُ مَا أَكَلَ او صاحبين ﷭ فرمائى چې نشته په ده جزاء د هغې چې ئې خوړلې وى. وَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ مُحْرِمٌ آخَرُ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ فِيْ قَوْلِهِمْ جَمِيْعًا اوكه اوخوړه ترې محرم بل نود ټولوپه قول كې په ده څه نشته.

حل اللغة: ① جزاء: بدله

تشريح:- خلاف ا لصاحبين ﷭ ۞اوصاحبين ﷭ فرمائى.چه په دهٔ باندې د استغفار نه سوې بل څه قيمت وغيره واجب نه دى.اوكه د محرم د ذبيحې نه بل محرم خوراك اوكړلو.نوپه هغه باندې په اتفاق سره هيڅ واجب نه دى.

لَهُمَا أَنَّ هٰذِهٖ مَيْتَةٌ فَلَا يَلْزَمُهٗ بِأَكْلِهَا إِلَّا الْاِسْتِغْفَارُ د صاحبينو ﷭ دليل دادې چې دا ذبيحه ټوك ده نو نه دى لازم په خوراك ددې مګر استغفار وَصَارَ كَمَا إِذَا أَكَلَهٗ مُحْرِمٌ غَيْرُهٗ اودا داسې شوه لكه چې دده نه بغير ئې بل محرم اوخورى

دليل الصاحبين ﷭ ۞دصاحبينو ﷭ دليل دا دې.چه دمحرم ذبيحه ټوك ده.اود مردارې په خوراك باندې د استغفار اوتوبې نه سوې بل څه نه واجبيږى.نودغه ډول په ده باندې هم څه نه واجبيږى . او دا داسې شوه.لكه

[1] القول الراجح هو هذا قول أبى حنيفة ﷬ كذا فى المبسوط (۱۰۰/۱۳) وشرح الوقاية (۲۸۲/۱) والتاتارخانية (۴۸۵/۲) والهندية (۲۵۱/۱) نقلاً عن القول الراجح (۲۳۴/۱)-

چې د ذابح محرم نه سوې بل محرم ددې مردارې نه خوراك اوكړلو.نوپه هغه صورت كې پرې د استغفارنه سوې بل څه نه واجبيږي.دغه ډول به په دې صورت كې هم چې ذبح كوونكى محرم د خپلې ذبيحې نه خوراك اوكړي.

**وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّ حُرْمَتَهُ بِاعْتِبَارِ كَوْنِهِ مَيْتَةً كَمَا ذَكَرْنَا** دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې چې ددې ذبيحې حرمت ددې دمردارې په اعتبار سره دې لكه چې موږ ذكر كړې دى **وَبِاعْتِبَارِ أَنَّهُ مَحْظُورُ إِحْرَامِهِ** اوددې ذبيحې كيدلو په اعتبارسره دې **لِأَنَّ إِحْرَامَهُ هُوَ الَّذِي أَخْرَجَ الصَّيْدَ عَنِ الْمَحَلِّيَّةِ** ځكه چې دده احرام ښكارلره دحلالوالى نه **وَالذَّابِحَ عَنِ الْأَهْلِيَّةِ فِي حَقِّ الذَّكَاةِ** اوذبح كوونكى لره داهليت نه ويستلې دې. او د ذبيحې د پاكيدو په حق كې **فَصَارَتْ حُرْمَةُ التَّنَاوُلِ بِهَذِهِ الْوَسَائِطِ مُضَافَةً إِلَى إِحْرَامِهِ** نود خوراك حرام كيدل په دې واسطه دده احرام ارخ ته منسوب شو.

**تشريح:- دليل ابى حنيفة** رحمه الله: دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه دمحرم ذبيحه د دوو وجوهاتو د كبله حرامه ده.يوخودې امله چې دده ذبيحه ټوك ده.لكه څنګه چې وړاندې ذكر اوشو.اوبل د دې امله چې دا ذبيحه د احرام د ممنوعاتوځنې ده.ځكه چې دده احرام ښكارد ذبح كولود محليت نه اوويستلو.دغه ډول محرم ئې د ذبح كولود اهليت نه اوويستلو.نوددې وجوهاتو د كبله د حرمت نسبت احرام ته كيږي.نوثابته شوه.چه د محرم د خپلې ذبيحې نه خوراك كول د احرام د ممنوعاتوځنې دى.اود احرام په ممنوعاتوكې د يوپه ارتكاب سره جزاء واجبيږي.نوځكه به په ده باندې د هغه غوښې ضمان واجبيږي.كومه چې ده په حالت د احرام كې خوړلې وى.

**بِخِلَافِ مُحْرِمٍ آخَرَ لِأَنَّ تَنَاوُلَهُ لَيْسَ مِنْ مَحْظُورَاتِ إِحْرَامِهِ** په خلاف دبل محرم نه ځكه چې خوړل دده داحرام دمحظوراتو ځنې نه دى.

**تشريح:- الجواب عن القياس** رحمه الله: پاتې شود بل محرم د دې مردارې نه خوراك كول.نوچونكه د هغه خوراك د هغه د احرام د ممنوعاتوځنې نه دې.نوځكه به په هغه ضمان هم نه واجبيږي.

## دحلال د ذبح شوى ښكارد محرم لپاره خوراك

**وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَأْكُلَ الْمُحْرِمُ لَحْمَ صَيْدٍ اصْطَادَهُ حَلَالٌ وَذَبَحَهُ** وڅه باك نشته په دې كې چې اوخورى محرم غوښه د هغې ښكار چې كړې وى حلال او هغه ئې ذبحه كړې وى. **إِذَا لَمْ يَدُلَّ الْمُحْرِمُ عَلَيْهِ، وَلَا أَمَرَهُ بِصَيْدِهِ** كله چې نه وى خودلې ورته محرم اونه ئې ورته دښكار حكم كړې وى.

**حل اللغة:** ① **لاباس:** هيڅ حرج نشته ② **اصطاد، اصطياداً:** ښكاركول ③ **لم يدل، دل، دلالة (ن):** لارخودنه كول

**تشريح:- المذهبان في وجوب الضمان باكل صيدغيرالمحرم** رحمه الله: مسئله دا ده.① كه غيرمحرم كس ښكار اوكړلو.اوهغه ئې ذبح كړلو.اوبيا ئې په محرم باندې اوخوړلو.نوپه محرم باندې څه ضمان نه واجبيږي.خوپه دې شرط چې نه ورته محرم دلالت كړې وى.اونه ئې ورته حكم كړې وى

**خِلَافًا لِمَالِكٍ رَحِمَهُ اللَّهُ فِيمَا إِذَا اصْطَادَهُ لِأَجْلِ الْمُحْرِمِ** په خلاف د امام مالك رحمه الله. په هغه صورت كې چې كله حلال دمحرم لپاره ښكاركړې وى **لَهُ قَوْلُهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {لَا بَأْسَ بِأَكْلِ الْمُحْرِمِ لَحْمَ صَيْدٍ مَا لَمْ يَصِدْهُ أَوْ يُصَدْ لَهُ.** [1] دده دليل دا قول د نبى دې چې څه باك نشته دمحرم دښكار په غوښه خوړلوكښې په دې شرط چې ده ښكار نه وى كړې اونه ده لره شوې وى.

---

[1] من جابربن عبدالله رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى المناسک باب ٤٠ رقم ١٨٥١ والترمذى فى الحج باب ٢٥ رقم ٨٤٦ والنسائى فى المناسک باب ٨١)_



**تشريح:-** امام مالك رحمه الله فرمائى.كه غيرمحرم په دې اراده ښكار اوكړلو.چه دا به په محرم باندې خورم.اومحرم د هغې نه خوراك اوكړلو.نوپه دې صورت كې په محرم باندې دخوړلې شوې غوښې ضمان واجب دې.برابره ده كه محرم ورته د ښكارحكم كړې وى اوكه نه.

**دليل مالك** رحمه الله: دامام مالك رحمه الله دليل هغه حديث دې.چه په هغې كې فرمائى.په محرم باندې د هغه ښكارپه غوښه كې څه باك نشته.چه نه ښكاركړې وى.اونه دده لپاره ښكارشوې وى.ګورئ ددې حديث نه معلومه شوه.چه كوم ښكارد محرم لپاره شوې وى.دده لپاره د هغې خوراك هم جائز نه دې.

**وَلَنَا مَا رُوِيَ {أَنَّ الصَّحَابَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ تَذَاكَرُوا لَحْمَ الصَّيْدِ فِي حَقِّ الْمُحْرِمِ** اوزموږ دليل هغه دې چې روايت دې دصحابه كرامو رضي الله عنهم نه چې مذاكره ئې كوله دښكار دغوښې په حق د محرم كې، **فَقَالَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا بَأْسَ بِهِ** [1] نو نبى صلى الله عليه وسلم وويل په دې كښې هيڅ باك نشته.

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمه الله: زموږدليل دا دې.چه يوځل صحابه كرامو رضي الله عنهم دهغه ښكارپه اړه كې بحث پيل شو.كوم چې د محرم لپاره شوې وى.په دې كې د صحابو رضي الله عنهم آوازونه اوچت شول.نبى په خپله حجره مباركه كې په خوب ويده (اوده) وو.نو بيدار شو.اوبهرته راووتلو.پوښتنه ئې اوكړلو.چه تاسوپه څه كې بحث كوئ.صحابو رضي الله عنهم ورته ټوله واقعه بيان كړه.نونبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل. «لابأس به» يعنى دې په خوراك كې څه باك نشته.

**وَاللَّامُ فِيمَا رُوِيَ لَامُ تَمْلِيكٍ فَيُحْمَلُ عَلَى أَنْ يُهْدِيَ إِلَيْهِ الصَّيْدُ دُونَ اللَّحْمِ** او لام په دې حديث كې كوم چې امام مالك صاحب روايت كړې دې لام تمليك دې نومحمول كولې به شى په دې چې محرم ته ښكار هديه شى نه چې غوښه **أَوْ مَعْنَاهُ أَنْ يُصَادَ بِأَمْرِهِ** يائې معنى داده چې ښكار دده په حكم اوشى

**تشريح:- الجوابان عن مستدل مالك** رحمه الله: امام مالك رحمه الله چه كوم حديث په استدلال كې پيش كړې دې.① نوپه هغې كې «لام» د تمليك لپاره دې.نوپه دې صورت كې د هغې مطلب دا شو.چه د محرم لپاره د داسې ښكارپه غوښه خوړلوكې څه باك نشته.چه نه ده په خپله ښكاركړې وى.اونه دده لپاره ښكارشوې وى.اولامر شوې نه وى.چه محرم دهغې مالك جوړ كړې شى.يعنى كه غيرمحرم ښكار اوكړلو .اوژوندې هغه ښكارد محرم ملكيت اوګرځوى.نوپه دې صورت كې چونكه د ښكارساه دده په ملكيت كې وتلې ده.نودده لپاره د هغې خوراك جائزنه دې.البته كه ده ته غوښه وركړى.نوپه دۀ دهغې د غوښې د قيمت څه ضمان نشته.② يا ددې حديث مطلب دا دې.چه ښكارد محرم په حكم سره نه وى شوې.كه د محرم په حكم سره شوې وى.نوبيا هم د محرم لپاره دهغې خوراك جائز نه دې.ددې دواړو تاويلونو نه روسته دغه حديث د امام مالك رحمه الله مستدل نشى پاتې كيدې.

**ثُمَّ شَرَطَ عَدَمَ الدَّلَالَةِ، وَهَذَا تَنْصِيصٌ عَلَى أَنَّ الدَّلَالَةَ مُحَرِّمَةٌ** بيا دلالت نه كول ئې شرط كړى دى كوم چې په دې تنصيص دې چې دلالت حراموونكې دې. **قَالُوا: فِيهِ رِوَايَتَانِ** عالمانو وئيلى دى چې په دې كې دوې [دوه] صورتونه دى، **وَوَجْهُ الْحُرْمَةِ حَدِيثُ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُ وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ** او وجه دحرمت حديث دابو قتاده رضي الله عنه دې كوم چې موږ ذكركړو.

**تشريح:- الرويتان في حكم الدلالة على الصيد** رحمه الله: صاحب هدايه رحمه الله فرمائى.چه امام قدورى رحمه الله د دلالت نه كولوشرط لګولې دې.ددې نه دا معلوميږي.كه محرم غيرمحرم ته د ښكاركولودلالت كړې وى.نوپه دې صورت كې د محرم لپاره دهغه ښكار خوراك جائزنه دې.خومتاخرينومشائخو رحمهم الله فرمائيلى دى.چه د

---

[1] من أثرطلحة بن عبيدالله رضي الله عنه أخرجه محمد فى كتاب الآثاركذا فى نصب الراية (١٧٢/٣)_

دلالت په صورت کي دوې [دوه] روايتونه دي.① يوروايت کي د محرم لپاره دهغې غوښه خوړل حرام دي.دا روايت دامام طحاوی رحمه الله دي.② اوپه دوهم روايت کي ورله دهغه ښکارخوراك جائزدي.دا روايت د ابوعبدالله جرجاني رحمه الله دي.د حرمت د روايت دليل دحضرت ابوقتاده رضي الله عنه حديث دي. «هل أعنتم هل دللتم هل أشرتم» کوم چي ددې باب په اول کي په تفصيل سره تيرشوي دي.

**د غيرمحرم لپاره د حرم دښکارذبح کولوحکم**

وَفِي صَيْدِ الْحَرَمِ إِذَا ذَبَحَهُ الْحَلَالُ قِيمَتُهُ يَتَصَدَّقُ بِهَا عَلَى الْفُقَرَاءِ او دحرم په ښکار کي کله چي ذبح کړي دا حلال ددې قيمت واجب دي کوم چي په فقيرانو باندې ويش کړي

حل اللغة:① صيد: ښکار ② ذبحه، ذبح ذبحا (ف): حلالول ③ يتصدق، تصدقا: صدقه کول

تشريح: وجوب الضمان على غيرالمحرم بصيدالحرم۞ مسئله دا ده.که غيرمحرم د حرم ښکارذبح کړلو.نوپه هغه باندې دهغې د قيمت تاوان واجب دي.اوهغه قيمت به د حرم په فقيرانوباندې صدقه کوی.ځکه چي په هغه کي کوم کس اوځناور اوسيږي.هغه ته امن ملاؤ شوي دي.اوده چي هغه ذبح کړلو.نودهغه په امن کي ئې خلل راوستلو.نوضمان به پرې واجب وي.

لِأَنَّ الصَّيْدَ اسْتَحَقَّ الْأَمْنَ بِسَبَبِ الْحَرَمِ ځکه چي ښکار دحرم په وجه مستحق د امن دي.قَالَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَدِيثٍ فِيهِ طُولٌ {وَلَا يُنَفَّرُ صَيْدُهَا} [1] نبی ﷺ فرمائی په يو حديث کي کوم چي اوږد دي چي د مکې ښکار به نشي زغلولی.

تشريح: - دليله۞ دليل د نبی ﷺ هغه اوږد حديث دي.په کوم کي چي هغوی فرمائيلي دي.د حرم ګياه به نشي کټ کولي.اونه به ددې ځناورشړلي اونه غصه کولي شي.وجه د استدلال دا ده.چه هرکله د حرم د ځناور تړتل اوغصه کول جرم دي.نوذبح خو به ئې په درجه اولی سره جرم وي.نوددې د حرمت باوجودکه غيرمحرم کس د حرم ځناور ذبح کړلو.نودحرم د تقدس اواحترام د امله به په هغه باندې دهغې قيمت واجب وي.اوهغه به دحرم په فقيرانوباندې صدقه کولي شي.

السوال۞ په دې باندې يوسوال دا کيداې شي.چه ښکارلکه څنګه چي د حرم د امله مستحق دامن دي.دغه ډول د احرام د امله هم مستحق د امن دي.نوکه يومحرم د حرم ښکارقتل کړي.پکارده چي په ده باندې دوې [دوه] کفارې واجب وي.يود حرم د تقدس د پائمال کولود امله اوبله د احرام دتقديم پائمال کاوه د وجې.حالانکه داسې نه ده.ځکه چي په ده باندې يوه کفاره لازميږي.

الجواب۞ ددې ځواب دا دي.چه داحرام تقدس زيات قوی دي.په نسبت سره دحرم تقدس ته.هم دا وجه ده چي په محرم باندې د حرم اوغيرمحرم دواړو ښکارحرام دي.نوهرکله چي د احرام تقدس زيات قوی اودحرم د هغې په نسبت ضعيف.نودحرم تقدس د احرام تابع شو.اوپه ده باندې يوه کفاره هم د دې په وجه لازميږي.

وَلَا يُجْزِيهِ الصَّوْمُ لِأَنَّهَا غَرَامَةٌ وَلَيْسَتْ بِكَفَّارَةٍ فَأَشْبَهَ ضَمَانَ الْأَمْوَالِ او ده له به روژه کافی نه وی ځکه چي دا تاوان دي.کفاره نه ده نومشابه شو دتاوان دمالونوسره. وَهَذَا لِأَنَّهُ يَجِبُ بِتَفْوِيتِ وَصْفٍ فِي الْمَحَلِّ وَهُوَ الْأَمْنُ اودا ځکه چي دا تاوان ددې سې وصف فوت کاوه په وجه واجبيږی کوم چي په محل کي دي.اودغه امن دي

تشريح: - صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.که غيرمحرم د حرم ښکارقتل کړلو.نوپه هغه باندې دهغې قيمت

[1] من حديث أبي هريرة أخرجه البخاری فی العلم باب ۳۹ رقم ۱۱۲ ومسلم فی الحج رقم ٤٤٧ وأبوداود فی المناسک باب ۸۹ رقم ۲۰۱۷ والنسائی فی المناسک باب ۱۲۰ رقم ۲۶۹۲ وابن ماجه فی المناسک ۱۰۳ رقم ۳۱۰۶ والدارمی فی البيوع باب ۶۰ وأحمد فی المسند (۲۳۸/۲)_



واجبيږي.اود هغې په بدله کي که دې روژې نيسی.نوهغه نه کافی کيږي.لکه څنګه چي دمحرم لپاره د قيمت په ځائې روژې نيول کافی کيږي.نودده حکم هغه شان نه دي.

دليله۞ دليل دا دي.چه د ښکارقيمت يو تاوان او کفاره ده.نوځکه دا د مالی تاوان سره مشابه شو.اومالی تاوان که څوك په روژه نيولوسره ادا کوی.نونه ادا کيږي.مالی تاوان هم په مال سره ادا کيږي. د مال نه بغيرپه بل بل څه نه ادا کيږي.

وَالْوَاجِبُ عَلَى الْمُحْرِمِ بِطَرِيقِ الْكَفَّارَةِ جَزَاءً عَلَى فِعْلِهِ کوم چي په طريقه د کفارې واجب دي په محرم اودده دفعل جزاء ده. لِأَنَّ الْحُرْمَةَ بِاعْتِبَارِ مَعْنًى فِيهِ ځکه چي حرمت ددې سې معنی په وجه دي. چي کوم په محرم کښې دي وَهُوَ إِحْرَامُهُ اودغه دده احرام دي. وَالصَّوْمُ يَصْلُحُ جَزَاءَ الْأَفْعَالِ لَا ضَمَانَ الْمَحَالِّ او روژه جزاء دافعالو دکيدلو لائقه ده نه که دضمان دمحل.

تشريح: - وجه د توپير په مينځ ددې که چي د محرم لپاره دښکارپه جزاء کي د قيمت په ځائې روژې نيول جائز دي.اودغيرمحرم لپاره د حرم د ښکارپه جزاء کي روژې نيول جائزنه دي.ځکه چي په محرم باندې جزاء د هغه فعل په وجه واجبيږي.دکوم ارتکاب چي ده په حالت د احرام کي کړې دي.اوپه غيرمحرم باندې جزاء ددې امله لازميږي.چه ده د محل يعنی د ښکار نه د امنيت وصف زائله کړه.اوروژه د فعل جزاء جوړيدې شي.خود محل جزاء نشي جوړيدې.ددې امله د محرم لپاره دحرم د ښکار په صورت کي روژه کافی کيداې شي.خود غيرمحرم لپاره نه کافی کيږي.

وَقَالَ زُفَرُ: يُجْزِيهِ الصَّوْمُ اعْتِبَارًا بِمَا وَجَبَ عَلَى الْمُحْرِمِ امام زفر فرمائی چي روژه به کافی شی د امله د قياس ددې په هغه چي په محرم واجبيږي. وَالْفَرْقُ قَدْ ذَكَرْنَاهُ او توپير ئې موږ ذکر کړې دي.

تشريح: امام زفر رحمه الله فرمائی چي د حرم د ښکار د قتلولو په بدله کي هم روژه نيول جائز ده لکه څنګه چي د محرم لپاره د ښکار د قتل په صورت کي جائز دی هم دا د امام شافعی امام مالك اوامام احمد رحمهم الله قول دي.وجه د توپير مونږ ذکر کړله.

وَهَلْ يُجْزِيهِ الْهَدْيُ؟ فَفِيهِ رِوَايَتَانِ او آيا هدی به هم کافی وی.په دې کي دوې [دوه] روايتونه دی.

تشريح: - الروايتان في ذبح الهدى في الكفارة۞ پاتې شوه دا خبره که غيرمحرم د حرم ښکار د قتل کولوپه وجه که د هدی حيوان (څاروې) ذبح کړلو.نودا جائزده نه که نه؟نوپه دې اړه کي دوې [دوه] روايتونه دی.يود جواز اوبل د عدم جواز.

**دبهرنه حرم ته د ښکاراوړلوحکم**

وَمَنْ دَخَلَ الْحَرَمَ بِصَيْدٍ فَعَلَيْهِ أَنْ يُرْسِلَهُ فِيهِ إِذَا كَانَ فِي يَدِهِ و څوك چي داخل شو حرم ته دښکار سره نو په ده واجب دی چي په حرم کي دغه پريږدی کله چي ئې په لاس کي وی.

حل اللغة:① دخل، دخولاً (ن): داخليدل ② ان يرسله، ارسل ارسالاً: پريښول

تشريح: - المذهبان في الصيدالمدخول به الحرم۞ مسئله دا ده.① که يوکس که محرم وی اوکه غيرمحرم وی.حرم ته د بهرنه څه ښکارداخل کړي.نوکه په حرم کي دده په لاس کي هغه وی.دهغې پريښول په ده باندې واجب دی

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ فَإِنَّهُ يَقُولُ: حَقُّ الشَّرْعِ لَا يَظْهَرُ فِي مَمْلُوكِ الْعَبْدِ لِحَاجَةِ الْعَبْدِ په خلاف دامام شافعی صاحب نه ځکه چي دې فرمائی چي حق دشرع نه ظاهريږی د بنده په مملوك څيزکي دبنده د احتياج په وجه.

تشريح: - اوامام شافعی رحمه الله فرمائی.چه په ده باندې ددې خوشې کول واجب نه دی.

دليل الشافعی رحمه الله۞ دامام شافعی رحمه الله دليل دا دي.چه کوم څيزښکارده په لاس کي وی.نوهغه دده

ملكيت دي.او شريعت حق دا دي.چه حرم ته د داخليدونه روسته هغه خوشي كړي شي.خود بنده په ملكيت كي د شريعت حق نه ښكاره كيږي.ځكه چي بنده حاجتمند دي.البته په مباحو څيزونو كښي د شريعت حق ښكاره كيږي.نو هر كله چي د شريعت حق د بنده په ملكيت كي نه ښكاره كيږي.نو د شريعت دحق د امله به په حرم كښي د ښكار پريښول واجب نه وي.

وَلَنَا أَنَّهُ لَمَّا حَصَلَ فِي الْحَرَمِ وَجَبَ تَرْكُ التَّعَرُّضِ لِحُرْمَةِ الْحَرَمِ زمونږ دليل دا دي.چه ښكار كله په حرم كښي موجود وي نو حرم د حرمت په خاطر واجب شو ترك دتعرض دده سره إِذْ صَارَ هُوَ مِنْ صَيْدِ الْحَرَمِ فَاسْتَحَقَّ الْأَمْنَ لِمَا رَوَيْنَا يا دغه ښكار د حرم ښكار شو نو هغه دهغي حديث په وجه دامن مستحق شو كوم چي مونږ روايت كړو.

حل اللغة ° ① حصل، حصولاً (ن): حاصلول ② فاستحق، استحق، استحقاقاً: مستحق كيدل، لائق كيدل

تشريح:- دليل الاحناف ﷺ زمونږ دليل دا دي.چه دا ښكار كله حرم ته داخل شو.نو حرم ته د داخليدو په امله دي ته امن ملاؤ شو.او ددي مستحق شو.چه د حرم ښكار ورته اووئيلى شي.او په دي خبره باندي دا حديث شاهد عدل دي.چه نبي ﷺ فرمائيلي دي. «لاينفر صيدها» نو چه مستحق د امن شو.نو ددي خوشي كول ضروري شو.چه د حرم امن بحال شي.

## دښكار د خرڅولو حكم

فَإِنْ بَاعَهُ رَدَّ الْبَيْعَ فِيهِ إِنْ كَانَ قَائِمًا بيا كه ئي دغه ښكار خرڅ كړو بيعه به دښكار په حق كي رد كولاى شي كه دغه قائم وي. لِأَنَّ الْبَيْعَ لَمْ يَجُزْ لِمَا فِيهِ مِنَ التَّعَرُّضِ لِلصَّيْدِ وَذَلِكَ حَرَامٌ ځكه چي بيعه جائز نشوه ځكه چي په دي كي دښكار ته تعرض دي.او دا حرام دي. وَإِنْ كَانَ فَائِتًا فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ لِأَنَّهُ تَعَرَّضَ لِلصَّيْدِ بِتَفْوِيتِ الْأَمْنِ الَّذِي اسْتَحَقَّهُ او كه ښكار فوت شوي وو نو په ده جزاء ده.ځكه چي ده دښكار سره تعرض كړي دي په فوت كاوه د هغه امن دكوم چي دي مستحق وو.

حل اللغة ° ① باعه، باع بيعاً (ض): خرڅول ② تفويت: فوت كول ]

تشريح:- عدم جواز بيع الصيد المدخول به الحرم ۞ مسئله دا ده.كه دا كس چي ښكار حرم ته داخل كړي.هغه ښكار خرڅ كړي.نو دا بيع ناجائز ده.ځكه چي په دي كي ښكار ته تعرض شو.او په حرم كي ښكار ته تعرض حرام دي.او چه بيع حرامه شوه.نو رد كول ئي واجب دي.او كه ښكار موجود نه وي.نو په دي صورت كي به ده باندي د هغي جزء واجب ده.ځكه چي ښكار د كوم امن مستحق شوي وو.نو ده هغه امن په تعرض كولو سره خراب كړلو.

وَكَذَلِكَ بَيْعُ الْمُحْرِمِ الصَّيْدَ مِنْ مُحْرِمٍ أَوْ حَلَالٍ لِمَا قُلْنَا دغه ډول دمحرم په بل محرم يا د حلال په بل حلال باندي خرڅول دښكار دي لكه چي مونږ وئيلي دي.

تشريح:- المسئله الثانية مثل الاولى ۞ او دغه ډول كه محرم ښكار په محرم يا په غير محرم باندي خرڅ كړلو.نو كه موجود وي.د هغي واپس كول واجب دي.او كه موجود نه وي.نو دهغي قيمت وركول واجب دي.دليل وړاندي تير شو.

## محرم سره په پنجره يا كور كي د موجود ښكار حكم

وَمَنْ أَحْرَمَ وَفِي بَيْتِهِ أَوْ فِي قَفَصٍ مَعَهُ صَيْدٌ فَلَيْسَ عَلَيْهِ أَنْ يُرْسِلَهُ اوچا چي احرام او تړلو او ده په كور كي يا ورسره په پنجره كي ښكار وو نو په ده ددي پريښودل لازم نه دي.

حل اللغة ° ① احرم، احراماً: احرام تړل ② قفص: پنجره

تشريح:- يو كس احرام او تړلو.او ده سره په پنجره يا په كور كي ښكار وي.نو په ده باندي د هغي پريښول واجب نه دي



وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: يَجِبُ عَلَيْهِ أَنْ يُرْسِلَهُ امام شافعي رحمه الله فرمائي چي پريښودل ئي لازم دي لِأَنَّهُ مُتَعَرِّضٌ لِلصَّيْدِ بِإِمْسَاكِهِ فِي مِلْكِهِ ځكه چي دغه ښكار ته تعرض كوونكي دي په بندساتلو په خپل ملك كي ، فَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَ فِي يَدِهِ نو داسي شو لكه دده چي په لاس كي وي.

حل اللغة ° ① امساك: نيول

تشريح:- او امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه پريښول پري واجب دي.امام مالك رحمه الله هم ددي قائل دي.

دليله ۞ دامام شافعي رحمه الله دليل دا دي.چه ښكار د محرم سره موجود وي.نو دي ښكار ته تعرض كونكي دي.او په محرم باندي ښكار ته تعرض كول حرام دي.نو ځكه په ده باندي ددي خوشي كول واجب دي.او دا داسي شو.لكه چي ښكه ده سره د پنجري يا كور په ځاني په لاس كي ښكار موجود وي او حرم ته داخل شي.نو دهغي خوشي كول پري واجب دي.نو داسي په دي صورت كي هم خوشي كول واجب دي.

وَلَنَا أَنَّ الصَّحَابَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ كَانُوا يُحْرِمُونَ وَفِي بُيُوتِهِمْ صُيُودٌ وَدَوَاجِنُ دليل دادي چي اصحابو به احرامونه تړل او حال دا چي په كورونو كي به ئي ښكارونه او دواجن وو ، وَلَمْ يُنْقَلْ عَنْهُمْ إِرْسَالُهَا (١) او ددوى نه ئي پريښودل منقول نه دي. ، وَبِذَلِكَ جَرَتِ الْعَادَةُ الْفَاشِيَةُ وَهِيَ مِنْ إِحْدَى الْحُجَجِ زمونږ او عام عادت په دي راروان دي كوم چي د منجمله دليلونو څخه دي

حل اللغة ° ① دواجن: ساتونكي ځناور

تشريح:- دلائل الاحناف ﷺ ۞ زمونږ دليل دا دي.① چه صحابه كرامو ﷺ به احرام تړل.حالانكه دهغوى په كورونوكي به صيود اودواجن موجود وو.صيود جمع د صيد ده.مراد تري ځنګلي پرندي دي.چه ساتلي شوي وي. او د دواجن جمع د داجن ده.او داجن اوسئ وغيره ته وائي.كومه چي د وزه پشان ساتلي شوي وي.حاصل دا دي.چه صحابو ﷺ به احرام تړل.او په كورونوكي به ورسره ښكار وو.خو دهغوى نه دا نه دي منقول چي دغه ښكار به ئي خوشي كول.او په دي باندي عادت جاري دي.او عادت هم يو دليل دي.ددي امله هم مونږ ددي ښكار پريښول نه واجب كوو

وَلِأَنَّ الْوَاجِبَ تَرْكُ التَّعَرُّضِ وَهُوَ لَيْسَ بِمُتَعَرِّضٍ مِنْ جِهَتِهِ او ځكه چي واجب ترك دتعرض دي او دي د هغي اړخ نه متعرض نه دي لِأَنَّهُ مَحْفُوظٌ بِالْبَيْتِ وَالْقَفَصِ لَا بِهِ غَيْرَ أَنَّهُ فِي مِلْكِهِ ځكه چي ښكار خو په كور يا په پنجره كي محفوظ دي نه چي د محرم سره.صرف دومره ده چي دده په ملك كي دي ، وَلَوْ أَرْسَلَهُ فِي مَفَازَةٍ فَهُوَ عَلَى مِلْكِهِ او كه دے ئي په ځنګل كي پريږدي نو دده په ملك كښي به وي فَلَا مُعْتَبَرَ بِبَقَاءِ الْمِلْكِ نو دبقاء دملك هيڅ اعتبار نشته وَقِيلَ: إِذَا كَانَ الْقَفَصُ فِي يَدِهِ لَزِمَهُ إِرْسَالُهُ او وئيلي شوي دي چي كه پنجره دده په لاس كي وي نو پريښودل ئي لازم دي لَكِنْ عَلَى وَجْهٍ لَا يَضِيعُ ليكن داسي چي ضائع نشي.

تشريح:- دوهم دليل دا دي.چه په محرم باندي ښكار ته تعرض كول حرام دي.او چه ښكار په كور كښي وي يا په پنجره كي وي.نو په دي صورت كي ښكار ته دده تعرض نشته.څه په لاس كي خوئي نه دي.البته دومره خبره ده.چه په ملك كي ئي دي.يعني په تعرض نه كولو كي دا شرط نه دي.چه په ملكيت كي به هم نه وي.بلكه دومره كافي ده.چه په لاس ورته تعرض نه كوى.بعضي حضراتو فرمائيلي دي.كه ښكار په پنجره كي وي.او هغه ده سره په لاس كي وي.نو په ده باندي ئي پريښول واجب دي.خو پريښول به په دي سي طريقه وي.چه ضائع نشي.ځكه چي دمال ضائع كول حرام دي.نو په بند كور وغيره كي دي خوشي كړي.

(١) من أثر علي ﷺ أخرجه ابن ابى شيبة كذا فى النصب الرأية ١٧٦/٣)_

## د احرام نه وړاندې ښكار نيول اويا دبل غيرمحرم دغه ښكار پرېښودل

**قَالَ فَإِنْ أَصَابَ حَلَالٌ صَيْدًا ثُمَّ أَحْرَمَ** كه حلال ښكار حاصل كړو بيائې احرام **وتړلو فَأَرْسَلَهُ مِنْ يَدِهِ غَيْرُهُ يَضْمَنُ** بيا چا دده دلاس نه هغه ښكار خلاص كړو نوضامن به وى. په نزد دامام ابوحنيفه صاحب **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ**

**حل اللغة**:- ① اصاب، اصابة: حاصلول، موندل ② يضمن، ضمانة: ضامن كيدل

**تشريح**:- مسئله دا ده. كه يوكس ښكاراونيولو. اوبيا ئې احرام اوتړلو. بيا بل كس دده نه هغه ښكار واخستلو اوهغه ئې پرېښولو. ① نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزدغه پرېخودونكې د هغې دقيمت ضامن دې.

**وَقَالَا: لَا يَضْمَنُ؛ (۱) لِأَنَّ الْمُرْسِلَ آمِرٌ بِالْمَعْرُوفِ نَاهٍ عَنِ الْمُنْكَرِ** اوصاحبين رحمهما الله فرمائي چې ضامن به نه وى ځكه چې آزادوونكې امر بالمعروف او نهى عن المنكر كوونكې دې {**مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِنْ سَبِيلٍ**} اوپه نيكانوباندې څه الزام نشته.

**حل اللغة**:- ① محسنين: نيكوكار ② سبيل: لار

**تشريح**:- او صاحبين رحمهما الله فرمائي. چه دې به ضامن نه وى.

**دليلهما**۞ دصاحبينو رحمهما الله دليل دا دې. چه دا پرېخودونكې امربالمعروف اونهى عن المنكر كونكې دى. او امربالمعروف اونهى عن المنكركه قدرت وى. نوواجب دى. چونكه هغه كس د احرام په حالت كې ښكارپه لاس كې نيولووو. اود شريعت خلاف عمل كې اخته وو. نوده د نهى عن المنكرپه وجه دده د لاس نه ښكارخلاص كړلو. نوپه ده ضمان نشته. ځكه چې دې د نيكۍ كونكې دې. اوالله تعالى فرمائيلى دى. {**مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِنْ سَبِيلٍ**} يعنى په نيكوكاروباندې څه لار نشته. يعنى كوم كسان چې نيك كارونه كوى. په هغوى باندې نيول اومواخذه نشته. نوپه دنياكې به ضامن نه وى. اوپه آخرت كې به پرې عذاب نه وى.

**وَلَهُ أَنَّهُ مَلَكَ الصَّيْدَ بِالْأَخْذِ مِلْكًا مُحْتَرَمًا فَلَا يَبْطُلُ احْتِرَامُهُ بِإِحْرَامِهِ** دامام صاحب دليل دادې چې ښكارنيوونكې په ملك محترم سره ددې مالك شوې دې نوددې احترام په احرام سره نه باطليږى. **وَقَدْ أَتْلَفَهُ الْمُرْسِلُ فَيَضْمَنُهُ** او حال دادې چې آزادوونكى دې دې لره هلاك كړو نو ضامن دې

**تشريح**:- **دليل ابى حنيفة** ۞ دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې. چه دې كس په حالت د حلالوالى كې ښكاركړې وو. اوپه هغې باندې ددې ملك محترم راغلې وو. نودهغه ملك محترم به د احرام په وجه نه باطليږى. اوپه اتفاق سره د احرام نه روسته هم هغه دده په ملكيت كې موجود دې. اوكوم كس چې هغه پرېښولو. نودده ملك محترم ئې ضائع كړلو. اودا قانون دې. چه د چا مملوك څيزڅوك ضائع كړى. نوپه هغه ضائع كونكى ضمان وى.

**بِخِلَافِ مَا إِذَا أَخَذَهُ فِي حَالَةِ الْإِحْرَامِ** په خلاف دهغې نه چې ښكار په حالت داحرام كې اونيسى. **لِأَنَّهُ لَمْ يَمْلِكْهُ** ځكه چې ددې مالك نشو

**تشريح**:- **حكم اخذالصيدفي الاحرام** ۞ په خلاف د هغه صورت چې دې په حالت د احرام كې ښكاراونيسى. ځكه چې په حالت د احرام كې په ښكارباندې دده ملكيت نه راځى. اوچه دې دهغې مالك نشو. نوپه پرېخودونكى باندې به ضمان هم نه وى. ځكه چې هغه د محرم څيزنه دې ضائع كړې.

**وَالْوَاجِبُ عَلَيْهِ تَرْكُ التَّعَرُّضِ**. اوپه ده واجب دې ترك د تعرض. **وَيُمْكِنُهُ ذَلِكَ بِأَنْ يُخَلِّيَهُ فِي بَيْتِهِ** اوكومه چې داسې هم

---

(۱) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار(۲۴۱۱۲) والبحر(۷۵۱۳) نقلاً عن القول الراجح (۲۳۵۱۱)-



ممكنه ده. چې په خپل كور كښې پرېږدى، **فَإِذَا قَطَعَ يَدَهُ عَنْهُ كَانَ مُتَعَدِّيًا** نوكله چې ده د محرم قبضه منقطع كړه نودې ظالم شو.

**تشريح**:- **السوال** ۞ په «والواجب عليه ترك التعرض» سره د يوسوال ځواب دې. سوال دا دې. چه موږدا منو. چه داحرام نه وړاندې چې ده ښكاراونيولو. نودې د هغې مالك شو. خود احرام تړلونه روسته د ترك تعرض د امله په ده باندې د هغې پرېښول ضرورى وو. حالانكه ده په خپله د خپل ملك نه وو ويستلې. بلكه بل كس دده د ملك نه اويستلو. نوپه دې صورت كې پكارده چې ضمان په دې پرېخودنكى واجب وى. ځكه چې كوم كارپه محرم باندې لازم وو. هغه كارده اوكړلو.

**الجواب**۞ ددې ځواب دا دې. چه په محرم باندې په احرام كې ښكارته تعرض كول منع وو. دخپل ملك نه د ښكار ويستل واجب نه وو. اوترك تعرض ددې باوجود هم كيداې شو. چه ښكارده په ملك كې وو. (مثلاً په كور يا بند ځائې كې ئې پرېښولې (پرېخودې) وې. اوده په ملك كې وې) خوچه هركله يوكس ددې ښكارنه دده ملكيت ختم كړلو. نوهغه تعدى اوكړله. اوچه څوك تعدى (زياتې) اوكړى. په هغه ضمان واجبيږى. نوځكه به په ده ضمان لازم وى.

**وَنَظِيرُهُ الِاخْتِلَافُ فِي كَسْرِ الْمَعَازِفِ** اوددې نظير هغه اختلاف دې كوم چې دلهولعب دسامان په ماتولوكې دې.

**تشريح**:- **نظيره**۞ ددې نظيردا دې. كه يوكس د بل چا د لهو لعب او لوبوسامان مات كړل. نوپه دې ماتونكى باندې د صاحبينو رحمهما الله په نيزد هغې سامان تاوان لازم دې. البته دا ده. چه د آله وغيره په حساب به ضامن نه وى. بلكه د تراشلى شوى لرګى په حساب سره به ضامن وى.

## دمحرم دلاسه دښكارخلاصونكى باندې د ضمان مسئله

**وَإِنْ أَصَابَ مُحْرِمٌ صَيْدًا فَأَرْسَلَهُ مِنْ يَدِهِ غَيْرُهُ لَا ضَمَانَ عَلَيْهِ بِالِاتِّفَاقِ** كله چې محرم ښكار اوموندلو اودده دلاس نه چا ازاد كړو نوپه هغه تاوان نشته په اتفاق سره

**تشريح**:- **عدم الضمان على متلف الصيدمن يد المحرم**۞ مسئله دا ده. كه محرم ښكاراونيولو. اويوبل كس دده دلاس نه هغه خلاص كړلو. نوپه اتفاق سره په هغه خلاصونكى باندې ضمان نشته.

**لِأَنَّهُ لَمْ يَمْلِكْهُ بِالْأَخْذِ** ځكه چې محرم دده په نيولو سره نه دې مالك شوې، **فَإِنَّ الصَّيْدَ لَمْ يَبْقَ مَحَلًّا لِلتَّمَلُّكِ فِي حَقِّ الْمُحْرِمِ لِقَوْلِهِ تَعَالَى {وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا} فَصَارَ كَمَا إِذَا اشْتَرَى الْخَمْرَ** ځكه چې دمحرم په حق كې ښكار په ملك كې د راتلو محل شوې ندې په دليل دالله ﷻ قول دې. چه حرام شوې دې په تاسو داوچې ښكار ترڅوچه په راحرام كې ئې نوداسې شوه لكه مسلمان چې شراب واخلى.

**حل اللغة**:- ① تملك، ملكيت ② اشترى، اشتراءً: اخستل

**تشريح**:- **دليله**۞ ځكه چې په حالت داحرام كې دښكار په نيولومحرم دهغې مالك نه جوړيږى. ځكه چې الله تعالى فرمائي [**وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا**] دا داسې شوه لكه چې يومسلمان شراب واخستل. نوپه اخستلوسره دې دهغې مالك نه جوړيږى. نوكه يوكس دغه شراب توئې كړلو. نوپه هغه به ضمان نه وى. ځكه چې شراب لذاته حرام دى. نودغه ډول د محرم لپاره ښكارهم حرام لذاته دې.

## دمحرم په لاس كې ښكاردبل محرم دلاسه قتل كيدلوحكم

**فَإِنْ قَتَلَهُ مُحْرِمٌ آخَرُ فِي يَدِهِ** اوكه دمحرم په لاس كې ښكار قتل كړو **فَعَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا جَزَاؤُهُ** نو پدوى كې په هريو باندې جزاء لازم ده.

**حل اللغة**:- ① قتله، قتل، قتلاً (ن): قتل كول

**تشريح**:- **وجوب الجزاء على المحرم الاخذو القاتل**۞ كه محرم په لاس كې ښكار نيولې وى. اوبل محرم دهغه د

لاس ښکار قتل کړلو.نوپه دې دواړو باندې پوره جزاء واجب ده.

لِأَنَّ الْآخِذَ مُتَعَرِّضٌ لِلصَّيْدِ الْآمِنِ ځکه چې نیوونکې دښکار دده دامن ختمولو په بناء تعرض کوونکې دې وَالْقَاتِلُ مُقَرِّرٌ لِذَلِكَ او قاتل د دې مقرر کوونکې (په ځائې پاتې کوونکې) دې.،، وَالتَّقْرِيرُ كَالْابْتِدَاءِ فِي حَقِّ التَّضْمِينِ او تقرر پشان د ابتداء دې په حق دتاوان کې.

**تشریح:- دلیله**﴿دلیل دا دې.چه کوم محرم ښکاراونیولو.نوهغه په حالت داحرام کې ښکار ته تعرض اوکړلو اوپه حالت د احرام کې ښکارته تعرض کولود احرام په ممنوعاتوکې دی.اودا قاعده ده.چه داحرام په ممنوعاتوکې د یوارتکاب سبب د وجوب جزاء دې.نوپه ده باندې ځکه جزاء واجب ده.اوپه قاتل محرم باندې جزاء ځکه واجب ده.چه هغه په قتلولوسره تعرض محکم کړلو.ځکه که ده قتل کړې نه وو.نو کیدای شی.چه د ښکار په پریخودو سره تعرض ختم شوې وو.خوچه ده قتل کړلو.نودتعرض ختیمدوې مکان ئې ختم کړلو.اوتعرض متحقق شو.اودضمان د وجوب په حق کې تحقق پشان د اول ځل تعرض کولوپشان دې.یعنی د ښکارقتلونکې هم ښکارته د تعرض کونکی پشان شو.اوښکارته په تعرض کونکی جزاء واجب ده.دغه ډول به په چا هم واجب وی.چاچه دغه تعرض یقینی کړلو.

كَشُهُودِ الطَّلَاقِ قَبْلَ الدُّخُولِ إِذَا رَجَعُوا لکه ګواهان دطلاق چې مخکې د دخول د خپلې ګواهۍ نه رجوع اوکړی.

**تشریح:- نظیره**﴿ددې نظیردا دې.چه هندې په خپل خاوند باندې د طلاق بعدالدخول په سبب د پوره مهر دعوی اوکړله.او خاوند ئې د دخول نه انکار اوکړلو.اوپه خپله خبره ئې دوې [دوه] ګواهان قائم کړل.ددې نه روسته دغه دووګواهانود خپلې ګواهۍ نه رجوع اوکړله.نوپه دې صورت کې به دغه ګواهان د هغه نیم مهر ضامن وی.دکوم نه چې هنده د دوی د ګواهۍ په وجه محرومه شوې وه.اوس د دوی ګواهی اګرچه د خاوند د انکارنه روسته وه.خوپه ضامن کیدوکې به د ابتداء ظلم پشان وی.دغه ډول قتل کونکې محرم لکه چې د ابتداء نه ظالم دې.اودخپل ظلم په وجه ضامن دې.

وَيَرْجِعُ الْآخِذُ عَلَى الْقَاتِلِ اونیوونکې به په وژونکی باندې رجوع کوی.

**المذهبان في رجوع ردالقيمة الى الصائد**﴿صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی. چې ښکارنیونکی چې کوم تاوان ورکړې دی.هغه به د قتل کونکی نه واپس اخلی

وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَرْجِعُ، لِأَنَّ الْآخِذَ مُؤَاخَذٌ بِصُنْعِهِ فَلَا يَرْجِعُ عَلَى غَيْرِهِ امام زفر فرمائی چې رجوع نشی کولې ځکه چې نیوونکې خوپخپل حرکت کښې ماخوذ د ی نودغیر نه ئې واپس نشی اخستلې.

**تشریح:-** اوامام زفر رحمه الله فرمائی.چه ښکارنیونکې ئې واپس نشی اخستلې.هم دا د صاحبینو رحمهما الله قول دې.

﴿دلیله﴾ دامام زفر رحمه الله دلیل دا دې.چه دښکارنیونکې په خپل تعرض سره ماخوذ دې.نود بل ځخه به قیمت ولې اخلی!

وَلَنَا أَنَّ الْآخِذَ إِنَّمَا يَصِيرُ سَبَبًا لِلضَّمَانِ عِنْدَ اتِّصَالِ الْهَلَاكِ بِهِ زمونږ دلیل دادې چې نیول دضمان سبب هغه وخت وی کله چې ددې سره هلاکت متصل وی فَهُوَ بِالْقَتْلِ جَعَلَ فِعْلَ الْآخِذِ عِلَّةً نو قاتل دقتل په ذریعه دنیوونکی فعل لره علت جوړ کړو. فَيَكُونُ فِي مَعْنَى مُبَاشَرَةِ عِلَّةِ الْعِلَّةِ نودا علت دعلت دارتکاب په معنی کې شو نو دتاوان فَيُحَالُ بِالضَّمَانِ عَلَيْهِ اوستل به په قاتل باندې وی.

**تشریح:- دلیل ابیحنیفة رحمه الله**﴿زمونږ دلیل دا دې.چه دښکارنیونکی باندې صرف په نیولو باندې جزاء نه واجبیږی. ترځوچه هغه ئې سره هلاکت یوځائې شوې نه وی.اوپه دې صورت کې د نیونکی محرم د اړخه هلاکت نه دې واقع شوې.بلکه دوهم محرم د هغې قاتل دې.اوقاتل محرم دا نیونکې محرم د قتل لپاره ذریعه اوعلت جوړ کړلو.اواصل هلاکت ئې په خپله اوکړلو.لکه چې قاتل د صید د علت العلت مرتکب شو.ځکه چې دهغه د قتل کولوپه وجه ښکارسبب د ضمان شو.که هغه قتل نه کولو.نوصرف نیول به سبب د



وجوب ضمان نه وو.نوځکه به تاوان هم قاتل اړخ ته رجوع کوی.یعنی کوم تاوان چې نیونکی ورکړې وی.هغه به د قاتل نه اخلی.

## دحرم د ګیاه یا وونې کټ کولوحکم

فَإِنْ قَطَعَ حَشِيشَ الْحَرَمِ أَوْ شَجَرَةً لَيْسَتْ بِمَمْلُوكَةٍ که دحرم وابنه ئې پریکړو یاداسې ونه چې دچا ملك نه وه وَهُوَ مِمَّا لَا يُنْبِتُهُ النَّاسُ فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ وهغه ددې سې ډول نه وه چې خوك ئې کری نه نوپده ئې قیمت واجب دې. إِلَّا فِيمَا جَفَّ مِنْهُ خو په دې کې چې کومه اوچه شوی وی

**حل اللغة**﴿① **حشيش**: وابنه ② **ينبته**: راټوکول ③ **جف**: اوچیدل

**تشریح:- وجوب القيمة بقطع الالحشيش والشجر**﴿که چا د حرم ګیاه یا هغه وونه چې څوك ئې نه کری.بلکه په خپله راټوکیږی.کټ کړله.نوپه ده به د هغې د قیمت واجب وی.البته دا ده.که هغه ګیاه یا وونه اوچه شوې وی.نوبیا د هغې په کټ کولوکې قیمت نه واجبیږی.

لِأَنَّ حُرْمَتَهُمَا ثَبَتَتْ بِسَبَبِ الْحَرَمِ ځکه چې ددوی حرمت دحرم په سبب سره ثابت دې.،قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {لَا يُخْتَلَى خَلَاهَا وَلَا يُعْضَدُ شَوْكُهَا (¹) نبی فرمائیلی دی چې دحرم دمکې شنه وابنه به نه شی پریکولې اونه به ازغې شوکوی

**حل اللغة** ﴿① **يختلى**: پریکول

**تشریح:- دليله**﴿دلیل دا دې.چه کومه ګیاه یا وونه په حرم کې وی.نودحرم دحرمت د امله دهغې حرمت ثابت شو.ځکه چې د الله تعالی رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.نه به شی کټ کولې شنه ګیاه ددې اونه به ددې غنې ماتولې شی. ﴿الخلاء﴾ شنې ګیاه ته وائی.

وَلَا يَكُونُ لِلصَّوْمِ فِي هَذِهِ الْقِيمَةِ مَدْخَلٌ اوپه دې قیمت کې به دروژې څه دخل نه وی. لِأَنَّ حُرْمَةَ تَنَاوُلِهَا بِسَبَبِ الْحَرَمِ لَا بِسَبَبِ الْإِحْرَامِ ځکه چې پده دلاس اچولو حرمت د دحرم په سبب سره دې نه چې د احرام په سبب فَكَانَ مِنْ ضَمَانِ الْمَحَالِّ عَلَى مَا بَيَّنَّا نودا منجمله دمحل دتاوان ځنی شو لکه چې موږ بیان کړی دی. وَيَتَصَدَّقُ بِقِيمَتِهِ عَلَى الْفُقَرَاءِ وقیمت به ئې په فقیرانو صدقه کړی.

**تشریح:- عدم جوازالصوم في جزاء قطع النبات**﴿صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.که د ګیاه اود وونې کټ کولوپه جزاء کې د قیمت په ځائې روژه نیول غواړی.نوروژه نه کافی کیږی.بلکه قیمت ضروری دې.ځکه چې د حرم د ګیاه اووونې حرمت د حرم د امله دې.د احرام د امله نه دې.نودا قیمت د محل ضمان شو.د احرام ضمان نه دې.اوورانده تیرشوی دی.چه روژه دا صلاحیت لری چې د افعالو جزاء شی.د محل د جزاء کیدو صلاحیت په کې نشته.

وَإِذَا أَدَّاهَا مَلَكَهُ كَمَا فِي حُقُوقِ الْعِبَادِ اوکله چې ئې قیمت اداکړی نو مالك به ئې شی لکه په حقوق العباد کې چې دی

**تشریح:- ثبوت ملكية النبات باداء القيمة**﴿صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه هرکله ده د ګیاه یا د وونې قیمت د حرم فقیرانوباندې صدقه کړلو.نوکومه ګیاه یا وونه چې ده کټ کړې ده.دې د هغې مالك شو.لکه په حقوق العباد کې چې دی.مثلاً زید دعمر نه څه څیزغصب کړلو.اوبیا قاضی زید ته د هغې دقیمت ور کاوه حکم

¹) من حديث أبي هريرة ﷺ أخرجه البخاری فی العلم رقم ١٠٩ ومسلم فی الحج رقم ٢٤١٤ وأبوداود فی المناسك رقم ٢٤١٥ وابن ماجه فی الديات رقم ٢٦١٤ وأحمد فی مسندالمكثرين رقم ٦٩٤٤ والدارمی فی البيوع ٢٤٨٧)_

اوکړلو.اوزیدعمر ته دهغې قیمت ورکړلو.نودکوم څیزقیمت چې ئې ورکړلو.زید د هغې مالك شو.

## د کټ کولونه روسته د خرڅولوحکم

وَيُكْرَهُ بَيْعُهُ بَعْدَ الْقَطْعِ لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِسَبَبٍ مَحْظُورٍ شَرْعًا او دپرې کاوه نه روسته ئې خرڅول مکروه دی ځکه چې دی ئې پداسې سبب سره مالك شوې دې چې کوم شرعًا ممنوع دې فَلَوْ أُطْلِقَ لَهُ فِي بَيْعِهِ لَتَطَرَّقَ النَّاسُ إِلَى مِثْلِهِ که ددې په بیعه کې مطلق اجازت ورکړې شی نو خلگ به داسې حرکت ارخ ته لار اوباسی ،،، إِلَّا أَنَّهُ يَجُوزُ الْبَيْعُ مَعَ الْكَرَاهَةِ مگر دکراهت سره ئې بیعه جائز ده

حل اللغة: ① يكره، كراهًا س: ناخوښه، مکروه گڼړل ② محظور: ممنوع ③ تطرق، تطرقًا: لار اختیارول، عادت جوړول

تشریح:- كراهة بيع النباة المودأة قيمتها ⊛ مسئله که دحرم دگیاه یا د ووني مالك شو.خوددې نه روسته هم دلره دهغې خرڅول نه دی جائز.ځکه چې دې د هغې په دې سې سبب سره مالك گرځیدلی دې.چه جائزنه وو.نوکه دا ته دهغې د خرڅولواجازت ملاؤ شی.نو خلگو ته به لاره جوړه شی.اود حرم په گیاهګانوکې به بیا هم ډه پاتې نشی.خوکه ددې باوجود ئې خرڅ کړلو.نوخرڅول ئې سره د کراهته جائزشو.

بِخِلَافِ الصَّيْدِ، وَالْفَرْقُ مَا ذَكَرْنَاهُ. په خلاف دښکار اوفرق هغه دې کوم چې موږ بیان کړو.

تشریح:- عدم جواز بيع الصيد المملوك بالطريقة غير المشروعة ⊛ مسئله دښکار ددې نه مخالفه ده.یعنی که د قیمت اداکولوپه سبب محرم دهغې مالك جوړ شی.نوهغه ته ددې دخرڅولواجازت سره دکراهته هم نشته.وجه د توپیر به انشاءالله وراندې بیان کړو. ⊛فانتظروا إني معكم من المنتظرين⊛

## دخلقو کرلې شوې وونوبوټود کټ کولوحکم

وَالَّذِي يُنْبِتُهُ النَّاسُ عَادَةً عَرَفْنَاهُ غَيْرَ مُسْتَحِقٍّ لِلْأَمْنِ بِالْإِجْمَاعِ انجیزکه اوکوم چې خلگ عادتاً کری دغه موږ په دلیل داجماع سره غیر مستحق دامن منلې دې.

حل اللغة: ينبته، انبت، انباتًا: راټوکول،

تشریح:- جواز قطع النبات التي ينبت عادة ⊛ کومه گیاه یا وونې چې عام طورئې خلگ کری.هغه په اجماع سره مستحق د امن نه دی.

وَلِأَنَّ الْمُحَرَّمَ الْمَنْسُوبُ إِلَى الْحَرَمِ وَالنِّسْبَةُ إِلَيْهِ عَلَى الْكَمَالِ اوځکه چې محرم هغه دې چې حرم نه منسوب وی اوحرم ته کامل نسبت هله دې چې دبل ارخه نه د کاوه نسبت نه وی عِنْدَ عَدَمِ النِّسْبَةِ إِلَى غَيْرِهِ بِالْإِنْبَاتِ اوکوم چې نشی کرلې عادتاً کله چې هغه لره یو سرې

تشریح:- دلائله ⊛ ① ځکه چې د نبی ﷺ د زمانې نه ترننه ورځې پورې خلگ د حرم په مځکه کې کرکرونده کوی.اوهغه کټ کوی.اوانکار پرې نه دې شوې.ددې نه معلومیږی.چه کومې گیاهګانې چې خلگ دهغې په کټ کولوکې څه باك نشته. ② دوهم دلیل دا دې.چه دهغې گیاه اووونې پرې کول حرام دی.کوم چې حرم ارخ ته منسوب وی.اوحرم ارخ ته به هله پوره نسبت کیږی.چه د هغې په راټوکیدو کې د بل چا راټوکاوه څه عمل نه وی.

وَمَا لَا يُنْبِتُ عَادَةً إِذَا أَنْبَتَهُ إِنْسَانٌ الْتَحَقَ بِمَا يُنْبَتُ عَادَةً اوکرې نودده سره لاحق شو کوم چې عادتاً کرلې شی

حل اللغة: ① التحق، التحاقًا: ملاویدل، لاحق کیدل

تشریح:- حكم النبات التي لا ينبته احد ⊛ اوکه یوه گیاه یا بوټې داسې وی.چه هغه په عامه توگه خلگ نه کری.خو یوکس هغه دحرم په مځکه کې اوکرولو.نودا به هغه گیاه سره ملحق کیږی.اودهغې حکم به اخلی . کوم چې خلگ کری.اوکټ کوی.یعنی ددې په کټ کولوکې به قیمت نه وی.



## دچاپه ملك کې د راختلی بوټې د کټ کولوحکم

وَلَوْ نَبَتَ بِنَفْسِهِ فِي مِلْكِ رَجُلٍ فَعَلَيْهِ قِيمَتَانِ: اوکه دغه پخپله د چاپه ملك کې راوټل نودهغه په پرې کاوه به قِيمَةٌ لِحُرْمَةِ الْحَرَمِ حَقًّا لِلشَّرْعِ یوقیمت دحرم د حرمت په وجه په حق دشرع واجب وی وَقِيمَةٌ أُخْرَى ضَمَانًا لِمَالِكِهِ اوبل قیمت به دمالك لپاره دتاوان وی

حل اللغة: ① بنفسه: پخپله ② قاطع: پریکونکی

تشریح:- وجوب القيمتين بيقطع النبات المملوك ⊛ کوم بوټې چې خلگ نه کری.اوهغه دچا په مملوکه مځکه کې رازرغون شو.نودهغې په کټ کولوکې دوې [دوه] قیمتونه واجبیږی.یوخود شریعت د حق د امله چې احترام د حرم دې.او دوهم بل ته د تاوان ورکولوپه وجه ځکه چې ده دهغه په ملکیت کې تصرف کړې دې.اوهغه ئې ضائع کړې دې.

كَالصَّيْدِ الْمَمْلُوكِ فِي الْحَرَمِ لکه په حرم کې ښکار

تشریح:- نظيره ⊛ لکه څنګه که یوکس د چا مملوك ښکار په حرم کې قتل کړلو.نوپه هغه باندې دوې [دوه] قیمتونه واجبیږی.یود حرم د حرمت د املهٔ اوبل د مالك ته د تاوان ورکولو وجې.

وَمَا جَفَّ مِنْ شَجَرِ الْحَرَمِ لَا ضَمَانَ فِيهِ لِأَنَّهُ لَيْسَ بِنَامٍ اودحرم د ونو نه چې کومه اوچه وی په هغې کې تاوان نشته ځکه چې دا اوس غتیږی نه

حل اللغة: ① جف، جفافًا، جفوفًا (ض): اوچیدل ② شجر: ونه

تشریح:- جواز قطع النبات اليابس ⊛ صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه کومه گیاه یا وونه چې په حرم کې وی.خو وچه شوې وی.نودهغې په کټ کولوکې قیمت نه واجبیږی.ځکه چې دغه گیاه اوونه غتیدونکې نه ده. او جزاء په هغې کې واجبیږی.چه غتیږی.

## دحرم د گیاه د کټ کولو اوپه کې د څرولوحرمت

وَلَا يُرْعَى حَشِيشُ الْحَرَمِ وَلَا يُقْطَعُ إِلَّا الْإِذْخِرَ او دحرم واښه به نه خرڅولې شی اونه به ریبلې شی مگر سر گړې.

تشریح:- حكم الرعي في نبات الحرم ⊛ مسئله دا ده. ① چه دحرم گیاه نه پرې کول جائزدی اونه په کې دڅارو پوول جائزدی.سوې د اذخرنه،

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا بَأْسَ بِالرَّعْيِ لِأَنَّ فِيهِ ضَرُورَةً، فَإِنَّ مَنْعَ الدَّوَابِّ عَنْهُ مُتَعَذِّرٌ امام یوسف رحمه الله فرمائی چې په حرم څرولو کې باق نشته ځکه چې په دې کې ارتیا دې چې څاروی منع کول ترې گران دی.

تشریح:- امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه دحرم په گیاه کې د څناورو پوول جائزدی.البته گیاه ئې پرې کول جائزنه دی.

⊛دليله⊛ ځکه چې د څرولو ارتیا دې. ارتیا داسې دې.چه کله خلگ دحج په موسم کښې حج ته راشی .اوهغوی سره سپرلئ وی.نوهغوی به ورسره هم په حرم کې وی.اودا ښکاره خبره ده. چه څاروی د څریدو نه منع کول متعذر دی.نودڅرولو ارتیا متحقق شو.

وَلَنَا مَا رَوَيْنَا اوزموږ دلیل هغه حدیث دې کوم چې موږ روایت کړې دې

تشریح:- دليل جمهور الاحناف ⊛ اوزموږ دلیل هغه حدیث دې.کوم چې وراندې تیرشو.یعنی ⊛لا يختلى خلاها⊛

وَالْقَطْعُ بِالْمَشَافِرِ كَالْقَطْعِ بِالْمَنَاجِلِ او په شونډو پریکول داسې دی لکه په لور پریکول

تشریح:- دا عبارت دیوسوال ځواب دې.سوال دا دې.چه په حدیث کې دحرم د گیاه کټ کولونه منع شوې ده.په

دي کې د څرولونه منع نه ده شوې. نوپکار ده چې د څرولواجازت وي.

وَحَمْلُ الْحَشِيْشِ مِنَ الْحِلِّ مُمْكِنٌ فَلَا ضَرُوْرَةَ اووابنه دحل نه راوړل ممکن دی نوهيڅ اړتيا نشته

تشريح:- الجواب عن دليل ابي يوسف رحمه الله اوپاتې شوې اړتيا نوهغه د حرم په ګياه کې د څريدونه بغيرهم پوره کيداې شي. چه په غيرحرم کې ګياه اوريبي. اوحرم ته ئې راوړي. نوڅاروی به هغه خوري.

بِخِلَافِ الْإِذْخِرِ لِأَنَّهُ اسْتَثْنَاهُ رَسُوْلُ (١) په خلاف د سرګړی نه څکه چې دې لره مستثنی کړې دې نبی ﷺ فَيَجُوزُ قَطْعُهُ وَرَعْيُهُ نوددې پريکول او پووول جائزدی.

تشريح:- په خلاف د ازدخر څکه چې د دې پخپله رسول الله صلی الله عليه وسلم استثناء کړې ده لکه چې روايت دې چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائيلی دی «لايختلی خلالها ولا يعضد شوكها» نو حضرت ابن عباس عرض اوکړو «إلا الاذخر يارسول الله فإنه بقبورهم وبيوتهم فقال صلى الله عليه وسلم إلا الاذخر» نبی صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چې د حرم به نشی ريبلې اونه به ددې غنې کټ کولای شی نو حضرت عباس رضی الله عنه عرض اوکړو چې د اذخر نه علاوه څکه چې دا په قبرونو او کورونو کې د خوشبوئې لپاره استعمالي شی نو نبی صلی الله عليه وسلم وويل آو سوې د اذخر نه

وَبِخِلَافِ الْكَمْأَةِ، لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنْ جُمْلَةِ النَّبَاتِ او په خلاف د خريړی نه څکه چې دا د منجمله نباتاتو نه دې.

حل اللغة: ① نبت: پخپله راټوکيدل

تشريح:- په خلاف د خريړو کوم چې په عامه توګه په باران وغيره کې راټوکيږی نو په حرم کې دننه د دې پرې کول هم جائز دی څکه چې دا ګياه نه ده

## په قارن د يوجنايت په کولود دوو قربانۍ لزوم

وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلَهُ الْقَارِنُ مِمَّا ذَكَرْنَا أَنَّ فِيهِ عَلَى الْمُفْرِدِ دَمًا فَعَلَيْهِ دَمَانِ هرهغه فعل کوم چې قارن اوکړی ددغونه په کوموکې چې په مفرد يو دم دې. په قارن دوې [دوه] دمونه دی دَمٌ لِحَجَّتِهِ وَدَمٌ لِعُمْرَتِهِ يو دم دحج لپاره اويو دم دعمرې دپاره.

حل اللغة: ① فعله، فعل فعلاً (ف): کول، جوړول

تشريح:- المذهبان في تعددي لدم على القارن کوم جنايات چې ذکرشو. ① ددې په کولوپه مفردبالحج باندې که يوه قربانی واجبيږی. نوپه قارن به دوې [دوه] قربانۍ واجبيږی. يود حج د احرام د امله اوبله د عمرې داحرام په وجه.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: دَمٌ وَاحِدٌ بِنَاءً عَلَى أَنَّهُ مُحْرِمٌ بِإِحْرَامٍ وَاحِدٍ، اوشافعی رحمه الله فرمائی چې يو دم دې بنا په هغې چې ددوی په نزد قارن محرم دې په يو احرام باندې عِنْدَهُ وَعِنْدَنَا بِإِحْرَامَيْنِ وَقَدْ مَرَّ مِنْ قَبْلُ او زموږ په نزد په دوې [دوه] احرامونو باندې اودا مخکې تيرشوی دی.

حل اللغة: ① بناء: په دې توګه

تشريح:- امام شافعی رحمه الله فرمائی چه په قارن به هم يوه قربانی واجبيږی. امام مالك اوامام احمد رحمهما الله هم ددې قائلين دی.

بنا (بنياد) د اختلاف دا دې. چه دهغوی په نيزقارن په يواحرام سره محرم دې. نوڅکه پرې يودم واجبيږی. او

(١) تقدم تخريجه.



زموږ په نيزقارن په دوو احرامونومحرم دې. يودحج اوبل د عمرې نود جنايت په ارتکاب به قربانۍ هم دوې [دوه] واجبيږی. دلائل په باب القران کې تيرشوی دی.

قَالَ (إِلَّا أَنْ يَتَجَاوَزَ الْمِيقَاتَ غَيْرَ مُحْرِمٍ بِالْعُمْرَةِ أَوِ الْحَجِّ فَيَلْزَمُهُ دَمٌ وَاحِدٌ خو داچه تيرشی دميقات نه دحج يا دعمرې داحرام نه بغير. نوپده به يودم لازم وي.

تشريح:- صورة وجوب الدم الواحد على القارن صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی. چه البته يوصورت داسې دې. چه په هغې زموږ په نيزهم په قارن باندې يودم واجبيږی. هغه دا چې قارن بغيراحرامه د ميقات نه تيرشی.

خِلَافًا لِزُفَرَ رَحِمَهُ اللهُ په خلاف دامام زفر رحمه الله

تشريح:- خلاف زفر رحمه الله ودليله اوامام زفر رحمه الله په دې صورت کې په قارن باندې دوې [دوه] قربانۍ واجبوی. دامام زفر رحمه الله دليل دا دې. چه ده د ميقات نه د حج اوعمرې دواړه احرامونه روستوکړی دی. نودهريوپه بدله کې به پرې يودم واجبيږی.

لَهُ أَنَّ الْمُسْتَحَقَّ عَلَيْهِ عِنْدَ الْمِيقَاتِ إِحْرَامٌ وَاحِدٌ که چې لازم دې په ده باندې دميقات په خواکې حق ديواحرام وَبِتَأْخِيرِ وَاجِبٍ وَاحِدٍ لَا يَجِبُ إِلَّا جَزَاءٌ وَاحِدٌ اوديو واجب په تاخير سره په ده يوجزاء واجبيږی.

تشريح:- دليل الاحناف رحمهم الله اوزموږ دليل دا دې. چه د ميقات نه يواحرام واجبيږی. اود يواحرام په روستو کاوه سره يودم واجبيږی دوې [دوه] نه واجبيږی.

## د دوو محرمانود ښکارپه قتل کې د شرکت حکم

إِذَا اشْتَرَكَ مُحْرِمَانِ فِي قَتْلِ صَيْدٍ فَعَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا جَزَاءٌ كَامِلٌ) هرکله چې شريك شو دوې [دوه] محرمان ديو ښکار په قتل کې نوپه هر يو ددې دواړو باندې پوره جزاء ده وَلِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالشَّرِكَةِ يَصِيرُ جَانِيًا جِنَايَةً تَفُوقُ الدَّلَالَةَ شد څکه چې پدوی کښ هر يو په شرکت کاوه سره ددې سې جنايت کوونکې شو کوم چې د لالت نه زيات دې فَيَتَعَدَّدُ الْجَزَاءُ بِتَعَدُّدِ الْجِنَايَةِ نو په تعدد دجنايت سره جزاء متعدده شوه.

حل اللغة: ① اشترك، اشتراكًا: شريکيدل ② دلالة: لارخودنه ③ جناية: جرم، قصور

تشريح:- مسئله ښکاره ده.

## د دوو غيرمحرم کسانود يوښکار قتلولوحکم

وَإِذَا اشْتَرَكَ حَلَالَانِ فِي قَتْلِ صَيْدِ الْحَرَمِ فَعَلَيْهِمَا جَزَاءٌ وَاحِدٌ اوکله چې دوې [دوه] حلال سړی په يوښکار دحرم کې شريك شو قتل ئې کړو نوپه دواړو يو جزاء ده.

تشريح:- وجوب الجزاء الواحد على غيرالمحرمين مسئله دا ده. که دوې [دوه] غيرمحرموکسانود حرم يوښکار په شريکه قتل کړلو. نوپه دواړه باندې يوه جزاء واجب ده.

لِأَنَّ الضَّمَانَ بَدَلٌ عَنِ الْمَحَلِّ لَا جَزَاءٌ عَنِ الْجِنَايَةِ څکه چې دضمان عوض د محل دې دجنايت جزاء نه ده فَيَتَّحِدُ بِاتِّحَادِ الْمَحَلِّ و اتحاد دمحل په امله سره ضمان هم واحد وي

حل اللغة: ① حل اللغة: ① فيتحد، اتحد، اتحادًا: يوموټې کيدل، ملاويدل

تشريح:- څکه چې په دې صورت کې ضمان د محل يعنی د ښکاربدل دې. د جنايت جزاء نه ده. اومحل يعنی ښکاريودې. نوجزاء به هم يوه واجبيږی.

كَرَجُلَيْنِ قَتَلَا رَجُلًا خَطَأً لکه چې دوې [دوه] سړی چې يوسړې په خطا قتل کړی تَجِبُ عَلَيْهِمَا دِيَةٌ وَاحِدَةٌ، وَعَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَفَّارَةٌ نو په دواړو يوديت دې اوکفاره به په هريو وی بيله بيله.

تشريح:- نظيره لکه څنګه چې دوې [دوه] نفر په شريکه يوکس په خطا باندې قتل کړی. نوپه دواړو باندې

یو دیت واجبیږي. او کفاره په دواړو کي په هریو واجبیږي. ځکه چي دیت جزاء د محل ده. او کفاره جزاء د فعل ده. یعنی مقتول یو دي. نو دیت به یو واجبیږي. او فعل د قتل د دوو کسانو دي. نو کفاره به په هریو باندي واجبیږي

## دمحرم د خرڅولو او اخستلو حکم

وَإِذَا بَاعَ الْمُحْرِمُ الصَّيْدَ أَوِ ابْتَاعَهُ فَالْبَيْعُ بَاطِلٌ اوکه محرم ښکار خرڅ کړو یائي واخستلو نو بیع به ئي باطله وی

**حل اللغة:** ① باع، بیعاً (ض): خرڅول ② ابتاع، ابتیاعاً: اخستل

**تشریح:- بطلان بیع المحرم:** مسئله دا ده. چه دمحرم لپاره دښکار خرڅول او اخستل دواړه ناجائز او باطل دي.

لِأَنَّ بَيْعَهُ حَيًّا تَعَرُّضٌ لِلصَّيْدِ الْآمِنِ ځکه چي دښکار په ژوندی خرڅولو کي تعرض کول دی په فوت کاوه د امن کي وَبَيْعَهُ بَعْدَ مَا قَتَلَهُ بَيْعُ مَيْتَةٍ اوپس دقتل کولو نه ئي بیعه د مرداري ده.

**التشریح:- دلیله:** ځکه چي محرم به یا ژوندي ښکار خرڅ کړي وی اویا به ئي د ذبح کولونه روسته خرڅ کړي وی. که ژوندي ئي خرڅ کړي وی. نو ده د ښکار امن ته تعرض کړي دي. او دهغه امن ئي زائله کړي دي. او دا جائزنه دی. اوکه د ذبح کولونه روسته ئي خرڅ کړي وی. نو د محرم ذبیحه مرداره ده. نو دا د مردار بیع ده. او د مردار بیع باطله ده. ځکه موږ وایو. چه په دواړو صورتونوکي د محرم بیع باطل ده. داسي هم وئیلی شی چه ښکار د محرم په حق کي حرام لعینه دي. نو دا مال متقوم نشو. او ددي سي مال بیع چي متقوم نه وی باطله ده. نو د محرم د ښکار بیع هم باطله شوه.

## داوسئ د شړلونه روسته ب چې پیدا کیدل اودواړه مړه کیدل

وَمَنْ أَخْرَجَ ظَبْيَةً مِنَ الْحَرَمِ فَوَلَدَتْ أَوْلَادًا چا چي یوه هوسئ دحرم نه اوویستله روسته د هغې دبچي راوړلو نه، فَمَاتَتْ هِيَ وَأَوْلَادُهَا فَعَلَيْهِ جَزَاؤُهُنَّ بیا مړه شوه دا او بچي ئي نو په ده باندي دټولو جزاء واجب ده لِأَنَّ الصَّيْدَ بَعْدَ الْإِخْرَاجِ مِنَ الْحَرَمِ بَقِيَ مُسْتَحِقًّا لِلْأَمْنِ شَرْعًا ځکه چي ښکار دحرم نه دویستلو نه روسته شرعاً هم مستحق د امن دي وَلِهَذَا وَجَبَ رَدُّهُ إِلَى مَأْمَنِهِ ځکه چي په ده هغه لره ځائي د امن ته واپس کول واجب دی، وَهَذِهِ صِفَةٌ شَرْعِيَّةٌ فَتَسْرِي إِلَى الْوَلَدِ او دا شرعی صفت دي نو بچو ته به ئي ګډ وی.

**حل اللغة:** ① ظبیة: هوسئ ② اولاداً: بچي ③ جزاء: بدله، صله ④ فتسری، سری سرایة: ورننوتل

**تشریح:- وجوب ضمان الظبی واولاده بالمخرج:** مسئله دا ده. که محرم یا غیرمحرم د حرم نه اوسئ اوشړله. اود شړلونه روسته د هغې بچي پیدا شول. او بیا هغه او دهغې بچي مړل شو. نو ددې جزاء په شړونکی باندي واجب ده. ځکه چي ښکارد حرم نه د شړلونه روسته هم مستحق د امن دي. او هغه خپل د امن ځائي ته راوستل واجب دی. او دشریعت په نظرکي ددوی استحقاق د امن بچو ته هم سرایت کوی.

فَإِنْ أَدَّى جَزَاءَهَا ثُمَّ وَلَدَتْ لَيْسَ عَلَيْهِ جَزَاءُ الْوَلَدِ اوکه دهوسئ جزاء ئي ورکړه بیائي بچي راوړلو نو دبچو جزاء پرې نشته. لِأَنَّ بَعْدَ أَدَاءِ الْجَزَاءِ لَمْ تَبْقَ آمِنَةً ځکه دجزاء اداکولونه روسته دغه مستحقه د امن پاتې نشوه. لِأَنَّ وُصُولَ الْخَلَفِ كَوُصُولِ الْأَصْلِ ځکه چي دبدل رسیدل داصل درسیدلو په مثل دی والله اعلم بالصواب.

**التشریح:- صورة عدم وجوب ضمان الاولاد علی المخرج:** البته دا ده. چه دي شړونکی د شړلونه روسته دهغې جزاء ورکړله. اود جزاء ورکولونه روسته د هغې بچي پیدا شول. او هغه او بچي ئي مړه شول. نو په دې صورت کي په هغه باندي د بچو جزاء نه ده واجب. ځکه چي د جزاء ادا کاوه نه روسته هغه مستحقه د امن پاتې نشوه. ځکه چي قیمت ئي دحرم فقیرانو ته اورسولو. نو دا داسي شو. لکه چي هغه اوسئ ئي حرم ته اورسوله. والله اعلم بالصواب



# باب مجاوزة الوقت بغير احرام

دا باب د بغیراحرامه د میقات نه دتیریدو په بیان کي دي.

## دکوفی دبنی عامرباغ ته د تلونه روسته د ذات عرق نه احرام تړل

وَإِذَا أَتَى الْكُوفِيُّ بُسْتَانَ بَنِي عَامِرٍ فَأَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ کله چي راغلو کوفی بستان دبنی عامرته اود عمرې احرام ئي اوتړلو، فَإِنْ رَجَعَ إِلَى ذَاتِ عِرْقٍ وَلَبَّى بَطَلَ عَنْهُ دَمُ الْوَقْتِ نوکه دي واپس شو ذات عرق ته او تلبیه ئي اووئیله نو دده د ذمې څخه به دمیقات دم ختم شی.

**حل اللغة:** ① اتی، اتیاناً (ض): راتګ ② لبی تلبیة: تلبیه وئیل ③ جنایة: جرم ⑤ تلافی: نقصان پوره کول، کمې پوره کول ⑥ مجازوة: تجاوز کول، دَحد نه تیریدل ⑦ ابتداء: پیل کول ⑧ یرید، ارادة: اراده کول ]؛

**تشریح: الربط بما قبله:** دجنایاتو اوددې د قسمونو د ذکر کولونه روسته بغیراحرامه د میقات نه د تیریدلو احکام ذکرکوی. ځکه چي دا هم د جنایاتو څخه دي. البته دا جنایت د احرام نه وړاندي دي.

**صورة سقوط الجزاء بالتجاوز من المیقات بغیر الاحرام:** اوس صورت د مسئلې دا دي. چه یو آفاقی بغیر احرامه د میقات نه تیرشو. او بیا ئي د عمرې لپاره احرام اوتړلو. نو اوس به کتلې شي. چه د احرام تړلونه روسته ده د عمرې په افعالوکي پیل کړي ده او که نه. نوکه بغیرد ددې نه چي دعمرې په افعالوکي پیل اوکړي. واپس میقات ته لاړ شی. او تلبیه اووائی. نو په ده چي د میقات نه بغیراحرامه د تیریدو په وجه کومه جزاء واجب شوې وه. هغه ساقط شوه.

وَإِنْ رَجَعَ إِلَيْهِ وَلَمْ يُلَبِّ حَتَّى دَخَلَ مَكَّةَ وَطَافَ لِعُمْرَتِهِ اوکه واپس شو ورته او تلبیه ئي اونه وئیله تر دي چي داخل شو مکې ته او طواف ئي دعمرې لپاره اوکړو فَعَلَيْهِ دَمٌ وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله [1] نو په ده دم دي. او دا په نزد دامام ابوحنیفه رحمه الله دی.

**تشریح:** که دي میقات ته واپس شو. لیکن تلبیه ئي اونه وئیله. بلکه د میقات نه مکې ته داخل شو. اود عمرې افعال ئي پیل کړلو. نو په ده باندي جزاء واجب شوه. ځکه چي میقات ته په واپس کیدو باندي ده لپاره تلبیه وئیل ضروری وو. خو چه ده تلبیه اونه وئیله. نو جزاء چي قربانی ده. هغه پرې واجب شوه. دا دامام ابوحنیفه رحمه الله قول دي.

وَقَالَا: إِنْ رَجَعَ إِلَيْهِ مُحْرِمًا فَلَيْسَ عَلَيْهِ شَيْءٌ لَبَّى أَوْ لَمْ يُلَبِّ. صاحبین فرمائی چي محرم واپس شو نو په ده هیڅ نشته. که تلبیه ووایي او که نه.

**تشریح:-** صاحبینو فرمائیلی دی که هغه میقات اړخ ته د احرام په حالت کي واپس شو نو په ده باندي څه نه دی لازم برابره ده که ده تلبیه وئیلی وی او که نه

وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَسْقُطُ لَبَّى أَوْ لَمْ يُلَبِّ امام زفر رحمه الله فرمائی چي دم به ساقط نه وی. که تلبیه ووایي او که نه لِأَنَّ جِنَايَتَهُ لَمْ تَرْتَفِعْ بِالْعَوْدِ ځکه چي دده جرم په واپس کیدو سره پورته نشو

**حل اللغة:** ① لایسقط، سقط، سقوطاً (ن): ساقط کیدل، پریوتل

**تشریح:-** امام زفر رحمه الله فرمائی. چه قربانی په هیڅ صورت کي نه ساقطیږي. که تلبیه ووایي او که نه، دا قول

---

[1] القول الراجح هو هذا قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی الخانیة (۱۳۷۱۱) والدری لمختار(۲٤۱۱۲) والهندیة (۲۵۳۱۱) نقلاً عن القول الراجح (۲۳۶۱۱)-

دامام مالك اوامام شافعي رحمهما الله هم دي.

**دليله**۞دامام زفر رحمه الله دليل دا دې.چه بغيراحرامه چې د ميقات نه په تيريدو سره کوم جنايت شوې دې.هغه ميقات ته په واپس کيدوسره نه ختميږي.اوچه جنايت ختم نشو.نوچه دهغې په وجه کومه جزا واجب شوې وه.هغه هم نه ساقطيږي.

**وَصَارَ كَمَا إِذَا أَفَاضَ مِنْ عَرَفَاتٍ ثُمَّ عَادَ إِلَيْهِ بَعْدَ الْغُرُوبِ** اوداسې شو لکه دعرفات نه چې لاړشي اوبيا ورته دنمر په پريوتلو نه روسته واپس شي.

**تشريح:- نظيره**۞لکه چې حاجي د امام نه وړاندې د عرفات نه لاړ شي.اوبيا د لمر پريوتو نه روسته راشي.اوامام سره يوځائې د عرفات نه مزدلفې ته روان شي.نودامام نه وړاندې په تلوسره چې په ده کومه قرباني واجب شوې وه.په واپس راتلواوامام سره شريکيدوباندې هغه قرباني نه ساقطيږي.

**وَلَنَا أَنَّهُ تَدَارَكَ الْمَتْرُوكَ فِي أَوَانِهِ وَذَلِكَ قَبْلَ الشُّرُوعِ فِي الْأَفْعَالِ** زموږ دليل دادې چې ده متروك تدارك په وخت اوکړو اووخت ئې دافعالو پيل کولونه مخکې دې **فَيَسْقُطُ الدَّمُ**، نو ساقطيږي وينه

**تشريح:- دليل جمهور الاحناف** رحمهم الله۞دامام ابوحنيفه اوصاحبينو رحمهم الله مشترکه دليل دا دې.چه ده د متروك يعني د ميقات نه بغيراحرامه تيريدلو تدارك په خپل وخت کې اوکړلو.ځکه چې د تدارك وخت د عمرې په افعالوکې د پيل کولونه وړاندې موجود وی.اوچه تدارك په خپل وخت کې اوشي.نوهغه فائده ورکوی.نودا تدارك هم مفيد شو.اوچه مفيد شو.نوواجب شوې دم ساقط شو.

**بِخِلَافِ الْإِفَاضَةِ، لِأَنَّهُ لَمْ يَتَدَارَكِ الْمَتْرُوكَ** نو دم به ساقط شي په خلاف دعرفات د تلو.چه ده تدارك دمتروك نه دې کړې **عَلَى مَا مَرَّ** لکه چې تير شو.

**تشريح:- الجواب عن دليل زفر** رحمه الله۞پاتې چې دامام نه وړاندې د عرفات نه تلل اوبيا د لمر پريوتونه روسته واپس عرفات ته راتګ.نودا په خپل وخت کې تدارك نه دې.ځکه چې د عرفات وخت د زوال نه روسته تر لمر پريوتو پورې په عرفات کې ايساريدل دی.اودا که د نمرډوبيدو نه روسته راغلې دې.نوهغه په خپل وخت کې تدارك اونکړلو.اوچه په خپل وخت کې ئې تدارك اونکړلو.نوتدارك ئې مفيد نشو.اوچه مفيد نشو.نوکومه قرباني چې د لمرډوبيدو نه وړاندې په تلو په ده باندې واجب شوې وه.هغه هم نه ساقطيږي.

**غَيْرَ أَنَّ التَّدَارُكَ عِنْدَهُمَا بِعَوْدِهِ مُحْرِمًا** صرف دومره خبره ده چې تدارك په نزد دصاحبينو په احرام کې په واپسئ دې **لِأَنَّهُ أَظْهَرَ حَقَّ الْمِيقَاتِ كَمَا إِذَا مَرَّ بِهِ مُحْرِمًا سَاكِتًا** ځکه چې د دميقات حق ظاهر کړو لکه چې دې په ميقات باندې داحرام سره خاموش تيرشي

**تشريح:- الفرق بين دليل ابی حنيفة والصاحبين** رحمهم الله۞تردې ځائې پورې خود امام ابوحنيفه اوصاحبينو رحمهم الله دليل مشترك وو.اوس په **«غيرأن التدارك إلخ»** سره د دوی په دليل کې توپير کوی.چه د صاحبينو رحمهما الله په نيزتدارك دده د احرام سره په واپس کيدوباندې حاصليږي.دتلبيه اړتيا نشته.ځکه چې ده د ميقات حق يعني احرام ښکاره کړلو.نودا داسې شوه.لکه چې دې داحرام سره د ميقات نه چوپ تيرشوې وی.اوتلبيه ئې نه وی وئيلې.اودا په اتفاق سره جائزده.نودغه دول دلته هم د تلبيه د ويلو سره واپس کيدل ضروري نه دی.

**وَعِنْدَهُ رَحِمَهُ اللَّهُ بِعَوْدِهِ مُحْرِمًا مُلَبِّيًا** اودامام صاحب په نزد تدارك په احرام سره په واپس کيدو تلبيه وئيلوسره کيږي. **لِأَنَّ الْعَزِيمَةَ فِي الْإِحْرَامِ مِنْ دُوَيْرَةِ أَهْلِهِ** ځکه داحرام په حق کې عزيمت دخپلو کوروننو نه تړل دی. **فَإِذَا تَرَخَّصَ بِالتَّأْخِيرِ إِلَى الْمِيقَاتِ وَجَبَ عَلَيْهِ قَضَاءُ حَقِّهِ بِإِنْشَاءِ التَّلْبِيَةِ** نو ده د ميقات پورې د موخر کاوه رخصت اختيار کړو نوپه پيل کنبې دتلبې سره داحرام حق پوره کول واجب دی. **فَكَانَ التَّلَافِي بِعَوْدِهِ مُلَبِّيًا**،او دجرم تلافي به په تلبيه واپس کيدو وی. **"وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ إِذَا أَحْرَمَ بِحَجَّةٍ بَعْدَ الْمُجَاوَزَةِ مَكَانَ الْعُمْرَةِ** اوپه دې اختلاف دی کله چې ده دميقات نه



بغير احرام نه تيريدو نه بعد په ځائې دعمرې دحج احرام تړلې وی. **فِي جَمِيعِ مَا ذَكَرْنَا** په دې ټولو کې کوم چې موږ ذکر کړل

**تشريح:-** امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزتدارك په دې صورت کې حاصليږي.چه د احرام سره تلبيه هم اووائي.ځکه چې داحرام په حق کې عزيمت دا دې.چه دخپل وطن د آبادئ نه احرام اوتړلې شي.اورخصت دا دې.چه د ميقات نه احرام اوتړلې شي.نوهرلکه چې ده د ميقات نه د احرام تړلو رخصت باندې عمل اوکړلو.نوپه تلبيې وئيلوسره احرام پوره کول په ده واجب شو.نوددې جرم يعني بغير احرامه د ميقات نه د تيريدو جرم چې دې.دا په دې باندې حاصليږي.چه تلبيه وائي اوواپس شي.بغيردتلبيه نه صرف په واپس کيدو سره تلافي نه کيږي.

په ذکرشوو ټولوځيزونوکې دا اختلاف په هغه وخت کې دې.چه يوکس د ميقات نه بغيراحرامه د تيريدو نه روسته دعمرې په ځائې دحج احرام تړلې وی.اودا واړه تفصيل په وخت کې دې چې دعمرې د افعالوشروع کولونه روسته ميقات ته واپس شوې وی.

**وَلَوْ عَادَ بَعْدَ مَا ابْتَدَأَ بِالطَّوَافِ، وَاسْتَلَمَ الْحَجَرَ لَا يَسْقُطُ عَنْهُ الدَّمُ بِالِاتِّفَاقِ** اوکه واپس شو دطواف پيل کاوه او حجر اسود ښ کاوه نه روسته نودم به ساقط نه وی په اتفاق سره.، **وَلَوْ عَادَ إِلَيْهِ قَبْلَ الْإِحْرَامِ يَسْقُطُ بِالِاتِّفَاقِ وَهَذَا الَّذِي ذَكَرْنَا إِذَا كَانَ يُرِيدُ الْحَجَّ أَوِ الْعُمْرَةَ** اوکه واپس شو داحرام تړلو نه رومبې نوساقط به وی په اتفاق سره. اوداچه موږ ذکر کړل هغه وخت دی چې دده اراده دحج يادعمرې وه.

**تشريح:-** خوکه دې د طواف پيل کاوه اود حجر اسود د ښکلولو نه روسته ميقات اړخ ته واپس شو نو په اتفاق سره د ده نه دم نه ساقطيږي او که دې د احرام تړلو نه وړاندې ميقات اړخ ته واپس شو نو په اتفاق سره به ترې قرباني هم ساقطه شي او دا څه چې موږ ذکر کړل چې بغير د احرام نه چې د ميقات نه تير شي نو په دې صورت کې پرې دم واجبيږي دا په هغه صورت کې د ده اراده د حج يا د عمرې وی.

### دأفاقي د حاجت لپاره دميقات دننه داخليدل

**فَإِنْ دَخَلَ الْبُسْتَانَ لِحَاجَةٍ فَلَهُ أَنْ يَدْخُلَ مَكَّةَ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ، وَوَقْتُهُ الْبُسْتَانُ** نوکه داخل شوباغ ته د اړتيا لپاره نودده لپاره جائز دی مکې ته داخليدل بغير داحرام (دميقات نه دتړلو) نه. اوميقات دده دغه باغ دې.

**حل اللغة**° ① دخل، دخولاً (ن): داخليدل

**تشريح:- جوازالاحرام للافاقی من داخل الميقات اذا دخلها لحاجة**۞مسئله دا ده.که يوکس د بني عامر باغ يعني ميقات ته د څه اړتيا لکه تجارت وغيره لپاره داخل شو.نوپه ده څه جزاء نشته.اوکه ددې ځائې دې مکې معظمې ته د داخليدو اراده لری.نوبغيراحرامه ورته د داخليدو اجازت شته.

**توضيح العبارة**۞ددې مطلب دا دې.چه دده لپاره د ميقات نه د احرام تړلو اړتيا نشته.بلکه هم د دغه ځائې نه دې احرام اوتړی.اومکې ته دې داخل شي.دا مطلب هيڅ کله نه دې.چه بغيراحرامه ورته د مکې داخليدو اجازت شته.ځکه چې علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائی دی.چه واړه کتابونه په دې باندې ګوياه دی.چه کوم کس مکې ته داخليږی.نواحرام به ترې.برابره ده که د حج اراده لری که دعمرې اوکه د تجارت وغيره،

**هُوَ وَصَاحِبُ الْمَنْزِلِ سَوَاءٌ** ودې او اوسيدونکې دباغ دواړه برابر دی. **وَلِأَنَّ الْبُسْتَانَ غَيْرُ وَاجِبِ التَّعْظِيمِ فَلَا يَلْزَمُهُ الْإِحْرَامُ بِقَصْدِهِ** ځکه چې باغ واجب التعظيم نه دې نودې ته په ارادې سره احرام لازم نه دې. **،وَإِذَا دَخَلَهُ الْتَحَقَ بِأَهْلِهِ ،وَلِلْبُسْتَانِيِّ أَنْ يَدْخُلَ مَكَّةَ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ لِلْحَاجَةِ** اوکله چې باغ ته داخل شو نوملحق شو دباغ والو سره. اوباغ والا لپاره په څه اړتيا سره بغير د احرام نه مکې ته داخليدل جائز **فَكَذَلِكَ لَهُ** نودغسې ده لپاره هم دی

**حل اللغة** ° ① التحق، التحاقًا: ملاويدل

تشريح:- **دخول البستاني المكة وتوضيح المراد**۞صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي.چه د بستاني لپاره داحرام ځائې هم بستان دې.د ميقات نه د احرام تړلو اړتيا نشته.نودغه شان چې کوم کس بستان ته داخل شي.دهغه لپاره هم هغه حکم دې.کوم چې د بستاني لپاره ده.دواړه د احرام تړلوپه حکم کې برابر دي.يعني دبستان ځخه به احرام تړي.اود آفاقي لپاره د ميقات نه د احرام تړلو اړتيا ځکه نشته.چه بستان څه واجب التعظيم ځائې نه دې.نوچه د بستان اراده کوي.ددې لپاره د احرام تړل ضروري نه دي.بلکه ناجائزدي.اود بستاني لپاره دخپل څه حاجت لپاره مکې ته بغيراحرامه داخليدل جائزدي.نوددې آفاقي لپاره هم مکې ته د خپل حاجت لپاره داخليدل جائزدي.د علامه ابن الهمام رحمه الله د قول مطابق ددې مطلب هم دا دې.چه بستاني به د بستان نه احرام تړي.اومکې ته به داخليږي.اوباتې شود بستان نه احرام تړل.نودا ضروري دي. ځکه چې مکې ته بغيراحرامه داخليدل ممنوع دي.

بقوله ووقته البستان جميع الحل الذي بينه وبين الحرم او د ((وقته البستان)) نه مراد تمام حل دې کوم چې دده اود حرم په مينځ کې دي. وقد مرمن قبل، فكذا وقت الداخل الملحق به اودا بيان مخکې شوې دې نو دغه ډول دباغ والا سره ملحق لپاره ددې خل باغ والاميقات هم دا باغ دې.

تشريح:- **توضيح ميقات البستاني ومن هو ملحق به**۞اودا چې ئې اوفرمائيل.چه د بستاني لپاره ميقات بستان دې.نوددې نه مراد واړه زمين حل مراد دې.يعني کومه علاقه چې د بستان اوحرم په مينځ کې واقع شوې وي.خاص کربستان مراد نه دې.دغه ډول دهغه کس ميقات کوم چې بستان ته داخل شو.اود بستاني سره ملحق شو.نودغه هغه لپاره هم د زمين حل ټوله علاقه ميقات دې.کومه چې د بستان اوحرم په مينځ کې واقع وي.د بستان په کې څه تخصيص نشته.

فإن أحرما من الحل ووقفا بعرفة لم يكن عليهما شيء نوکه دواړو دحل نه احرام اوتړلو اوپه عرفات ئې وقوف اوکړو نوپدوی به څه واجب نه وی. يريد به البستاني والداخل فيه، لأنهما أحرما من ميقاتهما ددواړو نه مراد باغ والا او داخل شوې دباغ دې.ځکه چې دې دواړو دخپل ميقات نه احرام تړلې دې.

تشريح:- نوکه بستاني اوچه څوك بستان ته داخل شوې وي.د زمين حل نه احرام اوتړلو.نوپه دوی باندې څه جرم نشته.ځکه چې دې دواړو دخپل ميقات نه احرام اوتړل.اود دوی ميقات زمين حل دې.

## بغيراحرامه مکې ته اوبيا دوباره په احرام کې داخليدل

ومن دخل مكة بغير إحرام ثم خرج من عامه ذلك إلى الوقت اوکوم سړې چې مکې ته بغيرد احرام نه داخل شو بيا دغه کال ميقات ته لاړو وأحرم بحجة عليه أجزأه ذلك من دخوله مكة بغير إحرام. اودهغې حج احرام ئې اوتړلو کوم چې پده دې نو دا به ده لره مکې ته بغيرد احرام نه ددې خليدو لپاره کافي شي.

حل اللغة: ① احرم، احراماً: احرام تړل ② عام: کال

تشريح:- **المذهبان في كافي الحج اوالعمرة اللازمة بدخول المكة**۞مسئله دا ده.که يوکس بغيرد احرام نه مکې ته داخل شو.نوپه ده حج ياعمره لازم شوه.لکه څنګه چې زمونږ مذهب دې.بيا دې هم په دغه کال د مکې نه بهرشو.اودميقات نه ئې د فرض حج يا د نفل حج يا دعمرې لپاره احرام اوتړلو.نوکوم حج يا عمره چې پرې مکې ته په بغيراحرامه داخليدو لازم شوې وه.دا د هغې نه کافي شوه.دهغې د ځانله اوجدا کولو څه اړتيا نشته.

وقال زفر رحمه الله: لا يجزيه، وهو القياس اعتبارا بما لزمه بسبب النذر امام زفر فرمائي چې کافي به نه وی اوقياس هم دادې، قياس په دې باندې کوم چې د نذر په سبب سره لازم وی. ،وصار كما إذا تحولت السنة نوداسې شوه لکه چې کال دوباره شو.

حل اللغة: ① اعتباراً: اعتبار کول ② تحولت، تحولاً: واپس ګرځيدل ③ سنه: کال



تشريح:- اوامام زفر رحمه الله فرمائي.چه دا نه کافي کيږي. او قياس هم دا دې.

**دليله**۞قياس دا دې.که په يوکس دنذر په وجه حج فرض شوې وي.اودې فرض حج اوکړي.نود فرض حج په کولو منذور حج نه ادا کيږي.دغه ډول دلته هم که فرض حج اوکړي.نوهغه حج پرې نه ادا کيږي.کوم چې مکې ته بغيراحرامه د داخليدو په وجه واجب شوې وو.اودا داسې شو.لکه چې کال تير شي.يعني که په يوکس مکې ته بغيراحرامه داخليدو باندې حج واجب شوې وي.او په بل کال دې فرض حج اوکړي.نوپه دغه فرض حج باندې هغه حج نه ادا کيږي.کوم چې مکې ته بغيراحرامه داخليدو باندې واجب شوې وو.

ولنا أنه تلافى المتروك في وقته اوزمونږ دليل دادې چې ده دمتروك تلافي په وخت کې اوکړه ،لأن الواجب عليه تعظيم هذه البقعة بالإحرام ځکه چې پده واجب خو داحرام سره ددې ځائې تعظيم دې كما إذا أتاه محرما بحجة الإسلام في الابتداء لکه چې راشي ابتداءً د حجة الاسلام احرام تړلې.

تشريح:- **دليل الاحناف** رحمهم الله۞زمونږ دليل دا دې.چه په دې باندې بغيراحرامه مکې ته د داخليدو په وجه کوم حج يا عمره واجب شوې وه.نوده په خپل وخت کې يعنی هم په دغه کال کې د هغې تلافي اوکړله.په دې طريقه چې د فرض حج ادا کولو په ضمن کې ئې هغه ادا کړلو.ځکه چې په ده باندې د حرم دتعظيم لپاره په احرام کې داخليدل واجب وو.که په هره طريقه وو.اوهغه حاصل شو.نوځکه ده ته د جلا حج يا عمرې ضرروت پاتې نشو.لکه چې څنګه دې د اول نه دفرض حج لپاره احرام اوتړي.نوفرض حج د کوم چې ده نيت کړې وو.اوکوم چې په ده مکې ته بغيراحرامه ددې خليدو په وجه واجب شوې وو.د دواړو لپاره کافي کيږي.

بخلاف ما إذا تحولت السنة لأنه صار دينا في ذمته په خلاف د هغې نه هرکله چې کال دوباره شي.ځکه چې دغه اوس دده په ذمه پور شو. ه لا يتأدى إلا بإحرام مقصود له نو د مقصودي احرام نه بغير نه ادا کيږي فما في الاعتكاف المنذور فإنه يتأدى بصوم رمضان من هذه السنة لکه د نذر په اعتکاف کې چې دی. چې دا ددې کال رمضان د روژو سره ادا کيږي دون العام الثاني نه چې د بل کال درمضان سره.

تشريح:- **الجواب عن قياس زفر** رحمه الله۞په خلاف دهغه صورت چې کال تيرشي.ځکه چې مکې ته بغيراحرامه د داخليدو په وجه چې کوم حج په ده فرض شوې وو.هغه دده په ذمه پور شو.نوهغه به په دې سې احرام سره ادا کيږي.چه هغه مقصود وي. يعنی په هغه احرام به ادا کيږي.کوم چې ددې پور ادا کولوپه اراده سره اوتړلې شي.لکه څنګه چې دنذرپه اعتکاف کې وي.يعنی چې يوکس د يوکال په رمضان کې د اعتکاف کولو نذراوکړي.اود اعتکاف لپاره روژه ضروري ده.نواعتکاف به هم ددغه رمضان په روژو کې ادا کيږي.د بل کال د رمضان په روژو کې دغه نذر اعتکاف نه ادا کيږي.بلکه که په دې رمضان کښې ئې اعتکاف اونکړلو.نوهغه به په نورو ورځو کې قضا راوړي.او روژې به په کې نيسي.

## په عمره کې بغيراحرام د ميقات نه تيريدل اوهغې فساد اوقضا راوړل

ومن جاوز الوقت فأحرم بعمرة وأفسدها مضى فيها وقضاها اوڅوك چې تيرشو دميقات نه نودعمرې احرام ئې اوتړلو اوهغه ئې فاسده کړه نو د عمرې په افعالو دې تيرشي اوقضا دې اوکړي.

حل اللغة: ① جاوز، مجاوزة: تيريدل، تجاوز کول ② افسد، افساداً: فاسد کول ③ قضاها، قضى، يقضى، قضاءً: قضاء کول ④ محظورات: ممنوعات، هغه شيان (څيزونه) د کوم نه چې منع کړې شوې وی ]

تشريح:- **العمرة بالاحرام المتجاوز عن الميقات ثم فسادها**۞که يوکس بغيراحرامه د ميقات نه تيرشو.اوبيا ئې دعمرې احرام اوتړلو.اوعمره ئې فاسده کړله نودعمرې افعال دې پوره کړي.اود ميقات نه دې د هغې د قضاء لپاره احرام اوتړي

لأن الإحرام يقع لازما فصار كما إذا أفسد الحج ځکه چې احرام لازم واقع کيږي نوداسې شوه لکه حج چې فاسد کړي.

**دلائل المسلتین** ⊛ د عمرې جاری ساتلو دلیل دا دې. چه احرام یولازم عقد دې. چه سړې د کوم شی لپاره احرام اوتړی. اوپه هغې کې پیل اوکړی. نوچه هغه ئې نه وی پوره کړې. دهغې نه وتلې نشی. لکه په دې صورت کې چې ئې د عمرې احرام تړلې دې. اود هغې په افعالوکې پیل کړې ده. نو پوره کوی به ئې ② اود قضا راوړلو دلیل دا دې. چه ده په صحیح طریقه باندې په ځان د عمرې ادا کاوه التزام کړې وو. اوهغه ئې په صحیح طریقه ادا نکړله. نوقضا پرې واجب ده.

| وَلَيْسَ عَلَيْهِ دَمٌ لِتَرْكِ الْوَقْتِ | اوپه ده په پرېښودو د میقات دم لازم نه دې. |
|---|---|

**تشریح:-** اوپه ده باندې دم نشته د دې دلیل دا دې. چه په ده باندې دم ځکه واجب شوې وو. چه بغیراحرامه د میقات نه تیرشوې وو. خوچه دې دوباره میقات ته لاړ شی. اوهغه عمرې د قضاء راوړلو لپاره احرام د میقات نه اوتړی. دکومې په احرام کې چې ده د میقات نه تجاوز کړې وو. اودم پرې لازم شوې وو. نوکوم نقصان چې پیدا شوې وو. په دې دوهم احرام تړلو سره دهغې تلافی اوشوه. اودم لازم شوې وو. دنقصان پوره کولودپاره. نوچه په د میقات نه احرام اوتړی. هغه نقصان پوره شو. اودم ساقط شو. لکه چې یوکس په لمانځه کې سهوه شی. نوپه ده سجده سهوه واجب شوه. خوچه ده لمونځ فاسد کړلو. اوهغه ئې دوباره اوکړلو. نوسجده سهوه ساقط شوه.

| وَعَلٰى قِيَاسِ قَوْلِ زُفَرَ رَحِمَهُ اللّٰهُ لَا يَسْقُطُ عَنْهُ | اودامام زفرصاحب دقول په قیاس به دم ساقط نه وی |
|---|---|

**تشریح:- خلاف زفر** رحمه الله ⊛ امام زفر رحمه الله فرمائی. چه د عمرې قضا راوړی. نوهم هغه دم نه ساقطیږی. کوم چې د میقات نه بغیراحرامه د تیریدو په وجه لازم شوې وو.

| وَهُوَ نَظِيرُ الْاِخْتِلَافِ فِي فَائِتِ الْحَجِّ اِذَا جَاوَزَ الْوَقْتَ بِغَيْرِ اِحْرَامٍ | اودا نظیر د دې دهغې اختلاف کوم چې دفوت شوی حج په اړه کې دې کله چې دې د احرام نه بغیر دمیقات نه تیرشی **وَفِيمَنْ جَاوَزَ الْوَقْتَ بِغَيْرِ اِحْرَامٍ وَاَحْرَمَ بِالْحَجِّ ثُمَّ اَفْسَدَ حَجَّتَهُ،** او نظیر دې دهغې اختلاف کوم چې دهغې سړی په اړه کې دې چې دمیقات نه بغیرد احرام نه تیرشی اودحج احرام اوتړی او حج فاسد کړی |
|---|---|

**تحصیل "الاختلاف المذکور فی المسلتین الاخریتین** ⊛ هم دا اختلاف په هغه صورت کې هم دې. چه یوکس د میقات نه تیرشی. اودحج لپاره احرام اوتړی. خو حج ترې فوت شی. اوبیا په راروان کال دهغې حج قضا راوړی. نوکوم دم چې په ده د میقات نه بغیراحرامه د تیریدو په وجه واجب شوې وو. هغه ساقطیږی. اوامام زفر رحمه الله فرمائی. چه نه ساقطیږی. ② اودا اختلاف په هغه صورت کې دې. چه یوکس د میقات نه بغیراحرامه تیرشی. اوبیا دحج لپاره احرام اوتړی. خود وقوف عرفات نه وړاندې په جماع کولوسره حج فاسد کړی. نوچه دې په راروان کال د فاسد حج قضا راوړی. اود میقات نه احرام اوتړی. نوکوم دم چې پرې د میقات نه بغیراحرامه تیریدو په وجه واجب شوې وو. هغه ساقطیږی. اودامام زفر رحمه الله په نیز نه ساقطیږی.

| هُوَ يَعْتَبِرُ الْمُجَاوَزَةَ هٰذِهٖ بِغَيْرِهَا مِنَ الْمَحْظُوْرَاتِ | امام زفرصاحب دې تجاوز دمیقات لره په نورو محظوراتو قیاس کوی. |
|---|---|

**تشریح:- دلیل زفر** ⊛ امام زفر رحمه الله د میقات نه د تیریدو جرم د احرام په نورو ممنوعاتو باندې قیاس کوی. مثلاً که یوکس د حج په احرام کې خوشبواولګوله. او یا ئې ګنډلې جامې واچولې. اودغه حج ترې فاسد شو. اوبیا د هغې قضا راوړی. نوکوم دم چې پرې په فاسد حج کې واجب شوې وو. دهغې په قضا راوړلو هغه دم نه ساقطیږی.

| وَلَنَا اَنَّهٗ يَصِيْرُ قَاضِيًا حَقَّ الْمِيْقَاتِ بِالْاِحْرَامِ مِنْهُ فِي الْقَضَاءِ | اوزموږ دلیل دادې چې په قضا دغه سړې دمیقات نه په احرام تړلو کې حق دمیقات ادا کاوه والاګرځی. **،وَهُوَ يَحْكِي الْفَائِتَ وَلَا يَنْعَدِمُ بِهٖ غَيْرُهٗ مِنَ الْمَحْظُوْرَاتِ فَوَضَحَ الْفَرْقُ** |
|---|---|



اوقضاء دهغې حکایت کوی کوم چې فوت شوې دې اوپه قضاء سره نور محظورات معدوم کیږی نوفرق واضح شو.

**تشریح:- دلیل جمهورالاحناف** رحمهم الله ⊛ اوزموږ دلیل دا دې. چه ده د فاسد حج قضا راوړلو کې د میقات نه احرام اوتړلو. اود میقات حق ئې ادا کړلو. ځکه چې قضا هم د فوت شوی قائم مقام ده. نودا داسې شوه. لکه چې ده هډو بغیراحرامه دمیقات نه تجاوز کړې نه دې. اوچه بغیراحرامه د میقات نه تجاوز نه دې شوې. نودم هم واجب نشو. ځکه چې دم خو هم ددې په وجه لازم شوې وو.

**الجواب عن قیاس زفر** رحمه الله ⊛ اوپاتې شود احرام د نوروو ممنوعاتو لکه د خوشبو لګولو ارتکاب. نوهغه د حج په فساد او قضا راوړلو سره نه ختمیږی. بلکه بیا هم پاته وی. اوچه د احرام ممنوع پاته وی. نودم به هم پاته وی. نوبغیراحرامه د میقات نه د تیریدو اود احرام په نوروممنوعاتوکې توپیر ښکاره شو.

### دمکی دحرم نه وتل اومحرم بالحج کیدل اوعرفات ته تلل

| وَاِذَا خَرَجَ الْمَكِّيُّ يُرِيْدُ الْحَجَّ فَاَحْرَمَ وَلَمْ يَعُدْ اِلَى الْحَرَمِ وَوَقَفَ بِعَرَفَةَ فَعَلَيْهِ شَاةٌ | یومکی په اراده دحج روانشو اوده احرام اوتړلو او حرم ته واپس نشو **لِاَنَّ وَقْتَهُ الْحَرَمُ وَقَدْ جَاوَزَهٗ بِغَيْرِ اِحْرَامٍ** اوپه عرفات ئې وقوف اوکړو نو پده یو وزه واجب ده. ځکه چې دده میقات حرم دې **فَاِنْ عَادَ اِلَى الْحَرَمِ وَلَبّٰى اَوْ لَمْ يُلَبِّ فَهُوَ عَلَى الْاِخْتِلَافِ الَّذِيْ ذَكَرْنَاهُ فِي الْاٰفَاقِيِّ** اودې ترې بغیر احرام نه تیرشو نوکه دې حرم ته واپس شو او تلبیه ئې اووئیله یا ئې اونه وئیله نودا په هغې اختلاف دې کوم چې موږ د آفاقی په حق کې ذکرکړې دې. |
|---|---|

**حل اللغة:** ① خرج، خروجاً (ن): وتل ② یرید: اراده کول، غوښتل ③ لبی، تلبیة: تلبیه وئیل

**تشریح:-** مسئله ښکاره ده.

### دمتمتع د عمرې نه روسته د حج لپاره خارج دحرم نه محرم بالحج کیدل

| وَالْمُتَمَتِّعُ اِذَا فَرَغَ مِنْ عُمْرَتِهٖ ثُمَّ خَرَجَ مِنَ الْحَرَمِ فَاَحْرَمَ وَوَقَفَ بِعَرَفَةَ فَعَلَيْهِ دَمٌ | متمتع چې دعمرې نه فارغ شو بیااووتلودحرم نه او احرام دحج ئې اوتړلو او وقوف دعرفات ئې اوکړو نوپده دم دې. **لِاَنَّهٗ لَمَّا دَخَلَ مَكَّةَ وَاَتٰى بِاَفْعَالِ الْعُمْرَةِ صَارَ بِمَنْزِلَةِ الْمَكِّيِّ** ځکه چې دې مکې ته داخل شو دعمرې افعال ئې اوکړل نودې پشان د مکی شو **وَاِحْرَامُ الْمَكِّيِّ مِنَ الْحَرَمِ لِمَا ذَكَرْنَا فَيَلْزَمُهُ الدَّمُ بِتَاْخِيْرِهٖ عَنْهُ** اودمکی احرام دحرم نه وی چې وجه ئې موږ ذکر کړې ده. نو لازم دې پرې دم دحرم نه دتاخیر په وجه. **فَاِنْ رَجَعَ اِلَى الْحَرَمِ فَاَهَلَّ فِيْهِ قَبْلَ اَنْ يَقِفَ بِعَرَفَةَ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ** بیا که دې حرم ته واپس راغلو اوپه دې کې ئې تلبیه اووئیله مخکې دوقوف دعرفات نه نوپده څه لازم نه دی. **وَهُوَ عَلَى الْخِلَافِ الَّذِيْ تَقَدَّمَ فِي الْاٰفَاقِيِّ، وَاللّٰهُ تَعَالٰى اَعْلَمُ** اودا هم په هغې اختلاف دې کوم چې د آفاقی په حق کې مخکې تیر شوې دې. |
|---|---|

**حل اللغة:** ① متمتع: نفع اوچتونکی ② فرغ، فراغة (ف): فارغ کیدل ③ فیلزم، لزم لزوماً (س): لازم کیدل ]

**تشریح:-** مسئله دوضاحت محتاجه نه ده.

## بَابُ اِضَافَةِ الْاِحْرَامِ اِلَى الْاِحْرَامِ

دا باب د احرام اضافت احرام ته په کولوکې دې.

**تشریح:- الربط بماقبله** ⊛ د مکی عمره اوحج په یواحرام کې جمع کول جائزنه دی. بلکه جنایت دې. دغه ډول د آفاقی لپاره د عمرې احرام دحج احرام سره یوځائې کول جنایت دې. البته د حج احرام دعمرې د احرام سره یوځائې کول د آفاقی لپاره جنایت نه دې. چونکه د مکې د خلګو لپاره دا جنایت دې. نوځکه ئې دا د باب الجنایات نه روسته ذکر کړل.

| قَالَ اَبُوْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ: اِذَا اَحْرَمَ الْمَكِّيُّ بِعُمْرَةٍ وَطَافَ لَهَا شَوْطًا | مام ابی‌حنیفه رحمه الله فرمائی چې که مکی |
|---|---|

ثُمَّ أَحْرَمَ بِالْحَجِّ فَإِنَّهُ يَرْفُضُ الْحَجَّ وَعَلَيْهِ لِرَفْضِهِ دَمٌ وَعَلَيْهِ حَجَّةٌ وَعُمْرَةٌ (١)

دعمرې احرام اوتړلو يوچکرئې دطواف اوکړو، بيا دحج احرام ئې اوتړلو نودې به حج ترک کړی اوس په ده دحج دترک په وجه يودم دې. اويو حج او عمره به پرې واجب وی.

**حل اللغة:** ① **احرم، احراماً:** احرام تړل ② **شوط:** چکر ③ **رفض:** پريښول

**تشريح:- صورة المسئلة** ﷺ مسئله دا ده.که مکی د عمرې لپاره احرام اوتړلو.اويوچکرئې هم اولګولو.اوبيا ئې د حج لپاره احرام اوتړلو.يعنی دحج نيت ئې هم اوکړلو.نوحج به پريږدی.اودحج پريخودو په وجه پرې يوه قربانی واجب شوه.اوپه ده باندې د قضا په طور حج اوعمره لازم شوه.خودا خيال ساتئ.چه دا عمره د قضا په حيثيت نه ده.بلکه دهرحج سره عمره وی.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللهُ: رَفْضُ الْعُمْرَةِ أَحَبُّ إِلَيْنَا وَقَضَاؤُهَا وَعَلَيْهِ دَمٌ صاحبين ﷺ فرمائی چې زمونږ په نزد ترک دعمرې اودهغې قضا غوره ده اوپه ده په ترک دعمرې قضا واجب ده. لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ رَفْضِ أَحَدِهِمَا ځکه چې ددوی نه يو پريښودل ضروری دی

**حل اللغة:** ① **احب:** خوښ کړې شوې ② **لابد:** ضروری

**تشريح:- خلاف الصاحبين** ﷺ صاحبين ﷺ فرمائی.چه غوره خبره دا ده.چه عمره پريږدی.اوبيا ددې قضا راوړی.البته دعمرې پريخودو په وجه به په ده يوه قربانی واجب وی.

لِأَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَهُمَا فِي حَقِّ الْمَكِّيِّ غَيْرُ مَشْرُوعٍ ځکه چې دمکی په حق کښې دواړو جمع کول غير مشروع دی. وَالْعُمْرَةُ أَوْلَى بِالرَّفْضِ، لِأَنَّهَا أَدْنَى حَالًا اودترک لپاره عمره زياته ښه ده ځکه چې دا په مرتبه کښې کمه ده، وَأَقَلُّ أَعْمَالًا وَأَيْسَرُ قَضَاءً لِكَوْنِهَا غَيْرَ مُؤَقَّتَةٍ په اعمالوکې اقل اوپه قضاء کښې آسانه ده. ځکه چې د څه وخت سره موقته نه ده

**تشريح:- وجوه دليل الصاحبين** ﷺ دصاحبينو ﷺ دليل دا دې.چه دمکی لپاره دحج اوعمرې جمع کول جائزنه دی.نوچه ده د دواړو نيت اوکړلو.د يوپريښول ورله ضروری شو.خوبيا په دواړو کې د حج په نسبت دعمرې پريښول پکار دی.① ځکه چې عمره په مرتبه کې دحج نه کمه ده.② بله دا چې د عمرې افعال کم دی په نسبت سره دحج افعالوته،ځکه چې په عمره کې صرف طواف اوسعی ده.نوددې په قضا راوړلوکې آسانی ده.③ دريمه دا چې دعمرې لپاره متعين وخت نشته.بلکه د اخترد ورځې اودايام التشريق نه سوې واړه کال ئې وخت دې.اودحج لپاره صرف مخصوص ورځې دی.

## دمکی دعمرې داحرام نه روسته دحج احرام تړل

وَكَذَا إِذَا أَحْرَمَ بِالْعُمْرَةِ ثُمَّ بِالْحَجِّ وَلَمْ يَأْتِ بِشَيْءٍ مِنْ أَفْعَالِ الْعُمْرَةِ لِمَا قُلْنَا دغه ډول که دعمرې احرام ئې اوتړلو بيا ئې دحج احرام اوتړلو اودعمرې په افعالو کې ئې هيڅ اونکړل په دې وجه چې موږ وئيلی دی.

**تشريح:-** صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی دغه ډول که چا د عمرې احرام تړلې وی او بيا ئې د حج احرام اوتړلو اوحال دا دې چې ده د عمرې په افعالو کې تراوسه پورې څه ادا کړی نه دی نو ده په اتفاق سره عمره پريخودله د وړاندينی دليل په وجه چې عمره په مرتبه کې د حج نه کمه ده الخ

فَإِنْ طَافَ لِلْعُمْرَةِ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ ثُمَّ أَحْرَمَ بِالْحَجِّ رَفَضَ الْحَجَّ بِلَا خِلَافٍ که مکی عمرې لپاره څلور چکرې دطواف اوکړې دحج احرام ئې اوتړلو نوحج به ترک کوی بغير دخلاف نه. لِأَنَّ لِلْأَكْثَرِ حُكْمَ الْكُلِّ فَتَعَذَّرَ رَفْضُهَا ځکه چې

---

(١) القول الراجح هو هذا قول أبی حنيفة رحمه الله كذا فی ردالمحتار (٢/٢٤٨) والبحر الرائق (٩٠١٣) والخانية (١/١٤٣) والهندية (١/٢٥٤) نقلاً عن القول الراجح (١/٢٣٦)-



اکثرلره حکم دکل وی. نوترک دعمرې متعذر شو داسې شو لکه چې ترې فارغ شوې وی.

**حل اللغة:** ① **اشواط:** چکرې ② **رفض، رفضاً (ن):** پريښول

**تشريح:-** اوکه د عمرې لپاره ئې څلور ګښتونه لګولې وی او بيا ئې د حج احرام اوړلو نو په اتفاق سره ده حج پريښولو ځکه چې اکثرلره حکم د کل وی نو ده لکه چې واړه طواف اوکړلو اود پوره طواف کاوه په صورت کې دده پريښول ګران دی ځکه چې عمره هم د کعبې د طواف نوم دې نودې داسې شو لکه چې د عمرې نه فارغ شوې وی

وَلَا كَذَلِكَ إِذَا طَافَ لِلْعُمْرَةِ أَقَلَّ مِنْ ذَلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او دغسې کله چې دعمرې لپاره ئې ددې نه کم طواف کړې وو .دامام ابو حنيفه په نزد.

**تسهيل:** اودغه ډول که د عمرې لپاره ئې د څلورو چکرونو نه کم کړې وی نود ابوحنيفه رحمه الله په نيز د عمرې پريښول ګران دی اود صاحبينو ﷺ په نيز ګران نه دی دصاحبينو ﷺ دليل په وړاندينۍ مسئله کې ددې عبارت لاندې ﴿لأنه لا بد من رفض أحدهما﴾ تيرشوې دې

وَلَهُ أَنَّ إِحْرَامَ الْعُمْرَةِ قَدْ تَأَكَّدَ بِأَدَاءِ شَيْءٍ مِنْ أَعْمَالِهَا دده دليل دادې چې دعمرې احرام ددې په څه عملونو کولوسره متاکدشو. وَإِحْرَامُ الْحَجِّ لَمْ يَتَأَكَّدْ اودحج احرام نه دې موکد شوې، وَرَفْضُ غَيْرِ الْمُتَأَكِّدِ أَيْسَرُ اود غيرموکد ترک آسان دې

**تشريح:-** دامام صاحب دليل دا دې چې هرکله چې مکی د عمرې په احرام کې د طواف يو چکر اولګولو يا ئې د څلورو نه کم اولګولو نه د عمرې په افعالو کې د څه نا څه افعالو په کاوه سره عمره مؤکده کړه او د حج احرام لا مؤکد شوې نه دې اود غير مؤکد پريخود آسان وی ځکه دې حج پريږدی

وَلِأَنَّ فِي رَفْضِ الْعُمْرَةِ، وَالْحَالَةُ هَذِهِ إِبْطَالَ الْعَمَلِ او ځکه چې په عمره پريښودو کې هر کله چې حالت داسې وی عمل لره باطل کول دی. وَفِي رَفْضِ الْحَجِّ امْتِنَاعٌ عَنْهُ وَعَلَيْهِ دَمٌ بِالرَّفْضِ اودحج په پريښودو کې دعمل نه منع کيدل دی اوپه ده دم واجب دې دترک په امله سره أَيُّهُمَا رَفَضَهُ لِأَنَّهُ تَحَلَّلَ قَبْلَ أَوَانِهِ، لِتَعَذُّرِ الْمُضِيِّ فِيهِ هريو چې پدوی کې ترک کړی.مخکې دوخت نه د حلاليدلو په امله سره ځکه چې پوره کول ئې متعذر دی.

**تشريح:-** دوهم دليل دا دې چې هرکله ئې په عمره پيل اوکړه نو په دې حالت کې که عمره پريږدی نو د عمل ابطال لازميږی اود حج په ايساريدو سره د حج نه منع کيدل لازميږی اود يو کار نه منع کيدل ددې په نسبت آسان دی يو کار باطل کړې شی نوددې امله هم د حج پريښول آسان دی

بهرحال چې کوم يو ئې هم پريښول نو په دې مکی باندې دم لازميږی ځکه چې دې د ارکانو د ادا کاوه نه وړاندې حلال شو اود ارکانو د ادا کاوه نه وړاندې ځکه حلال شو چې ددې پوره کول ګران دی اوپوره کول ئې ځکه ګران دی چې د مکی لپاره حج او عمره جمع کول ناجائز دی

فَكَانَ فِي مَعْنَى الْمُحْصَرِ إِلَّا أَنَّ فِي رَفْضِ الْعُمْرَةِ قَضَاءَهَا نو دے د محصر په معنی شو مګر دومره خبره ده چې ترک دعمرې کې قضا دعمرې ده. لَا غَيْرُ وَفِي رَفْضِ الْحَجِّ قَضَاؤُهُ وَعُمْرَةٌ لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى فَائِتِ الْحَجِّ اوپه ترک دحج کې دحج قضا ديو عمرې ده.ځکه چې دې په معنی د حج فوت کونکی کې دې.

**تشريح:-** دې د محصر پشان شو او په محصرباندې يوه قربانی واجب وی نو په ده به هم يوه قربانی واجب وی البته دومره خبره ضرور ده که عمره ئې پريخودله لکه څنګه چې د صاحبينو ﷺ مذهب دې نوصرف د عمرې قضا به پرې واجب وی او که حج ئې پريښولو نو لکه څنګه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دې نو په ده به د حج قضا لازم وی او د حج سره به پرې د عمرې قضا هم واجب وی ځکه چې دا کس د حج فوت کونکی په حکم کې دې

## دمکي حج اوعمره دواړه یوځائې کولوحکم

وَاِنْ مَضٰى عَلَيْهِمَا اَجْزَأَهُ اوکه دواړه ئې پوره کړل نوکافي دی ورله

حل اللغة: ① مضى،مضياً،(ض): تيريدل

تشريح:- صحة الحج والعمرة معاً للمكى: که مکی حج اوعمره دواړه ترک نکړل.بلکه د دواړو افعال ئې ادا کړل.نودواړه ادا شول.

لِاَنَّهُ اَدّٰى اَفْعَالَهُمَا كَمَا الْتَزَمَهُمَا. ځکه چې ادائې کړل دواړه افعال لکه چې څنګه لازم کړې وو. غَيْرَ اَنَّهُ مَنْهِيٌّ عَنْهُمَا وَالنَّهْيُ لَا يَمْنَعُ تَحَقُّقَ الْفِعْلِ صرف دومره خبره ده.چه ده لره ددواړو جمع کول ممنوع دی اونهی د تحقق دفعل نه مانع نه وی. عَلٰى مَا عُرِفَ مِنْ اُصُولِنَا لکه زموږ په اصولو کې چې معلومه ده.

تشريح:- دليله: ځکه چې ده د دواړو افعال څنګه په ځان باندې لازم کړی وو.هغه شان ئې پوره کړل.البته دومره ده چه شریعت دې د حج اوعمرې یوځائې کولونه منع کړې وو.خونهی د تحقق فعل لپاره مانع نه وی.لکه څنګه چې د اصول فقه په کتابونوکي ذکردی.

وَعَلَيْهِ دَمٌ لِجَمْعِهِ بَيْنَهُمَا لِاَنَّهُ تَمَكَّنَ النُّقْصَانُ فِي عَمَلِهِ او په ده یودم دې ددواړو دجمع کاوه په وجه دې.ځکه چې د منهی عنه په ارتکاب سره دده په عمل کې نقصان راغلو. لِارْتِكَابِهِ الْمَنْهِيَّ عَنْهُ او دا دمکی په حق کې دم د جبر دی

تشريح:- وجوب الدم عليه: البته دومره ده.چه په دې مکی باندې دحج اوعمرې دواړه یوځائې کولود املهٔ قربانی واجب ده.ځکه چې دده په عمل کې نقصان پیدا شو.اونقصان ځکه پیدا شو.چه ده د یوداسې فعل ارتکاب وکړلو.دکوم نه چې دې منع شوې وو.

وَهٰذَا فِي حَقِّ الْمَكِّيِّ دَمُ جَبْرٍ وَفِي حَقِّ الْاٰفَاقِيِّ دَمُ شُكْرٍ اود آفاقی په حق کې دم د شکر دې.

تشريح:- نوعية دم المكى والآفاقى: دا قربانی د مکی په حق کې دم جبریعنی د نقصان پوره کونکې دې. نو ددې څخه به خپله خوراك نه کوی.بلکه د حرم په مسکینانوباندې به ئې صدقه کوی.اود آفاقی په حق کې دا قربانی د شکریه ده.نودهغه لپاره ددې نه خوراك کول جائزدې.دا عجیبه خبره ده.که حج اوعمره مکی جمع کړی نوګناه ده.اوکه آفاقی ئې جمع کړی.نونعمت دې.قربانی په دواړو واجب ده.خوپه مکی باندې د نقصان پوره کاوه لپاره اوپه آفاقی باندې د شکریه ادا کولولپاره.دالله قدرت دې.چه یوځیزد یو لپاره ګناه اود بل لپاره نعمت دې.

### د دوو حجونو لپاره احرام تړل

وَمَنْ اَحْرَمَ بِالْحَجِّ ثُمَّ اَحْرَمَ يَوْمَ النَّحْرِ بِحَجَّةٍ اُخْرٰى چا چې دحج احرام اوتړلوبیا په یوم نحر کې ئې دبل حج احرام اوتړلو. فَاِنْ حَلَقَ فِي الْاُوْلٰى لَزِمَتْهُ الْاُخْرٰى وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نوکه ده په اول حج کې حلق کړې وو.نو دوهم حج پرې لازم شو اوپه ده به څه واجب نه وی.

حل اللغة: ① احرم، احراماً: احرام تړل ② يوم النحر: د قربانئ ورځ

تشريح:- صحة الشروع في الاحرام الثاني: مسئله دا ده.که یوکس دحج لپاره احرام اوتړلو.اوبیا ئې اخترېه ورځ د راروان کال لپاره د دوهم حج احرام اوتړل.نود دې مسئلې دوې [دوه] صورتونه دی. ده به د اولنی حج احرام نه وتلو لپاره حلق یا کړې وی اویا به ئې حلق نه وی کړې.نوکه د اول حج نه د وتلو لپاره ئې حلق کړې وی.نوپه ده باندې د راروان کال حج لازم شو.اودې به د راروان کاله پورې په احرام کې اوسیږی.

عدم وجوب الدم: اوپه ده باندې دم واجب نه دې.ځکه چې ده دوې [دوه] احرامونه جمع کړې نه دی.بلکه د اولنی حج داحرام نه د حلق په ذریعه وتلې دې.اود دوهم لپاره ئې احرام تړلې دې.حالانکه دوې [دوه]



احرامونه جمع کول بدعت دي.اوده د بدعت ارتکاب نه دی کړی.نوپه ده دم جنایت واجب نه دی.

وَاِنْ لَمْ يَحْلِقْ فِي الْاُوْلٰى لَزِمَتْهُ الْاُخْرٰى وَعَلَيْهِ دَمٌ اوکه حلق ئې په اول حج کې نه وو کړې بیا به هم بل حج لازم شی او په ده به قربانی وی. قَصَّرَ اَوْ لَمْ يُقَصِّرْ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ که قصرئې کړې اوکه نه.دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد.

تشريح:- اوکه د دوهم احرام تړلونه وړاندې ئې حلق اونکړلو.نوپه ده باندې دوهم حج لازم شو.اودم پرې هم واجب شو.که د دوهم احرام نه روسته حلق اوکړی اوکه اونکړی.دا دامام ابوحنیفه رحمه الله مسلك دی.

وَقَالَا: اِنْ لَمْ يُقَصِّرْ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ لِاَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَ اِحْرَامَيِ الْحَجِّ اَوْ اِحْرَامَيِ الْعُمْرَةِ بِدْعَةٌ اوصاحبین رحمهما الله فرمائی.که قصرئې نه وی کړې پرې نوڅه پرې نشته.ځکه چې دحج دوې [دوه] احرامونه او د عمرې دوې [دوه] احرامونه جمع کول بدعت دی. فَاِذَا حَلَقَ فَهُوَ وَاِنْ كَانَ نُسُكًا فِي الْاِحْرَامِ الْاَوَّلِ فَهُوَ جِنَايَةٌ عَلَى الثَّانِيْ اوکله چې ده حلق اوکړو.نوحلق اګر چې د اول احرام نسك دې بیا هم په دوهم احرام جنایت دې. وَلِاَنَّهُ فِيْ غَيْرِ اَوَانِهِ فَلَزِمَهُ الدَّمُ بِالْاِجْمَاعِ ځکه چې دغه دده د وخت نه مخکې دی.په دې وجه به دم لازم وی په اجماع سره

تشريح:- صورة وجوب الدم عندابى حنيفة والصاحبين: اود صاحبینو رحمهما الله مسلك دا دې که د دوهم احرام تړلو نه روسته ئې حلق اونکړلو.نوپه ده باندې دم نه دې واجب دې.ځکه چې دحج یا د عمرې دوې [دوه] احرامونه جمع کول په اتفاق سره بدعت دی.اوس که ده د دوهم احرام تړلونه روسته حلق اوکړلو.نواګرچه دا حلق داولنی احرام نه د وتلو لپاره یوعمل دې.لیکن په دوهم احرام کې ددې کول جنایت دې.ځکه چې د دوهم احرام افعال لاده پوره کړې نه دی.یعنی بې وخته اوشو.اوبنکاره خبره ده.چه د وخت نه وړاندې د حلق کول موجب د دم دی.نوپه دې صورت کې د صاحبینواوامام ابوحنیفه رحمه الله درې واړو په نیزدم واجب دې.

وَاِنْ لَمْ يَحْلِقْ حَتّٰى حَجَّ فِي الْعَامِ الْقَابِلِ فَقَدْ اَخَّرَ الْحَلْقَ عَنْ وَقْتِهِ فِي الْاِحْرَامِ الْاَوَّلِ اوکه ده حلق نه ووکړې تردې چې په راتلونکی کال ئې حج اوکړو، نوموخر ئې کړو حلق د خپل وخت نه په اول احرام باندې. وَذٰلِكَ يُوْجِبُ الدَّمَ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ (١) اودا موجب ددم دې.په نزد د امام صاحب

تشريح:- صورة وجوب عنده لاعندهما: اوکه د دوهم احرام نه روسته ئې حلق اونکړلو.تردې چې راروان کال ئې حج اوکړلو.نوچونکه داول احرام حلق ده ډیرروستوکړلو.دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزپرې دم واجب شو. ځکه چې د دوی په نیزد حج په افعالو کې دخپل وخت نه د یوفعل په روستوکولودم واجبیږی.

وَعِنْدَهُمَا لَا يَلْزَمُهُ شَيْءٌ عَلٰى مَا ذَكَرْنَا اودصاحبینو په نزدبه څه لازم نه وی لکه چې موږ مخکې ذکر کړی دی. فَلِهٰذَا سَوّٰى بَيْنَ التَّقْصِيْرِ وَعَدَمِهِ عِنْدَهُ وَشَرَطَ التَّقْصِيْرَ عِنْدَهُمَا نوپه دې وجه دامام صاحب په نزتقصیر اوعدم تقصیر یوشان دی.اود صاحبینو تقصیر شرط کړې دی.

تشريح:- اودصاحبینو رحمهما الله په نیزپرې دم نه واجبیږی.ځکه چې د دوی په نیزد یوفعل په تاخیرباندې دم نه واجبیږی.هم ددې اصولوپه وجه ونیلی شوی دی.چه په ذکر شوې مسئله کې که د دوهم احرام نه روسته حلق اوکړی اوکه اونکړی.نوپه ده دم واجبیږی.اودصاحبینو رحمهما الله په نیزکه حلق اوکړی دم پرې لازمیږی.اوکه اونه کړی (اونکړی)نودم پرې نه لازمیږی.

---

(١) القول الراجح هو هذا قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى ردالمحتار(٢٥٠١٢) والبحر الرائق (٩١١٣) والهندية (٢٥٤١١) نقلاً عن القول الراجح (٢٣٧١١)-

## ديوعمرې د حلق کولونه روسته د دويمې عمرې احرام تړل

وَمَنْ فَرَغَ مِنْ عُمْرَتِهِ إِلَّا التَّقْصِيرَ فَأَحْرَمَ بِأُخْرَى فَعَلَيْهِ دَمٌ کوم سړي چي فارغ شو دخپلې عمرې نه سوې د قصرنه، بيا ده دبلې عمرې احرام اوتړلو نودم پرې واجب دې. لِإِحْرَامِهِ قَبْلَ الْوَقْتِ لِأَنَّهُ جَمَعَ بَيْنَ إِحْرَامَيِ الْعُمْرَةِ وَهَذَا مَكْرُوهٌ دوخت نه مخکې داحرام تړلو په امله سره. ځکه چي ده دعمرې دوې [دوه] احرامونه جمع کړل اودا مکروه دی. فَيَلْزَمُهُ الدَّمُ وَهُوَ دَمُ جَبْرٍ وَكَفَّارَةٍ نولازم شو پرې دم او دا قرباني د جبر اوکفارې ده.

حل اللغة: ① فرغ، فراغة (ف): اوزګاريدل ]

تشريح:- مسئله ښکاره ده.

## د آفاقي دحج د احرام نه روسته د عمرې احرام تړل

أَهَلَّ بِالْحَجِّ ثُمَّ أَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ لَزِمَاهُ اوچا چي دحج احرام اوتړلو بيائې دعمرې اوتړلو. نودواړه به لازم وی. لِأَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَهُمَا مَشْرُوعٌ فِي حَقِّ الْآفَاقِيِّ ځکه چي جمع کول ددې دواړو مشروع دی په حق د آفاقي کې وَالْمَسْأَلَةُ فِيهِ او مسئله د آفاقي په حق کې ده نو هغه په دې سې کولوقارن شو. وَمَنْ لِأَنْ فَيَصِيرُ بِذَلِكَ قَارِنًا

حل اللغة: ① جمع، جمعاً: جمع کول

تشريح:- صحة پيل الافاقي في العمرة بعد احرام الحج ۞ مسئله دا ده. که آفاقي تلبيه اووئيله. يعنې دحج لپاره ئې احرام اوتړلو. اود حج افعال ادا کولونه وړاندې ئې دعمرې لپاره هم احرام اوتړلو. نوپه ده باندې دواړه لازم شول. ځکه چې دا مسئله د آفاقي په حق کې ده. اوددې لپاره دحج اوعمرې جمع کول مشروع دی. اودې به ددې په وجه قارن شي.

لَكِنَّهُ أَخْطَأَ السُّنَّةَ فَيَصِيرُ مُسِيئًا مګر خطاء ئې اوکړه دسنتو نه. نوبد کوونکې شو.

حل اللغة: ① مسيئا: ګناهګار

تشريح:- العصيان بوجه ترک السنة ۞ البته د سنت خلاف عمل ئې اوکړلو. نوګناهګاربه وی. ځکه چې سنت دا دی چه دحج افعال د عمرې په افعالو ورداخل کړی. دا نه دی چې د عمرې افعال دحج په افعالو ورداخل کړی. الله تعالى فرمائيلي دی [فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ] په دې آيت کې حج آخرد غايتينو دې. يعنې دعمرې افعال به اول ادا کولی شي. اودحج به وروسې ادا کولی شي. اودا سنت دی.

وَلَوْ وَقَفَ بِعَرَفَاتٍ وَلَمْ يَأْتِ بِأَفْعَالِ الْعُمْرَةِ فَهُوَ رَافِضٌ لِعُمْرَتِهِ بياکه ده وقوف دعرفات اوکړو اود عمرې افعال ئې په خائې نکړل نودې رافض دعمرې شو. لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ عَلَيْهِ أَدَاؤُهَا إِذْ هِيَ مَبْنِيَّةٌ عَلَى الْحَجِّ غَيْرُ مَشْرُوعَةٍ ځکه چې اوس ادا کاوه دعمرې متعذر شو. ځکه چې عمره دحج په افعالو مبني کول غير مشروع ده.

تشريح:- فسادالعمرة بترک افعال العمرة الى الوقوف ۞ اوس که دې آفاقي د عمرې داحرام تړلونه روسته د وقوف عرفات پورې هڅو د عمرې افعال ادا نکړل. نودا کس د عمرې پريخودونکې شو. ځکه چې د وقوف عرفات نه روسته ده لره عمرې افعال ادا کول متعذر شول. ځکه چې د وقوف عرفات نه روسته د عمرې افعال ادا کول داسې دی. لکه چې دې عمره په حج باندې بناء کوی. اوعمره په حج باندې بناء کول غيرمشروع دی.

فَإِنْ تَوَجَّهَ إِلَيْهَا لَمْ يَكُنْ رَافِضًا حَتَّى يَقِفَ وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ اوکه دې عرفات ته لاړو. نورافض دعمرې به نه وی. ترهغې چې وقوف اوکړی اومونږ دا مخکې بيان کړی دی

تشريح:- عدم الفساد بمحض التوجه الى العرفات ۞ اوکه دا آفاقي صرف عرفات ته روان شي. نوصرف په روانيدو د عمرې پريخودونکې نه دې. ترڅوچه ئې وقوف نه وی کړې. ددې تفصيل په باب قران کې تيرشوې دې.



## د حج د طواف نه روسته دعمرې احرام تړل

فَإِنْ طَافَ لِلْحَجِّ ثُمَّ أَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ فَمَضَى عَلَيْهِمَا لَزِمَاهُ بياکه ده دحج لپاره طواف اوکړو اودعمرې احرام ئې اوتړلو. اوپه دواړوباندې تيرشو نولازم شو. وَعَلَيْهِ دَمٌ لِجَمْعِهِ بَيْنَهُمَا اوپه ده دم دې د دواړو په جمع کولو. لِأَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَهُمَا مَشْرُوعٌ عَلَى مَا مَرَّ فَيَصِحُّ الْإِحْرَامُ بِهِمَا ځکه چې په دواړو کې جمع مشروع وو. لکه چې تيرشو. نوصحيح شو احرام د دواړو،

حل اللغة: ① طاف، طوافا (ن): طواف کول

تشريح:- مسئله، که يوآفاقي د طواف قدوم نه روسته د عمرې لپاره احرام اوتړلو. نو دواړه پرې لازم شول. اوچه دواړه ادا کړی. نوهم پرې د دواړو جمع کاوه د امله قرباني واجب شوه. اودواړه صحيح ځکه شو. چه د آفاقي لپاره دحج اوعمرې جمع کول مشروع دی.

وَالْمُرَادُ بِهَذَا الطَّوَافِ طَوَافُ التَّحِيَّةِ، وَأَنَّهُ سُنَّةٌ وَلَيْسَ بِرُكْنٍ اومراد په دې طواف سره طواف قدوم دې. کوم چې سنت دې. رکن نه دې. حَتَّى لَا يَلْزَمَهُ بِتَرْكِهِ شَيْءٌ تردې چې د دې په ترک سره څه نه لازميږی،

تشريح:- اوپه متن کې د طواف نه مراد طواف قدوم دې. اوطواف قدوم سنت دې رکن نه دې. نود طواف قدوم په پريخودو پرې څه نه واجبيږی.

وَإِذَا لَمْ يَأْتِ بِمَا هُوَ رُكْنٌ يُمْكِنُهُ أَنْ يَأْتِيَ بِأَفْعَالِ الْعُمْرَةِ ثُمَّ بِأَفْعَالِ الْحَجِّ وبازافعال حج راادا کند، اوکله چې ده داسې فعل نه وی کړې نوممکنه ده، ده لره چې دعمرې افعال ادا کړی بيا دحج افعال ادا کړی. فَلِهَذَا لَوْ مَضَى عَلَيْهِمَا جَازَ په دې وجه که دواړه ئې اوکړل نوجائز دی

تشريح:- بهرحال چې تراوسه پورې ده د حج يورکن هم نه دې ادا کړې. نودده لپاره ممکن دی. چه اول دعمرې افعال ادا کړی. اووروسې د حج افعال ادا کړی. نوکه ده دواړه جمع کړل. صحيح دی

وَعَلَيْهِ دَمٌ لِجَمْعِهِ بَيْنَهُمَا اوپده دم واجب شو. په وجه د جمع کاوه د دواړو وَهُوَ دَمُ كَفَّارَةٍ وَجَبْرٍ هُوَ الصَّحِيحُ کوم چې دم دکفارې اود جبر دې. دا صحيح ده. لِأَنَّهُ بَانٍ أَفْعَالَ الْعُمْرَةِ عَلَى أَفْعَالِ الْحَجِّ مِنْ وَجْهٍ ځکه چې دې په يوشان سره د عمرې افعالولره په افعالود حج بنا کوونکې دې.

تشريح:- البته د دواړو د جمع کاوه په وجه پرې دم واجب شو. اودا دم د کفارې اونقصان د پوره کاوه لپاره دې. دم شکرنه دې. ځکه چې دا کس په يوحيثيت سره د عمرې د افعالو د حج په افعالوباندې داخلونکې دې. ځکه چې طواف قدوم اګرچه سنت دې. خودأفعالود حج څنې خو دې. نوپه دې وجه د طواف قدوم نه روسته د عمرې افعال ادا کول مکروه دی. نوددې کراهت دتلاقي لپاره به دم واجب وی.

## د عمرې د ماتولو استحباب

وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَرْفُضَ عُمْرَتَهُ لِأَنَّ إِحْرَامَ الْحَجِّ قَدْ تَأَكَّدَ بِشَيْءٍ مِنْ أَعْمَالِهِ او مستحب دی چه عمره ترک کړی ځکه چې دحج احرام موکدشوې دې په بعضوکارونو کاوه دحج سره. بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَطُفْ لِلْحَجِّ په خلاف دهغې نه چې دحج لپاره ئې طواف نه وی کړې. وَإِذَا رَفَضَ عُمْرَتَهُ يَقْضِيهَا لِصِحَّةِ الشُّرُوعِ او چې کله ده عمره ترک کړه نو قضا به ئې راوړی په دې کې دشروع صحيح کيدو په وجه. فِيهَا وَعَلَيْهِ دَمٌ لِرَفْضِهَا اوپده دم دې. په ترک د عمرې سره.

حل اللغة: ① ان يرفض، رفض رفضاً (ن): پريښول

تشريح:- مسئله آسانه ده

## په ايام النحريا تشريق کې د عمرې احرام تړلوحکم

وَمَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ فِي يَوْمِ النَّحْرِ أَوْ فِي أَيَّامِ التَّشْرِيقِ لَزِمَتْهُ اوچا چې دعمرې احرام اوتړلو په يوم نحر کې يا په ايام

تشريق کې نو په ده به دغه لازمه وي لکه چې مونږ وئيلي دي. وَيَرْفُضُهَا أَيْ يَلْزَمُهُ الرَّفْضُ اوداً عمره دې ماته کړي. يعني ماتول ئې واجب دي

حل اللغة: ① لزمته، لزم لزوماً (س): لازم کيدل

تشريح:- چاچه په يوم النحر يا په ايام التشريق کې دحلق نه وړاندې يا د طواف زيارت نه وړاندې د عمرې لپاره احرام اوتړلو. نو په ده باندې عمره لازم شوه.

لِأَنَّهُ قَدْ أَدَّى رُكْنَ الْحَجِّ فَيَصِيرُ بَانِيًا أَفْعَالَ الْعُمْرَةِ عَلَى أَفْعَالِ الْحَجِّ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځکه چې ده دحج رکن ادا کړو نو په هره امله سره دعمرې افعالوله بنا کوونکې شو په افعالو دحج باندې. وَقَدْ كُرِهَتِ الْعُمْرَةُ فِي هٰذِهِ الْأَيَّامِ أَيْضًا عَلَى مَا نَذْكُرُ او په دې ورځوکې عمره مکروه هم ده. لکه چې مونږ به ذکر کړو. فَلِهٰذَا يَلْزَمُهُ رَفْضُهَا نو په دې وجه ترک د عمرې لازم دې

حل اللغة: ① ادى، تادية: اداکول ② ايضاً: دغه ډول

تشريح:- ځکه چې دعمرې پيل کول صحيح دی. البته په ده باندې دعمرې پريښول لازم دی. ځکه چې دې کس دحج رکن يعني وقوف عرفه ادا کړې دې. نو که دې د وقوف عرفات نه روسته دعمرې افعال ادا کړي. نو دې به د عمرې د افعالود حج په افعالوباندې بنا کونکې شي. اوداً خلاف سنت ده. بله دا چې په دې ورځوکې عمره ادا کول مکروه دی. لکه چې به ئې ذکر کړو. نو ځکه ددې عمرې پريښول واجب دی.

## دعمرې پريښول اود قربانۍ وجوب

فَإِنْ رَفَضَهَا فَعَلَيْهِ دَمٌ لِرَفْضِهَا وَعُمْرَةٌ مَكَانَهَا لِمَا بَيَّنَّا بيا چې ترک ئې کړه نو پده به دم وی، په وجه د ماتولو دعمرې او بله عمره په ځائې ددې. لکه چې مونږ به ئې بيان کړو. فَإِنْ مَضَى عَلَيْهَا أَجْزَأَهُ لِأَنَّ الْكَرَاهَةَ لِمَعْنًى فِي غَيْرِهَا اوکه ده عمره پوره کړه. نو کافی شوه ځکه چې کراهت د داسې معنی په امله سره دې کوم چې د عمرې نه غير کې دې. وَهُوَ كَوْنُهُ مَشْغُولًا فِي هٰذِهِ الْأَيَّامِ بِأَدَاءِ بَقِيَّةِ أَعْمَالِ الْحَجِّ اوهغه دده په دې ورځو کې په پاته عملونو دحج سره مشغوليدل دی فَيَجِبُ تَخْلِيصُ الْوَقْتِ لَهُ تَعْظِيمًا نو په غرض دتعظيم دوخت دهغه لپاره ئيگ خالص کول ضروری دی

حل اللغة: ① بينا، تبييناً: بيانول ② تخليص: فارغ کول

تشريح:- صحة انعاد العمرة بعد الوقوف ۞ مسئله کوم کس چې په يوم النحر يا په ايام التشريق کې د عمرې لپاره احرام اوتړلو. اوعمره ئې پريخوده. نو په ده باندې د عمرې د پريخودو په وجه قربانی لازم شوه. اود پريښولې (پريخودې) عمرې په ځائې به بله عمره کوی. وجه دا ده. چه دعمرې اوحج جمع کول د آفاقی په حق کې مشروع دی. اوکه ده عمره اوکړله. نو عمره ئې اوشوه. ځکه چې دعمرې په ذات کې څه کراهت نشته. بلکه کراهت د داسې معنی په وجه دې. کومه چې په غير کې ده. اوهغه غير په دې ورځوکې د حج د پاته افعالوسره بوخت کيدل دی. يعنی په دې ورځوکې د حج د افعالوادا کولود تعظيم لپاره دا ورځې د نوروافعالونه خالی کول واجب دی. نو په دې ورځوکې د عمرې په افعالوکې مشغوله کيدل مکروه تحريمی شو.

وَعَلَيْهِ دَمٌ لِجَمْعِهِ بَيْنَهُمَا إِمَّا فِي الْإِحْرَامِ أَوْ فِي الْأَعْمَالِ الْبَاقِيَةِ او په ده دم واجب دې. د دواړو دجمع کاوه په وجه. چه جمع په احرام کې او په باقی عملونو دحج کښې ده. قَالُوا: وَهٰذَا دَمُ كَفَّارَةٍ أَيْضًا مشائخو وئيلی دی چې داهم دکفارې دم دې.

تشريح:- وجوب الدم باحرام العمرة ۞ البته د حج اوعمرې دواړو افعالوجمع کولو په وجه په ده باندې يوه قربانی واجب شوه. جمع به يا په احرام کې وی. اويا په پاته افعالوکې، په احرام کې جمع کول خو په هغه وخت کښې وی. چه دعمرې احرام ئې د حلق نه وړاندې تړلې وی. دکوم حلق په ذريعه چې دې دحج نه حلاليدو اوکه



د حلق نه روسته ئې د عمرې احرام تړلې وی. نو په دې صورت کښې د حج په پاته افعالوکې د عمرې د احرام جمع کونکې شو.

وَقِيلَ إِذَا حَلَقَ لِلْحَجِّ ثُمَّ أَحْرَمَ لَا يَرْفُضُهَا او وئيلې شوی دی چې کله ئې دحج لپاره حلق اوکړو بيا ئې دعمرې احرام اوتړلو نو عمره به نه ترک کوی. عَلَى ظَاهِرِ مَا ذُكِرَ فِي الْأَصْلِ بنا په ظاهر عبارت داصل. وَقِيلَ يَرْفُضُهَا احْتِرَازًا عَنِ النَّهْيِ او وئيلې شوی دی چې عمره به ترک کړي دنهی نه دبچ کيدو لپاره قَالَ الْفَقِيهُ أَبُو جَعْفَرٍ: وَمَشَايِخُنَا رَحِمَهُمُ اللّٰهُ تَعَالَى عَلَى هٰذَا فقيه ابوجعفر رحمه الله فرمائی چې زموږ مشائخ رحمهم الله په دې دی.

تشريح:- القولان في اداء العمرة في صورة الاحرام بعد الحلق ۞ ① مشائخو رحمهم الله فرمائيلی دی. چه دا دم هم دم کفاره دې. دم شکرنه دې. بعضې عالمانو فرمائيلی دی. چه د حج نه د حلالې لپاره حلق اوکړي. اوبيا دعمرې احرام اوتړی. نو عمره دې نه پريږدی. لکه چې د مبسوط د ظاهری عبارت نه هم دا معلوميږی. ② اوبعضې عالمانو رحمهم الله فرمائيلی دی. چه په دې صورت کې دې هم عمره پريږدی. چه په دې ورځوکې دعمرې کولونه کومه نهی راغلې ده. دهغې نه بچ شی. فقيه ابوالليث رحمه الله فرمائی. چه زموږ مشائخ رحمهم الله هم په دې قول دی.

## دحج د فوت کيدو نه روسته دحج ياعمرې احرام تړل

فَإِنْ فَاتَهُ الْحَجُّ ثُمَّ أَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ أَوْ بِحَجَّةٍ فَإِنَّهُ يَرْفُضُهَا اوکه د ده حج فوت شوې وو. بيا ده دعمرې يا دحج احرام اوتړلو نو دوهم به مات کړی. لِأَنَّ فَائِتَ الْحَجِّ يَتَحَلَّلُ بِأَفْعَالِ الْعُمْرَةِ مِنْ غَيْرِ ځکه چې فوت کوونکې دحج دعمرې په افعالو ادا کاوه سره حلاليږی. أَنْ يَنْقَلِبَ إِحْرَامُهُ إِحْرَامَ الْعُمْرَةِ عَلَى مَا يَأْتِيكَ فِي بَابِ الْفَوَاتِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى بغير ددې نه چې دده احرام بدل شی اود عمرې احرام شی لکه چې په باب الفوات کې به راشی انشاء الله. فَيَصِيرُ جَامِعًا بَيْنَ الْعُمْرَتَيْنِ مِنْ حَيْثُ الْأَفْعَالِ نو دې به دافعالو په روسره ددو عمرو جمع کوونکې وی فَعَلَيْهِ أَنْ يَرْفُضَهَا كَمَا لَوْ أَحْرَمَ بِعُمْرَتَيْنِ ځکه چې په ده لازم دی چې عمره ترک کړی لکه هغه وخت چې کله د دوو عمرو احرام اوتړی

حل اللغة: ① فاته، فات فوتاً (ن): فوت کيدل ② يتحلل، تحللاً: حلالول

تشريح:- ترک احرام الثانی عند انعقادهما جمعاً ۞ که دحج داحرام وخت تری فوت شو. اوبيا ئې د حج يا عمرې لپاره احرام اوتړلو. نودا کس دې دوهم څيز پريږدی. که حج اوکه عمره وی. ځکه چې دحج فوت کونکې چې دعمرې افعال ادا کړی. نو حلاليږی. ددې نه بغيرچه دده احرام بدل شی. اودعمرې احرام شی. نود افعالو په اعتبار سره دا کس د دوو عمرو جمع کونکې شو. اوداً جائزنه دی. نو عمره دې پريږدی. لکه کله چې دې د دوو عمرو لپاره احرام اوتړی. نو يو په کې پريږدی.

## دحج په احرام تړلو د دوو حجونو جمع کول

وَإِنْ أَحْرَمَ بِحَجَّةٍ يَصِيرُ جَامِعًا بَيْنَ الْحَجَّتَيْنِ إِحْرَامًا اوکه ده دوهم احرام دحج تړلې وو نو دې به احرام کې ددو حجونو جمع کوونکې وی فَعَلَيْهِ أَنْ يَرْفُضَهَا كَمَا لَوْ أَحْرَمَ بِحَجَّتَيْنِ نو لازم دی چې بل حج ترک کړی لکه هغه وخت چې کله د دوو حجونو احرام اوتړی وَعَلَيْهِ قَضَاؤُهَا لِصِحَّةِ الشُّرُوعِ فِيهَا او په ده ئې قضا ده د شروع د صحت په وجه وَدَمٌ لِرَفْضِهَا بِالتَّحَلُّلِ قَبْلَ أَوَانِهِ، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ او قربانی واجب ده د وخت نه په مخکې حلاليدلو باندې.

حل اللغة: ① احرم، احراماً: احرام تړل

تشريح:- که دحج د فوت کيدو نه روسته ئې د دوهم حج احرام اوتړلو. نو په دې صورت کې د دوو حجونه جمع کونکې شو. اوداً ناجائزده. نو په ده باندې د دوهم حج پريښول واجب دی. لکه په کوم صورت کې چې د دوو حجونواحرام اوتړی. نو د يو پريښول پرې واجب وی. خو په ده باندې ددې قضا واجب دی. ځکه چې دده پيل صحيح وه. اويو دم پرې واجب دې. ځکه چې دې دوخت نه وړاندې حلال شو. اوهغه ئې پريښولو.

# باب الإحصار

دا باب داحصارپه بیان کي دي.

**تشریح:-** داحصارمعنی ده بندول اود شریعت په اصطلاح کي احصار دا دي.چه محرم د ویرې یا دښمن یا بیمارئ په وجه د عمرې یا د حج د افعالو پوره کولونه ایسارشي.چونکه احصارپه احرام کي جنایت دي.ځکه ئې دا د باب الجنایات نه په جلا باب کي ذکرکړلو.

**دعذرد وجې د ایساریدوحکم**

وَإِذَا أُحْصِرَ الْمُحْرِمُ بِعَدُوٍّ أَوْ أَصَابَهُ مَرَضٌ فَمَنَعَهُ مِنَ الْمُضِيِّ کله چې منع کړې شو محرم په وجه د دښمن یا اخته شودې په بیمارئ کي نو منع کړې شو د تیریدونه جَازَ لَهُ التَّحَلُّلُ نوده لپاره جائز نه د ی حلالیدل.

**حل اللغة:** ① احصر،احصاراً: بندول ② عدو: دښمن ③ مضی: تیریدل

**تشریح:- المذهبان في سبب الاحصار:** ① که محرم د دشمن د ویرې یا د بیمارئ د امله د حج یا عمرې دافعالو پوره کولونه ایسارکړې شي.نودده لپاره د حج یاعمرې د افعالوپوره کولونه بغیرحلالیدل جائز دی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا يَكُونُ الْإِحْصَارُ إِلَّا بِالْعَدُوِّ امام شافعی رحمه الله فرمائی چې احصار نه کیږی مګرپه دښمن سره. أَنَّ التَّحَلُّلَ بِالْهَدْيِ شُرِعَ فِي حَقِّ الْمُحْصَرِ لِتَحْصِيلِ النَّجَاةِ ځکه چې حلالیدل دهدی په ذریعه مشروع شوی دی د محصر په حق کي د نجات حاصلولو لپاره وَبِالْإِحْلَالِ يَنْجُو مِنَ الْعَدُوِّ لَا مِنَ الْمَرَضِ اوبه حلالیدوسره نجات د دښمن نه حاصلیږی نه چې مرض نه.

**حل اللغة:** ① ينجو، نجاة (ن): خلاصې بیاموندل

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه احصار صرف د دشمن د امله معتبردې.د بیمارئ د امله احصار معتبرنه دې.دا د امام مالك رحمه الله قول هم دې.

**دلائله:** ① دامام شافعی رحمه الله دلیل د الله تعالی ارشاد [فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ] دې.دا آیت د صحابه کرامو رضی الله عنهم په اړه کي د صلح حدیبیه د عمرې په موقع باندې نازل شوې وو.چه دوی د عمرې لپاره احرام تړلي وو.خود دشمن د امله د عمرې پوره کولونه عاجز شو.نوالله تعالی دا آیت نازل کړلو.چه حاصل ئې دا دې.که تاسو بند شوئ.(دعمرې پوره کولونه)نو تاسوته چې کومه قربانی آسانه وی.نوهغه قربانی کړی.اوځان حلال کړی.نبی ﷺ اوصحابه کرامو رضی الله عنهم ددې آیت مطابق قربانیاني اوکړلې.اوځانونه ئې حلال کړل.دا آیت د دشمن د ویرې د امله نه د احصار په اړه کي نازل شوې دې.د بیمارئ وغیره د امله نه دې نازل شوې.معلومه شوه.چه احصارصرف د دشمن د ویرې د امله معتبردې. ② دوهم دلیل دا دې.چه د احصار په وجه که قربانی اوکړې شی.نود دشمن ویرې ختمیدې شی.خود قربانئ په وجه ناروغی (بیماری)) نه ختمیږی.نومعلومه شوه.چه احصار صرف د ویرې سره خاص دې.

وَلَنَا أَنَّ آيَةَ الْإِحْصَارِ وَرَدَتْ فِي الْإِحْصَارِ بِالْمَرَضِ بِإِجْمَاعِ أَهْلِ اللُّغَةِ اوزموږ دلیل دا دې چې د احصار آیت وارد شوې دې په مرض سره ،په احصار کي په اجماع داهل لغت سره فَإِنَّهُمْ قَالُوا: الْإِحْصَارُ بِالْمَرَضِ ځکه چې دوی وائی چې احصار په مرض سره وی وَالْحَصْرُ بِالْعَدُوِّ اوحصر په دښمن سره

**حل اللغة:** ① وردت،وروداً(ض): وارد کیدل، راتګ

**تشریح:- دلائل الاحناف رحمهم الله:** زموږدلیل دا دې.چه دا آیت دبیمارئ د امله د ایساریدو په اړه کي نازل شوې دې.اوپه دې باندې د ټولواهل لغت اجماع ده.د ژبې خاوندان وائی.چه احصار د مرض په وجه بندیدو او ایساریدو ته وائی.اود حصر لفظ د دشمن د امله بندیدو ته وائی.نودمرض د امله احصار دآیت نه ثابت





شو.اود دشمن د امله حصر د حدیث یعنی واقعه حدیبیه نه ثابت شو.نواحصارددشمن سره خاص نشو.لکه څنګه چې امام شافعی فرمائی.بلکه ددشمن اومرض د امله هم احصار کیدای شي.

وَالتَّحَلُّلُ قَبْلَ أَوَانِهِ لِدَفْعِ الْحَرَجِ الْآتِي مِنْ قِبَلِ امْتِدَادِ الْإِحْرَامِ اومخکي د وخت نه حلالیدل لپاره د دفع دهغه حرج راتلونکی د. کوم چې د احرام د اوږدې مودې پورې په پاتې کیدو وی. وَالْحَرَجُ فِي الِاصْطِبَارِ عَلَيْهِ مَعَ الْمَرَضِ أَعْظَمُ حال دا دې چې په مرض سره په احرام دصبر کاوه حرج ډیرزیات دې.

**حل اللغة:** ① اوان: وخت ② امتداد: اوږدیدل

**تشریح:-** دا دوهم دلیل دې.که موږ دا اومنو.چه دا آیت د دشمن په اړه کي نازل شوې دې.نوبیا دا وایو.چه مرض د دشمن د ویرې په حکم کي دی.اوعلت د اتحاد دحکم دا دې.چه د د حج اوعمرې د افعالو پوره کیدو نه وړاندې د حلالیدو اجازت د هغه تکلیف لرې کول دی.کوم چې د زیاتې زمانې پورې د احرام په پابندوکي ایساریدل دی.نودغه علت لکه څنګه چې د دشمن د ویرې د امله په ایساریدو کي دې.نود بیمارئ په وجه د احرام په پابندوکي ایساریدوکي هم دې.بلکه د مرض په وجه د احرام په پابندو باندې صبر کول د دشمن د احصارنه زیات دې.ځکه چې په مرض کي د علاج اودوائې او دپښولاسوکمزوری ښکاره ده.نوچه د معمولی حرج لرې کاوه لپاره د دشمن ویره احصار معتبرګڼدلې شی.نودمرض په وجه به احصار خامخا معتبر ګڼدلې شی.

**د حلالیدو لپاره دحرم ته دقربانئ لیږل**

وَإِذَا جَازَ لَهُ التَّحَلُّلُ يُقَالُ لَهُ ابْعَثْ شَاةً تُذْبَحُ فِي الْحَرَمِ وکله چې ده لره حلالیدل جائز شونوده ته به اووئیلې شی چې یوه وزه اولیږه چې په حرم کښې ذبح کړې شی وَوَاعِدْ مَنْ تَبْعَثُهُ بِيَوْمٍ بِعَيْنِهِ يَذْبَحُ فِيهِ ثُمَّ تَحَلَّلْ ووعده مقرر کړه دهغه چا سره دچا په لاس چې ئې لیږی دخاص ورځې چې په هغې کښې ذبح کړی بیا حلال شه.

**حل اللغة:** ① جاز، جوازاً (ن): جائز کیدل ② تحلل: حلالیدل ③ ابعثه، بعث بعثاً(ف): لیګل

**تشریح:-** مسئله،که چې محصرته د حلالیدواجازت ملاؤ شو.نوهغه دې دهدی وزه د قربانئ لپاره حرم ته اولیږی.اودکوم کس په لاس چې ئې لیږی.نوهغه سره دې د قربانئ لپاره یوخاص وخت مقرر کړی.چه په فلانئ ورځ به دا قربانی اوکړې.بیا که چې هغه وخت شی.کوم چې ورته ده یاد کړې وی.نوځان به حلال کړی.

**المذهبان في تعين وقت الذبح:** دا یاد ساتئ.① چه د د هدی د ذبح کاوه لپاره د ورځ مقرر کول د امام ابوحنیفه رحمه الله نیز دې.ځکه چې ددوی په نیزباندې د دم احصار لپاره د شریعت د اړخه وخت مقرر نه دې.نود ورځې تعین به کوی.چه محصربه هغه ورځ ځان حلال کړی.② اوصاحبینو رحمهما الله په نیزد ورځ مقرر کولوضرروت نشته.ځکه چې ددوی په نیزدم احصار لپاره یوم النحرمقرر شوې ده.البته که د عمرې نه محصر وی.نوپه دې صورت کي د صاحبینو رحمهما الله په نیزهم د ورځ مقررکول ضروری دی.ځکه چې دعمرې د قربانئ لپاره څه وخت مقرر نه دې.

**متی یتحلل؟** هرکله چې محصرهدی اولیږله.نواوس ده ته اختیاردې.که هم په هغه ځائې کي ایساریږی.په کوم ځائې کي چې بند شوې وی.اوکه وطن ته واپس کیږی.البته ځان به هله حلالوی.کله چې هغه مقرره ورځ راشی.کومه چې دوی متعین کړې وی.اود ده یقین اوشی.چه هدی ذبح شوې ده.

وَإِنَّمَا يَبْعَثُ إِلَى الْحَرَمِ لِأَنَّ دَمَ الْإِحْصَارِ قُرْبَةٌ اوهدی به حرم ته ځکه لیږلې شی چې داحصارقربانی قربت دې وَالْإِرَاقَةُ لَمْ تُعْرَفْ قُرْبَةً إِلَّا فِي زَمَانٍ أَوْ مَكَانٍ عَلَى مَا مَرَّ او وینه تویول قربت کیدل معلوم شوی نه دی مګر په زمان اوپه مکان کي لکه چې تیر شوی دی. فَلَا يَقَعُ قُرْبَةً دُونَهُ فَلَا يَقَعُ بِهِ التَّحَلُّلُ نو د دې نه بغیر به قربت نه وی.نوپه دې سره به تحلل واقع نشی.

**حل اللغة** * ① **اراقة**: بهيول

**تشريح:- دلائل سوق الهدى الى الحرم**۞ ① بهرحال علامه مرغيناني رَحِمَهُ اللهُ فرمائي.چه دهذى حيوان (څاروي) بد حرم ته ځكه ليږى.چه قرباني وينه تويول دى.اودا په هغه وخت كي عبادت ګڼلي شى.چه دده لپاره د وخت اوځائي تخصيص وى.نوكه په دې دواړو كي يوهم نه وى.يعني يا په خپل وخت كي نه وى.ياپه خپل وخت كي وى خويه خپل محل يعني حرم كي نه وى.نودا قرباني عبادت نه دې.اوچه عبادت نشو.نومحرم پرې حلاليدې هم نشى

**وَاِلَيْهِ الْاِشَارَةُ بِقَوْلِهٖ تَعَالٰى {وَلَا تَحْلِقُوْا رُءُوْسَكُمْ حَتّٰى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهٗ}** اوپه ارشاد دالله ﷻ چې ((مه خرائى خپل سرونه تردې چې اورسى قرباني خپل ځائي ته)) **فَإِنَّ الْهَدْيَ اسْمٌ لِمَا يُهْدٰى إِلَى الْحَرَمِ** سره دې اړخ ته اشاره ده.ځكه چې هدى دهغه څاروى نوم د ې كوم چې حرم ته هدى ليږلې شى.

**تشريح:-** په قرآن پاك كي هم د محل تعين ته اشاره موجود ده.الله تعالى فرمائيلى دى[**وَلَا تَحْلِقُوْا رُءُوْسَكُمْ حَتّٰى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهٗ**] په آيت كي دمحل تفسير شوې دې[**ثُمَّ مَحِلُّهَآ اِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيْقِ**] اودلته د بيت نه مراد عين كعبه نه ده.ځكه چې په عين كعبه كي وينه نشى بيولې. بلكه حدود د حرم دى.اوس د آيت ژباړه دا شوه.چه سراوخرائې.نومه حلاليږئ.ترڅوچه هدى حرم ته نه وى رسيدلې.ددې نه هم معلومه شوه.چه د هدى څاروي په حرم كي دننه ذبح كول ضروري دى.③ بله د چې په قرآن كي ورته هدى وئيلې شوى دى.اوهدى هغه څاروى ته وئيلى شى.چه په حرم كي قرباني كولې شى.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَتَوَقَّتُ بِهٖ، لِأَنَّهٗ شُرِعَ رُخْصَةً وَالتَّوْقِيْتُ يُبْطِلُ التَّخْفِيْفَ** امام شافعي صاحب فرمائي چې دهدى دحرم سره تعين نشته دې ځكه چې ددې مشروعيت په طور د رخصت دې او تعين تخفيف باطلوى

**حل اللغة** * ① **تخفيف**: آساني كول ② **توقيت**: مقررول

**تشريح:- خلاف الشافعي**۞ امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ فرمائي.چه د هدى د حرم پورې تخصيص نشته.ځكه چې الله تعالى محصرته د آسانتيا پيدا كاوه لپاره د هدى ليږلو رخصت وركړې دې.اوس كه دهدى قرباني د حرم پورې خاص كړې شى.نودا هغه رخصت ختموى.كوم چې محصرته ملاؤ شوې دې.نوځكه د هدى د ذبح كاوه لپاره د حرم تخصيص نشته.بلكه په حل اوحرم دواړو كي ذبح كولې شى.

**قُلْنَا: الْمُرَاعٰى أَصْلُ التَّخْفِيْفِ لَا نِهَايَتُهٗ** موږ وايو چې ملحوظ اصل تخفيف دې نه ددې انتها.

**تشريح:- الجواب**۞ زموږ دا اړخه ددې ځواب دا دې.چه هرچه اصل تخفيف دې.نوهغه موجود دې.ځكه چې ده ته په هدى ليږلوسره اوقربانئ كولوسره ځان حلالول جائزكيږى.اوامام شافعي چې كومه خبره كوى.چه د ذبح لپاره د حرم تخصيص نشته.نودا خواصل تخفيف نه دې.بلكه په تخفيف كي بنه پوره آسانتيا پيدا كول دى.نو د آيت په مقتضا باندې احناف رَحِمَهُمُ اللهُ عمل كوى.

**وَيَجُوْزُ الشَّاةُ، لِأَنَّ الْمَنْصُوْصَ عَلَيْهِ الْهَدْيُ وَالشَّاةُ أَدْنَاهُ** اوپه دې هدى كي وزه جائز ده.ځكه چې منصوص عليه هدى ده.اوكمتر دهدى وزه ده. **وَتُجْزِيْهِ الْبَقَرَةُ وَالْبَدَنَةُ أَوْ سُبْعُهُمَا كَمَا فِي الضَّحَايَا** او غوې او اوښ هم جائزدې.لكه په اضيحه كي چې جائز دى

**تشريح:- مصداق الهدى**۞ صاحب دهدايه رَحِمَهُ اللهُ فرمائي.چه په هدى كي وزه هم كافى ده.ځكه چې په آيت [**فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ**] كي د هدى لفظ راغلې دې.اود هدي ادنى اطلاق په وزه باندې كيږى.دغه دول غوې او اوښ ليږل هم جائزدى.اود غوې او اوښ اوومه برخه هم جائزده.لكه څنګه چې د لوئې اختر په قربانئ كي اوومه برخه جائزده.

**وَلَيْسَ الْمُرَادُ بِمَا ذَكَرْنَا بَعْثَ الشَّاةِ بِعَيْنِهَا، لِأَنَّ ذٰلِكَ قَدْ يَتَعَذَّرُ، بَلْ لَهٗ أَنْ يَبْعَثَ بِالْقِيْمَةِ** او بعينه وزه ليږل مراد نه دى



ځكه چې دا كله ګرانه وي بلكه ده لپاره جائز دى چې اوليږى قيمت **حَتّٰى تُشْتَرَى الشَّاةُ هُنَالِكَ وَتُذْبَحَ عَنْهُ** چې هلته پرې واخلى دده د اړخه او ذبح ئې كړې.

**تشريح:- كفاية ارسال القيمة ثم اشتراء الشاة بها في الحرم**۞ صاحب دهدايه رَحِمَهُ اللهُ فرمائي.چه خاص كرد وزه ليږل ضروري نه دى.بلكه كه دوزه قيمت اوليږى.اوپه حرم كي پرې وزه واخلى.اوذبح ئې كړى.نوهم جائزدې.ځكه چې بعضې وخت دوزه ليږل متعذروى.

**وَقَوْلُهٗ ثُمَّ تَحَلَّلَ إِشَارَةٌ إِلٰى أَنَّهٗ لَيْسَ عَلَيْهِ الْحَلْقُ أَوِ التَّقْصِيْرُ** او د صاحب دكتاب په قول "ثم تحلل" كي دې اړخ ته اشاره ده چې په محصر حلق اوتقصير لازم نه دې. **وَهُوَ قَوْلُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ** دطرفينو رَحِمَهُمَا اللهُ قول دا دې

**تشريح:- المذهبان في الحلق للمحصر**۞ صاحب دهدايه رَحِمَهُ اللهُ فرمائي.چه د امام قدورى رَحِمَهُ اللهُ ددې قول «ثم تحلل» نه دا معلوميږى.چه په محصرباندې د حلاليدو لپاره د حلق يا قصر اړتيا نشته.① اودا د طرفينو رَحِمَهُمَا اللهُ مسلك دې

**وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ: عَلَيْهِ ذٰلِكَ** چې امام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ فرمائى چې دا په ده لازم دې **وَلَوْ لَمْ يَفْعَلْ لَا شَيْءَ عَلَيْهِ لِأَنَّهٗ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَلَقَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ** اوكه وې نكړل نوپه ده څه لازم نه دى ځكه چې نبى ﷺ دحديبې په كال حلق اوكړو «**وَكَانَ مُحْصَرًا بِهَا وَأَمَرَ أَصْحَابَهٗ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ بِذٰلِكَ**[1]» او حال دا چې دوى محصر وو او دوى اصحابو ته هم د دې حكم اوفرمائيلو

**تشريح:-** البته امام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ فرمائي.چه په محصرباندې هم دحلاليدو لپاره حلق يا قصر واجب دې.خوكه حلق يا قصرئې اونكړلو.نودم وغيره پرې نه واجبيږى.اګرچه په ترك د واجب ګناهګارضرور دې.

**دليله**۞ دامام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ دليل د حديبيه واقعه ده.ځكه چې په دې كي نبى ﷺ په خپله هم حلق كړې وو.او صحابوؓ ته ئې هم د حلق حكم كړې وو.حالانكه دوى محصرين وو.نومعلومه شوه.چه د محصر لپاره د ذبحې نه روسته حلق هم ضروري دې.

**وَلَهُمَا أَنَّ الْحَلْقَ إِنَّمَا عُرِفَ قُرْبَةً مُرَتَّبًا عَلٰى أَفْعَالِ الْحَجِّ فَلَا يَكُوْنُ نُسُكًا قَبْلَهَا** دطرفينو رَحِمَهُمَا اللهُ دليل دا دې چې دحلق قربت كيدل په افعالو دحج مرتب شوى معلوم شوى دى.نودا به د دې نه مخكې نسك وى.

**تشريح:- دليل الطرفين**۞ د طرفينو رَحِمَهُمَا اللهُ دليل دا دې.چه حلق په هغه وخت كښې عبادت ګڼلې شى.چه دا د حج يا عمرې د افعالو پوره كولونه روسته وى.اود احصار په صورت كي محصرد حج يا عمرې افعال نه دى پوره كړې.نوددې امله پرې د نسك په حيثيت باندې حلق نشته.

**وَفَعَلَ النَّبِيِّ ﷺ وَأَصْحَابِهٖ لِيُعْرَفَ اسْتِحْكَامُ عَزِيْمَتِهِمْ عَلَى الْاِنْصِرَافِ** اودنبى ① داصحابو يوفعل وو.چه په واپس كيدلو د دوى عزم مستحكم معلوم شى.

**تشريح:- الجواب عن حلق الحديبية**۞ پاتې شوه د حديبيه واقعه.نوپه دې واقعه كي چې كله د مشركانو او مسلمانانوپه مينځ كي صلح اوشوه.اوفيصله په دې اوشوه.چه مسلمانان به راروان كال ته عمره كوى. نو نبى په خپله حلق اوكړلو. او مسلمانانوته ئې هم د حلق حكم اوكړلو.چه د مشركانودا يقين پيدا شى.چه مسلمانان د واپس تلو اراده لرى.اوپه دې طريقه مسلمانان د مشركانود شرنه محفوظ اوپه امن شى.نود حديبيې په واقعه كي حلق د حلالوالى په غرض نه وو.بلكه د مشركانود شرنه د ساتنه لپاره وو. نو ځكه وئيلې شى.چه په محصرباندې حلق يا قصر واجب نه دې.

---

[1]) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه البخارى فى الصلح باب ٧ رقم ٢٧٠١ وفى المغازى باب ٤٥ رقم ٤٢٥٢ وكذا فى أحاديث أخرى أخرجه الزيلعي رحمه الله (نصب الراية ١٨١/٣)_

## دقارن دوي [دوه] قربانۍ لیږل

وَإِنْ كَانَ قَارِنًا بَعَثَ بِدَمَيْنِ لِاحْتِيَاجِهِ إِلَى التَّحَلُّلِ مِنْ إِحْرَامَيْنِ او که محصر قارن وو. نو دوي [دوه] هدي به لیږي ځکه چې د دوي [دوه] احرامونو نه حلالیدو ته احتیاج دی. فَإِنْ بَعَثَ بِهَدْيٍ وَاحِدٍ لِيَتَحَلَّلَ عَنِ الْحَجِّ وَيَبْقَى فِي إِحْرَامِ الْعُمْرَةِ لَمْ يَتَحَلَّلْ عَنْ وَاحِدٍ مِنْهُمَا او که يو هدي ئې اولیږله چې دحج د احرام نه حلال شي او دعمرې په احرام کې پاته پاتې شي نود يونه به هم حلال نه وي لِأَنَّ التَّحَلُّلَ مِنْهُمَا شُرِعَ فِي حَالَةٍ وَاحِدَةٍ ځکه چې د دواړو نه حلالیدل په يو حالت کې مشروع شوی دی.

حل اللغة: ① قارن: ملاوونکي ② احتياج: ارتيا ③ بعث، بعثا(ف): لیږل

تشریح:- مسئله ښکاره ده.

## د احصارد قربانۍ لپاره دحرم تخصيص

وَلَا يَجُوزُ ذَبْحُ دَمِ الْإِحْصَارِ إِلَّا فِي الْحَرَمِ او جائز ندی ذبح کول د دم احصار مگر په حرم کې وَيَجُوزُ ذَبْحُهُ قَبْلَ يَوْمِ النَّحْرِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ (١) اوجائز دی ذبحه کول ئې رومبی دیوم نحرنه په نزد امام ابوحنیفه صاحب.

حل اللغة: ① يجوز، جوازا(ن): جائز کیدل ② ذبح، ذبحا: ذبح کول

تشریح:- المذهبان في وقت دم المحصر بالحج ۞ د احصار قرباني دحرم پورې خاص ده. په بل ځائې کې د احصار قرباني کول جائز نه دی. البته د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دم احصارد یوم النحرنه وړاندې جائز ده. اوصاحبين رحمهما الله فرمائی. چه د محصر بالحج لپاره دم احصار صرف په یوم النحر جائز ده. د دې نه وړاندې جائز نه دی. لنډیز دا شوه. چه د محصر بالحج لپاره د امام ابوحنیفه اوصاحبينو رحمهم الله دړې وارو په نیزد حرم تخصیص شته. البته د دم احصار لپاره دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزد وخت تخصيص نشته

وَقَالَا: لَا يَجُوزُ الذَّبْحُ لِلْمُحْصَرِ بِالْحَجِّ إِلَّا فِي يَوْمِ النَّحْرِ اوصاحبين فرمائی چې جائز نه دی ذبح کول د محصر بالحج لپاره مگر په یوم نحر کې

تشریح:- اود صاحبینو رحمهما الله په نیزورته یوم النحر خاص ده. اود محصر بالعمرې لپاره په اتفاق سره د وخت تخصیص نشته. بلکه د صاحبينو رحمهما الله په نیزهم د یوم النحر نه وړاندې ذبح جائزده.

وَيَجُوزُ لِلْمُحْصَرِ بِالْعُمْرَةِ مَتَى شَاءَ اعْتِبَارًا اوجائز دی د محصر بالعمره لپاره بِهَدْيِ الْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ چې کله غواړي. په هدی متعه اوقران باندې قیاس کوي.

تشریح:- دلائل الصاحبين رحمهما الله ۞ ① دصاحبينو رحمهما الله دلیل په دم تمتع اودم قران باندې قیاس دی. لکه ځنګه چې دم تمتع اودم قران په یوم النحر پورې خاص دی. دغه ډول به دم احصارهم په یوم النحرپورې خاص وی.

وَبِمَا يَخْتَصَّانِ بِالْحَلْقِ إِذْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُحَلِّلٌ اوکله دوی په حلق باندې هم قیاس کړې دې ځکه چې هريو ددې دواړو نه حلالونکي دي.

تشریح:- دوهم دلیل د صاحبينو رحمهما الله په حلق باندې قیاس دې. يعنی لکه ځنګه چې د قارن اومتمتع د حلق لپاره یوم النحر خاص ده. دغه ډول به د دم الاحصار لپاره هم یوم النحرخاص وی. اوعلت مشترکه په دواړو کې دا دې. چه لکه ځنګه په حلق سره حلالیدل راځي. دغه ډول د دم الاحصارپه ذبح سره هم.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّهُ دَمُ كَفَّارَةٍ حَتَّى لَا يَجُوزُ الْأَكْلُ مِنْهُ دامام صاحب رحمه الله دلیل دا دې چې هدی د احصار

(١) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الدرى لمختار (٢٥٣/٢) والبحر الرائق (٩٧/٣) والهندية (٢٥٦/١) نقلاً عن القول الراجح (٢٣٨/١)_



دکفارې قرباني ده نوددې نه خوړل جائز نه دی. فَيَخْتَصُّ بِالْمَكَانِ دُونَ الزَّمَانِ كَسَائِرِ دِمَاءِ الْكَفَّارَاتِ نودا په دمکان سره مختص وی نه دزمان سره. دنورو کفارو د دمونو پشان

حل اللغة: ① الاكل: خوراك

تشریح:- دليل ابي حنيفة رحمه الله ۞ دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې. چه دم احصاردم جنایت دی. هم دا وجه ده. لکه د دم جنایت په شان د محصر لپاره ددې نه خوراك کول جائزنه دی. بلکه دا د فقیرانوحق دې. او کومې قربانۍ چې د جناياتود جزاء په شکل کې وی. هغه په اتفاق سره په مکان یعنی حرم پورې خاص دی. خو په یووخت پورې خاص نه وی. بلکه د جناياتوقربانۍ په هروخت کې کولې شی. دغه ډول د احصار دم هم د یوم النحر پورې خاص نه ده.

بِخِلَافِ دَمِ الْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ، لِأَنَّهُ دَمُ نُسُكٍ په خلاف د تمتع اود قران نه ځکه چې دغه د افعالو د حج قرباني دی

تشریح:- الجواب عن القياس الاول ۞ په خلاف د دم قران اودم تمتع ځکه چې دا دواړه دم نسك اودم شکر دی. نويه یوم النحرپورې به خاص وی.

وَبِخِلَافِ الْحَلْقِ، لِأَنَّهُ فِي أَوَانِهِ او په خلاف د حلق نه چې دغه په خپل وخت دې. لِأَنَّ مُعْظَمَ أَفْعَالِ الْحَجِّ وَهُوَ الْوُقُوفُ يَنْتَهِي بِهِ ځکه چې دحج عظیم عمل چې وقوف عرفه دې هغه په دې پوره کیږي.

تشریح:- الجواب عن القياس الثاني ۞ اوپه خلاف د حلق ځکه چې حلق داسې محلل دې. چه په خپل وخت پورې خاص دې. اود حج په افعالوکي چې رکن اعظم یعنی وقوف عرفات دې. نوهغه په دې حلق باندې پوره کیږي. حاصل دا شو. چه تحلل په دوي [دوه] قسمه دې. ① یوهغه تحلل چې په خپل وخت کې وی. ② او بل هغه تحلل چې د خپل وخت نه وړاندې وی. نوحلق تحلل دې په خپل وخت کښې. اود دم احصار تحلل دې د خپل وخت نه وړاندې. نوچه دا توپیر موجود وی. د دم احصارپه حلق باندې قیاس ځنګه ټیك کیداې شی.

## په محصر بالحج باندې دحج اوعمرې د قضا وجوب

قَالَ: وَالْمُحْصَرُ بِالْحَجِّ إِذَا تَحَلَّلَ فَعَلَيْهِ حَجَّةٌ وَعُمْرَةٌ اومحصر بالحج کله چې احرام پرانیزی نویده حج او عمره دی. هَكَذَا رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ داسې روایت دې دحضرت ابن عباس رضی الله عنه او ابن عمر رضی الله عنه نه وَلِأَنَّ الْحَجَّةَ يَجِبُ قَضَاؤُهَا لِصِحَّةِ الشُّرُوعِ فِيهَا اوځکه چې دحج قضاواجب ده دشروع صحیح کیدلو په وجه وَالْعُمْرَةُ لِمَا أَنَّهُ فِي مَعْنَى فَائِتِ الْحَجِّ او عمره واجب ده ځکه چې محصر د فائت الحج په معنی کې دې.

حل اللغة: ① تحلل، تحللا: حلالیدل

تشریح:- وجوب الحج والعمرة على المحصر بالحج ۞ مسئله. که يو کس دحج نه ایسارشو. اوهدی ئې اولیږله. او ځان ئې حلال کړلو. نويه ده باندې دحج اوعمرې دواړو قضا واجب ده.

① دلائله ۞ دغه ډول ① دحضرت ابن عباس اوابن عمر رضی الله عنهما نه نقل شوی دی. فرمائی. ﴿قال رسول الله ﷺ من فاته العرفة بليل فقد فاته الحج فليحلل بعمرة وعليه الحج من قابل﴾ یعنی رسول الله ﷺ فرمائيلي دی. چې د چانه په لیلة النحرکې هم وقوف عرفات فوت شو. نوددہ نه حج فوت شو. نوهغه دې دعمرې داحرام نه ځان حلال کړي. اوپه ده باندې په راروان کال کې حج فرض دې. ددې حدیث نه معلومه شوه. چه دچانه حج فوت شی. نويه ده باندې حج اوعمره دواړه دی. اومحصرهم د فائت الحج په معنی کې دې. نوپه ده به هم حج اوعمره دواړه وی. ② دوهم دلیل دا دې. چه په محصرباندې حج ځکه واجب دې. چه د ده په حج کې پیل صحیح وه. خوچه هغه ئې فاسد کړلو. نودهغې قضا به پرې واجب وی. اوعمره پرې ځکه واجب ده. چه دې د هغه چا پشان دې چه دهغه نه حج فوت شوې وی. اوپه هغه باندې دحج د قضا سره عمره هم واجب ده. نودغه ډول به په

محصرباندې هم عمره واجب وي.

## د محصربالعمره باندې دحج عمرې قضا

وَعَلَى الْمُحْصَرِ بِالْعُمْرَةِ الْقَضَاءُ او كوم سړې چې دعمرې محصرشو پده قضا ده. ،الْإِحْصَارُ عَنْهَا يَتَحَقَّقُ عِنْدَنَا او په عمرې سره د سړي هم احصار متحقق كيږي زموږ په نزد

حل اللغة: ① يتحقق، تحققا: ثابتيدل

تشريح: - المذهبان في تحقق الاحصارفي العمرة ۞ كه يوكس د عمرې نه بندكړې شي.نوپه ده باندې قضا واجب ده.صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه زموږ په نيزپه عمره كښې احصارمتحقق كيږي.

وَقَالَ مَالِكٌ لَا يَتَحَقَّقُ، لِأَنَّهَا لَا تَتَوَقَّتُ او امام مالك وائي چې نه متحقق كيږي ځكه چې عمره دڅه وخت سره مخصوص نه ده.

تشريح: - اودامام مالك رحمه الله په نيزنه متحقق كيږي.

ﻭﺩﻟﻴﻠﻪ ۞ دامام مالك رحمه الله دليل دا دې.چه دعمرې لپاره څه وخت مقرر نه دې.چه دهغې دتيريدو په وجه عمره فوت كيږي.نوهركله چې دعمرې فوت كيدو ويره نشته.نواحصارهم نه متحقق كيږي.

وَلَنَا أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَأَصْحَابَهُ أُحْصِرُوا بِالْحُدَيْبِيَةِ زمونږ دليل دادې چې نبي ﷺ او ددوى اصحاب په حديبيه كې بند كړې شو وَكَانُوا عُمَّارًا (١) اودوى عمره كوونكې وو

تشريح: - زمونږ دليل دادې.چه نبي ﷺ اوصحابه كرام ﷺ دحديبيه په واقعه كې د عمرې نه بند شوي وو.اوهغوى د هغې عمرې قضا راوړله.اپه عمرة القضاء سره مشهوره شوه.نومعلومه شوه.چه په عمره كې هم احصارمعتبردې

وَلِأَنَّ شَرْعَ التَّحَلُّلِ لِدَفْعِ الْحَرَجِ وَهَذَا مَوْجُودٌ فِي إِحْرَامِ الْعُمْرَةِ. اوځكه چې د احرام پرانستلو مشروعيت ددفع دحرج لپاره دې اودا د عمرې په احرام كې هم موجود دې. وَإِذَا تَحَقَّقَ الْإِحْصَارُ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ إِذَا تَحَلَّلَ كَمَا فِي الْحَجِّ اوكله چې احصار متحقق شونوپده ئې قضاء ده كله چې احرام پرانيزي لكه په حج كې چې ده

تشريح: - دوهم دليل دا دې.چه حلاليدل مشروع شوى دى.دحرج لرې كولو دپاره،اودا خبره د عمرې په احرام كښې هم موجود ده.نوپه عمره كې هم احصارمتحقق شو.اوچه احصارمتحقق شو.نود عمرې د احرام پرانستلو په وجه به پرې قضا واجب وي.لكه دحج قضا چې لازم وي.

## په قارن ديوحج اودوو عمرو قضا وجوب

وَعَلَى الْقَارِنِ حَجَّةٌ وَعُمْرَتَانِ اوپه قارن يوحج او دوې [دوه] عمرې دى. أَمَّا الْحَجُّ وَاحِدَاهُمَا فَلِمَا بَيَّنَّا يوحج اويوه عمره په دې وجه دى چې كومه موږ بيان كړه وَأَمَّا الثَّانِيَةُ فَلِأَنَّهُ خَرَجَ مِنْهَا بَعْدَ صِحَّةِ الشُّرُوعِ فِيهَا اودويمه عمره ځكه چې دې دصحت دشروع نه روسته ددې نه بهر شوې دې.

حل اللغة: ① قارن: ملاوونكې ② بينا، تبيينا: بيانول

تشريح: - مسئله ښكاره ده.

## دهدي لېږلونه روسته د احصار زائله كيدل

فَإِنْ بَعَثَ الْقَارِنُ هَدْيًا كه قارن محصر هدى اولېږله وَوَاعَدَهُمْ أَنْ يَذْبَحُوهُ فِي يَوْمٍ بِعَيْنِهِ ثُمَّ زَالَ الْإِحْصَارُ او وعده ئې واخستله دهغوىنه چې په فلانى معينه ورځ به ئې ذبح كړى بيا احصار ختم شو فَإِنْ كَانَ لَا يُدْرِكُ الْحَجَّ

(١) تقدم تخريجه)_



وَالْهَدْيَ لَا يَلْزَمُهُ أَنْ يَتَوَجَّهَ نوكه د: حج اوهدى نه موندل نوپه ده مكې ارخ ته توجه كيدل لازم نه دى بَلْ يَصْبِرُ حَتَّى يَتَحَلَّلَ بِنَحْرِ الْهَدْيِ بلكه صبردې كوى تردې چې په ذبح دهدى سره حلال شى لِفَوَاتِ الْمَقْصُودِ مِنَ التَّوَجُّهِ وَهُوَ أَدَاءُ الْأَفْعَالِ ځكه چې دتوجه نه مقصود چې كومه ادا دافعال ده

حل اللغة: ① بعث، بعثا (ف): ليګل ② هدى: د قربانئى څناور ③ زال، زوالا (ن): زائل كيدل ④ يدرك، ادرې ګا: موندل ⑤ توجه، توجها: متوجه كيدل

تشريح: - زوال الاحصاربعدسوق الهدى ۞ مسئله دا ده.كه محصرهدى حرم ته اولېږله. او خپلوملګروسره ئې وخت مقرركړلو.چه په فلانۍ ورځ به دا هدى قربانى كوئ ددې نه روسته احصارختم شو.نوكه وخت دومره تنګ وى.چه حج اوهدى په دواړوكې يوهم نشى لاندې كولې.

نو صبر اوكړى. چې هدى ئې ذبح شى.نوځان به حلال كړى.ځكه چې په دې صورت كې مكې په تلوكې څه فائده ځكه نشته.چه تلل د حج لپاره وى.اوحج ترې فوت شوې دې.نود تلوڅه فائده نشته.

وَإِنْ تَوَجَّهَ لِيَتَحَلَّلَ بِأَفْعَالِ الْعُمْرَةِ لَهُ ذَلِكَ، لِأَنَّهُ اوكه دعمرې اداكول په ذريعه دحلاليدو لپاره ځى نو ده ته اختيار دې فَاتَهُ الْحَجُّ ځكه چې دې فائت دحج دې.

تسهيل: كه دې مكې ته ددې لپاره روان شى.چه عمره ادا كړى.اوځان حلال كړى.نودا كولې شى.ځكه چې دې فائت الحج دې .اود فائت الحج په اړه كې وړاندې تيرشوى دى.چه دې به دعمرې افعال كوى.اوځان به حلالوى.نوپه دې.مقصد ورته مكې ته تلل جائزدى.

## دهدي اوحج لاندې كول

وَإِنْ كَانَ يُدْرِكُ الْحَجَّ وَالْهَدْيَ لَزِمَهُ التَّوَجُّهُ اوكه حج اوهدى موندې شو.نو توجه پرې لازم ده. لِزَوَالِ الْعَجْزِ قَبْلَ حُصُولِ الْمَقْصُودِ بِالْخَلَفِ د امله د زائله كيدو د عجز نه مخكې په حصول دمقصود باندې په خليفه سره.

حل اللغة: ① هدى: د قربانئى حيوان (څاروې) ② خلف: خليفه، جانشين

تشريح: - حكم الصورة الثانية ۞ په دوهم صورت كې پرې مكې ته تلل واجب دى.ځكه چې په خليفه باندې دقدرت موندلونه وړاندې په اصل قادر شو.اصل د حج اوعمرې پوره كول دى.اوخليفه ئې هدى ده.نوهدى بيكاره شوه.دا داسې شوه.لكه چې يوكس د لمانځه لپاره تيمم كړې وى.اودلمونځ كاوه نه وړاندې د اوبو په استعمال قادر شو.نودده تيمم باطل شو.

## صرف د هدى د لاندې كولوصورت

وَإِذَا أَدْرَكَ هَدْيَهُ صَنَعَ بِهِ مَا شَاءَ، اوكله چې دې خپله هدى اوموندله نوڅه چې غواړى اودې كړى پرې لِأَنَّهُ مِلْكُهُ وَقَدْ كَانَ عَيَّنَهُ لِمَقْصُودٍ اسْتَغْنَى عَنْهُ ځكه چې دده مالك دې اودكوم شى لپاره چې ئې معينه كړې وه د هغې اړتيا پاتې نشو.

حل اللغة: ① عينه، عين، تعيينا: معين كول، نامزدكول

تشريح: - خيارالتصرف له في الهدى ۞ دا عبارت دتيرشوى عبارت تتمه ده.ددې بيان دا دې.چه هركله ده هدى لاندې كړه.نوپه هغې چې ئې څه خوښه وى.هغه دې پرې اوكړى.ځكه چې دا ده دڅه مقصد لپاره لېږلې وه.يعنى چې د هدى د ذبح كولونه روسته دې حلال شى.خوچونكه ده لپاره د حج ادا كول ممكن شو.اود حلاليدو ته اړتيا پاتې نشو.نود هدى قربانۍ ته هم اړتيا پاتې نشو.اوچه اړتيا ورته پاتې نشو .نودده ملك دې.چه څه ورسره كوى.كولې شى.

## صرف دهدی لاندي کولوصورت

| وَإِنْ كَانَ يُدْرِكُ الْهَدْيَ دُونَ الْحَجِّ يَتَحَلَّلُ اوکه ده هدی موندې شوه نه حج، نوحلال دې شي لِعَجْزِهِ عَنِ الْأَصْلِ داصل نه دعجز په وجه. |
|---|

حل اللغة: ① عجز: عاجز كيدل

تشريح:- په دريم صورت کي يعنی چي هدی لاندي کولې شي. خوحج نه. نوهدی دې ذبح کړې. اوخان دې حلال کړې. ځکه چې دې د اصل نه چې حج عاجز شو. نويه ذبح به ځان حلال کړې.

## صرف دحج لاندي کول

| وَإِنْ كَانَ يُدْرِكُ الْحَجَّ دُونَ الْهَدْيِ جَازَ لَهُ التَّحَلُّلُ اسْتِحْسَانًا اوکه ده حج موندلو اوهدی ئې نه موندله نو ده لپاره حلاليدل جائزدی استحسانا. |
|---|

تشريح:- اوکه حج لاندي کولې شي. خوهدی نشي. استحسانا ده لپاره حلاليدل جائزدی. خوغوره دا ده. چه مکې ته لاړ شي. اودحج افعال ادا کړي.

| وَهَذَا الْ ويش لَا يَسْتَقِيمُ عَلَى قَوْلِهِمَا فِي الْمُحْصَرِ بِالْحَجِّ اوددا ويش د صاحبينو په قول باندې برابر نه دې دمحصر بالحج په حق کي لِأَنَّ دَمَ الْإِحْصَارِ عِنْدَهُمَا يَتَوَقَّتُ بِيَوْمِ النَّحْرِ ځکه چې دم د احصار د صاحبينو په نزد موقت دې په يوم نحر پورې فَمَنْ يُدْرِكُ الْحَجَّ يُدْرِكُ الْهَدْيَ نوڅوک چې حج اوموممی هغه به هدی هم موی وَإِنَّمَا يَسْتَقِيمُ عَلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ البته داامام صاحب په قول برابر دې |
|---|

حل اللغة: ① يتوقت، توقتا: مقررول

تشريح:- امكان هذه الصورة عند ابي حنيفة ﴿صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چه د محصر بالحج په حق کي د صاحبينو په قول باندې دا ويش صحيح نه دې ځکه چې د هغوی په نيز د احصار د يوم النحر سره متعين نه ده نوڅوک چې حج رالاندي کړي هغه به هدی هم رالاندي کولای شي اودا صورت د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزصحيح کيږي. ځکه چې د دوی په نيز د محصر د هدی پاره يوم النحر شرط نه دی. بلکه چې څنگه حرم ته اورسي. نوقرباني کولې شي. نو کيداې شي چه څنگه دده هدی حرم ته رسيدلې وي. اوذبح شوې وي. خودا صورت د صاحبينو رحمهما الله په مذهب باندې نه صحيح کيږي. ځکه چې د هغوی په نيزد دم الاحصار لپاره وخت يوم النحر دې. نوچه يوکس حج لاندې کولې شي. چه رکن اعظم ئې وقوف عرفات دې. نوهدی خوبه خامخا لاندي کولې شي. ځکه چې د هدی د ذبحي وخت يوم النحردي.

| وَفِي الْمُحْصَرِ بِالْعُمْرَةِ يَسْتَقِيمُ بِالِاتِّفَاقِ لِعَدَمِ تَوَقُّتِ الدَّمِ بِيَوْمِ النَّحْرِ اود محصر بالعمره په حق کي دټولو په قول برابر دې ځکه چې دا احصار د عمرې هدی ديوم نحر سره موقت نه ده |
|---|

تشريح:- امكان هذه الصورة في العمرة اتفاقا ﴿اودا صورت په محصربالعمرة کي په اتفاق سره جوړيږي. ځکه چې د محصرمعتمرد هدی لپاره د يوم النحر تخصيص د صاحبينو رحمهما الله په نيز هم نشته. نوممکن ده. چه دا کس عمره لاندې کړې اوهدی لاندي نکړې شي. ځکه چې کيداې شي. هغه حرم ته په رسيدو سره ذبح شوې وي.

| وَجْهُ الْقِيَاسِ وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّهُ قَدَرَ عَلَى الْأَصْلِ وَهُوَ الْحَجُّ اووجه دقياس ده، اوقياس داامام زفر قول دا دې چه هغه په اصل قادر شو او اصل حج دې قَبْلَ حُصُولِ الْمَقْصُودِ بِالْبَدَلِ، وَهُوَ الْهَدْيُ دبدل يعنی هدی په ذريعه د مقصود حاصليدلو نه رومبي |
|---|

تشريح:- وجه القياس ﴿وجه دقياس کومه چې داامام زفر رحمه الله قول دې. دا ده. چه دا کس دې د حج افعال پوره کړي. اګرچه هدی نشي لاندي کولې. ځکه چې هدی بدل دې دحج نه. اودا کس قادرشو په حج باندې. اودا قانون دې چه په د يوڅيز ادا کولونه وړاندې په اصل حکم باندې قدرت حاصل شي. نوخليفه معتبرنه دې.



(لکه د تيمم په صورت کي چې وړاندې تيرشوی دی. اوس چونکه دې په اصل چې حج دې قادرشو. نويه بدل يعنی څه فائده نه ورکوی.

| وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّا لَوْ أَلْزَمْنَاهُ التَّوَجُّهَ لَضَاعَ مَالُهُ اووجه داستحسان دا ده. که موږ په ده تګ لازم کړو. نو دده مال به ضائع شي لِأَنَّ الْمَبْعُوثَ عَلَى يَدَيْهِ الْهَدْيِ يَذْبَحُهُ وَلَا يَحْصُلُ مَقْصُودُهُ ځکه چې دچا په لاس ده هدی ليږلې ده هغه به ضرور دې لره حلالوی اوده مقصد به حاصل نشي. وَحُرْمَةُ الْمَالِ كَحُرْمَةِ النَّفْسِ او دمال حرمت د نفس دحرمت پشان دې وَلَهُ الْخِيَارُ إِنْ شَاءَ صَبَرَ فِي ذَلِكَ الْمَكَانِ أَوْ فِي غَيْرِهِ لِيَذْبَحَ عَنْهُ فَيَتَحَلَّلُ اومحصر ته اختيار دې که غواړي په دې ځائي کي دې صبر اوکړي يا په بل ځائي کي چې دده دا رخه هدی ذبح کړې شي نودې به حلال شي وَإِنْ شَاءَ تَوَجَّهَ اوکه خوښه ئې شي نو قرباني دې حرم ته اوليږي لِيُؤَدِّيَ النُّسُكَ الَّذِي الْتَزَمَهُ بِالْإِحْرَامِ دې لپاره چې ادا شي احکام د حج په هغه طريقه چې دې لازم کړي وو په احرام تړلو سره |
|---|

تشريح:- وجه الاستحسان ﴿وجه د استحسان دا ده. چه دې کس چې هدی ليږلې وه. ددې لپاره چې دحج د احرام نه بدل شي. اوس چې هدی هم ذبح شي. اويه ده باندې حج کول هم لازم شي. نوهدی بې فائدې اوبې کاره شوه. اويقيني خبره ده. چه هدی يو قول مال دې. اود مال ساتنه اود ضائع کيدو نه بچ کول هم ضروری دی. نو استحسان دا وائی. چه ده ته دې په دې ږو خبروکښې اختياروركړې شي. که خوښه ئې وي. نوهم به خپل ځائي دې ايسارشي. چه دده د هدی قربانی اوشي. نوځان دې حلال کړي. اوکه خوښه ئې وي. نومکې ته دې لاړ شي. اود حج افعال دې ادا کړي.

| وَهُوَ الْأَفْضَلُ اوکه غواړي مکې ته دې لاړ شي چې دې ادا کړي هغه نسک دکوم چې په احرام سره ده التزام کړې وو. او دا غوره ده لِأَنَّهُ أَقْرَبُ إِلَى الْوَفَاءِ بِمَا وَعَدَ ځکه چې دا پوره کاوه دوعدې ته ډير نزدې ده. |
|---|

تشريح:- هم دا ورله افضل اوغوره ده. ځکه چې ده د احرام په وخت کي دا وئيلی وو. چه ﴿اللهم إني أريد الحج﴾ يعنی دحج کولووعده ئې کړې وه. نوچه دحج افعال اوکړي. دا وعدې پوره کولوته نزدې ده.

## د وقوف عرفات نه روسته احصارته اعتبارنشته

| وَمَنْ وَقَفَ بِعَرَفَةَ ثُمَّ أُحْصِرَ لَا يَكُونُ مُحْصَرًا لِوُقُوعِ الْأَمْنِ عَنِ الْفَوَاتِ چا چې وقوف دعرفې اوکړو بيا دې بندکړې شو نومحصر به نه وي. په وجه د امن واقع کيدلو د فوت کيدو دحج نه. |
|---|

حل اللغة: ① وقف، وقوفا (ض): حصاريدل ② احصر، احصارا: بندول

تشريح:- عدم اعتبار الاحصار بعد الوقوف ﴿چاچه وقوف عرفات اوکړلو. اوددې نه روسته د نورو احکامواداکولونه بندشو. نودې محصرنه دې. ځکه چې د احصارسبب د حج د فوت کيدو ويره ده. اوچه ده وقوف عرفات اوکړلو. نود حج د فوت کيدو نه په امن شو. ځکه چې نبي ﷺ فرمائيلی دی. ﴿من وقف بعرفة فقد تم حجه﴾ نوچه داحصار سبب موجود نشو. نواحصارهم موجود نشو.

الاختلاف في قدروجوب الدماء ﴿البته په ده باندې داامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزباندې څلور قربانئ واجب شو. ① د وقوف مزدلفې د پريخودو په وجه ② د جمرات د رمي پريخودو په وجه. ③ د طواف زيارت د روستو کاوه په وجه ④ د حلق د روستوکولوپه وجه، اودصاحبينو رحمهما الله په نيزد طواف زيارت اوحلق د روستوکولوپه وجه پرې څه نه واجبيږي. (يعنی د صاحبينو رحمهما الله په نيزپرې دوي [دوه] قربانئ واجب دی)

| وَمَنْ أُحْصِرَ بِمَكَّةَ وَهُوَ مَمْنُوعٌ عَنِ الطَّوَافِ وَالْوُقُوفِ فَهُوَ مُحْصَرٌ وڅوک چې په مکه کي بندکړې شو. اودې د طواف |
|---|

¹) القول الراجح هو هذا أصح الروايات عن أصحابنا كذا في الكفاية في صدر فتح القدير وعلى هامش الفتح (٥٩١٣) والدر المختار (٢٥٥١٢) نقلاً عن القول الراجح (٢٣٩١١)_

اودوقوف نه منع کړې شوې وو نودے محصر دې لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ عَلَيْهِ الْإِتْمَامُ فَصَارَ كَمَا إِذَا أُحْصِرَ فِي الْحِلِّ ځکه چې په ده پوره کول ګران شو.نوداسې شو لکه چې په حل کې بند کړې شي.

حل اللغة * ① تعذر، تعذراً: سختي، مشکل کيدل ② اتمام: پوره کول

تشريح:- کوم کس چې په حرم کې د وقوف عرفات نه بندکړې شي.نودې محصردې.ځکه چې ده لپاره دحج پوره کول متعذرشو.اودې داسې شو.لکه چې په زمين حل کې بندشي.(اوڅوک چې په زمين حل کې بند شي نو هغه محصر ګنډلې شي.دغه ډول دې هم محصر ګنډلې شي.

وَإِنْ قَدَرَ عَلَى أَحَدِهِمَا فَلَيْسَ بِمُحْصَرٍ اوکه هغه په دې کې په يو قادر شو.نوبيا محصر نه دې. أَمَّا عَلَى الطَّوَافِ فَلِأَنَّ فَائِتَ الْحَجِّ يَتَحَلَّلُ بِهِ که صرف په طواف قادر وو نوځکه چې فائت حج په طواف سره حلاليږي وَالدَّمُ بَدَلٌ عَنْهُ فِي التَّحَلُّلِ اوهدی په حلاليدو کې ددې بدل دې وَأَمَّا عَلَى الْوُقُوفِ فَلِمَا بَيَّنَّا اوکه صرف په وقوف باندې قادر وو وجه هغه ده چې موږ بيان کړې ده.

تشريح:- الاحصارعن الطواف اوالوقوف۞که دا کس په طواف زيارت او په وقوف عرفات کې په يوباندې قادر شو.نودې محصرنه دې.يعنی داسې محصرنه دې.چه هدی اوليږی.اوځان حلال کړی.① نوکه صرف په طواف زيارت باندې قادرشو.اوپه وقوف قادرنشو.تردې چې حج ترې فوت شو.نودا کس فائت الحج شو. او دې به په طواف حلاليږی.اوهدی ليږل دده لپاره بدل دې.نوچه په اصل قادرشو.بدل په خپله بيکاره شو.② اوکه په وقوف عرفات باندې قادر شو.نومحصرنشو.ځکه چې په وقوف عرفات ورته حج ملاؤ شو.اود فوت کيدو ويره پاتې نشوه.ځکه چې طواف کله غواړی.کولې شی.آخری عمره پورې ئې وخت دې.

وَقَدْ قِيلَ فِي هَذِهِ الْمَسْأَلَةِ خِلَافٌ بَيْنَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ تَعَالَى اوونيلې شوی دی چې په دې مسئله کې د امام صاحب اوامام يوسف رحمه الله په مينځ کې اختلاف دې وَالصَّحِيحُ مَا أَعْلَمْتُكَ مِنَ التَّفْصِيلِ، وَاللَّهُ تَعَالَى أَعْلَمُ اوصحيح تفصيل دغه دې په کوم چې پرې موږ ته پوهه کړې.

تشريح:- رواية اختلاف الائمة۞بعضې عالمانو رحمهم الله فرمائيلی دی.چه دا صورت د طرفينو رحمهما الله اوامام ابويوسف رحمه الله په مينځ کې اختلاف دې.يعنی چې څوک په حرم کې د وقوف عرفات اوطواف زيارت نه بندکړې شی.① نودطرفينو رحمهما الله په نزدې محصرنه دې.② اود امام ابويوسف رحمه الله په نيزمحصر دې.خوصحيح خبره دا ده.چه دا تفصيل د ټولو په نيزدې.که د طواف اووقوف دواړو نه بندشی.نومحصردې.اوکه د يونه بند شی.نومحصرنه دې.

## باب الفوات

دا باب د حج فوت کيدو په بيان کې دې.

تشريح:- الربط بماقبله۞احصارپه منزله د مفرد دې.اوفوات په منزله د مرکب دې.ځکه احصارنوم دې د احرام بغيرد ارکانو.اوفوات نوم دې د احرام اوادا کولود ارکانو.

### دقوف عرفات فوت کيدل

وَمَنْ أَحْرَمَ بِالْحَجِّ وَفَاتَهُ الْوُقُوفُ بِعَرَفَةَ حَتَّى طَلَعَ الْفَجْرُ مِنْ يَوْمِ النَّحْرِ فَقَدْ فَاتَهُ الْحَجُّ اوچا چې احرام اوتړلو دحج اوفوت شو ترې وقوف دعرفات تر دې چې ديوم نحر سهار راوختلو .نودده حج فوت شو لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّ وَقْتَ الْوُقُوفِ يَمْتَدُّ إِلَيْهِ په هغې وجه چې موږ ذکر کړې ده چې دوقوف وخت د سهار درې ختلو پورې اوږد دې. وَعَلَيْهِ أَنْ يَطُوفَ وَيَسْعَى وَيَتَحَلَّلَ وس په ده لازم دی چې طواف اوسعی اوکړی اوحلال شی وَيَقْضِي الْحَجَّ مِنْ قَابِلٍ وَلَا دَمَ عَلَيْهِ اوقضا دې راوړی دحج په راتلوونکی کال.اوپه ده دم نشته



حل اللغة * ① احرم، احراماً: احرام تړل ② فاته، فات فوتاً (ج): فوت کيدل ③ طلع، طلوعاً (ف): راختل ④ يسعى، سعياً (ف): منډې وهل، تلل، عمل کول

تشريح:- فوت الحج بفوت الوقوف۞که يوکس وقوف عرفات اونکړلو.تردې چې ديوم النحر سهار راوختلو .نودده نه حج فوت شو.ځکه چې موږ بيان کړې دی.چه د وقوف عرفات وخت د يوم النحر سهار راختو پورې دې.اوچه وقوف عرفات فوت شو.نوحج فوت شو.اوس په ده باندې لازم ده.چه عمره اوکړی.اوځان حلال کړی.اوراروان کال ته د دې حج قضا راوړی.اوپه ده باندې د کفارې په حيثيت څه دم واجب نه دې.

لقوله عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {مَنْ فَاتَهُ عَرَفَةُ بِلَيْلٍ فَقَدْ فَاتَهُ الْحَجُّ}[1] ځکه چې دنبی ﷺ ارشاد دې چې دچا نه فوت شو وقوف دشپې نودده حج فوت شو فَلْيَحِلَّ بِعُمْرَةٍ وَعَلَيْهِ الْحَجُّ مِنْ قَابِلٍ نوعمره دې اوکړی اوحلال دې شی اوپه ده په راتلوونکی کال کې حج دې. وَالْعُمْرَةُ لَيْسَتْ إِلَّا الطَّوَافَ وَالسَّعْيَ اوعمره نه ده مګر طواف اوسعی ده

تشريح:- دلائله۞ځکه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی.دچا نه چې وقوف عرفه د شپې هم فوت شو.نودده نه حج فوت شو.ده ته پکار دی.چه عمره اوکړی.اوځان حلال کړی.اوپه ده باندې د راروان کال حج فرض دې. او عمره د طواف اوسعی نوم دې.

وَلِأَنَّ الْإِحْرَامَ بَعْدَمَا انْعَقَدَ صَحِيحًا لَا طَرِيقَ لِلْخُرُوجِ عَنْهُ او ځکه چې احرام کله صحيح منعقد شی نو ددې نه دوتلو بله لار نشته إِلَّا بِأَدَاءِ أَحَدِ النُّسُكَيْنِ كَمَا فِي الْإِحْرَامِ الْمُبْهَمِ بغير د ادا کاوه ديو نسك.لکه چې احرام مبهم کې وی، وَهَاهُنَا عَجَزَ عَنِ الْحَجِّ فَتَتَعَيَّنُ عَلَيْهِ الْعُمْرَةُ اودلته هغه دحج نه عاجزه شو نوپه ده عمره متعين شوه

حل اللغة * ① تتعين، تعينا: متعين کيدل

تشريح:- دوهم دليل دا دې.چه دده احرام خوپه صحيح طريقه منعقد شوې دې. اوس دهغې نه د وتلو لپاره بله څه لار نشته.سوې ددې نه چې دې عمره اوکړی.اودهغې د افعالونه روسته ځان حلال کړی.دا حکم داسې دې.لکه چې يوکس مبهم احرام اوتړی.يعنی صرف احرام اوتړی.اوددې تعين اونکړی.چه دا د حج دې اوکه دعمرې.نوپه ده باندې د احرام نه د وتلو لپاره دوې [دوه] طريقې دی.يادا چې عمره ادا کړی.اوځان حلال کړی.اويادا چه حج اداکړی.دغه په دې صورت کې ده لره د احرام نه وتل دی.حج خوترې وقوف دفوت کيدو په وجه فوت شو.البته صرف عمره پاتې ده.نوعمره دې اوکړی.اوځان دې حلال کړی.

وَلَا دَمَ عَلَيْهِ؛ لِأَنَّ التَّحَلُّلَ وَقَعَ بِأَفْعَالِ الْعُمْرَةِ اوپه ده دم نشته ځکه چې حلاليدل دعمرې په افعالوادا کاوه سره اوشو. فَكَانَتْ فِي حَقِّ فَائِتِ الْحَجِّ بِمَنْزِلَةِ الدَّمِ فِي حَقِّ الْمُحْصَرِ فَلَا يُجْمَعُ بَيْنَهُمَا نوعمره د فائت حج په حق کې پشان د قربانۍ ده دمحصر په حق کې نو دې دواړو لره نشی جمع کولې.

تشريح:- عدم وجوب الدم۞ په ده باندې دم واجب نه دې. دليل دا دې.چه فائت الحج د عمرې افعال ادا کوی.اوځان حلالوی.نود فائت الحج لپاره عمره داسې ده. لکه څنګه چې د محصر لپاره دم دې.نودا دواړه چې عمره اودم دی.نشی جمع کولې.يعنی د حلالوالی لپاره خوپه اصل کې عمره مقرر شوې ده.خوچونکه محصرد عمرې په ادا کولوقادر نه دې.نوځکه هدی هغه لپاره د عمرې بدل شو.اوفائت الحج په عمره قادر دې.نودې به ددې په ذريعه ځان حلالوی.نوپه دې دواړو کې تبائن دې.ځکه فائت الحج په محصرباندې نشی قياس کولې.

### د عمرې لپاره وخت عدم تعين

وَالْعُمْرَةُ لَا تَفُوتُ وَهِيَ جَائِزَةٌ فِي جَمِيعِ السَّنَةِ إِلَّا خَمْسَةَ أَيَّامٍ يُكْرَهُ فِيهَا فِعْلُهَا و عمره نه فوت کيږی اودا په واړه کال کې

[1]) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه الدارقطنى فى سننه (۲/۲٤۱) رقم ۲۱)_

جائز ده علاوه د پنځو ورځو نه چې مكروه دي په دغو كښې عمره كول **وَهِيَ يَوْمُ عَرَفَةَ، وَيَوْمُ النَّحْرِ، وَأَيَّامُ التَّشْرِيقِ** او دغه يوم عرفه، يوم نحر، اويام تشريق دي

**حل اللغة:** ① سنة: كال

**تشريح:- حكم العمرة في الايام الخمسة:** عمره چونكه غيرموقته ده. يعنى ددې لپاره وخت نشته. نوځكه دا نه فوت كيږي. ① واړه كال ددې لپاره وخت دې. البته په پنځوورځوكي ددې ادا كول مكروه دي. هغه پنځه ورځې دعرفې ورځ د لوئې اختروځ اودرې ورځې د تشريق.

**لِمَا رُوِيَ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا كَانَتْ تَكْرَهُ الْعُمْرَةَ فِي هَذِهِ الْأَيَّامِ الْخَمْسَةِ** [1] ځكه چې دحضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چې په دې پنځه ورځوكي به ئې عمره مكروه كوله. **وَلِأَنَّ هَذِهِ الْأَيَّامَ أَيَّامُ الْحَجِّ فَكَانَتْ مُتَعَيِّنَةً لَهُ** اوځكه چې دا د حج ورځې دي نودحج لپاره به متعين وي

**تشريح:- دلائله:** ① دليل دحضرت عائشې رضي الله عنها حديث دې. ② او دوهم دليل دا دې. چه دا پنځه ورځودحج لپاره دي. نودا هم د حج لپاره متعين دي.

**وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ: أَنَّهَا لَا تُكْرَهُ فِي يَوْمِ عَرَفَةَ قَبْلَ الزَّوَالِ** اودامام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې چې د عرفې په ورځ د زوال نه مخكې مكروه نه ده. **لِأَنَّ دُخُولَ وَقْتِ رُكْنِ الْحَجِّ بَعْدَ الزَّوَالِ لَا قَبْلَهُ** ځكه چې د ركن دحج وخت د زوال نه روسته وى نه چې ددې وړاندې، **وَالْأَظْهَرُ مِنَ الْمَذْهَبِ مَا ذَكَرْنَاهُ** اوپه مذهب اظهر دغه ده كومه چې موږ ذكر كړه.

**تشريح:- رواية عدم الكراهة يوم عرفة قبل الزوال:** ① دامام ابويوسف رحمه الله نه د عرفې په ورځ د زوال نه وړاندې دعمرې د عدم كراهت قول هم مروى دې. ځكه چې د وقوف عرفات وخت د زوال نه روسته پيل كيږي. ② خو په ظاهرمذهب كې د عرفې په ټوله ورځ كې عمره كول مكروه ده. اوددې كراهت باوجود كه چا عمره اوكړله. نوعمره ئې صحيح كيږي. اومحرم پاته پاتې كيږي.

**وَلَكِنْ مَعَ هَذَا لَوْ أَدَّاهَا فِي هَذِهِ الْأَيَّامِ صَحَّ** خو كه سره ددې ئې اداكړه په دې ورځوكې نو صحيح به وى **وَيَبْقَى مُحْرِمًا بِهَا فِيهَا، لِأَنَّ الْكَرَاهَةَ لِغَيْرِهَا** او دې به محرم وى ځكه چې كراهت دامر غير په وجه سره دې **وَهُوَ تَعْظِيمُ أَمْرِ الْحَجِّ وَتَخْلِيصُ وَقْتِهِ لَهُ فَيَصِحُّ الشُّرُوعُ** اوهغه د امر حج تعظيم دې او وخت ورله خالص كول دى نوشروع كول به صحيح وى.

**صحة العمرة مع الكراهة:** اوكه په دې ورځوكې ئې دعمرې احرام اوتړلو. نوعمره دې نه ادا كوى. ځكه چې كراهت د عمرې په ذات كې نشته. بلكه دغيرد امله پيدا شوې دې. اوهغه غيرد حج تعظيم اود ورځې دحج لپاره خاص كول دى. نوهركله چې ذات كراهت نشته. بلكه د غيرد امله دې. نوعمره تړل په كې صحيح شو. اواحرام به پاته وى. اوكه عمره ئې ادا كړله. نوځنګه چې ئې لازمه كړې وه. هغه شان ئې ادا كړل. اګرچه كراهت په كې راغلو. لكه ځنګه چې په مكروه وخت كې دمازيګرلمونځ اوكړى. يا نفل پيل كړى اوپه مكروه وخت كې ئې پوره كړى. نوسره د كراهته صحيح شو. دغه ډول دلته عمره په دې ورځوكې سره د كراهته مكروه ده.

**عدد عمراة النبي ﷺ:** نبي كريم ﷺ ټولې څلورعمرې كړى دى. دا څلور واړه ئې دهجرت نه روسته كړى دى. اودا څلورواړه ئې د ذوالقعدې په مياشت كې كړى دى. ① عمره حديبيه كال ٦هـ ② عمره قضاء ٧هـ ③ دحجة الوداع په موقع كال ١٠هـ عمره جعرانه

[1] أخرجه البيهقي في السنن الكبرى (٥٦٥/٤) رقم (٨٧٤١)_



## دعمرې حكم

**وَالْعُمْرَةُ سُنَّةٌ** اوعمره سنت ده

**تشريح:- المذهبان في حكم العمرة:** زمونږ په نيزعمره سنت ده

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: فَرِيضَةٌ** او امام شافعى رحمه الله وائى چې فرض ده. **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {الْعُمْرَةُ فَرِيضَةٌ كَفَرِيضَةِ الْحَجِّ}** [1] ځكه چې دنبى ﷺ ارشاد دې عمره فرض ده پشان د فريضه دحج.

**تشريح:-** اودامام شافعى رحمه الله په نيزفرض ده. امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې.

**دليل الشافعي رحمه الله:** دامام شافعى رحمه الله دليل دا حديث دې. «العمرة فريضة كفريضة الحج» يعنى عمره دحج پشان فرض ده.

**وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ الْحَجُّ فَرِيضَةٌ وَالْعُمْرَةُ تَطَوُّعٌ وَلِأَنَّهَا غَيْرُ** [2] اوزموږ دليل دنبى ﷺ دا ارشاد دې چې حج فرض دې اوعمره نفل ده. **مُؤَقَّتَةٍ بِوَقْتٍ وَتَتَأَدَّى بِنِيَّةِ غَيْرِهَا كَمَا فِي فَائِتِ الْحَجِّ** ځكه چې عمره دځه وخت سره موقته نه ده. او دغه په نيت سره اداكيږي لكه په فائت حج كې چې ده **وَهَذِهِ أَمَارَةُ النَّفْلِيَّةِ** اودا د نفل كيدو نښانه ده

**حل اللغة:** ① امارة: نښانه علامت

**تشريح:- دلائل الاحناف رحمهم الله:** ① اوزمونږدليل دا حديث دې. «الحج فريضة والعمرة تطوع» ② دوهم دليل دا دې. چه دعمرې لپاره وخت مقرر نه دې. په واړه كال كې كيږي. اودغه ډول د بل په نيت هم كيږي. لكه د كوم كس نه چې حج فوت شي. نوده نيت كړې وى. د حج خوځان حلالوى د عمرې په افعالوسره، اوچه د كوم شى لپاره وخت مقرر نه وى. اودبل په نيت سره هم ادا كيږي. نودا د نفل نښانه شوه. نومعلومه شوه. چه عمره نفل ده.

**وَتَأْوِيلُ مَا رَوَاهُ أَنَّهَا مُقَدَّرَةٌ بِأَعْمَالٍ كَالْحَجِّ** اوامام شافعى رحمه الله چې كوم روايت كړې دې دهغې تاويل دادې چې عمره مقدرده په اعمالو لكه حج **إِذْ لَا تَثْبُتُ الْفَرْضِيَّةُ مَعَ التَّعَارُضِ فِي الْآثَارِ** ځكه چې په آثاروكې د تعارض په وجه فرضيت نه ثابتيږي **قَالَ وَهِيَ الطَّوَافُ وَالسَّعْيُ وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي بَابِ التَّمَتُّعِ** او عمره صرف طواف او سعى ده. اوموږ دې لره په باب تمتع كې ذكر كړې ده.

**حل اللغة:** ① لاتثبت، ثبت ثبوتا (ن): ثابتيدل

**تشريح:- الجوابان عن مستدل الشافعي رحمه الله:** ① اوامام شافعى رحمه الله چه كوم حديث ذكركړې دې. چه «العمرة فريضة» نوددې مطلب دا دې. چه دعمرې لپاره افعال مقرر دي. لكه ځنګه چې د حج لپاره خپل مخصوص افعال مقرر دى. ② دويمه خبره دا ده. چه د عمرې په فرضيت اوعدم فرضيت كې آثارمتعارض دى. نوچه تعارض موجود شو. فرضيت نشى ثابت كيدې. ماتن اوفرمائيل. چه عمره دطواف اوسعى نوم دې. لكه ځنګه چې د باب التمتع نه معلومه شوي ده. والله اعلم بالصواب

[1] غربه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل عن زيد بن ثابت رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ إن الحج والعمرة فريضتان لا يضرك بأيهما بدأت أخرجه الحاكم في المستدرك (٤٨١/١)_

[2] غربه الزيلعي رحمه الله رفعه وعزاه موقوفاً على ابن مسعود رضي الله عنه إلى مصنف ابن أبي شيبة وأخرجه ابن ماجه في سننه في المناسك باب ٤٤ رقم ٢٩٨٩ برواية طلحة بن عبيدالله رضي الله عنه أنه سمع رسول الله ﷺ يقول الحج جهاد والعمرة تطوع )

## باب الحج عن الغير

دا باب د بل چانه د حج کولو په بیان کي دي.

**تشریح:-** مصنف رحمه الله په خپله د حج دافعالو کولو د احکامونه فارغ شو. اوس په دې باب کې د نیابت په طور د حج احکام بیانوی.

### دخپل عمل ثواب بل ته ببنل

**الأَصْلُ فِي هَذَا الْبَابِ أَنَّ الْإِنْسَانَ لَهُ أَنْ يَجْعَلَ ثَوَابَ عَمَلِهِ لِغَيْرِهِ** اصل په دې باب کې دادې چې انسان مختار دی چې دخپل عمل ثواب دغیر لپاره کړی. **صَلَاةً أَوْ صَوْمًا أَوْ صَدَقَةً أَوْ غَيْرَهَا عِنْدَ أَهْلِ السُّنَّةِ وَالْجَمَاعَةِ** لمونځ وی اوکه روژه اوکه صدقه وی اوکه غیر ددې نه. داهل سنت والجماعت په نزد

**حل اللغة:** ① ان يجعل، جعل جعلاً (ف): کول، جوړول

**تشریح: جعل ثواب عمله للغير** که یوکس دخپل عمل ثواب چا ته رسول غواړی. نو داهل سنت والجماعت په نیزبل ته خپل ثواب رسولې اوببنلې شي. اوهغه ته ئې ثواب رسي.

**لِمَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَنَّهُ ضَحَّى بِكَبْشَيْنِ أَمْلَحَيْنِ أَحَدُهُمَا عَنْ نَفْسِهِ وَالْآخَرُ عَنْ أُمَّتِهِ مِمَّنْ أَقَرَّ بِوَحْدَانِيَّةِ اللَّهِ تَعَالَى وَشَهِدَ لَهُ بِالْبَلَاغِ** [1] ځکه چې روایت دې چې نبی ﷺ دسپین اوتور رنګ دوې [دوه] ګډان قربانی کړل یو دخپل ارخ نه اوبل دخپل امت د ارخ نه کوم چې دالله ﷻ په وحدانیت او ددوی په پیغام رسانۍ ګواهی ورکړې وی. **جَعَلَ تَضْحِيَةَ إِحْدَى الشَّاتَيْنِ لِأُمَّتِهِ** نو دوی یو ګډ دخپل امت لپاره کړو.

**حل اللغة:** ① ضحی، تضحية: قربانی کول ② كبشين املحين: دوې [دوه] سپین اودوې [دوه] تورګډان ③ اقر، اقراراً: اقرارکول

**تشریح:- دلائل اهل السنة والجماعة** داهل سنت والجماعت دلیل دا دې. چه نبی ﷺ دوې [دوه] ګډان قربانی کړل. چه رنګ ئې سپین اوتور وو. په هغې کې ئې په خپل امت کې د هغه چا د ارخه قربانی کړلو. څوک چې دالله تعالی په وحدانیت اود نبی ﷺ په رسالت باندې اقرار کوی. ګورئ نبی ﷺ دیوګډ د قربانۍ ثواب خپل امت ته اوببنل. که چرته ثواب ببنل جائزنه وو. نونبی ﷺ به ولې کولو. ② دوهم دلیل دحضرت انس ﷺ حدیث دې. فرمائی. چه ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړلو. اې دالله پیغمبره! که د خپلو مړود ارخه صدقه ورکوو. او د هغوی د ارخه حج کوو. اودهغوی لپاره دعا کوو. نوددې ثواب هغوی ته رسی. نبی ﷺ اوفرمائیل. آوبلکه هغوی په دې باندې داسې خوشحالیږی. لکه څنګه چې په تاسوکې یوکس دهدیه خوانچه راوړی. او خوشحالیږی. ددې نه هم د ایصال ثواب ثبوت ملاویږی. ③ اوپه قرآن پاک کې د مسلمانانو لپاره د فرښتو استغفار ذکر دې. فرمائی [وَيَسْتَغْفِرُونَ لِلَّذِينَ آمَنُوا رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَيْءٍ رَحْمَةً وَعِلْمًا فَاغْفِرْ لِلَّذِينَ تَابُوا وَاتَّبَعُوا سَبِيلَكَ وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ] او [وَقُلْ رَبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيَانِي صَغِيرًا] ددې آیاتونونه معلومیږی. چه دبل په دعا او استغفار سره سړی ته فائده رسی.

**مذهب المعتزلة** په زیربحث مسئله کې معتزله وائی. چه بل ته دخپل عمل ثواب نشی ببنلې. اودا جائزنه دی.

**دلائلهم** ① دمعتزلو دلیل دالله تعالی ارشاد دې [وَأَنْ لَيْسَ لِلْإِنْسَانِ إِلَّا مَا سَعَى] چې انسان ته صرف دهغه څه بدله ملاویږی. کوم چې ده کړې وی. اوښکاره ده. چه کوم عمل بل کس کړې وی. دهغې ثواب به ده ته څنګه ملاؤ شی. ② دوهم دلیل دا دې چه ثواب نوم دې د جنت. اود چا په اختیارکې دا نشته. چه دې بل څوک دجنت

---

[1] من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه ابن ابي شيبة في سننه في الأضاحي باب ١ رقم (٣١٢٢)۔



مالك جوړ کړی. ځکه چې دې په خپله دجنت مالك نه دې. ددې نه معلومه شوه. چه انسان دخپل عمل ثواب بل ته نشی ببنلې.

**الجوابان عن دليل المعتزلة** ① زمونږ د ارخه د معتزلو د آیت نه ځواب دا دې. چه هرکله یوکس خپله سعی د بل لپاره اوګرځوله. نواوس دا سعی دهغه شوه. اودې د دې خبرې اختیارمند هم دې. چه خپله سعی دبل لپاره اوګرځی. اوجنت کې خپل استحقاق دبل لپاره اوګرځوی. په دې تاویل سره دا آیت د معتزلو مستدل پاتې نشو. ② دوهم ځواب دا دې. چه په آیت کې سعی ایمانی مراد ده. یعنی دیوکس ایمان د بل چا لپاره ګټور نه دې.

**الاستدلال بجواز النيابة في الحج** بهرحال هرکله چې د اهل سنت والجماعت په نیزیوکس دخپل عمل ثواب د بل لپاره کولې شي. نوددې نه دا هم معلومه شوه. چه یوکس دبل نه حج کولې شي. خوپه دې شرط چې ماموردا ثواب دآمر لپاره ګرځولې وی. پاتې شوه دا خبره چې نفس حج به د امر لپاره واقع کیږی که د مامور دپاره. ددې تفصیل به روستو ذکرکولې شي.

**وَالْعِبَادَاتُ أَنْوَاعٌ** او عبادتونه په څوقسمه دی. **مَالِيَّةٌ مَحْضَةٌ كَالزَّكَاةِ، وَبَدَنِيَّةٌ مَحْضَةٌ كَالصَّلَاةِ وَمُرَكَّبَةٌ مِنْهُمَا كَالْحَجِّ** یو محض مالی لکه زکاة یو محض بدنی لکه لمونځ او دریم ددې دواړونه مرکب لکه حج.

**حل اللغة:** ① انواع: قسمونه

**تشریح:- الاقسام الثلاثة للعبادة** صاحب دهدایه ددې مسئلې د تفصیل لپاره فرمائی. چه عبادات په درې قسمه دی. ① صرف مالی لکه زکاة ② صرف بدنی لکه لمونځ ③ اوددې دواړو نه مرکب لکه حج، په دې کې مال هم خرچ کیږی. اوبدن په کې مشقت هم برداشت کوی.

**وَالنِّيَابَةُ تَجْرِي فِي النَّوْعِ الْأَوَّلِ فِي حَالَتَيِ الِاخْتِيَارِ وَالضَّرُورَةِ** او نیابت چلیږی په اول ډول کې په حالت د اختیار او اضطرار دواړو حالتونوکې

**حل اللغة:** ① لاتجري، اجرى جرياً (ض): جاري کیدل

**تشریح:- النيابة في القسم الاول** د دې درې قسمونونه په اولنی ډول یعنی عبادتی مالی محضه. په دې کې نیابت صحیح کیږی. برابره که په حالت داختیارکې وی اوکه اضطراری یعنی غیراختیاری حالت وی. ځکه چې ددې نه مقصود دفقیرانو حاجت پوره کول دی. اودا لکه څنګه چې په خپله ورکولوسره حاصلیږی. دغه ډول د وکیل په ذریعه ورکولوسره هم حاصلیږی.

**لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ بِفِعْلِ النَّائِبِ، وَلَا تَجْرِي فِي النَّوْعِ الثَّانِي بِحَالٍ** د امله د حصول دمقصود نه په فعل د نائب سره اونه جاری کیږی په دوهم ډول کې په هیڅ **لِأَنَّ الْمَقْصُودَ وَهُوَ إِتْعَابُ النَّفْسِ لَا يَحْصُلُ بِهِ** ځکه چې مقصود کوم چې نفس ستړې کول دی په دې نه حاصلیږی. **وَتَجْرِي فِي النَّوْعِ الثَّالِثِ عِنْدَ الْعَجْزِ لِلْمَعْنَى الثَّانِي** او په دریم ډول کې جاری کیږی په حالت دعجز د معنی دویمې په امله سره **وَهُوَ الْمَشَقَّةُ بِتَنْقِيصِ الْمَالِ** اوهغه مشقت پورته کول دی په کموالی دمال سره

**تشریح:- النيابة في القسم الثاني** اوپه دوهم ډول یعنی عبادت بدنی محضه په دې کې په هیڅ صورت کې نیابت نه صحیح کیږی. که حالت اختیاری وی اوکه اضطراری. ځکه چې دعبادت بدنی نه مقصود خپل نفس ستړې کول اومجاهده کول دی. اوښکاره خبره ده. چه دبل په عبادت سره سړې په خپله نه ستړې کیږی. اودې مشقت نه برداشت کوی. نوځکه په دې ډول کې نیابت جائزنه دې.

**وَلَا تَجْرِي عِنْدَ الْقُدْرَةِ** اونه جاری کیږی په وخت دقدرت کښې **لِعَدَمِ إِتْعَابِ النَّفْسِ، وَالشَّرْطُ الْعَجْزُ الدَّائِمُ إِلَى وَقْتِ الْمَوْتِ** ستړې کاوه د نفس سره اوشرط د عجز برابر پاتې کیدل دی تر مرګه پورې **لِأَنَّ الْحَجَّ فَرْضُ الْعُمُرِ** ځکه چې حج فریضه دعمر ده

**تشريح:- النيابة في القسم الثالث**۞اوپه دريم ډول کي يعني حج کي چونکه دواړه قسمه عبادتونه جمع دي. مالي اوبدني. د مالي تقاضا دا ده. چه په حج کي نيابت جائزشي. اود بدني تقاضا دا ده. چه نيابت جائز نشي. نو مونږ په دواړوتقاضا باندې په جلا جلا محل کي عمل کوو. که پخپله د حج په ادا کاوه باندې قدرت وي. نو نيابت جائزنه دي. ځکه چې حج من وجه بدني عبادت دې. اوپه بدني عبادت کي خپل ځان ستړي کول اوځان په مشقت کي اچول وي. اودا خبره په نيابت سره نه حاصليږي. اوکه په خپله قدرت نه لري. نوچونکه حج من وجه مالي عبادت دې. نودبل په نيابت سره به حج جائزشي. ځکه چې په مالي عبادت کي نيابت صحيح کيږي.

**وَفِي الْحَجِّ النَّفْلِ تَجُوزُ الْإِنَابَةُ حَالَةَ الْقُدْرَةِ** او په نفلي حج کښې نائب جوړول جائز دي په حالت دقدرت کي. **لِأَنَّ بَابَ النَّفْلِ أَوْسَعُ** ځکه چې په باب دنفل کي فراخوالي زيات دي.

**تشريح:- شرطية العجز الى الموت**۞صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چه په حج کي د نيابت لپاره دا شرط دې چه عجزترمرګه پورې قائم وي. يعني داسې عجزوي. هغه ترمرګه پورې نه ختميږي. نوهله نيابت په حج کي جائزدې. ځکه چې حج داسې عبادت دې. چه واړه عمر ددې وخت دې. که په آخري عمرکي ئې اوکړي. نوهم ادا دې. قضا نه دې.

**ثُمَّ ظَاهِرُ الْمَذْهَبِ أَنَّ الْحَجَّ يَقَعُ عَنِ الْمَحْجُوجِ عَنْهُ** بيا ظاهرمذهب دا دې چې حج به دهغه د اړخ نه واقع کيږي چې چاد اړخ نه شوې دې

**تشريح:- جوازالنيابة في الحج التطوع مع القدرة**۞البته په نفلي حج کي سره د قدرت نه نيابت جائزدې. يعني چې يوکس فرض حج کړې وي. اود نفلي حج لپاره بل څوك خپل نائب جوړوي. نودا جائزده. ځکه چې د نوافلو بناء په تخفيف ده. ګورئ نه چې په نفلوکي که په قيام قادر وي. اوبيا هم په ناسته لمونځ کوي. نو جائزدې. نودغه ډول په نفلي حج کي سره د قدرته نيابت جائزدې.

**وَبِذَلِكَ تَشْهَدُ الْأَخْبَارُ الْوَارِدَةُ فِي الْبَابِ** او په دې باب کي وارد شوي دي احاديث هم ددې شاهد دي **كَحَدِيثِ الْخَثْعَمِيَّةِ فَإِنَّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِيهِ حُجِّي عَنْ أَبِيكِ وَاعْتَمِرِي** لکه حديث دخثعميعه چې حضور ﷺ دې ته فرمانيلي وو چې دپلار د اړخ نه حج اوعمره اوکړه

**تشريح:- وقوع الحج عن الامردون المامور**۞پاتې شوه دا خبره چې نفس حج به دچا لپاره واقع کيږي. دامر لپاره که دمامور د اړخه. وړاندې ئې چونکه ددې مسئلې بيانولووعده کړې وه. نواوس هغه وعده پوره کوي. اوفرمائي. چه ظاهرمذهب دا دې. چه دده حج د هغه چا د اړخه واقع کيږي. چاچه ورته امرکړې وي. يعني آمر، دمامورد اړخه نه واقع کيږي.

**وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ: أَنَّ الْحَجَّ يَقَعُ عَنِ الْحَاجِّ، وَلِلْآمِرِ ثَوَابُ النَّفَقَةِ** اود امام محمد صاحب نه روايت دې چې حج خويه دحج کوونکي د اړخ نه واقع شي او آمر ته به دنفقې ثواب ملاويږي **لِأَنَّهُ عِبَادَةٌ بَدَنِيَّةٌ وَعِنْدَ الْعَجْزِ أُقِيمَ الْإِنْفَاقُ مُقَامَهُ** ځکه چې حج بدني عبادت دې اودعجز په وخت کي خرچ کول ددې قائمقام کړې شو

**تشريح:- دليله**۞دليل دحضرت خثعميه رضي الله عنها حديث دې. ځکه چې دې ښځې د نبي ﷺ نه پوښتنه اوکړه چه يارسول الله ﷺ زما پلار بوډا دې. په خپله دحج کولوقدرت نه لري. آياماته دا اجازت شته. چه زه دهغه د اړخه حج اوکړم؟ نبي ﷺ ورته اوفرمائيل. آو. ته دهغه د اړخه حج اوکړه. اوعمره اوکړه.

**كَالْفِدْيَةِ فِي بَابِ الصَّوْمِ** لکه په باب د روژې کي چې فديه ده.

**تشريح:- رواية وقوع الحج عن المامور**۞امام محمد رحمه الله فرمائي. چه حج د مامورد اړخه واقع کيږي. اوامرته د هغه د خرچې ثواب ملاويږي. ځکه چې د صحيح قول مطابق حج عبادت بدني دې. لکه چې په اول باب کي تيرشوي دي. اومال په وخت دعجزکي د عبادت قائم مقام ګرځي.



**نظيره**۞لکه په روژه کي چې د فديه مسئله ده. يعني په اصل کي خو روژه فرض ده. خوچه يوکس د روژې نيولونه هميشه لپاره عاجز شي. لکه شيخ فاني. نودده لپاره فديه ورکول جائزدي. اوښکاره خبره ده. چې دده ته د فديه ثواب ملاويږي. د روژې ثواب ورته نه ملاويږي. دغه ډول به آمرته دمال ثواب ملاويږي. د حج ثواب نه ملاويږي.

## د دووکسانود حج دنيابت ذمه وارې اخستل اود يوحج لپاره احرام تړل

**قَالَ: وَمَنْ أَمَرَهُ رَجُلَانِ بِأَنْ يَحُجَّ عَنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حَجَّةً فَأَهَلَّ بِحَجَّةٍ عَنْهُمَا** يوسړي ته ددو سړونه هر يو دا حکم اوکړو چې ځما د اړخ نه حج اوکړه ده دحج تلبيه اووئيله د دواړودا ړخه **فَهِيَ عَنِ الْحَاجِّ وَيَضْمَنُ النَّفَقَةَ** نودابه ددې حاجي د اړخ نه وي او د نفقې ضامن به وي. **لِأَنَّ الْحَجَّ يَقَعُ عَنِ الْآمِرِ** ځکه چې حج خو د آمر د اړخ نه نۀ واقع کيږي. **حَتَّى لَا يَخْرُجَ الْحَاجُّ عَنْ حَجَّةِ الْإِسْلَامِ** تردې چې دا حاجي دحج دفريضې نه نه فارغيږي. **وَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَمَرَهُ أَنْ يُخْلِصَ الْحَجَّ لَهُ مِنْ غَيْرِ اشْتِرَاكٍ** اوپدوی کي هريو خالص دځان لپاره د حج حکم کړې دې بغير داشتراك نه، **وَلَا يُمْكِنُ إِيقَاعُهُ عَنْ أَحَدِهِمَا لِعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ** اودغه د يو د اړخ نه نشي مقرركيدې. دعدم اولويت په وجه، **فَيَقَعُ عَنِ الْمَأْمُورِ، وَلَا يُمْكِنُهُ أَنْ يَجْعَلَهُ عَنْ أَحَدِهِمَا بَعْدَ ذَلِكَ** نود نائب د اړخ څخه به واقع شي اودې ئې روستو هم د يو اړخه نشي ګرځولې. **بِخِلَافِ مَا إِذَا حَجَّ عَنْ أَبَوَيْهِ فَإِنَّ لَهُ أَنْ يَجْعَلَهُ عَنْ أَيِّهِمَا شَاءَ** په خلاف د هغه صورت چې څوك دمور پلار دا ړخه حج اوکړي چې په دوی کي د يو د اړخه ئې مقرر کولای شي **لِأَنَّهُ مُتَبَرِّعٌ بِجَعْلِ ثَوَابِ عَمَلِهِ لِأَحَدِهِمَا أَوْ لَهُمَا** ځکه چې دې په دوی کي د يو لپاره يا ددواړو لپاره دخپل عمل دثواب په ور کاوه کښې متبرع دې **فَيَبْقَى عَلَى خِيَارِهِ بَعْدَ وُقُوعِهِ سَبَبًا لِلثَّوَابِ** نو دې ته اختيار دې، نودې د حج سبب ثواب واقع کيدونه روسته اختيارمند دې. **وَهُنَا يَفْعَلُ بِحُكْمِ الْآمِرِ** او دلته به د آمر په حکم باندې کارکوی. **وَقَدْ خَالَفَ أَمْرَهُمَا فَيَقَعُ عَنْهُ** حالانکه ده دهغوی د حکم نه خلاف کړې دې. نودده دا ړخه به واقع کيږي.

**حل اللغة:** ① **امره،امر امراً** (ن): حکم کول ② **يقع وقوعاً** (ن): واقع کيدل ③ **ايقاع**: واقع کيدل ④ **خالف، مخالفة**: مخالفت کول

**تشريح:- وقوع الحج عن الوكيل والضمان عليه للموكلان**۞مسئله داده. چه يوکس ته دوو کسانود خپل اړخ نه دحج ادا کولوحکم اوکړلو. چه ته زمونږ دواړو د اړخه حج اوکړه. اودې کس ديوحج لپاره احرام اوتړل. يعني دا تعين ئې په کښې اونکړلو. چه دا حج زه دچا لپاره کوم. نوپه دې صورت کي د وکيل حج دخپل ځان دا ړخه شو. اود دواړو موکلانو لپاره د هغه خرچ ضامن شو. کومه خرچه چې ورته هغوی ورکړې وی.

**عدم المطابقة بين الدليل والمدلول**۞صاحب دهدايه رحمه الله چه ددې مسئلې لپاره کوم دليل بيان کړې دې. په ظاهره په دليل اومدلول کي مطابقت نه ښکاري. ځکه چې مدلول دا دې. چه حج د غني وکيل د اړخه واقع کيږي. اودموکل لپاره به دې د خرچې ضامن وي. اوپه دليل کي دا وائي. چه حج د آمريعني موکل لپاره واقع کيږي. اوښکاره خبره ده. چه په دې دواړو کي څه مطابقت نشته.

**تطبيق صاحب النهاية**۞صاحب دنهايه رحمه الله فرمائي. چه د صاحب هدايه دليل دهغه حکم لپاره دې. کوم چې په کتاب کي ذکرنه دې. نوتقديرد عبارت دا دې. چه حاجي د دواړو امرکونکو موکلانو لپاره دخرچې ضامن کيږي. ځکه چې د دواړو دحکم مخالفت اوکړلو. اوکه امرکونکي يعني موکل دحکم تابعداري ئې اوکړله. نود خرچې نه ضامن کيږي. ځکه چې په دغه وخت کي حج هم د آمريعني موکل لپاره واقع کيږي. اووکيل حاجي به د فرض نه فارغ الذمه نه وي. اودلته صورت دا دې. چه ده د آمرمخالفت کړې دې. نوحج به د آمر لپاره نه واقع کيږي. بلکه د دماموريعني وکيل لپاره واقع کيږي.

**توضيح التطبيق**۞دصاحب عنايه رحمه الله د تطبيق لنډيز دا ده. چه هم دا حج په يوحيثيت د دوو امروکونکو موکلانو لپاره واقع کيږي. اوپه يوحيثيت د ماموريعني وکيل لپاره واقع کيږي. د لومړئ خبرې دليل دا

دي.چه دواړه امركونكو ته ده دا حكم كړي وو.چه ته زما د اړخه داسې حج اوكړه.چه بل څوك په كي شريك نه وي.هر كله چي ده يوحج د دواړو د اړخه اوكړلو.نوده د هغوى د حكم مخالفت اوكړلو.ځكه چې هغوى ورته د مستقل اوجدا حج حكم كړي وو.چه شريك په كي نه وي.اوده دواړه په يوحج كي شريكان كړل.نود هغوى دمخالفت د امله حج په هغوى كي د يوداړخه هم نه واقع كيږي.بلكه د وكيل حاجى لپاره واقع كيږي.اوداسې هم نشي كيدې.چه حج په دواړو امركونكو كي ديو لپاره واقع شي.ځكه چې هغه دواړه په حج كي د وكالت په حكم كي برابردي.يوته هم وجه د ترجيح نه ده حاصله.نوكه دا حج د يو لپاره اوګرځولې شي.نودا ترجيح بلا مرجح شوه.اودا ناجائزده.اوس هر كله چې حج د وكيل لپاره واقع شو.نودغه دواړو امركونكوچه ده ته د حج لپاره كومه خرچه وركړي وى.دا وكيل به دهغې ضامن وى.

**السوال**۞اوكه څوك دا اووائى.چه په دې صورت كي دې حج د وكيل لپاره واقع شي.اوبيا دې روستوبه دغه دواړه حكم كونكوكي د يو لپاره اوګرځوى.لكه څنګه چې يوكس د مورپلار دواړو داړخه حج اوكړي اوبيا روستوهغه په دواړوكي د يو لپاره اوګرځوى.نوجائزده.دغه ډول پكارده.چه دلته هم جائزشي.

**الجواب**۞ددې ځواب دا دې.چه دمورپلارد اړخه حج كولوكښي حاجى متبرع دې.نه ورته مورپلارحكم كړي دې.اونه ئې ورته خرچه وركړې ده.نوچه هغه حج اوكړلو.اوكوم ثواب په حج باندې مرتب دى.هغه ددې اختيارمند دې.چه دغه حج دچا لپاره ګرځوى.ګرځولې شى.اوپه موجوده مسئله كي ده ته د موكل د اړخه حكم هم شوې دې.اوخرچه هم ملاؤ شوې ده.نودا صورت د والدينود اړخه په حج كولونشى قياس كولې.

**دليل الصورة الثانية**۞اود دوهم صورت دليل يعنى چې حج د آمر لپاره واقع شى.دا دې.كه دا حاجى په دې حج كي دا نيت اوكړى.چه داحج زه دخپل ځان لپاره د فرض حج په طور ادا كوم.نودده غاړه نه فارغيږى.ددې نه معلومه شوه.چه دا حج دمامور لپاره نه بلكه د آمر لپاره شو.

## په وكيل باندې د موكل ضمان

| |
|---|
| وَيَضْمَنُ النَّفَقَةَ إِنْ أَنْفَقَ مِنْ مَالِهِمَا اود نفقې به ضامن وى كه د دوى دمال نه ئې څه خرچ كړى وى لِأَنَّهُ صَرَفَ نَفَقَةَ الْآمِرِ إِلَى حَجِّ نَفْسِهِ ځكه چې ده د آمر نفقه پخپل حج كي صرف كړه |

**حل اللغة**:① يضمن، ضمناً (س): ضامن كيدل ② انفق، انفاقاً: خرچ كول ]

**تشريح**:- مسئله واضحه ده.

## د غيرمعين لپاره احرام تړل

| |
|---|
| وَإِنْ أَبْهَمَ الْإِحْرَامَ بِأَنْ نَوَى عَنْ أَحَدِهِمَا غَيْرَ عَيْنٍ اوكه احرام ئې مبهم كړ ي وو په دې طريقه چې معين كاوه نه بغير ئې دوى لپاره نيت اوكړو فَإِنْ مَضَى عَلَى ذَلِكَ صَارَ مُخَالِفًا لِعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ نوكه دې په دې لاړو بيا هم مخالف شو د عدم اولويت په وجې، |

**حل اللغة**:①ابهم، ابهاماً: مبهم ساتل ②نوى،نية (ض): نيت كول ③مضى: تيريدل

**تشريح**:- **الصورة الاولى عدم وقوع الحج عن الامر**۞مسئله،په ذكرشوى (تړلى) صورت كي كه وكيل بغيرد تعين نه احرام اوتړلو.يعنى دا ئې اونه وئيل.چه دا احرام دفلانى موكل لپاره تړل.بلكه په دواړوكي ديو لپاره احرام اوتړى.نواوس دوې [دوه] صورتونه دى.يودا چې د حج افعال پوره كړى.اوبيا دهغه خپل ادا كړې حج په دواړوكي د يو لپاره ګرځوى.نوپه دې صورت كي هم د موكل لپاره نه واقع كيږى.ځكه چې ده په هغه طريقه دهغه لپاره حج ادا نكړلو.څنګه چې ورته هغه وئيلى وو.بلكه حج هم د وكيل لپاره واقع شو. اوپه ده د موكل ضمان دي.

| |
|---|
| وَإِنْ عَيَّنَ أَحَدَهُمَا قَبْلَ الْمُضِيِّ فَكَذَلِكَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ وَهُوَ الْقِيَاسُ اوكه دافعالو كولونه مخكي ئې يو معين كړو نوبياهم داامام ابويوسف په نزد داسې ده اوقياس هم دادې. |



**تشريح**:- **المذهبان في وقوع الحج عن الامر**۞او دوهم صورت دا دې.چه احرام خومبهم اوتړى.ديو لپاره متعين نكړى.خود احرام تړلونه روسته ئې د يو لپاره اوګرځوى.نوپه دې صورت كي هم د امام ابويوسف رحمه الله په نيزحج د وكيل لپاره واقع كيږى دموكل لپاره نه.اوقياس هم دا دې.خود استحسان د امله تعين صحيح دې.اودا د طرفينو رحمهما الله قول دې.

| |
|---|
| لِأَنَّهُ مَأْمُورٌ بِالتَّعْيِينِ، وَالْإِبْهَامُ يُخَالِفُهُ فَيَقَعُ عَنْ نَفْسِهِ ځكه چې دې په معين كاوه مامور دې او ابهام ددې خلاف دې حج به دده داړخه واقع شي |

**تشريح**:- **وجه القياس**۞د قياس وجه دا ده.چه آمرده ته د ابتداء نه د خپل اړخه دحج كولوحكم كړي وو.اوده په ابتداء كي احرام مبهم پريښولو .نوهغه چې ورته څنګه حكم كړې وو.هغه شان ئې اونكړلو.بلكه دهغه مخالفت ئې اوكړلو.اود مخالفت په صورت كي حج دوكيل لپاره واقع كيږى.اوپه ده د موكل لپاره ضمان واجبيږى.نوپه دې صورت كي به هم حج د وكيل داړخه واقع كيږى.

**نظيره**۞لكه څنګه چې دوې [دوه] نفر يوكس دغلام اخستلو لپاره وكيل مقرر كړى.اوهغه بغيرد تعين نه يوغلام واخلى.اود اخستلونه روسته د يو لپاره دغه غلام متعين كړى.نوپه دې صورت كي دا تعين نه صحيح كيږى.بلكه غلام د وكيل پاره شو.دغه ډول دلته هم د ابهام نه روسته تعين نه صحيح كيږى.

| |
|---|
| بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يُعَيِّنْ حَجَّةً أَوْ عُمْرَةً حَيْثُ إِنَّ لَهُ أَنْ يُعَيِّنَ مَا شَاءَ په خلاف د هغې صورت چې كله ده حج يا عمره معينه نكړه چې ده ته اختيار دې چې څه غواړى او هغه معين كړى لِأَنَّ الْمُلْتَزَمَ هُنَاكَ مَجْهُولٌ وَهَاهُنَا الْمَجْهُولُ مَنْ لَهُ الْحَقُّ ځكه چې هلته ملتزم مجهول دې او دلته حقدار مجهول دې |

**تشريح**:- **السوال**۞كه دا سوال اوشى.كه يوكس د حج يا عمرې دتعين نه بغيراحرام اوتړى.اود افعالو پيل كاوه نه وړاندې د يو لپاره احرام متعين كړى.نوپه دې صورت كي دده تعين صحيح كيږى.نوپكاردا ده. چې د وكالت په صورت كي هم تعين صحيح شي.

**الجواب**۞ددې ځواب دا دې.چه په دې صورت كي چې دې دوو موكلانود خپل اړخه د حج كولووكيل جوړ كړى.نوهريوآمرده ته دا حكم كوى.چه ته مستقل زما لپاره دحج احرام اوتړه.خوهر كله چې ده مبهم احرام اوتړلو.نود آمرانود حكم مخالفت ئې اوكړلو.اګرچه روستوئې بيا د يو لپاره اوګرځوى.ځكه چې هغوى خو ورته د اول نه د خپل اړخه د احرام حكم كړې وو.اودمخالفت په صورت كي حج د وكيل لپاره واقع كيږى.پاتې شوهغه صورت چې دحج اوعمرې لپاره تعين د احرام نه روسته اوكړى.اوتعين ئې صحيح كيږى.ځكه چې په هغه صورت كي هغه ته د چا داړخه حكم نه دې شوې.چه دهغه مخالفت لازم شى. او تعين صحيح نشى.بلكه د مبهم احرام تړلونه روسته هغه چې كوم مبهم احرام په ځان لازم كړې وو.د هغې بيان ئې اوكړلو.لكه چې زيد په خپل ځان باندې د بكر لپاره د څه مال اقرار اوكړى.خود هغې تعين اونكړى. نوپه دې صورت كي اقرار صحيح دې.اود مقربه بيان سره به د مقدار جهالت ختم شى.اود موكل په صورت كي چې وكيل مبهم احرام اوتړى.نوهغه كس مجهول دې.دكوم چې حق دې.لكه چې زيد په خپل ځان باندې د يوزر روپو اقرار اوكړى.خوحقدار اونه ښائى.نودده اقرار صحيح نه دې.ځكه چې دچا حق دې.هغه مجهول دې.چه دا توپير موجود وى.نود قياس كول صحيح نشو.

| |
|---|
| وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ الْإِحْرَامَ شُرِعَ وَسِيلَةً إِلَى الْأَفْعَالِ لَا مَقْصُودًا بِنَفْسِهِ وجه د استحسان داده چې احرام خود ادائيګۍ دافعالو لپاره وسيله مشروع شوې ده نه چې مقصود بذاته دې. وَالْمُبْهَمُ يَصْلُحُ وَسِيلَةً بِوَاسِطَةِ التَّعْيِينِ اومبهم په د تعين په ذريعه وسيله كيداې شى. نوپه شرط كيدو كي په دې اكتفاء اوكړې شوه |

**تشريح**:- **وجه الاستحسان**۞وجه د استحسان دا ده.چه احرام مقصود نه دې.بلكه د افعالو ادا كاوه لپاره ذريعه اووسيله ده.نوپه شرطيت كي په مبهم احرام اكتفا اوكړې شوه.ځكه چې شرط څنګه موجود شى.كافى

كيږي.لكه د لمانځه لپاره اودس شرط دي.اوس چې يوكس د يخوالي حاصلولو لپاره د اودس اندامونه اووينځي.اودلمونځ ادا كولواراده ئې نه وي.خوبيا هم په دغه اودس باندې لمونځ صحيح كيږي.اګرچه ده اودس د لمانځه لپاره نه دي كړي.

| بِخِلَافِ مَا إِذَا أَدَّى الْأَفْعَالَ عَلَى الْإِبْهَامِ په خلاف د هغې صورت چې كله د ابهام په حالت افعال ادا كړي. لِأَنَّ الْمُؤَدِّي لَا يَحْتَمِلُ التَّعْيِينَ فَصَارَ مُخَالِفًا ځكه چې كوم ادا شول هغه متحمل د تعين كيدونه دی.نومخالف شو. |
|---|

**تشريح:- وجه عدم صحة التعيين بعدالاداء**۞په خلاف د وكالت د صورت ځكه چې په دې كي چې وكيل مبهم احرام اوتړي.اوبيا په دغه مبهم باندې افعال هم ادا كړي.نود افعالوادا كولونه روسته تعين نشي كيدې.ځكه چې كوم ځيزيوځل ادا شی.په هغې كې د تعين مكان پاته نه پاتې كيږي.البته چې كوم ځيزلا ادا شوی نه وی.نوپه هغې كي تعين كيداي شی.بهرحال وكيل په مبهم احرام سره افعال دحج پوره كړی دی.نوده د موكل مخالفت كړې دې.اود مخالفت په صورت كي حج د وكيل لپاره واقع كيږي د موكل لپاره نه.

## د قران ادا كولوپه صورت كي د دم قران مكلف

| قَالَ فَإِنْ أَمَرَهُ غَيْرُهُ أَنْ يَقْرِنَ عَنْهُ فَالدَّمُ عَلَى مَنْ أَحْرَمَ كه يو عاجز بل ته دحج قران كاوه حكم اوكړو نو دم د قران به په هغه وی چا چې احرام تړلی دې لِأَنَّهُ وَجَبَ شُكْرًا لِمَا وَفَّقَهُ اللَّهُ تَعَالَى مِنَ الْجَمْعِ بَيْنَ النُّسُكَيْنِ ځكه چې دا دم واجبيږی د شكريه په طور د توفيق موندو دجمع كاوه په مينځ د دوؤ نسكينو كي وَالْمَأْمُورُ هُوَ الْمُخْتَصُّ بِهَذِهِ النِّعْمَةِ په دې نعمت سره مامور مختص دې لِأَنَّ حَقِيقَةَ الْفِعْلِ مِنْهُ ځكه چې حقيقی فعل د ده دا ړخه دې. |
|---|

**حل اللغة:** ① وجب وجوبًا (ض): واجب كيدل

**تشريح:- وجوب دم القران على الوكيل**۞مسئله، كه يوكس وكيل ته د حج قران ادا كولوحكم اوكړلو.نوپه دې صورت كي دقران دم په وكيل باندې لازم ده.په موكل نه ده.ځكه چې د حج قران دم،دم شكر دې.چه الله تعالى ده ته د نسكينو جمع كولوتوفيق وركړلو.اوپه يووخت په دووعبادتونومشرف شو.اودا نعمت د وكيل سره خاص دې.ځكه چې د حج افعال خود وكيل نه صادريږی.نودم قران به هم په وكيل واجب وی.

| وَهَذِهِ الْمَسْأَلَةُ تَشْهَدُ بِصِحَّةِ الْمَرْوِيِّ اودا مسئله دامام محمد رحمه الله نه روايت ده عَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّ الْحَجَّ يَقَعُ عَنِ الْمَأْمُورِ چې حج د مامور د اړخه واقع كيږی. |
|---|

**حل اللغة:** ① تشهد، شهادة: ګواهي وركول ② مروی: روايت كړې شوې ]

**تشريح:- مايعلم من المسئلة**۞ علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه دا مسئله ددې خبرې ګواهی وركوی.چه حج د وكيل لپاره واقع كيږی.د موكل لپاره نه،لكه څنګه چې دامام محمد رحمه الله قول دې.

## د موكل بالحج اوموكل بالعمره دواړه لپاره قران كول

| وَكَذَلِكَ إِنْ أَمَرَهُ وَاحِدٌ بِأَنْ يَحُجَّ عَنْهُ وَالْآخَرُ بِأَنْ يَعْتَمِرَ عَنْهُ او دغه ډول كه يود حج اوبل دعمرې كاوه حكم اوكړو وَأَذِنَا لَهُ بِالْقِرَانِ فَالدَّمُ عَلَيْهِ لِمَا قُلْنَا او دواړو دقران اجازت وركړو نو دم به په ده وی لكه چې مونږ وئيلی دی. |
|---|

**حل اللغة:** ① ان يحج، حج حجًا (ن): حج كول

**تشريح:-** مسئله ښكاره ده.



## د دم احصار مكلف

| وَدَمُ الْإِحْصَارِ عَلَى الْآمِرِ وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمه الله (١) او دم د احصار په آمر باندې دې.دامام ابوحنيفه رحمه الله اوامام محمدصاحب په نيز، |
|---|

**حل اللغة:** ①امر: حكم وركونكی

**تشريح:المذهبان في مكلف دم الاحصار**۞ ①كه مامور يعنی وكيل په څه وجه محصرشو.اودې د احصار قربانی اوليږی.اوځان حلال كړی.نود طرفينو رحمهما الله په نيزدم احصار په موكل ده.

| وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: عَلَى الْحَاجِّ لِأَنَّهُ وَجَبَ لِلتَّحَلُّلِ او ابويوسف وائی چې په حاجی دې ځكه چې دا د حلاليدلو لپاره واجب شوې دې. دَفْعًا لِضَرَرِ امْتِدَادِ الْإِحْرَامِ وَهَذَا رَاجِعٌ إِلَيْهِ فَيَكُونُ الدَّمُ عَلَيْهِ اواوږدوالی داحرام ضررلرې كاوه دپاره.اوداضرز حاجی اړخ ته راجع دې نودم به پده وی. |
|---|

**حل اللغة:** ① تحلل: حلال كيدل ② ضرر: نقصان③ امتداد: اوږديدل ④ راجع: واپس كيدونكی

**تشريح:-** اودامام ابويوسف رحمه الله په نيزپه وكيل ده.

**دليل ابی يوسف رحمه الله**۞دامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې.چه دم احصارپه محرم باندې د آسانتيا لپاره واجب شوې ده.چه ددې په ذريعه دې حلال شی.اوداحرام د پابندونه خلاص شی.اوښكاره خبره ده.چه د احرام پابندئ په وكيل دی.نوددې آسانتيا نه دې مستفيد شو.نودم احصاربه هم په وكيل واجب وی.

| وَلَهُمَا أَنَّ الْآمِرَ هُوَ الَّذِي أَدْخَلَهُ فِي هَذِهِ الْعُهْدَةِ فَعَلَيْهِ خَلَاصُهُ دطرفينودليل دادې چې ده لره پدې ذمه وارئ كي آمر اچولې دې نوخلاصول به ئې هم د هغه په ذمه وی |
|---|

**حل اللغة:** ① ادخله،ادخل ادخالاً: داخل كول ]

**تشريح:- دليل الطرفين** رحمهما الله۞دطرفينو رحمهما الله دليل دا دې.چه هم موكل ده ته دا ذمه واری ورپه غاړه كړې وه.نوچه چا ورته ذمه واری حواله كړی وی.هم په هغه به دم احصار واجب وی.(ځكه چې سبب ئې د هغه حكم دې)

## د مړده نه د حج كولوپه صورت كي د دم احصار محل

| فَإِنْ كَانَ يَحُجُّ عَنْ مَيِّتٍ فَأُحْصِرَ فَالدَّمُ فِي مَالِ الْمَيِّتِ عِنْدَهُمَا (٢) نوكه ده حج كاوه د مړی د اړخه او محصر شونودم احصار به دمړی د مال نه وی.په نزد دطرفينو خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ خلاف دې د ابويوسف رحمه الله |
|---|

**تشريح:- المذهبان في مكلف دم الاحصارفي صورة الحج عن الميت**۞كه يوكس دمړی د اړخه حج كوی. او دې محصرشو.①نودطرفينو رحمهما الله په نيزدم احصار د مړی په مال كي واجبيږی.②اوامام ابو يوسف رحمه الله فرمائی.چه په وكيل واجبيږی.

| ثُمَّ قِيلَ: هُوَ مِنْ ثُلُثِ مَالِ الْمَيِّتِ لِأَنَّهُ صِلَةٌ كَالزَّكَاةِ وَغَيْرِهَا ،بيا وئيلی شوی دی چې دمړی د ثلث مال څخه به وی ځكه چې دا بدله ده د زكاة وغيره پشان |
|---|

**حل اللغة:** ①صلة: بدله

---

(١) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فی ردالمحتار(۲۶۷\۲) والبحرالرائق (۱۱۵\۳) ومجمع الأنهر(۳۰۹\۱) والتاتارخانية (۵۴۸\۲) نقلاً عن القول الراجح (۲۴۰\۱)_

(٢) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فی ردالمحتار(۲۶۷\۲) والخانية (۱۴۷\۱) والبحرالرائق (۱۱۵\۳) نقلاً عن القول الراجح (۲۴۱\۱)-

**تشريح:- القولان في محل الوجوب في مال الميت** ۞ ① بیا بعضي مشائخ ﷭ فرمائي. چه دم احصار به د مړي دمال په دریمه برخه کي واجبیږي. ځکه چي دا صله ده. لکه زکاة او کفارات چي صله ده. او صله دمړي په دریمه برخه کي واجبیږي. دغه ډول به دم احصار هم په دریمه برخه کي واجبیږي. او صله هغې ته وائي. چه هغه د مال په عوض کي نه وي. نو که مړي په خپل ژوند کي زکاة نه وي ورکړې. هغه به دده د دریمه برخه مال نه ادا کیږي. ځکه چي د زکاة حق داسي حق دي. چه دمال په عوض کي نه واجبیږي

**وَقِيلَ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ لِأَنَّهُ وَجَبَ حَقًّا لِلْمَأْمُورِ فَصَارَ دَيْنًا** او وئیلي شوي دي د. واړه مال څخه به وي ځکه چي دا دمامور حق واجب شوي دي نو شو قرض.

**تشريح:-** او بعضي مشائخو ﷭ فرمائیلي دي. چه دم احصار به د مړي په ټوله ترکه کي واجب وي. ځکه چي چونکه وکیل د مړي د اړخه حج کوي. او دم احصار په مړي واجبیږي. نو لکه چي دا دم د وکیل د اړخه په مړي باندي پور شو. او پور دمړي دواړه مال نه ادا کیږي. دغه ډول به دم احصار هم د مړي په واړه مال کښې واجبیږي.

## په حج بدل کي دجماع د دم مکلف

**وَدَمُ الْجِمَاعِ عَلَى الْحَاجِّ لِأَنَّهُ دَمُ جِنَايَةٍ وَهُوَ الْجَانِي عَنْ اخْتِيَارٍ وَيَضْمَنُ النَّفَقَةَ** او دم دجماع په حاجی لازم دي. ځکه چي دا دجرم دم دي او په اختیار سره جرم کوونکي دي. او د نفقه ضامن به وي **مَعْنَاهُ إِذَا جَامَعَ قَبْلَ الْوُقُوفِ حَتَّى فَسَدَ حَجُّهُ** د دي معنیٰ دا ده کله د وقوف نه مخکي جماع اوکړی تردي چي حج ئې فاسد شي. **لِأَنَّ الصَّحِيحَ هُوَ الْمَأْمُورُ بِهِ** ځکه چي دي مامور دي د صحیح حج په کولو. **بِخِلَافِ مَا إِذَا فَاتَهُ الْحَجُّ حَيْثُ لَا يَضْمَنُ النَّفَقَةَ** په خلاف د هغې صورت چي کله د ده حج فوت شي. چه د نفقه ضامن به نه وي ځکه چي حج د ده په اختیار نه دي فوت شوي. **لِأَنَّهُ مَا فَاتَهُ بِاخْتِيَارِهِ** خو که د وقوف نه روسته ئې جماع اوکړه نو حج ئې فاسد نشو، نو د نفقې به هم ضامن نه وی **أَمَّا إِذَا جَامَعَ بَعْدَ الْوُقُوفِ لَا يَفْسُدُ حَجُّهُ وَلَا يَضْمَنُ النَّفَقَةَ** د آمر د مقصود د حاصلیدو په وجه، او دم به په هم ده د ده په مال کښې وی لکه چي وئیلي شوی دی. **لِحُصُولِ مَقْصُودِ الْآمِرِ وَعَلَيْهِ الدَّمُ فِي مَالِهِ لِمَا بَيَّنَّا وَكَذَلِكَ سَائِرُ دِمَاءِ الْكَفَّارَاتِ عَلَى الْحَاجِّ لِمَا قُلْنَا** او دغه ډول واړه دمونه دکفاراتو په حاجی دی. لکه چي موږ وئیلی دی.

**حل اللغة:** ① **جناية:** جرم ② **جانى:** جرم کونکي ③ **حصول:** حاصلیدل

**تشريح:-** مسئله واضحه ده.

## د موصی لپاره د حج ادا کولو په دروان کي دحاجی وفات کیدل

**وَمَنْ أَوْصَى بِأَنْ يُحَجَّ عَنْهُ فَأَحَجُّوا عَنْهُ رَجُلًا** وچا چي وصیت اوکړو چي د ده د اړخه دي حج اوکړې شي نو وارثانو د ده د طرف نه یو سړي حج ته روان کړو **فَلَمَّا بَلَغَ الْكُوفَةَ مَاتَ أَوْ سُرِقَتْ نَفَقَتُهُ وَقَدْ أَنْفَقَ النِّصْفَ** چه کوفي ته اورسیدو نو مړشو. یا غلا ترې اوشوه د نفقې او حال دا چي ده نیمه نفقه خرج کړې وه **يُحَجُّ عَنِ الْمَيِّتِ مِنْ مَنْزِلِهِ بِثُلُثِ مَا بَقِيَ وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** [1] نو دمړي د اړخه به حج کوي. د کور د ده نه، په مابقی د ثلث کي. د امام صاحب ﷬ په نزد. **وَقَالَا: يُحَجُّ عَنْهُ مِنْ حَيْثُ مَاتَ الْأَوَّلُ** او امام محمد ﷬ وائی دهغه ځائې څخه به حج کوی کوم ځائې چي هغه اولنې کس مړ شوې وی.

**حل اللغة:** ① **اوصى، ايصاء:** وصیت کول ② **سرقت، سرقة (ض):** غلا کول ③ **انفق، انفاقا:** خرج کول

[1]) القول الراجح هو هذا قول أبى حنيفة ﷬ كذا فى ملتقى الأبحر (٣٠٩\١) والدرى لمختار (٢٦٣\٢) والهندية (٢٥٩\١) نقلاً عن القول الراجح (٢٤٢\١)_



**تشريح: صورة المسئلة** ۞ مسئله دا ده. چه یو کس دمرګ په وخت کي دا وصیت اوکړو. چه زما د اړخه حج اوکړئ. وارثانو د هغه د وصیت مطابق یو کس ته د حج خرچه ورکړله. او هغه د حج لپاره روان شو. په لاره کي یا هغه نائب مړشو. او نیم مال ئې خرج کړې وو. او یا ترې مال غلا کړې شو. او نیم مال ئې خرج کړې وو. نو د مرګ په صورت کي نیم مال پاتې دي. او د غلا په صورت کي واړه مال ختم شو.

**فَالْكَلَامُ هَاهُنَا فِي اعْتِبَارِ الثُّلُثِ وَفِي مَكَانِ الْحَجِّ** نو د دلته خبره د دریمې برخې په معتبر کیدو او د حج د ځائې په اړه کي ده. **أَمَّا الْأَوَّلُ فَالْمَذْكُورُ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ** نو اولنې بیان کوم چي ذکر شوې دې. هغه د امام صاحب قول دي.

**تشريح:-** نو اوس په دې مسئله کي په دوو ځایونو کي اختلاف دې. یو په دې کي چي دغه نائب یا بل نائب ته به د سفر خرچه دکوم مال نه ورکولې شي. نو په دې مسئله کي د امام ابوحنیفه ﷬ په نیز به پاته خرچه د مړي په مال کي چي څومره پاتې وي. دهغې د دریمې برخې څخه به خرج کولې شي. او که هغه هم غلا کړې شو. نو په پاته مال کي به د دریمې برخې نه خرج کولې شي.

**مثاله** ۞ مثلاً وصیت کونکی دمرګ په وخت کي څلورزره روپۍ پریښولې (پریخودې) وې. په هغې کي ئې زر روپۍ دحج ادا کاوه لپاره نائب ته ورکړې. خو په لاره کي نائب مړ شو. یا ترې پاته روپۍ غلا کړې شوې. نو اوس به د مړي په ترکه کي چي کوم مال پاتې وي. دهغې په دریمه برخه کي به دحج د سفر لپاره ورکولې شي. په موجوده صورت کي هغه زر روپۍ جوړیږي. ځکه چي واړه مال خو څلورزره روپۍ وې. په هغې کي خو زر روپۍ په اول ځل دحج د سفر لپاره ورکړې شوې وې. اوس پاته درې زره شوې. نو د درېو زرو دریمه برخه زر روپۍ دی. په زرو کي به د حج سفر کولې شي. او که بالفرض په دوهم ځل ترې هغه روپۍ غلا شوې. نو بیا به د مړي د مال په دریمه برخه کي حج کولې شي. که ممکن وي. هلته دوې [دوه] زره روپۍ پاته پاتې شوې وې. نو دوې [دوه] زر به په درېو حصو ویش کړې شي. او نائب ته به دحج کاوه لپاره یوه برخه ورکړې شي. علی هذا القیاس

**أَمَّا عِنْدَ مُحَمَّدٍ يُحَجُّ عَنْهُ بِمَا بَقِيَ مِنَ الْمَالِ الْمَدْفُوعِ إِلَيْهِ إِنْ بَقِيَ شَيْءٌ** او د امام محمد په نزد به حج کوی د ده نه په مابقی دهغې مال کي چي نائب ته ورکړې شوې وو. که څه پاته وی. **وَإِلَّا بَطَلَتِ الْوَصِيَّةُ** ورنه وصیت باطل شو

**حل اللغة:** ① **بطلت، بطلاً (ن):** باطل کیدل

**موقف محمد ﷬ في المسئلة** ۞ امام محمد ﷬ فرمائي. چه په دې مسئله کي چي په اول ځل نائب ته کومې روپۍ ورکړې شوې وې. چه زر روپۍ وې. که په لار کي هغه ټولې غلا شوې. یا په کي څه برخه غلا شوه. نو پاته چي کومې پاتې وي. که په هغې باندې حج پوره کیدو شو. ټیک ده. او که نشو. نو د مړي وصیت باطل شو.

**اعْتِبَارًا بِتَعْيِينِ الْمُوصِي** قیاس کوی په تعین د موصی باندې، **إِذْ تَعْيِينُ الْوَصِيِّ كَتَعْيِينِهِ** ځکه چي دوصی معین کول پشان د تعین د موصی دی.

**دليل محمد ﷬** ۞ د امام محمد ﷬ دلیل د وصی په تعین باندې قیاس دې. یعنی چي یو کس وصیت اوکړی. چه زما په مال کي به په دومره روپو باندې حج اوکړئ. او د مال مقدار ئې ورته مقرر کړلو. او س په دې صورت کي که نائب د موصی لپاره حج کوی. او هغه په لار کي مړ شی. یا ترې دسفرخرچه غلا کړې شی. نو په دې صورت کي د موصی وصیت باطل شو. او که څه خرچه غلا کړې شی. نو پاته ته به ګورو. که په هغې باندې حج ادا کیدای شی. خو حج به پرې اوکړی. او که حج پوره کیدل پرې ممکن نه وی. نو په دې صورت کي هم د موصی وصیت باطل شو. نو هم دغه ډول د وصیت متعین کولو حکم هم دې. یعنی چي وصی د حج لپاره کوم مال مقرر کړلو. که نائب سفر او کړلو. بیا هغه مال هلاك شی. نو په دې صورت کي به وصیت باطل شی. او که څه برخه ترې هلاکه شی. نو که په پاته باندې حج ادا کیدو شو ټیک ده ګنی په دې صورت کي به هم وصیت باطل وی.

**وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ يَحُجُّ عَنْهُ بِمَا بَقِيَ مِنَ الثُّلُثِ الْأَوَّلِ لِأَنَّهُ هُوَ الْمَحَلُّ لِنَفَاذِ الْوَصِيَّةِ** او په نزد د ابويوسف به حج كوى د ده نه په پاته پاتې ثلث كې ، څكه چې د نفاذ د وصيت محل هم دغه دې.

**تشريح:- موقف ابى يوسف رحمه الله في المسئلة**⊛ د امام ابويوسف رحمه الله د واړه تركه چې كومه دريمه برخه پاتې شوې وى.دغلا نه روسته به چې په هغې څومره پاته وى.د دوهم حج سفربه په هغې كې كولې شى.مثلاً تولـه تركه څلورزره روپۍ دى.ددې دريمه برخه يوزر درې سوه درې ديشت روپۍ او د يوې روپۍ دريمه برخه ده.دحج خرچه زر روپۍ وه.كومه چې وصى يوكس ته وركړې.خوپه لاركې هغه روپۍ غلا كړې شوې.اوس په توله تركه كې په دريمه برخه كې درې سوه درې ديشت روپۍ او د يوې روپۍ دريمه برخه پاته ده.(څكه چې زر روپۍ خود دريمې برخې نه د اولنى حج لپاره وركړې شوې وې)نوكه ممكن وى.نو په دې پاته روپوكې چې درې سوه اودرې ديشت او د يوې روپۍ دريمه برخه ده.ذې حج اوكړې شى.اونه په دې حج نشى كيدې.نود مړى وصيت باطل شو.

**⊛دليل ابى يوسف رحمه الله**⊛ د امام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې.چه وصيت د واړه مال په دريمه برخه كې صحيح كيږى.نوهم په هغه دريمه برخه كبنې چې د خرچ كولويا غلا كيدو نه روسته څومره مال پاتې وى.كه د په هغې حج ممكن وى.اوبه كړې.ګنى وصيت به باطل وى.

**وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّ قِسْمَةَ الْوَصِيِّ وَعَزْلَهُ الْمَالَ لَا يَصِحُّ إِلَّا بِالتَّسْلِيمِ إِلَى الْوَجْهِ الَّذِي سَمَّاهُ الْمُوصِي** او د امام صاحب دليل دا دې چې د وصى ويش كول او جدا كول د مال به صحيح نه وى مګر په سپارلو سره هغه جهت ته كوم لره چې موصى معين كړې دې **لِأَنَّهُ لَا خَصْمَ لَهُ لِيَقْبِضَ وَلَمْ يُوجَدِ التَّسْلِيمُ إِلَى ذَلِكَ الْوَجْهِ** څكه چې د موصى څوك خصم موجود نه دې چې قبضه اوكړى او پ دې جهت كبنې سپارل نه دى موندې شوى

**تشريح:- دليل ابى حنيفة**⊛ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه د مال متروكه ويش او دهغې جدا حصې برخې كول په هغه وخت كې صحيح دى.چه وصى ئې په هغه مقصد كې خرچ كړى.كوم چې موصى مقرر كړې وى.څكه چې د موصى د اړخه څوك قبض كونكې نشته.نو قبض به هم يه دې طريقه وى.چه موصى كوم وصيت كړې وى.وصى دهغه وصيت مطابق دهغه متروكه خرچ كړى.اوس په دې صورت كې په وصيت كې مال نه دې خرچ شوې.څكه چې موصى د حج وصيت كړې وو.اوحج پرې لا نه دې ادا شوى

**فَصَارَ كَمَا إِذَا هَلَكَ قَبْلَ الْإِفْرَازِ وَالْعَزْلِ فَيَحُجُّ بِثُلُثِ مَا بَقِيَ** نو دا داسې شوه. لكه د ويش او جدا كاوه نه چې مخكې چه هلاك شى نو د مابقى په دريمه به حج كوى.

**حل اللغة** * افراز: جدا كيدل، بيليدل ]

**تشريح:- مقيس عليه**⊛ دا داسې شوه.لكه چې د مال دويش وغيره نه وړاندې مال هلاك شى.نو په دې صورت كې چې څومره مال پاتې وى.دهغه واړه مال د دريمې برخې څخه به وصيت پوره كولې شى.او دوهم حج كولې شى.نو دغه ډول د موصى د مال خرچ كاوه لپاره كوم مصرف مقرر كړې وى.هغه لاپوره شوې نه وى.او مال هلاك شى.نو چه كوم مال پاته پاتې وى.دهغې په دريمه برخه كې به دوهم حج كولاى شى. ترڅو كه دا مال هم د حج پوره كيدو نه وړاندې هلاك شى.نو معدوم به شمارلې شى.او پاته چې كوم مال پاتې وى.لكه په ذكر شوى مثال كې چې دوې [دوه] ذره روپۍ پاتې كيږى.په هغې كې به په دريمه برخه كې حج كولې شى.

**وَأَمَّا الثَّانِي فَوَجْهُ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** پاتې شوه دويمه مسئله نو د امام صاحب دقول وجه **وَهُوَ الْقِيَاسُ أَنَّ الْقَدْرَ الْمَوْجُودَ مِنَ السَّفَرِ قَدْ بَطَلَ فِي حَقِّ أَحْكَامِ الدُّنْيَا** او هم دا قياس دې.هغه دا دې چې د سفر موجوده مقدار په دنيوى احكامو كبنې باطليږى **قَالَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {إِذَا مَاتَ ابْنُ آدَمَ انْقَطَعَ عَمَلُهُ إِلَّا مِنْ ثَلَاثٍ} الْحَدِيثَ** (١) د نبى كريم ﷺ

---

(١) من حديث أبى هريرة رضي الله عنه أخرجه مسلم فى الوصية رقم ١٤ وأبوداود فى الوصايا باب ١٤ رقم ٢٨٨٠ والترمذى رقم ١٤٠٣



ارشاد دې چې كله بني آدم مړ شي نود ده عمل قطع شي.سوې د دريونه.

**وَتَنْفِيذُ الْوَصِيَّةِ مِنْ أَحْكَامِ الدُّنْيَا فَبَقِيَتِ الْوَصِيَّةُ مِنْ وَطَنِهِ كَأَنْ لَمْ يُوجَدِ الْخُرُوجُ** او وصيت نافذ كول د دنياوى احكامو څخه دي نو وصيت به د ده وطن نه پاته وى ګويا چې دې هډو وتلې نه دې.

**تشريح:- المذهبان في المسئلة الثانية**⊛ دويمه مسئله په كومه كې چې اختلاف دې.هغه دا ده.چه سفر به د كوم خائې نه پيل كولې شي.① نو امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى.چه اولنې نائب چې په كوم خائې كې مړ شوې وى.دهغه خائې څخه به پيل كولې شي.② او صاحبين رحمهما الله فرمائى.چه دخپل وطن څخه به پيل كولې شي.

**⊛دليل ابى حنيفة رحمه الله**⊛ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه اولنى نائب چې دكوم خائې نه سفر شروع كړو.دهغه خائې نه واخله ترده د مرګ دخائې پورې.دغه سفر د دنياوى احكامو په حق كې معدوم دې.څكه چې نبى ﷺ فرمائيلى دى.كله چې انسان مړ شى.نو دده عمل ختم شى.سوې د درې اعمالونه.① صدقه جاريه ② علم نافع ③ اونيك اولاد.او دا سفر په دې درې واړو كې يوهم نه دې.حالانكه وصيت نافذ كول دنياوى احكامو سره تعلق ساتى.نو د حديث په رڼا كې ګويا چې دده د وطن نه ترد مرګ خائې پورې معدوم شو.لكه چې ده هډو سفر شروع كړې نه دې.او چه سفر ئې نه وى پيل كړې.نو د وصيت پوره كاوه لپاره به دوباره د مړى د كلى نه دحج لپاره سفر كول واجب شى.

**وَجْهُ قَوْلِهِمَا وَهُوَ الْاِسْتِحْسَانُ أَنَّ سَفَرَهُ لَمْ يَبْطُلْ** دصاحبينو دقول وجه استحسان دې.هغه دا دې چې سفر نه دې باطل شوې. **لِقَوْلِهِ تَعَالَى وَمَنْ يَخْرُجْ مِنْ بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ الْآيَةَ** او (الايه، څكه د الله ﷻ ارشاد دې، او څوك چې اوځى دخپل كورنه هجرت كوونكې د الله ﷻ او د رسول ﷺ اړخ ته ، (الايه) **وَقَالَ مَنْ مَاتَ فِي طَرِيقِ الْحَجِّ كُتِبَ لَهُ حَجَّةٌ مَبْرُورَةٌ فِي كُلِّ سَنَةٍ** او نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى څوك چې مړ شو په لار دحج كې د ده لپاره به هر كال حج ليكلې كيږى. **وَإِذَا لَمْ يَبْطُلْ سَفَرُهُ اعْتُبِرَتِ الْوَصِيَّةُ مِنْ ذَلِكَ الْمَكَانِ** او هر كله چې د ده سفر باطل نشو.نو وصيت به د هغه خائې نه معتبر وى.

**تشريح:- دليل الصاحبين رحمهما الله**⊛ دصاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.او دا وجه د استحسان هم ده.چه دنائب سفر معدوم نه دې.څكه چې الله تعالى فرمائيلى دى.﴿ وَمَنْ يَخْرُجْ مِنْ بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ ﴾ يعنى كوم كس چې د الله تعالى او درسول د رضا لپاره دكورنه د هجرت په نيت او وتلو.او بيا ورته په لاركې مرګ راغلو.نو دده ثواب په الله تعالى باندې دې.ددې نه معلومه شوه.چه په لاركې په مرګ سره پوره ثواب ملاويږى.او دسفر مقصود هم دا ثواب ګڼل دى.او په سفر دهجرت كې سفرد حج او سفرد جهاد هم داخل دې.بلكه د رسول الله ﷺ بنكاره حديث دې.چه كوم كس دحج په لار كې مړشو.نو ده لپاره هر كال د يو قبول شوى حج ثواب ليكلى شى.بهرحال ده ته په دې سفرباندې ثواب ملاويږى.او چه ثواب ملاويږى.نو دده دا سفر باطل نشو.او چه ثواب باطل نشو.نو د دوهم حج سفربه په دهغه خائې نه حسابيږى.په كوم خائې كې چې اولنې حاجى وفات شوې وو.

**وَأَصْلُ الْاِخْتِلَافِ فِي الَّذِي يَحُجُّ بِنَفْسِهِ وَيَنْبَنِي عَلَى ذَلِكَ الْمَأْمُورُ بِالْحَجِّ** او اصل اختلاف د هغه سړى په حق كې دې چې پخپله دحج لپاره راځى او مامور بالحج په ده باندې مبنى كولې.

**تشريح:- المسئلة الاساسية للاختلاف**⊛ صاحب دهديه رحمه الله فرمائى.چه د امام ابوحنيفه او صاحبينو رحمهم الله په مينځ كې په اصل كې اختلاف په هغه مسئله كې دې.چه حاجى په خپله باندې حج ته وتليې وى.او په لار كې وفات شى.او دحج كولو وصيت اوكړى.نو دصاحبيو رحمهما الله په نيز به د مامور حج دهغه خائې نه حسابيږى.په كوم خائې

---

والنسائى فى الوصايا باب ٨ رقم ٣٤١٢)_

کي چي امر مړ شوي وي.اوامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزامرپه کوم ځائي کي مړ شوي وي.نودهغه سفرپه معدوم وي اودوباره به د کور نه نفاذ وصيت وي.اوصاحبينو رحمهما الله په نيزبه د هغه ځائي نه پيل کوي په کوم ځائي کي چي مړشوي وي.

### په والدينوکي د مبهم احرام نه روسته د يو لپاره دحج مقرر کول

قَالَ وَمَنْ أَهَلَّ بِحَجَّةٍ عَنْ أَبَوَيْهِ يُجْزِيهِ أَنْ يَجْعَلَهُ عَنْ أَحَدِهِمَا چا چي دحج احرام اوړلو.اوتلبيه ئي اوونيله دخپل موريلار دارخه نوده لره روي دي چي پدوی کي ئي د يو لپاره کړي. لِأَنَّ مَنْ حَجَّ عَنْ غَيْرِهِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ فَإِنَّمَا يَجْعَلُ ثَوَابَ حَجِّهِ لَهُ خکه چي څوك حج اوکړي د غير دارخه بغير د وينا د هغه نه نودي دې خپل ثواب هغه ته کړي وَذَلِكَ بَعْدَ أَدَاءِ الْحَجِّ فَلَغَتْ نِيَّتُهُ قَبْلَ أَدَائِهِ وَصَحَّ جَعْلُهُ ثَوَابَهُ لِأَحَدِهِمَا بَعْدَ الْأَدَاءِ اوددا به دحج ادا کاوه نه روسته وي.نود ادا کولونه مخکي چي کوم نيت وو هغه لغوه شو.او صحيح شوکول د ثواب ئي د يودپاره.نو دا د کولونه، بِخِلَافِ الْمَأْمُورِ عَلَى مَا فَرَّقْنَا مِنْ قَبْلُ په خلاف د مامور بالحج نه، بنا په هغه فرق چي موږ بيان کړو مخکښي.والله اعلم.

حل اللغة: ①اذن: اجازت ②فلغت،لغا لغوي (ن): بيکاره کيدل ③فرقنا، تفريقًا: جلا کيدل، توپير بيانول ]

تشريح:- مسئله ښکاره ده.

## باب الهدی

دا باب دهدی په بيان کي دې.

### دهدی ادنی درجه

الْهَدْيُ أَدْنَاهُ شَاةٌ لِمَا رُوِيَ (أَنَّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنِ الْهَدْيِ فَقَالَ: أَدْنَاهُ شَاةٌ)(۱) کمتر هدی وزه ده.خکه چي روايت دي دنبی کريم ﷺ نه پوښتنه اوشودهدی په اره کي . نو وي فرمائيل کمتر دهدی وزه ده.

حل اللغة: ①هدی: د قربانئ حيوان (خاروي) ②شاة: چيلئ

تشريح:- مسئله واضحه ده.

### دهدی دري قسمونه

قَالَ وَهُوَ مِنْ ثَلَاثَةِ أَنْوَاعٍ: الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ فرمائي دغه په دري قسمه ده.اوبښ دي، اوغوي ده اوګډوزه ده.

حل اللغة: ①ابل: اوبښ ②بقر: غوي ③غنم: چيلئ

تشريح د هدی اطلاق په دري قسمه خناوروباندي کيږي.چيلئ،اوبښ اوغوا،

لِأَنَّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا جَعَلَ الشَّاةَ أَدْنَى فَلَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَعْلَى وَهُوَ الْبَقَرُ وَالْجَزُورُ خکه چي هرکله نبی ﷺ وزه لره ادنی مقررکړه نود دي لپاره اعلی کيدل ضروری دی اودغه غوي اوبښ دي

تشريح:- د.بل دا دي چه نبی ﷺ وزه ته د هدی ادنی درجه ورکړي ده.اود ادنی لپاره اعلی ضرور وي.نواعلی ئي اوبښ وغوي شوه.

وَلِأَنَّ الْهَدْيَ مَا يُهْدَى إِلَى الْحَرَمِ لِيُتَقَرَّبَ بِهِ اوخکه چي هدی هغه خناور دي چي کوم حرم ته اوليږلي شي.چه په حرم کي په دې سره تقرب حاصل کړي شي. وَالْأَصْنَافُ الثَّلَاثَةُ سَوَاءٌ فِي هَذَا الْمَعْنَى اوپه دي معنی کي دري واړه

(۱) قال الزيلعي رحمه الله غريب ولم أجده إلا من قول عطاء ..... أدنى ما يهراق من الدماء في الحج وغيره شاة (نصب الراية ۲۰۰/۳)_



قسمونه برابر دی.

تشريح:- دوهم دليل دا دي.چه هدی هغه خناورته وائی.کوم چي حرم ته ددې لپاره ليږلي شي.چه دهغې د قربانئ په ذريعه تقرب الی الله حاصل شي.اوپه دې مقصد کي دا دري واړه (وزه غوي او اوبښ) سره برابردی.نوپه دې دري واړو باندې د هدی اطلاق کيږي.

### دهدی اواضحيه د قربانئ دخاروو برابری

وَلَا يَجُوزُ فِي الْهَدَايَا إِلَّا مَا جَازَ فِي الضَّحَايَا اوپه هدايا کي جائز نه ده مګر هغه کومه چي په قربانئ کي جائز ده وَلِأَنَّهُ قُرْبَةٌ تَعَلَّقَتْ بِإِرَاقَةِ الدَّمِ خکه چي د قربانئ پشان هدی هم قربت دې کوم چي په وينه تويولو پورې متعلق دې كَالْأُضْحِيَّةِ فَيَتَخَصَّصَانِ بِمَحَلٍّ وَاحِدٍ نو دواړه به د يو محل سره مخصوص وی.

حل اللغة: ①اراقة: بهيول

تشريح:- مسئله ښکاره ده.

### د دووجنايانونه علاوه په نوروکي د وزه کفايت

وَالشَّاةُ جَائِزَةٌ فِي كُلِّ شَيْءٍ إِلَّا فِي مَوْضِعَيْنِ او وزه په هره موقع کي جائز ده سوې ددوو ځايونونه مَنْ طَافَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ جُنُبًا وَمَنْ جَامَعَ بَعْدَ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ چا چي طواف زيارت اوکړو په حالت د جنابت کي اوچا چي جماع اوکړ د وقوف نه روسته فَإِنَّهُ لَا يَجُوزُ فِيهِمَا إِلَّا الْبَدَنَةُ وَقَدْ بَيَّنَّا الْمَعْنَى فِيمَا سَبَقَ چي په دې دواړو کي جائز نه ده مګر بدنه اوموږ مخکي د دې معنی بيان کړې ده.

حل اللغة: ①جنبًا: د جنابت په حالت کي ②جامع، مجامعة: جماع کول ③بدنة: اوبښ غوي ]

تشريح:مسئله ښکاره ده.

### د نفلی،تمتع اوقران د هدی نه د خوراك جواز

وَيَجُوزُ الْأَكْلُ مِنْ هَدْيِ التَّطَوُّعِ وَالْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ اوجائز دی خوړل پخپله د نفلی هدی اود تمتع هدی او دقران دهدی. لِأَنَّهُ دَمُ نُسُكٍ فَيَجُوزُ الْأَكْلُ مِنْهَا بِمَنْزِلَةِ الْأُضْحِيَّةِ خکه چي دا د نسك دم دې نوجائزدی.خوړل ددينه لکه د اضحيه پشان. وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ أَكَلَ مِنْ لَحْمِ هَدْيِهِ وَحَسَا مِنَ الْمَرَقَةِ(۱) او صحيح ثابت دی چي نبی کريم ﷺ د خپلي غوښې نه اوخوړه او د خوروه نه اوڅکله.

تشريح:- مسئله ښکاره ده.

### دهدی نه د خوراك استحباب

وَيُسْتَحَبُّ لَهُ أَنْ يَأْكُلَ مِنْهَا لِمَا رَوَيْنَا او مستحب دی ده لره چي اوخوري ددينه لکه چي موږ روايت کړل. وَكَذَلِكَ يُسْتَحَبُّ أَنْ يَتَصَدَّقَ عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي عُرِفَ فِي الضَّحَايَا اوداشان مستحب دی چي صدقه ئي کړي په هغه طريقه کومه چي معلومه ده په اضحيه کښي

حل اللغة: ①يتصدق، تصدقًا: صدقه کول

تشريح"استحباب الاكل والتوزيع من الهدايا الثلاثة"د ذکرشو هدايا نه يعني د نفلی،تمتع اوقران نه په خپله خوراك کول مستحب دی.خکه چي په حديث کي دی.چه نبی ﷺ دخپلي هدی غوښه اوخوړله .اوخوروې ئي اوڅکله.اوپه کومه طريقه چي د قربانئ غوښه تقسيمول مستحب دی.هغه دا د هدايا غوښه هم تقسيمول مستحب دی.يعنی د دريوحصو نه دې يوه برخه صدقه کړي.دويمه دې هديه کړي. او دريمه دې په خپله

(۱) تقدم تخريجه في حديث طويل لجابر ﷺ )_

اوخوري. اوذخيره دې کړي.

وَلَا يَجُوزُ الْأَكْلُ مِنْ بَقِيَّةِ الْهَدَايَا لِأَنَّهَا دِمَاءُ كَفَّارَاتٍ اونه دې جائزخوراك د پاته دمونو دكفاراتو اود هداياؤنه.

**تشريح:- مصرف بقية الهدايا**۞ددې نه علاوه چې كومې نورې هدايا دى.نودهغې څخه به په خپله خوراك نه كوى. بلكه د حرم په فقيرانو به صدقه كولې شى.

وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ لَمَّا أُحْصِرَ بِالْحُدَيْبِيَةِ وَبَعَثَ الْهَدَايَا عَلَى يَدَيْ نَاجِيَةَ الْأَسْلَمِيِّ اوصحيح دې چې هركله نبى په حديبيه كي ايساركړې شو.اووې ليږله هدايا په لاس د ناحية الاسلمى ﷺ قَالَ لَا تَأْكُلْ أَنْتَ وَرُفْقَتُكَ مِنْهَا شَيْئًا[1] اووې وئيل دوى ته .چه مه خوره ته د دې نه هيڅ اونه دې خورى ستا ملګرى.

**حل اللغة** ① بعث، بعثا (ف): ليږل ② رفقة: انډيوال

**تشريح:-** څكه چې دنبى ﷺ نه په صحيح سند سره ثابت دى.چه كله نبى ﷺ په مقام حديبيه كي محصرشو.اوهدايا ئې د ناجيه اسلمى په لاس باندې حرم ته اوليږلې.نوناجيه اسلمى ﷺ ته ئې اوفرمائيل.چه ددې نه په خپله هم خوراك مه كوئ.اوخپلوملګروته هم مه وركوه.دوى ئې څكه د خوراك كولونه منع كړې وو.چه هغوى توانګر وو.ددې نه هم معلومه شوه.چه دم احصاروغيره كومې چې دجناياتو اوكفاراتو قربانايانې دې.هغه د فقيرانوحق دې.نه ترې په خپله خوراك جائزدې.اونه مالدارانوباندې خوراك جائزدې.

## د نفلى.تمتع اوقران د هدى په يوم النحرباندې قربانى كول

وَلَا يَجُوزُ ذَبْحُ هَدْيِ التَّطَوُّعِ وَالْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ إِلَّا فِي يَوْمِ النَّحْرِ وجائزدى ذبح كول د نفلى هدى اودتمتع اود قران دهدى مګر په ورځ د اختر (لسمي ذوالحجې) قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ فِي الْأَصْلِ يَجُوزُ ذَبْحُ دَمِ التَّطَوُّعِ قَبْلَ يَوْمِ النَّحْرِ وپه مبسوط كي دى چې د نفلى هدى يوم نحر نه مخكي ذبح كول جائز دى وَذَبْحُهُ يَوْمَ النَّحْرِ أَفْضَلُ وَهَذَا هُوَ الصَّحِيحُ اوغوره ئې په يوم نحر كي ذبح كول دى.اودا صحيح ده لِأَنَّ الْقُرْبَةَ فِي التَّطَوُّعَاتِ بِاعْتِبَارِ أَنَّهَا هَدَايَا څكه چې په نوافلو كي قربت په دې اعتبارسره دې چې دغه هدى ده وَذَلِكَ يَتَحَقَّقُ بِتَبْلِيغِهَا إِلَى الْحَرَمِ اوهدى كيدل دې لره حرم ته په رسولو سره متحقق كيږى فَإِذَا وُجِدَ ذَلِكَ جَازَ ذَبْحُهَا فِي غَيْرِ يَوْمِ النَّحْرِ وَفِي أَيَّامِ النَّحْرِ أَفْضَلُ اوكله چې دا اوموندې شوه نو جائز ده ذبح ئې بغير د يوم نحر نه.اوپه ايام نحر كي افضل ده لِأَنَّ مَعْنَى الْقُرْبَةِ فِي إِرَاقَةِ الدَّمِ فِيهَا أَظْهَرُ څكه چې معنى دقربت په توېولودوينې كي په دې ورځو كي ښه ظاهريږى أَمَّا دَمُ الْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ فَلِقَوْلِهِ تَعَالَى {فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْبَائِسَ الْفَقِيرَ ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ} پاتې شوه هدى د تمتع اودقران نو په دليل دقول دالله ﷻ ده.،خورئ د دې نه اوبدحال اومحتاج ته وركوئ بياپكار دى چې لرې كړى خپل خيرې. وَقَضَاءُ التَّفَثِ يَخْتَصُّ بِيَوْمِ النَّحْرِ او كوټ لرې كول ديوم نحر سره مخصوص دى وَلِأَنَّهُ دَمُ نُسُكٍ فَيَخْتَصُّ بِيَوْمِ النَّحْرِ كَالْأُضْحِيَةِ اوڅكه چې دا دم نسك دې نومختص به وى په يوم نحر پورې پشان داضحيه.

**حل اللغة** ① تبليغ: رسول ② اراقة: بهيول ③ تفث: كوټ

**تشريح:-** مسئله ښكاره ده.

## دپاته هدايا د ذبح كولود وخت حكم

وَيَجُوزُ ذَبْحُ بَقِيَّةِ الْهَدَايَا فِي أَيِّ وَقْتٍ شَاءَ و جائز دى پاته هدايا ذبح كول په هر وخت كي چې غواړى. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا يَجُوزُ إِلَّا فِي يَوْمِ النَّحْرِ اعْتِبَارًا بِدَمِ الْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ امام شافعى رحمه الله فرمائى چې جائزنه دى مګر

[1] أخرجه أبوداود فى الحج باب ١٨ رقم ١٧٦٢ والترمذى فى الحج باب ٧١ رقم ٩١٠ وابن ماجه فى المناسك باب ١٠١ رقم ٣١٠٦ والنسائى فى السنن الكبرى (٤٥٤/٢) رقم ٤١٣٧)_



په يوم نحر كي .قياس په هدى دتمتع اوقران باندې كوى. فَإِنَّ كُلَّ وَاحِدٍ دَمُ جَبْرٍ عِنْدَهُ څكه چې پدوى كي هريو د ده په نزد دم جبردې. وَلَنَا أَنَّ هَذِهِ دِمَاءُ كَفَّارَاتٍ فَلَا تَخْتَصُّ بِيَوْمِ النَّحْرِ اوزموږ دليل دادې چې دا دكفارو قربانئ دى نومختص به نه وى په يوم نحر پورې لِأَنَّهَا لَمَّا وَجَبَتْ لِجَبْرِ النُّقْصَانِ كَانَ التَّعْجِيلُ بِهَا أَوْلَى لِارْتِفَاعِ النُّقْصَانِ بِهِ مِنْ غَيْرِ تَأْخِيرٍ څكه چې كله دا د نقصان پوره كاوه لپاره واجب شوې نوبه دې كي به تلواركول غوره وى چې لرې شى نقصان په دې سره بغير د تاخير نه ،بِخِلَافِ دَمِ الْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ لِأَنَّهُ دَمُ نُسُكٍ په خلاف د دم تمتع او قران څكه چې دغه دم د نسك دى.

**حل اللغة** ① اى وقت: په كوم وخت كي هم ② وجب، وجوبًا (ض): واجب كيدل

**تشريح:-** مسئله آسانه ده.د وضاحت محتاجه نه ده.

## د هدايا په حرم كي د ذبح كولوحكم

قَالَ وَلَا يَجُوزُ ذَبْحُ الْهَدَايَا إِلَّا فِي الْحَرَمِ اوجائزنه دى هدى ذبح كول مګر په حرم كي.

**تشريح:- محل ذبح الهدايا**۞مسئله دا ده.كه هدى نفلى وى اوكه غيرنفلى وى.صرف په حرم كي ددې ذبح كول جائز دى.دحرم نه سوې په زمين حل كي ئې هم ذبح جائزنه ده.

لِقَوْلِهِ تَعَالَى فِي جَزَاءِ الصَّيْدِ {هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ} څكه چې دالله ﷻ ارشاد دې په جزاء د ښكار كنبي (هديابالغ الكعبه) فَصَارَ أَصْلًا فِي كُلِّ دَمٍ هُوَ كَفَّارَةٌ نودا اصل شو په هرهغه قربانئ كي چې كفاره وى

**تشريح:- دلائل كون الحرم محل الذبح**۞دليل دا دې.① چه د ښكاردجزاء په اړه كي الله تعالى فرمائيلى دى. [هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ] اوپه آيت كي د كعبې نه عين كعبه مراد نه ده.بلكه حرم مراد دې.نودا قول په هرهغه دم كي يوبنا (بنياد) اواصل شو.كوم چې د كفاره په حيثيت واجب وى.نوهغه حرم ته رسول ضرروى دى.اود دم احصارپه اړه كي الله تعالى فرمائيلى دى[لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ] اودمطلق هدايا په اړه كي ئې فرمائيلى دى[ثُمَّ مَحِلُّهَا إِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيقِ]دا واړه آياتونه په دې دلالت كوى.چه دهدايا د ذبح كولوځائې حرم دې

وَلِأَنَّ الْهَدْيَ اسْمٌ لِمَا يُهْدَى إِلَى مَكَانٍ وَمَكَانُهُ الْحَرَمُ اوڅكه چې هدى دهغې نوم دې دهغې كومه چې ليږلې شى يومكان ته اومكان د دې حرم دې. قَالَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنًى كُلُّهَا مَنْحَرٌ وَفِجَاجُ مَكَّةَ كُلُّهَا مَنْحَرٌ[1] نبى ﷺ فرمائيلى دى چې منى واړه د قربانئ ځائې دې اود مكې لارې ټولې دقربانئ ځايونه دى.

**حل اللغة** ① منحر: د قربانئ ځائ ② فجاج: لارې

**تشريح:-** عقلى دليل دا دې.چه هدى هغې ته وائى.چه يوځائې ته هديه كړې شى.اودهغې محل حرم دې. دغه ډول نبى ﷺ فرمائيلى دى.چه منى ټوله د ذبحې ځائې دې.اودمكې لارې ټولې د ذبحې ځايونه دى.اودا دواړه مقامات په حرم كي داخل دى.(نومعلومه شوه.چه د ذبحې ځائې صرف حرم دې.كه بل ځائې وو.نبى ﷺ به ئې وضاحت كړې وو.

وَيَجُوزُ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِهَا عَلَى مَسَاكِينِ الْحَرَمِ وَغَيْرِهِمْ اوجائزدى چې ويش كړى غوښې دقربانئ په مسكينانو دحرم اود دوى نه علاوه په نورو خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ په خلاف دامام شافعى

**تشريح:- المذهبان في الفقراء المصرفين للهدايا**۞ ① زمونږ په نيز د هدايا غوښه دحرم اوغيرحرم په فقيرانو باندې صدقه كول جائزدى. ② اوامام شافعى رحمه الله فرمائى.چه صرف دحرم په فقيرانوئې صدقه كول جائز دى.

[1] من حديث جابر ﷺ أخرجه أبوداود فى المناسك باب ٦٤ رقم ١٩٣٧ وابن ماجه فى المناسك باب ٧٣ رقم ٤٨ وأحمد فى المسند (٣٣٦/٣)_

**دليل الشافعي** رحمه الله **امام شافعي رحمه الله صدقه په ذبح باندې قياس كوي.لكه څنګه چې ذبح د حرم نه سوې په بل ځائې كې نه كيږي.دغه ډول صدقه به هم د حرم د فقيرانو نه سوې په نورو فقيرانو نه كيږي.

لِأَنَّ الصَّدَقَةَ قُرْبَةٌ مَعْقُولَةٌ، وَالصَّدَقَةُ عَلَى كُلِّ فَقِيرٍ قُرْبَةٌ ځكه چې صدقه يو معقول قربت دې اوصدقه كول په هر فقير باندې قربت دې.

**تشريح:- الجواب عن قياس الشافعي** رحمه الله ۞خو مونږ وايو.چه د هدى د ذبح كولو وخت عبادت اوغير معقول دې.اوصدقه قربت معقوله دې.نو په هرفقير باندې صدقه كول قربت اوطاعت دې.كه د حرم وي اوكه د غير حرم.نو يو معقول څيز په غير معقول باندې قياس كول څنګه ټيك كيداې شي.

## دهدايا د تعريف حكم

قَالَ وَلَا يَجِبُ التَّعْرِيفُ بِالْهَدَايَا اودهدايو تشهير واجب نه دې لِأَنَّ الْهَدْيَ يُنْبِئُ عَنِ النَّقْلِ إِلَى مَكَانٍ لِيَتَقَرَّبَ بِإِرَاقَةِ دَمِهِ فِيهِ لَا عَنِ التَّعْرِيفِ فَلَا يَجِبُ ځكه چې لفظ دهدى خبرداري وركوي څه ځائې ته په منتقل كولوسره چې هلته په ذبح كاوه سره تقرب حاصل كړې شي نه كه تشهيرسره.نودا واجب نه دې.

**تشريح:- عدم وجوب التعريف** ۞بهرحال د دواړومعانيوپه اعتبارسره دهدى تعريف واجب نه دې.ځكه چې هدى نوم دې ددې چې حرم ته بوتلې شي.اوهلته ذبح كړې شي.اوغاړه كئ (غاړه كئ) اچول دهدى نوم نه دې.نوځكه تعريف واجب نشو.حاصل دا چې د تعريف وجوب په دوو طريقوسره ثابتيدې شي.يوپه دې چې نص موجود وي. دوهم دا چې د هدى په لفظ كې د تعريف معنى پرته وي.اودلته دواړه خبرې نشته.نوځكه تعريف واجب نه دې.

فَإِنْ عُرِّفَ بِهَدْيِ الْمُتْعَةِ فَحَسَنٌ لِأَنَّهُ يَتَوَقَّتُ بِيَوْمِ النَّحْرِ اوكه د هدى تمتع تشهير ئې اوكړو نودا ښه دې ځكه چې دا د يوم نحرسره موقت ده. فَعَسَى أَنْ لَا يَجِدَ مَنْ يُمْسِكُهُ فَيَحْتَاجُ إِلَى أَنْ يُعَرَّفَ بِهِ اوكيدې شي چې داسې سړى له پلاس ورشي چې ايساره ئې كړي نو اړتيا به وي دې لره عرفات ته د بوتلو وَلِأَنَّهُ دَمُ نُسُكٍ فَيَكُونُ مَبْنَاهُ عَلَى التَّشْهِيرِ او ځكه چې دا دنسك قرباني ده.نود دې بناء په په تشهيروي،

**حل اللغة*** ① يمس كه،امسكامساكًا: بندول ② تشهير: مشهورتيا وركول

**تشريح:- استحباب التعريف في هدايا النسك** ۞اوكه يوكس د هدى تعريف اوكړلو.نوښه خبره ده.كه تعريف عرفات ته د بوتلومعنى وه.نوهم ښه خبره ده.ځكه چې دهدى ذبح كول د يوم النحرسره خاص دى.نو كيداې شي.كه داسې څوك پيدا نشي.چه هغه ځان سره هدى د يوم النحرپورې اوساتي.اودهغې ساتنه اوكړي .نود ساتنه لپاره ځان سره هدى عرفات ته بوتلل ښه شو.اوكه تعريف هدي ته د غاړه كئ (غاړه كئ) نوم وي.اوهغې ته د شهرت وركاوه نوم وي.نوددې دښه والي دليل دا دې.چه هدى د حج دافعالو څنې ده. نو د دې بنا (بنياد) په تشهيرباندې پكار دې.چه طاعات په ښكاره باندې كيږي.نو خلګ وكې به جذبه پيدا شي.

بِخِلَافِ دِمَاءِ الْكَفَّارَاتِ لِأَنَّهُ يَجُوزُ ذَبْحُهَا قَبْلَ يَوْمِ النَّحْرِ عَلَى مَا ذَكَرْنَا په خلاف د قربانئ د كفارونه چې جائز دى ذبح كول دى وړاندې د يوم نحر نه لكه چې موږ ذكركړې دى وَسَبَبُهَا الْجِنَايَةُ فَيَلِيقُ بِهَا السَّتْرُ اود دوى سبب جرم دې نو پواړه ئې لائق دى.

**حل اللغة*** ① جناية: جرم.

**تشريح:- عدم العريف في هدايا الكفارة** ۞په خلاف د كفاراتود هدايا ځكه چې په هغې كې دواړه وجوه موجود نه دى.ځكه چې دكفاراتوهدايا د يوم النحر پورې خاص ن دى.كه فرض كه څوك د هدى د ساتنه لپاره پيدا نشو.نود يوم النحر نه دې وړاندې ذبح كړې عرفات ته د بوتلو اړتيا نشته.اود دم كفارې سبب جرم اوجنايت دې اوګناه سره پواړه زيات مناسب دى.نودكفاراتوپه هدايا كښې تعريف په هيڅ صورت كې بهترنه دې.



## په بدنه كې د نحراوپه غوې اووزه كې د ذبح فضيلت

قَالَ وَالْأَفْضَلُ فِي الْبُدْنِ النَّحْرُ وَفِي الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ الذَّبْحُ اوپه اوښ كې افضل نحرد دې اوپه غوااو وزه كې ذبح ده لِقَوْلِهِ تَعَالَى فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ ځكه چې دالله ﷻ ارشاد د دې نو لمونځ كوه دخپل رب په وړاندې اوقرباني كوه. قِيلَ فِي تَأْوِيلِهِ الْجَزُورُ وئيلې شوي دى په تاويل ددې كې چې نحر كوه اوښان. وَقَالَ اللَّهُ تَعَالَى أَنْ تَذْبَحُوا بَقَرَةً وَقَالَ اللَّهُ تَعَالَى {وَفَدَيْنَاهُ بِذِبْحٍ عَظِيمٍ} او دالله ﷻ ارشاد دې.دا چې ذبح كړئ يو غوا.دا شان دالله ﷻ ارشاد د دې چه،اوددې بدله وركړو موږ يوڅاروې د ذبح لپاره لوئې، وَالذِّبْحُ مَا أُعِدَّ لِلذَّبْحِ وَقَدْ صَحَّ: أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَحَرَ الْإِبِلَ وَذَبَحَ الْبَقَرَ وَالْغَنَمَ(1) اوذبح هغه حيوان (څاروې) دې چې د ذبحې لپاره تيار وي.اوصحيح ثابت دى چې نبي ﷺ اوښان نحركړل اوغوې او وزه ئې ذبح كړل. ثُمَّ إِنْ شَاءَ نَحَرَ الْإِبِلَ فِي الْهَدَايَا قِيَامًا وَأَضْجَعَهَا بياكه غواړي نواوښ دې په ولاړه نحر كړي په قربانولو كې اوكه غواړي په ډډه دې راوغورزوي وَأَيُّ ذَلِكَ فَعَلَ فَهُوَ حَسَنٌ اوهريوچه په دې اوكړي ښه دې. وَالْأَفْضَلُ أَنْ يَنْحَرَهَا قِيَامًا لِمَا رُوِيَ {أَنَّهُ ﷺ نَحَرَ الْهَدَايَا قِيَامًا} وَأَصْحَابُ كَانُوا يَنْحَرُونَهَا قِيَامًا اوغوره دا ده چې اوښان په ولاړه نحركړي ځكه چې روايت.دې چې نبي كريم ﷺ اوښان په ولاړې نحر كړل مَعْقُولَةَ الْيَدِ الْيُسْرَى(2) او اصحابو ﷺ نحركړل نواودرول به ئې په دې سې حال كښې چې چپه لاس به ئې تړلې وو. وَلَا يَذْبَحُ الْبَقَرَ وَالْغَنَمَ قِيَامًا لِأَنَّ فِي حَالَةِ الِاضْطِجَاعِ الْمَذْبَحُ أَبْيَنُ اونه ذبح كوي غوې وزه په ولاړې ځكه چې په ډډه دغورزولو په صورت كې د ذبحې ځائې ښه ښكاره كيږي. فَيَكُونُ الذَّبْحُ أَيْسَرَ وَالذَّبْحُ هُوَ السُّنَّةُ فِيهِمَا نوبيچ كول به زيات آسان وي اوذبح په دوى كې سنت ده.

**حل اللغة*** ① **التعريف:** دتعريف دوې [دوه] معانى دى.يوعرفات ته اوړل.او دوهم غاړكئ وغيره ورته اچول يا زخمى كول اوشهرت وركول

**تشريح:-** مسئله ښكاره ده.

## دهدى په خپله د ذبح كولواستحباب

قَالَ وَالْأَوْلَى أَنْ يَتَوَلَّى ذَبْحَهَا بِنَفْسِهِ إِذَا كَانَ يُحْسِنُ ذَلِكَ وغوره دا ده چې پخپله ئې ذبح كړي كله چې دې پخپله ښه كولې شي. لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاقَ مِائَةَ بَدَنَةٍ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَنَحَرَ نَيِّفًا وَسِتِّينَ بِنَفْسِهِ،ځكه چې روايت دى چې نبي كريم ﷺ سل بدنې رواني كړې په حجة الواع كې نو نحر ئې كړې څه د پاسه شپېته پخپله. وَوَلَّى الْبَاقِيَ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ(3) اودپاته لپاره ئې حضرت علي ﷺ متولى كړو. وَلِأَنَّهُ قُرْبَةٌ وَالتَّوَلِّي فِي الْقُرُبَاتِ أَوْلَى لِمَا فِيهِ مِنْ زِيَادَةِ الْخُشُوعِ اوځكه چې نحركول قربت دې اوپه طاعاتو پخپله متولى كيدل غوره دى.ځكه چې په دې كې عاجزى زياته ده. إِلَّا أَنَّ الْإِنْسَانَ قَدْ لَا يَهْتَدِي لِذَلِكَ وَلَا يُحْسِنُهُ فَجَوَّزْنَا تَوْلِيَتَهُ غَيْرَهُ مګركله چې بنده په دې پخپله نه پوهيږي اوښه نشى كولې نو موږ په دې كار باندې بل لره متولى كول جائزكړل.

**حل اللغة*** ① ساق، سوقًا (ن): څاورې د شانه ترټل ② خشوع: عاجزى

**تشريح:-** مسئله واضحه ده.

---

(1) تقدم تخريجه فى حديل جابر ﷺ )

(2) من حديث أنس ﷺ أخرجه البخارى فى الحج باب ٢٧ رقم ١٥٥١ وأبوداود فى المناسک باب ٢٤ رقم ١٧٩٦ والدارمی فی المناسک باب ٧٠)_

(3) تقدم تخريجه فى حديث جابر ﷺ )_

## قصاب ته په اجرت کې د هدي د څه څیز ورکول

(قَالَ وَيَتَصَدَّقُ بِجِلَالِهَا وَخِطَامِهَا وَلَا يُعْطِي أُجْرَةَ الْجَزَّارِ مِنْهَا) او خیرات دې کړي ددې څلونه مهارونه او نه دې ورکوي ددې نه اجرت د قصاب ۰ قَوْلِه ﷺ لِعَلِيٍّ تَصَدَّقْ بِجِلَالِهَا وَبِخُطُمِهَا څکه چې د نبي ﷺ ارشاد دې علي ؓ ته چې صدقه کړه د دې څلونه او مهارونه وَلَا تُعْطِ أَجْرَ الْجَزَّارِ مِنْهُ (۱) او مه ورکوه قصاب ته په مزدورئ کې ددې نه

حل اللغة* ① د خناورو څل ② خطام: رسئ ③ جزار: قصاب ]

تشریح:- مسئله ښکاره ده.

## په بدنې باندې سوریدو ته احتیاج

(وَمَنْ سَاقَ بَدَنَةً فَاضْطُرَّ إِلَى رُكُوبِهَا رَكِبَهَا) او چا چې روانه کړه بدنه بیا حاجتمند شود دې سوریدو ته نو سور دې شي (وَإِنْ اسْتَغْنَى عَنْ ذَلِكَ لَمْ يَرْكَبْهَا) او که بې حاجته شود دې نه. نو نه دې سورېږي. لِأَنَّهُ جَعَلَهَا خَالِصَةً لِلَّهِ تَعَالَى، فَمَا يَنْبَغِي أَنْ يَصْرِفَ شَيْئًا مِنْ عَيْنِهَا أَوْ مَنَافِعِهَا إِلَى نَفْسِهِ څکه چې ده خالصه د الله ﷻ لپاره کړېده. نو مناسب نه دی چې ددې د ذات یا منافع د ځان لپاره خرچ کړي. إِلَى أَنْ يَبْلُغَ مَحِلَّهُ تردې چې خپل ځائي ته اورسي

حل اللغة* ① فاضطر، اضطراراً: مجبور کیدل ② ان یصرفه صرف صرفًا (ض): ګرځول ③ ان يبلغ، بلغ بلوغًا (ن): رسول

تشریح:- کوم کس چې بدنه روانه کړې وي. او حرم ته روان وي. په لارکې ستړې شي. او د تګ توان نه لري. تو ده ته په بدنه د سوریدو اجازت شته. خو که د پیدل تګ توان ئې وي. نو سورېږي به پرې نه. څکه چې بدنه خالص دالله تعالی حق دې. نو ددې د ذات یا منافع نه فائده اخستل مناسب نه دی. تردې چې خپلې محل ته اورسولې شي. او ذبح کړې شي.

إِلَّا أَنْ يَحْتَاجَ إِلَى رُكُوبِهَا مګر دا که په دې سپرلئ کاوه ته محتاج وي. لِمَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يَسُوقُ بَدَنَةً فَقَالَ ارْكَبْهَا وَيْلَكَ} (۲) څکه روایت دې چې نبي کریم ﷺ یو سړې اولیدو چې بدنه ئې روانه کړېوه نو وې فرمائيل چې سوشه په دې خوار شې. وَتَأْوِيلُهُ أَنَّهُ كَانَ عَاجِزًا مُحْتَاجًا او د دې تاویل دا دې چې هغه د تلونه عاجز سپرلئ ته محتاج وو

تشریح:- البته که سپرلئ ته محتاج شو. نو سورلی پرې کولې شي. څکه چې په حدیث کې دي. چه یو کس هدي شړله. نبي ﷺ ورته اوفرمائيل. تباه شه (دا کوټ نه دی. د عربو محاوره ده) په دې باندې سورشه. ددې حدیث مطلب دا دې. چه هغه کس د پیدل تلونه عاجز وو. او سپرلئ ته محتاج وو. څکه ورته نبي ﷺ په هغې د سوریدو حکم اوکړلو.

## د سپرلئ په وجه د نقصان ضمان او د پیونه لوشل

(وَلَوْ رَكِبَهَا فَانْتَقَصَ بِرُكُوبِهِ فَعَلَيْهِ ضَمَانُ مَا نَقَصَ مِنْ ذَلِكَ) او که سورشو په دې او نقص پکې راغلو ده په سوریدو سره نو تاوان دې پرې د نقصان د هغې.

---

(۱) أخرجه البخاري فى الحج باب ۱۱۳ رقم ۱۷۰۷ ومسلم فى الحج رقم ۳٤۹ وأبوداود فى المناسک باب ۲۰ رقم ۱۷۶۹ وابن ماجه فى المناسک باب ۹۷ رقم ۳۰۹۹ والدارمى فى المناسک باب ۸۹ وأحمد فى المسند (۷۹/۱) وهوعندالنسائى فى السنن الكبرى (٤۵۶/۲) رقم ٤۱٤۶)_

(۲) من حديث أنس ؓ وغيره أخرجه البخارى فى الحج باب ۱۰۳ ومسلم فى الحج رقم ۳۷۱ وأبوداود فى المناسک باب ۱۷ والترمذى فى الحج باب ۷۲ والنسائى فى الحج باب ۷۳ وابن ماجه فى المناسک باب ۱۰۰ والدارمى فى المناسک باب ۶۹ ومالک فى رم ۱۳۵ وأحمد فى المسند (۲٤۵/۲)_



حل اللغة* ① ركبها، ركب ركوبًا (س): سوریدل ② فانتقص، انتقص انتقاصًا: نقص راتګ

تشریح:- جوب ضمان النقصان ۞ که په بدنه باندې د مجبورئ د امله سورلی اوکړي. خو په سوریدو سره په هغې کې څه نقصان پیدا شو. نو ده هغه نقصان به دې ضامن وي. چه څومره نقصان پیدا شوې وي. په هغه اندازه به صدقه ورکړي.

(وَإِنْ كَانَ لَهَا لَبَنٌ لَمْ يَحْلُبْهَا) لِأَنَّ اللَّبَنَ مُتَوَلِّدٌ مِنْهَا او که وو د هغې شیدې نو نه په لوشي. څکه چې شیدې د هغې نه پیدا دی فَلَا يَصْرِفُهُ إِلَى حَاجَةِ نَفْسِهِ نو نه به ئې صرف کوي پخپل ذاتي اړتیا کې (وَيَنْضَحُ ضَرْعَهَا بِالْمَاءِ الْبَارِدِ حَتَّى يَنْقَطِعَ اللَّبَنُ) او په تیونو به ئې یخې اوبه اچوي. تردې چې شیدې پکې اوچ شي.

حل اللغة* ① لبن: شیدې ی ② لم يحلبها، حلب حلبًا (ن،ض): شیدې ی لشل ③ ضرع: تینه، غلانځه

تشریح:- عدم جواز حلب اللبن ۞ او که بدنه ښځه وي. او هغه شیدې کوي. نو د هغې څخه به شیدې نه لوشي. څکه چې شیدې هم د هغې نه پیدا کیږي. بلکه په یخو اوبو به پرې چړکاؤ کوي. چه شیدې ئې اوچ شي.

وَلَكِنْ هَذَا إِذَا كَانَ قَرِيبًا مِنْ وَقْتِ الذَّبْحِ خو دا هغه وخت ده چې دا ذبحې ته نزدې وي فَإِنْ كَانَ بَعِيدًا مِنْهُ يَحْلُبُهَا وَيَتَصَدَّقُ بِلَبَنِهَا كَي لَا يَضُرَّ ذَلِكَ بِهَا او که لرې وي نو لوشئ به ترې او خیرات کوي به د غه شیدې ورته ضرر اونه رسوي وَإِنْ صَرَفَهُ إِلَى حَاجَةِ نَفْسِهِ تَصَدَّقَ بِمِثْلِهِ أَوْ بِقِيمَتِهِ لِأَنَّهُ مَضْمُونٌ عَلَيْهِ او که پخپل ذاتي اړتیا کې ئې خرچ کړل نو د هغې په مثل یا قیمت دې صدقه کړي.

تشریح:- رخصة حلب اللبن ۞ خو دا حکم په هغه وخت کې دې. چه د قربانئ وخت نزدې وي. او که د ذبح کولو وخت لرې وي. نو د هغې نه دې شیدې لوشي. او هغه شیدې دې صدقه کوي. چه د پیوته نقصان اونه رسي. او که د غه شیدې ئې په خپل استعمال کې راوستل. نو د هغې مثل دې صدقه کړي. څکه چې شیدې مثل دې. او قیمت ئې صدقه ده. څکه چې قیمت هم مثل معنوی دی. د دې دلیل دا دې. چه په ده باندې د پیو ضمان واجب دې. او چه د کوم څیز ضمان واجب وي. نو د هغې حکم هم دا دې. چه د هغې مثل ورکړي. او که مثل نه پیدا کیږي. نو قیمت د هغې مثل معنوی دې.

## د هدي په هلاکت د ضمان وجوب

(وَمَنْ سَاقَ هَدْيًا فَعَطِبَ، فَإِنْ كَانَ تَطَوُّعًا فَلَيْسَ عَلَيْهِ غَيْرُهُ) او چا چه روانه کړه هدي او دستړې والی نه هلاکه شوه نو که دا نفلي وه نو بله پرې واجب نده لِأَنَّ الْقُرْبَةَ تَعَلَّقَتْ بِهَذَا الْمَحَلِّ وَقَدْ فَاتَ څکه چې قربت مولښتی شوې وود دې محل سره او هغه محل لاړو.

حل اللغة* ① تطوع: نفلي

تشریح:- سقوط الهدى بهلاک الهدى التطوع ۞ که یو کس هدي روانه کړه. او په لارکې هدي هلاکه شوه. نو ددې دوې [دوه] صورتونه دی. که نفلي هدیه وي. نو په ده باندې څه واجب نه دی. څکه چې قربت او طاعت هم په دغه محل پورې متعلق وو. چه هغه فوت شو.

(وَإِنْ كَانَ عَنْ وَاجِبٍ فَعَلَيْهِ أَنْ يُقِيمَ غَيْرَهُ مَقَامَهُ) لِأَنَّ الْوَاجِبَ بَاقٍ فِي ذِمَّتِهِ او که واجب وي نه وو نو په ځائې ددې به بله او درول په ده واجب وي. څکه چې واجب د ده په ذمه پاته دی.

حل اللغة* ① ان يقيم، اقام اقامة: قائمول

تشریح:- وجوب الهدي الثانية في الواجب ۞ دوهم صورت دا دې. چه هغه هدي واجب وي. نو په دې صورت کې پرې بله هدي واجب شوه. څکه چې کومه هدي ده روانه کړې وه. هغه خپل محل ته اونه رسیدله. نو ده ده ذمه فارغه نشوه. څکه پرې دویمه هدي واجب ده.

(وَإِنْ أَصَابَهُ عَيْبٌ كَبِيرٌ يُقِيمُ غَيْرَهُ مَقَامَهُ) او که په دې کې ډیر عیب راغلو نو د دې په ځائې به بله مقرر کوي.

لِأَنَّ الْمَعِيبَ بِمِثْلِهِ لَا يَتَأَدَّى بِهِ الْوَاجِبُ فَلَا بُدَّ مِنْ غَيْرِهِ ځکه په دې سې عیب دارې سره واجب نه اداکیږي نود بلې اړتیا دي (وَصَنَعَ بِالْمَعِيبِ مَا شَاءَ) لِأَنَّهُ الْتَحَقَ بِسَائِرِ أَمْلَاكِهِ اود عیب دارې سره چې څه غواړي اودې کړي ځکه چې دا د ده دپاته املاکو سره ملاؤشوه.

**حل اللغة** ① لابد: ضروري ② معيب: عيب دار

**تشريح:- حكم صورة النقص الكثيرفي الهدى**۞اوکه په هدی کي داسې عیب پیدا شو.چه دهغه په وجه هغه د قرباني قابله پاتې نشوه.نوپه دې صورت کي هم په ده باندې دویمه هدیه واجب شوه.اوچه کومه هدی عیبجنه وي.په هغې چې ئې څه خوښه وي.اودې کړي.ځکه چې هغه دده د نورو مملوك څیزونو پشان شوه.

## د بدنه د هلاکت په صورت کي نحرکول

وَإِذَا عَطِبَتِ الْبَدَنَةُ فِي الطَّرِيقِ، فَإِنْ كَانَ تَطَوُّعًا نَحَرَهَا وکه هلاکه شوه بدنه په لاره کي نوکه نفلی وه.نونحر دي کړي وَصَبَغَ نَعْلَهَا بِدَمِهَا وَضَرَبَ بِهَا صَفْحَةَ سَنَامِهَا و قلاده دې ورلره په وینه رنګ کړي اوقب په ډډه دې پرې جاپ اولګوي وَلَا يَأْكُلْ هُوَ وَلَا غَيْرُهُ مِنَ الْأَغْنِيَاءِ مِنْهَا اونه به خوري ترې دې اونه بل څوك دمالدارو نه بِذَلِكَ أَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ نَاجِيَةَ الْأَسْلَمِيَّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ [1] په دې سره حکم فرمائلې وو نبی کریم ﷺ ناجیه اسلمی ﷛ وَالْمُرَادُ بِالنَّعْلِ قِلَادَتُهَا اومراد دنعل نه ددې قلاده ده

**حل اللغة** ① عطبت،عطبًا (س): هلاكيدل ② طريق: لار ③ صبغ، صبغًا (ف): رنګ کول ④ سنام: بوق

**تشريح:- حكم هلاك البدنة التطوع**۞که بدنه په لارکي هلاکت ته نزدې شوه.نوددې دوې [دوه] صورتونه دی.که نفلی وی.نودهغې نحر دې اوکړي.اودهغې په وینودې دهغې نعل اوقب رنګ کړي.اودهغې نه دې نه په خپله خوراك کوی.اونه دې په نورومالدارانوباندې خوراك کوی.ځکه چې نبی ﷺ حضرت ناجیه اسلمی ﷛ ته ددې حکم کړې وو.اود نعل نه مراد د هدی غاړه ګئ (غاړه کئ) ده.

وَفَائِدَةُ ذَلِكَ أَنْ يَعْلَمَ النَّاسُ أَنَّهُ هَدْيٌ اود دې فائده دا ده چې خلګ پوهه شي چې دا د قربانئ حیوان (څاروې) دې فَيَأْكُلَ مِنْهُ الْفُقَرَاءُ دُونَ الْأَغْنِيَاءِ نوخوری به ترې فقیران نه چې مالدارن. وَهَذَا لِأَنَّ الْإِذْنَ بِتَنَاوُلِهِ مُعَلَّقٌ بِشَرْطِ بُلُوغِهِ مَحِلَّهُ اوځکه چې د تناول اجازت په دې سره مشروط دې چې دغه خپل ځائې ته اورسي. ..فَيَنْبَغِي أَنْ لَا يَحِلَّ قَبْلَ ذَلِكَ أَصْلًا روسته د دې نه، وړاندې بیخی نه حلالیږي، إِلَّا أَنَّ التَّصَدُّقَ عَلَى الْفُقَرَاءِ أَفْضَلُ مِنْ أَنْ يَتْرُكَهُ جَزَرًا لِلسِّبَاعِ دومره ده چې په فقیرانو صدقه کول غوره دی ددې نه چې درندګانوته پرېښولې (پریخودې) شي، وَفِيهِ نَوْعُ تَقَرُّبٍ وَالتَّقَرُّبُ هُوَ الْمَقْصُودُ اوپه دې کي یو ډول تقرب دې.اومقصود هم دا تقرب دې

**تشريح:- حكمة تصبيغ النعل والسنام**۞اودنعل اوقب په رنګ کولوکي فائده دا ده.چه خلګ به پوهه شي.چه دا د هدی حیوان (څاروې) دې.نوفقیران به ترې خوارك اوکړي.او شتمن (مالدارن) به ترې نه کوی.اوددې وجه دا ده.چه دهدی د غوښې نه په خپله خوراك کول په دې شرط پورې مشروط دې.چه هغه خپل محل ته اورسی.مناسب خودا وه.چه دا د چا لپاره هم جائزنه وه.نه د فقیرانواونه د مالدارانودپاره.خود درندګانوته د پریخودو په نسبت دا ښه ده.چه په فقیرانوصدقه شي.اوپه فقیرانوصدقه کولوکي یو ډول تقرب دې.اوهم تقرب اصلی مقصد دې.

---

[1] اخرجه أبوداود فی الحج باب ١٨ رقم ١٧٦٢ والترمذی فی الحج باب ١٧ رقم ٩١٠ وابن ماجه فی المناسک باب ١٠١ رقم ٣١٠٦ والنسائی فی السنن الكبرى (٤٥٤/٢) رقم ٤١٣٧)قال الزيلعی ﷫ ليس فی حديث ناحية ﷛ قوله ((ولاتأكل منه أنت ولا أحد من رفيقك)) ثم وجدناه فی، المغازی ، للواقدی ﷫ (نصب الراية ٢٠٩/٣)_



فَإِنْ كَانَتْ وَاجِبَةً أَقَامَ غَيْرَهَا مَقَامَهَا وَصَنَعَ بِهَا مَا شَاءَ اوکه دغه هدی واجب وه.نود دې په ځائې دې بله اودروی اودمذبوحه سره چې څه غواړي اودې کړي لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ صَالِحًا لِمَا عَيَّنَهُ وَهُوَ مِلْكُهُ كَسَائِرِ أَمْلَاكِهِ ځکه دا د هغې لائقه نشوه دکوم لپاره چې معینه شوې وه اودده ملکیت شو پشان دنورو املاکو دده.

**تشريح:- حكم البدنة الواجبة**۞اوکه هغه بدنه واجب وی.نودهغې په ځائې دې بله بدنه اولیږي.ځکه چې د کوم مقصد لپاره ئې هغه روانه کړې وه.هغه مقصد ترې پوره نشو.اوپاتې شوه ددې غوښه.نوچه په هغې ئې څه خوښه وی هغه دې پرې اوکړي.ځکه چې دا د ده دنورمملوك څیزونو پشان شوه.اوپه نوروکښې ده ته کلی اختیارحاصل دې.دغه ډول ورته په دې کي هم حاصل دې.

## نفلي اودقران بدنه ته غاړه کئ اچول

وَلَا يُقَلِّدُ هَدْيَ التَّطَوُّعِ وَالْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ لِأَنَّهُ دَمُ نُسُكٍ اوقلاده دې واچوی نفلی اودتمتع اودقران هدیته ځکه چې دا دم دنسك دې وَفِي التَّقْلِيدِ إِظْهَارُهُ وَتَشْهِيرُهُ فَيَلِيقُ بِهِ اوپه تقلید کي ددې اظهار اوتشهیر دې نوتقلید ئې لائق دې. يُقَلِّدُ دَمَ الْإِحْصَارِ وَلَا دَمَ الْجِنَايَاتِ لِأَنَّ سَبَبَهَا الْجِنَايَةُ وَالسَّتْرُ أَلْيَقُ بِهَا او ددم احصار تقلیدونه به نه کوی اونه د دم جنایات.ځکه چې د دوی سبب جنایت دې نوپرده اچول پرې لائق دی وَدَمُ الْإِحْصَارِ جَابِرٌ فَيَلْحَقُ بِجِنْسِهَا اودم احصار جابردنقصان دې نودخپل جنس سره مولبنتی کولےشي. ثُمَّ ذَكَرَ الْهَدْيَ وَمُرَادُهُ الْبَدَنَةُ لِأَنَّهُ لَا يُقَلِّدُ الشَّاةَ عَادَةً وَلَا يُسَنُّ تَقْلِيدُهَا عِنْدَنَا بیا ذکرئې هدی کړه اومراد بدنه ده ځکه چې عادتًا دوزه تقلید نشی کولې.اوزموږ په نزد ددې تقلید مسنون نه دې، لِعَدَمِ فَائِدَةِ التَّقْلِيدِ عَلَى مَا تَقَدَّمَ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ د املہ دنشتوالی دفائدې دتقلیدنه لکه چې مخکي تیرشوی دی.والله اعلم بالصواب.

**حل اللغة** ① تقليد: پټه اچول یامنل ② تشهير: مشهورکول ③ ستر: پواړه ④ البق: ډیر مناسب

**تشريح:-** مسئله واضحه ده.

## مسائل منثورة

متفرقي مسئلي دی.

أَهْلُ عَرَفَةَ إِذَا وَقَفُوا فِي يَوْمٍ وَشَهِدَ قَوْمٌ أَنَّهُمْ وَقَفُوا يَوْمَ النَّحْرِ أَجْزَأَهُمْ اهل عرفه چې په یوه ورځ د عرفې وقوف اوکړو.اوګواهی ورکړه یوقوم چې خلګو په لسمه ذی‌الحجه وقوف کړې دےنو وقوف به ورلره کافی وی

**تشريح:- وجه ايراد الفصل**۞د مصنفینو ﷭ دا عادت وی.چه د کتاب په آخرکي د تیروشوو بابونوسره متعلقه نادرې اوناشنا مسائل ذکرکوی.اودهغې لپاره جلا فصل راوړی.اودمسائل منثوره یا مسائل مختلفه یا مسائل شتی عنوان ورته ورکوی.صاحب دهدایه ﷫ هم ددغه عادت پشان د مسائل منثوره عنوان قائم کړې دې.

**۩عدم صحة الشهادة بالوقوف بيوم النحر**۞صورت د مسئلې دا دې.چه یوقوم ګواهی ورکړه.چه خلګو وقوف عرفه په لسمه ذوالحجه باندې کړې دې.مطلب دا چې وقوف عرفات د نهمې ذوالحجې نه واخله تریوم النحر سهار راختوپورې کیږي.اوس چې کوم قوم ګواهی ورکړه.چه خلګ وپه لسمه ذوالحجه وقوف کړې دې.نومطلب دا شو.چه وقوف عرفات ترې فوت شو.اوچه وقوف عرفات فوت شو.نوحج فوت شو.ماتن فرمائی.چه ددې خلګو ګواهی معتبره نه ده.بلکه وقوف اوشو.اوددوی حج پوره شو.

وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يُجْزِيَهُمْ اعْتِبَارًا بِمَا إِذَا وَقَفُوا يَوْمَ التَّرْوِيَةِ اوقیاس دادې چې کافی نشي.قیاس په هغې صورت دې چې خلګو په اتمه ورځ وقوف کړې وی. وَهَذَا لِأَنَّهُ عِبَادَةٌ تَخْتَصُّ بِزَمَانٍ وَمَكَانٍ فَلَا يَقَعُ عِبَادَةً دُونَهُمَا اودا ځکه چې وقوف داسې عبادت دې چې مختص دې د زمان اود مکان سره.نود دې نه بغیربه عبادت واقع نه وی

**تشریح:- وجه القیاس**۞دقیاس تقاضا خو دا ده.چه دا وقوف دې صحیح کافی نشی.ځکه که چرته خلګ وپه اتمه ذوالحجه باندې وقوف عرفات اوکړلو.او خلګ وګواهی ورکړه.چه وقوف په اتمه ذوالحجه شوې دې.نوپه دې صورت کې دغه وقوف معتبر نه دې.بلکه دوی به په نهمه ذوالحجه وقوف کوی.نودغه ډول په لسمه ذوالحجه وقوف اوکړی.نوپکارده چې هم وقوف صحیح نشی.صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.(چه د قیاس تقاضا دا ده.)چه په ذکرشوی صورت کې د عدم صحت ځکه ټیك دې.چه وقوف داسې عبادت دې.چه د زمان (دنهمې ذوالحجې د زوال نه روسته تر سهار دیوم النحرپورې) اود مکان (میدان عرفات) پورې مخصوص دې.نوځکه به د دې دواړو نه بغیروقوف عبادت نه وی.اوهرکله چې ګواهانوګواهی ورکړه.چه وقوف په لسمه ذوالحجه شوې دې.نوچونکه دا وقوف په خپل وخت کې اونشو.نودا وقوف معتبر نشو.اوچه وقوف معتبرنشو.نوحج هم اونشو.

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ هٰذِهِ شَهَادَةٌ قَامَتْ عَلَى النَّفْيِ وَعَلَى أَمْرٍ لَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْحُكْمِ وجه داستحسان دا ده چې دا داسې شهادت دې چې په نفی قائمیږی اوپه دې سې امر قائمیږی چې دحکم لاندې داخل نه دې. لِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنْهَا نَفْيُ حَجِّهِمْ، وَالْحَجُّ لَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْحُكْمِ فَلَا تُقْبَلُ ځکه چې ددې ګواهۍ مقصد د دوی دحج نفی ده او حج د حکم لاندې نه داخلیږی نو قبوله به نه وی ګواهی.

**تشریح:- وجوه الاستحسان**۞وجه د استحسان دا ده.①چه دا ګواهی په نفی باندې قائمه شوې ده.ځکه چې ددوی دا ګواهی ورکول چې وقوف په یوم النحرکې شوې دې.نودا په حقیقت کې ددې ګواهی ورکول دی.چه وقوف نه دې شوې.اوچه وقوف اونشو.نوحج اونشو.خودا ده.چه دا ګواهی په دې سې څیزباندې ده. چه هغه د قاضی د حکم دلاندې نه دې.ځکه چې حج د قاضی د حکم دلاندې نه دې.اوکه دا قانون دې.چه یوه ګواهی په نفی باندې قائمه وی.اوپه دې سې څیزوی.چه هغه دحاکم اوقاضی د حکم دلاندې نه وی. نوهغه ګواهی به نشی قبلولې.اوچه ګواهی قبوله نشوه.نوپه یوم النحرکې د دوی وقوف شرعاً معتبر نشو.اوچه په یوم النحرکښې وقوف معتبرنشو.نوحج صحیح شو.

وَلِأَنَّ فِيهِ بَلْوَى عَامًّا لِتَعَذُّرِ الِاحْتِرَازِ عَنْهُ وَالتَّدَارُكُ غَيْرُ مُمْكِنٍ اوځکه چې په دې کې ابتلاء عامه ده.ددې نه بچ کیدل ګران دی اوځکه چې تدارك ناممکن دې. وَفِي الْأَمْرِ بِالْإِعَادَةِ حَرَجٌ بَيِّنٌ فَوَجَبَ أَنْ يُكْتَفَى بِهِ عِنْدَ الِاشْتِبَاهِ او د حج د اعادې حکم کاوه کې ښکاره حرج دې نوواجب شوه اکتفاء په دغې وقوف په وخت داشتباه کې

**تشریح:-** دوهم دلیل دا دې.چه په دې کې دعواموابتلاء ده.ځکه چې د میاشت په تاریخ کې اکثراختلاف واقع کیږی.اوددې نه بچ کیدل ګران دی.اوګواهی چونکه د وقوف عرفات نه روسته ورکړې شوې ده.نوددې تدارك هم ممکن نه دې.البته دا چې په راروان کال د حج راګرځولوحکم اوشی.اوراروان کال ته د حج راګرځولوپه حکم کې ښکاره حرج دې.ځکه چې په دې کې کوم تکلیفونه اوسختۍ پیدا کیږی.هغه ښکاره دی.اوالله تعالی حرج پورته کړې دې.نود اشتباه په وخت کې چې کوم وقوف شوې وی.په هغې به اکتفا کولې شی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا وَقَفُوا يَوْمَ التَّرْوِيَةِ لِأَنَّ التَّدَارُكَ مُمْكِنٌ فِي الْجُمْلَةِ په خلاف د هغې چې خلګو په اتمه وقوف کړې وی.ځکه چې د دې تدارك ممکن دې فی الجمله. بِأَنْ يَزُولَ الِاشْتِبَاهُ يَوْمَ عَرَفَةَ په دې طریقه چې دعرفې د ورځې اشتباه لرې شی

**حل اللغة:** ①تدارك: دغلطۍ اصلاح کول، صحیحوالې کول

**تشریح:-** پاتې شوه هغه صورت چې په اتمه ذوالحجه وقوف شوې وی.نوهلته وقوف معتبر نه دې.ځکه چې هلته د اشتباه په لرې کولوکې حرج نشته.ځکه چې د اتمې ذوالحجې نه واخله ترې لسمې ذوالحجې د سهار راختوپورې ډیروخت دې.نوپه نهمه ذوالحجه به وقوف اوکړی.اودا حساب څه ګران هم نه دې.څه چې په



لکهونو خلګ وی.په ولې په هغوی کې به داسې څوك نه وی.چه په حساب به پوهیږی

وَلِأَنَّ جَوَازَ الْمُؤَخَّرِ لَهُ نَظِيرٌ اوځکه چې جواز د تاخیر ئې نظیردې. وَلَا كَذٰلِكَ جَوَازُ الْمُقَدَّمِ اومقدم جائزکیدل داسې نه دی

**تشریح:-** دوهم دلیل دا دې.که وقوف عرفه د خپل وخت نه روستوکړې شی.نوددې نظیرموجود دې.لکه څنګه چې لمونځ د خپل وخت نه روستوشی.نوقضاء ئې روړې شی.اوکه د روژې د رمضان نه روستوشی.نوقضا ئې راوړې شی. نو دغه ډول په یوم النحرکې وقوف هم جائزدې.خودخپل وخت نه د یوعبادت د وړاندې کولونظیرموجود نه دې.نوکه په یوم الترویه باندې وقوف اوکړی.اوروستومعلومه شی.نودغه وقوف به معتبر نه وی.بلکه په ورځ د عرفې به دهغې اعاده کوی.

**السوال والجواب**۞خوکه څوك اعتراض اوکړی.چه صدقه فطراوزکاة دخپل وخت نه وړاندې ورکول جائزدی.نوپه اتمه ذوالحجه د وقوف کولونظیرهم موجود شو.پکارده چې د اتمې ذوالحجې وقوف دې هم معتبرشی.نوددې نه ځواب دا دې.چه په دې دواړو صورتونوکې تقدیم خلاف القیاس ثابت شوې دې.نوبل څیزبه په دې باندې نشی قیاس کولې.

قَالُوا: يَنْبَغِي لِلْحَاكِمِ أَنْ لَا يَسْمَعَ هٰذِهِ الشَّهَادَةَ وَيَقُولَ قَدْ تَمَّ حَجُّ النَّاسِ فَانْصَرِفُوا مشائخو وئیلی دی چې حاکم لره پکار دی چې دا ګواهی دې نه اوری او وائی چې د خلګو حج پوره شو.نوتاسو واپس شئ لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهَا إِلَّا إِيقَاعُ الْفِتْنَةِ ځکه چې په دې ګواهۍ کې دفتنې نه سوې بل هیڅ نشته

**تشریح:- وجه عدم قبول الشهادة**۞مشائخو رحمهم الله فرمائیلی دی.چه کوم خلګ په یوم النحرد وقوف شهادت ورکړی.نوقاضی دې د دوی ګواهی نه اوری.بلکه دوی ته دې اووائی.چه تاسوپه خپلوکورونوکې کینئ. ځکه چې په دې ګواهی کې د فتنې نه بغیربل څه نشته.حالانکه په حدیث کې دی. «الفتنة نائمة لعن الله من أيقظها» یعنی فتنه ویده (اوده) وی.الله تعالی دې په هغه چا لعنت اوکړی.چه دا رابیداره کړی. لنډیز دا چې د دې ګواهۍ د نقصان نه سوې څه فائده نشته.ځکه چې دا ګواهی ورکړی.نوپه دې به په د خلګ وپه زړونوکې د خپل حج په اړه شك پیدا شی.چه ددوی حج اوشو اوکه نه.

وَكَذَا إِذَا شَهِدُوا عَشِيَّةَ عَرَفَةَ بِرُؤْيَةِ الْهِلَالِ دغسې که ګواهانو دعرفې په آخری وقت کې ګواهی ورکړه د میاشتې لیدو. وَلَا يُمْكِنُهُ الْوُقُوفُ فِي بَقِيَّةِ اللَّيْلِ مَعَ النَّاسِ أَوْ أَكْثَرِهِمْ او امام لره په پاته شپه کې د ټولو یا اکثرو خلګو سره وقوف ممکن نه وو لَمْ يَعْمَلْ بِتِلْكَ الشَّهَادَةِ نونه به کوی عمل په دې ګواهۍ باندې.

**حل اللغة:** ① عشية: شپه ② رؤية: کتل

**حکم الشهادة في الوقت الاخيرمن يوم العرفة**۞صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.(چه خلګ په اتمه ذوالحجه وقوف اوکړی.اوبیا) په نهمه ذوالحجه بیخی په آخری وخت کې خلګو ګواهی ورکړی.چه نن د عرفې ورځ ده.اوپه دغه وخت کې شپه یا د شپې څه برخه باقې پاتې وه.اودامام لپاره په شپه کې د ټولو خلګو یا داکثرو خلګو راجمع کول ممکن نه وو.هغه داسې چې یا واړه خپاره شوې وی.یا اکثراویا دا چې راجمع کول ورله ممکن وو.خوعرفات ته د سهار ختو نه وړاندې وړاندې نشو رسیدې.نوپه دې صورت کې ګواهی داسې شوه.لکه چې د وخت نه روسته وی.نوکوم حکم چې په هغه صورت کې وو.چه د وخت وتلونه روسته ګواهی ورکړی.دغه ډول به ددې حکم هم وی.

**صورة لزوم الاعادة**۞ددې مسئلې نه دا هم معلومه شوه.که امام د زیاتو خلګو سره وقوف عرفات لاندې کولې شو.نوپه دغه ګواهۍ باندې عمل لازم دې.

## په اوله ورځ کې د رمی نه کولوحکم

قَالَ وَمَنْ رَمَى فِي الْيَوْمِ الثَّانِي الْجَمْرَةَ الْوُسْطَى وَالثَّالِثَةَ وَلَمْ يَرْمِ الْأُولَى چا چې په دویمه ورځ دجمره وسطی دریمه رمی اوکړه او اولی رمی ئې اونکړه فَإِنْ رَمَى الْأُولَى ثُمَّ الْبَاقِيَتَيْنِ فَحَسَنٌ بیاکه ده د اولی جمرې رمی اوکړه بیا دپاته دواړو نوبه ئې اوکړل لِأَنَّهُ رَاعَى التَّرْتِيبَ الْمَسْنُونَ ځکه چې ده مسنون ترتیب اوساتلو وَلَوْ رَمَى الْأُولَى وَحْدَهَا أَجْزَأَهُ لِأَنَّهُ تَدَارَكَ الْمَتْرُوكَ فِي وَقْتِهِ وَإِنَّمَا تَرَكَ التَّرْتِيبَ اوکه رمی ئې اوکړه د اولی ځانله نوداهم ده لپاره کافی ده.ځکه چې ده دمتروک تدارک دهغه په وخت کې اوکړو.صرف ترتیب ئې پرېښودو.

**حل اللغة**: ① رمی،رمیاً (ض): غورزول، ویشتل

**تشریح: ترک الجمرة الاولی ثم اعادته**۞مسئله دا ده.چه یوحاجی په یوولسمه ذوالحجه باندې مینځنۍ او آخری جمره اوویشتله.خود جمره اولی ویشتل ئې پرېخودل.حالانکه په دې ورځ د درې واړو جمراتو ویشتل واجب دی.اوبیا دې حاجی هم په دغه ورځ کې رمی اوکړله.نوکه صرف دهغه جمرې رمی ئې اوکړله.کومه چې ئې پرېښولې (پرېخودې) وه.اود پاته دوو رمی ئې اونکړله.نوهم جائزده.ځکه چې ده چې کومه رمی پرېښولې (پرېخودې) وه.هغه ئې په خپل وخت کې اوکړله.زیات نه زیات دا اوشو.چه مسنون ترتیب ئې پرېښولو .اود ترتیب په پرېخودو په ده څه نه واجبیږی.اوکه ده د درې واړه جمراتو رمی اوکړله.نودا ډیره ښه ده.ځکه چې په دې کې په مسنون طریقه رمی اوشوه.

**نظیره**۞ددې نظیردا دې.که حاجی د بیت الله طواف اوکړلو.خود حطیم طواف ئې پرېښولو .نواوس که ده صرف د حطیم د طواف اعاده اوکړه.نوجائزده.خوکه د واړه بیت طواف ئې اوکړلو.نودا ډیره ښه ده.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا يُجْزِيهِ مَا لَمْ يُعِدِ الْكُلَّ لِأَنَّهُ شُرِعَ مُرَتَّبًا اوشافعی وئیلی دی چې کافي به نه وی ترڅوچه واړه واپس نه کړی ځکه چې رمی په ترتیب مشروع شوې ده فَصَارَ كَمَا إِذَا سَعَى قَبْلَ الطَّوَافِ أَوْ بَدَأَ بِالْمَرْوَةِ قَبْلَ الصَّفَا نوشوه پشان دهغه چا چې سعۍ اوکړی اول دطواف نه اویا پیل اوکړی د مروه نه مخکې د صفا نه.

**تشریح:- مذهب الشافعی** رحمه الله ۞امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه صرف د جمره اولی رمی کافی نه ده.بلکه د درې واړو جمراتو رمی به کوی.ځکه چې رمی چې کوم ترتیب مشروع شوې ده.ده هغه ترتیب پرېخودو.اوچه هغه ترتیب ئې پرېخودو.نودا داسې شوه.لکه چې ده هډو رمی کړې نه وی.

**نظیره**۞دا داسې شوه لکه چې یوکس په عمره کې د طواف نه وړاندې سعی اوکړله.نودا په اتفاق سره ناجائزده.ځکه چې ترتیب ئې غلط کړلو.یا یوحاجی په سعی کې د صفا په ځائې د مروه نه پیل اوکړله. نو دا په اتفاق سره ناجائزده.نودغه ډول که د رمی اولی ویشتل د دویمې او دریمې نه روسته اوشی.نودا هم ناجائزه ده.ځکه چې په دې کې هم ترتیب فوت شو.

وَلَنَا أَنَّ كُلَّ جَمْرَةٍ قُرْبَةٌ مَقْصُودَةٌ بِنَفْسِهَا زمونږدلیل دادې چې هره جمره بذات خود مقصود ده وَالْأَفَلَا تَتَعَلَّقُ الْجَوَازُ بِتَقْدِيمِ الْبَعْضِ عَلَى الْبَعْضِ روسته جوازبه دبعضو په بعضو د مقدم کاوه پورې متعلق نه وی

**تشریح:- دلیل الاحناف** رحمهم الله ۞زمونږدلیل دا دې.چه د هرې جمرې ویشتل بذات خود یومستقل قربت مقصوده ده.نود رمی جواز دې سره نه دې متعلق چې بعضې په بعضې باندې مقدم کړې شی.بلکه چې د کومې جمره رمی اوکړې شی.نوهغه به قربت واقع کیږی.

بِخِلَافِ السَّعْيِ په خلاف د سعی، لِأَنَّهُ تَابِعٌ لِلطَّوَافِ ځکه چې سعی تابع د طواف ده لِأَنَّهُ دُونَهُ او دطواف نه ئې درجه کمه ده. وَالْمَرْوَةُ عُرِفَتْ مُنْتَهَى السَّعْيِ بِالنَّصِّ اوبه مروه ختمول دسعی په نص سره معلوم شوی دی فَلَا تَتَعَلَّقُ بِهَا الْبُدَاءَةُ نوپه مروه به ابتداء کوی متعلق نه وی.

**تشریح:- الجواب عن القیاس**۞سپه خلاف د سعی کې ځکه چې سعی د طواف تابع ده.نواصل مقصود طواف



دې .اوسعی د هغې تابع دې.ځکه چې سعی په مرتبه کې د طواف نه کمه ده.هم دا وجه ده.چه طواف د سعی نه بغیرجائزدې.او سعی بغیرد طواف نه مشروع نه ده.حاصل دا چې د هرې جمرې ویشتل بذات خود یوعبادت مقصوده ده.یود بل تابع نه ده.اوپه سعی او طواف کې سعی د طواف تابع ده.نوځکه به رمی په سعی باندې نشی قیاس کولې.اود صفا نه پیل کول د نص قرآنی [إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ] نه ثابته شوې ده.یعنی مونږ ته حکم شوې دې.چه سعی د صفا نه پیل کوو.نود مروه ابتداء کول ورسره متعلق نشو.

## د پیدل حج کولو نذر کول

قَالَ وَمَنْ جَعَلَ عَلَى نَفْسِهِ أَنْ يَحُجَّ مَاشِيًا چا چې لازم کړو په ځان پیدل حج کول فَإِنَّهُ لَا يَرْكَبُ حَتَّى يَطُوفَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ نودې به نه سوریږی تر دې چې طواف زیارت پوره کړی. وَفِي الْأَصْلِ خَيَّرَهُ بَيْنَ الرُّكُوبِ وَالْمَشْيِ، اوپه مبسوط کې ئې ده ته اختیار ورکړې دې په سوریدو اوپیدل تګ کښې، وَهَذَا إِشَارَةٌ إِلَى الْوُجُوبِ وَهُوَ الْأَصْلُ او دا اشاره ده وجوب اړخ ته اودا اصل دې.

**حل اللغة**: ① جعل، جعلاً (ف): کول، جوړول ② ماشیا: پیدل ③ رکوب: سوریدل

**تشریح:- نذر الحج ماشیاً**۞مسئله دا ده.که یوکس پیدل حج کول نذرکړلو.نوپه ده باندې پیدل حج کول لازم دې.نه به سوریږی.ترڅوچه ئې طواف زیارت نه وی کړې.دا د جامع صغیرعبارت دې.اوهم دا صحیح دې. اوپه مبسوط کې ورته د پیدل او سپرلۍ اختیارورکړې شوې دې.

لِأَنَّهُ الْتَزَمَ الْقُرْبَةَ بِصِفَةِ الْكَمَالِ فَتَلْزَمُهُ بِتِلْكَ الصِّفَةِ ځکه چې ده دقربت التزام په صفت دکمال کړې دې نوپه دغې صفت سره به پرې لازم وی كَمَا إِذَا نَذَرَ بِالصَّوْمِ مُتَتَابِعًا وَأَفْعَالُ الْحَجِّ تَنْتَهِي بِطَوَافِ الزِّيَارَةِ لکه چې یوسړی چې دبلا ناغه روژو نیولو نذر اوکړی اودحج افعال په طواف زیارت ختمیږی فَيَمْشِي إِلَى أَنْ يَطُوفَهُ نوبرابر پیدل به روان وی تر دې چې طواف زیارت اوکړی

**حل اللغة**: ① متتابعا:وار په وار

**تشریح:- دلیل وجوب المشی**۞صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه د جامع صغیرد عبارت ﴿لا یرکب حتی یطوف طواف الزیارة﴾ نه د پیدل حج وجوب ثابتیږی.اوهم دا اصل دې.یعنی د قواعدو مطابق دې.ځکه چې یو کس یوعبادت علی وجه الکمال په ځان باندې واجب کړلو.نوهغه به په ناقص نه ادا کیږی.اوپه پیدل حج کول صفت کمال دې.ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی. ﴿من حج ماشیاً فله بکل خطوة حسنة من حسنات الحرم،قیل وما حسنات الحرم؟قال کل حسنة بسبع مائة﴾ یعنی چا چې پیدل حج اوکړلو.نوده ته به په هرقدم د حرم دنیکو نه ملاویږی.پوښتنه اوشو.د حرم نیکۍ څه دی.نونبی ﷺ اوفرمائیل.چه دحرم یوه نیکی د اووه سوو نیکو برابرده.بهرحال پیدل حج کول صفت کمال دې.اوده په صفت کمال سره د حج نذرکړې دې.نوهم په هغه صفت سره به ئې ادا کوی.په کوم صفت چې ئې نذرکړې وی.یعنی پیدل حج کول پرې لازم دی.لکه څنګه چې یوسړې بلا ناغه روژې نذرکړی.نوپه ده باندې بلا ناغه روژې نیول واجب دی. اودحج افعال د طواف زیارته پورې وی.نوپه ده باندې د طواف زیارته پورې پیدل تګ واجب دې.

ثُمَّ قِيلَ: يَبْتَدِئُ الْمَشْيَ مِنْ حِينِ يُحْرِمُ وَقِيلَ مِنْ بَيْتِهِ لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّهُ هُوَ الْمُرَادُ بیا وئیلې شوی دی چې پیدل تلل به پیل کوی د احرام تړلونه اووئیلې شوی دی چې دکورنه ځکه ظاهر داده چې د ده مراد دا وو

**تشریح:- القولان في ابتداء المشی**۞پاتې شوه دا خبره چې پیدل تګ به دکوم ځائې نه پیل کوی.① نوبعضې عالمانوفرمائیلی دی.چه د کوم ځائې نه احرام تړی.دهغه ځائې څخه به ئې پیل کوی.② اوبعضو وئیلی دی. چې دخپل کور څخه به ئې پیل کوی.ځکه چې په ظاهره هم دا مراد دې.

وَلَوْ رَكِبَ أَرَاقَ دَمًا لِأَنَّهُ أَدْخَلَ نَقْصًا فِيهِ که سورشو نوقربانی به کوی.ځکه چې ده په نذرکې نقص داخل کړو

تشریح:- وجوب الدم بترک المشی۞که د پیدل نذر کاوه نه روسته څوک په سپرلئ سورشو.نو په ده به دم لازم وی.خکه چې په کومه طریقه ئې نذرکړې وو.په هغې کې نقص راغلو.نود نقصان تلافی کاوه لپاره پرې دم لازمیږی.

۞التطبیق بین العبارتین۞صاحب دهدایه رحمه الله د جامع صغیراومبسوط په عبارتونوکې تطبیق کوی.اوفرمائی.که

قَالُوا إِنَّمَا يَرْكَبُ إِذَا بَعُدَتِ الْمَسَافَةُ وَشَقَّ عَلَيْهِ الْمَشْيُ مشائخو وئیلی دی چې سوریږی به هله که مسافه اوږده وو اوپیدل تلل ګران وو وَإِذَا قَرُبَتْ وَالرَّجُلُ مِمَّنْ يَعْتَادُ الْمَشْيَ وَلَا يَشُقُّ عَلَيْهِ يَنْبَغِي أَنْ لَا يَرْكَبَ اوکه مسافه نزدې وواو دې دهغوی خلګو څنې ووکوم چې د تلو عادت وی او پیدل تلل ورته ګران نه وو نوپکار دی چې سور نشی.

تشریح:- التطبیق بین العبارتین۞صاحب دهدایه رحمه الله د جامع صغیراومبسوط په عبارتونوکې تطبیق کوی.اوفرمائی.که مزل لرې وی.اوپیدل تګ ورته ګران وی.اوسبب د مشقت وی.نو سوریدل ورله جائز دی.اوکه مزل نزدې وی.اوپه پیدل تګ کې تکلیف نه وی.اوده عادت هم د پیدل تګ وی.نومناسب دا دی.چه سورنشی.لکه څنګه چې د جامع صغیرعبارت دې.

### د اجازت کولو نه روسته د محرمې وینزې خرڅول

وَمَنْ بَاعَ جَارِيَةً مُحْرِمَةً قَدْ أَذِنَ لَهَا مَوْلَاهَا فِي ذَلِكَ چا چې داسې وینځه خرڅه کړه چې په احرام کې وه اومالک ورته اجازت کړې وو فَلِلْمُشْتَرِي أَنْ يُحَلِّلَهَا وَيُجَامِعَهَا نومشتری له جائز دی چې وینځه حلاله کړی او جماع ورسره اوکړی.

حل اللغة ۞ ① باع، بیعاً ض: خرڅول ② جاریة: وینځه ③ یجامعها، جامع مجامعة: جماع کول

تشریح:- المذهبان فی تحلیل احرام الجاریة المحرمة المشتراة۞مسئله دا ده.①که یوکس خپله محرمه وینزه خرڅه کړله.حالانکه د احرام اجازت ئې ورته ورکړې وو.نوده دا بیع جائزده.اومشتری که حلال وی.نوهغه په دې حلالولې شی.اوجماع ورسره کولې شی

وَقَالَ زُفَرُ: لَيْسَ لَهُ ذَلِكَ لِأَنَّ هَذَا عَقْدٌ سَبَقَ مِلْكَهُ فَلَا يَتَمَكَّنُ مِنْ فَسْخِهِ امام زفرفرمائی چې دا اختیارئې نشته خکه چې احرام یوعقد دې چې په ملك دمشتری رومبې دې نودې ئې نشی ماتولې كَمَا إِذَا اشْتَرَى جَارِيَةً مَنْكُوحَةً داسې ده لکه چې دې منکوحه وینځه واخلی.

حل اللغة ۞ ① منکوحة: د چا چې نکاح شوې وی.

۞دلیله۞دامام زفر رحمه الله دلیل دا دې.چه احرام داسې عقد دې.چه دمشتری په ملك کې د راتلونه وړاندې دا موجود شوې دې.نوده ته دهغه عقد د فسخ کولواختیارنشته.اودا داسې دې.لکه چې یوکس د بل منکوحه وینزه واخستله.نود اخستلونه روسته مشتری ته دا اختیارنشته.چه د هغه سره ورله نکاح فسخ کړی.اوخپله ورسره جماع اوکړی.البته که مشتری ته پته نه وی.چه دا د بل چا منکوحه ده. نو چونکه په دې صورت کې په وینزه کې عیب پیدا شو.نودې دغه وینزه واپس کولې شی.دغه ډول که په دې صورت کې هم مشتری ته دا اختیارنشته.چه وینزه د احرامه نه حلاله کړی.اوجماع ورسره اوکړی.البته که د وینزې د احرام پته نه وی.نوچونکه په دې کې نقص موجود دې.هغه نقص د احرام دې.نومشتری ته د واپس کولواختیارشته.

وَلَنَا أَنَّ الْمُشْتَرِيَ قَائِمٌ مَقَامَ الْبَائِعِ وَقَدْ كَانَ لِلْبَائِعِ أَنْ يُحَلِّلَهَا، فَكَذَا الْمُشْتَرِي دلیل دادې چې مشتری دبائع قائمقام دې اوبائع ته دې دحلالولو اختیاروو.دغسې به دمشتری لپاره هم وی إِلَّا أَنَّهُ يُكْرَهُ ذَلِكَ لِلْبَائِعِ لِمَا فِيهِ مِنْ خُلْفِ الْوَعْدِ صرف دومره ده چې بائع لره دا مکروه وو خکه چې په دې کې وعده خلافی ده وَهَذَا الْمَعْنَى لَمْ يُوجَدْ فِي حَقِّ الْمُشْتَرِي اودا معنی نه موجودیږی په حق د مشتری کښې



تشریح:- دلیل جمهورالاحناف رحمهم الله۞زمونږدلیل دا دې چه مشتری د بائع قائم مقام دې.اوبائع ته دا اختیاروو.چه وینزه حلاله کړی.اوجماع ورسره اوکړی.نودغه ډول مشتری ته چې دهغه قائم مقام دې هم دا اختیار شته.البته دومره خبره ده.چه د بائع لپاره ددې حلالول مکروه دی.خکه چې ده ورته د احرام اجازت کړې وو.نوګویا چې ده ورسره دا وعده کړې وه.چه زه به درسره جماع نه کوم.خوچه دې ئې داجازت نه روسته هم بیا حلالوی.نوپه خپله وعده کې مخالفت کوی.خکه د بائع لپاره حلالول مکروه دی.اومشتری خوچونکه د احرام ترلو اجازت نه دې ورکړې.اونه ئې ورسره د جماع نه کولووعده کړې ده.نوده ده لپاره د وینزې په حلالولوکې کراهت هم نشته.خکه چې وعده خلافی نشته.

بِخِلَافِ النِّكَاحِ او دا معنی دمشتری په حق کې نشی موندې په خلاف د نکاح لِأَنَّهُ مَا كَانَ لِلْبَائِعِ أَنْ يَفْسَخَهُ إِذَا بَاشَرَتْ بِإِذْنِهِ چې بائع ته پخپله همدا اختیار نه ووچه نکاح فسخ کړی هرکله چې دده په اجازت شوې ده. فَكَذَا لَا يَكُونُ ذَلِكَ لِلْمُشْتَرِي نودغسې به مشتری ته هم دا اختیار نه وی

حل اللغة ۞ ① یفسخ، فسخا (ن): ختمول زائل کول

تشریح:- الجواب عن قیاس زفر رحمه الله۞په خلاف د وینزې د نکاح د مسئلې خکه چې د نکاح په صورت کې بائع ته په خپله دا اختیارنشته.چه نکاح فسخ کړی.سره ددې نه چې نکاح هم د هغه په اجازت سره ترلې شوې وی.نوچونکه مشتری د بائع قائم مقام دې.نوده ته به هم د خپل تصرف کاوه لپاره د نکاح فسخ کولواختیارنه وی.خکه چې بائع ته حاصل نه وو.چه دې د هغه خلیفه دې.نوده ته به څه حاصل شی.

وَإِذَا كَانَ لَهُ أَنْ يُحَلِّلَهَا لَا يَتَمَكَّنُ مِنْ رَدِّهَا بِالْعَيْبِ عِنْدَنَا او هرکله چې مشتری ته د محرمې وینځې دحلالولو اختیار اوشو.نوپه عیب سره به ئې د واپس کولوقدرت هم نه وی زمونږ. وَعِنْدَ زُفَرَ يَتَمَكَّنُ لِأَنَّهُ مَمْنُوعٌ عَنْ غِشْيَانِهَا اوپه نزد د امام زفر رحمه الله به ورته قدرت وی.خکه چې دې د وینزې د خان لاندې راوستو نه منع دې

حل اللغة ۞ ① حللها، حلل تحلیلاً: حلالیدل

تشریح:- ثمرة الاختلاف۞ ①صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.هرکله چې مشتری ته د وینزې د احرام نه د حلالولو اختیار شته.نودې دا وینزه نشی واپس کولې.چه دا محرمه ده.خکه چې کوم داحرام عیب په دې کښې دې.دهغې ازاله دې کولې شی.نوعیب پاتې نشو.اوچه عیب پاتې نشو.نود واپس کولواختیارورته هم ملاؤ نشو.②البته دامام زفر رحمه الله په نیزچونکه مشتری ته دا اختیارنشته.چه وینزه حلاله کړی.اوجماع ورسره اوکړی.نواحرام عیب دې.اوکه په مبیعه کې عیب پیدا شی.مشتری ته د واپس کاوه اختیار وی.نوخکه په دې صورت کې هم د امام زفر رحمه الله په نیز ویزه واپس کولې شی.

وَذُكِرَ فِي بَعْضِ النُّسَخِ: أَوْ يُجَامِعَهَا او په بعضو نسخوکې ((اویجامعها)) مذکور دې. وَالْأَوَّلُ يَدُلُّ عَلَى أَنَّهُ يُحَلِّلُهَا بِغَيْرِ الْجِمَاعِ بِقَصِّ شَعْرٍ أَوْ بِقَلْمِ ظُفُرٍ ثُمَّ يُجَامِعُهَا او اول په دې دال دې چې دې به ئې حلاله کړی په غیر د جماع نه په ویختولرې کولوسره یا نوکونو پریکولو. بیا دې ورسره جماع اوکړی وَالثَّانِي يَدُلُّ عَلَى أَنَّهُ يُحَلِّلُهَا بِالْمُجَامَعَةِ لِأَنَّهُ لَا يَخْلُو عَنْ تَقْدِيمِ مَسٍّ يَقَعُ بِهِ التَّحَلُّلُ اودویمه نسخه په دې دال ده چې دې لره دې په مجامعت سره حلاله کړی خکه چې دجماع نه مخکې مسه کول خامخا وی چې تحلیل واقع شی

حل اللغة ۞ ① ظفر: نوکونه ② لایخلو، خلا خلوا (ن): خالی کیدل ③ مس: لاس لګول

تشریح:- اوامام زفر رحمه الله فرمائی.چه مشتری ته دا اختیارنشته

تشریح:- اختلاف النسختین۞صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه دجامع صغیره په بعضې نسخوکې «أو یجامعها» دی.یعنی په لومړنی نسخ کې په «واو» سره اوپه بله نسخه کې په «أو» سره دی.د لومړنی نسخې عبارت کوم چې دلته په متن کې دې.په دې خبره دلالت کوی.چه وینزه اول د جماع نه علاوه په بل څه سره حلاله کړی.لکه ویختنه خرئیل یا کټ کول.اوبیا دې ورسره جماع اوکړی.اود دویمې نسخې عبارت په دې دلالت

کوي.چه محرمه وينزه دې په جماع سره حلاله کړي.خوپه دې صورت کې به هم هغه د جماع نه وړاندې حلاليږي.ځکه چې د جماع نه وړاندې مس په شهوت سره وي.او د شهوت په مس محرمه حلاليږي.نوپه دې صورت کې هم اول حلاليږي.اوبيا ورسره جماع کيږي.

وَالْأَوْلَى أَنْ يُحِلَّهَا بِغَيْرِ الْمُجَامَعَةِ تَعْظِيمًا لِأَمْرِ الْحَجِّ وَاللَّهُ أَعْلَمُ والله اعلم اوغوره دا ده چې د مجامعت نه په علاوه نې حلاله کړي د امر دحج د تعظيم په وجه والله اعلم.

تشريح:- خومونږ وايو.چه مس په شهوت سره هم د جماع پشان ده.نوپه شهوت سره په مس حلاليدل داسې دي.لکه چې په جماع سره حلاله شي. بهتره دا ده.چه محرمه وينزه اول د جماع مس اوبوسې اخستلونه علاوه په بل څه سره حلاله کړي.اوبيا ورسره جماع اوکړي.ځکه چې دې طريقه په حلالولوکي د حج اوعمرې عظمت پاته پاتې کيږي.اوپه جماع سره په حلالولوکي دحج عظمت نه پاتې کيږي.

تمت بالخير

[چور (حمله)
[چم (چل)

(ح)

[حکمي مرداري (حکمي نجاست)

(خ)

[خلګ (خلق)
[خلګو (خلقو)
[خپاره (خواره)

(د)

[دغه ډول (دغه شان)
[د عمل ور (د عمل ور)
[درلودئ (لرلو)
[دربیم (دریم)

(ر)

[راسته (ښي)
[راتګ (راتلل)

(ز)

[زمور (مونږ)
[زیږیدل (پیدائش)

(ژ)

[ژمور (مونږ)
[ژیږیدل (پیدائش)
[ژباړي (ترجمې)
[ژباړه (ترجمه)
[ژي (مشکیزه)
[ژوول (جوئیل)
[ژي (مشکیزه)

(س)

[سهار (صبا)
[ساتنه (حفاظت)
[سربیره (دپاسه)
[سراج (ډیوه)
[سلواغه (بوقه)
[ساعتونه (لمحات)
[ساعت (لحمه)
[سراج (ډیوه)
[سپرلئ (سورلئ)

[پیوسته (مسلسل)
[پیشی (پیشو)
[پیشلمی (پیشمني)
[پور (قرض)
[پوست (پوستکي)
[پور (قرضې)
[پوولي (خرولي)
[پښو (خپو)
[پښي (خپې)
[پوول (خرول)
[پلنده (تان)
[پرېښودي (پریخودي)

(ت)

[توانګر (مالدار)
[توپیر (فرق)
[توپیر (توپیر (تبدیلي))
[تیخرګ (ترخ)
[توان (طاقت)
[توپیر (تبدیلي)

(ټ)

[ټوک (جلد)

(ټ)

[ټوک (جلد)

(ج)

[جلا (جدا)
[جلا جلا (جدا جدا)

(چ)

[چوپوالي (خاموشي)
[چپه (ګس)
[چوپ (چپ)
[چم (چل)
[چنګوبنه (چیندخ)
[چوغکه (مرغئ)
[چتلي (ګندګي)
[چمپلان (څپلئ)
[چاغه (تیاره)
[چمپلان (څپلئ)

[امله (وجې)
[اړخ (طرف)
[انديوال (ملګری)
[اوپریمنځل (اووینځل)
[اړتیا (ضرورت)
[اړه (باره)
[الغه (حلقه)
[اخته (مبتلا)
[انديوالان (ملګری)
[ایله کړي (پرانستي)
[انا (نیا)
[اکا (تره)
[اونه کی (اونکړی)

(ب)

[برخو (حصو)
[برخه (حصه)
[بیرغ (جنډا)
[بلا ناغه (پرله پسې)
[باید ده (پکار ده)
[بوخت (مشغول)
[بولي (متیازي)
[بازي (لوبې)
[بې غوری (کوتاهی)
[بوق (قب)
[بته (مټه)
[بندی خانه (جیلخانه)

(پ)

[پاته (باقي)
[پیل (شروع)
[پوښتنه (تپوس)
[په عامه توګه (عام طور)
[پریښولو (پریخودلو)
[پاته (باقي)
[پریښول (پریخودل)
[پریښولو (پریخودلو)
[پزه (پوزه)
[پرپه)
[پریښولو (پریښولو)



[مځکه (زمکه)

(ن)

[ننسانه (ننبه)
[نجوني (نجوني (جینکئ))
[نفر (کسان)
[ننښلیدل (لګیدل)
[ناړي (لیاړي)
[ننښتیزل (نچورول)
[نژدې (نیزدې)
[نومول (نامدار)

(و)

[ویش (تقسیم)
[واړه (تول)
[وزه (چیلئ)
[ولاړ شه (لاړ شه)
[ورون (پتون)
[ورونان (پتونان)
[ور کولای شي (کولې شي)
[ور کولای (کولې)
[وپلوری (خرڅه کړی)
[ویاله (نهر)

(ه)

[هسکې (پچې)
[هنداره (شیشه)

[کولای شي (کولې شي)
[کوټ (خیري)
[کوخیو (کونسئ)
[کنبتئ (کشتئ)
[کونجته (کونخله)
[کولاي (کولې)
[کرار کرار (مزه مزه)

(ګ)

[ګډ (شامل)
[ګونډئ (کونډئ)
[ګوله (نمرئ)
[ګښتونه (چکرونه)
[ګټور (ګټور (فائده مند))
[ګټور (فائده مند)
[ګرځ (ګرد)

(ل)

[لنډیز (خلاصه)
[لمر (نمر)
[لینګئ (پنډئ)
[لنګوټي (پټکی)
[لږترلږه (کم ازکم)
[لویدیځ (مغرب)
[لاستي (لاسکي)
[لوټه (کوزه)
[لاچاري (مجبوري)

(م)

[مهال (دوران)
[ماپښین (ماسپخین)
[میړه (خاوند)
[مسبوق (خلیفه)
[مرداري (پلیتي)
[منځنی (درمیانه)
[مسافه (مسافت)
[مولښتي (پیوست)
[مچی کول (ښکلول)
[مندي (میاندي)
[مړینه (مرکیدل)
[منګوړ (کتمل)

[سرېټ (سرپوښ)
[سرکبنه (سرکشه)
[ساعت (لمحه)
[سپنسي (مزي)

(ش)

[شی (څیز)
[شیان (شیان (څګیزونه))
[شرموښ (شرمخ)
[شاګر (شاګرد)
[شتمن (مالدارن)
[شتمن (مالدارن)

(ص)

[صحرائي (باندیچي)
[صندخ (صندوق)

(ط)

[طرفه (اړخه)

(ع)

[عکس (تصویر)
[عجلی (تیزي)

(ف)

[فرش (قالین)

(ق)

[فرش (قالین)
[قرضونه (پوروته)
[قلف (تاله)

(ک)

[کوښښ (کوشش)
[کاوه (کولو)
[کیداي (کیدي)
[کومک (مدد)
[کښته (ښکته)
[کښښتل (کیناستل)
[کالي (جامه)
[کوخیو (کونسئ)
[کشور (شمشتئ)
[کوخیو (کوخو)
[کښت (پټي)
[کشف (شمشتئ)